بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

حنفی شافعی

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔


کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551
+923247442395


easypaisa





مالکی حنبلی

# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبدالکریم صدیقی وقاری امیرنواز

## جلد نمبر (۶)

**تسهیلات از شاه فیصل**

① د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه
② د احادیثو تخریج
③ د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت
④ مناسب عنوانات ورکول

خورونکې

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د کتـــاب نـــوم : تفـــسیرخیرکثیرترجمه تفـــسیرابن کثـــیر
مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقي المتوفی ۷۷۴ هجری
خورونکي : فیصل کتب خانه محله جنگی
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا

مکتبه روغانیول جلال آباد
مکتبه رحیمی خوست
نعمت کتب خانه کابل
انتشارات علامه تفتازانی هرات وکابل
صداقت کتب خانه قندهار وکابل
قدرت کتاب فروشی کابل ننګرهار
علمی کتب خانه ګردیز
مکتبه علمیه اکوړه ختك
دینی کتب خانه تیمرګره ره
فلاح کتب خانه جلال اباد
مکتبه فریدیه خوست
دیوبند کتب خانه خوست
جدید رشیدیه کتب خانه کابل
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه نعمانیه غزنی
مکتبه رحمانیه قندهار
امیر حمزة کتب خانه قندهار

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| صفحه نمبر | عنوانات |
|---|---|

| صفحه نمبر | عنوانات |
|---|---|

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|

| اياتونه | سورة الاحقاف مكية وهي خمس وثلاثون اية واربع ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۳۵ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۴ |

حٰمٓ ۝ تَنۡزِيۡلُ الۡكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَكِيۡمِ ۝

ح م | نازليدل ددې كتاب | دطرفه دالله | غالب | او حكمت والا نه دى |

حم | ددې كتاب راليږل د الله د طرفه دى| چې غالب اوصاحب د حكمت دې

مَا خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَاۤ اِلَّا بِالۡحَقِّ

نه دى پيدا كړي مونږه | اسمانونه او زمكه | او هغه چې په منځ ددې دواړو كښې دى | مګر دحق سره

اومونږ اسمانونه اوزمكه او ددې دواړو په مينځ كښې چې څه دى په ډير حكمت سرنه اوپه يوه

وَاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا عَمَّاۤ اُنۡذِرُوۡا

او دنيتې مقررې سره | او هغه كسان | چې كفر ئې اوكړو | دهغې حقيقت نه | چې يرولې كيږى تر دوئ

مقرره نيته پيدا كړى دى |او كافران چې دكومو څيزونو نه ويرولې شى | هم د هغه څيزونو نه ډډه

مُعۡرِضُوۡنَ ۝ قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ مَّا تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

مخ اړونكي دى | اووايه | ايا وينئ تاسو | هغه هستيانې | چې رابلئ ئې تاسو | ماسوا دالله نه

كونكى دى| (ائې نبى ﷺ) ورته اووايه چې تاسو دالله ﷻ نه سوا دنورو كومو څيزونو عبادت كوئ

اَرُوۡنِىۡ مَاذَا خَلَقُوۡا مِنَ الۡاَرۡضِ اَمۡ لَهُمۡ شِرۡكٌ

اوښايئ ماته | چې څه پيدا كړى دى دوئ | دزمكې نه | يا دوئ لره | څه حصه ده

نودا راته اوښائې چې هغوئ په زمكه كښې كوم څيز پيدا كړې دې | يا هغوئ د

فِى السَّمٰوٰتِ ؕ اِيۡتُوۡنِىۡ بِكِتٰبٍ مِّنۡ قَبۡلِ

په (پيدا كولود) اسمانونو كښې | راوړئ ماته | يو كتاب | چې نازل شوې وى مخكښې ددې نه

اسمانونو(په جوړولو) كښې شريك دى|كه چرې (دشرك په حق كښې)تاسو سره څه سابقه اسمانى كتاب

هٰذَاۤ اَوۡ اَثٰرَةٍ مِّنۡ عِلۡمٍ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ۝ وَمَنۡ اَضَلُّ مِمَّنۡ

يا پاتې څه حصه | دعلم نه | كه يئ تاسو | رښتينى | او څوك دې | زيات بې لارې | دهغه چانه

ياعلمى اثارموجودوى |نو ماته ئې راوړئ كه تاسو رښتونى يئ |اود هغه چانه به لوئې ګمراه څوك وى

يَّدۡعُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَنۡ لَّا يَسۡتَجِيۡبُ لَهٗۤ اِلٰى يَوۡمِ

چې رابلى هغوئ | بې دالله نه | هغه څوك | چې جواب نه شى وركولې | هغه لره | دورځې

چې دالله ﷻ نه بغير د هغه څيزونو عبادت كوى | چې ترقيامته پورې ورته جواب نشى وركولې

الۡقِيٰمَةِ وَهُمۡ عَنۡ دُعَآئِهِمۡ غٰفِلُوۡنَ ۝ وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ

دقيامته پورې | او هغوئ | دبلنې دهغوئ نه | ناخبره دى | او كله چې | راجمع كړې شى خلق

بلكه هغوئ د دوى د بلنې نه هم خبر نه دى| ..............اوكله چې ټول خلق (دقيامت په ورځ

| كَانُوْا | لَهُمْ | اَعْدَآءً | وَّكَانُوْا | بِعِبَادَتِهِمْ | كٰفِرِيْنَ⑥ |
|---|---|---|---|---|---|
| نووى به (معبودان) | دپاره دهغه بلونكو | دشمنان | اووى به هغوئ | دعبادت دهغوئ نه | انكار كونكى |
| راغونډ كړې شي | نو دغه معبودان به ئې دښمنان شي | | او ددوئ دعبادت نه به (بيخي) انكاركونكى شي | | |

**قوله تعالى:- تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ**

**د قران پاک عظمت او دليل عقلي او زجر :** الله ﷻ خبر وركوى چه هغه پاك ذات دا قران پاك په خپل بنده او خپل رښتونى رسول حضرت محمد ﷺ باندې نازل كړې دې . اوبيان فرمائى چه رب تعالى ﷻ داسې عزت والا دى چه هيڅكله به زائل نشى.اوداسې زبردست حكمت والا دې چه دهغه هيڅ يو قول د حكمت نه خالى نه دې . بيا ارشاد فرمائى چه آسمان او زمكې وغيره ټول څيزونه هغه عبث او باطل نه دى پيدا كړى . بلكه سراسر حق سره او بهترين تدبير سره ئې پيدا كړى دى. او ددې ټولو دپاره وخت مقرر دې . چه نه زياتې كيږى او نه كميږى . دوئ چه ددې رسول ﷺ نه، ددې كتاب عظيم الشان نه اودالله ﷻ دويرې نه چه كوم بې پرواهى كوى نوهغوئ ته به ډير زر معلوم شى چه دوى څومره زيات خپل نقصان كړې دې .

**قوله تعالى:- قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ**

**د مشركانو په شرك باندې د دليل مطالبه:-** بيا فرمائى چه لږ دې مشركانو نه تپوس اوكړئى چه دالله ﷻ نه سواچه دچاپه نوم تاسو ژوندى يئ او تاسو كومو نه مدد غواړئى،اوتاسو چه دچا عبادت كوئى ، لږ خو ماته هم ددى طاقت او قدرت اوښائې چه دوى دزمكې كومه يوه ټكړه پخپله جوړه كړې ده ؟ يا دا خو ثابت كړئى چه زمكه او آسمان كښې ددوى شركت څومره او چرته دې ؟ حقيقت دادې كه زمكه وى او آسمان يا نور څيزونه ددې ټولو پيدا كولووالا صرف الله ﷻ دې ، دهغه ذات نه سوا دوى ته ديو ذرې اختيار هم نشته دې .د ټول ملك مالك هم هغه ذات دې .دهر څيز كامل تصرف او قبضه لرونكې صرف هغه ذات دې . تاسو دهغه نه سوا د نورو عبادت ولې كوئى ؟ولې دهغه لوئې ذات نه سوا د مصيبت په وخت كښې نورو ته سوال كوئى ؟ تاسوته دا تعليم چا دركړې دې ؟ تاسو ته دا شرك چا خودلې دې ؟ اصل كښې دا ديو پوهه او عقل والا سړى تعليم نشى كيدې اونه الله ﷻ دا تعليم وركړې دى.كه تاسو د الله ﷻ نه سوا د نورو د عبادت كولو څه آسمانى دليل لرئى نو ښه دا كتاب پريږدئى او څه بله آسمانى صحيفه راوړئى.كه دا نه وى نو په دې خپل مسلك څه دليل پيش كړئى .اوڅه علم پيش كړئى. خودا هله كيديشى چه ستاسودا فعل صحيح وى .په دې باطل خو نه تاسو څه نقلى دليل پيش كولې شئ او نه عقلى .يو قرات كښې ﴿ اَوْاَثَرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ ﴾دې يعنى څه صحيح دعلم نقل مخكښنو نه پيش كړئى . حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه ددې مطلب دادې چه چا ته پيش كړئى چه د علم نقل كوى (١) حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه ددې امر څه دليل راوړئى مسند احمد كښې دى چه ددې نه مراد علمى تحرير دې (٢)

راوى وائى چه څما خيال دې چه داحديث مرفوع دې . حضرت ابوبكر بن عياش رحمه الله فرمائى چه ددې نه مراد علم دې.حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه څه مخفى دليل پيش كړئى.شاوددې بزرگانو نه دا هم منقول دى چه ددې نه مراد مخكښنې تحريرونه دى . حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه څه خاص علم . اودا ټول اقوال نزدې نزدې هم معنى دى . مراد ترې هغه دې چه كوم مونږ په شروع كښې بيان كړو. ابن جرير رحمه الله هم دا اختيار كړې دې. بيا فرمائى چه ددې نه بله زياته گمراه لار نشته دې چه تاسو الله ﷻ

---

(١) الطبرى : ٩٤/٢٢.

(٢) احمد :٢٢٦/١،وسنده صحيح وليه قال سفيان:لا اعمله الا عن النبى ﷺ طبرانى : ١٠٨٢٥، مجمع الزوائد : ١٠٨/٧، حاكم : ٤٥٤/٢).

پرېښودي دي او دبتانو نه مدد غواړئي . اودهغوئ نه خپل حاجتونه پورا كولودپاره وائي . چه دكومو حاجتونو په پورا كولو كښې ددوی هيڅ طاقت نشته دي. بلكه هغوئ خوددې نه هم ناخبره دی . نه يو څيز وركولې شي او نه اخستې شي.تر قيامته پورې به دوی دوی ته آوازونه كوی خو دوی به غافل وی. نه كتلې شي اونه آوريدې شي . صرف بې خبره دی . ځكه چه دا خوكاڼړی دی . جماداتو نه دی.د قيامت په ورځ چه كله دا عابدان راجمع شي نو دا معبودان به ددې خپلو عابدانو دښمنان شي اود دې خبرې نه به صفا انكار اوكړی چه دې خلقو ددوی عبادت كولو. لكه څنګه چه دالله ﷻارشاد دې چه ﴿وَاتَّخَذُوا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾يعنی دې خلقو دالله ﷻ نه سوا نورو لره معبودان جوړ كړی وو چه هغوئ ددوی د عزت باعث جوړ شي . واقعه داسې نه ده بلكه هغوئ به ددوی د عبادت نه هم انكار كوی . اوددوی به پورامخالف شي.يعنی اګر چه دوی به دهغوئ پورامحتاج وی. په هغه وخت كښې به هغوئ ددوی نه مخ واړوی. حضرت خليل الله عليه السلام خپل امت ته فرمائيلی وو چه ﴿إِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ أَوْثَانًا﴾الخ. يعنی تاسو چه دالله ﷻ نه سوا نورو بتانو سره دنيا كښې تعلقات قائم كړی دی د دې نتيجه به د قيامت په ورځ اوګورئي . اوتاسو به ديويل نه انكار كوئي . او ستاسو ځائي جهنم مقرر او متعين دې او تاسو به هيڅ خپل مددګار او نه مومئ .

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ

او كله چې | لوستلې كيږی | په هغوئ باندې | آيتونه زمونږه | واضحه | نو وائی هغه كسان

او كله چې د دوئ وړاندې زمونږ ښكاره ايا‌تونه اولوستې شي | نو كوم كسان چې كافران دی هغوی

كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۷ؕ اَمْ يَقُوْلُوْنَ

چې كافران دی | حق ته | هر كله چې | راشی دوئ ته | دا جادو دې ښكاره| آيا وائی دوئ

ددې ربښتينې خبرې په باره كښې وائی | كومه چې ورته رارسيدلې ده| چې دا خو ښكاره جادو دې

افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَلَا تَمْلِكُوْنَ

چې دخانه جوړ كړې دې دهٔ دا قرآن | ورته اووايه | كه دخانه جوړ كړې وی ما دا | پس نهٔ شئ بچ كولې تاسو

آيادوئ وائی چې دهٔ(پيغمبر)داكتاب دخان نه جوړكړې دې|ورته اووايه كه دا مادخان نه جوړكړې وی نوناسو

لِيْ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ؕ

مالره | دنيولو دالله نه | هيڅ قدرله | هغه | ښه عالم دې | په هغه څه | چې تاسو لګيا يئ | په هغې كښې

دالله د عذاب نه مانشئ بچ كولې اوتاسو چې دقران په حق كښې څه كښې مشغوله يې الله په هغې ښه پوهه دې

كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ؕ وَهُوَ الْغَفُوْرُ

كافی دې هغه | په حيثيت دګواه سره | په منځ زما | او په منځ ستاسو كښی | او هغه ښښونكې

زما اوستاسو په مينځ كښې يو ازې هغه ګواه كافی دې | اوهغه(الله)ډير ښښونكې او رحم كونكې دې

الرَّحِيْمُ ۸ قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ اَدْرِيْ مَا يُفْعَلُ

مهربانه دې | ورته اووايه | نهٔ يم زهٔ | نوې | درسولانونه | او ماته پته نشته | چې څه به كيږی

(ائي محبوبه) ته ورته اووايه چې زه په رسولانو كښې څهٔ نا آشنا رسول خو نه يم| زه خو په دې هم نه پوهيږم

| يُوْحَى | اِلَّا مَا | اِنْ اَتَّبِعُ | وَلَا بِكُمْ ط | بِيْ |
|---|---|---|---|---|
| چي وحی کیدې شي | مګر دهغې | نه کوم پیروي زه | اونه دا چې څه به کیږي ستاسو سره | زما سره |

چې ماسره به څه(سلوک) کیږي او تاسو سره څه | زه خو بس په هغه حکم پسې روان یم | دکومې چې راته وحی کیږي

| مُّبِيْنٌ | نَذِيْرٌ | اِلَّا | وَمَا اَنَا | اِلَيَّ |
|---|---|---|---|---|
| خبردارونکي ښکاره | | مګر | او نه یم زه | ماته |

اوزه بس یو ښکاره ويرونکي یم|

**قوله تعالى:- وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا**

**دمشرکان سرکشي او اعتراض اود اعتراض جواب:**-دمشرکانو سرکشي او دهغوئ کفربیانیږي چه کله دوی ته دالله ﷻ صفا او واضحه او ظاهر آیتونه آورولي شي نو دوی وائي چه دا خو صریح جادو دی . تکذیب او افتراء او ضلالت او کفر ددوی طریقه اوعادت دې . صرف جادو وئیلو سره بس کوی نه بلکه داسې هم وائي چه داخو حضرت محمد ﷺ په خپله جوړکړي دې .خو د حضرت نبی کریم ﷺ په ذریعه .الله ﷻ ښه جواب ورکوی که مادا قران جوړ کړې دې او څه دهغه ربښتوني نبی نه یم نو یقینا هغه به ماته په دې دروغه او بهتان باندې سخت عذاب راکوی . نوبیا تاسو څه چه ټول جهان کښې هیڅوك ما دهغه لونې ذات دعذاب نه شی بچ کولې.لکه څنګه چه بل ځائې کښې دی چه ﴿ قُلْ اِنِّيْ لَنْ يُّجِيْرَنِيْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ الخ ﴾یعنی ته اووایه چه ما دالله ﷻ لاس نه هیڅوك نشی بچ کولې.او نه ما ته د هغه نه سوا بل ځائې دسر پټولو ملاویږي.خوڅه دالله ﷻ تبلیغ او رسالت پورا کوم. اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ الخ ﴾یعنی که دوی په مونږ څه خبره جوړوی نو مونږ به دهغه لاس اونیسو او دهغه څټ پریکوؤ او تاسو کښې هیڅوك هغه نشی بچ کولې .

او بیا کفار ویروی چه ستاسو د خبرو پورا علم هغه علیم ذات شته دې . هغه به څما او ستاسو مینځ کښې فیصله کوی .ددې دهمکئ نه پس دوی ته د توبه انابت رغبت ورکوی .او فرمانی چه هغه غفور و رحیم دې.که تاسو هغه طرفته رجوع اوکړئ اودخپلو کړو نه منع شئ نوهغه ذات به هم تاسو اوبخښي اوپه تاسو به رحم اوکړي.سورة فرقان کښې هم ددې مضمون یوآیت مبارك دې چه ﴿وَقَالُوْا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا الخ ﴾:دوی وائي چه دا خود پخوانو قصې دی اوداتاسو لیکلې دی.اوسحر مابنام تاسو دا لیکئ . نواووایه چه دا هغه پاك ذات نازل کړې دې چه هر پټ څیزورته معلوم دې که په آسمانونو کښې وی او .که په زمکوکښې وی ،هغه غفور رحیم دې .

بیا ارشاد دې چه څه خو څه په دنیا کښې روميې نه یم ؟ څما نه مخکښې هم انبیاء علیهم السلام خلقو طرفته راغلی دی ،بیا څما په راتلو ولې دومره کینه کښې یئ؟ ماته خودا هم نه دی معلوم چه ماسره او تاسو سره به څه کیږي. دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په قول دې آیت نه پس ﴿ لِيَغْفِرَ لَكَ اللّٰهُ ﴾ الخ نازل شوی دې [1].داشان حضرت عکرمه رضي الله عنه، حضرت حسن رحمه الله ، حضرت قتاده رحمه الله هم دې ته منسوخ وائی.دا هم مروی دی چه کله د بخشش دا آیتونه نازل شو چه په دې کښې فرمانیلې شوی دی چه الله ﷻ به ستاسو مخکښې روستو ګناهونه اوبخښي . نویو صحابي رضي الله عنه اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! چه دا خوالله ﷻ اوفرمائیل چه هغه تاسو سره څه کولو والا دې اومونږ سره څه کولو والا دې ؟ نودې باندې دا

[1] الطبری: ٢٢/٩٩.

آیت مبارك نازل شو چه ﴿ لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ (١) چه الله ﷻ به هر مومن سړي او هره مومنه ښځه داسې جنتونو ته داخل کړي چه دهغې لاندې نهرونه بهیږي .
صحیح حدیث مبارك نه دا هم معلومیږي چه مومنانو اووئیل یارسو الله ﷺ ! تاسوته دې مبارك وی ،دا فرمانې چه څمونږدپاره څه حکم دې ؟ نو دې باندې الله ﷻ دا آیت مبارك نازل کړو . (٢) حضرت ضحاك رحمه الله ددې آیت مبارك تفسیر کښې فرمانی چه ماته معلوم نه دی چه څه د څه څیز ورکړم اود څه څیز نه منع شم . دامام حسن بصری رحمه الله قول دې چه ددې آیت مبارك دا مطلب دې چه ماته د آخرت دانجام بالکل معلومات نشته دې چه څه به جنت ته ځم.او نه راته دنیاوی حال معلوم دې چه د مخکښې نبیانو علیهم السلام په شان به قتل کړې شم یا به د خپل ژوند ورځې پورا کړم اوالله ﷻ ته به رجوع اوکړم ؟ او داسې څه نشم ونیلې چه تاسو به ښخ کړې شئ او تاسوباندې به کاڼړی راوریږی . امام ابن جریر رحمه الله هم دې ته معتبروانی . او فی الواقع دا صحیح هم دی . او دوی ته یقین سره معلوم ووچه دوی او ددوی صحابه کرام رضي الله عنهم هم جنت ته داخلیږی او ددنیا د حالت د انجام نه دوی خبر نه وو چه ددوی او ددوی د صحابه کرام رضي الله عنهم انجام به څه وی او ددوی دمخالفو قریشو انجام به څه وی ؟ چه هغوئ به ایمان راوړی او که په کفر کښې به وی اوکه ورته به عذاب ورکولې شی اوکه هلاکولې به شی. خو چه کوم حدیث مبارك مسند کښې دې چه حضرت ام العلاء رضي الله عنها فرمانی چه دې د حضرت نبی کریم ﷺ نه بیعت کړې وو چه کله مهاجرین انصارو کښې د قرعه اندازنی په ذریعه تقسیمیدل نو په هغه وخت کښې زمونږ حصه کښې حضرت عثمان بـ مظعون رضي الله عنه راغلو ، دوی مونږ سره بیمار شو او بیا فوت شو. کله چه مونږدوی کفن دفن کړی او حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو څما د خولې نه اووتل چه انې ابوالسائب الله ﷻ دې په تاسو رحم اوکړی څما خوپه تاسو یقین دې چه الله ﷻ به ستاسو هم اکرام کوی . په دې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاته څنګه معلوم دی چه الله ﷻ به دده اکرام کوی . مااووئیل چه یارسوالله ﷺ ! څما مور پلار دې په تاسو قربان وی ماته معلوم نه دی . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئی چه دوی ته خوددوی د رب ﷻ یقین راغلو او څما ددوی دپاره د خیرخواهئ او نیکئ امید دې . په الله ﷻ قسم چه درسول کیدو نه باوجود ماته نه دی معلوم چه ماسره به الله ﷻ څه کوی ؟ نو مااووئیل چه په الله ﷻ قسم څه به دې نه پس دچا برائت باره کښې خبره نه کوم . او څه په دې ډیر زیات خفه شوم . خو ما خوب کښې اوکتل چه د حضرت عثمان مظعون رضي الله عنه یو نهر بهیږی نوځه راغلم اوحضرت نبی کریم ﷺ ته مې ددې ذکر اوکړونوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا دهغه اعمال دی.دا حدیث مبارك بخاری شریف کښې شته دې(٣) مسلم شریف کښې نشته دې . اوددې یوسند کښې دی چه ماته معلوم نه دی چه ددې باوجود چه څه دالله ﷻ رسول یم چه ماسره به څه کیږی ؟(٤) زړه ته هم دا ښه لګی چه هم دا الفاظ دموقعې مناسبت سره صحیح دی . څکه چه ددې نه پس دا جمله ده چه څه دې سره ډیره زیاته خفه شوم.
**چاته یقینې جنتنی یا یقینی دوزخی وئیل نه دی پکار**:-الغرض دا حدیث او ددې هم معنی نور احادیث دا دلالت کوی په دې امر باندې چه د یو معین سړی دپاره د جنتی کیدو قطعی علم چاته نشته دې . او چا ته پکار ندی چه داسې خبره د خولې نه اوباسی . سواد هغه خلقو چه دهغوئ نومونه حضرت نبی کریم ﷺ اخستی دی او هغوئ ته ئې جنتی ونیلی دی . اوهغوئ ته عشره مبشره ونیلې شی . او حضرت ابن

---

(١) الطبری: ١٠٠/٢٢.
(٢) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة حدیبیه : ٤١٧٢. بتصرف.
(٣) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب الدخول علی المیت بعد الموت : ١٢٤٣ ، احمد:٤٣٦/٦.
(٤) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب القرعة فی المشکلات : ٢٦٨٧.

سلام او عمیصا او بلال او سراقه او عبدالله بن عمرو بن حرام چه دحضرت جابر پلار دې او هغه اولس قاریان رضی الله عنهم چه کوم د معونه په جنګ کښې شهیدان شوی وو او زیدبن حارثه او جعفر او ابن رواحه او ددوی په شان نور بزرګان رضی الله عنهم ، بیا فرمائی چه انې نبی ﷺ ! ته اووایه چه خهٔ خوصرف دهغه لوئې ذات د وحی مطیع یم چه کومه دهغه لوئې ذات د طرفنه ماته کیږی او څه خو ویرولو والا یم او سړې آګاه کوم او هر عقل مند څماد منصب نه خبر دې ، والله اعلم .

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ

| ورته اووایه | آیا وینئ تاسو | که وی دا قرآن

|ائې نبی ﷺ! ته ورته اووایه | چې دا خو راته اوښائې

مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَكَفَرْتُمْ بِهٖ وَشَهِدَ شَاهِدٌ

دطرفه دالله نه | او انکار اوکړئ تاسو | په دې سره | او ګواهی کړی ده | یو ګواه |

که دا قرآن پاک دالله ﷻ دطرفه راغلې وی |اوبیا هم تاسوترې انکار اوکړئ| اودبنی اسرائیلو یو ګواه

مِّنْۢ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ فَاٰمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ط

دبنی اسراءیلو نه | په مثل ددې کلام باندې | پس هغه ایمان راوړو | او تکبر اوکړو تاسو |

ددې په شان په یو کتاب ګواهی ورکړه|او ایمان ئې راوړو|اوتاسود ایمان راوړو نه تکبر اوکړو

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ۝ ع وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

بیشکه الله |نهٔ ښائی لار نیغه | قوم ظالم ته | اووائی هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې

بیشکه الله ﷻ بې انصافه خلقو ته هدایت نه کوی | ............ اوکافران دمسلمانانو په حق کښې وائی

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْ كَانَ خَيْرًا

هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې دې | که چرې وې | څه ښه کار (دا کتاب منل) |

که دا (قران پاک ) څه ښهٔ څیز وې | نو دوئ به پرې (په ایمان راوړو کښې) زمونږ نه وړاندې شوی نه وو

مَّا سَبَقُوْنَآ اِلَيْهِ ط وَاِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا

نو نهٔ به وو ړومبنی شوی دوئ مونږ نه | هغې ته | او چې اونهٔ مونده دوئ لار | په دې سره |

............ | وکله چې دقران پاک نه دوئ ته هدایت نصیب نه شو| نو اوس دا وائی

بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَآ اِفْكٌ قَدِيْمٌ۝ وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰٓى

نو اوس به وائی دوئ | دا دروغ دی | پخوانی | حالانکه راغلې دې مخکښې ددې نه | کتاب دموسی

چې دا پخوانی دروغ دی | ....... اوددې (قران پاک ) نه وړاندې دموسی کتاب هم لار خودونکې

اِمَامًا وَّرَحْمَةً ط وَهٰذَا كِتٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا

په حیثیت درهنما | او درحمت | او دا کتاب | تصدیق کونکې دې دهغې | په ژبه عربئ کښې دې |

اورحمت وو............ | او دا کتاب دهغه تصدیق کوی | په عربئ ژبه کښې راغلې دې

| لِيُنْذِرَ | الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا | وَبُشْرٰى | لِلْمُحْسِنِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې خبر دار کړي | هغه کسان | چې ظلم ئې کړي دي | او زيرې دې | دپاره دنيك عمله خلقو |
| او د راتلو مقصد ئې دا دي، چې ظالمان خلق اوويروي \| او نيکانو ته زيري ورکړي | | | | |
| اِنَّ الَّذِيْنَ | قَالُوْا | رَبُّنَا اللّٰهُ | ثُمَّ اسْتَقَامُوْا | |
| بيشکه هغه کسان | چې وئې وئيل | چې رب زمونږ الله دي | بيا ټينګ ودريدل په هغې | |
| بيشکه کومو کسانو چې اووئيل زمونږ رب الله ﷻ دې \| بيا پرې ټينګ پاتې شو | | | | |
| فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُوْنَ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ |
| پس نشته يره په هغوئ باندې | او نهٔ به هغوئ | غمژن کيږي | دا کسان | خاوندان دجنت دي |
| نو په هغوئ به (د راتلونکو حالاتو) نه ويره وي \| او نهٔ به غمژن شي \| هم دغه جنتيان دي | | | | |
| خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | جَزَآءً | بِمَا كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ |
| هميشه به وسي | په هغې کښې | په بدله دهغه عملونو کښې | چې وو هغوئ | چې کول به ئې |
| چې هميشه به په هغې کښې وي \| دا جنت د هغوی د (نيکو) عملونو بدله ده | | | | |

**قوله تعالى:- قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ**

**د سرکشئ او تکبر مذمت:-** الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته فرمائی چه دې مشرکانو کافرانو ته اووايه چه دا قران پاك په رښتيا د الله ﷻ د طرفنه دې او بيا هم تاسو ددې نه انکار کوئی . نو تاسو اووائې چه ستاسو به څه حال وی ؟ هغه الله ﷻ چه هغه څه دې حق کتاب سره تاسو ته راوليږلم هغه به تاسو ته څنګه سزاګانې درکوی ؟ تاسو ددې انکار کوئی او دا په دروغ ګڼرئی.حالانکه ددې دشهادت او صحت هغه کتابونه هم دی چه ددې نه مخکښې وخت په وخت نبيانو عليهم السلام ته راغلی دی.او د بنی اسرائيلو کوم سړی چه دهغه د رښتيا کيدو ګواهئی ورکړئی او ددې حقيقت منلو نه پس ئې په دې ايمان راوړو خو تاسو ددې د اتباع کولو نه مخ واړولو او کبر مو اوکړو. دامطلب هم بيان شوې دې چه دې شاهد په خپل نبی ﷺ باندې او دده په کتاب باندې يقين اوکړو. خوتاسو خپل کتاب او خپل نبی ﷺ سره کفر اوکړو. الله ﷻ ظالمې ډلې ته هدايت نه کوی .

**د شاهد نه مراد څه دی؟:-** د﴿ شاهد ﴾لفظ اسم جنس دې اودا د خپلې عام معنی لحاظ سره حضرت عبدالله ابن سلام رضی الله عنه وغيره دپاره دې . دا يادساتئ چه دا آيت مبارك مکی دې . اود حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه د اسلام نه مخکښې دې .ددې پشان بل آيت مبارك کښې دی چه ﴿وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ﴾ يعنی کله چه په دوی تلاوت کولې شی نو اقرار کوی چه دا زمونږ د رب تعالی ﷻ د طرفنه سراسر حق دی مونږ خوددې نه مخکښې مسلمانان يو.او فرمان دې چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ﴾ يعنی چه کومو خلقو ته مخکښې علم ورکړې شوې دې په هغوئ چه کله تلاوت کولې شی نو هغوئ زر په سجده کښې پريوزی او په خوله وائی چه زمونږ رب پاك دې او دهغه وعدې رښتونې دی او هميشه به وی .

مسروق رحمه الله او شعبی رحمه الله فرمائی چه دې خائې کښې ددې نه مراد حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه نه دې څکه چه دا آيت مبارك مکه مکرمه کښې نازل شوې دې . اودوی مدينې ته دهجرت کولو نه پس اسلام قبول کړې وو. حضرت سعد رضی الله عنه فرمائی چه ديو سړی باره کښې د حضرت نبی کريم ﷺ دخولې مبارکې

نه ما دا نه دي اوريدلي دي چه دا سړي جنتي دي او هغه سړي ژوندي وي او په زمکه ګرزي . سوا د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه نه .دهغوئ باره کښې آيت مبارك دي چه ﴿ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِ الخ﴾ نازل شويدې (¹)( بخاري ومسلم وغيره )حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ، حضرت مجاهد رحمه الله حضرت ضحاك رحمه الله ، حضرت عكرمه رحمه الله ، حضرت يوسف بن عبدالله بن بلال بن بشار بن سدي ثوري رحمه الله مالك بن انس ابن زيد رحمه الله وغيره نه هم داقول نقل دي چه ددې نه مراد ابن سلام رضي الله عنه دي (²)

قوله تعالى:-﴿لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَا إِلَيْهِ﴾

دا كفار وائي كه قران پاك د بهترنې څيز وې نو زمونږ پشان شريف انسانانو به چه دالله ﷻ مقبول بندګان يو په دوی چه د لاندې درجې خلق دی لکه حضرت بلال رضي الله عنه ، حضرت عمار رضي الله عنه ، حضرت صهيب رضي الله عنه ،حضرت خباب رضي الله عنه او هم ددوی په شان نور پريوتي خلق او غلامانو او وينځو مونږ باندې څنګه سبقت اورې دې .بيا خو به الله ﷻ مونږ ته د ټولو نه مخکښې راکولو .حالانکه دا قول بالبداهت باطل دې،الله ﷻ فرمائي چه ﴿وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ﴾ الخ يعنى اوداشان مونږ بعضو لره په بعضو سره په فتنه کښې واچول چه اووائي چه هم دا خلق دی چه مونږ ټولوباندې الله ﷻ دوی باندې احسان اوکړو ؟ يعې دوی تعجب کښې کيږی چه دې خلقو څنګه هدايت بيامونډو؟ که دا څيز ښه وې نو مونږ خلق به دوی طرفته ورتلو . خودا ددوی غلط خيال وو خودا خبره يقينی ده چه هميشه نيکان خلق او سلامتې والا خلق سبقت اورې او هم په دې وجه داهل سنت والجماعت عقيده ده چه کوم قول وفعل دالله رسول ﷺ نه ثابت نه وی نوهغه بدعت دې ځکه چه که دا څه دبهترنې څيز وې نو هغه پاك جماعت چه په هيڅ څيز کښې روستو پاتې کيدووالا نه وو هغوئ به دا نه پريښودو. داخلق دخپلې بدنصيبئ په وجه په قرآن پاك ايمان نه راوړی . په دې وجه دوی په خپل خجالت دفع کولو دپاره قران باندې ګوته اوچتوی او وائی چه دا خو دپخوانو خلقو خبرې دی . اودوی قرآن او قرآن والو ته پيغور ورکوی همدا تکبر دې . اوددې باره کښې حديث مبارك کښې راغلی دی چه تکبر ددې نوم دې چه حق اوغورزوی او خلقو لره د سپك کنړلو.(³) بيا الله ﷻ فرمائي چه ددې نه مخکښې په حضرت موسى عليه السلام باندې نازل شوی کتاب تورات امام او رحمت وو او دا کتاب يعنی قرآن پاك د خپل خان نه مخکښې کتابونو لره دالله ﷻ د طرفنه او ريښتونی منی . دا په عربئ ژبه کښې ډير فصيح او بليغ او ډير واضح کتاب دې . په دې کښې د کافرو دپاره ويره ده او دايمان دارو دپاره بشارت دې . دې نه د بعدوالا آيت پورا تفسير په سورة حم سجده کښې تير شوی دې . په دوی به ويره نه وی او نه به بيا دپاره په دوی غم وی . يعنی د پريښودونکو څيزونو.دوی هميشه په جنت کښې اوسيدو والا جنتيان دی . ددوی عملونه پاك وو او ددې بدله کښې دالله ﷻ رحمتونه او کرم په دوی لکه دباران ويريږی . والله اعلم .

| وَوَصَّيْنَا | الْإِنسَانَ | بِوَالِدَيْهِ | إِحْسَانًا ۖ | حَمَلَتْهُ |
|---|---|---|---|---|
| او هدايت اوکړو مونږه \| انسان ته \| دمور اوپلار خپل سره \| داحسان کولو \| بار کړو دهٔ لره | | | | |
| اومونږ انسان ته حکم کړې دې \| چې موراوپلار سره ښه سلوک کوه \| ددهٔ موردې په ډير تکليف | | | | |
| أُمُّهُ | كُرْهًا | وَوَضَعَتْهُ | كُرْهًا ۖ | وَحَمْلُهُ |
| مور ددهٔ \| په سختئ سره \| اوزيګوو ني دهٔ لره \| په سختئ سره \| او دمور په ګيډه کښې عمر ددهٔ | | | | |
| سره خيټه کښې اوساتلو \| اوپه ډير تکليف سره ئې اوزيږولو \| اوددهٔ دحمل نه زمانه | | | | |

¹) صحيح بخاري كتاب مناقب الانصار باب مناقب عبدالله بن سلام ﷺ : ٣٨١٢، صحيح مسلم : ٢٤٨٣، نسائي : ١٤٤٨ ابن حبان: ٧١٦٣
²) الطبري : ١٠٢/٢٢.
³) صحيح مسلم كتاب الايمان تحريم الكبر وبيانه: ٩١.

وَفِصٰلُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ

او د تي نه پريکول دده | ديرش مياشتې وخت دې | تر دې پورې | کله چې | اورسيدو هغه

دتي خلاصيدل په ديرشو مياشتو کښې پوره شوا هرکله چې دې خپلې پوره خوانئ ته اورسيدو

اَشُدَّهٗ وَبَلَغَ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۙ قَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ

طاقت خپل ته | اواورسيدو | څلويښتو کالو ته | نو اوونيل هغه | اے ربه زما | توفيق راکړې ماته

اودڅلويښتو کالو عمر ته اورسيدوانو دۀ اووئيل چې اتې زما ربه ماپه دې قائم پاتې کړې

اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ

چې زۀ شکر ادا کړم | دنعمت ستا | هغه نعمت | چې راکړې دې تا | ماته | او مور اوپلار زما ته

چې ستا د هغې نعمتونو شکريه اداکړم | چې په ما او زما په مور پلار باندې دې کړې دی

وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَصْلِحْ لِيْ

او چې اوکړم عمل | نيك | داسې چې تۀ راضي ئې دهغې نه | او صلاحيت کيږده | مالره |

او دا چې زه نيک عمل کوم | ..................چې ته ئې خوښوې | او زما اولاد زما دپاره

فِيْ ذُرِّيَّتِيْ ۚ اِنِّيْ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاِنِّيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿١٥﴾

په اولاد زما کښې | بيشکه زۀ | توبه اوباسم تاته | او بيشکه زۀ | دمسلمانانونه يم |

نيکان (لوئي) کړې | زۀ تاته توبه اوباسم | اوستا په فرمان منونکو (بندګانو) کښې شامل يم

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا

دا هغه خلق دي | چې قبلوؤ مونږ | ددوئ نه | ډير ښه | هغه عمل | چې کړې وي دوئ

دا هغه کسان دی چې مونږ به ددوئ ښه ښه عملونه قبول کړو ..........................

وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ؕ وَعْدَ الصِّدْقِ

او تيريږو مونږ | دګناهونو ددوئ نه | اووی به دوئ په ملګرو دجنت کښې | مطابق دوعدې رښتينې

اوګناهونه به ورته معاف کړوا | په جنتيانو کښې به شامل شي | دا (دالله ﷻ) رښتينې وعده ده

الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿١٦﴾

هغه وعده | چې ورکړې شوې وه دوئ ته | چې وعده به ئې ورسره کيدله |

چې دوئ سره (په دنيا) کښې کولې شي |

**قوله تعالى:- وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ اِحْسٰنًا ؕ**

**د مور پلار د حقوقو بيان:-** ددې نه مخکښې دالله ﷻ توحيد او دهغه د عبادت اخلاص اوپه هغې د استقامت کولو حکم شوې وو څکه دلته دمور پلار دحقوقو دپوراکولو حکم کيږي . هم ددې مضمون نورډير آيتونه موجود دی ، لکه فرمائی چه ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسٰنًا ؕ﴾ يعنی ستارب دا فيصله کړې ده چه ته دهغه نه سوادبل چا عبادت مه کوه او مور پلار سره احسان کوه .او يو آيت مبارك کښې دی چه﴿ اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ ؕ اِلَيَّ الْمَصِيْرُ ﴾ يعنی خماشکر اداکوه اودخپل موربلار او ستاسو واپس کيدل خما طرفته دی .

او ددې مضمون نور هم ډير ايتونه دی نودلته ارشاد دې چه مونږ انسان ته حکم کړې دې مور پلار سره احسان کوه او هغوئ سره ښه په احترام سره پيش کيږه . ابوداوَد طيالسی کښې حديث مبارک دې چه د حضرت سعد رضي الله عنه مور دوی ته اوونيل چه آيا د مور پلار داطاعت کولو دالله ﷻ څه حکم نشته دې ، نو واوره چه څه به نه خوراك کوم او نه به څکاك کوم تر کومې چه الله ﷻسره ته کفر اونه کړې . نو د حضرت سعد رضي الله عنه په انکار کولو دې خوراك څکاك پريښودو تر دې چه لرګی سره به ددې خوله بيرته کولې شوه او ورته به خوله کښې په زور اوبه وغيره اچولې شوې . نو دې باندې دا آيت مبارك نازل شو . داحديث مبارك مسلم وغيره کښې هم دې (۱) مورد حمل په دوران کښې څومره تکليفونه اوچت کړل؟ اوداشان د بچي د پيدائش وخت کښې دې څومره تکليفونه اوچت کړل ؟

**قوله تعالى:- حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا**

**دحمل کمه نه کمه موده شپږ مياشتې کيديشي** :علی رضي الله عنه ددې آيت مبارك اودې سره دسورة لقمان آيت مبارك ﴿ وَفِصَٰلُهُۥ فِى عَامَيْنِ ﴾اودالله ﷻ دفرمان ﴿ وَٱلْوَٰلِدَٰتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَٰدَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَن يُتِمَّ ٱلرَّضَاعَةَ ﴾يعنی ميانديٰ خپلو بچوته دوه کاله کامل پیٔ ورکړی او دوی ته دې دپئيو ورکولو موده پورا کړی،ددې يو ځائې کولو نه استدلال کوی چه د حمل کمې نه کمه موده شپږ مياشتې ده . دا استدلال ډير قوی او بالکل صحيح دې . حضرت عثمان رضي الله عنه او د صحابه کرام رضي الله عنهم جماعت ددې تائيد کړيدې.حضرت معمر بن عبدالله جهينی رحمه الله فرمائی چه زمونږ د قبيلې يوسړی د جهينيه يو ښځې سره واده اوکړو ، شپږ مياشتې پس ددې بچې پيدا شو ،ددې خاوند حضرت عثمان رضي الله عنه ته ددې ذکراوکړو. حضرت عثمان رضي الله عنه هغه ښځې پسې سړې اوليږلو ، هغه تياريدو نه پس راتلله چه هغې خور ورته فرياد شروع کړو. په دې دې ښځې خپلې خورته اوونيل چه ولې ژاړې ، په الله ﷻ قسم چه څه په مخلوق کښې چاسره نه يم ملاوٴ شوې ، او نه ما غلط کار کړې دې . نوګوره چه دالله ﷻفيصله څما حق کښې څه کيږی ؟ هرکله چه حضرت عثمان رضي الله عنه ته راغله نو حضرت عثمان رضي الله عنه ددې درجم کولو حکم اوکړو. هر کله چه حضرت علی رضي الله عنه ته معلوم شو نوهغوئ خليفة المسلمين نه تپوس اوکړو چه داتاسو څه کونی ؟نو حضرت عثمان رضي الله عنه ورته اوفرمائيل چه ددې ښځې د شپږو مياشتو نه پس اولاد شوی دې او دا ناممکن دی. دې آوريدو سره حضرت علی المرتضی رضي الله عنه اوفرمائيل چه تاسو قرآن پاك نه دې لوستلې؟ نو وې فرمائيل چه لوستلې مې دې . نووې فرمائيل چه تاسو پکښې دا آيت مبارك نه دې لوستلې چه ﴿وَحَمْلُهُۥ وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهْرًا ﴾ اودې سره دا آيت مبارك هم چه ﴿ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ ﴾ نو دحمل موده او پئيو څکولو موده دواړه ديرش مياشتې ،او دې کښې چه کله د پئيو څکولو موده کامل دوه کاله يعنی څليريشت مياشتې وضع کړې شی نو باقی شپږ مياشتې پاتې کيږی . نو دقران پاك نه معلوم شو چه د حمل کم نه کمه موده شپږ مياشتې ده . او ددې بی بی صاحبې هم په دومره موده کښې اولاد شوې دې. بيا تاسوېدې الزام ولې لګونی ؟ حضرت عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل چه والله دا خبره بالکل صحيح ده . افسوس چه څما خيال دې طرفته نه وو. لاړشئ او هغه ښځه واپس راولئ ، خلق لاړل او هغه ښځه ئې واپس راوسته . نو خلقو هغه په دې حال کښې اوليده چه ددې نه فراغت موندې وو. حضرت معمر رحمه الله فرمائی چه يو کارغه دبل کارغه نه او يو انډه د بلې انډې نه سره دومره مشابه نه وی لکه څومره چه ددې ښځې بچې خپل پلار سره مشابه وو. دده پلار چه کله دا بچې اوليدو نو پخپله ئې اوونيل چه والله اوس ماته ددې باره کښې هيڅ شك پاتې نشو. اوهغه الله ﷻ يو ناسوريعنی دانه کښې اخته کړو او دا دهغه په مخ باندې وو . اوهغه ناسور دې ډير زيات کمزورې کړو تر دې چه هغه مړ شو. (۲)( ابن

---

(۱) صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب فى سعد بن ابى وقاص ﷺ : ۱۷۴۸.

(۲) الدر المنثور : ۹/٦.

ابی حاتم) دا روایت بل سند سره د ﴿ فَأَنَا۠ أَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ۝ ﴾ تفسير كښې تير شوې دې .
**د ابن عباس ﷺ مذهب:**-حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه كله ديو ښځې په نهوو مياشتو كښې بچې پيدا شي نو ددې د پنيو وركولو موده يويشت مياشتې كافي دې . او كله چه اوو مياشتو كښې وی نو موده درضاعت ديرشت مياشتې ده . او كله چه بچې شپږو مياشتو كښې پيداشی نو درضاعت موده دوه كاله كامله څكه چه دالله ﷻ فرمان دې چه دحمل او دپينو موده ديرش مياشتې ده . هر كله چه هغه د خپل قوت زمانې ته اورسيدو يعنې قوی شو او د ځوانۍ عمر ته اورسيدو نو دې سړو كښې شمير شو. او كله چه د ځلويښت كالو شو نو دده عقل پورا شو. فهم او كمال ته اورسيدو ، حلم او بردباری پكښې راغله. دا وئيلې كيږی چه دده كوم عمر د ځلويښتوكالو عمر كښې وی نو هغه عام طور باقی عمر كښې هم وی. حضرت مسروق ﷺ نه تپوس اوشو چه انسان كله په خپلو ګناهونو نيولې كيږی ؟ نو وې فرمائيل چه كله ته دځلويښتو كالو شي نو خپل بچ كول په خپله كوه.
**د ځلويښتو پشتو اتياؤ نوی كالو والا مسلمان:**-ابويعلى موصلى كښې دی چه حضرت نبی كريم ﷺ فرمائی چه كله مسلمان بنده د ځلويښتوكالو نو الله ﷻ دده په حساب كښې تخفيف كوی .او كله چه د شپيتو كالو شی نو آسمان والا ده سره محبت كوی . او كله چه د اتياؤ كالو شی نوالله ﷻ د ده نيكئ ثابتې كړی او دده ګناه نه ختموی . اوكله چه دې دنوی كالو شي نوالله ﷻ دده مخكښې روستی ټول ګناهونه معاف كوی . او دې د خپلې كورنۍ دخلقو د پاره شفاعت كولووالا اوګرزوی . او آسمانونو كښې اوليكلې شی چه دادالله ﷻ زمكه كښې دهغه ذات قيدی دې . داحديث بل سند سره مسنداحمد كښې هم دې [1] د بنو اميه دمشقی ګورنر حجاج بن عبدالله حليمی فرمائی چه دځلويښتو كالو عمر كښې ما ګناهونه د خلقو دشرم او حيا په وجه پريښودی وو. دې نه دګناهونو پريښودو وجه پخپله دالله ﷻ نه حيا وه. دعربو يو شاعر وائی چه په وړوكوالی كښې چه د ناپوهئ په وجه څه اوشو هغه اوشو خو كله چه بوډاوالی رانبكاره شو نودسر سپينو راته پخپله د ګناهونو نه دبچ كيدو اووئيل چه اوس ته كوچ اوكړه.
**قوله تعالى:**- قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِىٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ
**د نيک عمله مؤمن دعا:**-بيا ددې ددعا بيان كيږی چه ده اووئيل چه انې الله ﷻ! ځما زړه كښې واچوه چه څه ستا شكر ادا كړم چه كوم تا په ما او ځما په مور پلار كړې دې او څه هغه اعمال اوكړم چه ته هغې سره په مستقبل كښې ځما نه خوشحاله ئې ، او ځما اولاد ځما دپاره داصلاح ذريعه كړې ، يعنې ځمانسل او ځما نه روستو پاتې كيدو والو كښې څه ستا طرفته رجوع كوم او ځما اقرار دې چه څه فرمانبردارو نه يم . په دې كښې ارشاددې چه كله انسان د ځلويښتو كالو عمرته اورسی نو د زړه د اخلاصه ده ته توبه ويستل پكار دی . او دوباره دې الله ﷻ ته متوجه شي او په دې دې كلك ولاړ اوسی .
ابوداؤد كښې دی چه حضرت نبی كريم ﷺ په صحابه كرام ﷺ ته په التحيات كښې ددې دعا غوښتلو تعليم وركولو چه : ﴿ اللهم ألف بين قلوبنا واصلح ذات بيننا واهدنا سبل السلام ونجنا من الظلمات الى النور وجنبنا الفواحش ما ظهر منها وما بطن وبارك لنا في اسماعنا وابصارنا وقلوبنا وازواجنا وذرياتنا وتب علينا انك انت التواب الرحيم واجعلنا شاكرين لنعمتك مثنين بها عليك قابليها واتمها علينا ﴾
**ترجمه:**- يعنې انې الله ﷻ ! زمونږ زړونو كښې محبت پيدا كړه او زمونږ خپلو كښې اصلاح اوكړه،او مونږ ته دسلامتيا لار اوښايه ، او مونږ د تيارو نه اوساته،اونور طرفته نجات راكړه،او مونږ دهرې بدئې نه بچ كړې،كه هغه ظاهری وی او كه پټه وی ، او مونږ ته زمونږ سترګو كښې او غوږونو كښې او زړونوكښې او ښځو كښې او بچو كښې بركت واچوې او په مونږ رجوع اوكړه ته رجوع كولو والا او مهربان ئې او انې الله ﷻ ! مونږ د خپلو نعمتونو شكرګزار او ددې په وجه مو ثناء خوان جوړ كړې او

[1] احمد: ٨٩/٢، البزار : ٣٥٨٧، مسند ابي يعلى : ٤٢٤٦، الزهد للبيهقي: ٦٤٢.

ددې نعمتونو اقرار کولو والا مو جوړ کړې ، او مونږ ته خپل ښه نعمتونه راکړې (۱).

قوله تعالى:- أُولَٰئِكَ الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ

بیا فرمائي چه دا دچا بیان تیر شو چه الله ﷻ طرفته رجوع کولو والا او توبه کولو والا دی او کله چه دوی نه نیکئ پاتې نشی نو دوی استغفار کولو والا دی . اومونږ ددوی اکثر خطاګانې معاف کوو. او د دوی دلږو عملونو په بدله کښې دوی ته جنتی کوو. دهغه هم دا حکم دې لکه چه وعده نې اوکړه او پورائي کړه او دا رښتیا وعده ده چه کومه دوی سره کولې شی. ابن جریر کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ په روایت د روح الامین فرمائي چه دانسان نیکئ او بدنی به راوړې شي او یو به دبل بدله شی نوکه دده یو نیکی هم پاتې شوه نو الله ﷻ به د ه ته جنت ورکړی.د حدیث راوی رحمه الله دخپل استاد نه تپوس اوکړو که ټولې نیکئ د بدو بدله کښې ختمې شوې نوبیا ؟نو وې فرمائیل چه الله ﷻ ددوی د بدو نه تجاوز کوی.بل سند کښې په فرمان دالله ﷻ مروی دی.داحدیث مبارك غریب دې او ددې سند ډیر پوخ دې .

.حضرت یوسف بن سعد رحمه الله فرمائي چه کله حضرت علی رضی الله عنه په اهل بصره غالب شو نو په هغه وخت کښې ما لره حضرت محمد بن حاطب رحمه الله راغلو او یو ورځ نې ماته اووئیل چه حضرت علی رضی الله عنه سره اوم او په هغه وخت کښې حضرت عمار رحمه الله ،حضرت صعصعه رحمه الله اوحضرت اشتر رحمه الله او حضرت محمد بن ابوبکر رحمه الله هم وو.

بعضو خلقو د حضرت عثمان رضی الله عنه ذکر اوکړو او څه ګستاخی ئې اوکړه.حضرت علی رضی الله عنه په هغه وخت کښې په تخت ناست ووا و په لاس کښې ورسره چاړه وه. حاضرین مجلس اووئیل چه ستاسو په وړاندې خو ستاسو صحیح محاکمه کولو والا موجودې ، نو ټولو دحضرت علی رضی الله عنه نه تپوس اوکړو. نو حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل چه حضرت عثمان رضی الله عنه دهغه خلقو نه وو چه دچا باره کښې الله ﷻ فرمائي چه ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّئَاتِهِمْ فِي أَصْحَابِ الْجَنَّةِ ۖ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ الخ﴾ قسم د هغه خلقو چه دچا ذکر په دې آیت مبارك کښې موجود دې،حضرت عثمان رضی الله عنه دې او ددوی ملګری، او درې خل نې دا اوفرمائیل . ددې راوی یوسف وائی چه ما د محمد بن حاطب نه تپوس اوکړو چه ستا دې په الله قسم وی رښتیاوایه دا تا په خپله د حضرت علی رضی الله عنه نه آوریدلی دی ؟ وې فرمائیل چه آو خما دې په اللهﷻ قسم وی چه ما دا خپله دحضرت علی رضی الله عنه نه آوریدلی دی .

| | | وَالَّذِي | قَالَ لِوَالِدَيْهِ |
|---|---|---|---|
| | | او هغه انسان | چې وې وئیل مور اوپلار خپل ته |
| | | اوهغه کس چې مور پلار ته ئې اووئیل چې | |
| أُفٍّ لَّكُمَا | أَتَعِدَانِنِي | أَنْ أُخْرَجَ | وَقَدْ |
| اف دې تاسو دواړو لره | ایا تاسو یروې مالره | چې زۀ به رااوویستلې شم دقبر نه | اوحال دا چې تیر شوی دی |
| افسوس دې په تاسوایا تاسو ماویروئ چې زه به (قبر نه دوباره) راپاڅولې شم | | | |
| خَلَتِ الْقُرُونُ | مِن قَبْلِي | وَهُمَا | يَسْتَغِيثَانِ اللَّهَ | وَيْلَكَ |
| ډیر قومونه | مخکښې زما نه | او مور اوپلار دواړه | (فریاد) زاری کوی الله ته | اے بدنصیبه |
| اوزما نه وړاندې ډیرقومونه تیرشو ی دی | اودهغه مورپلار الله ته فریاد کوی | اوخپل خوئي ته وائي،چې | | |

(۱) ابوداود کتاب الصلاة باب التشهد : ۹٦۹، وهو صحیح.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| امِنْ | اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ | حَقٌّ | فَيَقُوْلُ | مَا هٰذَآ | اِلَّآ | اَسَاطِيْرُ |
| ايمان راوړه | بيشکه وعده دالله | حقه ده | خوروانی هغه | نه دي دا | مګر | قيصې دي |

اني بدبخته ايمان راوړه | بيشکه دالله ﷻ وعده حق ده | نو هغه(په جواب کښې)، وائي چې دا دپخوانو خلقو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْاَوَّلِيْنَ | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ | حَقَّ | عَلَيْهِمُ | الْقَوْلُ |
| درومبنو خلقو | دا هغه کسان دي | چې ثابته شوې ده | په هغوئ باندې | خبره دعذاب |

قصې دي | دا هغه خلق دي چې په دوی باندې د الله ﷻ فيصله ثابته شوه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِيْٓ اُمَمٍ | قَدْ خَلَتْ | مِنْ قَبْلِهِمْ | مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ |
| وی به دوئ په هغه ډلو کښې | چې تير شوی دي | مخکښې ددوئ نه | دپيريانو او انسانانونه |

د هغه کسانو سره چې ددوئ نه پخوا تير شوی دي | که پيريان دي اوکه انسانان دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّهُمْ كَانُوْا | خٰسِرِيْنَ | وَلِكُلٍّ | دَرَجٰتٌ | مِّمَّا |
| بيشکه دوئ دي | نقصان موندونکی | او دپاره دهرې ډلې | درجې دي | په لحاظ دهغه عمل سره |

چې دوی ټول تاوانيان دي | ..................اوهر چاته به د خپل عمل مطابق(جدا جدا)، مرتبې

| | | |
|---|---|---|
| عَمِلُوْا | وَلِيُوَفِّيَهُمْ | اَعْمَالَهُمْ |
| چې کړي وی هغوئ | او دپاره ددې چې پوره پوره ورکړي هغوئ له | بدله دعملونو دهغوئ |

ورکولې شي | دا د دې دپاره چې دخپلو خپلو عملونو جزا ورته پوره پوره ملاؤ شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ | وَيَوْمَ | يُعْرَضُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
| او په هغوئ به ظلم نه کيږي | او په کومه ورځ | چې وړاندې کړې شي | هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې |

او په هغوئ به هيڅ ظلم نه کيږي|او په کومه ورځ چې کافران (ددوزخ) اور ته ورمخامخ کړې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى النَّارِ | اَذْهَبْتُمْ | طَيِّبٰتِكُمْ | فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا | وَاسْتَمْتَعْتُمْ |
| وور ته | يووړل تاسو | نعمتونه ستاسو | په ژوند ستاسو ددنيا کښې | او فائيدې واغستلې تاسو |

......... | (اودا به ورته اووئيلې شي) چې تاسو خوخپل خوندونه په دنيا کښې حاصل کړل | اوبنه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِهَا | فَالْيَوْمَ | تُجْزَوْنَ | عَذَابَ الْهُوْنِ | بِمَا |
| په هغې سره | پس نن ورځ به | بدله درکړې کيږي تاسو له | دعذاب سپکونکی | په سبب دهغې |

مزې مو پرې اوکړې | نو نن به درته د ذلت سزا درکولې شي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كُنْتُمْ | تَسْتَكْبِرُوْنَ | فِي الْاَرْضِ | بِغَيْرِ الْحَقِّ | وَبِمَا |
| چې وئ تاسو | چې تکبر به مو کولو | په زمکه کښې | په نا حقه | او په سبب دهغې |

دا سزا درته خکه درکولې شي چې تاسو په دنيا کښې په ناحقه تکبر کولو | او د دې وجې چې تاسو

| | |
|---|---|
| كُنْتُمْ | تَفْسُقُوْنَ |
| چې وئ تاسو | چې نافرمانی به مو کوله |

نافرمانئ کولې |

**قوله تعالى:- وَالَّذِىْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ**

**دنافرمانه اولاد مورپلار سره سلوک:-** مخکښې دهغه خلقوذکر اوشوچه کومو دخپل مور پلار دپاره دعاګانې کولې او دهغوئ خدمت کښې اوسیږی او دې سره د اُخروی درجو او هلته د نجات موندلو او دخپلو نعمتونو د شکرکولو ذکر وو. په دې وجه دې نه پس دهغه خلقو ذکر دې چه کوم د خپل مور پلار نافرمان دی. دوی ته خبرې کوی. بعضې خلق وائی چه دا آیت مبارك د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه خوئې حضرت عبدالرحمان رضی الله عنه باره کښې نازل شوېدې. اودا عوفی په روایت د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما بیانوی. اوددې په صحت کښې کلام هم دې. اودا قول ډیر کمزورې دې ځکه چه حضرت عبدالرحمان بن ابوبکرصدیق رضی الله عنه خو مسلمان شوې وو. او ډیر ښه اسلام والوکښې وو. بلکه دخپلې زمانې بهترینو خلقو کښې وو. دبعضو مفسرینوداقول هم دې چه صحیح دادی چه دا آیت مبارك عام دې. ابن ابی حاتم رحمه الله فرمائی چه مروان خپله خطبه کښې اووئیل چه الله ﷻ امیر المومنین ته د یزید باره کښې یو ښه رائې په ذهن کښې اچولې ده که هغه خپل ځانه پس هغه په طور دخلیفه نامزد کړی. او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه هم خپل ځان نه پس خلیفه مقرر کړې وو. په دې حضرت عبدالرحمان بن ابوبکر صدیق رضی الله عنهما اوفرمائیل چه آیا ته د هرقل په قانونو او نصرانیانو په دستور عمل کول غواړې؟ قسم دې وی په هغه ذات چه نه خو خلیفه اول ځان نه پس خپل اولادکښې څوك خلافت دپاره مقرر کړی او نه ئې خپل خاندان نه څوك نامزد کړی وو. او معاویه رضی الله عنه چه څه اوکړل نو دائې دخپل خوئې دعزت او په خپلو بچو درحم دپاره اوکړل. دې اوریدوسره مروان اووئیل چه ته هغه نه ئې چه تا خپلو والدینو ته اُف ونیلی وو؟ نو عبدالرحمان رضی الله عنه اوفرمائیل چه ولې ته د ملعون سړې اولاد نه نه ئې څه؟ ستا په پلار رسو الله ﷺ لعنت ونیلې وو. دې آوریدو سره حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها اوفرمائیل چه تا دعبدالرحمان رضی الله عنه باره کښې چه څه اوونیل هغه دروغ دی ځکه چه دا آیت ددوی باره کښې نه وونازل شوې. بلکه هغه دفلانی فلانی باره کښې نازل شوې وو. بیا مروان زر د منبر نه راکوز شواو ددوی د حجرې مبارکې دروازې ته راغلل او څه خبرو کولو نه پس واپس شو. ([1])

بخاری شریف کښې دا حدیث مبارك بل سندسره او نورو الفاظو سره دې. په هغې کښې دا هم دی چه د حضرت امیرمعاویه بن ابوسفیان رضی الله عنهما طرفنه مروان د حجاز امیر جوړ کړې شوې وو. په هغې کښې دا هم دی چه مروان دحضرت عبدالرحمان رضی الله عنه د ګرفتارولو حکم خپلو سپاهیانو ته ورکړو. خو دې په منډه منډه دخپلې خورحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها حجرې ته لاړو. اوپه دې وجه دوی چا اونه نیول. او په هغې کښې دا هم دی چه حضرت صدیقه کبری رضی الله عنها اوفرمائیل چه زمونږ باره کښې خماد پاکدامنئ نه سوا د هیچاباره کښې هیڅ آیت نه دې نازل شوې ([2])نسائی په روایت کښې دی چه ددې خطبه مقصد دیزید طرفنه بیعت اخستل وو. دحضرت عائشه رضی الله عنها باره کښې دا هم دی چه مروان په خپل قول کښې دروغژن دې چه دچا باره دا آیت نازل شوې دې، ماته ډیر ښه دهغه نوم یاد دې خو څه په دې وخت کښې هغه ښکاره کول نه غواړم. خو حضرت نبی کریم ﷺ د مروان پلار ته ملعون ونیلی وو. او مروان دهغه شا کښې وو. نودا دهغه لعنت الهی بقیه دې ([3])داخونې د خپل مور پلار بې ادبی کوی او دې دالله ﷻ د بې ادبی نه هم منع کیږی. دمرګ نه پس ژوند په دروغه ګنړی او خپل مور پلار ته وائی چه تاسو ما ددې ژوند نه ولې ویرونی خما نه مخکښې په سوونو زمانې تیرې شوی دی او په لکونو او

---

[1]) ابن ابی حاتم :

[2]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحقاف باب ( والذی قال لوالدیه اف لکما...) : ٤٨٢٧.

[3]) السنن الکبری : ١١٤٩١ .

کرورونو انسانان مړ شو ماخو هېڅوك اونه لیدل چه دوباره ژوندي شو. اوپه دې کښې يو هم واپس رانغلو چه خبر راوړي . دده نه مور پلار تنګ شي او دالله ﷻ نه دده هدايت غواړي اودالله ﷻ درګاه کښې خپل فرياد پيش کوي . او بيا ده ته وائي چه دا بدنصيبه لا تراوسه پوري نه يې خراب شوې اوس هم مسلمان شه ، خو دا مغروره جواب ورکوي چه تاسو ماته د چا منلو وائي خه خو دا صرف يو پخوانۍ قصه ګنړم . الله ﷻفرمائي چه داخلق دخپل خان په شان تيرشوؤ جناتو او انسانو په زمره کښې داخل شواو هغوئ خپل نقصان کړې وو او خپل ئې برباد کړل.د الله ﷻفرمان دې کښې دلته لفظ ﴿اولئك﴾دې او ددې نه مخکښې لفظ ﴿والـذي﴾دې ، ددې نه هم خمونږ د تفسير پورا تائيد کيږي چه ددې نه مرادعام دې چه څوك هم داسې وی يعنې د مورپلار نافرمانه او بې ادبه او دقيامت نه منکر وی نو د هغه دپاره هم دا حکم دې .او حضرت حسن ﷫ او حضرت قتاده ﷫ هم دا فرمائي چه ددې نه مراد کافر،فاجر اود مورپلارنافرمان او د دوباره ژوندی کیدو منکر دې (١).د ابن عساکر يو غريب روايت کښې دی چه په څلور سړو باندې الله ﷻ د عرش نه لعنت ونيلې دې . ا ويدې فرشتو آمين ونيلې دې .①چه څوك يو مسکين دهوکه کړی او ورته اووائی چه خه به تاته درکړم اوکله چه هغه راشی نو ورته وائی چه ماسره خو هيڅ نشته دې .②او چه څوك د يو برداشت کولو څيز باره کښې اووائی حالانکه دده سره هيڅ نه وی .③ اوچه کوم خلق چه چا ته د چا دسوال په جواب کښې اووائی چه د فلانی مکان څنګه دې ؟ او دې ورته دبل چا مکان اوښائي. ④اوهغه څوك چه څوك خپل مور پلار وهی تر دې چه هغوئ تنګ شي او دوی فرياد شروع کړی(٢) .

**قوله تعالى:- وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا**

**قيامت کښې به هرچاته خپلو کړو پوره پوره بدله ملاويږي:-** بيا فرمائي چه دهر يو دپاره دهغه د بدنې مطابق سزاده. الله ﷻ ديو ذرې برابر بلکه ددې نه په کم هم په چا ظلم نه کوي.حضرت عبدالرحمان ﷬ فرمائي چه دجنت درجې پورته دی او د جهنم درجې لاندې دی. او بيا فرمائي چه کله جهنميان راوستې شی او دجهنم په غاړه اودرولې شی نو دوی ته به په طور د زورنې اوونيلې شی چه تاسو خپلې نيکئ په دنيا کښې وصول کړی دی اودهغې نه مو فائده اخستې ده . حضرت عمر ابن خطاب ﷛ ددې آيت مبارك په وجه د ښه او ښکلې غذا نه اجتناب کړې وو او فرمائيلې ئې وو چه خه ويريږم چه هسې نه خه دهغه خلقو نه شم چه چاته به الله ﷻ زورنې سره دافرمائي.حضرت ابوجعفر ﷫ فرمائي چه بعضې خلق داسې هم دی چه هغوئ به په قيامت کښې خپلې نيکئ نه مومی او دوی نه به ورکې وی او دوی ته به هم دا ونيلې شی .بيا فرمائي چه نن به دوی ته د ذلت دعذابونو سزا ورکولې شی . ددوی د کبر او فسق په وجه چه ددوی کوم يو عمل وو هغه به دوی ته ورکولې شی اودا د هغې بدله ده. او دنيا کښې به دوی ډير په ناز ونعمت خان پاللو او کبر او لوئی به کوله او اتباع حق لره پرينبودونکی وو او په نافرمانو کښې ډير بوخت اومشغول وو نو نن د قيامت په ورځ به دوی ته داهانت اور سوائی والا عذاب او سخت دردناك عذاب والا سزاګانې او هانې هانې او افسوس سره به دوی ته دجهنم لاندې طبقو کښې ځائې ملاويږي . الله ﷻ دې مونږ ددې خبرو نه محفوظ اوساتی .

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاذْكُرْ | اَخَا عَادٍ | اِذْ | اَنْذَرَ |
| او ياد کړه | رور د عاديانو | کله چې | خبردار کړو هغه |
| اووائې نبی ﷺ ته دوئ ته د عاديانو د رور (هود) ذکر اوکړه چې هغه | | | |

---

١) الطبری: ١١٨/٢٢.

٢) ابن ماجه کتاب الدعاء باب اذا دعاء احدکم فليبدا بنفسه: ٣٨٥٢.

قَوْمَهٗ　بِالْاَحْقَافِ　وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ　مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ　وَمِنْ خَلْفِهٖٓ

قوم خپل | په احقاف کښې | او تیر شوی ووه خبردارونکي | مخکښې دهغه نه | او روستو دهغه نه |

خپل قوم چې په شګلورې علاقه کښې اوسیدلو (دعذاب نه) اوویرولو او دهغه نه وړاندې

اَلَّا تَعْبُدُوْٓا　اِلَّا اللّٰهَ　اِنِّیْٓ اَخَافُ　عَلَيْكُمْ　عَذَابَ

چې تاسو بندګی مه کوئ | مګر دالله | بیشکه زه یریږم | په تاسو باندې | دعذاب

روستو نورهم ډیر ویرونکي تیرشوي وو | (هغه اووئیل) چې تاسو دالله نه سوا دبل چا عبادت مه کوئ ماسره ویره ده چې

يَوْمٍ عَظِيْمٍ　قَالُوْٓا　اَجِئْتَنَا　لِتَاْفِكَنَا　عَنْ اٰلِهَتِنَا

دورځې لوئې نه | اوونیل هغوئ | ایا راغلي ئې ته مونږ ته | چې ته واړوې مونږه | دمعبودانو خپلو نه

په تاسو به دیوې لوئې (سختې) ورځې عذاب راشي | هغوی اووئیل چې ایا ته د دې دپاره راغلی یې چې مونږ دخپلو معبودانو

فَاْتِنَا　بِمَا　تَعِدُنَآ　اِنْ كُنْتَ　مِنَ الصّٰدِقِيْنَ　قَالَ

پس راوله مونږ ته | هغه عذاب | چې ته تریروې مونږه | که ئې ته | درښتینو خلقو نه | اوونیل هغه

نه واړوې | نو ته چې مونږ دکوم عذاب نه ویروې | هغه راوله | که ته ریښتې یې | (هود) اووئیل

اِنَّمَا الْعِلْمُ　عِنْدَ اللّٰهِ　وَاُبَلِّغُكُمْ　مَّآ　اُرْسِلْتُ

بیشکه چې علم ددې | دالله سره دې | اورسوم زه تاسو ته | هغه پیغام | چې زه رالیږلې شوې یم |

چې ددې علم خو الله ﷻ ته دې | اوزه خو تاسو ته هغه پیغام دررسوم | دکوم دپاره چې زه

بِهٖ　وَلٰكِنِّیْٓ　اَرٰىكُمْ　قَوْمًا　تَجْهَلُوْنَ　فَلَمَّا

دهغې سره | ولیکن زه | وینم تاسو | یو داسې قوم | چې تاسو جهالت کوئ | پس هر کله چې

رالیږلې شوې یم | خو ماته تاسو ناپوهه خلق ښکارئ | ..................نو هر کله چې

رَاَوْهُ　عَارِضًا　مُّسْتَقْبِلَ　اَوْدِيَتِهِمْ　قَالُوْا

اولیدو هغوئ هغه عذاب | په شکل دوریځ | راراوان | علاقې دهغوئ ته | نواووئیل هغوئ |

هغوئ اولیدل | چې یوه وریځ د هغوئ دعلاقې طرفته رارروانه ده | نو دا ئې اووئیل

هٰذَا عَارِضٌ　مُّمْطِرُنَا　بَلْ　هُوَ مَا　اسْتَعْجَلْتُمْ　بِهٖ

داوریځ ده | باران ورونکی په مونږ باندې | بلکه | دا هغه څیز دې | چې تلوار به کوله تاسو | په هغې

چې دا خو وریځ ده | چې وریږې راباندې | نه بلکه دا خو هغه څیزدې کوم ته چې تاسو تلوار کولو

رِيْحٌ　فِيْهَا　عَذَابٌ اَلِيْمٌ　تُدَمِّرُ　كُلَّ شَیْءٍۢ　بِاَمْرِ　رَبِّهَا

هوا ده | په دې کښې | عذاب دردناک دې | تباه کوی | هر څیز | په حکم درب خپل |

دا سیلۍ وه په کومه کښې چې دردناک عذاب وو | هر څیز به د خپل رب په حکم سره تباه کړي

فَاَصْبَحُوْا　لَا يُرٰٓى　اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ　كَذٰلِكَ

پس شو هغوئ | داسې چې په نظر نه راتلو هیڅ څیز | مګر صرف کورونه دهغوئ | درانګې |

نو هغوئ داسې تباه شول | چې دکورونو نه بغیر نور هیڅ نښه ئې لیدلې نه شوه | مونږ

| | |
|---|---|
| تجزي | الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ۝ |
| بدله ورکوؤ مونږ \| قوم مجرمانوته \| | |
| نافرمانو ته هم دغه شان سزاګانې ورکوو \| | |

**قوله تعالى:- إِذْ أَنْذَرَ قَوْمَهُ بِالْأَحْقَافِ**

**داحقاف معنى:-** دحضرت نبى كريمﷺ د تسلئ دپاره الله ﷻ فرمائى كه ستاسو قوم تاسو لره په دروغه اوګنړى نو تاسو د مخکښې نبيانوعليهم السلام حالات يادکړئ چه دهغوئ قومونو هم دهغوئ تکذيب اوکړو. دعاديانو درور نه مراد حضرت هود عليه السلام پيغمبر دې . اوهغوئ الله ﷻعاد اولى طرفته ليږلى وو او هغوئ په احقاف کښې اوسيدل . احقاف جمع ده د حقف او حقف وائى د شګې غر ته . مطلق غرونه او غارونه او د حضر موت وادى چه کوم ځائې د کافرانو روحونه اچولى شى او ددې وادئ نوم برهوت دې . د احقاف دا مطلب هم بيان شوې دې . دحضرت قتاده رحمه الله قول دې چه يمن کښې دسمندر په غاړه د شګې د غرونو يو ځائې وو او دهغې نوم شحر وو. دې ځائې کښې دا خلق آباد وو امام ابن ماجه رحمه الله باب جوړ کړې دې چه کله تاسو دعا کوئ نو خپل نفس نه ئې شروع کوئ.او په دې ضمن کښې ئې يوحديث مبارك راوړې دې چه حضرت نبى كريمﷺ فرمائى چه الله ﷻ دې په مونږ او د عاديانوپه رور رحم اوکړى . بيا فرمائى چه الله ﷻدهغوئ ګير چاپيره ښارونو کښې هم رسولان مبعوث کړى وو. لکه يو آيت مبارك کښې دى چه ﴿ فَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ۝﴾ او لکه څنګه چه الله ﷻ فرمان دې چه ﴿ فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنْذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ۝﴾ بيا فرمائى چه حضرت هود عليه السلام خپل قوم ته اووئيل چه تاسو موحد ( الله ﷻ يو اومنئ ) ګنى تاسو باندې به په هغه لويه ورځ عذاب وى نو په دې دحضرت هود عليه السلام قوم اووئيل چه تاسو مونږ د خپلومعبودانو نه منع کوئى ؟ څه چه دکوم عذاب نه ته مونږ ويروې هغه راوله. دوى خو دا خپل ذهن کښې محال ګنړل او زر ئې داطلب کړو. لکه څنګه چه بل آيت مبارك کښې دى چه ﴿ يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا﴾ ايمان نه راوړونکى زمونږ دعذاب خواهش کوى . ددې جواب کښې ددوى پيغمبر اووئيل چه الله ﷻ ته بهتر علم دې که هغه تاسو ددې لائق اوګنړى نو تاسو باندې به عذاب راوليږى . ځما منصب خو صرف دومره دې چه څه تاسو ته د خپل رسالت اورسوم . خو ماته معلوم دى چه تاسو بالکل بې عقل او بې وقوف خلق يئ .

**قوله تعالى:- فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ**

**اخر دالله تعالى عذاب په دوئ راغلو:-** اوس دالله ﷻعذاب راغلو. نو دوى اوکتل چه دوى طرفته يو توره وريځ راروانه ده .خوشك سالى او ګرمى ډيره وه نو دوى خوشحاله شو چه ښه شوه چه وريځ راغله . او دې طرفته اوس به باران وريږى . اصل کښې دا وريځې په صورت کښې دالله ﷻعذاب وو چه دوى ئې د زر راتلو په طمع وو. په دې کښې هغه عذاب وو چه کوم دوى د حضرت هود عليه السلام نه غوښتلو. هغه عذاب ددوى کلى او ددوى ټولوځيزونو لره تباه وبربادکولو سره راغلو او دې ته هم دالله ﷻ حکم وو. او يو بل آيت مبارك کښې دى چه ﴿ مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ۝﴾ (ترجمه)" چه په کوم ځيز به هغه تير شو هغه به ذرې ذرې کړو نودا ټول خلق هلاك شو او يو هم باقى پاتې نشو.

**د قوم عاد دهلاکت متعلق يوه قصه:-** بيا فرمائى چه مونږ داشان دهغوئ سره معامله کوؤ چه څوك زمونږ رسولان په دروغه ګنړى . او زمونږ د احکامو خلاف ورزى کوى. يو ډير غريب حديث مبارك کښې د دوى قصه راغلې ده هغه هم واورئ.حضرت حارث بكرى فرمائى چه ما د علاء بن حضرمى شکايت د حضرت نبى كريمﷺ په خدمت کښې کولو دپاره روان شوم. ما ته په بذه کښې د بنو تميم يو ښځه ملاؤ شوه اوهغې سره سورلئ وغيره نه وه . هغې ماته اووئيل چه ائې د الله ﷻ بنده ځماد الله ﷻ

پیغمبر سره یو کار دې مابه ته هلته اورسوې ؟ ما ورسره اقرار کولو نه پس هغه مې په سورلۍ ځان سره کینوله او مدینې منورې ته راورسیدم. ما اوکتل چه مسجدنبوی ﷺ د خلقو نه ډك دې . او دتور رنګ یو بیرغ ورسره دې.او حضرت بلال رضي الله عنه توره سره حضرت نبی کریم ﷺ مخکښې ولاړ دې. ما تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ خلقو راته اووئیل چه حضرت نبی کریم ﷺ عمروبن عاص چا طرفته لیږل غواړی.څه یو طرفته کیناستم . هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ خپلې حجرې مبارکې ته تشریف یوړو نو څه هم وریسې ورغلم او اجازت مې اوغوښتلو او د حضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم او سلام مې اوکړو. نو حضرت نبی کریم ﷺ خمانه تپوس اوکړو چه ستاسو او دبنو تمیم مینځ کښې څه اختلافات وو ؟ ما اووئیل چه آؤ او مونږ په هغوئ غالب وو ، او اوس خو ماسره د بنو تمیم یو بوډنی ښځه راغلې ده او هغې ما ته په لار کښې اووئیل چه هغه هم ځان سره بوځم اوستاسو خدمت کښې نې حاضره کړم. نو ما هغه ځان سره راوستې ته او هغه دروازه کښې ولاړه ده انتظار کوی . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه دننه راولئ. نو هغه راغله . ما اووئیل یارسول الله ﷺ که خمونږ او دبنی تمیم مینځ کښې څه فیصله اوکړنی . نو په دې د بوډنی غیرت راوپاریدو او هغې په غړمبی کښې اووئیل چه یارسول الله ﷺ بیا به ستاسو مضطر چرته قرار مومی ؟ ما اووئیل چه سبحان الله چه خما مثال خوهم هغه شو چه خانله مې په خپله کوهی اوکنستو،ماته څه معلوم وو چه دابه خما مخالفت کوی؟ ګنی ما به دا ولې راوسته ؟ دالله ﷻ پناه هسې نه څه هم د عادیانو د قاصدپشان شم . نو حضرت نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه دعادیانو د قاصد څه واقعه ده ؟ ددې باوجود چه حضرت نبی کریم ﷺ خما په نسبت ددې واقعې نه ښه خبر وو خو د حضرت نبی کریم ﷺ په وینا ما هغه واقعه بیان کړه. دعاد کلو چه کله قحط شو نو هغوئ قیل نومې یو قاصد اولیږلو . دې په لارکښې معاویه بن بکر سره پاتې شو او شراب څکل او دهغې د ددؤ وینځو سندرو آوریدوکښې دومره مصروف شو چه یو میاشت تیره شوه او د دې نوم جراده وو. بیا روان شو او جبال مهر کښې هغه دعا اوکړه چه یاالله ﷻ! تاته ښه معلوم دی چه څه خود یو مریض د دوائی دپاره یا دیو قیدی دفدیه ادا کولو دپاره نه یم راغلی،یا الله ﷻ ! تـه عادیانو ته هغه ورکړه چه څه دې ماته راکړل . نو د تور رنګ وریځې راغلې او په هغې کښې دیو نه آواز راغلو چه په دې کښې یو خوښ کړه . نو ده د تور رنګ وریځ خوښه کړه . هم په هغه وخت کښې دهغې نه آواز راغلو چه دې بالکل ایره ایره او ذرې ذرې کړنی او چه بنی اسرائیلو کښې هېڅوك هم باقی پاتې نشی . ما اووئیل چه تر کومې ماته علم دې چه د هوا ګانو مخزن نه دومره سوری کښې هوا پریښودې شوه لکه خما د ګوتو د حلقې دا سورې . اودې سره ټول هلاك شو. ابو وائل فرمانی چه بالکل صحیح نقل دې . عربو کښې دستور ووچه کله به نې یو قاصد لیږلو نو ورته به نې وئیل چه د عادیانو د قاصد پشان رانشې . د اروایت ترمذی،نسائی او ابن ماجه کښې هم دې [1] . لکه څنګه چه د سورة اعراف په تفسیر کښې تیر شوی دی .

**دورځې ښکاره کیدو په وخت کښې درسول کریم ﷺ حالت اودعا.** مسند احمدکښې حضرت عائشه رضي الله عنها نه مروی دی چه ماحضرت نبی کریم ﷺ هڅکله هم داسې په خندانه وو لیدلې چه خندا سره ددوی اوورنی ښکاره شوی وی . دوی به تبسم فرمائیلو. او هرکله چه به وریځ راغله او طوفان به راغلو نو د حضرت نبی کریم ﷺ څهرې مبارك نه فکر ظاهریدو. نو یو ورځ ما حضرت نبی کریم ﷺ ته اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! خلق خو د وریځې او باد کتلو سره خوشحالیږی چه باران به اوشی خو ستاسو ددې نه حالت خلاف وی . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې عائشه رضي الله عنها ! څه ددې خبرې نه ولې مطئن شم چه هسې نه دې کښې عذاب وی ؟ یو قوم د هوا په وجه هلاك شوې وو ، یو قوم وریځو کتلو سره

---

[1] احمد: ۴۸۲/۳، ترمذی کتاب التفسیر القرآن ، باب ومن سورة الذاریات : ۳۲۷۳، وهو حسن ابن ماجه: ۲۸۱۶، .

ونیلي وو چه دا وریځ ده او په مونږ به باران وریږي. صحیح بخاري اومسلم هم دا روایت بل سند سره روایت کړې دې (١) مسند احمد کښې دي چه کله به حضرت نبي کریم ﷺ د آسمان په کنارو وریځې اوکتلې نو خپل ټول کارونه به ئې پرېښودل او دا دعا به ئې ونیله اګر چه مونځ کښې به وو ﴿اللهم انی اعوذبك من شرمافيه﴾ یعنی اې الله ﷻ استا نه ددې تباهئ نه پناه غواړم چه کومه په دې کښې ده.نو که لرې به شوه نود الله ﷻ حمد به ئې وئیل او که اوبه وریدله نو دا دعا به ئې ونیله چه(٢) ﴿اللهم انی اسئلك خيرها وخيرما فيها وخيرما ارسلت به واعوذبك من شرها وشرما فيها وشرما ارسلت به﴾

(ترجمه) اې الله ﷻ! څه ستا نه ددې اودې کښې چه څه دي دهغې او دې سره چه څه راوستی دی دهغې او ددې خير غواړم اوستا نه ددې او دې کښې چه څه دی او چه کوم څيز سره دا ليږلې شوې ده اوددې د بدئی نه پناه غواړم.

اوکله چه به وریځ راغله نو د حضرت نبي کریم ﷺ رنګ مبارك به متغير شو او کله به دننه کیدلو اوکله به بهر کیدل، کله چه به باران راوریدو نو د حضرت نبي کریم ﷺ دا فکر به ختم شو. حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها په دې پوهه شوه اویو ځل ئې د حضرت نبي کریم ﷺ نه ددې سوال اوکړو نو حضرت نبي کریم ﷺ جواب کښې اوفرمائیل چه عائشه رضي الله عنها فکر او ویره ددې خبرې ده چه هسې نه هغه شان وی لکه څنګه چه د عاد قوم وریځ خپل طرفته په راتلو اولیده او د خوشحالئ نه ئې ونیلی وو چه دې وریځې سره به مونږ خړوب شو(٣). سورة اعراف کښې دعادیانو دهلاکت او دحضرت هود عليه السلام پورا واقعه تیره شوې ده په دې وجه ئې مونږ دلته دوباره نه بیانوو. ﴿فلله الحمد والمنة﴾

د طبراني یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه په عادیانو باندې دومره هوا راوستې شوې وه لکه څومره چه د ګوتې حلقه وی.دا هوا مخکښې کلی والو باندې او قصبو والو باندې او بیا ښارونو والو باندې راغله. او ددې راتلو سره دوی اوونیل چه دا وریځ مونږ طرفته راروانه ده دابه ضرور په مونږ باران وروی. خو په دې کښې ځنګلی خلق وو چه په دې ښاروالو باندې راغورزولې شوي وو. او ټول هلاك شو او د هوا په خزانچیانو د هوا سرکشئ دومره وه چه هغه د دروازې نه بهر راوتله (٤).

وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيمَآ

او بیشکه قدرت ورکړې وو مونږ هغوئ ته | په هغه څیزونو کښی

| اومونږ هغوئ ته دومره زوراو طاقت ورکړې وو

اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِيهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا

چې نه دې درکړې مونږ تاسو ته قدرت | په هغې کښې | او ورکړې وو مونږ | هغوئ ته | غوږونه |

کوم چې مو تاسو ته نه دې درکړې | ..........اوهغوئ ته مو غوږونه

وَّاَبْصَارًا وَّاَفْئِدَةً فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ اَبْصَارُهُمْ

او سترګې | او زړه | پس پکار رانغلل دهغوئ | غوږونه د هغوئ | او نه سترګې دهغوئ |

او سترګې او زړونه ورکړې وو | خونه ورله غوږونو څۀ فائده ورکړه | اونه سترګو

(١) احمد: ٦٦/٦، صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( فلما راوه عارضا مستقبل اوديتهم) : ٤٨٢٨، صحیح مسلم: ٨٩٩ .

(٢) احمد: ١٩٠/٦، ابوداود کتاب الادب باب مايقول اذا هاجت الريح: ٥٠٩٩ وهو صحيح ابن ماجه: ٣٨٩٩.

(٣) صحیح مسلم کتاب صلاة الاستسقاء باب التعوذ عند روية الريح والغيم: ٨٩٩.

(٤) طبراني : ١٢٤١٦، مجمع الزوائد: ١١٣/٧،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَآ اَفْـِٕدَتُهُمْ | مِّنْ شَیْءٍ | اِذْ كَانُوْا | یَجْحَدُوْنَ | بِاٰیٰتِ اللّٰهِ | |
| او نهٔ زړونه دهغوئ | هیڅ قدرله | څکه چې وو هغوئ | چې انکار به ئې کولو | دآیتونو دالله نه | |
| اونه زړونو \| څکه چې دالله ﷻ دآیتونو په مخالفت کښې په ضد ولاړ وو \| او په کوم | | | | | |
| وَحَاقَ | بِهِمْ | مَّا كَانُوْا | بِهٖ | یَسْتَهْزِءُوْنَ | |
| او چاپیره شو | دهغوئ نه | هغه څیز چې وو هغوئ | په هغې پورې | چې تیوقې به ئې کولې | |
| (عذاب) پورې چې ئې تیوقې کولې \| هغه ترې نه راتاو شو................ | | | | | |
| وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا | مَا حَوْلَكُمْ | مِّنَ الْقُرٰی | وَصَرَّفْنَا | | |
| او بیشکه هلاك کړې دې مونږه | هغه چې چاپیره دې ستاسونه | دکلونه | او بار بار اولیږل مونږه | | |
| اومونږ تاسو نه ګیر چاپیره نور کلي هم هلاک کړې دي \| او خپلې نښې مو ورته بیا بیا | | | | | |
| الْاٰیٰتِ | لَعَلَّهُمْ | یَرْجِعُوْنَ | فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ | الَّذِیْنَ | |
| ایتونه | دپاره ددې چې دوئ | واپس راشي | پس ولې امداد اونهٔ کړو دهغوئ | هغه هستیانو | |
| خودلی دي \| دپاره ددې چې هغوئ (د نافرمانئ نه) راواپس شي \| نوهغه کسانو ورسره ولې مدداونکړو | | | | | |
| اتَّخَذُوْا | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | قُرْبَانًا | اٰلِهَةً | بَلْ ضَلُّوْا | |
| چې نیولې وو هغوئ | بې دالله نه | ذریعه دنزدیکت | نور خدایان | بلکه ورك شو هغوئ | |
| کوم چې هغوئ الله ﷻ ته دنزدیکت دپاره د الله نه سوا معبودان جوړ کړې وو \| بلکه هغه | | | | | |
| عَنْهُمْ | وَذٰلِكَ | اِفْكُهُمْ | وَمَا | كَانُوْا | |
| دهغوئ نه | او دا انجام وو | ددروغو دهغوئ | او دهغه دروغژنو عقیدو | چې وو هغوئ | |
| ددوئ نه ورک شول \| اودا عذاب د هغوی د دروغو وو \| او دهغه غلطو عقیدو وو کومې چې هغوی | | | | | |
| یَفْتَرُوْنَ | وَاِذْ | صَرَفْنَآ اِلَیْكَ | نَفَرًا | | |
| چې دخانه به ئې جوړولې | او یاد کړه هغه وخت کله چې | رااوګرزوله مونږه تاته | یوه ډله | | |
| جوړولې \|.............او هغه وخت یادکړه چې مونږ ستا طرفته دپیریانو یو ډله | | | | | |

**قوله تعالیٰ:- وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِیْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِیْهِ**

**د قوم عاد واقعه کښې عبرت او نصیحت دې** :- ارشاد دې چه مخکښې امتونو ته کوم اسباب او دنیاوی مال او اولاد وغیره زمونږ طرفنه ورکړې شوی وو هغه شان خو تاسو ته تر اوسه پورې نه دی درکړې شوی، دهغوئ هم سترګې او زړونه وو، خوچه کله هغوئ زمونږ د آیتونو انکار اوکړو او زمونږ عذابونو پورې ئې خنداګانې کولې نو دهغوئ اسباب هغوئ ته هیڅ فائده ورنکړه .او په هغوئ هغه سزاګانې را غلې چه دوی به ورپورې خندیدل. نو تاسو ته پکار دی چه دهغوئ په شان نه شئ ، هسې نه چه په تاسو هم هغه شان عذاب راشي.او تاسو هم تول په تولہ تباه شئ.بیا ارشاد دې چه اې اهل مکه تاسو په خپل چاپیر چل نظر واچونی چه څومره قومونه نیست ونابود شو او هغوئ څنګه د خپلو کړو بدل بیا موندو. احقاف چه د یمن سره خواؤ شا کښې دحضرموت علاقه کښې دی په هغوئ نظر واچونی ددې خائې دعادیانو څه انجام وو. ستاسو او دشام والو ترمینځه چه د ثمودیانو څه وو هغه اوګورئ.او داهل یمن

او اهل مدين قوم سبا بانديې نظر واچوئي.تاسو اكثر دغو ځاګانو او تجارت د پاره هلته ځئ راځئ.بيا فرمائي چه مونږ خپلې نښې او آيتونه ښه واضح كړي دي چه خلق ددې بدو نه نيكو طرفته راواپس شي . بيا فرمائي چه ددې خلقو دالله ﷻ نه سوا دكومو كومو معبودانو عبادت شروع كړې وو نو په هغې كښې دهغوئ خيال دا وو چه ددې په وجه به مونږ دالله ﷻ قرب حاصل كړو . نو آيا زمونږ د عذابونو په وخت كښې چه كله هغوئ د مدد ډير زيات ضرورت وو،هغوئ ددوی مدداوكړو څه ؟ بالكل نه ، هغوئ خو ددوی د محتاجئ او مصيبت په وخت كښې ببدركه شو. ددوی نه اوتښتيدل او دهغوئ هډو پته اونه لګيده . الغرض دهغوئ عبادت كولو ښكاره غلطي وه. محض دروغ وو او افتراء او فضول بهتان وو چه دوی هغوئ معبودان جوړ كړي وو. نو په هغوئ اعتمادكولو كښې او دهغوئ عبادت كولو كښې دوی په دهوكه كښې وو او نقصان ئې بيا موندو. والله اعلم.

| وَإِذْ | صَرَفْنَآ إِلَيْكَ | نَفَرًا |
|---|---|---|
| او ياد كړه هغه وخت كله چې | رااوګرزوله مونږ تاته | يو ډله |

او هغه وخت يادكړه چې مونږ ستا طرفته دپيريانو يو ډله

| مِّنَ الْجِنِّ | يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ | فَلَمَّا | حَضَرُوهُ | قَالُوٓا |
|---|---|---|---|---|
| دپيريانو نه | چې اوريدلو ئې قرآن | پس هر كله چې | هغوئ حاضر شول دغه قرآن ته | نو وې وئيل |

راواړوله | چې قرآن ته ئې غوږونه اونيول | كله چې هغوئ د قرآن اوريدو ته حاضر شوانو دائې اووئيل

| أَنصِتُوا | فَلَمَّا | قُضِيَ | وَلَّوْا | إِلَىٰ قَوْمِهِم | مُّنذِرِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چپ شئ | پس هر كله چې | پوره شو تلاوت | نو واپس لاړل | قوم خپل ته | په حيثيت ديرونكو |

چې چپ شئ | (واورئ) بيا چې (تلاوت) پوره شو | نو هغوئ خپل قوم ته دويرولو په غرض واپس لاړل

| قَالُوا | يَٰقَوْمَنَآ | إِنَّا سَمِعْنَا | كِتَٰبًا | أُنزِلَ |
|---|---|---|---|---|
| او وئيل هغوئ | اے قومه زمونږه | بيشكه واوريدو مونږه | يو كتاب | چې نازل كړې شوې دې |

هغوئ اووئيل چې اے زمونږ قومه مونږ يو كتاب اوريدلې دې | چې دموسى عليه السلام

| مِن بَعْدِ مُوسَىٰ | مُصَدِّقًا | لِّمَا | بَيْنَ يَدَيْهِ |
|---|---|---|---|
| روستو دموسى نه | چې تصديق كونكې دې | د هغه كتابونو | چې مخكښې دهغه نه دي |

(دتورات) نه پس نازل شوې دې | چې د دې نه وړاندې كتابونو تصديق كوي

| يَهْدِيٓ | إِلَى الْحَقِّ | وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ | يَٰقَوْمَنَآ | أَجِيبُوا |
|---|---|---|---|---|
| چې ښودنه كوي | حق ته | او لارې نيغې ته | اے قومه زمونږه | قبول كړئ دعوت |

اودحقو خبرو اود سمې لارې خودنه كوي | ......................اے زمونږ قومه دالله ﷻ طرفته

| دَاعِيَ اللَّهِ | وَءَامِنُوا بِهِ | يَغْفِرْ لَكُم | مِّن ذُنُوبِكُمْ |
|---|---|---|---|
| رابلونكې دالله | او ايمان راوړئ په هغه | اوبه ببښي تاسو ته | ګناهونه ستاسو |

دبلونكي نبى خبره اومنئ | او ايمان پرې راوړئ | الله ﷻ به درته ګناهونه اوبښي

| وَيُجِرْكُمْ | مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ | وَمَنْ لَّا يُجِبْ | دَاعِيَ اللّٰهِ |
| --- | --- | --- | --- |
| او بچ به کړي تاسو | دعذاب دردناك نه | او هغه څوك چې اونه مني | (خبره) دبلونكي دالله |
| اوددرناک عذاب نه مو بچ کړي \| او چا چې دالله ﷻ طرفته دبلونكي (پيغمبر) خبره اونه منله | | | |

| فَلَيْسَ | بِمُعْجِزٍ | فِي الْاَرْضِ | وَلَيْسَ لَهٗ | مِنْ دُوْنِهٖٓ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| پس نه دې هغه عاجزه كونكې الله لره | | په زمكه كښې | او نشته هغه لره | بې دهغه نه |
| نو هغه د زمكې په مخ الله ﷻ عاجزه كولې نشي \| اوهغه دپاره به دالله ﷻ نه سوا څوك بل مددگار | | | | |

| اَوْلِيَآءُ | اُولٰٓئِكَ | فِيْ ضَلٰلٍ | مُّبِيْنٍ |
| --- | --- | --- | --- |
| دوستان (بل څوك) | دا كسان | په گمراهئ | ښكاره كښې دى |
| پيدا نشي \| هم دغه خلق په ښكاره گمراهئ كښې پراته دي \| | | | |

تعالى:- وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ

**دجناتو حقيقت او دقرآن پاک اوريدل اودا چه حضرت نبى كريمﷺ د جناتو هم نبى دې** :-مسنداحمد كښې د حضرت زبير رضي الله عنه نه ددې آيت مبارك د تفسير باره كښې مروى دى چه دا واقعه د نخله ده.او حضرت نبى كريمﷺ په هغه وخت كښې د ماسختن مونځ كولو. دا ټول جنات د حضرت نبى كريمﷺ نه گير چاپيره اودريدل (١)د حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما روايت كښې دى چه دا جنات د نصيبين وو او ددوى شمير اوۀ وو. په كتاب دلائل النبوية كښې د حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه مروى دى چه نه خو حضرت نبى كريمﷺ د جناتو د آوريدو دپاره قرآن پاك لوستلې وو او نه ئې هغوئ ليدلى وو. حضرت نبى كريمﷺ خو خپلو صحابه كرام رضي الله عنهم سره د عكاظ بازار كښې روان وو. بل طرفته داسې اوشو چه د شيطان اود آسمانى خبرونو تر مينځه بندش راغلو او په ده شغلې وريدلې. شيطانان راغلل او خپل قوم ته ئې ددې خبر وركړو نو هغوئ اوونيل چه څه نه څه نوې خبره خوشته دې. څئ ورشئ تلاش اوكړئ،نو دوى راووتل . په هغوئ كښې چه كومه ډله عربو طرفته ليږلې شوې وه نو هغه چه كله دلته راورسيده نو په هغه وخت كښې حضرت نبى كريمﷺعكاظ طرفته تشريف اوړو او نخله كښې ئې صحابه كرامو رضي الله عنهم ته دسحرمونځ وركولو. دهغوئ په غوږونو كښې چه كله د حضرت نبى كريمﷺ د تلاوت آواز ورغلو نو دوى اودريدل او غوږ ئې كيخودو او غور سره ئې آوريدل،دې نه پس دوى فيصله اوكړه چه هم دا هغه څيز دې چه ددې په وجه تاسو آسمان ته نه شئ تلئ . دې ځائې نه زر خپل قوم ته واپس شو او هغوئ ته ئې اوونيل چه مونږ يو عجيبه قرآن پاك واوريدو چه دنيكئ رهبر دې . مونږ خو په هغه ايمان راوړو او اوس دا ناممكن دى چه دالله ﷻ سره بل څوك شريك جوړكړو. نو ددې واقعې خبر الله ﷻخپل نبىﷺ ته په سورة جن كښې وركړو. داحديث مبارك په بخارى او مسلم وغيره كښې هم شته دې .(٢) مسند احمد كښې دى حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه جناتو به د اللّٰهﷻ وحى آوريده . كله چه به يو كلمه ددوى په غوږو شوه نو دې سره به ئې لس نورې يو ځائې كولې . نو دا يو به حق وه او نورې به باطلې وې . اوددې نه مخكښې به په دوى كاڼرې نه وريدل . نو كله چه حضرت نبى كريمﷺ مبعوث شو نو په دوى كاڼرې وريدل شروع شو. دوى چه به كله د خپل ناستې ځائې ته اورسيدل

---

(١) احمد: ١٦٧/١.

(٢) صحيح بخارى كتاب الاذان باب الجهر بالقراة صلاة الصبح : ٧٧٣، صحيح مسلم : ٤٤٩، ترمذى : ٣٣٢٣، احمد: ٢٥٢/١، دلائل النبوة: ٢٢٦/٢.

نو په دوی شغله کولې شوه او دوی به نشو کیناستې. دوی راغلل او ابلیس ته نې ددې خبر ورکړو نو ابلیس اونیل چه نوې خبره ضرور شته دې . نو هغه خپل لښکر ددې د تحقیقات کولو دپاره څلورو واړو طرفونو ته اولیږلو. هغوئ حضرت نبی کریم ﷺ د نخله د غرونو په مینځ کښې دمونځ په حالت کښې بیا موندو او لاړل ددې خبر نې ورکړو. نو هغه اوونیل چه هم دا وجه ده چه آسمان محفوظ کړې شوې دې او ستاسو تلل بند کړې شوی دی . دا روایت ترمذی او نسائی کښې هم دې .(۱) د حضرت حسن بصری رحمه الله قول هم دادې چه ددې واقعې خبر حضرت نبی کریم ﷺ ته نه وو. کله چه په حضرت نبی کریم ﷺ وحی راغله نو بیا حضرت نبی کریم ﷺ ته معلوم شو. سیرت ابن اسحاق کښې د محمد بن کعب رحمه الله یو اوږد بیان منقول دې چه په هغې د حضرت نبی کریم ﷺ طائف ته تلل او هغوئ ته داسلام دعوت ورکول او دهغوئ انکار وغیره پوره واقعه بیان شوې ده . حضرت حسن بصری رحمه الله ددې دعا هم ذکر کړې دې چه کومه حضرت نبی کریم ﷺ ددې مصیبت په وخت کښې کړې وه. هغه داده چه ﴿اللهم الیك اشکو ضعف قوتی وقلة حیلتی وهوانی علی الناس یا ارحم الراحمین انت ارحم الراحمین وانت رب المستضعفین وانت ربی الی من تکلنی الی عدو بعید یتجهمنی ام الی صدیق قریب ملکته امری ان لم یکن بك غضب علی فلا ابالی غیر ان عافیتك اوسع لی اعوذ بنور وجهك الذی اشرقت له الظلمات وصلح علیه امر الدنیا والاخرة ان ینزل بی غضبك او یحل سخطك ولك العتبی حتی ترضی ولا حول ولا قوة الا بك﴾

یعنی اے الله ﷻ خه د خپلې بې وسۍ او کمزورئې او تکلیف شکایت صرف تاته کوم اے ارحم الراحمین ته په اصل کښې د ټولو نه زیات کرم او رحم والا ئې،او هم ته د کمزورو رب ئې، او څما پالونکې هم ته ئې ، ته ما چاته سپارې،یو لرې دښمن ته چه هغه ما مغلوب کړی یا یو نزدې دوست ته چه هغه ته څما باره کښې تا اختیار ورکړیدې ، که ته څما نه خفه نه ئې نو خه ستا نه په دې درد او تکلیف هیڅ ګله مند نه یم . خو که ته ما عافیت سره اوساتې نودا به څما دپاره ډیره ښه وی . خه ستا دې څهرې مبارکې د نور په وجه چه ددې په وجه ټوله دنیا کښې تیاره رڼرا شوې ده ، او دین او دنیا د ټولو امورو صلاح په دې کښې ده ، خه ستا نه په دې پناه غواړم چه هسې نو ماباندې ستا عذاب او غصه نازله شی یا ته څما نه خفه شې . څما صرف ستا رضامندی او خوشنودی پکار ده . او دنیکئ کولو او د بدئې نه دبچ کیدو طاقت ستا مددسره کیږی .

هم ددې سفر په واپسئ حضرت نبی کریم ﷺ نخله کښې شپه تیره کړه.او په دې شپه حضرت نبی کریم ﷺ د قرآن پاك تلاوت کولو او د نصیبینو جناتو دا واوریدو(۲)دا دې خو صحیح خو په دې کښې دا قول تامل طلب دې ، څکه چه دجناتو د کلام الله آوریدو واقعه د وحی دشروع د زمانې ده . لکه څنګه چه حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما پورته بیان کړل ا وهغه حدیث مبارك نه ثابتیږی . او د حضرت نبی کریم ﷺ طائف ته تلل د خپل تره ابوطالب د مرګ نه پس دی . اودا دهجرت نه یو یا یو نه زیات د دوو کالو واقعه ده. لکه څنګه چه سیرت ابن اسحاق وغیره کښې دی . والله اعلم . ابن ابی شیبه کښې د دې جناتو شمیر نهه دې . او په دوی کښې دیو نوم زوبعه دې . هم دده باره کښې دا آیتونه مبارك نازل شوی دی(۳) نو دا روایت او ددې نه مخکښې روایت حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما د روایت اقتضا ده چه دې څل کوم جنات راغلی وو دهغوئ د موجودګئ حضرت نبی کریم ﷺ ته معلومات نه وو.دوی خو د حضرت نبی کریم ﷺ بې خبرئ کښې د حضرت نبی کریم ﷺ نه قرآن پاك واوریدو او واپس شو. اودې نه پس دهغوئ فوځونو نه پس فوځونه او ډلو نه پس ډلې د حضرت نبی کریم ﷺ

(۱) سورة الجن : ۳۳۲٤، وهو صحیح طبرانی : ۱۲٤۳۲.
(۲) ابن هشام : ٦۱/۲، المعجم الکبیر: ۵۰/۱۳ مجمع الزوائد:٦/۳۵
(۳) دلائل النبوة للبیهقی: ۲۲۸/۲

خدمت اقدس کښې حاضر شو. لکه څنګه چه ددې ذکر احادیث اوآثار په خائې کښې راځي ،انشاء الله.
**دجناتو په شپه رسول کریم ﷺ ته ددوئ دراتلو خبر څنګه شوې وو او داو وقعه څو ځله واقع شوې وه:-** بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضرت عبدالرحمان رحمة الله حضرت مسروق رحمة الله نه تپوس اوکړو چه په کومه شپه جناتو د حضرت نبی کریم ﷺ نه قرآن پاك آوریدلې وو په هغه شپه چا ددې ذکر کړې وو ؟ نو وې فرمائیل چه ما ته ستا پلار حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ونیلی دی چه ددې خبر حضرت نبی کریم ﷺ ته یو ونې ورکړې وو([1])نو ممکن دی چه دا په رومبی خل شوی وی او اثبات لره مونړ په نفی اومنو . او دا هم احتمال دې چه کله هغوئ آوریدل نو حضرت نبی کریم ﷺ ته هیڅ خبر نه وو. تردې چه هغه ونې حضرت نبی کریم ﷺ ددوی د اجتماع خبر ورکړو. والله اعلم . اودا هم کیدیشی چه دا واقعه ددې نه پس والا واقعاتو نه یو واقعه وی . والله اعلم . امام حافظ بیهقی فرمائی چه په رومبی خل خو نه حضرت نبی کریم ﷺ جناتو کتلی وو اونه ئې دوی دپاره قرآن پاك تلاوت کړې وو. خو البته چه دې نه پس جنات راغلل او حضرت نبی کریم ﷺ هغوئ ته قرآن پاك واورولو او دالله ﷻ طرفته ئې راوبلل.
لکه څنګه چه حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه مروی دی . ددې روایتونه واورئ . حضرت علقمه رضی الله عنه حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه تپوس کوی چه آیا تاسوکښې څوك په هغه شپه حضرت نبی کریم ﷺ سره موجود وو ؟ نو دوی جواب ورکړو چه هیڅوك نه وو. حضرت نبی کریم ﷺ ټوله شپه دمونړ نه غیب وو او مونړ پدې خیال کښې ووچه شاید چرته دښمن ورته دهوکه ورکړې ده ، الله دې نه کړې چه حضرت نبی کریم ﷺ سره څه ناخوشګواره واقعه پیښه شوې ده څه ، هغه شپه په مونړ ډیره سخته تیره شوه. د صبح صادق نه لږ مخکښې مونړ اوکتل چه حضرت نبی کریم ﷺ د غار حرا نه واپس تشریف راوړو ، نو مونړ ورته خپل دشپې ټول کیفیت بیان کړو . نو حضرت نبی کریم ﷺ جناتو ته اوفرمائیل چه ماته دجناتو قاصد راغلې وو څه هغه سره لاړم او ورته مې قرآن پاك اوواېو. نو مونړ حضرت نبی کریم ﷺ بوتلو او دهغوئ نښې او داور نښې ئې مونړ ته اوخودلې . شعبی رحمة الله وائی چه هغوئ د حضرت نبی کریم نه توښه طلب کړې وه . حضرت عامر وائی چه مکه کښې اودا جن د جزیرې وو. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هر هغه هډوکې چه په هغې دالله ﷻ دنوم ذکر شوې وی نو هغه به ستاسو لاس کښې دمخکښې نه زیات غوښن راپریوزی.او سوته به ستاسو د څناورو خوراك وی. نوائې مسلمانانو ! ددې دواړو څیزونو نه استنجاب اونکړئی،دا ستاسود جناتو رورنړو خوراك دې ([2])
بل روایت کښې مروی دی چه په دغه شپه حضرت نبی کریم ﷺ مونړ کله اونه لیدونو مونړ اوویریدو او مونړ په ټولو وادیانواو غارونوکښې تلاش کولو([3])او یو حدیث مبارك کښې دی چه نن شپه ما جناتو ته قرآن پاك آورولو او په جناتو کښې هم په دې شغل کښې مصروف اوم . ([4])
ابن جریر کښې دحضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه روایت دې چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو کښې څوك غواړی نو نن شپه دې ماسره جناتو امر کښې تیره کړی . نو څه ورسره اوم . څه حضرت نبی کریم ﷺ خان سره واخستم او کله چه دمکې معظمې پور ته حصې ته اورسیدو نو حضرت نبی کریم ﷺ خپلې پښې مبارکې سره یو خط واچولو او ماته ئې اوفرمائیل چه هم دلته اوسه . بیا حضرت نبی کریم ﷺ تشریف یوړو اویو خائې کښې اودریدو او تلاوت ئې شروع کړو. بیا د حضرت نبی کریم ﷺ نه ګیره چاپیره دومره ډله جمع شوه چه د حضرت نبی کریم ﷺ قرات په مشکل آورریدو. او

---

[1]) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب ذکر الجن : ۳۸۵۹، صحیح مسلم: ٤٥٠.
[2]) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب الجهر بالقراة في الصبح : ٤٥٠. ابوداود : ۸٥، ترمذی : ۳۲۵۸، احمد:٤٧٦/١.
[3]) صحیح مسلم حواله سابق.
[4]) مسند ابویعلی : ٥٠٦٢، العظمة: ١١٢١.

بیا ما اوکتل چه څنګه وریخ خوریږي دغه شان هغوئ هم خواره شو او تردې چه ډیر لرې پاتې شو. نوبیا حضرت نبی کریم ﷺ د سحر په وخت کښې فارغ شو او دهغه ځائي نه ډیر لرې لاړل او حاجت نه فارغیدو نه پس مالره راغلل او تپوس ئې اوکړو چه هغه باقي څه شو ؟ نو ما ورته اوونیل چه دا دی نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته هډوکی او لید ورکړل . نو بیا حضرت نبی کریم ﷺ مسلمانان په دوؤ څیزونو د استنجا کولو نه منع کړل. ددې روایت یو بل سند کښې چه په کوم ځائې کښې حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه کینولې وو نو ورته ئې وئیلي وو چه خبردار ددې ځائي نه اونه خوزې ګني هلاك به شې. او روایت کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ کله سحر په وخت کښې راغلو نو تپوس ئې ترې اوکړو چه ولې ته اوده شوې وې څه ؟ ما اوونیل چه نه نه ، په الله ﷻ قسم ما څو څو ځل غوښتل چه خلقو ته فریاد اوکړم خو ما واوریدل چه تاسو هغوئ خپل لرګی سره منع کول او ورته مو فرمائیل چه کینئ . حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که ددې ځائې نه وتلې وې نو ما سره ویره وه چه هغوئ دې ځان سره بونځې.بیا حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ښه تا څه اوکتل . ما اوونیل چه خلق وو هیبتناك او خوفناك او سپینې سپینې جامې ئې اغوستې وې.نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه داد نصیبین جنات وو او هغوئ خما نه توښه طلب کړې وه. نو ماته هډوکی او لید او غوښیان ورکړل . ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ددې نه هغوئ ته څه فائده ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله هډوکې ددوی لاس ته ورشی نو داسې به شی چه څنګه دا وو اودا دخوراك په وخت کښې وو یعنی غوښې والا به شی او دوی ته به ملاؤ شی . او دوی به لید کښې هم هغه دانې بیا مومی چه کومې په دې کښې وې یعنی کله چه خوړلې شوې وې . نو مونږ کښې دې هیڅوك د بیت الخلاء نه پس هډوکی او لید او سوټې سره استنجاء نه کوی [1] ددې روایت بل سند کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه پنځلس جنات به نن شپه خما د قرآن پاك آوریدو دپاره راځی او هغوئ خپلو کښې د تره ځامن او دترو ځامن دی.په هغې کښې لید او هډوکی سره د کوئلې لفظ هم دې . حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه د ورځې خه هغه ځائې ته لاړم او اومې کتل نو هغه څه د شپیتو اوښانو د ناستې ځائې وو[2] او یو روایت کښې دی چه کله جنات ډیر زیات شو نو د جناتو سردارانواووئیل چه یارسول الله ﷺ ا څه دوی روستو کوم چه تاسو ته تکلیف نه وی . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷻ نه زیات خما بچ کولو والا بل نشته دې . دوی رضی الله عنه فرمائی چه دجناتو والا شپه باندې خما نه حضرت نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه تاسره اوبه شته دې که نه ؟ ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ اوبه خونشته البته یو ډولچه ګئ کښې نبیذشته دې . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ښه کهجورې او پاکې اوبه [3] ( ابوداؤد ، ترمذی ، ابن ماجه ) .

د مسند دې حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه به دې سره اودس اوکړم. نو حضرت نبی کریم ﷺ اودس اوکړو او وې فرمائیل چه دا دڅکلو یو پاك څیز دې [4]. مسند احمد کښې دی چه کله حضرت نبی کریم ﷺ واپس راغلل نو ساه ئې تله راتله . نو ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ څه خبره ده ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ما ته خما د انتقال خبر راغلې دې [5].

همدا حدیث لږ زیاتوالی سره دحافظ ابو نعیم رحمه الله کتاب دلائل النبوة کښې دې . په هغې کښې دی چه

---

[1] الطبری: ۱۳۸/۲۲.

[2] دلائل النبوة للبیهقی : ۲۳۱/۲.

[3] ابوداود کتاب الطهارة باب االوضوء بالنبذ : ۸٤، ترمذی : ۸۸، ابن ماجه: ۳۸٤، احمد : ٤٤٩/۱.

[4] احمد: ۳۹۸/۱، دارقطنی:۷٦/۱.

[5] احمد: ٤٤٩/۱.

ددې اوريدو نه پس ما اونيل چه يارسول الله ﷺ ! خپل ځان نه پس څوك خليفه مقرر كړئي . نو حضرت نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چه څوك نو ما اوونيل چه حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه لره . نو په دې باندې حضرت نبی كريم ﷺ خاموش شو ، تلو تلو كښې پرې بياهغه حالت راغلو نوماترې بيا هغه سوال اوكړو نو حضرت نبی كريم ﷺ بيا هم هغه جواب راكړو. څه وخت تلو نه پس بيا د حضرت نبی كريم ﷺ هم هغه حالت شو او بياهم هغه سوال وجواب اوشو. اودې ځل ما دحضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه نوم واخستو نو حضرت نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چه په الله ﷻ قسم ! كه خلق دهغوئ اطاعت اوكړی نو ټول به جنت ته داخل شی (١).خودا حديث مبارك بالكل غريب دې . او ډيرممكن دی چې دا محفوظ نه وی . اوكه ددې صحت تسليم كړې شی نو دا به منلې شی چه دا واقعه دمدينې منورې ده. هلته به هم حضرت نبی كريم ﷺ ته جنات ډلې په ډلې راتلل او ددې ذكر به مونږ انشاء الله نزدې كوؤ. ځكه چه د حضرت نبی كريم ﷺ آخری وخت مبارك دمكې مكرمې د فتح نه پس وو. او دالله ﷻ دين كښې انسانان او جنات ډلې په ډلې داخليدل . او سورة نصر نازل شوې وو . او په دې كښې د حضرت نبی كريم ﷺ د انتقال خبر وو. لكه څنګه چه د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه قول دې اود اميرالمومنين حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دې موافقت دې . نور احاديث به مونږ ددې حديث به تفسير كښې راوړو انشاء الله . والله اعلم .

پورتنې حديث بل سند سره هم مروی دې . خوددې اسناد هم غريب دی او سياق هم غريب . حضرت عكرمه رضی الله عنه فرمائی چه دا جنات دجزيره موصل وو. او ددوی تعداد دولس زره وو. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دهغه خط په ځائې كښې ناست وو او دجناتو د كهجورو دونو پشان قدونه كتلو سره ويريدلی وو او تښتيدل خو د حضرت نبی كريم ﷺ فرمان ورته ياد شو چه ددې ځائې مه اوزه. هركله چه نې حضرت نبی كريم ﷺ ته ددې ذكر اوكړو نو حضرت نبی كريم ﷺ ورته اوفرمائيل كه ته دهغه ځائې نه وتلې وې نو تر قيامته پورې به څمونږ اوستا ملاقات نشو كيدې (٢). او يو روايت كښې دی چه دجناتو د كوم جماعت ذكر چه په آيت ﴿وَإِذْ صَرَفْنَا﴾ كښې دې دا دنينوی وو. حضرت نبی كريم ﷺ فرمائيلی وو چه ماته حكم شوې دې چه دوی ته قرآن پاك واوروم . نو تاسو كښې به ماسره څوك لاړشی ؟ نو په دې ټول خاموش شو. دوباره نې تپوس اوكړو نو بيا خاموشی شوه . په دريم ځل تپوس كولو نه پس د قبيله بنوهذيل سړې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تيار شو . حضرت نبی كريم ﷺ دې ځان سره كړو او د حجون غر ته لاړل . يو خط نې واچولو او دوی نې كينول او پخپله مخكښې لاړل . دامې اوكتل چه دخرو په شان زمكې سره بالكل نزدې الوتلو سره څه څناور راوزی . څه وخت پس ما ته شور واوريدو. تر دې چه څه په حضرت نبی كريم ﷺ ويريدم. دوی اوفرمائيل چڅه دهغوئ ديو مقتول قصه وه په هغې كښې دوی مختلف وو. دهغوئ په مينځ كښې صحيح فيصله اوكړې شوه (٣). دا واقعات صفا دی چه حضرت نبی كريم ﷺ په قصد لاړل او هغوئ ته قرآن پاك واورولو اوهغوئ ته نې د اسلام دعوت وركړو. او چه دكومومسئلو هغوئ ته په هغه وخت كښې ضرورت وو هغه نې ورته اوخودلې . خوبه رومبی ځل چه د حضرت نبی كريم ﷺ جناتو قرآن پاك واريدو نو هغه حضرت نبی كريم ﷺ ته معلوم نه وو. او نه حضرت نبی كريم ﷺ هغوئ ته د آورولو دپاره قرآن پاك لوستې وو لكه څنګه چه حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی . دې نه هغوئ د ډلو شكل كښې راغلل او حضرت نبی كريم ﷺ عمداً لاړل او هغوئ ته نې قرآن پاك واورولو. حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه حضرت نبی كريم ﷺ سره نه وو ناست چه په كوم وخت كښې نې دوی سره نې خبرې كړې وې . حضرت نبی كريم ﷺ هغوئ ته داسلام دعوت وركړو. البته

---

(١) طبرانی : ٩٩٧٠..

(٢) داروايت مرسل

(٣) الطبری: ١٣٦/٢٢:

په څه فاصله کښې لرې ناست وو. حضرت نبی کریمﷺ سره پدې واقعه کښې سوا دحضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه نه هيڅوك نه وو.س او بل تطبيق په هغه روايتونو کښې چه دوی رضی الله عنه حضرت نبی کریمﷺ سره وو او چه کومو کښې دی چه دوی رضی الله عنه حضرت نبی کریمﷺ سره نه وو دا هم کیدې شی چه په رومبی ځل نه وو اوپه دويم ځل وو . والله اعلم . داهم مروی دی چه په نخله کښې کومو جناتو حضرت نبی کریمﷺ سره ملاقات کړې وو هغه دنيوی وو. او مکه مکرمه کښې چه حضرت نبی کریمﷺ سره کومو ملاقات کړې وو هغه د نصيبين وو. او دا چه روايتونوکښې راغلی دی چه مونږ هغه شپه ډیره په سختنه تيره کړه نو ددې نه مراد حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه سوا نور صحابه کرام رضی الله عنهم دی . او هغوئ ته ددې خبرې علم نه وو چه حضرت نبی کریمﷺ جناتو ته قرآن پاك آورولو دپاره تلې دې . خودا د لرې تاويل دې.والله اعلم . بيهقی کښې دی چه د حضرت نبی کریمﷺ حاجت او ا ودس دپاره به حضرت ابوهريره رضی الله عنه خان سره داوبو يو ډولچه ګرزوله . يو ورځې وريسې دې روستو روستو لاړو. نو حضرت نبی کریمﷺ تپوس اوکړو چه څوك ئې ؟ نو وې وئيل چه څه يم ابوهريره. نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائيل چه څما داستنجا دپاره اوبه راوړه خو هډوکی او ليد مه راوړه. نو ما خپله جولئ کښې کانړی راوړل او حضرت نبی کریمﷺ سره مې کيخودل . هرکله چه حضرت نبی کریمﷺ فارغ شو او تشريف ئې اوړو نو ما ترې تپوس اوکړو چه يارسول اللهﷺ څه وجه ده ؟ چه تاسو د هډوکی او ليد نه منع اوفرمائيله . نو حضرت نبی کریمﷺ جواب کښې اوفرمائيل چه ماته د نصيبين دجناتو وفدراغلې وو هغوئ څما نه خوراك طلب کړې وو. نو د الله ﷻ نه دعا اوکړه چه هغوئ په کوم ليدل او هډوکی باندې تير شی نو چه هغه ددی طعام جوړشی .([1]) صحيح بخاری کښې هم ددې نزدې نزدې حديث دې. ([2]) نودا حديث مبارك او ددې نه مخکښې احاديث مبارکه دلالت کوی چه دجناتو وفد حضرت نبی کریمﷺ ته ددې نه پس هم راغلې وو.

اوس مونږ بيان کوؤ دهغه احاديثو چه کوم دلالت کوی چه جنات حضرت نبی کریمﷺ ته ډير ځل حاضر شو. د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه چه ددې نه مخکښې روايت بيان شوې دې ، دهغې نه سوا هم د ددوی رضی الله عنه نه نورو سندونو سره مروی دی . حضرت ابن جرير رحمه الله فرمائی چه د اوؤ جنات وو چه د نصيبين اوسيدونکی وو . او دوی دالله رسولﷺ دخپل طرفنه جناتو ته قاصدان جوړ کړی وو او نوور جناتو ته ئې ليږلی وو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا جنات شمیره کښې اوؤ وو او د نصيبين اوسيدونکی وو. د الله رسولﷺ فرمائی چه هغوئ نه درې د اهل حران نه وو او څلور د اهل نصيبين نه وو. دهغوئ نومونه دادی ①حسی ②حسا ③منسی ④ساصر ⑤ناصر ⑥ الادربيان⑦الاحتم . ابو حمزه ثمالی رحمه الله فرمائی چه دوی ته بنو شيصيان وائی . دا قبيله د جناتو نورو قبيلو نه شمير کښې زيات وو . او په هغوئ کښې د نسب لحاظ سره هم شريف وو. او هغوئ عام طور د ابليس لښکر نه وو. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دوی نهه وو او په دوی کښې ديو نوم زوبيعه وو او اواصل کښې دنخله نه راغلی وو. دبعضو حضراتو نه مروی دی چه دا پنځلس وو او يوروايت کښې دی چه هغوئ په شپيتو اوښانو راغلی وو او دهغوئ دسردار نوم وردان وو. او وئيلې شوی دی چه درې سوه ووا او دا هم مروی دی چه دولس زره وو. په دې ټولو کښې تطبيق دا کيديشی چه چونکه وفود زيات راغلی وو نو بعضو کښې شپږ ووا او بعضو کښې نهه او بعضو کښې زيات.او چاکښې کم او چا کښې زيات وو. په دې باندې دليل د بخاری شريف کښې دا روايت هم دې چه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه چه دکوم څيز باره کښې به کله کله وئيل چه څما خيال دې چه دا به داشان وی نوهغه به عام طور هم هغه شان وو. يو

---

[1]) بيهقی : ۱/۱۰۷،.

[2]) صحيح بخاری کتاب المناقب الانصار باب ذکر الجن : ۳۸٦۰.

خل دوی ﷺ ناست وو اوددوی مخکښې يو ښکلې سړي تير شو نو دوی ﷺ فرمائي چه که خما ګمان غلط نه وی نودا سړي دجاهليت په زمانه ددې خلقو کاهن (جادوګر) وو ، څئ لږ ني راولئ؟ هرکله چه هغه راغلو نو دوی ﷺ په هغه خپل دا خيال ظاهر کړو. نوهغه اووئيل چه تر ننه پورې خما نظر نه په مسلمانانودومره ذهانت او فطانت والا سړي نه دې تيرشوې . حضرت عمرفاروق ﷺ ورته اووئيل چه ښه ده اوس څه خپل صحيح خبر اووايه . نوهغه اووئيل چه واورئ . څه دجاهليت په زمانه کښې ددوی کاهن اوم او ماسره چه کوم يو جن وو اوهغه ټولو نه زيات تعجب والا وو هغه واورئ . يو خل څه بازار کښې روان اوم په دې کښې هغه راغلو او ډير په ويره کښې وو او ماته ئې اووئيل چه تا د جناتو تباهي، مايوسي او ددوی د خوريدو نه پس بيا واپس کيدل اوددی فرياد مو کتلې دې ؟ حضرت عمر فاروق ﷺفرمائي چه دا ربښتيا دی يو خل څه ددوی بتانو سره ملاست اوم، يو سړي راغلو او هغه يو څخې پريښودو نو په دې کښې ناګاهانه يو سخت زوردار آواز راغلو اوداسې آواز ما کله هم نه وو آوريدلې. هغه اووئيل چه انې جليح نجات ورکونکې امر راغلې دې يو سړي دې چه فصيح زبان دې اود ﴿لااله الا الله﴾ منادی دې . ټول خلق خو دويرې دلاسه اوتښتيدل خو څه هلته ناست اوم چه اوګورم چه آخر څه دی ؟ په دې دوباره هم هغه آواز راغلو او هغه هم هغه اووئيل . بيا څو ورځې پس د حضرت نبی کريمﷺ د نبوت آواز زمونږ غوږونو ته راغلو[1].ددې روايت د ظاهر الفاظو نه دا ظاهريږی چه حضرت عمرفاروق ﷺ يخپله ددې څخې آواز آوريدلې وو اويو ضعيف حديث کښې صراحت سره ونيلې شوی دی خو باقي نورو روايتونه دا واني چه هم دې کاهن دخپلو کتو او آوريدو واقعه هم بيان کړې ده . والله اعلم . امام بيهقي ﷫ هم دا وئيلی دی اوهم دا ښه معلوميږی . اوددې سړي نوم سواد بن قارب وو چه څوك ددې واقعې پورا تفصيل کتل غواړی نوهغه دې خما کتاب سيرة عمر ﷫اوګوری ﴿ولله الحمدوالمنة﴾ امام بيهقي ﷫ فرمائي چه ممکن دی چه هغه کاهن وی چه د چا دنوم ذکر صحيح حديث مبارك کښې دی.

**د سواد بن قارب د ايمان قبولولو قصه:**- يو خل حضرت عمر بن خطابﷺ په منبر نبویﷺ باندې خطبه ورکوله نو دوی ﷺ تپوس اوکړو چه سواد بن قارب دلته موجود دې . خودې پورا کال کښې چا او اونه کړل . راتلونکی کال بيا دوی ﷺ تپوس اوکړو نو حضرت براءﷺفرمائي چه سواد بن قارب څوك دی ؟ ددې نه څه مطلب دې ؟ نو دوی ﷺ فرمائي چه دهغه د اسلام قبولولو واقعه ډيره عجيبه ده . لا دا خبرې کيدې چه په دې کښې سواد بن قارب راغلو. حضرت عمر فاروق ﷺهغه اوفرمائيل چه انې سوا د د خپل اسلام ابتدائي قصه بيان کړه. نو هغه ﷺاوفرمائيل چه واورئ . څه هند ته تلې اوم او يو خل خما جن ملګرې ماته راغلو . او څه په هغه وخت کښې اوده اوم . هغه څه رابيدار کړم او وې وئيل که تا کښې عقل او هوش وی نو واوره او په دې پوهه شه او سوچ پرې اوکړه. قبيله لوئی بن غالب کښې د الله ﷺرسول مبعوث شوې دې ، څه دجناتو په حس او خپلو بسترو تړلو باندې تعجب کوم . که طلب هدايت والا دې نو زر مکې ته لاړشه . او پوهه شه چه بهتر او بدترين جن يوشان نه وی . څه زر لاړ شه او بنو هاشم په دې ښکلې ګل ښه نظر واچوه . څه بيا خوبولې شوم او ده څه بيا رابيدار کړم او وې وئيل چه انې سواد بن قارب الله ﷺ خپل رسول ليږلې دې . ته دهغویﷺ خدمت کښې حاضر شئ او هدايت واخله . په دويمه شپه بيا راغلو او وې وئيل چه ماته تعجب دې په دې خبره چه جنات زر زر روان دی خی . که ته هم د هدايت طالب ئې نو زر مکې مکرمې ته لاړ شه . پوهه شئ چه دهغه دواړه قدمونه دده دمونو په شان نه دی . ته پاسه او زر زر دبنو هاشم د هغه ښکلې سړي خدمت کښې حاضر شه. او خپلې سترګې دهغه ديدار سره روښانه کړه . په دريم خل بيا راغلو او وې وئيل چه ماته دجناتو په تياريد

[1] صحيح بخاری کتاب الانصار باب اسلام عمر بن الخطاب ﷺ : ۳۸٦٦، دلائل النبوة للبيهقي: ۲۴۳/۲.

او قافلو باندې تعجب دی . هغوئ ټول د هدايت د طلب دپاره مکې مکرمې ته روان دی . په هغې د ښه او خراب برابری نښې کولې . ته هم پاسه اود بنو هاشم هغه مقرر شوی سړی ته ورشه ، مومن جنات د کافرانو په شان نه دی . تر دريو ورځوپورې ددې آوريدو نه پس خما زړه کښې هم داسلام ولوله راپيدا شوه او د حضرت نبی کريمﷺ محبت او وقعت خما زړه کښې ځائې جوړ کړو. ما په خپله غونی باندې کجاوه واچوله اوبغيرد بـل ځائې د قيام نه نيغ د حضرت نبی کريمﷺ په خدمت کښې حاضر شوم. حضرت نبی کريمﷺ په هغه وخت کښې دمکې مکرمې ښار کښې وو او خلق ترې ګير چاپيره وو. خما کتلو سره حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه سواد بن قارب مرحبا . راځه مونږ ته معلوم دی چه څنګه او څه دپاره او دچا په وينا راغلې ئې ؟ ما اووئيل چه رسول اللهﷺ ! ما څه اشعار وئيلی دی که اجازت وی نوهغه پيش کړم. نو حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه سواد شوق سره اووايه . نو حضرت سواد ﷺ هغه اشعار اووئيل چه دهغې مضمون دادې . مالره خما جن خما داوده کيدو نه پس راغلو اوهغه ماته يو ريښتونې خبر واورولو ، اوهغه ماته درې شپې راغلو ، اوهر ځل به ئې ماته دا وئيل چه لوئي بن غالب کښې دالله ﷻ رسول مبعوث شويدې . نو ما هم دسفر تياری اوکړه زر زر دلته راغلم او اوس خما ګواهی ده چه داللهﷻ نـه سوا بـل معبود نشته دې ، او دوی دالله ﷻ امانت دار رسول دی ، او ددوی نه دشفاعت آسره ټوله نه زياته ده ، اني بهترين بزرګانو او د پاکو خلقو اولاده اود رسولانو نه بهتر رسوله چه تاسو مونږ آسمانی هر څومره مشکل او د طبيعت نه خلاف حکم رسونی نو دا ممکن نه دی چه مونږ به هغه پريږدو او تاسو ضرور دقيامت په ورځ خما سفارشي جوړ شئ خکه چه هلته ستاسو نه سوا ( دبل چا وس نه رسی ). دسواد بن قارب سفارشی به بل څوك وی ؟ نويه دې حضرت نبی کريمﷺ ډير اوخندل او وې فرمائيل چه سواد تا فلاح بيامونده . حضرت عمر فاروق ﷺ ددې واقعې آوريدو نه پس اوفرمائيل چه آيا هغه جن اوس هم تاته راځی ؟ هغه اووئيل چه کله نه ما قرآن پاك لوستې نوهغه نه راځی . اود الله ﷻ ډير شکر دې چه دهغه بدله کښې ماداقران پاك بيامونده.

د دلائل النبوة والا روايت:-او اوس چه کوم يو حديث مونږ د حافظ ابونعيم دکتاب دلائل النبوة نه نقل کوؤ په هغې کښې هم بيان دې چه په مدينه منوره کښې هم د جناتو وفد حضرت نبی کريمﷺ ته راغلې وو. حضرت ت عمرو بن غيلان ثقفی ﷺ او حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ ته ورغی اودهغوئ نه تپوس کوی چه ماته معلوم شوې دی چه په کومه شپه په حضرت نبی کريمﷺ باندې د جناتو وفد حاضر شوی وو نو په هغه شپه تاسو هم حضرت نبی کريمﷺ سره وې . نو دوی ﷺ جواب کښې اووئيل چه آو دا ريښتيا دی.نوما ورته اووئيل چه لږه خوهغه واقعه راته بيان کړئی.نو هغوئ ﷺ اوفرمائيل چه د صفه والا صحابه کرام ﷺ خلقو ځان سره د خوراك دپار بوتلل او څه هم دلته پاتې شوم. ما سره حضرت نبی کريم ﷺ تير شو نو وې فرمائيل چه څوك ئې ؟ ما اووئيل ابن مسعود ﷺ . نو حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه ته چا نه ئې بوتلې . نو حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه ښه ماسره راځه شايد چه څه ملاؤ شی نو تاته به ئې هم درکړم . څه ورسره شوم . نو حضرت نبی کريمﷺ د ام سلمه حجرې مبارکې ته تشريف يوړو اوځه بهر پاتې شوم . لږ وخت پس دننه نه يو وينځه راغله او وې وئيل چه مونږ خپل کور کښې هيڅ څه اونه موندلو،نه خپل ځائې ته واپس شه. نو څه مسجد ته واپس راغلم او د وړو وړو کانړو نه مې يو ډيرې جوړ کړو او په هغې مې سر کيخودو او څملاستم . لږ وخت کښې بيا هغه وينځه راغله او وې وئيل چه حضرت نبی کريمﷺ تاسو يادوی . نو لاړم او دا مې اميد ووچه ضرور به د خوراك څه ملاؤ شی . هر کله چه څه اورسيدم نو حضرت نبی کريمﷺ کور نه بهر تشريف راوړو. حضرت نبی کريمﷺ سره لاس مبارك کښې د کهجورو يو ښاخ وو هغه ئې خما په سينه کيخودو او وې فرمائيل چه څه چرته روان يم نو ته به ماسره لاړ شې ؟ نوما اووئيل چه څه دالله تعالی ته خوښ وی . درې ځل دا

سوال و جواب اوشو. بیا حضرت نبی کریمﷺ روان شو او څه ورسره هم روان شوم. لږ وخت کښې بقیع غرقه ته اورسیدو ، بیا نزدې نزدې هم هغه بیان دې چه کوم پورته روایتونو کښې تیر شو. ددې اسناد غریب دي او ددې اسنادو یو مبهم راوی دې اودهغه نوم نه دې ذکر شوې . دلائل النوة کښې حافظ ابونعیمؒ الفاظ دی چه مدینه منوره کښې مسجد کښې حضرت نبی کریمﷺ دسحر مونځ ادا کولو نه پس نې خلقو ته اووئیل چه نن شپه به تاسو کښې ماسره څوك د جناتو وفد سره ملاویدو دپاره تیار وی؟ خو هڅا جواب ورنکړو . په درې ځل فرمان باندې چا څه او نه وئیل . حضرت نبی کریمﷺ ماسره تیرشو او څما لاس نې اونیولو او دمدینې غرونو نه بهر اووتلو او خوشې میدان ته اورسیدل. نو دې د نیزو برابر اوږده اوږده سرې اوږدې اوږدې جامې نې اغوستې راتلل شروع شو. نو ددوی په کتلو څه ویریدم .بیا نوره واقعه د حضرت ابن مسعودؓ بیان په شان ده . داحدیث هم غریب دې ، والله اعلم. هم پدې کتاب کښې یو غریب حدیث مبارك کښې دی چه دحضرت عبدالله ؓ ملگری حج ته روان وو. لار کښې مونږ اوکتل چه یو سپین رنګې مار پروت دې او دده نه د مشکو خوشبو راځی . ابراهیمؒ اووئیل چه تاسو ټول ځئ څه دلته ایساریږم . ګورم چه دا مار څه کوی . نو هغوئ لاړل او څه پاتې شوم. لږ وخت پس هغه مار مړ شو. ما یو سپینه کپړه واخسته او هغې کښې انغښتو د لارې نه مې یو طرفته ښخ کړو. او دشپې د روټئ په وخت کښې خپلې قافلې ته اورسیدم. په الله ﷻ قسم چه څه ناست اوم چه په دې کښې څلور ښځې د مغرب طرفنه راغلې نو په هغوئ کښې یو تپوس اوکړو چه عمرو چا دفن کړې دې ؟ مونږ اووئیل چه څوك عمرو ؟ هغوئ کښې یو اووئیل چه تاسو کښې چا مار دفن کړې دې ؟ ما اووئیل چه او ما دفن کړې دې . نو هغې اووئیل چه په اللهﷻ قسم دې چه تاسو یو ډیر روژه دار او یو پوخ مونځګزار دفن کړې دې . او هغه به ستاسو نبی منلو. او هغه ستاسود نبی نه څلور سوه کاله مخکښې ستاسو دنبی صفت آوریدلې وو. حضرت ابراهیمؒ فرمائی چه په دې مونږ د الله ﷻ حمدوثناء اووئیله ا و بیا حج نه چه فارغ شو نو مونږ دحضرت فاروق اعظم ؓ خدمت کښې حاضر شو او ما هغوئ ته دا ټوله واقعه اووئیله . نو هغوئ اوفرمائیل چه هغه ښځې ریښتیا وئیلی دی . ما د جناب حضرت نبی کریمﷺ نه آوریدلی دی چه ماباندې نې ایمان ر اوړې وو او څما نه څلور سوه کاله مخکښې . داحدیث مبارك هم غریب دې . والله اعلم . یو روایت کښې دی چه دفن کووالا حضرت صفوان بن معطل ؓ وو . وئیلې شی چه دا صاحب چه کوم دې څائې دفن کړې شو دا دهغه نهو جناتو نه دې چه حضرت نبی کریمﷺ نه د قرآن پاك د آوریدوفد سره راغلې وو. ددوی وفات ددې ټولو آخرکښې اوشو. ابونعیم کښې یو روایت کښې دی چه یو سړی دحضرت عثمان ذوالنورین ؓ خدمت کښې حاضر شو او وې وئیل چه انې امیرالمومنین څه یو څنګل کښې اوم ، ما اوکتل چه دوه ماران خپلو کښې په جنګ دی . تر دې چه یو بل اووژلو. نو ما دوی پریښودل اوهغه څائې ته لاړم چه کوم خائې کښې جنګ شوې وو. ما اوکتل چه ډیر ماران مړ شوی دی . اودبعضو نه داسلام بوئې رازی . نوما یویو بوئی کول شروع کړل . تر دې چه یو زیړ رنګ والا مار نه ماته د اسلام بوئی راغله . ما هغه خپل پټکی کښې انغښتو او دفن مې کړو. او څه روان شوم نو ما دې کښې یو آواز واوریدو چه انې دالله ﷻ بنده تاته دالله ﷻ دطرفنه هدایت درکړې شو. دا دواړه جنات دمارانو دجناتو د قبیلې بنو شعیبان او بنو قیس نه وو. دوې دواړو خپلو کښې جنګ اوکړو او ډیر زیات قتل شو چه تا پخپله اوکتل.په هغوئ کښې یو شهیدوو چه هغه تا دفن هم کړو هغه د رسول اللهﷺ وحی مبارکه آوریدلې وه . حضرت عثمان ؓ ددې قصې آوریدو نه پس اووئیل چه انې سړیه که ته ریښتونې نې نو په دې کښې شك نشته دې چه تا یو عجیبه واقعه لیدلې ده.اوکه ته دروغژن نې نو د دورغو بوج هم په تادې . اوس ددې آیت مبارك تفسیر واورئ . ارشاد دې چه کله مونږ ستا طرفته دجناتو یو ډله اولیږله چه کومو قرآن پاك آوریدو. کله چه هغوئ حاضر شو نو تلاوت شروع کیدو والا وو نو هغوئ خپلو کښې یو

بل ته دا اداب اوخودل چه خاموشئ سره واورئ. دهغوئ يو بل ادب هم حديث مبارك کښې راغلے دے.
ترمذی وغيره کښې دی چه يو ځل حضرت نبی کريمﷺ دصحابه کرامو ﷺ مخکښې د سورة رحمان
تلاوت اوفرمائيلو . بيا ئې اوفرمائيل چه څه خبره ده ؟ چه تاسو ټول خاموش يئ . ستاسو نه ډير ښه
جواب ورکولو والا جنات ثابت شوی دی کله چه هغوئ څما نه دا آيت مبارك چه ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا
تُكَذِّبَانِ﴾ واوريدونو هغوئ جواب کښې اووئيل چه ﴿ولا بشیء من آلائك اولنعمك ربنا نكذب فلك الحمد﴾ (1)بيا
فرمائی چه کله فراغت حاصل شو . د ﴿قضى﴾ معنی دې آيتونو مبارکو کښې هم ده . ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ
الصَّلَاةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ و ﴿فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِي يَوْمَيْنِ وَأَوْحَىٰ فِي كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا﴾ و ﴿فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ
فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا﴾ بيا فرمائی چه هغوئ خپل قوم ته د زورنې او خبرولو دپاره لاړل .
لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائی چه ﴿لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ يعنی چه هغوئ پوهه حاصله کړی . اوکله چه واپس
خپل قوم ته اورسی نو هغوئ هم هوښيار کړی . ډير ممکن دی چه هغوئ بچاؤ اختيارکړی .

قوله تعالى:- وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ

ددې آيت مبارك نه معلوم شو چه جنات هم دالله ﷻ خبرې رسونکی او دالله ﷻ نه ويرونکی دی . خو په
دوی کښې رسولان نه دی ليږلې شوی . داخبره بغير شك نه ثابت ده چه په جناتو کښې پيغمبران نشته
دې . دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ الْقُرَىٰ﴾ يعنی مونږ ستا نه مخکښې
چه څومره رسولان ليږلی دی هغه ټول د کلو اوسيدونکی انسانان وو. او هغوئ طرفته به مونږ وحی
کوله . او يو آيت مبارك کښې دی چه ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا
بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ۗ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا﴾ (ترجمه) ستا نه مخکښې چه مونږ څومره رسولان ليږلی وو
هغه ټولو به خوراك کولو اوبازارونوکښې به ګرځيدل .

د حضرت ابراهيم عليه السلام باره کښې قرآن پاك کښې دی چه ﴿وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ﴾ مونږ هغه په اولاد
کښې نبوت او کتاب کيخودو ، نودوی نه پس چه څومره نبيان راغلل هغه ټول ددوی دخاندان نه او
ددوی دنسل نه وو خو سورة انعام کښې آيت مبارك دې چه ﴿يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾ ائې دانسانانو او جناتو
ډلو آيا تاسو ستاسو نه رسولان نه دی راغلی ؟

ددې مطلب او ددې نه مراد دا دواړه جنس دی . نو ددې مصداق صرف يوجنس کښې کيديشی . لکه
چه فرمان دې چه ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴾ يعنی ددې دواړو سمندرونو نه موتيان او هيرې راوزی.
حالانکه دا هم يو نه راوزی .

قوله تعالى:- قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا

اوس بيان کيږی دجناتو دهغوئ دوعظ چه کوم هغوئ خپل قوم ته کړې وو. وې فرمائيل چه مونږ هغه
کتاب واوريدو چه کوم دحضرت موسی عليه السلام نه پس نازل شوې دی . دحضرت عيسی عليه السلام کتاب
انجيل ذکر ئې په دې وجه پريښودو چه په اصل کښې هغه ددې پورا کولووالا وو. په هغې کښې زيات
تر وعظ او زړه لره نرمونکی بيانات وو. د حرام او حلال مسائل ډير کم وو. نو اصل څيز هم تورات پاتې
شو. نو په دې وجه دې مسلم جناتو دهغې ذکر اوکړو. او کله چه ورقه بن نوفل د حضرت نبی کريمﷺ
زبانی د حضرت جبريل عليه السلام د اول ځل واقعه واوريدل نو هم دا خبره ئې پيش کړه او وې وئيل چه واه
واه هم دا الله ﷻ رازدار دې چه کوم به حضرت موسی عليه السلام ته راتلو. کاش چه څه نوره زمانه پاتې شوې

(1) ترمذی کتاب تفسير القران باب ومن سورة الرحمان : ٣٢٩١، وهو حسن ، حاکم : ٤٧٣/٢.

وي . الخ (۱) بيا دقران پاك يو بل صفت بيانوي چه د ددې نه مخكښې تول كتابونه په رينښتيا ګڼي . دا اعتقادي مسئلو كښې او حق طرفته رهبرى كوي . او عملونوكښې نيغه لار ښائي . قرآن پاك كښې دوه څيزونه دى يا خبر ياطلب نو ددې خبر رينښتيا اوددې طلب عدل والادې.لكه فرمان دې چه ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا﴾ يعنى ستادرب كلمه رينښتوني او عدل والا ده.اويو آيت مبارك كښې الله ﷻ فرمائى چه﴿ هُوَالَّذِيْ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ﴾ هغه الله ﷻ چه هغه خپل رسول هدايت او حق دين سره ليږلې دې نو هدايت او نفع وركونكې علم دې.او حق دين نيك عمل دې . همدا د ژوند مقصد د جناتو وو.

**قوله تعالى:- دَاعِيَ اللّٰهِ وَاٰمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ**

**ر سول كريم ﷺ انسانانو او جناتو دواړو ته رسول ليږلي شوي دې:-** بيا فرمائى چه ائې زمونږه قومه د الله ﷻ د داعى په دعوت لبيك اووائې په دې كښې ددې أمر دلالت دې چه حضرت نبى كريم ﷺ جن او انس دواړ فرقو ته ليږلې شوې وو. نو په دې وجه حضرت نبى كريم ﷺ جناتو ته دالله دعوت وركړو.او دهغوئ مخكښې ئې دقران پاك هغه سورت مبارك اونيلو چه كومو كښې هغوئ دواړه مخاطب كړې شوى وو. اوددوى په نوم ئې احكام جارى كړل . او وعده او وعيدئې بيان كړو. يعنى سورة رحمان . بيا فرمائى چه داسې كولو سره به ستاسو څه ګناهونه معاف شى . خو دا په هغه صورت كښې كيديشى چه كله لفظ دمن لره زائد اونه منلې شى . نو د مفسرينو يو قول داهم دې . او د قاعدې مطابق د اثبات په موقع لفظ دمن ډير كم زائد وى . او كه زائداومنلې شى نو مطلب به داشى چه الله ﷻ به ستاسو ګناهونه معاف كړى . اوتاسو به دخپل المناك عذاب نه اوساتى . ددې آيت مبارك نه بعضو عالمانو استدلال كړې دې چه ايمانداره جناتو ته به هم جنت نه ملاويږى .خو عذاب نه ورته نجات ملاؤ شى . او هم دابه دهغوئ دنيكو بدله وى . اوكه ددې نه زياته مرتبه هم وى نو دې ملاويدو والا جناتو به په دې مقام دا مومن جن دا ضرور بيانول.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى چه مومن جنات به جنت نه ځى . ځكه چه دوى د ابليس اولاد نه دى . او ابليس به جنت ته نه ځى . خو حق دادې چه مومن جن په شان د ايماندارو انسانانو دى او دوى به جنت كښې ځائې مومى . لكه څنګه چه دسلفو ديو جماعت مذ هب دې.بعضې خلقو پدې آيت مبارك باندې دا استدلال كړې دى چه ﴿ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ﴾ په دې حورو به ددې نه مخكښې نه ديو انسان لاس لګيدلې وى اونه به د يو انسان .

په دې استدلال كښې نظر دې . ددې نه ډيرزيات بهتر استدلال دالله ﷻ په دې فرمان كښې دې چه ﴿وَلِمَنْ خَافَ﴾ يعنى نوبيا ائې جناتو او انسانانو ستاسو به دخپل پروردګار كوم كوم نعمت په دروغه ګڼړئى ؟دې آيت مبارك كښې الله ﷻ په انسانانواو جناتو احسان فرمائى چه ددوى دنيك كار بدل جنت دې .او ددې آيت مبارك آورريدو سره مسلمان انسانانو نه علاوه زيات شكر مسلمانانو جناتو اداكړو. اوددې آيت آوريدو سره ئې اوونيل چه ائې الله ﷻ مونږ ستا د نعمت نه انكارى نه يو. مونږ ستا ډير ډير شكر ادا كوو. داسې خو نشى كيدې چه ددوى مخكښې په دوى احسان اوكړې شى چه په اصل كښې دوى ته دملاويدو والا نه دې .

**د راجح مذهب دليل:-** نورهم خمونږ يو دليل واورئى . كله چه كافر جنات جهنم كښې داخل كړې شى او دا مقام عدل دې نو مومن جنات دې ولې جنت ته داخل نه كړې شى ؟ او دا مقام فضل دې بلكه دا ډير زيات لائق او په طور داولى كيدو قابل دى . او پدې باندې هغه آيتونه هم دليل دى چه په هغې كښې عام طور هغه آيتونه دى چه په هغې كښې عام طور سره ايماندارو ته دجنت زيرې دې . لكه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ

(۱) صحيح بخارى كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله ﷺ : ۳ مسلم: ۱٦٠.

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَانَتْ لَهُمْ وغيره وغيره . يعنى ايماندارو دپاره مهمان خانه يقينًا جنت فردوس دې .
الحمدلله مادا مسئله ډير وضاحت سره خپل يو مستقل تصنيف كښې بيان كړې ده .

**د جنت بيان او بل دليل:-** او د جنت حال واورنى او هغه دا چه كله ايماندار ټول په ټوله جنت ته داخل شى نو په هغې كښې به ډير زيات ځائې پاتې شى . اوبيا به الله ﷻ يو نوې مخلوق پيدا كړى او هغوئ به دې كښې آباد كړى . نو بيا هيڅ وجه نه ده چه نيك عمل كولو والا جنات به جنت ته داخل نشى . اوواورئې دلته دوه خبرې بيان شوې . د ګناهونو نه بخښنه او د عذابون نه نجات . او هركله چه دا دواړه دى نو يقينًا مستلزم دى جنت ته د داخليدو. خكه چه آخرت كښې يا جنت كښې وى يا جهنم كښې . نو چه كوم سړې د جهنم نه بچ شو نو دهغه جنت ته تګ پكار دې . نور څه نص صريح يا ظاهر ددې خبرې په بيان كښې نه دې وارد شوې چه مومن جنات به د دوزخ نه د بچ كيدو باوجود جنت ته به نه داخليږى . كه څه داسې قسمه دليل وى نو. بيشكه مونږ دهغې دمنلو دپاره تيار يو . والله اعلم .

حضرت نوح عليه السلام ته اوګورئى چه خپل قوم ته وائ چه الله ﷻ به ستاسو ګناهونه (ستاسو دايمان قبلولو په وجه) اوبخښى او تاسو ته به يو مقرر وخت پورې مهلت دركړى . نو دلته هم د دخول جنت ذكر نه كيدو په وجه دا نه لازميږى چه دحضرت نوح عليه السلام دقوم مسلمانان به جنت ته نه داخليږى . بلكه بالاتفاق هغه ټول جنتيان دى. نوداشان دلته هم اوګڼړئى او ددې مسئلې متعلق څه نور سوالات واورئى . حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله نه مروى دى چه د جنت ته خو به دوى نه رسى البته ددې په غاړو به ګرزى راګرزى. بعضې خلق وائى چه هغوئ به جنت كښې وى خو ددنيا بالكل برعكس.انسانان به دوى نه وينى . اودوى به هم انسانان نه وينى . دبعضو خلقو قول دې چه دوى به جنت كښې خوراك څكاك نه كوى صرف تسبيح او تحميد اوتقديس به ددوى خوراك وى لكه فرښتې خكه چه دوى هم د هغوئ دجنس نه دى . خودې ټولو اقوالو كښې نظر دې او دا ټول بې دليله دى. بيا مومن واعظ فرمائى چه څوك دالله ﷻ داعى دعوت قبول نه كړى هغه به په زمكه كښې الله ﷻ ته هرګزعاجزه كولې نه شى وركولې بلكه دالله ﷻ قدرت دوى دپاره هم دې اودوى ئې ګير كړى دى . دهغه ذات دعذابونو نه دوى هيڅوك نشى بچ كولې . دوى په ښكاره دهوكه كښې دى . خيال اوكړئى چه د تبليغ دا طريقه څومره ښكلې او څومره موثره ده. رغبت ئې هم وركړو او ويره ئې هم وركړه. په دې وجه هغوئ كښې اكثر صحيح شو او فوجونه په فوجونه او قافلې قافلې ډير ډير ځل د الله رسول ﷺ دخدمت كښې حاضر شو اواسلام ئې قبول كړو. لكه څنګه چه مونږ تفصيل سره بيان كړل. په دې مونږ دالله ﷻ شكر ادا كوؤ ، والله اعلم .

| | | |
|---|---|---|
| اَوَلَمْ يَرَوْا | اَنَّ اللّٰهَ | |
| ايا نهٔ وينې دوئ | چې بيشكه الله | |
| ايا دوئ دې ته نه ګورى چې الله ﷻ | | |

| الَّذِىْ | خَلَقَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَلَمْ يَعْىَ | بِخَلْقِهِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| هغه ذات دې | چې پيدا ئې كړل اسمانونه | او زمكه | او ستړې نه شو | په پيدا كولو ددې |
| اسمانونه او زمكه پيدا كړې ده ........................ اوددې په پيدا كولو ستړې شوې نه دې | | | | |

| بِقٰدِرٍ | عَلٰٓى اَنْ يُّحْىِۦَ | الْمَوْتٰى | بَلٰٓى اِنَّهٗ | عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ | قَدِيْرٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه قادر دې | په دې چې ژوندى كړى | مړى | هو بيشكه هغه | په هر څيز باندې | قادر دې |
| هغه په دې قادر دې چې مړى راژوندى كړى ولې نه هغه خو په هر څه پوره پوره قدرت لرى | | | | | |

| وَيَوْمَ | يُعْرَضُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | عَلَى النَّارِ |
|---|---|---|---|---|
| او په کومه ورځ | چې وروړاندې کړې کيږي | هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | وور ته |
| اوپه کومه ورځ چې کافران (ددوزخ) اور ته ورمخامخ کړې شي ........................ | | | | |

| اَلَيْسَ هٰذَا | بِالْحَقِّ | قَالُوْا | بَلٰى | وَرَبِّنَا | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|
| آيا نه دې دا | حق | اوبه وائي | هو حق دې | قسم دې په رب زمونږه | اوبه وائي الله |
| (دا به ورته اوئيلې شي چې) دا حقيقت دې که نه اوائي به چې ولې نه زمونږ په رب قسم (چې داحق دې) | | | | | |

| فَذُوْقُوا | الْعَذَابَ | بِمَا | كُنْتُمْ | تَكْفُرُوْنَ | فَاصْبِرْ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس اوځکئ | عذاب | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې انکار به مو کولو | پس اے بنی صبرکوه |
| نو الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې دخپل کفر په وجه دا عذاب اوڅکئ \| نو (پيغمبره) ته صبره کوه | | | | | |

| كَمَا | صَبَرَ | اُولُوا الْعَزْمِ | مِنَ الرُّسُلِ | وَلَا تَسْتَعْجِلْ |
|---|---|---|---|---|
| لکه څنګه چې | صبر کړې دې | کلکو ارادو والا | درسولانونه | او تلوار مۀ کوه (په عذاب) |
| لکه نورو د اوچت همت خاوندانو چې به صبر کولو \| اودد وئ په حق کښې | | | | |

| لَّهُمْ | كَاَنَّهُمْ | يَوْمَ يَرَوْنَ | مَا |
|---|---|---|---|
| دپاره ددوئ | لکه چې دوئ ته به ښکاره شي | په کومه ورځ چې اووينې دوئ | هغه عذاب |
| تلوار مه کوه \| دوئ چې به کومه ورځ پخپله نامه تاکلې عذاب | | | |

| يُوْعَدُوْنَ | لَمْ يَلْبَثُوْا | اِلَّا سَاعَةً | مِّنْ نَّهَارٍ |
|---|---|---|---|
| چې يرولې کيږي تر دوئ | چې وخت تير نه کړو دوئ په دنيا کښې | مګر يو ساعت | دورځې |
| اووينې انوبالکل داسې بۀ ورته ښکاری لکه چې په دنيا کښې ئې د يو ساعت نه زيات وخت نه دې تير کړې | | | |

| بَلٰغٌ | فَهَلْ يُهْلَكُ | اِلَّا الْقَوْمُ | الْفٰسِقُوْنَ |
|---|---|---|---|
| رسونه اوشوه | پس نۀ به هلاکيږي اوس | مګر قوم | فاسقان |
| ددې پيغام رسول ستا ذمه واري ده \| ............اوس به هم هغه هلاک کولې شي \| چې نافرمانه وی | | | |

**قوله تعالی:- اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ**

**د زمکې او آسمان پيدائش پيدا کولو والا رب د انسان په پيدا کولو هم قادر دې:-** الله ﷻ فرمائی چه آيا دې خلقوچه د مرګ نه پس په ژوند منکر دی او د قيامت په ورځ د بدنونو دوباره پاسيدل ممکن نه ګڼرې، دوی اونه کتل چه الله ﷻ ټول آسمانونه او ټولې زمکې پيدا کړې او ددې پيدا کولوسره هغه لږ هم ستومانه نشو. بلکه دشه جملې سره دا پيدا شو. څوك وو چه دهغه د حکم خلاف ورزی ئې کړې وې يا ئې مخالفت کړې وې بلکه دالله ﷻ حکم سره ټول راضی او خوشحاله شو اوموجود شو. آيا دومره کامل قدرت والا اوقوت والا مړی نشی ژوندی کولې څه؟ نويو بل آيت مبارك کښې دی چه ﴿لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ يعنې دانسانانو د پيدائش نه خو ډير زيات مشکل او ګران او ډير لوئې پيدائش مونږ ته د آسمانونو اوزمکې پيدائش دې ، خو اکثر خلق نه پوهيږي. هرکله چه هغه لوئې ذات زمکه او آسمان پيدا کړو نودانسان پيدا کول که په هغه په اول ځل وی اوکه دوباره

وی هغه ته څه ګران نه دی؟ په دې وجه ئې دلته اوفرمائيل چه هغه په هر څيز قادر دې.او په هغې کښې د مرګ نه پس دوباره ژوند هم دې او په دې هم هغه صحيح طور سره قادر دې .

**قوله تعالى:-** وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ

**په کافرانو د قيامت ويره :-** بيا الله ﷻ کافرو لره ويروی چه د قيامت په ورځ به دوی جهنم کښې اچولو نه مخکښې دجهنم په غاړو اودرولې شی او يو خل به بيا دوی لاجواب او بې حجت کړی او دوی ته به اووئيلې شی چه اوګورئی که نه زمونږ عذابونه او وعدې ريښتيا شوې که نه يا که اوس هم په کښې ستاسو شك دې او ددې تکذيب کوئی ؟ د ا خو جادو نه دې او ستاسو سترګې خو ړندې شوې نه دی اودا چه څه ګورئی دا صحيح دی يا که حقيقت کښې صحيح نه دی؟ اوس به سوا داقرار نه هيڅ جوړ نشی؟ دوی به اووائی چه آؤ دا حق دی چه څه وئيلې شوی وو هغه اوشو . په الله ﷻ قسم مونږ ته اوس هيڅ شك نشته دې الله ﷻ به ورته اوفرمائی چه اوس د دوّ ساعته مخکښې دکفر مزه اوڅکئ.بيا الله ﷻ خپل ر سول ته تسلی ورکوی که ستاسو قوم تاسو درغڅن اوګڼرلی اوستاسو قدر ئې اونه کړو ، او ستاسو مخالفت ئې اوکړو ، اوتاسو ته ئې تکليفونه دررسول نو دا څه نوې خبره نه خو نه ده ؟ مخکښې اولوالعزم پيغمبران يادکړئی چه هغوئ څنګه څنګه تکليفونه اومصيبتونه برداشت کړل او د څومره څومره مخالفينو مقابله ئې اوکړه او په هغه ئې صبر اوکړو. ددې رسولانو نومونه دادی.نوح عليه السلام ، حضرت ابراهيم عليه السلام ، حضرت موسی عليه السلام حضرت عيسی عليه السلام او خاتم الانبياء عليه السلام. د نبيانو عليهم السلام نومونه خصوصيت سره په سورة احزاب او سورة شوری کښې ذکر دی . او داهم کيدېشی چه د اولوالعزم رسول نه مراد ټول پيغمبران وی .نو د ﴿من الرسل﴾ بيان د جنس دپاره به وی . والله اعلم .

ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ روژه اوساتله او بيا همداشان اوږی پاتې شو ( يعنی څه نه وو چه روژه ئې پرې ماته کړې وې ) بيائې روژه اوساتله او بيا اوږی پاتې شو او بيا ئې روژه اوساتله او وې فرمائيل چه انې عائشه رضي الله عنها ! د محمد او آل محمد دپاره خو دنيا لائق نه ده ، انې عائشه رضي الله عنها ! د دنيا تکليفونو او مصيبتونو باندې صبر کولو ا و ددنيا دخواهش څيزونو نه خپل خان بچ کولو والا حکم اولوالعزم رسول ته کړې شوې دې او همدا تکليف ماته راکړې شو چه کوم هغه عالی همت رسولانو ته ورکړې شوې وو. په الله ﷻ قسم څه به هم د خپل طاقت مددسره په دې صبر کوم . دالله ﷻ د قوت په بهروسه داخبره د خولې نه اوباسم (۱). بيا ئې اوفرمائيل چه انې نبی ا ددې خبرې تيزی مه کوه چه دا خلق په عذاب کښې مبتلا کړې شی لکه چه يو آيت مبارك دې چه﴿وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ﴾ (ترجمه) ما دا مالدار په دروغه ګڼرلو والا پريږدنی او دوی ته څه مهلت ورکړئی .

او فرمان دې چه ﴿فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ﴾کافرو ته مهلت ورکړه او دوی څه لږ وخت پريږده . بيا فرمائی چه په کومه ورځ دوی ددې څيزونو مشاهده اوکړی چه دکومو وعدې دوی سره شوې وې نو دوی ته به په هغه ورځ معلوم شی چه دوی دنيا کښې صرف څو ورځې تيرې کړې دی. اويو آيت مبارك کښې دی چه[لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ]يعنی چه په کومه دوی قيامت اووينی نو داسې به معلوم شی چه ګويا دوی دنيا کښې صرف يو سحر يا يو ماښام تير کړې وو﴿لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِنَ النَّهَارِ﴾ چه په کومه ورځ مونږ دوی لره جمع کړو نو دوی به محسوس کړی ګويا د ورځې يو ساعت په دنيا کښې تير کړې وو.

**قوله تعالى:-** بَلَٰغٌ

**ددې دوه معنی دی :-** بيا فرمائی چه رسول دی ، ددې دوه معنی کيدېشی . يو دا چه ددنيا پاتې کيدل صرف زمونږ د طرفنه زمونږ د خبرو رسولو دپاره وو . دويم دا چه دا قرآن پاك صرف درسولو دپاره دې.

(۱) شرح السنة : ٤٠٤٦، مختصرا ببعضه

دا ښکاره تبلیغ دي . بیا فرمائي چه سوا دفاسقانو نه نورو لره هلاکت نشته دې . دا دالله ﷻ عدل دی چه کوم په خپله هلاك هم هغوئ لره هلاکوی او عذاب هغه چاته ورکوی چه پخپله د خپله لاس خپل ځان دپاره دعذاب موقعې پیدا کړی . اوپخپله د عذاب مستحق شی . والله اعلم .

**د سورة قتال (یعنی سورة محمد) تفسیر**

| رکوع ګانې | | | | ایاتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة محمد مدنية وهي خمس وثلاثون اٰية واربع ركوعات | | |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ④ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ㊳ |

اَلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَصَدُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ اَضَلَّ

هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او خلق ئې منع کړل | دلارې دالله نه | نو ضائع کړل الله |

کومو کسانو چې کفر کړې دې | او (خلق ئې) دالله ﷻ دلارې نه منع کړی دی | نو الله ﷻ دهغوئ

اَعۡمَالَهُمۡ ۝ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

عملونه دهغوئ | او هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل | نیک |

عملونه تباه کړل | او کومو کسانو چې ایمان راوړې دې | او د نیکئ کارونه ئې کړی دی

وَاٰمَنُوۡا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الۡحَقُّ

او ایمان ئې راوړو | په هغه خیز | چې نازل کړې شوې دې | په محمد ﷺ باندې | او هغه حق دې |

او په هغه کتاب ئې ایمان راوړلو | چې په محمد ﷺ باندې نازل شوې دې | او ددوئ د رب طرفنه

مِنۡ رَّبِّهِمۡ ۙ كَفَّرَ عَنۡهُمۡ سَيِّاٰتِهِمۡ وَاَصۡلَحَ بَالَهُمۡ ۝

دطرفه درب دهغوئ نه | لرې کړل الله | دهغوئ نه | ګناهونه دهغوئ | او صحیح ئې کړو |

حق دې | نو الله ﷻ به ورته ګناهونه معاف کړی | او د هغوئ حالت به ښه کړی

ذٰلِكَ بِاَنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا

حال دهغوئ | دا کار | په سبب ددې چې بیشکه هغه کسان | چې کفر یې اوکړو | پیروی اوکړه هغوئ

دا ددې وجې | چې کافرانو د باطل مذهب تابعداری اختیار کړې ده |

الۡبَاطِلَ وَاَنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الۡحَقَّ

دباطل | او بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | پیروی اوکړه هغوئ | دحق |

...............او کومو کسانو چې ایمان راوړې دې | نو هغوی ته چې د خپل رب د طرفه کوم حق دین

مِنۡ رَّبِّهِمۡ ؕ كَذٰلِكَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمۡثَالَهُمۡ ۝

دطرفه درب دهغوئ نه | همدارنګې | بیانوی | الله | دپاره دخلقو | حیثیت دهغوئ |

ورکړې شوې دې دهغې تابعداری ئې کړې ده | دغه شان الله ﷻ خلقو ته د هغوئ حالت بیانوی |

**قوله تعالى:-** أَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ۝

**دکافرانو نيک اعمال برباد دی** :- ارشاد دې چه کومو خلقو پخپله دالله ﷻ دآيتونو نه انکار او کړو او نور ئې هم د الله ﷻ دلارې نه منع کړل. الله ﷻ دهغوئ اعمال ضائع کړل . ددوی نيکئ بې سود بې کاره دی. لکه چه فرمان دې چه مونږ ددوی عملونه مخکښې نه برباد او خراب کړی دی . او چه کومو خلقو دزړه نه ايمان راوړواودشريعت مطابق ئې اعمال کول دخپل بدن نه يعنی خپل ظاهر اوباطن دواړه ئې دالله ﷻ په حواله کړل اود الله ﷻ وحی ئې هم اومنله چه کوم په موجوده پيغمبر حضرت محمد ﷺباندې نازل شوې دې . او دا فی الواقع د رب د طرفنه دی. او دا سراسر حق او صداقت دې. ددوی بدنی برباد دی . او ددی د حال اصلاح ذمه دار پخپله رحمان دې . ددې نه معلوم شو چه د حضرت نبی کريم ﷺدنبی کيدو نه پس دايمان راوړلو شرط په دوی او په قرآن پاك راوړل هم دی . يوحديث مبارك کښې حکم دې چه د چا په انګشې دحمد کولو جواب ورکړو نوهغه ته پکار دی چه﴿ يهديكم الله ويصلح بالكم ﴾دې(¹) اووائی يعنی الله ﷻ دې تاسو ته هدايت اوکړی اوستا حالت دې ښه کړی . بيا فرمائی چه دکفارو د عملونو تباه کول او مومنانو بدئی معاف کول ددوی شان ښه کولو وجه داده چه کفار ناحق اختيار وی او حق پريږدی، اومومنان ناحق پريږدی او دحق پابندی کوی . هم داشان د خلقو دانجام بيان هم کوی او الله ﷻته ښه هر څه معلوم دی .

| فَإِذَا لَقِيتُمُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | فَضَرْبَ |
|---|---|---|---|

پس هرکله چې مخامخ شئ تاسو په جنګ کښې|دهغه کسانو سره|چې کفر ئې کړې دې|نوبل څه نه) بس وهل دی

کله چې تاسو کافرانو ته د مقابلې دپاره مخامخ شئ| ............. نوپه څټونو ئې| اووهئ

| الرِّقَابِ ط | حَتَّىٰ | إِذَا | أَثْخَنتُمُوهُمْ | فَشُدُّوا | الْوَثَاقَ لا |
|---|---|---|---|---|---|

دڅټونو | تر دې پورې | کله چې | ښه اووژنئ تاسو هغوئ | نو سخت محکم کړئ | تړل (قيديان)

............تردې ښه ئې قتل کړئ | نو (باقی) ښه مضبوط ئې قيد کړئ

| فَإِمَّا مَنًّا | بَعْدُ | وَإِمَّا | فِدَاءً | حَتَّىٰ | تَضَعَ الْحَرْبُ | أَوْزَارَهَا ج |
|---|---|---|---|---|---|---|

پس بيا يا احسان اوکړئ | روستو | او يا | فديه واخلئ | تردې پورې | چې کيږدی جنګ | وسلې خپلې

نوبيا يا خوورسره احسان اوکړئ | ياترې نه عوض واخلئ|تردې چې جنګ (کونکی)خپله وسله کوزه کړی

| ذَٰلِكَ ط | وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ | لَانتَصَرَ | مِنْهُمْ | وَلَٰكِن |
|---|---|---|---|---|

دادې کار ستاسو | او که غوښتلې الله | خامخا به ئې بدل اغستې وو | ددوئ نه | وليکن

دا حکم هم دغسې دې | اوکه د الله ﷻ خوښه وې | نو ددوئ نه به ئې (پخپله ) بدله اخستې وو | خو

| لِّيَبْلُوَا | بَعْضَكُم | بِبَعْضٍ ط | وَالَّذِينَ | قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|

دپاره ددې چې وآزمائی | خينې ستاسو لره | په خينو سره |او هغه کسان | چې اووژلې شی په لار دالله کښې

دا حکم ئې درکړو | چې د يو بل په ذريعه ستاسو امتحان اوکړی | اوکوم کسان چې د الله تعالی په

---

(¹) صحيح بخاری کتاب الادب باب اذا عطس کيف يشمت: ٦٢٢٤.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَنْ يُّضِلَّ | أَعْمَالَهُمْ ۝ | سَيَهْدِيْهِمْ | وَيُصْلِحُ |
| پس هر گز به ضائع نه کړي الله | عملونه دهغوئ | اولار ښاني هغوئ ته | او صحيح کوي به |

لاره کښې شهيدان شي | نو الله د هغوئ عملونه به هيڅکله ضائع نکړي | الله به هغو ته هدايت اوکړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَالَهُمْ ۝ | وَيُدْخِلُهُمُ | الْجَنَّةَ | عَرَّفَهَا | لَهُمْ ۝ |
| حال د هغوئ | او داخلوي به هغوئ | جنت ته | چې خبر ورکړې دې الله ددغه جنت نه | هغوئ ته |

او دهغوئ حالت به درست کړي | اوهغوئ به جنت ته داخل کړي | او ورته به ښه ئې په گوته کړې

| | | | |
|---|---|---|---|
| يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | إِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ | يَنْصُرْكُمْ |
| اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | که تاسو امداد کوئ دالله | هغه به امداد کوي ستاسو |

اے مومنانو ! که چرې تاسو دالله ﷻ (ددين) مدد اوکړئ | نو هغه به ستاسو مدد اوکړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيُثَبِّتْ | أَقْدَامَكُمْ ۝ | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | فَتَعْسًا لَّهُمْ |
| او مضبوطوي به | خپې ستاسو | او هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | پس هلاکت دې دهغوئ |

اوستاسو قدمونه به مضبوط کړي | اوڅوک چې کافران دي | نو هغوئ دپاره بربادي ده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَضَلَّ | أَعْمَالَهُمْ ۝ | ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ | كَرِهُوْا | مَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ |
| او ضائع کړل الله | عملونه دهغوئ | دا ځکه چې هغوئ | خوښ نه کړو | هغه څيز چې نازل کړې دې الله |

اوالله ﷻ د هغوئ عملونه برباد کړل | دا په دې وجه چې څه الله ﷻ نازل کړي دي دوی هغه بد گڼړي |

| | |
|---|---|
| فَأَحْبَطَ | أَعْمَالَهُمْ ۝ |
| نو ضائع کړل الله | عملونه دهغوئ |

نو اللهﷻ دهغوئ عملونه ضائع کړل |

قوله تعالى:- فَإِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَضَرْبَ الرِّقَابِ

**جهاد او د جهاد څه احکام** :- دلته ايمان والو ته دجنگ احکام خودلې شي چه مو کافروسره جنگ شي او لاس په لاس جنگ شروع شي نو ددوی څټونه پريکړئ تورو سره او د تنو نه ئې جدا کړئ. بيا چه کله تاسو اوگورئ چه دښمن ماتې اوخوړه او اوتښتيدو نو باقي پاتې شوی ښه مضبوط قيديان کړئ . او بيا چه کله جنگ ختم شي او جنگ سرته اورسي نو بيا تاسو ته (د دوؤ خبرو) اختيار دې يا قيديان په طور داحسان بغير څه اخستلو نه پريږدئ يا ددوی نه دجنگ تاوان وصول کړئ او بيائې پريږدئ . په ظاهره دا معلوميږي چه داآيت مبارک دبدر د جنگ نه پس نازل شويدې . ځکه چه د بدر جنگ کښې زيات تر مخالفينو لره د قيد کولو او دقيد کولو دکمی له کبله په مسلمانانو عتاب کړې شوې وواو فرمائيلی ئې وو چه ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُوْنَ لَهٗٓ أَسْرٰى﴾ يعنی نبي لره لائق نه وو چه ده سره دې قيديان وی ترکومې چه يو خل بيا مخالفينوسره جنگ تود نه کړي . آيا تاسو دنياوی اسباب غواړئ ؟ دالله ﷻ اراده خو دآخرت ده . اوالله ﷻ عزيزاو حکيم دې . که دمخکښې نه دالله ﷻ ليکلې شوی نه وې نو چه څه تاسو اوکړل ددې په وجه به تاسوته عذاب درکولې شی .

قوله تعالى:- ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً﴾

دا ایت مبارک منسوخ شوې دې که نه؟:- بعضې عالمانو قول دې چه داختیار منسوخ شویدې اودا آیت مبارک ناسخ دې چه ﴿فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ یعنی کله چه حرمت والا میاشتې تیرې شی نو تاسو چه چرته هم مشرکان مومئ نو هغوئ قتل کوئ .خو داکثرو عالمانو دا فرمان دې چه دا منسوخ شوې نه دې . بعضې خو وائي چه امام ته په دوؤ خبرو کښې دیو اختیار دې . یعنی یا خو دې ورسره احسان اوکړی او هغه دې ازاد کړی او یا دې ترې فدیه واخلی او هغه دې آزاد کړی.(او دا خلق وائي چه دوینځې اوغلام باره کښې دا آخری حکم دې . ددې نه پس ددوی ساتل او ددوی نه فائده اوچتول ممنوع دی. خو جمهور ددې خلاف دی او د وینځې او غلام دجواز په حق کښې دی). خو بعضې وائي چه دقتل کولو اختیارهم ورسره شته دې . ددې دلیل دادې چه بدر کښې حضرت نبی کریم ﷺ نضر بن حارث ا و عقبه بن ابومعیط قتل کړی وو. اودا هم دلیل دې چه ثمامه بن اثال رضي الله عنه چه کله اسیر وو او حضرت نبی کریم ﷺ دهغه نه تپوس کړې وو چه وایه ثمامه څه خیال دې دې ؟ نو هغه اوونیل که تاسو ما قتل کوئی نو یو وینې والا به قتل کړئی اوکه تاسو په ما احسان کوئی نو په شکرګزار به احسان اوکړئی اوکه مال غواړئی نو تاسو طلب کړئی تاسو ته به ملاؤ شی (¹). حضرت امام شافعی رحمه الله د یو څلورمې خبرې هم اختیار ښائی اوهغه داچه د قتل کولو په بدل کښې هغه غلام کول . ددې مسئلې د تفصیل ځائې د فروعی مسائلو کتابونه دی . اومونږ هم دالله ﷻ فضل و کرم سره په کتاب الاحکام کښې ددې دلائل بیان کړی دی .

د جنګی قیدیانو سره د سلوک په باره کښې د امام اختیار

**مسلک حنفی:**- په دې باندې د ټولو عالمانو اتفاق دې چه امام وخت ته اختیار دې که هغه قیدیان قتل کوی او که د هغوی نه غلامان جوړوی البته دا چې بغیر د معاوضې نه ئې پریږدی نو د احنافو په نیز دا بیخی جائز نه ده او که په عوض ترې واخی او پریږی ئې نو داامام ابوحنیفه رحمه الله نه دا منقول دی چه دا هم جائز نه ده البته د سیر کبیر په یو روایت کښې دی که د مسلمانانو ضرورت وی نو په دې صورت کښې عوض واخلی او کافران قیدیان پریږدی نو دا جائز ده البته که د مسلمانان د کافرانو په قید کښې وی نو د هغوی د ازادئ په بدله کښې که دوی پریږدی نو دا زمونږ د احنافو د درې واړه امامانو په نیز جائز دی (معارف القرآن (۲۸۷/۴)-

د ﴿حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ﴾ تفسیر او مطلب:- بیا فرمائی چه تر دې چه جنګ خپله وسله کیږدی . یعنی په قول د حضرت مجاهد رحمه الله حضرت عیسی علیه السلام نازل شی (²) ممکن دی چه د حضرت مجاهد رحمه الله نظر په هغه حدیث مبارك باندې وی چه په هغې کښې دی چه خما امت به تر آخری وخته پورې ظاهر غالب وی او تردې چه ددې امت آخری سرې به هم دجال سره جنګ کوی(³)مسند احمد اونسائی کښې دی چه حضرت سلمه بن نفیل رضي الله عنه د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت مبارك کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه ما آسوه پرینبودل اوروسله مې کیخوده . اوجنګ نه مې خپله وسله کیخوده . اوما اوونیل چه اوس خو هډو جنګ نشته دې.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس خو جنګ راغلو او خما ا مت کښې به یو ډله داسې وی چه دکومو خلقو زړونه کاږه شی نو دوی به هغوئ سره جنګ کوی . اوالله ﷻ به دوی ته

---

¹) صحیح بخاری کتاب المغازی باب وفدبنی حنیفة وحدیث ثمامة بن اثال .: ۴۳۷۲، صحیح مسلم: ۱۷۶۳، ابوداود: ۲۶۷۹، احمد: ۴۵۲/۲، ابن حبان : ۱۲۳۹.

²) الطبری: ۱۵۷/۲۲.

³) ابوداود کتاب الجهاد باب فی دوام الجهاد : ۲۴۸۴، وهو صحیح .

روزیٔ ورکوي . اوتردې چه الله ﷻ امر راشي او دوی به هم په دې حالت وي. د مومنانو زمکه د شام زمکه ده. د آسونو ایال تندی کښې تر قیامته پورې خیر اینښودې شوې دې ([1]). داحدیث مبارك امام بغوي رحمه الله هم وارد کړې دې . اوحافظ ابویعلی رحمه الله او موصلي رحمه الله هم دا وارد کړې دې . او ددې تائید ددې نه هم کیږي چه کوم خلق دې آیت مبارك ته منسوخ نه وائي نو ګویا چه دا حکم مشروع دې چه تر کومه جنګ باقي وي .دا آیت مبارك ددې آیت مبارك په شان دې ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ دوی سره جهاد کوئي تر کومې چه فتنه باقي وي او تر کومې چه دین الله ﷻ دپاره نه وي .

حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه د جنګ وسله ایخودل نه مراد د شرك باقي نه پاتې کیدل دي . اوبعض نه مروی دی چه مشرکان توبه اوباسي . او دا هم ونیلې شوی دی چه هغوئ خپل کوششونه دالله ﷻ د اطاعت دپاره جوړ نه کړي .

**قوله تعالی:- وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ**

**جهاد کښې حکمت او د مسلمانانو ازمیښت:-** بیا فرمائي که الله ﷻ غوښتلي نو تاسو کفار به نې هلاك کړي وې. او دخپل طرفنه به نې په دوی عذاب لیږلې وې. خو هغه پاك ذات غواړي چه تاسو باندې آزمیښت اوکړي نو په دې وجه نې دجهاداحکام جاري کړل . سورة آل عمران کښې او سورة برآت کښې هم دامضمون بیان شوې دې. اوسورة آل عمران کښې دی چه ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُم﴾ الخ: یعنی آیا ستا ګمان دې چه بغیر ددې خبر نه چه الله ﷻ ته معلوم شي چه تاسو کښې مجاهد څوك دې اوتاسو کښې صبر کولو والا څوك دې اوتاسو به جنت ته داخل شئ ؟

سورة برآت کښې دی چه ﴿قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ﴾ الخ. تاسو دوی سره جهاد اوکړئ الله ﷻ ستاسو په لاس دوی ته سزا ورکوي . او تاسو به په دوی غالب کړي . او دایماندارو سینې به شفاء والا کړي . اودخپلو زړونو ولولې اوبنکلو به دوی ته موقع ورکړي او چه د چا توبه قبلول نو قبوله به نې کړي اوالله ﷻ علیم او حکیم دې . اوداسې اوشو چه په جهاد کښې مومنان هم شهیدان شو نو فرمائي چه دشهیدانو عملونه به خراب نشي . بلکه دوی ته به ډیر زیات ثواب ملاویږي . بعضو ته خو به ترقیامته پورې ثواب ملاویږي . مسنداحمد کښې دی چه شهید ته شپږ انعامات ملاویږي .

① دده دوینې رومبې څاڅکیٔ به په زمکه پریوتلو سره دده ټول ګناهونه معاف شي ② ده ته دده جنت اوخودلې شي ③ اوډیرو ښکلو او غټو سترګو والا حورو سره دده نکاح اوشي ④ هغه بالکل بې ویرې وي ⑤ په هغه د قبر عذاب نه وي ⑥ دې د ایمان کالو سره ښائسته کولې شي ([2]) .

یو حدیث مبارك کښې دا هم راغلې دی چه دده په سر یو تاج ایخودې شي او په هغه تاج یاقوت پیللې شوی وي. اوپه کښې یو یاقوت ددې دنیا نه زیات قیمتي دې. او ده ته دوه اویا حورې ورکړې شي . اودخپل خاندان داویا کسانو دې شفاعت والا جوړ کړې شي. داحدیث مبارك ترمذي اوابن ماجه کښې هم دې([3]) . صحیح مسلم کښې دی چه سوا د قرض نه د شهیدانو ټول ګناهونه معاف کیږي ([4]). دشهیدانو فضائل احادیثو کښې نور هم دي . بیا فرمائي چه الله ﷻ به دوی ته د جنت لار اوښائي لکه یو آیت مبارك دې چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُم بِإِيمَانِهِمْ﴾ یعنی چه کوموخلقو ایمان راوړو اونیك عملونه کوي نوددوی د ایمان په وجه به ددوی رب ددوی رهبري جنت طرفته اوکړي . او هغه

---

[1] احمد: ۱۰۴/۴، نسائی کتاب الخیل باب الخیل معقود فی نواصیها الخیر الی یوم القیامة: ۳۵۹۱، وسنده صحیح .
[2] احمد: ۲۰۰/۴، وسنده حسن مجمع الزوائد : ۲۹۳/۵، شعب الایمان : ۴۲۵۲، مسند الشامین: ۲۰۴ .
[3] ترمذی کتاب فضائل الجهاد باب فی الثواب للشهید: ۱۶۶۳، وهو حسن ابن ماجه: ۲۷۹۹، ۲۷۹۹، احمد: ۱۳۱/۴،
[4] صحیح مسلم کتاب الامارة باب من قتل فی سبیل الله کفرت خطایاهم الا اللین: ۱۸۸۶.

دنعمتونو نه ډك دی او دهغې په هرهر ګوټ کښې چینې بهیږی . الله ﷻ به ددوی حال اوددوی کار صحیح کړی . او چه دکومو جنتیانو دوی مخکښې نه پیژند ګلو کړی ده اوهغې طرفته نې ددوی رهبری کړې ده نو آخر به دوی هغې ته اورسوی . یعنی هرسړې به جنت کښې خپل مکان او خپل ځائې داسې او پیژنی لکه څنګه چه به دوی دنیا کښې پیژندو.دې به دچا نه تپوس نه کوی . داسې به ورته معلومیږی چه ګویا د پیدائش نه هم دې ځائې کښې دې.ابن ابی حاتم کښې دی چه کوم انسان سره دده داعمالو فرښته وه نو هغه به دده مخکښې مخکښې روانه وی. هرکله چه دې خپل ځائې ته اورسی نو پخپله به اوپیژنی چه دا ځما ځائې دې . داشان چه دې کله په خپله زمکه کښې (جنت کښې) په سیل شی او هر څه اوګوری نو فرښته به دده نه لاړه شی او دې به خپلو لذتونو کښې مشغول شی . دصحیح بخاری یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه کله مومنان د اور نه خلاص شی نو دوی د جنت او دوزخ مینځ کښې اودرولې شی اودوی چه پخپلو کښې په یو بل کوم ظلمونه کړی وودهغې بدلې به واخلی او چه هرکله بالکل پاك شی نو دوی ته به جنت ته د داخلیدو اجازت ملاوشی . په الله ﷻ قسم چه څنګه دنیا کښې هر سړې خپل دنیاوی کور پیژنی او د خپل کور لار هم پیژنی نوداشان ددې نه زیات به خپل منزل اوخپله لارې نه دا جنتیان واقف وی( ) .

قوله تعالی:- ﴿وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾

بیافرمائی چه اُنې ایمان والوکه تاسو دالله ﷻ مدد کوئی نوهغه به ستاسومدد اوکړی اوستاسو قدمونه به مضبوط کړی لکه یوځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ﴾یعنی الله ﷻ به ضرور ددوی مدد کوی چه څوك دالله تعالی مدد کوی . څکه چه څنګه عمل وی نو هغه شان دهغې جزا هم وی او ستاسو قدمونه به مضبوط کړی . یو حدیث مبارك کښې دی چه کوم سړې دیو اختیار والا مخکښې دداسې حاجت مند حامت پیش کړی چه هغه پخپله هغه ځائې ته نشو رسیدلې نو الله ﷻ به دقیامت په ورځ په پل صراط ده قدمونه مضبوط کړی .بیا فرمائی چه دکافرو حال ددې نه بالکل برعکس دې . دوی به قدم په قدم ډغرې خوری . یو حدیث مبارك کښې دی چه بې دیناره او بې درهمه او بې کپړو والا سړې ډغرې اوخورلې اوهلاك شو اوبرباد شو ، اوکه دې بیمار شی نو الله ﷻ دې ده ته شفاء نصیب نه کړی ( ). داسې خلقو دې نیك عملونه هم بربادشی څکه چه دوی د قرآن وحدیث نه خفه دی ، ددې عزت او ددې عظمت ددوی په زړونوکښې نشته دې ، اودې اراده ددوی په زړونوکښې شته دې . نو دوی چه کوم ښه کارونه کړی وو هغه هم الله ﷻ برباد کړل .

<table>
<tr><td>فَيَنظُرُوا</td><td>فِي الْأَرْضِ</td><td>أَفَلَمْ يَسِيرُوا</td><td></td><td></td></tr>
<tr><td>چې لیدلې وې دوی</td><td>په زمکه کښې</td><td>ایا نه وو ګرزویدلې دوی</td><td></td><td></td></tr>
<tr><td colspan="5">ایا دا خلق د زمکې په مخ ګرځیدلی نه دی اچې دا ئې کتلی وې</td></tr>
<tr><td>دَمَّرَ اللَّهُ</td><td>مِن قَبْلِهِمْ</td><td>الَّذِينَ</td><td>عَاقِبَةُ</td><td>كَيْفَ كَانَ</td></tr>
<tr><td>هلاکت راوستو الله</td><td>چې مخکښې ددوئ نه وو</td><td>دهغه خلقو</td><td>انجام</td><td>چې څرنګې وو</td></tr>
<tr><td colspan="5">چې ددوئ نه دپخوانو خلقو انجام څه شو ؟ ..................الله ﷻ هغوئ هلاك كړل</td></tr>
</table>

(۱) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب قصاص یوم القیامة : ٦٥۳٥، احمد: ۳/۱۳. ابن حبان: ۷٤۳٤.

(۲) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الحراسة فی الغزو فی سبیل الله : ۲۸۸۷.

| عَلَيْهِمْ | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | اَمْثَالُهَا۝ | ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ | مَوْلَى |
|---|---|---|---|---|
| په هغوئ باندې | او کافرانو لره دي | انجام په مثال ددې | دا په سبب ددې چې الله | مددګار دي |

اودي کافرانو سره هم داشان معامله کيدونکې ده | ............دا ځکه چې الله ﷻ دمومنانو

| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ | لَا مَوْلٰى | لَهُمْ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانو | چې ايمان ئې راوړې دي | او بيشکه کافران چې دي | نشته مددګار | دهغوئ |

ملګرې دې | ...........................اودکافرانو هيڅوک ملګرې نشته

| اِنَّ اللّٰهَ | يُدْخِلُ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه الله | به داخل کړي | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک |

بيشکه چې الله ﷻ به د ايمان اود نيک عمل خاوندان داسې باغونو ته ورداخل کړي چې

| جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
|---|---|---|---|---|
| هغه جنتونوته | چې بهيږي به | لاند دهغې نه نهرونه | او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو |

دهغې لاندې به ولې بهيږي | او کومو کسانو چې کفر اختيار کړې دې |

| يَتَمَتَّعُوْنَ | وَيَاْكُلُوْنَ | كَمَا | تَاْكُلُ الْاَنْعَامُ | وَالنَّارُ |
|---|---|---|---|---|
| فائده حاصلوي هغوئ | او خوراك كوي | لكه څنګه چې | خوراك كوي خناور | او وور |

هغوی دنياوي فائدې اخلي | اوداسې خوراک (څښاک) کوي لکه څنګه چې خناور خوري (څښي) او (ددوزخ

| مَثْوًى | لَّهُمْ۝ | وَكَاَيِّنْ | مِّنْ قَرْيَةٍ | هِيَ | اَشَدُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| خانې داوسيدو دي | دپاره دهغوئ | او څومره ډير | دکلونه دي | چې هغه | زيات سخت وو |

اور د دوی داستوګنې ځائې دې | او داسې ډير کلي وو چې ستاسو ددغې کلي نه په زور کښې

| قُوَّةً | مِّنْ قَرْيَتِكَ | الَّتِيْ | اَخْرَجَتْكَ | اَهْلَكْنٰهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دقوت سره | دکلي ستا نه | هغه کلي | چې ايستلې ئې ته | هلاك كړل مونږه هغوئ |

زيات طاقتور وو دکوم نه چې خلقو ته راويستلې يئ | ...........مونږ هغوئ هلاک کړل

| فَلَا | نَاصِرَ | لَهُمْ۝ |
|---|---|---|
| پس نه وو هيڅ مددګار | دپاره دهغوئ | |

نو هيڅوک مددګار ئې پيدا نشو |

**قوله تعالى:- اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ**

**الله ﷻ د مؤمنانو مددګار او د کافرانو نه دې:-** الله ﷻ فرمائي چه دې خلقو د الله ﷻ سره شريك جوړوی او د الله ﷻ رسول ﷺ په دروغه ګڼړی، آيا پس دوی د زمکې سيل نه دې کړې څه ؟ چه معلوم کړی او پخپلو سترګو اوګوری چه ددوی نه مخکښې چه کوم خلق ددوی پشان وو دهغوئ څه حال شو ؟ اوهغوئ څنګه هلاك كړې شو ؟ اوپه هغوئ کښې صرف اسلام اودين والا خلق نجات کښې شو.

دکافرو دپاره هم داشان عذاب راځی . بيا فرمائی چه دمسلمانانو پخپله الله ﷻ ولی دې او دکافرو ولی نشته دې . په دې وجه د أحد په ورځ چه کله دمشرکانو سردار ابوسفيان صخر بن حرب فخر سره د حضرت نبي کريم ﷺ او ددوی د دوو خلفاء باره کښې سوال اوکړو او هيڅ جواب ورته ملاونو وې ونيل

چه دا ټول هلاك شو . نو حضرت ابوبكرصديق ﷺ ورته جواب وركړو چه د چا ژوند ستاسو په سترګو كښي د ازغي په شان غړيږي نو الله ﷻ هغه په خپل فضل او رحمت سره ژوندي ساتلي دي . نو ابو سفيان اوونيل چه واوره داورځ خود بدلي والا ورځ ده او جنګ خو په مثال د ډولونو دي . كله ښكته كله پورته . تاسو به خپلو مقتولينو كښي داسې هم اوګورئي چه هغوئ كښې دبعضو پوزې ، غوږنه وغيره دمرګ نه پس هم پركړې شوي وو . ما داسې حكم نه وو وركړې خو بيا هم ما باندې بد اونه لګيدل . بيا ده درجز څه شعرونه د فخر په طور ونيل شروع كړل ، وې ونيل چه : (اعلى هبل اعلى هبل)
نو حضرت نبي كريمﷺ اوفرمانيل چه تاسو ده ته ولې جواب نه وركوئي ؟ نو صحابه كرام ﷺ تپوس اوكړو چه يارسول اللهﷺ ! څه جواب وركړو ؟ نو حضرت نبي كريمﷺ اوفرمانيل چه : (الله اعلى واجل)
يعنى هغه وئيل چه د هبل بت نوم مشهور وى . نوددې جواب كښې اوونيلې شو چه ددوی نه زيات عزت والا او كرم والا اللهﷻ دې . ابوسفيان بياناووئيل چه :(لنا العزى ولاعزى لكم) يعنى زمونږ عزى بت دې اوستا نه دې.نو ددې جواب كښې د حضرت نبي كريمﷺ په حكم سره اوونيلې شو چه : (الله مولانا ولا مولالكم) يعنى الله ﷻ خمونږ مولا دې اوستاسو مولا نه دې ([1]).
قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ
د مؤمن او كافر اصل ځائي:- بيا الله ﷻ خبر وركوى چه ايمان والا به دقيامت په ورځ جنتونو كښي وى او كفر والو خو په دنيا كښې هسې يو فائده حاصله كړې وه خو ددوى اصل ځائي جهنم دې . په دنياكښې ددوى اصل مقصد صرف خوراك څكاك او خيټه مړول دى ، اوهغه دا خلق دى چه څكل او خوراک د ځناورو په شان كوى ، لكه څنګه چه دا ځناور يو خوا بل خوا خوله ګروى او چه څه ورته ملاويږى نو هغې باندې خپله خيټه مړوى نو داشان ددوى حال هم دې چه دوى ته دحرامو او حلالو هيڅ تميز نشته دې، ددوى مقصد صرف خيټه مړول دى. يو حديث مبارك كښې دى چه مومن يو حصې نه خورى او كافر د اوو حصو نه ([2]). د جزاء په ورځ ددوى دكفر په وجه ددوى دپاره سزاګانې دى . بيا د مكې كفارو ته زورنه وركوى او هغوئ دخپلو عذابونه ويروى چه تاسو اوګورئي چه كومو كلو والو چه ستاسو نه زيات طاقتور وو او مونږ هغوئ دهغوئ د كفر په سبب هلاك كړې او تهس نهس موكړل او هغوئ دخپل نبي ﷺ تكذيب كولو او زمونږ د احكامو خلاف ورزى به ئې كوله . اوتاسو خو ډير زيات كمزورى او كم طاقت والا يئ او ددې رسولﷺ تكذيب كوئي چه دا خاتم الانبياء او سيدالمرسيلن دې، نو ستاسو به څه انجام وى ؟ دا اومنئ چه ددې رحمت والانبي كريم ﷺ په وجه به تاسو دنياوى عذاب رانغلو خو دآخرت عذاب نه تاسو نه شئ بچ كيدئي . هركله چه مكې والو دااللهﷻ رسولﷺ د مكې نه اوويستلو او حضرت نبي كريمﷺ په يو غار مبارك كښې پټ شو نو په هغه وخت كښې مكې ته متوجه شو او وې فرمانيل چه ائي مكې ته په ټولو ښارونو كښې الله تعالى ته خوښه ئې . اوداشان ماته هم ټولو ښارونو كښې خوښه ئې . كه مشركانو څه ستا نه نه بيدخله كولم نو څه به هيچرې هم نه وې وتلې ([3]).
نو ټولو حدونو نه تيريدو والونه زيات تيريدو والاهغه سړې دې چه دااللهﷻ دحدونو نه تير شي.يا الله ﷻ حرم كښې دقاتل نه سوا بل څوك قتل كړى،يا ئې د جاهيلت دتعصب په وجه قتل كړى . نو الله ﷻ په خپل نبيﷺ باندې دا آيت مبارك نازل كړو.

---

[1]) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب ما يكره من ا لتنازع والاختلاف فى الحرب : ٣٠٣٩.
[2]) صحيح بخارى كتاب الاطعمة باب المومن ياكل فى معى واحد : ٥٣٩٣، صحيح مسلم: ٢٠٦٠ز، ابن ماجة: ٣٢٥٦.
[3]) الطبرى : ١٦٥/٢٢.

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلٰى بَيِّنَةٍ | كَانَ | اَفَمَنْ | |
| په واضحه دليل (هدايت) باندې | چې وى | آيا پس هغه څوك | |
| نو آيا څوک چې دخپل رب د طرفه په ښکاره | | | |
| سُوْءُ عَمَلِهٖ | لَهٗ | زُيِّنَ | كَمَنْ | مِّنْ رَّبِّهٖ |
| بدعمل دهغه | هغه لره | چې ښائيسته ښکاره کړې شوې دې | پشان دهغه چا دې | دطرفه درب خپل نه |
| دليل ولاړ وى \| هغوئ دداسې خلقو سره برابر کيدې شي چې خپل بد عملونه ورته ښائسته ښکاري | | | | |
| وَعِدَ الْمُتَّقُوْنَ | مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ | اَهْوَآءَهُمْ | وَاتَّبَعُوْٓا |
| چې وعده ئې شوې ده دمتقيانو سره دادې | مثال دجنت هغه | دخواهشاتو خپلو | اوپيروى ئې اوکړه |
| اوپه خپلو نفساني خواهشاتو پسې روان وى \| دکوم جنت چې پرهيزګارو سره وعده شوې ده | | | |
| مِّنْ لَّبَنٍ | وَاَنْهٰرٌ | غَيْرِ اٰسِنٍ | مِّنْ مَّآءٍ | اَنْهٰرٌ | فِيْهَآ |
| دپيو نه | او نهرونه به وى | چې نۀ به وى بد بويه | داوبو نه | نهرونه وى | چې په هغې کښې په |
| هغه داسې جنت دې چې د(تازه) اوبونهرونه په کښې بهيږي \| هيڅرې نه سخا کيږي \|او دداسې پيو ولې چې | | | | | |
| لَذَّةٍ | مِّنْ خَمْرٍ | وَاَنْهٰرٌ | طَعْمُهٗ | لَمْ يَتَغَيَّرْ |
| چې مزيدار به وى | دشرابو نه | او نهرونه به وى | خوند دهغې | چې نۀ به وى بدل شوې |
| خوند ئې يو پوټې نه بدليږي \| ..................اود څکونکو دپاره دخوندناکو شرابو ولې به وى | | | | |
| فِيْهَا | وَلَهُمْ | مُّصَفًّى | مِّنْ عَسَلٍ | وَاَنْهٰرٌ | لِّلشّٰرِبِيْنَ |
| په هغې کښې | اووى به هغوئ لره | صفا سوتره | دشاتونه | اونهرونه به وى | دپاره دڅکونکو |
| ..................اوداسې شهدو نهرونه چې بالکل صفا به وى \| اوهلته به ورته هر قسم ميوې | | | | | |
| هُوَ | كَمَنْ | مِّنْ رَّبِّهِمْ | وَمَغْفِرَةٌ | مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ |
| چې هغه | پشان دهغه چا دې | د طرفه درب دهغوئ نه | او ښښنه به وى | دهر قسم ميوؤ نه |
| وركولې شي\| اود خپل رب طرفنه به ورته ښښنه وى \| نو آيا داسې خلق د هغه چا په شان کيديشي | | | | |
| اَمْعَآءَهُمْ | فَقَطَّعَ | مَآءً حَمِيْمًا | وَسُقُوْا | فِي النَّارِ | خَالِدٌ |
| کولمې دهغوئ | پس پريکوى به | اوبۀ ګرمې | او څکولې کيږي به په هغوئ | اوور کښې | به هميشه وى\| |
| چې تل به په اور کښې پراته وى\|اوويشيدلې اوبه به پرې څکلې شى\|چې کولمې به ورله توټې (ښکته)اوغورزوى | | | | | |

قوله تعالى:- اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

آيا بدعمله او نيک عمله برابر کيدې شي :الله ﷻفرماني چه کوم سرې دالله ﷻدين د يقين درجې ته رسيدلې وى اوهغه بصيرت حاصل شوې وى ، فطرت صحيحه سره ورته د هدايت علم هم وى ، هغه اوهغه کس چه بدعملې رياکارنې ګنړلې،هغه خپل دنفس خواهش پسې وى،دا دواړه برابر نشى کيدې . فرمان دې چه﴿لَا يَسْتَوِيْٓ اَصْحٰبُ النَّارِ وَاَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ؕ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ﴾يعنى جنتى او جهنمى نه شى برابر يدې،جنتيان کامياب او مرادته رسيدونکى دى ،بيا دجنت اوصاف بيانوى چه په دې کښې د اوبو چينې هم دى چه

هیڅکله هم نه اوچیږي ، نه متغیر کیږي ، نه سخا کیږي او نه بدبودار کیږي ، ډیرې پاکې لکه د موتي وي . هیڅ خرابي او ناپاکي په کښې نشته دې . حضرت عبدالله ﷺ فرماني چه جنتي نهرونه دمشکو غرونو نه راوزي.په دې کښې داوبو نه علاوه د پيو نهرونه هم دی چه هیڅکله نه بدلیږي مزه دهغې ډیر سپین ، خواږه، ډیر صفا ، او مزې والا دی . یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه دا پي: د ځناور د تي نه دي راوتلي([1])بلکه قدرتي دی او شرابو نهرونه به وی او ددې څکلو سره د څکونکي زړه خوشخالیږي او دماغ ئې کشاده کیږي . اوهغه شراب نه بدبودار دی او نه تریخ او نه بدمنظر بلکه کتلو کښې ډیر ښه او په څکلوکښې ډیر مزیدار دی . او ددې څکلو سره عقل کښې هیڅ فتور نه راځي او نه دې سره دماغ باندې چکر راځي ، اونه بې هوشه کیږي او نه په کښې نشه شته دې او نه دې سره عقل کښې څه فرق راځي.حدیث مبارك کښې دی چه دا شراب په لاس نه دی جوړ شوی([2]) بلکه د قادر مطلق حکم سره تیار شوی دی . ډیر خوش ذائقه او خوش رنګ دی. جنت کښې د شاتو نهرونه هم دی چه ډیر پاك او خوشذائقه او خوش رنګ دی . یو حدیث مبارك کښې دی چه دا شات هم د مچو د خیتو نه دی راوتلي ([3]).

**قوله تعالى:-** ﴿فِيهَآ أَنۡهَٰرٞ مِّن مَّآءٍ غَيۡرِ ءَاسِنٖ﴾

**دا نهرونه کوم ځائې دي؟:-** دمسند یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه په جنت کښې د پیو ، شاتو او شرابو سمندرونه دی او په دې کښې دې چینې جاری دی. دا حدیث مبارك ترمذی کښې هم دې او امام حسن ﷫ دې ته صحیح وئیلی دی . د ابن مردویه یو حدیث مبارك کښې دی چه دا نهرونه دجنت عدن نه راوتلي دی.اوبیا دا یو حوض ته راپریوزي.اودهغه ځائې نه د نورو نهرونو په ذریعه نورو جنتونو ته ځي.یو حدیث مبارك کښې دی چه کله تاسو دالله تعالى نه سوال کوئي نو جنت الفردوس ترې طلب کوئي.هغه ټولو نه بهتر او اعلی جنت دې.هم ددې نه دجنتونو نهرونه جاری کیږي او هم په دې درحمان عرش دې ([4]).

**په جنت کښې څه دي؟:-** طبراني کښې دی چه کله لقيط بن عامر وفد کښې راغلې وو نو حضرت نبی کريم ﷺ نه تپوس کړې وو چه په جنت کښې څه دی ؟ نو حضرت نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دصفا شاتو نهرونه اوداسې شراب چه په سر درد نه راولي ، او د نه خرابيدونکو پيو نهرونه دی . او د نه خرابيدو صفا اوبو نهرونه ، او رنګ په رنګ ميوه جات او عجيبه عجيبه بې مثاله او بالکل پاکې او صفا ښځې به صالحانو ته ملاويږي . اودوی په خپله هم صالحانې وی . ددنيا دلذتونو په شان به دوی نه هم لذتونه اوچتولې شي . خو هلته به بچی نه پيداکيږي ([5]) حضرت انس ﷛ فرمائي چه داخيال کول چه د جنت نهرونه به هم ددنيا دنهرونو په شان کاږه واږه او خراب وی،نه نه،بلکه په الله قسم هغه به پاکه زمکه يوشان جاری وی . ددې کنارې او غارې د لؤلؤ او موتيانو خيمې دی . ددې بناوره دخالصو مشکو ده . بيا فرمائي چه ددوی دپاره هلته رنګ په رنګ ميوې او ګلونه دی . لکه چه بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿يَدۡعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَٰكِهَةٍ ءَامِنِينَ﴾ هلته به دوی ډير امن و امان سره ميوې راغواړي . اوهغه به خوري.يو بل آيت مبارك کښې دی چه ﴿فِيهِمَا مِن كُلِّ فَٰكِهَةٖ زَوۡجَانِ﴾ يعنی دواړوجنتونو کښې د هرهر قسم ميوؤ جوړې دی . دې ټولو نعمتونو سره دا خومره لوئې نعمت دې چه ددوی نه رب تعالى خوشحاله

---

[1]) لا اصل له مرفوعا.

[2]) لا اصل له مرفوعا.

[3]) ترمذی کتاب صفة الجنة : باب ماجاء فی صفة انهار الجنة : ٢٥٧١، وهو حسن احمد: ٥/٥.

[4]) صحيح بخاری کتاب الجهاد باب درجات المجاهدين فی سبيل الله : ٢٧٩٠.

[5]) احمد : ١٣/٤، زوائد عبدالله بن احمد بن حنبل مطولا وسنده حسن المعجم الكبير: ٤٧٧/١٩، حاكم : ٥٦٠/٤.

دي . او هغه پاك ذات ددوی دپاره خپل مغفرت حلال كړي دي. او ددوی نه راضي شوي دي. او اوس هيڅ فكر نشته دي.د جنتيانو د دهو دهام او نعمتونو نه پس فرمائي چه بل طرفته د جهنميانو دا حالت دي چه هغوئ د جهنم په اور كښې سوزي . او دوی دپاره دهغه نه دخلاصي هيڅ لار نشته دي. او ډيرې تندې په موقع به دوی ته ګرمې ويشدلې اوبه په مشكله ملاويږي. او ددې يو ګوټ څكلو سره به ددوی كولمې پريكړې شي. الله ﷻ دې مونږ ددې نه خپله پناه كښې اوساتي.نوبيا ددوی برابر چرته شوه ؟ چرته جنتيان اوچرته جهنميان ، چرته نعمت او چرته زحمت ، دا دواړه څنګه برابر كيديشي ؟

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ حَتّٰى اِذَا خَرَجُوْا

او خينی ددوئ نه | هغه څوك دی | چې غوږ ږدی | تاته | تر دې پورې | كله چې | اوزی دوئ |

اوبعضې داسې خلق دی | چې تاته ئې غوږونه نيولې دی | خو چې ستا د مجلس نه

مِنْ عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا

دمجلس ستانه | نو وائی | هغه كسانوته | چې وركړې شوې دې علم | څه اووئيل دهٔ | اوس |

بهر شي | ..........نو دپوهانو نه تپوسونه كوی | چې دا اوس ئې څه اووئيل

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا

دا هغه خلق دی | چې مهر وهلې دې الله | په زړونو ددوئ باندې | او پيروی ئې كړې ده |

دا هغه كسان دی چې الله ﷻ ورته په زړونو باندې مهرونه لګولې دی | اوپه خپلو

اَهْوَآءَهُمْ ۝ وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ

دخواهشاتو خپلو | او هغه خلق | چې نيغه لاره ئې موندلې ده | زيات كړل هغوئ لره الله |

خواهشاتوپسې روان دی | اوڅوك چې په نيغه لار روان دی | نو الله ﷻ هغوئ ته

هُدًى وَّاٰتٰهُمْ تَقْوٰىهُمْ ۝ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ

په لحاظ دهدايت سره | اوور ئې كړه هغوئ ته | تقوی دحصې دهغوئ | نو پس انتظار نهٔ كوی دوئ |

نور زيات هدايت كوی | او د پرهيزګارئ (نور نور) توفيق وركوی | ............ نو دا خلق بس د

اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا

مګر قيامت ته | چې رابه شي دوئ ته | ناسابه | نو بيشكه راغلې | علامې دهغې |

قيامت په انتظار كښې دی | چې ناګهانه پرې راشی | نو دهغې نښې خو ښكاره شوې دی

فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ۝

پس چرته به وی موقع | دپاره ددوئ | كله چې | راشي قيامت دوئ ته | دنصيحت قبلولو ددوئ |

او كله چې ورته هغه په خپله مخې ته راشي | نوبيا به د نصيحت قبلول څه فائده وركړی |

فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ

پس پوهه شه | شان دادی | چې نشته لائق دعبادت | مګر الله دی | او بښنه غواړه | دپاره دګناه خپلې

نوائې نبي ﷺ ته يقين ساته | چې دالله ﷻ نه سوا بل معبود نشته | اود خپلو خطاګانو په

| وَلِلْمُؤْمِنِينَ | وَالْمُؤْمِنَاتِ | وَاللَّهُ يَعْلَمُ | مُتَقَلَّبَكُمْ |
|---|---|---|---|
| او دپاره د مومنانو سړو | او مومنانو ښځو | او الله ته معلوم دی | خائي دګرزیدو ستاسو |
| حقله معافي اوغواړه | اود مومنانوسړو او د مومنانوښځو دپاره هم | او الله ﷻ ته ستاسودتګ راتګ اود استوګنې خایونه | |
| وَمَثْوَاكُمْ ﴿١٩﴾ | | | |
| او خائي د استوګنې ستاسو | | | |
| ټول ښه معلوم دی | | | |

**قوله تعالی:- وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ**

**دمنافقانو بیان او هغوئ ته رټنه** :دمنافقانو کم ذهني،ناپوهي،بې علمي او بې وقوفي بیانوي چه په مجلس کښې د ناستې نه باوجود اود کلام الرسول آوریدو نه باوجود ددوی په پوهه کښې هیڅ نه راځي.د مجلس په خاتمه اهل علم نه تپوس کوی چه پدې وخت کښې څه اوونیلې شو؟ همدا خبره ده چه د دوی په زړونو باندې مهر لګیدلې دې او دوی خپلو خواهشونو پسې روان دی . دوی په فهم صحیح اوقصد صحیح سره نه دی . بیا الله ﷻ فرمائي چه کوم خلق د هدایت قصد کوی نو الله تعالی هم دوی ته د هدایت توفیق ورکوی . اوپه دې باندې د قائم اوسیدو طاقت هم ورکوی . اودده په هدایت کښې زیاتوالی راولي.اوده ته رشدوهدایت الهام ورکوی.بیا فرمائي چه دوی په دې انتظار کښې دی چه قیامت قائم شي او دوی پخپلو سترګو اوګوري چه دقیامت نښې کومې کومې دی او دابنکاره شی لکه بل ځائي کښې فرمائي چه﴿هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰ﴾اوداهم ارشاد دې چه ﴿ اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ﴾ قیامت نزدې اوسپوږمئ دوه ټکړې شوه.اود خلقو حساب نزدې شو.بیا هم دوی د غفلت په خوب اوده دی. حضرت نبی کریمﷺ نبی کیدل اودنیا ته راتلل د قیامت په نښنو کښې یو نښه ده . ځکه چه حضرت نبی کریمﷺد نبیانو علیهم السلام خاتم دې .اوالله ﷻپه حضرت نبی کریمﷺ باندې خپل دین کامل کړو. اوخپل حجت ئې په خپل مخلوق پورا کړو.اوحضرت نبی کریمﷺتر قیامته پورې شرطونه او ددې علامتونه داسې بیان کړل چه دو ی علیهم السلام نه مخکښې هیڅ یو نبی داسې نه وو بیان کړی . نو پخپله د حضرت نبی کریمﷺ حدیث مبارك دې چه ﴿نبي التوبة نبي الملحمة حاشر﴾چه دچا په قدمونوخلق جمع کړې شی او هغه عاقب دهغه نه پس بل نبی نه وی . بخاری کښې حدیث مبارك دې چه حضرت نبی کریمﷺ خپله دمینځ ګوته او دې سره نزدې ګوته ا وچته کړه او وې فرمائیل چه څه او قیامت ددې دواړوګوتو په مثال لیږلې شوی یو(١).الله ﷻ فرمائي چه کافرو دپاره به دقیامت قائمیدو نه پس نصیحت او عبرت څه فائده ورکوی؟ لکه دالله ﷻارشاد دې چه﴿يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ﴾یعنی او په هغه ورځ به انسان نصیحت حاصل کړی خودده دپاره نصحت څه څیز دې ؟ یعنی د نن ورځې عبرت بې سود دې . او یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ وَأَنَّىٰ لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾په هغه ورځ به اووائی چه مونږ په قران ایمان راوړو حالانکه په داسې لرې ځائي چرته وس رسی؟یعنی په هغه وخت کښې د دوی ایمان بې سود دی .

**قوله تعالی:- فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ**

**د توحید او استغفاربیان:-** بیا فرمائي چه ائې نبیﷺ ا پوهه شه چه هم الله ﷻمعبود برحق دې او بل څوك نشته دې اودا اصل خبر ورکول دی د خپل وحدانیت . دا خو نه دی چه الله ﷻ ددوی د عمل حکم کوی.

---

(١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النازعات : ٤٩٣٦، صحیح مسلم: ٢٩٥٠.

په دې وجه په دې عطف اچولو نه پس فرمانی چه دخپلو ګناهونو اودمومنانو سړواو ښځو دګناهونو استغفاراوکړه[1] صحیح حدیث مبارك کښې دې حضرت نبی کریمﷺ فرمانی چه﴿اللهم اغفرلي خطيئتي وجهلي واسرافي في امري وماانت اعلم به مني اللهم اغفرلي هزلي وجدي وخطاءي وعمدي وكل ذالك عندي﴾ یعنی اې الله ﷻ! ځما په خطاګانو کښې او ځما په جهالت کښې او ځما په کارونو کښې که ځما نه څه زیاتې شوې وی نو هغه ټیز چه هغه تاته ځما نه زیات معلوم دې هغه اوبخښه،او اې الله ﷻ! ځما بې قصده ګناهونه او د قصد والا ګناهونه او ځما خطاګانې او ځما قصد اوبخښه.اودا ټول ماسره د. اوصحیح حدیث مبارك کښې دی چه دخپل مونځ آخر کښې فرمانی چه﴿الله اغفرلي ماقدمت وما اخرت وما اسررت وما اعلنت وما اسرفت وما انت اعلم به مني الهي لااله الاانت﴾یعنی اې اللهﷻ! ځما نه چه کوم ګناهونه مخکښې شوی دی او چه کوم مې روستو کړی دی، او چه کوم مې په پټه کړی دی، او چه کوم مې په ښکاره کړی دی، او چه کومه زیاتې مې کړې ده ، اوهغه ته ځما نه زیات پیژنې نو هغه اوبخښه ، او هم ته ځماالله ﷻ نې او ستا نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته دې [2].

اوبل صحیح حدیث مبارك کښې دی چه دوی چه فرمائی چه اې خلقو ! تاسو خپل رب طرفته توبه کوی او په تحقیق څه هم خپل رب ته توبه کوم . او هر ورځ د اویا ځلو نه زیاته [3]. مسند احمد کښې دی چه حضرت عبدالله بن سرخس رضي الله عنه فرمانی چه څه حضرت نبی کریمﷺ ته راغلم او ما دوی ﷺ سره خوراك اوکړو اوبیا مې اوونیل چه یارسول اللهﷺ ! الله ﷻ دې تاسو اوبخښی نو حضرت نبی کریمﷺ فرمانی چه تا هم . ما اوونیل چه یارسول اللهﷺ څه ستاسو دپاره استغفار کوم نو حضرت نبی کریمﷺ فرمانی چه خپل ځان دپاره هم . بیادوی دا آیت مبارك اولوستو چه دخپلو ګناهونو او مومن سړو او ښځو دپاره دګناهونو معافی غواړئی . بیا ما د حضرت نبی کریمﷺ کس تلې مبارك اوکتلو چه راوتلې شان وو لکه چه زخه وی . دا مسلم او ترمذی هم روایت کړې دې [4]. ابویعلی کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ اوفرمانیل چه د﴿لااله الاالله﴾او ﴿استغفرالله﴾ ونیل لازم کړنی اودا ډیر ډیروانې ځکه چه ابلیس وانی چه ما خلق په ګناهونو هلاك کړل او څه خلقو په دې دوؤ کلمو هلاك کړم .ما چه کله اوکتل نو دوی مې خواهشونوپسې روان اولیدل او دوی وانی چه مونږ په هدایت یو[5] یو بل اثر کښې دی چه ابلیس وائی چه اې الله ﷻخما دې ستا په عزت او ستا په جلال قسم وی چه تر کومې دیو سړی روح د هغه په بدن کښې وی نو څه به هغه لمسوم . نوالله ﷻفرمانی چه ځما دې هم په خپل جلال او عزت قسم وی چه څه به هغه معاف کوم چه تر کومې هغه ځمونږ نه استغفار کوی [6]داستغفار فضیلت کښې نور هم ډیر احادیث دی.بیا الله ﷻفرمانی چه ستاسو په ورځ کښې کمې زیاتې کول او تصرف کول او ستاسو د شپې په وخت کښې ځانې نیول الله ﷻ ته معلوم دی . لکه چه فرمان دې چه ﴿ وَهُوَالَّذِيْ يَتَوَفّٰكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ﴾یعنی الله ﷻ هغه ذات دې چه تاسو دشپې په وخت کښې فوت کوی او د ورځې چه څه کونی هغه ورته معلوم دی .

او یو آیت مبارك کښې دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ﴾ یعنی په زمکه چه څومره تلونکی

---

[1] صحیح بخاری کتاب الدعوات باب قول النبی ﷺ ( اللهم اغفرلی ما قدمت.....):٦٣٩٩، صحیح مسلم: ٢٧١٩. ابن حبان : ٩٥٨.

[2] صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب الدعاء ل صلاة اللیل وقیامه: ٧٧١، ابوداود: ٥٠٩، ترمذی : ٣٤٢٢، احمد: ١٠٢/١.

[3] صحیح بخاری کتاب الدعوات باب استغفار النبی ﷺ ل الیوم واللیلة : ٦٣٠٧، صحیح مسلم: ٢٧٠٢ ،

[4] صحیح کتاب الفضائل باب اثبات خاتم النبوة : ٢٣٤٦، ترمذی : ٢٣، احمد: ٨٢/٥.

[5] مسندابویعلی : ١٣٦، السنة لابن ابی عاصم : ٧ ،

[6] احمد : ٧٦/٣، حاکم ٢٦١/٤.

دي دهغه تولو روزی دالله ﷻ په ذمه ده . او امام ابن جریر رحمه الله هم دا خوښوی . د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دې چه ددې نه مراد دآخرت خانې دې . حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه په دنیا کښې ستاسو د تګ راتګ اوستاسو دقبرونو خانې معلوم دې . خو اول قول زیات بهتر دې او زیات ظاهر دې . والله اعلم .

وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ

|اوونیل به هغه کسانو | چې ایمان نې راوړې دې | ولې نه نازلولې کیږی

| اومومنان وائی | چې د جهاد په باره کښې يو نوې سورت ولې نازل نشو ؟

سُورَةٌ فَإِذَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا

يو سورت | پس هر کله چې | نازل کړې شو | يو سورت محکم | او ذکر کړې شو | په هغې کښې

.........خو کله چې داسې سورت نازل شی | چې په هغې کښې د جهاد ذکر وی | نو

الْقِتَالُ رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ

جنګ | نواولیدل تا | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض وو | چې ګوری | تاته

ته دهغه خلقو ته ګورې | چې دکومو په زړونو کښې چې دنفاق مرض دې | هغوئ ستا طرفته دهغه چا

نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۖ فَأَوْلَىٰ لَهُمْ

پشان دکتلو دهغه چاچې بې هوشی راغلی وی | په هغه باندې | دوجې دمرګ نه | پس افسوس په حال دهغوئ باندې

په شان ګوری | په چا چې د مرګ بې هوشی راغلی وی | ............نو هغوئ دپاره هلاکت دې

طَاعَةٌ وَقَوْلٌ مَّعْرُوفٌ ۚ فَإِذَا عَزَمَ الْأَمْرُ

په ژبې نې دطاعت اقرار دې | او خبری ښې ښې | پس هر کله چې | محکمتیا اوکړه کار (دجنګ)

تابعداری کول پکار دی | اوښه خبره کول پکار دی | خو چې د جهاد فیصله اوشوه نو

فَلَوْ صَدَقُوا اللَّهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ

نو که دوئ رښتینی ثابت شوې وې دالله سره | نووو به دا کار | بهتره | دپاره ددوئ |

که دغه وخت هم دوئ الله ﷻ ته رشتیا وئیلي وې | نو دا به د دوی دپاره ډیره ښه وه

فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ أَن تُفْسِدُوا

نو آیا څه بله توقع کیدې شی ستاسو نه | (بې ددې نه) چې مخ واړوؤ تاسو | نوفساد به کوی |

بیا تاسو نه داهم توقع ده | که چرې تاسو (دجهاد او ایمان نه) مخ واوړوئ | نو د زمکې په مخ فساد

فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ

په زمکه کښې | او پریکوئ به تاسو | خپلولئ ستاسو | دا هغه خلق دی

خورکړئ | ..........اود خپلولئ تعلقات به ختم کړئ | ............دغه خو هغه کسان دی چې

| لَعَنَهُمُ اللّٰهُ | فَأَصَمَّهُمْ | وَأَعْمٰى | أَبْصَارَهُمْ ﴿٢٣﴾ |
|---|---|---|---|
| چې لعنت اوکړو په دوئ باندې الله | پس کانړه ئې کړل دوئ | او ړندې ئې کړې | سترګې د دوئ |

الله ﷻ پرې لعنتونه ورولی دی | نو دوی ئې کانړه کړی دی | او د دوی سترګې ئې ړندې کړی دی

**قوله تعالى:- وَيَقُولُ الَّذِينَ اٰمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ**

**دجهاد نه مخ اړونکی منافق وی** :- الله ﷻ خبر ورکوی چه مومن خودجهاد دحکم خواهش کوی ، بیا چه کله الله ﷻ جهاد فرض کوی اوددې حکم نازلوی نو ددې نه اکثر خلق روستو شی . لکه یو ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ ﴾ یعنی آیا تا نه دی کتلی چه چا ته اوونیلې شو چه تاسو خپل لاسونه ایسار کړئی اومونځ قائم کړئی او زکوة ورکوئ،بیا چه کله په دوی جهاد فرض کړې شو نو دوی کښې یو فریق خلقو نه داسې ویریدو لکه څنګه چه دالله ﷻ نه ویرېږی . بلکه ددې نه هم زیات. او وائی چه ائې زمونږ پروردګاره ! تا په مونږ جهاد ولې فرض کړو. تا ولې مونږ ته نزدې مرګ پورې ډهیل رانکړو ؟ نو ته اووایه چه د دنیا متاع ډیره کمه ده او پرهیزګارو دپاره آخرت ډیر بهتر دې . نو تاسو باندې به بالکل ظلم نشی کولې .

نو دلته فرمائی چه ایمان والا خودجهاد د آیتونو دنزول خواهش کوی . خود منافق چه کله دا آیتونه آوری نودخپلې ویرې اونامردئی په وجه تاسو ته داسې غور غورسره ګوری لکه دمرګ والا.بیا مؤمنانو ته په میدان کښې دجنګ کولو رغبت ورکوئی.ددوی حق کښې دا بهتر وو چه دوی آوریدلو سره منلې وې او کله چه موقع راتله نوچه دوی ښه په جوش سره جهاد کولو او دخپل خلوص ثبوت ئې ورکولو. بیا فرمائی چه نزدې ده چه تاسو دجهاد نه منع شئ اوددې نه ځان بچ ساتئ نو تاسو به په مخ د زمکې فساد شروع کړئی . اوصله رحمی به پریږدئی.یعنی ستاسو چه دجاهلیت په زمانه کښې کوم حالت وو هغه به ستاسو بیا شی.نو فرمائی چه په داسې خلقو باندې دالله ﷻ لعنت او قهر دې. او د رب د طرفنه ګونګیان او رانده دی . په دې کښې په زمکه دفساد کولو نه او عام طور د قطع رحمئ ممانعت دې . بلکه الله ﷻ په زمکه کښې داصلاح کولو او صله رحمئ کولو هدایت کړې دې . اوددې حکم ئې کړې دې . د صله رحمئ معنی ده خپلو رشته دارو سره په کار کښې ، خبرو کښې ښه سلوك کول او احسان کول او ددوی په مالی مشکلاتو کښې دوی سره مددکول . دې باره کښې ډیر صحیح او حسن احادیث مروی دی . صحیح بخاری شریف کښې دی چه کله الله ﷻ خپل مخلوق پیدا کړو نو رحم پاسیدو او رحمان سره په جنګ شو نو دده نه تپوس اوشو چه څه خبره ده ؟ ده اوونیل چه دا مقام دې د ماتیدو او ستا دپناه . نو په دې الله ﷻ اوفرمائیل چه ولې ته ددې نه راضی نه ئې څه ؟ چه ستا یوځائې کونکی څه یو ځائې کړم او ستا ماتونکی څه مات کړم ؟ نو ده اوونیل چه پدې ډیر خوشحاله یم . ددې حدیث بیانولو نه پس راوی حضرت ابوهریره ؓ فرمائی که تاسو غواړئی نو دا آیت مبارك اووائې چه ﴿ فَهَلْ عَسَيْتُمْ ﴾ (١) او بل سندسره دی چه پخپله حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل (٢) ابوداؤ،ترمذی،ابن ماجه وغیره کښې دی چه هیڅ یو ګناه دومره غټه او دومره خرابه نه ده چه دهغې سزا په دنیا کښې او بیا په آخرت کښې ډیره زر رسیدلی وی په نسبت دسرکشئ او بغاوت او قطع رحمئ (٣) مسنداحمد کښې دی چه کوم سړې غواړی چه دهغه عمر دې زیات وی او دهغه روزی دې فراخه وی نو هغه ته پکار دی

---

(١) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة محمد : ٤٨٣٠، صحيح مسلم: ٢٥٥٤، احمد:٢/٣٣٠، ابن حبان : ٤٤١.
(٢) صحيح بخاری حواله سابق : ٤٨٣١.
(٣) ابوداود كتاب الادب باب في النهي عن البغي : ٤٩٠٢، وسنده صحيح ترمذی : ٢٥١١، ابن ماجة: ٤٢١١، احمد: ٥/٣٦.

چه صله رحمی کوی (١)او یو حدیث مبارك کښې دی چه خما نزدې رشته دار ماسره رشته ماتوی راماتوی او ځه هغوئ معاف کوم. او هغوئ په ما ظلم کوی او ځه ورسره احسان کوم ، اوهغوئ ماسره بدکوی نو ځه ددې بدله اخلم ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه نه داسې مه کوه که چرې ته داسې کوې نو تول په تولـه به پرېښودنی شې . نو په صله رحمئ اوسه او یاد ساته چه تر کومې پورې ته په دې باندې قائم نې نو تا سره به هر وخت دالله ﷻ مدد وی(٢)بخاری وغیره کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه صله رحمی عرش سره لګیدلې ده.حقیقت کښې صله رحمی کولو والا هغه نه دې چه د چا داحسان بدله کښې احسان اوکړی بلکه صحیح معنو کښې رشته جوړولو والا خو هغه دې چه ته هغه سره پرېږدې او هغه تا نه پرېږدی (٣)مسنداحمد کښې دی چه صله رحمی به د قیامت په ورځ اېښودې شی،ددې به پتونان وی د هوسئ د پتونانو په شان،نودابه ډیر په صفا او تیز آواز سره وانی چه هغه به پرېکولې شی چه چا دا پرېکوله.اوهغه به یوځائې کولې شی چه چادا یوځائې کړې وه(٤)د مسند یو حدیث مبارك کښې دی چه رحم کولو والاباندې الله ﷻ رحم کوی . تاسو په زمکې والو باندې رحم اوکړئی الله ﷻ به تاسو باندې رحم اوکړی . رحم درحمان د طرفنه دې . ددې یو ځائې کولو والا اللهﷻ یو ځائې کوی. او ددې ماتولو والا اللهﷻ ماتوی . داحدیث مبارك ترمذی کښې هم دې . او امام ترمذی دې ته صحیح وانی (٥) حضرت عبدالرحمان بن عوف ﵁دبیمارئی پوښتنې دپاره خلق لاړل نو دوی اوفرمائیل چه تاسو صله رحمی کړې ده. حضرت نبی کریمﷺ فرمائی چه ځه رحمان یم او درحم نوم په خپل نوم ا یښودې دې . ددې یو ځائې کولو والا اللهﷻ یو ځائې کوی او ددې جدا کولو والا الله ﷻ جدا کوی (٦)او یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ فرمائی چه الله ﷻ فرمائی چه روحونه ملاؤ شوی دی چه کوم په اول ورځ یو ځائې شوی دی نوهغه به دلته هم یو ځائې وی او چه کومو کښې هغه ځائې نفرت وو دلته به هم هغوئ کښې جدائې وی (٧) حضرت نبی کریمﷺ فرمائی چه کله زبانی دعوې زیاتې شی نو عملونه کمیږی . چه زبانی میل جول وی ، دزړه بغض وی،اودښمنی وی ا وررشته داروسره بدسلوکی وی نو په هغه وخت کښې په خلقو لعنت نازلیږی .ا و ددوی غوږونه کانړه اوسترګې ړندولې شی(٨) دې باره کښې هم ډیر احادیث دی . والله اعلم .

| اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ | الْقُرْاٰنَ | اَمْ عَلٰی قُلُوْبٍ | اَقْفَالُهَا۝ |
|---|---|---|---|
| ایا دا خلق غور نه کوی ا | په قران کښې ا | یا په زړونو باندې نې ا | جرندې دهغې دی ا |
| نوایا دوئ په قران پاک کښې فکر نه کوی ا یا د دوئ په زړونو باندې تالې لګیدلې دی | | | |

| اِنَّ الَّذِیْنَ | ارْتَدُّوْا | عَلٰٓی اَدْبَارِهِمْ | مِّنْۢ بَعْدِ مَا | تَبَیَّنَ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان ا | چې واپس شو ا | په شاګانو خپلو باندې ا | روستو دهغې نه ا | چې ښکاره شو ا |
| بیشکه هغه خلق چې د هدایت دښکاره کیدو نه پس هم مرتد شوی دی ا | | | | |

(١) احمد: ٢٧٩/٥ وسنده صحیح.
(٢) احمد : ١٨١/٥،
(٣) صحیح بخاری کتاب الادب باب لیس الواصل بالمکافی : ٥٩٩١، احمد: ١٦٣/٢.
(٤) احمد : ١٨٩/٢، ابن شیبه: ٥٣٨/٨، حاکم: ١٦٢/٤.
(٥) احمد: ١٦٠/٢، ابوداود کتاب الادب باب الرحمة : ٤٩٤١، وسنده حسن ترمذی : ١٩٢٤.
(٦) احمد: ١٩٤/١، ابوداود کتاب الزکاة باب فی صلة الرحم: ١٦٩٤، وهو صحیح ترمذی: ١٩٠٧.
(٧) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب الارواح جنوده مجندة : ٣٣٣٦، صحیح مسلم: ٢٦٣٨، طبرانی:
(٨) طبرانی : ٦١٧٠ ،

لَهُمْ الْهُدَى الشَّيْطٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ وَاَمْلٰى لَهُمْ

هغوئ ته | هدايت | شيطان | آسان كړو (داكار) | هغوئ ته | او د دروغو اميد ئې ورکړو | هغوئ ته

شيطان دهغوی په نظر کښې د هغوی (عملونه) ښائسته کړی دی| اودوئ ته ئې اوږده اميدونه ورکړی دی

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ كَرِهُوْا مَا

دا كار | په سبب ددې چې بيشکه هغوئ | اوونيل | هغه کسانو ته | چې خوښ ئې نۀ وو | هغه دين |

دا به دې وجه چې دوئ هغه خلقو ته کوم چې د الله ﷻ د نازل کړی کتاب نه بيزاره دی

نَزَّلَ اللّٰهُ سَنُطِيْعُكُمْ فِيْ بَعْضِ الْاَمْرِ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ

چې نازل کړې دې الله | چې مونږه به منو ستاسو | په څينو معاملاتو کښې | او الله | پوهيږی |

دا اوونيل | ..........چې مونږ به ستاسو بعضې خبرې اومنو | او الله ﷻ ددوئ په پټو

اِسْرَارَهُمْ فَكَيْفَ اِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ

په پټو خبرو ددوئ | پس څه حال به وی | کله چې روح اخلی ددوئ نه | فرښتې | نو وهی به هغوئ

خبرو ښه پوهه دې | نو هغه وخت به ددوئ څه حال وی | چې فرښتې بۀ ترې روحونه اخلی

وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَآ

مخونه ددوئ | او شاګانې ددوئ | دا کار په سبب ددې چې دوئ | پيروی اوکړه | دهغې |

او مخونه او شاګانې به ورله وهی | ..............داځکه چې دوئ په هغه لار روان وشول چې الله ﷻ

اَسْخَطَ اللّٰهَ وَكَرِهُوْا رِضْوَانَهٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ

چې ناراضه کوی الله | او خوښه ئې نۀ کړه | رضا دهغه | نو ضائع ئې کړل | عملونه ددوئ |

ئې ناراضه کړه || او دهغه د رضا (کارونو) نه بيزاره شو | نو الله ﷻ ددوئ عملونه برباد کړل

**قوله تعالی:- اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ**

**قرآن پاک کښې غور و فکر ولې نه کوی** :-الله ﷻ خپل کلام پاك کښې دغور وفکر کولو او سوچ کولو هدايت فرمائی اوددې نه دبې پر واهئ کولونه او مخ اړولو نه منع کوی.نو فرمائی چه غور وفکر خو لا څه کوې ددوی په زړونو کښې تالې لګيدلې دی ؟ هيڅ يو کلام په دوی اثر نه کوی . که اثر اوکړی او لاړشی نو دوی به د تيښتې لار بيا نه مومی. ابن جرير کښې دی چه يو ځل حضرت نبی کريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت کولو يو يمنی نوجوان اوونيل بلکه په دوی ددې تالې دی . ترکومې چه دا الله ﷻ بيرته نه کړی او جدائې نه کړی . نو حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته دا خبره واچوله او تر دې چه دخپل خلافت زمانه کښې به ئې هم دې نه مدد اخستو[1]. بيا فرمائی چه کوم خلق ايمان راوړلو نه پس ايمان نه جدا شو نو اصل کښې دوی لره شيطان دا بد کار ښه کړې دې . ا ودوی ئې دهوکه کښې اچولی دی اصل کښې دا دکفر سزا ده ددوی دنفاق چه کوم ددوی په زړونو کښې وو،او چه ددې په وجه به ئې خپل ظاهر دباطن خلاف ښکاره کولو. او چه کافرو سره به ملاقی شو نو دهغوئ د خپلولو دپاره به ئې هغوئ سره خپل باطن کښې باطل باندې موافقت کولو ا و ونيل به ئې چه مونږ ستاسو سره په څه امورو

[1] الطبری : ١٠٨/٢٢.

کښې مدد کوئ. خو دا خبرې دالله ﷻ نه نشی پټیدې اوهغه لوئې ذات خو د اندرونی او بیرونی حالاتو نه واقف دې او هغه ذات د شپې په وخت کښې پټې او د راز خبرې آوری اودهغه ذات دعلم انتها نشته دې.

**قوله تعالی:- فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ**

**د قران پاک دمنکرینو د مرګ حالت**- بیا فرمائی چه ددوی به څه په بدنونو پتیږی. اوملائک به دوی په جبر او قهرسره او غصې سره دوی بهر راوباسی. لکه دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿وَلَوْ تَرٰٓى إِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ﴾ الخ. یعنی کاش چه تا کتلې چه کله فرښتې ددې کافرو روحونه قبض کوی او دوې په مخ وهی او دوی په په شپیږو وهی. او یو آیت مبارک کښې دی چه ﴿وَلَوْ تَرٰٓى إِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا أَيْدِيْهِمْ أَخْرِجُوْٓا أَنْفُسَكُمْ﴾ الخ. یعنی کاش چه تا کتلې چه کله دا ظالمان په سکرات موت کښې وی او فرښتې ددوی وهلو دپاره لاسونه خوروی. اوورته وائی چه خپل روحونه راوباسئ او نن ستاسو دپاره د ذلت عذاب دې په دې وجه چه تاسو به د الله ﷻ باره کښې په ناحقه ونیل او دهغه آیتونو پسې به لګیدلی وئ نو چا نه چه الله ﷻ خفه وی او درب کریم درضا نه به نې کراهت کولو. نو ددوی اعمال ددوی غاره کښې دی.

| أَمْ حَسِبَ | الَّذِيْنَ | فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | أَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ |
|---|---|---|---|---|
| آیا گمان کوی | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض دنفاق دي | چې هرګز به نه رابرسیره کوی |
| آیا د چا په زړونو کښې چې مرض پروت وی | هغوئ دا گمان کوی چې الله ﷻ به هیچرې | | | |

| اللهُ | أَضْغَانَهُمْ ۝ | وَلَوْ نَشَآءُ | لَأَرَيْنٰكَهُمْ |
|---|---|---|---|
| الله | دزړونو خرابنیا دهغوئ | او که مونږ اوغواړو | خامخا اوبه ښایو مونږ تاته هغوئ |
| د هغوئ دښمنئ نه ښکاره کوی | اوکه چرې مونږ غوښتلي نو مونږ به تاته هغه خلق خودلی وو | | |

| فَلَعَرَفْتَهُمْ | بِسِيْمٰهُمْ ط | وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ | فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ ط |
|---|---|---|---|
| نو خامخا اوبه پیژنې ته هغوئ | په نښو دهغوئ سره | او خامخا به ته اوپیژنې هغوئ | په طرز دخبرو کښې |
| نو تا به هغوئ دمخونو نه پیژندلی وو | او دخبرو په طرز به ئې هسې هم اوپیژندې | | |

| وَاللّٰهُ يَعْلَمُ | أَعْمَالَكُمْ ۝ | وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ | حَتّٰى | نَعْلَمَ |
|---|---|---|---|---|
| او الله پوهیږی | په عملونو ستاسو | او ضرور به مونږ آزمایو تاسو | تر هغې پورې | چې معلوم کړو مونږ |
| او الله ﷻ ته ستاسو ټول عملونه ښه معلوم دي | او مونږ به ضرور ستاسو امتحان کوو | | | |

| الْمُجٰهِدِيْنَ | مِنْكُمْ | وَالصّٰبِرِيْنَ لا | وَنَبْلُوَا أَخْبَارَكُمْ ۝ |
|---|---|---|---|
| جهاد کونکی خلق | ستاسو نه | او صبر کونکی خلق | او چې جاج واخلو دحالاتو ستاسو |
| چې مجاهدین او په میدان کښې، ټینګ اودریدونکی اوپیژنو | او ستاسو د حالت اندازه واخلو | | |

**قوله تعالی:- أَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ**

**د انسان ظاهردباطن غماز وی**:- یعنی دمنافقانو خیال دې چه ددوی مکاری اوعیاری به الله ﷻ په مسلمانانو نه ظاهروی؟ دا بالکل غلط خیال دې. الله ﷻ به ددوی مکر داشان واضح کړی چه هر عقل والا سړې به ددې معلومات لری اوددوی د باطنی بدنی نه به بچ پاتې شی. ددې ډیر احوال سورة برآت

کښې بیان شوی دی . او ددوی د نفاق د ډیرو خصلتونو ذکر هلته شوې دې .اوتر دې چه ددې سورة بل نوم فاضحه ایښودې شوې دې یعنی د منافقانو فضیحت کولو والا ﴿اضغان﴾ جمع ده د ضغن ، ضغن وائی دزړه حسد اوبغض ته .دې نه پس الله ﷻ فرمائی چه اې نبی ﷺ اکه تاسوغوارئی نو مونږ به تاسو ته ددوی وجودونه اوښایو اوتاسو به دوی ښکاره ښکاره اوګورنی.خو الله ﷻ داسې اونه کړل اودې ټولو منافقانو ته نې اونه ونیل چه دده په مخلوق پرده وی . ددوی عیبونه دې پټ وی . اودهر سړی په نظر کښې ددوی ذلت وی.داسلامی امورویه ظاهردارئی باندې وی.او باطنی حساب هم په دې ظاهر اوباطن باندې وی.خو تاسو به دوی ددوی دخبرونه اوطورطریقې نه اوپیژنئی.امیرالمومنین عمر فاروق ؓ فرمائی چه کوم سړې یو راز پټوی نوالله تعالی هغه دده په مخ او دده په ژبه ظاهروی.یو حدیث مبارك کښې دی چه کوم سړې یو راز پټ ساتی نو الله ﷻ هغه پده ښکاره کوی .هغه بهتر دې اوکه ډیر بدتر دې(١)مونږ په شرح دبخاری کښې په شروع کښې دعملی اواعتقادی نفاق بیان پوراپوراکړې دې. او د هغې د دوباره لیکلو دلته ضرورت نشته دې.یو حدیث مبارك کښې د منافقانو دیو ډلې تعین راغلې دې.مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ خطبه کښې دالله ﷻ دحمد وثناء نه پس اوفرمائیل چه تاسو کښې بعضې خلق منافق دی نو څه چه دکوم نوم واخلم نو هغه دې اودریږی . نوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې فلانیه اودریږه،انې فلانیه اودریږه،تر دې چه د شپږ دیرشو سړو نومونه نې واخستل ، بیا نې اوفرمائیل چه تاسو کښې یا تاسو کښې منافق شته دې نو تاسو دالله ﷻ نه ویریږئی. نو دې نه پس په دې خلقو کښې یو سړی حضرت عمرفاروق ؓ باندې تیر شو او هغه مخ پټ کړې وو. نو دوی ؓ هغه اوپیژندو او تپوس نې ترې اوکړو چه څه دی؟. نوهغه ورته دحضرت نبی کریم ﷺ پورتنې حدیث مبارك بیان کړو. نو دوی ؓ فرمائی چه الله ﷻ تا هلاك کړی (٢). بیا فرمائی چه مونږ تاسو احکام درکوو او تاسو رټو راټو چه معلوم کړو چه تاسوکښې مجاهد څوك دې؟ اوصبر کولووالا څوك دې؟ او مونږ ستاسو اعمالو باندې آزمیښت کوو. دا خو هر مسلمان ته معلوم دی چه دښکاره کیدو نه مخکښې هغه علام العیوب ته دهر څیز اودهر سړی دعملونوپته ده . نو دلته مطلب دادې چه د دنیا مخکښې نې ښکاره کړی او دا حال اوګوری او ورته نې اوښائی. په دې وجه حضرت عبدالله ابن عباس ؓ په دې موقع باندې د ﴿لنعلم﴾ معنی ﴿ لنري ﴾ کوی . چه مونږ اوګورو.

| إِنَّ الَّذِينَ | كَفَرُوا | وَصَدُّوا | عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ | وَشَاقُّوا | |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان | چې کفر نې اوکړو | او خلق نې منع کړل | دلارې دالله نه | او مخالفت نې اوکړو | |
| څوک چې کافران شول | او خلق نې دالله ﷻ دلارې نه منع کړل | اوده‌دایت د پیژندلو نه پس نې | | | |
| الرَّسُولَ | مِنْ بَعْدِ مَا | تَبَيَّنَ | لَهُمُ | الْهُدَىٰ ۙ | لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ |
| درسول | روستو دهغې نه | چې ښکاره شوه | هغوی ته | نیغه لار | هرګز به ضرر اونهٔ رسوی الله ته |
| د رسول مخالفت اوکړو | ...... نوهغوی به الله ته هیڅ ضرر | | | | |
| شَيْئًا ۗ | وَسَيُحْبِطُ | أَعْمَالَهُمْ ۝ | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | |
| یوه ذره | او ضائع به کړی الله | عملونه دهغوی | اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دی | |
| ورنکړې شی | اوالله ﷻ به ددوې عملونه برباد کړی | ........اې مومنانو ! | | | |

(١) طبرانی : ۱۷۰۲،

(٢) احمد: ۲۸۳/۵، مجمع الزوائد : ۱۱۲/۱،

أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ۝

حکمونه منئ دالله | او اطاعت کوئ درسول | او مه بربادوئ | عملونه خپل |

دالله ﷻ تابعداری اوکړئ | او د رسول ﷺ تابعداری اوکړئ | او خپل عملونه مه تباه کوئ

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ مَاتُوا

بیشکه هغه کسان | چی کفر ئې اوکړو | او خلق ئې منع کړل | دلارې دالله نه | بیا مړه شو هغوئ

بیشکه چا چې کفر اختیار کړې دې | او خلق ئې د الله ﷻ دلارې نه منع کړی دی | بیا هم دغسې

وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۝ فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا

او هغوئ کافران وو | پس هرگز به اونهٔ ببښی الله | هغوئ لره | پس مهٔ یر زړی کیږئ | او بلنه مهٔ کوئ

کافران مړهٔ شول|نو الله ﷻ به هغوئ هیڅکله اونه ببښی|نو تاسو همت مه بائیلئ|او (دخان نه) د صلحې دعوتونه

إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَتِرَكُمْ

صلحې ته | او هم تاسو به غالب یئ | او الله | ستاسو سره دې | او هرگز به نهٔ ضائع کوی |

مه ورکوئ | او هم تاسو به غالب یئ | او الله ﷻ ستاسو ملگرې دې | اوستاسو په عملونو کښې

أَعْمَالَكُمْ ۝

عملونه ستاسو

به هیڅ کمې نه کوی |

**قوله تعالی:-** إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ

**گمراه کیدو والا هم خپل نقصان کوی :** الله ﷻ خبر ورکوی چه کفر کولووالا اودالله ﷻ لارې لره پریښودو والا، درسول ﷺ مخالفت کولووالا، دهدایت په موجود گئ کښې کفرکولو والا دالله ﷻ هیڅ نشی کولې. بلکه هم خپل نقصان کوی . صبا به د قیامت په ورځ خالی لاسونه وی. دوی سره به یو نیکی هم نه وی. لکه څنگه نیکئ گناهونه ختموی داشان به ددوی بدترینه جرمونه ددوی نیکئ ختمې کړی .

د﴿وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ۝﴾ **شان نزول:-** امام محمد بن نصر مروزی رحمه الله په خپل کتاب الصلوة کښې یو حدیث مبارك لیکلې دې چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم خیال وو چه ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ﴾ سره هیڅ یو گناه نه نقصان کوی لکه چه شرك سره هیڅ یو نیکی فائده نه ورکوی.نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ﴾ الخ . اوس په دې صحابه کرام رضی الله عنهم ویریدل چه هسې نه ددوی گناهونه ددوی نیکئ برباد نه کړی.بل سندسره مروی دی چه هره نیکی بالیقین مقبوله ده تر دې چه دا آیت مبارك نازل شو نو وې وئیل چه خمونږ عملونولره برباد کولو والا څیز لویه گناه او بدنی دی.تر دې چه داآیت مبارك نازل شو چه ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ﴾ الخ نو اوس دې باره د څه خبرې کولو نه منع شو،او دوی به گناه کبیره او بدو باندې ویریدل. او ددې نه دبچ کیدو به دوی ته هیڅ امید نه وو. دې نه پس الله ﷻ خپل ایمانداره ته د خپل اطاعت حکم ورکړو. او دا ددوی دپاره ددنیا او دآخرت دوارو نیك بختی ده . او دوی دمرتد کید نه منع کوی . څکه چه دا دعملونو تباه کوونکئ څیز دی . بیا فرمائی چه الله ﷻ سره.کفر کولو والا او د رب لارې نه منع کولو والا او په کفر کښې مرکیدونکی دالله ﷻ د بخشش نه محروم دی . لکه فرمان دې چه الله ﷻ شرك نه بخښې . دې نه پس الله ﷻ فرمائی چه تاسودښمن مقابله کښې دعاجزئ اظهار مه کونی . او

ددوی دویرې دوی ته د صلح کولو دعوت مه ورکوئ. حالانکه تاسو قوت کښې، غلبه کښې، طاقت کښې، او اسبابو کښې تاسو قوی یئ خوکه کافر ستاسونه قوت کښې، تعداد کښې او اسبابو کښې زیات وی اودمسلمانانو امام په دې کښې مصلحت اوګنړی نو په داسې وخت کښې بیشکه صلح طرفته تلل جائز دی. لکه پخپله حضرت نبی کریمﷺ د صلح حدیبیه په موقع چه اوکړل. او دمکې مشرکانو دوی د مکې تلو نه منع کړل.اوحضرت نبی کریمﷺ ترلسو کالو پورې جنګک اونکړو او مصلحت ئې اوکړو.بیا ایمان والوته یو ډیر لوئې زیرې او خوشخبر ورکوی چه الله تعالی تاسو سره دې. په دې وجه نصرت او فتح ستاسو ده. تاسو یقین اوکړئ چه ستاسو وړې نه وړه نیکی به هم ضائع نه کړی. بلکه تاسو ته به ددې پورا پورا اجر او ثواب ملاویږی. والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِن تُؤْمِنُوا | وَلَهْوٌ | لَعِبٌ | إِنَّمَا الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا | |
| او که تاسو ایمان راوړو | او مشغولتیا ده | لوبې دی | بیشکه ژوند ددنیا | |
| د دنیا دا ژوند خو بس لوبې او تماشې دی\| اوکه تاسو ایمان راوړو | | | | |
| وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ | أُجُورَكُمْ | يُؤْتِكُمْ | | وَتَتَّقُوا |
| اونهٔ به غواړی ستاسو نه | اجرونه ستاسو | نو دربه کړی تاسو ته (الله) | | او پرهیزګاری مو اوکړه |
| اوپرهیزګار پاتې شوئ\| نو الله ﷻ به تاسوته اجرونه درکړی\| او هغه تاسونه | | | | |
| | فَيُحْفِكُمْ | إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا | | أَمْوَالَكُمْ ۝ |
| | اوبه زیات اوغواړی ستاسو نه | او که اوغواړی ستاسو نه دغه مالونه | | مالونه ستاسو |
| مالونه نه غواړی\|که مالونه درنه اوغواړی\| او تربسه بسه ئې درنه اوغواړی\| نو تاسو | | | | |
| هَٰٓؤُلَآءِ | هَٰٓأَنتُمْ | أَضْغَانَكُمْ ۝ | وَيُخْرِجْ | تَبْخَلُوا |
| دا کسان یئ | اے تاسو | عیبونه ستاسو | او رااوبه باسی | نو تاسو به بخل اوکړئ |
| به شومتیا اوکړئ\| اوپه دې به ستاسو خفګانونه راڅرګند کړی\| تاسو داسې خلق یئ | | | | |
| فَمِنكُم | فِى سَبِيلِ اللَّهِ ۚ | لِتُنفِقُوا | | تُدْعَوْنَ |
| پس څینې ستاسو نه | په لار داالله کښې | دپاره ددې چې تاسو خرچ اوکړئ | | چې رابللې کیږئ تاسو |
| چې څه وخت درته الله ﷻ په لار کښې دمال لګولو بلنه درکوله\| نو په تاسو کښې بعضو | | | | |
| عَن نَّفْسِهِۦ ۚ | فَإِنَّمَا يَبْخَلُ | وَمَن يَبْخَلْ | يَبْخَلُ ۚ | مَّن |
| دخان خپل سره | پس بیشکه هغه بخل کوی | او څوک چې بخل کوی | چې بخل کوی | هغه څوک دی |
| کنجوسی اوکړه\| .......اوچا چې شومتوب اوکړو نود هغه دشومتوب نقصان هم هغه ته دې | | | | |
| قَوْمًا | يَسْتَبْدِلْ | وَإِن تَتَوَلَّوْا | وَأَنتُمُ الْفُقَرَآءُ ۚ | وَاللَّهُ الْغَنِىُّ |
| یوقوم | نو الله به بدل راولی | او که مخ واړوئ تاسو | او تاسو محتاجه یئ | او الله خو غنی دې |
| اوالله ﷻ غنی (بادشاه) دې\| او تاسو ورته محتاج یئ\| او که تاسو مخ واړوئ | | | | |
| | | أَمْثَٰلَكُم ۝ | ثُمَّ لَا يَكُونُوٓا | غَيْرَكُمْ |
| | | پشان ستاسو | بیا به نهٔ وی هغوئ | غیر ستاسو نه |
| نوستاسو په ځائې به یو بل قوم راولی\| چې هغوئ به ستاسو په شان (مخ اړونکی) نه وی | | | | |

**قوله تعالى:- اِنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ**

**ددنیا بې ثباتي او ناپائيداري**:- ددنيا حقارت او ددې قلت او ذلت بيانيږي چه ددې نه سوا د تماشې نه هيڅ نه حاصليږي خو چه کوم کار الله ﷻ دپاره اوکړې شي هغه به باقي وي. بيا فرمائي چه دالله ﷻ ذات بې پرواه دې. ستاسو نيک کارونه هم ستاسو د فائدې دپاره دي. هغه پاك ذات ستاسو د مالونو اوړي نه دي. هغه لوئي ذات چه تاسوته د خيرخيرات کولو حکم کړې دې نو ددې وجه داده چه ستاسو غريبانان او فقراء دې سره اوپاللې شي. اوبيا تاسو دار آخرت کښې دثواب مستحق شئ. بيا دانسان د بخيلتوب او بخيلتوب نه پس دزړه دکينې دظاهريدو حال بيانيږي. دمال په وجه خو داسې کيږي چه انسان ته مال ډير محبوب وي اوددې خرچ کول دده دپاره مشکل وي. بيا د بخيلانو د بخيلتوب دوبال ذکر کيږي دالله ﷻ لار کښې مال نه خرچ کول اصل کښې خپل نقصان کول دی. ځکه چه دبخيلتوب وبال به هم په ده وي. دې به دصدقې د فضيلت اوددې داجر نه به هم محروم وي. الله ﷻ د ټولونه غني دې او ټول د هغه د در سوال گر دی. غنا د خالق کائنات وصف لازم کوي. او احتياج د مخلوق وصف لازم دی. نه دې ددې نه جدا وي او نه هغه دده نه جدا وي. بيافرمائي که تاسو د اطاعت نه مخ واړولو او دده د شريعت تابعداري مو اونکړه نو ستاسوبدل کښې به يوبل قوم راولي چه ستاسو په شان به نه وي بلکه دوی به آوريدوکي او حکم منلو والا وي او د نافرمانونه بيزاره دی. ابن ابي حاتم او ابن جرير کښې دی چه کله حضرت نبی کريم ﷺ دا آيت مبارك تلاوت کړو نو صحابه کرام رضي الله عنهم تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ! دا کوم خلق دی چه زمونږ بدله کښې به راوستلې شي. او زمونږ پشان به نه وي. نو حضرت نبی کريم ﷺ خپل لاس مبارك د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه په شا کيخود او وې فرمائيل چه دې او دده قوم که دين ثريا کښې هم وې نو د فارس خلقو به راوړې وي[1] ددې ديو راوی مسلم بن خالد زنجي باره کښې دبعضو آئمه جرح وتعديل څه کلام کړې دې. والله اعلم. الحمد لله دالله ﷻ فضل وکرم سره د سورة محمد تفسير ختم شو.

## دسورة فتح تفسير

بخاري او مسلم او مسنداحمد کښې حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دې چې دفتح مکه په کال د سفر دوران کښې حضور نبی کريم ﷺ پخپله اوښه مبارکه سور وو او د سورة فتح تلاوت ئې ترجيح سره کولو که ماته ددې خبرې ويره نه وې چې خلق به راجمع شي نو مابه هم دهغو ﷺ د تلاوت پشان تاسو تلاوت کړې وې. ([2])

| اياتونه | | | سورة الفتح مدنية وهي تسع وعشرون اٰية واربع ركوعات | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٢٩ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ٤ |

| اِنَّا فَتَحْنَا | لَكَ | فَتْحًا مُّبِيْنًا ﴿١﴾ | لِّيَغْفِرَ | لَكَ اللّٰهُ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه مونږه فتح درکړه | تالره | فتحه ښکاره | دپاره ددې چې معاف کړي | تاته الله | هغه |

بيشکه مونږ تاته ښکاره کاميابي درکړه | چې الله ﷻ ستا وړا ينئ

[1] منصف عبدالرزاق: ٩٩٢٣، ابن حبان. ... تاريخ اصبهان: ٣/١، دلائل النبوة: ٣٣٤/٦، ددې معنی حديث پاک صحيح بخاری: ٤٨٩٨ صحيح مسلم: ٢٥٤٦ کښې هم موجود دې.

[2] صحيح بخاری کتاب المغازی باب اين ذكر النبی ﷺ الراية يوم الفتح: ٤٢٨١، صحيح مسلم: ٧٩٤، احمد: ٥٤/١، ابوداود: ١٤٦٧.

| تَقَدَّمَ | مِنْ ذَنْۢبِكَ | وَمَا | تَاَخَّرَ | وَيُتِمَّ |
|---|---|---|---|---|
| چې مخکښې تېر شوي دي | د ګناهونو ستانه | او هغه | چې روستو دي | او چې پوره کړي |
| او روستنۍ تولې خطا ګانې معاف کړي | ......................او خپل نعمتونه | | | |

| نِعۡمَتَهٗ | عَلَيۡكَ | وَيَهۡدِيَكَ | صِرَاطًا مُّسۡتَقِيۡمًا ۝ | وَّيَنۡصُرَكَ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نعمت خپل | په تاباندې | اوونښاني تاته | لاره نیغه | او امداد اوکړي ستا | الله |
| په تا باندې پوره کړي | او په نیغه لارې روان کړي | ......................او الله ﷻ درته په عزت سره | | | |

| نَصۡرًا | عَزِيۡزًا ۝ |
|---|---|
| امداد | زبردست |
| بري درکړي | |

**قوله تعالي:- اِنَّا فَتَحۡنَا لَكَ فَتۡحًا مُّبِيۡنًا ۝**

**دسورة فتح شان نزول اودحضرت نبی کریمﷺ دعبادت حال:** ذی قعده شپږمه هجرئي کښې حضرت نبی کریمﷺ دعمرې اداکولو دپاره مدینې منورې نه مکې مکرمې ته روان شو. خو په لار کښې مشرکانو ایسار کړو اود مسجد الحرام زیارت کولو نه ئې منع کړل.بیا هغه خلق صلح ته راغلل اوحضرت نبی کریمﷺ هم ورسره صلح اوکړه پدې خبره چه راتلونکی کال کښې به عمره اداکوي . او دا خبره د صحابه کرامو ﷺ یو لوئې جماعت ته خوښه نه وه. اوپه دې کښې خاص خاص قابل ذکر هستی حضرت عمر فاروق ﷺ وو. دوی ﷺ هم هغه خاني خپلې قربانۍ اوکړه او واپس شو. اوددې پورا واقعه ددې سورة په تفسیر کښې رازی. انشاء الله. په واپسۍ کښې حضرت نبی کریمﷺ باندې دا آیت مبارك نازل شو. چه په دې کښې واقعې ذکر دې .

**صلح حدیبیه ته د فتح مبین وئیلو وجه:-** او دې صلح ته دنتیجې اعتبار سره فتح اوونیلې شوه. حضرت ابن مسعود ﷺوغیره نه مروی دی چه تاسو خو دمکې فتح ته فتح وئیله خو مونږ صلح حدیبیه ته فتح ونیله. حضرت جابر ﷺ نه هم دا مروی دی ([1]). صحیح بخاری کښې دی چه حضرت براء ﷺ فرمائی چه تاسو فتح مکه فتح ګنړله او مونږ بیعت الرضوان ته فتح وئیله . مونږ په دې وخت کښې حضرت نبی کریمﷺ سره څوارلس سوه کسان وو. او حدیبیه د یو کوهی نوم وو. مونږ ددې نه دخپل ضرورت مطابق اوبه اخستل شروع کړل . او لږ وخت کښې اوبه بالکل ختمې شوې او لږې پکښې هم نه وې. آخر ددې خبر حضرت نبی کریمﷺ ته اورسیدو نو حضرت نبی کریمﷺ راغلو او ددې کوهی په غاړه کیناستو او د اوبو لوښئ ئې راوغوښتلو او اودس ئې اوکړو. او پدې کښې ئې دخولې اوبه هم واچولې. بیائې دعا اوکړه اوهغه ئې دې کوهی کښې واچولې. لږ وخت پس چه مونږ اوکتل نو هغه د اوبه نه بالکل ډك وو. مونږ هم اوڅکلې او څناورو هم اوڅکلې او مونږ ترې خپل ضرورتونه پورا کړل او تول لوښي موترې ډك کړل ([2])مسند احمدکښې حضرت عمرفاروق ﷺ نه مروی دی چه یوسفر کښې څه حضرت نبی کریمﷺ سره اوم مادرې خل تپوس اوکړوخو حضرت نبی کریمﷺ هیڅ جواب رانکړو. نو څه په دې ډیر زیات پښیمانه شوم چه افسوس ما حضرت نبی کریم ﷺته هسې تکلیف ورکړو،حضرت نبی کریمﷺ جواب راکول نه غوښتل او ما هسې زور کولو. بیا څه ویریدم چه هسې نه څما په دې بې ادبۍ

---

[1] الطبری: ۲۰۱/۲۲.

[2] صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة : ۴۱۵۰.

آسمان نه وحی نازله نشی . نوما خپله سورلی تیزه کړه او مخکښې لاړم . لږ وخت پس مې واوریدل چه یو آواز کونکښې خما نوم اخلې او آواز کوی . ما جواب ورکړو نو هغه اووئیل چه راځه حضرت نبی کریمﷺ دې غواړی . اوس خو خما دپښو نه دم اووتلو چه ضرور به څه وحی نازله شوې وی او څه هلاك شوم. بیا حضرت نبی کریم ﷺ ﴿انّا فتحنا﴾ تلاوت اوفرمائیلو. داحدیث مبارك نسائی ، ترمذی او بخاری کښې هم دی (۱)حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه د حدیبیه نه په واپسئ کښې ﴿ لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ ﴾ نازل شو نو حضرت نبی کریم ﷺاوفرمائیل چه ما باندې یو آیت مبارك نازل شوې دې اوهغه ماته د زمکې نه زیات محبوب دې. بیا حضرت نبی کریمﷺ دا آیت مبارك اولوستلو. نو صحابه کرام رضي الله عنهم حضرت نبی کریمﷺ ته مبارکی ورکوله او وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ! دا خو ستاسو دپاره شو خمونږ دپاره څه دی ؟ نو دې باندې دا آیت مبارك نازل چه ﴿ لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ﴾نه تر﴿عَظِيمًا﴾ پورې(بخاری و مسلم) (۲).

**د صلح حدیبیه متعلق بل روایت** :-حضرت مجمع بن حارثه انصاری رضي الله عنه چه دقران پاك قاری وو فرمائی چه کله مونږ حدیبیه نه واپس راتلو نو ما اوکتل چه خلقو اوښان زغلول نو ما تپوس اوکړو چه څه چل شوې دی؟ نو معلوم شوچه په حضرت نبی کریمﷺ باندې څه وحی نازله شوې ده . نو مونږ هم خپل اوښان زغلول او ټول په ټوله هلته اور سیدو. حضرت نبی کریمﷺ په هغه وخت کښې کراغ الغمیم کښې وو. هر کله چه ټول جمع شو نو حضرت نبی کریمﷺ دا سورة مبارك تلاوت کړو،یو صحابی رضي الله عنه اودریدو او وئې وئیل چه یارسول اللهﷺ ! آیا دا فتح ده؟ نو حضرت نبی کریم ﷺاوفرمائیل چه په هغه ذات قسم چه د چا په قبضه کښې د محمد ﷺروح دې چه دا فتح ده . دخیبر تقسیم صرف په هغو اوشو چه کوم په حدیبیه کښې موجود وو. ټولې اتلس حصې شوې او ټول لښکر پنځلس سوه وو،او پدې کښې درې سوه سواره وو.نو سور ته دوه حصې ملاؤ شوې اوپیدل ته یو(۳)( ابوداودوغیره) حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی چه دحدیبیه نه په واپسئ مونږ یو مقام کښې ایسار شو او خملاستو او داسې راباندې خوب انبار شو چه دنمر ختلو نه پس راپاسیدو. مونږ چه اوکتل نو حضرت نبی کریمﷺ هم ملاست وو. مونږ اووئیل چه حضرت نبی کریمﷺ لره پاسول پکار دی نودې کښې حضرت نبی کریمﷺ پخپله پاسیدل او وې فرمائیل چه څه موکول هغه شان اوکړئی او داسې اوکړئی لکه چه څوك اوده شی او هیر شی . په دې سفر کښې د حضرت نبی کریم ﷺاوښه مبارکه ورکه شوې وه او مونږ ددې په تلاش کښې اووتلو نو اومو کتل چه یو ونه کښې ئې واګې انختی دی او ولاړه ده. هغه مو راونیوله او حضرت نبی کریمﷺ ته مو راوستله او حضرت نبی کریمﷺ په هغې سور شو اومونږ روان شو.په حضرت نبی کریمﷺ هم په لار کښې وحی نازله شوه د وحی په وخت کښې حضرت نبی کریمﷺ باندې ډیر مشکلات وو ، هرکله چه وحی ختمه شونو حضرت نبی کریمﷺ مونږ ته اووئیل په دویﷺ باندې سورة ﴿ إِنَّا فَتَحْنَا﴾ نازل شوې دې (۴). (ابوداود ، نسائی ، مسند وغیره ).

**قوله تعالی:- لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ**

**ددې پورته ایت مبارك شان نزول:-** حضرت نبی کریمﷺ به تهجدوکښې دومره وخت تیرولو چه ددویﷺ پښې مبارکې به اوپړسیدې. نو حضرت نبی کریمﷺ ته اوئیلې شو چه الله ﷻ ستاسو مخکښې روستی ګناهونه معاف کړی دې . نوحضرت نبی کریم ﷺاوفرمائیل چه ولې څه دې دالله ﷻ شکرګزار غلام جوړ

(۱)احمد: ۳۱/۱، صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة : ٤۱۷۷، ترمذی: ۳۲٦۲.

(۲)صحیح بخاری حواله سابق، : ٤۱۷۲، صحیح مسلم: کتاب الجهاد باب صلح الحدیبیة : ۱۷۸، ترمذی : ۳۲٦۳، احمد: ۱۲۲/۳.

(۳) ابوداود کتاب الجهاد باب لیمن اسهم له سهما : ۲۷۳٦، وسنده حسن احمد: ٤۲۰/۳، حاکم : ۱۳۱/۲.

(۴) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الفتح ( لیغفرلک الله ماتقدم من ذنبک.....) :٤۸۳٦، صحیح مسلم: ۲۸۱۹.

نشم؟ (بخاري ومسلم). او يو روايت كښې دي چه دا تپوس كولو والا حضرت عائشه ﵂ وه.(١)
(مسلم). نو د مبين نه مراد ښكاره اوصفا ظاهر دى ، او د فتح نه مراد صلح حديبيه ده. او ددې په وجه
ډير خير وبركت حاصل شو. خلقو كښې امن وامان شو. اومومنانو او كافرو كښې خبرې اترې شروع
شوې.دعلم او د ايمان خورولو ورته موقع په لاس ورغله.دحضرت نبى كريم ﷺمخكښې روستى
ګناهونه معاف شوى دى دا د حضرت نبى كريم ﷺخاصه ده دې كښې دوى سره هيڅوك شريك نه دى .
خو بعضو اعمالوپه ثواب كښې دا الفاظ نورودپاره هم راغلى دى . په دې كښې د حضرت نبى كريم ﷺ
ډير زيات شرافت او عظمت دې . حضرت نبى كريمﷺ په خپلو ټولو كارونو كښې نيكې ، استقامت او
دالله ﷻ په فرمانبردارئى باندې مستقيم وو. داسې چه اولين او آخرينوكښې هيڅوك داسې نه وو.
حضرت نبى كريمﷺ ټولو انسانانو كښې دټولو نه زيات اكمل انسان وو. او دنيا او آخرت كښې دټول
اولاد آدم سردار او رهبر دې.چونكه حضرت نبى كريم ﷺټولو انسانانوكښې د ټولو نه زيات دالله ﷻ
فرمانبردار او دالله ﷻ د احكامو لحاظ ساتلووالا وو ، په دې وجه چه كله د حضرت نبى كريمﷺ اوښه
مباركه كيناسته نو حضرت نبى كريمﷺ اوفرمائيل چه دا د فيلانو منع كولو والا ايساره كړه چه مراد
ترې الله دې ، په هغه ذات قسم چه دچا په قبضه كښې خما روح دې چه نن دا كفار څه غواړى نو څه به
ئې وركوم . خو په دې شرط چه دالله ﷻ د حرمت بې حرمتى نه وى (٢). نو هركله چه حضرت نبى
كريمﷺ دالله ﷻ اومنل او صلح ئې قبوله كړه نو دالله ﷻ داسورة مبارك نازل كړو. اودنيا او آخرت
كښې ئې په دوى باندې خپل نعمتونه پورا كړل. او ددوى رهبرى ئې شرع عظيم او دين قويم طرفته
اوكړه. او د حضرت نبى كريمﷺ خشوع او خضوع پوجه الله ﷻ حضرت نبى كريمﷺ ته ډيراوچت مقام
وركړو.او د حضرت نبى كريمﷺ د عاجزئى،تواضع او انكسارئى په وجه الله ﷻ دوى ﷺ ته ډير لوې
منصب وركړو. د حضرت نبى كريمﷺ په دښمنانو ئې حضرت نبى كريمﷺ ته غلبه وركړه . پخپله د
حضرت نبى كريمﷺ فرمان دې چه دبنده معاف كولو سره د بنده عزت زياتيږى.او عاجزى او انكسارى
كولو سره دده مرتبه اوچتيږى .(٣) دحضرت عمر فاروق ﵁ قول دې چې تا هغه چاته سزا ورنكړه چه هغه
ستا باره كښې دالله ﷻ نافرماني كړې وى . نو دې باره كښې د الله ﷻ اطاعت اوكړه.

| هُوَالَّذِیْٓ | اَنْزَلَ | السَّكِيْنَةَ | فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ | |
|---|---|---|---|---|
| هغه هغه ذات دې | چې نازل ئې كړو | سكينه(اطمينان) | په زړونو دمومنانو كښې | |
| الله ﷻ هغه ذات دې چې د مومنانو په زړونو كښې ئې اطمينان پيدا كړو | | | | |
| لِيَزْدَادُوْٓا | اِيْمَانًا | مَّعَ اِيْمَانِهِمْ | وَلِلّٰهِ | جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ |
| دپاره ددې چې زيات كړې دوئ | ايمان | سره دايمان خپل | او الله لره دى | لښكرې داسمانونو |
| چې دهغوئ د خپل اولنى ايمان سره ايمان نور هم زيات شي | او داسمانونواو زمكې ټولې لښكرې | | | |
| وَالْاَرْضِ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلِيْمًا | حَكِيْمًا | لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| او دزمكې | او دې الله | خبردار | او حكمت والا | دپاره ددې چې داخل كړى الله مومنان سرې |
| دالله ﷻ دى | اوالله ﷻ په هر څه عالم دې | صاحب د حكمت دې | چې الله ﷻ مومنان سرې | |

(١) صحيح بخارى ، حواله سابق . : ٤٨٣٧، صحيح مسلم: كتاب صفات المنافقين باب اكثار الاعمال والاجتهاد فى العبادة: ٢٨٢٠، احمد: ١١٥/٦.

(٢) صحيح بخارى كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالح مع اهل الحرب: ٢٧٣١.

(٣) صحيح مسلم كتاب البروالصلة باب استحباب العفو والتواضع : ٢٥٨٨، ترمذى: ٢٠٢٩، احمد:٢٣٥/٢، ابن حبان: ٣٢٤٨.

وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

او مومنانې ښځې | داسې جنتونو ته | چې بهيږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | هميشه به وي |

اومومنانې ښځې داسې باغونو ته داخل کړي | چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږي | هميشه به

فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ ۭ وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ

په هغې کښې | او چې لرې کړي | دهغوئ نه | ګناهونه دهغوئ | او دې دا کار | په نز دالله |

په هغې کښې اوسيږي | اوچې هغوی ته ګناهونه معاف کړي | او دغه دالله ﷻ په نزد

فَوْزًا عَظِيْمًا ۝ وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ

کاميابي لويه | او چې عذاب ورکړي | منافقانو سړو له | او منافقانو ښځو له | او مشرکانو سړو له

لويه کاميابي ده | او الله ﷻ به منافقانو سړو او منافقانو ښځو ته او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو

وَالْمُشْرِكٰتِ الظَّاۗنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ۭ عَلَيْهِمْ

او مشرکانو ښځو له | چې ګمان کونکې دي | په الله باندې | ګمان بد | په هغوئ باندې دي |

ته سزا ورکړي |...... چې په الله ﷻ باندې غلط ګمانونه کوي | ............ په هغوی باندې

دَاۗىِٕرَةُ السَّوْءِ ۚ وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ

چکر دبدئ | او غضب اوکړو الله | په هغوئ باندې | او لعنت ئې اوکړو په هغوئ باندې |

بده ورځ راتلونکې ده | او الله ﷻ به ورته په قهر شي | اودخپل رحمت نه به يې لرې ساتي

وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ۭ وَسَاۗءَتْ مَصِيْرًا ۝ وَلِلّٰهِ

او تيار ئې کړو | دپاره دهغوئ | دوزخ | او ډير خراب دې | ځائې داوسيدو | او الله لره دي |

اودوی دپاره ئې دوزخ تيار کړې دې | ............ اودغه ډير خراب د اسيدو ځائې دې | او د اسمانونو

جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝

لښکرې داسمانونو | او دزمکې | او دې الله | غالب | دحکمت خاوند |

او زمکې ټولې لښکرې دالله ﷻ دي | او الله ﷻ زبردست دې | صاحب د حکمت دې

**قوله تعالى:- هُوَالَّذِيْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ**

**د صلح حديبيه نتائج او اثرات** :دسکينه معنى ده اطمينان رحمت اووقار.فرمان دې چه دحديبيه په ورځ صحابه کرام ﷺ چه د الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ خبره اومنله نوالله ﷻ ددوی زړونو ته اطيمنان نصيب کړو. او ددوی ايمانونه زيات شو. هم ددې نه حضرت امام بخاري ﷫ وغيره آئمه استدلال کړې دې چه په زړونوکښې ايمان زياتيږي اوداشان کميږي هم . بيا فرمائی چه الله ﷻ سره دلښکرو څه کمې نشته دې . که هغه غوښتلې نو ټول کفار به ئې هلاك کړي وې . که يو فرښته ئې ليږلې وې نو ټول کفار به تباه وبرباد شوی وو. خو هغه خپل حکمت بالغه سره ايماندارو ته د جهاد حکم اوکړو. چه په دې ددوی حجت پورا شي او ددوی دليل هم مخکښې راشي . د هغه هيڅ يوکار د حکمت او علم نه خالی نه دې . په دې کښې يو مصلحت داهم دې چه هغه لوئې ذات ايماندارو ته خپل بهترين نعمتونه ورکړل. دا روايت تير شوې چه کله صحابه کرام ﷺ حضرت نبی کريم ﷺ ته مبارکی ورکړه او تپوس ئې اوکړو چه يارسول الله ﷺ زمونږ دپاره څه دی ؟ نوالله ﷻ دا آيت مبارك نازل کړو چه مومن سړی او مومنانې ښځې

به جنت ته داخليږي .او هرځائي نهرونه جاري دي او دوی به هغه ځائې تر ابدالاباد پورې وی . اوپه دې وجه هم چه الله ﷻ ددوی ګناهونه لرې کړی او ددوی بدئ ختمې کړی ، او دوی ته سزا نه ورکوی ، بلکه دوی معاف کړی ، او دوی اوبخښی ، اوپه دوی پرده واچوی،او په دوی رحم اوکړی،اوددوی قدراوکړی،نوهم دا اصل کاميابی ده.لکه الله ﷻ فرمائی چه ﴿ فَمَنۡ زُحۡزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدۡخِلَ الۡجَنَّةَ فَقَدۡ فَازَ ﴾ الخ. يعنی څوك چه دجهنم نه لرې شواو جنت ته داخل شو نو هغه مراد ته اورسيدو.

**قوله تعالی:- وَيُعَذِّبَ الۡمُنٰفِقِيۡنَ وَالۡمُنٰفِقٰتِ وَالۡمُشۡرِكِيۡنَ وَالۡمُشۡرِكٰتِ**

**د صلح حديبيه او منافقانون اثرات ښکاره شو:** بيا يو بله وجه او غايت بيانيږی چه په دې وجه هم نفاق او شرك کولو والا سړی او ښځې چه دالله د احکامو نه بدظن وی نو رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم باره کښې خراب خيال ساتی چه دوی دی څو مره ؟ نن نه وی نو سبا به ددوی زور بالکل ختم شی.که په دې جنګ کښې بچ شو نو بل جنګ کښې به دوی تباه شی نوالله ﷻ فرمائی چه ددې بدئی دائره هم ددوی نه ګيرچاپيره ده،په دوی باندې دالله غضب دې،دوی دالله ﷻ رحمت نه لرې دی،ددوی ځائې جهنم دې او هغه ډير بدترين ځائې دې.دوباره دخپل قدرت او قوت اودخپلو بندګانود دښمنانو دانتقام اخستل ظاهروی چه د زمکې اوآسمانونو ټول لښکرونه صرف الله ﷻ دپاره دی اوالله ﷻ عزيزاو حکيم دې

| إِنَّآ أَرۡسَلۡنٰكَ | شٰهِدًا | وَّمُبَشِّرًا | وَّنَذِيۡرًا ۝ |
|---|---|---|---|
| بيشکه ليږلې ئې مونږ ته | ګواهی ورکونکې | او زيرې ورکونکې | او خبردارونکې |
| بيشکه چې مونږ ته ګواهی کونکې او زيرې ورکونکې (پيغمبر) ليږلی يې | | | |

| لِّتُؤۡمِنُوۡا | بِاللّٰهِ | وَرَسُوۡلِهٖ | وَتُعَزِّرُوۡهُ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې تاسو ايمان راوړی | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | اوتاسو ملګرتيااوکړئ دهغه |
| چې تاسو په الله ﷻ اوددهٔ په رسول ﷺ باندې ايمان راوړئ \| اوددهٔ ددين مدد اوکړئ | | | |

| وَتُوَقِّرُوۡهُ ؕ | وَتُسَبِّحُوۡهُ | بُكۡرَةً | وَّأَصِيۡلًا ۝ | إِنَّ الَّذِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| او عزت اوکړئ دهغه | او تاسو تسبيح اووايئ دهغه | سحر | او ماښام | بيشکه هغه کسان |
| اودهغه عزت اوکړئ \| اوسحر ماښام د هغه الله پاکی بيان کړئ \| ........................ څوک چې تا سره | | | | |

| يُبَايِعُوۡنَكَ | إِنَّمَا يُبَايِعُوۡنَ اللّٰهَ ؕ | يَدُ اللّٰهِ |
|---|---|---|
| چې بيعت (لوظ) کوی ستاسره | په اصل کښې هغوئ بيعت کوی دالله سره | لاس دالله |
| بيعت کوی \| هغوئ (په حقيقت کښې ) د الله ﷻ سره بيعت کوی \| دالله ﷻ لاس | | |

| فَوۡقَ أَيۡدِيۡهِمۡ ۚ | فَمَنۡ نَّكَثَ | فَإِنَّمَا | يَنۡكُثُ |
|---|---|---|---|
| دپاسه دلاس دهغوئ دې | پس هغه چاچې مات کړو دا لوظ | پس بيشکه | ماتوی به هغه |
| ددوئ دلاس دپاسه پروت دې \| نوبيا څوک چې خپل لوظ مات کړی \| نوددهٔ دبې لوظئ | | | |

| عَلٰى نَفۡسِهٖ ۚ | وَمَنۡ أَوۡفٰى | بِمَا | عٰهَدَ | عَلَيۡهُ |
|---|---|---|---|---|
| دا لوظ په خان خپل | او چاچې پوره کړو | هغه لوظ | چې وعده کړی ده هغه | په هغې باندې |
| سزا به هم دهٔ ته ملاويږی \| اوچا چې الله سره کړې لوظ پوره کړو \| نو الله ﷻ به | | | | |

| اللهَ | فَسَيُؤْتِيهِ | أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٠﴾ |
|---|---|---|
| دالله سره | نو الله به زر ورکړي هغه له | اجر لوئ |
| هغه ته ډېر زر لوئي اجر ورکړي | | |

**قوله تعالى:- إِنَّا أَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيرًا**

**دصلح حديبيه واقعه د احاديثو په رڼا کښې:-** الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته فرمائي چه مونږ ته په خپل مخلوق باندې شاهد جوړ کړې، مومنانو ته زيرې ورکوونکې جوړ کړې اوکافرانو لره ويرونکې جوړ کړې نې. ددې آيت مبارك پورا تفسير په سورة احزاب کښې تير شوې دې . چه تاسو خلق په الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ باندې ايمان راوړنې او دهغه احترام اوعظمت کوئي اودهغه پاکي او بزرگي تسليم کړنې.او ددې دپاره چه تاسوسحر ماښام الله ﷻ يادوئي.بيا الله ﷻ د خپل نبي ﷺ تعظيم او تکريم بيانوي او فرمائي چه کوم خلق ستاسو نه بيعت کوي نو اصل دوی دا بيعت دالله ﷻ نه کوي.ارشاد دې چه ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَا أَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ يعني چا چه درسول ﷺ اطاعت اوکړو نو هغه د الله ﷻ اطاعت اوکړ.دالله ﷻ لاس دهغه په لاس دې.يعنى هغه ذات دوی سره دې او ددوی خبرولره آوريدونکې دې. ددوی مکان گوری او ددوی ظاهر او باطن ورته معلوم دی . نو درسول الله ﷺ په ذريعه بيعت اخستلو والا اصل کښې الله ﷻ دوی نه بيعت اخستلووالا دې. لکه فرمائي چه ﴿إِنَّ اللهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾ الخ: يعنى الله ﷻ ايماندارو نه ددوی ځانونه او ما لونه داخستی دی او ددې بدله کښې نې دوی ته جنت ورکړې دې . اودالله ﷻ لار کښې جهاد کوی دوی وژل کوی وژلې کيږی او دوی هم دالله ﷻ دا ريښتوني وعده تورات او انجيل کښې هم ده . او پدې قران پاك کښې هم ده . نو پوهه شئ چه دالله ﷻ نه به زيات ريښتوني وعدې والا څوك وی ؟ نوتاسو ته پکاردی چه پدې اخستلو خرڅولو خوشحاله شئ او هم دا اصل کاميابی ده .

**قوله تعالى:- إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللهَ**

**د رسول کريم ﷺ بيعت اصل کښې دالله ﷻ بيعت وو:-** ابن ابى حاتم کښې دی چه چا دالله ﷻ لار کښې توره راويستله نوده دالله ﷻ نه بيعت اوکړو. او حديث مبارك کښې دی چه دحجراسود باره کښې حضرت نبي کريم ﷺ فرمائي چه دابه الله ﷻ دقيامت په ورځ اودروی اودده به دوه سترگې وی چه دې سره به کتل وی،اوژبه به نې وی چه دې سره به وينا کوی،اوچه چا ده حق سره ښکل کړې وې نو دهغه گواهی به ورکوی . ددې نه بوسه اخستلووالا اصل کښې دالله ﷻ نه بيعت اخستلووالا دې . بيا حضرت نبي کريم ددې آيت مبارك تلاوت اوکړو[1] بيا فرمائي چه څوك د بيعت نه پس وعده ماته کړی نو ددې وبال به پخپله هم په ده وی. او دې به دالله ﷻ هيڅ اونکړی او چه څوك خپل بيعت سرته اورسوی نو هغه ته به ډير اجر وثواب ملاويږی .

**ايت مبارك کښې بيعت نه مراد کوم بيعت دې:-** دلته چه دکوم بيعت ذکر کيږی هغه اصل کښې بيعت الرضوان دې اودا دببول دونې لاندې دحديبيه ميدان کښې اخستې شوې وو.په دې ورځ د بيعت کوونکو صحابه کرام رضي الله عنهم شمير ديارلس سوه يا څوارلس سوه يا پنځلس سوه وو. صحيح دادی چه څورالس سوه وو. ددې واقعې احاديث واورئی . بخاری شريف کښې دی چه مونږ په هغه ورځ څوارلس سوه وو[2] بخاری اومسلم کښې دی چه حضرت نبي کريم ﷺ په هغه اوبو کښې لاس مبارك کيخودو نو

---

[1]) وسنده حسن.

[2]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الفتح باب ( اذ يبايعونک تحت الشجرة) : ٤٨٤٠. صحيح مسلم: ١٨٥٦، احمد: ٣/٢٩٦.

د حضرت نبی کریم ﷺ دګوتو مینځ نه داوبو رودونه روان شو([1])دا حدیث مبارك دهغه حدیث مبارك نه مختصر دي چه په کوم کښې دي چه صحابه کرام رضي الله عنهم ډیر زیات تږي او اوبه نه وي. حضرت نبی کریم ﷺ دخپل ترکش نه یو غشئ راوویستلو او هغوئ لاړل او هغه ئې دحدیبیه کوهی کښې واچولو. اوس خواوبو جوش اوکړو او تر دې چه تول خروب شو. حضرت جابر رضي الله عنه نه تپوس اوشوچه تاسو په هغه ورځ څومره وي نو وې فرمائیل چه څوارلس سوه اوکه یو لك هم وې نو اوبه دومره ډیرې وې چه ټولو له کافي وې([2])بخاری شریف یو بل حدیث مبارك کښې دی چه پنځلس سوه وو. حضرت جابر رضي الله عنه نه یو روایت کښې پنځلس سوه هم مروی دی. حضرت امام بیهقی رحمه الله فرمائي چه فی الواقعه پنځلس سوه وو([3]) او دحضرت جابر رضي الله عنه رومبې قول وو. بیا دوی ته څه وهم اوشو او دوی څوارلس سوه اووئیل. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مروی دی چه پنځلس سوه او پنځویشت وو خو ددوی رضي الله عنه نه مشهور روایت د څوارلسو سوؤ دې. داکثرو راویانو اود اکثرو سیرت نویسو بزرګانو هم دا قول دې چه څوارلس سوه وو. یو روایت مبارك کښې چه اصحاب شجره څوارلس سوه وو. اوپه هغه ورځ دمهاجرینو اتمه حصه مسلمانه شوه([4]). سیرت محمدبن اسحاق کښې دی چه دحدیبیه په کال حضرت نبی کریم ﷺ د خپلو اووه سوؤ صحابه کرام رضي الله عنهم سره مدینې منور نه روان شوی وو. دوی سره د قربانئ اویا اوښان هم وو. په هرو لسو کسانو باندې یواوښ وو. خودحضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دې چه په هغه ورځ ددوی ملګری څوارلس سوه وو. ابن اسحاق داشان وائی او دا دهغه په اوهام کښې شمار دی. بخاری اومسلم کښې چه کوم محفوظ دی هغه دادی چه د څه سوه دپاسه زر وو. اوهغه اوس راروان دی، انشاء الله.

**بیعت الرضوان او دهغه سبب ذکر:-** ددې بیعت سبب سیرت ابن اسحاق کښې دی چه بیا حضرت نبی کریم ﷺ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه راوغوښتلواو دوی ئې مکې ته اولیږل چه قریشو سردارانو ته اووائی چه حضرت نبی کریم ﷺ د جنګ ارادې سره نه دې راغلې بلکه د بیت الله مبارك عمرې دپاره راغلې دې. خو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ خما خیال سره خو ددې کار دپاره تاسو حضرت عثمان رضي الله عنه اولیږئی ځکه چه مکه کښې خما خاندان کښې هیڅوك نشته دې. یعنی د بنو عدی او بنو کعب قبیله نشته دې چه خما حمایت اوکړی. او تاسوته معلوم دی چه ماقریشو سره څومره دښمنئ کړې دی. او هغوئ خما نه څومره خار کوی. ما خو به هغوی ژوندې هم پرې نه دی. نو حضرت نبی کریم ﷺ دا رائې خوښه کړه او حضرت عثمان ذوالنورین رضي الله عنه ئې ابوسفیان او دقریشو سردارانو ته اولیږلو. حضرت عثمان رضي الله عنه روان وو چه په لاره کښې یا مکه کښې ورته ابان بن سعید بن عاص ملاؤ شو اوهغه دوی رضي الله عنه په خپله سورلئ کینول او په خپل امان کښې ئې مکې ته اورسولو. دوی رضي الله عنه د قریشو مشرانو ته ورغلل او ورته ئې د حضرت نبی کریم ﷺ پیغام اورسولو. هغوئ ورته اووئیل که ته دبیت الله شریف طواف کول غواړې نو اوکړه. خودوی جواب ورکړو چه دا ناممکن دی چه څه د حضرت نبی کریم ﷺ نه مخکښې طواف اوکړم. نو دوی خلقو جناب ذوی النورین ایسار کړو. بل طرفته لښکر اسلام کښې دا خبر خور شو چه حضرت عثمان رضي الله عنه ئې شهید کړې دې. دې د غم خبر صحابه کرام رضي الله عنهم او پخپله حضرت نبی کریم ﷺ ډیر خفه کړل. او حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مونږ د فیصلې کولو نه بغیر ددې ځائې نه نه واپس کیږو.([5]) نو حضرت نبی کریم ﷺ صحابه کرام رضي الله عنهم

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الاشربة باب شرب البركة والماء المبارك: ٥٦٣٩، صحیح مسلم: ١٨٥٦.

[2]) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة: ٤١٥٢.

[3]) صحیح بخاری حواله سابق. : ٤١٥٣، صحیح مسلم: کتاب الامارة: باب استحباب مبایعة الامام الجیش عند ارادة القتال: ١٨٥٦.

[4]) صحیح بخاری حواله سابق: ٤١٥٥، حواله سابق: ١٨٥٧، دلائل النبوة: ٩٨/٤.

[5]) سیرة ابن هشام: ٢٤١/٣،

راوبلل او دهغوئ نه بيعت واخستو. دا بيعت الرضوان ديو ونې لاندې اوشو. بعضې وائي چه دا بيعت په مرګ اخستې شوې وو چه په جنګ به مړه شو. خو حضرت جابر ﷛ فرمائي چه په مرګ بيعت نه شي اخستې بلکه دا اقرار اخستې شي چه د جنګ نه به نه تښتو. څومره مسلمانان صحابه کرام ﷛ چه په دې ميدان کښې وو ټولو په خوشحالئ بيعت اوکړو. سوا د جد بن قيس نه چه دا د قبيله بنو سلمه يو سړې وو. دوې د خپلې اوښې پناه پټ شو. بيا حضرت نبی کريم ﷺ او صحابه کرام ﷛ ته معلوم شو چه دحضرت عثمان ﷛ د شهادت خبر غلط وو.(١) دې نه پس قريشو سهيل بن عمرو، حويطب بن عبدالعزى او مکرزبن حفص حضرت نبى کريم ﷺ ته راوليږل، دا خلق لا هم دلته و چه بعضو مشرکانو او مسلمانانو کښې خبرې تيزې شوې. اوتردې چه سنګ باری او غشی هم په کښې اوروليې شو. يو طرفته هغه خلقو حضرت عثمان ﷛ ايسار کړو لو بل طرفته دا خلق اودريدل. اود رسول الله ﷺ منادى آواز اوکړو چه روح القدس ؏ حضرت نبى کريم ﷺ ته راغلو او ورته ئې د بيعت حکم ورکړو. راشئ دالله ﷻ نوم واخلئ او بيعت اوکړئ، اوس څه وو چه مسلمانان په منډه منډه راغلل او د حضرت نبى کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او په هغه وخت کښې حضرت نبى کريم ﷺ ديو ونې لاندې ناست وو. ټولو بيعت اوکړو ددې خبرې چه هيڅوک به دميدان جنګ نه نه تښتي. په دې مشرکان ويريدل او څومره مسلمانان چه هغوئ سره ووهغه ټول ئې پريښودل او دصلح درخواست ئې اوکړو.
بيقهى کښې دى چه بيعت کولو په وخت کښې حضرت نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه اني الله ﷻ حضرت عثمان ﷛ ستا درسول کار دپاره تلې دې، نو حضرت نبى کريم ﷺ خپل لاس مبارك په بل لاس کيخودو يعنى دحضرت عثمان ﷛ طرفنه ئې بيعت اوکړو. نود حضرت عثمان ﷛ دپاره د حضرت نبى کريم ﷺ لاس مبارك د هغه دخپل لاس نه زيات بهتر وو. په دې بيعت کښې د ټولو نه سبقت کولو والا حضرت سنان اسدى وو. ټولو نه مخکښې راغلو او حضرت نبى کريم ﷺ ته ئې اووئيل چه يارسول الله ﷺ تاسو خپل لاس راخورکړئى چه څه بيعت اوکړم. نو حضرت نبى کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه په څه خبره بيعت کوې؟ نووې فرمائى چه څه ستاسو په زړه کښې دى په هغې(٢)ددوى دپلارنوم وهب وو.
دعمر فاروق ﷛ اسلام مخکښې وو او که ددوئ ځوی؟: صحيح بخارى کښې حضرت نافع ﷛ نه مروى دى چه خلق وائي چه د حضرت عمرفاروق ﷛ خوئې حضرت عبدالله ﷛ د خپل پلار نه مخکښې اسلام قبول کړې وو. اصل کښې خبره داسې نه وه، واقعه څه داسې وه چه دحديبيه په ورځ حضرت عمرفاروق ﷛ خپل خوئې يو انصارى پسې واستولو چه لاړ شه اودهغه نه آس راوله. په هغه وخت کښې حضرت نبى کريم ﷺ لاصحابه کرام ﷛ نه بيعت اخستو. حضرت عمرفاروق ﷛ ته ددې علم نه وواو هغه په پټه د جنګ تيارئى کښې مصروف وو. حضرت عبدالله چه کله اوکتل چه بيعت شروع دې نو دې هم د بيعت نه مشرف شو. بيا آس پسې لاړو او آس ئې راوستو او حضرت عمرفاروق ﷛ ته ورکړو او ورته ئې اوفرمائيل چه حضرت نبى کريم ﷺ خلقو نه بيعت اخلى. نو حضرت عمرفاروق ﷛ راغلو او د حضرت نبى کريم ﷺ په لاس ئې بيعت اوکړو. په دې وجه خلق وائي چه د خوئې اسلام دپلار نه مخکښې وو.(٣) دبخارى شريف بل روايت کښې دى چه خلقو جدا جدا د ونولاندې آرام کولو. حضرت عمر فاروق ﷛ اوکتل چه دهر چا نظر په حضرت نبى کريم ﷺ باندې دې او خلق د حضرت نبى کريم ﷺ نه ګيرچاپيره دى نو حضرت عبدالله ﷛ ته اوفرمائيل چه لاړشه اوګوره چه څه خبره ده ؟ دې چه راغلو وې نو بيعت کيدو نو ده هم بيعت اوکړو او بيا لاړو حضرت عمرفاروق ﷛ ته ئې ددې خبر

(١) سيرة ابن هشام : ٢٤١/٣،
(٢) دلائل النبوة للبيهقى: ١٣٧/٤.
(٣) صحيح بخارى کتاب المغازى باب غزوة الحديبية : ٤١٨٦.

ورکړو. نو حضرت عمرفاروق رضی الله عنه هم راغلو او زر ئې بیعت اوکړو.(۱) حضرت جابر رضی الله عنه بیان کوی چه کله مونږ بیعت اوکړو نو په هغه وخت کښې حضرت نبی کریمﷺ د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه لاس نیولې وو او د ببول دونې لاندې ناست وو الخ.(۲) حضرت معقل بن یسار رضی الله عنه بیان کوی چه په دې موقع ما د ونې یو ښاخ د حضرت نبی کریمﷺ د سر مبارك نه اوچت کړې وو. مونږ حضرت نبی کریمﷺ نه په مرګ بیعت اونکړو بلکه په نه تښتیدو مو اوکړو.(۳) حضرت سلمه بن اکوع فرمائی چه مونږ په مرګ بیعت کړې وو(۴)دوی فرمائی چه یو ځل ما بیعت اوکړو او یوطرفته اودریدم نو حضرت نبی کریمﷺ را ته اوفرمائیل چه سلمه ته بیعت نه کوې څه ؟ ما اووئیل چه یارسول ا للهﷺ ما خو بیعت اوکړو نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه خیر راځه بیعت اوکړه . نو څه نزدې ورغلم او دوباره مې بیعت اوکړو. (۵) حدیبیه هغه کوهې چه کوم مخکښې ذکر اوشو صرف دومره اوبه په کښې وې چه پنځوس چیلئ پرې خړوب کیدې.دوی فرمائی چه دوباره بیعت کولو نه پس چه حضرت نبی کریمﷺ اوکتل چه ماسره څه نشته دې نو حضرت نبی کریمﷺ ما ته یو ډهال راکړو او بیا ئې دخلقو نه بیعت اخستل شروع کړل . بیا په آخری ځل ئې ما طرفته اوکتل او وې فرمائیل چه سلمه ته بیعت نه کوې څه؟ ما اووئیل چه یارسول الله چه په ړومبی ځل کوموخلقو بیعت کړې وو ما هغوئ سره بیعت کړې دې بیا درمیان کښې په دویم ځل هم اوکړو.نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه خیر بیا اوکړه.نو دې آخری جماعت سره په دریم ځل بیعت اوکړو. بیا حضرت نبی کریمﷺ ما طرفته مخ کړو او وې فرمائیل چه ائې سلمه ما تاته کوم ډهال درکړې ووهغه څه شو؟ ما اووئیل چه یارسول الله ﷺځما ملاقات حضرت عامر رضی الله عنه سره اوشو ما اوکتل چه هغه سره څه نه وو نو ما هغه ډهال هغه ته ورکړو. نو حضرت نبی کریمﷺ په خندا شو او وې فرمائیل چه ته هم دهغه سړی په شان ئې چه دهغه دالله ﷻ نه دعا اوکړه چه یاالله ماته ځوك داسې اولیږه چه هغه ماته ځما ځان نه هم خوږ وی .

**اخوګار صلح:-** بیا مکې والو دصلح تحریك کښې هلې ځلې اوکړې اوصلح اوشوه. څه دحضرت طلحه بن عبیدالله رضی الله عنه خادم اووم ما به دهغه او ذهغه د آس خدمت کولو. هغه به ما ته خوراك څكاك راکولو او ما خو خپل مال ،بچې دالله ﷻلار کښې پرینښودی وو او هجرت مې کړې وو. صلح اوشوه او دهغه خانې خلق دې طرفته اوددې طرفته خلق هغه طرفته تلل راتلل. یو ونې لاندې اوده شوم اودهغې خانې نه مې ازغی وغیره اخوا کړل . اچانك دمشرکین مکه څلور کسان هغه خانې ته راغلل او خپلو کښې ئې دحضرت نبی کریمﷺ شان مبارك کښې څه ګستاخانه خبرې کولې . دا په ما ډیر بد اولګیدل او څه د هغه خانې نه لاړم بل خانې کښې دونې لاندې څملاستم. هغه خلقو خپلې وسلې کوزې کړې او ونه کښې ئې زړوند کړې او هم هغه خانې څملاستل. لږ وخت پس ما واوریدل چه یو منادی آواز کوی چه ائې مجاهدینو رونړو ! حضرت دهیم قتل کړې شوې دې . څه زر پاسیدم او توره مې واخسته او دهغه ونې طرفته ورغلم چه کوم خانې کښې هغه څلور کسان اوده وو. ورتلو سره مې مخکښې دهغوئ وسله واخستله او خپل لاس کښې مې مضبوطه اونیوله او بل لاس سره مې توره اونیوله او ورته مې اووئیل چه په هغه الله قسم چه چا محمدﷺ ته عزت ورکړې دې که تاسو کښې چا هم سر پورته کړونو سر به ئې پریکړم . هر کله چه هغوئ دا اومنل نو ما ورته اووئیل چه پاسئ او ځما مخکښې مخکښې ځئ ، دا

(۱) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة : ٤١٨٦.
(۲) صحیح مسلم کتاب الامارة باب استحباب مبایعة الامام الجیش ....: ١٨٥٦.
(۳) صحیح مسلم حواله سابق : ١٨٥٨.
(۴) صحیح مسلم کتاب الجهاد باب البیعة فی الحرب علی ان ال یفروا : ٢٩٦٠، صحیح مسلم:
(۵) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب من بایع مرتین: ٧٢٠٨.

ځلور واره مې د حضرت نبی کریمﷺ خدمت کښې حاضر کړل. بل طرفته ځما تره عامر رضي الله عنه هم يودعبلات مکرز نومې مشرك راوستې وو. اوداشان نور هم اويا مشرکان د حضرت نبی کریمﷺ خدمت کښې حاضر کړې شوی وو. نو حضرت نبی کریمﷺ دوی طرفته اوکتل او وې فرمائيل چې دوي پريږدئ د بدئ شروع هم دوی کړې ده. او بيادې د تکرار ذمه دا هم دوی دی. نو ټول پرېښودې شو. هم ددې بيان دې آيت مبارك کښې شوې دې چه ﴿ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم ﴾ الخ. [1]

**د بيعت کوونکو فضيلت**:- دحضرت سعيد بن مسيب پلار هم په دې موقع حضرت نبی کریمﷺ سره وو. د دوی بيان دې چه راتلونکی کال مونږ کله حج ته لاړو نو زمونږ نه دهغه ونې ځائې هير شوې وو مونږ هغه معلومه نه کړې شوه چه په کوم ځائې کښې حضرت نبی کریمﷺ مونږ نه بيعت اخستې وو. اوس که تاسو باندې دا راز ښکاره شی نو تاسو پوهه شئ. [2] يو روايت کښې حضرت جابر رضي الله عنه نه مروی دی چه نن په مخ دزمکې چه څومره هم دی په هغه ټولو کښې تاسو بهتر يئ. دوی فرمائی چه که چرې ځما سترګې وې نو مابه تاسو ته دهغه ونې ځائې خودلې وې [3] حضرت سفيان رضي الله عنه فرمائی چه دهغه ځائې په تعين کولو کښې ډير اختلاف دې. حضرت نبی کریمﷺ فرمائی چه په دې بيعت کښې کومو خلقو بيعت کړې وو هغوئ کښې به هيڅوك هم جهنم ته نه ځی [4] (بخاری ومسلم) او يوروايت کښې دی چه کومو خلقو ددې ونې لاندې ځما په لاس بيعت کړې دې ټول به جنت ته داخليږی خو سور اوس والا نه، مونږ لاړو چه اومو کتل نو يو سړې داوښ تلاش کښې دې. مونږ ورته اووئيل چه ځه لاړشه بيعت اوکړه. خو هغه اووئيل چه بيعت نه زياته فائده خو په دې کښې ده چه خپل ورك شوې اوښ راپيدا کړم. [5] مسند کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائيل چه څوك به ثنية المرار ته اوخيژی. دده نه به لرې شی چه کوم د بنی اسرائيلونه لرې شو. نوټولو نه مخکښې د قبيله بنوخزرج يو صحابی په دې اوختلو. بيا نورخلق هم اوختل. بيا حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائيل چه تاسو ټول به بخښلې شئ خو سور اوښ والا نه. مونږ هغه ته ورغلو او ورته مو اووئيل چه ستا دپاره به حضرت نبی کریمﷺ نه بخښنه اوغواړو. خوهغه جواب کښې اووئيل چه په الله قسم که ماته ځما اوښ ملاؤ شی نو ځه به ډير خوشحاله شم په نسبت ددې چه ستاسو صاحب حضرت نبی کریمﷺ ما دپاره استغفار اوکړی. دې سړی خپل ورك شوې اوښ تلاش کولو [6] حضرت حفصه رضي الله عنها چه کله د حضرت نبی کریمﷺ نه دا واوريدل چه ددې بيعت والا به دوزخ کښې نه وی نو چرته به وی؟ نو حضرت نبی کریمﷺ هغه منع کړه نو مور بی بی دا آيت اولوستو چه ﴿ وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴾ يعنی تاسو کښې به هر سړې دې کښې داخليږی حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائيل چه ددې نه پس فرمان دې چه ﴿ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴾ الخ يعنی بيا به مونږ تقوی والو ته نجات ورکړو. اوظالمان به په دې کښې التيه ورغوزار کړو (مسلم) [7]

**د حاطب رضي الله عنه فضيلت**:- دحضرت حاطب بن ابوبلتعه رضي الله عنه غلام دحضرت حاطب رضي الله عنه شکايت حضرت نبی کریمﷺ ته اوکړو او وې وئيل چه يارسول اللهﷺ! حاطب به ضرور جهنم ته ځی. نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائيل چه ته دروغژن ئې هغه په بدر او حديبيه کښې موجود وو. ددې بزرګانو صفت بيانيږی

[1] صحيح مسلم كتاب الجهاد باب غزوة ذى قرد وغيرها: ١٨٠٧.
[2] صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الحديبية : ٤١٦٤، صحيح مسلم: ١٨٥٩.
[3] صحيح بخارى حواله سابق : ٤١٥٤، صحيح مسلم : ١٨٥٦ دلائل النبوة : ١٩٧/٤.
[4] احمد: ٣٥٠/٣، ابوداود كتاب السنة باب فى الخلفاء : ٤٦٥٣، وسنده صحيح ترمذى: ٣٨٦٠.
[5] ابن ابى حاتم
[6] صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب صفات المنافقين : واحكامهم : ٢٧٨٠.
[7] صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب من فضائل حاطب بن ابى بلتعه واهل بدر رضي الله عنه : ٢٤٩٥.

چې داد ه الله ﷺ سره بیعت کوی ددوي په لاسونو دالله ﷻ لاس وی ، ددې بیعت ماتولو والا د خپل ځان نقصان کوی او ددې پورا کولو والا دې،دده اجر ډیر زیات دې. لکه فرمانی چه ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾الخ، یعنی الله ﷻ ایمان والو نه راضی شو او هغوئ دونې لاندې ستاسو نه بیعت اوکړو. ددوی دزړونو ارادې الله ﷻ ته معلومی شوې.بیا مونږ په دوی دلجمعی مو نازله کړه او د نزدې فتح مو دوی ته ورکړه .

سَيَقُولُ لَكَ
| وائی به | تاته |
کوم باندېچیان چې (په دې سفر کښې) روستو

الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا
روستو پاتې شوی خلق | دباندېچیاونه | چې مشغوله کړو مونږ لره | مالونه زمونږه | او بال بچ زمونږ
پاتې شوی وو(هغوئ به درته اووائی چې مونږ زمونږ مال اوبال بچ مشغول کړي وو(خکه جهاد کښې شریک نشو

فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ۚ
پس ته بښنه اوغواړه دپاره زمونږه | وائی دوئ | په ژبو خپلو سره | هغه | چې نشته په زړونو ددوئ کښې
نوزمونږ دپاره الله ﷻ نه معافی اوغواړه(دوئ په خپلو ژبو باندې هغه خبرې کوی چې ددوئ په زړونو کښې نشته

قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ
ورته اووایه | پس څوك اختیار لری | تاسو لره | دفیصلې دالله | څه لږ شان | که اراده اوکړی الله په تاسو
ته اووایه څوک دی چې دالله ﷻ په مقابله کښې څه وس اولری | که هغه تاسو ته څه نقصان

ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا ۚ بَلْ كَانَ اللَّهُ بِمَا
دضرر رسولو | یا اراده اوکړی په تاسو | دنفعې رسولو | بلکه دی الله | په هغه څه |
رسول غواړی | یا تاسو ته فائده دررسول غواړی | (څوک څه کولې نشی) نه بلکه الله ﷻ

تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١١﴾ بَلْ ظَنَنْتُمْ أَنْ لَنْ يَنْقَلِبَ الرَّسُولُ
چې کوئ ئې تاسو | خبردار | بلکه خیال اوکړو تاسو | چې هرګز به واپس رانشی | رسول |
ستاسو په عملونو خبر دې | تاسو خویقین کړې وو چې رسول ﷺ او (په جهاد کښې شریک)

وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَىٰ أَهْلِيهِمْ أَبَدًا وَزُيِّنَ ذَٰلِكَ فِي قُلُوبِكُمْ
اومومنان | کوروالو خپلو ته | هیڅکله | او ښائیسته اولګیدلو | دا خیال | په زړونو ستاسو کښې
مومنان به چرې هم خپلو کورونو ته واپس رانشی | او دا خبره ستاسو په زړونو کښې

وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُورًا ﴿١٢﴾ وَمَنْ لَمْ يُؤْمِنْ
اوګمان اوکړو تاسو | ګمان دبدئ | اوئ تاسو | یو قوم | خراب انجام والا | اوهغه چاچې ایمان رانوړو
ښائسته ښکاره شوې وه | اوتاسو ډیره بدګمانی کړې وه | اوتاسو هلاکیدونکې قوم یئ | اوڅوک چې په

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَاِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ
په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | پس بيشكه چې تيار كړي دي مونږه| دپاره دكافرانو
الله ﷻ اودهغه په رسول ﷺ باندې ايمان نه راوړي | نو مونږ دكافرانو دپاره ددوزخ اور

سَعِيْرًا۝ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ يَغْفِرُ لِمَنْ
دلمبو وور | او الله لره ده | بادشاهي دآسمانونو | او دزمكې | ببنښنه كوي | هغه چاته
تيار كړي دي | اود آسمانونواو زمكې بادشاهي يوازې دالله ﷻ ده |د چا په حق كښې چې

يَّشَاۗءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا
چې خوښه يې شي | او عذابوي | هغه څوك | چې خوښه ئې شي | او دې الله| ببنښونكې
اوغواړي|نو ببنښنه وركړي |او چاته چې اوغواړي نو عذاب وركړي | اوالله ﷻ ببنښونكې

رَّحِيْمًا۝
مهربانه |
مهربان دې

قوله تعالى:- سَيَقُوْلُ لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ
دمنافقانو حيلې او بهانې: چه كومو اعرابو خلقو د جهاد نه مخ اړولې وو او حضرت نبى كريمﷺ سره ملګرتيا پرېښودې وه اودمرګ د ويرې دكورونو نه وتلى وو او دا ئې وئيل چه كفر زبردست طاقت به مونږ لره تباه كړي او دوى چه دومره لوئې جماعت سره جنګ كوى نو دوى به تباه شي.د خپلو بچو نه به جداشي او هم هلته به مړ شي. هركله چه دوى اوكتل چه حضرت نبى كريمﷺ د خپلوپاكو صحابه كرامو ﷺ سره ښه په خوشحالئ تشريف راوړى نو خپلو زړونوكښې ئې بهانې جوړولې چه خپل ځان برى كړى .بل طرفته الله ﷻ خپل نبى ﷺمخكښې نه خبردار كړې وو چه دا بد باطن والا خلق به تاسو ته رازى اودخپل ضمير خلاف خبرې كوى.اوعذرونه به پيش كوى چه يارسول اللهﷺ مونږ دخپلو بچو او كار نه نه وو فارغ .اومونږ خو ستاسو په حال كښې تابعدار يو.تاسو دپاره خو څمونږ ځان هم حاضر دې. دخپلې زياتې ايماندارئى دپاره به هم دااووائى چه ائې حضرت نبى كريمﷺ تاسو مونږ لره استغفار اوكړئى.نو تاسو ورته اوفرمائې چه ستاسو معامله الله ﷻ ته حواله ده هغه د زړونو د رازونو نه ښه واقف دې .كه هغه تاسو ته نقصان رسوى نو څوك دى چه هغه دفع كړى . اوكه هغه تاسو ته فائده رسول غواړى نو څوك دى چه هغه منع كړې شى؟ ستاسو د حيلو او بهانونه او ايماندارئى او نفاق نه هغه لوئې ذات ښه واقف دې . او ستاسو د يويو عمل نه ښه واقف دې . دهغه نه هيڅ څيز پټ نه دې .

قوله تعالى:- بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ
اصل كښې ستاسو روستو پاتې كيدل څه د عذر په وجه نه وو بلكه د نافرمانئ په وجه وو. صفا صفا ستاسو نفاق ددې اصل وجه وه. ستاسو زړونه دايمان نه خالى دى او په الله ﷻ مو بهروسه نشته دى . د رسول اللهﷺ په اطاعت مو يقين نشته دې . په دې و چه ستاسو ځانونو په تاسو ګران دى . تاسو خپله باره كښې څه چه د حضرت نبى كريمﷺ او صحابه كرام ﷺ باره كښې مو هم دا خيال كولو. دا مو وئيل چه دوى به قتل كړې شى او دوى به تباه شى (نعوذبالله) او په دوى كښې به يو هم پاتې نشى چه

ددوی خبر قدرې راوړی . دې بدو خیالونو تاسولره نامرد کړی وې . تاسو اصل کښې برباد شوی خلق یئ.ونیلې شوی دی چه﴿بوراً﴾ لغت عمان دې . چه کوم سړې خپل عمل نه خالص نه کوی او خپله عقیده مضبوطه نه ساتی نو هغوئ ته به الله ﷻ د دوزخ اور کښې عذاب ورکوی . اګر چه دوی په دنیا کښې دخپل باطن خلاف کوی .

بیا الله ﷻدخپل شهنشاهیت او دخپلو اختیاراتو بیان کوی چه مالك اومتصرف هم هغه ذات دې، هغه په بخشش او عذاب قادر دې . خو غفور ورحیم هم دې . چه څوك هم هغه طرفته تیښ شی نو الله ﷻ طرفته مائل شی. او چه څوك هم دهغه دروازه اوټکوی نو هغه دپاره خپله دروازه بیرته کوی که هغه هر څومره ګناهګار وی . اوکه دوی توبه اوباسی نو الله ﷻ هغه قبلوی.اودده ګناهونه بخښی. بلکه ده سره د مهربانئ او رحم معامله کوی .

سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ

| اووائی به | روستو پاتې کیدونکی خلق | کله چی | روان شئ تاسو | غنیمتونوته

ازرده چي (دجهاد نه) روستو پاتې کیدونکی خلق به اووائی | په هغه وخت کښې کله چی

لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيدُونَ

دپاره ددې چي تاسو واخلئ هغه | چی پریږدئ مونږه | چی مونږ پیروی اوکړو ستاسو | غواړی دوئ |

تاسو په غنیمتونو اخستو پسې روان شئ | چې مونږ هم پریږدئ چې درپسې شو | دوئ غواړی

أَن يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ ۚ قُل لَّن تَتَّبِعُونَا

چی بدل کړی دوئ | فرمان دالله | ورته اووایه | هر ګز به تاسو پیروی اونهٔ کړئ زمونږ |

چی دالله ﷻ حکم بدل کړی | ته اووایه چې تاسو هیڅرې مونږ سره تلې نه شئ |

كَذَٰلِكُمْ قَالَ اللَّهُ مِن قَبْلُ ۖ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا ۚ

هم داسې فرمانیلې وو الله | مخکښې ددې نه | پس اوبه وائی دوئ | بلکه | تاسو حسد کوئ زمونږ سره

الله تعالی د وړاندې نه دغه شان دا حکم کړې دې | دوئ به اووائی چې تاسو مونږ سره حسد کوئ

بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٥﴾

بلکه دی دوئ | چی نهٔ پوهیږی | مګر ډیر کم |

نه خبره داده چې دوئ ډیر کم پوهیږی

قوله تعالی:- سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ

**دخیبر غنیمت حدیبیه والو دپاره** :دالله ﷻ ارشاد دې چه کومو باندېچیانو خلقو حدیبیه کښې دالله درسول ﷺ اودصحابه کرام رضی الله عنهم ملګرتیا او نه کړه نودوی چه کله دخیبر په موقع دغنیمت مال اخستلو دپاره خلق په تګ اووینی نو دوی به خواهش کوی چه مونږ هم ځان سره بوزئی . دمصیبت کتلو سره روستو شو او د راحت کتلو سره شاملیدل غواړی . نو په دې وجه الله ﷻحکم کوی چه دوی بالکل ځان سره مه بوځئ . هرکله چه دوی د جنګ نه روستو شو نو دغنیمت مال کښې ددوی څه حصه .؟ الله ﷻ د خیبر د غنیمت وعده حدیبیه والو سره کړې ده اوهغه خلقو سره نه چه کوم په مشکل وخت کښې روستو شی او دآرام وخت کښې رامخکښې شی . دوی غواړی چه دالله ﷻ کلام بدل کړو. یعنی الله ﷻ خوصرف حدیبیه والو سره وعده کړې ده او دوی غواړی چه د خپلې غیرحاضرئی باوجود دالله ﷻ دې

وعده کنبي شامل شی دا وعده هم بدله ثابت شی.ابن زید وائي چه ددې نه مراد دالله ﷻ حکم دې ﴿فَإِنْ رَّجَعَكَ اللهُ إِلَىٰ طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا وَلَن تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا﴾ :يعني اې نبي ﷺ! که تاسو الله ﷻ دوی کښې یو ډلې طرفته بوځي اوهغوئ تاسونه د جهاددوتلواجازت اوغواړي نو تاسو دوی ته اووائې چه مونږ سره بالکل مه ځئ او ما سره وتلو کښې د یو دښمن سره مقابله کولودپاره مه اوځئ. ځکه چه تاسو په رومبي ځل وتلوکښې مونږ نه روستو پاتې کیدو باندې خوشحاله وې . نو اوس تاسو همیشه ناستو سره ناست اوسئ.

خودې قول کښې نظر دې ځکه چه دادسورة برآت آیت مبارك دې چه د غزوه تبوك باره کښې نازل شوې دې.او غزوه تبوك د حدیبیه نه پس شوې وه. د ابن جریح رحمه الله قول دې چه ددې نه مراد ددې کافرو د مسلمانانو خان سره جهاد کښې شریکول نه منع ده . فرمائی چه دوی ته ددوی دخواهشونو جواب ورکړئی که تاسو سره تلل غواړی نو دې نه مخکښې الله ﷻ وعده حدیبیه والو سره کړې ده. په دې وجه تاسو مونږ سره نه شئ تلې. ا وس به دوی پیغور ورکوی چه ښه ده مونږ ته معلوم شو چه تاسو مونږ نه یوزئی چه هسې نه مونږ ته هم دغنیمت مال ملاؤ شی . الله ﷻفرمائی چه اصل دا ددوی ناپوهی ده . او په دې یو باندې خه موقوف دا ټول سراسر ناپوهه دی .

| قُلْ لِّلْمُخَلَّفِينَ |
|---|
| اووایه دې روستو پاتې کیدونکوته |
| (ته روستو پاتې کیدونکو |

| مِنَ الْأَعْرَابِ | سَتُدْعَوْنَ | إِلَىٰ قَوْمٍ | أُولِي | بَأْسٍ |
|---|---|---|---|---|
| دباندېیسیانو نه | چی زر دې رااوبه بللې شئ تاسو | یوقوم ته | چی خاوندان | دجنګ سخت دی |
| باندېچیانو ته اووایه \| چې ډیر زر به تاسو یو جنګیالی خلقو سره مقابلې کولو نه راؤبللې شئ \| | | | | |

| شَدِيدٍ تُقَاتِلُونَهُمْ | أَوْ يُسْلِمُونَ | فَإِنْ تُطِيعُوا |
|---|---|---|
| چی جنګ به کوئ تاسو دهغوئ سره | یا به اسلام قبلوی هغوئ | پس که تاسو حکم اومنو دجهاد |
| نو یا به ورسره جنګونه کوئ \| او یا به هغوئ مسلمانان شی \| ..............بیاکه تاسو حکم اومنئ | | |

| يُؤْتِكُمُ اللهُ | أَجْرًا حَسَنًا | وَإِنْ تَتَوَلَّوْا | كَمَا | تَوَلَّيْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نو دربه کړي تاسو ته الله | اجر ښه | او که مخ واړوئ تاسو | لکه څنګه چی | مخ اړولې وو تاسو |
| نو الله ﷻ به تاسو ته ښه اجر درکړی \| اوکه تاسو مخ واړولو \| .............لکه څنګه چې مو | | | | |

| مِّنْ قَبْلُ | يُعَذِّبْكُمْ | عَذَابًا أَلِيمًا | لَيْسَ | عَلَى الْأَعْمَىٰ |
|---|---|---|---|---|
| مخکښې ددې نه | نو عذاب به درکړی تاسو له | عذاب دردناك | نشته | په ړوند باندې |
| وړاندې مخ اړولې وو \| نو الله ﷻ به تاسو ته دردناک عذاب درکړی \| نه په ړوند باندې خه ګناه شته | | | | |

| حَرَجٌ | وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ | حَرَجٌ | وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ | حَرَجٌ |
|---|---|---|---|---|
| خه ګناه | اونه په ګوډ باندې | خه ګناه | اونه په مریض باندې | خه ګناه |
| ............اونه په ګډشل باندې خه ګناه شته \| ...........اونه په بیمار خه ګناه شته \| | | | | |

| وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | يُدْخِلْهُ | جَنّٰتٍ |
|---|---|---|---|
| او هغه څوک چې حکمونه منې دالله | او درسول دهغه | نو داخلوی به هغه | داسې جنتونو ته |
| اوڅوک چې دالله ﷻ اودهغهٔ د رسول ﷺ تابعداری اوکړی نو هغه به ئې داسې باغونو ته داخل کړی | | | |

| تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | وَمَنْ | يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ |
|---|---|---|---|---|
| چې بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | او څوک | چې مخ واړوی نو عذابوی به هغه |
| چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږی اوڅوک چې ترې مخ واړوی نو هغه ته به دردناک | | | | |

| عَذَابًا اَلِيْمًا |
|---|
| په عذاب دردناک سره |
| عذاب ورکړی |

**قوله تعالى:- أُولِيْ بَأْسٍ شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ اَوْيُسْلِمُوْنَ**

**سخت جنګ کولو والا کوم یو قوم دې** :-هغه سخت جنګ کولو والا کوم یو قوم دې چه تاسو به هغوئ د جنګ کولوډپاره بللې شئ ؟ په دې کښې ډیر اقوال دی.یو داچه ددې نه مراد قبیله هوازن ده. دویم دا چه ددې نه مراد قبیله ثقیف دی . دریم دا چه دې نه مراد قبیله بنو حنیفه دی ، څلورم دا چه ددې نه مراد اهل فارس دی. پنځم دا چه دې نه مراد رومیان دی . شپږ م دا چه دې نه مراد بت پرست دی. بعضې وائی چه ددې نه مراد څه یو خاص قوم یا قبیله نه ده بلکه مطلق جنګ کولو والا قوم مراد دې چه تر اوسه پورې مقابلې ته نه دې راغلې . حضرت ابوهریر رضی الله عنه فرمائی چه ددې نه مراد کرد خلق دی. یومرفوع حدیث مبارک کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه تر هغه به قیامت قائم نه شی تر کومې چه تاسو یو داسې قوم سره جنګ ا ونه کړئی چه دهغوئ سترګې وړې وړې وی. او پوزه به ئې چیته وی.ددوی مخونه به لکه د ډهالونو وی (1) حضرت سفیان رضی الله عنه فرمائی چه ددې نه مراد ترک دی. یو حدیث مبارک کښې چه تاسو به یو قوم سره جهادکونې چه دهغوئ پیزار به د وېښتو په شان وی (2) حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه ددې نه مراد کرد دی. بیا فرمائی چه دوی سره جهاد کول تاسو باندې مشروع کړې شوی دی . او دا حکم به باقی وی . الله ﷻ به ددوی په خلاص ستاسو مدد کوی او یا دا چه دوی به پخپله اسلام قبول کړی. بیا ارشاد فرمائی که تاسو اومنئ او جهاد دپاره لاړشئ او حکم اومنئ نو تاسو به ډیرې نیکئ ملاویږی. اوتاسو هم هغه اوکړل چه کوم تاسو دحدیبیه په موقع کړی وو یعنی بزدلئی سره ناست وې او جهاد کښې مو شرکت اونه کړو او د احکامو نه مو مخ واړولو نو تاسو لره به المناك عذاب وی .

**قوله تعالى:- لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ**

دجهاد دپرېښودو چه کوم صحیح عذر دې د هغې بیان کیږی . نودوه عذرونه ئې بیان فرمائیلی دی چه لازمی دی . یعنی ړوندوالئ،ګوډوالئ. او یو عذر ئې هغه بیان اوفرمائیلو چه کوم عارضی دې. لکه بیماری چه څو ورځې وی او بیا ختمه شی. نودوی هم دخپلې بیمارئ په زمانه کښې معذور دی.خو د

---

(1) صحيح بخارى كتاب الجهاد: باب قتال الذين ينتعلون الشعر : ٢٩٢٩، صحيح مسلم : ٢٩١٢ ، ابوداود : ٤٣، ترمذى : ٢٢١٥ ، ابن ماجه : ٤٠٩٦ ، احمد: ٢٣٩/٢ ابن حبان : ٦٧٤٤.

(2) صحيح مسلم كتاب الفتن ، باب لاتقوم الساعة حتى يمر .....) : ٢٩١٢ ،

رغیدو نه پس دوی معذور نه دی. بیا دجهاد ترغیب ورکوی چه دالله درسول فرمانبردار جنتی دی او چه څوك دجهاد نه مخ واړوی او سراسر دنیا طرفته شی ، معاش پسې شی نو دده سزا دنیا کښې ذلت او آخرت کښې تکلیف دې .

| لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ | عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ | إِذْ يُبَايِعُوْنَكَ |
|---|---|---|
| بیشکه راضي شو الله | دمومنانونه | کله چې هغوئ لوظ کولو ستا سره |
| بیشکه الله ﷻ دمومنانو نه رضا شو کله چې هغوئ ستا په لاس | | |

| تَحْتَ الشَّجَرَةِ | فَعَلِمَ | مَا | فِيْ قُلُوْبِهِمْ | فَأَنْزَلَ |
|---|---|---|---|---|
| لاند دوني نه | پس خبروؤ الله | دهغې نه | چې په زړونو دهغوئ کښې وؤ | پس نازلې ئې کړو |
| دونې لاندې بیعت کولو او الله ﷻ ته دهغوئ د زړونو خبرې ښه معلومې دی نو الله ﷻ | | | | |

| السَّكِيْنَةَ | عَلَيْهِمْ | وَأَثَابَهُمْ | فَتْحًا قَرِيْبًا ⑱ | وَّمَغَانِمَ كَثِيْرَةً |
|---|---|---|---|---|
| اطمینان | په هغوئ باندې | او ورنې کړه هغوئ ته | فتحه نزدې | او غنیمتونه ډیر |
| ورته اطمینان نصیب کړو او هغوئ ته ئې یوه نزدې ګټه ورکړه .......او (ورسره) ډیر غنیمتونه | | | | |

| يَّأْخُذُوْنَهَا | وَكَانَ اللّٰهُ | عَزِيْزًا | حَكِيْمًا ⑲ |
|---|---|---|---|
| چې وابه خلي دوئ هغه | او دې الله | غالب | حکمت والا |
| چې داخلق ئې اخلي او الله ﷻ غالب دې صاحب د حکمت دې | | | |

**قوله تعالی:- تَحْتَ الشَّجَرَةِ**

**حدیبیه کښې د ګیکر مبارکه ونه او بیعت رضوان** :-مخکښې بیان شوی دی چه دا بیعت کونکو شمیر کښې څوارلس سوه وو. اودا ونه دببول وه چه په حدیبیه میدان کښې وه. حضرت عبدالرحمان رضي الله عنه چه کله حج ته لاړو نو وې کتل چه څه خلق یو ځائې کښې مونځ اداکوی . نوتپوس ئې اوکړوچه څه کوني ؟ نو جواب کښې ورته اوونیلې شوچه داهغه ونه ده چه کوم ځائې حضرت نبی کریم ﷺ بیعت الرضوان اخستې وو. حضرت عبدالرحمان واپس راغلو او دا ټوله قصه ئې حضرت سعید بن مسیب رحمه الله ته بیان کړه. نو دوی اوفرمائیل چه څما پلار هم په هغه بیعت کښې شامل وو خو هغه فرمائی چه مونږ په دویم کال هلته لاړو خو مونږ ټولو ته هغه ونه معلوم نه وه چه چرته ده . حضرت سعید بن مسیب رحمه الله اوفرمائیل چه تعجب دې چه اصحاب رسول چه په خپله بیعت کونکي وو هغوئ ته دا ځائې معلوم نشو او تاسو ته معلوم شو تاسو ولې د اصحاب رسول نه هم زیات پوهه یئ څه؟[1] بیا فرمائی چه ددوی د زړه نیت صداقت او وفا الله ﷻ ته معلوم شوه . نو ددوی زړونو کښې مو اطمینان واچولو او د نزدې فتح ئې انعام کښې اورسیدله. دا فتح هغه صلح ده چه کومه په حدیبیه کښې شوې وه. او دې سره عام خیر حاصل شو. او دې ته نزدې خیبر فتح شوه او بیا لږ وخت پس مکه فتح شوه. او بیا نورې قلعې او علاقې فتح کیدې.او بیاورته هغه عزت او نصرت او وقار حاصل شو چه دنیا ورته ګوته په خوله پاتې شوه . په دې وجه ئې اوفرمائیل چه ډیر غنیمتونه به ورکړو. رینبتونی حکمت والا او کامل حکمت والا صرف الله ﷻ دې . ابن ابی حاتم کښې دی چه مونږ د حدیبیه په میدان کښې د غرمې په وخت کښې آرام کولو چه په دې کښې د حضرت نبی کریم ﷺ منادی آواز اوکړو چه ائې خلقو راشئ بیعت اوکړئ روح القدس راغلې دې . مونږ په منډه منډه حاضر شو . حضرت نبی کریم ﷺ په هغه وخت کښې د ببول

[1] صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیة : ٤١٦٣.

ونې لاندې ناست وو او مونږ ترې بيعت اوکړو. اوددې ذکر آيت ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ﴾ کښې دې. حضرت عثمان رضي الله عنه طرفنه حضرت نبی کریم ﷺ يو لاس دبل لاس دپاسه کيخودو او پخپله ئې بيعت اوکړو. ﷺ مونږ اوونيل چه عثمان رضي الله عنه ډير خوش نصيب دې چه مونږ دلته ناست يو اوهغه هلته دبيت الله شريف طواف کوی.دې آوريدو سره حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا بالکل ممکن نه دی چه حضرت عثمان رضي الله عنه خما نه مخکښې طواف اوکړی. اګر چه ډيرو کلونو پورې ايسار وی

| |
|---|
| وَعَدَكُمُ اللّٰهُ |
| وعده اوکړه ستاسو سره الله |
| الله ﷻ تاسو سره د(نورو) |
| مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ |
| دغنيمتونو ډيرو \| چی رابه خلئ تاسو هغه \| پس زر ئې درکړه \| تاسو لره \| دا فتحه \| او منع ئې کړل |
| ډيرو غنيمتونو وعده کړې ده \| چې تاسو به ئې اخلئ(نو دهغې) نه دا يو (کته) ئې لاس په لاس درکړه \| او تاسو نه |
| اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ ۚ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ |
| لاسونه دخلقو \| ستاسو نه \| او چې شي \| يوه نښه \| دپاره دمومنانو \| او چې اوښائي تاسو ته |
| ئې دخلقو (کافرانو) لاسونه منع کړل \| او دا د دې دپاره چې دمومنانو دپاره يوه نمونه شي \| اوچې تاسو |
| صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ۙ وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا |
| لاره \| نيغه \| او نور غنيمتونه \| چې قادر شوی نه يئ تاسو \| په هغې باندې \| |
| په نيغه لاره روان کړي \| ........او يوه بله (کټه) هم (نزدې) ده \| چې لاتاسو پرې قابو نه دي موندلې |
| قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ۞ وَلَوْ قٰتَلَكُمُ |
| احاطه کړې ده الله \| په هغې \| او دې الله \| په هر څيز باندې \| قادر \| اوکه جنګ کړې وې ستاسو سره |
| خوالله تعالی په خپله احاطه کښې اخستې ده \| او الله ﷻ په هرڅيز قادردې \| اوکه دوی (کافرانو) تاسو |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ |
| هغه کسانو \| چې کفر ئې کړې دې \| نو خامخا به ئې ګرخولې وې \| شاګانې \| بيا په ئې نه موندلې |
| سره جنګ کړې وې \| نو په شا به تښتيدلی وو \| ............................ بيا به ئې نه څوک |
| وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ۞ سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۚ |
| څوك دوست \| او نه مددګار \| دا طريقه دالله ده \| هغه \| چې تيره شوی ده \| مخکښې ددې نه |
| دوست موندلې وو \| اونه څوک مددګار \| هم دا د الله ﷻ قانون دې \| چه د وړاندې جاری راروان دې |
| وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ۞ وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ |
| او هر ګز به نه اونه وينې \| طريقې دالله لره \| څه تبديلی \| او هغه هغه ذات دې \| چې منع ئې کړل |
| اوته به دالله ﷻ په قانون کښې هيڅ بدلون بيانه مومې \| ............... او الله ﷻ هغه ذات دې چې |

| اَيۡدِيَهُمۡ | عَنۡكُمۡ | وَاَيۡدِيَكُمۡ | عَنۡهُمۡ | بِبَطۡنِ مَكَّةَ | مِنۡۢ بَعۡدِ |
|---|---|---|---|---|---|
| لاسونه دهغوئ | ستاسو نه | او لاسونه ستاسو | دهغوئ نه | په ګېډه دمکې کښې | روستو ددې نه |
| دهغوئ لاسونه ئې ستاسونه اوستاسو لاسونه ئې دهغوئ نه دمکې په سرحد باندې | | | | | |
| اَنۡ اَظۡفَرَكُمۡ | عَلَيۡهِمۡ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | بِمَا | تَعۡمَلُوۡنَ | |
| چې غالب ئې کړئ تاسو | په هغوئ باندې | او دې الله | په هغه کارونو باندې | چې تاسو ئې کوئ | |
| بند کړل دهغې نه پس چې تاسوته ئې په هغوئ باندې قابو درکړې وو او الله ﷻ ستاسو کارونه | | | | | |
| بَصِيۡرًا ۞ | | | | | |
| ليدونکې | | | | | |
| ليدل کتل | | | | | |

**قوله تعالى:- وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيۡرَةً**

**د معاهده حديبيه دفعات او د مغانم کثير مطلب**: ددې ډير غنيمتونونه مراد د حضرت نبي کريم ﷺ د زمانې نه پس غنيمتونه دى. دزر غنيمت نه مراد د خيبر نعمت دې اود حديبيه صلح ده ([1]) دهغه لوئې الله ﷻ احسان دا هم دې چه دکفارو بدې ارادې الله ﷻ پورا نه کړې، اود مکې دکافرانو، او نه دهغه منافقانو چه ستاسو نه روستو مدينه کښې پاتې وو، نه به په دوى په تاسو حمله کولې شى اونه به ستاسو بچوته نقصان رسولې شى. دا په دې وجه چه مسلمانانو ته معلوم شى چه اصل حافظ او ناصر الله ﷻ دې. نو د دښمنانو په کثرت او په خپل قلت مه ويريږئ اودا هم يقين اوکړئ چه د هر کار انجام باندې الله ﷻ علم لرى. دبندګانو په حق کښې خير دادې چه دوى د الله ﷻ په فرمان عمل اوکړى او هم په دې کښې خپل خير اوګنړئ. اګر چه هغه فرمان په ظاهره خلاف طبع وى. دا ممکن دى چه تاسو کوم يو څيز نه خوښوئى او هم هغه ستاسو دپاره بهتر وى. او هغه به تاسو ته ستاسو د حکم منلو او اتباع رسول او ربنتونې قربانۍ په وجه نيغه لار اوښائى. اوتاسوته به نور نعمتونه او فتح درکړى او هغه ستاسو بس کښې نه دى. خوالله ﷻ به پخپله ستاسو مدد اوکړى اوتاسو باندې به دا مشکلات آسان کړى. ټول څيزونه دالله ﷻ بس کښې دى. دهغه پاك ذات نه چه کوم بندګان ويريږى نو هغه ذات ورته داسې ځائې نه روزى ورکوى چه د نورو په خيال کښې لا څه چه ددوى خپل کښې هم نه وى. ددې غنيمت نه مراد دخيبر فتح ده يا فتح مکه وه يا د روم او فارس مال دې. او ددې وعده په صلح حديبيه کښې پته وه. يا هغه ټول مالونه دى چه تر قيامته به مسلمانانو ته ملاويږى ([2]) بيا الله ﷻ مسلمانانوته زيرې ورکوى چه دوى دې د کفارو نه نه مرعوب کيږى او نه دې ترې ويريږى. که کافران مقابلې ته راغلل نو الله ﷻ به دخپل رسول ﷺ مدد کوى او دې بې ايمانوته به شکست ورکوى. او دوى به په شاشى او ددوى به هيڅ ولى او مددګار نه وى. ځکه چه دوى دالله ﷻ رسول سره جنګ دپاره راغلى دى اودالله ﷻ ايمانداره بندګانو پسې شوى دى.

**قوله تعالى:- سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيۡ قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلُ**

**چې حق راشى نو باطل مغلوب شى، دالله تعالى قانون دې**: بيا فرمائى چه هم دا الله ﷻ عادت دې چه کله د کفراو ايمان مقابله وى نو ايمان لره په کفر غالب کوى. او حق ظاهر کړى او کفر باطل کړى. لکه څنګه

---

[1] الطبرى: ٢٣٠/٢٢.
[2] الطبرى: ٢٣٣/٢٢.

چه دبدر په ورځ ډیر کافران چه هر څه ورسره وو خوبیاهم د مسلمانانو مقابله کښې شکست خوړه شو. بیاالله ﷻ فرمائی چه څما دا احسان هم مه هیروئی چه ما تاسو دمشرکانو لاسونو کښې ورنکړئی. او تاسو مې هم مسجد حرام سره د جنګ کولونه منع کړئی. او تاسو کښې اودوی کښې مې صلح اوکړه چه سراسر ستاسو حق کښې بهتر وه. که ددنیا اعتبار سره وی او که د آخرت اعتبار سره وی. هغه حدیث به یاد وی چه ددې سورة په تفسیر کښې په روایت د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه تیر شوې دې.
چه کله صحابه کرام رضی الله عنهم کافران تړلی د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر کړل نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دوی پریږدئی هم ددوی طرفنه شروع شوې ده . او هم ددوی طرفنه دې دوباره شروع وی. نو هم په دې بابت کښې دا آیت مبارك نازل شو. مسند احمد کښې د چه اتیا (٨٠) کافران وسلې سره د جبل تنعیم طرفنه راغلل خو حضرت نبی کریم ﷺ غافل نه وو او حضرت نبی کریم ﷺ زر خلق خبر کړل او هغه ټول ئې ګرفتار کړل . او حضرت نبی کریم ﷺ ته ئې پیش کړل . نو حضرت نبی کریم ﷺ د مهربانئ په طور دهغوئ خطاء معاف کړه او ټول ئې آزاد کړل [1] هم ددې بیان په دې آیت مبارك کښې کیږی . داحدیث مبارك نسائی، ابوداود، ترمذی او مسلم کښې دې. حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه فرمائی چه دکومې ونې ذکر قرآنپاك کښې دې اودهغې لاندې حضرت نبی کریم ﷺ ناست وو مونږ هم هغوئ نه ګیرچاپیره ناست وو. دهغه ونې ښاخونه د حضرت نبی کریم ﷺ شا مبارکې سره لګیدلی وو. حضرت علی رضی الله عنه و سهیل ابن عمرو د حضرت نبی کریم مخامخ وو. حضرت نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه بسم الله الرحمان الرحیم اولیکه . نو په دې سهیل بن عمرو د حضرت علی رضی الله عنه لاس مبارك اونیولو او وې وئیل چه مونږ رحمان او رحیم نه منو. دا صلح نامه دې خمونږ دددستور مطابق اولیکلې شی . نو دوی اوفرمائیل چه ﴿ باسمك اللهم ﴾ اولیکه. بیا ئې اولیکل چه دا هغه دی چه په دې دالله ﷻ رسول ﷺ اهل مکې سره صلح اوکړه . نو په دې سهیل بن عمرو د حضرت علی رضی الله عنه لاس اونیولو او وې وئیل که ته دالله ﷻ رسول ئې نو بیا خو مونږ ډیر زیات ظلم کړی دی . په دې صلح نامه کښې هغه اولیکئی چه کوم مونږ کښې مشهور دی. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اولیکه دا هغه دی چه د محمدبن عبدالله علیه السلام اهل مکه سره اوکړه. په دې کښې دیرش خوانان کفار تړلی شوی راوستې شو. نو حضرت نبی کریم ﷺ دهغوئ حق کښې بددعا اوکړه نوالله ﷻ هغوئ ړانده کړل. مونږ پاسیدو اوهغوئ مو پیش کړل . نو حضرت نبی کریم ﷺ هغوئ ته اووئیل چه چاتاسو ته امان درکړې دې؟ یا تاسو د چاپه ذمه دارئی راغلی یئ؟ هغوئ انکار اوکړو. خو ددې باوجود حضرت نبی کریم ﷺ هغوئ معاف کړل اوهغوئ ئې پرېښودل .نو دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿ هوالذی ﴾ [2] نسائی.
ابن جریر کښې دی چه کله حضرت نبی کریم ﷺ دقربانئ څناور څان سره واخستل او ذوالحلیفه ته اورسیدل نو حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ورته اوفرمائیل چه یارسو الله ﷺ! تاسو دیو داسې قوم کلې ته ورځئ چه هغوئ جنګ ته تیار دی او تاسو سره وسله وغیره هم نشته دې . حضرت نبی کریم ﷺ کسان اولیږل او وسله ئې راوغوښتله. هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ مکې ته نزدې شو نو مشرکانو دوی ایسار کړل چه تاسو به مکې ته نه ځئ . حضرت نبی کریم ﷺ سفر جاری اوساتلو او منی ته اورسیدل. د حضرت نبی کریم ﷺ جاسوسانو خبرورکړوچه عکرمه بن ابوجهل پنځه سوه لښکر سره تاسو باندې حمله کولووالا دې. نو حضرت نبی کریم ﷺ خالد بن ولید رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه ائې خالد ستا د تره خوئی لښکر راروان وی . نو حضرت خالد رضی الله عنه اوفرمائیل چه څه اوشو؟ څه دالله ﷻ توره یم او دهغه درسول ﷺ (هم ددې ورځې نه ددوی لقب سیف الله شو) تاسو چه ما چرته لیږئی او دچا مقابلې دپاره مې لیږئی نو

[1] باب قول الله تعالی ( وهو الذی کف ایدیهم عنکم) : ١٨٠٨ ، ابوداود: ٢٦٨٨، ترمذی : ٣٢٦٤، السنن الکبری : ٩٦٦٧.
[2] السنن الکبری للنسائی : ١١٥١١، احمد: ٨٦/٤ ، وسنده حسن حاکم : ٤٦٠/٢ بیهقی : ٣١٩/٦).

خم به. نو د دوی عکرمه مقابله دپاره روان کړې شو او يو غر سره ددوی مينځ کښې مقابله اوشوه. حضرت خالد داسې سخته مقابله اوکړه چه عکرمه ټينګ نشو او حضرت خالد رضي الله عنه هغه تر مکې کوڅو پورې اورسولو. عکرمه دوباره مقابلې ته راغلو خو دې خل نې هم شکست اوخوړلو او دمکې کوڅو پورې اوتښتيدو. بيا په دريم خل راغلو خو دې خل هم ناکام شو. هم ددې بيان دې آيت ﴿وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ﴾ کښې دې. نوالله ﷻ د حضرت نبی کريم ﷺ د ظفرمندنی باوجود کفار هم بچ کړل هسې نه کوم مسلمانان مکه کښې دی او ضيعف او کمزوری دی چه هغوئ ته تکليف اونه رسی ( ).

خو په دې روايت کښې ډير زيات نظر دې. دا ممکن نه دی چه دا د حديبيه واقعه وی. ځکه چه په هغه وخت کښې خالد بن وليد رضي الله عنه نه وومسلمان شوې. بلکه د طلايه په ورخ د مشرکانو سردار وو. لکه څنګه چه صحيح حديث مبارك کښې موجود دی. اوداهم نشی کيدې چه دا واقعه د عمرة القضاء وی ځکه چه دحديبيه دشرطونو مطابق خو دا امر وو چه راتلونکی کال به حضرت نبی کريم ﷺ عمرې ادا کولو دپاره راځی. او درې ورځې به مکه مکرمه کښې تيروی. نوددې قرارداد مطابق کله چه حضرت نبی کريم ﷺ تشريف راوړو نوکافرو دې منع نه کړو او نه ئې دوی سره جنګ اوکړو. اودا هم نشی کيدې چه دا واقعه د فتح مکه وی ځکه چه د فتح مکه په کال حضرت نبی کريم ﷺ ځان سره دقربانئ څاروی نه وو بوتلی. هغه وخت کښې خو حضرت نبی کريم ﷺ دجنګ دپاره او جهاد دپاره تلی وو. نو په دې روايت کښې ډير خلل دې. او په دې کښې ضرور قباحت شويدې. په دې ښه پوهيدل پکار دی. والله اعلم.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه مولی حضرت عکرمه رضي الله عنه فرمائی چه قريشو خپل څلوېښت کسان اوليږل چه د حضرت نبی کريم ﷺ لښکر نه ګيرچاپيره ګرزی او ورته څه نقصان اورسوی. يا څو ګرفتار کړی اوهغه راولی. خو دې طرفته دا ټول په ټوله اونيولې شو. خو بيا حضرت نبی کريم ﷺ دوی معاف کړل او ټول نې پريښودل. هغوئ د حضرت نبی کريم ﷺ په لښکر باندې څه کاڼړی هم ويشتی وو او څه غشئ نې هم ويشتی وو([2]) داهم مروی دی چه يو صحابی چه هغه ابن زينم ونيلې کيدو دحديبيه په يو غونډئ باندې ختلې وو او مشرکانو په دې غشی ورولی وو او دوی نې شهيد کړی وو. حضرت نبی کريم ﷺ دوی پسې کسان اوليږل او دوی نې ګرفتار کړل او دوی شمير کښې دولس سواره وو. حضرت نبی کريم ﷺ دوی نه تپوس اوکړو چه تاسو سره خما د طرفنه څه امان شته دې؟ هغوئ اووئيل چه نه. حضرت نبی کريم ﷺ تپوس اوکړو چه څه وعده شته دې؟ هغوئ اووئيل چه نه. خو بيا هم حضرت نبی کريم ﷺ هغوئ ټول پريښودل او دې باره کښې آيت ﴿وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ﴾ نازل شو.

| هُمُ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَصَدُّوْكُمْ | عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ | |
|---|---|---|---|---|
| دوئ هغه کسان دي | چې کفر ني اوکړو | او منع ني کړئ تاسو | دمسجد حرام نه | |
| داهغه خلق دی چې کفر ئې کړې دې اوتاسو ئې د مسجد حرام نه منع کړئ يې | | | | |
| وَالْهَدْيَ | مَعْكُوْفًا | اَنْ يَّبْلُغَ | مَحِلَّهٗ ط | وَلَوْلَا رِجَالٌ |
| او دقربانئ اوښان | منع کړي شوي | ددې نه چې اورسي | خاني دقربانئ ته | او که چرې نه وې سړي |
| اودقربانئ څاروی ئې خپل ځائې ته درسيدو نه منع کړی دی او که چرې دا ويره نه وې چې ډير | | | | |

[1]) الطبری : ۲۳۹/۲۲.

[2]) الطبری : ۲۳۷/۲۲.

مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَئُوْهُمْ

مومنان | او ښځي | مومناني | چي نهٔ پيژندل تاسو هغوئ | چي تاسو به اوچقوئ هغوئ |

مومنان سړي او ډيري مومناني ښځي به تاسو دپښو لاندې چخنړي کړئ | دکوم په وجه چي به تاسو ته

فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ

بيا به رسي تاسو ته | دوجې دهغوئ نه | ضرر او غم | په ناپوهئ سره | دپاره ددې چي داخل کړي الله

ته خفګان اورسيدو | (نوتاسو ته به ئې اوس فتح درکړې وې) | ................الله ﷻ چي دچا

فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا

په رحمت خپل کښې | هغه څوك چي غواړي هغه | كه جدا شوي وې مومنان | نوخامخا به سزاور کړې وې مونږه

په حق کښې اوغواړي نوخپل رحمت کښې ئې داخلوئ | ..........که دغه کمزوري مسلمانان يو اړخ ته

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ

هغه کسانوله | چي كفر ئې کړې وو | دهغوئ نه | سزا دردناکه | کله چي | اوګرخوۀ هغه کسانو

شوي وې | ..........نو مونږ به کافرانو ته دردناك عذاب ورکړې وې | ..................څه وخت چي

كَفَرُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ

چي كفر ئې کړې وو | په زړونو خپلو کښې | ننګ | (يعني) ننګ دجاهليت | پس نازل کړو الله

کافرانو په خپلو زړونو کښې دجاهليت د زماني په شان د ضد پخه اراده اوکړه | نو الله ﷻ خپل رسول

سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَلْزَمَهُمْ

اطمينان خپل | په رسول خپل باندې | او په مومنانو باندې | او پابندئ اوساتل هغوئ

او مومنانو ته دتحمل اوبرداشت توفيق ورکړو | اودوئ ئې دپرهيزګارئ

كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا وَكَانَ اللّٰهُ

دخبرې دتقوی | او وو هغوئ | زيات حقدار | ددې سره | او وو اهل ددې | او دې الله |

په خبره ټينګ کړل | او هم دوئ دټولو نه زيات د دې څيز حقدار اواهل وو | اوالله ﷻ

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ۝

په هر څيز باندې | خبردار |

په هر څيز پوره پوره عالم دې |

**قوله تعالى:- هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ**

**دمکې کفارو سره دجنګ کولو اصل وجه :-** مشرکين عرب چه قريش وو او چه کوم دوی سره وو چه حضرت نبی کريم ﷺ سره به جنګ کوی نوددوی باره کښې قرآن پاك خبر ورکوی چه اصل کښې دا خلق په کفر باندې دی . هم دوی تاسو د مسجد حرام نه منع کړی وې . اصل حقدار او لائق خو د مسجد حرام هم تاسو يئ. ددوی سرکشئ دوی دومره په تپو کړی دی چه دالله ﷻ دنوم قربانی ئې هم قربان ګاه ته پرې نخودې. دا قربانئ شمير کښې اويا وې . او نزدې ددې بيان رازی. انشاء الله . بيا فرمائی چه تاسو ته زر د جنګ کولو اجازت نشو درکولې څکه چه په دې کښې يو راز وو. اوهغه دا چه اوسه پورې مکه

کښې څه کمزوري مسلمانان داسې وو چه هغوئ ددې ظالمانو په وجه خپل ایمان نشو ظاهرولې . او نه ئې ئاموسره هجرت کولې شو. اونه تاسو هغوئ پیژنئې.نو که تاسو ته زردجنګ کولو اجازت درکړې شوې وو نو تاسو به جنګ کښې کولو اوجنګ به ستاسو دلاسه دا مسلمانان هم شهیدان کیدل. او تاسوبه بې علمې کښې دګناه مستحق شوی وې . نوالله ﷺ ددې کافرو سزا نوره هم روستو کړه چه دې کمزوري مسلمانانو ته نجات ملاؤ شي. او نور هم چه دچاقسمت کښې ایمان شته دې چه هغوئ هم ایمان راوړي . که چرې دا مومنان په دوی کښې نو تاسو ته به یقیني طور په دوی غلبه درکړې شوې وه او دوی به ناکام شوی وو. حضرت جنید سبیع رضي الله عنه فرمائی چه سحر کافرو سره یو ځائې شوم او حضرت نبی کریم ﷺ سره جنګ کولوولا اوم خو ماښام الله ﷺ خما زړه بدل کړواو څه مسلمان شوم. او بیا حضرت نبی کریم ﷺ سره کفارو خلاف جنګیدم . زمونږ باره کښې دا آیت مبارک نازل شو چه ﴿ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُّؤْمِنَاتٌ ﴾الخ. مونږ ټول نهه کسان وو،اووه سړي او دوه ښځې([1] طبراني )او روایت کښې دی چه مونږ درې سړي او نهه ښځې وې . حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی که چرې دا مسلمانان دې کافرو سره یو ځائې نه وې نو الله ﷺ به دې کافرو ته ددې مسلمانانو دلاسه سخته سزا ورکړې وې او دوی به قتل شوی وو.

د ﴿حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ مطلب د کلمهٔ توحید نه انکار:-بیا فرمائی چه دې کافرو په خپلو زړونوکښې یو غیرت او حمیت نیولې وو ، صلح نامه کښې یې ﴿ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴾ لیکلو نه انکار اوکړو. د حضرت نبی کریم ﷺ نوم مبارک سره د لفظ رسول لیکلو نه ئې هم انکار اوکړو. نو الله ﷺ په هغه وخت کښې دخپل نبی ﷺ اودمومنانو سینې پرانیستې اوپه دوی ئې سکینه نازله کړه او دوی ئې مضبوط کړل او دوی ئې د تقوی په کلمه ښه مضبوط کړل یعنی ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ﴾باندې ([2]). لکه چه حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه مروی دی او لکه څنګه چه دمسنداحمدیو مرفوع حدیث مبارک کښې موجود دی . ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه ماته حکم کړې شوې دې چه څه خلقو سره جهاداوکړم ترکومې چه ﴿ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ ﴾اونه وائی . چه چا ﴿ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ ﴾اووئیله نو هغه خما نه خپل مال او خپل ځان بچ کړو خو د حق اسلام په وجه دده حساب کتاب دالله ﷺ په ذمه دې . الله ﷺ دا په خپل کتاب کښې نازل کړل . دیوقوم مذمت بیانوی او فرمائی چه ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ ﴾یعنی دوی ته به وئیلې کیدل چه دالله ﷺ نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته دې نو دوی به کبر کولو.

اوالله ﷺ دلته خپل تعریف بیانوی او وائی چه هم دې دبندګئ حقدار دې او هم دې د بندګئ قابل دې . داکلمه ﴿ لااله الاالله محمدرسول الله ﴾ ده . هغوئ ددې نه کبر اوکړو او دمکې مشرکانو ددې نه د حدیبیه په ورځ تکبر اوکړو. بیا هم حضرت نبی کریم ﷺ دوی سره تر یو مقرر وخت پورې صلح نامه مکمل کړه. ابن جریر کښې هم دا حدیث دې زیاتوالی سره مروی دې.خو په ظاهره دا معلومیږی چه روستنئ جملې د راوي خپلې دی.یعنی دحضرت زهری رحمه الله خپل قول دې چه داشان ئې بیان کړی دی لکه چه حدیث مبارک دې .

د ﴿كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ﴾ تفسیر او مطلب:-حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد اخلاص دې ([3]). حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه هغه کلمه ﴿ لااله الاالله وحده لاشریك له له الملك وله الحمد وهوعلی کل شئ قدیر ﴾ ([4]). حضرت

---

[1] طبراني : ۲۲۰٤ ، مسندابي يعلى : ۱٥٦۰، الدر المنثور: ٦/٧٦.

[2] احمد:٥/١٣٨ ، زوائد عبدالله بن احمد بن حنبل ترمذی : کتاب تفسیر القران ، باب ومن سورة فتح : ۳۲٦٥ وهوحسن.

[3] الطبری : ۲۲/۲٥٥.

[4] الطبری : ۲۲/۲٥٦.

مسور رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد ﴿لااله الا الله وحده لاشريك له﴾ دې.حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه ددې نه مراد ﴿لااله الا الله والله اکبر﴾ دي [1] همدا قول د ابن عمر رضی الله عنهما هم دې.حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه ددې نه مراد الله رب العزت د وحدانیت شهادت دې چه د ټولې تقوی جرړه ده . حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد ﴿ لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ﴾هم ده او جهاد فی سبیل الله هم دې . حضرت عطاء خراسانی رحمه الله فرمائی چه کلمه تقوی ﴿ لااله الا الله محمد رسول الله ﴾ ده . حضرت زهری رحمه الله فرمائی چه﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ ترې مراد ده.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد ﴿لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ﴾دې.

بیا فرمائی چه الله ﷻ ته هر څیز ښه معلوم دې چه مستحق دخیر څوك دې او مستحق دشر څوك دې ؟

حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه قرات کښې داشان دی چه ﴿ اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ ولو حميتم كما حموا لفسد المسجد الحرام ﴾ یعنی کافرو چه کله خپلو زړونو کښې جاهلانه ضد پیدا کړو که په هغه وخت کښې تاسو هم داسې کړې وې نو نتیجه به دا وه په مسجدحرام کښې به فساد شوې وو.

هرکله چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا قرات واوریدو نو ډیرزیات تیز شو خو حضرت ابی رضی الله عنه ورته اوفرمائیل چه تاسو ته خومعلوم دی چه څه حضرت نبی کریم ﷺ ته څم راځم اوچه څه الله ﷻ حضرت نبی کریم ﷺ ته ښائی نو هغه ماته حضرت نبی کریم ﷺ ښائی . نوپه دې حضرت عمرفاروق اوفرمائیل چه ته ذی علم او قرآن دان ئې.تاسو ته چه دالله رسول ﷺ څه خودلی دی هغه وائې اوخلقو ته ئې بیانونی(نسائی).

**دهغه احادیثوبیان چه په هغوئ کښې د حدیبیه قصه او دصلح واقعه ده :** مسند احمد کښې دی چه حضرت مسور بن مخرمه او حضرت مروان بن حکم رضی الله عنهما فرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ د زیارت بیت الله ارادې سره روان شو او د حضرت نبی کریم د جنګ کولو هیڅ اراده نه وه. دوی سره اویا اوښان دقربانئ دپاره وواو د حضرت نبی کریم ﷺ ټول ملګری اووسوه او د هرو لسو کسانو په سر یو اوښ وو. هر کله چه حضرت نبی کریم ﷺ عسفان ته اورسیدو نو بشر بن سفیان رضی الله عنه حضرت نبی کریم ﷺ ته خبرورکړو چه یارسول الله ﷺ قریشو چه ستاسو دراتلو آوریدلی دی نو د مقابلې تیارئ کښې اخته دی . هغوئ خان سره د اوښ واړه واړه بچی هم اخستی دی او د شرمخانو څرمنې ئې اغوستې دی . اودا وعده ئې کړې ده چه هغوئ به تاسو داشان مکې ته پرې نږدی . حضرت نبی کریم ﷺ خالد بن ولید ته یو وړوکئ شان لښکر ورکړو او کراع عمیم ته ئې واستولو. ددې آوریدوسره حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه افسوس چه قریش جنګونو اوخوړل، څه به ښه وې چه دوی څه او دا نور خلق پریخودی وې او که هغوئ په ما غالب شوی وې نو ددوی مقصد به پورا شوې وې . اوکه څه الله تعالی په دوی غالب کړې وې نو دوی به ټولو اسلام قبول کړې وې .او که دوی په هغه وخت کښې هم اسلام طرفته نه راتلل نو دوی به ماسره جنګ کولو او په هغه وخت کښې به ددوی طاقت هم پورا وې.قریش څه ګنړی؟ په الله قسم چه څه به دوی سره جهادکوم تردې چه یا خوالله ﷻ ماپه دوی غالب کړی او یا خما سر دتنې نه جداشی.بیا حضرت نبی کریم ﷺ خپل لښکر ته حکم اوکړو چه ښی طرفته حمض نه روستو لار باندې لاړشئ چه کومه ثنیة المرار ته خی . او حدیبیه دمکې لاندې حصه کښې ده . دخالد لښکر چه کله اوکتل چه د حضرت نبی کریم ﷺ لښکر لار بدله کړه نو دې واپس راغلو او قریشوته ئې ددې خبر ورکړو. بل طرفته چه کله د حضرت نبی کریم ﷺ اوښه مبارکه ثنیة المرار ته اورسیده نو کیناسته اوخلقو اَووئیل چه اوښه ستړې شوه. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا نه ده ستړې شوې او نه ددې دناستې عادت دې بلکه دا الله ﷻ په حکم کیناسته اودهغه ذات چه دمکې هاتیان ئې منع کړی وو. واورئی ! چه نن قریش خما نه

[1] ) حاکم : ۳٦۱/۲،

څه غواړي چه په هغې کښې صله رحمي وی نوځۀ به ئې ورکوم. بیا حضرت نبی کریمﷺ لښکر والوته حکم اوکړو چه پړاؤ اوکړئی . هغوئ اووئیل چه یارسول اللهﷺ! په دې ټوله وادئی کښې اوبه نشته دې . حضرت نبی کریمﷺ غشئ راوویستو او اویو صحابی رضی الله عنه ته ورکړو او ورته ئې اوفرمائیل چه دا دلته په یو کوهی ښخ کړه. ددې ښخولوسره اوبه ډیرې زیاتې شوې او ټول لښکر اوځکلې او دا په مخه زیاتیدې . هرکله چه دوی پړاؤ اوکړو او دوی ښه اطمینان سره کیناستل نو په دې کښې بدیل بن ورقه د قبیله بنو خزاعه څه خلقو سره راغلو. نو حضرت نبی کریمﷺ هغه ته هم هغه اووفرمائیل چه څه ئې بشر بن سفیان ته فرمائیلی وو. نو داخلق لاړل او قریشوته ئې اووئیل چه تاسو خلقو د نبی ﷺ پاره کښې ډیره تیزي اوکړه . حضرت نبی کریمﷺ تاسو سره جنګ کولو دپاره نه دې راغلې بلکه صرف دبیت الله شریف زیارت دپاره راغلې دې تاسو په خپله فیصله یو نظر بیا واچوئی . په اصل کښې د بنوخزاعه مسلمانان او کافر د حضرت نبی کریمﷺ طرفدار وو او د مکې ټول خبرونه به ددې خلقو په ذریعه رسیدل . قریشو اووئیل اګر چه حضرت نبی کریمﷺ هم دې ارادې سره راغلې دې خو مونږ ده لره دا سې اچانك پرې نږدو ګنې خلق به بیا وائی چه حضرت نبی کریمﷺ مکې ته لاړو او ددوی د منع کولو والا څوك نه وو. بیا دوی مکرز بن حفص اولیږلو او دې دبنوعامر بن لوئی قبلې نه وو. هر کله چه حضرت نبی کریمﷺ دې اولیدو نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه دا سړې وعده خلاف دې، اوهغه ته هم حضرت نبی کریمﷺ هغه اوفرمائیل چه کوم ئې ددې نه مخکښې سړو ته فرمائیلي وو. دې هم واپس او لاړ قریشو ته ئې ټوله واقعه بیان کړه . بیا قریشو حلیس بن علقمه کنانی اولیږلو او دې دځه خلقو سردار وو. دده کتلو سره حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه دا دهغه قوم نه دې چه د رحمانی کارونو عظمت کوی،دقربانئ څناور اودروئی.ده چه کله اوکتل چه هر طرفته د قربانئ ښنو والا څاروی دی او د ایساریدو په وجه ددوی وینښته پریوتی دی نو دې حضرت نبی کریمﷺ سره د ملاویدو نه بغیر واپس او لاړو قریشو ته ئې ټوله واقعه بیان کړه او ورته ئې اووئیل چه الله ﷻ ته معلوم دی چه تاسو لره حلال نه دی چه تاسو هغوئ د بیت الله شریف نه منع کړئی،دالله ﷻ دنوم څناورد قربان ګاه نه لرې ولاړ دی.دا ډیر سخت ظلم دې،دومره ورځې ولاړې نه پس دهغوئ وینښته پریوتی دی.داما خپلو سترګو سره اوکتل،قریشو اووئیل چه ته یو نرا اعرابی ئې خاموش کینه.

اوس دوی مشوره اوکړه او عروه بن ثقفی ئې اولیږلو،دتلو نه مخکښې هغه اووئیل چه اتې قریشو ! تاسو چه کوم کوم کسان هلته اولیږل او کله چه هغه واپس شو اوتاسو ورسره څه اوکړل ما هغه اوکتل . تاسو هغوئ ته بدرد اووئیل او د هغوئ مو بې عزتی اوکړه او په هغوئ مو تهمت اولګولو. اوبه هغوئ موبدګمانی اوکړه . خما حالت تاسو ته معلوم دې چه څه تاسو ته دخپل پلار په شان ګورم.تاسو ته معلوم دی چه کله تاسو فریاد اوکړو نوما خپل قوم ته اووئیل او هغوئ خما اومنل او ماسره ستاسو مدد دپاره راغلل. ټولو اووئیل چه آو ته رینښتیا وائې مونږ تاسو باندې هیڅ قسمه بدګمانی نه کوؤ. هرکله چه دې حضرت نبی کریمﷺ سره دملاویدو دپاره لاړ او لاړو حضرت نبی کریمﷺ سره کیناستو نو وې وئیل چه تاسو خو د یوځائې بل ځائې نه خلق راغونډ کړی دی او راغلې دخپل شان ختمولودپاره ، واوره قریشو نن پخه اراده کړې ده او هغوئ سره واړه واړه بچی هم دی او هغوئ د شرمخانو څرمنې اغوستې دی.اوهغوئ دالله ﷻ مخکښې دا وعده کړې ده چه تاسو به بالکل زبردستئ سره مکې ته داخل نه کړی . خما دې په الله قسم وی دا خلق چه ستاسو نه ګیر چاپیره ولاړ دی،تاسو به دوی د جنګ په وخت کښې تلاش هم نه کړئی . ددې آودریدوسره حضرت ابوبکر رضی الله عنه صبر نشو او په هغه وخت کښې دې د حضرت نبی کریمﷺ شاته ولاړ وو ، دوی اوفرمائیل چه څه اتې د لات خویه ، مونږ به حضرت نبی کریم ﷺ په جنګ کښې پریږدو (دا ممکن نه دی )عروه حضرت نبی کریمﷺ نه تپوس اوکړو

چه دا ځوك دې؟ حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائيل چه د ابوقحافه ځوئي دې.نو وې وئيل که ستاپه ما مخکښې نه احسان نه وې نو مابه تاته چل خودلې وې.دې نه پس عروه بيا دونيلو دپاره د حضرت نبی کريمﷺ ږيره مبارکه کښې لاس واچولو،دا بې آدبي مغيره بن شعبه رضی الله عنه نه برداشت نه شوه او دې حضرت نبی کريمﷺ سره ولاړ وو اودده لاس کښې يو اوسپنه وه ، په هغې ئې دې په لاس اووهلو چه خپل لاس لرې کړه ،ته د حضرت نبی کريمﷺ بدن مبارك ته ګوتې نه شې وراوړې . دا اوونيل چه دا خو ډير بدزبانه دې اوکوږ سړې دې،حضرت نبی کريمﷺ تبسم اوفرمائيلو. هغه تپوس اوکړو چه دا ځوك دی.حضرت نبی کريمﷺ ورته اوفرمائيل چه دا ستا وراره مغيربن شعبه رضی الله عنه دې، نو وې وئيل چه تا خو پرون پورې طهارت هم نه شوکولې . غرض دا چه حضرت نبی کريمﷺ هغه ته هم هغه جواب ورکړو چه کوم ئې ددې نه مخکښې خلقو ته ورکړې وو. او ورته ئې باور اوکړو چه مونږ جنګ دپاره نه يو راغلی . دې چه کله واپس شو او ددې خانې دا نقشه ئې اوکتله چه اصحاب رسولﷺ څنګه د حضرت نبی کريمﷺ پتنګان دی ، ددوی عليه السلام د اودس اوبه هم لاسونوکښې اخلی،ددوی عليه السلام توکانړې هم لاسونو کښې اخستلودپاره يو بل نه مخکښې کيږی،ددوی عليه السلام چه يو ويښته پريوزی نو هر سړې وائی چه دا ما واخستې،هرکله چه دې قريشو ته واپس شو نو وې وئيل چه اې د قريشو د جماعت خلقواد کسری دربار ته او د نجاشی دربار ته تلې يم خو په الله جل جلاله قسم ما دهغه بادشاهانو هم دومره عزت نه دې ليدلې چه کوم مې د حضرت محمدﷺ اوليدو. د حضرت نبی کريمﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم خو ددوی دومره عزت کوی چه ددې نه زيات ممکن نه دې . اوس تاسو سوچ اوکړئ چه اصحاب رسول رضی الله عنهم داسې نه دی چه حضرت نبی کريمﷺ به تاسوته لاسو کښې درکړی .

**عثمان رضی الله مکې مکرمې ته استول:-** بيا حضرت نبی کريم ﷺ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه راوبللو او دوی رضی الله عنه ته ئې مکې ته ليږل ، خو دې نه مخکښې دا واقعه تيره شوې ده چه حضرت نبی کريمﷺ يو ځل حضرت خراش بن اميه خزاعی په خپله اوښه سور کړو چه دهغې نوم ثعلب وو اومکې ته ئې ليږلې وو، قريشو ددې اوښې پښې ماتې کړې وې اوددې قاصد به ئې هم قتل کړې وې نو احابيش قوم دې بچ کړو.(شايد په دې وجه)حضرت عمرفاروق رضی الله عنهدا جواب وروکړو چه خه خو ويريږم چه هسې نه قريش ما قتل نه کړی . ځکه چه هغه خانې خو ځما دقبيلې بنو عدې يو سړې هم نشته دې چه ما ددې قريشو نه بچ کړی . ښه به دا وی چه تاسو حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه اوليږئ . اوهغوئ ځما په نسبت دهغو ئی نظر کښې زيات عزت والا دې.نو حضرت نبی کريم ﷺ حضرت عثمان رضی الله عنه راوبللواو ورته ئې اوفرمائيل چه ته لاړشه او قريشو ته اووايه چه مونږ دجنګ کولودپاره نه يو راغلی بلکه صرف دبيت الله شريف زيارت دپاره او ددې د عظمت زياتولو دپاره راغلی يو.حضرت عثمان رضی الله عنه لا په ښار قدم نه وو اينبودې چه دده ملاقات ابان بن سعيد بن عاص سره اوشو،هغه دخپلې سورلئ نه راکوز شو او حضرت عثمان رضی الله عنه ئې مخکښې کينولو او پخپله روستوکيناستو او دوی رضی الله عنه ئې خپله ذمه دارئ روان کړل چه تاسو د الله درسولﷺ پيغام خلقو ته اورسوئی.نو حضرت عثمان رضی الله عنه هلته لاړواو قريشونه ئې پيغام اورسولو. هغوئ اوونيل چه اوس تاسوراغلی ئې نو خيردې دبيت الله شريف طواف اوکړئی . خو ذوالنورين جواب کښې اوفرمائيل چه تر کومې پورې حضرت نبی کريمﷺ طواف اونکړې نو دا ممکن نه دی چه خه طواف اوکړم. هرکله چه قريشو حضرت عثمان رضی الله عنه ايسار کړو او دوی رضی الله عنه ئې واپس نه پريښودل نو بل طرفته اسلامی لښکر کښې دا خبر خور شو چه حضرت عثمان رضی الله عنه ئې شهيد کړو.

**د سهيل بن عمرو وفد:-** دزهری روايت کښې دی چه بيا قريشو سهل بن عمرو اوليږلو چه ته لاړ شه او ورسره صلح اوکړه خودا به ضرور وی چه دې کال به دوی واپس کيږی چه عرب مونږ ته پيغور نه کوی چه هغوئ راغلل او تاسو منع نه کړې شو. نو سهل دې سفارت سره روان شو. هرکله چه حضرت نبی

کريم دې اوليدو نو وې فرمائيل چه د قريشو اراده دصلح شوې ده چه دې نې راوليږلو. هغه حضرت نبی کريمﷺ سره خبرې اترې شروع کړې او تر ډيره پورې سوال وجواب او خبرې اترې شروع وې. شرطونه مقرر شو خو صرف ددې ليکل باقي وو. حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په منډه منډه لاړو اوحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ته نې اووئيل چه آيامونږ مسلمانان يو ؟ آيادا مشرکان نه دی ؟ نو هغوئ ورته اوفرمائيل چه آو دی . نودوی اوفرمائيل چه بيا څه وجه ده چه مونږ په دينی معاملو کښې دومره سستی ښکاره کړو. حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل چه اې عمر رضي الله عنه ! د الله درسول ﷺ رسۍ مضبوطه کړه او دالله رسولﷺ رهبنتوني دې . خو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه صبر نشو او لاړو د حضرت نبي کريمﷺ خدمت کښې حاضرشواو داشان نې اووئيل . نو حضرت نبی کريمﷺ ورته اوفرمائيل چه څه دالله ﷺرسول يم او دهغه غلام يم ، څه دهغه د فرمان خلاف نشم کولې.او خما يقين دې چه هغه به ما ضائع نه کړی. حضرت عمرفاروق رضي الله عنه فرمائی چه ما خو په جوش کښې هغه وخت حضرت نبی کريمﷺ ته هر څه اووئيل خو بيا روستو څه ډير زيات پښيمانه اوم. اوددې بدله کښې مې ډيرې روژې اونيولې اوډير مونځونه مې اوکړل. او ډير غلامان مې آزادکړل.ددې ويرې چه هسې نه ماته ددې گستاخۍ سزا الله تعالی راکړی .

**صلح نامه :-** حضرت نبی کريم ﷺحضرت علی رضي الله عنه راوبلو چه صلح نا مه اوليکی اوورته اوفرمائيل چه اوليکه ﴿ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ﴾ په دې سهيل اووئيل چه څه خو پدې نه پوهيږم،داسې ا وليکه چه ﴿بسمك اللهم﴾نوحضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه داسې اوليکه.بيا نې اوفرمائيل چه اوليکه چه دا صلح نامه ده چه محمدرسول اللهﷺ اوکړه . نو په دې سهيل اووئيل که ماته رسول منلې نو تاسره به مې ولې جنګ کولې؟ داسې اوليکه چه دا هغه صلح نامه چه محمد بن عبدالله ﷺ او سهيل بن عمرو اوکړه په دې خبره چه① مونږ به تر لسو کالو پورې جنګ نه کوو. خلق به امن وامان سره اوسيږی او يو بل نه به بچ اوسيږو② چه کوم سړې د حضرت نبی کريم ﷺته دخپل ولی د اجازت نه بغير لاړ شی نو تاسو به هغه واپس کوئی. اوچه کوم صحابی رسول ﷺقريشو ته راشی نوهغه به نشی واپس کولې ③ مونږ اوتاسو کښې به جنګ بند وی،صلح به قائمه و،هيڅ طوق و زنځير او قيد به نه وی ④ يو شرط دا هم وو چه کوم سړې د محمدﷺ جماعت او دده وعده کښې راتلل غواړی نوراتلې شی . نو پدې بنوخزا عه اووئيل چه مونږ حضرت نبی کريمﷺ دې وعده کښې راغلی يو او بنی بکر اووئيل چه مونږ د قريشو ذمه دارئی کښې راغلی يو. ⑤ دې کال به تاسو واپس شئ او راتلونکی کال کښې راشئ. په هغه ورځ به مونږ بهر شواو تاسو خپلو صحابه کرام رضي الله عنهم سره راشئ او مکه کښې پاتې شئ خو وسله به دومره وی چه خومره يو سور سره وو ⑥ توری به تيکی کښې وی.لا صلح نامه ليکلې کيده چه په دې کښې د سهيل خونې حضرت ابوجندل رضي الله عنه د اوسپنې په زنځيرونو کښې راغلو . مکې نه خلق په پټه د حضرت نبی کريمﷺ خدمت کښې حاضريدل .

**مدينې منورې نه د وتلو په وخت کښې د صحابه کرامو خيال او ابوجندل واقعه:-** صحابه کرام رضي الله عنهم چه د مدينې نه راوتل نو ورته د فتح يقين وو. ځکه چه حضرت نبی کريمﷺ خوب کښې ليدلی وو چه په دې وجه دوی ته په فتح کښې لږ هم شك نه وو. دلته چه راغلل او وې کتل چه صلح کيږی او بغير د زيارت بيت الله شريف نه هم ددې خاني نه دوی واپس کيږی بلکه حضرت نبی کريم ﷺپه خپل نفس خومره مشقت اوچتوی او صلح کوی نو ددې نه به زياته پريشانی او فکر منددی نوره خومره وی بلکه نزدې وو چه دوی هلاك شوې وې . دا ټول هر څه خو وو،ددې نه زيات دا چه کله حضرت ابو جندل رضي الله عنه مسلمان وو او هغه مشرکانو قيد کړې وو،اوپه هغه نې رنګ په رنګ تکليفونه او ظلمونه اچول. ده وآوريدل چه حضرت نبی کريمﷺ راغلی دی،ددې موقع نه فائده اوچتوی او په وزنځيروتو کښې ترلې شوې

حاضريږي نو سهيل پاسى اوهغه په خپېرو وهى او وائي چه اې محمد (ﷺ) خما او ستامينځ کښې فيصله شوې ده، دې نه پس دې راغلې دې نو ددې شرط مطابق دې واپس کړه . نو حضرت نبى کريمﷺ ورته جواب کښې وائى صحيح ده. سيهل پاسى او ابوجندل رضي الله عنه کريوان کښې لاس اچوى او په راښکلو ئې بوځى . حضرت ابوجندل رضي الله عنه فرمائى چه اې مسلمانانو ما دې مشرکانو ته واپس کوئى ؟ هائې افسوس. دوى خو خما نه خما دين اخستل غواړى . دې واقعې صحابه کرام رضي الله عنهم نور هم زيات پريشانه کړل حضرت نبى کريمﷺ ورته اوفرمائيل چه اې ابوجندل رضي الله عنه صبر کوه او په روغ نيت اوسه او د ثواب طلب ساته ، اوالله ﷻ نه صرف ستا دپاره بلکه ستا په شان نورو کمزرو مسلمانانو دپاره لار ويستونکې دې . اوتاسو ټول ددې غم او تکليف نه نجات موندو والا يئ . اوس چونکه صلح شويده او شرائط پوزا شوى دى نو په دې وجه تا مونږ واپس کوو. مونږ عذر کول او دشرطونو نه خلاف کول نه غواړو . حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حضرت ابوجندل رضي الله عنه سره خواخوا کښې روان وو او ورته ئې وئيل چه اې ابوجندل رضي الله عنه صبر کوه په دې کښې څه دى ؟ دامشرکان خلق دى ددوى وينه لکه دسپى ده . حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخپلې تورې موټې حضرت ابوجندل رضي الله عنه طرفته کولو چه هغه توره اوباسى او د خپل پلاز کار ختم کړى . خود ابوجندل رضي الله عنه لاس په پلار اوچت نه شو او صلح نامه ختمه شوه. او فيصله پوزا شوه. حضرت نبى کريمﷺ حرم کښې مونځ کولو او دحلاليدودپاره مضطرب وو. بيا حضرت نبى کريمﷺ خلقو ته اووئيل چه پاسئ او قربانئ اوکړئ او خپل خپل سرونه اوخرئ خو هم پورته نه شو. درې ځل ئې داسې اوکړل . بيا حضرت نبى کريم ﷺ حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته راغلو او ورته ئې اووئيل چه دا په خلقو څه شوى دى؟ ام المومنين ورته جواب کښې اوفرمائيل چه يارسول اللهﷺ ! په دې وخت کښې چه کوم غم کښې دا خلق دى هغه تاسوته ښه معلوم دى . تاسو دوى ته هيڅ مه وائې ، نيغ دخپل قربانئ څاروى طرفته لاړشئ.او هغه چه چرته دې هم هغه ځائې کښې ئې قربانى کړئ او پخپله سر اوخرئ نو ممکن دى چه خلق هم داسې اوکړى . حضرت نبى کريمﷺ هم داسې اوکړل،ددې کتلو سره هر سړې پاسيدل او سرونه ئې اوخرئيل او قربانئ ئې اوکړه . دوى ددې ځائې نه روان شو او تيمه لار کښې سورة فتح نازل شو.(۱)

د اروايت صحيح بخارى کښې هم دې ، په هغې کښې دى چه ددوى مخکښې يو زر صحابه کرام رضي الله عنهم وو هرکله چه ذوالحليفه ته اورسيدو نو حضرت نبى کريمﷺ د قربانئ څناورو باندې نښې واچولې او د عمرې احرام ئې اوتړلو.اود قبيله خزاعه جاسوس ئې مخکښې اوليږلود تجسس دپاره. کله چه هغه غدير اشطاط ته اورسيدو نو راغلو او حضرت نبى کريمﷺ ته ئې خبرو ورکړو چه قريشو يو لوئې لښکر جمع کړې دې او هغوئ خان سره د اطراف نه نور خلق هم ملګرى کړى دى . دهغوئ اراده تاسو سره دجنګ کولو اود بيت الله شريف نه منع کولو ده . نو حضرت نبى کريمﷺ صحابه کرام رضي الله عنهم ته اوفرمائيل چه اوس تاسو اووائې چه مونږ دهغوئ په بچو حمله اوکړو؟ که هغوئ مونږ طرفته رازى نو الله ﷻ به دهغوئ څټونه پرې کړې . ګنى مونږ به هغوئ په غم کښې پريږدو . اوکه هغوئ کينى نو په دې غم کښې به وى. او که هغوئ نجات بيا موندو نو دا څټونه به ترې الله ﷻ پريکړې وى. ګورئ کنه مونږ خو چاسره د جنګ دپاره نه يو راغلى او نه څه بلې ارادې سره بلکه مونږ خوصرف دبيت الله شريف د زيارت دپاره راغلى يو. اوهغوئ مونږ منع کوى. تاسو اووائې چه مونږ هغوئ سره ولې جنګ اونه کړو؟ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل چه يارسول اللهﷺ ! تاسو د بيت الله شريف زيارت دپاره ځئ. او زمونږ اراده دجنګ کولو نه ده خو چه څوك هم مونږ دبيت الله شريف د زيارت کولو نه

(۱) احمد : ۳۲۳/٤. وسنده حسن ابن اسحاق صرح السماع البيهقى فى الدلائل (۱٤٥/٤) ورواه مختصرا والترمذى صرح بالسماع عند البخارى (۲۷۳۱) وانظر العقد التمام فى تخريج سيرة ابن هشام لراقم الحروف : (ح/۱٦٥).

منع کوی نو مونږ به هغوئ سره جنګ کوؤ. که هغه هر څوك وی . نود الله ﷻ نوم واخلئ او روان شئ .
لږ مخکښې چه لاړل نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دخالد بن وليد طلايه لښکر راروان
دی.تاسو ښی طرفته شئ.خالد ته ددې خبر هم اونشو او حضرت نبی کریم ﷺ دهغوئ نزدې اورسیدو نو
کله چه خالد دا اوکتل نو ددې خبر ئې قریشوته ورکړو.داوښې نوم په دې روایت کښې قصواء راغلې
دی.په دې کښې دا هم دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دا هم اوفرمائيل چه خما نه هغوئ څه طلب کوی څه
به ورکوم خو په دې شرط چه په هغې کښې دحرمت الله سپکاوې نه وی . بیا حضرت نبی کریم اوښې
ته آواز اوکړو او هغه زر پاسیده . بدیل بن ورقا خزاعی حضرت نبی کریم ﷺ ته رازی او د حضرت نبی
کریم ﷺ جواب قریشو ته رسوی نو عروه بن ثقفی پاسی او خپل تعارف کوی او چه کوم مخکښې بیان
شوی دی،دا هم وائی چه ګوره کنه دې سړی ډیره معقوله او مناسبه خبره کړې ده دا قبوله کړنی اوکله
چه دې پخپله د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت اقدس کښې حاضریږی او د حضرت نبی کریم ﷺ هم دا
جواب د حضرت نبی کریم ﷺ د خولې مبارکې نه آوری نو حضرت نبی کریم ﷺ ته وائی چه واورنی دوه
خبرې دی،یا تاسو غالب هغوئ مغلوب یا هغوئ غالب تاسو مغلوب . که ږومبئ خبره وی نو څه اوشو
هغه هم ستا قوم دې،تاسو څوك داسې کتلی دی چه هغه خپل قوم تباه کړې وی؟ اوکه دویمه خبره وی
نو دا څومره چه تاسو سره دی ټول په ټوله به ستاسو سره ملګرتیا پریږدی او اوبه تښتی. نوپه دې
حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هغه ته جواب ورکړو چه کوم مخکښې تیر شوې دې.دحضرت مغیره رضی الله عنه
بیان کښې دا هم دی چه دهغه لاس کښې تور وه . هرکله چه هغوئ عروه اووهلو نو وې غداره ما تاسره
غدارئی کښې هم مدد کړې وو. خبره داده چه دې مخکښې دجاهلیت په زمانه کښې یو ډلې سره وو
موقع موندو سره هغه ټول ئې قتل کړل او دهغوئ مال هال سره د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې
حاضر شو. عروه چه په خپلو سترګو دا منظر اولیدو چه کله حضرت نبی کریم ﷺ اوتوکی نو یو نه یو
صحابی رضی الله عنه هغه توکانړې راپورته کړی او په خپل مخ او بدن ئې مخی . د حضرت نبی کریم ﷺ شونډو
خوزولو سره دوی د حضرت نبی کریم ﷺ دهر حکم تعمیل کوی . هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ اودس
کوی ددوی د اودس په اوبو قابو صحابه رضی الله عنهم په جنګ کیږی . کله چه حضرت نبی کریم ﷺ خبره کوی
نو بالکل خاموشی شی . او د یو طرفنه لږ آواز هم نه رازی.او د تعظیم دومره حد دادې چه صحابه
کرام رضی الله عنهم ددوی څهرې مبارکې ته ګوری هم سم نه ، بلکه نظرونه ئې لاندې او هر وخت آدب کښې وی .
دې چه کله واپس راغلو نو قریشو ته ئې دا ټول حال اووئیلو او ورته ئې اووئیل چه حضرت نبی کریم ﷺ
کومه دعدل او انصاف خبره کوی نوهغه قبوله کړنی .
دبنوکنانه کوم سړې چه دې نه پس قریشو اولیږلو دهغه کتلو سره حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه دا
خلق د قربانئ د څناور ډیر عزت کوی . نو تاسو د قربانئ څناور اودرونی اوده طرفته ئې کړنی.هغه چه
کله دا منظر اوکتلو او بل طرفته ئې د صحابه کرام رضی الله عنهم د خولو مبارك نه دلبیك صداګانې هم
واوریدلې نو وې ونیل چه دا خلق دبیت الله شریف نه ایسارول ډیر زیات خراب حرکت دې . په هغې
کښې داهم دی چه دمکرز په کتلو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه دا یو تاجر سړې دې، په دې کښې
ناست وو خبرې کولې چه سهل راغلو او دهغه کتلو سره حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه اوس کار
آسان شو . هغه چه کله د ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ او د حضرت نبی کریم ﷺ نوم مبارك سره درسول لفظ
په لیکلو اعتراض اوکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه والله څه خو رسول خو ته ئې نه منې . دا
په دې وجه چه کله دده اوښه کیناسته نو حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی و چه دې دمحرمات الهی عزت
ساتی چه دې څه وائی نو څه به منم . دصلح لیکلو په وخت کښې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه
دې کال به دوی مونږ ته دبیت الله شریف د زیارت اجازت راکړی نو سهیل اوئیل چه نه مونږ ته دا

منظور نه دی . بیا به خلق وانی چه دوی ویریدل او هیڅ ئې اونکړې شو. هرکله چه د اشرط لیکلې کیدو چه کوم کافر مسلمان شي او مسلمانانوته لاړ شي نو هغه واپس کولې شي . نو په دې ټولو مسلمانانو اوونیل چه سبحان الله دا څنګه کیدې شي هغه یه مسلمان شي او مونږ به هغه بیا کافرو ته سپارو. دا خبرې لا کیدلې چه په دې کښې ابوجندل ؓ په زنځیرونو کښې تړلې شوې دې راوسنې شو. سهیل اوونیل چه دې واپس کړئی . حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس خو لا صلح نامه نه ده مکمل شوې دې څنګه واپس کړم. نو هغه اوونیل چه په الله ﷻ قسم څه خو بیا هیڅ شرط باندې راضي نه یم . حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته پخپله ماته ددې خبرې اجازت راکړه. نوهغه اوونیل چه زه به ددې اجازت هم تاسو ته درنکړم. حضرت نبی کریم ﷺ ور ته دوباره اوفرمائیل خوهغه انکار اوکړو.اګرچه مکرز اوونیل چه آؤ مونږتاته ددې اجازت درکوؤ. هغه وخت کښې ابوجندل ؓ مسلمانانو ته فریاد اوکړو.دې غریبانانوته مشرکانو ډیر سختې سزاګانې ورکولې.په دې حضرت عمرفاروق ؓ حاضر شو او هغه ئې اوونیل چه کوم مخکښې تیر شو. بیا ئې حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسومونږ ته نه وو وئیلی چه مونږ به بیت الله شریف ته څو او دهغې طواف به کوؤ. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آؤ ما دا وئیلی وو خو دا مې نه وو وئیلی چه دې کال به داشان وی. نو حضرت عمرفاروق ؓ اوفرمائیل چه آؤ دا خو تاسونه وو فرمائیلی.نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بس ته به هلته ځې او دبیت الله شریف طواف به ضرور کوې.حضرت عمرفاروق ؓ فرمائی چه بیا حضرت ابو بکر صدیق ؓ ته راغلم او هغه مې ورته اوونیل چه کوم مخکښې بیان شو.په هغې کښې صرف دومره نور دی چه آیا حضرت نبی کریم ﷺ دالله ﷻ رسول نه دې څه؟ نو ددې جواب کښې حضرت ابوبکرصدیق ؓ اوفرمائیل چه ولې نه دې.بیا ما د حضرت نبی کریم ﷺ د پیښن ګونی داشان ذکر اوکړو اوهغه جواب ملاؤ شو چه کوم جواب پخپله حضرت نبی کریم ﷺ ور کړې وو. په دې روایت کښې داهم دی چه کله حضرت نبی کریم ﷺ په خپله اوښه ذبح اوکړه او نائی راوغوښتلود سر مبارك د خرئیلو د پاره نو بیا خو صحابه کرام ؓ په یو ځائې اودریدل او قربانئی نه چه فارغ شو نو دیو بل سرونه ئې اوخرئیل . اود غم او د پریشانئ په وجه نزدې وو چه په جنګ شوې وې . دې نه ایمانداری ښځې حضرت نبی کریم ﷺ ته راغلې او ددوی باره کښې دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ الخ﴾. اوحضرت عمر فاروق ؓ ددې حکم په وجه خپلې دوه مشرکې بیبیانې طلاقې کړې او په هغوئ کښې یو معاویه بن ابوسفیان ؓ سره او بلې صفوان بن امیه سره نکاح اوکړه. حضرت نبی کریم ﷺ هم ددې ځائې نه واپس مدینې منورې ته راغلو.

**دابو بصیر ؓ واقعه:**-ابوبصیر ؓ نومې یو قریشی چه مسلمان وو ،موقع موندو سره مکې نه اوتښتیدو او د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې مدینه کښې حاضر شو. اوده پسې دوه کافر حضرت نبی کریم ﷺ ته حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه د عهدنامې په بناء دې مونږ ته واپس کړه.مونږ د قریشو قاصدان او ابو بصیرې پسې راغلی یو.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ښه خبره ده څه هغه واپس کوم .نو حضرت نبی کریم ﷺ حضرت ابوبصیر ؓ واپس کړو.دوی چه کله ذوالحلیفه ته اورسیدل او بې غمه ئې کهجورې خوړلې نو حضرت ابوبصیر ؓ دوی کښې یو سړی ته اوونیل چه والله څه وینم چه ستا توره ډیره ښکلې ده . هغه اوونیل چه آوه بیشکه ډیره ښکلې ده.ما ډیر خل ددې تجربه کړې ده ددې د پریکولو به لا څه وائې ؟ ددې کتلو سره هغه د میان نه توره راوویستله او ابوبصیر لاس وراوړد کړو او وې وئیل چه دا خو لږه ما ته اوښایه . لاس کښې اخستلو سره هغه کافر اووهلو اومړ شو.بل چه دا اوکتل نو دوه ئې خپلې او دوه ئې پردنی کړې په منډه منډه مدینه کښې د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو. حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دې ډیر ویره کښې دې . او ده څه خوفناك منظر

لیدلي دي . حضرت نبی کریمﷺ ته نزدې شو او.ورته ئې اوونیل چه یارسول اللهﷺ ! خما ملګرې اووژلي شو او ما هم وژنـی . په دې کښې حضرت ابوبصیر ﷛ راورسیدو او ونیل چه یارسول ا لله ﷺ! الله تعالی ستاسو ذمه پورا کړه. تاسو دخپلې وعدې مطابق خه دوی ته حواله کړم. اوس دا دالله ﷻ احسان دې چه هغه ذات خه ددوی نه بچ کړم. حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه افسوس دا څنګه سړې دې ، دې خو اور کښې لرګې وهي او جنګ زیاتوی، کاش دې څوك پوهه کړی . نو ددې آوریدو سره حضرت ابوبصیر ﷛ پوهه شو چه دا خو بیا ما دې مشرکانو ته حواله کوی.دې وینا سره حضرت نبی کریمﷺ ته ورغلو او مدینې والو ته الوداع اوونیله اوسمندر طرفته روان شو.او هم هغه ځائې کښې ئې استوګنه ا ختیار کړه . دا واقعه مشهوره شوه . هغه طرفته ابوجندل بن سهل ﷛ هم موقع موندو سره مکې نه راوتښتیدو اودې حضرت نبی کریمﷺ حدیبیه کښې حضرت نبی کریمﷺ واپس کړې وو او راغلو حضرت ابوبصیر ﷛ سره ډیره شو. اوس داسې اوشو چه مشرکین قریش کښې به چا هم ایمان قبلولو نو نیغ به حضرت ابوبصیر ﷛ ته راتلو او هم دې ځائې کښې به اوسیدو. او تردې چه دې ځائې یو ښه جماعت جوړ شو. او اوس خو دوی داسې اوکړل چه کله به د قریشو قافله شام طرفته تلله نو دوی به ورسره جنګ کولو او په دې کښې قریشي کافران قتل شو. او د هغوئ مالونه به هم دوی قبضه کړل . تردې چه قریش تنګ شو اوبالاخر هغوئ دنبی کریمﷺ خدمت کښې یو قاصد اولیږلو چې دالله دپاره دا خلق د دغه ځائې نه راوبله او مونږ ددوی تپوس نه کوو. په دوی کښې چه څوك هم تاسو ته درشی نو هغه به امن کښې وی. مونږ تاسو ته خپلې رشته دارئی دریادوو. او د دالله واسطه درکوو چه دوی راوبلئ . نو حضرت نبی کریمﷺ دا درخواست منظور کړو او دې حضراتو پسې ئې سړې اولیږلو چه دوی ئې رابللِ . اوالله ﷻ آیت ﴿وَهُوَ الَّذِیْ كَفَّ اَیْدِیَهُمْ عَنْكُمْ﴾ نازل کړو. ددې کافرو حمیت د جاهلیت دا وو چه هغوئ ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ﴾ اونه لیکل. اود حضرت نبی کریمﷺ نوم مبارك سره ئې رسول او نه لیکل. او حضرت نبی کریم ﷺ ئې د بیت الله شریف زیارت نه منع کړو.[1]

دصحیح بخاری کتاب التفسیر کښې دی چه حبیب بن ابو ثابت ﷬ فرمائی چه څه ابووائل ته ورغلم چه دهغه نه مې تپوس اوکړو . هغوئ اوونیل چه مونږ صفین کښې وو . یوسړی اونیل چه آیا تا هغوئ اونه کتل چه هغوئ کتاب الله طرفته رابللې شی.حضرت علی ﷛ اوفرمائیل چه آو،نو سهیل بن حنیف ﷛ اوونیل چه په خپل خانونوتهمت کیږدئی،مونږ په خپله دحدیبیه په ورځ دا کتلې وو.یعنی د هغه صلح په موقع چه څه د حضرت نبی کریمﷺ اود مشرکانو مینځ کښې شوې وو. که څمونږ رائې د جنګ کولو وې نو مونږ به جنګ کړې وې. نو حضرت عمر فاروق ﷛ راغلو او وې فرمائی چه مونږ په حق او هغوئ په باطل نه وو څه ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه آو . نو بیا ولې مونږ خپل دین پاتې راولو او واپس شو.حالانکه تر اوسه پورې مونږ کښې او هغوئ کښې هیڅ فیصله نه ده شوې . نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه انې عمر بن خطاب ﷛ ! څه دالله رسول یم اوهغه به ما هیڅکله پاتې نه راولی . ددې جواب آوریدو سره حضرت فاروق ﷛ واپس شو او ډیره غصه کښې وو.اودهغه ځائې نه نیغ حضرت ابوبکرصدیق ﷛ ته راغلو او دا سوال جواب اوشو او دې کښې سورة فتح نازل شوه.[2] بعضو روایتونوکښې د حضرت سهیل ابن حنیف ﷛ دا الفاظ هم دی چه ماخپله دابوجندل په ورځ اوکتل که ما ته حضرت نبی کریم ﷺ حکم کړې وې د واپس کیدو نو ما به واپس کړې وې .[3] په

---

[1] صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب : ۲۷۳۱، ابوداود: ۲۷٦۵، احمد: ۳۲۳/٤، ابن حبان: ٤۸۷۲.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الفتح باب ( اذ یبایعونک تحت الشجرة ) : ٤۸٤٤، صحیح مسلم : ۱۷۸۵.

[3] صحیح بخاری کتاب الجزیة باب : ۱۸ حدیث : ۳۱۸۱.

هغې کښې دا هم دی چه کله سورة فتح نازل شو نو حضرت نبی کریمﷺ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه راوبللواو ورته ئې دا واورولو(١) دمسند احمد یو روایت کښې دی چه کله دا شرط مقرر شو چه دهغوی سړې هغوئ ته ورځی او خمونږ به نه واپس کیږی نو حضرت نبی کریمﷺ ته اوونیلې شو چه مونږ دا هم اومنو او دادې هم اولیکو. نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه آو، په دې وجه چه څوك خمونږ نه هغوئ ته ورشی نو الله ﷻ دې هغه خمونږ نه لرې ساتی(٢)(مسلم) مسند احمد کښې حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه مروی دی چه کله خارجیان راووتل اوهغوئ جدا والئ اختیار کړو نو ما هغوئ ته اوونیل چه د حدیبیه په ورځ کله چه مشرکانو سره صلح اوشوه نو حضرت علی رضی الله عنه ته حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه اولیکه دا هغه شرائط دی چه په دې دالله رسولﷺ صلح اوکړه.نومشرکانو اوونیل که مونږ تاسو دالله ﷺ رسول ګنړلئ نو مونږ به بالکل تاسو سره جنګ نه کولو. نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه ائې علی رضی الله عنه ا دا وران کړه ، الله تاته ښه معلوم دی چه څه ستا رسول یم ، علی دا وران کړه، اودا اولیکه چه په دې صلح اوکړه محمد بن عبدالله، په الله ﷻ قسم رسول اللهﷺ د حضرت علی رضی الله عنه نه ډیر زیات بهتر وو خو بیا هم دوی هغه وران کړل.نو په دې خو څه د حضرت نبی کریمﷺ نه نبوت لاترو(٣) مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ د حدیبیه په ورځ اویا اوښان ذبح کړی وو. او په دې کښې یو اوښ د ابوجهل هم وو. هر کله چه دا اوښان د بیت الله نه منع کړې شو نو دوی داسې چغې وهلې لکه چه ددوی نه ددوی بچې رودونکئ بچې جدا کیږی .

لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ | رَسُوْلَهُ | الرُّءْيَا | بِالْحَقِّ

| بیشکه ربښتیا ښودلې وو الله | رسول خپل ته | خوب | دحق مطابق

| بیشکه الله خپل رسول ته ریښتوني خوب خودلي دي اِکه الله ﷻ ته منظوره وی

لَتَدْخُلُنَّ | الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ | اِنْ شَآءَ اللّٰهُ | اٰمِنِيْنَ | مُحَلِّقِيْنَ

چې خامخا به داخلیږئ تاسو | مسجد حرام ته | که اوغوښتله الله | په امن سره | خرونکی به یی

نوضرور تاسو به مسجد حرام ته په اطمینان سره ورداخل شئ اپه داسې حال کښې چې سرونه مو خرئیلی وی

رُءُوْسَكُمْ | وَمُقَصِّرِيْنَ | لَا تَخَافُوْنَ | فَعَلِمَ

سرونو خپلو لره | او لنډونکی به یئ دویختو | نه به یریږئ تاسو | پس معلومه ده الله ته

اوویخته به موکټ کړی وی|او هیڅ ویره به درباندې نه وی| نو الله ﷻ ته هغه هرڅه معلوم وو چې تاسو ترې خبر

مَا | لَمْ تَعْلَمُوْا | فَجَعَلَ | مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ | فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿٢٧﴾

هغه خبره | چې نه وه معلومه تاسو ته | نو در نې کره | مخکښې دپوره کیدو دخوب نه| دا فتحه نزدې

نه وی | ............ نو الله ﷻ دهغې نه وراندې یو نزدې کټه درکړه |

هُوَ الَّذِيْٓ | اَرْسَلَ | رَسُوْلَهُ | بِالْهُدٰى | وَدِيْنِ الْحَقِّ

هغه هم دغه الله دی | چې رالیږلی ئې دی | رسول خپل | دهدایت سره | او دحق دین سره |

(الله ﷻ) هغه ذات دي چې خپل رسول (محمد ﷺ) ئې د (کتاب د) هدایت او دحق دین سره رالیږلی دی

(١) صحیح بخاری حواله سابق : ٣١٨٢، صحیح مسلم : ١٧٨٥، السنن الکبری : ١١٥٠٤.

(٢) احمد: ٢٦٨/٣. صحیح مسلم کتاب الجهاد باب صلح الحلیبیة: ١٧٨٤.

(٣) ابوداود کتاب اللباس . باب الغلیظ : ٤٠٣٧ مختصرا وهو صحیح احمد: ٣٤٣/٥.

| لِيُظْهِرَهٗ | عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ؕ | وَكَفٰى بِاللّٰهِ | شَهِيْدًا ؕ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې غالب کړي هغه | په دينونو ټولو باندې | او کافي دی الله | په حيثيت دګواه |
| د دې دپاره چې دادين په نورو ټولو دينونو باندې غالب کړي اودحق دګواهئ دپاره الله ﷻ کافي دی | | | |

**قوله تعالى:- لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ ۚ**

**د نبي خوب د وحي په شان وی** :حضرت نبی کريمﷺ خوب ا وليدو چه دوی ﷺ مکې ته لاړل او دبيت الله شريف طواف ني اوکړو. حضرت نبی کريمﷺ ددې ذکر خپل صحابه کرام ﷺ ته مدينه کښې کړې وو. د حديبيه په کال چه کله حضرت نبی کريمﷺ د عمرې ادا کولو د پاره تشريف يوړو نوددې خوب په وجه صحابه کرام ﷺ ته يقين وو چه دې سفر کښې به مونږ کاميابۍ سره ددې خوب ظاهريدل ضرور ګورو. هلته چه لاړل او ددې خوب حالت بدل شو او تر دې چه صلح نامه ليکلو نه پس بغير د زيارت دبيت الله شريف نه واپس شو نو دا په صحابه کرامﷺ ډير سخت وخت وو.نو حضرت عمر فاروق ﷺخو حضرت نبی کريمﷺ ته اوفرمائيل چه تاسو خو وئيلي وو چه مونږ به بيت الله شريف ته خو اوهلته به طواف کوو. حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه ما دا وئيلي وو دا صحيح خودا مې نه وو وئيلي چه دې کال کښې به څو. حضرت عمرفاروق ﷺاوفرمائيل چه آو دا خو مو نه وو فرمائيلي . نو حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه ستاسو تلوار د څه خبرې ده تاسو به ضرور بيت الله شريف ته ځئ او هلته به طواف هم ضرور کونې.بيا نې حضرت صديق اکبر ﷺ ته اووئيل او هم دا جواب نې واور يدو. دې آيت مبارك کښې ﴿ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ ﴾دی،دا داستثناء دپاره نه بلکه د تحقيق او تاکيد دپاره دی . ددې مبارك خوب تعبير صحابه کرام ﷺ اوکتل او پورا امن سره مکه مکرمه کښې داخل شو.اوهلته چه لاړل نو بعضو خپل سرونه اوخرئيل او بعضو ويښته کم کړل. صحيح حديث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻپه سر ګنجې کولو والو باندې رحم اوکړی . خلقو اوئيل چه حضرت په ويښتو کمولو والو باندې هم.خو حضرت نبی کريمﷺ دوباره هم دا اوفرمائيل چه . خلقو بيا دا اووئيل، آخر په دريم ځل يا څلورم ځل حضرت نبی کريمﷺ د سر کمونکو دپاره دعا اوکړه.
بيا فرمائي چه بې ويرې يعنی مکې ته ښه په امن سره به داخليږئ.اومکه کښې به قيام هم بې ويرې وی.نوعمرة القضاء کښې همدااوشو.داعمره په ذی قعده اوومه هجرئ کښې شوې وه.دحديبيه نه حضرت نبی کريم دذی القعده مياشت کښې واپس شواوذی الحجه اومحرم نې مدينه کښې قيام اوکړو
**د صلح حديبيه نه پس د خيبر فتح:**-صفر کښې خيبر طرفته لاړل.ددې څه حصه خو دجنګ په ذريعه فتح شوه او څه د صلح په ذريعه مسخر شوه.دا ډيره لويه علاقه وه،په دې کښې د کهجورو باغونه او پټی وو. هم ددې ځائې يهوديان حضرت نبی کريم د خادمانو په طور اوساتل او دا معامله اوشوه چه هغوئ دې دباغونو او پټو حفاظت او خدمت کوی او دپيداوار نيمه حصه دې ورکوی.دخيبر تقسيم حضرت نبی کريم ﷺصرف په هغه صحابه کرامﷺ اوکړو چه کوم په حديبيه کښې وو.دهغوئ نه سوا نې په دې جنګ کښې څوك حصه دار جوړ نه کړل.سوا دهغه خلقو نه چه کومو حبشې نه هجرت کړې واپس راغلی وو.حضرت جعفر بن ابوطالب ﷺاو دده ملګری اوحضرت ابوموسی اشعری ﷺاو دده ملګری او چه کوم په حديبيه کښې حضرت نبی کريمﷺ سره موجود وو هغه ټولو په دې فتح خيبر کښې حضرت نبی کريمﷺ سره وو. سوا دحضرت ابودجانه سماك بن خرشه ﷺنه چه دهغه بيان په خپل ځائې دې . ددې ځائې نه حضرت نبی کريم سالم اوغانم تشريف راوړو او د ذی القعده په مياشت کښې په اوومه (٧) هجرئ کښې مکې طرفته د عمرې په اراده روان شو او اهل حديبيه ورسره وو،ذوالحليفه نه نې احرام اوتړلواو دقربانئ شپيته اوښان هم ورسره وو او لبيك لبيك ونيلوسره ظهران ته اورسيدل او حضرت محمد بن سلمه ﷺ نې څه آسونو سره مخکښې مخکښې روان کړل خووسله نې بنده کړې وه.

ددې کتلو سره د مشرکان وار خطاشو او د رعب په وجه ددوی زړونه پریوتل . ددوی خیال وو چه دوی خو پورا تیارنی سره او کامل سامان سره ضرور د جنګ په اراده راغلی دی. هغوئ خو شرط مات کړو چه تر لسو کالو پورې به هیڅ جنګ نه وی.نودوی په منډه منډه لاړل اومکې والوته ئې ددې اطلاع ورکړه.حضرت نبی کریمﷺ چه کله مر ظهران ته اورسیدو چه دکوم ځائې نه کعبې بتان ښکاریدل نو حضرت نبی کریمﷺ ټولې نیزې او کمانونه په بطن یاجج کښې کیخودل او واپس ئې اولیږل او دشرط مطابق صرف تورې ئې ځان سره کړې اوهغه هم میان کښې وې.حضرت نبی کریمﷺ لا په لار کښې وو چه دې کښې د قریشوو لیږلې شوې سړی مکرز بن حفص راغلو اوحضرت نبی کریمﷺ ته اوئیل چه حضور ستاسو اراده خو د وعدې ماتولو نه ده ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ تپوس اوکړو چه څه خبره ده؟ هغه اوونیل چه تاسو خو ځان سره تورې او نیزې راوړی دی . حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه نه هغه مونږ یاجج ته اولیږل .نو ده اوونیل چه زمونږ ستاسو ذات نه هم دا امید وو.تاسوخوهمیشه دپاره نیکی او ښیګړې او وفادارئ کولو والا یئ.د قریشو سرداران خو د ښار نه بهر وتلی دی هغوئ تاسو او ستاسو ملګری کتل نه غواړی.او چه کوم په مکه کښې پاتې شوی هغوئ ټول ماشومان ،ښځې او سړی په لارو کښې ، کوڅو کښې او په چتونو اودریدل . او د تعجب په نظر ئې دې مخلصې ډلې ته ، دې پاك لښکر ته اودې خدائی فوج ته کتل . حضرت نبی کریمﷺ د قربانئی ځناور ذی طوی ته استولی وو. پخپله حضرت نبی کریمﷺ په خپله مشهوره ا وښه قصوی باندې سواره وو. او د حضرت نبی کریمﷺ نه مخکښې مخکښې صحابه کرام رضي الله عنهم وو چه لبیك لبیك به ئې وئیل . حضرت عبدالله ابن رواحه انصاری رضي الله عنه د حضرت نبی کریمﷺ د اوښې واګې نیولې وې او دا اشعار ئې وئیل چه :

باسم الذي لادين الادينه بسم الذي محمد رسوله
خلوبني الكفار عن سبيله اليوم نضربكم على تأويله
كما ضربناكم على تلزيله ربأيزيل الهام عن مقيله
ويذهل الخليل عن خليله قد انزل الرحمان في تلزيله
في صحف تتلى على رسوله بأن خير القتل في سبيله
يارب اني مومن بقيله

یعنی دهغه الله ﷻ په نوم چه دهغه دین نه سوا بل دین قابل قبول نشته دې.دهغه الله ﷻ په نوم چه د هغه رسول محمدﷺ دې. انې دکافرانو بچوا دحضرت نبی کریمﷺ د لارې نه لرې شئ نن خو به مونږ د حضرت نبی کریمﷺ راتلوتاسو سره داشان اوکړو لکه څنګه چه ددوی په راتلو مو وهلې وی ، هغه وهل چه دهغې زور دماغ ته اورسی او دوست نه دوست هیر کړی. الله ﷻ رحم کولو والا په خپله وحی کښې نازل کړو چه په دې صحیفو کښې محفوظ دې.او چه دده درسول مخکښې تلاوت کوی چه دټولو نه بهترمرګ د شهادت مرګ دې چه هغه په لار کښې وی.انې خما ربه ما په دې خبره ایمان راوړی دې. بعضې روایتونو الفاظو کښې څه ردوبدل شته دې. مسند احمد کښې دی چه ددې عمر سفر کښې کله چه حضرت نبی کریمﷺ مرالظهران ته اورسیدو نوصحابه کرام رضي الله عنهم واوریدل چه مکې والو وئیل چه دا خلق خو د کمزورنی په وجه پاسیدې هم نه شی. دې آوریدو سره څه صحابه کرام رضي الله عنهم حضرت نبی کریمﷺ ته راغلل او ورته ئې اوفرمائیل که ستاسو اجازت وی نو چه څه څاروی ذبح کړو او دهغې غوښه او خوره اوڅکو اوښه تازه مکې ته داخل شو. نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه نه داسې مه کونی،تاسو سره چه کوم خوراك دې هغه جمع کړنی.نو دسترخوان ویر کړې شو او د حضرت نبی کریمﷺ د دعا په برکت هغه خوراك دومره زیات شو چه ټولو ښه په مړه خیټه خوراك اوکړو او دې نه

پس ئې خپل ځان سره هم واخستو. حضرت نبی کریم ﷺ مکې ته راتلو نه پس نیغ بیت الله شریف ته ورغلل او د قریشو حطیم طرفته کیناستل،

**طواف کښې رمل او ددې وجه:-** حضرت نبی کریم ﷺ دڅادریو پیسکی(کوټ) دخپل ترخ لاندې نه راوویستو او په ګس ولی(اوږه) باندې ئې واچولو او صحابه کرام ﷺ ته اوفرمانیل چه دا خلق تاسو کښې سستی او کمزورتیا محسوس نه کړی. نو حضرت نبی کریم ﷺ رکن نه بوسه اخستلو نه پس د منډې چال ئې اختیار کړو. هرکله چه رکن یمانی ته اورسیدل نو دهغه ځائې نه دوی قریشو نه لیدل نو په رور ئې تګ شروع کړو او حجر اسود ته اور سیدو. قریشو اووئیل چه تاسو خو د اوسو په پشان تګ کونی لکه تاسو سم تګ نه خوښونی. درې ځل خو حضرت نبی کریم ﷺ په دې چال حجر اسود نه تر رکن یمانی پورې تلل، درې ځل داسې لاړل او هم دا مسنون طریقه ده. یو روایت کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حجة الوداع کښې داشان د طواف دوران کښې کړی وو یعنی دریو چکرو کښې ئې رمل کړې وو یعنی لږ په تیزه شوی وو(١) بخاری او مسلم کښې دی چه د صحابه کرام ﷺ دپاره شروع کښې د مدنې آب وهوا راسته نه وه او د تبو په وجه دوی کمزوری شوی وو. هرکله چه دا حضرت نبی کریم ﷺ او صحابه کرام ﷺ مکې ته راورسید نو اهل عربو اووئیل چه دا خلق خو د مدینې تبو وهلی دی کمزوری او توان په کښې نشته دې. الله ﷻ دمشرکانو ددې خبر نه خپل نبی ﷺ خبرو کړو. مشرکان حطیم سره ناست وو، حضرت نبی کریم ﷺ صحابه کرام ﷺ ته حکم اوکړو چه په رومبی دریو چکرو کښې د حجر اسود نه تر رکن یمانی پورې رمل کونی. اود رکن یمانی نه تر حجر اسود پورې بیا په خپل چال ځئ. ځکه چه هغه ځائې نه دوی مشرکانو نه لیدل. پورا په اوؤ چکرو ئې ورته د رمل کولو نه وو وئیلی، دا خو صرف د رحم په طور وو. هرکله چه مشرکانو اوکتل چه ټول په ټوله بنه په چابك دستئ او چستئ سره طواف کوی نو خپلو کښې ئې اووئیل چه ولې تاسو خو وئیل چه دوی د مدینې تبو کمزوری کړی دی؟ داخلق خود فلانی فلانی نه هم زیات چست اوچالاك دی(٢) یو روایت کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ ذوالقعد په څلورم تاریخ مکې ته رسیدلی وو(٣) او روایت کښې دی چه مشرکان په هغه وخت کښې قعیقان طرفته وو. د حضرت نبی کریم ﷺ صفا مروه نه سعی کول هم مشرکانو ته د خپل قوت خودلو دپاره وو. حضرت ابن ابی اوفی ﷺ فرمانی چه په هغه ورځ مونږ حضرت نبی کریم ﷺ سره وو چه هسې نه مشرکان یا ناپوهه حضرت نبی کریم ﷺ ته څه نقصان اونه رسوی (٤). بخاری شریف کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ عمرې د پاره اووتل خو مشرکانو د حضرت نبی کریم ﷺ لار اونیوله او بیت الله شریف ته ئې پرې نخودل. نو حضرت نبی کریم ﷺ هم هغه ځائې قربانی اوکړه او سر ئې اوخرئیلو یعنی حدیبیه اودا صلح ئې اوکړه چه تاسو به راتلونکی کال عمره کونی. اود تورو نه سوا به نور څه ځان سره نه راوړنی مکې مکرمې ته. او هلته به دومره نه ایساریږئی بلکه چه څومره اهل مکه غواړی. نو راتلونکی کال دوی عمرې دپاره راغلل او درې ورځو پورې ایسار وو او بیا ورته مشرکانو اووئیل چه اوس تاسو واپس شئ نو دوی واپس شو (٥). صحیح بخاری کښې دی چه ذی قعده کښې حضرت نبی کریم ﷺ د عمرې ادا کولو اراده اوکړه خو مکې والو اړی واچوله نو حضرت نبی کریم ﷺ فیصله اوکړه چه دوی به صرف درې ورځې مکه کښې تیروی. هر کله چه صلح نامه لیکلو دپاره لاړل نو وې لیکل چه

---

(١) احمد: ٣٠٥/١، وسنده حسن وصحیح ابن حبان: ٣٨٠١،
(٢) صحیح بخاری کتاب الحج باب کیف کان بدء الرمل: ١٦٠٢، مختصرا صحیح مسلم: ١٢٦٦ ابوداود: ١٨٨٦، احمد: ٢٩٤/.
(٣) صحیح مسلم کتاب المغازی باب عمرة القضا: ٤٢٥٦.
(٤) صحیح مسلم کتاب المغازی باب عمرة القضا: ٤٢٥٦.
(٥) صحیح مسلم کتاب المغازی باب عمرة القضا: ٤٢٥٢.

دا هغه څۀ دی چه په کوم باندې محمدرسول ا للهﷺصلح اوکړه . نواهل مکه اوونیل که مونږ تاسو رسول منلې نو تاسو به مو بالکل نه منع کولې. نو تاسو محمد بن عبدالله اولیکئی ، نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه څه رسولﷺ یم او څه محمد بن عبدالله یم. بیا حضرت نبی کریمﷺ حضرت علیﷺ ته اوفرمائیل چه د رسول لفظ ترې کټ کړه. خو حضرت علی رضی الله عنهاوفرمائیل چه نه نه څه دا نشم ورانولې. نو حضرت نبی کریمﷺ صلح نامه خپل لاس کښې واخسته او دښه نه لیکلو باوجود حضرت نبی کریمﷺ اولیکل چه دا هغه دی چه په دې محمد بن عبدالله صلح اوکړه. دوی به وسلې سره مکې مکرمې ته نه داخلیږی. دوی سره به صرف توره وی او هغه به هم میان کښې بنده وی . اودا چه اهل مکه کښې تاسو سره څوك تلل غواړی نو هغوئ به څان سره نه بوځئ. اودا چه ستاسو ملګرو کښې څوك مکه کښې پاتې کیدل غواړی نوهغوئ به نه منع کوئی. نو کله چه حضرت نبی کریمﷺ راغلو او وخت مقرر شو نو مشرکان حضرت علی رضی الله عنه ته راغلل او ورته ئې اوونیل چه تاسو حضرت نبی اکرمﷺ ته اووائې وخت پورا شوې دې تاسو تشریف یوسئ. نو حضرت نبی کریمﷺ کوچ اوکړو. دحضرت حمزه رضی الله عنه لور تره تره ونیل او حضرت علی رضی الله عنه پسې شوه، حضرت علی رضی الله عنه هغه د ګوتې نه اونیوله او حضرت فاطمه رضی الله عنها ته بوتله او ورته اوونیل چه د خپل ترۀ لور بښه ساته. حضرت فاطمه رضی الله عنهادا جینئ ډیره په خوشحالئ څان سره کینوله . او حضرت زید رضی الله عنه او حضرت جعفر رضی الله عنهخپلو کښې په جنګ شو. حضرت علی رضی الله عنهاوفرمائیل چه دا ما راوستې ده او دا څما د تره لور ده. حضرت جعفر رضی الله عنه ونیل چه دا څما د تره لور ده او ددې ترور څما کور کښې ده . حضرت زید رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا څما د رور لور ده . نو حضرت نبی کریمﷺ ددوی فیصله اوکړه او جینئ ئې ترور ته حواله کړه او وې فرمائی چه ترور په منزله د مور وی. حضرت نبی کریمﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه ته څما نه ئې او څه ستا نه یم. د حضرت جعفر رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل چه ته په اخلاقو کښې او شکل وصورت کښې ماسره مشابهت لرې.حضرت زید رضی الله عنه ئې اوفرمائیل چه ته څمونږ وروراو زمونږ مولی ئې([1])حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل چه یارسول اللهﷺتاسودحضرت حمزه رضی الله عنه لور سره ولې نکاح اونکړه؟نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه هغه څما درضاعی رور لور ده .

**قوله‌تعالى:- فَعَلِمَ مَالَمْ تَعْلَمُوْا**

**د صلح حدیبیه اصل حکمت:-** بیا فرمائی چه الله ﷻ ته کوم خیر او برکت معلوم نو هغه تاسو ته نه وو معلوم نو په دې وجه ئې تاسودې کال کښې مکې داخل نه کړئی اوراتلونکی کال ئې پریخودنی. اوددې نه مخکښې چه کومه وعده رسول اللهﷺ سره خوب کښې شوې وه نو تاسو ته ئې فتح درکړه ، دا فتح هغه صلح ده چه ستاسواوستاسودښمنانو مینځ کښې اوشوه.دې نه پس الله ﷻمومنانو ته زیرې ورکوی چه هغه ذات به رسولﷺ ته پدې دښمنانو او اوپه ټولو دښمنانو فتح ورکړی . هغه ذات دې علم نافع او عمل صالح سره لیږلی دی . شریعت کښې صرف دوه څیزونه وی. علم او عمل صالح. نو علم شرعی صحیح علم دې او عمل شرعی مقبولیت والا عمل دې. دده خبرونه ریښتیا او دده احکام سراسر عدل والا او حق دی. دا غواړی چه په مخ د زمکې څومره ادیان دی ، عربو کښې، عجمو کښې، مسلمین کښې، مشرکین کښې په هغه ټولو باندې خپل دین غالب او ظاهر کړی. الله ﷻ کافی ګواه دې په دې خبره چه دوی علیہ السلام د اللهﷺ رسولﷺ دې. او هم الله ﷻمددګار دې( والله سبحانه وتعالى اعلم ).

[1])صحیح مسلم کتاب المغازی باب عمرة القضا: ۴۲۵۱.

مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ

محمد ﷺ رسول دالله دي | او هغه خلق | چې دهغه سره ملګرې دي | سخت دي | په کافرانو باندې

محمد ﷺ دالله ﷻ رسول دې | اوکوم خلق چې ورسره ملګرې دي | هغوئ د کافرانو دپاره سخت

رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا

رحم کونکي دي | په منځ خپل کښې | ته به وينې هغوئ لره | رکوع کونکې | سجده کونکې |

اوپخپل مینځ کښې مهربان دی | ته ئې وینې ګورې چې کله په رکوع تيټ وی | اوکله په سجده کښې وی

يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا ؗ سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ

چې غواړي به | فضل | دالله نه | او رضا (دهغه) | نښې دهغوئ | په مخونو دهغوئ کښې |

دالله ﷻ فضل اورضامندئ لټوی | ............ دهغوئ په مخونو کښې دسجدود اثر نښې

مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۛۖ وَمَثَلُهُمْ

داثر دسجدونه دی | دا مثال (صفت) دهغوئ | په تورات کښې دې | او مثال دهغوئ |

ښکاری | ............ داپه تورات کښې دهغوئ صفتونه راغلی وو | او دهغوئ هم دا صفتونه

فِي الْاِنْجِيْلِ ۛ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ

په انجيل کښې | پشان دفصل دې | چې اول ئې رااوباسی | تيغ خپل | بيا ئې مضبوط کړو هغه |

په انجيل کښې دی | لکه پټې چې تيغ رازرغون کړی | ............بيا ئې مضبوط کړی

فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ

بيا کلك شو | بيا ودريدو | په پنډئ خپله باندې | چې خوشحالوی کروندګرا | دپاره ددې چې غصه ورولی

بيا هغه غټ شی | نو په خپله تنه باندې نيغ اودريږی | چې زميندار ته ښکلې ښکاری (داترقی ئې مسلمانانو ته

بِهِمُ الْكُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په ترقئ دهغوئ سره | کافرانو لره | وعده کړې ده الله | دهغه کسانو سره | چې ايمان ئې راوړې دې

خکه ورکړه) چې کافران پرې غصه کړی | الله ﷻ هغه خلقو سره چې ايمان ئې راوړې دې | او نيک

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾

او عملونه ئې کړی دی نيك | دهغوئ سره | دبښنانې | او د اجر لوئ |

کارونه ئې اوکړل | دبښنې اودلوئې اجر وعده کړې ده

قوله تعالی:- مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ؕ

دنبی کریم ﷺ او صحابه کرامو صفات :-دې آيتونو کښې دنبی ﷺ صفت او ثناء بيان شوه چه حضرت نبی کریم ﷺ د الله ﷻ حق نبی دې، بیاد حضرت نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو ﷢ صفت او ثناء بيانيږی چه دوی په مخالفو باندې سختی کوونکی او مسلمانانو باندې نرمی کونکی دی. لکه چه بل آيت مبارك کښې دی چه ﴿ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۫ يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ دمومنانو مخکښې نرم اود کفارو دپاره ګرم دی. دهر مومن دا شان پکار دې چه دوی به مومن باره کښې خوش خلق او متواضع او کفارو

باندې به سختي کونکي او په کفر به ناخوش وي. قرآن پاك کښې فرماني چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ ٱلۡكُفَّارِ وَلۡيَجِدُواْ فِيكُمۡ غِلۡظَةٗ﴾ اې ايمان والو تاسوسره چه کوم کافر دي هغوئ سره جهاد کوني چه هغوئ تاسو کښې سختي محسوس کړي. حضرت نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دمومنانو خپلو مثال د محبت اونرم دلئ د يو جسم پشان دې. که دجسم يو اندام ته درد وي نو ټول جسم بې قرار وي.کله په ده تبه اوي اوکله نې خوب نه وي[۱] هغوئ اوفرمائيل چې يومومن دبل مومن دپاره دديوال په شان وي[۲] چه دهغې يو حصه بله حصه مضبوي.بيا حضرت نبي کريم ﷺ د خپل يو لاس ګوتې مبارك د بل لاس ګوتومبارکو کښې ورکړې. بيا نې ددوی يو بل صفت بيان کړو چه نيکئ زياتې کوی او خاص کر مونځ چه ټولو نيکو کښې افضل او بهتر دې. بيا دې نيکو لره د ښکلي کولو څيزونو بيان کوی . يعنې ددوی دخلوص او دالله ﷻ درضا چه دوی دالله ﷻ د رضا او فضل تلاش کوونکی دی. دوی دخپلو عملونويدله دالله ﷻ نه غواړي چه جنت دې. او دا به دوی ته دالله ﷻ فضل سره ملاويږي. اوالله ﷻ به دوی ته خپله رضا هم نصيب کوی اوهغه ډير لوئې څيز دې .

**قوله تعالى:- سِيمَاهُمۡ فِي وُجُوهِهِم**

**په مخونو د علاماتو او تندو کښې د نور مطلب:-** حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرماني چه په څهروباندې د علامت نه مراد ښه اخلاق دی[۳] حضرت مجاهد رحمه الله وغيره فرماني چه دا خشوع اوتواضع ده[۴] او حضرت مجاهد رحمه الله فرماني چه څما خيال داوو چه ددې نه مراد دمونځ هغه نښان چه کوم په تندی جوړيږي.دوی اوفرمائيل چه دا خود هغو په تندو هم ووچه دکومو زړونه د فرعون نه هم زيات سخت وو. حضرت سدي رحمه الله فرماني چه مونځ ددوی مخونه ښائسته کوی. دبعضو سلفو نه منقول دی چه څوك د شپې زيات مونځ کوی نودهغه څهر به ښکلی وی.د حضرت جابر رضی الله عنه يو روايت نه حضرت ابن ماجه يو مرفوع حديث مبارك کښې هم دا مفهوم نقل کړې دې[۵] خو صحيح دادی چه دا موقوف دې.

د بعضو بزرګانو قول دې چه د نيکئ په وجه زړه کښې نور پيدا کيږی او مخ کښې رڼرا راځی. رزق فراخه کيږی. د خلقو زړونو کښې دده محبت پيدا کيږی . دامير المومنين حضرت عثمان رضی الله عنه قول دې چه کوم سړې دخپل باطن اصلاح اوکړی او نيکئ په پټه کوی نو الله ﷻ به دده په مخ په کاسونو باندې او دده د ژبه په کنارو به دده نيکئ ظاهرې کړې . غرض دا چه د زړه آئينه مخ دې . چه په دې کښې څه کيږی نود هغې اثر په مخ باندې وی. نو کله چه مومن خپل زړه درست کړی او خپل باطن ښکلې کړی نو الله ﷻ دده ظاهرهم دخلقو نظرونو کښې ښکلې کوی. امير المومنين حضرت عمربن خطاب رضی الله عنه فرماني چه څوك د خپل باطن اصلاح کوی نو الله ﷻ دده ظاهر هم ښائسته کوی . طبراني کښې دی چه حضرت نبي کريم ﷺ فرماني چه کوم سړې څنګه خبره پټه کوی نو الله ﷻ هغه ته هغه شان څادر وربسر کوی . که هغه پټه نيکی ده نو پټه نيکی او که هغه بدی ده نو دبدئی[۶] خو ددې يو راوی العزرمی متروك دی[۷] مسند احمد کښې ددوی فرمان دې که تاسو کښې يو کس يو غار ته ننوځی چه هغې کښې دروازه نه وی او نه په کښې څه سورې وی او دې څه عمل کوی نوالله ﷻ به هغه دخلقو مخکښې

---

[۱] صحيح بخاری کتاب الادب باب رحمة الناس والبهائم : ۶۰۱۱، صحيح مسلم : ۲۵۸۶، احمد: ۲۷۰/۴ ابن حبان: ۲۳۳.

[۲] صحيح بخاری کتاب الادب باب تعاون المومنين بعضهم بعضا:صحيح مسلم: ۲۵۸۵، ترمذی:۱۹۲۸ احمد : ۴۰۵/۴،

[۳] الطبری : ۲۶۳/۲۲.

[۴] الطبری : ۲۶۳/۲۲.

[۵] ابن ماجه کتاب اقامة الصلوات باب ماجاء فی قيام الليل : ۱۳۳۳،

[۶] الطبرانی.

[۷] احمد: ۲۸/۳.

ظاهر کړي. نیکي وي نو ښه ده او که بدي نو. مسند احمد کښې دي چه نیکه طریقه، ښه اخلاق اومیانه روي د نبوت پنځویشتمه حصه کښې یو حصه ده (١).

د صحابه کرامو شان: غرض دا چه د صحابه کرامو ﷡ نیتونه صفا وو. عملونه ئې ښه وو. نو چه د چا نظر به په دوي پریوتو نو دهغې به دهغوئ پاکبازي ښکاریده. او هغه دده په چال چلن او طریقه کار او اخلاق خوشحالیدو. دحضرت امام مالك ﷫ فرمان دې چه کومو صحابه کرام ﷡ د شام ملك فتح کړو اودهغه ځائې نصرانیانو به ددوي څهرې کتلې نو په چغو چغو به وئیل چه په الله ﷻ قسم دا د حضرت عیسی ﷤ حواریانو نه ډیر افضل او بهتر دی. فی الواقع دهغوئ دا قول رینتوني دې. مخکښې کتابونو کښې ددې امت فضیلت او عظمت موجود دې. او ددې امت دصف اول او ددوي بهتر بزرګان صحابه رسول دی. اوپخپله ددوي ذکر هم په مخکښې آسماني کتابونوکښې اومخکښې واقعاتو کښې موجود دی. نو فرمائی چه داهم مثال ددوي په توراة کښې دې. اوبیا فرمائی چه ددوي مثال انجیل کښې د پټې پشان بیان شوې دې، چه دا خپل شینکې رازرغون کړي، اودبیا دا مضبوط او قوي کوي، او بیا دا طاقتور او غټ شی، اوپه پخپله تنه نیغ اودریږي. نو اوس دا پټې دمالك دخوشحالئ څه وانې؟ نو همداشان اصحاب رسول هم دی. چه هغوئ د حضرت نبی کریم ﷺ سره مدد او تائید اوکړو او بیا دوي حضرت نبی کریم ﷺ سره هغه تعلق ساتی چه کوم د پټې او شینکې تعلق دې. دا په دې وجه چه کفار اوسوزي. حضرت امام مالك ﷫ ددې آیت نه د رافضیانو باره کښې استدلال کړې دی. ځکه چه هغوئ صحابه کرامو ﷡ سره بغض کوي او دوي سره بغضو کولوالا کافر دې. دعلماء کرام یو جماعت هم په دې مسئله کښې امام صاحب سره دې. صحابه کرام ﷡ دفضائلو او د دوي په غلطو باندې سترګو پټولو باره کښې ډیر احادیث راغلی دی. پخپله الله ﷻ ددوي تعریفونه بیان کړل او دوي سره دخپلې رضااظهار اوکړو. آیا ددوي بزرګئ دپاره دا کافي نه دی؟ بیا فرمائی چه دې ایمان والواو او نیك عمل کونکی سره دالله ﷻ وعده ده چه هغه به ددوي ګناهونه معاف کړي او دوي ته به اجر عظیم ورکړي. او دوي ته به رزق کریم ثواب جزیل او بدله کبیر ورکړي.

یاد ساتئ: چه ﴿منهم﴾ کښې چه کوم ﴿من﴾ دې هغه دلته د جنس بیان دپاره دې. دالله ﷻ دا رینتوني او اټله وعده ده چه نه به بدلیږي اونه به دې خلاف کیږي. ددوي په نقش قدم تلونکي او ددوي په طریقه کاربند اوسیدونکو دپاره هم دا وعده ثابته ده. خو کوم فضیلت او سبقت او کمال چه کوم دې امت ته دې هغه بل چا ته نشته دې. الله ﷻ دوي نه خوشحاله اودوي الله ﷻ نه راضي او دوي جنتیان شو او دوي ته بدلې ورکړې شوې صحیح مسلم کښې دی چه ځما صحابه کرام ﷡ ته بد مه وائې او ددوي بې آدبي او ګستاخي مه کوئي. په هغه الله ﷻ مې دې قسم وي چه دچا په قبضه کښې ځما روح دې که تاسو کښې څوك د احد دغر برابر سونا هم خرچ. کړي نو ددې درې پاوه غلـه لکه دوه نیم پاوه غلې برابر هم اجر نشي موندې (٢).

الحمدلله دسورة فتح تفسیر ختم شو.

(١) احمد: ٢٩٦/١، ابوداود کتاب الادب باب فی الوقار: ٤٧٧٦ وهو حسن وسنده ضعیف وللحدیث شاهد عند الترمذی: ٢٠١٠.

(٢) صحیح مسلم: کتاب الفضائل الصحابة: باب تحریم سب الصحابة ﷺ: ٢٥٤٠.

اياتونه ⑱ سورة الحجرات مدنية وهي ثماني عشرة اية وفيها ركوعان ركوع گانې ②

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ

اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | مهٔ وړاند كوئ خان | مخكښې دالله نه |

ائې مومنانو ! تاسو دالله ﷻ اود رسول ﷺ نه (په هيڅ كار كښې) مه وړاندې كيږئ

وَرَسُوْلِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ① يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ

او درسول دهغه نه | اواويريږئ دالله نه | بيشكه الله | ښهٔ اوريدونكې ښه پوهه دې | ائې هغه كسانو |

........... | اود الله ﷻ نه ويريږئ | الله ﷻ ډير اوريدنكې ښه پوهه دې | ..........ائې مومنانو !

اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ

چې ايمان مو راوړې دې | مهٔ پورته كوئ | اوازونه خپل | دپاسه | د اواز دنبى |

...........خپل اوازونه د نبى ﷺ په اواز باندې مه اوچتوئ!

وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ

او مهٔ كوئ په اوچت آواز | دهٔ ته | خبره | پشان داوچت آواز كولو | دبعضو ستاسو | بغضو ته

اومه دهغه سره په زوره خبره كوئ! ........... لكه څنګه چې تاسو ديوبل سره په زوره خبرې كوئ

اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ② اِنَّ الَّذِيْنَ

هسې نهٔ چې عبث شى | عملونه ستاسو | او تاسو به خبر نهٔ يئ | بيشكه هغه كسان

هسې نه چې ستاسو عملونه ضائع شى | اوتاسو پرې خبر هم نه يئ | ..........بيشكه

يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ

چې ښكته ساتى | اوازونه خپل | په نزدرسول دالله | دا هغه كسان دى | چې ازمائيلى دى الله

كوم خلق چې دالله ﷻ د رسول په حضور كښې خپل اوازونه ښكته ساتى | هم دا هغه خلق دى

قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ③

زړونه دهغوئ | دپاره دتقوى | دپاره دهغوئ | ښښنه ده | او اجر لوئ دې |

چې دكومو زړونه الله ﷻ د پرهيزګارئ دپاره ازمائيلى دى | هغوئ دپاره ښښنه او لوئې اجر دې

**قوله تعالى:-** لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

**د آداب رسالت بيان :-** دې آيتونو كښې الله ﷻ امتيانو ته د خپل نبى ﷺ آداب ښائى چه تاسو د خپل نبى ﷺ عزت او احترام او توقير كول پكار دى. تاسوته پكار دى چه په ټولو كارونو كښې دالله ﷻ رسول پسې روان شئ. تاسوله پكار دى چه خپل خان كښې د اتباع او تابعدارنى عادت واچوئى. حضرت معاذ ﷛ چه كله حضرت نبى كريم ﷺ يمن ته ليږلو نو تپوس ئې ترې اوكړو چه څه څيز سره به حكم كوې ؟ نو

وي فرمانيل چه كتاب الله سره . حضرت نبي كريمﷺ تپوس اوكړو كه په هغې كښې دې اونه مونده نو بيا؟ نو وې فرمانيل چه سنت رسولﷺ سره . حضرت نبي كريمﷺ تپوس اوكړوچه په هغې كښې دې هم اونه موندو نوبيا ؟ نو وې فرمانيل چه اجتهاد به كوم . نو حضرت نبي كريمﷺ دهغه په سينه لاس كيخودو او وې فرمانيل چه دالله ﷻ شكر دې چه هغه د حضرت نبي كريمﷺ قاصد ته د هغه څيز توفيق وركړو د چه هغه سره د الله رسول خوشحاله كيږي[1](ابوداؤد، ترمذي، ابن ما جه)دلته ددې حديث مبارك ذكر كولو نه مقصد دادې چه حضرت معاذ رضي الله عنه خپله رائې او اجتهاد ئې د كتاب وسنت نه مؤخر كړو. نو كتاب و سنت باندې رائې مقدم كول دالله اودهغه رسولﷺ نه مخكښې تلل . حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه د كتاب الله وسنت خلاف مه وائې ( [2] )حضرت عوفي رحمه الله فرمائي چه د حضرت نبي كريمﷺ د كلام مخكښې وينا نه منع كړې شوې ده. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه تر كومې چه يو امر كښې الله تعالى اودهغه رسولﷺ څه اونه فرمائي نو تاسو خاموش اوسئ: ( [3] )حضرت ضحاك رحمه الله فرمائي چه د دين امرِ شريعت احكام دي ، تاسو دالله ﷻ دكلام او د دهغه درسولﷺ د حديث نه سوا بل څه باندې فيصله مه كوئي .

حضرت سفيان ثوري رحمه الله فرمائي چه په يو قول كښې دالله ﷻ اودهغه درسولﷺ د حديث نه سوا بل څيز سره فيصله مه كوئي : دحضرت سفيان ثوري رحمه الله ارشاد دې چه په هيڅ يو قول كښې دالله ﷻ او دهغه درسول ﷺباندې سبقت مه كوئي . امام حسن بصري رحمه الله فرمائي چه د امام نه مخكښې دعا مه كوئي. حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه خلقو به ونيل كه فلاني فلاني كښې حكم راشي نو داسې داسې كول پكار دي. دا الله ﷻ خو بنې نه كړل ( [4] ) بيا ارشاد دې چه دالله ﷻ حكم منلو كښې دالله ﷻ لحاظ ساتئ. الله ﷻ ستاسوخبرې آورى او ستاسو ارادې ورته معلوم دي .

قوله تعالى:- لَا تَرْفَعُوٓا۟ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِىِّ

بيا ورته بل آدب ښائي چه دوى دې د نبيﷺ په آواز خپل آوازونه پورته كوي . دا آيت مبارك دحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او حضرت عمرفاروق رضي الله عنه باره كښې نازل شوې دې . صحيح بخاري كښې حضرت ابن ابي مليكه رضي الله عنه نه مروى دي چه نزدې وه چه دوه لوئې بزرگان هلاك شوې وې يعنى حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه و حضرت عمرفاروق رضي الله عنه، ددې دواړو بزرگانو آوازونه د حضرت نبي كريمﷺ په آواز مبارك اوچتو شو او په هغه وخت كښې د بنو تميم وفد حاضر وو. يو خو اقرع بن حابس رضي الله عنه ته ونيل چه د بني مجاشع نه وو او بل بل سړي ته ونيل . په دې حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه اوفرمانيل چه ته هم خما خلاف كوې . حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه اوفرمانيل چه نه نه تاسو دا خيال هم مه كوئى . نو په دې دا آيت مبارك نازل شو. حضرت ابن زبير رضي الله عنه فرمائي چه دې نه پس به حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به حضرت نبي كريمﷺ سره داسې كلام كولو چه حضرت نبي كريمﷺ به ترې دوباره تپوس كولو.( [5] )او يو روايت كښې دي چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه اوفرمانيل چه دې وفد امير قعقاع بن معبد رضي الله عنه جوړ كړئى . او حضرت عمرفاروق رضي الله عنه اوفرمانيل چه نه حضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه لره . نو په دې كښې

---

[1]) ابوداود كتاب القضاء باب اجتهاد الراى فى اللقضاء : ٣٥٩٢، ترمذى : ١٣٢٧، احمد: ٥/٢٣٠ مسند الطيالسى : ١/٢٨٦ بيهقى : ١١٤/١٠، الطبقات: ٢/٣٤٧، جامع بيان العلم : ٢/٥٥.

[2]) الطبرى : ٢٢/٢٧٥.

[3]) صحيح بخارى كتاب التفسير: سورة الحجرات قبل حديث : ٤٨٤٥.

[4]) الطبرى : ٢٢/٢٧٦.

[5]) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الحجرات: ( لا ترفعوا اصواتكم فوق صوت النبى) : ٤٨٤٥.

آوازونه تیز شو او دا آیت مبارك نازل شو چه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا﴾ او ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا﴾ الخ ([1]). مسند بزار کښې دی چه د آیت ﴿لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ﴾ نازلیدو نه پس حضرت ابوبکر صدیق ﷜ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ خه به اوس تاسو سره داسې خبرې کوم لکه څنګه چه څوك پس پس کوی ([2]).

**دثابت بن قیس قصه**:-صحیح بخاری کښې دی چه حضرت ثابت بن قیس ﷜ تر څو ورځو پورې په نظر رانغلو نو په دې یو کس اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! څه به تاسوته دهغه متعلق اووایم. نو هغه د حضرت ثابت کور ته راغلو او وې کتل هغه ډیر خفه ناست دې. تپوس ئې ترې اوکړو چه ولې څه خبره ده؟ نو هغوئ اوئیل چه څما حال ډیر خراب دې. ما خوبه د حضرت نبی کریم ﷺ په آواز خپل آواز پورته کولو، څما اعمال بربادشو او څه جهنمی شوم. داکس حضرت نبی کریم ﷺ راغلو او ټوله واقعه ئې ورته بیان کړل. نو د حضرت نبی کریم ﷺ د فرمان مطابق ئې حضرت ثابت ﷜ ته یو زبردست زیرې یوړو. حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته لاړشه او هغه ته اووایه چه ته جهنمی نه ئې بلکه جنتی ئې ([3]) مسند احمد کښې هم دا واقعه شته دې. په هغې کښې دا هم دی چه حضرت نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه ثابت چرته دې په نظر نه راځی. ددې آخر کښې دی چه حضرت انس ﷜ فرمائی چه مونږ به هغه ژوندې په ګرزیدولیدو او وئیل به مو چه دا جنتی دې. دیمامه په جنګ کښې چه کله مسلمانان لږ زړه ماتی شوی وو نو حضرت ثابت ﷜ خوشبودار کفن اغوستې دښمن طرفته روان وو او دا ئې فرمائیل چه ائې مسلمانانو د ځان نه روستو خلقو دپاره خرابه نمونه مه پرېږدئی. دې وینا سره د دښمن صفونو کښې ننوتو ډیر بهادرئی سره جنګیدو نه پس شهید شو([4]) صحیح مسلم کښې دی چه کله حضرت نبی کریم ﷺ حضرت ثابت او نه لیدو نو دده ګاوانډی حضرت سعد ﷜ نه ئې تپوس اوکړو چه ولې ثابت بیمار دې څه؟ الخ ([5]) خو ددې سند نورو سندونو کښې دحضرت سعد ﷜ ذکر نشته دې. نو ددې نه معلومیږی چه دا روایت معطل دې او دا معلومیږی هم. څکه چه په هغه وخت کښې حضرت سعد ﷜ ژوندې نه وو بلکه د دوی انتقال د بنوقریظه دجنګ نه پس شوې وو. او د بنو قریظه جنګ په پنځمه هجرئ کښې شوې وو. اودا آیت مبارك د بنو تمیم د وفد دراتلو نه مخکښې نازل شوې دې. او د وفدونو پرله پسې راتلل د نهمې هجرئی واقعه ده. والله اعلم.

ابن جریر کښې دی چه دا آیت کله نازل شو نو حضرت ثابت بن قیس ﷜ لار کښې کیناستو اوپه ژړا شو. کله چه حضرت عاصم ابن عدی ﷜ په هغوئ تیر شو نو ددوی نه ئې دې سبب اوپوښتلو. نووې فرمائیل چه ماته ویره ده چه هسې نه دا آیت مبارك څما باره کښې نه وی نازل شوې. حضرت عاصم ﷜ دې آوریدو سره لاړو. دحضرت ثابت ﷜ اسویلی بند شو او په چغو چغو ئې ژړل. کورته لاړو او خپلې بی بی حضرت جمیله بنت عبدالله بن ابی بن سلول ته اوئیل چه څه د خپل آس غوجلې ته ورځم. ته ددې دروازه بهر نه بند کړه او د اوسپنې یو میخ پرې اووهه. په الله قسم څه به ددې نه راوځم تر څوچه مړ نشم یا د الله ر سول ﷺ څما نه راضی نه شی. دلته خو داسې اوشو او بل طرفته چه کله حضرت عاصم ﷜ د حضرت نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او ټوله واقعه ئې ورته بیان کړه نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته حکم اوکړو چه ته لاړشه او حضرت ثابت ﷜ ماته راوله. خوکله چه حضرت عاصم ﷜ هغه ځائې ته راغلو اووې کتل نو حضرت ثابت ﷜ هغه ځائې کښې نه وو. کورته ورغلو نو

---

[1]) صحیح بخاری حواله سابق ،: ۴۸۴۷، ترمذی : ۳۲٦٦.

[2]) البزار : ۲۲۵۷، حاکم : ۴٦۲/۲، وسنده حسن ، مجمع الزوائد : ۱۱۱/۷،

[3]) صحیح بخاری حواله سابق :۴۸۴٦، .

[4]) احمد: ۱۳۷/۳ ح/۱۲۳۹۹، وسنده صحیح.

[5]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب مخافة المومن ان یحبط عمله:. ۱۱۹.

معلوم شو چه هغه د اس غوجل کښې خان بند کړې دې . دلته راغلو او ورته ئې اوفرمائيل چه اې ثابت رضی الله عنه راځه ته حضرت نبی کريمﷺ ياد کړې ئې . حضرت ثابت اوفرمائيل چه ډيره ښه ده ميخ لرې کړې او دروازه بيرته کړه . بيا بهر راوتلو نه پس د حضرت نبی کريمﷺ خدمت کښې حاضر شو . نو حضرت نبی کريمﷺ ترې د خوب دوجې تپوس اوکړو او ددې ريښتونې جواب آورريدو نه پس حضرت نبی کريمﷺ ورته اوفرمائيل چه ته په دې خبره خوشحاله نه ئې چه ته قابل تعريف ژوند تير کړې او شهيد شې او جنت ته داخل شې. په دې د حضرت ثابت رضی الله عنه ټول غم لرې شو او وې فرمائيل چه يارسول اللهﷺ ا ځه ستاسو په دې زيرې خوشحال يم او بيادپاره به هيڅ کله ستاسو آواز نه خپل آواز نه اوچتوم.نو دې نه پس آيت مبارك ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ﴾ الخ نازل شو[1] دا قصه د ډيرو تابعينو نه مروی ده . العرض الله ﷻ دخپل رسولﷺ مخکښې خپل آواز اوچتولو نه منع اوکړه. اميرالمومنين حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د دوو کسانو آواز مسجد نبوی په زوره زوره آوريدو نه پس ئې هغوئ ته اووئيل چه تاسو ته معلوم دی چه تاسو چرته يئ؟ بيا ئې تپوس اوکړو چه تاسودکوم ځائې اوسيدونکی يئ؟هغوئ اووئيل چه دطائف. نو دوی رضی الله عنه ورته اوفرمائيل که تاسو د مدينې وئ نو ما به تاسو ته پورا سزا درکړې وې .

**مسجد نبی کښې اواز اوچتوونکو ته د عمر فار وق رضی الله عنه تنبيه:**-علماء کرام فرمائی چه د حضرت نبی کريمﷺ قبر مبارك سره هم په زوره وينا کول مکروه دی . لکه څنګه چه د حضرت نبی کريمﷺ په ژوند ددویﷺ مخکښې وو. ځکه چه حضرت نبی کريم ﷺ څنګه په ژوند کښې قابل احترام او عزت والا وو داشان په خپل قبر مبارك کښې هم عزت او قابل احترام دې . لکه څنګه چه عامو خلقو سره خبرې کوی نو داشان د حضرت نبی کريمﷺ مخکښې خبرې کولو نه منع اوکړې شوه. بلکه د حضرت نبی کريمﷺ مخکښې تسکين اووقارسره خبرې کول پکار دی.او يو ځائې کښې دی چه ﴿لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا﴾يعنی اې مسلمانانو ! تاسو رسولﷺ ته داسې آواز مه کوئی لکه څنګه چه نورو ته آواز کوئی.

**د اواز اوچتولو کولو اصل وجه:**-بيا فرمائی چه مونږ تاسو ددې اوچت آواز نه په دې وجه منع کړنی چه هسې نه تاسو نه حضرت نبی کريم ﷺخفه شی اوبه دې وجه ستاسو نه الله ﷻخفه شی. اوستاسو عملونه ضبط شی او تاسو ته ددې معلومات هم نه وی . نو صحيح حديث مبارك کښې دی چه يو سړې د الله ﷻ د رضا دپاره يوداسې کلمه اووائی چه هغه کلمه هيڅ نه وی خوالله ﷻ دده نه په دې راضی شی، او ددې په وجه دې جنتی شی. داشان انسان دالله ﷻد خفګان يوداسې کلمه اووائی چه دده په نزد ددې هډو هيڅ وقعت نه وی خو ددې په وجه الله ﷻ دې دجهنم داسې لاندې طبقې ته داخل کړې چه هغه کنده د زمکې او آسمان نه زياته ژوره ده[2]بيا الله ﷻد حضرت نبی کريمﷺ مخکښې د خپلو آوازونو د رو کولو حکم فرمائی او فرمائی چه کوم خلق د حضرت نبی کريم مخکښې خپل آوازونه رو کوی الله ﷻ هغوئ د تقوی دپاره خاص کوی . اهل تقوی او محل تقوی هم دا خلق دی . دوی د مغفرت الهی مستحق او د اجر عظيم لائق دی. امام احمد رحمه الله په کتاب الزهد کښې يو روايت نقل کړې دې چه حضرت عمر رضی الله عنه نه يو تحريری استفتاء واخستې شوه چه اې امير المومنين رضی الله عنه ! چه هغه يو سړې چه دهغه نافرمانئی کولو خواهش نه وی ، اونه ده څه نافرمانی کړې وی ، او هغه سړې چه دهغه د معصيت کولو خواهش شته دې خو ګناه ئې نه ده کړې،نو په دوی کښې افضل څوك دې ؟ نو حضرت نبی کريمﷺ جواب کښې اوليکل چه د چا ګناه کولو خواهش وی اوبيا هم نافرمانو نه بچ اوسی. هم دا خلق دی چه ددوی زړونه الله ﷻ د پرهيزګارنی دپاره آزمائيلی دی . ددوی دپاره مغفرت او او ډير اجرو

---

[1] صحيح بخاری کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد : ٣٧٠.
[2] صحيح بخاری کتاب الرقاق باب حفظ اللسان: ٦٤٧٨، صحيح مسلم: ٢٩٨٨ بتصرف يسير.

ثواب دي .

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ |
| بیشکه هغه کسان |
| يُنَادُونَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ۝ وَلَوْ أَنَّهُمْ |
| چي اوازونه کوي تاته \| دبهر دکور نه \| زيات دهغوئ نه \| نه پوهيږي \| اوکه چرې هغوئ |
| څوک چي تاته دکورونو د بهر نه چغي وهي\| په هغوئ کښي زيات خلق نه پوهيږي \| اوکه دوئ |
| صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ |
| صبر کړي وي \| تر دي پورې \| چي ته راوتلي وې \| هغوئ ته \| نو وه \| بهتره \| دپاره دهغوئ \| |
| لږ صبر کړي وې\| تر دي چي تا پخپله تشريف راوړي وو\| نو دابه ددوئ دپاره ډيره بهتره وه |
| وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝ |
| او الله بښونکي \| مهربانه دي \| |
| اوالله ﷻ بښونکي ډير رحم کونکي دي |

قوله تعالى:- أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ۝

**دحضرت نبی کریمﷺ داحترام لحاظ نه ساتل بې عقلی ده** :دې آيتونو کښې دهغه خلقو مذمت بيانوی چه کوم حضرت نبی کريمﷺ د کورونو دشا نه حضرت نبی کريمﷺ ته آوازونه کوی.لکه څنګه چه داعرابو خلقو دستور وو. فرمائی چه په دوی کښې بالکل عقل نشته دې. بيا ددې خبرې باره کښې ادب ښائی او فرمائی چه دوی ته پکار وو چه د حضرت نبی کريم ﷺانتظار ئې کړې وې او کله چه حضرت نبی کريمﷺ دکور نه بهر تشريف راوړې وې نو دوی چه حضرت نبی کريمﷺ ته څه ونيل غوښتل نو هغه به ئې ورته ونيلې وې. چه آوازونه ئې نه کولې . ددنيا اودين مصلحت بهتری هم په دې کښې وو. بيا ګويا حکم ورکوی چه داسې خلقو ته پکار دی چه استغفار اووائی.څکه چه الله ﷻ بخښنې والا او مهربان دی. دا آيت مبارک د حضرت اقرع بن حابس تميمی باره کښې نازل شوې دې. مسند احمد کښې دی چه يو سړی حضرت نبی کريمﷺ ته په نوم سره آواز اوکړو چه يامحمدﷺ ! يا محمدﷺ ا، خو حضرت نبی کريمﷺ ورته هيڅ جواب ورنکړو. نو هغه اوونيل چه يارسول الله واورئی ! څما تعريف کول سبب دی د لوئې، او څما مذمت کول سبب دی د ذلت. نو حضرت نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه داسې ذات صرف دالله ﷻ دې [1]بشر بن غالب دحجاج مخکښې، بشر بن عطاء وغيره ته اوونيل چه دا آيت مبارک ستا دقوم بنو تميم باره کښې نازل شوې دې . هرکله چه حضرت سعيد بن جبير ﷺ ته ددې ذکر اوشو نو دوی ﷺ اوفرمائيل که هغه عالم وې نو ددې نه پس آيت مبارک ﴿ يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوْا ﴾ ئې ونيلې وې.هغوئ ونيل چه مونږ اسلام راوړو اوبنو اسد په دې کښې څه روستو والئ اونکړو. حضرت زيد بن ارقم ﷺفرمائی چه څه عرب جمع شو او وې ونيل چه مونږ هغه بنده ته بوځه، که په ريښتيا نبی دې نو ټولو نه مونږ ددې مستحق يو چه دهغه سعادت حاصل کړو. که هغه بادشاه دې نو چه ټولو نه مخکښې ئې مونږ عزت اوکړو. بيا څه راغلم او حضرت نبی کريمﷺ ته دا ټوله واقعه بيان کړه . بيا هغه خلق راغلل او د حجرې مبارک دشا نه ئې حضرت نبی کريمﷺ ته آوازونه شروع کړل .

[1] احمد: ۱۵۹۹۱/۳، وسنده صحيح متصل والحمدا لله ، الدرالمنثور : ۸۸/۹ طبرانی :۸۷۸.

نودې باندې دا ايت مبارك نازل شو. حضرت نبي كريم ﷺ خه دغوږ نه اوونيولم او وې فرمائيل چه الله ﷻ ستا خبره رښتيا كړه ، الله ﷻ ستا خبره رينښتيا كړه . [1] (ابن جرير ).

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنْ جَآءَكُمْ | اٰمَنُوْٓا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | |
| كه راشي تاسو ته | چې ايمان مو راوړې دې | اے هغه كسانو | |
| | | ائي مومنانو ! كه يو فاسق سړې درته څه | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَوْمًا | اَنْ تُصِيْبُوْا | فَتَبَيَّنُوْٓا | بِنَبَاٍ | فَاسِقٌ |
| يو قوم ته | هسې نه چې تاسو اورسوئ ضرر | نو ښه تحقيق كوئ | په خبر سره | يو فاسق |
| اوبيا | هسې نه چې په ناپوهئ كښې يو قوم ته نقصان اورسوئ | نوښه تحقيق كوئ | خبر راوړي | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاعْلَمُوْٓا | نٰدِمِيْنَ ⑥ | فَعَلْتُمْ | عَلٰى مَا | فَتُصْبِحُوْا | بِجَهَالَةٍ |
| پوهه شئ | ښپيمانه | چې كړې وې تاسو | په هغه كار باندې | بيا تاسو شئ | په ناپوهئ سره |
| او پوهه شئ | | | ............پخپلو كړو به ستومانه شئ | | |

| | | |
|---|---|---|
| لَوْ يُطِيْعُكُمْ | رَسُوْلَ اللّٰهِ ۭ | اَنَّ فِيْكُمْ |
| كه هغه خبره منل شروع كړې ستاسو | رسول دالله موجود دې | چې بيشكه په منځ ستاسو كښې |
| ډيرې خبرې داسې وى كه هغه په كښې ستاسو | رسول موجود دې | چې په تاسو كښې دالله ﷺ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَبَّبَ | وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | لَعَنِتُّمْ | فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ |
| غوره كړو | وليكن الله | نو په مشكلاتو كښې په پريوزئ تاسو | په ډيرو معاملاتو كښې |
| خو الله ﷺ تاسو ته دايمان محبت | | نو په مشكلاتو كښې به اخته شئ | خبرې اومنى |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَرَّهَ | فِيْ قُلُوْبِكُمْ | وَزَيَّنَهٗ | الْاِيْمَانَ | اِلَيْكُمُ |
| او ناخوښه ئې كړو | په زړونو ستاسو كښې | او ښائيسته ئې كړو هغه | ايمان | تاسو ته |
| ............تاسو ته ئې كفر | | اوهغه ئې ستاسو په زړونو كښې ښائسته كړې دې | | نصيب كړې دې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُولٰۗىِٕكَ | وَالْعِصْيَانَ ۭ | وَالْفُسُوْقَ | الْكُفْرَ | اِلَيْكُمُ |
| دا كسان چې دى | او نافرمانئ | او فسق | كفر | تاسو ته |
| ............هم دغه خلق په | | | اوبدعملى اونافرمانى ناخوښه كړې ده | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ | وَنِعْمَةً ۭ | مِّنَ اللّٰهِ | فَضْلًا | هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ⑦ |
| او الله | او په احسان سره | دطرفه دالله نه | په فضل سره | هم دوئ په نيغه لار روان دى |
| ............او الله ﷺ ښه | | دالله ﷺ په فضل او په انعام سره | | نيغه لارروان دى |

| | |
|---|---|
| حَكِيْمٌ ⑧ | عَلِيْمٌ |
| حكمت والا دې | ښه پوهه دې |
| | پوهه صاحب دحكمت دې |

[1] الطبري: ٢٨٤/٢٢، طبراني : ٥١٢٣،

**قوله‌تعالى:- فَتَبَيَّنُوٓا**

**دخبر او اطلاع تحقيق كول ضروري دي** :الله ﷻ فرمائي چه دفاسق په خبر اعتماد مه كوئي.تر كومې چه پوره تحقيق او تفتيش سره اصل واقعه صفا معلوم نه كړئي . هيڅ حركت مه كوئي،ممكن دى چه يو فاسق سړى دا خبر خور كړې وى.يا پخپله دده نه غلطى شوې وى.او تاسو دهغه په خبر څه كاروائى اوكړئى نودا به دهغه مرسته وى او دفاسق مرسته كول حرام دى . هم دا ايت بعضو محدثينو دليل جوړ كړې دې اودهغه سړى روايت ئې غيرمعتبر گرزولې دې چه دهغه حال معلوم نه وى.ځكه چه ممكن دى چه هغه في الواقع فاسق وى . اگر چه بعضو خلقو دداسې مجهول الحال راويانو روايتونه هم كړى دى.او دوى وئيلى دى چه مونږ د فاسق دخبر اخستو نه منع كړې شوى يو. او چه دچا حال معلوم نه وى نو دهغه فاسق كيدل په مونږ ظاهر نه دى. مونږ دا مسئله د صحيح البخاري شرح كښې په كتاب العلم كښې بنه وضاحت سره بيان كړې ده فالحمدلله . اكثر مفسرينو فرمائيلى دى چه دا آيت مبارك د وليد بن عقبه بن ابو معيط باره كښې نازل شوې دې. اوهغه حضرت نبى كريم ﷺ قبيله بنو مصطلق ته دزكوة وصولئ دپاره ليږلې وو. مسند احمد كښې دى،دحضرت حارث بن ضرار خزاعى رضي الله عنه چه د ام المومنين حضرت جويريه رضي الله عنها پلار دې فرمائي چه څه د حضرت نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شوم نو حضرت نبى كريم ﷺ ماته داسلام دعوت راكړو او ما قبول كړو او څه مسلمان شوم. بيا حضرت نبى كريم ﷺ ماته د زكوة د فرضيت باره كښې اووئيل نو ما ددې هم اقرار اوكړو او ما اووئيل چه څه خپل قوم ته څم او چه هغوئ كښې څوك اسلام قبول كړى او زكوة ادا كوى نو څه دهغوئ نه زكوة جمع كړم او دومره دومره ورځو نه پس تاسو ماپسې څوك راوليږئى څه به دهغه په لاس ټول جمع شوې زكوة تاسو ته راوليږم. حضرت حارث رضي الله عنه هم داسې اوكړل او د زكوة مال ئې جمع كړو. هركله چه مقرر وخت شو نو حضرت نبى كريم ﷺ نه څوك قاصد رانغلو. نو دوى دخپل قوم سرداران جمع كړل او وې وئيل چه دا ناممكن دى چه دالله رسول ﷺ د خپلې وعدې مطابق څوك قاصد راونه ليږى . ما ته ويره ده چه هسې نه حضرت نبى كريم ﷺ مونږنه په څه خبره خفه شوې نه وى ؟ اوپه دې وجه حضرت نبى كريم ﷺ خپل څوك قاصد د زكوة وصولئ دپاره نه وى راليږلئ . نو كه تاسو متفق يئ چه مونږ پخپله دامال مدينې منورې ته يوسو او د حضرت نبى كريم ﷺ خدمت كښې ئې پيش كړو. دا تجويز مقرر شو. او دا حضرات سره د خپل زكوة د حضرت نبى اكرم ﷺ خدمت كښې حاضريدودپاره روان شو.

بل طرفته حضرت نبى كريم ﷺ وليد بن عقبه خپل قاصد ليږلې وو. خو دا حضرت هم دلارې نه د ويرې په وجه واپس شوى وو او چه دلته راغلونو وې وئيل چه حارث زكوة هم رانكړو او ما هم قتل كوى . په دې باندې حضرت نبى كريم ﷺ خفه شو او څه كسان ئې دحارث د زورنې دپاره اوليږل . مدينې ته نزدې دې مختصر لښكر حارث اوليدو. حضرت حارث رضي الله عنه تپوس اوكړوچه څه خبره ده ؟ تاسو چرته او چاپسې ځئ ؟ هغوئ اووئيل چه مونږ هم ستاسو طرفته ليږلې شوى يو . نو هغه تپوس اوكړو چه ولې. هغوئ ورته اووئيل ځكه چه تا د حضرت نبى كريم ﷺ قاصد وليد ته زكوة ورنكړو او هغه دې قتل كولو. نو حارث اووئيل چه په هغه رب قسم چه هغه حضرت محمد ﷺ رېښتونې رسول ليږلې دې چه ما خو نه هغه ليدلې دې اونه ئې ځما نه زكوة غوښتلې دې . ځئ څه پخپله د حضرت نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضريدو دپاره تلم . دلته چه راغلونو حضرت نبى كريم ﷺ ترې تپوس اوكړو چه تا زكوة هم ورنكړو او ځما قاصد دې هم قتل كولو. نو دوى جواب كښې اووئيل چه يارسول الله ﷺ قسم دې په هغه رب چه هغه ته رېښتونې رسول جوړ كړې ا و راليږلې ئې نه خو ما هغه كتلې او نه ئې ځما نه زكوة طلب كړې دې.بلكه چه كله ما قاصد اونه ليدو نو ددې وېرې چه هسې نه حضرت نبى كريم ﷺ خفه شوې وې نه وى او په دې وجه ئې قاصد نه وى ليږلې نو څه پخپله ستاسو خدمت كښې حاضر شوم. نو

په دې دا آيت مبارك نازل شو چه ﴿حَكِيمٌ﴾ پورې[1] د طبراني كښې هم دي چه كله دا قاصد دحارث كلي ته اورسيدو نو هغه خلق دده داستقبال دپاره ډير په خوشحالئ راپاسيدل خو بل طرفته دده زړه كښې داشيطاني خدشه پيدا شوه چه دوی ما سره دجنګ دپاره راپاسيدل نو دې واپس شو . هغوئ چه كله اوكتل چه قاصد خو واپس شو نو پخپله حاضر شو او دماسپخين مونځ نه پس تول د حضرت نبي كريمﷺ خدمت كښې كيناستل او عرض ئې اوكړو چه يارسول اللهﷺتاسو زكوة اخستلو دپاره چه قاصد راوليږلو نو مونږ ډير خوشحاله شو . خو الله ﷻ خبر چه څه اوشو چه هغه دلارې نه واپس شو. نو ددې ويرې نه چه هسې نه الله ﷻخمونږ نه خفه نشي مونږ خپله حاضر شو.او هم داشان هغوئ معذرت كولو.
هركله چه حضرت بلال رضي الله عنه د مازيګر اذان اوكړو نو په هغه وخت كښې دا آيت مبارك نازل شو[2] او يو روايت كښې دي چه د حضرت وليد رضي الله عنه په خبر حضرت نبی كريمﷺ لا په سوچ كښې وو چه هغوئ طرفته لښكر اوليږي چه په دې كښې دهغوئ وفد راغلو. اوهغوئ اوئيل چه ستاسو قاصد هم د لارې نه واپس شو. نو په دې وجه حاضر شو چه هسې نه هغه تاسو د څه خفګان په وجه واپس كړې وی . مونږ دالله ﷻ د غصې او د ستاسو د خفګان نه هغه پاك ذات سره پناه غواړو[3]نو الله ﷻ دا آيت مبارك نازل اوكړو او ددوی عذر ئې ريښتونې كړو او يو روايت كښې دی چه قاصد دا هم ونيلي وو چه هغه خلقو خو لښكرجمع كړې تاسو سره دجنګ كولو دپاره اوداسلام نه هم مرتد شوی دی.نو حضرت نبی كريمﷺ حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه يو لښكر مشر كړو او وې ليږلو او ورته ئې اوئيل چه مخكښې ښه تحقيق اوكړئ اوبه حمله كولو كښې تيزی مه كوئ. هم ددې مطابق حضرت خالد بن وليد رضي الله عنهخپل جاسوسان اوليږل هغه ښار ته . نو هغوئ خبر راوړو چه هغه خلق خو په دين اسلام باندې دی،مسجدونو كښې اذانونه اوشو اومونږ هم واوريدل اومونږ هغه خلق پخپله په مونځ اوكتل . سحر حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه پخپله لاړو اودهغه ځائې د اسلامي نظارې نه خوشحاله شو. چه كله واپس شو نو سركار نبویﷺ دا خبر وركړو نو دې باندې دا آيت مبارك نازل شو.
حضرت قتاده رحمه الله چه دا وقعه بيانوی نو وائي چه د حضرت نبي كريم فرمان دې چه تحقيق او تلاش، بردبادري اودوراند يشي دالله ﷻ دطرفنه ده.اوعجلت اوتيزي دشيطان دطرفنه ده [4]سلفو كښې حضرت قتاده رحمه الله نه علاوه نورو ډيروز حضراتو دا ذكر كړی دی.لكه ابن ابی ليلی رحمه الله،يزيد بن رومان رحمه الله او مقاتل بن حيان رحمه الله وغيره. والله اعلم. بيا فرمائي چه په دې پوهه شئ چه په تاسو كښې دالله ﷻ رسولﷺ موجود دې ، دده تعظيم كول،ددوی عزت كول ، ددوی احكام په سرسترګو منل ، ستاسو فرض دی.هغه ستاسو دمصلحتونو نه ډير خبر دې اودهغه تاسوسره ډير محبت دې او هغه تاسو مشقت كښې نه اچوی.تاسو د خپلې خيرخواهئ باره كښې دومره واقف نه يئ لكه څومره چه حضرت نبي كريمﷺ دې.او بل ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿ اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗٓ اُمَّهٰتُهُمْ ؕ ﴾ يعنی نبیﷺ بهتر دې دمسلمانانو نه ددوی د خپلو ځانونو په نسبت.
بيا بيان فرمائي چه انې خلق ستاسو عقلونه چه كوم مصلحتونه نه شی مونډې هغه نبي مومې نو كه هغه په هر كار كښې ستاسو خوښه كوی نو دې كښې به ستاسو دپاره حرج وی . لكه چه آيت كښې دې ﴿ وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ؕ بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ؕ ﴾ يعنی كه رب ﷻ ددوی په مرضئ روان شی د زمكې اوآسمان مينځ كښې به هر څيز خراب شی .دا نه بلكه مونږ

---

[1] احمد: ٢٧٩/٤، التاريخ الاوسط : ٩١/١، طبران : ٣٣٩٥، معجم الصحابة: ١٧٧/١.
[2] الطبراني : ٢٨٧/٢٢،
[3] الطبری
[4] الطبری : ٣١٦٨٧،

دوی ته ددې نصیحت کړې دې . خو دوی نصیحت ته غوږ نه نیسي .
بیا فرمائي چه الله ﷻ ایمان لره ستاسو په نفسونو کښې محبوب کړې دې .او ستاسو په زړونو کښې ئې ددې محبت اچولې دې. مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ فرمائي چه اسلام ظاهر دی او ایمان په زړه کښې دې. بیا حضرت نبی کریمﷺ خپلې سینې مبارکې ته درې ځل اشاره کړې او فرمائي چه تقوی دلته ده(١)د پرهیزګارنې ځائې دادې. او هغه ذات ستاسو په زړونو کښې د کفر و کبیره ګناهونو او ټولو نافرمانو نفرت پیدا کړې دې . اوداشان په مزه مزه ئې تاسو باندې خپل نعمتونه پورا کړی دی.بیا ارشاد دې چه په چا کښې دا پاك صفتونه دی،هغوئ ته الله ﷻ نیکی اورشدو هدایت ورکړې دې .

قوله تعالى:- حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ

میدان بدر کښې د صف بندئي په وخت کښې د رسول کریم ﷺ دعا:-مسند احمد کښې دی چه داحد په ورځ چه کله مشر کانوحمله اوکړه نوحضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه بنه صحیح شئ چه څه دخپل ربﷻ ثناء اووایم .نوخلقو حضرت نبی کریمﷺ پسې صفونه جوړ کړل .او حضرت نبی کریمﷺ دا دعا اووئیله (اللهم لك الحمد كله اللهم لاقابض لما بسطت ولا باسط لما قبضت ولا هادي لمن اضللت ولا مضل لمن هديت ولا معطي لما منعت ولا مانع لما اعطيت ولا مقرب لما باعدت ولا مباعد لما قربت اللهم ابسط علينا من بركاتك ورحمتك وفضلك ورزقك اللهم اني اسئلك النعيم يوم العيلة والامن يوم الخوف اللهم اني عائذ بك من شرما اعطيتنا ومن شرما منعتنا اللهم حبب الينا الايمان وزينه في قلوبنا وكره الينا الكفر والفسوق والعصيان واجعلنا من الراشدين اللهم توفنا مسلمين واحينا مسلمين والحقنا بالصالحين غير خزايا ولا مفتونين اللهم قاتل الكفرة الذين اوتوا الكتاب اله الحق ) (نسائي)

(ترجمه) ټولو تعریفونه تالره دی او ته چه چاته فراخي ورکوې نو هغه هیڅوك نه شي تنګولې . او ته چه څوك ګمراه کړې نو هغه ته هیڅوك هدایت نه شي ورکولې . او چه ته چاته هدایت ورکړې نو هغه نه هیڅوك ګمراهی نشي ورکولې . چه دچا نه ته منع اوکړې نو هغه ته هیڅوك نشي ورکولې . او چه نه چاته ورکړې نو هغه نه هیڅوك نشي منع کولې . او چا لره ته نزدې کړې نو هغه هیڅوك نشي لرې کولې،او چه ته څوك لرې کړې نو دهغه نزدې کولو والاهیڅوك نه وی .اې الله ﷻ په مونږ خپل برکتونه او فضل او رزق فراخه کړې . اې اللهﷻخه ستا نه هغه فراخه نعمتونه غواړم چه هغه یوځوا بل خوا نه کیږی اونه زائل کیږی . اې الله د فقیرئ او احتیاج په ورځ ماته خپل نعمتونه راکړه، او د ویرې په ورځ په ماته امن راکړه ، اې الله ﷻتا چه ماته څه راکړی دی او څه دې نه دی راکړی دهغه ټولو نه څه ستا پناه غواړم،اې الله ﷻخمونږ زړونو کښې دایمان محبت پیدا کړه.او هغه زمونږ په نظرونوکښې زینت والا جوړ کړه . اود کفر اوعداوت او نافرمانئ نه خمونږ زړونو کښې نفرت پیدا کړه. او مونږ په هدایت یافته خلقو کښې کړې .اې الله ﷻمونږ د اسلام په حالت وفات کړې او هم په اسلام مو ژوندې اوساتې ، اونیکو خلقو نه مو کړې .مونږ دې رسوا نشو او مونږ دې فتنو کښې وانچولې شو. اې الله ﷻ دا کافر تباه کړې چه کوم ستارسول په دروغه ګنړی . اوستا لارې نه ئې منع کوی . ته په دوی خپل عذاب او سزا نازله کړه . یاالله ﷻ د اهل کتاب کافر هم تباه کړې ، اې ریښتونی معبوده(٢)دا حدیث مبارك امام نسائي هم په خپل کتاب عمل الیوم واللیله کښې راوړې دې

یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه .کوم سړی ته خپله نیکی ښه اولګی او د بدئ نه خفه شي نو هغه مومن دې (٣). بیا فرمائي چه دا بخشش چه تاسو ته درکړې شوې ده داتاسو باندې دالله ﷻفضل دې.

---

(١) احمد: ١٣٤ مسند ابي يعلى: ٢٩٢٣.
(٢) احمد: ٣/٤٢٤، وسنده صحيح السنن الكبرى : ١٠٤٤٥، وعمل اليوم والليلة: ٦٠٩.
(٣) ترمذى كتاب الفتن باب ماجاء في لزوم الجماعة : ٢١٦٥. وهو صحيح .

اودهغه نعمت دي.اوالله ﷻ ته د هدايت او ضلالت مستحق ښه معلوم دی . او هغه الله ﷻ په خپلو اقوالو او افعال کښې حکيم دې .

وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا

| او که چرې دوه ډلې | دمومنانونه | اوجنګيږي |

| اوکه چرې دمومنانو دوه ډلې په خپل مينځ کښې جنګيږي

فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ فَاِنْۢ بَغَتْ اِحْدٰىهُمَا

پس صلح اوکړئ | په منځ دهغوئ دواړو کښې | پس که چرې زياتي اوکړو | يود دواړو نه |

نو دهغوئ په مينځ کښې صلحه کوئ | نوبيا که چرې يوه ډله په بله باندې زياتي کوی

عَلَى الْاُخْرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى

په بله ډله باندې | پس جنګ کوئ تاسو | دهغې ډلې سره | چې هغه زياتي کوی | تر دې پورې

نوتاسو هغه ځا سره جنګ اوکړئ | کومه يوه چې زياتي کوی | تر دې چې

تَفِيْٓءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَآءَتْ فَاَصْلِحُوْا

چې هغه واپس راشی | حکم دالله ته | پس که چرې | واپس راغله هغه | نو صلح اوکړئ

هغه دالله ﷻ حکم ته غاړې کيږدی| ..........نوکه بيرته اوګرځی | نودهغوئ په مينځ کښې

بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَاَقْسِطُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

په منځ دهغوئ دواړو کښې | په انصاف سره | او انصاف کوئ | بيشکه الله |

په انصاف سره روغه کوئ | او پوره انصاف کوئ | ..........يقينا الله تعالی

يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا

خوښوی انصاف کونکی خلق | بيشکه مومنان | خپلو کښې رونړه دی | پس صلح (روغه) اوکړئ |

انصاف کونکی خوښوی| بيشکه مومنان خو رونړه رونړه دی | نودخپلو دوؤ رونړو په مينځ کښې

بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝

په منځ درونړو ستاسو کښې | او اويريږئ دالله نه | دپاره ددې چې په تاسو رحم اوکړې شی |

روغه راولئ | ..او دالله ﷻ نه ويره کوئ | ..........دې دپاره چې رحم درباندې اوکړې شی

**قوله تعالى:- وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ**

**بغاوت کفر نه دې باغيان هم مومنان دی** :دلته الله ﷻ حکم کوی که چرته د دوؤ مسلمانانو مينځ کښې جنګ شی نو نورو ته پکار دی چه ددوی په مينځ کښې صلح اوکړی. خپل مينځ کښې جنګ کوونکی مسلمانانوته مومن وئيل ددې نه حضرت امام بخاری رحمه الله استدلال کړې دې چه نافرمانئ که هر څومره لويه وی خو دې سره انسان د ايمان نه جدا کيږی . دخارجيانو او د دوی موافق دمعتزله مذهب دې باره کښې خلاف حق دې. ددې آيت تائيد ددې حديث مبارك نه هم کيږی چه کوم صحيح بخاری وغيره کښې مروی دې چه يو ځل حضرت نبی کريم ﷺ په منبر خطبه ورکوله اودوی سره په منبر حضرت حسن بن علی رضی الله عنهما هم وو. نو حضرت نبی کريم ﷺ به کله دوی طرفته کتل او کله به نې خلقو طرفته کتل

او حضرت نبی کریم اوفرمائیل چه دا ځما بچې دې او دده په وجه به الله ﷻ دوؤ لويو ډلو کښې صلح کوی([1]).د حضرت نبی کریمﷺ دا پیشن ګوئی رښتيا شوه او داهل شام او داهل عراق لويولويو جنګونو اوخرابو واقعاتو نه پس دوی رضی الله عنه دهغو په مينځ کښې صلح اوکړه. بيا ارشاد دې که يو ډله په بلې ډلې باندې زياتې اوکړی نوزياتی کونکی سره دې جنګ اوکړې شی.چه هغه لارې ته راشي. صحيح حديث مبارک کښې دی چه دخپل رور مدد اوکړه او ظالم وی او که مظلوم وی.حضرت انس رضی الله عنه تپوس اوکړو چه دمظلوم کیدوبه حالت کښې خو ظاهر دی خو دظالم کیدو حالت کښې څنګه مدد اوکړ ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه هغه د ظلم نه منع کړې هم دا دهغه سره مدد دې ([2]).

**د ايت مبارک شان نزول**:-مسند احمد کښې دی چه يو ځل حضرت نبی کريمﷺ ته اوونيلې شو چه ښه به وی که تاسو عبدالله بن ابی سره تلې وې. نو دوی په خر سورشو او دصحابه کرام رضی الله عنهم سره لاړو. هرکله چه حضرت نبی کريمﷺ هغه ته اور سيدو نو هغه اووئيل چه ځما نه لرې شه ستا د خر نه بدبوئی رازی او دې ځما دماغ خراب کړل. نو په دې يو انصاری رضی الله عنه اوونيل چه والله د ر سولﷺ د خر خوشبو ستا د بدبوئی نه ډيره بهتر ده. نو په دې خلق راجمع شو او معامله ګرمه شوه. بلکه يو بل سره ئې لاسونه هم واچول. نو ددوی باره کښې دا آيت مبارک نازل شو([3]).حضرت سعيد بن جبير رضی الله عنه فرمائی چه د اوس او خزرج ترمينځه څه جنګ شوی وو. نو په هغوئ کښې د صلح کولو دپاره دا آيت مبارک شو([4]). حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه عمران نومې يو انصاری وو او دده د بی بی نوم ام زيد وو. هغه خپل مور پلار ته تلله خو خاوند منع کړه. اوورته ئې اوئيل چه ستا د مور پلار هيڅوک به دلته نه راځی . دښځې خپل مور پلار ته اوونيل نو هغوئ راغلل او دا ئې د بالاخانې نه راکوزه کړه او خان سره ئې بوتله . ددې خاوند کور کښې نه وو. ددې کور والو ددې د تره خامن راوبلل . او دې سره دوی کښې جنګ اوشو او دې کښې دا آيت مبارک نازل شو. حضرت نبی کريمﷺ د دواړو طرفونو خلق راوبلل او دواړو کښې ئې صلح اوکړه . او ټول يو بل سره پخلا شو([5]).

**قوله تعالی**:- وَأَقْسِطُوا ۖ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ۝

**د عدل اهميت او فضيلت**:-بيا حکم اوشو چه دواړو طرفونو کښې عدل کوئی ، الله ﷻ عدل خوښوی . حضرت نبی کريمﷺ فرمائی چه څوك عدل کوی نو هغوئ به دموتيانو په منبرونو باندې درحمان مخامخ وی. اودا به ددوی د عدل او انصاف بدله وی ([6])( نسائی)دمسلم يو حديث مبارک کښې دی چه داخلق به په منبرونو دالله ﷻ نه ښی طرفته وی . دوی به په خپل حکم کښې او خپل اهل وعيال کښې او چه څه ددوی قبضه کښې وو په هغې کښې به ئې عدل کولو([7])بيا فرمائی چه ټول مسلمانان دينی رونړه دی.حضرت نبی کريمﷺ فرمائی چه مسلمان دمسلمان رور دې.په ده دې ظلم نه کوی([8]) صحيح حديث مبارک کښې دی چه الله ﷻ دبنده مدد کوی تر کومې چه دې د خپل رور مدد کوی . او يو صحيح حديث مبارک کښې دی چه کله يو مسلمان د خپل يو مسلمان رور په عدم موجودګئ کښې دهغه

---

[1] صحيح بخاری کتاب الصلح باب قول النبی ﷺ للحسن بن علی رضی الله عنه ......: ٢٧٠٤، ابوداود: ٤٦٦٢، احمد: ٤٤/٥ ابن حبان : ٦٩٦٤.
[2] صحيح بخاری کتاب الاکراه باب يمين الرجل لصاحبه انه اخوه : ٦٩٥٢، احمد: ٩٩/٣.
[3] احمد: ١٥٧/٣،صحيح بخاری کتاب الصلح باب ماجاء فی الاصلاح بين الناس: ٢٦٩، صحيح مسلم: ١٧٩٩، مسند ابی يعلی : ٤٠٨٣.
[4] الدرالمنثور : ٥٦٠/٧.
[5] الطبری : ٢٩٤/٢٢.
[6] احمد : ١٥٩/٢، وهو صحيح بالشاهد عند مسلم : ١٨٢٧، ابن ابی شيبة: ١٢٧/١٣، حاکم : ٨٨/٤.
[7] صحيح مسلم کتاب الامارة : باب فضيلة الامير العادل :١٨٢٧، مسند حميد : ٥٨٨ ابن حبان: ٤٤٨٤، بيهقی : ٨٧/١٠ الشريعة اللاجری : ص/٣٢٢.
[8] صحيح بخاری کتاب المظالم باب لا يظلم المسلم المسلم ولا يسلمه:٢٤٤٢، صحيح مسلم: ٢٥٨٠.

دپاره دعا کوی نو فرښته وانی امین او تادې هم الله ﷻ داشان کړی( [1] )دې باره کښې نورهم ډیر احادیث دی ( [2] )صحیح حدیث مبارک کښې دی چه مسلمانان ټوله په ټوله دخپلې رحمدلۍ او میل جول کښې په مثال دیو جسم دی . هرکله چه د جسم یو اندام ته تکلیف وی نو ټول جسم ته تکلیف وی . کله نې تبه وی او کله شوکیره کوی ( [3] )یو بل صحیح حدیث مبارک کښې دی چه مومن دمون دپاره د دیوال په مثال دې چه ددې یو حصه بله حصه مضبوطوی . بیا حضرت نبی کریمﷺ د خپل یو لاس مبارک ګوتې د بل لاس مبارک ګوتو کښې واچولې ( [4] ) مسند احمد کښې دی چه د مومن تعلق اهل ایمان سره داسې دې لکه چه دسر تعلق جسم سره دې. مومن داهل ایمانه دپاره هغه دردمندی کوی کومه چه یو جسم سردپاره کوی( [5] )بیا فرمانی چه د دواړو جنګ کونکو مسلمانانو ډلو کښې صلح کونی او خپلو کارونو کښې دالله تعالی نه ویریږئی . او هم داهغه اوصاف دی چه ددې په و جه الله ﷻپه تاسو رحمت نازلوی. الله ﷻ پر هیزګارو سره رحم کوی .

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا يَسْخَرْ | قَوْمٌ | مِّنْ قَوْمٍ | عَسٰٓى |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | توقې دنۀ کوی | یوقوم | په بل قوم پورې | کیدې شی |
| ائې مومنانو ! یوه ډله دې دبلې ډلې پورې توقې نه کوی | | | | کیدې شی چې هغه ډله | |
| اَنْ يَّكُوْنُوْا | خَيْرًا | مِّنْهُمْ | وَلَا نِسَآءٌ | مِّنْ نِّسَآءٍ | عَسٰٓى |
| چې وی هغوئ | بهتره | دهغوئ نه | اونۀ دښځې توقې کوی | په نورو ښځو پورې | کیدې شی |
| د دوی نه غوره وی | او ښځې دې په ښځو پورې توقې نه کوی | | | کیدې شی چې هغوئ | |
| اَنْ يَّكُنَّ | خَيْرًا | مِّنْهُنَّ ۚ | وَلَا تَلْمِزُوْٓا | اَنْفُسَكُمْ | وَلَا تَنَابَزُوْا |
| چې وی هغوئ | بهترې | دهغوئ نه | او طعنې مۀ لګوئ | په خانونو خپلو باندې | او مۀ رابلئ یو بل |
| د دوی نه غوره وی | او په یوبل باندې عیب مه لګوئ | | | اومه یو بل ته خراب نومونه اخلئ | |
| بِالْاَلْقَابِ ۭ | بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ | | بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ | | وَمَنْ |
| په خرابونومونو سره | ډیر بد دی خراب نوم پیدا کول | | روستو دایمان نه | | او هغه څوک |
| ............. | دایمان نه پس دګناه نوم اخستل خرابه خبره ده | | | | او څوک چې اوس |
| لَّمْ يَتُبْ | فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ | | الظّٰلِمُوْنَ | | |
| چې توبه نې اونۀ ایستله | نو هم هغوئ | | ظالمان دی | | |
| هم توبه نه اوباسی | نو هم دغه کسان ظالمان دی | | | ۱ | |

**قوله تعالى:- لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ**

**دخنداکولو او عیب لګولو نه ممانعت :-** الله ﷻ خلق د نورو د حقیراوذلیل کولونه منع کوی . حدیث مبارک کښې چه تکبر د حق نه دمخ اړلو نوم دې او خلقو لره ذلیله او خوار ګنړلو( [6] ). ددې وجه قران پاک دا

[1] صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب فضل الدعاء للمسلمين بظهر الغيب : ٢٧٢٣، ابوداود: ١٥٣٤.
[2] صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب فضل الاجماع على تلاوة القرآن :٢٦٩٩.
[3] صحيح بخارى كتاب الادب باب رحمة الناس والبهائم : ٦٠١١، صحيح مسلم: ٢٥٨٦.
[4] صحيح بخارى كتاب الادب باب تعاون المومنين بعضهم بعضا : ٦٠٢٦، صحيح مسلم: ٢٥٨٥، ترمذى : ١٩٢٨.
[5] احمد:٣٤٠/٥، وسنده ضعيف مصعب بن ثابت وللحديث شاهد ضعيف عند الطبرانى فى الاوسط.:٤٦٩٣.
[6] صحيح مسلم كتاب الايمان باب تحريم الكبر وبيانه. :٩١.

بیانوی چه څوک ته ذلیل کوې اوچا پورې توقې کوې ممکن ده چه دالله ﷻ په نیز هغوئ ستاسونه زیات پرهیزګار وي. دسړو منع کولو نه پس بیا خاص کر ښځې هم ددې نه منع کوی.بیا د عیب لټولو نه او نکته چنیئ نه منع کوی . اوداملعون کار ئې حرام کړو. قران پاک کښې ارشاد دې چه ﴿وَيۡلٞ لِّكُلِّ هُمَزَةٖ لُّمَزَةٍ﴾ یعنی هر طعنه باز عیب لټونکی دپاره خرابی ده . همز فعل سره کیږی او لمز قول سره. او آیت مبارك كښې دی چه﴿هَمَّازٖ مَّشَّآءِۭ بِنَمِيمٖ﴾یعنی دې خلقو لره حقیر ګڼړی او په خلقو خان اوچت ظاهروی او خلقو کښې اور لګوی . غرض دا ټول کارونه خمونږ شریعت حرام ګرزولی دی . دلته دا لفظ دې چه خپله عیب مه لګونی ، ددې مطلب دادې چه خپلو کښې یوبل باندې عیب مه لګونی . لکه فرمانی چه﴿لَا تَقۡتُلُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ﴾یعنی یو بل مه قتل کوئ . حضرت ابن عباس رضي الله عنه، حضرت مجاهد رحمه الله، حضرت سعید بن جبیر رضي الله عنه او حضرت قتاده او حضرت مقاتل بن حیان رحمه الله فرمانی چه ددې مطلب دادې چه یو بل ته طعنې مه ورکوئی ([1]) .

**قوله تعالى:- وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ**

**ددې ایت مطلب او شان نزول:**-او بیا فرمائی چه په چا کښې عیب لټوئی او چه کوم لقب سره هغه خفه کیږی نو هغه لقب هغه ته مه وائې . مسند احمدکښې دی چه دا حکم بنو سلمه باره کښې نازل شوې دې . هرکله چه حضرت نبی کریمﷺ مدینې منورې ته راغلو نو دلته دیویو سړی دوه دوه درې درې نومونه وو. حضرت نبی کریمﷺ چه به کله یو سړی ته یو نوم واخستو نو خلقو به اوئیل چه رسول اللهﷺ! دا سړې په دې نوم خار خوری یعنی غصه کیږی. نویه دې دا آیت مبارك نازل شو([2])(ابوداود) بیا فرمان دې چه دایمان حالت کښې یو بل ته خپلو کښې غلط القاب مه اخلئ خکه چه دا ډیره بده خبره ده. اوس تاسوته پکار دی چه ددې نه توبه اوباسئ . ګنی تاسو به ظالمان شئ .

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُواْ |
|---|---|
| اے هغه کسانو\| چې ایمان موراوړې دې | |
| ائې مومنانو ! | |

| ٱجۡتَنِبُواْ | كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ | إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ | إِثۡمٞۖ | وَلَا تَجَسَّسُواْ |
|---|---|---|---|---|
| خان اوساتئ\| | ډیر ګمان کولو نه | بیشکه څینې ډګمانونو نه \| | ګناه وي \| | او رازونه مه لټوئ \| |
| ډګمان نه خان بچ ساتئ \| یقینا بعضې بدګمانی ګناه وي \| او د چا راز مه معلوموئ | | | | |

| وَلَا يَغۡتَب | بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ | أَيُحِبُّ | أَحَدُكُمۡ | أَن يَأۡكُلَ |
|---|---|---|---|---|
| او غیبت دنه کوی \| | څینې ستاسو دځینو \| | ایا خوښوی \| | یو په تاسو نه \| | چې اوخوری \| |
| او په تاسو کښې دې بعضې د بعضو غیبت نه کوی\| ایا په تاسو کښې به دا څوک خوښ کړی\| چې د خپل | | | | |

| لَحۡمَ | أَخِيهِ | مَيۡتٗا | فَكَرِهۡتُمُوهُۚ | وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ | إِنَّ ٱللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غوښه \| | درور خپل \| | چې مړ وی \| | پس نه خوښوئ تاسو دا کار \| | اواویریږئ دالله نه \| | بیشکه الله \| |
| مړ رور غوښه اوخوری \| نودا کار خو ستاسو خوښ نه وی\| اودالله ﷻ نه ویره کوئ \| بیشکه الله | | | | | |

[1] حاکم: ٤٦٣/٢، عن ابن عباس رضي الله عنه ، وسنده حسن .

[2] ابوداود كتاب الادب باب فى الالقاب: ٤٩٦٢. وسنده صحيح ترمذی : ٣٢٦٨، احمد: ٢٦٠/٤ الادب المفرد: ٣٣٠.

| تَوَّابٌ | رَّحِيمٌ ⑫ |
|---|---|
| ډير توبه قبلونکې دی | رحم کونکې |
| توبه قبلونکې ډير رحم کونکې دی | |

**قوله تعالى:- اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ**

**بدګماني او عيب لګول** -الله ﷻ خپل مومن بندګان دبدګمانۍ نه، تهمت لګولو نه، اوخپلو او پردو ويرولو نه،اوهيڅ بې هېڅه ويره په زړه کښې ساتلو نه منع کوی.او فرمائي چه اکثر اوقات داسې قسمه بدګمانۍ بالکل ګناه وی. نو تاسوته پکاردی چه په دې کښې پورا احتياط اوکړئ. امير المومنين حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه فرمائي چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د مسلمان د ژبې نه چه کومه کلمه اوخيژی نو تر کومې چه ستا نه کيدې شی هغه په نيکۍ محمول کوه [1] ابن ماجه کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ د کعبې طواف کول دوران کښې اوفرمائيل چه ته څومره پاك کور ئې ته څومره خوشبو والا ئې او ته څومره عظمت والا ئې. او ته څومره حرمت والا ئې . په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چه دهغه په قبضه کښې څما روح دې چه د مومن حرمت اودده دمال او جان حرمت اودده دنيك ګمان کولو دالله ﷻ په نيز ستا د حرمت نه زيات لوئې دې [2] داحديث صرف ابن ماجه کښې دی .

**دبدګمانئ او غيبت متعلق احاديث:-** صحيح بخاری کښې دی چه د بدګمانۍ نه ځان اوساتئ بدګمانۍ د ټولو نه زيات دروغ دی . رازونه مه ښکاره کوئ او د يويل دبزرګۍ حاصلولو کوشش کښې مه اخته کيږئ.حسد او بغض او يو بل سره د خولې وهلونه بچ اوسئ.ټول دالله ﷻ بندګان او يو رونړه رونړه شئ [3] مسلم وغيره کښې دی چه يو بل نه مه خفه کيږئ او يو بل سره ميل جول مه پريږدئ ، يويل سره حسد او بغض مه کوئ،بلکه ټول يو رونړه رونړه شئ او ژوند تيروئ . ديو مسلمان دپاره حلال نه دی چه بل مسلمان سره د دريو ورځو نه زياتې خبرې اترې پريږدی [4] طبرانی کښې دی چه درې خصلتونه به څما امت کښې پاتې شی ① فال کتل ② حسد ③ بدګمانی.يو سړی تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ ددې دپاره څه کول پکار دی ؟ نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کله حسد اوکړې نواستغفار اووايه او کله چه بدګمانی پيدا شی نو هغه پريږده او يقين ا وکړه. او کله چه شګون اوکړې که نيك او که بد وی نودخپل کار نه مه منع کيږه. هغه پورا کوه [5] ابوداود کښې دی چه يو سړی حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته راوستې شو او ورته اووئيلې شو چه دده د ږيرې نه د شرابو څاڅکې روان دی . نودوی اوفرمائيل چه مونږ د راز ښکاره کولو نه منع کړې شوی يو. که زمونږ مخکښې څه څيز ښکاره شی نو مونږ به هغې باندې رانيول کوه [6] مسند احمد کښې چه د عقبه کاتب دجين لره حضرت ابوالهيثم ورغلو اوهغه ته ئې اووئيل چه څما ګاونډ کښې څه خلق شرابيان دی . څما اراده ده چه څه داروغه راوبلم چه هغوئ ګرفتار کړی . خو دوی ورته اووئيل چه داسې مه کوه بلکه هغه پوهه کړئ او غصه پرې اوکړه . بيا څو ورځې پس را غلو او ورته ئې اووئيل چه هغوئ نه منع کيږی. اوس څو داروغه راوبلم. خودوی اونيل چه افسوس افسوس ته بالکل داسې مه کوه. واوره ما در سول الله ﷺ نه آوريدلی

---

[1] الدر المنثور : ٦/٩٩.

[2] ابن ماجة كتاب الفتن باب حرمة دم المومن وماله : ٣٩٣٢،

[3] صحيح بخاری كتاب الادب باب ( يايهاالذين امنوا اجتنبوا كثيرا من الظن ........) : ٦٠٦٦، صحيح مسلم: ٢٥٦٣.

[4] صحيح بخاری كتاب الادب باب ما ينهى عن التحاسد والتدابر : ٦٠٦٥. صحيح مسلم: ٢٥٥٩، ترمذی : ١٩٣٥، مسند الطيالسی: ٢٠٩٢، مصنف عبدالرزاق : ٢٢٢، احمد: ٣/١١٠ ، ابن حيان : ٥٦٦٠..

[5] طبرانی : ٣٢٢٧، وسنده ضعيف جدا فيه علل منها اسماعيل بن قيس الانصاری مجمع الزوائد: ٨/٧٨.

[6] ابوداود كتاب الادب باب فی التجسس : ٤٨٩٠،

دی چه څوك په یومسلمان پرده واچوی نوهغه ته به ثواب ملاویږی . دومره لکه چه چا یو ژوندنی ښخه کړې شوې ژوندۍ کړه (١)ابوداود کښې دی،حضرت معاویه رضی الله عنه فرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که ته دخلقو رازونو ښکاره کولو او پټې خبرې ښکاره کولو پسې شوې نو ته به هغوئ تباه کړې . نو وې فرمائیل چه ممکن دی چه هغوئ خراب کړې . حضرت ابودرداء رضی الله عنه فرمائی چه ددې حدیث مبارك نه الله ﷻ حضرت معاویه رضی الله عنه ته ډیره فائده ورکړه.(٢) ابو داود کښې یو بل حدیث مبارك کښې دی چه کله یو امیر یا یو بادشاه دخپلو عوامو خرابی ښکاره کول شروع کړې او په دې کښې ژور تلو نو دا هغوئ خرابوی (٣).

قوله تعالی:- وَلَا تَجَسَّسُوا

**تجسیس اوتجسس کښې فرق:-** بیا فرمائی چه تجسس مه کوئی یعنی د بدو معلوموملو کوشش مه کوئی ،تی تا مه کوئی. هم ددې نه جاسوس ماخوذ دې.د تجسس اطلاق عام طوربه بدنی باندې کیږی او د تحس اطلاق عام طور د نیکئ په لټولو.لکه څنګه چه حضرت یعقوب علیه السلام خپلو ځامنو ته وائی چه ﴿فَتَحَسَّسُوا﴾ الخ ،تاسو لاړشئ یوسف اودهغه رورتلاش کړئی. اوداالله رحمان نه مه نااميده کيږئی. او کله کله ددې استعمال شر او خرابی وی. نو حدیث مبارك کښې دی چه مه تجسس کوئی او مه تحسس کوئی، اومه حسد کوئی او مه بغض کوئی، اومه مخ اړوئی. بلکه ټول داالله ﷻ بندګان رونړه رونړه شئ (٤)امام اوزاعی رحمه الله فرمائی چه تجسس وائی دیو څیز ویخ کتلوته اود تحسس دهغه خلقو په پټو خبرو پسې غوږ اوړل چه کوم چا ته خپلې خبرې نه آوری. او تدابر وائی یو نه روستو کیدل او ورسره تعلقات ختمول .

قوله تعالی:- وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا

**دغیبت ممانعت:-** بیا دغیبت نه منع فرمائی. ابوداؤد کښې دی حضرت نبی ا کرم ﷺ نه تپوس اوشو چه یارسول الله ﷺ غیبت څه څیز دې ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته د یو مسلمان رور داسې خبرې ذکر اوکړې چه په هغې هغه خفه کیږی . نو وې فرمائیل که هغه خبره په هغې کښې وی هم نو بیا هم ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه غیبت خو هم دادې،ګنی بیا خو بهتان او تهمت دې(٥). ابوداؤد کښې دی چه یو ځل حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل چه انې صفیه ته داسې :اسې نې.مسدد راوی وائی یعنی کم قد والا.نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تا خو داسې خبره اوکړه که دا سمندر اوبو کښې ګډه کړې نو هغه به هم ورانې کړی. او یو ځل د حضرت نبی کریم ﷺ مخکښې یو داسې خبره اوشوه نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه دا نه خوښوم اګر چه ماته په دې کښې څه لویه فائده وی(٦)ابن جریر کښې دی چه یو بی بی صاحبه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته راغله ،او هرکله چه هغه تله نو حضرت نبی کریم ﷺ ته نې اشارې سره اووئیل چه ددې خو قد کم دې . نو حضرت نبی کریم ﷺ دې ته اوفرمائیل چه تاددې غیبت اوکړو(٧)غرض داچه غیبت حرام اوددې په حرمت باندې د

---

١) احمد : ١٥٣/٤، ابوداود کتاب الادب باب ل الستر علی المسلم : ٤٨٩١. وهو حسن الادب المفرد: ٧٥٨. ابن حبان : ٥١٧، السنن الکبری للنسائی : ٧٢٨٣، بیهقی : ٣٣١/٨، طبران : ٨٨٣/١٧.

٢) ابوداود کتاب الادب باب ل التجسس \ : ٤٨٨٨، وهو صحیح .

٣) ابوداود حواله سابق : ٤٨٨٩،.

٤)صحیح بخاری کتاب الادب باب ماینهی التحاسد والتدابر: ٦٠٦٤، صحیح مسلم: ٢٥٦٣.

٥) ابوداود کتاب الادب باب ل الغیبة : ٤٨٧٤. وهو صحیح ترمذی : ١٩٣٤. احمد: ٣٨٤/٢.

٦) ابوداود حواله سابق : ٤٨٧٥، وسنده صحیح ترمذی : ٢٥٠٢.

٧)الطبری : ٣٠٧/٢٢.

مسلمانانو اجماع ده. خود څه شرعي مصلحت په وجه دچا يو داسې خبره بيانول غيبت كښې داخل نه دی لكه چه په كښې جرح وتعديل او خيرخواهي وی[1] لكه څنګه چه حضرت نبی كريمﷺ ديو سړی باره كښې فرمائيلی وو چه دا ډير خراب سړې دې. او حضرت نبی كريمﷺ فرمائيلی چه معاويه ډير غريب دې، او ابوالجهم ډير وهلو والا سړې دې. حضرت نبی كريمﷺ دا په هغه وخت كښې فرمائيلی وو چه كله دې دواړو بزرګانو حضرت فاطمه بنت قيس رضي الله عنها سره نكاح كول غوښتل[2] او نورې كه څه داسې قسمه خبرې وی نو د هغې اجازت دې. او باقی نور غيبت حرام دې او ګناه كبيره ده . په دې وجه دلته ئې اوفرمائيل چه څنګه تاسو دخپل يو مړ رور غوښې خوړلو نه نفرت كوئی نو داسې ددې غيبت نه هم نفرت كول پكار دی. لكه يو حديث مبارك كښې دی چه خپله وركړې شوې هبه واپس اخستل داسې دی لكه سپې څه قې (التې) كړی اوهغه څټی. او فرمائی چه خراب مثال خمونږ دپاره لائق نه دې [3] حجة الوداع خطبه كښې دی چه ستاسو مال او ستاسو عزت په تاسو حرام دی، لكه حرمت ستاسو په دې ورځ، ستاسو په دې مياشت كښې او ستاسو په دې ښار كښې[4] ابوداؤد كښې د حضرت نبی كريمﷺ يو ارشاد مبارك نقل دې چه دمسلمان مال، دهغه عزت او دهغه وينه په مسلمان حرامه ده . انسان دپاره دومره برائی كافی ده چه هغه دخپل مسلمان رور سپكاوې اوكړی[5] اويو حديث مبارك كښې دی چه ائې هغه خلقوتاسو په ژبو خوايمان راوړې دې خو ستاسو زړونوكښې ايمان نشته دې . تاسو دمسلمانان غيبت كول پريږدئی او دهغوئ عيبونه مه لټوئی. ياد ساتئ كه تاسو دهغې عيبونه لټوئی نو الله ﷻ به ستاسو رازونه په هغوئ ښكاره كړی. ترديې چه ته به په خپل كوركښې هم بدنام اورسوا شې[6] مسندابويعلی كښې دی چه دالله رسولﷺ مونږ ته يو خطبه راكړه چه په هغې حضرت نبی كريمﷺ پرده كښې ناستو ښځو ته هم دا آواز اور سولو. او په دې خطبه كښې پور تنې حديث مبارك بيان اوفرمائيلو.[7] حضرت ابن عمر رضي الله عنهما يو ځل كعبې ته اوكتل او وې فرمائی چه ستا دحرمت او عظمت به لا څه وائې ، خو ستا نه زيات والا يو ايماندار بنده الله ﷻ ته نزدې دې [8]. ابوداؤد كښې دی چه چا د يومسلمان غيبت كولو سره يو نواله حاصله كړه نو هغه ته به دجهنم هم دومره غذا وركولې شی . او داشان چه چا ديو مسلمان په غيبت كولو څه پوشاك حاصل كړو نو هغه ته به ته هم هغه شان پوشاك دجهنم وركولې شی . اوچه كوم يو سړې د يو كس د برائی كولو دپاره اوريدو نو هغه به اللهﷻ د قيا مت په ورځ د اورولو او خودلو په ځائې اودروی[9] حضرت نبی كريمﷺ فرمائی چه دمعراج په شپه ما اوكتل چه د څه خلقو نوكونه د تانبې وو، او په دې هغوئ خپل مخونه او سينې شوكولې . نوما تپوس اوكړو چه اې جبرنيل عليه السلام دا كوم خلق دی ؟ نو وې فرمائی چه دا هغه خلق دی چه دوی به د خلقو غوښې خوړې او د هغوئ عزتونه به ئې اخستل[10] (ابوداؤد) .او يو روايت كښې دی چه دخلقو

---

[1] صحيح بخارى كتاب الادب باب مايجوز من اغتياب اهل الفساد والريب : ٦٢٠٥٤. صحيح مسلم: ٢٥٩١. ابوداود: ١٩٩٦، احمد: ٣٨/٦، ابن حبان: : ٤٥٣٨.

[2] صحيح مسلم كتاب الطلاق باب المطلقة باب البائن لانفقه لها: ١٤٨٠.

[3] صحيح بخارى كتاب الهبة باب لا يحل لاحدان يرجع ل هبته وصدقته : ٢٦٢٢، صحيح مسلم: ١٦٢٢، مختصرا.

[4] صحيح بخارى كتاب العلم باب قول النبي ﷺ رب مبلغ اوعى من سامع :٦٧. صحيح مسلم: ١٦٧٩.

[5] ابوداود كتاب الادب باب ل الغيبة : ٤٨٨٢، وسنده حسن ، ترمذى : ١٩٢٧.

[6] ابوداود كتاب حواله سابق : ٤٨٨٠ وهو حسن .

[7] مسند ابويعلى : ١٦٧٥.

[8] ترمذى كتاب ابواب البر والصلة باب ماجاء ل تعظيم المومن : ٢٠٣٢، وسنده حسن ابن حبان : ٥٧٦٣.

[9] ابوداود كتاب الادب باب ل الغيبة : ٤٨٨١، الادب المفرد : ٢٤٠، كتاب الزهد: ٧٠٧.

[10] ابوداود حواله سابق : ٤٨٧٨. وسنده صحيح ، احمد: ٢٢٤/٣.

سوال جواب باره کښې حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه د معراج په شپه ما ډیر خلق اوکتل چه په هغې کښې سړی او ښځې وې ، چه فرښتو به ددوی د اړخونو نه غوښې پریکولې ، او بیا به دوی ددې په خوراک مجبورول.اودوی هغه ختې.خما دسوال په جواب کښې اوئیلې شو چه داخلق طعنه زن، غیبت کونکی اوچغلی خوررو.او نن جبر سره دوی باندې ددوی غوښه خورولې شی([1])ابن ابی حاتم)دا حدیث مبارك ډیرطویل دې اومونږ پورا حدیث مبارك دسورة سبحان په تفسیر کښې بیان کړې دې.فالحمد لله

**ددوئښځو د روژې قصه** - مسند ابوداوٗد طیالسی کښې دی چه حضرت نبی کریمﷺ خلقو ته د روژې حکم ورکړواو وې فرمائیل چه ترکومې خه او نه وایم نو هیڅوك دې افطار نه کوی. دماښام خلق راغلل او د حضرت نبی کریمﷺ نه تپوس اوکړو نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اجازت ورکړو.او هغوئ افطار کولو او پدې کښې یو صاحب راغلو او وې وئیل چه یارسول اللهﷺ ! دوۂ ښځو روژه نیولې وه اوهغه ستاسو د متعلقینو نه دی . تاسو هغوئی ته هم اجازت ورکړئی چه هغوئ هم روژه ما ته کړی. نو حضرت نبی کریمﷺ هغه نه مخ واړولو. هغه بیا عرض اوکړو نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل چه هغوئ روژه نه ده نیولې. آیا دهغه خلقو هم روژه وی چه هغوئ د خلقو غوښه خوری. لاړ شه او هغوئ ته اووایه که د هغوئ روژه وی نو قې (التیٔ ) دې اوکړی. نو هغوئ التیٔ اوکړې او دهغې نه د وینې ټکړې راووتلې. هغه راغلو او حضرت نبی کریمﷺ ته ددې خبر ورکړو. حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل که هغوئ پدې حالت کښې مړې شوې وې نو دې نه به د اور لقمې جوړونی([2]) ددې سند غریب دې او ددې متن هم ضعیف دې . بل روایت کښې دی چه هغه سړی وئیلی وو چه دهغه ښځو د روژې په وجه حالت خراب دې. د تندې په وجه مری. او دا د ماسپخین وخت وو. دحضرت نبی کریمﷺ په خاموشئ هغه سړی بیا تپوس اوکړو چه یارسول اللهﷺ هغوئ به مړې شوې وی یا به لږ وخت کښې مړې شی. نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اووئیل چه لاړشه او دلته ئې راوله. هرکله چه هغوئ راغلل نو حضرت نبی کریمﷺ ورته مخکښې دیو پیاله کیخوده او ورته اووئیل چه په دې کښې قې اوکړئی . هر کله چه ئې قې اوکړو نو ددې نه پیپ او وینه چکه شوې وغیره راوتلو. اوددې نه نیمه پیاله ډکه شوه. بیا بلې قې اوکړو او دهغې نه هم دا څیزونه راوتل . اود غوښې ټکړې وغیر ه راوتلې او پیاله ډکه شوه. نو په هغه وخت کښې حضرت نبی کریم ﷺاوفرمائیل چه دوی ته اوګورئی چه حلاله روژه ئې نیولې ده او حرام خوری . دواړه ناستې وې او د خلقو غوښې ئې خوړلې ( یعنې غیبت ئې کولو) ([3])( مسند احمد ).

مسند ابویعلی کښې دی چه حضرت ماعز رضی الله عنه حضرت نبی کریمﷺ ته راغلو اووې فرمائیل یارسول اللهﷺ ! ما زنا کړې ده نو حضرت نبی کریمﷺ ترې مخ واړولو. تر دې چه درې څلور خل ئې اوئیل نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه تا زنا کړې ده ؟ نو جواب کښې ئې اووئیل چه آوٗ. تاته معلوم دی چه زنا څه ته وائی ؟ نو وې وئیل چه آو لکه څنګه چه سړی خپلې حلالې ښځې ته ورځی. نوداشان ما حرامې ښځې سره کړی دی . نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اووئیل چه اوس دې څه اراده ده ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه تاسو ما ددې ګناه نه پاك کړئې. نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اوئیل چه تا دا شان دخول کړیدې لکه څنګه چه سلائی رنجړومه (سرمه دانی ) کښې او لرګې کوهی کښې وی ؟ وې وئیل آوٗ یارسول اللهﷺ. نوبیا حضرت نبی کریمﷺ دهغه د رجم کولو یعنې په کاڼرو دویشتلو حکم اوکړو. نو دې رجم کړې شو. دې نه پس حضرت نبی کریمﷺ دوه کسان اولیدل چه وئیل چه ګوره که نه پخپله ئې خپله پرده واخستله او دسپی په شان په کاڼرو ویشتلې شوز نو حضرت نبی کریمﷺ ددې په

[1]) الطبری : ۳۰۸/۲۲،
[2]) مسند ابوطیالسی : ۲۱۰۷.
[3]) احمد: ٤٣١/٥، مسند ابی یعلی : ١٥٤٦، دلائل النبوة للبیهقی : ١٨٦/٦.

اوریدو روان شو. لږ وخت پس حضرت نبی کریم اوکتل چه په لار کښې یو مړ خر پروت دې ، نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه فلانې فلانې سړې چرته دې ؟ هغوئ دې د سورلئ نه راکوزشی او ددې خر غوښه دې اوخوری . نو هغوئ اووئیل چه یارسول اللهﷺ ! دا هم څه د خوراك څیز دې څه ؟ نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل چه اوس تاسو د خپل رور بدی بیان کړه نوهغه هم ددې نه زیات بد نه وو څه ؟ په هغه ذات مې دې قسم وی چه هغه په قبضه کښې خما روح دې ، چه هغه سړې چه تاسو ئې بد اوونیل اوس په جنتی نهرونو کښې غوپې خوری. ددې اسناد صحیح دی(1)مسند احمد کښې دی چه مونږ حضرت نبی کریمﷺ سره وو چه پدې ډیره زیاته مردار بوئی والا هوا راغله نو حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه تاسو ته معلوم دی چه دا د څه څیز هوا ده ؟ دوی ورته اوفرمائیل چه تاته معلوم دی چه د بوئی د څه څیز دې؟ دا بدبوئی دهغه خلقو ده چه دوی به دخلقو غیبت کولو (2). یو روایت کښې دی چه منافقانو یو ډلې د مسلمانانو غیبت کړې دې په دې وجه دا بوئی دې . حضرت سدی رحمه اللهحضرت سلمان رضي الله عنهیو سفر کښې وو، دوی دوه سړو سره ملاؤ شو، اودهغوئ به دوی خدمت کولو. اودوی ته به ئې خوراك ورکولو. یو ځل حضرت سلمان رضي الله عنه اوده شو او قافله لاړه ، هرکله چه پړاؤ ته اورسیدل نو دواړو اوکتل چه حضرت سلمان رضي الله عنهنشته دې. دوی خیمه په خپله اولګوله اوپه غصه کښې ئې اووئیل چه سلمان رضي الله عنه خو بس ددومره کار دې چه تیار خوراك اوکړی او خیمه کښې آرام اوکړی . لږ وخت پس حضرت سلمان رضي الله عنه راغلو نو دې دواړو سره سالن (ترکاری ) نه وه نو حضرت سلمان رضي الله عنه ته ئې اووئیل چه لاړشئ او د حضرت نبی کریمﷺ نه مونږ دپاره سالن راوړئې. دوی دواړه لاړل اود حضرت نبی کریمﷺخدمت کښې حاضر شو او وې وئیل چه یارسول اللهﷺځه خپلو ملګرو لیږلې یم که تاسو سره سالن وی نو راکړئې. حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل چه هغوئ په سالن څه کوی ؟ هغوئ خو سالن اوخوړو. حضرت سلمان رضي الله عنه واپس لاړواو هغوئ ته ئې دا خبره اوکړه . هغوئی پاسیدل او د حضرت نبی کریمﷺ خدمت کښې حاضر شو او دې دواړو حضرت نبی کریمﷺ ته اوونیل چه یارسول اللهﷺمونږ ته خوتاسو سالن نه دې لیږلې اونه مونږ سره سالن وو.نوحضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل چه تاسو د سلمارضي الله عنه دغوښې سالن اونه خوړو چه تاسوداسې داسې اوونیل .نوپه دې دا آیت مبارك نازل شو( مَيْتًا ) خکه چه هغه اوده وو او دوی د هغه غیبت کولو. مختاره ابوضیاء کښې تقریبًا داشان واقعه دعمر فاروق رضي الله عنه اوابو بکرصدیق رضي الله عنهده اوپه هغې کښې داهم دی چه حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه څه ستاسو غاښونو کښې ستاسو دخادم غوښه وینم . اوددوی خادم اوده وو او ددوی دپاره ئې خوراك نه وو تیار کړې . صرف دومره مروی دی چه دې خو ډیر زیات خوبی دې . دې دواړو حضراتو رضي الله عنهم حضرت نبی کریمﷺته اوفرمائیل چه تاسومونږ دپاره استغفار اووائې.نو حضرت نبی کریمﷺ ورته اوفرمائیل چه تاسو ورشئ اوهغه ته اووائې، چه هغه ستاسو دپاره استغفار اووائی(3)ابو یعلی کښې دی چه چا په دنیا کښې دخپل رور غوښه اوخوړه (دهغه غیبت ئې اوکړو) نو د قیامت په ورځ به هغه ته هغه غوښه راوړلې شی . چه تا ددې پشان غوښه دنیا کښې خوړلې وه. اوس د مړی غوښه هم اوخوره. نو دې به په چغو شی،فریاد به کوی او افسوس به کوی اودې به جبراً هغه غوښه خوری(4)دا روایت ډیر غر یب دې

**قوله تعالی:- وَاتَّقُوا اللّٰهَ**

**غیبت نه د توبې طر یقه:-** بیا فرمائی چه دالله ﷻ لحاظ اوساتئی. دهغه احکام پوړا کړئی. هغه ذات چه

1) ابوداود کتاب الحدود باب رجم ماعز بن مالک: ٤٤٢٨، وسنده حسن ، بیهقی : ۲۲۷/۸، ابن حبان : ٤٣٩٩.
2) احمد : ۳۵۱/۳، وسنده حسن ، شعب الایمان : ٦٧٣٢، الادب المفرد: ۷۳۲، الصمت : لابن ابی دنیا : ۲۱٦ ، مساوی
3) ابن ابی حاتم : لاساله الدرالمنثور : ۱۰۲/٦.
4) المختاره للمقدسی ابن اسحاق عنعن .

کومو خیزونو نه منع کړي ده هغه مه کوني او د هغه نه ویرېږني . چه څوك هغه طرفته تيټ شي نو هغه لوني ذات دده طرفته مائل شي. دتوبه کونکو توبه قبلوی. او چه څوك په هغه بهروسه کوی نو هغه طرفته رجوع کوی. اوپه هغه رحم او مهرباني کوی . جمهور علماء کرام فرمانی چه د غیبت کونکی دتوبې طريقه داده چه هغه دې دا پرېږدی او بیا دې داسې ګناه نه کوی . مخکښې چه ئې کومه کړې ده په هغې دې نادم شی، دا په کښې شرط دی اوکه نه؟ په دې کښې اختلاف دې. او چه د چا غیبت ئې کړې دې دهغه نه دې معافی اوغواړی . بعضې وائی چه دا هم شرط نه دی ځکه چه ممکن دی هغه ته خبر نه وی. او چه کله دې هغه ته معافی دپاره ورشی نو هغه به خفه شی. نو ددې بهترینه طريقه داده چه په کومو محفلونو کښې ئې دده بدی بیان کړې وه په هغې کښې دهغه خوبی بیان کړی . اودا بدی دې ښه زور سره ختمه کړی. نودا به هغه بدله شی. مسند احمد کښې دی چه کله یوسړې دیو مومن حمایت او یو منافق د هغه حرمت بیانوی نو الله ﷻ یو فرښته مقرر کړی چه د قیامت په ورځ به دده غوښه د نارجهنم نه بچ کوی.اوچه څوك په يو مومن پسې يو خبره اوکړی او دده اراده دهغه د ملعون کولو وی نو هغه به الله ﷻ په پل صراط باندې اودروی. دا حديث مبارك ابوداوٗد کښې هم دې (١) او د ابوداوٗد يو بل حديث مبارك کښې دی چه څوك ديو مسلمان بې عزتی داسې وخت کښې اوکړی چه په هغې ځائې کښې دهغه توهين او عزت ځی نو دې به هم الله ﷻ داسې، ځائې کښې رسوا کړی چه هغه ځائې به ده ته د مدد ضرورت وی . او چه څوك مسلمان داسې ځائې دخپل زور حمایت اوکړی نو الله ﷻ به هم دده داسې ځائې کښې حمایت کوی . ( ابوداوٗد )(٢)

يَآيُّهَا النَّاسُ — اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ — مِّنْ ذَكَرٍ
| اے خلقو | بیشکه پیدا کړي مونږ تاسو | ديو نارينه
| ائي خلقو ! مونږ تاسو ديوسړی او يوې ښځې نه

وَّاُنْثٰى — وَجَعَلْنٰكُمْ — شُعُوْبًا — وَّقَبَآئِلَ — لِتَعَارَفُوْا ط
او زنانه نه| او جوړ کړي مونږه تاسو | ځانګي(قومونه) | اوقبیلي قبیلي| دپاره ددې چې يو بل اوپيژنئ
پیدا کړی يئ |او مختلف قومونه او قبیلي مو جوړې کړی يې| دې دپاره چې يو بل اوپيژنئ

اِنَّ اَكْرَمَكُمْ — عِنْدَ اللّٰهِ — اَتْقٰكُمْ ط — اِنَّ اللّٰهَ — عَلِيْمٌ
بیشکه عزتمند په تاسو کښې | په نز دالله | زيات پرهيزګار ستاسو دي | بیشکه الله | ښه پوهه دي |
په تاسو کښې د الله ﷻ په نیز زيات عزت مند هغه څوک دې اچې زيات پرهيزګاروی| بیشکه الله عالم

خَبِيْرٌ ﴿١٣﴾
ښه خبر دي |
خبرداردي |

**قوله تعالى:- اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ ط**

**د فضيلت وقار معيار تقوی ده:** الله ﷻ فرمانی چه هغه ټول انسانان ديونفس نه پیدا کړی دی یعنی حضرت آدم عليه السلام نه ،اوهم دهغه نه ئې دهغه بی بی حضرت حواپيدا کړه.اوبيا ددې دواړو نه انسانی نسل زيات شو. شعوب د قبائل نه عام دې. مثال په طور عرب شعوب کښې دا خل دی،بيا ي قريشی د غبر

(١) احمد : ٤٤١/٣، ابوداود كتاب الادب باب الرجل يذب عن عرض اخيه : ٤٨٨٣،
(٢) ابوداود حواله سابق ، :٤٨٨٤، احمد: ٣٠/٤، الصمت لابن ابی دنيا : ٢٤٠/١.

قریشی بیا ددوی تقسیم دا ټول قبائل کښې داخل دی. بعضې وائي چه دشعوب نه مراد عجم خلق دی. اود قبائل نه مراد عرب جماعتونه لکه بنی اسر ائیلو ته اسباط وئیلې شوی دی. ما داټولې خبرې یو جدا مقدمه کښې لیکلې دی.اودا ما دابوعمران کتاب الاشباه او کتاب القصد والامم فی معرفة انساب العرب والعجم نه جمع کړې دی. ددې آیت مبارك مقصد دادې چه حضرت آدم ﷺ د بناورې نه پیدا کړې شوې وو اودهغې په نسبت ټول انسانان یو مرتبه کښې دی. اوکه څه فضیلت په یو بل حاصل دې نو هغه صرف د دین دکارونو او اتباع نبوی ﷺ په وجه د ی. همدا رازدې چه د غیبت آیت مبارك نه پس او د یوبل د توهین او تذلیل نه پس نې وارد کړو خلق دخپل پیدائش په نسبت بالکل یو شان دی. خاندانو نه او قبیلې او خیلونه صرف پیژندګلو دپاره دی چه ستاسو یو والې او همدردی وی . چه فلان بن فلانې قبیلې والا اووئیلې شي. اودا شان د یو بل پیژندګلو آسانه شي . ګنې د بشریت اعتباره سره ټول قومونه یوشان دی . ترمذی شریف کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه دنسب علم حاصل کړنې چه صله رحمې اوکړنې شي،تاسو سره به خلق دصله رحمې په وجه محبت اوکړي.الله ﷻ به ستاسو مالونو او ستاسو اولاد کښې برکت واچوی([1]) دا حدیث دې سند سره غریب دې. بیا فرمائی چه الله تعالی سره د نسب هیڅ نشته ، که چلیرې نو صرف د تقوی په وجه او دپرهیزګارنې په وجه دی. صحیح بخاری کښې دی چه د حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د ټولو زیات بزرګ څوك دې؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ټولو نه زیات پرهیزګار . خلقو اووئیل چه مونږ د عامې خبرې تپوس نه کوؤ . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ټولو نه زیات بزرګ حضرت یوسف ﷺ دې . چه پخپله هم نبی وو. دنبی خوئې وو. دده نیکه هم نبی وو. او دده غور نیکه خلیل الله ﷺ هم نبی وو. هغوئ اووئیل چه مونږ ددې تپوس هم نه کوؤ. بیا نې اوفرمائیل چه مونږدعربو باره کښې تپوس کوئ؟ واورئ چه دهغوئ کوم خلق دجاهلیت زمانه کښې ممتاز وو هغوئ نن په اسلام کښې هم ممتاز دی . خو که دوی علم دین حاصل کړي([2])صحیح مسلم کښې دی چه الله ﷻ ستاسو صورتونه او مالونه نه ګوری بلکه ستاسو عملونو او زړونو ته ګوری([3])مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت ابوذر ﷺ ته اوفرمائیل چه خیال اوکړه ته په سور یا سپین باندې فضیلت نشته دې بلکه فضیلت کښې زیات شې نود بله خبره ده ([4])طبرانی کښې دی چه ټول مسلمان خپلو کښې رونړه رونړه دی.په یوبل فضیلت نشته دې.خو که دې نه د تقوی لحاظ سر دې([5])مسند بزار کښې دی چه تاسو ټول دحضرت آدم ﷺ اولاد یئ اوحضرت آدم ﷺ دبناورې نه پیدا شوې وو.انې خلقو!د خپل پلار نیکه په نوم باندې فخر کولو نه منع شئ. ګنې تاسو به دالله ﷻ په نیز د شګې د ډیرو (غونډو) نه او داوبو مارغانو نه هم سپك شئ ([6])ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دفتح مکه په ورځ په خپله اوښه قصواء باندې سور وو او طواف نې اوکړو، او ارکان به نې خپل کوتك (چوکې،لرګی ) سره مسح کول.بیا چه کله مسجد کښې د کوزیدو ځائې نه وو نو خلقو دوی په لاسونو لاسونو کښې کوز کړل او اوښه نې بطن مسیل کښې اودروله.دې نه پس حضرت نبی کریم ﷺ خپله اوښه باندې سورشواو خلقو ته نې خطبه ورکړه او دې خطبه کښې نې دالله ﷻ د حمد وثناء نه پس اوفرمائیل چه : انې خلقو ! تاسو نه الله ﷻ

---

[1]) ترمذی کتاب البر والصلة باب ماجاء فی تعلیم النسب : ۱۹۷۹، وسنده حسن .

[2]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة یوسف باب قوله ( لقد كان فی یوسف واخوته .....): ٤٦٨٩، صحیح مسلم: ۲۳۷۸.

[3]) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب تحریم الظلم علی المسلم: ۲٥٦٤: احمد: ٤٣٩/٢، ابن حبان : ۳۹٤.

[4]) احمد: ١٥٨/٥،

[5]) طبرانی : ۳٥٤٧، مجمع الزوائد : ٨٤/٨،

[6]) مسند البزار : ۲۰٤۳،

ستاسو دجاهليت دزماني په شان دپلارنيکه په نومونو باندې فخر کولو رسم نه لري کړي يې. نو انسانان په دوه قسمه وي. يا خو نيک او پرهيزگار او دالله ﷻ په نيز اوچتې مرتبې والا وي. او يا بدکار غير متقي چه الله ﷻ نظر کښې ذليل او خوار وي. بيا دوي ﷺ دا آيت مبارک تلاوت کړو.

بيا فرماني چه خپله دا خبره کوم او دالله ﷻ نه خان او ستاسو دپاره داستغفار کوم[1] مسند احمد کښې دي چه ستاسو دا نسب نامې د هيڅ کار نه دي. تاسو ټول يو شان د حضرت آدم علیه السلام اولاد يئ. يو نه په بل هيڅ فضيلت نشته دې. خو که فضيلت دې نو هغه دتقوى په وجه دې. دانسان د بدوالي دپاره دا کافي دى چه هغه بدزبانه، بخيل او فحش کلام وى[2] دابن جرير يو روايت کښې دى چه الله ﷻ به ستاسو نه د قيامت په ورځ ستاسو د نسب باره کښې تپوس نه کوى. تاسو کښې ټولو نه زيات نزدې الله ﷻ ته هغه خلق دى چه کوم پرهيزگار دى[3] مسند احمد کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ منبر باندې تشريف فرما وو چه يو سړى تپوس اوکړو چه يارسو الله ﷺ! ټولونه زيات بهتر څوک دې؟ حضرت نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه ټول نه زيات ميلمه دوست، ټولو نه زيات پرهيزگار، دښه خبرې حکم کولووالا د ټولو نه زيات بدو کارونو نه منع کولو والا او ټولو نه زيات صله رحمي کولووالا وى[4] مسند احمد کښې دى چه حضرت نبى کريم ﷺ ته به ددنيا هيڅ څيز او هيڅ سړې ښه نه معلوميدو سوا د تقوى والا نه[5] الله ﷻ ستاسو دکارونو نه خبردار دى او تاسو ورته ښه معلوم يئ. څوک چه دهدايت لائق دى نوهغوئ ته هدايت ورکوى او چه څوک ددې لائق نه دى هغوئ بې لارې کيږى. رحم او عذاب د هغه په حکم سره کيږي. فضيلت دهغه لاس کښې دې چه چاته غواړى او چا ته بزرگى ورکوى. داټول کارونه د هغه علم او خبرگيرنې باندې مبنى دى. ددې احاديث مبارکه نه استدلال کولو نه پس علماء کرام فرمائي چه په نکاح کښې دقوميت او حسب ونسب شرط نشته دې. سوا ددين نه هيڅ شرط معتبر نه دې. نورو ونيلى دى چه هم نسبي او قوميت هم شرط دې. اودهغوئ دلائل ددې نه سوا نور دى چه د فقهې کتابونو کښې مذکور دى. او مونږ دا په کتاب الاحکام کښې ذکر کړى دى. فالحمدلله.

طبراني کښې دى چه حضرت عبدالرحمان نه مروى دى چه هغوئ دبنو هاشم يو سړى نه واوريدل چه خه حضرت نبى کريم ﷺ ته دنورو خلقو په نسبت زيات نزدې يم. بل اونيل چه خه ستا په نسبت حضرت نبى کريم ﷺ ته زيات نزدې يم. او خما حضرت نبى کريم ﷺ سره هم زيات نسبت دې.

| لَّمْ تُؤْمِنُوا | قُلْ | اٰمَنَّا | قَالَتِ الْاَعْرَابُ |
|---|---|---|---|
| چې تاسو ايمان نه دې راوړى | اووايه | چې ايمان راوړو مونږه | اووئيل باندې يسيانو |

(دا بعضې) باندېچيان وائي اچې مونږ ايمان راوړي دى! ورته اووايه چې تاسو ايمان نه دې راوړى

| فِيْ قُلُوْبِكُمْ | وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ | اَسْلَمْنَا | وَلٰكِنْ قُوْلُوْا |
|---|---|---|---|
| په زړونو ستاسو کښې | اولا نه دى داخل شوي ايمان | چې تابع شو مونږه | وليکن اووايئ |

خو داسې وائې چې مونږ په ظاهره تابعداريو! ايمان خو لاتراوسه ستاسو په زړونو کښې داخل شوي نه دې

---

[1] عبد بن حميد : ٧٩٣.
[2] احمد: ١٥٨/٤، شعب الايمان : ٦٦٧٧، شرح مشكل الآثار. ٣٤٥٩.
[3] الطبرى : ٣١٣/٢٢.
[4] احمد: ٤٣٢/٦،
[5] احمد: ٦٩/٦، مسند احمد ابى يعلى : ٤٥٥٢، مجمع الزوائد : ٨٤/٨.

وَإِنْ تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَا يَلِتْكُمْ مِنْ أَعْمَالِكُمْ

او كه تاسو حكمونه اومنل دالله | او درسول دهغه | نو كم به نه كړي تاسو لره | دعملونو ستاسو نه |

اوكه تاسو دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ تابعداري اوكړئ نو الله ﷻ به ستاسو په عملونو كښې هيڅ

شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ

هيڅ خيز | بيشكه الله | بښونكې مهربانه دې | بيشكه مومنان | هغه خلق دي |

كمې نه راولي | بيشكه الله ﷻ بښونكې ډير رحم كونكې دې | بيشكه مومنان خو هغه خلق دي

آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا

چې ايمان ئې راوړو | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | بيا ئې هيڅ شك اونه كړو |

چې الله ﷻ او د هغهٔ په رسول ﷺ باندې ايمان راوړي | بيا د ايمان راوړو نه پس، شك نه كوي

وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ

او جهاد ئې اوكړو | په مالونو خپلو سره | او په نفسونو خپلو سره | په لاردالله كښې | داكسان چې دي

اودالله ﷻ په لار كښې په خپلو مالونو او په خپلو ځانونو سره جهاد كوي | هم دغه خلق

هُمُ الصَّادِقُونَ قُلْ أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ وَاللَّهُ

هم دوئ رښتينې خلق دي | ورته اووايه | آيا تاسو خبر وركوئ الله ته | د دين خپل | حالاتكه الله

رښتونې دي | ته اووايه چې آيا تاسو الله ﷻ ته دخپلې ديندارئ خبر وركول غواړئ؟ | حالانكه

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ

خبر دې | دهغه څه نه | چې په آسمانونو كښې دي | اوهغه څه نه | چې په زمكه كښې دي | او الله

الله ﷻ د آسمانونو او د زمكې دهر څيز نه خبر دې | ...........................................اوالله ﷻ

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا

په هر څيز باندې | خبردار دې | دوئ احسان كوي | په تاباندې | چې دوئ اسلام قبول كړو |

ته هر څه معلوم دي | دا خلق په تا احسان كوي | چې مونږ اسلام راوړې دې

قُلْ لَا تَمُنُّوا عَلَيَّ إِسْلَامَكُمْ بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ

ورته اووايه چې مه احسانوئ | په ما باندې | اسلام خپل | بلكه الله | احسان كوي

ورته اووايه چې دخپل اسلام راوړل احسان په ما مه اچوئ | بلكه دا خو په خپلو ځانونو دالله ﷻ احسان

عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ

په تاسو باندې | چې هدايت ئې اوكړو ستاسو | ايمان ته | كه يئ تاسو | رښتينې |

اوګڼړئ | چې هغه درته دايمان طرفته خودنه اوكړه | ..... .............كه چرې تاسو رښتونې يئ

| إِنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | غَيْبَ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَاللّٰهُ | بَصِيْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | پوهيږي | په غيبو داسمانونو | او دزمکي | او الله | ليدونکي دی |
| بیشکه الله ﷻ د آسمانونو او د زمکې په ټولو پټو خبرو باندې پوهيږي \| او الله ﷻ | | | | | |
| بِمَا | تَعْمَلُوْنَ ۞ | | | | |
| دهغه څه | چې تاسو يې کوئ | | | | |
| ستاسو عملونه وينې ګوري | | | | | |

قوله تعالى:- قَالَتِ الْأَعْرَابُ اٰمَنَّا

**اسلام او ایمان کښې فرق**: چه کوم اعرابيان به اسلام کښې داخل شو نو هغوئ به د خپل ايمان لوئي لوئي دعوې کولې. حالانکه اصل ددوی زړونو کښې لا د ايمان جرړې نه وې مضبوطې شوې. نو هغوئ الله ﷻ ددې دعوې نه منع کوی. دوی به ونيل چه مونږ ايمان راوړو. نو الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته حکم کوی چه دوی لا په ايمان کښې نه دی داخل شوی، نو ته اووايه چه داسې دې نه وائی مونږ ايمان راوړې دې بلکه داسې دې اووائی چه مونږ مسلمانان شوی يو. يعنی اسلام کښې داخل شوی يو. ددې آيت مبارك نه دا فائده اوشوه چه ايمان اسلام سره مخصوص څيز دې. لکه څنګه چه د اهل سنت والجماعت مذهب دې ( بعضې وائی چه دلته دې آيت مبارك کښې اسلام نه مراد اسلام لغوی ده نه شرعی، يعنی دماتحت رعايا جوړيدلو ده د مسلمان جوړيدو نه ده . مترجم )د حضرت جبرئيل عليه السلام والا حديث هم په دې دلالت کوی . چه هغوئ عليه السلام دايمان باره کښې سوال اوکړوا و بيا ئې د اسلام باره کښې. اوبيا ئې د احسان باره کښې او داشان پوړئی په پوړئی روان وو. خاص طرفته راغلو او بيا د خاص نه اخص طرفته راغلو. مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ څه خلقو ته عطيه او انعام ورکړو او څه خلقو ته ئې هيڅ ورنکړل. نوبيا حضرت سعد رضي الله عنه اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ! تاسو فلانی فلانی ته ورکړل او فلانې فلانې مو پريښودو حالانکه هغه مومن دې . حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه يامسلمان ؟ حضرت سعد رضي الله عنه درې ځل پرله پسې دا اووئيل او حضرت نبی کريم ﷺ ورته هم دا جواب ورکړو. بيا حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه انې سعد رضي الله عنه ! څه خلقو ته ورکوم او چه کوم دوی نه ماته زيات محبوب وی نو هغوئ ته نه ورکوم . او په دې وجه ورکوم چه هسې نه دوی پړمخ جهنم ته پريوزی . داحديث مبارك بخاری اومسلم شريف کښې دی [1]. نو دې حديث کښې هم حضرت نبی کريم ﷺ مسلم اومومن کښې فرق اوکړو اومعلوم شو چه ايمان زيات خاص دې د اسلام نه . مونږ دا دلائلو سره دبخاری شريف شرح کښې کتاب الايمان کښې ذکر کړی دی . فالحمدلله.

اودې حديث مبارك کښې په دې خبره دلالت دې چه دا سړی مسلمان وو منافق نه وو. څکه چه حضرت نبی کريم ﷺ ده ته عطيه ورنکړه اودې ئې اسلام ته اوسپارلو. نو معلومه شو چه دا اعراب چه دکومو ذکر دې آيت کښې دې، منافقان نه وو ، خو وو خو مسلمانان خو اوسه پورې ددوی زړونو کښې ايمان لا نه وو مستحکم شوې . او دوی لا هغه مقام ته نه وو رسيدلی اودوی دا دعوی کړې وه . نو په دې وجه دوی ته آدب اوخودلې شو. هم دا مطلب دې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او د حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله او د حضرت قتاده رحمه الله دقول ، او هم دا ابن جرير رحمه الله هم اختيار کړې دی . په دې وجه مونږ دا اووئيل چه حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دا خلق منافق وو، خودوی به ايمان ظاهرولو. خو اصل کښې مومنا ن نه وو. ( يادساتئ چه اسلام او ايمان کښې فرق په هغه وخت کښې دې چه کله اسلام په

[1]) صحيح بخاری کتاب الايمان باب اذا لم يکن الاسلام علی الحقيقة : ۲۷، صحيح مسلم: ۱۵۰، ابوداود : ٤٦۸۳، احمد : ۱٦۷/۱.

خپل حقیقت نه وی . هرکله چه اسلام حقیقي وی نو هم هغه ایمان دی . اوپه هغه وخت کښې به ایمان او اسلام کښې فرق نه وی.ددې دیر قوی دلائل د امام الائمه حضرت امام بخاری رحمه الله خپل کتاب صیح بخاری کښې په کتاب الایمان کښې بیان فرمائیلی دی اوددې خلقو د منافقت ثبوت هم ورکوی مترجم، والله اعلم).

حضرت سعید بن جبیر رحمه الله،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت زید رحمه الله فرمائی چه دا چه الله تعالی فرمائی چه تاسو (أَسْلَمْنَا ) وائې ددې نه مراد دادې چه مونږ قتل نه ، قیدوبند نه بچ کیدو دپاره تابع فرمان یو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا آیت مبارك د بنو اسد ابن خزیمه باره کښې نازل شوې دې.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه دا آیت مبارك د هغه خلقو باره کښې نا زل شویدې چه دخپل ایمان راوړلو به ئې په حضرت نبی کریم ﷺ احسان کولو. خو صحیح خبره ږومبئ معلومیږی چه دا آیت مبارك دهغه خلقو باره کښې نازل شو چه هغوئ د ایمان دعوی کوله . خو تراوسه پورې هغوئ لا ایمان ته نه وورسیدلی . نودوی ته آدب اوخودلې شو تر اوسه پورې دوی لا ایمان ته نه وو ر سیدلی. که دوی منافق وې نو دوی ته به زورنه ورکړې ده . لکه څنګه چه سورة برآت کښې دمنافقانو باره کښې ونیلې شوی دی . خودلته دوی ته صرف آدب خودلې شوې دې . بیا فرمائی چه که تاسو دالله تعالی اودهغه رسول ﷺ منئ نوستاسو هیڅ عمل به نه شی ضائع کولې . لکه چه فرمائی چه ﴿ وَمَآ أَلَتْنَٰهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَىْءٍ ﴾یعنی مونږ ددوی عملونو نه هیڅ کم نه کړل .

**قوله تعالی:- إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ**

**حقیقی او واقعی مؤمن څوک دی؟** :-بیا فرمائی چه څوك الله تعالی طرفته رجوع اوکړی او بدنی نه منع شی نوالله تعالی ددوی ګناه معاف کولو والا او دوی طرفته دَرحم په نظر کتلو والا دې. بیا فرمائی چه په الله تعالی اودهغه په ر سول ﷺ صرف هغه خلق ایمان لری چه په الله تعالی اودهغه په ر سول ﷺ زړه دکومی یقین ساتی او دې کښې شك نه کوی . اونه کله ددوی په زړونوکښې څه خراب خیال رازی بلکه هم په دې خالص تصدیق او کامل یقین باندې یقین ساتی او هم په دې کلك ولاړ وی. اوددوی نفسونو او زړونو ته چه کوم مال خوښ وی بلکه خپل خانونه هم دالله تعالی لار کښې خرچ کوی .دا خلق رینتونی دی او دوی ونیلې شی چه مونږ ایمان راوړې دې.دوی د هغه خلقو په شان نه دی چه کوم صرف په خوله د ایمان دعوی کوی.مسنداحمد کښې دی چه حضرت نبی کریم ی فرمائی چه په دنیا کښې د مومن درې قسمونه دی (١) یو هغه چه په الله اودهغه په رسول ﷺ ئې ایمان راوړو او دې کښې ئې شك اونکړو او خپل مال او خپل خان سره دالله تعالی لار کښې جهاد اوکړو(٢) اوهغه خلق چه هغوئ امن اوموند او نه ئې د چا مال اوهلواو نه ئې څوك اوژل (٣) هغه چه طمع طرفته ګوری نو دالله تعالی په خاطر هغوئ پریږدئی.(١)

بیا فرمائی چه آیا تاسو دخپل زړه یقین او دین الله تعالی ته ښائې ؟ هغه ذات خوداسې دې چه دهغه نه د آسمان اوزمکې یو ذره هم پټه نه ده هغه ته هر څیز معلوم دې. بیا فرمائی چه کوم اعراب تاسو باندې د خپل ایمان احسان کوی نو هغوئ ته اووایه چه تاسو په ما دخپل اسلام احسان مه کوئی،تاسو چه اسلام قبلوئ نو خما ماتحت به یئ او خما مدد به کوئی . اوتاسو ته به ددې فائده ملاویږی. بلکه تاسو ته د ایمان اصل هدایت درکول په تاسو دالله تعالی احسان دې . که په دې خپله دعوه کښې رینتونی یئ نو الله تعالی چه چاته دا ایمان لار ښائی نودا په هغه کس باندې احسان کول دی. لکه څنګه چه حضرت نبی کریم ﷺ دحنین په ورځ انصارو ته فرمائیلی وو چه ماتاسو دګمراهئ حالت کښې نه وې موندی ؟ نو الله تعالی خما په وجه تاسو ته هدایت نصیب کړو. تاسو کښې تفریق وو او الله تعالی خما په وجه تاسو مالدار

(١) احمد: ٨/٣ وسنده مجمع الزوائد : ٥٢/١.

کړنی. کله چه به حضرت نبی کریمﷺ څه فرمائیل نو وئیل به نې چه بیشکه الله او دهغه رسولﷺ احسان کولو والا دی. بزار کښې دی چه بنو اسد حضرت نبی کریمﷺ ته راغلل او وې وئیل چه یارسول اللهﷺ امونږ مسلمانان شو، عربو تاسو سره جنګونه کول خو مونږ نه دی کړی. حضرت نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه په دوی کښې پوهه ډیره کمه ده ، شیطان ددوی په خوله خبرې کوی. اودا آیت مبارك نازل شو چه ﴿يَمُنُّونَ ﴾.بیا دوباره الله ﷻ دخپل وسیع علم او دخپل ریښتونی خبر او دمخلوق اعمالو باندې آګاهی بیان فرمانی چه د زمکې او آسمان غیب نه هغه ذات ته ښکاره دی . اوهغه ذات ستاسو د عملونونه خبر دې . الحمدلله د سورة حجرات تفسیر ختم شو. دالله ﷻ شکر دې ، توفیق او عصمت دهغه ذات لاس کښې دې .

الحمد لله دسورة الحجرات تفسیر ختم شو

**د سورة ،،ق،، تفسیر ،**

**دقران پاك د اووه منزلونو بیان** : چه کوم سورتونو ته مفصیل ونیلې شوی دی هغې کښې دا ړومبې سورة دې. اګر چه يو قول دا هم دې چه مفصل سورتونه د سورة حجرات نه شروع کیږی . عوامو کښې مشهور دی چه مفصل سورتونه دعمه نه شروع کیږی نو دا بې اصله خبره ده .

| ایاتونه | | سورة ق مكية وهي خمس واربعون اية وثلاث ركوعات | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٤٥ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ٣ |

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۟ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ

ق | قسم دې په قرآن | چی لویٔ شان والا دې | بلکه دویٔ حیران شو | په دې خبره چی راغې دویٔ ته

قاف ، په قران پاك باندې قسم دې | (چې مونږ نه پیغمبر کړې یې) خودا خلق په دې خبره تعجب کوی

مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَیْءٌ عَجِيْبٌ ۟ ءَاِذَا

یرونکې | ددویٔ نه | نو اووئیل کافرانو | دا یو څیز دې | عجیبه | آیا کله چې

چی دویٔ ته دخپل قوم نه ویرونکې راغلو | نو کافران وائی دا ډیره عجیبه خبره ده | آیا کله چې مونږ

مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۟ قَدْ عَلِمْنَا مَا

مړ شو مونږه | او شو مونږه | خاورې | دا واپسی | لرې خبره ده | معلوم دی مونږ ته | هغه (تول)

یوځل مړ شوا او خاورې شوا (نوبیابه راژوندی کولې شو) دا واپسی خو (دعقل نه) ډیره لرې ده مونږ ته خو ددویٔ

تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ ۟ بَلْ

چی کموی نې زمکه | ددویٔ نه | او زمونږ سره | کتاب دې | هر څیز محفوظ کونکې | بلکه

هغه (تول اجزا) معلوم دی | چې زمکه (په خوړو خوړوسره) کموی | او مونږسره پوره محفوظ کتاب پروت دې

كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِیْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۟

دروغ اوګنړودویٔ | حق لره | هر کله چې | راغې دویٔ ته | پس دویٔ (اوس) | پریوتی دی په کارشکمن کښې

بلکه کله چې دویٔ ته حقه خبره راغله نو هغه یې دروغ اوګنړله | نو دویٔ په شك کښې واقع شول

**قوله تعالی:-قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِیْدِ**

د " قٓ " حق باره کښې دعقل او نقل نه خلاف روایتونه :(قٓ ) حروفو هجاءُ څخه دي چه کوم دسورتونو په اول کښې راخي ﷺ. لکه ﷺ(ص، ق، الم، حم، طس ) وغیره. مونږ ددې پورا تشریح د سورة بقرة په تفسیر کښې شروع کښې کړې ده.دبعضي قول دی چه قاف یو غر دې چه ټوله زمکه نې ګیره کړې ده. ماته معلوم دی چه داد بنی اسرائیلو د خرافاتو نه دی او بعضو خلقو دا روایت کړی دی. ددې معلومیدو نه پس هم دا روایتونه اخستل مباح دی. اګر چه ددې تصدیق او تکذیب نه شی کولې. خو خما خیال دې چه داشان او ددې پشان نور روایتونه خو دبنی اسرائیلو بد دینو نه روایت کړې شوی دی چه خلق په غلط دین راولی. تاسو خیال اوکړئی چه په دې امت کښې دعالمانو او حفاظ کرامو یو لوئې جماعت په هره زمانه کښې موجود پاتې شوې دې خو بددینو خلقو ډیر لږ وخت کښې موضوع حدیث بیان کړی دی. بنی اسرائیل چه په هغوئ مودې تیر شوې او هغوئ د حفظ نشو کولې. اوپه هغوئ کښې د فن نقادان موجود نه وو چه د الله ﷻ دکلام اصلیت نې ختم کړې وې، او هغوئ هر وخت شرابو کښې مخمور وو، او دالله ﷻ آیتونه مبارك به نې بدلول، آیا هغوئ چه څه کړی دی نو هغه به صحیح وی څه ؟ نو حدیث مبارك چه ددوی نه کوم روایتونه اخستی دی هغه دومره خو دی چه عقل نې قبلوی، او هغه نه چه بالکل د عقل نه خلاف دی چه دهغې آوریدو سره د هغې دغلط او صحیح کیدو فیصله ذهن کوی. اودهغې دروغ کیدل دومره واضح دی چه په هغې د دلیل راوړلو ضرورت نه پیښیږی. نو دا پورتنی روایتونه هم داشان دی. والله اعلم . افسوس چه ډیرو سلفواو خلفو داشان روایات د کلام الله په تفسیر کښې روایت کړی دی.اصل کښې قران پاك دداسې بیهودګویو هیڅ محتاج نه دې. فالحمدالله.

تر دې چه حضرت ابومحمد عبدالرحمان ابن ابوحاتم رادزی رحمة الله علیه هم دلته یو عجیب او غریب اثر په روایت د حضرت ابن عباس ﷺوارد کړې دې اود سند لحاظ سره ثابت نه دې. په هغې کښې دی چه الله ﷻ یو سمندر پیدا کړو چه ټوله زمکه نې ګیره کړې ده. اوددې سمندر نه روستو یو غر دې چه هغه سمندر نې ګیر کړې دې . ددې نوم قاف دې او آسمانی دنیا هم دې اوچته کړې ده. بیا الله ﷻ ددې غر په شا یو زمکه پیدا کړه چه ددې زمکې نه په اوو چنده لویه ده . اوددې روستو یو سمندر دې چه دانې ګیره کړې ده . او بیاددې نه روستو یو غر دې چه دا نې ګیر کړې دې . اوهغې ته هم قاف وائی . او دویم آسمان په دې باندې اوچت کړې شوی دې . بیا داشان اووه زمکې ، اووه آسمانونه او اووه سمندرونه او اووه غرونه اوشمیرلې شو . بیا نې دا آیت مبارك اولوستو. ددې اثر په اسناد کښې انقطاع ده. علی بن ابوطلحه چه کوم روایت دحضرت ابن عباس ﷺ نه کړې دې په هغې کښې دی چه( قٓ )د الله ﷻنومونو کښې یو نوم دې .حضرت مجاهد رحمة الله علیه چه (قٓ ) هم په مثل د (ص،ن،حم،طس، الم ) وغیره حروف هجا نه دې . نو دې روایتونو سره دحضرت ابن عباس ﷺ هغه روایت لرې کیږی . او دا هم ونیلې شوی دی چه ددې نه مراد دادې چه دکار فیصله اوشوه قسم دې دالله ﷻ . او(قٓ )ونیلو نې جمله پریښوده چه دا دلیل دې دمحذوف لکه یو شاعر وائی چه :

**قلت لها قفی فقالت قٓ**

خودا ونیل صحیح نه دی . ځکه چه په مخذوف باندې دلالت کولو والا کلام به صفا وی او دلته کوم یو کلام دې؟ چه ددې نه ددومره لونې جملې د محذوف کیدو پته اولګی.بیا نې ددې کرم او عظمت والا قران پاك قسم اوخوړو چه ددې نه روستو اومخکښې باطل نه خانیږی. اوداحکمتونو او تعریف والا رب د طرفنه نازل شوې دې.ددې قسم جواب څه دې؟ په دې کښې هم ډیر اقوال دی.امام ابن جریر رحمة الله علیه خودبعضو نحویانو نه نقل کړی دی چه ددې جواب( قَدْ عَلِمْنَا )پورې آیت دې.خودا هم غورطلب دې. بلکه د جواب دقسم نه پس مضمون کلام دې.یعنی نبوت او دوباره دژوندی کیدل

ثبوت اوتحقيق اگر چه د قسم دلفظونو نه ددې جواب نه ښائي، دداسې قران پاك په قسمونو كښې اكثر جواب كښې دى لكه د سورة ﴿ص﴾ د تفسير په شروع كښې تير شوى دى . هم هغه شان دلته هم دى.
بيا فرمائي چه هغوئ په دې خبره تعجب اوكړو چه هم ددوى نه يو انسان څنګه رسول جوړ شو؟ او يو آيت مبارك كښې دى چه ﴿أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ﴾ يعنى آيا خلقوته په دې تعجب اوشو چه مونږ هم ددوى نه دوى ته يو رسول اوليږلو چه ته هوښيار كړه. يعنى دا څه د تعجب څيز نه دې الله ﷻ چه په فرښتو غواړى نو هغه رسالت دپاره منتخب كولې شى. او چا لره غواړى نو انسانانو كښې نې منتخب كولې شى .

قوله تعالى:- ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا

اودې نه پس دا هم بيان فرمائي چه دوى د مرګ نه پس د دوباره ژوند طرفته هم دتعجب په نظر سره اوكتل او دائې اووئيل چه كله مونږ مړ شو او ريزه ريزه شو او جدا جدا شو او ښاورو سره ښاورې شو نو دې نه پس هم په دې تركيب سره خمونږ دوباره ژوندى كيدل محال دى. نوددې جواب كښې ارشاد فرمائي چه ددوى بدنونه چه زمكه نې خورى مونږ ددې نه هم غافل نه يو. مونږ ته معلوم دى چه ددې ذرې چرته لاړې او په څه حالت كښې دى ؟ مونږ سره كتاب دې چه ددې محافظ دې، خمونږ علم دې چه په دې كښې شامل دې. او دې سره كتاب كښې محفوظ دې . حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه ددوى غوښه او څرمن او هډوكى او ويښته چه زمكه نې خورى دا خمونږ علم كښې دى. بيا الله ﷻ ددې دمحال كيدو وجه بيان فرمائي چه اصل كښې خلق دا حق په دروغه ګڼړى . او چه كومو خلو ته حق راشى او ددې نه انكار كوى نودوى نه پوهه واخستې شى.دمريج معنى ده مختلف ، مضطرب، منكر اوګډوډ.لكه فرمان دې چه ﴿ إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۝ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ۝﴾ يعنى تاسو يقينا ديو جګړې خبره كښې يئ،دقران پاك د منلو نه هغه خلق انكار كوى چه كوم نيكئ نه اړولې شوى دى .

| اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا | اِلَى السَّمَآءِ | فَوْقَهُمْ | كَيْفَ بَنَيْنٰهَا |
|---|---|---|---|
| آيا دوئ نه دى كتلى | آسمان ته | دپاسه دخان خپل نه | چې څه رنګې جوړ كړو مونږه هغه |
| نوآيا دوئ اسمان ته نه ګورى چې د دوى د سرونو دپاسه دې\| مونږ څنګه جوړ كړې | | | |

| وَزَيَّنّٰهَا | وَمَا لَهَا | مِنْ فُرُوْجٍ | وَالْاَرْضَ | مَدَدْنٰهَا |
|---|---|---|---|---|
| او ښانسته كړو مونږه هغه | او نشته هغه لره | څه چاودې | او زمكه | او غوړوله مونږه هغه |
| اوښانسته كړې مو دې \| او په هغې كښې هيڅ چاودې نشته \| اوزمكه خو هم مونږ خوره كړې ده | | | | |

| وَاَلْقَيْنَا | فِيْهَا | رَوَاسِيَ | وَاَنْۢبَتْنَا | فِيْهَا |
|---|---|---|---|---|
| اواوغورزول مونږه | په هغې كښې | غرونه | او زرغون كړل مونږه | په هغې كښې |
| او په هغې كښې مو غرونه پيدا كړى دى \| او هرقسم ښانسته جوړئ څيزونه مو په | | | | |

| مِنْ كُلِّ زَوْجٍ | بَهِيْجٍ | تَبْصِرَةً | وَّذِكْرٰى |
|---|---|---|---|
| دهر قسم | تازه بوټو نه | دا ټول خيزونه ستر ګې رڼرا كونكى دى | او نصيحت دې |
| كښې راټوكولى دى \| ........چې مونږ ته د رجوع كونكى هربنده دپاره دسترګو | | | |

لِكُلِّ عَبۡدٍ مُّنِيۡبٍ۝ وَنَزَّلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا

دپاره دهر بنده | رجوع كونكى | او نازلې كړې مونږه | دآسمان نه | اوبۀ | بركتناكې |

غريدلو او نصيحت ذريعه ده |............اوپورته نه مو بركتي اوبه راووروليې دى

فَاَنۡۢبَتۡنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الۡحَصِيۡدِ۝

پس زرغون كړل مونږه | په هغې سره | باغونه | او دانې (غلې) | دريبلى شوى فصلونو |

بيا مو په دې سره باغونه اود ريبلى شوى فصلونو دانې را پيدا كړى دى

وَالنَّخۡلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلۡعٌ نَّضِيۡدٌ۝ رِّزۡقًا

او ونې دكجورو | دنګې لوړې | هغې لره دى | وږى (غونچكونه) | قط په قط | رزق |

اودكهجورو دنګې دنګې ونې | چې دهغې غنچې يوپه بل كښې انخښتې دى | ..........دا

لِّلۡعِبَادِ وَاَحۡيَيۡنَا بِهٖ بَلۡدَةً مَّيۡتًا كَذٰلِكَ الۡخُرُوۡجُ۝

دپاره دبندګانو | او ژوندئ كړه مونږه | په دې اوبو سره | زمكه مړه | دارنګې راوتل دى (دانسانانو دزمكې نه)

بندګانو دپاره خوراک دى | اوپه دې (اوبو) سره مونږ مړه زمكه ژوندئ كړه | دغه شان به (دقبرونونه) وتل وى

**قوله تعالى:- اَفَلَمۡ يَنۡظُرُوۡۤا اِلَى السَّمَآءِ فَوۡقَهُمۡ**

**د الله تعالى دقدرت نمونه :-** دا خلق چه كوم څيزته ناممكن خيال كوى نو الله ﷻ ددې نه هم زيات لونې لونې دقدرت نمونې ددوى مخكښې ايږدى اوبيان فرمانى چه آسمان ته نظراوكړنى اودې په خليدونكو ستوروباندې غور اوكړنى،او اوګورنى كه نه په دومره لونې آسمان كښې يو سورې ، يو وړوكې شان سورې،يو غار يو كريك نه نشته دې.نو سورة تبارك لذى كښې فرمانى چه اَلَّذِىۡ خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا مَا تَرٰى فِىۡ خَلۡقِ الرَّحۡمٰنِ مِنۡ تَفٰوُتٍ﴾الخ،الله ﷻ هغه ذات دې چه هغه اوۀ آسمانونه يو دبل دپاسه پيداكړى دى . او ته دالله ﷻ په دې صنعت كښې هيڅ غلطى اونه ګورې.نو بيا هم ته نظر واچوه اوګوره چه تاته څرخه خلل په نظر نه راځى؟بيا هم ته باربار غوراوكړه ستا نظر به نامراده او عاجزه شى اوستا طرفته به واپس شى. بيابيان فرمانى چه څمكه مونږ خوره كړه او په دې كښې مونږ غرونه پيدا كړل چه دا اونه خوزى . څكه چه ددې چاپير چل كښې اوبه دى . او په زمكه كښې مو قسم قسم پټې او ميوې او سبزيانې زرغونې كړې . لكه چه بل ځاې كښې فرمانى چه زمكه او آسمان او ددې نه علاوه نور دقدرت نښې دعقل او بينائى دپاره دى،هر هغه سړى دپاره چه دالله ﷻ نه ويره كولو والا وى اودالله ﷻطرفته رغبت كولو والا وى . بيافرمانى چه مونږ آسمان نه نفع وركونكې اوبه نازلې كړې او دې سره باغونه او ميوې راوزى او هغه بيا كټ كولې شى. اوددې غله په پنډيرو كښې اچولې شى. او د كهجورو اوچتې اوچتې ونې مو پيدا كړې چه دا ښه ميوه كوى او د ميوې نه ډكې وى. اودا د مخلوق رزق دې. او هم ددې اوبو نه مونږ مړه زمكه ژوندئ كړه او هغه ښه جوبن كښې شوه او دخشكئ نه پس تازه شوه. اوخوشى او خشك ميدانونه شنه شو. دا مثال دې د مرګ نه پس د دوباره ژوندى كيدو.او د هلاكت نه پس د آباديدو نښې دى چه دا تاسو روزانه ګورنى.آيا ستاسو رهبرى دې طرفته نه ده؟ چه الله ﷻدمړدګانو په سوزولو قادر دې.نو يو بل آيت مبارك كښې دى چه ﴿لَخَلۡقُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ اَكۡبَرُ مِنۡ خَلۡقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ۝﴾يعنى دآسمان اوزمكې پيدائش دانسانى پيدائش نه ډيرزيات دې.اويو بل آيت مبارك كښې دى چه﴿ اَوَلَمۡ يَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَلَمۡ يَعۡىَ بِخَلۡقِهِنَّ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنۡ يُّحۡىِۦَ الۡمَوۡتٰى بَلٰٓى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ

قَدِيرٌ ﴾يعنى آيا دوى نه ګوري چه الله زمکې او آسمانونه پيدا کړل او ددې په پيدانش ستړې نشو . او آيا په دې قادر نه دې مړي ژوندی کړي؟ بيشکه هغه په هر څيز قادر دې. الله ﷻ فرمائي چه ﴿ وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً ﴾الخ. يعنى ته ګورې چه زمکه بالکل اوچه او بنجره وي اومونږ آسمان نه باران راوررو چه دې سره هغه زرغونه شي او فصل کوی . آيا دا څما دقدرت نښې نه دی څه ؟ چه کوم ذات دوی پيد کړل نو هغه بيشکه د خلقو په دوباره ژوندی کولو قادر دې . او يقنى هغه په ټولو څيزونو قدرت لرى .

| كَذَّبَتْ | قَبْلَهُمْ | قَوْمُ نُوحٍ | وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ | وَثَمُوْدُ |
|---|---|---|---|---|
| دروغ اوګڼړل | مخکښې ددوی نه | قوم دنوح | او ملګرو دکوهي | او ثموديانو |
| د دوی نه وړاندې ...................... د نوح عليه السلام قوم .................. او د کوهي ملګرو او ثموديانو | | | | |

| وَعَادٌ | وَّفِرْعَوْنُ | وَاِخْوَانُ لُوْطٍ | وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ | وَقَوْمُ تُبَّعٍ |
|---|---|---|---|---|
| عاديانو | او فرعون | او رونړو دلوط | او خلقو دځنګل | او قوم دتبع |
| او عاديانو او فرعونيانو او دلوط ﷺ رونړو او دبنړو اوسيدونکو او دتبع قوم | | | | |

| كُلٌّ | كَذَّبَ الرُّسُلَ | فَحَقَّ | وَعِيْدِ | اَفَعَيِيْنَا | بِالْخَلْقِ |
|---|---|---|---|---|---|
| دې ټولو | دروغ اوګڼړل رسولان | پس ثابت شو | عذاب زما | آيا نو عاجزه وو مونږه | په پيداوښت |
| دې ټولو خپل خپل پيغمبران دروغژن ګڼړلي وو نوزما دعذاب فيصله پرې ثابته شوه نوآيا مونږ (ددوی) | | | | | |

| الْاَوَّلِ | بَلْ | هُمْ فِيْ لَبْسٍ | مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ |
|---|---|---|---|
| رومبنی سره | بلکه دوی | په شك کښې پراته دي | دپيداوښت نوی نه |
| په اول ځل پيدا کولو باندې ستړې شوا نه بلکه دوی دنوی سره دپيدا کيدو په باره کښې شک کښې پراته دی | | | |

**قوله تعالى:- فَحَقَّ وَعِيْدِ**

**دنبيانو تکذيب کولو والا قومونه تباه شو :-** الله ﷻ مکې والا د عذاب نه ويروی. او کومو خلقو ددوی پشان ددوی نه مخکښې تکذيب کړې وو لکه دحضرت نوح عليه السلام قوم چه هغوئ الله ﷻ په اوبو کښې تباه کړی وو.او اصحاب رس چه دهغوئ پورا واقعه د سورة فرقان تفسير کښې تيره شوې ده.او ثموديانو او قوم عاد او دحضرت لوط عليه السلام امت هغوئ الله ﷻ په زمکه کښې ښخ کړی وو. او دې زمکې نه نې يخ دلدل جوړ کړو. دا ټول هر څه وو ؟ دا ددوی د کفر او سرکشئ بدله وه. داصحاب ايکه نه مراد قوم شعيب دې . او د قوم تبع نه مراد يمانی دی.سورة دخان کښې هم ددوی واقعه تيره شوې ده.اوهم هغه ځائي کښې ددې پوراتفسير دې.دلته د دوباره ليکلو ضرورت نشته دې. فالحمدلله.

**قوله تعالى:- كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ**

**د يو نبی تکذيب دټولولو انبياء کرامو تکذيب دې:** دې ټولوامتونو دخپلو نبيانوعليهم السلام تکذيب کړې وو .او دوی دالله ﷻ عذاب سره تباه کړې شو. دالله تعالى هم دا عادت جاري دې.دا ياد ساتئ چه يو رسول نه منلووالا دټولو رسلانو نه منلو والا دې. لکه دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ ِۨالْمُرْسَلِيْنَ﴾ قوم نوح د رسولانو انکار اوکړو حالانکه دوی ته يو رسول راغلي وو. نودوی داسې وو که چرې دوی ته ټول رسولان راغلی وو نو دوی به هم دهغوئ تکذيب کړې وو. او يو به نې هم نه منلو. ديو به نې هم تصديق نه کولو. په دوی ټولو باندې دالله ﷻ دعذاب وعده ددوی د کړو په وجه ثابت شوه اوصادق شوه.نو اهل

مکه او نورو مخاطبو خلقو ته پکار دي چه ددې بد خصلت نه پرهیزاوکړي . هسې نه چه په دوی هم عذاب نازل شي . کله چه دوی نه وو نو ددوی پیدا کول مونږ باندې څه گران وو؟ چه اوس دوی د دوباره پیدائش نه منکر دي،د ابتداء نه خو اعاده کول ډیر آسان وي. لکه فرمان دې چه ﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ یعنی شروع نه هغه پیدا کړنی او دوباره به اعاده هم هغه پاك ذات کوی . دا دهغه لوئي ذات دپاره ډیر آسان دی . سورة یاسین کښې دالله ﷻ فرمان تیر شوې دې چه ﴿وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا﴾ الخ ، یعنی خپل پیدائش ئې هیر کړو او خمونږ مخکښې مثالونه بیانوی ، او وې ونیل چه دا سخا او راسته هډوکی به څوك ژوندی کوی ؟ نو دوی ته جواب ورکړه چه هغه ذات چه کوم تاسو په رومبی ځل پیدا کړنی او هغه ټول مخلوق معلوم دی . صحیح حدیث مبارك کښې دی چه الله ﷻ فرمائی چه ماته بنی آدم تکلیف راکوی او وائی چه ما الله ﷻ دوباره نشی پیدا کولې . حالانکه په رومبی ځل پیدا کول د دونم ځل پیدا کولو نه آسان دی (١).

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ ۖ وَنَحْنُ

اوپیدا کړې دي مونږ انسان | اوپوهیږو مونږ | په هغه | چې وسوسه کوی | په هغې سره | زړه دهغه | او مونږ

اویقینا مونږ انسان پیدا کړو | اووده په زړه کښې چې کومې وسوسې راځی (هغه هم مونږ پیژنو) | ومونږ

أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ⑯ إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ

زیات نزدې یو | دده ته | دړگ | دمرۍ | نه | کله چې اخلی | دوه اغستونکی فرښتې

خوردده د سا د رگ نه هم زیات نزدې یو | .........څه وخت چې دوه لیکونکې فرښتې دده

عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ⑰ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ

دښی طرفنه | او دگس طرفنه | ناستې وی | نهٔ وائی انسان | یوه خبره |

د ښی اوگس طرف ته موجودې وی | اودانسان د خلې نه چې څنګه څه لفظ اوځی

إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ⑱ وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ

مگر دهغې سره وی | ساتونکې | حاضره فرښته | او راغله | بې هوشی دمرگ

نوددهٔ سره یو ساتونکې (فرښته ددې دلیکلو دپاره)تیاره موجود وی | اودمرگ بې هوشی

بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيدُ ⑲ وَنُفِخَ

دحق سره | دا هغه څیز دې | چې وې ته | دهغې نه | چې به ترتېتیدلې | او پوکې اووهلې شو |

په رښتیا راورسیده | دا هغه څیز دې چې ددې نه به ته تښتیدلې | ......... اوشپیلۍ به

فِي الصُّورِ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيدِ ⑳ وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَعَهَا

په صور کښې | دا هغه ورځ ده | چې ته به تر یرولې کیدې | او راغې | هر انسان | چې ووی دهغه سره

پوك وهلې شی اهم دا دعذاب ورځ ده | ... اوهر کس به په داسې حالت کښې پیش کیږی چې یوه (فرښته،

(١) صحیح بخاری کتاب العتق باب الخطاء والنسیان فی العتاقة والطلاق : ٢٥٢٨، صحیح مسلم: ١٢٧.

| سَآئِقٌ | وَّشَهِيۡدٌ۞ | لَقَدۡ كُنۡتَ | فِىۡ غَفۡلَةٍ | مِّنۡ هٰذَا |
|---|---|---|---|---|
| يو راوستونكي | او يو گواهي كونكي | بيشكه وې ته | په غفلت كښې | ددې ورځې نه |

به نې راولي | اوبله به ورسره گواه وي | (دا به ورته ونيلي شي) ته خو ددې ورځې نه په غفلت كښې وې

| فَكَشَفۡنَا | عَنۡكَ | غِطَآءَكَ | فَبَصَرُكَ | الۡيَوۡمَ | حَدِيۡدٌ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو لرې كړه مونږه | ستا نه | پرده ستا | پس نظر ستا | نن ورځې | تيز دې |

خو مونږ درله (دسترگونه) پرده پرانسته | نونن خو دې نظر ډير تيز دې |

**قوله تعالى:- وَنَحۡنُ اَقۡرَبُ اِلَيۡهِ مِنۡ حَبۡلِ الۡوَرِيۡدِ۞**

**دالله ﷻ علم او قدرت دانسان د شا رگ نه زيات نزدې دې :-** الله ﷻ فرمائي چه هم هغه د انسان خالق دې او د هغه علم دټولو څيزونو احاطه كړې ده. تر دې چه انسان زړه كښې كوم خراب خيالات پيداكيږي دهغې ورته هم معلومات شته دې.صحيح حديث مبارك كښې دى چه الله ﷻ څما دامت هغه خيالات معاف كوى چه كوم ددوى په زړه كښې پيدا شي.تر كومې چه هغه دژبې نه ادا نه شي.يا پرې دې عمل اونكړي. او مونږ ددوى دساه درگ نه هم زيات نزدې يو.يعنى څمونږ فرښتې او بعضو ونيلي دى چه څمونږ علم كښې دى.ددوى غرض دادې چه هسې نه حلول او اتحاد رانشي چه بالاجماع دهغه مقدس رب نه ډير لرې دى او هغه پاك ذات ددې نه بالكل پاك دې.خو د لفظ تقاضا دا نه ده څكه چه (وانا) نې اونه ونيل بلكه(ونحن )نې اوونيل يعنى ما او نه ونيل بلكه مونږ اوونيل. هم دا لفظ دهغه سړى باره كښې ونيلي شوى دى چه دهغه مرگ نزدې وى او هغه دنزع په حالت كښې وى. فرمان دې چه (وَنَحۡنُ اَقۡرَبُ اِلَيۡهِ مِنۡكُمۡ وَلٰكِنۡ لَّا تُبۡصِرُوۡنَ۞ )الخ،يعنى مونږ تاسو ستاسو ټولو نه نزدې يو خو تاسو ته ددې معلومات نشته دې.دلته هم مراد فرښتو دومره نزدې والې دې. لكه فرمان دې چه (اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ۞)يعنى مونږ ذكر نازل كړو او مونږ ددې محافظ يو. فرښتو ذكر يعنى قران پاك راوړې دې اودلته هم مراد د فرښتو دومره نزديكت دې. او دې باندې الله ﷻ دوى ته قدرت وركړې دې.نو انسان سره يو فرښته وى اويو شيطان.هم داشان شيطان هم انسانى جسم كښې گرزى لكه څنگه چه وينه گرزى.لكه څنگه چه د رښتونو رښتونى نبى حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى.په دې وجه دې نه پس فرمائي چه دوه فرښتې ستاسو كيڼې او ښى طرفته ناستې وى ستاسو عملونه ليكي. دابن آدم دخولې نه چه كوم كلمات اوځي دا محفوظ كوى او دا نه پريږدى او دې زر ليكى نو دې دپاره فرښتې مقرر دى. لكه فرمان دې چه ( وَاِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحٰفِظِيۡنَ) الخ، اوتاسو باندې محافظ دى مقربې فرښتې چه ستاسو د فعل نه خبردار دى . ليكونكې دې. حضرت حسن رحمة الله عليه او حضرت قتاده ؒ خو فرمائي چه دافرښتې هر نيك او بد كار ليكي([1])د حضرت ابن عباس ؓ دوه اقوال دى،يو خو دادې او بل قول ددوى دا دې چه ستاسو ثواب او عذاب ليكى خود آيت ظاهرى الفاظ د رومبى قول تائيد كوى. څكه چه فرمان دې چه كوم لفظ راوزى نوهغې سره دهغې محافظ تيار وى.مسنداحمد كښې دى چه انسان يو كلمه دالله ﷻ درضامندئى وائى او دې هغه كلمه څه د لوئې اجر والا كلمه نه گنړى.او الله ﷻ دده دپاره ترقيامته پورې خپل رضامندى ليكى.او يو كلمه د بدئى دناراضگئ درب اووائى داسې پرواهئ سره نو الله ﷻ دهغې په وجه پده خپله ناراضگى تر دقيامت د ورځې پورې ليكى.حضرت علقمه رحمة الله عليه چه دې حديث مبارك څه ډيرو خبرو نه بچ كړم. ترمذى وغيره كښې دا حديث

[1]) الطبرى : ٢٢/٣٤٥.

مبارك شته دي او امام ترمذي دي ته حسن وائي [1] احنف بن قيس رحمة الله عليه فرمائي چه ښي طرف والا نيكئ ليكلي او دا په گس طرف والا باندي امين وي .هر كله چه بنده نه څه اوښي نو دا وائي چه صبر شه كه پدي وخت كښي ده ددي نه توبه ويستله نو دا مه ليكه . اوكه توبه اونه باسي نو دا ليكي(ابن ابى حاتم ) امام حسن بصري رحمة الله عليه به ددي آيت مبارك تلاوت كولو او فرمائيل به ني چه اني ابن آدم ستا دپاره صحيفه پرانيستئ شوي ده اوپه تا دوه مقربي فرښتي مقرر دي . يو ستا ښي طرفته او بله ستا گس طرفته . ښي طرف والا خو ستادنيكو حفاظت كوي او گس طرف والا ستابدئي گوري.نواوس چه ته څه غواړي نو هغه عمل كوه لږ كوي كه زيات ، هركله چه ته مړ شي نو دا دفتر به بند كړي شي. اوتاسره به ستا قبر كښي كيخودي شي . اود قيامت په ورځ چه ته كله پاسي نو دا به ستامخكښي وي. الله ﷻ هم ددي باره كښي فرمائي چه﴿ وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِىْ عُنُقِهٖ ؕ وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ﴾ الخ،دهر انسان شامت اعمال مونږ دهغه په غاړه كښي اچولي دي. او مونږ به د قيامت په ورځ د ده مخكښي د اعمال نامي يو كتاب پرانيزو. اودا به دي پرانيستئ بيا مومي. بيا به ده ته اوونيلي شي چه خپل كتاب اووايه . نن ته په خپله دخپل حساب اخستلو دپاره كافي ني . بيا حضرت حسن رحمة الله عليه فرمائي چه په الله ﷻ قسم هغه ډير زيات عدل اوكړو چه هغه ذات ته په خپله دخپلو عملونو محافظ جوړ كړي.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه كومه خرابه كلمه ته د خپلي خولي نه اوباسي نو هغه ټول ليكلي كيږي تر دي چه ستا داوينا چه ما هم اوخوړل او ماهم اوڅكل، څه لاړم ، څه راغلم او ما اوكتل. بياد زيارت په ورځي دده اعمال پيش كولي شي.خير اوشر باقي ساتلي شي.او نور ټول هر څه ختمولي شي. هم دي معني كښي دالله ﷻ يو ارشاد مبارك دي چه ﴿ يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۚۖ وَعِنْدَهٗٓ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴾ دحضرت امام احمد رحمة الله عليه باره كښي مروي دي چه خپل مرض الوفات كښي ني فرياد كولو نو دوي ته معلوم شوچه حضرت طاؤس رحمة الله عليه فرمائي چه فرښتي داهم ليكي. نودوي فرياد كول هم بند كړل . الله ﷻ دي په هغوئ خپل رحمت اوكړي چه دخپل مرگ په وخت كښي ني هم أف او نه كړو. بيا فرمائي چه اني انسانه د مرگ بي هوشي راروانه ده . او په هغه وخت كښي به ستا هغه شك لري شي چه كوم كښي ته نن ني . په هغه وخت به تاته اوونيلي شي چه هم دادي هغه څه چه ته تري تښتي ، اوس چه هغه راغلو نو ته څنگه ددي نه نجات موندي شي . اونه منع كولي شي.او نه ني ختمولي شي . اونه ددي مقابله كولي شي. او نه ستا سو مددگار او سفارشي په كار راتلي شي.هم داصحيح دي چه دلته خطاب مطلق انسان ته دي.اگر چه بعضو ونيلي دي چه كافر ته دي اوبعضو ونيلي دي چه نور څه هم دي . حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه دخپل پلارد څنكدن په وخت كښي دوي دهغه سر ته ناست وو. په دوي بي هوشي تله راتله. نوما دابيت اوونيلو چه :

من لايزال دمعه مقنعا *** فانه لابد مرة مدفوق

مطلب دادي چه دچا اوښكي ولاړي دي نو دا هم يو ځل بهيږي.نودوي خپل سرمبارك اوچت كړو او وي ونيل چه اني خوري لوري داسي نه بلكه چه څنگه الله ﷻ فرمائيلي دي چه ﴿ وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيْدُ ﴾ اويو روايت كښي دبيت ونيل اود حضرت ابوبكرصديق ﷺ دامروي دي چه داسي نه بلكه دا سي آيت اووايه.ددي اثر نورهم ډير زيات طريق دي اوما هغه په سيرة الصديق كښي ددوي د وفات بيان كښي ليكلي دي.يو صحيح حديث مبارك كښي دي چه په حضور نبي كريم صلى الله عليه وسلم كله د مرگ وخت راغلو نو حضور نبي كريم صلى الله عليه وسلم به د خپل رخسار مبارك نه اوښكي اوچولي او فرمائيل به ني چه سبحان الله دمرگ ډيري سختي دي[2] ددي آيت مبارك د ړومبى جملي

---

[1] ترمذى كتاب الزهد باب ماجاء في قلة الكلام: ۲۳۱۹، وسنده حسن ابن ماجه: ۳۹٦۹. احمد: ۳/٤٦۹.

[2] صحيح بخاري كتاب المغازي باب مرض النبي ﷺ ووفاته: ٤٤٤۹.

تفسير په دوه طريقو سره دې يو خو دا چه (( ماصول )) دې يعنى دا هغه دى چه دا تا لرې گڼل . او دويم قول دادې چه دلته (( مانافيه )) دې نو معنى به شى چه دا هغه څيز دې چه ددې نه د جداکيدواو ددې نه د بچ کيدو کښې تاکښې هيڅ قدرت نشته دې.او نه ددې نه لرې کيدېشې معجم کبير طبرانې کښې حضور نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمائى چه دهغه سړى مثال چه دمرګ نه تښتى دهغه لومبړى په شان دې چه دهغې نه زمکه خپل قرض غواړى او دا دهغه نه اوتښتى. او هرکله چه ستړې شى نو خپله جونپړئى کښې ننوته. نو چونکه زمکه خو هغه خائې کښې موجود وه نو دې ته اونيل چه ما ته خپل قرض راکړه. نو دا بيا دهغه خائې نه په منډه شوه. په ساه ساه وه.او ددې حالت خراب و ، او آخر منډه منډه وهلو وهلوکښې مړه شوه.(١) غرض دا چه څنګه دې لومبړې ته د زمکې ته د تښتې لار بنده وه نو داشان انسان ته دمرګ نه د تښتيدو لارې بند دى.دې نه پس د شپيلئ وهل ذکر دې او ددې تفسير والا پورا حديث مبارك تير شوې دې. او و حديث مبارك کښې دى چه حضور نبى کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه څنګه آرام اوراحت حاصلولې شم حالانکه شپيلئ والا فرښتې شپلئ باندې خوله اينبودې ده.او سرې ئې ټيټ کړې دالله ﷻ د حکم انتظار کښې ده چه کله به دوې ته د پوك وهلو حکم کيږى . نو صحابه کرام ﷺ اوونيل چه يارسو الله مونږ څه اووايو.حضور نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه (حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ) (٢)بيا فرمائى چه هر سړى سره به يو فرښته ميدان حشرته خى. اويو فرښته به دده داعمال ګواه وى.ظاهر آيت مبارك کښې هم دا دى اوامام ابن جرير رحمة الله عليه هم دا خوښوى(٣)حضرت عثمان بن عفان ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت په منبر اوفرمائيلو او بيا ئې اوفرمائيل چه يو چلولو والا چه هغه سره به دا ميدان حشرته رازى او يو به ګواه وى اوهغه به دده داعمال شهادت ورکوى(٤)حضرت ابوهريره ﷺفرمائى چه دسائق نه مراد فرښته ده.او دشهيد نه مراد عمل دې. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى چه سائق به د فرښتو نه وى اوس دشهيد نه مراد انسان دې چه پخپله به خپل خان ګواهى ورکوى . بيا دې نه پس چه کوم آيت کښې خطاب دې نوددې باره کښې درې اقوال دى. يو دا چه دا خطاب به کافرته وى.دويم دا چه ددې نه مراد عام انسانان دى،نيك او بد ټول.دريم دا چه ددې نه مراد حضور نبى کريم صلى الله عليه وسلم دې.د دويم قول توجيه داده چه دآخرت او دنيا هغه نسبت دې چه کوم دبيدارئى او خوب باره کښې دې. اودريم قول مطلب دادې چه ته ددې قرآن پاك د وحى نه مخکښې غلفت کښې وې . مونږ دا قرآن پاك نازل کړو او ستاسو سترګونه مو پرده لرې کړه . اوستا نظر تيز شو.خو الفاظ قرانى نه ظاهر دادى چه ددې نه مراد عام دې.يعنى هر سړى ته به اوونيلې شى چه ته ددې ورځې نه غافل وې او د قيامت په ورځ به دهر سړى سترګې اوغړيږى . تر دې چه کافر به هم په استقامت شى.خودا استقامت به دته هيڅ فائده نه ورکوى.لکه څنګه چه فرمان دې چه (أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ) يعنى په کومه ورځ چه دوى مونږته راشى.نو ښه به آورى او ګورى.او آيت مبارك کښې دى چه (وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُءُوسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ) يعنى کاش چه تا کتلې چه ګناهګار خلق به دخپل رب مخکښې ټيټ سرولاړ وى.اووائى به چه ياالله ﷻ امونږ واوريدل اومونږ اوکتل اومونږ واپس کړه نومونږ به نيك عملونه کوو.اوکامل يقين به ساتو.

---

(١)طبران : ٦٩٢٢،

(٢) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة الزمر : ٣٢٤٣، احمد: ٧/٣، حاكم : ٥٥٩/٤، ابن حبان : ٨٢٣ .

(٣) الطبرى : ٣٤٧/٢٢.

(٤) الطبرى : ٣٤٧/٢٢.

وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ ؕ﴿۲۳﴾ اَلْقِيَا فِيْ جَهَنَّمَ

او اووئیل ملگری دهغه | دا هغه دي | اچي حواله وو ماته | حاضر دي | اے دوو فرښتو او غورزوئ | په دوزخ کښې

او دهغه ملگري فرښته به اووائي اچي دا هغه (عمل نامه) ده اچي ماسره تیاره پرته ده | (حکم به اوشي) چي ائي دواړو فرښتو !

كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ۙ﴿۲۴﴾ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ

هر سخت کافر | عناد کونکي (ضدي سړي) | منع کونکي | خیر لره | د حدنه اوړیدونکي

هر ناشکره سرکشه دوزخ ته او غورزوئ | چي (خلق به ئي د) دنیکئ نه منع کول | احد نه تیریدونکي او

مُّرِيْبِ ۙ﴿۲۵﴾ الَّذِيْ جَعَلَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَاَلْقِيٰهُ

شك کونکي | هغه کس | چي جوړ کړي ئي وو | د الله سره | معبود (خدائي) | بل | پس او غورزوئ هغه

شك کونکي وو | چا چي الله ﷻ سره نور معبودان مقرر کړي دي | تاسو دواړه دا کس په سخت عذاب

فِي الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ ﴿۲۶﴾ قَالَ قَرِيْنُهٗ رَبَّنَا مَا اَطْغَيْتُهٗ

په عذاب سخت کښې | اووئیل ملگری دهغه | اے ربه زمونږه | نه دي جوړ کړي ماسرکشه ده لره

کښې واچوئ | د هغه (شیطان) ملگري به اووائي اچي ائي زمونږ ربه ما دي نه دي سرکشه کړي |

وَلٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ﴿۲۷﴾ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ

ولیکن | وو دي | په گمراهئ لرې کښې | اووئیل الله | جگړه مه کوئ | زما وړاندي

بلکه دي پخپله په غټه گمراهئ کښې پروت وو | .........الله ﷻ به اوفرمائي چي زما وړاندي

وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ﴿۲۸﴾ مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ

او محکښې لیږلي وو ما | تاسو ته | یرونه (خبرداري دبد انجام نه) | نه بدلیږي خبره

جگړې مه کوئ | او ما تاسو (په دنیا کښې) وړاندي ددي عذاب نه ویرولي وئ | نو زما په دربار کښې به (نن)

لَدَيَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۲۹﴾

په دربار زما کښې | او نه یم زه | ظلم کونکي | په بندگانو خپلو باندي |

فیصله نه بدلیږي (کومه چي ما کړي وي) | او زه پخپلو بندگانو ظلم کونکي نه یم |

**قوله تعالیٰ:- قَالَ قَرِيْنُهٗ رَبَّنَا مَا اَطْغَيْتُهٗ**

**دانسان گواه او نگران فرښتو:-** الله ﷻ فرمائي چه کومه فرښته د ابن آدم په اعمالو مقرر ده، هغه به ددوی د اعمالو شهادت ورکوی او وائي به چه دادي ماسره تیار حاضر. بغیر دکمي زیاتي نه .حضرت مجاهد رحمة الله علیه فرمائي چه دا به دهغه فرښتې کار چه کومې ته سائق ونیلې شي چه کومې دې محشر ته راوړې وو. امام ابن جریر رحمة الله علیه فرمائي چه خما په نیز مختار قول دادې چه دې کښې شامله ده هغه فرښته چه کومه به گواهي ورکوی او دا فرښته. هم اوس به الله ﷻ د خپل مخلوق فیصلې بنه په عدل او انصاف سره کوی (اَلْقِيَا) د تثنیه صیغه ده. بعضې نحویان وائي چه بعضو عربو به واحد تثنیه کولولکه د حجاج مقوله مشهور ده چه هغه به خپل جلاد ته ونیل چه (اضربا عنقه) تاسو دواړه دده څټ اووهئ. حالانکه جلاد به یو وو. ابن جریر رحمة الله علیه ددې شهادت کښې دعربئ یو شعر هم پیش کړې دې، بعضې وائي چه دا اصل کښې نون تاکید دې. او ددې تسهیل الف طرفته کړې شوې دې خو

دا بعید دی . ځکه چه داسې د توقف حالت کېږي وي. په ظاهره دا معلومیږي چه دا خطاب پورته والا دوؤ فرښتو ته به وي. راوړونکې فرښتې دې د حساب دپاره پیش کړو او ګواهئ ورکونکې ګواهی ورکړه. نو الله ﷻ به دې دواړوته حکم اوفرمائي چه دې د جهنم اور کښې واچوئي اوهغه ډیر بدترین ځائې دې . الله ﷻ دې مونږ ددې ځائې نه محفوظ اوساتي. بیا فرمائي چه هر کافر او هر دحق مخالف او حق نه ادا کولو والا او دهرې نیکئ او صله رحمئ او ښیګړې نه خالي اوسیدو والا اود هر حد نه تیردونکې والا که دا دحدنه تیریدل د مال په صورت کښې وي او که په خبرو کښې و تګ کښې دالله ﷻ د احکام پرواه نه کولو والا وي اوهر شك کوونکې او دالله ﷻ حکم نه منونکې دپاره هم دا حکم دې چه دې اونیسئ اودجهنم اور کښې ئې واچوئ چه سخت عذاب کښې وي .

**قیامت کښې د جهنم اعلان:-** مخکښې حدیث مبارك تیرشوې دې چه دقیامت په ورځ جهنم د خلقو مخکښې خپل څټ راوباسي او په اوچت آواز به اووائي اودا به ټول محشر والا آوري چه څه په درې قسمه خلقو مقرر کړې شوې یم . هر سرکشه حق نه مخالف باندې،او هر مشرك باندې،اوپه هر تصویر جوړونکې.بیا دې داټول راونیسي.دمسند یو حدیث مبارك کښې دی چه دا دریم قسم خلق به هغه وي چه کوم به ظلم قتل کوي(١) بیا فرمائي چه ددې ملګرې به اووائي چه ددې نه مراد شیطان دې چه کوم سره موکل وو. دې به ددې کافر په کتلو سره خپل ځان برې کوي اووائي به چه ما دې نه دې لمسولې بلکه دې خو پخپله ګمراه شوې وو. ده باطل پخپله قبول کړې وو. دحق پخپله مخالف وو. لکه څنګه چه بل ځائې کښې دی چه کله شیطان اوګوري چه کار ختم شو نو اوبه وائي چه تاسو سره الله ﷻ رښتوني وعده کړې وه او څه خو وعده خلاف یم ، خما خوتاسو باندې هیڅ زور نه وو.ما چه تاسوته څه اووئیل نو تاسو هغه زر اومنل اوس ما مه ملامته کوئي . بلکه خپل ځانونه ملامت کړئي . نه خو څه ستاسو بکار راتلې شم او نه تاسو خما په کار راتلئ شئ . تاسو چه څه شریك جوړولم څه خو ددې نه ډیر مخکښې انکاری اوم. اوظالمانودپاره دردناك عذاب دي . بیا فرمائي چه الله ﷻ شیطان ته او ددهٔ ملګرې انسان ته فرمائي چه خما مخکښې جنګ مه کوئي ځکه چه انسان به وائي چه یاالله ﷻ دهٔ خو څه ګمراه کړې او اګر چه ماته نصیحت راغلې وو ،اوشیطان به وائي چه ما دې نه دې ګمراه کړې . نو الله ﷻ به دوی ددې خبرو نه منع ګړی او ورته به اوفرمائي چه ما په تاسو خپل حجت ختم کړې دې؛ رسولانو په ذریعه دا ټولې خبرې تاسو ته آورولې شوي دی.تاسو ته مې کتابونه لیږلي وو،او تاسو مې په هره هره طریقه او هر هر رنګ پوهه کړې وې . واورئ چه کومه فیصله کول وي هغه ما کړې دهٔ . خما خبرې نه بدلیږي،څه ظالم نه یم چه دنورو په ګناهونو یو کس اوونیسم.هر سړی باندې اتمام حجت شوې دې. او هر سړې د خپلو ګناهونو پخپله ذمه دار دې .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | يَوْمَ | نَقُوْلُ |
| په کومه ورځ چې اووایو مونږ | | | | |
| په کومه ورځ | | | | |
| لِجَهَنَّمَ | هَلِ امْتَلَأْتِ | وَتَقُوْلُ | هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ۝ | وَأُزْلِفَتِ |
| دوزخ ته | آیا ډك شوې ته | او هغه به اووائي | آیا نور څه شته | او ورنزدې به کړې شي |
| چې به مونږ دوزخ ته اووایو | چې آیا ته ډک شوې ؟ | نو هغه به اووائي چې څه نور هم شته ؟ | او | |

(١) احمد : ٤٠/٣، ابن ابی شیبة: ١٦٠/١٣، مسند ابی یعلی : ١١٤٦، البعث والنشور للبیهقی : ٥٧٧، المعجم الاوسطی : ٣٩٩٣،

الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ۝ هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ

جنت | پرهيزګارانو ته | چې نه به وي لرې | دا هغه څيز دې | چې ستاسو سره به ني وعده كيدله

پرهيزګارانو ته به جنت رانزدې كړې شي | هغه به څه لرې نه وي | هم دا هغه (جنت) دې د كوم چې

لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ ۝ مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ

دپاره دهر رجوع كونكي | حفاظت كونكي | هغه څوك | چې اوېريدو | درحمن نه | بې دليدو دهغه نه

تاسو سره وعده كولې شوه | هر رجوع كونكي او (دحقوقو) حفاظت كونكي دپاره | چې بې ليدلو دالله

وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ ۝ اِۨدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ۝

او راغي | په زړه | رجوع كونكي سره | ننوزئ دې ته | په سلامتيا سره | دا ورځ دهميشوالي ده

نه ويريږي او رجوع كونكي زړه سره راشي | دې (جنت) ته په سلامتئ سره داخل شئ | دا دهميشه اوسيدو ورځ ده

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ۝

وي به دپاره دهغوئ | هغه | چې غواړئ ني هغوئ | په هغې كښې | او زمونږ سره | ددې نه هم زيات ډيرڅه دي

دوئ دپاره به هلته هر هغه څه وي | چې دوئ ني غواړي | ............ او مونږ سره نور هم ډيرڅه دي

**قوله تعالي:- يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ**

**دجهنم الله ﷻ سره هم كلام كيدل** :- چونكه الله ﷻ جهنم سره وعده كړيده چه هغه ذات به دا ډكوى نو په دې وجه به دقيامت په ورځ چه كوم انسانان اوجنات دده قابل وى نو دې كښې به اچولې شى. اوالله ﷻ به تپوس كوى چه اوس خو ډك شوې كه نه؟ نو دې به وائي كه څه نور ګناهګار باقي وى نو هغه هم ماته كښې راواچوئ. صحيح بخاري كښې ددې آيت مبارك تفسير كښې داحديث مبارك دې چه حضور نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيلو چه جهنم كښې به ګناهګار اچولې شى.اوهغه نور زيات طلب كوى تردې چه الله ﷻ به په ده خپل قدم مبارك كيږدى نو جهنم به اووائى چه بس بس. دمسند احمد په حديث مبارك كښې دى چه په هغه وخت كښې به دې ډك شى او وائى چه ائې الله ستاد عزت اوكرم قسم بس بس (١) اوپه جنت كښې به خائې بچ شى او الله ﷻ به يو نوې مخلوق پيدا كړى او دې خائې كښې به ني آباد كړى (٢).

**دجهنم او جنت خپلو كښې مكالمه** - صحيح بخاري كښې دى چه دجنت او دوزخ مينځ كښې يو ځل خبرې اترې اوشوې.جهنم اووئيل چه څه متكبر او جبار لره مقرر كړې شوې يم.جنت اووئيل چه خما دا حال دې چه ما كښې به كمزورى خلق او هغه خلق چه دنيا كښې به ورته دعزت په سترګه نشو كتلې هغوئ به داخليږي.نو الله ﷻ جنت ته اوفرمائيل چه ته خما رحمت ئې او په خپلو بندګانو چه په چا رحمت كوم نو هغوئ ته به دا رحمت وركوم.اوجهنم ته به اووائى چه ته خما عذاب ئې تاسره چه څه چاته عذاب وركول غواړم نو هغه ته به عذاب وركوم . خو تاسو دواړه به بالكل ډك شئ.نو جهنم به نه ډكيږى تر دې چه الله ﷻ خپل قدم مبارك په ده باندې كيږدى . نوبيا به اووائى چه بس بس . نو په هغه وخت كښې به دې ډك شى او دده ټول جوړونه به خپلو كښې ورشى . اوالله ﷻ په خپل مخلوق كښې په چا ظلم نه

---

(١) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة ق باب قوله ( وتقول هل من مزيد ) ٤٨٤٨.

(٢) احمد : ٣٣٤/٣، صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ( وهو العزيز الحكيم): ٧٣٨٤، صحيح مسلم: ٢٨٤٨، ترمذى: ٣٢٧٢، احمد: ١٣٤/٣.

کوی . خو چه په جنت کښې کوم ځائې باقي پاتې شي دهغې د ډکولو دپاره به الله ﷻ یو بل مخلوق پیدا کړی ([1]) دمسنداحمد یو حدیث مبارك کښې د جهنم قول دې چه ما کښې جبر کولووالا بادشاهان او شریف خلق داخلیږی الخ ([2]) مسند ابویعلی کښې دی چه حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمانی چه الله ﷻ به ما خپل ذات مبارك ته اورسوی او خه به په سجدې کښې پریوزم،او الله ﷻ به دې سره خوشحاله شي . بیا به خه دالله ﷻ داسې تعریفونه اوکړم چه دې سره به هغه خوشحاله شي . بیا به ماته دشفاعت کولو اجازت راکړې شي.او بیا خما امت د جهنم په پل تیریږی.بعضې خو به د نظر په شان تیر شی او بعضې د غشی په شان او بعضې به د تیز آسونو نه زیات تیز ، تر دې چه یو سړې به ګنټو مزل کوی او ددې نه به پورې اووخی . او دا به د اعمالو مطابق وی . او جهنم به نور طلب کړی تر دې چه الله ﷻ به په ده خپل قدم کیږدی . نودې به ډك شی او وانی به چه بس بس او خه به په حوض ولاړ یم.خلقو تپوس اوکړو چه حوض څه څیز دې؟نو حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دهغې اوبه د پئیو نه زیاتې سپینې او د شاتو نه زیاتې خوږې دی او دواورې نه زیاتې یخې دی او دمشکو نه زیاتې خوشبو دارې دی.پدې باندې د آسمان دستورونه زیات لوښی دی.او چه چا ددې اوبه اوڅکلې هغه به هیڅ کله نه تږې کیږی. اوچه څوك ددې نه محروم شونو هغه ته به اوبه نه ملاویږی چه خپله تنده پرې ماته کړی ([3]) .

د (هَلْ مِن مَّزِيدٍ) مطلب او دې کښې اقوال:-حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی چه هغه به اووانی چه آیا ما کښې څه کور شته دې چه ما کښې زیاتوالې اوشی؟ حضرت عکرمه ﷺ فرمانی چه هغه به اووانی چه آیا ما کښې دیو دراتلو هم ځائې شته دې؟ څه ډك شوم .حضرت مجاهد رحمة الله علیه فرمانی چه په دې کښې به جهنمیان اچولې شی. تردې چه دې به اووانی چه څه ډك شوم. او وانی به چه آیا ماکښې د زیاتې څه ګنجائش شته دې ؟ امام ابن جریر رحمة الله علیه رومبې قول اختیار کړې دې . ددې دویم قول مطلب دادې چه ددې بزرګانو په نیز به داسوال ددې نه پس وی چه الله ﷻ به خپل قدم په ده کیږدی . اوس چه کله هم دده نه تپوس اوشی نو دې به اووائی چه ماکښې هیڅ ځائې باقی نه دې پاتې شوې چه په دغې کښې څوك راشی.یعنی باقی نه دې ډك شوم. حضرت عوفی رحمة الله علیه حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت کوی چه دا به په هغه وخت کښې وی چه کله په ده کښې د ستنې هومره ځائې هم پاتې نشی . والله اعلم .

بیافرمانی چه جنت به نزدې وی یعنې د قیامت په ورځ چه لرې نه ده. خکه چه د یو څیز راتلل یقینی وی نو هغه لرې نه شی ګنړلې . د (أَوَّابٍ) معنی رجوع کولو والا ، توبه کولو والا ، ګناهونو نه پرهیز کولو والا د. ( حَفِيظٍ ) معنی ده د وعدو پابند.

(أَوَّابٍ) څوك دی؟ :-حضرت عبید بن عمر ﷺفرمانی چه( أَوَّابٍ حَفِيظٍ) هغه دې چه په یومجلس کښې ناستې نه پس پاسی تر کله پورې استغفار اونه وانی. او دوی رحما ن نه دې لیدلې خو ویریږی ترې.یعنې په تنهائی کښې هم دوی ته دالله ﷻ ویره وی.حدیث مبارك کښې دی چه هغه سړې به هم د قیامت په ورځ الله ﷻ دعرش دسیوری دلاندې وی چه کوم په تنهائی کښې دالله ﷻ نه ویریږی اود ده سترګو نه اوښکې لاړې شی ([4]) اود قیامت په ورځ الله ﷻ ته سلامت زړه سره مخامخ شي او دې الله ﷻ ته سجده کولو والا وی.دې ته یعنی جنت ته داخل شئ،تاسو ته به دالله ﷻ د ټولو عذابونو نه نجات

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة ق باب قوله ( وتقول هل من مزید) : ٤٨٥٠ صحیح مسلم: ٢٨٤٦.
[2]) احمد: ١٣/٣، وسنده حسن مجمع الزوائد : ١١٢/٧، المنتخب لعبد بن حمید : ٩٠٨، السنة لابن ابی عاصم : ٥٢٨، ابن حبان : ٧٤٥٤.
[3])الطبری :
[4])صحیح بخاری کتاب الاذان باب من جلس فی المسجد ینتظر الصلاة : ٦٦٠، صحیح مسلم: ١٠٣١، ابن حبان : ٤٤٨٦،

ملاؤ شی اودا مطلب هم دې چه فرښتې به په دوی سلام وائی. داد ﴿ الْخُلُودِ ﴾ ورځ ده یعنی جنت ته همیشه دپاره جاری ده . او دې خانې کښې به هیڅکله مرګ نه راځی.او ددې د بیدخله کولو ویره نشته دې. او دهغه ځائې نه د بدلې هیڅ ویره نشته دې.بیا فرمائی چه دوی هلته څه غواړی نو هغه به ورته ملاویږی. بلکه ددې بلکه ددې نه هم زیات.کثیر بن مروه رحمة الله علیه فرمائی چه نوردا هم دی چه هلته به جنت والو سره یو وریځ تیر ه شی او هغه به آواز کوی چه تاسو څه غواړئ ؟ تاسو چه څه غواړئ چه هغه راوروم . نو د وی چه د دکوم څیز خواهش کوی نو هغه راو وریږی . حضرت کثیر رحمة الله علیه فرمائی چه چرې څه دې مرتبې به اورسیدم او خما نه سوال اوشو نو څه به وا یم چه ښکلې خوش لباس پیغلې جینکئ راواووه. حضور نبی کریم ﷺ چه ستاسو زړه د دکوم مارغه د خوراك خواهش اوکړی نو هغه به په هغه وخت کښې موجوده اومومې دمسند احمد یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی که جنتی اولاد غواړی نو ساعت کښې به نې حمل اوشی او اولاد به نې هم ا وشی او بچې به خوان هم شی. امام حسن رحمة الله علیه نه یو غریب حدیث مبارك کښې دی ا و ترمذی کښې دا هم دی چه ددې زیاتئ نه مراد دالله ﷻ د څهرې مبارکې زیارت دې[1] اویو آیت مبارك کښې دی چه﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ﴾ صهیب بن سنان رومی رحمة الله علیه فرمائی چه ددې زیاتئ نه مراد دالله ﷻ د څهرې مبارك زیارت دې . حضرت انس بن مالك ﷺفرمائی چه دوی به هره جمعه د الله ﷻدیدار کوی .همدا مطلب دې د ﴿مزید﴾ مسندشافعی کښې دی چه حضرت جبریل علیه السلام یوسپینه آئینه راوړله اوحضور نبی کریم ﷺ ته راغلو او ددې په مینځ کښې یو نقطه وه . حضور نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو دا څه دی ؟ نو وې فرمائیل چه د جمعې ورځ ده. او دا خاص تاسو ته او ستاسو امت ته په طور د فضیلت درکړې شوې ده. ټول خلق په دېکښې تاسو پسې دی . یهودیان هم او نصرانیان هم . ستاسو دپاره به دې کښې ډیر خیروبرکت دې . په دې کښې یو داسې وخت دې چه په هغې کښې تاسو دالله ﷻ نه څه اوغواړئ نو هغه قبلیږی.او مونږ سره ددې نوم ﴿ یوم‌المزید ﴾ دې حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو دا څه دی ؟ نو وې فرمائیل چه ستا رب په جنت الفردس کښې یو فراخه مکان جوړ کړې دې چه په هغې کښې دمشکو غونډئ دی،د جمعې په ورځ چه الله ﷻ کومې کومې فرښتې غواړی نو دې کښې به نې داخل کړی . او ددې نه ګیر چاپیره د نور منبرونه دی. او په هغې کښې نبیان علیهم السلام ناست وی او شهداء او صدیقین به ددوی نه روستو وی. الله ﷻ به اوفرمائی چه تاسو سره خپله وعده پورا کړه. اوس چه خما نه څه غواړئ نو ا وغواړئ. او ماسره نور هم څه شته دې.نو دا ټول به اووائی چه مونږ ستا رضا او خوشحالی غواړو. اللهﷻ به اوفرمائی چه دا خومې تاسو ته درکړه . څه تاسو نه راضی یم.ددې نه سوا چه تاسو څه غواړئ نو تاسو ته به هغه ملاویږی او ماسره نور زیات هم شته دې.نودا خلق به دجمعې ورځې خواهش کوی.څکه چه دوی ته به ډیر نعمتونه ملاویږی. هم دا ورځ چه په دې ورځ به ستا سو رب په عرش باندې مستوی وی او هم په دې ورځ حضرت آدم علیه السلام پیدا شوې وو. او هم په دې ورځ به قیامت راځی. هم دا شان ددې ذکر حضرت امام شافعی رحمة الله علیه په کتاب الام کښې په کتاب الجمعه کښې کړې دې.امام ابن جریر رحمة الله علیه ددې آیت مبارك د تفسیر په موقعه باندې یو ډیر لونې اثر وارد کړې دې او په هغې کښې ډیرې غریبې خبرې هم دی.مسند احمد کښې دی چه حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه جنتی به اویا کاله هم یو طرفته متوجه ناست و ی. بیا به یو حوره راشی او دده په اوږه به لاس کیږدی او دې به خپل خان طرفته متوجه کړی او دا به دومره ښکلې وی چه دهغې په مخ کښې به دې خپل مخ داسې

[1] ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی ادنی اهل الجنة من الکرامة: ٢٥٦٣. وسنده حسن احمد : ٩/٣، دامی : ٣٣٧/٢، مسند ابـویعلی : ١٠٥١، ابن حبان : ٧٤٠٤.

اووینی چه ابداره ائینه کښې، دې چه به کوم کالی اغوستی وی په هغې به یویو موتی داسې وی چه دهغې پرق سره به ټوله دنیا روښانه شی.هغه به سلام کوی اودې به جواب ورکړی او وانی به چه ته څوك ئې ؟هغه به اووائی چه چاته قران پکښې مزیدونیلې شوی دی.په هغې به اویا حلې( پر دې )څو دهغې د ښائست اوپرق په وجه به دهغې پنډئی ښکاری.دهغې په سر به یوتاج وی او په هغې کښې به موتیان وی اویوادنی به داسې وی چه مشرق نه تر مغرب (دنیا) روښانه کولودپاره کافی دی( )

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ

او څومره ډیر هلاك کړی دی مونږه | مخکښې ددوئ نه | دقومونونه | چې هغوئ زیات سخت وو

اومونږ ددوئ نه وړاندې ډیرداسې قومونه تباه کړی دی،چې په (طاقت او)حمله کښې ددوئ نه زیات وو

مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ۝

ددوئ نه | په لحاظ دطاقت سره | پس اوګرزیدل هغوئ | په ملکونو کښې | ایا بیا ئې موندو خائې دپناه

اوهغوئ په ښارونو کښې(دترقئ په غرض) ګرځیدل| نو ایاهغوئ دپاره د خلاصی خائې وو ؟|

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ

بیشکه په دې تاریخ کښې | خامخا نصیحت دې | دپاره دهغه چا | چې وی | هغه لره | زړه

دهغوئ په تباهئ کښې دهغه چا دپاره لوئې عبرت دې | ..................چې د (روغ) زړه

اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ۝ وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ

یا کیږدی | غوږ | او هغه حاضروی (یعنی متوجه وی) | او پیدا کړی دی مونږه | اسمانونه

خاوند وی| یا په توجه سره خبرې ته غوږ نیسی | ......................او مونږ اسمانونه

وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّمَا مَسَّنَا

او زمکه | او هغه چې | په منځ ددې دواړو کښې دی | په شپږو ورځو کښې | اواونه رسیدو مونږ ته

اوزمکه اوددې دواړو په مینځ کښې چې څه دی په شپږو ورځو کښې پیدا کړی دی | او مونږ پرې

مِنْ لُّغُوْبٍ ۝ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ

څه ستړې والې | پس صبر کوه | په هغه خبرو چې | دا خلق ئې وائی | او تسبیح وایه |

هیڅ هم ستړی شوې نه یو| نو ددوئ په خبرو صبر کوه | ......................اود خپل

بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ۝

دحمد (ثنا) درب خپل سره | مخکښې د راختلو | دنمر نه | او مخکښې دپریوتلو دنمر نه

رب حمد او تسبیح وایه| دنمر راختلو نه وړاندې او دنمر ډوبیدو نه وړاندې

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ ۝

او دشپې دوخت نه | بیا تسبیح وایه دهغه | او روستو دسجدونه |

او په شپه کښې هم دهغه تسبیح وایه| او مونځونو نه پس هم|

قوله تعالی:- وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ

[1] احمد : ٧٥/٣،

**د آسمان او زمکه پیدا کول اود یهودو د نظریاتو تردید:-** ارشاد دې چه دا کافران څه څیز دی؟ ددوی نه زیات طاقت او قوت والا او اسبابو والا خلق مونږ تباه کړی دی. او هغوئ ښارونو کښې خپل یادګارونه پرېښودی دی. په زمکه کښې ئې ښه فساد کړې وو. اوږده اوږده سفرونه به ئې کول. کله چه ئې عذاب اوکتلو نودبچ کیدو ځانې تلاش کولو خودا کوشش بالکل بې سود وو. دالله ﷻ د قضا او قدرت او نیولو نه څوك بچ کیدې شی ؟ نو تاسو یاد ساتئ چه کله هم څما عذاب راغلو نو تاسو به حیران پاتې شئ. اوتاسو به لکه د بوسو پشان باد شئ. هر عقل مند دپاره دې کښې کافی عبرت دې. اوکه څوك داسې هم چه په ښه عقل سره دا خبرې واوری نو هغه هم دې کښې څه موندې شی . یعنی د زړه په حضور سره په غوږونو.

**قوله تعالى:-** وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ اَيَّامٍ

بیا الله ﷻ فرمائی چه هغه آسمانونه او زمکې او ددې مینځ کښې چه کوم څیزونه دی دانې په شپږو ورځو کښې پیدا کړل . اودې سره الله ﷻ ستړې نه شو. په دې کښې دمرګ نه پس ژوند باندې دالله ﷻ د قادرکیدو ثبوت دې چه هغه پاك ذات داسې لوئې مخلوق اول پیدا کړې دې نو هغه ته دمړو راپاڅول څه ګران دی ؟ حضرت قتاده رحمة الله علیه فرمائی چه ملعون یهودو به ونیل چه الله ﷻ شپږو ورځو کښې مخلوق پیدا کولو نه پس په اوم آسمان آرام اوکړو او دا د خالی ورځ وه. اوددې نوم دوی یوم الراحت اېښودې وو. نو ا لله ﷻ ددوی د غلط خیال تردید اوکړو مونږ هډو ستړی شوی نه وو دا آرام څنګه؟[1] لکه یو بل آیت مبارك کښې دی چه﴿وَلَمْ يَعْىَ بِخَلْقِهِنَّ﴾ یعنی آیا دوی او نه کتل چه الله تعالى هغه ذات دې چه هغه آسمان او زمکه پیدا کړه او ددې پیدا کولو سره ستړې نشو. نو هغه د مړو په راپاڅولو قادر نه دې څه ؟ ولې نه هغه پاك ذات خو په هر څیز قادر دې . او دې آیت مبارك کښې دی چه ﴿ لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ الخ،د ز مکې او آسمان پیدا نښ د خلقود پیدانښ نه ډیر زیات دی او یوآیت مبارك کښې دی چه ﴿ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ بَنٰهَا﴾ آیا ستاسو پیدانښ زیات مشکل دې که د آسمان . هغه الله ﷻ جوړ کړې دې .

**قوله تعالى:-** فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ

**نبی کریم ﷺ ته تسلی او د عبادت حکم:-** بیا فرمان دې چه دا دروغژن او انکارکونکی چه څه وانی نو دا صبر سره آورئی . اودوی ته مومهلت ورکړو. او د نمر راوختلو نه مخکښې او نمر ډوبیدو نه مخکښې د الله ﷻ تعریف کوئی . دمعراج نه مخکښې د مازیګر او سحر مونځ فرض وو. اود شپې تهجد په حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم په امت باندې تر یو کال پورې واجب وو. اوددې نه پس د حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم د امت نه ددې وجوب منسوخ شو. دې نه پس دمعراج په شپه پنځه مونځونه فرض شو. او په هغې کښې د سحر او مازیګر مونځونه هم هغه شان شو. نود نمر ختلو او ډوبیدو نه مراد دسحر او مازیګر مونځونه دی.مسند احمد کښې دی چه مونږ د حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت اقدس کښې ناست وو نو حضور نبی کریم ﷺ څوارلسمې شپې سپوږمۍ اولیده. اوبیا حضور نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه تاسو به خپل رب ته پیش کړې شئ او هغه به داشان اووینئ لکه څنګه چه دا سپوږمۍ وینئ . ا وددې په کتلو کښې څه رکاوټ نشته دې. که تاسو نه کیدیشی نوخبرداردنمر ختلو اونمر پریوتلو نه مخکښې مونځونونه مه غافله کیږئی . بیا ئې آیت مبارك اولوستو چه ﴿ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ

[1] الطبری : ۳۷٦/۲۲.

وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ﴾ [1] دا حديث مبارك بخاري اومسلم كښې هم دې.د شپې هم دغه پاك ذات تسبيح بيانوئ يعنى مونځ كوئ لكه فرمائى چه ﴿ وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ ﴾ يعنى د شپې د تهجدو مونځ كوئ . دا زياتوالي خاص ستا دپاره دې.تالره ستا رب مقام محمود كښې اودرولو والا دې. دسجدود روستونه مراد په قول د حضرت ابن عباس ﷺ مونځ نه پس دالله ﷻ پاكى بيانول دى [2] بخاري او مسلم كښې دى چه حضرت ابوهريره ﷺ نه مروى دى چه حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته مفلس مهاجر راغلل اوې ونيل چه يارسول الله ﷺ ا مالدارو خلقو اوچتې درجې اوهميشه جنتونه حاصل كړل . نو حضور نبى كريم ﷺ وفرمائيل چه دا څنګه ؟ نو دوى اوفرمائيل چه هغوئ هم خمونږ په شان روژې نيسى اوصدقه هم وركوى چه هغه مونږ نشو وركولې . هغوئ غلامان آزادوى او مونږ نشو كولې . نو حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه رازئ څه تاسو ته يو داسې عمل ا وښايم چه هغه تاسو كوئ نو تاسو به ډير مخكښې لاړشئ . اوستاسو نه به افضل هېڅوك نه وى . خو چه داسې عمل څوك كوى . تاسو دهر مونځ نه پس درې ديرش درې ديرش ځل﴿ سبحان الله الحمدلله الله اكبر ﴾ وائې. نودوى بيا راغلل او وې ونيل چه يارسول ا لله ﷺ ا خمونږ مالدارو رونړو هم دا حديث مبارك واوريدو ا وهغوئ هم دا عمل كوى . نو حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه بيا خو دا دالله ﷻ فضل دې چه چاته ئې غواړى نو وركوئى ئې [3] دويم قول دې چه ددې نه مراد دمابنام نه پس دوره ركعته دى. حضرت عمر فاروق ﷺ ، حضرت على ﷺ ، حضرت حسن ابن على ﷺ،حضرت ابن عباس ﷺ ، حضرت ابوهريره ﷺ ، حضرت ابوامامه ﷺ هم دا فرمائى . او هم دا قول د حضرت مجاهد رحمة الله عليه ، حضرت عكرمه رحمة الله عليه ، حضرت شعبى رحمة الله عليه ، حضرت نخعى رحمة الله عليه ، حضرت قتاده رحمة الله عليه وغيره دې . مسنداحمد كښې دى چه حضور نبى كريم ﷺ په هر فرض مونځونو نه پس دوه ركعته كول.سرادسحر اومازيګر نه.عبدالرحمان ﷺ فرمائى چه دهر مونځ نه پس [4] ابن ابى حاتم كښې د حضرت ابن عباس ﷺ نه مروى دى چه ما يو شپه حضرت نبى كريم ﷺ سره تيره كړه نو حضرت نبى كريم ﷺ دسحر د فرض نه مخكښې ده مختصر ركعته ادا كړل .بيا كور نه د مونځ دپاره اووتلو. او وې فرمائيل چه انې ابن عباس ﷺ د سحر نه مخكښې دوه ركعته﴿ إِدْبَارَ النُّجُومِ ﴾ دى. او دمابنام نه پس دوه ركعته ﴿ أَدْبَارَ السُّجُودِ ﴾ دى [5] دادهغه شپې ذكر دې چه په كومه شپه حضرت عبدالله ﷺ دتهجدو مونځ ديارلس ركعته د حضرت نبى كريم ﷺ په اقتداء كښې اداكړې وو. او په دې شپه د دوى د ترور حضرت ميمونه ﷺ نمبر وو. خودا چه كوم پورته بيان شو داحديث مبارك ترمذى شريف كښې هم دې . او امام ترمذى ﷺ دې ته غريب وائى . خو اصل حديث د تهجدو مسلم شريف كښې دې [6]. ممكن دى چه دړومبې كلام دحضرت ابن عباس ﷺ وى . والله اعلم .

| يَوْمَ | وَاسْتَمِعْ |
|---|---|
| په كومه ورځ | او واوره |
| او واوره ! په كومه ورځ............ | |

[1] احمد : ٣٦٥/٤، صحيح بخارى كتاب مواقيت الصلاة باب فضل صلاة العصر: : ٥٥٤، صحيح مسلم : ٦٣٣،
[2] الطبرى : ٣٨١/٢٢.
[3] صحيح بخارى كتاب الاذان باب الذكر بعدالصلاة : ٨٤٣، صحيح مسلم: كتاب المساجد باب استحباب الذكر بعد الصلاة: ٥٩٥.
[4] ابوداود كتاب التطوع باب من رخص فيهما اذا كانت الشمس مرتفعة: ١٢٧٥،
[5] ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة الطور : ٣٢٧٥،
[6] صحيح بخارى كتاب العمل فى الصلاة باب استعانة اليد فى الصلاة ....:١١٩٨، صحيح مسلم : ٧٦٣.

يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ۙ﴿۴۱﴾ يَّوْمَ يَسْمَعُوْنَ

چې به اواز کوی اواز کونکې | دځائې نزدې نه | په کومه ورځ | چې به واورې

چې اواز کونکې د نزدې نه آواز اوکړي | ..........په کومه ورځ چې به دوئ ټول دغه

الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوْجِ ﴿۴۲﴾ اِنَّا نَحْنُ نُحْيٖ

دا خلق چغه دحشر | په حقه سره | هغه به ورځ وی دراتلو دزمکې نه | بیشکه مونږه | ژوندی کول کوؤ

چغه په یقین سره واروی | هم دغه (دقبرونو نه) د راوتلو ورځ ده | بیشکه هم مونږ ټول ژوندی

وَنُمِيْتُ وَاِلَيْنَا الْمَصِيْرُ ۙ﴿۴۳﴾ يَوْمَ تَشَقَّقُ الْاَرْضُ عَنْهُمْ

او مړه کول کوؤ | او خاص مونږ ته | واپس راتلل دی | په هغه ورځ | چې اوچوی زمکه | ددوئ نه

کوو او مړهٔ کووا | اوهر څه به مونږ ته واپس راګرځی | په کومه ورځ چې به زمکه په دوئ باندې اوچوی

سِرَاعًا ؕ ذٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيْرٌ ﴿۴۴﴾ نَحْنُ اَعْلَمُ

او دوئ رازغلی په منډه منډه | دا راغونډول دخلقو | په مونږ باندې | اسان دی | مونږه ښه پوهیږو

اودوئ به په منډه راځی | دغه راغونډول مونږ ته ډیر اسان دی | مونږته ددوئ خبرې ډیرې

بِمَا يَقُوْلُوْنَ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ ۫ فَذَكِّرْ

په هغه خبرو | چې دوئ ئې وائی | اونهٔ ئې ته | په دوئ باندې | زور کونکې | پس نصیحت کوه |

ښه معلومې دی | اوته په دوئ باندې څه جابر (حاکم) خو مقرر نه یئ | نو ددې قران په ذریعه

بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ ﴿۴۵﴾

په قران سره | هغه چاته | چې یریږی | دخبردارئ زما نه |

هغه چاته نصیحت کوه | چې زما د عذاب نه ویریږی

**قوله تعالى:- وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ۙ﴿۴۱﴾**

**دالله ﷻ یو حکم سره به قیامت راشی :-** حضرت کعب احبار رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ به یو فرشتې ته حکم اوکړی چه دبیت المقدس په کانړی اودریږه او آواز اوکړه چه ائې رستو او زړو هډوکو! او ائې د بدن منفرقو حصو! الله ﷻ تاسرته د جمع کولو حکم درکوی چه ستاسو په مینځ کښې فیصله اوکړی.نو ددې نه مراد صور دې.دا حق به دا شك او شبه او اختلاف به ختم کړی چه کوم ددې نه مخکښې وو ، دا د قبرونو نه د راپاسیدو ورځ ده . په شروع کښې پیدا کول ، بیا واپس کول او بیا ټول مخلوق یو ځائې کښې راجمع کول زمونږ د وس خبره ده . مونږ به هر چاته به هغه وخت کښې دهغه د عملونو بدله ورکړو. هر چاته به دخپلو ښو او بدو بدله ملاؤ شی [1] زمکه به اوشلیږی او ټول به زر زر پاسی. الله ﷻ به دآسمان نه باران اوروی او دې سره به د مخلوقاتو بدنونه راټوکیږی . لکه څنګه چه په ختمو پرته دانه باران سره رازرغونیږی.هر کله بدنونه ښه پورا شی نو الله ﷻ به حضرت اسرافیل علیه السلام ته د صور پوك وهلو حکم اوکړی . دهغوئ صور وهلو سره به د آسمان او زمکې تر مینځه روحونه به حرکت کښې شی.په هغه وخت کښې به الله ﷻ اوفرمائي چه ځما په عزت او جلال دې قسم وی ، هر روح خپل خپل بدن ته لاړشی. لکه څنګه چه ئې په دنیا کښې آباد کړی وو. هر یو روح به خپل خپل جسم ته

[1] صحیح بخاری کتاب الفضائل : باب تفضیل نبینا ﷺ علی جمیع الخلائق : ۲۲۷۸.

لاړشي . لکه څنګه چه دیو زهریله ځناور ( دزهرو) اثر زر دچا رګ رګ ته رسی نو داشان به بدنونو ته روحونه زر زر اورسی.او ټول مخلوق به دالله ﷻ په حکم سره په منډومنډو میدان دحشر ته اورسی اودا وخت به په کافرو ډیرسخت وی . دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ یعنی چه په کومه ورځ هغه تاسو ته آواز اوکړی نو تاسو تعریفونو سره جواب ورکوئی او ګمان به کوی چه تاسو ډیر کم پاتې شوئی په دنیا کښې یعنی ډیر لږ وخت مو تیر کړې.

قوله تعالى:- يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا

قیامت کښې به ټولولو نه اول دنبی کریم ﷺ قبر مبارک شلیږی:- صحیح مسلم کښې دحضرت نبی کریم ﷺ ارشاد دې چه ټولو نه مخکښې به ځما د قبر زمکه اوشلیږی.فرمانی چه دا دوباره راپاسیدل به مونږ ډیرآسان دی اوبالکل آسان دی.لکه څنګه چه الله ﷻ فرمانی چه﴿ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ﴾ (ترجمه) " زمونږ حکم به داشان په یوځانې اوشی لکه د سترګو رپ. اویو آیت مبارك کښې دی چه ﴿مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ ۗ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ الخ.یعنی ستاسو دټولو پیدا کول او بیا د وژلو نه پس راپاڅول داسې دی لکه چه یو سړې دالله ﷻ آوریدو والا او کتلو والا دې .

بیا دالله ﷻ ارشاد دې چه اې نبیﷺ! دوی چه څه هم وائی نو زمونږ دعلم نه بهر نه دی . تاسو دوی اهمیت مه ورکوئی مونږ به دوی سره پوهیږو. لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ﴾ الخ یعنی واقعی مونږ ته معلوم دی چه دا خلق کومې خبرې جوړوی اوددې نه تاسو تنګ یئ نو ددې علاج دادې چه تاسو دخپل پروردګار تعریف او صفت بیانوئی. او مونځ ګزارو کښې اوسه او تر مرګه پورې د خپل رب عبادت کښې اوسه .

بیا فرمانی چه ته دوی هدایت طرفته جبر سره نه شې راوستې. نه مونږ تاته ددې تکلیف درکړې دې. ددې دا معنی هم ده چه په دوی جبر مه کوه ، بلکه رومبې قول اولی دې. بلکه الفاظو کښې دا نشته دې چه تاسو په دوی جبر مه کوئی بلکه دادی چه تاسو په دوی جبار نه یئ یعنی تاسو مبلغ یئ . تبلیغ کولو نه سره خپل فرض پورا کړئی. ﴿ جبر ﴾ه معنی د﴿ اجبر ﴾ کښې راځی.تاسو نصیحت کوئی چه دچا په زړه کښې دالله ﷻ ویره وی او دهغه لوئې ذات د عذاب نه ویریږی اودهغه د رحمتونو امیدوار دې نو هغه به ضرور ددې تبلیغ نه فائده اوچتوی. او په نیغه لار به راشی . لکه فرمانی چه ﴿فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ﴾ یعنی په تاسو صرف رسول دی او دحساب اخستلو ذمه زمونږ ده. او یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ﴾ ته صرف نصیحت کولو والا نې په دی داروغه نه نې.اوبل ځائې کښې دی چه تاباندې ددوی هدایت نشته دې بلکه الله ﷻ چه چاته غواړی هدایت ورکوی . او یو ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾ یعنی ته چه چاته غواړې نه هدایت نشې ورکولې بلکه الله ﷻ چه چاته غواړی نو هدایت ورکوی.هم دامضمون نې دلته هم بیان کړې دې. حضرت قتاده رضي الله عنه به ددې آیت مبارك آورریدوسره دا دعا کوله چه ﴿ اللهم جعلنا ممن يخاف وعيدك ويرجوك موعدك يا بار يا رحيم ﴾

(ترجمه ) اې الله ﷻ ! ته مونږ دهغوی نه کړې چه هغوئ ستا دسزا نه ویریږی اوستاسو د نعمتونو په امید کښې دی ، انې ډیر زیات احسان کولو والا او انې ډیر زیات رحم کوونکیه. دسورة ق تفسیر ختم شی . ﴿ والحمد لله وحده وحسبنا الله ونعم الوكيل ﴾ .

| آياتونه | | سورة الذاريات مكية وهي ستون اية وثلاث ركوعات | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۶۰ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۱ |

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرۡوًا ۝۱ فَالۡحٰمِلٰتِ وِقۡرًا ۝۲

قسم دې په دوړو اوچتونكو هوا ګانو باندې| په اوچتولوسره| بيا پورته كونكې | دوريځو ډكې داوبو نه

په دوړو اوچتونكو سيلو باندې قسم دې | بيا په باراوچتوونكو وريځو باندې قسم دې

فَالۡجٰرِيٰتِ يُسۡرًا ۝۳ فَالۡمُقَسِّمٰتِ اَمۡرًا ۝۴ اِنَّمَا تُوۡعَدُوۡنَ

بيا چليدونكې په مزه مزه | بيا تقسيمونكې دلوئ كار | بيشكه هغه څيز | چې تاسو تر يرولې كيږئ

بيا په آزاد چليدونكو بيړو |بيا د څيزونو په تقسيموونكو فرښتو| چې تاسو سره كوم لوظ كيږي

لَصَادِقٌ ۝۵ وَّاِنَّ الدِّيۡنَ لَوَاقِعٌ ۝۶ وَالسَّمَآءِ

هغه رښتيا دې | او بيشكه بدلې دعملونو | خامخا واقع كيدونكې دى | قسم دې په آسمان

هغه بالكل رښتيادې | اوبيشكه دا سزا او جزا راتلونكې ده|او په آسمان باندې قسم دې | چې

ذَاتِ الۡحُبُكِ ۝۷ اِنَّكُمۡ لَفِىۡ قَوۡلٍ مُّخۡتَلِفٍ ۝۸ يُّؤۡفَكُ

مختلفو شكلونو والا باندې | چې بيشكه تاسو | په خبرو مختلفو كښې يئ | اړولې كيدې شى

لارې په كښې جوړې دى | چې تاسو داختلافى خبرو په چكر كښې پريوتى يئ | ددې حقيقت

عَنۡهُ مَنۡ اُفِكَ ۝۹ قُتِلَ الۡخَرّٰصُوۡنَ ۝۱۰ الَّذِيۡنَ هُمۡ

دهغې نه | هغه څوك | چې اړولې شوې دې | تباه شو قياس لګونكى خلق | هغه خلق | چې هغوئ

نه هم هغه مخ اړوى چې(دازل نه) محروم ساتلې شوې دې | هلاک دې شى بې دليله خبرې كونكى چې

فِىۡ غَمۡرَةٍ سَاهُوۡنَ ۝۱۱ يَسۡئَلُوۡنَ اَيَّانَ يَوۡمُ الدِّيۡنِ ۝۱۲

په غفلت كښې | بې خبره دى | تپوس كوى هغوئ | چې كله به وى | ورځ دبدلې |

(دجهالت)په غفلت كښې پراته دى| هر څه ترې هير دى | دا تپوس كوى چې د بدلې ورځ به كله وى

يَوۡمَ هُمۡ عَلَى النَّارِ يُفۡتَنُوۡنَ ۝۱۳ ذُوۡقُوۡا فِتۡنَتَكُمۡ

په هغه ورځ به وى | چې دوئ به | په وور باندې | سوزولې كيږى | اوڅكئ مزه | دفتنې خپلې

دا به هغه ورځ وى | چې دوئ به په اور باندې سوزولې شى| (چې اوس) د خپلې سزا خوندواخلئ

هٰذَا الَّذِىۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ ۝۱۴

دا هغه څيز دې | چې وئ تاسو | په هغې سره | چې تلوار به مو كوله |

همدا دې هغه(عذاب) دكوم راتلو ته چې ستاسو تلوار ده |

قوله تعالى:- وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا
دسورة ذاريات د ابتدائي آيتونو ښائسته تشريح :- خليفة المسلمين حضرت علي رضي الله عنه يو ځل كوفه كښې په منبر اوفرمائيل چه دقرآن پاك د كوم آيت مبارك باره كښې تاسو سوال كول غواړئ نو اوكړئ . په دې كښې حضرت ابن الكواء واوريدو او وې فرمائيل چه د ذاريات څه معنى ده ؟ نو وې فرمائيل چه هوا ، تپوس ئې اوكړو چه حاملات نه څه مراد دې جواب ئې وركړو چه ابريعنى وريځې، وې فرمائيل جاريات نه؟ وې فرمائيل كشتئ، وې فرمائيل مقسمات نه ؟ نو وې فرمائيل چه فرښتې (١) دې باره كښې يو مرفوع حديث مبارك راغلي دې . بزاز كښې دي چه صبيغ تميمي امير المومنين حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته راغلو او ورته ئې اوونيل چه اووايه د ذاريات نه څه مراد دې؟ وې فرمائيل هوا. اوكه ما د حضرت نبى كريم ﷺ نه وې آوريدلې نو مابه هيڅرې دا نه وې وئيلې.تپوس ئې اوكړو چه مقسمات ؟ نووې فرمائيل چه فرښتې . اودا هم ما درسول الله ﷺ نه آوريدلى دى . تپوس ئې اوكړو چه د جاريات نه څه مطلب دې ؟ نو وې فرمائيل چه كشتئ . او دا هم ما درسول الله ﷺ نه آوريدلى دى . بيا حكم اوشو دې سل كوړې اووهئ . نو دې ئې سل كوړې اووهلو. او يو مكان كښې ئې بند كړو. او چه كله دده زخمونه صحيح شو نو بيائې سل كوړې اووهلو او په سورلئ ئې حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه ته واستولو او ورته ئې اوفرمائيل چه دې به په هيڅ مجلس كښې نه كينى . څو ورځې پس دې بيا حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه ته راغلو او ډير سخت تاكيدى قسم خوړلو نه پس ئې ورته اوونيل چه په الله قسم خما خيالات بالكل اصلاح والا جوړ شو. اوس خما زړه كښې هغه بد عقائد پاتې نشو چه كوم مخكښې وو. نو حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه د حضرت امير المومنين عمرفاروق رضي الله عنه خدمت كښې دا اطلاع اوليږله. او دې سره ئې ورته دا هم اوليكل چه خما خيال دې چه هغه اوس بالكل صحيح شوې دې.نوددې جواب كښې دربار خلافت نه پيغام وركړې شو چه بيا دې ده ته په مجلس كښې دناستې اجازت وركړې شى. امام ابو بكر بزار رحمه الله فرمائي چه ددې په دوؤ راويانو كښې كلام دې. نو داحديث مبارك ضعيف دې. امير المومنين رضي الله عنه چه ده ته كومه سزا وركړې وې هغوئ ته دده د غلطې عقيدې خبر وركړې شوې وو.اودهغه دا سوالات په طور د انكار او مخالفت وو. والله اعلم.دصبيغ دپلار نوم اعسل وو. اود هغه دا واقعه مشهوره ده كومه چه حافظ ابن عساكر رحمه الله ليكلې ده . همدا تفسير د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت ابن عمر رضي الله عنه ، حضرت مجاهد رحمه الله ، حضرت سعيد بن جبير رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله ، حضرت قتاده رحمه الله ، حضرت سدى رحمه الله وغيره نه مروى د ې. امام ابن جرير رحمه الله او امام ابن ابى حاتم رحمه الله خو ددې آيتونو باره كښې هيڅ تفسير نه دې وارد كړې. د حاملات نه مراد دابر محاوره ددې شعر نه هم معلوميږى ( واسلمت نفسى لمن اسلمت له المزن تحمل عذبًا زلالا ) يعنى خپل خان دهغه رب تابع كوم چه دكوم رب وريځې هم تابع دى چه صفا او خوږې اوبه راوروى. د ( جاريات ) نه مراد بعضو ستورى اخستې دې چه په آسمان كښې ګردش كوى . ددې معنى اخستلو كښې به د ادنى نه اعلى طرفته به ترقى وى . اول هوا بيا وريځ بيا ستورى بيا فرښتې چه كله دالله جل جلاله حكم راوړلى. او كله چه دوى ته يو كار اوسپارلې شى نو هغې دپاره تشريف راوړى . چونكه دا ټولو قسمونه په دې خبره دې چه قيامت به ضرور راځى. او خلق به دوباره ژوندى كولې شى . پدې وجه ددې نه پس فرمائى چه تاسو سره كومه وعده كړې شوې ده هغه رينښتونې ده . او حساب كتاب او جزاء او سزا به ضرور واقع كيږى.بيا دآسمان قسم خورى چه ښكلې او رونق والا اوحسن والا او برابرى والا دې. ډيرو سلفو د ( حبك ) هم معنى دا بيان كړې ده(٢) .

(١) الطبرى : ٣٨٩/٢٢.
(٢) الطبرى : ٣٩٥/٢٢.

حضرت ضحاك رحمه الله وغیره فرمائی چه داوبو چپې او شګې ذرې او د پټو پانړې چه کله د هوا سره خوزي او داسې لهر په کښې پیدا شي چه ګویا په دې کښې لارې جوړې شوې . دې ته حبك وائی. د ابن جریر رحمه الله یو حدیث مبارك کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه تاسو پسې کذاب درپسې شوې دې اود هغه دسر ویښته روستو نه حبك حبك دی یعني ګولګوتې دی . ابو صالح رحمه الله فرمائی چه حبك نه مراد شدت والا دې. خصیب فرمائی چه دې نه مرد خوش منظر دې . حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه ددې ښائست ددې ستوری دی. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائی چه ددې نه مراد اوؤ آسمانونه دی.ممکن دی چه ددوی مطلب داوی چه پدې آسمان کښې قائم ستوری هم شته دې.د هئیت داکثرو عالمانو خیال دې چه دا په اتم آسمان کښې موجود دې چه اوم آسمان دپاسه دې.والله اعلم.

ددې ټولو اقوالو ماحصل یو دی یعنی ښائست (حسن ) او رونق اود آسمان اوچت والی،ددې صفائی، ددې د جوړښت ښائست،ددې مضبوطی ، ددې لندوالی،ددې اوږدوالی، اوددې د ستورو پرقیدل،اوپه دې (ستورو ) کښې بعضې حرکت کوونکی دی او بعضې په ځائې ولاړ دی. ددې نمر او ددې سپوږمئ او ددې ستورو سره ښائست داټول د ښائست او خوب صورتئي څیزونه دی .

د **﴿قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ نه څه مراد دی؟**:-بیا فرمائی چه انې مشرکانو تاسو په خپلواقوالو کښې مضطرب یئ او تاسو لا تر اوسه پورې صحیح نتیجې ته نه ئې رسیدلی،او په هیڅ رائې باندې ستاسو اجتماع نه ده شوې . حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه پۀ دوی کښې به بعضو قرآن پاك ربنیا ګڼړلو ، اوبعضو به ددې تکذیب کولو. بیا فرمائی چه دا حالت دهغه چا وی چه څوك ګمراه وی . هغوئ داسې باطلو اقولو په وجه بې لارې شوی وی ، صحیح پوهه او ربښتونې علم دده فوت شی لکه یوآیت مبارك کښې فرمان دې چه ﴿فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ۝ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ۝﴾ یعنی تاسو سره د باطلو معبودانو او جهنمي کیدو سره نورو خلقو له نه شئ دهوکه کولئ؛ ز حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه پدې هغه څوك ګمراه کیږی چه څوك په خپله خونیدلی وی .

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه دې نه لرې هغه څوك وی دنیکو نه لرې کړې شوې وی. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه د قرآن پاك نه هغه څوك لرې کیږی چه ددې مخالفت ته ملا اوتړی. بیا فرمائی چه بې سنده خبرې کولو والا دې هلاك شي یعنی د دروغ خبرو جوړولووالا چه هغوئ ته هډو یقین نه وو او دا به نې ونیل چه مونږ به نه شو اوچتولې دوباره.[1] حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه یعنی شك کولو والا ملعون دی. حضرت معاذ رضي الله عنه به هم خپلو خطبو کښې هم دا فرمائیل، دا دهوکې والا او بدګمانه خلق دی . بیا فرمائی چه خلق خپل کفر او شك کښې بې پرواه دی . دا خلق د انکار په طور تپوس کوی چه دجزا ورځ به کله راځي ؟ الله ﷻ فرمائی چه الله رب ا لعزت فرمائی چه په هغه ورځ به دا خلق اور کښې سوزولې شي لکه څنګه چه په اور کښې سره زر (سونا) سیزلې کیږی . دوی به په کښې سوزی او دوی ته به ونیلې کیږی چه د سوزیدو مزه اوڅکئ . او دا دخپلو کړو په بدله کښې برداشت کړنی . بیا به دوی دحقارت اودوی ته دغصې په وجه اوونیلې شي چه دا هغه عذاب دې چه د کوم تاسو ډیره تیزی کوله چه کله به رازی . والله اعلم.

| |
|---|
| إِنَّ الْمُتَّقِينَ |
| ا بیشکه پرهیزګاران خلق به |
| بیشکه پرهیزګار خلق |

[1]) الطبری: ٣٩٩/٢٢.

فِیْ جَنّٰتٍ | وَّعُیُوْنٍ | اٰخِذِیْنَ | مَآ اٰتٰهُمْ

په باغونو کښې وی | او په چینو کښې به وی | اخستونکې به وی | هغه چې ورکوی هغوئ له

به په باغونو او چینو کښې وی | ...........څه چې ددوئ رب دوئ ته ورکوی | هغه به اخلی

رَبُّهُمْ ؕ | اِنَّهُمْ | کَانُوْا | قَبْلَ ذٰلِكَ | مُحْسِنِیْنَ ؕ | کَانُوْا

رب دهغوئ | بیشکه هغوئ | وو | مخکښې ددې نه | نیکی کونکی | وو به هغوئ |

.. ......بیشکه داخلق د دې نه وړاندې نیکی کونکی وو |.................. دوئ به

قَلِیْلًا مِّنَ الَّیْلِ | مَا یَهْجَعُوْنَ | وَبِالْاَسْحَارِ

ډیر لږ دشپې نه | هغه حصه چې اوده کیدل به پکښې هغوئ | او دشپې په روستو وختونو کښې

دشپې ډیر کم اوده کیدل | اودسحر په وخت کښې به ئې

هُمْ | یَسْتَغْفِرُوْنَ | وَفِیْٓ اَمْوَالِهِمْ | حَقٌّ | لِّلسَّآئِلِ

به هغوئ | معافیانې غوښتلې | او په مالونو دهغوئ کښې | حق وو | دپاره دسوالگرو

(دخپل رب نه) ښښنه غوښتله | ...........اود هغوئ په مالونو کښې دسوالگرو اودنه غوښتونکو

وَالْمَحْرُوْمِ | وَفِی الْاَرْضِ | اٰیٰتٌ | لِّلْمُوْقِنِیْنَ

او دمحرومانو | او په زمکه کښې | ډیرې نښې دی | دپاره دیقین کونکو |

(غریبانانو) برخه مقرره | اوپه دې زمکه کښې دیقین کونکو دپاره ډیر نښې موجود دی

وَفِیْٓ اَنْفُسِکُمْ ؕ | اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ | وَفِی السَّمَآءِ

او په نفسونو ستاسو کښې هم نښې دی | آیا پس نه وینئ تاسو | او په آسمان کښې دی |

اوستاسو په خپلو ځانونو کښې هم | نو آیاتاسود عبرت په نظرنه گورئ | او پورته په آسمان

رِزْقُکُمْ | وَمَا تُوْعَدُوْنَ | فَوَرَبِّ السَّمَآءِ

رزق ستاسو | او هغه څیز چې وعده ئې کیږی ستاسو سره | نو قسم دې په رب دآسمانونو |

کښې ستاسو روزی ده | او هغه هم چې تاسو سره ئې وعده کولې شی |.............نو د آسمان او

وَالْاَرْضِ | اِنَّهٗ لَحَقٌّ | مِّثْلَ | مَآ اَنَّکُمْ | تَنْطِقُوْنَ

او دزمکې | چې بیشکه دا خبره حقه ده | په مثال دهغې | لکه څنگه چې تاسو | خبرې کوئ |

زمکې په رب مې دې قسم وی | چې څنگه ستاسو وینا برحق ده | دغه شان (دجزاد ورځې راتلل) هم حق دی

**قوله تعالیٰ:- اِنَّ الْمُتَّقِیْنَ فِیْ جَنّٰتٍ وَّعُیُوْنٍ**

**د قیام اللیل او دپشمنی فضیلت** :- دپر هیزگارو او خداترس خلقو بیان کیږی چه به د قیامت په ورځ به جنتونو او نهرونوکښې وی پخلاف دهغه بدکرداره خلقو چه په عذاب او سزا او طوقونو او زنځیرونو کښې به وی. دالله ﷻ چه کوم فرائض دو ی ته راغلی وو په هغې دوی عامل وو. اوددې نه مخکښې هم دوی اخلاص والا وو. خو په دې تفسیر کښې لږ تامل دې په دوو وجو سره . اول داچه ددې تفسیر باره کښې ونیلې کیږی چه دا دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دې خو ددې سند حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته نه رسی.ددوی دا سند ډیر زیات ضعیف دې. دویم داچه د ﴿ اخذین ﴾لفظ مخکښې سره دې.نو مطلب دا

شو چه متقیان خلق به دالله ﷻ ورکړې شوی نعمتونه حاصلوی . اودې نه مخکښې دوی د نیکئ کارونه کول یعنی په دنیا لکه څنګه چه الله ﷻ ددې آیتونو کښې فرمائیلی دی چه ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ﴾ یعنی تاسوچه دار دنیا کښې کومې نیکئ کړې وې دهغې بدله کښې تاسو دلته شوق سره خورنی څکئ . بیا الله ﷻ دهغوئ د عمل اخلاص اوددوی احسان تفصیل سره بیانوی دوی به دشپې ډیر کم اوده کیدل. بعضې مفسرین وائی چه دلته (مَا) ﴿ نافیه﴾ ده نو په قول د حضرت ابن عباس رضي الله عنه وغیره به دا مطلب وی چه په دوی هیڅ داسې شپه نه وه تیره شوې چه په هغې کښې دوی الله ﷻ نه وی یاد کړې (۱) که په اوله حصه کښې نې څه نوافل کړی وی او یا په نیمه شپه کښې یعنی څه نه څه وخت کښې به دوی خامخا مونځ کولو. ټوله شپه به نه وو اوده . حضرت ابوالعالیه رحمه الله وغیره فرمائی چه دې خلقو به د ماښام اوماسختن ترمینځه څه مونځ کولو. امام ابوجعفر باقر رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد دادې چه دوی به دماسختن مونځ نه مخکښې نه اوده کیدل.بعضې مفسرینو قول دې چه (مَا) دلته موصوله دی. یعنې ددوئ خوب دشپې کم وو. څه وخت به ویخ وو او که زړه به نې اولګیدو نو ترسحر پورې به وو. او په آخری شپه کښې به نې دالله ﷻ نه مغفرت غوښتلو او سوالونه به نې کول (۲) حضرت احنف بن قیس رحمه الله ددې آیت مبارک مطلب بیانولو نه پس فرمائی چه افسوس ما کښې دا خبره نشته دې. ددوی د شاګرد خواجه حسن بصری رحمه الله قول دې چه د جنتیانو کوم اعمال او صفات بیان شوی دی، کله چه دخپلو اعمالو اوصفاتو مقابله کښې هغې ته ګورم نو ډیره فاصله په کښې مومم . خو الحمدالله ددوزخیانو د عملونو باره کښې خپل اعمال زیات بنه مومم او ګورم چه دا خلق بالکل د خیر نه خالی وو. هغوئ دکتاب الله نه منکر ،درسول الله ﷺ نه منکر ،دمرګ نه دپس ژوند نه منکر. نو زمونږ حالت هم هغه دې چه کوم الله ﷻ ددې قسمه خلقو بیان کړې دې ﴿خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا﴾ (۳) یعنی نیکئ او بدئ یوځائی . حضرت زید بن اسلم رحمه الله ته د قبیله بنو تمیم یو سړی اووئیل چه انې ابو سلمه ! مونږ کښې خو دا صفت ډیر کم دې چه دشپې ډیر کم څملو. مونږ خو دالله ﷻ یاد کښې ډیر کم وخت تیروؤ. نو دوی رحمه الله اوفرمائیل چه هغه سړې هم ډیر زیات خوش نصیب دې چه کله ورته خوب راشی نو دې اوده شی او کله چه پاسې نو ورته الله ﷻ یاد وی اوویریږی ترې . حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه فرمائی چه کله شروع شروع کښې حضرت نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو نو خلق ددوی زیارت دپاره راتلل . او زه هم دې خلقو کښې شامل اوم .په الله قسم چه کله هم ما د حضرت نبی کریم ﷺ نورانی څهره اولیده نو ما یقین اوکړو چه دومره نوارنی څهره دیو دروژغژن کس نشی کیدې . د ټولو نه رومبی خبره چه حضرت نبی کریم ﷺ خما غوږ کښې کړې وه هغه دا وه چه انې خلقو! په خلقو خوراك خورئی،او صله رحمی کوئی. ا و سلام کوئی او دشپې چه کله خلق ملاست وی نو تاسو مونځ اداکوئی نو تاسو به سلامتیا سره جنت ته داخل شئ .(۴)

**دتهجد کوونکو جنت**:-مسند احمد کښې دی چه په جنت کښې داسې بالاخانې دی چه د هغې دننه حصه د بهر نه او بهر حصه د دننه نه په نظر راځی . ددې آوریدو سره حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! دا دچا دپاره دی ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغه چا دپاره کلام نرم کوی او خلقو ته خوراك ورکوی او کله چه اوده وی نو دوی مونځ کوی (۵). حضرت زهری رحمه الله او

---

(۱) الطبری : ۲۲/۴۰۷.
(۲) الطبری : ۲۲/۴۰۸.
(۳) الطبری : ۲۲/۴۰۹.
(۴) ترمذی کتاب صفة القیامة باب حدیث : افشو السلام : ۲٤۸۵. وسنده صحیح ابن ماجة: ۳۲۵۱، حاکم: ۳/۱۳.
(۵) احمد : ۲/۱۷۳. وهو حدیث حسن حاکم : ۱/۳۲۱، وسنده حسن مجمع الزوائد : ۲/۲۵٤.

حضرت حسن رحمه الله فرمائي چه ددې ايت مطلب دادې چه دوی د شپې څه حصه تهجدو کښې تيروي. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چه ددې مطلب دادې چه د شپې دوی کم خملي. حضرت ضحاك رحمه الله ﴿ كَانُوْا قَلِيْلًا ﴾ ددې نه مخکښې جملې سره يو ځائې کوی او ﴿ مِّنَ الَّيْلِ ﴾ نه ابتداء بنائي. خو دې قول کښې ډير زيات لرې والئ او تکلف دې.

بيا الله ﷻ ارشاد فرمائي چه دسحر په وخت کښې دوی استغفار کوی. حضرت مجاهد رحمه الله وغيره فرمائي چه دوی مونځ کوی او مفسرين فرمائي چه دشپې قيام کوی او چه کله سحر شی نو د خپلو ګناهونو معافي غواړی. لکه چه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ اَلصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴾ يعني دسحر په وخت کښې دا خلق استغفار کوی. که استغفار په مونځ کښې وی نو دا ډير بهتر دی. صحاح سته وغيره کښې د صحابه کرام رضي الله عنهم يو ډلې نه ډيرو روايتونو سره ثابت دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کله د شپې آخری حصه باقي پاتې شی نو په هغه وخت کښې الله ﷻ هره شپه آسمان ددنيا ته راکوز شي او فرمائي چه څوك ګناهګار شته دې چه توبه اوکړي او زه د هغه توبه قبوله کړم. څوك استغفار کولو والا شته دې چه استغفار اوکړي او زه دهغه استغفار قبول کړم. اوڅوك غوښتنې والا شته دې چه اوغواړي او زه ورته ورکړم. تر سحر راختو پورې هم دا فرمائي ([1]) داکثر مفسرين فرمائي چه حضرت يعقوب عليه السلام به خپلو بچو ته دا فرمائيل چه ﴿ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ﴾ زه به اوس ستاسو دپاره استغفار اوکړم، نو هغوئ استغفار ترد سحر وخت پورې ملتوی کړې وو بيا دهغوئ دا وصف بيانيږی چه څرنګه دا مونځګزار دی او دالله ﷻ حق ادا کوی او دنور خلقو حق هم نه هيروی. زکوة ورکوی او ښه سلوك کوی او احسان کوی او صله رحمي کوی. ددوی مال کښې يو حصه مقرر ده د غوښتونکو د پاره او دحقدارو دپاره چه سوال نه بچ کيږی. ابوداود وغيره کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ فرمائي چه د سائل حق دې اګر چه هغه په آس سور وی ([2]) ﴿ محروم ﴾ هغه دې چه دهغه څه حصه بيت المال کښې نه وی. اوده څه کار وغيره نه وی. او نه دده څه تجارت او کاروبار وی چه هغې سره روزی حاصله کړی. ام المومنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چه ددې نه مراد هغه خلق دی چه کوم دهغوئ دګټې وټې څه کار روان وی خو دومره نه وی چه دوی دپاره کافي وی. حضرت ضحاك رحمه الله فرمائي چه هغه سړې چه مالدار وو او دده سره اوس څه مال نه وی پاتې. په يمامه کښې چه کله د اوبوطغياني راغله او ديو سړی ټول مال او اسباب تباه شو نو يو صحابی رضي الله عنه اوفرمائيل چه دا محروم دې. اوبزرګ مفسرين وائي چه دمحروم نه مراد هغه سړې دې چه د حاجت نه باوجود د چا نه سوال نه کوی ([3]). يو حديث مبارك کښې راغلی دی چه حضرت نبی کريم ﷺ فرمائي چه مسکين هغه نه دې چه چکرې لګوی اوتاسو هغه ته يو کهجوره يا يو دوه نوالې خوراك ورکوئي. بلکه حقيقت کښې مسکين هغه دې چه کوم دومره نه مومي چه حاجت ئې پاتې نشي او نه په وقار او ښه حال کښې اوسی او چه په چا ددوی حال ظاهر شي نو هغوئ ته صدقه ورکړی ([4]) (بخاری و مسلم). حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله مکه کښې چکر لګولو چه په دې کښې ده سره يو سپې راغلو او اودريدو. نو دوی د ذبح شوې چيلئ يو ټکړه غوښه واخسته اوهغه ته ئې و اچوله او وې فرمائيل چه خلق وائی دا هم محرومو کښې دې. حضرت شعبی رحمه الله فرمائي چه څه خو ددې نه عاجز شوم چه د

[1] ) صحيح بخاری کتاب التهجد باب الدعاء والصلاة من اخر الليل : ۱۱٤٥، صحيح مسلم : ۷۵۸. ابوداود : ۱۳۱۵، ابن ماجـة: ۱۳٦٦، احمد: ۲٦۷/۲، ابن حبان: ۹۲۰.

[2] ) ابوداود کتاب الزکاة باب حق السائل : ۱٦٦۵، وسنده حسن : احمد: ۲۰۱/۱، ابن ابي شيبة: ۱۸٦/۲،

[3] ) الطبری : ٤١٦/٢٢.

[4] ) صحيح بخاری کتاب الزکاة بآب قول الله تعالى ( لايسئلون الناس الحافا) : ۱٤۷۹، صحيح مسلم: ۱۰۳۹.

محروم معنی باندې پوهه شم . امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه محروم هغه دې چه هغه سره مال نه وي او چه هر څه وجه وي . يعنی حاصل ئې نه كړی . د ګټې وټې طريقه نه ورځی او نه دده كار چليږی . يا د څه آفت په وجه دده نه مال ضائع شوې وی . يو ځل دالله ﷺ رسول ﷺ يو وړوكې لښكر دكافرو سره د مقابلې دپاره اوليږلو ، الله ﷻ هغوئ ته غلبه وركړه او دوی ته د غنيمت مال هم ملاؤ شو . بيا دوی ته څه خلق راغلل چه مال غنيمت حاصلولو په وخت كښې نه وو . نو دا آيت مبارك نازل شو . ددې اقتضا خو داده چه دا آيت مدنی وی خو اصل كښې داسې نه دی دا آيت مبارك مكی دې .

بيا فرمائي چه ديقين والو دپاره په زمكه كښې ډيرې نښې دی د قدرت او دا دخالق د عظمت او عزت او هيبت او جلالت باندې دلالت كوی. تاسو اوګورئی چه په دې كښې حيوانات او نباتات څنګه ګرزی. او څنګه ئې په غرونو ميدانونو كښې او سمندرونو كښې روان دی . بيا په انسانانو نظر واچوئی اود دوی د ژبو په اختلاف هم، ددوی په رنګ په اختلاف،ددوی د ارادو او قوتونو په اختلاف، اوددوی دعقل او فهم په اختلاف ، او ددوی حركات او سكناتو په اختلاف، د دوی نيكئ اوبدئ اوګورئی، ددوی په جوړښت نظر اوكړئی چه څنګه هر يو اندام مناسب ځائې باندې دې، نو په دې وجه دې نه پس فرمائي چه پخپله ستاسو وجود كښې هم ډيرې نښې دی ، ولې تاسو نه ګورئی څه؟ حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه كوم سړې په خپل پيدائش غور اوكړی اودخپلو جوړونو په تركيب غور اوكړی،نوهغه به يقين اوكړی چه الله ﷻ داټول هر څه پيدا كړی دی اودا ئې صرف د خپل عبادت دپاره پيداكړی دی (1)

بيا فرمائي چه آسمان كښې ستاسو روزئی دی يعنی باران اوهغه هم هغه دې چه دكومې تاسوسره وعده كړې شوې وه يعنی جنت.(2)

حضرت واصل احدب رحمه الله ددې آيت مبارك تلاوت اوكړو او وې فرمائيل چه څما رزق آسمان كښې دې او خه ئې په زمكه كښې تلاش كوم. دې وينا سره ئې كلئ پريښودو او لاړ ځنګل كښې آباد شو. دريو ورځو پورې خو ده ته هيڅ ملاؤ نشو ، خو په دريمه ورځ څه ګوری چه دوی سره د كهجورو يو غنچه ايښودې شوې ده. ددوی رور چه ددوی نه هم زيات مخلص او نيك نيت وو دې هم هغه سره وو ، دواړه رونړه تر آخر وخت پورې په ځنګل كښې وو. بيا الله ﷻ خپل قسم خوری او وائی چه څما وعدې دی . لكه د قيامت ، ددوباره ژوندی كيدو، دجزا اوسزا ، دا يقينی طور ريښتونی او بالكل بې شك او شبهې دی . لكه څنګه چه ستاسو دخولې نه وتلو الفاظو كښې شك نشته دې نو داشان تاسو ته په دې كښې هم شك نه دی كول پكار . حضرت معاذ رضي الله عنه چه به كله څه خبره كوله نو فرمائيل به ئې چه الله ﷻ دې هغه خلق برباد كړی چه څوك دالله ﷻ قسمونه نه منی.داحديث مرسل دې يعنی تابعی رحمه الله د حضرت نبی كريم ﷺ نه روايت كوی ، دصحابی نوم نه اخلی .

| هَلْ اَتٰىكَ | حَدِيْثُ | ضَيْفِ | اِبْرٰهِيْمَ | الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۴﴾ | اِذْ دَخَلُوْا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| آيا راغلې ده تاته | قيصه | دميلمنو | دابراهيم | عزتمندو | كله چې دننه ورغلل هغوئ |

(اې رسوله ﷺ)آيا تاته د ابراهيم عليه السلام دعزتمندو ميلمنو خبر(نه دې ، راغلې) څه وخت چې فرشتې

| عَلَيْهِ | فَقَالُوْا | سَلٰمًا ط | قَالَ | سَلٰمٌ ج |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| په هغه باندې | نو وې وئيل | سلام دې په تاباندې | اووئيل ابراهيم | په تاسو باندې هم سلام دې |

ده ته راغلې ا نو سلام ئې واچولو ا او ابراهيم عليه السلام ورته د سلام جواب وركړو ا(او په زړه كښې ئې خيال اوكړو،

(1) القرطبي: ۱۷/٤۰.
(2) الطبري: ۲۲/٤۲۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَمِيْنٍ | بِعِجْلٍ | فَجَآءَ | اِلٰۤى اَهْلِهٖ | فَرَاغَ | قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ |
| څوربه | يو سخي | پس راني وړو | كور خپل ته | پس ورغي | خلق دي څه ناآشنا شان |
| چي دا نا آشنا خلق دى \| بيا په تادئ سره خپل كورته لاړو \| نو يو څوربه څخي ني راوړو | | | | | |
| فَاَوْجَسَ | اَلَا تَاْكُلُوْنَ | قَالَ | اِلَيْهِمْ | | فَقَرَّبَهٗۤ |
| نو په زړه كښي ني بيا موندله | آيا نه خورئ تاسو | ورته ني اووئيل | هغوئ ته | | پس نزدې ني كړو هغه |
| نو نزدې ني ور ته كيخودو \| اوورته ني اووئيل چي تاسو ولي خوراك نه كوئ \| بيا ني | | | | | |
| بِغُلٰمٍ | وَبَشَّرُوْهُ | لَا تَخَفْ | قَالُوْا | خِيْفَةً | مِنْهُمْ |
| په يو هلك | او زيري ني وركړو هغه ته | چي ته مه يريږه | اوونيل فرښتو | يره | دهغوئ نه |
| تري نه په زړه كښي ويره پيدا شوه \| هغوئ ورته اووئيل چي ويريږه مه \| او هغوئ ابراهيم ﷺ ته | | | | | |
| وَجْهَهَا | فَصَكَّتْ | فِيْ صَرَّةٍ | امْرَاَتُهٗ | فَاَقْبَلَتِ | عَلِيْمٍ |
| مخ خپل | پس وې وهلو | دچغي دحيرانتيا سره | ښځه دهغه | پس وراندي شوه | ښه عالم سره |
| دهوښيار خوئي زيري وركړو \| نود هغه بى بى په ويناوينا را مخامخ شوه \| نوتندى له ني تس وركړو | | | | | |
| قَالَ رَبُّكِ | كَذٰلِكِ | قَالُوْا | | عَجُوْزٌ عَقِيْمٌ | وَقَالَتْ |
| وئيلي دى رب ستا | هم په دې شان سره | اوونيل فرښتو | | چي زۀ بوډئ شنډه يم | اووې وئيل |
| چي ښه دبوډئ اودشنډې (به لااولاد كيږي) \|هغوئ ورته اوونيل چي هم دغسي ستارب فرمائيلى دى | | | | | |
| | | اَلْعَلِيْمُ | اَلْحَكِيْمُ | | اِنَّهٗ هُوَ |
| | | ښه خبردار دې دهر څه نه | حكمت والا دې | | بيشكه هغه |
| هغه ډير دحكمت او دلوئي علم خاوند دى | | | | | |

**قوله تعالى:- هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ**

**دحضرت ابراهيم ﷺ د معززو ميلمنو واقعه :-** داواقعه په سورة هود او سورة حجر كښي تيره شوې ده . دا ميلمانه فرښتي وې چه دانسان په شكل كښي راغلي وې. اودوى ته الله ﷻ عزت او شرافت وركړې وو. حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او نور علماء فرمائي چه دميلمه ميلمستيا كول واجب دى . حديث مبارك كښي داهم راغلى دى (1) او دقرآن پاك ظاهرى الفاظ داهم دى. هغوئ سلام اوكړو او ددې جواب حضرت خليل الله عليه السلام زيات كړو. ددې ثبوت په بل سلام باندې د دوؤ پيښونو ده. همد فرمان دالله ﷻ دې چه ﴿وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا﴾

يعني كله چه تاسو ته څوك سلام اوكړي نوتاسو ورته دهغي نه بهتر سلام اوكړئ ياكم ازكم هم هغه هومره. نو خليل الله عليه السلام افضل صورت اختيار كړو. حضرت ابراهيم عليه السلام ددې نه واقف نه وو او اصل كښي دا فرښتي آشنا نه وې . دا فرښتي حضرت جبرئيل عليه السلام، حضرت ميكائيل عليه السلام او حضرت اسرافيل عليه السلام وې . اودوى د ښكلو خوانانو شكل كښي راغلي وې. او ددوى په څهرو باندې هيبت او جلال وو. حضرت ا براهيم عليه السلام دهغوئ دپاره خوراك انتظام كښي مصروف شو. او چپ چاپ خپل كور

(1) صحيح بخارى كتاب الادب باب اكرام الضيف وخدمته اياه بنفسه: ٦١٣٥. صحيح : ٤٨.

والو ته ورغلو. او ډير لږ وخت کښې ئې د يو څخي وريته کړې غوښه راوړه.او دهغوئ مخکښې هغوئ ته نژدې کيخوده اوورته ئې اوفرمائيل چه تاسو ولې نه خورئ ؟ ددې نه د ضيافت آداب معلوميږي دميلمه د تپوس نه بغير په شروع کښې احسان کولو ، او مخکښې دوی عليه السلام دهغوئ ته خبر ورکولو نه بغير لاړل او تيزئي سره ئې ښه نه ښه څيز پوخ کړو او هغه ئې راوړو. اوتيار د کم عمر څخي غوښه ئې وريته کړې راوړه او بل خائې کښې ئې دا کينخوده بلکه ددوی مخکښې ئې کيخوده . اوبيا هغوئ ته داسې نه وائي چه خورئي څکه چه په دې کښې هم يو حکم دې . بلکه ډير په عاجزئي او احترام سره وائي چه تاسو خوراك ولې نه کوئ ؟ لکه چه يو سړې چاته وائي چه تاسو فضل او احسان سره سلوك کول غواړئي نو اوکړئي . بيا ارشاد دې چه خليل الله عليه السلام ددوی نه خفه ويريدو لکه چه ارشاد دې چه ﴿فَلَمَّا رَأَىٰٓ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً﴾ يعني کله چه دوی اوکتل دهغوئ لاسونه خوراك طرفته نه ورځي نو ويره ئې محسوس کړه ، اوپه زړه کښې خوف پيدا شو . نو پدې ميلمنو اووئيل چه ويريږه مه مونږ دالله ﷻ ليږلي شوې فرښتې يو او مونږ د قوم لوط دهلاکت دپاره راغلي يو.
ددوی بي بي ولاړه وه او دا ئې اوريدل. ددې اوريدو سره هغه په خنداشوه نو فرښتو دوی عليه السلام ته خوشخبري ورکړه چه تاسو ته به الله ﷻ حضرت اسحاق عليه السلام درکوي. اودهغه نه به حضرت يعقوب عليه السلام پيدا کيږي. پدې ددوی عليه السلام بي بي حيرانه شوه چه افسوس څما به بچې څنګه پيداکيږي؟ څه خو بوډئي يم او څما دا خاوند هم بوډا دې. دا خو ډير دتعجب څيز دې. نو فرښتو اووئيل چه ته دالله ﷻ کارونو باندې تعجب کوې ؟ اوخاصکر ستا غوندې د پاکې کورنئ ښځه. په تا دې دالله ﷻ رحمتونه او برکتونه وي، دا واوره چه الله ﷻ ډير تعريفونو والا او بزرګئ والا دې. دلته دافرمائي چه دا بشارت ئې حضرت ابراهيم عليه السلام ته ورکړواو ددې نه مخکښې آيت مبارك کښې دي چه بشارت ددوی عليه السلام بي بي صاحبې ته ورکړې شوې وو. نومطلب داشو چه بشارت دواړو ته ورکړې شوې وو څکه دبچې پيداکيدل د دواړو دپاره د خوشحالئ موجب وو. بيا فرمائي چه ددې بشارت اوريدو سره ددوي بي بي صاحبې د خولې نه اوتل چه او خپل سينه ئې ډير په زوره زوره اووهله. او ددې عجيبه خبر آور يدو سره هغې اووئيل چه څه خو په څوانئ کښې شنډه اوم او اوس خو ښځه خاوند دواړه بوډاګان يو نو څما به حمل څنګه کيږي ؟ ددې جواب کښې فرښتو اووئيل چه دازيرې مونږ څه خپل طرفنه نه درکوو بلکه الله ﷻ مونږ ته ددې خبر راکړې دې چه تاسو ته ددې خبر درکړو. هغه ذات ډير حکمت والا او علم والا دې . تاسو چه دکوم عزت ا و کرامت مستحق يئ نو هغه ته ښه معلوم دی. او دهغه ذات هر يو کار دحکمت نه خالي نه وي . اونه دهغه څه فرمان دحکمت نه خالي وي .

الحمد لله د شپږويشتمې پارې تفسير ختم شو.

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ۝ قَالُوْٓا

اوونیل ابراهیم علیه السلام | نو څه دي کار ستاسو | اے رالیږلي شوؤ فرښتو | اوونیل هغوئ |

(ابراهیم علیه السلام) اوونیل چې اې فرښتو ستاسو مقصد څه دې؟ | هغوئ اوونیل

اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ۝ۙ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ

بیشکه مونږه رالیږلي شوي یو | یو قوم مجرم ته | دپاره ددې چې اولیږو مونږه | په هغوئ باندې

مونږ یو مجرم قوم طرفته رالیږلي شوي یو | د دې دپاره چې مونږ په هغوئ باندې داسې

حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ۝ۙ مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ۝

کانړي | دخټې نه | چې نښه دار کړې شوي دي | په نز درب ستا | دپاره دحدنه داوړیدونکو خلقو

د ټیکرو کانړي راوروو | چې په هغې باندې ستا د رب سره د حد نه تیریدونکو دپاره نښې لګیدلی دی

فَاَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيْهَا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ۚ

بیا رااوویستل مونږه | هغه څوك | چې وؤ | په هغه کلی کښې | دمومنانونه |

نو په هغه کلی کښې چه کوم مومنان وو هغوی ترې مونږ بهر اوویستل

فَمَا وَجَدْنَا فِيْهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ۝ۚ وَتَرَكْنَا

پس بیا اونه موندو مونږه | په هغې کښې | بې دیو کورنه | دمسلمانانونه | او پرېښوده مونږه

خو په هغوی کښې مونږ دیو کور نه سوا د مومنانو بله کورنۍ اونه موندله | او په دې (واقعه) کښې

فِيْهَآ اٰيَةً لِّلَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ۝ؕ

په هغې کښې | یوه نښه | دپاره دهغه کسانو | چې یریږي هغوئ | دعذاب دردناك نه |

مو د هغه خلقو دپاره یوه نخښه باقي پرېخوده | چې د دردناک عذاب نه ویریږي

**قوله تعالى:- قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ۝**

**دابراهیم علیه السلام د فرښتو نه سوال** :-مخکښې بیان شوي دي چه کله دې نوؤ میلمنو سره د ابراهیم علیه السلام تعارف اوشو او ویره ئې ختمه شوه. بلکه ددوی په ژبه ورته یو ډیره لویه خوشخبری هم ملاؤ شوه. او د خپل صبراو رب ترسی او دردمندئی په وجه دالله ﷻ خدمت کښې ئې د قوم لوط سفارش اوکړو او دالله ﷻ د طرفنه پورته د حتمی فیصلې اعلان هم اوشو. دې نه پس چه څه اوشو دهغې بیان دلته کیږی چه خلیل الله علیه السلام ددې فرښتو نه تپوس اوکړو چه تاسو د څه مقصد دپاره راغلی یئ؟ هغوئ اوفرمائیل چه د لوط علیه السلام دقوم تباه کولو دپاره مونږ لیږلې شوي یو. مونږ به په هغوئ باندې سنګ باری کوؤ او هغه کانړی به په هغوئ وراوروؤ چه کومو باندې دالله ﷻ حکم سره په هغوئ دهغوئ نومونه لیکلې شوی دی.اوهر ګناهګار دپاره جداجدا کانړنی مقرر دي.سورة عنکبوت کښې تیر شوی دی چه ددې اوریدو سره ابراهیم علیه السلام فرمائی چه هلته خو لوط علیه السلام دې،بیا به تاسو هغه کلی څنګه تباه کوئی؟ فرښتو اوونیل چه ددې علم مونږ ته هم شته دې. مونږ ته حکم شوې دې چه مونږ هغوئ او دوی سره د هغوی دکورنۍ ټول ایماندار بچ کړو. خودهغه ښځه نشی بچ کیدې. هغه به هم مجرمانو سره د خپل جرم بدله کښې هلاکیږی. داشان دلته هم ارشاد فرمائی چه په دې کلی کښې څومره هم مومنان وو،ټول بچ کړې شو. ددې نه هم مراد د لوط علیه السلام او ددوی کورنۍ مراد ده،سوا دده د ښځې نه چه هغې ایمان نه وو

راوړي.نو اوفرمائيلې شو چه هلته سواد يو كور نه دمسلمانانو نور كورونه نه وو.

**قوله تعالى:-** مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۞

**ايمان او اسلام** :-دواړه آيتونه دليل دى دهغه خلقو دپاره چه وائى چه دايمان او اسلام مسمى يو دې. په دې وجه چه دې خلقو ته دې خائې مومنان ونيلې شوى دى او هم دوى ته مسلمان هم ونيلې شوى دى. دمعتزله مذهب هم دادې چه دا يو څيز دى.او دې ته اسلام هم وائى او ايمان ورته هم وائى.خو دا استدلال ضعيف دې.ځكه چه دا خلق مسلمان وو او دا خو مونږ هم منو چه هر مومن مسلمان هم وى. خوهر مسلمان مومن نه وى.نو د حال د خصوصيت په وجه دوى ته مسلمان اومومنان اوونيلې شو. د دې نه عام طور دا نه ثابتيږى چه هرمسلم مومن دې.د امام بخارى رحمه الله او نورو محدثينو هم دا مذهب دې چه كله اسلام حقيقى او رښتونې وى نو هغه اسلام ايمان دې. اوپه دې صورت كښې اسلام او ايمان يوڅيز دى.خو هركله چه ايمان او اسلام حقيقى طور نه وى نو بيا اسلام او ايمان كښې فرق دې.

بيا وائى چه دا آباد كلى عذاب سره تباه كول اودا بدبوداره كنډرونو كښې بدلولو كښې دمومنانو دپاره عبرت موجود دې. چه په چا كښې دالله جل شانه ويره وى نو هغه دې دا ښه په غور سره اوګورى او ددې نه دې زبردست عبرت حاصل كړى.

وَفِيْ مُوْسٰٓى | اِذْ اَرْسَلْنٰهُ | اِلٰى فِرْعَوْنَ | بِسُلْطٰنٍ

او په قيصه دموسى كښى (نښه ده) | كله چې اوليږو مونږه هغه | فرعون ته | ددليل

اودغه شان دموسى عليه السلام په قيصه كښې هم (نښه ده) كله چې مونږ هغه د فرعون (دربار) ته په ښكاره

مُّبِيْنٍ۞ | فَتَوَلّٰى | بِرُكْنِهٖ | وَقَالَ | سٰحِرٌ

ښكاره سره | نو مخ ئې واړوۀ | دقوت خپل سره په غرور كښى | اووې ونيل | چې دې جادوګر دې |

دليل سره اوليږلو|خوهغه دخپل زور په وجه انكاراوكړو | او دائې اوونيل چې دا جادوګر

اَوْ مَجْنُوْنٌ۞ | فَاَخَذْنٰهُ | وَجُنُوْدَهٗ | فَنَبَذْنٰهُمْ

يا ليونې دې | پس اونيوۀ مونږه هغه | او لښكرې دهغه | پس اوغورزول مونږ هغوئ |

يا ليونې دې |اومونږ هغه اودهغه لښكر (ټول) راونيول | او په سمندر كښې مو

فِى الْيَمِّ | وَهُوَ مُلِيْمٌ۞ | وَفِيْ عَادٍ | اِذْ اَرْسَلْنَا

په درياب كښى | او هغه ملامته كړې شوې ووۀ | او په عاديانو كښى نښه ده | كله چې اوليږله مونږه

اوغورزول | په داسې حال كښې چې ملامته كړې شوې وو | اود عاديانو (په واقعه) كښې هم (عبرت) دې

عَلَيْهِمُ | الرِّيْحَ | الْعَقِيْمَ۞ | مَا تَذَرُ | مِنْ شَيْءٍ | اَتَتْ

په هغوئ باندې | هوا | بې خيره | نۀ به ئې پريښودو | هيڅ څيز | چې رابه غله هغه هوا |

كله چې مونږ په هغوى باندې بې خيره سيلۍ راوليږله | (دا داسې سيلۍ وه چې) په كوم څيز به

عَلَيْهِ | اِلَّا جَعَلَتْهُ | كَالرَّمِيْمِ۞ | وَفِيْ ثَمُوْدَ

په هغه څيز باندې | مګر كوۀ به ئې هغه | پشان دروست هډوكى | او په ثموديانو كښى نښه ده |

تيره شوه | نو هغه به ئې ريزه ريزه كولو |...... او (دغه شان) دثموديانو (په واقعه) كښې هم (عبرت دې)

| اِذْ قِيْلَ | لَهُمْ | تَمَتَّعُوْا | حَتّٰى حِيْنٍ ۝ | فَعَتَوْا |
|---|---|---|---|---|
| کله چي اووئیلې شو | هغوئ ته | چي نفع واخلئ | ديو وخته پورې | پس مخ واړوو هغوئ |
| کله چې دوئ ته اووئیلې شوې \| چې څو ورځې نور دنیاوی مزې واخلئ \| نو هغوئ | | | | |

| عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ | فَاَخَذَتْهُمُ | الصّٰعِقَةُ | وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ ۝ | فَمَا اسْتَطَاعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| دحکم درب خپل نه | پس اونیول هغوئ | يو لوئ کړس | او هغوئ ورته کتل | پس طاقت نۀ لرلو هغوئ |
| دخپل رب دحکم نه سرکشي اوکړه \| نوپه هغوئ باندې عذاب راغلو \| اوهغوئ ورته کتل \| نو بيانه خو | | | | |

| مِنْ قِيَامٍ | وَّمَا كَانُوْا | مُنْتَصِرِيْنَ ۝ | وَقَوْمَ نُوْحٍ | مِّنْ قَبْلُ |
|---|---|---|---|---|
| دپاسیدو | اونۀ وو هغوئ | بدل اغستونکي | او هلاك کړو مونږه قوم دنوح | مخکښې ددې ټولو نه |
| اودريدو شو \| او نه ئې زمونږ نه څه بدله واخستې شوه \| اود هغوئ نه وړاندې دنوح ﷺ قوم | | | | |

| اِنَّهُمْ | كَانُوْا | قَوْمًا | فٰسِقِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| بیشکه هغوئ | وو | قوم (خلق) | فاسقان |
| سره هم دغه شان سلوک کړې شوې وو | | | |

**قوله تعالى:-** وَفِيْ مُوْسٰى اِذْ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰى فِرْعَوْنَ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝

**د فرعون دقوم انجام:-** ارشاد دې چه څنګه تاسو د لوط ﷺ د قوم انجام کتلو سره عبرت حاصلولې شئ نو همداقسمه واقعه د فرعونيانوده.مونږ هغوئ طرفته خپل کليم پيغمبر موسى ﷺ روښانه دليلونو او واضح برهان سره اوليږلو. خود هغوئ سردار چه دکبر يو مجسمه وه ددې دمنلو نه انکار اوکړو او زمونږ د فرمان ئې هډو پرواه اونکړه. دې دالله جل شانه دښمن دخپل طاقت په غرور کښې اودخپل راج لښکر په وجه د رب دفرمان هيڅ عزت اونه ساتلو. او ټول ئې ځان سره يو ځائې کړل او موسى ﷺ ته ئې تکليف اورسولو او وې ونيل چه انې موسى ﷺ يا خو ته جادوګرئې يا ليونې.نو مونږ دا متکبره ،فاجر،معاندسرې دخپل لښکره سره تباه کړو په درياب کښې.

**قوله تعالى:-** وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ الْعَقِيْمَ ۝

**دقوم عاد انجام:-** دا شان د قوم عاد واقعات هم ستاسو غوږونو نه مونږ تير کړې دی. چه دهغوئ د غلطوکارونو په وجه په هغوئ بې برکته هواګانې راغلې.او دې هواګانو د ټولو شکلونه بدل کړل. چه بو خل په يو څيز اولړيده نو هغه سوړ او بدبودار شو. دابن ابی حاتم حديث مبارك کښې دی چه نبی کريم ﷺ فرمانی چه هوا په دويمه زمکه کښې مسخره ده. هر کله چه الله عاديان هلاکول اوغوښتل نو دهوا داروغه ته ئې حکم اوکړو چه ددوی د تباه کولو دپاره هوا راولېه.نو د هوا فرښتې اوئيل چه آيا د هوا کوم ځانې تيرې شوې نو هغه ځانې او څيزونه ئې تباه کړل (۱).

ددې حديث مبارك فرمان ﷺ کيدل منکر دی. زيات دماغ دا قبلوی چه دا دعبدالله بن عمرو ﷺ قول دې هغوئ ته د يرموك جنګ کښې د اهل کتابو د کتابو دوه بورئ ملاؤ شوې وې. ممکن دی چه دوی هغې ته دا خبره کړې وی.والله اعلم.

---

(۱) ابن ابي حاتم وسنده حسن . تفسير سورة الروم : ٤٨، الطبری: ٤٣٣/٢٢.

دا جنوبي هواګانې وې.نبي کريم a فرمائي چه ځما مدد هواګانو سره اوکړې شو. او عاديان لرمانانو او هواګانو سره هلاك شو. ( )

قوله تعالى:- وَفِيْ ثَمُوْدَ اِذْ قِيْلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوْا حَتّٰى حِيْنٍ ۝

**د قوم ثمود انجام** :- همدا شان د قوم ثمود په حالاتواو انجام باندې غور اوکړئ. هغوئ ته اووئيلې شو چه تاسو مقرر وخت پورې ددې نه فائده اوچته کړئ. لکه څنګه چه بل ځائې کښې فرمائيلې شوی دی چه مونږ ثموديانو ته هدايت اوکړو چه هغوئ هدايت اوغورزولو. او ذدې په و جه هغوئ د ذلت عذاب راونيول اوددوی نه ئې چغې اوويستې او ددوی زړونه اوچاؤ دل.او داصرف دهغوئ دسرکشئ او نافرمانئ او سياه کارئ بدلـه وه.دوی کتـل او پـه دوی دالله جل شانه عـذاب راغلـو. درې ورځې خوداشان انتظار کښې وو او د عـذاب آثار ئې کتـل ،او آخر پـه څلورمـه ورځ د الله جل شانه عـذاب راونيول او قوم ورسره نه وو. دوی پريشانه شو. هيڅ تدبير ورسره نه وو. دومره مهلت هم ورنکړې شو چه پاسې او منډه کړې.او يا څه په بله طريقه ئې د تيښتې کوشش کړې وې.داشان دوی نه مخکښې قوم هم زمونږ عذابونه کتلی وو.او د خپلې بدکارئ او نافرمانئ بدلـه ئې موندې وه. دا ټول مفصل واقعات د فرعونيانو او عاديانواو د قوم نوح ددې نه مخکښې د ډيرو سورتونو تفسير کښې تير شوی دی.والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| وَالسَّمَآءَ | بَنَيْنٰهَا | |
| او آسمان چې دی | جوړ کړې دې مونږه هغه | |
| اومونږ آسمان دخپل | بيشکه چې دغه ډير نافرمانه قوم وو | |
| بِاَيْدٍ | وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ۝ | وَالْاَرْضَ | فَرَشْنٰهَا |
| په قدرت لاس خپل سره | او بيشکه مونږه فراخه کونکې يو | او زمکه چې ده | غوړولې ده مونږه هغه |
| قدرت په لاسونو جوړ کړې دې | اومونږ د فراخئ خاوندان يو | او زمکه مونږ غوړولې ده | |
| فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ ۝ | وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ | خَلَقْنَا | زَوْجَيْنِ | لَعَلَّكُمْ |
| پس ډير ښه غوړونکې يو مونږه | او دهر څيز نه | پيدا کړل مونږه | جوړئ | دپاره ددې چې تاسو |
| نوځومره ښه غوړرونکې يو | ..........اوهر څيز موجوړئ جوړئ کړې دې | د دې دپاره چې تاسو | | |
| تَذَكَّرُوْنَ ۝ | فَفِرُّوْٓا | اِلَى اللّٰهِ | اِنِّيْ | لَكُمْ | مِّنْهُ |
| نصيحت قبول کړئ | پس منډه کړئ | الله ته | بيشکه زه | ستاسو دپاره | د طرفه دهغه نه |
| نصيحت حاصل کړئ | نو تاسو هم الله ﷻ طرفته ورمنډه کړئ | زه ستاسو دپاره د الله ﷻ | | | |
| نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ | | |
| يرونکې يم | ښکاره | |
| دطرفه ښکاره ويرونکې يم | | |

قوله تعالى:- وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ ۝

**دالله جل شانه قدرتونه** :- د زمکې اود آسمان د پيدائش ذکر کيږی چه مونږ آسمان خپل قوت سره پيدا

[1] صحيح بخاری کتاب الاستسقاء باب قول النبي ﷺ نصرت بالصبا: ۱۰۳۵، صحيح مسلم: ۹۰۰.

کړې دي. او دا مو اوچت او محفوظ چت جوړ کړې دي. عبد الله ابن عباس ﷺ، مجاهد m، قتاده m، ثوري m او نورو ډير مفسرينو همدا وئيلي دي چه مونږ آسمانونه خپل قوت سره پيدا کړي دي [1] او مونږ کشاده کونکي يو. او مونږ ددې کنارې فراخې کړې، او دا مو بې ستنې اودرولو او قائم موکړو. اوزمکه مونږ د خپل مخلوقات دپاره داوسيدو خانې جوړ کړې دي. او دا ډيره ښه استوګنه ده. او مونږ ټول مخلوقات جوړې جوړې پيدا کړي دي. لکه آسمان زمکه، شپه ورځ، نمر سپوږمۍ، او چه لمده، رڼا تياره، ايمان کفر، مرګ ژوند، نيکي بدي، جنت دوزخ، تر دې چه حيواناتو او نباتاتو کښې هم جوړې دی. دا په دې و جه چه تاسو نصيحت حاصل کړئ. په دې پوهه شئ چه ددې ټولو خالق الله جل شانه دې. او د هغه هيڅوک شريك نشته دې. اوهغه يو دې. نوتاسو هغه طرفته ورځئ، دخپلې توجه مرکز صرف هغه ذات جوړ کړئ، خپلو کارونو کښې صرف په هغه بهروسه کوئ، خه تاسو ټولو لره صفا صفا خبرولو والا يم. خبردار الله جل شانه سره هيڅوك شريك مه جوړوئ، ځما د ښکاره ويرولو لحاظ اوساتئ:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَكُمْ | إِنِّي | إِلَٰهًا آخَرَ | مَعَ اللَّهِ | وَلَا تَجْعَلُوا | |
| ستاسو دپاره | بيشکه زهٔ | معبود بل | دالله سره | او مهٔ جوړوئ تاسو | |
| او ( ګورئ) الله سره بل څوک معبود مه جوړوئ بيشکه زه ستاسو دپاره | | | | | |
| الَّذِينَ | مَا أَتَى | كَذَٰلِكَ | نَذِيرٌ مُّبِينٌ | | مِّنْهُ |
| هغه کسانو ته | رانغې | هم دغسې کيږي | يرونکي يم ښکاره | | دطرفه دهغه نه |
| دهغه دطرفه ښکاره ويرونکي يم .........دغه شان ددوئ نه وړاندې خلقو ته چې کله | | | | | |
| سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ | إِلَّا قَالُوا | | مِّن رَّسُولٍ | | مِن قَبْلِهِم |
| چې دا جادوګر دې يا ليونې دې | مګر اووئيل هغوئ | | يو رسول | | چې مخکښې ددوئ نه وو |
| هم يورسول ورغلې .........نو هغوئ ورته جادوګر يا ليونې وئيلي دي | | | | | |
| طَاغُونَ | قَوْمٌ | بَلْ هُمْ | بِهِ | | أَتَوَاصَوْا |
| سرکشه | يو قوم | بلکه دا خلق دي | په دې سره | | آيا دوئ وصيت کړې دې يو بل ته |
| آيادوئ يوبل ته ددې خبرې وصيت پريخودې دې نه بلکه دغه خلق ټول يو شان سرکشان وو | | | | | |
| فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ | وَذَكِّرْ | بِمَلُومٍ | فَمَا أَنتَ | عَنْهُمْ | فَتَوَلَّ |
| پس بيشکه نصيحت | اونصيحت کوه | ملامته کړې شوې | پس نهٔ ئې تهٔ | ددوئ نه | پس تهٔ مخ واړوه |
| نوته ددوئ نه مخ واړوه ځکه چې په تاباندې هيڅ ملامتيا نشته اوته دوئ ته نصيحت کوه ځکه چې | | | | | |
| إِلَّا | وَالْإِنسَ | وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ | الْمُؤْمِنِينَ | | تَنفَعُ |
| مګر | او انسانان | او نهٔ دی پيدا کړی ماپيريان | مومنانوته | | فائده ورکوي |
| نصيحت مومنانو ته (خامخا) فائده ورکوي او ما خو پيريان او انسانان صرف د خپل عبادت دپاره | | | | | |

[1] الطبري: ۲۲/٤۳۸.

لِيَعْبُدُونِ ۝ مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَّمَآ أُرِيدُ
دپاره ددې چې عبادت اوکړي زما | نه غواړم زه | دهغوئ نه | څه رزق | اونه دا غواړم زه |
پيدا کړي دي|..........زه ددوئ نه روزي نه غواړم| اونه (ترې نه، داغواړم

أَن يُّطْعِمُونِ ۝ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ
چې دوئ دخوراکونه راکوی ماله | بيشکه الله | هم هغه روزي ورکونکې دې | خاوند دقوت دې |
چې ماله دې خوراکونه راکوی | بيشکه الله ﷻ دټولو خلقو روزي رسان دې | دطاقت خاوند دې

الْمَتِينُ ۝ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ
مضبوط دي | پس بې شکه دپاره دهغه کسانو | چې ظلم ئې کړې دي | حصه دعذاب ده | پشان |
مضبوط دې | نو ددې ظالمانو دپاره هم (دعذاب) حصه مقرر ده الکه چې ددوئ (تيرو شوو) ملګرو دپاره

ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ۝ فَوَيْلٌ
دعذاب دملګرو دهغوئ | پس تلوار دنۀ کوی په ما (دپاره ددې خلقو) | پس تباهي ده |
دعذاب حصه مقرر وه | نو دوئ دې په ما تلوار نه کوی | کافرانو خلقو دپاره دهغې ورځ په راتلو

لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن يَّوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ۝
دپاره دهغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو | دورځې دعذاب دهغوئ نه | هغه ورځ اچې هغوئ تر پرولې کيږي
کښې ډيره تباهي ده |..........دکومې چې ورسره وعده کولې شي

**قوله تعالى:- كَذَٰلِكَ مَآ أَتَى الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رَّسُولٍ**

**رسولان په دروغه اوګنړلې شو** :- الله جل شانه خپل نبی ﷺ ته تسلي ورکوی چه دا کافر تاته څه وائی نودا څه نوې خبره نه ده،ددې نه مخکښې هم کافرو خپلو خپلو زمانو کښې رسولانوته داوئيلی دی.د کافرانو دا قول سلسله په سلسله راروان دې.لکه څنګه چه خپلو کښې يو بل ته وصيت کولې شي. رېښتيا دادی چه دا ټول په سرکشئ او سرتابئ کښې يو شان دی او چه کومه خبره د رومبی د خولې نه اووتله نو هغه د ددوی دخولې نه هم راوزی. خکه چه د زړه په سخت والی کښې دا ټول يو شان دی. نو تاسو پرې سترګې پټې کړنی.که دوی تاسوته جادوګر وائی اوکه مجنون وائی، تاسو صبر نه کار واخلئ.او دا آورنی،خو تاسو د نصيحت تبليغ مه پرېږدنی. الله جل شانه يو يو خبره پيژنئ او چه دچا زړونو کښې دايمان د قبوليت ماده شته دې نو هغه به يو نه يو ورځ په لاز راشی.

**قوله تعالى:- إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝**

**انسانان او جنات دعبادت دپاره پيداکړې شوی دی** - بيا الله جل شانه بيان فرمائی چه ما انسانان اوجنات څه د خپل ضرورت دپاره نه دی پيدا کړې بلکه صرف ددې دپاره چه څه د نفع دپاره دوی ته دعبادت حکم اوکړم.او هغوئ په خوشحالئ خپا د عبادت اقرار اوکړې سدی فرمائی چه بعضې عبادت فائده ورکوی او بعضې فائده نه ورکوی. لکه قران پاك کښې يو ځائې کښې دی چه تاسو ددې کافرو نه تپوس اوکړنی چه آسمان او زمکه چا پيدا کړې دی؟ نو دوی به جواب کښې اووائی چه الله جل شانه. اګر چه دا هم عبادت دې چه دابه دمشرکانو هيڅ په کار نه رازی.غرض دا چه عابدان ټول دی که دوی نه عبادت نفع ورکوی اوکه نه.او ضحاك فرمائی چه ددې نه مراد مسلمانان انسانان او ايماندار جنات دی.

**قوله تعالی:- إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ۝**

**الله ﷻ دټولو نه بې احتياج او ټول مخلوق د الله ﷻ محتاج دي:-** دمسند احمد يو حديث مبارك كښې دی چه عبدالله بن مسعود﷜ فرمائی چه ماته رسول الله ﷺ داسې تلاوت اوكړو چه﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾.([1]) داحديث ابوداؤد ،ترمذی او نسائی كښې هم شته دې.امام ترمذی دې ته حسن وائي.غرض الله جل شانه خپل بندګان د بندګئ دپاره پيدا كړی دی. اوس چه څوك دهغه عبادت يكسوئ سره كوی،هغه سره څوك شريك نه جوړوی، نو هغه ته به پورا پورا اجر ملاوېږي. او چه څوك دهغه نافرمانی كوی اوهغه سره شريك جوړوی نو هغه ته به بدترينه سزا وركولې شی. الله جل شانه د هيڅا محتاج نه دې بلكه ټول مخلوق هر حال كښې او هر وخت دالله جل شانه محتاج دی. بلكه محض سراسر بې دست وپااوسراسر فقير دې. خالق او رازق صرف الله جل شانه دې. مسند احمد كښې حديث قدسی دې چه انې ابن آدم! خما عبادت دپاره فارغ شه،څه به ستا سينه د مالدارئی او بې نيازئی نه ډكه كړم. او ستا فقيری به ختمه كړم. اوكه ته داسې اونكړې نو څه به ستاسينه د اشغال نه ډكه كړم. او ستا فقيری به بالكل ختمه نه كړم ([2])داحديث مبارك ترمذی اوابن ما جه كښې هم دې.اوامام حسن دې ته غريب حسن وائی. دخالد دواړه خامن حبه﷜ او سواء﷜ فرمائی چه مونږ د نبی كريم خدمت كښې حاضر شو،په هغه وخت كښې نبی كريم ﷺ په څه كار كښې مشغول وو، يا ئې څه ديوال جوړولو، يا ئې څه څيز درست كولو، مونږ هم نبی كريم ﷺ سره كار كښې اخته شو، هر كله چه كارختم شو نو نبی كريم ﷺ مونږ ته دعا اوكړه او وې فرمائيل چه تاسو دې هيځكله تر مرګه پورې درزق نه مايوسه مه شئ. هر كله چه انسان پيدا كېږی نوده سره يو سور بوټئ وی، دده په بدن يو داغ هم نه وی، بيا الله جل شانه ده ته هر څه وركړی.مسند احمد ([3]).

**وړاندنوكتابونو كښې دالله ﷻ كلام ابن ادم ته :-** بعضې آسمانی كتابونو كښې دی چه انې ابن آدم ! ما نه خپل عبادت دپاره پيدا كړې ئې،نو ته ددې نه غفلت مه كوه،څه ستا د رزق ضامن يم،ته په دې كښې بې ځايه تكليف مه كوه، ته ما تلاش كوه چه ما اووينې.هر كله چه تا څه اوموندم نو پوهه شه چه تا هر څه اوموندل. اوكه څه تاته ملاؤ نشوم نو پوهه شه چه تا هر څه ورك كړل. واوره، ستا په زړه كښې ټولو نه زيات محبت هم خما پكار دې. بيا فرمائی چه ولې خما عذاب زر زر غواړې؟ هغوئ ته دا عذاب په خپل وخت رسی. لكه څنګه چه ددې نه مخكښې كافرو ته رسيدلې وو. د قيامت په ورځ چه دكومې ورځې دوی سره وعده شوې وه،دوی دپاره ډيره خرابی ده.

الحمدلله د سورة زاريات تفسير ختم شو.

..............

## دسورة طور تفسير چه دا مكی سورة دې.

**د سورت تعارف :-** جبير بن مطعم﷜ فرمائی چه ما د نبی كريم a نه دمابنام مونځ كښې سورة طور واوريدو. نبی كريم ﷺ نه زيات خوش آواز او نبی كريم ﷺ نه زيات ښه قرآت والا ما هيڅوك نه دی كتلی ([4]).(موطا امام مالك ) ام سلمه ﵂ فرمائی چه د حج زمانه كښې څه بيماره اوم نو ما نبی كريم ﷺ ته ددې حال اووئيلو نو نبی كريم ﷺ راته اووئيل چه ته په سورلئ سوره شه او خلقو پسې روستو

---

[1]) احمد : ٤١٨/١، ابوداود كتاب الحروف : ٣٩٩٣، وهو حديث صحيح ، ترمذی : ٢٩٤٠، السنن الكبری للنسائی : ٧٧٠٧، ابن حبان : ٦٣٢٩، مسند ابويعلی : ٥٣٢٣. حاكم: ٢٣٤/٢.

[2]) احمد : ٣٥٨/٢، ترمذی : كتاب صفة القيامة باب احاديث ابتلينا بالضراء ومن كانت الاخرة همه.: وابن آدم تفرغ لعبادتی : ٢٤٦٦

[3]) احمد: ٤٦٩/٣، ابن ماجه كتاب الزهد باب التوكل والقين:٤١٦٥، .

[4])موطا امام مالك:٧٨/١، صحيح بخاری كتاب الاذان باب الجهر فی المغرب: ٧٦٥، صحيح مسلم:٤٦٣، ابوداود : ٨١١، ابن ماجه: ٨٣٢.

روستو طواف كوه. نو خه په سورلۍ سوره شوم او طواف مې اوكړو او په هغه وخت كښې نبى كريم ﷺ دبيت الله شريف يو ګوټ كښې مونځ كولو او ﴿وَالطُّوْرِ ۝ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ۝﴾ ئې تلاوت كولو ( بخارى )[1]

| اياتونه | | | سورة الطور مكية وهي تسع واربعون اية وفيها ركوعان | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۴۹ | | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ۲ |

وَالطُّوْرِ ۝ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ۝ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ۝

قسم دې په طور غر باندې | او په كتاب ليكلې شوى باندې | په كاغذپرانستلې شوى كښې |

په كوه طور باندې قسم دې | اوقسم دې په ليكلې شوى كتاب باندې اچې په خورشوى كاغذ كښې دې

وَّالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ۝ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ۝ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ۝

او په كور آباد شوى باندې | او په چت اوچت كړې شوى باندې | او په سمندر چپو وهونكى باندې |

اوقسم دې په اباد كورا|او(قسم دې) په اوچت چت (يعنى آسمان) | او(قسم دې) په ډك درياب

اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ۝

بيشكه عذاب | درب ستا | خامخا واقع كيدونكې دې | نشته هغه لره | هيڅوك دفع كونكې |

يقينا ستا د رب عذاب خامخا راتلونكې دې | هيڅوک ئې دفع كولې (بندولې) نشى

يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا ۝ وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝

په هغه ورځ | چې به اوخوزيږى آسمان | په خوزيدلو سره | او روان به شى | غرونه | په روانيدلو سره

په هغه ورځ چې اسمان به اوخوزيږى | او غرونه به دخپل ځائې نه روان شى

فَوَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ

پس تباهى ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونكو خلقو | هغه خلق | چې هغوئ | په فضول خبرو كښې

نو په دغه ورځ به د دروغ ګنړونكو دپاره هلاكت وى | څوک چې د(حق نه) انكار په لوبو كښې

يَّلْعَبُوْنَ ۝ يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ

لوبې كوى مشغوليږى | په كومه ورځ | چې به په ديكه بوتللې كيږى خلق | وور ددوزخ ته

فضول لوبې كوى | دابه هغه ورځ وى چې دوئ به په ديكو ديكو د جهنم اور ته ديكه كولې شى

دَعًّا ۝ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ۝

په ديكه كولو سره | دا وور دې | هغه | چې وئ تاسو | په دې سره | چې دروغ به مو ګنړلو

(اودا به ورته وئيلى شى) چې د اهغه دوزخ دې | چې تاسو به دروغ ګنړلو

[1] صحيح بخارى كتاب الحج باب طواف النساء مع الرجال : ۱۶۱۹، صحيح مسلم: ۱۲۷۶، ابوداود: ۱۸۸۲.

| اِصْلَوْهَا | لَا تُبْصِرُوْنَ ۞ | اَمْ اَنْتُمْ | هٰذَآ | اَفَسِحْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| سوزئ په دې كښې | چې څه درته په نظر نه راځي | يايئ تاسو | دا | آيا اوس جادو دې |
| اوس اوواتې، آيا دا هم جادو دې؟ كه نه ستاسو نظر نه لګي؟ نو دې «دوزخ» ته ورداخل شئ نو كه | | | | |

| اِنَّمَا تُجْزَوْنَ | سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ | اَوْلَا تَصْبِرُوْا | فَاصْبِرُوْٓا |
|---|---|---|---|
| بيشكه تاسو له بدله دركړې كيږي | يو شان دې دواړه په تاسو باندې | اوكه صبر نه كوئ | اوس كه صبر كوئ |
| په دې صبر كوئ اوكه بې صبري كوئ دواړه ستاسو دپاره برابر دي تاسو ته خو بس دهغې عملونو بدله | | | |

| تَعْمَلُوْنَ ۞ | كُنْتُمْ | مَا |
|---|---|---|
| چې كول به تاسو | چې وئ تاسو | دهغې |
| دركولې شي چې تاسو به كول | | |

**قوله تعالى:- اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۞**

**دالله عذاب برحق دې:-** الله جل شانه دخپل مخلوق دهغه څيزونو قسم خوري چه دهغه دعظيم قدرت نښې دی. فرمائي چه دهغه عذاب به وی.هركله دا عذاب راشي نو دهيچا مجال به نه وی چه دا لرې كړي.طورهغه غر ته وائي چه په هغې ونې وی. لكه هغه غر چه په هغې موسى ﷺ الله جل شانه سره كلام كړې وو.او د هغه ځائې نه نې عيسى ﷺ ليږلې وو.اوچه كوم خشك غر وی هغې ته جبل وائي،هغې ته طور نه وائي.

**﴿الْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ﴾ څه څيزدې؟:-** ﴿وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ﴾ نه مراد يا خو لوح محفوظ دې يا دالله جل شانه نازل شوی او ليكلې شوی كتابونه چه كوم انسان باندې وائي. په دې وجه نې دې سره اووئيل چه پرانيستې پانړو كښې.د ﴿وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ﴾ باره كښې دمعراج والا حديث مبارك دی چه نبی كريم ﷺ فرمائي چه د اووم آسمان نه مخكښې ماته بيت المعمور اوخودلې شو. چه په هغې كښې هره ورځ اويا زره فرښتې د الله جل شانه عبادت كوی. او په دويمه ورځ هم دومره. خو چه كومې نن لاړې نو د هغوئ نمبر به تر قيامته پورې نه رازی. (1) لكه څنګه چه په زمكه د كعبة الله طواف كيږی نوداشان د آسمان والو طواف او عبادت ځائې هغه دې. هم دې حديث مبارك كښې دی چه نبی كريم ﷺ په هغه وخت كښې ابراهيم ﷺ اوكتلو چه بيت المعمور ته ئې تكيه لګولې وه. په دې كښې يو باريكه نكته داده چه چونكه خليل الله باني دبيت الله وو، چه دهغه په لاسونو كعبة الله جوړ شوې وو نو په دې وجه خليل الله ﷺ نبی كريم ﷺ هلته هم كعبې سره په تكيه اوليدو. نو ددې عمل جزا هم هغه پروردګار خپل خليل ته وركړې وه. او بيت المعورم بالكل د بيت الله شريف دپاسه دې او دا اووم آسمان نه پورته دې. هسې په هر يو آسمان كښې داسې يو كور شته دې چه په هغې كښې دالله جل شانه فرښتې دهغه عبادت كوی. په ړومبی آسمان كښې چه داسې ځائې دهغې نوم بيت العزت دې. والله اعلم.

**دبيت المعمور ذكر:-** ابن ابی حاتم كښې يو حديث مبارك كښې دی چه نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چه په آسمان كښې يو كور دې چه هغې ته معمور وائي. چه هغه د كعبې په سمت كښې دې.څلورم آسمان كښې يو نهر دې چه دهغې نوم نهر حيوان دې. جبرئيل ﷺ هره ورځې په دې كښې غوپه وهي اودراتلو نه پس بدن څنډی او د دې نه اويا زره قطرې پيدا كيږی،يو يو قطرې نه د الله جل شانه يو فرښته

(1) صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم: ۳۲۰۷، صحيح مسلم : ۱۶٤.

پیداکوی. اوهغې ته حکم کیږي چه هغه دې بیت المعمور کښې مونځ ادا کړي او بیا دهغه خانې نه راوزي. او دا دوباره هغه خانې ته نشي تلئ. یودوی سردار وی اوهغې ته حکم کیږي چه دوی واخله او یو خانې کښې اودریږه. اوبیا هغه دالله جل شانه د تسبیح بیان کښې اخته شی. تر قیامته پورې ددې هم دا کار وی. دا حدیث مبارك ډیر غریب دې. ددې راوی روح بن جناح په دې کښې منفرد دې. د حافظانو یو جماعت په هغوئ ددې حدیث مبارك نه انکار کوی. لکه جوز جانی رحمه الله، عقیلی رحمه الله او حاکم رحمه الله وغیره. امام حاکم ابوعبدالله نیشاپوری دې ته بالکل صحیح وائی.

**بیت معمور باره کښې د علی رضی الله عنه قول:-** علی رضی الله عنه نه یوکس تپوس اوکړو چه بیت المعمور څه څیز دې؟ نو دوی رضی الله عنه اوفرمائیل چه آسمان کښې دې. دې ته صراح وائی. بالکل د کعبې دپاسه دې. لکه څنګه چه د زمکې کعبه د حرمت خانې دې. داشان هغه په آسمانونو کښې د حرمت خاې دې. په هغې کښې هره ورځ اویا زره فرښتې مونځ اداکوی. خو چه نن کومې لاړې نو تر قیامته پورې بیا دهغوئ نمبر نه راځی. خکه چه دفرښتو تعداد دومره زیات دې. یو روایت مبارك کښې دی چه دا تپوس کولو والا ابن کواء وو. عبدالله ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چه دې دعرش محاذات کښې دې. الخ. یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه هغوئ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اونیل چه الله او د هغه صلی الله علیه وسلم ته معلوم دی. وې فرمائیل چه هغه آسمانی کعبه ده. او د زمکې دکعبې بالکل دپاسه ده. داشان که هغه راپریوزی نو په دې به راپریوزی. په دې کښې هره ورځ اویا زره فرښتې مونځ اداکوی. او ددوی نمبر بیا تر قیامته پورې نه رازی. ضحاك رحمه الله فرمائی چه دا فرښتې د ابلیس دقبیلې جناتو نه دی. والله اعلم.(١)

د اوچت نه مراد آسمان دې (٢) لکه بل خانې کښې دی ﴿ وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوظًا ﴾، ربیع بن انس رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد عرش دې. خکه چه هغه د ټول مخلوق چت دې. ددې قول توجیه داشان کیدشی چه مراد عام دی.

**بحر مسجود کوم دریاب دې؟:-** ﴿وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ﴾ نه مراد هغه اوبه دی دعرش لاندې دی. اوهغه به لکه د باران وریږی او دقیامت په ورځ به هغې سره مړې دخپلو قبرونو نه راپاسی. جمهور وائی چه هم دا عام د ریاب مراد دې. دې ته مسجور په دې وجه ونیلې شوی دی چه دقیامت په ورځ به په دې اور لګولې شی. لکه بل خانې کښې ارشاد دې چه﴿ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴾ کله چه دریابونه ویران کړې شی او په دې کښې اور اولګولې شی او دا به خور شی او ټول اهل محشر والا به ګیر کړی. علاء بن بدر وائی چه دې ته ویران شوی دریاب په دې وجه اوونیلې شو چه نه ددې اوبه د څکلو په کار رازی او نه د اوبه خور دپاره. هم داحال د قیامت په ورځ د دریابونو دې. دا معنی هم کړې شوې ده چه روان دریابونه.

او داهم ونیلې شوی دی چه ډك دریابونه، چه روان وی. عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه مسجور نه مراد فارغ یعنی خالی دې. چه یو وینځه اوبو دپاره لاړه شی اوبیا واپس راشی او وائی چه حوض مسجور دې. نو ددې نه مراد هم دادی چه خالی دې. دا هم ونیلې شوی دی چه ددې معنی داده چه د زمکې نه منع کړې شو چه ډوب نشی.

د مسند احمد یو حدیث مبارك کښې دی چه هره شپه درې ځل دریاب دالله جل شانه نه اجازت غواړی که حکم چه دوی ډوب کړم. خو الله منع فرمائی. (٣)

دویم روایت کښې دی چه یو بزرګ مجاهد دسمندر سرلښکر کښې وو. هغه د جهاد تیاریٔ کښې وو.

(١) الطبری: ٤٥٦/٢٢،..
(٢) حاکم: ٤٦٨/٢،.
(٣) احمد: ٤٣/١،.

فرمانی چه یو شپه څه د چوکیدارنی دپاره اووتلم او په هغه شپه هېڅوك پهردار نه وو. څه کله میدان نه اورسیدم او ما اوکتل نو داسې معلوم شو چه ګنی سمندر د غرونو سرونوته رسیدلې دې، باربار همدا نظاره ما اوکتله.ما دا واقعه ابوصالح ﷺ ته بیان کړه نو هغوئ ماته به روایت دعمربن خطاب ؓ والا حدیث مبارك بیان کړو. خو ددې سند کښې یو راوی مبهم دې. اودهغه نوم نه دې اخستې شوې ددې قسمونو نه پس چه اوس دکوم څیز قسم خوری اوس دهغې بیان کیږی. کافروته چه کوم عذاب ورکونکې دې هغه یقینی طور راروان دې. هرکله چه هغه راشی نو دهیڅا بس کښې به نه وی چه هغه ایسار کړی. ابن ابی الدنیا کښې دی چه یو شپه عمرفاروق ؓ دښار د کتلو دپاره اووتلو نو یوکور نه دیو مسلمان د قرآن پاك د تلاوت آواز راغلو. هغه سورة والطور وئیلو. دوی ؓ سورلی اودروله او قرآن پاك نې واوریدو. هرکله چه دې آیت مبارك ته اورسیدو نو خولې مبارکې نه اووتل چه په رب د کعبه مې دې قسم وی چه دا رښتیا دی، بیا دخپل خر نه کوزشو او دیوال ته نې تکیه اولګوله او د تګ دم په کښې نه وو. تر ډیره پورې داشان ناست وو. هرکله چه ددوی هوش وحواس په ځائې شو نو بیاخپل کورته راغلل. خو دالله جل شانه دکلام ددې آیت مبارك د ویرې یوجه دزړه دکمزورئی نې دا حال وو چه یومیاشت پورې بیمار وو. اوخلق به ددوی پوښتنې ته راتلل او ورته معلوم نه وو چه څه بیماری نې ده؟

یو روایت کښې دی چه تلاوت کښې یو خل دا آیت مبارك راغلو نو په هغه وخت کښې ددوی خګلې بند شوې. اودومره نې په زړه اثر شو چه بیمارشو. نو تر شلو ورځو پورې ددوی عیادت کیدو. په هغه ورځ به آسمان اوخوزی، اوبه شلیږی،چورلیږی به،غرونه به د خپل ځائې نه اخوا شی،د ویرې ویرې نه به ټکرې ټکرې او ریزه ریزه شی ا و آخر به د مالوچو په شان والوزی، او ددوی به هډو نوم ورك شی. په هغه ورځ به هغه خلقو دپاره حسرت وی چه دا ورځ نې نه منله. دالله جل شانه عذاب،دفرښتو وهل،دجهنم اور به ددوی دپاره وی،او دوی ته به دجهنم داروغه اووائی چه داهغه جهنم دې چه دا تاسو نه منلو. بیا نور به غصه کښې اووائې چه اووائې څه جادو دې یا تاسو ړانده یئ؟ څئ ورشئ په دې کښې ډوب شئ،دابه تاسو د څلورو واړو طرفونو نه ګیر کړی،اوس که تاسو ته ددې عذاب یقین وی او که نه وی،که هانې هانې کونی او که خاموش اوسئ،هم په دې کښې به اوسئ،تاسوته به هیڅ ترکیب فائده نه درکوی. په هیڅ شان به تاسوته ددې نه نجات نه ملاویږی.دا دالله جل شانه ظلم نه دې بلکه ستاسو دعملونو بدله ده.

| إِنَّ الْمُتَّقِينَ | فِي جَنَّٰتٍ |
|---|---|
| بیشکه پرهیزګاران خلق به | په باغونو کښی |

بیشکه چې پرهیزګاران به د نعمتونو په باغونو کښې

| وَنَعِيمٍ | فَٰكِهِينَ | بِمَآ | ءَاتَىٰهُمْ | رَبُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او نعمتونو کښی وی | خوشحالیدونکی به وی | په هغې | چې ورکړی هغوئ ته | رب دهغوئ |

او سیری ... اوخپل رب چې ورته څه ورکړی وی په هغې به خوشحالی کونکی وی

| وَوَقَىٰهُمْ | رَبُّهُمْ | عَذَابَ الْجَحِيمِ | كُلُوا | وَاشْرَبُوا |
|---|---|---|---|---|
| او بچ به ساتی هغوئ | رب دهغوئ | دعذاب ددوزخ نه | خوریٔ | او څکئ |

اوخپل رب به نې ددوزخ د عذاب نه بچ اوساتی ، ورته به اووئیلې شی، چې ښه په مزه خورئ څښئ

| عَلٰى سُرُرٍ | مُتَّكِـِٕيْنَ | تَعْمَلُوْنَ ۞ | كُنْتُمْ | بِمَا | هَنِيْٓـًٔا |
|---|---|---|---|---|---|
| په تختونو باندې | دوی وهونکي به وي | چې کول به مو | چې وئ تاسو | په سبب دهغې | ښه دمزې سره |
| په برابر برابر غوړېدلو | دوی به ناست وي | چې تاسو به کول | په بدل کښې | کارونو | دهغې (نيکو) |

| عِيْنٍ ۞ | بِحُوْرٍ | وَزَوَّجْنٰهُمْ | مَّصْفُوْفَةٍ |
|---|---|---|---|
| غټې سترګې | حورې | او ورواده به کړو مونږه هغوئ ته | قطار کړې شوې باندې |
| تختونو باندې او مونږ به ورته د غټوغټو سترګو حورې واده کړو | | | |

**قوله تعالى:- اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّنَعِيْمٍ ۞**

**جنتيانو باندې نعمتونه:-** الله جل شانه دنيك بختو دانجام بيان کوي چه دوی به دهغه سزا او عذاب نه محفوظ وي چه کوم بدبختو باند به وي.دوی به محفوظ جنت ته داخل کړې شي. اودوی به هغه ځائې د بهترين نعمتونو نه فائده اوچتوي. او هر لحاظ سره به خوشحاله او آباد وي. قسم قسم خوراکونه او د څکلو نعمتونه،بهترين لباس،سورلئ،ا وچت مکانات،او هر رنګ نعمتونه به دوی ته دستياب وي. په دوی به هيڅ قسمه ويره نه وي. الله جل شانه فرمائيلي دی چه تاسو خما دعذابونو نه نجات ملاؤ شو. غرض تکليف نه لرې،آسانو کښې خوشحاله او راحتونو او لذتونو کښې به مخمور وي. چه کوم څيز دوی ته مخامخ رازی نوهغه به داسې وی چه نه به سترګو کتلې وی،نه به غوږونو آوريدلې وی،نه به يو زړه کښې دهغې خيال تير شوې وی،بيا دالله جل شانه دطرفنه دوی ته د ملمستيا په طور دوی ته ونيلې کيږی چه خورئ څکئ،خوشحاله اوسئ،خوش ذائقه، بې تکلفه،مزيدا ،مرغوب څيزونه ستاسو دپاره دستياب دی. بيا ددوی زړه خوشحالولو دپاره او ددوی حوصله زياتولو او طبيعت کښې امنګ پيدا کولو دپاره دې سره اعلان کوی چه ستاسو د اعمالو بدله ده چه کوم تاسو دنيا کښې کړی دی. مرصع او پيللې شوی تخت باندې ډير بې فکره او فارغ البالی تکيه لګولی ناست وی. اويا اويا کاله به تيرشی خو دوی ته به ضرورت نه پيښيږی چه دوی ا وخوزی يا پاسی. او ددوی خدمت دپاره بې شميره خادمان ولاړ وی، چه کوم څيز اوغواړی نو دسترګو رپ کښې به راشی، او ددوی مخې ته به د سترګو نور، دزړه سرور، وافر او موفور، ډيرې زياتې ښکلې سپينو سپينو پنډو والا،غټو غټو سترګو والا. ډيرې حورې به ولاړې وی، اودا به ډيرې په زړه پاکې، حيا نه ډکې،زړه خوشحالونکې،او خواهش پورا کوونکې، به دوی ته ولاړې وی. هر هر نعمت او رحمت او هر طرفته خواره شوی،بيا به دوی ته څه کمې وی؟! اويا کاله پس چه کله دوی بل طرفته مائل شی نو ګوری به چه هغه طرفته بل منظر دې. هر څيز نوې او هر نعمت ښه په جوبن کښې دې. يوطرفته چه په حورو نظر اچوی نو دهغوئ دسترګور نور به نې حيرانوی،دهغوئ ښکلې ښکلې صورتونه ا و ښکلې ښکلې پندنی، او پيغلتوب شرميلی نظرونه، اود څوانئ هغه ښائست به زړه لکه د مقناطيسی اثر کوی.

جنتی چه څه وائی نو ددې نه مخکښې به ورته دوی په خپل شرين کلام کښې عجب انداز سره وائی چه شکرډې چه ستا توجه ماته شوه. غرض داچه دا شان په هر غوښتونکی نعمت به مست وی. بيا به ددې جنتيانو دتختونو قطارونه داشان نه وی چه يو بل ته به نې شا وی بلکه ددوی به يو بل ته مخ وی لکه يو بل ځائې کښې دی چه [عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ ۞]په تختونو باندې به وی. او يو بل ته به مخامخ وی. بيا فرمائی چه مونږ دوی ته نکاح کښې حورې ورکړی دی چه هيڅکله به ددوی زړه نه خفه کوی. هر کله چه په دوی نظر واچوی نو خوشحاليږی به او ددوی د ظاهر ښائست لا څوك تعر يف کولې شی. ددوی د صفتونو احاديث آثاروغيره په ډيرو ځايونو کښې تير شوی دی. نو پدې وجه هغه دې ځائې کښې بيا

لیکل ضروري نه دي.

| وَالَّذِينَ آمَنُوا | وَاتَّبَعَتْهُمْ | ذُرِّيَّتُهُمْ | بِإِيمَانٍ | أَلْحَقْنَا بِهِمْ |
|---|---|---|---|---|

او هغه کسان چي ایمان ئي راوړو | او پیروي اوکړه دهغوئ | اولاد دهغوئ | په ایمان سره | نو یوځائي به کړو مونږ دهغوئ سره
او چا چي ایمان راوړي دي | او خپل اولاد ورسره په ایمان راوړو کښي ملګرتیا کړي ده | نو مونږ به په جنت کښي، د دوئ

| ذُرِّيَّتَهُمْ | وَمَا أَلَتْنَاهُمْ | مِنْ عَمَلِهِمْ | مِنْ شَيْءٍ | كُلُّ امْرِئٍ |
|---|---|---|---|---|

اولاد دهغوئ | او کم به نهٔ کړو مونږ هغوئ لره | دعمل دهغوئ نه | هیڅ خیز | هر سړي |
اولاد د دوئ سره یوځائي کړو | او مونږ به د دوئ په عملونو کښي هیڅ کمي او نه کړو | هر یو کس به

| بِمَا | كَسَبَ | رَهِينٌ | وَأَمْدَدْنَاهُمْ | بِفَاكِهَةٍ |
|---|---|---|---|---|

په هغه عمل سره | چي وي کړو | ګانړه دي | او امداد به اوکړو مونږ دهغوئ | په میوؤ سره |
په خپل عمل کښي ګیروی |............او مونږ به جنتیانو ته میوي

| وَلَحْمٍ | مِمَّا | يَشْتَهُونَ | يَتَنَازَعُونَ |
|---|---|---|---|

او په غوښه سره | دهغه قسمونو نه | چي غواړي ئي زړونه دهغوئ | دیوبل نه به اخلي هغوئ |
غوښه او څهٔ چي ئي زړه غواړي ورکوؤ |.............(دشرابو) په جامونو به یو بل

| فِيهَا | كَأْسًا | لَا لَغْوٌ | فِيهَا | وَلَا تَأْثِيمٌ |
|---|---|---|---|---|

په هغه جنت کښي | پیالئ دشرابو | چي نهٔ به وي خرابي خبري | په هغې کښي | او نهٔ نسبت دګناه یو بل ته
سره (دخوند دپاره) انګته اچوي | خو په هغې (شرابو) کښي به نه بکواس وي | او نه دګناه څه خبره

| وَيَطُوفُ | عَلَيْهِمْ | غِلْمَانٌ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|

او ګرزي به چاپیره | په هغوئ باندي | هلکان خادمان | چي خاص به وي دپاره دهغوئ |
او د دوئ نه ګیرچاپیره به د خدمت دپاره هلکان اوړي راوړي |

| كَأَنَّهُمْ | لُؤْلُؤٌ | مَكْنُونٌ | وَأَقْبَلَ |
|---|---|---|---|

داسي ښائیسته لکه چي وي به هغوئ | ملغلري | پټي ساتلي شوي | او مخ به کړي |
(په ښائست کښي به) لکه د پټو ساتلي شوؤ ملغلرو په شان وي | او یوبل ته به

| بَعْضُهُمْ | عَلَى بَعْضٍ | يَتَسَاءَلُونَ | قَالُوا |
|---|---|---|---|

ځیني دهغوئ (جنتیانو) نه | ځینو نورو ته | چي تپوس به کوي دیوبل نه | او به واني هغوئ |
مخامخ ناست وي | او خبري اترې به کوي |...........او دا به هم واني چي

| إِنَّا كُنَّا | قَبْلُ | فِي أَهْلِنَا | مُشْفِقِينَ | فَمَنَّ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|

بیشکه وؤ مونږه | مخکښي ددي نه | په تېر خپل کښي | یریدونکي | پس احسان اوکړو الله |
مونږ به پخوا په خپلو کورونو کښي ډیر ډیر ویریدو |..............نو الله ﷻ را باندي

| مِنْ قَبْلُ | إِنَّا كُنَّا | عَذَابَ السَّمُوْمِ ۝ | وَوَقٰىنَا | عَلَيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| مخکښې ددې نه | بیشکه وو مونږه | دعذاب دګرمې هوانه | او بچ ئې کړو مونږه | په مونږ باندې |
| بیشکه مونږ به د دې نه وړاندې | ............ | دعذاب نه بچ کړو | او مونږ ئې د دوزخ | ډیر احسان اوکړو |

| الرَّحِيْمُ ۝ | الْبَرُّ | إِنَّهُ هُوَ | نَدْعُوْهُ |
|---|---|---|---|
| رحم کونکې دې | احسان کونکې | بیشکه هغه | چې مونږ به دعا ګانې غوښتلې دهغه نه |
| بیشکه هغه ډیر احسان کونکې مهربان دې | | ............ | دالله ﷻ نه دعا ګانې غوښتلې |

**قوله تعالی:- وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيْمَانٍ**

**د اهل ایمان اولاد:-** الله جل شانه د خپل کرم او فضل بیان فرمائي چه دکومومومنانو د اولاد ایمانونه د خپل پلارنیکه په شان وی خو په نیکو عملونو کښې د هغوئ نه کم وی نو الله جل شانه به دا زیات کړی او ددوی د پلار نیکه عملونو برابر به ئې کړی چه په دې سره دمشرانو سترګې یخې شی او کشران هم هغوئ سره ښه خوشحاله وی. ددوی د عملونو زیاتوالئ به ددوی د بزرګانو د عملونو په کمی سره نه کیږی بلکه دا به د محسن رب په وجه د هغه د معمورو خزانونه وی. عبدالله ابن عباس ﷺ ددې آیت مبارك تفسیر کښې هم دا فرمائي. یو مرفوع حدیث مبارك هم دې مضمون کښې مروی دې. یو بل حدیث مبارك کښې دی چه کله جنتی جنت ته لاړشی او خپل پلار نیکه او بچې او نه وینی نو تپوس به کوی چه هغوئ چرته دی؟ جواب به ملاؤ شی چه هغوئ ستا مرتبې ته نه دی رسیدلی. دې به اووائی چه انې الله جل شانه ما دخو خپل خان دپاره او د دوی دپاره نیك عملونه کړی وو. نو حکم به اوشی او هغوئ به هم دې درجې ته راوستې شی ([1]). دا هم مروی دی چه د کومو جنتیانو اولاد ایمان قبول کړو او نیك عملونه ئې اوکړل نو هغه به هغوئ سره وی. او ددوی واړه بچی چه په وړوکوالی کښې وفات شوی وو هغه به هم دوی سره یو خائې کړې شی. عبدالله ابن عباس ﷺ، شعبی ﷫، سعید بن جبیر ﷫، ابراهیم ﷫، قتاده ﷫، ابوصالح ﷫، ربیع بن انس ﷫، ضحاك ابن زید ﷫ بن زید هم دا فرمائي. امام ابن جریر ﷫ هم دا خوښوی. مسند احمد کښې دی چه خدیجه ﷞ د حضور نبی کریم نه دخپلو دوؤ بچو متعلق تپوس اوکړو چه کوم د جاهلیت په زمانه کښې وفات شوی وو. نو حضور نبی کریم اوفرمائیل چه هغه دواړه جهنم کښې دی. بیا مور بی بی ډیره خفه شوه نو حضور نبی کریم اوفرمائیل که تا دهغوئ خائې کتلې وې نو ستا زړه کښې به دهغوئ نه نفرت پیدا شوې وو. بیا مور بی بی حضور نبی کریم نه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ا ستاسو نه چه خما کوم ما شوم شوې وو هغه کوم خائې کښې دې؟ نو حضور نبی کریم اوفرمائیل چه هغه جنت کښې دې. مومن سره د خپل اولاد جنت کښې دی او کافران سره دخپل اولاد جهنم کښې دی. بیا حضور نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو. ([2])دا خو شوه د مور پلار په وجه د اولاد بزرګی. اوس د اولاد د دعاء خیر په وجه د مور پلار بزرګی اوګورئي.

مسند احمد کښې حدیث مبارك دې چه حضور نبی کریم اوفرمائیل چه الله جل شانه د خپل بنده درجه اچانك په جنت کښې اوچتوی او دې تپوس کوی چه انې الله جل شانه ا دا دې څنګه خما درجه اوچته کړه؟ الله جل شانه ورته فرمائي چه ستا اولاد ستا دپاره استغفار اوکړو په دې وجه ما ستا درجه اوچته کړه([3]). ددې حدیث مبارك اسناد بالکل صحیح دی اګر چه بخاری او مسلم کښې دې الفاظو سره نه

[1]) طبرانی : ۱۲۲۴۸، .
[2]) احمد : ۱۳۴/۱ .
[3]) احمد : ۵۰۹/۲، ابن ماجه کتاب الادب باب برالوالدین : ۳۶۶۰. وسنده حسن.

دي راغلي. خو ددي په شان يو روايت په صحيح مسلم كښې مروى دى چه كله ابن ادم مړ شي نو دده اعمال موقوف شي خو درې عملونه داسې دي چه د مرګ نه پس هم جاري وي.(١) صدقه جاريه (٢) د دين علم (٣) نيك اولاد چه دمرګ نه پس مرد ګانو دپاره دعاء خير كوي. (١)

**دجنت نعمتونه:**-دې خائې كښې اوفرمائيلې شو چه د مومنانو د اولاد درجې بې عمل كولو زياتې شوې اودې سره سره ئې دخپل خپل فضل نه پس دعدل بيان هم اوكړو. لكه څنګه چه بل خائې كښې دى چه [كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ ۝]الخ. يعنى هر سړې په خپلو كړو كښې ګرفتار دې خو هغه نه دى چه چا ته اعمال نامې په ښى لاس وركړې شوى دى. هغوئ به جنت كښې ناست وى او ګناهنګارو نه به تپوس كوى. الخ.

بيا ارشاد فرمائى چه دې جنتيانو ته قسم قسم ميوې او رنګ په رنګ خوښې وركولې شي. چه كوم څيز ته ئې زړه اوشى اوكوم څيز ئې زړه ته نزدې شي نوزر به هغه موجود شي.دشراب طهور ښرنګيدلې جامونه به يو بل ته وركوى او ددې څكلو سره سره لطف او سرور او مزه حاصليږى. اودې سره هيڅ بيهودګى نه وى. اوتې باوتې نه وانى او نه به بيهوشه كيږى. ريښتونې سرور او پورا خوشحالى،اوتو بوتو نه پاك،ګناه نه غافله،باطل او كذب نه لرې،دغيبت او ګناه نه لرې. په دنيا كښې به مو د شرابيانو حالت كتلې وى چه ددوى په سر چكر رازى.خيټه كښې ئې درد وى،عقل ئې زائل شى، بكواس كوى، اوتې باوتې وانى،څهرې ئې بې رونقه وى. داشان شراب ئې هم بد ذائقه او بدبودار وى. بل طرفته د جنت شراب دداشان خبرو نه ډير پاك دى. داپه رنګ كښې سپين او څكلو كښې خوشذائقه دى. نه خو ددې څكلو سره حواس ختميږى او نه ا وتې باوتې وانى،نه ورسره په سر كښې درد وى. او نه په كښې څه ضرر وى. په خوشحالئ خوشحالئ به ددې پاكو شرابو جامونه يو بل ته وركوى. ددوى غلامان به نو عمر بچى وى چه په حسن كښې به داشان وى لكه چه ملغلرې ئې په ډبى كښې بند كړى وى او په دې دچا لاس نه وى لګيدلې او تازه تازه راوښكلې شوى وى. ددې د ښائست او رنګ به څه وانې؟ اوددې غلمانو ښكلې څهرې هم ددې نه شرميږى. يو بل خائې كښې دامضمون دې الفاظو سره راغلې دې چه[يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ۝]يعنى هميشه نوعمراووارہ بچى، آبخورې، كټورى، او داسې صفا شرابو جامونه چه ددې څكلو سره به نه د سردرد وى او نه به بيهوشى وى او چه كوم قسم ميوه دوى خوښوى،او د كوم مارغه غوښه دوى غواړى نو دوى به ئې ورته راوړى او دوى به څلور واړه طرفته لاس په نامه ولاړوى..

**قوله تعالى:-** وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ۝

**جنت كښې دجنتيانو يو بل سره خبرې اترې اوملاقات:-** ددې شرابو په وخت كښې به خپلو كښې ناست وى او خبرې اترې به كوى او وانى به چه مونږ په دنيا كښې خپلو كښې ناست وو نو د رب د نن ورځې د عذاب نه ډير ويريدو. الحمدلله رب په مونږ احسان اوكړو او خمونږ د ويرې د څيز نه ئې مونږ ته امن راكړو. هم دهغه رب نه مونږ دعاګانې او درخواستونه كول او هغه ذات خمونږ دعاګانې قبولې كړې. او خمونږ سوال ئې پورا كړو. او يقينى طور هغه ډير نيك سلوك او رحم والا دې.

مسند بزار كښې دى چه حضور نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه جنتى به خپلو ملګرو سره ملاويدل غواړى نو بل طرفته به دده د ملګرو زړونو كښې هم دا خواهش پيدا شي.دده تخت به والوزى او لار كښې به دواړه يوبل سره ملاقى شى. په خپلو خپلو تختونو به آرام سره ناست وى او خبرې به كوى. او د دنيا ذكر به كوى او وانى به چه په فلانئ ورځ مونږ دخپلې بخښنې دپاره دعا فلانى خائې كښې كړې وه او

---

[1] صحيح مسلم كتاب الوصية باب ما يلحق الانسان من الثواب بعدوفاته: ١٦٣١.

الله جل شانه هغه قبوله كړه. (١) ددې حديث مبارك سند كمزوري دې.

**فائده** :- عائشه رضي الله عنها چه كله ددې آيت مبارك تلاوت اوكړونو دادعا نې اوفرمائيله چه اللهم من علينا وقنا عذاب السموم انك انت البر الرحيم. اعمش راوى دحديث نه تپوس اوشو چه ددې آيت مبارك تلاوت كولو نه پس عائشه رضي الله عنها مونځ كښې دا دعا كړې وه؟ نو جواب كښې نې اوفرمائيل چه آو (٢)

فَذَكِّرْ فَمَآ أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ ﴿٢٩﴾

پس نصيحت كوه | پس نه ئې ته | په نعمت درب خپل سره | فالګر (جوګی) | او نه ليونې |

نو (اې نبي ﷺ) ته نصيحت كوه | ته دخپل په فضل سره نه خو كاهن يې | او نه ليونې يې

أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴿٣٠﴾

يا وائي دوئ | چې دې شاعر دې | انتظار كوؤ مونږه | په حق دده كښې | د ګردش د زمانې |

ايا دوئ دا وائي چې دې شاعر دې | او مونږ په ده باندې د زمانې دحادثاتو انتظار كوؤ

قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴿٣١﴾

ورته اووايه | تاسو انتظار كوئ | پس بيشكه زه | ستاسو سره | دانتظار كونكو نه يم |

ته ورته اووايه | چې تاسو (زما د هلاكت) انتظار كوئ | اوزه هم (ستاسو د هلاكت) انتظار كونكې يم

أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿٣٢﴾ أَمْ يَقُولُونَ

ايا حكم كوي دوئ ته | عقلونه ددوئ | په دې كار | يا دوئ | يوقوم دې سركشه | ياوائي دوئ

ايا ددوئ عقلونه بس دوئ ته دا ښائي اوكه دا خلق سركشه دي؟ |..........ايا دوئ وائي

تَقَوَّلَهُ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٣﴾ فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ

دخانه جوړ كړې دې ده دا قران | بلكه دوئ ايمان نه راوړي | پس رادې وړي دوئ | يو كلام |

چې ده (قران) دخان نه جوړ كړې دې | داسې نه ده بلكه دوئ ايمان نه راوړي | دوی دې هم

مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴿٣٤﴾ أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ

په مثل ددې | كه وي دوئ | رښتينې | يا پيدا كړې شوي دي دوئ | بغير ديو څيز (خالق) نه |

د دې پشان كلام (جوړ كړی او) هغه دې راوړي | كه دوئ رښتوني وي | ايا دوئ د پيدا كونكې نه بغير

أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ ﴿٣٥﴾ أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ

يا دوئ پيدا كونكې دي دخپل خان پخپله | يا پيدا كړي دي دوئ اسمانونه | او زمكه |

پخپله پيدا شوي دي | اوكه دوئ پخپله دخانونو پيدا كونكې دي | ايا دا اسمانونه او زمكه دوئ پيدا كړې دي؟

بَل لَّا يُوقِنُونَ ﴿٣٦﴾ أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ ﴿٣٧﴾

بلكه يقين نه لري دوئ | يا ددوئ سره دي | خزانې | درب ستا | يا دوئ واكداران دي |

بلكه دوئ يقين نه كوي | ايا دوئ سره ستا د رب خزانې دي | اوكه دوئ واكداران دي

---

(١) مسند البزار : ٢٥٥٣،

(٢) ابن ابي حاتم : ٢٥٦/١٢.

أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ ۚ فَلْيَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ

یا شته دوئ لره | اندر پایه | چی اوریدل کوی | په هغې باندې | پس رادوړی | اوریدونکې ددوئ |

یا دوئ سره داسې اندرپایه ده|چې په هغې (بره خیژی) او خبرې اوری| (که داسې وی) نوچاچې اوریدل کړی وی

بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝ أَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ۝ أَمْ تَسْئَلُهُمْ أَجْرًا

یو دلیل ښکاره | یا الله لره | لونړه دی | او تاسو لره خامن دی | یا ته غواړې ددوئ نه | څه اجر

هغه دې ښکاره دلیل پیش کړی| (دوئ نه تپوس اوکره) آیادالله ﷻ لونړه دی | او ستاسو خامن | او که ته د دوئ نه

فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ۝ أَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ

چې ګنی دوئ | دتاوان نه | درانه کړې شوی دی | یا ددوئ سره | غیب دی | چې دوئ

څه بدله غواړې | نو دوی د تاوان په درانه شوی دی؟ | آیا دوئ سره دغیبو څه علم شته

يَكْتُبُوْنَ ۝ أَمْ يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا ۖ فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

لیکلی کوی (دهغې نه) | یا غواړی دوئ | مکر (چل) | پس هغه کسان | چی کافران دی |

چې دوئ هغه لیکی| او که دوئ(تاته) چل جوړ کړې دې | (خو دوی ستا څه نشی کولې)بلکه کافران به پخپل

هُمُ الْمَكِيْدُوْنَ ۝ أَمْ لَهُمْ إِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ ۚ سُبْحٰنَ اللّٰهِ

هغوئ به راګیرېږی په چل خپل کښې | یا دوئ لره | معبود دې | بغیر دالله نه | پاکی ده الله لره |

چل کښې پخپله راګیر شی| آیا دالله ﷻ نه سوا ددوئ بل څوک معبود شته؟ | الله ﷻ ددوئ

عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝

دهغې نه | چې دوئ ئې شریکوی دهغه سره |

دجوړکړو شریکانو نه پاک دې |

قوله‌تعالی:- أَمْ يَقُوْلُوْنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ الْمَنُوْنِ ۝

**کافرانو به پیغمبر ﷺ ته شاعر وئیلو** :الله جل شانه خپل نبی ﷺ ته حکم کوی چه د الله جل شانه رسالت بندګانوته رسوه،اوتاسو باندې چه بدکارو کوم بهتان لګولې دې دې سره هغه هم صفا کوی. کاهن هغه ته وائی چه هغه ته کله کله څه خبر جنات رسوی.

فائده - نو ارشاد اوشو چه د الله جل شانه ددین تبلیغ کوه.الحمد لله نه خوتاسو جنات والا یئ او نه جنون والا.بیا دکافرانوقول نقل کوی او وائی چه دوی وائی چه حضور نبی کریم ﷺ یو شاعر دې. دوی دې وائی،ددې د انتقال نه پس به ددوی په شان څوك وائی؟ددوی دا دین به دوی سره فنا شی. بیا خپل نبی ﷺ ته ددې جواب ورکوی او فرمائی چه ښه ده ته هلته انتظار کوه او دلته څه هم منتظر یم. د دنیا انجام به اوګوری چه ددنیا او آخرت نفرت او غلبه چه دچا وی؟ دارالندوة کښې د قریشو مشوره اوشوه چه محمد ﷺ هم د نورو شاعرانو په شان یو شاعر دې دې قید کړنی او دې به هم هلته هلاك شی. لکه څنګه چه د زهیر اونابغه حشر اوشو. نو دې باندې دا آیتونه نازل شو[1].

بیا فرمائی چه ددوی عقل دوی ته دا ښائی چه د پوهیدو نه باوجود بیا هم ستاسو باره کښې افواګانې

[1] الطبری : ۲۲/٤۷۹.

خوروی او بهتان لګوی. حقیقت دادې چه دا ډیر سرکش او عناد والا خلق دی. دښمنی کښې واقعات هیرکړی او مفتو کښې تاسو ته بد وائي. آیا دوی دا وائی چه دا قران پاك تاسو پخپله جوړ کړې دې؟ فی الواقع داسې خو نه دی خو ددوی کفر ددوی د خلو نه داسې غلط دروغ راوباسی. که دوی رښتونی وی نو دوی دې پخپله داسې یو خبره جوړه کړی اودا قریش لا څه کوې که دوی سره په مخ دزمکې جنات او انسانان یو خائې شی نو بیا به هم ددې قران پاك د یو نظیر پیش کولو نه عاجز شی. او پوره قرآن پاك خو ډیر لوئې خیز دې. ددې پشان لس سورتونه بلکه یو سورت هم تر قیامته پورې نه شی جوړولې؟

**قوله تعالى:- أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ**

**دتوحید الوهیت اوربوبیت دلائل** :-د توحید الوهیت او توحید ربوبیت ثبوت ورکولې شی.او فرمائی چه دوی بغیرد موجد نه موجود شو څه؟ یا دوی په خپله موجد دی؟ اصل کښې دواړه خبرې نه دی بلکه ددوی خالق الله جل شانه دې. دوی هیڅ نه وو الله جل شانه دوی پیدا کړل. جبیر مطعم ﷛ فرمائی چه حضور نبی کریم ﷺ د ماښام مونځ کښې د سورة طور تلاوت کولو اوما ورته غوږ اېښودې وو آوریدو مې،اوکله چه حضور نبی کریم ﷺ «الْمُصَيْطِرُونَ» ته اورسیدو نو څما حالت داسې شو چه زړه مې ډوب شو( بخاری )[1]. بدری قیدیانو کښې دا جبیر ﷛ هم راغلې وو. دادهغه وخت واقعه ده چه کله دې کافر وو. د قرآن پاك ددې آیت آوریدل دهغه دپاره د اسلام ذریعه جوړه شوه. بیا فرمائی چه آیا د آسمان او زمکې پیدا کولو والا دوی دی؟ دا هم نه دی بلکه د ټول مخلوقاتو او پخپله ددوی پیدا کولو والا صرف الله جل شانه دې. اوبیاهم دوی د خپلې بې یقینئ نه نه منع کیږی. بیا فرمائی چه صرف په دنیا کښې ددوی تصرف دې څه؟ او ولې دوی د هر څیز د خزانو مالکان دی څه؟ او یا د مخلوق محاسبان دی څه؟ حقیقت کښې داسې نه دی بلکه مالك او متصرف صرف الله جل شانه دې. هغه ذات قادر دې چه څه غواړی نو هغه کوی. بیا فرمائی چه آیا دوی سره اوچت آسمان ته دختلو څه ذ پوړئی دوی سره شته دې؟ که داسې وی نو دوی کښې دې یو هلته اورسی او د آسمانی کلام آوریدو نه پس دې ددې دلیل پیش کړی. او نه خو دوی پیش کولې شی او نه دوی د حقانیت پابند دی. دا هم د دوی ډیره لویه غلطی ده چه دوی وائی چه فرښتې دالله جل شانه لونړه دی (نعوذبالله). او دا څومره د مزې خبره دې چه خپل ځان دپاره خو لونړه نه خوښوی او دالله جل شانه دپاره دا ثابتوی. چه کله دوی ته معلوم شی چه د دوی لورپیدا شوې ده نو ددوی څهرې دغم په وجه تکې تورې شی. او دالله جل شانه مقربو فرښتو ته دالله جل شانه لونړه وائی. صرف دومره نه بلکه ددوی عبادت هم کوی. نو ډیرې زورنې سره وائی چه آیا دالله جل شانه لونړه دی او ستاسو خامن؟ بیا فرمائی چه ته په خپل تبلیغ که ددوی نه څه معاوضه اخلې نو دا په دوی ډیره ګرانه پریوزی. یعنی دالله جل شانه نبی ﷺ د الله جل شانه ددین په خورولو چا نه څه نه اخلی نو بیا دا په دوی ولې ګران پریوزی؟ آیا دا خلق دغیب خبر لرونکی دی څه؟ نه بلکه په زمکه او آسمانونو کښې د غیبو خبرې هیچاته معلوم نه دی. آیا دا خلق دالله جل شانه دین او درسول الله ﷺ باره کښې بکواس کوی او پخپله ﷺ ته او مومنانو او عامو خلقو ته دهوکه ورکول غواړی؟ یاد ساتئ چه هم دا دهوکې باز به دهوکه کښې رسول وی او آخرت کښې به وبال په دوی وی. بیا فرمائی چه د الله جل شانه نه سوا ددوی نور معبودان شته دې؟ دالله جل شانه عبادت کښې دوی بتان او نورو لره ولې شریکوی. الله جل شانه خو شرکت نه مبراء دې او دشرك نه پاك دې او دمشرکانو ددې فعل نه سخت بې زاره دې.

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الطور : ۴۸۵۴، صحیح مسلم : ۴۶۳.

وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ

| اوکه اووینی دوئ | یوه ټوټه | داسمان نه |

| اوکه چرې دوئ د آسمان یوه ټوټه راپریوتونکې اووینی

سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿٤٤﴾ فَذَرْهُمْ حَتّٰى

راپریوتونکې | نو اوبه وائی دوئ | چې دا وریځ ده | کوره | پس پریږده دوئ | تر هغې پورې |

نو هغه وخت به هم وائی | چې دا خو قط په قط جوړه وریځ ده | نو دوئ ترهغې وخته پورې پریږده چې

يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿٤٥﴾

چې ملاقات اوکړی دوئ | دورځې خپلې سره | هغه ورځ | چې په هغې کښې به | دوئ په تندر وهلې کیږی

هغه ورځ ورباندې راشی | په کومه کښې چې به ددوئ هوش په تندر اولګی |

يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا وَّلَا

هغه ورځ | چې نه به دفع کوی | دهغوئ نه | تدبیردهغوئ | هیڅ څیز | اونه به دهغوئ سره

هغه ورځ چې ددوئ ټول تدبیرونه به هیڅ په کار نه رانشی | اونه به ورسره (دچرته نه)

هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ

امداد کیدې شی | او بیشکه هغه کسانولره | چې ظلم نې اوکړو | عذاب دې | مخکښې دراتلو ددې وخت نه

مدداوشی | ..........اوپه ظالمانو خو ددغې ورځې نه وړاندې یو عذاب راتلونکې دې

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ

لیکن | زیات ددوئ نه | نه پوهیږی | او صبر کوه | حکم درب خپل ته |

خو په دوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | ..............او ته دخپل رب حکم ته انتظار کوه

فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ﴿٤٨﴾

بیشکه ته | په نظر زمونږ کښې نې | او تسبیح وایه | دحمد درب خپل سره | څه وخت چې پاسې ته

خکه چې ته زمونږ په نظر کښې یې | اودخپل رب حمد اوتسبیح وایه | څه وخت چې ته پاځې

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿٤٩﴾

اودشپې په بعضې حصه کښې | پس تسبیح وایه دهغه | او روستو دستورو نه (یعني دسحر دمونځ نه)

اود شپې په څه حصه کښې دهغه تسبیح وایه | اوستورو (ډوبیدو) نه پس هم

**قوله تعالی:- وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا** دمشرکانو او کافرانو دعناد بیان دې چه دوی په خپل سرکشئ او ضد کښې دومره **دمشرکانو دعناد ذکر.** دحد نه تیر شوی دی چه دالله جل شانه دعذاب محسوسولو نه پس هم دوی ته به دایمان توفیق نه وی. که دوی اوګوری چه دآسمان نه د عذاب یو ټکړا راپریوزی نو بیا به هم دوی تصدیق او یقین او نه کړی. بلکه صفا به اووائی چه دا غلیظه وریځ ده چه اوبو ورورلو دپاره خوره شوه. لکه چه بل ځائې کښې فرمانی چه ﴿وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ﴾ الخ :یعنی که مونږ دوی دپاره د آسمان یو دروازه پرانیزو او دوی هلته اوخیژی نو بیا به هم دوی وائی چه خمونږ سترګې تړلې شوی دی بلکه مونږ باندې جادو

اوکړي شو. یعنی دوی چه کوم معجزات طلب کوی که ددوی د غوښتنې مطابق دوی ته اوخودلې شی بلکه دوی دې پخپله آسمان نه اوخیژولې شی،نو بیا به هم دوی څه خبره جوړه کړی او ایمان به راونړی.
اې نبی ﷺ ! تاسو دوی پریږدئی دوی ته به د قیامت په ورځ معلوم شی او ددوی ټولې ریا کارئی او فریبونه ابنبودې شوی دې او هلته هیڅ مکر او فریب کار نه کوی. نیغ به څی او چالاکی به ترې هیره شی. نن چه دوی چاچاته آوازونه کوی او هغوئ ته خپل مددګار وائی نو په هغه ورځ به دوی زیړه خوله پاتې شی او هیڅوك به ددوی د مددکولو دپاره نه وی. بلکه ددوی د طرفنه به څه عذر هم پیش کولې شی. صرف دا نه ده چه دوی ته به دقیامت په ورځ عذاب وی اودلته به دوی ښه په آرام سره وخت تیرکړی بلکه ددې ناانصافو دپاره په دنیا کښې هم عذاب تیار دې. لکه څنګه چه بل ځائې کښې فرمائی چه﴿ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ یعنی مونږ دوی ته د آخرت دعذاب نه علاوه په دنیا کښې هم د عذاب مزه ښایو چه دوی رجوع اوکړی. خو په دوی کښې اکثر بې علمه دی.
دوی ته معلوم نه دی چه په دنیاوی مصیبتونو کښې به اخته شو. او دالله جل شانه نافرمانئی به دوی ته معلوم شی. هم دا بې علمی ده چه دوی په دې خبره آماده کوی چه ګناه دپاسه ګناه،ظلم دپاسه ظلم کوی. کله چه دوی اونیولې شی نو دوی عبرت حاصل کړی او کله چه عذاب لرې شی نو بیا دوی هم هغه شان سخت زړه والا بدکاره شی. بعضو احادیثو کښې دی چه دمنافق مثال داوښ په شان دې،لکه څنګه چه اوښ ته معلوم نه وی چه دې ولې اوتړلې شو او ولې پرانستې شو؟[1] نوداشان منافق ته هم معلوم نه وی چه دې ولې بیمار کړې شو او ولې روغ کړې شو؟ اثر الهی کښې دی چه څه به څومره ستا نافرمانئ کوم او ته به ترکومې ماته سزا راکوې؟ الله جل شانه فرمائی چه اې بنده ماته څومره خل او بخښلې خوتاته علم نشته دې. بیا فرمائی چه اې نبی ﷺ ! تاسو صبر اوکړئی او ددوی په تکلیف رسولو مه خفه کیږئی،او ددوی د طرفنه هیڅ خطره نشته دې تاسو ته. واورئی تاسو خمونږ حفاظت کښې یئ: تاسو خمونږ د نظر لاندې یئ: ستاسو حفاظت خمونږ ذمه داری ده. دټولو دښمنانو نه بچ کول خمونږ په حواله دی.

**قوله تعالیٰ:- وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ**

**دالله جل شانه تسبیح او د حِينَ تَقُومُ ۙ مطلب :-** بیا حکم کیږی چه کله تاسو پاسئ:نو دالله جل شانه پاکی او تسبیح بیان کړئی. ددې یو مطلب دا دې چه کله مونځ دپاره اودریږې. دویم مطلب دا بیان شوې دې چه کله ته دشپې پاسې. دواړه مطلبونه درست دی. یو حدیث مبارك کښې دی چه دمونځ شروع کښې به حضور نبی کریم ﷺ فرمائیل چه (سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالىٰ جدك ولااله غيرك ) (صحیح مسلم ).[2]
یعنی اې الله جل شانه ته پاك ئې،دټولو تعریفونو مستحق ته ئې. ستا نوم برکتونو والا دې. ستا بزرګی بلند وبالا ده. ستا نه سوا معبود برحق هیڅوك نشته دې.
مسنداحمداوسنن کښې هم دحضور نبی کریم ﷺ نه داوینا مروی ده[3] مسنداحمد کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم سړې د شپې پاسی او اووائی چه (لااله الاالله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر ولا حول ولا قوة الا بالله) بیا که خپل خان دپاره بخښنه غواړی اوکه څه غواړی هغه طلب کړی نوالله جل شانه دهغه دعا قبلوی،بیا که ده پخه اراده اوکړه او

[1]) ابوداود کتاب الجنائز باب الامراض المکفر للذنوب : ۳۰۸۹، .
[2])صحیح مسلم کتاب الصلوة باب حجة من قال لا یجهر بالبسملة: ۳۹۹، موقوفا.
[3])ابوداود کتاب الصلوة باب من رای الاستفتاح بسبحانک اللهم وبحمدک : ۷۷۵، وهو حدیث حسن ، ترمذی : ۲۴۳، نسائی: ۹۰۰، ابن ماجه: ۸۰۶، احمد: ۵۰/۳، مسند ابی یعلی : ۳۷۲۵.

اودس ني اوکړو او مونځ ني اداکړو نوهغه مونځ قبليږي. داحديث سنن او بخاري کښې مروی دی[1].
مجاهد رحمه الله فرمائي چه دالله جل شانه د تسبيح کولو حکم دهر مجلس نه د پاسيدو په وخت کښې دی
د ابوالاحوص قول هم دادې چه کله د يو مجلس نه پاسې نو دا وائي چه (سبحانك اللهم وبحمدك). عطاء ابن
ابورباح رحمه الله هم دا فرمائي. او فرمائي که په مجلس کښې نيکې شوې وي نو هغه نوره هم زياتيږي.
اوکه څه نور شوی وی نو دا کلمه دهغې کفاره جوړيږي. جامع عبدالرزاق کښې دی چه جبرئيل عليه السلام
حضور نبی کريم ﷺ ته تعليم ورکړو چه کله يو مجلس نه پاسې نو ( سبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا
انت استغفرك واتوب اليك ) وايه، ددې راوی معمر رضی الله عنه فرمائي چه ما داهم اوريدلی دی چه داقول ددې
مجلس کفاره جوړيږی ([2]). داحديث مبارك خومرسل دې خومسند احاديث هم دې باره کښې ډير مروی
دی. اودهغې سندونه يو بل ته تقويت ورکوی. يو کښې دی چه کوم يو مجلس کښې ناست وی او هلته
څه بکواس اوکړې او د پاسيدو نه مخکښې دا کلمات اووائي نو دې مجلس کښې چه څه شوی دی دا
کلمات دهغې کفاره جوړيږی ([3])(ترمذی ) دې حديث مبارك ته امام ترمذی رحمه الله حسن ونيلی دی.
امام حاکم رحمه الله مستدرك کښې روايت کوی او فرمائي چه ددې سند شرط مسلم دې. خو امام بخاری
رحمه الله په دې کښې علت راوښکلې دی. څه وايم چه امام احمد رحمه الله ،امام مسلم رحمه الله ،امام ابوحاتم رحمه الله
،امام ابوزرعه رحمه الله ،امام دارقطنی رحمه الله وغيره هم دې ته معلول ونيلی دی. او د وهم نسبت ني امام ابن
جريج رحمه الله طرفته کړې دې. خو دا روايت چه ابوداود کښې کوم سند سره مروی دې،هغې کښې ابن
جريج رحمه الله نشته دې ([4]). او يو حديث مبارك کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ خپل آخری عمر مبارك
کښې چه به کوم مجلس نه پاسيدو نو دا کلمات به ني وئيل. بلکه يو سړی تپوس اوکړو چه يارسول الله
ﷺ! تاسو خو ددې نه مخکښې داسې نه وئيل. حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په مجلس کښې څه
اوشي دادا کلمات دهغې کفاره وی ([5]) دا روايت مرسل سند سره هم ابوالعاليه رحمه الله نه مروی دې،والله
اعلم،نسائي وغيره.
عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائي چه داکلمات داسې دی چه که د يو مجلس نه د پاسيدو په وخت کښې درې
خل اوونيلې شي نو دهغه دپاره داکفاره جوړيږی. مجلس خير او مجلس ذکر کښې ددې ونيل د مهر
مثل په شان دی.(اوداود وغيره ). ([6])
**فائده** :- الحمد لله ما يو جدا جز کښې هغه ټول احاديث او دهغې الفاظ اودهغې سندونه جمع کړی دی
او دهغې علتونه مې هم بيان کړی دی او ددې متعلق چه څه وو هغه مې ليکلی دی. بيا ارشاد دې چه
د شپې په وخت کښې دهغه عبادت ،تلاوت اومونځ سره کونی.لکه فرمان دې چه (وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ) الخ.
د شپې په وخت کښې تهجد کونی دا ستاسو دپاره نفل دی. ممکن ستارب تاته مقام محمود درکړی.
دستورو د ډوبيدو وخت نه مراد دسحر فرض مونځ نه مخکښې دوه رکعته کول دی. اودا د ستورو د
ډوبيدو دپاره د ډوبيدو په وخت کښې کولې شي. يو مرفوع حديث مبارك کښې دی چه تاسو دا سنت

[1]) صحيح بخاری کتاب التهجد باب من تعا من الليل فصلى: ۱۱۵٤. ابوداود : ۵۰٦، ترمذی : ۳٤۱٤. السنن الکبری للنسائي : ۱۰٦۹۸.
ابن ماجه: ۳۸۷۸. احمد: ۳۱۳/۵.
[2]) مصنف عبالرزاق : ۱۹۷۹٦..
[3]) ترمذی کتاب الدعوات باب مايقول اذا قام من مجلسه: ۳٤۳۳، وهو صحيح ابن حبان : ۱۵۹٤، حاکم: ۷۲۰/۱.
[4]) ابوداود کتاب الادب باب فی کفارة المجلس: ٤۸۵۸، وهو صحيح .
[5]) ابوداود کتاب الادب باب فی کفارة المجلس: ٤۸۵۹، وسنده حسن.
[6]) ابوداود کتاب الادب باب فی کفارة المجلس: ٤۸۵۷، وهو صحيح .

مه پريږدئي اګر چه اسونه تاسو لره چخترا کړی (١). په دې حديث مبارك دنظر اچولو نه پس د امام احمد رحمه الله بعضي اصحاب خو دې ته واجب واني. خوداصحيح نه دی خکه چه حديث مبارك کښې دی چه په شپه ورځ کښې پنځه مونځونه فرض دی. آوريدونکي اوونيل چه ددې نه سوا نور څه هم شته دې؟ نو حضور نبی کريم اوفرمائيل چه نه،مګر دا چه نفلونه ادا کړی (٢). بخاري اومسلم کښې عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه حضور نبی کريم ﷺ به نوافلو کښې د هيڅ يو نفل باره کښې دسحر د سنتو نه زيات پابندئي سره او نګرانئ سره نه کول (٣). صحيح مسلم کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ فرمائي چه د سحر دفرضو نه مخکښې دا دوه سنت د ټولې دنيا نه او دې کښې چه څه دی دهغې نه بهتر دی (٤).

(الحمد لله د سورة طور تفسير پوره شو).

.................

## دسورة نجم تفسير چه دا مکی سورت دې

**دسورت تعارف:-** صحيح بخاری شريف کښې عبدالله رضي الله عنه نه مروی دی چه د ټولو نه مخکښې سورة چه په دغې کښې سجده وه،سورة والنجم نازل شويدې. او حضور نبی کريم ﷺ پسې چه څومره روستو ولاړ وو هغه ټولو سجده اوکړه. خوما يو سړې اوليدو چه هغه خپل موټی کښې بناوره واخسته او په هغې نې سجده اوکړه. اوبيا ما اوکتل چه هغه دکفر په حالت کښې اووژلې شو. دا اميه بن حلف وو (٥). خو په دې کښې يو اشکال دې،هغه دا چه دويم روايت کښې دی چه دا عتبه بن ربيعه وو.

| ايا تونه | سورة النجم مكية وهي اثنتان وستون اية وثلاث ركوعات | | | رکوع کاني |
|---|---|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | | |
| ٦٢ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | | ٣ |
| وَالنَّجْمِ | اِذَا هَوٰى① | مَا ضَلَّ | صَاحِبُكُمْ | |
| قسم دې په ستوري | کله چي ډوب شي | نه دی بې لاري شوی | ملګري ستاسو | |
| قسم دې په ستوري څه وخت چي ډوبيږي | چي ستاسو ملګري (پيغمبر) نه بې لارې شوی دې اونه | | | |
| وَمَا غَوٰى② | وَمَا يَنْطِقُ | عَنِ الْهَوٰى③ | اِنْ هُوَ | اِلَّا وَحْيٌ |
| اونه په غلطه لار روان دې | اونه خبری کوی | دخواهش نه | نه دی دا قران | مګر وحی ده |
| په غلطه ګمراه شوی دې | او هغه دخپل خان نه خبرې نه جوړوی | د هغه خوهره خبره يو وحی ده | | |
| يُّوْحٰى④ | | | | |
| چي ليږلې کيږي هغه ته | | | | |
| چي هغه نه کولې شی | | | | |

(١) ابوداود كتاب التطوع باب ل تخفيفهما : ١٢٥٨، وسنده ضعيف احمد: ٤٠٥/٢، شرح معاني الاثار : ٢٩٩/١.
(٢) صحيح بخاری كتاب الشهادات باب كيف يستحلف : ٢٦٧٨، صحيح مسلم : ١١، ابوداود : ٣٩١، السنن الكبرى للنسائي : ١١٧٥٩
(٣) صحيح بخاری كتاب التهجد باب تعاهد ركعتي الفجر ومن سماها تطوعا : ١١٥٩. صحيح مسلم: ٧٢٤.
(٤) صحيح مسلم حواله سابق . : ٧٢٥.
(٥) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة النجم باب(فاسجدوا لله واعبدوا) : ٤٨٦٣،صحيح مسلم: ٥٧٦، ابوداود : ١٤٠٦. احمد: ٣٨٨/١.

**قوله تعالى:- وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى**

**دستورو قسم:-** شعبي رحمه الله فرمائي چه خالق په خپل مخلوق چه د څه قسم غواړي نو کوي خو مخلوق سوا دخپل خالق نه د هيچا قسم نه شي کولې. (ابن ابي حاتم). دستورو د ډوبيدو نه مراد د فجر وخت د ثريا ستوري ډوبيدل دي. بعضې وائي چه ددې نه مراد دزهره نومې ستوري دې. ضحاك رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد شيطان طرفته ويشتل دي. ددې قول ښه توجيه كيدېشي. مجاهد رحمه الله فرمائي چه ددې جملې تفسير دادې چه قسم دې په قران پاك،چه كله دا نازل شي. ددې پشان يو آيت مبارك [فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُومِ] الخ دې. بيا چه په څه خبره قسم خوړلې دې دهغې بيان دې چه حضور نبي كريم ﷺ نيكۍ اورشدو هدايت والا او تابع د حق دې. هغه بې علمۍ سره څه په غلطه لار يا د علم نه باوجود په غلطه لار نه دې. د ګمراه نصرانيانواو د حق خلاف يهودو پشان نه حضور نبي كريم ﷺ نه دې. د حضور نبي كريم ﷺ عمل كامل،د حضور نبي كريم ﷺ عمل كامل دعلم مطابق،د حضور نبي كريم ﷺ لار نيغه،حضور نبي كريم ﷺ دعظيم الشان شريعت شارع،حضور نبي كريم ﷺ د اعتدال او حق په لار قائم،د حضور نبي كريم ﷺ هيڅ يو قول،هيڅ يو فرمان د خپل خواهش اوذاتي غرض سره نه دې بلكه حضور نبي كريم ﷺ چه د كوم څيز تبليغ كوي نو حضور نبي كريم ﷺ ته دالله جل شانه حكم كيږي. او حضور نبي كريم ﷺ هغه په خوله راوړي. چه څه حضور نبي كريم ﷺ ته دهغه پورته ځاې نه اوښيلې شي هغه د حضور نبي كريم ﷺ په ژبه مباركه جاري وي. د حضور نبي كريم ﷺ كلام د كمۍ بيشۍ او نقصان نه پاك دې.

**قوله تعالى:- وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى**

**حديث پيغمبرى وحى ده:-** مسند احمد كښې دى چه حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه ديو سړي شفاعت چه نبي نه دې،د دوؤ قبيلو يا دوؤ كښې د يوې قبيلې دشمير برابر خلق به جنت ته داخلوى. قبيله ربيعه او قبيله مضر. په دې كښې سړي اووئيل چه ربيعه مضر نه نه دى. نو حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه څه خوهغه وايم چه څه ماته وئيل كيږي.[1] دمسند يو بل حديث مبارك كښې دي،عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمائي چه ما به حضور نبي كريم ﷺ نه څه آوريدل هغه به مې حفظ كولو؛ پاره ليكل،خوبعضو قريشانو څه دې نه منع كړم اووې وئيل چه حضور نبي كريم ﷺ يو انسان دې اوكله كله په غصه كښې هم څه فرمائي. نوځه دليكلو نه منع شوم نو حضور نبي كريم ﷺ ما ته اووئيل چه ليكه. په الله جل شانه قسم چه دهغه په قبضه كښې ځما روح دې،ځما د خولې نه سوا دحق نه بله كلمه نه راوځي. دا حديث مبارك ابو داؤداو ابن ابي شيبه كښې هم دې[2]. بزار كښې دى چه حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ته دكوم امر خبر دالله جل شانه دطرفنه دركوم په هغې كښې هيڅ نشته دې. مسند احمد كښې دى چه حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه څه دحق نه سوا نور څه نه وايم. په دې بعضو صحابه كرام رضي الله عنهم اوفرمائيل چه حضور نبي كريم ﷺ كله كله مونږ سره ګپ لګوي. نو حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه په هغه وخت كښې هم ځما د خولې نه ناحق نه اوزى[3].

| عَلَّمَهٗ | شَدِيْدُ الْقُوٰى | ذُوْ مِرَّةٍ | فَاسْتَوٰى |
|---|---|---|---|
| ښودلى ده هغه ته | سخت قوت والا | خاوند دحكمت | بيا مخامخ ودريدو |
| هغه ته يوه طاقتوره فرښته خودنه كوى | | اچې د حكمت خاونده ده | مخامخ شو |

[1] احمد: ۲۵۷/۵. وسنده حسن. مجمع الزوائد: ۲۸۱/۱۰.
[2] ابوداود كتاب العلم باب كتابة العلم: ۳۶۴۶، وسنده صحيح احمدا: ۱۶۲/۲.
[3] ترمذى كتاب البر والصلة باب ماجاء فى المزاح: ۱۹۹۰. وسنده حسن احمد: ۳۶۰/۲، عن ابى هريرة رضي الله عنه.

وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى ۝ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ۝ فَكَانَ

او هغه وو | په کناره لوړه باندې | بيا نزدې راغې | او وړاندې شو په هوا کښې | پس شو نزدې |

په داسې حال کښې چې دافق په اوچته غاړه ولاړ وو | بيا رانزدې شوه | نو د دوو لیندو

قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ۝ فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ

په برابرئ | د دوو لیندو | یا ډير نزدې دې ددې نه | پس وحي اوکړه هغه | بنده د الله ته |

هرمره فاصله ترمينځه پاتې شوه | یا د دې نه څه کمه | نو الله ﷺ خپل بنده ته وحي اوکړه

مَاۤ اَوْحٰى ۝ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ۝

هغه چې وحي ئې اوکړه | دروغ نه کړل زړه | هغه څه | چې اوليدل هغه په سترګو |

څه وحي چې ئې ورته وکړه | د هغه زړه هيڅ غلطي نه ده کړې څه چې ئې ليدلي وو.

اَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى ۝

آيا پس تاسو جګړه کوئ د هغه سره | په هغه څيز باندې | چې وينې ئې هغه په سترګو |

نو اياتاسو ورسره په هغه څيز کښې جګړه کوئ | چې هغه په خپلو سترګو ليدلي دي

وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى ۝ عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ۝ عِنْدَهَا

او بيشکه وې ليدو هغه | په راکوزيدو کښې بل ځل | دوني دبيرې آخرى سره | چې دهغې سره

او هغه دغه (فرښته) يو بل ځل هم ليدلي ده | (يعني) دسدرة المنتهى په خوا کښې چې دهغې

جَنَّةُ الْمَاْوٰى ۝ اِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى ۝

جنت الماوى دې | کله چې راخوريدل | په ونه دبيرې باندې | هغه څه | چې راخوريدل به |

په خوا کښې جنت الماوى دى | څه وخت چې په بيره باندې راغوريدل څه چې راغوريدل

مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى ۝ لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى ۝

نه کوږ شو | نظر | او نه د حده واوړيدو | بيشکه اوليدې هغه د نښو درب خپل نه لوئې |

نه خو دهغه نظر بل خوا کوږ شوې وو | او نه دهوکه شوې وو | هغه د خپل رب (دقدرتونو) ډيرې غټې نښې اوليدې

قوله تعالى:- عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ۝

دجبرئيل ﷺ شان :- الله جل شانه فرمانى چه د محمد ﷺ معلم جبرنيل ﷺ دې، لکه څنګه چه بل ځائې کښې فرمانى ﴿ اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴾ الخ. قران پاك د يو بزرګې زوروري فرښتې قول دې چه ددې دعرش مالك سره ډير عزت دې او تول ئې منى. دلته هم فرمانى چه هغه قوت والا ده. د(ذُوْمِرَّةٍ) يو تفسير دادې. دويم دا دې چه هغه خوش شکل ده. حديث مبارك کښې هم د(ذُوْمِرَّةٍ) لفظ راغلې دې. حضور نبى کريم ﷺ فرمانى چه صدقه مالدار او قوت والا تندرست باندې حرامه ده [1]. بيا هغوئ نيغ اودريدل، يعنى جبرنيل ﷺ. او هغوئ د او چتو آسمانونو په کناروباندې وو د کوم ځائې نه چه سبا راخيژى او دا دنمر

[1] ابوداود كتاب الزكاة باب من يعطى من الصدقة وحد الغنى : ١٦٣٤، وسنده حسن: ترمذى : ٦٥٢. دارمى : ٤٧٢/١، احمد: ١٦٤/٢. حاكم: ٥٦٥/٤. ابن حبان: ٣٢٦٠. عن ابى هريرة ﷺ.

د راختلو ځاني دي.

**قوله تعالى:- لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى**

نبي كريم ﷺ جبرائيل عليه السلام څو ځله ليدلي وو:- ابن ابن حاتم كښې دى چه عبدالله ابن مسعود ﷺ فرمانى چه حضور نبي كريم ﷺ جبرئيل صرف دوه ځل په خپل اصلي صورت كښې ليدلې دې. يو ځل د حضور نبي كريم ﷺ په خواهش الله جل شانه دوى ﷺ ته دهغوئ اصلي صورت مبارك اوخودلو. د آسمانونو ټولې كنارې ددوى د جسامت نه ډكې شوې وې. په دويم ځل هغه وخت چه كله جبرئيل ﷺ حضور نبي كريم ﷺ پورته بوتلو. هم دا مطلب دې د «وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى» امام ابن جرير ﷺ ددې تفسير كښې يو قول ونيلې دې چه بل چا نه دې ونيلې. او دوى پخپله هم ددې قول اضافت بل چا طرفته نه دې كړې. دهغوئ د قول ماحصل دادې چه جبرئيل ﷺ او حضور نبي كريم ﷺ دواړه د اوچتو آسمانونو په كنارو ولاړ وو. اودا واقعه دمعراج ده.

دامام ابن جرير ﷺ ددې تفسير تائيد هيچا نه دې كړې. اګر چه امام صاحب ﷺ دا عربيت حيثيت سره ثابت كړې دى. او عربي قاعدې سره دا هم كيدې شي. خودا د واقعې خلاف دى. څكه چه دا كتل د معراج نه مخكښې وو. هغه وخت كښې حضور نبي كريم ﷺ په زمكه وو. او حضور نبي كريم ﷺ ته جبرئيل ﷺ راغلې وو. او دوى ﷺ ته نزدې شوې وو او هغوئ ﷺ خپل اصلي صورت كښې وو. بيا دې نه پس دوباره د سدرة المنتهى سره دمعراج په شپه ئې اوليدو. داخو دوباره كتلو او په ړومبي ځل كتل د رسالت دشروع دزمانې ذكر دې. د ړومبي وحى (اِقْرَاْ بِاسْمِ) څو آيتونه په دوى نا زل شوى وو. بيا وحى بنده شوې وه. اوددې حضور نبي كريم ﷺ ته ډير پريشاني وه. تر دې حضور نبي كريم ﷺ ډير ځل اراده اوكړه چه د غر نه ځان غوزار كړې. خو هر ځل به د آسمان نه حضور نبي كريم ﷺ د جبرئيل ﷺ دا آواز آوريدو چه اني محمد ﷺ ! ته دالله جل شانه ريښتونې نبي ئې او زه جبرئيل يم. په دې به د حضور نبي كريم ﷺ غم غلط شو او زړه به ئې په قرار او طبيعت به ئې ښه شو او واپس به شو. خوبيا به څو ورځې پس حضور نبي كريم ﷺ ډير زيات غمګين شو او د الله جل شانه دوحى لذت به ورته راياد شو نو حضور نبي كريم ﷺ به اووتلو او د غر نه به ئې خپل ځان غورزلو. او داشان به جبرئيل ﷺ حضور نبي كريم ﷺ ته تسلي وركوله. تر دې چه يو ځل ابطح كښې جبرئيل ﷺ په خپل اصلي صورت مبارك كښې ظاهر شو. يعني وزرونه ئې شپږ سوه وو. ددوى جسمامت د آسمان ټولې كنارې پټې كړې وې. اوس حضور نبي كريم ﷺ ته نزدې شو او دالله جل شانه وحى ئې حضور نبي كريم ﷺ ته اورسوله. نو په هغه وخت كښې حضور نبي كريم ﷺ ته ددې فرښتې عظمت او جلال معلوم شو. او په دې پوهه شو چه دالله جل شانه په نزد ددې فرښتې څومره اوچته مرتبه ده.

**قوله تعالى:- وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى**

**دمعراج ذكر:-** دمسند بزار يو روايت كښې دامام ابن جرير ﷺ دقول تائيد كښې پيش كيديشى خو د دې راوي صرف حارث بن عبيد دې او دې د بصرې اوسيدونكې مشهور سړې دې. دده كنيت ابوقدامه ايادى دې. مسلم شريف كښې دده روايتونه راغلې دى. خو امام ابن معين ﷺ دوى ته ضعيف وانى او فرمانى چه دې په هيڅ نه دې. امام احمد ﷺ فرمانى چه دې مضطرب الحديث دې. امام ابو حاتم رازى ﷺ فرمانى چه دده احاديث ليكلې كيږى خوددې نه دليل نه شي نيولې. ابن حبان ﷺ فرمانى چه دې ډير وهمى وو. دده احتجاج صحيح نه دې. نو دا حديث مبارك صرف دده روايت شوې دې، نو د غريب كيدو نه علاوه منكر هم دې. او كه ثابت هم شي نو ممكن دى چه دا واقعه د خوب وى. په دې كښې دى چه څه ناست اوم چه په دې كښې جبرئيل ﷺ راغلو او په زوره ئې څما د دواړو اوږومينځ كښې لاسونه كيخودل او څه اودرولم. ما اوكتل چه يو ونه ده اوپه هغې كښې لكه د مارغانو د ځالو

ځ یونه جوړ شوی دی. یو کښې څه کیناستم او بله کښې جبرئیل کیناستو. بیا هغه ونه اوچتیده تر دې چه آسمان ته نزدې شوه. ما به اړخونه اړول او تردې که ما آسمان ته لاس وراوړې نو نیولې مې شو. ما اوکتل چه جبرئیل دالله جل شانه دویرې نه لکه د بوړنی خوریدو،نو په هغه وخت کښې ماته معلومه شوه چه دالله جل شانه علم کښې دوی ته په ما فضیلت دې. د آسمان دروازو نه ماته یو دروازه بیرته شوه. ما یو ډیر عظیم الشان نور اوکتلو. او پردې سره مې زر او یاقوت په خوزیدو اوکتل. بیا چه الله جل شانه کومه وحی نازله هغه نې نازله کړه.

**دې واقعه کښې د نبی کریم ﷺ حضرت جبرائیل علیه السلام په خپل صورت کښې لیدل**:-مسند کښې دی چه جبرئیل ؑ لره حضور نبی کریم ﷺ په اصلی صورت کښې لیدلې دې. ددوی وزرې ډیرې وې. اوهریو داسې چه دې د آسمان کنارې پټې کړې وې. اوددې نه موتیان او مروارید او زمرد غورزیدل(۱). اویو روایت کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ جبرئیل ؑ ته خپل خواهش ظاهر کړو چه څه تالره خپل اصلی صورت کښې کتل غواړم. جبرئیل ؑ اوفرمائیل چه الله جل شانه نه دعا اوکړه. حضور نبی کریم ﷺ دعا او د مشرق طرفنه حضور نبی کریم ﷺ ته یو څیز په راوچتیدو او خوریدو په نظر را غلو او ددې کتلو سره حضور نبی کریم ﷺ بې هوشه شو. جبرئیل ؑ زر راغلو او حضور نبی کریم ﷺ نې هوش کښې راوستو او د حضور نبی کریم ﷺ وخکو نه نې توکانړې لرې کړې(۲). ابن عساکر کښې دی چه ابولهب او دده خوئې د شام د سفر تیارې کولو،دده خوئې اووئیل چه د سفر نه مخکښې خو الله جل شانه خو د محمد ﷺ مخکښې لږ کنځل خواوکړم. نو دې راغلو او وې وئیل چه ا ئې محمد (ﷺ)! چه کوم نزدې شو او ستا د دواړو اوړو مینځ شو او ددې نه هم زیات نزدې شو څه خودهغه منکر یم. دا نافرمانه ډیر زیات بې آدبه وو او هر ځل به نې ګستاخی کوله. د حضور نبی کریم ﷺ د خولې مبارکې نه دده دپاره بددعا اووتله چه الله جل شانه دې د خپلو سپو نه په ده یو سپې مقرر کړی. دې چه کله واپس شو او خپل پلار ته راغلو او ټولې خبرې نې ورته اوکړې نو پلار ته اونیل چه ائې خویه تالره څه فکرمند یم. دهغه بددعا به نه رد کیږی. دې نه پس دا قافله ددې ځائې نه روا نه شوه. دشام په زمکه نې د یو راهب عبادت خانې سره پړاؤ اوکړو. راهب ورته اووئیل چه دې ځائې کښې خو شرمخان داسې ګرزی لکه د چیلو رمه،تاسو دلته څنګه راغلئ؟ ابولهب چه دا واوریدل نو ویریدو او ټوله قافله نې جمع کړه او وې وئیل چه ګورئې تاسوته خو څما بوډاتوب معلوم دې،اوتاسو ته معلوم دی چه څما تاسو باندې څومره حقوق دی. نن څه تاسو ته یو عرض کوم امید دې چه تاسو به ئې قبول کړئې. خبره داده چه نبوت مدعی څما خوئې ته خیرې کړې دی او په ده ویریږم. تاسو ټول خپل اسباب دې عبادت خانې سره جمع کړئې او په هغې څما خوږ خوئې څملوئې. اوتاسو دده ګیر چاپیره څملئ: خلقو دا اومنل. دا ټول خپل حفاظت کښې ښه هوښیار وو. په دې کښې یو شیر راغلو او دټولو خولې نې بوئی کولې. هرکله چه نې دټولو خولې بوئی کړې اوچه د چا تلاش نې کولو هغه نې اونه موندو،نو ډیر په زورنه نې مخکښې،څپو سره ټوب اووهلو او هغه ځائې ته اورسیدو ا ودهغه خوله نې هم بوئی کړه او هغه دده مطلوب وو. نو دده هغه ټکړې ټکړې کړو. نو په هغه وخت کښې ابو لهب اووئیل چه دې د محمد ﷺ بددعا نه نشی بچ کیدې. بیا فرمائی چه جبرئیل ؑ حضور نبی کریم ﷺ ته ډیر نزدې شو اوزمکې طرفته راغلو تردې چه د محمد ﷺ اودجبرئیل آمین ؑ مینځ کښې ددوؤ کمانونو هومره فاصله پاتې شوه بلکه ددې نه هم زیات نزدې شو. دلته لفظ اوددې خبر ورکړې کیږی،ددې ثابتولو دپاره راغلې دې. اوبه دې چه کوم زیاتې شوې دې ددې نفی دپاره. لکه چه بل ځائې کښې فرمائی. بیا دې نه پس ستاسو زړونه سخت

(۱) احمد : ۳۹۵/۱.
(۲) احمد : ۳۲۲/۱، طبران : ۱۰۸۷۰.

شو. اولکه د کانړو شو. ﴿أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً﴾ بلکه ددې نه هم زيات سخت. يعنی دکانړی نه کم هيڅ صورت نه بلکه ددې نه سخت شو. اوفرمان دې چه هغوئ د خلقو نه داسې ويريږی لکه چه الله جل شانه نه ويريږی ﴿أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً﴾ بلکه ددې نه هم زيات. اوبل خاني کښې دی چه مونږ دوی يو لاك طرفته اوليږل بلکه زيا تو طرفته. يعنی هغوئ خو ديو لاك نه کم نه وو بلکه حقيقت کښې هغوئ يو لاك وو يا ددې نه زيات. نو دا دخپل خبر تحقيق دې. دشك او تردد دپاره نه دې. خبر کښې د الله جل شانه طرفته شك نه شي بيانولې. دا نزدې راتلونکې جبرئيل ﷺ وو. لکه څنګه چه د ام المومنين عائشه ﷺ او ابوذر ﷺ او ابن مسعود ﷺ فرمائي (١). اوددې باره کښې نزدې احاديث هم ذکر کيږی. انشاء الله. صحيح مسلم کښې دی چه ابن عباس ﷺ نه مروی دې چه حضور نبی کريم ﷺ خپل رب خپل زړه سره دوه ځل کتلې دې. چه په هغې کښې د يو بيان په دې آيت ﴿ثُمَّ دَنَا﴾ کښې دې (٢).
انس والادمعراج حديث مبارك کښې دی، بيا الله جل شانه رب العزت نزدې شو او لاندې راغلو. هم په دې وجه محدثينو په دې کښې کلام کړې دې. او ډير غرابتونه ئې قائم کړی دې. اوکه ثابت شي چه دا صحيح دی نو بيا به هم په بل وخت او بله واقعه باندې محمول وی. ددې آيت مبارك تفسير نشی کيدې. دا واقعه خو دهغه وخت ده چه کله حضور نبی کريم ﷺ په زمکه وو. د معراج په شپه نه وو. څکه چه ددې واقعې نه پس فرمائي چه زمونږ نبی ﷺ يو ځل بيا هم سدرة المنتهی سره کتلې وو. نو دا سدرة المنتهی سره کتل خو دمعراج ذکر دې. اوپه رومبی ځل کتل په زمکه وو. عبدالله ابن مسعود ﷺ فرمائي چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ماجبرئيل ﷺ اوکتلو چه دهغوئ شپږ سوه وزرې وې (٣). عائشه ﷺ فرمائي چه د حضور نبی کريم ﷺ دنبوت په ابتداء کښې حضور نبی کريم ﷺ جبرئيل ﷺ خوب کښې ليدلې وو. بيا حضور نبی کريم ﷺ د حاجت فارغيدو دپاره اووتلو نو حضور نبی کريم ﷺ واوريدل چه څوك د حضور نبی کريم ﷺ نوم مبارك اخلي. ډير ئې يوخوا بل خوا اوکتل خو څوك ئې اونه ليدل. درې ځل داسې اوشو. په دريم ځل حضور نبی کريم ﷺ پورته اوکتل نووې کتل چه جبرئيل ﷺ خپلې دواړو پښو کښې يو پښه دويمې سره راتوله کړې ده او د آسمان کنارې ئې پټې کړی دی. نزدې وو چه حضور نبی کريم ﷺ ويريږی نو دې کښې فرښتې اووئيل چه څه جبرئيل يم، څه جبرئيل يم، ويريږه مه. خو حضور نبی کريم ﷺ نه ضبط نه شو، په منډه خلقو طرفته راغلو او چه بيا ئې اوکتل نو هيڅ نه وو. بيا چه ددې خاني نه بهر اووتل او وې کتل نو جبرئيل ﷺ ورته داشان په نظر راغلو. حضور نبی کريم ﷺ بيا د ويرې نه خلقو طرفته راغلونو د لته هيڅ نه وو. بيا چه بهر اووتلو او وې کتل نو بيا ورته هغه منظر په نظرراغلو. نوددې ذکر په دې آيت مبارك کښې دې. (القاب نصف الاصبع) نيمې ګوتې ته وائي. اوبعضې وائي چه صرف د دوؤ لاسو فاصله پاتې شوې وه. او يو روايت کښې دی چه په هغه وخت کښې جبرئيل ﷺ باندې دوه ريښمې حلې وې.

**قوله تعالى:- ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾**

**حضور نبی کريم ﷺ الله جل شانه ليدلې دې که نه:-** بيا فرمائي چه هغه وحی اوکړه. الخ.، ددې نه مراد دادې چه جبرئيل ﷺ دالله جل شانه بنده او رسول ﷺ طرفته وحی اوکړه. دواړه معنی صحيح دی. سعيد ابن جبير ﷺ فرمائي چه دهغه وخت وحی ﴿أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ﴾ او ﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ وه. او حضرات نه مروی دی چه په هغه وخت کښې دا وحی نازله شوې وه چه په نبيانو جنت حرام دې چه تر کومې حضور نبی کريم

---

(١) الطبری : ٢٢/٥٠٤.
(٢) صحيح مسلم کتاب الايمان باب في قول الله عزوجل ( ولقد رآه نزلة اخرى) : ١٧٦.
(٣) الطبری : ٢٢/٥٠٣.

دې ته داخل نه شي. او په امتونو جنت حرام دې چه تر کومې مخکښې د حضور نبی کریم ﷺ والا جنت داخل نشي. عبدالله ابن عباس ؓ فرمائي چه حضور نبی کریم ﷺ خپل زړه سره دوه ځل لیدلې دې. ابن مسعود ؓ کتل مطلق ساتلي دي. که هغه د زړه کتل وي او که هغه ظاهري سترګو سره کتل وي. دا ممکن دی چه دا مطلق په مقید محمول کړي. یعنې حضور نبی کریم ﷺ خپل زړه سره لیدلې وي (١). چه کومو بعضو حضراتو وئیلي دي چه خپلو سترګو سره ئې لیدلې دې نو هغوئ یو غریب قول وئیلي دې. ځکه چه صحابه کرامو ؓ نه دې باره کښې هیڅ نه دي مروي. امام بغوي ؒ فرمائي چه یو جماعت دې طرفته دې چه حضور نبی کریم ﷺ خپلو سترګو سره لیدلې دې. لکه انس ؓ، حسن ؒ، عکرمه ؒ، ددوی قول کښې نظر دې، والله اعلم.

ترمذي شریف کښې عبدالله ابن عباس ؓ نه مروي دي چه حضور نبی کریم ﷺ خپل رب لیدلې دې. عکرمه ؒ فرمائي چه ما دا وا وریدل نو اومې وئیل چه بیا به دا آیت مبارك چرته ځي چه په هغې کښې فرمان دې چه ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾ یعنې هغه هیڅ یو نظر نشي لیدلې او هغه ټول لیدلې شي. دوی اوفرمائیل چه دا په هغه وخت کښې دی چه کله هغه دخپل نور پورا تجلي اوښائي. او حضور نبی کریم ﷺ خپل رب لره دوه ځل کتلې دې (٢). داحدیث مبارك حسن غریب دې. دترمذي شریف یو بل روایت کښې دي چه د ابن عباس ؓ ملاقات کعب ؒ سره اوشو، او هغه ئې اوپیژندو او یوسوال ئې اوکړو چه په دوی ډیرسخت اولګیدو. عبدالله ابن عباس ؓ اوفرمائیل چه مونږ بنو هاشم دا خبر راکړې دې نو کعب ؓ اوفرمائیل چه الله جل شانه خپل دیدار او خپل کلام حضور نبی کریم ﷺ او موسی ؑ کښې تقسیم کړو.

موسی ؑ سره ئې دوه ځل خبرې اوکړې او حضور نبی کریم ﷺ سره ئې دوه ځل دیدار اوکړو. یو ځل مسروق عائشه ؓ ته ورغلو او تپوس ئې ترې اوکړو چه آیا حضور نبی کریم ﷺ خپل رب لیدلې دې؟ عائشه ؓ ورته اوفرمائیل چه تا خو داسې خبره اوکړه چه دې څما ویښته اودرول، ما اووئیل چه اې مور بی بی، قران پاك کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ درب لوئې لوئې نښې اوکتلې. دوی اوفرمائیل چه چرته روان ئې؟ واورئې دې نه مراد جبرئیل ؑ کتل دی. تاته چه څوك اووائي چه محمد ﷺ خپل رب لیدلې دې یا محمد ﷺ دالله جل شانه څه فرمان پټ کړې دې، محمد ﷺ دې پنځو خبرو کښې هیڅ خبره نه وه پټه کړې. قیامت به کله قائمیږی باران به کله او څومره به کیږی د مور په خیټه کښې نر دې اوکه ښځه څوك به صبا څه کوي؟ څوك به چرته مري. هغه ډیره دروغ خبره اوکړه اوپه الله جل شانه ئې بهتان اولګولو. خبره داده چه حضور نبی کریم ﷺ جبرئیل ؑ لیدلې وو. دوه ځل د الله دا امین ئې په خپل اصلي صورت کښې لیدلې وو. یو ځل سدرة المنتهی سره او یو ځل جیاد کښې. دهغوئ سل وزرې وې او هغه دآسمان ټولې کنارې پټې کړې وې (٣). نسائي دابن عباس ؓ نه روایت دې چه آیا تاته تعجب کیږی که خلت ابراهیم ؑ دپاره وو اوکلام دموسی ؑ دپاره او دیدار د محمد ﷺ دپاره. (٤) صحیح مسلم کښې دابوذر ؓ نه روایت دې چه ما رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسو خپل رب لیدلې دې؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه سراسر نور دې څه هغه څنګه لیدلې شم؟ یو روایت کښې دی چه ما نور اولیدو. (٥)ابن ابی حاتم کښې دی چه دصحابه کرام ؓ ددې سوال جواب

---

(١) صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قول الله عزوجل ( ولقد راه نزلة اخری) : ۱۷۶.
(٢) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة النجم : ۳۲۷۹، وهو حسن .
(٣) ترمذی کتاب تفسیر القران ومن سورة النجم : ۳۲۷۸،
(٤) حاکم : ۶۹/۲،
(٥) صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قوله ﷺ ((نورانی اراه:)) ۱۷۸.

کښې حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ما خپل زړه سره خپل رب دوه ځل لیدلې دې،بیا حضور نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک ﴿مَاكَذَبَ الْفُؤَادُ﴾ اولوستو. اویوروایت کښې دی چه ماخپلو سترګوسره نه دې لیدلې زړه سره مې دوه ځل لیدلې دې. بیا حضور نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک اولوستو چه ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى﴾ (۱)

**د عکرمه ﷫ مذهب**-عکرمه ﷫ نه د آیت مبارک ﴿مَاكَذَبَ الْفُؤَادُ﴾ باره کښې تپوس اوشو نو هغوئ اوفرمائیل چه آو حضور نبی کریم ﷺ اولیدو اوبیا ئې اولیدو. سائل بیا د حسن ﷫ نه هم سوال اوکړو نو هغوئ اوفرمائیل چه د هغه جلال او عظمت اود لوئې څادر ئې اوکتلو. حضور نبی کریم ﷺ نه یو ځل دا جواب هم مروی دې چه مایو نهر اوکتلو اودنهر نه روستو مې پرده اوکتله او پردې نه روستو مې نور اوکتلو او ددې نه سوا ما هیڅ نه دی لیدلی (۲). دا حدیث هم ډیر غریب دې. یو حدیث مسند احمد کښې دې چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ماخپل رب لیدلې دې (۳). ددې اسناد په شرط صحیح باندې دی. خو دا حدیث د حدیث خواب یومختصرده. نو په طویل حدیث مبارك کښې دی چه ما لره خما رب جل شانه ډیر په ښه صورت کښې نن شپه راوی وائی چه خما خیال کښې ) خوب کښې راغلو او وې فرمائیل چه ائې محمد ﷺ ! تاسو ته معلوم دی چه اوچت مقام فرښتې په څه مسئله باندې خبرې اترې کوی؟ ما اووئیل چه نه. نو الله جل شانه خپل لاس خما د دواړو لاسونوترمینځه کیخودو چه دهغې یخوالئ ما سینه کښې محسوس کړو. نو د زمکې او آسمان هر څیز ماته معلوم شو. خما نه هغه سوال اوشو نو ما اووئیل چه اوس ماته معلوم شو چه هغوئ دهغه نیکو باره کښې خبرې اترې کوی چه دګناهونو کفاره جوړیږی او درجې زیاتوی اوخپلو کښې خبرې اترې کوی. بیا خما نه الله جل شانه سوال اوکړو چه اووایه د کفارې نیکئ څه څه دی؟ نو ما اووئیل چه مونځ نه پس مسجد کښې ایساریدل،مسجد ته تلل،هرکله چه اودس ورته ښه ښکاره نه شی نو په ښه شان اودس کول. چه څوك داسې اوکړی نو هغه به په ښه شان ژوندتیروی. او دده خاتمه خیر سره وی. اودګناهونو نه به داسې پاك شی لکه چه نن دنیا ته راغلې دې. هغه وخت کښې الله جل شانه ما ته اوفرمائیل چه ائې محمد ﷺ ! هرکله چه ته مونځ اوکړې نو دا وایه چه ( اللهم انی اسئلك فعل الخيرات وترك المنكرات وحب المساكين واذااردت بعبادك فتنة ان تقبضني اليك غير مفتون) :

یعنی ای الله جل شانه ! څه ستا نه دنیکو کولو اودبدو پریښودو اومسکینانو سره دمحبت کولو توفیق غواړم، ته چه کله خپل بندګان په فتنه کښې اچوې نو هغې نه مخکښې مخکښې ما خپل طرفته اوبله. او وې فرمائیل چه درجې زیاتولو والا اعمال دادی. په چا روټئ خورول،سلام اچول،چه خلق اوده وی په هغه وخت کښې د تهجدو مونځ کول(۴). هم ددې پشان یو روایت دسورة ص د تفسیر په خاتمه کښې تیر شوې دې. ابن جریر کښې دا روایت یو بل سند سره مروی دې. چه په هغې غربت والا زیاتې نور هم ډیر دی،په هغې د کفارې والا بیان کښې دی دجمعې مونځ دپاره پیدل قدمونه اخستل،یو مونځ نه پس دبل مونځ انتظار کول،ما اووئیل چه ائې الله جل شانه تا ابراهیم ﷤ خپل خلیل جوړ کړو او موسی ﷤ دې خپل کلیم جوړ کړو اودا دې اوکړل. نو الله جل شانه اوفرمائیل چه ولې ما ستا سینه نه ده پرانیستې او ما ستا بوج نه دې کم کړې؟ او فلانې فلانې احسان مې درباندې نه دې کړې او نور داسې احسانونه ئې ماته اوخودل چه دهغې دبیانولو اجازت ستاسو مخکښې ماته نشته دې. ددې بیان په دې آیتونو ( ثم دنا فتدلى ) کښې دې. نو الله جل شانه خما د سترګو نور خما په زړه کښې پیداکړو. اوما

---

(۱) الطبری : ۵۰۵/۲۲،

(۲) ابن ابی حاتم : ۲۵۸/۱۲،

(۳) احمد: ۲۸۵/۱، وحديث الترمذى : (۳۲۷۹) وهو حسن ، بغی عنه . مجمع الزوائد: ۷۸/۱.

(۴) احمد: ۳۶۸/۱، ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة ص : ۳۲۳۳. وهو حسن.

الله جل شانه خپل زړه سره اوليدو.(۱) ددې اسناد ضعيف دی. پورته د عتبه بن ابولهب وينا ده چه خه دا قريب راتلل او نږدې کيدو والا نه منم اوبيا د حضور نبی کريم ﷺ هغه دپاره بد دعا کول او هغه لړه شرمخ ماتول بيان شوی دی. داواقعه په زرقا کښې يا په سراة کښې شوې وه. او حضور نبی کريم ﷺ د دې پيشنګوئی مخکښې نه کړې وه چه دې به داشان هلاکيږی. بيا د حضور نبی کريم ﷺ جبرئيل ؑ دوباره ليدل بيانيږی چه معراج والا شپې واقعه ده. دمعراج والا احاديث بنه تفصيل سره دسورة سبحان دشروع په آيت کښې تير شوی دی. اودهغې دوباره ليکلو دلته ضرورت نشته دې.
راهم بيانشوی دی چه ابن عباس ﷺ دمعراج په شپه د ديدار الهی قائل دې. د خلفواو سلفو ديو جماعت همدا قول دې. اود صحابه کرامو ﷺ ډير جماعتونه ددې خلاف دی. همدا شان تابعين او نور ډير ددې خلاف دی. د حضور نبی کريم ﷺ جبرئيل ؑ دهغه وزرو سره ليدل مخکښې تير شو. عائشه ﷺ نه دمسروق ﷫ تپوس کول او دهغې جواب هم مخکښې تير شو. يو روايت کښې دی چه عائشه صديقه ﷺ ددې جواب نه پس آيت مبارك (لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ) الخ تلاوت کړو او د ( مَا كَانَ لِبَشَرٍ الخ نې هم تلاوت کړو. يعنی يو سترګه هغه نشی ليدلې اوهغه ټول نظرونه ګوری. يو الله جل شانه سره ديو انسان کلام کول ممکن نه دی خوکه وحی سره وی يا پردې نه روستو وی نو بله خبره ده.
بيا نې اوفرمائيل چه تاته څوك اووائی چه حضور نبی کريم ﷺ ته د صبا علم وو نو هغه غلط او دروغ اووئيل اوبيا نې آيت ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ آخره پورې اولوستو. او چه څوك دا وائی چه حضور نبی کريم ﷺ د الله جل شانه څه خبره پټه کړې ده نوهغه هم دروغ اووئيل او بهتان نې اولګولو. بيا نې آيت مبارك (يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ) اولوستو. يعنی اې نبی ﷺ تاته چه څه ستا د رب د طرفنه نازل شوی هغه اورسوه. او حضور نبی کريم ﷺ جبرئيل ؑ په خپل اصلی صورت کښې دوه ځل ليدلې دې(۲). مسند احمد کښې دی چه مسروق ﷫ عائشه صديقه ﷺ نه تپوس اوکړواو دسوة نجم آيت ( بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ) نې اولوستلو. ددې جواب کښې عائشه صديقه ﷺ اوفرمائيل چې د دې آيتونو باره کښې ما دې امت کښې ټولو نه مخکښې تپوس کړې وو. بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ددې نه مراد جبريل امين دې. يو ځل د آسمان نه راکوزيدو په وخت کښې او په هغه کښې ټوله فضا دهغه بدن مبارك نه ډکه وه. داحديث مبارك بخاری او مسلم شريف کښې هم دې.(۳) مسند احمد کښې دی چه عبدالله بن شقيق ﷫ ابوذر ﷺ ته اووئيل که چرې ما حضور نبی کريم ﷺ ليدلې وې نو ما به د حضور نبی کريم ﷺ نه ضرور دا تپوس کولو. ابوذر ﷺ اوفرمائيل چه تا به څه تپوس کولو؟ وې فرمائيل چه تاسو ﷺ خپل رب ليدلې دې که نه؟ نو ابوذر ﷺ اوفرمائيل چه دا سوال خو پخپله د حضور نبی کريم ﷺ نه کړې وو نو حضور نبی کريم ﷺ فرمائيلی وو چه ماهغه نور اوکتلو اوهغه خو نور دې څه هغه څنګه ليدلې شم (۴).
صحيح مسلم کښې هم دا حديث مبارك دوو سندونو سره دې، د دواړو الفاظو کښې بدلون دې (۵).
امام احمد ﷫ فرمائی چه څه نه پوهيږم چه ددې حديث مبارك څه توجيه اوکړم. د زړه مې په دې اطمينان نشته دې. ابن ابی حاتم کښې دابوذر ﷫ نه منقول دی چه حضور نبی کريم ﷺ خپل زړه سره ديدار کړې دې سترګو سره نه دې. امام ابن خزيمه ﷫ فرمائی چه عبدالله بن شقيق ﷫ او دابوذر ﷺ مينځ کښې انقطاع ده. او امام ابن جوزی ﷫ فرمائی چه ممکن دی چه دابوذر ﷫ داسوال د معراج د

---

(۱) الطبری : ۵۰۷/۲۲.
(۲) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة النجم : ۴۸۵۵، صحيح مسلم: ۱۷۷، احمد: ۴۹/۶.
(۳) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة النجم:۴۸۵۵ صحيح مسلم : ۱۷۷ ، ترمذی: ۳۰۶۸، احمد: ۲۴۱/۶.
(۴) احمد: ۱۴۷/۵، ومسلم: ۱۷۸/۲۹۲، وهو حديث صحيح.
(۵) صحيح مسلم کتاب الايمان باب فی قوله ﷺ ((نور انی اراه:)) ۱۷۸.

واقعې نه مخکښې وی. اوحضور نبی کریم ﷺ ورته په هغه وخت کښې جواب ورکړې وی. که دا سوال د حضور نبی کریم ﷺ نه د معراج واقعې نه روستو شوې وی نو حضور نبی کریم ﷺ به ضرور ددې جواب کښې آو ونیلې وو اوانکار به ئې نه وو کړې. خودا قول بالکل ضعیف دې. ځکه چه دعائشه رضی الله عنها سوال د معراج نه روستووو. اود حضور نبی کریم ﷺ جواب په هغه وخت کښې هم انکار کښې وو. بعض حضراتو فرمائیلی دی چه دوی ته خطاب ددوی عقل مطابق وو. یا دا چه دهغوئ دا خیال غلط وو. نو ابن خزیمه رحمه الله په کتاب التوحید کښې هم دا لیکلی دی،نو اصل کښې دا صرف محض خطا ده او بالکل غلطی ده،والله اعلم.

**دسدرة المنتهی ذکر**:-انس رضی الله عنه او ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دی چه حضور نبی کریم ﷺ الله جل شانه لیدلې خو دې خو خپلوسترګو سره ئې نه دې لیدلې خوجبرئیل علیه السلام ئې په خپلو سترګو دوه ځل دهغه اصلی حالت کښې لیدلې دې (۱) سدرة المنتهی باندې هغه وخت کښې فرښتې ډیرې وې او دالله جل شانه نور په هغه وخت کښې خلیدو، او قسماقسم رنګونه چه هغه دالله جل شانه نه سوا نور چا ته نه دی معلوم.

ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دمعراج په شپه محمد ﷺ سدرة المنتهی ته اورسیدو او دا په اووم آسمان کښې ده. زمکې نه چه کوم څیزونه راخیژی نوهغه تر دې ځائې پورې راخیژی،هغه وخت کښې په دې ونه باندې د سرو زرو مولخان وو. حضور نبی کریم ﷺ ته هغه ځائې کښې درې څیزونه ورکړې شو. ( پنځه واره وخت مونځونه. دسورة بقره د خاتمې آیتونه) اود حضور نبی کریم ﷺ امت کښې چه څوک مشرکان نه وی نودهغوئ دګناهونو بخښنه. (مسلم) (۲).

ابوهریره رضی الله عنه نه یا یو بل صحابی رضی الله عنه نه روایت دې چه څنګه مارغان په یو ونه ناست وی دغه شان په هغه وخت کښې سدرة المنتی باندې فرښتې ولاړې وې. هرکله چه حضور نبی کریم ﷺ هلته اورسیدو نو حضور نبی کریم ﷺ ته اوونیلې شو چه څه غوارې نواوغواره.(۳) مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې ونې ښاخونه د مروارېدو او یاقوتو او زبرجدو وو. حضور نبی کریم ﷺ دا اولیدې اوخپلو سترګو سره ئې د الله جل شانه هم زیارت اوکړو. ابن زید فرمائی چه د حضور نبی کریم ﷺ نه سوال اوشوچه تاسو په سدره باندې څه اولیدل.؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په هغې باندې د سرو زرو مولخان وو. او په هره هره پاڼړه باندې یو یو فرښته ولاړه وه او دالله جل شانه ذکر ئې کولو.(۴) د حضور نبی کریم ﷺ نظرونه ښې اوګس طرفته نشو چه دکومو څیزونودکتلو ورته حکم ووهغه ئې اوکتل. د ثابت قدمئ او پورا اطاعت دا یو پورا دلیل دې چه څه دالله جل شانه حکم وو هغه ئې اومنلو. چه څه ورته ورکړې شو هغه ئې واخستل. هم دا یو ناظم د تعریف په طور ونیلی دی. حضور نبی کریم ﷺ د الله جل شانه لوئې لوئې نښې اوکتلې. لکه بل ځائې ارشاد دې چه ﴿لِنُرِيَكَ مِنْ آيَاتِنَا الْكُبْرَىٰ﴾ ځکه چه مونږ تاته خپلې خپلې لوئې نښې اوخودلې چه څمونږ د کامل قدرت او د زبردست عظمت دلیل دی. دا دواړه آیتونه دلیل جوړولو نه پس د اهل سنت مذهب دې چه په هغه وخت کښې حضور نبی کریم ﷺ د الله جل شانه دیدارنې کړې وی د خپلو سترګو سره نه دې کړې. ځکه چه دالله جل شانه ارشاد دې چه حضور نبی کریم ﷺ دخپل رب لوئې لوئې نښې اوکتلې. که پخپله دالله جل شانه دیدار وې نو دهغه دیدار ذکر به وو. او خلقو ته به ئې دا ظاهر کړی وو. دابن مسعود رضی الله عنه قول تیر شو ې دې چه یو ځل د حضور نبی کریم ﷺ په خواهش په دویم ځل آسمان ته دختلو په وخت کښې جبرئیل علیه السلام لره حضور نبی کریم ﷺ اولیدو په خپل

---

۱) صحیح مسلم کتاب الایمان باب معنی قول الله عزوجل ( ولقد راه نزلة اخری) : ۱۷۵.

۲) صحیح مسلم کتاب الایمان باب ذکر المنتهی : ۱۷۳.

۳) الطبری : ۵۲۰/۲۲.

۴) الطبری : ۵۲۰/۲۲.

اصلي صورت کښې. نو هرکله چه جبرئیل ﷺ خپل رب ته خبر ورکړو نو خپل اصلي صورت کښې شو او سجده ئې اوکړه، نو سدرة المنتهى سره دوباره ددې کتل مراد دی(۱). دا روايت مسند احمد کښې دې او غريب دې.

أَفَرَءَيْتُمُ | اللَّٰتَ | وَالْعُزَّىٰ ۝ وَمَنَوٰةَ | الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰ ۝

ايا غور کړې دې تاسو | په حقيقت دلات | او دعزى | او دمنات | چې دريم بل دې |

ايا تاسو چرې دلات او عزى په حالت باندې غور کړې دې؟ | او دريم دمنات په حالت

أَلَكُمُ الذَّكَرُ | وَلَهُ الْأُنثَىٰ ۝ | تِلْكَ إِذًا | قِسْمَةٌ | ضِيزَىٰ ۝ | إِنْ هِيَ

ايا تاسو لره خامن دې | او هغه لره لونړه | دا خو بيا | تقسيم دې | دبې دانصافۍ | نه دي دا |

اياستاسو دې خامن وي او دالله ﷻ دې لونړه؟ | دا خو ډيربې انصافه تقسيم دې | دا ستاسو معبودان خو

إِلَّا أَسْمَاءٌ | سَمَّيْتُمُوهَا | أَنتُمْ | وَآبَاؤُكُم | مَّا أَنزَلَ اللَّهُ

مگر تش نومونه دي | چې اېښودلې هغه | تاسو | او پلارانو ستاسو | نه دې نازل کړې الله |

تش نومونه دي | چې پخپله تاسو او ستاسو نيکو نو ايخودې دي | الله ﷻ په دې څيزونو

بِهَا مِن سُلْطَانٍ | إِن يَتَّبِعُونَ | إِلَّا الظَّنَّ | وَمَا تَهْوَى | الْأَنفُسُ

په دې باندې څه سند | نه دې روان دوئ | مگر په گمان پسې | او په هغه پسې | چې غواړي ئې نفسونه

هيڅ دليل نه دې رالېږلې | داخلق صرف د گمان او دخپل نفس د خواهشونو تابعداري کوي

وَلَقَدْ جَاءَهُم | مِّن رَّبِّهِمُ | الْهُدَىٰ ۝ | أَمْ لِلْإِنسَانِ

او بيشکه راغلې دې دوئ ته | د طرفه درب ددوئ نه | هدايت (لاره نيغه) | ايا انسان لره حق دې

ددې باوجود چې دخپل رب دطرفه ورته هدايت رارسيدلې دې | ............ايا د انسان

مَا | تَمَنَّىٰ ۝ | فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ | وَالْأُولَىٰ ۝ | وَكَم مِّن مَّلَكٍ

هغه څيز | چې غواړي ئې هغه | پس الله لره دې آخرت | او دنيا | او ډيرې دي دفرښتونه

هر ارمان پوره کيږي | (نه بلکه دهر ارمان پوره کيدل) الله ﷻ سره دی په آخرت او دنيا کښې | په

فِي السَّمَاوَاتِ | لَا تُغْنِي | شَفَاعَتُهُمْ | شَيْئًا | إِلَّا | مِن بَعْدِ

په آسمانونو کښې | چې نه شي دفع کولې | سفارش دهغوئ | هيڅ څيز لره | مگر | پس دهغې

آسمانونو کښې ډير فرښتې دي | چې د هغوئ سفارش هيڅ فائده نشي ورکولې البته دا

أَن يَأْذَنَ اللَّهُ | لِمَن | يَشَاءُ | وَيَرْضَىٰ ۝

چې حکم اوکړي الله | دپاره دهغه چا | چې غواړي ئې هغه | او راضي وي هغه |

چې الله ﷻ چاته اجازت ورکړي | او د هغه رضا وي |

---

(۱) احمد: ۴۰۷/۱.

**قوله تعالى:- أَفَرَءَيْتُمُ اللَّتَ وَالْعُزَّىٰ**

**د لات عزی او منات ذکر:** دې آیتونو کښې الله جل شانه مشرکان رټلي اودوی د بتانو او دالله جل شانه نه سوا دنورو عبادت کوی. او څنګه خلیل الله ﷺ دالله جل شانه په حکم دالله جل شانه کور جوړ کړو دا خلق د خپلو باطلو معبودانو عبادت خانې جوړوی. لات یو سپین منقش کاڼړنی وو چه په هغې قبه جوړه کړې شوې وه، په ده به ئې غلافونه غوړول.په ده باندې منجاوران او محافظ او جارو وهلو والا مقرر وو. او ددې ګیر چاپیره ځائې ته لګه د حرم نظر کولو. دا د اهل طائف بت خانه وه. قبیله ثقیف ددې عبادت کوونکې او متولی وو. قریشو نه سوا باقی ټولو په ده فخر کولو. ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دې خلقو دالله جل شانه لفظ نه لات جوړ کړې وو. یعنی ددې مونث ئې جوړ کړې وو. دالله جل شانه ذات مبارك د ټولو شریکانو نه پاك دې.یو قرات کښې لات د تا تشدید سره دې یعنی ګول کولو والا. دا ئې لات په دې معنی کښې اخستې وه چه دا یو نیك سړې وو،د حج موسم کښې به ئې حاجیانو ته به ئې ستوان ورکول. دده د وفات نه پس خلقو دده په قبر منجور توب شروع کړو. او رو رو ئې دده عبادت شروع کړو([1]). داشان لفظ د عزی د عزیز نه اخستې شوې دې. دا دمکې او طائف مینځ کښې یو ونه وه په دې هم قبه جوړه شوې وه او په دې به ئې ځادرونه غوړول،قریشو به د دې عظمت کولو([2]). ابوسفیان د احد په ورځ هم وئیلې وو چه څمونږ عزی دې او ستاسو نه. ددې جواب کښې حضور نبی کریم ﷺ وئیلې وو چه الله جل شانه څمونږ ولی دې او ستاسو نه دې. ([3])

صحیح بخاری کښې دی چه کوم سړې د لات او عزی قسم اوخوری هغه ته پکار دی چه زر لا اله الا الله اووائی او چه څوك څپل ملګری ته اووائی چه رازه جواری اوکړو نو هغه ته صدقه کول پکار دی([4]). مطلب دادې چه د جاهلیت په زمانه کښې ئې ددې قسم کړې وو نو اوس داسلام نه پس هم که دده ژبې نه د مخکښې عادت مطابق دا الفاظ اوځی نو ده ته کلمه وئیل پکار دی. سعد بن ابی وقاص ﷺ یو ځل هم ددې لات او عزی قسم اوکړو نو په دې خلقو دې خبردار کړو،دې حضور نبی کریم ﷺ ته لاړو نو حضور نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه (لا اله الا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير) اووایه او درې ځل (اعوذ بالله من الشيطان الرجيم) اووایه او څپل ګس طرفته توکاڼړې تو کړه. اوبیا داسې مه کوه. ([5])دمکې او مدینې مینځ کښې قدید سره مشلل کښې مناة وو. قبیله بنو خزاعه او اوس او خزرج به ددې عبادت کولو دجاهلیت په زمانه کښې. هم ددې ځائې نه به ئې احرام تړلو اوحج ته به تلل([6]) داشان ددې دریو نه علاوه نور هم بتان وو چه دهغې به عربو عبادت کولو. او ددې به ئې ډیر زیات تعظیم کولو. خو ددې دریو شهرت ډیر زیات وو په دې وجه دلته صرف ددې دریو ذکردې.دې خلقو به د دې نه طوافونه هم کول. دقربانئ څناور به ئې دلته بوتلل او ددوی په نوم به ئې حلالولو. ددې باوجود دا خلق د کعبې دعظمت اوحرمت قائل وو.دې ته به ئې مسجد ابراهیم وئیلو.او ددې خاطره به ددې عزت کولو. سیرة ابن اسحاق کښې دی چه قریش او بنو کنانه د عزی عبادت کولو.او دا په نخله کښې وو. ددې نګهبان او متولی قبیله بنوشیبان وو او دا دبنو سلیم یو ښاخ وو. او ددوی بنو هاشم سره دود

---

[1] الطبری: ۲۲/۵۲۳.

[2] الطبری: ۲۲/۵۲۳

[3] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب مایکره من التنازع والاختلاف فی الحرب وعقوبة من عصی امامه: ۳۰۳۹.

[4] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب (افرایتم اللات والعزی): ۴۹۶۰، صحیح مسلم: ۱۶۴۷، ابوداود: ۳۲۴۷، ترمذی: ۱۵۴۵، ابن ماجه: ۲۰۹۶.

[5] نسائی کتاب الایمان والنذور باب الحلف باللات والعزی: ۳۸۰۸. ابن ماجه: ۲۰۹۷، وهو صحیح احمد: ۱/۱۸۳، ابن حبان: ۴۳۶۵.

[6] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة النجم باب (ومنوة الثالثة الاخری): ۴۸۶۱.

ولي وه. ددې بت ماتولو دپاره حضور نبي كريم ﷺ دفتح مكه نه پس خالد بن وليد ﷺ ليږلې وو. او هغوئ دا مات كړې دوه ټكړې ټكړې كړې وو او وئيلې ئې وو چه :

(ياعزى كفرانك لا سبحانك انى رايت الله قد اهانك)

يعني ائې عزى خه ستا نه انكارى يم ستا پاكي بيانږ و والا نه يم، څما ايمان دې چه الله جل شانه ستا عزت ښاورې كړو. دا د ببول په دريو ونو باندې وو چه كومې ونې ئې اووهلې او په هغې ئې قبه واچوله او واپس راغلل او حضور نبي كريم ﷺ ته ئې ددې اطلاع وركړه. حضور نبي كريم ﷺ ورته اووئيل چه واپس لاړ شه تا هيڅ نه دى كړې. خالد ﷺ دوباره تشريف يوړو او د هغه ځائې خدامو او لوئې لوئې د مكرو فريب دعوې اوكړې او د (ياعزى عزى) دچغې ئې وهلې. خالد ﷺ چه كله اوكتل نو يو بربنډه ښځه وه چه دهغې وېښته ويران دى او په خپل سر ښاورې اچوى. دوى يو وار سره هغه ختم كړو او واپس راغلو اوحضور نبي كريم ﷺ ته ئې دې خبر وركړو. حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه عزى هم د اوو [1].

لات د قبيله ثقيف بت وو چه طائف كښې وو. ددې توليت اومنجورتوب بنو معتب كړې وو. ددې د ختمولو دپاره حضور نبي كريم ﷺ مغيره بن شعبه ﷺ او ابوسفيان بن صخر بن حرب ﷺ ليږلي وو. دوى هغه ختم كړو اوهغه ځائې كښې ئې يو مسجد جوړ كړو. مناة د اوس او خزرج او دددې دهم خيال خلقو بت وو. دامشلل طرفته دسمندر په غاړه قدير كښې وو. دلته هم حضور نبي كريم ﷺ ابوسفيان ﷺ اوليږلواو دوى هغه ذرې ذرې كړو. دبعضو قول دې چه دعلي ﷺ دلاسه دكفرستان تباه شو.

| إِنَّ الَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ | بِالْآخِرَةِ | لَيُسَمُّونَ | الْمَلَٰئِكَةَ | تَسْمِيَةَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه هغه كسان | چې ايمان نۀ راوړى | په آخرت باندې | هغوئ نومونه ږدى | په فرښتو باندې | نومونه |
| بيشكه څوك چې په آخرت ايمان نه راوړى ....... هغوئ په فرښتو د زنانۀ نومونه ايږدى | | | | | |

| الْأُنثَىٰ | وَمَا لَهُم | بِهِ | مِنْ عِلْمٍ | إِن يَتَّبِعُونَ | إِلَّا الظَّنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| دښځو | حالانكه نشته هغوئ لره | په دې باندې | هيڅ علم | نۀ كوى پيروى هغوئ | مگر دگمان |
| ....... حال دادې چې دوى سره په دې باندې هيڅ علم نشته ....... خو بس په گمان پسې روان دى | | | | | |

| وَإِنَّ الظَّنَّ | لَا يُغْنِي | مِنَ الْحَقِّ | شَيْئًا | فَأَعْرِضْ | عَن مَّن |
|---|---|---|---|---|---|
| او بيشكه گمان | نۀ دفع كوى | دحق نه | هيڅ څيز | پس اوگرزه ته | دهغه چانه |
| اوگمان دحق په مقابله كښې هيڅ كار نه وركوى ....... نوته دهغه چا پرواه مكوه | | | | | |

| تَوَلَّىٰ | عَن ذِكْرِنَا | وَلَمْ يُرِدْ | إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا | ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُم |
|---|---|---|---|---|
| چې مخ ئې واړوۀ | د ذكرزمونږ نه | اونۀ لرى اراده | سوا دژوند ددنيا نه | دا حد دى ددې خلقو |
| چې زمونږ د نصيحت نه بې پرواه شوى دى | او د دنياد ژوندتيرولونه بغير بل هيڅ مقصد نه لرى | ددوى | | |

| مِّنَ الْعِلْمِ | إِنَّ رَبَّكَ | هُوَ أَعْلَمُ | بِمَن | ضَلَّ |
|---|---|---|---|---|
| دعلم | بيشكه رب ستا چې دى | هغه ښه پوهه دى | په هغه چا | چې بې لارې شو |
| د پوهې آخرى حد بس دغه دى ........ ستا رب په هغه چا ښه پوهيږى چې د لارې نه گمراه شوې وى | | | | |

[1] السنن الكبرى للنسائي: ۱۱۵۴۷. مسند ابو يعلى: ۹۰۲، وسنده حسن مجمع الزوائد: ۱۷۶/۶، دلائل النبوة: ۴۶۳.

عَنْ سَبِيلِهٖ ۙ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ۝ وَلِلّٰهِ

دلارې دهغه نه | او هغه ښه پوهه دی | په هغه چا | چې په نیغه لار روان دی | او الله لره دی |

..........او هغه په دې هم پوهیږي | چې څوک په سمه لار روان دی | او په

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۙ لِيَجْزِيَ

هغه چې په آسمانونو کښې دی | او هغه چې په زمکه کښې دی | دپاره ددې چې بدله ورکړي |

آسمانونو او په زمکه کښې هرڅه چې موجود دی هغه ټول د الله ﷻ دی | چې کومو کسانو د بدۍ لار

الَّذِيْنَ اَسَآءُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَيَجْزِيَ

هغه کسانولره | چې بدی نې کړې وی | په سبب دهغې عمل | چې کړې نې وی | او بدله ورکړي |

اختیار کړې ده هغوی ته د بدۍ سزا ورکړي| او کومو کسانو چې نیکی کړې د ه هغوی ته د

الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى ۝ اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ

هغه کسانوله | چې نیکی نې کړې وی | په نیکۍ سره | دا نیکان هغه کسان دی | چې خان ساتی |

نیکۍ ښکلې بدله ورکړي |..........دا (نیکان) هغه کسان دی چې د وړو ګناهونه

كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ

دلویو ګناهونو نه | او دبې حیایۍ دکارونو نه | سوا دوړو ګناهونو نه | بیشکه رب ستا |

نه سوا د لویو لویو ګناهونو او د بې شرمۍ دکارونو نه خان بچ ساتی | ستا رب

وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ اِذْ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ

مالك دی دفراښه ښښانې | هغه | ښه خبر دی | په تاسو | کله چې هغه پیدا کړئ تاسو | دزمکې نه |

د ډیر فراخه بخښش مالک دی| هغه ته ستاسو حال ښه معلوم دی| څه وخت چې نې تاسو د زمکې نه پیدا کړی وئ

وَاِذْ اَنْتُمْ اَجِنَّةٌ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ فَلَا تُزَكُّوْٓا

او څه وخت چې تاسو | (یټ) بچی وئ | په خیټو کښې | دمیندو ستاسو | پس مهٔ پاکوئ تاسو |

او څه وخت چې تاسو د میندو په خیټو کښې بچی وئ | بس خپل خانونه مه پاکوئ

اَنْفُسَكُمْ ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى ۝

خانونه خپل | هغه ښه خبر دی | په هغه چا | چې خان نې اوساتو د ګناه نه |

الله ﷻ پرهیز ګار خلق ډیر ښه پیژنی |

قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ۝

د ذوالخلصه بت ذکر :- د ذوالخلصه نومې بت خانه دوس او خثعم بجیله وو چه کوم خلق ددوی هم وطن وو.دا به تباله کښې وو.او دې ته به خلق کعبه یمانیه وئیله.اود مکې کعبې ته به نې کعبه شامیه وئیله دادجریر بن عبدالله بجلی رضی الله عنه په لاسونو فنا شوه. فلس نومې بت خانه د قبیله طی او ددې چاپیر چل قبیلو وه دا جبل طی کښې سلمی او اجا ترمینځه وه. ددې د ختمولو دپاره علی رضی الله عنه مقرر شوې وو. ددې هغه ختم کړو او ددې خانې نه نې دوه توري یوړې. یو رسوب او بله مخزوم. حضور نبی کریم ﷺ دا

دواړه توري هم دوی ﷺ ته ورکړي. قبیله حمیرا او اهل یمن خپله بت خانه صنعاء کښې د ریا په نوم جوړه کړي وه.ذکر دی چه په هغې کښې یو تور سپي وو اوهغه د ددوۍ حمیری چه تبع سره راوتلي هغوئ دا اوویستو او قتل ئې کړو. او دا بت خانه ئې تباه کړه. او رضا نومې بت خانه دبنوربیعه ابن سعد وه.دا مستوغه ابن ربیعه بن کعب بن سعد اسلام کښې راوسته.

ابن هشام فرمائي چه ددوی عمر ٣٣٠ کاله وو چه دهغې بیان پخپله خپلو اشعارو کښې کړې دې. د ذوالکعبات نومې صنم خنابکر او تغلب او د ایاد قبیلې سندات کښې وو. بیا فرمائي چه ستاسو دې خامن وي اودالله جل شانه دې لونړه؟ ځکه چه د مشرکانو په خپل باطل ګمان کښې فرښتې ئې د الله جل شانه لونړه ګنړلې (نعوذبالله).

قوله تعالی:- اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

نوالله جل شانه فرمائي که تاسو خپلو کښې تقسیم کړئ او چا ته صرف لونړه او چا ته صرف خامن ورکړئ نو هغه به هم خفه وي. اودا تقسیم به دانصاف نه وي. اګر چه تاسو الله جل شانه لره لونړه او تاسو خپل خان دپاره خامن خوښوئ. بیا فرمائي چه دوی تاسو د خپل طرفنه بغیر د څه دلیل نه معبودان جوړ کړل او دوی ته چه مو څه نوم غوښتلو هغه مو ورکړو. ګنی اصل کښې دا معبودان نه دي. او نه څه دداسې پاك نوم مستحق دي. پخپله دا خلق هم ددې دعبادت کولو څه دلیل نه شي پیش کولې.صرف په خپلو مشرانو باندې حسن ظن کولو نه پس هغوئ هم داسې کړي وو او دوی هم داسې کوي.هسې بیحثه دروغ وائي.مصیبت خو دادې چه الله جل شانه د دلیلونو او واضح خبرو راتلو نه پس هم د خپل پلار نیکه غلطو لارو پسې انخښتي دي او نه ئې پریږدي. بیا فرمائي چه آیا دهر انسان هرخواهش به پورا کیږي؟ چه څوك څه وائي هغه به وائي څه په حق یم نو هغه په حق شو څه؟ تاسو اګر چه دعوې لوئې لوئې کوئ خو دې نه هیڅ مراد او مقصد نه حاصلیږي. حضور نبی کریم ﷺ فرمائي چه خواهش کولو په وخت کښې تاسو سوچ کوئ چه تاسو څه خواهش کوئ؟ تاسو ته نه دی معلوم چه تاسو ته به ددې خواهش باره کښې څه لیکلې کیږي؟ ([1]) دټولوامورو مالك الله جل شانه دې او دنیا او آخرت کښې تصرف د هغه ذات دې،چه څه هغه غوښتل هغه اوشو او چه څه غواړئ نو هغه به کیږي.

بیا فرمائي چه دالله جل شانه داجازت نه بغیر لوئې نه لوئې فرښته هم دسفارش یو لفظ نشي وئیلې. لکه فرمائي چه (مَنْ ذَا الَّذِيْنَ) الخ،څوك دی چه هغه ذات ته دهغه د اجازت نه بغیر هغه ته سفارش اوکړي. دهغه ذات د فرمان نه بغیر څوك هم چاته فائده نشي ورکولې. نو هرکله چه د لویولویو فرښتو دا حال دې نو بیا اتې بې وقوفو ! تاسو ته به دا بتان څه فائده اورسوي؟ تاسو الله جل شانه ددوی د عبادت نه منع کوي. ټول رسولان او ټول آسماني کتابونه دالله جل شانه نه سوا د نورو دعبادت نه منع کول او خپل عظیم الشان مقصد ښائي. بیا هم تاسو دوی سفارشي منئ،دا څومره غلطه لار ده.

قوله تعالی:- لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى۝

د بې ایمانه خلقو خبرې: الله جل شانه د مشرکانو ددې قول تردید کوي چه د الله جل شانه فرښتې دالله جل شانه لونړه دی لکه چه بل ځائې فرمائي چه (جَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ) الخ یعنی دالله جل شانه مقبول بندګانې فرښتې دوی دالله جل شانه لونړه جوړې کړې دی.آیا ددوی دپیدائش په وخت کښې دوی موجود وو څه؟ ددوی شهادت به لیکلې کیږي او ددوی نه به تپوس کیږي. دلته هم وائي چه دوی د فرښتو زنانه نوم ایږدي. اودا ددوی دبې علمۍ نتیجه ده. دا نه صرف بهتان بلکه صریح شك دې،دا صرف ددوی اټکل دې او دا ظاهر دی چه اټکلې خبرې دحق قائمقام نشي کیدې. حدیث مبارك کښې دی چه ګمان نه خان

[1] احمد : ٢/٣٥٧، وسنده حسن الادب المفرد: ٧٨٤.

اوساتي: څکه چه دا بدترين دروغ دي([1]) بيا الله جل شانه خپل نبي ﷺ ته فرمائي چه دحق نه اعراض کوونکو والو نه تاسو هم اعراض اوکړئ. ددوی انتهائي علم نظر ددنيا ژوند دې او ددې غايت سفلي دنيا ده ددې انجام هيڅکله هم نيک نشی کيدې. ددوی د علم غايت هم دا دی ددنيا طلب او کوشش کښې اخته دی.

حضور نبی کريم ﷺ فرمائي چه دنيا دهغوی کور دې چه آخرت کښې دچا کور نه وی او دنيا دهغوی مال دې چه آخرت کښې دهغوی کور نه وی. او ددې جمع کولو کښې دوی اخته دی اودوی د عقل نه خالی دی ([2]) يو منقوله دعا کښې د حضور نبی کريم ﷺ دا الفاظ هم راغلی دی چه ( اللهم لاتجعل الدنيا اکبر همنا ولامبلغ علمنا، الی الله ) ! ته خمونږ اهم کوشننونه او منتهائي نظر او مقصد معلومات صرف دنيا مه کوه ([3]) بيا فرمائي چه دټولو مخلوقاتو خالق صرف الله جل شانه دې چا ته چه هدات غواړي نو ورکوني ئې او چه چاته ذلت ورکول غواړي نو هغه نه ذلت ورکوی. دا ټول هر څه د هغه ذات قدرت، اوعلم سره او حکمت سره کيږي، هغه ذات عادل او خپل شريعت کښې اواندازه مقررولو کښې ظلم او بې انصافی نه کوی.

**قوله تعالى:- وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ**

**ټوله دنيا کښې بادشاهت دالله جل شانه دي:-** دآسمان او زمکې مالك الله جل شانه بې پرواه، مطلق شهنشاه حقيقي او عادل او خالق حق او حق کار دې. هر چاته به دهغه د عملونو بدله ورکولو والا، نيکئ باندې نيکه جزا او بدئی باندې بده سزا ورکولو والا هم هغه ذات دې. دهغه ذات په نزد هغه ته بهتر خلق هغه دی چه د حرام شوئ څيزونو اوکارونو نه، لويولويو ګناهونو او بدکارونو او نالائقو نه بچ شی. دده نه که د بشريت په تقاضا څه ګناه اوشی اودا وړه شان ګناه وی نو الله جل شانه به ده پرده اچوی او ده له به معاف کوی. لکه يو بل آيت مبارك کښې فرمائي چه ﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ﴾ که تاسوددې لويوګناهونو نه بچ شوئی چه کومو نه تاسو منع کړې شوی يئ نو ستاسو ګناهونه به معاف کړې شی او تاسو ته به د عزت ځائې يعنی جنت به داخل کړنی شئ.

**قوله تعالى:- إِلَّا اللَّمَمَ**

**واړه ګناهونه :-** دلته هم اوفرمائيلې شو چه وړې وړې خطاګانې او دانسانيت کمزورنی معاف دی. عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چه لمم تفسير خما خيال کښې دابوهريره ﷺ بيان شوی حديث مبارك نه زيات ښه نه دې چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله جل شانه ابن آدم باندې دده د زنا حصه ليکلي ده اودا به دې پورا کوی. د سترګو زنا کتل دی او ژبې زنا وينا ده اود زړه خواهش او آرزو کوی، اوس شرمګاه يا خو دې رينبتونئ کوی اويا يې دروغژن کوئی ئې ([4]) ( بخاری ومسلم) ابن مسعود ﷺ فرمائي چه دسترګو زنا نظر دې او شونډو زنا بوسه اخستل دی او لاسونو زنا نيول دی او پښو زنا تګ دې او شرمګاه ده لره رينبتونې يا دروغژن کوی. يعنی که دې شرمګاه منع نه کړی او بدکاری اوکړی نو دټولو اندامونو زنا ثابت شوه. او که دې خپل دا اندام منع کړې نو دا ټول لمم کښې داخل دی ([5]) ابوهريره ﷺ نه مروی دی چه لمم بوسه اخستل، چيړل، کتل او مس کول دی اوکله چه شرمګاه ملاؤ

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الادب باب ( يايها الذين امنو اجتبوا من الظن ان بعض الظن .....) : ٦٠٦٦، صحيح مسلم: ٢٥٦٣. ترمذی: ١٩٨٨، ابوداود : /٤٩١٧، بيهقی : ١٨٠/٧، المعجم الاوسط: ٨٤٦١.

[2]) احمد: ٧١/٦، شعب الايمان : ١٠٦٣٨، مجمع الزوائد: ٢٨٨/١٠.

[3]) ترمذی کتاب الدعوات باب دعاء ( اللهم اقسم لنا من خشيتک مايحول ...) : ٣٥٠٢، وهو صحيح حاکم : ٥٢٨/١.

[4]) صحيح بخاری کتاب الاستئذان باب زنا الجوارح دون الفرج: ٦٢٤٣، صحيح مسلم: ٢٦٥٧، احمد: ٢٧٦/٢، ابن حبان : ٤٤٢٠.

[5]) الطبری : ٥٣٥/٢٢، حاکم : ٤٧٠/٢،

شوه نو غسل کول واجب شو او د زنا کارنی گناه ثابت شوه.(۱)ابن عباس ﷺ نه ددې جملې تفسیر همدا مروی دې یعنی چه کوم مخکښې تیر شو. مجاهد ﷺ چه گناه سره حالت خراب شی او بیا دا پریږدی،نو دا لمم کښې داخل دی،شاعر وانی چه :

ان یغفر اللهم تغفر جما  وای عبد لك لا الما

یعنی انې الله جل شانه ا هرکله چه ته معاف کوې نو ټول هر څه معاف کړه گنی هسې خو هر انسان گناه کښې اخته دې.

مجاهد ﷺ فرمانی چه جاهلیت والوبه خپل طواف کښې عام طور دا شعر وئیلو. ابن جریر کښې د حضور نبی کریم ﷺ دا شعر ونیل هم مروی دی. ترمذی شریف کښې هم دا مروی دی. او امام ترمذی هم دې ته صحیح حسن وانی(۲). بزار ﷺ فرمانی چه مونږ ته ددې بل سند معلوم نه دې صرف هم دې سند سره مرفوعا مروی دی. ابن ابی حاتم او بغوی هم دا نقل کړې دې. بغوی دا سورة تنزیل کښې روایت کړې دې. خوددې مرفوع صحت کښې نظر دې. یو روایت کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه ددې نه مراد دادې چه زنا ته دنزدې کیدو نه پس توبه اوکړی او بیا واپس شی،غلا ته د نزدې کیدو نه پس غلا اونکړی او توبه ویستلونه پس واپس شي. داشان شرابو ته نزدې شو خو شراب نې اونه څکل او توبه ې اوویستله. دا ټول الما کښې داخل دی (۳)او دا یو مومن ته معاف دی. حسن ﷺ نه هم دا مروی دی. عبدالله بن عمرو ﷺ فرمانی چه ددې نه مراد شرك نه علاوه گناهونه دی. ابن زبیر ﷺ د دوو حدونو مینځ کښې زنا او د آخرت عذاب. ابن عباس ﷺ فرمانی چه هر هغه څیز چه ددوو حدونو ترمینځه وی،حددنیا او حد آخرت. مونځونه ددې کفاره جوړیږی. اوهرواجب کوونکی نه کم دی. ددنیا حد خو هغه دې چه په یوگناه باندې الله جل شانه دنیاوی سزا مقرر کړې وی. اود آخرت حد هغه دې چه په هغه څیز باندې الله جل شانه جهنم واجب کړې وی. اودهغې سزا دنیا کښې مقرر نه وی.

**قوله تعالی:- إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ**

**دالله ﷻ د وسیع مغفرت بیان:-** ستا درب بخشش ډیر وسیع دې. هر څیز نې گیر کړې دې او ټولو گناهونوباندې دهغه احاطه ده. لکه چه فرمان دې ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا﴾ الخ انې څما هغه بندگانو ! چه چا پخپلو ځانونو اسراف کړې دې دالله جل شانه درحمت نه مه ناامیده کیږئی ،الله جل شانه ټول گناهونه بخښی او ډیر بخښنې والا او ډیر لونې رحم والا دې. بیا فرمانی چه هغه تاسو لره وینی او ستاسو دهر حال علم ورته شته دې ا وستاسودهر کلام آوریدونکی او ستاسو دټولو اعمالو نه واقف دې. اوهغه ذات ستاسو پلار آدم ﷺ د زمکې نه پیدا کړو. اود هغه د ملا نه نې دهغه اولاد پیدا کړل چه د میږو پشان خواره شو. بیا دا تقسیم کړې شو او دوه ډلې جوړې کړې شوې. یو جنت دپاره او بله دوزخ دپاره. اوکله چه تاسو دمور خیټې کښې وې نو هغه پاك ذات تاسو دخپلو فرښتو په ذریعه تاسو ته روزی ،عمر،نیکی او بدی اولیکله. ډیر بچې د مور خیټې نه پریوزی. ډیر د پیدا کیدو نه پس د ماشومتوب حالت کښې مړه شی. ډیر د پنیو نه پس حالت کښې بلوغت نه مخکښې مړه شی. اوډیر خو په ځوانئ کښې ددې د نیا نه رخصت شی. او هرکله چه مونږ دا منازل پورا کړل او بوداگان شو او ددې نه پس هیڅ منزل نشته دې او ا وس هم که مونږ پوهه نشو نو زمونږ نه زیات غافل څوك دې؟ خبردار تاسو د خپل نفس تزکیه په خپله مه کوئی او اود خپلو اعمالو تعریفونه پخپله تعریفونه مه کوئی. او دخپل ځان تعریفونه په خپله مه

---

(۱) الطبری : ۵۳۷/۲۲.

(۲) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة والنجم : ۳۲۸۴. وسنده صحیح.

(۳) الطبری : ۵۳۵/۲۲.

کوني. چه زړه کښې دالله جل شانه نه ویره ده الله جل شانه ته هغه ښه معلوم دي.

قوله تعالی:- فَلَا تُزَكُّوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ

ځان ته نیک مه وائي: اویو آیت مبارك کښې دي چه [أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم ۚ بَلِ ٱللَّهُ يُزَكِّى مَن يَشَآءُ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا] یعنی آیاتاسو هغه خلق اولیدل چه دخپل ځان پاکي پخپله بیانوی، هغوئ ته معلوم نه دی چه دا د الله جل شانه لاس کښې دي چه چا ته ئې ورکوی نو هغه پاك او صفا او برتر او اعلی کړی او په هیچا به ظلم نه کیږي..

محمد ابن عمرو بن عطاء رحمه الله فرمائی چه ما دخپلې لور نوم بره کیخودله نو ما ته زینب بنت ابو سلمه رضي الله عنها اوفرمائیل چه حضور نبی کریم ﷺ ددې نوم نه منع کړې ده. پخپله خما نوم هم بره وو. نوېدې حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته پخپله خپله پاکی او بهتری مه بیانوه. تاسو کښې دنیکئ کولو والا علم پورا په پورا الله جل شانه سره دې. خلقو اووئیل چه بیا مونږ ددې څه نوم کیږدو؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې نوم زینب کیږدئ (۱). مسند احمد کښې دی چه د حضور نبی کریم ﷺ مخکښې یو سړی دبل سړی ډیر زیات تعریفونه اوکړل، نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه افسوس تا هغه اووژلو. ډیر ځل ئې دا اوفرمائیل که د چا تعریف کوې نو داسې وایه چه د فلانی باره کښې خما ګمان دادې او حقیقی علم الله جل شانه ته دې. او بیا خپل معلومات بیان کړه. اوپخپله د چا پاکی مه بیانوه. (۲) ابوداود اومسلم کښې دی چه یو سړی دعثمان رضي الله عنه مخکښې ددوی تعریف اوکړو نو په دې مقداد ابن اسود رضي الله عنه دهغه خوله کښې ښاوره اچوله او وې فرمائیل چه مونږته د حضور نبی کریم ﷺ حکم دې چه دتعریف کوونکی خوله کښې ښاوره واچوو. (۳)

| أَفَرَءَيْتَ | ٱلَّذِى | تَوَلَّىٰ | وَأَعْطَىٰ | قَلِيلًا وَأَكْدَىٰٓ | أَعِندَهُۥ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیا اولیدو تا | هغه سړي چي اوګرځیدو دحق نه | او ورئي کړو مال | لږ | او منع شو | آیا دهغه سره دي |

آیا تاهغه سړې لیدلې دې کوم چي مخ واړولو | اولږ غوندې (مال) ئې ورکړو | اوبیا ئې لاس رانښکلو | آیا

| عِلْمُ ٱلْغَيْبِ | فَهُوَ يَرَىٰٓ | أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ | بِمَا |
|---|---|---|---|
| علم دغیبو | چي هغه ویني حقیقت | یا نه دي خبر کړې شوي دې | په هغه |

ده سره دغیبو علم دې | چي (هرڅه) ویني ګوری | آیا ده ته دهغې مضمون خبر نه دې رارسیدلې

| فِى صُحُفِ مُوسَىٰ | وَإِبْرَٰهِيمَ | ٱلَّذِى |
|---|---|---|
| چي په صحیفو دموسی کښې دی | او په صحیفو دابراهیم کښې دی | هغه (ابراهیم علیه السلام) |

چي دموسی علیه السلام په صحیفو کښې وو | اود ابراهیم علیه السلام د صحیفو چي ټول حکمونه ئې

| وَفَّىٰٓ | أَلَّا تَزِرُ | وَازِرَةٌ | وِزْرَ أُخْرَىٰ | وَأَن لَّيْسَ |
|---|---|---|---|---|
| چي پوره ئې کړوکارخپل | چي نه به اوچتوی | یو بوج اوچتونکې | بار دبل چا | او دا چي نشته |

په ځائې کړل | دا چي هیڅ یو بار وړونکې به د بل چا بار اوچتولې نشي | اودا چي هر

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الادب باب استحباب تغیر الاسم القبیح الی حسن ....: ۲۱۴۲.

(۲) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب اذا ذکی رجل رجلا کفاه : ۲۶۶۲، صحیح مسلم: ۳۰۰۰، ابوداود: ۴۸۰۵. احمد: ۴۶/۵،

(۳) صحیح مسلم کتاب الزهد باب النهی عن المدح اذا کان فیه افراط : ۳۰۰۲، ابوداود : ۴۸۰۴، ترمذی : ۲۳۹۳، ابن ماجه: ۳۷۴۲، احمد: ۶/۵، الادب المفرد: ۳۳۹.

| سَوۡفَ يُرٰىۖ | وَاَنَّ سَعۡيَهٗ | اِلَّا مَا سَعٰىۙ | لِلۡاِنۡسَانِ |
|---|---|---|---|
| انسان لره \| مگر هغه چې کوشش اوکړو هغه \| او بیشکه کوشش دهغه \| به ډیر زر اولیدې شي \| | | | |
| انسان ته هم هغه ملاویږی \| چې دکوم هغه کوشش کوی\|\|وداچې دانسان کوشش به ډیر زر اولیدې شي | | | |
| | ثُمَّ يُجۡزٰىهُ | الۡجَزَآءَ الۡاَوۡفٰىۙ | |
| بیا به ورکړې شي هغه ته \| بدله پوره | | | |
| بیا به ورته پوره پوره بدله ورکړې شي | | | |

**قوله تعالى:- اَفَرَءَيۡتَ الَّذِىۡ تَوَلّٰىۙ**

**د دین نه مخ اړولو والا:-** الله جل شانه د هغه خلقو مذمت بیانوی چه دالله جل شانه د فرمانبردارئی نه مخ اړوی.او ریښتیا قبول نه کړی. او مونځ نه اداکوی بلکه دروغ وائی او اعراض کوی.دالله جل شانه لار کښې ډیرکم خیرات کوی. او زړه نصیحت قبلولو والا نه جوړوی. کله خو څه اومنی خو ددې نه پس بیا ددې نه روبتو شی. عرب اکدی هغه وخت وائی لکه څه کسان کوهي کنی اوددې مینځ کښې څه سخت کانړئی راشی او دوی روستو شی. فرمائی چه آیا دوی سره علم غیب دې څه؟ چه دې پوهه شو که څه دالله جل شانه لار کښې څه خرچ کړم نو څه به خالی لاس پاتې شم. یعنی اصل کښې داسې نه ده بلکه دې صدقې نه،نیکئ نه،او د ښیګړې نه دبخل په وجه او طمع په وجه او خود غرضئ اونامردئی په وجه روستو کیږی. حدیث مبارك دی چه انې بلال ! خرچ کوه او د عرش والا نه د فقیرئی ویره مه ساته[1] پخپله قران پاك کښې دی چه [وَمَاۤ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ فَهُوَ يُخۡلِفُهٗ ]تاسو چه څه خرچ کوئی نو الله جل شانه به تاسو دهغې بدله درکوی او هغه بهترین رازق دې.د [وفی] معنی یو داده چه ده څه حکم شوې وو هغه ټول نې اورسول.

**فائده:-** بله معنی دابیان شوې ده چه کوم حکم ملاؤ شو نو هغه پورا کوی. صحیح دادی چه دا دواړه معنې درست دی لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ( و اذابتلی)الخ،او ابراهیم ﷺ چه کله هم دده رب ازمائیلو نودوی ﷺ هغه کښې پورا پورا کامیاب شو. یعنی هر حکم نې اومنلو او چه کوم نه منع شوې وو هغې نه منع شو. درب تعالی رسالت نې پورا اورسولو. نو الله جل شانه هغه امام جوړ کړواو نور خلق نې دوی تابعدار جوړ کړل. لکه چه ارشاد دې چه ﴿ثُمَّ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ اَنِ اتَّبِعۡ مِلَّةَ اِبۡرٰهِيۡمَ حَنِيۡفًا﴾ بیا مونږ تاته وحی اوکړه چه د ابراهیم ﷺ د دین حنیف تابعداری اوکړه او هغه مشرك نه وو. دابن جریر یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تفسیر کښې اوفرمائیل چه هره ورځ به راختله نو څلور رکعته به نې ادا کول او هم دا دهغه وفاداری وه ترمذی کښې یو حدیث قدسی کښې دی چه انې ابن آدم ! ته مالره د ورځې په شروع کښې څلور رکعته مونځ کوه څه به تالره ټوله ورځ کافی شم (۲). دابن ابی حاتم یو حدیث مبارك کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ابراهیم ﷺ دپاره د (وفی) لفظ په دې وجه اوفرمائیلې شوچه هغوئ به هر سحر مابنام دا کلمات وئیل چه ﴿فَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ حِيۡنَ تُمۡسُوۡنَ وَحِيۡنَ تُصۡبِحُوۡنَ﴾ تر دې چه حضور نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك ختم کړو(۳)

---

[1] طبرانی : ۱۰۲۰.

[2] ابوداود کتاب التطوع باب صلاة الضحی : ۱۲۸۹، وهو صحیح ، ترمذی : ۴۷۵.

[3] احمد : ۴۳۹/۲.

بیا بیان کیږی چه صحف ابراهیم او صحف موسی کښې څه وو؟ په هغې کښې وو چه چا هم په خپل ځان ظلم اوکړو لکه شرك ئې اوکړو یا کفر ئې اوکړو یا ګناه صغیره ئې اوکړه یا ئې ګناه کبیره اوکړه نو دهغې باره به دهغه په سر وی، دده دا بوج به بل څوك نه اوچتوی. لکه څنګه چه قران پاك کښې دی چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ﴾ الخ که څوك خپل بوج طرفته څوك راوبلی نو دهغه نه به هیڅ نشی اوچتولې اګر چه دده رشته دار وی. په هغه صحیفو کښې دا هم وو چه انسان دپاره صرف هغه دی چه کوم ده حاصل کړل. یعنی څنګه چه په ده د نورو بوج نشی اچولې داشان به دې دنورو په بدعملو کښې نه نیولې کیږي اوداشان به د نورو نیکۍ هم ده ته څه فائده نه رسوی.

**قوله تعالی:- وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ**

**یو کس به دبل چا بوج نه اوچتوی اوایصال ثواب مسئله**.-امام شافعی رحمه الله او ددوی متبعین ددې آیت مبارك نه استدلال کړې دې که دقران خوانۍ ثواب مړو ته رسول وی نو دا هغوئ ته نه رسی ځکه چه دا نه دهغوئ عمل دې اونه کسب. هم دا وجه ده چه حضور نبی کریم ﷺ نه ددې جواب بیان کړو او نه ئې خپل امت ته ددې رغبت ورکړو او نه ئې څه صریح فرمان سره دې طرفته اشاره اوکړه. هم داشان د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه هم دچا نه دا ثابت نه دی چه هغوئ د قرانپاك څه حصه وئیلې ده او ددې ثواب ئې مرده ته بخښلې دې. که دا نیکی وې اود شرعې مطابق وې نو خمونږ نه زیات صحابه کرام رضی الله عنهم نیکو کښې سبقت اخستونکی وو. دې سره دا هم یاد ساتل پکار دی چه د نیکو کارونه د قران وحدیث د صریح فرمان نه ثابت دی. او په دې کښې د هیڅ قسمه رائې او قیاس دخل نشته دې. خو ددعا او صدقې ثواب مړی ته رسی. په دې باندې اجماع ده اود شارع ﷺ دالفاظو نه ثابت دی. چه کوم حدیث مبارك صحیح مسلم ابوهریره رضی الله عنه نه مروی دې چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دانسان په مرګ دده اعمال منقطع شی خودرې څیزونه باقی وی نیك اولاد چه دده دپاره دعا کوی یا هغه صدقه چه دده د انتقال نه پس هم جاری وی. یا هغه علم چه دهغې نه فائده اوچتولې شی (١). ددې مطلب دادې چه حقیقت کښې دا څیزونه پخپله دمړی د کوششونو او د هغه عملونه دی یعنی ده ته د بل چا د اجر ثواب نه رسی. یو حدیث مبارك کښې دی چه دانسان دټولو نه بهترین خوراك هغه دې چه هغه خپلو لاسونوسره حاصل کړی وی اودده خپله ګټه وی او دانسان اولادهم دده خپله ګټه ده اودده حاصل شوې څیز دې (٢). نوثابت شو چه نیك اولاد دده دمرګ نه پس دده دپاره دعا کوی نو هغه دده خپل عمل دې هم دا شان صدقه جاریه لکه وقف وغیره او هغه هم دده د عمل اثر دې. اوهم د ه وقف کړې دې. پخپله قران پاك کښې فرمانی چه ﴿إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي الْمَوْتَىٰ وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ﴾ الخ، مونږ مردګان ژوندی کوو او لیکو چه څه مخکښې لیږی او څه نښې دده نه روستو دی. ددې نه ثابت شو چه ده کومې نیکۍ نښې روستو پرېښودې وی دهغې ثواب ده ته رسی. پاتې شو هغه علم چه هغه ده خلقوته رسولې وی اودده د وفات نه پس هم خلق په هغې عمل کوی، هغه هم اصل کښې دده سعی او دده عمل دې چه دده نه پس باقی پاتې وو او ده ته ثواب رسیدو. صحیح حدیث مبارك کښې دی چه کوم سړې هدایت طرفته خلق راوبلی او څومره خلق دده تابعداری اوکړی نود هغه ټولو داجر په مثل به ده ته هم اجر ملاویږی. او دهغوی داجر نه به څه نشی کمولې (٣) بیا فرمانی چه دده کوشش به د قیامت په ورځ تللې شی. په هغه ورځ به دده عمل کتلې شی. لکه فرمانی چه ﴿قُلِ اعْمَلُوا﴾ الخ یعنی اووایه چه تاسو عمل کوئ الله جل شانه به

---

(١) صحیح مسلم کتاب الوصیة باب ما یلحق الانسان من الثواب بعد وفاته : ١٦٣١٢، ابوداود : ٢٨٨٠، ترمذی : ١٣٧٦. احمد: ٣٧٢/٢، ابن حبان : ٣٠١٦، دارمی : ١٤٨/١.

(٢) ابوداود کتاب البیوع باب الرجل یاکل من مال ولده: ٣٥٢٨. وهو صحیح ترمذی : ١٣٥٨. ابن ماجه: ٢٢٩٠.

(٣) صحیح مسلم کتا ب العلم باب من سن سنة حسنة او سیئة .....: ٢٦٧٤. ابوداود : ٤٦٠٩، ابن ماجه: ٢٠٦.

ستاسو اعمال ګوري. اودهغه رسول او ایمان والا او عن قریب تاسو به الله جل شانه طرفته واپس شئ. بیا به هغه تاسو ستاسود عملونو نه خبردار کړي. یعنی دهرې نیکئ جزا او د هرې بدئ بدله به درکوي. دلته ئې هم اوفرمائیل چه پورا پورا بدله به ورکوؤ.

**د قران پاک وغیره نیکو اعمالو ثواب بل چاته ورکولې شي**

**مسلک حنفي:-** د حنفیانو دغه شان د جمهورو عالمانو مذهب دې که یو کس د خپل نیک عمل ثواب بل ته بښي نوهغه ته رسیږي اوباقي په آیت کښې چې کوم ذکردې چه هرسړي ته به هم دهغه دنیک عمل ثواب ملاویږي نو د دې په مطلب کښې عالمانو ډیرې خبرې کړي دلته زه صرف د مسلک حنفي وضاحت کوم د جمهورو په هغه ټولو احادیثو دې په کومو کښې چې د یو د نیک عمل ثواب بل ته د رسیدو ذکر دې (تفسیر مظهري ۱۰۲۱۹، ۱۰۳).

| |
|---|
| وَاَنَّ اِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰىۙ﴿۴۲﴾ |
| \| او بیشکه چې رب ستا ته \| آخر رسیدل دی \| |
| \| اودا چې (ټول) ستا رب طرفته ورتلل دی |
| وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰىۙ﴿۴۳﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْيَاۙ﴿۴۴﴾ وَاَنَّهٗ |
| او بیشکه هغه \| اوخندوي \| او ژړوي \| او بیشکه هغه مړه کړل \| او ژوندي ئې کړل \| او بیشکه هغه |
| اودا چې هغه خندول او ژړل کوي \| او دا چې هغه وژل اوژوندي کول کوي \|.........اودا چې |
| خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰىۙ﴿۴۵﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰى﴿۴۶﴾ |
| پیدا کړې جوړئ \| دنارینه (نر) او دزنانه (ښځه) \| دنطفې نه \| کله چې واچولې شي رحم ته \| |
| دنر او د مادې جوړئ هغه د نطفې نه پیدا کړې دی \| څه وخت چې (په رحم کښې) تویه کړې شي |
| وَاَنَّ عَلَيْهِ النَّشْاَةَ الْاُخْرٰىۙ﴿۴۷﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ اَغْنٰى |
| او بیشکه چې دهغه ذمه واري ده \| پیدا کول \| ددویم خل \| او بیشکه چې هغه \| غني کړو (انسان) |
| اودا چې دوباره ژوندون هم دهغه ذمه واري ده\|... ........اودا چې هم هغه غني کول کوي اوهم |
| وَاَقْنٰىۙ﴿۴۸﴾ وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰىۙ﴿۴۹﴾ وَاَنَّهٗۤ اَهْلَكَ |
| او جائیداد ئې ورکړو \| او بیشکه چې هغه \| رب دشعرئ ستوري دې \| او بیشکه چې هغه هلاک کړل |
| هغه جائداد ورکوي \| اودا چې د شعرئ (ستوري) رب دې\| اودا چې هغه |
| عَادَا الْاُوْلٰىۙ﴿۵۰﴾ وَثَمُوْدَا فَمَاۤ اَبْقٰىۙ﴿۵۱﴾ وَقَوْمَ نُوْحٍ |
| عادیان رومبني \| او ثمودیان \| پس باقي ئې پرې نښودو هیڅوک \| او قوم دنوح علیه السلام \| |
| اولني عادیان هم تباه کړي دي \| اوثمودیان هم \| هیڅوک ئې باقي نه دي پریښې \| اوددوئ نه |
| مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰىؕ﴿۵۲﴾ |
| مخکښې دهغوئ نه \| بیشکه چې هغوئ \| وو \| خاص هم هغوئ \| ډیر ظالمان \| او ډیر سرکشان \| |
| وړاندې د نوح علیه السلام قوم (ئې هم هلاک کړې وو) \| ځکه چې هغوئ ډیر ظالمان وو\| اوسرکشه وو |

| وَالْمُؤْتَفِكَةَ | أَهْوٰى ﴿۵۳﴾ | فَغَشّٰهَا |
|---|---|---|
| او پاستر شوی کلی \| هغه اوچت کړل او راغوزارني کړل \| بیا ئې خور کړو په هغه کلی باندې \| | | |
| او (دغه) اوړېدلی کلی هم هغه (په بل مخ) اړولی وو \| نو دهغې کلونه ئې راتاؤ کړه \| هغه څه چې | | |

| مَا غَشّٰى ﴿۵۴﴾ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ | رَبِّكَ | تَتَمَارٰى ﴿۵۵﴾ |
|---|---|---|---|
| هغه څه چې خور ئې کړو \| نو په کومو نعمتونو \| درب خپل \| به ته شك کوې \| دا خبرداروونکي دې \| | | | |
| ئې راتاؤ کړو \| نو ته به د خپل رب په کړم کوم نعمت کښې شك کوې \| | | | |

قوله تعالی:- وَاَنَّ اِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾

**هم آخر به الله جل شانه ته تګ وی** :-فرمان دې چه آخر الله جل شانه طرفته تګ دې. دقیامت په ورځ به ټول هغه ذات طرفته واپس شی. معاذ ﷜ قبیله بنواود کښې یو خطبه کښې اوفرمائیل چه اې بنی آدم! څه دالله جل شانه دپیغمبر قاصد ستاسو طرفته راغلې یم،تاسو یقین اوکړئ چه ستاسو دټولو واپس کیدل الله جل شانه طرفته دي،نو بیا خو به یا جنت ته داخل کړې شئ یا جهنم ته [۱]. بغوی کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تشریح کښې اوفرمائیل چه دالله جل شانه ذات کښې فکرکول جائز دی لکه یو بل حدیث مبارك کښې دی چه مخلوق باندې بنه ژور نظر اچوئی خو دخالق ذات کښې دومره ژور مه کوزیږئ. هغه عقل و ادراك او فکر اوذهن نه شی موندې [۲]. اګر چه دې لفظونو سره دا حدیث مبارك محفوظ نه دې خو صحیح حدیث مبارك کښې دا مضمون موجود دې. هغې کښې دی چه شیطان چاته ورشی نو وائی چه هغه چا پیدا کړې دې؟ او هغه چا پیداکړې دې؟ تردې چه وائی چه الله ﷻ چا پیدا کړې دې؟(نعوذبالله) اوهرکله چه ستاسو زړونو کښې دچا زړه کښې دا وسوسه وی نو اعوذ وائي او دا خیال دزړه نه لرې کړئ [۳]دسنن یو حدیث مبارك کښې دی چه دالله ﷻ مخلوقات کښې غور وفکرکوئ لیکن دالله ﷻ ذات کښې غور و فکر مه کوئ واورئ الله ﷻ یوفرښته پیداکړې ده چه دهغه فرښتې د غوږ د نرمې نه تردغوږ سوری پورې د دریو سوؤ کالو لار ده. او کماقال.

قوله تعالی:- وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى ﴿۴۳﴾

**دژوند او مرګ مالک الله جل شانه دې** :- بیافرمانی چه بندګانو کښې د ژړا او خندا ماده او ددوی اسباب هم هغه ذات پیداکړی دی چه بالکل مختلف دی. هم هغه ذات د مرګ او حیات مالك دې. لکه﴿الَّذِیْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَیٰوةَ﴾ هغه ذات موت او حیات پیداکړل،هغه ذات د نطفې نه هر جاندار پیدا کړل جوړې جوړې،اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿اَیَحْسَبُ الْاِنْسَانُ لخ﴾ آیا انسان ګنړی چه دې به بې کاره پریښودې شی آیادې دمنئ قطره نه وو چه (رحم کښې وو؟ بیا آیا دې چکه خون نه وو؟ بیا الله جل شانه دې پیداکړو اودرست ئې کړو. او دده نه ئې جوړې یعنې نر او ماده جوړ کړل. آیا دداسې قدرتونو والا) الله جل شانه په دې قادر نه دې چه مړی ژوندی کړی؟ بیا فرمانی چه هم په دې دوباره ژوندی کیدل دی یعنی لکه څنګه چه هغه ابتداء پیداکړې دې. همداشان دهغه د مرګ نه پس دوباره د ژوندی کولو ذمه هم د هغه ذات ده. هغه ذات خپل بندګان غنیان جوړ کړل. او مال ئې ددوی قبضه کښې ورکړو او دادوی سره په طور د پنګې دی. داکثرو مفسرینو دکلام خلاصه په دې مقام هم دا ده [۴] اګر چه بعضو

---

[۱] ابن ابی حاتم حاکم : ۸۳/۱.

[۲] تفسیر بغوی : ۴۱۲/۷.

[۳] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة ابلیس وجنوده : ۳۲۷۶، صحیح مسلم: ۱۳۴.

[۴] الطبری : ۵۴۸/۵.

نه مروی دی چه هغه مال ورکړو او غلام ئې ورکړو او هغه ذات ورکړل او خوشحاله شو او دې ئې غني کړاونورمخلوق ئې دده محتاج کړو. چه چا لره ئې غوښتل نو غنی ئې کړل اوچا لره ئې غوښتل فقیر ئې کړو. خودامخکښې دواړه الفاظ لفظ سره څه زیات مطابقت نه ساتی.

**قوله تعالی:- وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ﴿٤٩﴾**

**شعری** دهغه ستوری نوم دې چه هغې ته مرزم الجوزاء وائی. بعضو عربوبه ددې عبادت کولو[1]. عاد والا یعنی قوم عاد لره چه ده ته عاد بن ارم بن سام بن نوح ونیلې شی. او هم دوی ددوی د سرکشئ په وجه دوی تباه کړل. لکه فرمانی چه﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ﴾ یعنی آیاتا او نه کتل چه ستا رب عاد سره څه اوکړل؟ یعنی ارم سره چه ډیر قد والا وو. او دهغوئ مثل ښارونو کښې نه ووپیداشوی. دا قوم ډیر زور آور او قوی وو. دې سره دالله جل شانه نافرمان او درسول ﷺ نافرمان وو. په هغوئ د هوا عذاب راغلو اودا اووه شپې او اته ورځې جاری وه. داشان هغه ذات ثمودیان هم هلاك کړل. او په هغې کښې یو هم باقی پاتې نشو. او ددوی نه مخکښې قوم نوح تباه شوې وو. او هغوئ ډیر زیات بې انصافه او شریر وو.اود لوط کلې چه رب قهار هغه تباه کړل او آسمانی کاڼړو سره ئې ټول بدکار هلاك کړل،هغوئ یو څیز راګیر کړل یعنی کاڼړواوهغوئ باندې ددې باران اوشو او ډیر په بد حال تباه شو. په دې کلو کښې څلور لاکه خلق آباد وو. د آبادئی ټوله زمکه او اور او ګندهك او تېل په دې راتوې شو.دقتاده ﷫ همدا قول دې. اوداډیر غریب سند سره ابن ابی حاتم کښې مروی دې. بیا فرمانی چه انې انسانه ته به د خپل رب کوم کوم نعمت سره جنګ کوې؟ بعضې وائی چه خطاب نبی ﷺ ته دې؟ لیکن خطاب عام کړل ډیر اولی دی. امام ابن جریر ﷫ هم ددې عام کول خوښوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | | هٰذَا نَذِيرٌ |
| | | | | دا خبردارونکې دې \| |
| | | | | \| دا(پیغمبر) هم دپخوانو |
| مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰ﴿٥٦﴾ | أَزِفَتِ | الْآزِفَةُ﴿٥٧﴾ | لَيْسَ لَهَا | مِن دُونِ اللَّهِ |
| دخبردارونکو ړومبنونه \| | نزدې راغې \| | راتلونکې ساعت \| | نشته هغې لره \| | بغیر دالله نه \| |
| ویرونکو پشان یو ویرونکې دې \| | هغه (دقیامت) راتلونکې(ساعت) راورسیدو \| | | دالله ﷻ نه بغیر دابل څوك | |
| كَاشِفَةٌ﴿٥٨﴾ | أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ | تَعْجَبُونَ﴿٥٩﴾ | وَتَضْحَكُونَ | |
| څوك ښکاره کونکې \| | ایا پس ددې خبرې نه \| | تاسو تعجب کوئ \| | او تاسو خاندئ \| | |
| نشی لرې کولې\| ایا تاسو ددې کلام په حق کښې تعجب کوئ؟ \| او خندا ګانې ورپورې کوئ | | | | |
| وَلَا تَبْكُونَ﴿٦٠﴾ | وَأَنتُمْ سَامِدُونَ﴿٦١﴾ | فَاسْجُدُوا | لِلَّهِ | وَاعْبُدُوا﴿٦٢﴾ |
| او نه ژاړئ \| | او تاسو غافله یئ \| | پس سجده اوکړئ \| | الله ته \| | او بندګی اوکړئ \| |
| او ژړا نه کوئ\|......... | اوتاسو غافلان یئ \| | الله ﷻ ته سجدې لګوئ \| | اودهغه عبادت کوئ | |

**قوله تعالی:- هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰ﴿٥٦﴾**

**نبی کریم ﷺ نذیر راغلې دې**:-دوی ﷺ دویرې نه خبروونکی دی. یعنی دنبی کریم ﷺ،د رسالت هم داشان دې،لکه څنګه چه دمخکښې رسولانو وو.لکه چه یو آیت مبارك کښې دی چه﴿قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ

[1] الطبری : ۵۵۱/۵.

الرُّسُلِ] یعنی خه خو یو نوی رسول نه یم. رسالت خما نه نه دی شروع شوی. بلکه دنیا خما نه مخکښې ډیر رسولان لیدلی دی. نزدې راتلو والا وخت یعنی قیامت نزدې شو. نه خو څوك هغه دفع کولی شي او نه د هغې دراتلو دصحیح وخت چاته معلومات شته دی. نذیر عربنی کښې هغه چاته وائی، لکه یوجماعت دې چه په هغې کښې یو سړی څه ویریدونکې څیز اولیدو،او خپل قوم ددې نه خبروی یعنی د ویرې او خوف خبر ورکونکې. لکه یو بل آیت مبارك کښې دی چه [إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ]څه تاسو لره د سخت عذاب خبرونکې یم (١). حدیث مبارك کښې دی چه تاسو لره بنکاره ویرونکې یم. یعنی څنګه چه یو سړې یو بدې اوګوری چه دا قوم ته نزدې شوې ده او بیا چه کوم حالت کښې وی نو هغه حالت کښې په منډه منډه راشي او قوم خبردار کړی چه ګورئی مصیبت راروان دې ددې څه فکر اوکړئی. داشان د قیامت دهولناکې تباهئ دعذاب حالت هم دخلقو د غفلت حالت کښې دوی ته بالکل نزدې راغلې دې. او حضور نبی کریم ﷺ ددې عذابونه خلق خبروی لکه دې نه پس سورة دی چه اقتربت الساعة قیامت نزدې شوې دې.

دمسن احمد حدیث مبارك کښې دی چه انې خلقو اد ګناهونو دحقیرګنړلو نه بچ اوسئ. د وړو وړو ګناهونومثال داسې دې لکه چه یو قافله یو ځائې په پړاؤ شوه،ټول یو خوابل خوالاړل،او ټولو لرګی راغونډ کړل او هغه ئې راوړل. نو اګر چه هر یو سړه لرګی کم دی. خو هرکله چه هغه راجمع کړې شي نو یو ډیرې جوړیږی. او دې سره دیګونه هم پخیږی. داشان واړه واړه ګناهونه جمع کولو سره زیات ګناهونه شی. اودا ګناهګار بیا رانیولې شي او دې هلاك شی. او یو حدیث مبارك کښې دی چه خما اود قیامت مثال داسې دې،بیا حضور نبی کریم ﷺ خپله دشهادت ګو ته او دې سره مینځنئ ګوته اوچته اوددې فاصله ئې اوخودله.خما اودقیامت مثال ددوؤ آسونویه شان دې. خما اودآخرت د ورځې مثال داسې دې لکه چه یو قوم یو سړې میدان جنګك ته اولیږلو،هغه بالکل د دښمن لښکر سره نزدې دښمن اوکتلو چه حملې دپاره بالکل تیار دې. او تردې چه دې ویریدو چه هسې نه خما د رسیدو نه مخکښې مخکښې دوی هلته اونه رسی. نو په یو غونډئ اوختلواو کپړا ئې اوخوزوله چه خبردار دښمن ډیر نزدې موجود دې. نو څه داسې ویرولووالا یم (٢). ددې حدیث مبارك شهادت کښې نور هم ډیر حسن او صحیح احادیث دی.

**قوله تعالى:- أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ﴿**

**قران پاك نه مخ مه اړوئی:-** بیا ئې دمشرکانو په دې فعل انکار اوکړو چه دوی قران پاك آوری خوددې نه اعراض کوی اوددې نه بې پرواهی کوی. بلکه ددې درحمت نه تعجب سره انکار کوی.او دې پورې خندا ګانې اومذاق کوی. پکارخودا وو چه ایماندارو پشان ئې دا آوریدلې او ددې نه ئې عبرت حاصلولې. لکه چه د مومنانوحالت ئې بیان کړې دې چه هغوئ ددې کلام آوریدو سره ژاړی او سجدې کوی او ددوی خشوع اوخضوع زیاتیږی.

د ﴿سَٰمِدُونَ﴾ **تفسیر:-** ابن عباس ﷺ فرمائی چه سمد سندرې ته وائی. دا یمنی لغت دې. ددوی نه د سامدون معنی اعراض کولو والا او تکبر کولووالا هم مروی ده(٣). علی ﷺ او حسن ﷺ فرمائی چه غفلت کولو والا. بیاخپلوبندګانوته حکم کوی چه د توحید او اخلاص پابند اوسئ او خضوع اوخلوص اوتوحید منلووالا جوړ شئ. صحیح بخاری کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ اودحضور نبی کریم ﷺ

---

(١) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الانتهاء عن المعاصی : ٦٤٨٢، صحیح مسلم: ٢٢٨٣.

(٢) احمد : ٥/٣٣١،

(٣) الطبری : ٢٢/٥٥٩.

ملګرو مسلمانانو او مشرکانو او جن وانس دسورة النجم دسجدې په موقع سجده اوکړه.([1]) مسند احمدکښې دی چه مکه مکرمه کښې حضور نبی کریم ﷺ سورة النجم اولوستو. نو حضور نبی کریم ﷺ سجده اوکړه او هغه خلقو هم چه کوم حضور نبی کریم ﷺ سره وو. دحدیث راوی مطلب ابن ابی داعه ﷺ وائی چه ما خپل سر اوچت کړو او سجده مې اونه کړه. دې تر دغه وخت پورې مسلمان شوې نه وو. اسلام نه پس چه کله هم دوی ددې سورة مبارک تلاوت دچا نه آوریدونو سجده به ئې کوله. دا حدیث مبارك سنن نسائی کښې هم دې ([2]).

د الله جل شانه فضل وکرم سره د سورة نجم تفسير ختم شو فالحمد

..............

## دسورة قمر تفسير چه دا مکی سورة دی.

**دسورت تعارف:-** دابوواقدروایت نه مخکښې تیر شوی دی چه حضور نبی کریم ﷺ به د عیدالضحی او عیدالفطر مونځونو کښې سورة قٓ او سورة قمر لوستلو. ([3]) داشان لویو لویو محفلونو کښې به هم حضور نبی کریم ﷺ ددې دواړو سورتونو تلاوت کولو ځکه چه دې کښې دوعدې او وعید او ابتداء د ژوند او ددوباره ژوند سره سره د توحید او اثبات رسالت وغیره اهم مقاصد اسلامیه ذکر دی.

| ایاتونه | سورة القمر مكية وهي خمس وخمسون اية وثلاث ركوعات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ٥٥ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ٣ |

| اِقْتَرَبَتِ | السَّاعَةُ | وَانْشَقَّ | الْقَمَرُ ① | وَاِنْ يَّرَوْا | اٰيَةً |
|---|---|---|---|---|---|
| نزدې راغې | وخت دقیامت | او دوه ټوټې شوه | سپوږمۍ | او که اووینی دا خلق | هره نښه |

قیامت رانزدې شو| او سپوږمۍ اوچاؤدله |..............اودوئ که یوه نښه اووینی | نو دهغې نه

| يُّعْرِضُوْا | وَيَقُوْلُوْا | سِحْرٌ | مُّسْتَمِرٌّ ② | وَكَذَّبُوْا | وَاتَّبَعُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| نو مخ اړوی | اووائی | دا جادو دی | روان | او دروغ ئې اوګنړو | او پیروی ئې اوکړه |

مخ اړوی| او ویناشروع کړی چې دا جادو دی| چې دهمیشه نه راروان دی|اودوئ پیغمبران دروغژن

| اَهْوَآءَهُمْ | وَكُلُّ اَمْرٍ | مُّسْتَقِرٌّ ③ | وَلَقَدْ جَآءَهُمْ | مِّنَ الْاَنْۢبَآءِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دخواهشاتو خپلو | او هر کار | قرار نیونکې دې | او راغلي دي دوئ ته | دخبرونونه | هغه خبر |

اوګنړل|اوپخپلوخواهشاتو پسې روان شول|اودهرکاردپاره وخت مقرردې| اودوئ ته دومره خبرونه راغلل چې

| فِيْهِ | مُزْدَجَرٌ ④ | حِكْمَةٌ | بَالِغَةٌ | فَمَا تُغْنِ |
|---|---|---|---|---|
| چې په هغې کښې | منع ده دکفر نه | حکمت دې | چې رسیدونکې دې مقصدته | خونۀ رسوی فائیده (دوئ ته) |

په هغې کښې کافی زورنه ده| داوچت حکمت (نه ډک دې)| اخو ویر ونکی څیزونه دوی ته هیڅ فائده نه ورکوی

---

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة النجم باب (فاسجدوا لله واعبدوا) : ٤٨٦٢.
[2] نسائى كتاب الافتتاح باب السجود فى (والنجم) : ٩٥٩. وهو حديث حسن ، احمد: ٤٠٠/٦.
[3] صحيح مسلم كتاب صلاة العيدين باب يقرأ فى صلاة العيدين : ٨٩١.

| النُّذُرُ ۝ |
|---|
| یرونکي ا |

قوله تعالی:- اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ۝

**قیامت نژدې شوې دی** :-الله جل شانه د قیامت د قرب اود دنیا دختمې اعلان کوی. لکه بل آیت مبارك کښې دی چه دالله ﷺ امرراغلواوس خو دهغه د طلب تیزی کوئی.او فرمائی چه (اَتٰی اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ) دخلقو دحساب وخت ددوی په سرونو راغلو اودوی لا په غفلت کښې پراته دی.ددې مضمون احادیث هم ډیر دی. بزار کښې انس ﷛ فرمائی چه د نمر ډوبیدو په وخت چه هغه لږ شان باقی پاتې شوې وو حضور نبی کریم ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷡ ته خطبه ورکړه او په هغې کښې ئې اوفرمائیل چه د هغه ذات قسم چه دهغه قبضه کښې خما روح دې چه ددنیا تیره شوې حصه کښې او باقی حصه کښې هم هغه نسبت دې چه کوم ددې ورځې تیره شوې اوباقی حصه کښې دی[۱]ددې حدیث مبارك راویانو کښې خلف بن موسی لره امام ابن حبان ثقه راوی منی.خو فرمائی چه کله کله به ئې خطاهم کوله.
دویمه خبره داده چه ددې تقویت بلکه تفسیر هم دې. هغه مسند احمد کښې دعبدالله بن عمر ﷛ روایت نه دې چه دمازیگر نه پس چه نمر بالکل ډوبیدو والا وو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو عمرونه د تیر شوو خلقو مقابله کښې دومره دی چه څومره دا باقی ورځ د تیره شوې ورځې مقابله کښې ده [۲]. دمسند یو بل حدیث مبارك کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ د کلمه شهادت گوتې او دمینځنۍ گوتې سره اشاره اوکړه او وې فرمائیل چه ځه او قیامت داشان مبعوث شوی یو.[۳] او یو روایت کښې دومره زیاتوالئ دې چه نژدې وه چه هغه خمانه مخکښې لاړ شی. ولید بن عبدالملك ته ابوهریره ﷛ تشریف راوړو،نوهغه ترې د قیامت د حدیث باره کښې سوال اوکړو،نو په دې دوی اوفرمائیل چه ما حضور نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه تاسو او قیامت ددې دواړوگوتو پشان یئ [۴]،ددې شهادت ددې حدیث مبارك نه کیږی چه په هغې کښې دحضور نبی کریم ﷺ په نامو کښې یو نوم حاشر راغلې دې. او حاشر هغه دې چه دهغه په قدمونو کښې دخلقو حشر وی. [۵]
دبیز روایت کښې دی چه عتبه بن غزوان ﷛ خپله خطبه کښې اوفرمائیل او کله به ئې وئیل چه حضور نبی کریم ﷺ مونږ ته خطبه راکړه او دالله جل شانه دحمد وثناء نه پس ئې اوفرمائیل چه ددنیا دختمې اعلان اوشو دا په شا منډې وهی روانه ده لکه څنگه چه دلوښې نه خوراك اوکړې شی او ددې غاړو کښې څه پاتې شی،داشان ددنیا دعمر تولـه حصه تیره شوې ده صرف برائې نام باقی پاتې ده. تاسو ددې خانې نه داسې تلونکی یئ چه هغې لره فنا نشته دې. نوتاسونه چه څومره کیدې شی هغه هومره ښیگړې اوکړئې اوخان سره ئې یوسئ. واورئ مونږ ته ذکر شوی دی چه د جهنم د غاړې نه به یو کانړئې اوویشتلې شی او هغه تر اویاؤ کالو پورې لاندې روان وی خولاندې ویخ ته به اونه رسی. په الله جل شانه قسم چه دجهنم دا کنده د انسانانو نه ډکیدو والا ده. تاسویه دې تعجب مه کوئی. مونږ دا ذکر هم آوریدلې دې چه د جنت د دوارو چوکاټونو دلرگو ترمینځه د څلوینښتو کالو لار ده او هغه به هم یو ورځ داسې وی چه په هغې کښې به گنړه گونړه وی. الخ.(مسلم) [۶]

---

[۱] البزار (البحر الزخار) : ۶۶۲/۱۳؛ ح /۷۲۴۲) .
[۲] احمد : ۱۱۶/۲، وسنده حسن للذاته.
[۳] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب قول النبی ﷺ ((بعثت انا والساعة کهاتین)) : ۶۵۰۳. صحیح مسلم: ۲۹۵۰، احمد: ۳۳۸/۵،
[۴] صحیح بخار ی کتاب المناقب باب ماجاء فی اسماء النبی ﷺ : ۳۵۳۲. صحیح مسلم: ۲۳۵۴.
[۵] احمد : ۲۲۳/۳،. وسنده حسن .
[۶] صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن وجنة للکافر : ۲۹۶۷.

**د قيامت علامات:** ابوعبدالرحمن سلمي رحمه الله فرمائي چه څه خپل پلار سره مدائن ته لاړم او د کلي نه درې ميله لرې اوسيدو. د جمعې په ورځ څه هم خپل پلار سره لاړم. حذيفه ﷺ خطيب وو او وې فرمائيل چه اني خلقوواورئ دالله جل شانه فرمان دي چه قيامت نزدې شوې دې او سپوږمئ دوه ټکړې شوې ده. بيشکه قيامت نزدې شوې دې، بيشکه سپوږمئ ټکړې شوې ده. بيشکه دنيا د جدائی غږ کړې دې، نن ورځ د کوشش او تيارئ ده. صبا ورځ خو دمنډې ده. ما خپل پلار نه تپوس اوکړو چه آيا سبا به منډه وي؟ چه په هغې کښې به مخکښې تلل وی څه؟ خما پلار ماته ا وونيل چه ته نادان ئې دلته مراد د نيکو خلقو په نيکو کښې سبقت دې. په دويمه جمعه چه مونږ راغلو نو حذيفه ﷺ ددې نزدې نزدې بيان کولو، اودې آخر کښې ئې اوفرمائيل چه غايت اوور دې او سابق هغه دې چه جنت ته اول داخل شو. د سپوږمئ دوه ټکړې ټکړې کيدل دا د حضور نبی کريم ﷺ دزمانې ذکر دې لکه څنګه چه متواتر حديث کښې صحت سره مروی دی. ابن مسعود ﷺ فرمائی چه دا پنځه واړه څيزوونه تيرش وی دی، روم، لوګې، لزام، بطشه، د سپوږمئ شق([1]) دې باره کښې احاديث واورئ. مسند احمد کښې روايت دې چه ا هل مکه حضور نبی کريم ﷺ نه معجزه اوغوښتله. نو په دې دوه ځل سپوږمئ شق شوه. او د هغې ذکردې دوؤ آيتونو کښې دې ([2]).

بخاری شريف کښې دی چه دوی ته سپوږمئ دوه ټکړې اوخودله. يو د حراء نه هغه طرفته او بله دې طرفته ([3])مسند کښې دی چه يو ټکړه په يو غر او بله په بله غر. ددې کتلو سره هم هغه خلقو اوونيل چه د چا قسمت کښې ايمان نه وو چه محمد ﷺ خمونږ په سترګو جادو کړې دې. خو پوهه خلقو اوونيل که دا اومنلې شی چه مونږ باندې جادوشوې دې نودټولې دنيا خلقو باندې خو نشی کيدې ([4]). او يو روايت کښې دی چه دا واقعه د هجرت نه مخکښې ده ([5]). او نور روايتونه هم ډير دی. ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه د حضور نبی کريم ﷺ زمانه کښې سپوږمئ تندر اونيوله نو کافرو اوونيل چه په سپوږمئ جادو شوې دې نو پدې دا آيتونه نازل شو چه (مُّسْتَمِرٌّ) پورې.([6]) ابن عمر ﷺ فرمائی چه کله سپوږمئ شق شوه نو يو د غر شاته اوبله مخکښې وه. په هغه وخت کښې حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ائې الله جل شانه ته ګواه اوسې. مسلم او ترمذی وغيره کښې هم داحديث مبارك موجود دې ([7]).

ابن مسعود ﷺ فرمائی چه ټولو خلقو هغه ښه اوکتله نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه اوګورئ اوګواه اوسئ([8])دوی فرمائی چه دغه وخت کښې حضور نبی کريم ﷺ اومونږ منی کښې وو([9]). او يو روايت کښې دی چه مونږ مکه کښې وو ([10]). ابوداود طيالسی کښې دی چه کافرو ددې کتلو سره اوونيل چه دا دابن ابی کبشه يعنی د حضور نبی کريم ﷺ جادو دې. خوددوی پوهه خلقواوونيل چه مونږ اومنل چه مونږ باندې جادو شوې دې خو په ټوله دنيا خونه دې شوې. اوس چه کوم خلق د سفر نه واپس راشی نوهغوئ نه هم تپوس اوکړئ چه دهغوئ هم دشپې سپوږمئ شق شوې ليدلې وه که نه؟ هرکله

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة حم الدخان باب (يوم نبطش البطشة الكبرى ) صحيح مسلم: ۲۷۹۸،

[2]) صحيح مسلم صفات المنافقين ، باب انشقاق القمر: ۲۸۲۵. احمد: ۱۶۵/۳.

[3]) صحيح بخاری کتاب المناقب باب انشقاق القمر : ۳۸۶۸، صحيح مسلم: ۸۲۰۲.

[4])احمد: ۸۱/٤، ترمذی تفسير القران ومن سورة القمر : ۳۲۸۹، وهو صحيح.

[5])الطبری : ۵۶۹/۲۲.

[6]) طبرانی : ۱۱۶٤۲،

[7])صحيح مسلم کتاب صفات المومن باب انشقاق القمر : ۲۸۰۱، بدون المتن ترمذی : ۳۲۸۸.

[8])صحيح بخاری کتاب المناقب باب سؤال المشرکين ان يريهم النبی ﷺ : ۳۶۳۶. صحيح مسلم : ۲۸۰۰.

[9])صحيح بخاری کتاب مناقب الانصار باب انشقاق القمر : ۳۸۶۹، صحيح مسلم: ۲۸۰۰.

[10]) صحيح بخاری کتاب مناقب الانصار باب انشقاق القمر : ۳۸۶۹،

چه هغوئی راغلل او هغوئ نه تپوس اوکړو نوهغوئ هم ددې تصدیق اوکړو چه او: په فلانئ شپه مونږ سپوږمئ دوه ټکړې لیدلې وه.(¹) کفارو دا وئیلی وو که چرې بهر نه خلق راشی اودا اووائی نو د حضور نبی کریم ﷺ سچائی کښې هیڅ شك نشته دې. اوس چه هر څوك راغلل اودکوم طرفنه راغلل هغوئ شهادت ورکړو چه مونږ په خپلو سترګو لیدلې ده. هم ددې بیان دې آیت مبارك کښې دې (²). عبدالله ؓ فرمائی چه غر د سپوږمئ د دوو ټکړو مینځ کښې ښکاریدو.(³) او روایت کښې دی چه نبی اکرم ﷺ خاص ابوبکرصدیق ؓ ته اوفرمائیل چه ائې ابوبکر ته ګواه اوسه. (⁴)او مشرکانو دې زبردستې معجزې ته هم جادو اووئیلو. هم ددې ذکر دې آیت مبارك کښې دې چه هرکله دلیل او حجت او برهان مواوکتلو نو څومره آسانتیا سره وائې چه دا روان جادو دې او تاسو نې نه منئ بلکه حق په دروغه ګڼړئ اود احکام نبوی خلاف خپلو خواهشونو پسې لړیدلی یئ. د خپل کم عقل توب او جهالت نه نه منع کیږئ.هر امرمستقر دې یعنی خیر خیر والوسره اوشر شروالو سره. اودا معنی هم ده چه د قیامت په ورځ هر امر واقع کیدووالا دې. دمخکښې خلقو هغه واقعات چه زړه ویروی او خپله عبرت دی دوی ته راغلی دی. ددوی د تکذیب په وجه په دوی چه کوم مصیبتونه راغلل او ددوی چه کومې قصې دوی ته رارسیدلې هغه سراسر نصیحت دی او وعظ او هدایت دی. الله جل شانه چه چا ته هدایت کوی او که چالره ګمراه کوی نو داهغه ذات حکمت بالغه کښې موجوددی. په دوی شقاوت لیکلې شوې دې. او ددوی په زړونو مهر لګولې شوې دې. دوی هیڅوك هدایت ته نه شی راوستې: لکه فرمائی چه ﴿قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ﴾ الخ،دالله جل شانه دلیلونه په هر شان کامل دی. که هغه غوښتلې نو تاسو ټول به نې هدایت ته راوستی وې. لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَمَا تُغْنِي الْاٰيٰتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ﴾ بې ایمانو لره څه معجزې اوهیڅ ویرې او ویرونکی هیڅ فائده اونه رسوله.

| فَتَوَلَّ | عَنْهُمْ | يَوْمَ | يَدْعُ | الدَّاعِ | اِلٰى شَيْءٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس مخ واړوه | ددوئ نه | په کومه ورځ | چی رابلې | بلونکې | یو څیز |
| نو ‌وائی نبی ﷺ ته ددوئ پرواه مه ساته،په کومه ورځ چې به یو رابلونکې (فرښته) دوئ یوناخوښه څیزته راوبلی | | | | | |
| نُّكُرٍ | خُشَّعًا | اَبْصَارُهُمْ | يَخْرُجُوْنَ | مِنَ الْاَجْدَاثِ | |
| ناخوښه ته | حال دا چی یریدونکې به وی | سترګې ددوئ | رااوځې به | دقبرونو نه | |
| سترګې به ئې کوزې وی او دقبرونو نه به په داسې حالت کښې رابهر شی | | | | | |
| كَاَنَّهُمْ | جَرَادٌ | مُّنْتَشِرٌ | مُّهْطِعِيْنَ | اِلَى الدَّاعِ | |
| لکه چې دوئ وی | مولخان | خواره وارهٔ | منډې وهونکې به وی | طرف دبلونکی ته | |
| لکه چې دوی راخوارهٔ شوې ملخان دی بلونکی طرفته به په منډه روان وی | | | | | |
| يَقُوْلُ الْكٰفِرُوْنَ | هٰذَا يَوْمٌ | عَسِرٌ | كَذَّبَتْ | قَبْلَهُمْ | |
| وائی به کافران | دا ورځ ده | سخته | دروغ اوګنړو (اخرت) | مخکښې ددوئ نه | |
| کافران به اووائی چې داخو ډیره سخته ورځ ده ددې نه وړاندې د نوح ؑ قوم (پیغمبران) | | | | | |

¹مسند الطیالسی : ۲۹۵،
²مسند الطیالسی : ۲۹۵.
³الطبری : ۵۶۷/۲۲.
⁴الطبری : ۵۶۹/۲۲.

قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ

قوم د نوح علیه السلام | نو دروغ اوګڼړو هغوئ | بنده زمونږه | اووې ونيل | چې دا ليونی دی |

دروغ ګڼړلی وو | نو زمونږ بنده ئې دروغژن اوګڼړلو | او دائې اووئيل چې (نوح علیه السلام) ليونی

وَازْدُجِرَ ﴿٩﴾ فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ

او بدې ردې ورته اووئيلې شوې | پس هغه اواز اوکړو | رب خپل ته | چې بيشکه زه | بې وسه شوم |

او د سختې خبرورته ورکړې شوې وې | په دې باندې هغه د خپل رب نه سوال اوکړو | چې زه ډيره

فَانْتَصِرْ ﴿١٠﴾ فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُنْهَمِرٍ ﴿١١﴾

پس ته بدله واخله | پس پرانستې مونږه | دروازې داسمان | په اوبو ډيرو راتوئيدونکو سره |

عاجزه شوې يم | نو ته زما بدله واخله | نو مونږ داسمان دروازې دشرپ په اوبو سره راپرانستلې

وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَى أَمْرٍ

او جارې کړه مونږه | زمکه | په چينو سره | پس يو ځائې شوې (ټولې) اوبه | په هغه کار باندې |

او د زمکې نه مو چينې راوبيولې | نو ټولې اوبه په هغه کار پسې يوځائې شوې کوم چې

قَدْ قُدِرَ ﴿١٢﴾ وَحَمَلْنَاهُ عَلَى ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ ﴿١٣﴾

چې اندازه کړې شوې وو | او سور کړو مونږه هغه | په کشتۍ دتختو او ميخونو والا کښې |

تجويز شوې وو | اومونږ (نوح علیه السلام) د تختو او دميخونو په يوه بيړۍ کښې سور کړو

تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً لِمَنْ كَانَ كُفِرَ ﴿١٤﴾

چې ګرزيدله به | په نګرانۍ زمونږ کښې | دا بدله وه | دپاره دهغه چا | چې بې قدرې ئې شوې وه |

چې زمونږ دسترګو په وړاندې روانه وه | دا دهغه چا دپاره بدله اخستل وو | چې انکار ترې شوې وو

وَلَقَدْ تَرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ﴿١٥﴾ فَكَيْفَ

او پريښودله مونږه هغه کشتۍ | يوه نښه | نو ايا شته څوک نصيحت اغستونکې | پس څرنګې وو |

اودا واقعه مو د نښې په طور پريخوده | نو ايا څوک عبرت اخستونکې شته؟ | نو اوګوره چې،

كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٦﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ

عذاب | زما | او يرونې زما | او اسان کړې دې مونږه | دا قران | دپاره دنصيحت |

زما عذاب اوزماويرول څنګه وو؟ | اومونږ قران (د بندګانو د) پوهولو دپاره اسان کړې دې

فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ﴿١٧﴾

نو ايا شته څوک نصحيت قبلونکې |

نوايا څوک نصيحت قبلونکې شته؟

قوله تعالی:- فَتَوَلَّ عَنْهُمْ

ميدان حشر طرفته تګ دې :ارشاد دې چه انې نبی ﷺ ! ته داکافران پريږده خکه چه دوی ته معجزه وغيره هم څه نه ښکاری. دوی نه مخ واړوه او دوی دقيامت انتظار کښې پريږده. په هغه ورځ به دوی د حساب ځائې يو آواز کوونکې آوازکوی چه دا به ډير هولناک ځائې وی. او هغه ځائې کښې به بلاګانې اوآفتونه

وی.اوددوی په مخونو به ذلت او شرم وی.د شرم په وجه به نې سترګې ښکته وی. اود قبرونونه به راوزی. نو لکه څنګه چه مولخان خی دغه شان به تیزئی سره دوی هم میدان حشر ته روان وی. د آوازکونکی آواز ته به ئې غوږ وی او تیز تیز به روان وی. نه ورکښې دمخالف څه تاب شته دې او نه ورته دایساریدو طاقت شته دې. چه دهغه ورځې هیبتناکی سختی اوګوری نو کافران به اووائی چه دا خو ډیره سخته او هیبتناکه ورځ ده.

**قوم نوح باندې عذاب**:یعنی انې نبی ﷺ! ستاسو ددې امت نه مخکښې د نوح ﷺ امت خپل نبی ﷺ لره چه خمونږ بنده نوح ﷺ وو دهغه تکذیب ئې کولو. هغه ته ئې مجنون اووئیل اوبه هر شان ئې تنبیه کړو اودهمکی ئې ورکړه او صفا ئې ورته اووئیل چه انې نوح! که ته منع نه شوې نو مونږ به تا په کاڼو اووژنو. خمونږ بنده اورسول نوح ﷺ مونږ اوبللو چه انې پروردګاره! څه ددوی مقابله کښې ضعیف او کمزورې یم او په هیڅ شان خپله کورنئی نشم سنبالولې او نه ستا د دین حفاظت کولې شم. ته ماسره مدد اوکړې او ماته غلبه راکړې. ددوی دا دعا قبوله شوه اوددوی په کافر قوم باندې مشهور طوفان نوح اولیږلې شو. د ښه تیز باران دروازې د آسمان نه اود زمکې نه د اوبو چینې رااوخوټکیدلې. تردې چه کوم د اوبو ځائې نه وو لکه تنور وغیره دهغه ځائې نه هم اوبه زمکې رااوویستې. خو په هغه وخت کښې دآسمان د اوبو دروازې بیرته کړې شوی او د عذاب الهی شکل کښې باران وریدو. نه ددې نه مخکښې داسې اوبه وریدلې وې اونه به دې نه پس داسې اوشی. یو طرفته د آسمان داسې حالت بل طرفته زمکې ته حکم چه اوبه راوباسه.

علی ﷺ فرمائی چه د آسمان دروازې بیرته کړې شوې اودهغې نه نیغ په نیغه اوبه اووریدلې. ددې طوفان نه مونږ خپل بنده بچ کړو او هغه مو یو کشتئ کښې سوار کړو او هغه کشتئ ئې تختو باندې میخونه لګولو سره جوړه کړې وه. د (دُسُر) معنی دکشتئ بنی او ګس طرفته حصه او دشروع حصه چه په هغې چپې وهلې شی او ددې جوړې او ددې اصل هم کړې شوی وو. هغه خمونږ د سترګو مخکښې او خمونږ حفاظت کښې روانه وه او صحیح او سالمه تلله. دنوح ﷺ مدد دپاره دا دکفارو نه انتقام وو.

**قوله تعالی:- وَلَقَدْ تَّرَكْنٰهَآ اٰيَةً**

ایا دا کشتئ چا لیدلې ده. مونږ دا یو نښه پریخوده. یعنی دا کشتئ مو په طور د عبرت پریخوده. قتاده ﷫ فرمائی چه ددې امت اولو خلقو هم هغه اوکتله. خوظاهر معنی داده چه ددې کشتئ په شان نورې کشتئ مونږ په طور دنښې دنیا کښې قائم کړې. او یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ﴾یعنی دوی دپاره نښې دی چه مونږ نسل آدم لره په کشتئ کښې سواره کړل اود کشتئ په شان نورې هم سورلئ دی چه په هغوئ دوی سواره دی. اویو ځائې کښې ارشاددې چه﴿اِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ حَمَلْنٰكُمْ﴾ الخ،هرکله چه اوبو کښې طغیانی راغله نو مونږ تاسولره کشتئ کښې سواره کړئی چه ستاسو دپاره عبرت وی او نصیحت وی. او یاد ساتونکی غوږونه دا محفوظ کړی. نو څوك شته دې چه ذکر او وعظ حاصل کړی؟ ابن مسعود ﷺ فرمائی چه ماته حضور نبی کریم ﷺ ﴿مُدَّكِرٍ﴾ اووئیلو (١). پخپله حضور نبی کریم ﷺ نه ددې لفظ قرات داشان مروی دې (٢). اسود نه سوال کیږی چه دا لفظ دال سره دې اوکه ذال سره؟ نووې فرمائیل چه ما د عبدالله ﷺ نه دال سره آوریدلې دې. او فرمائیل ئې چه ما حضور نبی کریم ﷺ نه دال سره آوریدلې دې (٣). بیا فرمائی چه خما عذاب کفر والو او خما رسولانو لره په دروغه ګڼړلو او خما نصیحت نه عبرت نه حاصلولو والو باندې څنګه اوشو؟ ما دا دحق دښمنان

(١)احمد : ٣٩٥/١، صحیح مسلم کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی : ( والی ثمود اخاهم هودا) : ٣٣٤٥.
(٢)صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة اقتربت الساعة باب ( ولقد اهلکنا اشیاعکم فهل من مدکر) : ٤٨٧٤.
(٣)صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة اقتربت الساعة باب( اعجاز نخل منقعر فکیف کان عذابی ونذر) : ٤٨٧١.

خنګه تس نس کړل؟ مونږ دقران پاك هر لفظ او معاني دهر هغه سړي دپاره اسان کړی دی چه څوك ددې نه دنصيحت حاصلولو اراده لري. لکه فرماني چه (فَإِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ) الخ يعني مونږ ستا په ژبه خکه آسان کړې دی چه ته پرهيزګاره خلقو ته زيرې ورکړې او چه کوم خلق جګړې کوی چه هغوئ لره اوويروې. مجاهد رحمه الله فرماني چه ددې قرات او تلاوت الله جل شانه آسان کړې دې. ابن عباس رضی الله عنه فرماني که چرې الله جل شانه دې کښې آسانتيا نه وې ايښو دې نو د مخلوق طاقت نه وو نه چه دالله جل شانه کلام نې ونيلې وې. څه وايم چه دې آسانو کښې يو آساني هغه ده چه کومه مخکښې تيره شوه چه داقران پاك اوو قراتونو کښې نازل شوې دې (١). ددې حديث مبارك ټول طرق او الفاظ مونږ جمع کړی دی. اوس دوباره دې ځائې کښې د جمع کولو ضرورت نشته دې. نو دا قران ډير آسان کړې شوې دې. هر يو طالب علم دا رباني علم حاصلولې شي چه څوك نې حاصلوی اودا ډير آسان دی.

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ⁽١٨⁾
| دروغ اوګڼړو | عاديانو | پس څرنګې وو | عذاب زما |
|عاديانو هم(پيغمبران) دروغژن اوګڼړل| نو(اوګوره) چې زما

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا
او يرول زما | بيشکه اوليږله مونږه | په هغوئ باندې | هوا | تيزه |
عذاب او ويرل څنګه شو؟| بيشکه مونږ په هغوئ باندې يوه تيزه سيلئ راوليږله | په

فِي يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ⁽١٩⁾ تَنزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ
په ورځ دمنحوستيا مسلسله کښې | چې راايستل به ئې خلق | داسې لکه چې هغوئ |
داسې ورځ چې (دهغوی په حق کښې) هميشه سپيره وه|خلق به ئې راغورزول| لکه چې هغوی د راوتو کهجورو

أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ⁽٢٠⁾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ⁽٢١⁾
تنې وی دکجورو | ايستلې شوی | پس څرنګې وو | عذاب زما | او خبردارياني زما |
تنې دی چې (په زمکه) پرتې دی | نو(اوګوره چې) زما عذاب او ويرول څنګه وو؟|

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ⁽٢٢⁾
او اسان کړې دې مونږه | دا قران | دپاره دنصيحت | نو ايا شته څوك نصيحت قبلونکې |
اومونږ قرآن (دبندګانو د)پوهولو دپاره اسان کړې دی | نوايا څوک نصيحت قبلونکې شته؟

كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ⁽٢٣⁾ فَقَالُوا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا
دروغ اوګڼړلې | ثموديانو | خبردارياني | پس اووئيل هغوئ | ايا سړې | زمونږ نه | يو |
ثموديانو هم پيغمبران دروغژن اوګڼړل |هغوئ اووئيل چې ايا مونږ دخپل ځان په شان د يو انسان

نَّتَّبِعُهُ إِنَّا إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ⁽٢٤⁾ أَأُلْقِيَ
مونږ پيروی اوکړو دهغه | بيشکه بيا خوبه يو مونږه | خامخا په ګمراهئ کښې | او په ليونتوب کښې
تابعداری اوکړو| مونږ به په دغه وخت په ګمراهئ او ليونتوب کښې يو| ايا په مونږ ټولو کښې

(١) صحيح بخاری کتاب فضائل القران باب انزل القران علی سبعة احرف: ٤٩٩٢، صحيح مسلم: ٨١٨.

الذِّكۡرُ عَلَيۡهِ مِنۢ بَيۡنِنَا بَلۡ هُوَ كَذَّابٌ

ایا راغورزولې شو ذکر | بس په دهٔ باندې | دمنځه زمونږ نه | بلکه دې | غټ دروغژن دې |

بس هم په دهٔ وحی نازله شوې ده | نه، بلکه غټ دروغژن دې |.............چې لافې وهي

أَشِرٌ ﴿۲۵﴾ سَيَعۡلَمُونَ غَدًا مَّنِ الۡكَذَّابُ

او تکبر کونکې دې | زر دې چې معلوم به شي هغوئ ته | صباله | چې څوك دې غټ دروغژن |

.......... اصبا (په قیامت کښې) به ورته معلومه شي|چې څوک غټ درغژن او لافووو

الۡأَشِرُ ﴿۲۶﴾ إِنَّا مُرۡسِلُوا النَّاقَةِ فِتۡنَةً لَّهُمۡ

متکبره | بیشکه مونږه | لیږونکي داوښې يو | په طور دفتنې | دپاره ددوئ |

........... | مونږ ددوئ د امتحان دپاره د یوې اوښې لیږونکي یو| ته ددوئ کارونو ته

فَارۡتَقِبۡهُمۡ وَاصۡطَبِرۡ ﴿۲۷﴾ وَنَبِّئۡهُمۡ أَنَّ الۡمَاءَ قِسۡمَةٌ

پس انتظار کوه دوئ ته | او صبر کوه | او خبر ورکړه دوئ ته | چې بیشکه اوبهٔ | تقسیم شوی دی

ګوره | او د دوی په خبرو ، صبر کوه |......اودوئ ته خبرورکړه |چې اوبه ددوئ په مینځ کښې ویشلې

بَيۡنَهُمۡ كُلُّ شِرۡبٍ مُّحۡتَضَرٌ ﴿۲۸﴾ فَنَادَوۡا

په منځ ددوئ کښې | هروار داوبو ته | حاضر کړې شوی دی خپل واروالا | پس اواز اوکړو هغوئ |

شوی دی | نود وار خاوندان دې خپل خپل وار ته حاضریږی | بیا هغوئ خپل

صَاحِبَهُمۡ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴿۲۹﴾ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي

ملګری خپل ته | پس ونې نیوله | بیا ئې شله کړه (اووې وژله) | پس څرنګې وو | عذاب زما |

بدبخت ملګرې اولیږلو | هغه (اوښهٔ) اونیوله | اودهغې پښې ئې زخمي کړې| نو(او ګوره چې) زما عذاب

وَنُذُرِ ﴿۳۰﴾ إِنَّا أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ صَيۡحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا

او خبرداریانې زما | بیشکه اولیږو مونږه | په هغوئ باندې | دتندر آواز | یو | پس شو هغوئ

او ویرول څنګه وو؟| مونږ په هغوئ یو د چغه اووهله |..............نو داسې چوره شول لکه

كَهَشِيمِ الۡمُحۡتَظِرِ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا الۡقُرۡآنَ لِلذِّكۡرِ

پشان دچقیدلو وښو | دشپول لګونکي | او آسان کړې دې مونږه | دا قرآن | دپاره دنصیحت |

دشپول لګونکي (دلاسه) |.............اومونږ قران (دبند ګانو) پوهولو دپاره آسان کړې دې

فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿۳۲﴾

نو ایا شته څوك نصیحت قبلونکې |

نوایا څوک نصیحت قبلونکې شته|

**قوله تعالى:- كَذَّبَتۡ عَادٌ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ**

**د قوم عاد سرکشي او په هغوئ عذاب:-** الله جل شانه خبر ورکوی چه قوم هود هم دالله جل شانه رسولان په دروغه ګنړلی وو او بالکل د قوم نوح پشان سرکشی ئې اوکړه نو په هغوئ سخته یخه هلاکونکې هوا

اولیږلې شوه او هغه ورځ ددوی دپاره سراسرمنحوسه وه. په هغوئ هواګانې اوچلیدې او هغوئ نې تباه کړل. دنیاوی او اُخروی عذاب کښې راګیرکړې شو. د هوا یوشغله به راغله اودوی کښې به یو کس خان سره اوچت کړو اوتردې چه زمکې والو نظر نه پناه شو اوبیا به هغه زمکې ته پرمخ راغوزارکړې شواوسر به نې اوچاؤدو او هر څه به تری بهر راوتل. سر به نې جدا او تنه به نې جدا وه.داسې به معلومیدل چه ګویاد کهجورو ونې دی. ا وګورئې څما عذاب څنګه دې؟ ما خوداقرانپاك آسان کړې دې خو چه څوك ددې نه نصیحت حاصل کړی.

قوله تعالی:- كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ ۝

قوم ثمودباندې عذاب :-رسول صالح ﷺ په دروغه اوګنړلو.اودتعجب په طور نې محال اوګنړلو او وې وئیل چه داسې هم کیدیشی چه مونږ دیوسړی تابعدار جوړ شو؟ آخر ددې دومره فضیلت څه وجه ده؟ بیاددې نه مخکښې لاړل او وې وئیل چه مونږ نه منو چه مونږ ټولو کښې دې صرف دهغه یوالله جل شانه خبرې راشی. بیا ددې نه هم لږ شان د حد نه تیر شو او دالله جل شانه نبی نې په ښکاره په دروغه اوګنړلو او هغه ته نې دروغژن اووئیل. نو اوس ورته الله جل شانه په طور د تنبیه وائی چه اوس چه څه غواړئ نو کوئ صبا به معلوم شی چه اصل کښې دروغژن او دروغو کښې حد نه زیات تیریدو والا څوك وو؟ددوی دازمیښت دپاره مونږ یو اوښه لیږو.نوددې خلقو دطلب دپاره اود طلب موافق د کاڼړ یو غار نه یو غټه پټه اوښه راوتله. او الله جل شانه خپل نبی ته اوفرمائیل چه ته ګورئې چه ددوی څه انجام دې؟ او ددوی په مصیبتونو باندې صبر اوکړه. او د نیا او آخرت کښې به غلبه هم ستا وی. اوس دوی ته اووایه چه په اوښه باندې یو ورځ ستاسو ده او یو ورځ د اوښې. لکه چه یوبل آیت مبارك کښې دی چه (قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَّلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ۝) دا ددوی کس وو،هغه راغلو او دا نې اونیوله اوزخمی نې کړه. بیا خوما ددوی د تکذیب او کفر ښه بدله واخسته. او لکه څنګه چه یو پټی کښې اوچې پاڼړې غیبې شی،دوی هم مونږ داسې تباه کړل. اوچ خشاك لکه څنګه چه خنګل کښې الوزی نوداشان مونږ دوی تباه کړل. یادا مطلب دې چه عربو کښې دستور وو چه اوښان به نې اوچ ازغن پټی کښې ایښودو او کله چه دا پټی ویران کړې شی نوداسې دوی وو لکه څنګه چه ددې پټی حالت وو چه یو هم بچ نشو لکه څنګه چه ښاوره دیوال نه رژیږی. داشان دوی هم ذرې ذرې شو. دا ټول اقوال مفسرینو ددې جملې په تفسیر کښې وئیلی دی خو اول قوی دې،والله اعلم.

| كَذَّبَتْ | قَوْمُ لُوْطٍ | بِالنُّذُرِ ۝ |
|---|---|---|
| دروغ اوګنړلې | قوم دلوط | خبرداریانې زمونږه |
| دلوط ﷺ قوم هم پیغمبران دروغژن ګنړلې وو | | |

| اِنَّآ اَرْسَلْنَا | عَلَيْهِمْ | حَاصِبًا | اِلَّآ | اٰلَ لُوْطٍ ط |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه اولیږله مونږه | په هغوئ باندې | هوا کاڼړې ورونکې | سوا | د کوروالو دلوط عليه السلام نه |
| نو په هغوی باندې مونږدکاڼړو نه ډکه سیلئ اوچلوله \| خودلوط ﷺ په کوروالا نه | | | | |

| نَجَّيْنٰهُمْ | بِسَحَرٍ ۝ | نِّعْمَةً | مِّنْ عِنْدِنَا ط | كَذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|
| مونږه بچ کړل هغوئ | دشپې په آخری حصه کښې | په فضل سره | دطرفه زمونږ نه | دارنګې |
| هغوئ مو صبا وختی بچ کړل ..........دا زمونږ فضل وو \| څوك چې (زمونږ) | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَجۡزِيۡ | مَنۡ | شَكَرَ ⑮ | وَلَقَدۡ اَنۡذَرَهُمۡ |
| بدله ورکوو مونږه \| هغه چاته \| چې شکر ئې اوویستلو \| او خبردارکړی وو لوط هغوی لره \| | | | |
| شکر کوی \| مونږ ورته هم دغسې بدله ورکوو \| او (پیغمبر) دغه خلق زمونږ د نیولو (عذاب) نه | | | |
| بَطۡشَتَنَا | فَتَمَارَوۡا بِالنُّذُرِ ⑯ | وَلَقَدۡ | رَاوَدُوۡهُ |
| دنیولو زمونږ نه \| پس هغوی شکمني اوګڼړلې \| ديروني خبری \| او هغوی طلب کړی وو دلوط نه \| | | | |
| ویرولی وو \| هغوی په دغه تعلیم کښې جګړې شروع کړې \| اودلوط ﷺ نه ئې د هغه د میلمنو په | | | |
| عَنۡ ضَيۡفِهٖ | فَطَمَسۡنَا | اَعۡيُنَهُمۡ | فَذُوۡقُوۡا عَذَابِيۡ |
| په باره دمیلمنو دهغه کښې \| پس ړندې کړې مونږه \| سترګې دهغوی \| پس اوڅکئ مزه \| دعذاب زما | | | |
| غلط نیت مطالبه اوکړه \| نو مونږ یې سترګې په ړندې کړې \| نو اوس زما عذاب او زما د | | | |
| وَنُذُرِ ⑰ | وَلَقَدۡ صَبَّحَهُمۡ | بُكۡرَةً | عَذَابٌ مُّسۡتَقِرٌّ ⑱ |
| او ديروني زما \| او بیشکه راغي هغوی ته \| وختي سحر \| عذاب قرار نیونکي (همیشه) | | | |
| ویرولو مزه اوڅکئ \| اوسحر وختی بۀ هغوی باندې همیشه عذاب راغلو | | | |
| فَذُوۡقُوۡا | عَذَابِيۡ وَنُذُرِ ⑲ | وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا | الۡقُرۡاٰنَ لِلذِّكۡرِ |
| پس اوڅکئ مزه \| دعذاب زما او ديروني زما \| او آسان کړې دې مونږه \| دا قرآن \| دپاره دنصیحت | | | |
| نو (واخلئ) زما دعذاب او دویرولو مزه اوڅکئ \| اومونږ قران (دبند ګانو د) پوهولو دپاره آسان کړې دې | | | |
| فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ ⑳ | | | |
| پس نو آیا شته څوك نصیحت قبلونکې \| | | | |
| نو څوک نصیحت قبلونکې شته؟ \| | | | |

**قوله تعالی:- كَذَّبَتۡ قَوۡمُ لُوۡطٍۢ بِالنُّذُرِ ⑳**

**قوم لوط باندې عذاب:-** د لوطیانو واقعه بیانیږی چه هغوی څنګه خپل رسول په دروغه اوګڼړلو او د هغه مخالفت ئې اوکړو او څه څه مکروفریب ئې اوکړو او ددوی نه مخکښې چا نه وو کړی یعنی اغلام بازی، په دې وجه دهغوی د هلاکت صورت هم داسې عجیبه اوشو. دالله رب العزت حکم سره جبرئیل د هغوی کلی آسمان ته اوچت کړو او پرمخ ئې راوغورزار کړو او په هغوی باندې ئې دآسمان نه د هغوی د نوم کانړې اوورول. خو چه کومو خلقو لوط ﷺ منلو هغوی ئې دسحر په وخت کښې یعنی آخری ګړئ کښې بچ کړل. هغوی ته حکم اوشو چه تاسو ددې کلی نه اوزئی. لوط ﷺ باندې ددوی قوم کښې هیچا ایمان نه وو راوړې تر دې چه دلوط ﷺ ښځه هم کافره وه. قوم کښې یو سړی ته هم ایمان نصیب نه شو. نو دالله جل شانه عذاب نه هم بچ نشو. ددوی بی بی هم قوم سره هلاکه شوه او صرف دوی او ددوی لونړه ددې نحوست نه بچ شو. الله ﷻ داسې سختو کښې د شاکرانو په کار راځی.او دوی نه د شکر بدله ورکوی.

دعذاب راتلو نه مخکښې لوط ﷺ دوی خبر کړی وو خو دوی پرې غوږ اونه ګرولو بلکه شك او جنګ ئې اوکړو.اوددوی میلمنوسره ئې بدتمیزی کوله.جبرئیل ﷺ،اسرافیل ﷺ اومیکائیل ﷺ وغیره فرښتې

د انسان شکل کښې دنوح ﷺ کور کښې میلمانه وو. ډیر ښکلې صورت کښې،ښکلې ځهرې، ښکلې ښکلې شکلونه،او ځوانئ عمر کښې. دوی د شپې په وخت کښې د لوط ﷺ کور کښې راکوزې شوې. د دوی بی بی چه کافره وه قوم ته اطلاع ورکړه چه نن د لوط ﷺ میلمانه راغلی دی. ددې خلقو خو واعام بد عادت وو.په منډه راغلل اودلوط ﷺ کور نه چاپیره شو.نوط ﷺ دروازې بندې کړې، هغوئي ترکیبونه کول چه څه رنګه میلمنو ته اورسو. کله چه دا کیدل نو دا د ماښام وخت وو. نوط ﷺ هغوئ پوهول چه دا ځما لونړه ستاسو دپاره موجود دی،تاسو دا بدفعلی پریږدئي او حلال ښیزونو نه فائده پورته کړئي خو دهغه سرکشو جواب دا ووچه تاسو ته معلوم دی چه مونږ شځې نه خوښوو. ځمونږ چه کومه اراده ده هغه تاسو ته معلوم ده،تاسو خپل میلمانه مونږ ته حواله کړئي. هرکله چه دې بحث مباحثه کښې وخت تیر شو او هغه خلقو مقابلې ته تیار شو تو لوط ﷺ ډیر پریشانه شو نو بیا جبرئیل ﷺ بهر اووتلو او خپل وزر ئې دهغوئ په سترګو راښکلو او تول ړانده شو. اوس خو لوط ﷺ ته ئې بدرد وئیل او دیوالونو پورې ولاړ وو دسحر رعده ئې ورکړه او واپس شو. خو دسحر په وخت کښې دوی باندې عذاب نازل شو. او ددې نه تښتیدې نه شو. او نه ئې ددې نه خان بچ کړې شو. د عذاب د مزې او ویرې طرفته دهیان نه ورکولو وبال په هغوئ را غلو. دا قران خو ډیر زیات آسان دې چه څوک ترې غواړې نو نصیحت ترې حاصلولې شې. څوک شته دې چه ددې نه نصیحت حاصل کړې؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ جَآءَ | اٰلَ فِرْعَوْنَ | النُّذُرُ ۝ | | |
| او بیشکه راغلې وې | آل دفرعون ته | خبرداریانې | | |

| اود فرعون قوم ته د ویرې ډیر شیزونه راغلی وو |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبُوا | بِاٰيٰتِنَا | كُلِّهَا | فَاَخَذْنٰهُمْ | اَخْذَ | عَزِيْزٍ |
| دروغ اوګنړلې هغوئ | نښې زمونږه | تولې | پس رااونیول مونږه هغوئ | ایشان دنیولوا | دغالب |

| هغوئ زمونږ تولې نښې دروغ اوګنړلې نومونږ هغوئ د یو مضبوط اود قدرت د خاوند د رانیولو |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُّقْتَدِرٍ ۝ | اَكُفَّارُكُمْ | خَيْرٌ | مِّنْ اُولٰٓئِكُمْ | اَمْ لَكُمْ |
| قدرت والا | آیا کافران ستاسو (اې قریشو) | غوره دی | دهغه کافرانونه | یا ستاسو دپاره |

| بشان اونیول‌نو ایاستا سود زمانې کافران د هغوئ نه غوره دی اوکه ستاسو دپاره |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَرَآءَةٌ | فِي الزُّبُرِ ۝ | اَمْ يَقُوْلُوْنَ | نَحْنُ جَمِيْعٌ | مُّنْتَصِرٌ ۝ |
| خلاصې دې | په کتابونو کښې | یا وانی دوئ | چې مونږه ډله یو | بدل اغستونکی |

| په کتابونو کښې څه معافی لیکلې شوې ده اوکه دوئ داخیال کوی چې مونږه غالبه ډله یو |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَيُهْزَمُ | الْجَمْعُ | وَيُوَلُّوْنَ | الدُّبُرَ ۝ | بَلِ السَّاعَةُ | |
| زر دې چې شکست به ورکړې شي | ډلې ته | اواوبه ګرزوی دوئ | شاګانې | بلکه قیامت | |

| داتولې ډلې به زر بیلات اوکړې او په شا ارخ به اوتښتي‌اخوددوئ په حق کښې اصلی وعده |
|---|

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَوْعِدُهُمْ | وَالسَّاعَةُ | اَدْهٰى | وَاَمَرُّ ۝ |
| خانې دوعدې ددوئ دې | او قیامت | ډیر سخت دې | او ډیر تریخ دې |

| د قیامت ده اوقیامت ډیر سخت او تریخ شیزدې |
|---|

**قوله تعالى:- وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ**
**قوم فرعون باندې عذاب :-** دفرعون اوددې دقوم واقعه بيانيږي چه هغوئ ته دالله جل شانه رسول موسى ﷺ اوهارون ﷺ بشارت او ويروه راوړي وه. دوی ته ني دالله جل شانه د طرفنه لوني لوني معجزې و ښني اوخودلي چه دهغوئ په نبوت باندې ښه پورا دليل وو خو دا فرعون هغه ټولي اونه منلي چه به دې وجه په دوی باندې عذاب راغلو اوبالكل ختم شو. بيا فرمائي چه اني د قريشو مشركانو اوس اوواني تاسو ددوی نه بهتر يې؟ هركله چه هغوئ زيات غټ جماعت او زيات قوت والا وو او خوني عذاب نه بچ نشو نو تاسو لا څه څيز يې؟ آيا تاسو داګنړنې چه تاسو لره الهامي كتابونو كښې څه نجات ليكلي شوي دي؟ چه دهغوئ په كفر هغوئ ته عذاب ورکړې شو او تاسو كفر کونې اوتاسو ته به هيڅ نه وي؟ بيا فرمائي چه آيا ددوی خيال دې چه مونږ يو جماعت ديو جماعت خپلو كښې د بيل سره مددكوو او مونږ ته څوك بد نشي وئيلي او خمونږ د كثرت په وجه مونږ ته به هيڅ بدی نه رسي؟ كه ددوی دا خيال وی نو ددوی دا يقين ماتيدل پكار دی ،ددوی جماعت به ختم كړې شی،دوی ته به تكليف وركړې شي او دوی به په شا اوتښتي.

**قوله تعالى:- سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ**
**كافران به شكست اوخوري :-** صحيح بخاری كښې دی چه دبدر په ورخ خپله ډيره كښې حضور نبی كريم ﷺ خپله دعا كښې فرمائيل چه اني الله جل شانه ! څه تاته ستا وعده يادوم،اني الله جل شانه كه ستا خوښتنه داده چه نن ورځي نه پس ستا عبادت او وحدانيت سره زمكه ډكه نه شي،نودومره وينا وه چه ابوبكرصديق ﷺ د حضور نبی كريم ﷺ لاسونه اونيول او وې فرمائيل چه يارسول الله ﷺ ! بس كړنې تاسو ډيره التجا اوكړه. نو بيا حضور نبی كريم ﷺ د خپلې خيمې نه واپس راغلو او د حضور نبی كريم ﷺ په ژبه مبارکه باندې دا دواړه آيتونه وو چه (سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ) الخ.(١) عمر فاروق ﷺ فرمائي چه ددې آيت مبارك دنازليدو په وخت كښې ما سوچ كولو چه ددې نه مراد كوم يو جماعت دی؟ هر كله چه دبدر په ورخ ما حضور نبی كريم ﷺ اوليدو چه زره ني اغوستې وه او دخپلې خيمې نه بهر راووتل اودا آيت مبارك ني لوستلو نو په هغه ورخ خما پوهه كښې ددې آيت مبارك تفسير راغلو. بخاری شريف كښې دی چه عائشه ﷺ فرمائي چه خما عمر ډير كم وو او خپلو ملګرو سره به مې لوبې كولې نو په هغه وخت كښې دا آيت مبارك (بَلِ السَّاعَةُ) الخ نا زل شو (٢). دا روايت مبارك بخاری شريف كښې دفضائل القران په موقع باندې ښه طويل ذكر دی. مسلم شريف كښې دا حديث مبارك نشته دی (٣).

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | إِنَّ الْمُجْرِمِينَ |
| | | | بيشكه دا مجرمان خلق |
| | | | دامجرمان په غټه ګمراهئ |
| يُسْحَبُونَ | يَوْمَ | وَسُعُرٍ | فِي ضَلَالٍ |
| چی به راښكلي كيږي دوئ | په كومه ورخ | او په بې عقلئ كښې دی | په ګمراهئ كښې دی |
| او په لويه بې عقلئ كښې پراته دی | په كومه ورخ چې به په اور كښې راښكي شي | | |

(١)صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اقتربت الساعة باب قوله ( بل الساعة موعدهم والساعة ادهى وامر: ٤٨٧٧.
(٢)صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اقتربت الساعة باب قوله ( بل الساعة موعدهم والساعة ادهى وامر: ٤٨٧٦.
(٣) صحيح بخارى كتاب فضائل القران باب تاليف القران : ٤٩٩٣.

فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ۝ إِنَّا

په وور کښې | په مخونو ددوئ باندې | اوڅکئ مزه | د درسیدو | د دوزخ دوور | بیشکه مونږه

،نوورته به اوئیلې شي، چې (اوس) د دوزخ داور مزه اوڅکئ | ..................مونږ هر یو

كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ۝ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ

هر څیز | پیدا کړو مونږه هغه | په اندازه سره | او نه دې حکم زمونږه | مګر حکم یو

څیز په یو خاص انداز پیدا کړې دې | ..................... او زمونږ (د قیامت) حکم راتلل بس

كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ۝ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ

لکه رپول | دسترګو | او هلاک کړل مونږه | (قومونه) مشابه ستاسو | آیا شته څوک |

لکه د سترګو رپ دې | او مونږ ستاسو په شان څومره هلاک کړې دی | نو آیا څوک عبرت اخستونکې

مِنْ مُدَّكِرٍ ۝ وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ۝

نصیحت قبلونکې | او هر څیز | اچې کړې وی دوئ هغه | په کتابونو کښې درج دې |

شته؟ ......... اوهرڅه چې دوئ اوکړل | هغه په کتابونو کښې لیکلی دی

وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ ۝ إِنَّ الْمُتَّقِينَ

اوهرووکې عمل | او لوئ عمل | لیکلې شوې پروت دې | بیشکه پرهیزګاران خلق به |

اوهر ووړه اوغټه خبره په کښې لیک ده | ............ بیشکه پرهیزګاران به

فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ۝ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ

په باغونو او نهرونو کښې وی | په ځائې | رښتینی کښې به وی | په خوا دبادشاه

په باغونو کښې د ننه اود نهرونو په غاړه اوسیږی | په یو اوچت ځائې کښې د هغې بادشاه سره

مُقْتَدِرٍ ۝

دلوېو قدرتونو والا کښې (به وی) |

چې د قدرتونو خاوند دې

**قوله تعالى:- إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ۝**

**الله جل شانه تقدیر جوړ کړو :-** بدکاره خلق ګمراه شوی دی او د حق لارې نه بې لارې شوی دی او شکونو او پریشانو کښې اخته دی. دا بدکاره خلق کفار وی او که نور فرقو والا ګناهګار وی، ددوی دا فعل به دوی پرمخ جهنم ته اورسوی. او لکه څنګه چه دلته غافل دی هلته به هم دوی بې خبره وی چه چرته به بوتلې شی. په هغه کښې به دوی ته غصه کښې اوئیلې شی چه اوس د دوزخ د اوور مزه اوڅکئ. مونږ هر یو څیز اندازې سره پیدا کړې دې لکه څنګه چه یوبل آیت مبارک کښې دی چه هر څیز مونږ پیدا کړو او بیا مو ددې مقدر مقرر کړه. بل ځائې کښې دی چه د خپل لوئې رب پاکی بیان کړه چه هغه ذات پیدا کړنې او درست نې کړې او اندازه نې کړې او لار نې درته اوخودله. یعنې تقدیر ئې مقرر کړو بیا نې دې طرفته رهنمائی اوکړه آنمه اهل سنت ددې نه استدلال کړې دې چه الله جل شانه د خپل مخلوق تقدیر ددوی دپیدائش نه مخکښې مقرر کړې دې. اوهرڅیز دخپل ظهورنه مخکښې الله ﷻ سره لیکلې

شوې دي. قدريه فرقه ددې نه منکره ده. دا خلق د صحابه کرامو ﷺ اخره زمانه کښې راوتلي وو. اهل سنت ددوی د مسلك خلاف دا قسمه آيتونه پيش کوی او ددې مضمون آيتونه هم. ددې مسئلې مفصل بحث مونږ بخاری شريف کښې کتاب الايمان شرح کښې ليکلې دې. دلته صرف هغه احاديث ليکو چه کوم د مضمون آيت متعلق دی. ابوهريره ﷺ فرمائی چه د قريشو مشرکانو رسول الله ﷺ نه د تقدير دباره کښې بحث اوکړو نو په دې باندې دا آيتونه نازل شو[1] (مسند احمد ومسلم وغيره) په روايت د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده مروی دی چه دا آيتونه دمنکرين تقدير ترديد کښې نازل شوی دی جل شانه بزار).

دابن ابی حاتم روايت کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت کولو نه پس اوفرمائيل چه دا خما دامت هغه خلقو باره کښې نازل شوې دې چه آخرى زمانه کښې به پيدا کيږی او تقدير به نه منی. عطاء ابن ابی رباح ﷺ فرمائی چه خه ابن عباس ﷺ ته ورغلم او دوی په هغه وخت کښې زم زم نه اوبه راويستلې. ددوی جامې لمدې شوې وې ما ترې تپوس اوکړو چه د تقدير باره کښې کلام شوې دې،خلق دې مسئله کښې موافق او مخالف دی. دوی اوفرمائيل چه آيا خلقو داسې کړی دی؟ مااوونيل چه آو داسې شوی دی. نو دوی اوفرمائيل چه ﴿ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ۝إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ۝﴾ ياد ساتئ دا خلق ددې امت بدترين خلق دی. ددوی د بيمارانو تپوس مه کوئی او ددوی په مړو باندې جنازه مه کوئی. که دوی ماته څوك ملاؤ شی نو خه به ګوتو ددوی نه سترګې اوباسم. بوروايت کښې دی چه دابن عباس ﷺ مخکښې ذکر اوشو چه يو سړې راغلی دې چه د تقدير نه منکر دې. دوی اوفرمائيل چه ما هغه ته ورولئی. خلقو اووئيل چه تاسو خو نابينا يئ تاسو به هغه سره څه اوکړئی؟ دوی اوفرمائيل چه په الله جل شانه قسم که هغه ماته ملاؤ شی نو خه به په هغه پوزه ماته کړم. او که د هغه مرغئ خما لاس کښې راشی نو خه به ئې خپه کړم. ما حضور نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ګويا خه وينم چه دبنوفهر ښځې د بنو خزرج نه ګيرچاپيره تاويږی، د دوی بدنونه حرکت کوی،دا مشرکانې ښځې دی. ددې امت رومبی شرك دادې. دهغه رب قسم چه د هغه قبضه کښې خما روح دې چه ددوی ناپوهی به تر دې زياتيږی چه الله جل شانه لره به دبنه مقدر هم نشی منلې. لکه څنګه چه دبدئی مقدر کولو والا نه شی منلې. (مسند احمد)[2].

**دتقدير انکار او دې مسئله کښې بحث کول**:- دعبدالله بن عمر ﷺ يو دوست شامی وو.لوهغه به دده سره خط و کتابت کيدو. عبدالله ابن عمر ﷺ چرته آوريدلی وو چه هغه دتقدير باره کښې څه غلطه وينا کوی دوی ورته زر خط اوليکلوچه ما آوريدلی دی چه ته د تقدير باره څه کلام کوې که دا رينتيا وی نو بس خما نه نور د خط و کتاب اميد مه ساته. نن ئې بند اوګڼړه. ما حضور نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه خما امت کښې به تقدير په دروغه ګڼړلو والا خلق وی.[3] (ابوداود) حضور نبی کريم ﷺ فرمائی چه هر امت کښې مجوس وی او خما د امت مجوس د تقدير منکر دی. که دوی بيمار شی نو تاسو ددوی تپوس مه کوئی او که دوی مړه شی نو تاسو ددوی جنازې مه کوئی[4] ( مسند احمد). دې امت کښې به مسخ وی يعنی دخلقو صورتونه به بدليږی،ياد ساتئ دابه په هغوئی کښې وی چه څوك تقدير نه منی او زنديقيت کوی[5] ( ترمذی وغيره).

---

[1] صحيح مسلم كتاب القدر باب كل شئ بقدر : ٢٦٥٦، ترمذی : ٢١٥٧، ابن ماجه: ١٠٨٣، احمد: ٤٤٤/٢.
[2] احمد : ٣٣٠/١،
[3] ابوداود كتاب السنة باب من دعا الى السنة : ٤٦١٣. وسنده حسن.
[4] احمد: ٨٦/٢، /٥٥٨٤،.
[5] ترمذی : كتاب القدر باب ماجاء ل المكذبين بالقدر من الوعيد : ٢١٥٣، ابن ماجه: ٤٠٦١، وسنده حسن احمد: ١٠٨/٢.

حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه هر څيز مقرري اندازې سره دې او تردې چه عقل او ناداني هم.(١)
(مسلم) صحيح حديث مبارك كښې دى چه دالله ﷻ نه مدد اوغوارئې او عاجزه اوبې وقوف مه
جوړيږئې، بيا كه څه نقصان دراورسي نو وائې چه دا دالله جل شانه د طرفنه مقرر شوې وو او چه څه
الله ﷻ غوښتلې وو،بيا داسې مه وائې كه داسې مو كړې وې نوداسې به شوى وو. ځكه چه داسې وينا
سره د شيطاني عمل دروازه بيرته كيږى. (٢)
حضور نبي كريم ﷺ ابن عباس ؓ ته اوفرمائيل چه پوهه شه كه ټول امت جمع شي اوتاته څه فائده رسول
غواړي،څه چه الله جل شانه ستا قسمت كښې نه دى ليكلى وى هغه تاته نشي رسيدلې. اوكه ټول
اتفاق اوكړي او تاته څه نقصان رسول غواړي او ستا تقدير كښې هغه نه وي نو نه شي رسولې. قلمونه
اوچ شو او دفترونه بند شو(٣)وليد بن عباده ؓ د خپل پلار عباده بن صامت بيمارئى كښې چه كله د
هغه حالت بالكل غير وو،عرض ئې اوكړو چه اباجي مونږ ته څه وصيت اوكړئى. دوى اوفرمائيل چه ښه
ما كينوئى،هركله چه خلقو كينولو نو دوى اوفرمائيل چه ائې ځما خوږو بچو! دايمان مزه تاسو ته
نشي حاصليدې اود الله جل شانه متعلق چه تاسوته كوم علم دې دهغې ويخ ته نشې رسيدلئ تر كومې
چه ستا ايمان د تقدير په نيكئ اوبدئ نه وى. ما عرض اوكړو چه اباجي ! څه ځنګه معلومولې شم چه
ځما ايمان په خير اوشر باندې دې؟ وې فرمائيل چه داسې چه تاته دايقين وى چه څه تاته ملاو نشو هغه
تاته هډو ملاويدو والا نه وو،او چه څه چه تاته اورسيدل هغه ختميدو والا نه وو.ځما خويه واوره! ما
درسول الله ﷺ نه آوريدلى دى چه الله جل شانه ټولو نه مخكښې قلم پيداكړو او بيا ئې هغه ته
اوفرمائيل چه اوليكه ! نوهغه وخت نه شروع شو او تر قيامته پورې چه څه كيدو والا وو هغه هر څه ئې
اوليكل. اې خويه كه ته د وفات په وخت كښې په دې عقيده نه وې نو ته به جهنم ته داخليږې. دا حديث
مبارك ترمذي شريف كښې دې. او امام ترمذي رحمه الله فرمائي چه دا حسن صحيح غريب دې (٤). حضور
نبي كريم ﷺ فرمائي چه تاسو كښې يو سړې تر هغه وخت پورې ايماندار نه شي كيدې تر كومې چه
دهغه ايمان په څلورو خبرو نه وى، اول ددې خبرې شهادت وركړي چه معبود برحق صرف الله جل شانه
دې اوخه د الله جل شانه رسول يم او دمرګ نه پس په ژوندايمان اولرى او دتقدير نيكى او بدى من
جانب الله اومنى ،(٥)(ترمذي وغيره).
صحيح مسلم كښې دى چه الله جل شانه د زمكې او آسمان د پيدائش نه پنځوس زره كاله مخكښې د
مخلوقاتو تقدير اوليكلو هركله دهغه ذات عرش په اوبو باندې وو(٦)امام ترمذي رحمه الله دې ته حسن
غريب وائي. بيا الله جل شانه د خپلې خوښې او داحكامو د ښه پورا كيدو بيان فرمائي چه ځنګه ما
مقدر كړې دى هم هغه كيږى. همداشان چه يو كار څه اراده اوكړم نو صرف يو ځل وينا سره هغه كيږى
ددوباره تاكيد او حكم ضرورت نه وى. دسترګو رپ كښې هغه كيږى ځماد خوښې مطابق. دعربو
شاعر څه ښه وئيلي دى چه :

اذاما اراد الله امرا فانما يقول له كن قوله فيكون

(ترجمه) الله جل شانه چه كله ديوكار اراده اوكړى نوصرف فرمائي چه شه نو هغه اوشي.

(١) صحيح مسلم كتاب القدر باب كل شي بقدر : ٢٦٥٥.
(٢) صحيح مسلم كتاب القدر باب الايمان بالقدر : والاذعان له: ٢٦٦٤.
(٣) ترمذى صفة القيامة حديث حنظلة: ٢٥١٦ وسنده حسن .
(٤) ترمذى كتاب القدر باب اعظام امر الايمان بالقدر : ٢١٥٥، وهو صحيح احمد: ٣١٧/٥.
(٥) ترمذى كتاب القدر باب ماجاء ان الايمان باالقدر خيره وشره: ٢١٤٥، ابن ماجه: ٨١،
(٦) صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج آدم وموسى عليهما السلام : ٢٦٥٣، ترمذى : ٢١٥٦، احمد: ١٦٩/٢، ابن حبان: ٦١٣٨.

مونږ ستاسو په شان ستاسو نه مخکښې دهغوئ دسرکشئ په وجه فنا کړل. بیا تاسو ولې ددې نه عبرت نه اخلئ؟ دهغوئ عذاب او واقعاتو کښې آیا ستاسو دپاره څه نصیحت نشته دې؟ لکه فرمائي چه ﴿وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم مِّن قَبْلُ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا فِي شَكٍّ مُّرِيبٍ﴾ یعنی ددوی او ددوی د غوښتنې مینځ کښې پرده اچولې شوې ده لکه چه څنګه ددوی نه مخکښې خلقو سره شوی وو چه هغوئ اوکړل هغه ددوی اعمال نامه کښې موجود دی چه دالله ﷻ د امین فرښتو لاس کښې دی د دوی هر یووړوکې اولوئې عمل محفوظ دې او لیکلې شوې دې. یو هم داسې نه دې چه پاتې شوې وي. حضور نبی کریم ﷺ فرمائي چه واړه ګناهونه هم سپک مه ګڼړئ ددې به دالله جل شانه د طرفنه مطالبه کیږی. (١)(نسائي و ابن ماجه وغیره).

قوله تعالى:- وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ

هیڅ یو ګناه وړ ته مه ګڼړئ:- سلیمان بن مغیره ﷺ فرمائي چه یو خل خمانه څه ګناه اوشوه او ما دا حقیر اوګڼړله،دشپې خوب کښې ګورم چه یو راتلونکې ماته وائي چه ائې سلیمانه :

لاتحقرن من الذنوب صغيرا :-:-:- ان الصغير غدا يعود كبيرا

ان الصغير ولو تقادم عهده :-:-:- عند الله مسطر تسطيرا

فأرجر هواك عند البطالة لاتكن صعب القياد وشمرن تشميرا

ان المحب اذا احب الهه :-:-:- طار الفوءاد والهم التفكيرا

فاسأل هدايتك الاله بنية :-:-:- فكفى بربك هاديا ونصيرا

ترجمه : ګناه لره حقیره او ناچیزه مه ګڼړئ،دا صغیر به صباله کبیره شی. اګر چه ګناهونه واړه واړه وی او ددې کولو کښې وخت تیر شوې وی،الله ﷻ سره هغه صفا صفا لیکلې شوی موجود دی. دبدنی نه خپل نفس لره بچ ساتنی اوداسې نه چه مشکل سره نیکئ طرفته راشئ بلکه خپله لمن اوچته کړنی او نیکئ طرفته په منډه شئ،هرکله چه یو سړې د زړه نه الله جل شانه سره محبت کوی نو دهغه زړه الوزی اوهغه دالله جل شانه د طرفنه غوراو فکر او الهام کیږی. خپل رب نه هدایت غواړه اونرمی او ملامت کړنی. هدایت او نصرت کولو والا رب به تالره کافی شی،بیا ارشاد دې چه د نیکو خلقو حالت به ددې بدکارو خلقو خلاف وی،هغوئ ضلالت او تکلیف کښې وو او پړمخ به جهنم ته داخلولې شی او په دوئ به الله جل شانه ډیر غصه وی. خودنیکان خلق به جنتونو کښې وی اود روانو صفا چینو مالکان به وی اوعزت اوکرامت او رضوان او فضیلت او جود احسان او فضل او منان او نعمت او رحمت،آسانښ او راحت او مکان کښې به خوشحاله وی. اودوی ته به د الله جل شانه قرب حاصل وی. او هغه ذات د ټولو څیزونو مالك دې. د ټولو اندازو لره مقررولو والا او په هر څیزقدرت لرونکې ذات دې. هغه ذات به ددې نیکانو خلقو یو یو خواهش پورا کړی. یویو آرزو به ئې پوراکړی. مسنداحمد کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ عدل و انصاف کولو والا نیکان خلق به الله جل شانه سره د نور په منبرونورحمان ذات سره ښی طرفته وی. دالله جل شانه دواړه لاسونه ښی دی. دا عادلان خلق هغه دی چه دې خلقو به احکامو کښې او خپل اهل وعیال کښې او چه کوم څیزدوی سره وو هغې کښې به ئې د الهامی فرمان خلاف نه کولو بلکه عدل وانصاف نه به ئې کار اخستلو. دا حدیث مبارك صحیح مسلم او نسائي کښې هم دې.

الحمد لله دالله جل شانه توفیق سره د سورة اقتربت تفسیر ختم شو،الله تعالی دې مونږ ته نیك توفیق راکړی او دبدو نه مو دې اوساتی (٢).

---

(١)ابن ماجه كتاب الزهد باب ذكر الذنوب: ٤٢٤٣، وهو صحيح احمد: ٦/٧٠.

(٢) ددې تخریج سورة الحجرات کښې آیت نمبر ١٥ لاندې تیر شوې دې .

## دسورة رحمن تفسير

**تعارف دسورت** :زر رحمه الله نه روايت دی چه يو سړی اوونيل چه قران پاك كښي لفظ(مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ )دی چه دا(اٰسِنٍ) لفظ دی يا (يٰسِنٍ) نو دوی اوفرمائيل چه ګويا ته ټول قران پاك باندی پوهه شوی؟ هغه اوونيل چه څه د مفصل ټول سورتونه يو رکعت کښي وايم. نو دوی اوفرمائيل لکه څنګه چه اشعار زر زر وئيلی شی دغه شان به ته هم قران پاك زر زر وائی. افسوس،ما ته ښه محفوظ دی چه دمفصل ابتدائی کوم کوم دوه برابر والا سورتونه به حضور نبی کريم ﷺ يو ځائي کول.د ابن مسعود ؓ روايت کښي دمفصلو ټولو سورتونو کښي ړومبي سورة سورة الرحمان دی ([1]).

جابر ؓ فرمائی چه يو ورځ حضور نبی کريم ﷺ د صحابه کرام ؓ مجمعي ته تشريف راوړو اود سورة رحمان اول نه ئي تر آخره پوري تلاوت کړو. صحابه کرامو ؓ چپ چاپ آوريدلو. حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ستاسو نه خو جناتو نه هم ښه جواب ورکولو. ماچه کله د هغوئ مخکښي ددې سورة تلاوت اوکړو نو کله چه(فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ)مي اولوستو نو وئيل ئي چه (لابشئ من نعمك ربنا نكذب فلك الحمد) يعنی اې پروردګاره مونږ به ستاسو نعمتونو کښي دکوم کوم نعمت ناشکری کوو. هم ستاد پاره ټول تعريفونه او صفتونه دی([2])(ترمذی ) دا حديث مبارك غريب دی او همدا روايت ابن جرير کښي هم دی. هغي کښي دی چه يا خو حضور نبی کريم ﷺ دا سورة اولوستويادحضور نبی کريم ﷺ مخکښي ددې تلاوت اوشو.نوپه هغه حضور نبی کريم ﷺ دصحابه کرام ؓ په خاموشئ دا اوفرمائيل اودجواب الفاظ دی چه ( لابشئ من نعم ربنا نكذب ) ([3])

| اياتونه | | سورة الرحمٰن مكية وهي ثمان وسبعون اٰية وثلاث ركوعات | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۷۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکي دی | | ۳ |

اَلرَّحْمٰنُۙ ﴿۱﴾ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَؕ ﴿۲﴾ خَلَقَ الْاِنْسَانَۙ ﴿۳﴾ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ﴿۴﴾

رحمن | ښودلي دا قران | هغه پيدا کړو انسان | وي ښودو هغه ته | بيان (دخبرو کولو)

الله ډير مهربان دی اچي دقران تعليم ئي ورکړي دی اهم هغه انسان پيدا کړي دی اهغه نه ئي خبري خودلي دی

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴿۵﴾ وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ﴿۶﴾

نمر | او سپوږمئ | په حساب سره دی | او ستوری | او ونې | سجدې کوی (الله ته) |

نمر او سپوږمئ هم د حساب پابند دی |.........اوبوټی او ونې هم هغه ته سجدې کوی

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَۙ ﴿۷﴾ اَلَّا تَطْغَوْا

او آسمان | پورته کړو الله هغه لره | او کيښودو ئي ميزان | چې اونه کړئ تاسو زياتي |

او اسمان هغه پورته کړي دی | او تله (دانصاف ئي) مقرر کړي ده | چې تاسو تول

[1] احمد: ۴۱۲/۱. وسنده حسن .
[2] ترمذی کتاب تفسير القران باب سورة الرحمان : ۳۲۹۱، وهو حديث حسن ، حاکم: ۴۷۴/۲.
[3] الطبری : ۳/۲۳.

فِي الْمِيْزَانِ ﴿٨﴾ وَأَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ﴿٩﴾

په ميزان كښي | او برابر كوئ | تول | په انصاف سره | او مه كموئ | تله

كښي كمى زياتي نه كوئ | او تول په انصاف باندي برابر كوئ | او په تله كښي كمي مه كوئ

وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ﴿١٠﴾ فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ

او زمكه | كيښوده الله هغه | دپاره دمخلوقاتو | په هغې كښي | ميوي دى | او دكجورو وني دي

او هم هغه دخلقو دپاره زمكه خوره كړي ده | چي په هغې كښي ميوي دى | اود كهجورو وني خاوندانې

ذَاتُ الْأَكْمَامِ ﴿١١﴾ وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ﴿١٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ

خاوندانې دغلافونو | او دانې دى | بوسو والا | او رزق دې (غله ده) | پس كوم يو نعمت |

د غلافونو | او غله ده چي د بوسو اود خوراكې (دواړو) څيز دې | او خوشبويه ګلونه نو (انې پيريانو او انسانانو)

رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿١٣﴾ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿١٤﴾

درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو | پيدا ني كړو انسان | دوچې ختې نه | پشان دټيكرى |

تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګڼرئ | هغه انسان د ختې نه پيدا كړو اچې دټيكرى په شان ټينګيدله

**قوله تعالى:- اَلرَّحْمٰنُ ﴿١﴾ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ﴿٢﴾**

**دالله جل شانه رحمتونه:-** الله جل شانه د خپل رحمتونو بيان كوى چه هغه په خپلو بندګانو قران پاك نازل كړو. اوپخپل فضل سره ئې ددې حفظ كول آسان كړو. هم هغه ذات انسان پيدا كړو او ده ته ئې وينا اوخودله. قتاده رحمه الله وغيره وائى چه دبيان نه مراد خير او شر دې. خودې خانې كښې وينا اخستل زيات ښه دى. دحسن رحمه الله قول هم دادې او دې سره دقران پاك تعليم هم ذكر دې او ددې نه مراد دقران پاك تلاوت دې. او تلاوت موقوف دې دوينا په آسانئ باندې، هر يو حرف د خپل مخرج نه ښه په آسانتيا سره اداكيږى كه هغه دحلق نه وى اوكه هغه د شونډو نه وى، دمختلفو مخرجونو او مختلفو قسمونو حروف ادا كول الله جل شانه انسان ته آسان كړى دى. نمر او سپوږمئ يو بل پسې خپل خپل مقرر حساب سره ګردش كوى. نه خو په دوى كښې اضطراب پيدا شواو نه اختلاف او نه يو بل نه مخكښې روستو شو. هر يو په خپل خانې باندې روان دى. او بل خانې كښې فرمائى چه (فَالِقُ الْإِصْبَاحِ الخ) الله ﷻ سحر كوونكې ذات دې اوهم هغه ذات شپه ستاسو دآرام دپاره پيدا كړه. او نمر اوسپوږمئ ئې حساب دپاره دا مقرر اندازې دى د غالب او دانا الله جل شانه.

**قوله تعالى:- اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴿٥﴾**

**دنمر او د عرش دپردو درنړا اندازه:-** عكرمه رضي الله عنه فرمائى كه دټولو انسانانو او جناتو او چارپايانو او مارغانو د سترګو نظر ديوسړى كړې شى اوبيا د نمر مخكښې چه كومې اويا پردې دى هغه لرې كړې شى نو دانا ممكن دى چه دا سړې هغه نمر طرفته اوګورى، ددې باوجود چه دنمر نوردكرسئ دنور اويايمه حصه ده. اود كرسئ نور د عرش د نور اويايمه حصه ده. اود عرش د نور چه كومې پردې دالله جل شانه مخكښې دى هغې كښې د يو پردې نور اويايمه حصه ده. نو خيال اوكړئ چه الله جل شانه به دخپلو بندګانو جنتيانو سترګو كښې څنګه نورا يښودې وى چه كله هغوئ خپل رب جل شانه لره په ښكاره خپلو سترګو سره اووينى (ابن ابى حاتم

**د ونې رحمت او د نجم معنې:-** په دې خود مفسرينو اتفاق دې چه شجر هغه ونې ته ونيلې شى چه د هغې

تنه وي. خو نجم معنې ډيرې دی. بعضې وائی چه دنجم معنی هغه خيلئ دی چه دهغې تنې نه وي او په زمکه خورې شوې وی (١). بعضې وائی چه ددې نه مراد ستوری دی چه کوم آسمان کښې دی (٢). هم دا قول زيات ظاهر دې. اګر چه اول قول د امام ابن جرير رحمه الله اختيار کړده دې. والله اعلم.

دقران پاك دا قول ددې دويم قول تائيد کوی. فرمان دې چه (اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسۡجُدُ الخ.) آيا تاسو نه دی کتلی چه الله جل شانه لره د زمکې اوآسمان ټول مخلوقات او نمر او سپوږمئ او ستوری، غرونه او ونې او چارپايان او ځناوراو اکثر خلق سجده کوی. الخ.

**قوله تعالى:-** وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الۡمِيۡزَانَ ۟

**دآسمان پيدائش** :بيا فرمائی چه آسمان لره هغه ذات اوچت کړو. اوهغه پاك ذات ميزان جوړ کړو. يعنی عدل لکه يو بل آيت کښې دی چه (لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلَنَا بِالۡبَيِّنٰتِ وَاَنۡزَلۡنَا مَعَهُمُ الۡكِتٰبَ وَالۡمِيۡزَانَ لِيَقُوۡمَ النَّاسُ بِالۡقِسۡطِ) يعنی يقينًا مونږ خپل رسولان دليلونوسره او ميزان سره اوليږل چه خلق په عدل باندې قائم کړی. دلته نې هم آسمان او زمکه عدل اوآسمان عدل او حق سره پيدا کړل چه ټول ځيزونه حق او عدل سره وی. نو فرمائی چه کله وزن کوئی نو پورا تول کوئی اوعدل او حق سره او وزن کښې کمې او زياتې مه کوئی چه د اخستلو په وخت کښې زيات تول کوئی او د خرڅولو وخت کښې کم تول کوئی. او بل ځائې کښې ارشاد دې چه (وَزِنُوۡا بِالۡقِسۡطَاسِ الۡمُسۡتَقِيۡمِ) صحت سره او ښه طريقې سره تول کوئی. آسمان خوهغه ذات اوچت کړو. او زمکه هم هغه ذات لاندې کړه اوخوره ئې کړه. او په دې کښې ئې د غرونو پشان مضبوط ميخونه اووهل چه دا خوزی نه او په دې مخلوق اوسی او دوی ښه آرام کښې دی

**قوله تعالى:-** وَالۡاَرۡضَ وَضَعَهَا لِلۡاَنَامِ ۟

**زمکه او ميوې** :-بياد زمکې مخلوق ته اوګورئی، ددې مختلف قسمونه، مختلفو شکلونو، مختلفونو رنګونو، مختلفونو ژبو، مختلفو عادتونو باندې نظر واچوئی او دالله جل شانه دقدرت کامله اندازه اوکړئی.دې سره سره د زمکې پيداوار ته اوګورئی چه رنګ په رنګ خوږې ترخې اورنګ رنګ خوشبو والا ميوې او خاص کر د کهجورو ونې چه نفع ورکونکې او د رزغونيدو نه تر اوچيدو پورې اوډې نه پس هم په کار راتلونکې عامه ميوه ده. په دې کښې غونچې وی چه دا ځيرې کولو نه پس بهر راوځی. بيادا ترشی اوبيا پخه شی. ډير نفع ورکونکې دی.دې سره سره ددې ونه بالکل نيغه او بالکل بې ضرره وی

**عمر فاروق رضی الله عنه ته د قصري خط او دهغه جواب**:- ابن ابی حاتم کښې دی چه قيصر امير المومنين عمر ابن خطاب رضی الله عنه ته اوليکل خما قاصد تاسو نه واپس راغلې هغه وائی چه تاسو سره يوونه ده چه دهغې پشان خونی خصلت نورو کښې نشته دې. دا د زمکې نه د ځناور د غوږ پشان راوزی. بيا دا زرغونه شی او د موتی په شان شی. بيا دا زيړه شی او بيا سره شی او دياقوت پشان شی، بيا پخه شی او تياره شی او د بهترينې فالوده پشان وی. بيا دا اوچه شی او د مقيم خلقو د بچ کيدو دپاره اودمسافرو دتوښې دپاره يو ځيز وی. که خما دقاصد دا خبره صحيح وی نو خما په خيال خو دا جنتی ونه ده.

ددې جواب کښې شاه اسلام فاروق اعظم رضی الله عنه اوليکل چه دالله جل شانه د غلام دمسلمانانوبادشاه عمر طرفنه دشاه روم قيصر په نوم، ستاسو قاصد چه تاسو ته کوم خبر ورکړې دې هغه رښتيا دې، داقسمه ونې ملك عرب کښې ډيرې زياتې دی. هم دا هغه ونه ده چه دا الله جل شانه مريم سره زرغونه کړې وه. اوددې خونې عيسى عليه السلام ددې په رحم کښې وو. نو انې بادشاه دالله تعالى نه ويريږه او عيسى عليه السلام لره خدائې مه ګڼره. الله جل شانه يو دې. دعيسى عليه السلام مثال دالله جل شانه په نزد آدم عليه السلام پشان دې چه هغه

---

(١) الطبری : ١١/٢٣.
(٢) الطبری : ١٢/٢٣.

الله جل شانه د ښاورې نه پيدا كړو ،بيا ئي ورته اوفرمائيل چه شه نوهغه شو. دالله ﷻ طرفنه ربښتوني او حق خبره هم داده ،تاته پكار دى چه شك او شبه والو كښې نه شي،د ﴿الْأَكْمَامِ﴾معنى پوستكي وى چه د كهجورې په ونه د پوستكى په شان وى. او هغه پاك ذات زمكه كښې بوس او غلې پيدا كړې د ﴿ذُو الْعَصْفِ﴾دپتې هغه شنې پانړې دى چه د پورته نه پريكړې شى بيا اوچې كړې شوې وى (١)، ﴿الرَّيْحَانُ﴾ نه مراد پانړې (٢) يا هم دا ريحان چه هم دې نوم سره مشهوردى يا دپتې شنې پانړې. مطلب دادې چه د غنمو او اوربشو وغيره هغه دانې چه په وړې كښې بوسو سره وى اودا هم ونيلې شوى دى چه دپتې مخكښې نه راوويستې شوې پانړو ته ﴿ذُو الْعَصْفِ﴾ ونيلې كيږى. اوكله چه پانړې راوزى نو ددې وړى پيدا شى نودې ته ريحان وائى،لكه چه د زيد بن عمرو بن نفيل مشهوره قصيده كښې دى.

**قوله تعالى:- فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ**

**د الله جل شانه نعمتونه په دروغه گنړل**: بيا فرمائى چه انې جناتو او انسانانو اتاسويه د خپل رب كوم كوم نعمت په دروغه گنړئى؟ تاسو دهغه ذات نعمتونو كښې سر نه تر پښو پورې پټ يئ: ناممكن دى چه تاسو دنعمت نه انكار اوكړنى شئ،اودې ته دروغ اووانې،كه يو يا دوه نعمتونه وى نو خير دې، دلته خوتاسو سر نه پښو پورې نعمتونو كښې ډوب يئ: په دې وجه مومن جناتو ددې آوريدو سره جواب كښې اونيل چه ﴿اللهم ولا بشيء من الائك ربنا نكذب فلك الحمد﴾ ابن عباس رضي الله عنه ددې جواب كښې اوفرمائيل چه ﴿لا بأيها يا رب﴾ يعنى ائې الله جل شانه ! مونږ ددې كښې دهيڅ نعمت انكار نه كوو(٣) د ابوبكرصديق رضي الله عنه لور بى بى آسماء رضي الله عنها فرمائى چه در سالت شروع شروع كښې چه لا داسلام پورا پورا اعلان نه وو شوې ما حضور نبى كريم ﷺ اوليدو چه بيت الله شريف كښې دركن طرفته مونځ كولو او حضور نبى كريم ﷺ مونځ كښې همدا سورت تلاوت فرمائيلو او مشركانو هم آوريدو. (٤)

| وَخَلَقَ الْجَانَّ | مِنْ مَّارِجٍ | مِّنْ نَّارٍ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا |
|---|---|---|---|---|
| او پيدا ئې كړل پيريان | دشغلې نه | دوور نه | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو |
| اوپيريان ئې داور د شغلې نه پيدا كړل | | | نوائې پيريانو اوانسانانو،تاسوبه دخپل رب كوم كوم | |
| تُكَذِّبَانِ | رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ | وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | |
| دروغ گنړئ تاسو | رب دواړو مشرقونو دې | او رب دواړو مغربونو دې | پس كوم يو نعمت به | |
| نعمت دروغ گنړئ | هغه دوؤ مشرقونو او د دوؤمغربونو رب دې | | نوائې پيريانو او انسانانو،تاسوبه | |
| رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ | مَرَجَ | الْبَحْرَيْنِ | يَلْتَقِيَانِ |
| درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | روان ئې كړل | دوه دريابونه | چې ديوبل سره يو ځائې كيږى |
| دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ گنړئ | | هغه دوه دريابونه روان كړى دى | | چې سره يو ځائې هم دى |
| بَيْنَهُمَا | بَرْزَخٌ | لَّا يَبْغِيَانِ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا |
| په منځ ددواړو كښې | پرده ده | چې په يو بل نه وراوړى | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو |
| اوددې دواړو په مينځ كښې پرده هم ده | | دواړه پرې يو بل ته وراندې كيدې نشى | نو تاسوبه دخپل رب كوم كوم | |

(١) الطبرى: ۱۸/۲۳.
(٢) الطبرى: ۱۹/۲۳.
(٣) الطبرى: ۲۳/۲۳.
(٤) احمد: ۳٤۹/٦، طبرانى : ۱۹۷۱۷، مجمع الزوائد: ۱۱۵/۲.

| تُكَذِّبٰنِ ﴿٢١﴾ | يَخْرُجُ | مِنْهُمَا | اللُّؤْلُؤُ | وَالْمَرْجَانُ ﴿٢٢﴾ | فَبِأَيِّ آلَاءِ |
|---|---|---|---|---|---|
| دروغ گنړئ تاسو | راوځي | ددې دواړونه | ملغلرې | او مرجان | پس كوم يو نعمت به |
| نعمت دروغ گنړئ \| ددې دواړو دريابونو نه ملغلرې او مرجان راوځي \| ..........نو تاسو به دخپل | | | | | |

| رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٣﴾ | وَلَهُ الْجَوَارِ | الْمُنْشَئٰتُ | فِي الْبَحْرِ |
|---|---|---|---|---|
| درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | او هغه لره دي كشتئ (جهازونه) | اوچتي اوچتي | په درياب كښي |
| رب كوم كوم نعمت دروغ گنړئ \|او دغه جهازونه هم دهغه په اختيار كښې دي اچې په سمندر كښې دغرونو | | | | |

| كَالْأَعْلَامِ ﴿٢٤﴾ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٥﴾ |
|---|---|---|---|
| پشان دغرونو | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو |
| په شان اوچت ولاړ دي \| نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ گنړئ \| | | | |

**قوله تعالى:- خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ﴿**

**دانسان او جن پيدائش:** دلته بيان كيږي چه دانسان پيدائش دغړيدونكې ټكركې پشان بناورې نه شوې دې، او د جناتو پيدائش داوور دشغلې نه شوې دې چه خالص او احسن وو. دمسند يو حديث مبارك كښې دي چه حضور نبي كريم ﷺ فرمائي چه فرښتې نور نه، جنات اوور نه او انسان بناورې نه پيدا شوې دې او ددې ذكر تاسو ته مخكښې اوشو[1]. بيا دخپل نعمت په دروغه نه گنړلو هدايت كوي. د يخنئ او گرمئ وخت كښې د دوؤنمرو راختلو د خائې ذكر الله جل شانه فرمائي. د ددؤ نه مراد د نمر د راختلو او ډوبيدو دوه مختلف ځايونه دي چه دهغه ځائې نه نمر راخيژي او پريوزي. اودموسم لحاظ سره دا بدليږي او هره ورځ ځي راځي. لكه چه بل آيت مبارك كښې دي چه د مشرق او مغرب وكيل هغه ذات دې تاسو هغه خپل وكيل اوگنړئ. نو دلته مراد جنس مشرق اومغرب دې او دوه مشرق مغرب نه مراد دطلوع اوغروب ځايونه دي او چونكه دطلوع او غروب ځائې جدا جدا كيدو كښې انساني منفعت او ددې مصلحت وو په دې وجه ئې اوفرمائيل چه تاسو اوس هم د خپل رب نعمتونه په دروغه گنړئ.

**قوله تعالى:- مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ﴿**

**دوه سمندرونه او ددې مطلب:** دهغه د قدرت نظاره اوكړئ دوه سمندرونه برابر روان دی، ديو اوبه تروې دي او دبل خوږې دی. نه ديو اوبه بل ته داخليدو سره هغه تروې كوي اونه د دې بل اوبه دې ته داخليدو سره دا خوږې كوي. بلكه دواړه خپل رفتار سره روان دی. د دواړو مينځ كښې يو پرده حائل ده چه نه هغه دې سره گډې شي او نه دا هغې سره. دا خپل حد كښې دې او هغه خپل حد كښې. او دقدرت فاصلې دا دواړه جداجدا كړې دی. حالانكه دواړه اوبه يو بل سره يو ځائې شوې دی. دسورة فرقان آيت مبارك ﴿وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ﴾ الخ تفسير كښې ددې پورا تفسير تير شوې دې.

امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه دې نه مراد داسمان درياب او دزمكې درياب دې. امام ابن جرير رحمه الله دا هم فرمائي چه آسمان كښې چه كومه داوبو قطره ده او چه كوم صدف زمكه كښې دې ،ددې دواړو يو ځائې كيدو نه لؤلؤ پيدا كيږي.[2] واقعه خودا صحيح ده خوددې آيت مبارك تفسير داشان كول څه مناسب نه معلوميږي ځكه آيت مبارك كښې ددې دواړو تر مينځه برزخ يعنې د پردې بيان دې. چه د

[1] صحيح مسلم وكتاب الزهد باب فى احاديث متفرقة: ٢٩٩٦، احمد: ١٦٨/٦.
[2] الطبرى: ٣٣/٢٣.

هغې نه اوهغه ددې نه جدا کوي. ددې نه معلومېږي چه دادواړه زمکه کښې دي بلکه يو بل سره لګيدلي دي خو قدرت دوی لره جداساتي. د آسمان او زمکې چه کومه فاصله ده هغه برزخ او حجر نه دې په دې وجه صحيح قول دادې چه دا دزمکې د دوؤ زمکو ذکر دې د آسمان او زمکې ددريابونو نه دې. دې دواړو کښې يعنی دواړو نه يو کښې لکه بل خائې کښې جن اوانس ته خطاب کولو نه پس سوال کوی چه آيا تاسو ته رسول نه دې راغلي څه؟ ظاهر دی چه حضور نبی کريم ﷺ انسانانو کښې رسول دې جناتو کښې څه رسول نه دې راغلې. لکه څنګه چه دلته اطلاق کيږی. حالانکه وقوع کښې هم يو دی. داشان آيت مبارك اطلاق په دوؤ دريابونو دې خو وقوع کښې يو دې.

**قوله تعالى:- يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴿۲۲﴾**

**لؤلؤ او مرجان :-** لؤ لؤ يعنی موتی خو يو مشهور معروف څيز دې. د مرجان باره کښې ونيلې شوی دی چه دا وړوکی موتی ته وائی([1]). اودا هم ونيلې شوی دی چه دا غټ موتی ته ونيلې شی. اوبعضې وائی چه بهترين او عمده موتی ته مرجان وائی([2]). بعضې وائی چه سور رنګ والا جواهر ته وائي. بعضې وائي چه سور رنګ والا مهرې ته وائی او آيت مبارك کښې دی چه ﴿وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا﴾ يعنی تاسو کښې هر يو راوتلې شوې غوښه خورئی چه تازه وی او اچولو دپاره کالی اچوئی. او مېې (کب) خود خوږو او ترخو اوبو نه ملاويږی. او موتيان صرف په ترخو اوبو کښې وی خوږو اوبو کښې نه وی. ابن عباس ؓ فرمائی چه د آسمان کومه قطره د سمندر دسيپۍ خولې ته ورشی نو دې نه لؤلؤ جوړيږی ([3]). او کله چه د صدف کښې لاړ نشی نو ددې نه عنبر پيدا کيږی. د باران وريدو وخت کښې سيپۍ خپله خوله وازوی،نو ددې نعمت بيانولوسره فرمائی چه داسې بې شميره نعمتونه چه دهغه رب دی چه نوتاسو به دکوم کوك تکذيب کوئی؟

**قوله تعالى:- وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ﴿۲۴﴾**

**بحری جهاز او کشتۍ :-** بيا ارشاد دې چه سمندر کښې تلونکی لونې لونې بادبانونو والا جهازونه چه لرې نه په نظر رازی او د غرونو په شان په نظر رازی. اودا په زرګونومنونه مال او انسانان يو طرف اوبل طرفته اوړی. دا هم دالله جل شانه ملکيت دی. دا عاليشان نعمت يادولونه پس تپوس کوی اوس اووائې تاسو څنګه انکارکولې شئ؟ عميره بن سويد رحمه الله فرمائی چه څه علی ؓ سره د فرات درياب په غاړه اوم،يو اوچت جهاز راروان وو،دوی چه کله هغه اوليدو نو د خپل لاس هغې طرفته اشاره اوکړه او ددې آيت مبارك تلاوت ئې اوکړو. بيائې اوفرمائيل چه په هغه الله جل شانه دې قسم وی چه هغه د غرونو پشان دا کشتۍ د سمندر موجونو کښې جاری کړی دی. نه خو ما عثمان ؓ قتل کړې دې او نه مې دهغه دقتل کولو اراده کړې وه اونه قاتلانو سره شريك اوم اونه دهغوئ نه خوشحاله اوم او نه هغوئ سره نرمی کولو والا يم.

| كُلُّ مَنْ | عَلَيْهَا | فَانٍ | وَّيَبْقٰى | وَجْهُ رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|
| ټول هغه څوك | چې په دې زمکه باندې دی | فنا کيدونکی دی | اوباقی به پاتې کيږی | ذات درب ستا |

هرڅه چې په دې زمکه باندې موجود دی | هغه فناکيدونکی دی | او صرف ستا د رب ذات باقی پاتې

[1]) الطبری: ۳۳/۲۳.
[2]) الطبری: ۳٤/۲۳.
[3]) الطبری: ۳۵/۲۳.

| ذُو الْجَلٰلِ | وَالْاِكْرَامِ | فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ |
|---|---|---|---|---|
| چي خاوند دلويئ دي | او دعزت وركولو دي | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼئ تاسو |
| كيدونكي دي چي دلويئ او داحسان خاوند دي | ..نو تاسوبه دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګڼئ | | | |

| يَسْئَلُهٗ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | كُلَّ يَوْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| غواړي دهغه نه | (هغه ټول) هر څوك | چي په اسمانونو كښي دي | او په زمكه كښي دي | هره ورځ |
| داسمانونوا و زمكي ټول مخلوق دهغه نه دعا كوي | ...... هغه هر وخت په يو كار | | | |

| هُوَ | فِيْ شَاْنٍ | فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | په يونوي كار كښي دي | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼئ تاسو |
| كښي لګيا وي | ..........نو تاسوبه دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګڼئ | | | |

**قوله تعالىٰ:- كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ**

**دالله جل شانه نه سوا هر څه فنا كيدو والا دي :-** فرمائي چه د زمكي ټول مخلوق فنا كيدو والا دي،يو ورځ به راشي چه په دي به هيڅ نه وي او ټول ساه والا مخلوق ته به مرګ رازي. اوداشان ټول آسمان والا مخلوق ته به هم مرګ رازي. خو چالره چه الله جل شانه اوغواړي (هغوئ ته نه ) صرف دالله جل شانه ذات به باقي وي. اودهغه ذات هميشه نه دي اوهميشه به وي. اوهغه ذات دمرګ نه بالكل پاك دي.

حضر قتاده رحمه الله فرمائي چه اول خو ئې د عالم دپيدائش ذكر اوكړو بياددوی دفنا. حضور نبی كريم ﷺ نه يو منقوله دعا كښي داهم دی چه ﴿ ياحي ياقيوم يابديع السماوات والارض ياذالجلال والاكرام لا اله الا انت برحمتك نستغيث اصلح لنا شأنا كله ولا تكلنا الى انفسنا طرفة عين ولا الى احد من خلقك ﴾ (ترجمه) اثي هميشه ژوندي اوسيدونكيه اوابد نه نه فنا كيدونكيه اوباقي اوقائم اوسيدو والا الله،اثي دآسمان او زمكي اول كښي پيدا كولووالا ربه،اثي جلال اوبزرګئ والا پرودردګاره،ستا نه سوا هيڅوك معبودنشته دي. مونږ ستا نه مدد غواړو.ته خمونږ ټول كارونه جوړ كړه او دستركو د رپ هومره هم دا مونږ ته مه سپاره،او نه خپل مخلوق كښي چا طرفته شعبي رحمه الله فرمائي چه كله ته ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ﴾ وائي نو مه ايسار شه اودي سره ﴿وَيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ﴾هم وايه. ددي آيت مبارك مضمون يو بل آيت مبارك كښي دي الفاظو سره دي چه ﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ ﴾ سوا د الله جل شانه ذات ګرامي نه هر څيز ناپيد كولو والا دي. بيا د خپلي څهرې تعريف كوي او فرمائي چه هغه ذوالجلال دي يعني ددي قابل دي چه دهغه دي عزت اوكړي شي دهغه جلال دي اومنلي شي. او دهغه د احكامو اطاعت دي اوكړي شي. اودهغه د نافرمانئ نه دي منع كړي شي. لكه بل ځائي كښي ارشاددي چه ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ﴾ الخ،چه كوم خلق سحر ماښام الله جل شانه لره بلي او د هغه د ذات مريدان دی نو هغه سره دي خپل نفس ساتي. او يو آيت مبارك كښي ارشاد دي چه نيك خلق د صدقه وركولو په وخت كښي داګنړی چه مونږ صرف دالله جل شانه دپاره وركړه كوو ،هغه كبريائی او عظمت والا او جلال والا دي. نو ددي خبرو منلو سره ټول اهل زمين فوت كيدو كښي او د الله جل شانه مخكښي دقيامت په ورځ پيش كيدو كښي برابر دی. او په هغه ورځ به هغه بزرګئ والا الله ددوی مينځ كښي عدل او انصاف سره حكم كوی. دي سره فرمائی چه اوس تاسو به دجن او انس درب كوم كوم نعمت په دروغه ګڼړئي.

**قوله تعالىٰ:- يَسْئَلُهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

**ټول د الله جل شانه نه غواړي :** بيا فرمائي چه هغه دټول مخلوق نه بي نيازه او ټول مخلوق دهغه ذات

محتاج دي. ټول په ټوله سائلان او هغه ذات غني دي. ټول فقيران او هغه د ټولوسوالونو پوراکوونکی دي.هرمخلوق خپل حال او قال سره خپل حاجتونه هغه ذات ته پيش کوي.او ددې د پوراکيدو سوال کوي. هغه هره ورځ نوى شان کښې دې. دهغه شان دې د هر آواز کونکى د آواز جواب ورکړي. غوښتونکى ته ورکړه اوکړي. تنګ حال والوله فراخي ورکړي. مصيبت او آفتونو والوته آرام اوبخښي. بيمارانو ته صحت ورکړي. غم او وهم ئې لرې کړي. دبيقراره د بې قرارئى په وخت کښې دهغه دعا قبوله کړي او هغه ته قرار او آرام ورکړي. دګناهګارو په فرياد کولو متوجه شي او هغوئ ته معافي اوکړي. ژوند هغه ورکوي او مرګ هغه ورکوي. ټول آسمان والا او ټولو زمکې والا دهغه ذات مخکښې لاس نيسي.او جولئ ئې غوړلې دي. هغه ذات وړو لره لوئې کوي،قيديانو ته رهائي ورکوي. د نيکو خلقو د حاجتونو منتهى ته،ددوى د آواز مدعا،ددوى د شکايت مرجع هم هغه ذات دې. غلامانو ته آزادي او رغبت والو ته عطيه ورکوي. هم دادهغه شان دې. ابن جرير کښې دى چه حضور نبى کريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو نوصحابه کرامو ﷺ سوال اوکړو چه يارسول الله ﷺ ! چه د هغه شان څه دې؟ نو حضور نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه د ګناهونو بخښنه،غم لره لرې کول،خلقو ته ترقى او تنزل باندې کول [1]. ابن ابى حاتم کښې او ابن عساکر هم ددې يو هم معنى حديث مبارك دې. صحيح بخارى کښې دا روايت معلقًا ابوالدرداء ﷺ قول سره مروى دې. بزار کښې هم څه کمى سره مرفوعا مروى دې [2]. ابن عباس ﷺ فرمائى چه الله جل شانه لوح محفوظ لره د سپين موتى نه پيدا کړو.او ددې دواړه پټې ئې د سور ياقوت نه. دده قلم نورى دې. ددې پلن والئ دآسمان او زمکې برابر دې.هره ورځ درې سوه شپيته خل دې ته ګورى. په هرنظر کښې ژوندى کول کوي او مړه کول کوي او عزت او ذلت ورکوي. اوچه څه غواړي نو کوي [3].

| سَنَفْرُغُ | لَكُمْ | اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ﴿۳۱﴾ | فَبِاَيِّ | اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| زر به وزګار شو مونږ | تاسو ته | اے دوه درنو قبيلو | پس کوم يو احسان به | درب ستاسو | |

اے دپيريانو اوانسانانو(ډلو)! مونږ ډير زر تاسو ته اوزګاريږو | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم

| تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۲﴾ | يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ | وَالْاِنْسِ | اِنِ اسْتَطَعْتُمْ |
|---|---|---|---|
| دروغ ګنړئ تاسو | اے ډلې دپيريانو | او دانسانانو | که چرې طاقت کيږي ستاسو |

نعمت دروغ ګنړئ | اے د پيريانو اوانسانانو ډلو ! که چرې تاسو نه کيدې شي

| اَنْ تَنْفُذُوْا | مِنْ اَقْطَارِ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | فَانْفُذُوْا | لَا تَنْفُذُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې بهر اوځئ تاسو | دغاړه (حدونو) | داسمانونونه | او دزمکې نه | نو اوځئ | نه شئ وتلې |

چې دآسمانونو اود زمکې د حدونونه چرته اووځئ | نو بيشکه اوځئ | خو بغير

| اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿۳۳﴾ | فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۴﴾ | يُرْسَلُ |
|---|---|---|---|---|
| مګر په طاقت سره | پس کوم يو قدرت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | اوبه ليږلې شي |

د طاقت نه وتلې نشئ | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ | په تاسو دواړو (ډلو)

[1] الطبرى: ۴۰/۲۳،
[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الرحمن تعليقا قبل حديث : ۴۸۷۸.
[3] ابن جرير وحاكم : ۴۷۴/۲،

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمَا | شُوَاظٌ | مِّنْ نَّارٍ ۙ | وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ ۚ |
| په تاسو باندې \| | لمبه دوور نه \| | او لوګي \| | پس مقابله به نشئ کولې تاسو \| |
| د اور شغلې او لوګې راپريښودې شي \|.............نو تاسو به ئې بيرته کولې نشئ | | | |
| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝ | |
| پس کوم قدرت به \| درب ستاسو \| دروغ ګنړئ تاسو \| | | | |
| نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ \| | | | |

**قوله تعالى:- سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ۚ**

**جناتو او انسانانو ته خطاب:-** د فارغيدو دامعنى نه ده چه اوس هغه څه مشغوليت دې بلکه دا په طور د غصې فرمانى صرف ستاسو طرفته د پورا ~ جو کيدو زمانه راغلله. اوس به صحيح صحيح فيصلې کيږى. هغه به بل هيڅ څيز نه مشغولوى. به صرف ستاسو حساب به اخلى.دعربو دمحاورې مطابق دا کلام کړې شوې دې. لکه د غصې په وخت کښې يو کس بل ته وائى چه څه اوزګار شم نو تاسره به ګورم. ددې خو دا معنى نه ده چه هغه په هغه وخت کښې مشغول وى بلکه دا مطلب دې چه يو خاص وخت به تاسره ګورم او ستا په غفلت به تا رانيسم.[1] ﴿الثَّقَلٰنِ﴾نه مراد انسان او جن دى لکه يو حديث مبارک کښې دى چه هغه سوا د ثقلين نه هر څيز آورى [2] او بل حديث مبارک کښې دى چه سوا د انسانانو او جناتو نه [3].

او حديث صور کښې صفا دى چه ثقلين يعنى جن وانس،بيا تاسو به دخپل رب دکومو کومو نعمتونو نه انکار کوئى؟ اے جناتو او انسانانو! تاسو دالله جل شانه دحکم او دهغه د مقرر تقديرنه نشئ تښتيدلى بلکه هغه تاسو ټول راګيرکړى يئ،دهغه هر هر حکم تاسو باندې جارى ده چه چرته هم څئ نو د هغه ذات سلطنت دې. دا به حقيقت کښې واقع کيږى،ميدان حشر کښې چه مخلوقاتولره هر طرفنه فرښتو ګير کړى وى. څلورو وارو طرفونو ته ددوى اووه صفونه وى. هيڅ يو سړې به بغير د دليل نه اخوا ديخوا نه شى تلې. اودليل سوا دامر الهى نه او حکم نه بل نشته دې. انسان به په هغه ورځ وائى چه د تيښتې ځائې چرته دې؟ ليکن جواب ورته ملاوشى چه نن ورځ درب مخکښې د اودريدو ده.

او يو آيت مبارک کښې دى چه ﴿ والذين كسبوا السيات ﴾ يعنى بدئى کولووالو ته به ددوى د بدئى پشان سزا ورکولې شى. اوپه دوى به ذلت اورسوائى وى. اودالله جل شانه د عذاب نه به ورته هيڅوک پناه نشى ورکولې.ددوى مخونه د تيارې شپې د ټکړو پشان وى. دا د جهنم ډله ده. اوهميشه به جهنم کښې وى [4]﴿شُوَاظٌ﴾ معنى داوور شغلې چه هغې کښې لوګې هم وى او شين رنګې سوزونکې وى. بعضې وائى چه بې لوږى اووربانديې شغله داسې وى لکه چه داوبو يو لهر وى. ﴿نُحَاسٌ﴾ وائى لوګي ته [5]،دا لفظ د نون په زبر سره دې ليکن دلته قرائت دنون پيش سره هم دې،دنابغه شعر کښې دا لفظ هم په دې معنى کښې دې.

خو ابن عباس ﷛ فرمانى چه شواظ نه مراد هغه شغله ده چه هغې لوګې نه وى او دوى ددې په سند سره

---

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الرحمان تعليقا قبل حديث : ٤٨٧٨.
[2] صحيح بخارى كتاب الجنائز باب الميت يسمع خفق النعال : ١٣٣٨، ابوداود : ٤٧٥٢، مجمع الزوائد : ٥١/٣.
[3] احمد : ٤٥٣/٥، وسنده صحيح.
[4] الطبرى: ٤٥/٢٣.
[5] الطبرى: ٤٧/٢٣.

د امیه بن ابوصلت شعر هم لوستي دي. او دوی دنحاس معنی هم کړي ده، صرف لوږې چه به هغې کښې شغله نه وی او ددې شهادت هم یو شعر دنابغه نه ني لوستلي دي. مجاهد رحمه الله فرمانی چه نحاس نه مراد پیتل دی چه ویلي شوي وی اوددوی په سرونوباندې اړولي شوي وی [1]. بهر صورت مطلب دادې که تاسو د قیامت په ورځ میدان حشر نه تیښته غواړئ نو خما فرښتې اودجهنم داروغه گان به تاسو باندې اوور او اوور وی او لوږې به پریږدی او ستاسو په سرونو به ویلي شوې پیتل توې کړي او تاسو به واپس کړی. نه خوتاسودهغوئ مقابله کولې شئ او نه هغوئ لره دفع کولې شئ. او نه هغوئ نه انتقام اخیستئ شئ. تاسو به درب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.

فَإِذَا انْشَقَّتِ السَّمَاءُ
| پس کله چې | اوشلیږي | آسمان
|.........بیاهرکله چې اسمان اوشلیږي

فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٧﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٨﴾
او شي سور | پشان دځرمني | پس کوم یو قدرت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو |
او د سرې ځرمنې په شان تک سور شي | نو تاسوبه د خپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ

فَيَوْمَئِذٍ لَا يُسْأَلُ عَنْ ذَنْبِهِ إِنْسٌ وَلَا جَانٌّ ﴿٣٩﴾
پس په دغه ورځ به | تپوس نۀ کیږي | په باره دگناهونو دهغه کښې | دیو انسان نه | اونۀ دیو پیری نه
بیاپه دغه ورځ به دانسان یا د پیری نه دهغه د گناهونو په باره کښې تپوس نه کیږي (بلکه هرڅه مونږ پیژنو)

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٠﴾ يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ
پس کوم یو احسان به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | پیژندې به شی | مجرمان خلق |
نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | مجرمان خو بۀ د شکل نه پخپله پیژندې شی

بِسِيمَاهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ ﴿٤١﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ
په نښو دهغوئ سره | پس نیوې کیږی به | دویختو دتندی نه | او دخپو نه | پس کوم قدرت به
نود تندی د (ویختو) او د پښو نه به رانیولې شی |.........نو تاسوبه دخپل

رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٢﴾ هَذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا
درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | دا دوزخ دې | هغه | چې دروغ به گنړلو | دې لره
رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | دا هغه دوزخ دې |..........چې مجرمانو

الْمُجْرِمُونَ ﴿٤٣﴾ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ ﴿٤٤﴾
مجرمانو خلقو | هغوئ به گرځئ | په منځ ددوزخ کښې | او په منځ | دگرمو یشیدلو اوبو کښې |
به دروغ گنړلو | دوئ به ددغه اور او د گرمو ویشیدلو اوبو په مینځ کښې په گرځیدو (مجبوره) وی

[1] الطبری: ٤٨/٢٣.

| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ |
|---|---|---|
| پس كوم يو قدرت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو |
| نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ گنړئ | | |

قوله تعالىٰ:- فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ

هر كله چه آسمان اوشليږي :دآسمان شليدل نورو آيتونو كښې هم بيان شوي دي.ارشاددي چه ﴿وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ﴾ اوبل خائې كښې ارشاد دې چه﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيْلًا﴾ الخ. اوفرمان دې چه ﴿اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ﴾ الخ وغيره. لكه څنگه چه چاندى وغيره ويلې كيږى همدا حالت د آسمان به وى،رنگ بسې به رنگ بدلوى،ځكه د قيامت هيبت ددې شدت او دهشت دې. د مسند احمد يو حديث مبارك كښې دى چه خلق به دقيامت په ورځ پورته كړې شى. او آسمان به په دوى باندې نرې باران اوروى[1] ابن عباس رضي الله عنهما فرمانى چه دا به دسرې څرمنې په شان وى.او يو روايت كښې دى چه گلابى رنگ آس په شان به آسمان شى.ابـو صالح رحمه الله فرمانى چه اول بـه گلابـى رنـگ كـښې وى او بيـا بـه سـور شى،دگلابى رنگ آس په موسم بهار كښې زيړ په نظر راځى او په باران جړنې كښې بدل شى اوسور شى. څنگه چه گرمى زياتيږى نو ددې رنگ بدليږى. داشان آسمان به هم رنگ بدلوى او ويلې شوې تانبې په شان به شى لكه د روغن گلاب رنگ ،داسې رنگ كښې به آسمان وى. نن خو ددې رنگ شين خو په هغه ورځ به ددې رنگ سور وى،دزيتونو تيلو په شان. دجهنم اور به دې ويلې كړې او دتيلو په شان به ئې كړى. په هغه ورځ به د هيڅ يومجرم نه دهغه جرم تپوس نشى كولې. لكه چه يو آيت مبارك كښې دى چه ﴿هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُوْنَ﴾ داهغـه ورځ ده چـه خبرې بـه نـه كـوى. او نـه بـه دوى تـه اجازت وى،هغوئ به عذر كوى،او نورو آيتونو كښې ددوى عذر كول او فرمائيل اوحساب وغيره اخستل بيان شوى دى. فرمان دې چه ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ ستا درب قسم مونږ بـه تولو نـه سوال كوو او ددوى دټولو كارونو تپوس به كوو. نومطلب دادې چه په يوموقع باندې دا دى او بله موقع باندې هغه دى. تپوس اوشو،حساب كتاب اوشو او عذر ختم شو. اوس خوله باندې مهر اولگيدو. اواندامونو گواهى وركړه،نوبيا خو هډو دتپوس كولو ضرورت پاتې نشو او معذرت ختم كړې شو. او دا تطبيق همدې چه هيڅا نه به تپوس نشى كولې چه فلانى عمل دې ولې كړې دې؟ ځكه چه الله ﷻ ته ښه معلوم دى خوكه څه سوال وى نو هغه به داشان وى چه داسې دې ولې اوكړل؟

دريم قول دا دې چه فرښتې بـه تپـوس نـه كـوى،هغوئ بـه دده ځېرې كتلـو سـره پـوهـه شـى او دجهنم زنځيرونو كښې به ئې تړلى پرمخ به ئې جهنم ته داخل كړى. لكه دې نه پس فرمانى چه دا گناهگار به د خپلو ځېرونو او خپلو خاص علامتونو پيژندې شى. مخونه به ئې تور وى. سترگې به ئې ورغلې وى. همدا شان به دمومنانو ځېرې هم جدا ممتازې وى. ددوى د اودس ځايونو نه بـه د سپوږمۍ پـه شـان پرقيږى. گناهگار به د تندو او پښو نه نيولې شى او جهنم ته به داخلولې شى. لكه څنگه چه غټ لرگې اونيسى او تنور ته غورزولې شى داشان دشا د طرفنه به زنځير ددوى څټونو تـه اچولـې شـى او تړلې به شى،ملا به ورته ماته كړې شى. او پښو اوتندې به ورته يو كړې،او تړلې به شى.

**پل صراط او دهغې كيفيت** :- مسند ابن ابى حاتم كښې دى چه دبنو كنده يو سړې عائشه صديقه رضي الله عنها ته ورغلو او پردې نه روستو كيناستواو تپوس ئې ترې اوكړو چه آيا تاسو حضور نبى كريم ﷺ نه دا هم آوريدلى دى چه په يو وخت كښې به حضور نبى كريم ﷺ ته هم د شفاعت كولو اختيار نـه وى؟ عائشه

---

[1] احمد : ۲۶۷/۳،

صدیقه رضی الله عنها جواب ورکړو چه اوږ، یو ځل مونږ په یو کپړا کښې وو، نو ما حضور نبی کریم ﷺ نه هم دا سوال اوکړو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوږ کله چه پل صراط کیخودې شی نو په هغه وخت کښې به ماته د چا د سفارش کولو اختیار نه وی. تردې ماته معلوم شی چه ما چرته بوزی؟ او کله چه مخونه زیړیږی او توریږی تر دې چه ماته معلوم شی چه ماسره به څه کیږی؟ یائې اوفرمائیل چه تر دې چه ماته معلوم شی چه ماباندې څه وحی لیږلې کیږی؟ اوکله چه جهنم باندې پل صراط کیخودې شی او د ګرم او تیره کړې شی نو ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ! چه ددې د تیزئی او ګرمئی څه حد دې؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د توري د مخ پشان به تیره وی او اور د سکروټې په شان به ګرم وی. مومن خو به بې ضرره تیر شی او کافر به په کښې انخلی. هرکله چه ددې مینځ ته اورسی نو دده قدمونه به اوخوزیږی، دې به خپل لاسونه خپلو پښو ته اوغزوی کله چه څوك پخپلو پښو روان وی او دده پښه کښې ازغې لاړ شی او دې ټیټ شی، نو داشان به دې ټیټ شی. دې خوا به دجهنم داروغه دده تندې او دده قدمونه زنځیرونو سره اوتړی اودې به د جهنم اور ته غوزار کړی اوپه هغې به دې پنځوس کاله پورې روان وی. ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ جهنمی به څومره درونـد وی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دلسو څربو اوښو په شان. بیا حضور نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو.

دا حدیث مبارك غریب دې. اوددې دبعضو فقرو د حضور نبی کریم ﷺ د کلام نه منکر دی. او ددې اسنادو کښې یو سړې دې چه دهغه نوم هم لاندې راویانو کښې نشته دې. داسې دلیلونه د صحت قابل نه وی، والله أعلم.

**قوله تعالى:- هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِىۡ يُكَذِّبُ بِهَا الۡمُجۡرِمُوۡنَ﴿۴۳﴾**

**دجهنم دمنکرو انجام :-** دې ګناهګارو ته اوونیلې شی چه تاسو د کوم جهنم نه انکار کولو هغه په خپلو سترګو اوګورئی، دا به دوی ته درسوا کولو او ذلیل کولو اوشرمنده کولو او د نفرت په طور ونیلې کیږی. او بیا ددوی به د احالت وی چه کله به په دوی د اوور عذاب وی اوکله به پرې د اوبو عذاب وی او کله به په جحیم وی او کله به ورته حمیم د څکلو دپاره ورکولې شی اودا(حمیم) د ویلې شوې تانبې په شان صرف اووردې چه کولمې پریکوی. اویو ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿اِذِ الۡاَغۡلٰلُ فِىۡۤ اَعۡنَاقِهِمۡ وَالسَّلٰسِلُ ؕ يُسۡحَبُوۡنَ﴿۷۱﴾﴾ هرکله چه ددوی څټونو کښې طوق وی او پښو کښې نې بیړئی وی نو دوی به حمیم نه جحیم ته راښکلې شی او بار بار به سیزلې شی. دا ګرمې اوبه به ډیرې زیاتې ګرمې وی. نو داسې د نیل پکار دی چه هغه هم دجهنم اوور دې چه د اوبو صورت کښې دې. قتاده رحمه الله فرمائی چه دزمکې او آسمان دپیدا کیدو دوخت نه تر اوسه پورې هغه ګرمولې شی ([1]).

محمد بن کعب رحمه الله فرمائی چه دبدکاره سړې دتندې ویښته به اونیولې شی اوورته به دې ګرمو اوبو کښې غوټه ورکړې شی او دده نه به ټوله غوښه ویلې شی او هډوکی به نې پاتې شی. بس صرف دوا سترګې او ډهانچه به نې پاتې شی. هم پدې وجه فرمائی چه ﴿فِى الۡحَمِيۡمِ ۙ ثُمَّ فِى النَّارِ يُسۡجَرُوۡنَ﴿۷۲﴾﴾ ددې معنی دحاضر هم کړې شوې ده. او یو بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿تُسۡقٰى مِنۡ عَيۡنٍ اٰنِيَةٍ﴿۵﴾﴾ دسختو ګرمو اوبو والا نهر نه به دوی ته اوبه ورکړې شی او دوی به هغه نشی څکلې. څکه چه هغه به ډیرې ګرمې او داور به شان به وی. قرآن پاك کښې یو بل ځائې ارشاد دې چه ﴿غَيۡرَ نٰظِرِيۡنَ اِنٰٮهُ ۙ﴾ هلته مراد تیاری او پخیدل دی. چونکه دنیکانو جزا او دبدکارو سزا هم د هغه فضل اورحمت، عدل او لطف دې. خپل دا عذابونه مخکښې بیانول دې دپاره دی چه دشرك او ګناهونو نه مخ واړوی، دا هم دهغه نعمت دې. په دې نې اوفرمائیل چه انې جن وانس تاسویه دخپل رب دکوم کوم نعمت نه انکار کوئی.

[1] الطبری: ۲۳/۵۴.

وَلِمَنْ خَافَ
او دپاره دهغه چا | چي اويريدو |
اوڅوک چي دخپل رب په وړاندي ..................|

مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ۝ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا
دودریدو نه | رب خپل ته | دوه باغونه دي | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو |
د پيش کيدو نه ويريږي | نو هغوئ دپاره دوه باغونه دي | نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت

تُكَذِّبٰنِ ۝ ذَوَاتَآ اَفْنَانٍ ۝ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا
دروغ ګڼرئ تاسو | (باغونه) خاوندان | دشنو ښانګو | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو |
دروغ ګڼرئ | په دي دواړو باغونو کښي به ډير ښاخونه وي | نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت

تُكَذِّبٰنِ ۝ فِیْهِمَا عَیْنٰنِ تَجْرِیٰنِ ۝ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ
دروغ ګڼرئ تاسو | په هغي دواړو کښي به وي | دوه چيني | رواني | پس کوم يو نعمت به
دروغ ګڼرئ | په دي دواړو باغونو کښي دوه چيني بهيږي | ..................نو تاسوبه دخپل

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝ فِیْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجٰنِ ۝
درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو | په هغي دواړو کښي به وي | دهري ميوني نه | دوه قسمه
رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼرئ | په هغي کښي به دهري يوي ميوي دوه دوه قسمونه وي

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝
پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو|
نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼرئ |

**قوله تعالى:- وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ۝**

**دالله تعالى ويره درب انعام دي** :-ابن شوذب رحمه الله او عطاء خراساني رحمه الله فرمائي چه دا آيت ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ ﴾ دابوبکرصديق رضي الله عنه باره کښي نازل شوي دي. عطيه بن قيس رحمه الله فرمائي چه دا آيت مبارك د هغه کس باره کښي نازل شوي دي چه هغه ونيلي وو چه ما اوور کښي اوسيزئ چه څه ا لله ﷻ ته په تلاش کولو ملاؤ نشم، ددي کلمي د وينا نه پس يو شپه ني توبه ويستله،الله ﷻ قبوله کړه او هغه ته جنت ته دا خل کړو.خو صحيح خبره داده چه دا آيت مبارك عام دي. حضر ت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا قول نقل دي. مطلب دا چه کوم سړي د قيامت په ورځ دخپل رب مخکښي د اودريدو ويره زړه کښي لري اوخپل ځان د نفس دخواهشونو نه بچ کوي اوسرکشي نه کوي بلکه دآخرت فکر زيات کوي اودا بهتراو پائيداره ګڼړي اوفرض پوراکوي او محرماتو نه ځان بچ ساتي نودقيامت په ورځ به يو لا څه کوي ده ته به دوه جنتونه ملاويږي. صحيح بخاري کښي دي ،حضور نبی کريم ﷺ فرمائي چه دوه جنتونه به د چاندئي اوددي ټول سامان به هم د چاندئي وي. اودوه جنتونه به د سرو زرو وي او دهغي لوښي اوهغي کښي چه څه دي هغه ټول به دسرو زرو وي. ددي جنتيانو او دالله ﷻ ددیدار مينځ کښي به هيڅ څيز حائل نه وي سوا دهغه کبريائی دپردي نه چه کومه دالله ﷻ په څهره باندي ده. دوی به جنت عدن کښي وي. دا

حدیث مبارك دصحاح نورو کتابونو کښې هم موجود دې سوا د ابوداود نه.(¹) د حدیث مبارك راوي وائي چه حماد رحمه الله فرمائي چه خما خیال کښې خو داحدیث مبارك مرفوع دې. تفسیر کښې د الله ﷻ دفرمان ﴿ وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ﴾،د سرو زرو دوه جنتونه د مقربینو دپاره او چاندئی دوه جنتونه د اصحاب یمین دپاره (²). ابودرداء رضي الله عنه فرمائي چه حضور نبی کریم ﷺ یو خل ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو نو ما اووئیل ا گر چه زنا ئې کړې وی او غلا ئې کړې وی؟ حضور نبی کریم ﷺ بیا هم دا آیت مبارك تلاوت کړو. ما بیا دا سوال اوکړو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اگر چه زنا ئې کړې وی او اگر چه غلا ئې کړې وی،نسائی (³).

**قوله تعالی:- ذَوَاتَا أَفْنَانٍ**

**دجنت نعمتونه** بعضو سندونو نه دا روایت موقوف مروی دې. او ابودرداء رضي الله عنه نه داهم مروی دی چه په کوم زړه کښې دالله ﷻ مخکښې د اودریدوویره وی نو ممکن نه دی چه ده نه به زنا شوې وی او غلا به ترې شوې وی.دا آیت مبارك عام دې او انسانان اوجنات ټول دې کښې شامل دی. اوددې خبرې بهترین دلیل دې چه جناتو چه کوم ایمان راوړې او تقوی اختیار کړی هغوئ به هم جنت ته داخلیږی. په دې وجه جن وانس ته دخطاب کولو نه پس فرمائي چه اوس به تاسو د خپل رب دکوم کوم نعمت تکذیب کوئی؟ بیا ددې دواړو جنتونو اوصاف بیانوی چه دا ډیر زیات سرسبز او شاداب دی ،بهترین او د اعلی درجې او ښه تیار دی او دې کښې هر قسمه میوې موجودې دی. تاسوته نه دی پکار چه دخپل رب د نعمتونو نه انکار اوکړئی. ﴿أَفْنَانٍ﴾ ښاخونو والا ته وائي.داد ډیرکثرت په وجه خپلو کښې یو ځائې شوی دی.دا سیوری والا وی.او ددې سیورئی به په دیوالونویاندې هم کیږی. عکرمه رحمه الله هم دا معنی بیان کړې ده اود عربی شعر نې په دې باندې دلیل جوړ کړې دې. دا ښاخونه به نیغ او خواره شوی وی. اورنګ په رنګ به وی. دا مطلب هم بیان شوې دې چه په دې کښې به رنګ په رنګ میوې وی. فراخې او ګڼر سیورو والا به وی.دا ټول اقوال صحیح دی اودې کښې هیڅ منافاه نه شته دې. دا ټول اوصاف به په دې ښاخونو کښې وی. آسماء رضي الله عنها نه مروی دی چه حضور نبی کریم ﷺ د سدرة المنتهی ذکر اوکړو او وې فرمائیل چه ددې د ښاخونو سیورئی دومره اوږد دې چه ددې لاندې به سورلئ سور سل کاله منزل کولې شی یا ئې اوفرمائیل چه سل سواره ددې سیوری لاندې تلئ شی. په دې کښې به د سرو زرو مولخان وی. ددې میوې به غټې غټې دمنګو او ډیر ګول به وی. (⁴)

**دجنت اوبه** : بیا په دې کښې نهرونه بهیږی چه ددې ونې او ښاخونونه سیراب کړی اودې نه زیاتې میوې پیداشی. اوس خو تاسو ته پکار دی چه دخپل رب د نعمتونو قدر اوکړئی. د یو نوم تسنیم او د بل نوم سلسبیل دې. دواړه نهرونه پورا روان دی. یو دصفا اوبواو بل د لذت والا دشرابو چه بې نشې به وی. په دې کښې دهرقسمه میووٴ جوړې هم موجودې دی. او میوې هم هغه چه هغه تاسو دصورت لحاظ سره پیژنئی خو دهغې لذت درته نه دې معلوم. ځکه چه د هغه ځائې نعمتونه نه یو سترګې لیدلې دی او نه یو غوږ دهغې متعلق آوریدلی دی او نه دهغې خیال یو زړه کښې راتلئ شی. تاسو ته پکار دی چه دخپل ناشکرئی نه منع شئ. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه په دنیا کښې څومره خوږې ترخې میوې دی هغه ټولې جنت کښې موجودې دی تر دې چه حنظل یعنی اندرائن یعنی ترخه هندوانه هم. خو

(¹)صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الرحمان باب قوله(( ومن دونهما جنتان)) : ٤٨٧٨، صحیح مسلم: ١٨٠، ترمذی : ٢٥٢٨، ابن ماجه: ١٨٦. حاکم: ١/١٥٧.

(²) الطبری: ٢٣/٥٧.

(³) ابن جریر واحمد : ٢/٣٥٧، وسنده صحیح .

(⁴) ترمذی کتاب صفة الجنت باب ماجاء فی صفة ثمار اهل الجنة: ٢٥٤١. وسنده حسن.

ددنيا ددې خيزونو نومونه او دجنت د خيزونو نومونه خو يو شان دی ولې لذت ئې بالکل بل شان دې.دلته ئې صرف نوم دې اصليت ئې جنت کښې دې.ددې فضيلت فرق به هلته دتلو نه پس معلوم شي

عَلٰى فُرُشٍۭ مُتَّكِـِٕيْنَ

|تکيه وهونکي به وي|په داسې فرشونو باندې

|..........هغوئ به داسې فرشونو باندې

بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ؕ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ۚ

|چې استرونه دهغې به | دغټو ريښمونه وی | او ميوه | دباغونو به | ښکته زنګيدونکې وی

ددې وهونکې ناست وی | چې د هغې استرونه به د غټو ريښمونه جوړوی |اود دواړو باغونو ميوې به نزدې وی

فَبِاَىِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۞ فِيْهِنَّ قٰصِرٰتُ

پس کوم يو نعم ت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو | په دغه نعمتونو کښې به ‌الندکتونکې حورې وی

نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼړئ |.............. په هغې کښې به سترګې ښکته

الطَّرْفِ ۙ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ۚ

چې ګوتې به نه وی وروړې هغوئ له | يو انسان | مخکښې ددې جنتيانونه | او نه يو پيرې

ساتونونکې ښځې وی |چې ددې جنتيانونه وړاندې چاانسان ياپيرې به لاس هم نه وی وراوړې

فَبِاَىِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۚ كَاَنَّهُنَّ الْيَاقُوْتُ

پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو |داسې ښائيسته لکه چې هغوئ | يا قوت

نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼرئ|هغه ښځې به داسې (سرې سپينې) وی| لکه ياقوت

وَالْمَرْجَانُ ۚ فَبِاَىِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۞ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ

او مرجان وی |  پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو  | نه ده بدله دنيکئ

او مرجان| نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼرئ |..............او د احسان بدله د

اِلَّا الْاِحْسَانُ ۚ فَبِاَىِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۞

مګر نيکی ده |  پس کوم يو صفت به |درب ستاسو |دروغ ګڼرئ تاسو |

احسان نه سوابله څه ده|نو تاسوبه دخپل ربّ کوم کوم نعمت دروغ ګڼرئ |

**قوله تعالیٰ:- مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى فُرُشٍۭ بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ؕ**

**دجنتيانو بسترې او تختونه** :-جنتيان به بې فکرئ سره تکيه لګولې وی او ناست به وی،اوکه ملاست،او آرام سره ناست وی اوتکيه ئې لګولې وی،ددوی استوګنې به دومره غټې وی چه دې کښې دننه والا استر به هم دبيزا او خالص زرين ريښمو وی،بيا به ددې پورتنی استر اوابره څنګه وی،په دې تاسو سوچ اوکړئ..... مالك بن دينار رحمه الله او سفيان ثوری رحمه الله فرمائی چه داستر دا حال دې نو ابرا به ئې نورانې وی. او دا بالکل اظهار رحمت او نور وی. بيا په دې بهترې ګلکارئ شوې دی. او ددې معلومات الله ﷻ نه سوا بل چاته نشته دې. ددې جنتونو ميوې به دې جنتيانوته بالکل نزدې وی،چه کله غواړی او په څه حال کښې غواړی نوهغه خانې نه به اخلی. که ملاست وی دناستې اوکه ناست وی

نود ولاړې ضرورت به نه وي پخپله به ښاخ دوی ته نزدې شي،لکه فرمائي چه ﴿ قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ ﴾ او فرمائي چه ﴿وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا﴾ الخ يعني بې حده نزدې ميوې چه دې اخستونکي ته به د تکليف کولو ښا د تکليف ضرورت نه وي پخپله به ښاخونه دوی ته راټيټ شي اودوی ته به ميوې ورکوي. نو تاسو به دالله ﷻ دکوم کوم نعمت نه انکار کوئي.

**قوله تعالى:- فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ الطَّرْفِ**

**د حورو د خاندانو سره د محبت حالت:-** چونکه د فرشونوبيان شوې وو او دې سره فرمائيلې شوي وو چه دې فرشونوباندې به هغوئ سره بيبياني وی چه عفيفه پاکدامني او شرم والا او نظرونه به ئې لاندې وی چه د خپلو خاوندانونه سوابه په چا نظر نه لګوي. او ددوی خاوندان هم به دوی ته مائل وی. دوی هم د جنت يو څيز لره هم دې خاوندانونه بهتر نه مومي. دا هم وارد شوی دی چه دا حورې به خپلو خاوندانو ته اوواني چه په الله ﷻ قسم چه په ټول جنت کښې ستاسو نه بهتر مالره هيڅ څيز نه شته دې. الله ﷻ ته ښه معلوم دی چه څما زړه کښې دجنت د څه څيز خواهش او محبت دومره نه دې چه څومره ستا دې. دالله شکر دې چه هغه ذات ﷻ ته څماحصه کښې راوستې اوماته ئې ستا د خدمت کولو شرف اوبخښلو.دا حورې به خواني او داسې به وی چه چابه ورته لاس نه وی لګولې.ددې جنتيانو نه به مخکښې ددوی پاك بدنونه هيڅ يوانس و جن نه وی ليدلی. دا آيت مبارك هم دجناتو جنت ته دتلو دليل دې.

ضمره بن حبيب رحمه الله نه سوال کيږی چه مومن جن ته به هم جنت ملاويږی؟ نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو،اوددوی نکاح هغه جنتی ښځو سره کيږی چه کومې جني دی. لکه دانسانانو انسانانو ښځو سره،بيا ئې همدا آيت مبارك تلاوت کړو(١).

**قوله تعالى:- كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ**

**دحورو صفت:** بيا دهغه حورو تعريف بيانيږی. چې هغوئ خپل پاکوالي او حسن کښې داسې دی لکه ياقوت و مرجان. ياقوتو سره ئې پاکوالي کښې تشبيه ورکړه. او مرجان سره بياض کښې.نودلته د مرجان نه مراد لؤلؤ دې (٢).نبی کريم ﷺ فرمائي چې دجنتيانو ښځو کښې هريو داسې ده چې د هغوئ د پنډو سپين والئ د اويا اويا جوړو اغوستلو نه پس هم ښکاری.تر دې دننه نلې (مغز) هم. بيا نبی کريم ﷺ دا آيت مبارک تلاوت کړو چه ﴿كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ﴾ او وې فرمائيل چې اوګورئي دايو کاڼړی دې خو الله ﷻ خپل قدرت سره دا داسې صفا کړې دې که دې کښې دننه تار ورکړيشی نو هغه به هم ښکاری (ابن ابی حاتم) دا روايت ترمذی شريف کښې هم دې چه موقوفا دعبدالله بن مسعود نه مروی دې او امام ترمذی رحمه الله دې ته زيات صحيح وائي(٣). مسند احمد کښې دی چې نبی کريم ﷺ فرمائي چه د جنت والو دوه بيبياني به داسې وی چه هغوئ به اويا اويا جوړه جامې اغوستې وی نو بيا به هم په هغې کښې دهغوئ پنډۍ ښکاری. بلکه دهغوئ هډوکی کښې دننه چه کوم نلې (مغز) وی هغه به هم ښکاری(٤).

صحيح مسلم کښې دی چه يا دفخر په طور يا د مذاکرې په طور دا بحث شروع شو چه جنت کښې به سړی زيات وی اوکه ښځې؟ ابوهرير رضی الله عنه فرمائي چه ابوالقاسم دا نه دې فرمائيلی چه کوم جماعت جنت ته اول داخليږی دهغوئ صورتونه به د سپوږمۍ په شان وی. دوی پسې چه کوم جماعت داخليږی هغوئ لکه

(١) الطبری: ٦٥/٢٣.
(٢) الطبری: ٦٦/٢٣.
(٣) ترمذی کتاب صفة الجنت باب ماجاء فی صفة نساء اهل الجنة:٢٥٣٣.
(٤) احمد: ٣٤٥/٢،

د اسمان د ښکلو ستورو پرقیرې. دوی کښې به دهر سړی دوه دوه ښځې وی. اودا به داسې وی چې ددوی پنډو کښې دننه غوښه اوهډوکی کښې به نلی (مغز) هم ښکاری. او جنت کښې به هيڅ يو کس هم بغير ښځې نه پاتې کيږی (۱). ددې حديث پاک اصل بخاری شريف کښې هم دې (۲).
مسنداحمد کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ فرمائی چه دالله ﷻ لار کښې يو ماښام او يو سحر ددنيا او دنيا کښې څه دی هغه ټولو نه بهتر دی. جنت کښې چه تاته کوم ځائې ملاوېږی په هغې کښې ديو کمان او ديو کوړې برابر ځائې دټولې دنيا او ددې دټولو څيزونو نه بهتر دی. که د جنت دښځو نه يو ښځه دنيا ته اوگوری نو زمکه آسمان به پړق وهی او ټول عالم به خوشبوئی شی. دهغوی وړوکې شان دوه پټی هم ددنيا اودې کښې چه څه دی هغې نه بهتر دی. دا حديث مبارك صحيح بخاری کښې دی (۳). بيا ارشاد دې چه دنيا کښې چا نيکی اوکړو نو ددې بدله آخرت کښې ښه سلوك او احسان نه سوا بل څه نه ده. لکه ارشاد دې چه ﴿ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ﴾ نيکی: کونکو دپاره نيکی ده او زيات يعنی جنت او دالله ﷻ ديدار دې. حضور نبی کريم ﷺ چه کله دا آيت مبارك تلاوت کړو نو خپلو صحابه کرامو ﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسو ته معلوم دی چه ستاسو رب څه اوفرمائيل؟ نوهغوئ اوفرمائيل چه الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ ته ښه معلوم دی. نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ فرمائی چه څه په چا په دنيا کښې دخپل توحيد انعام اوکړم نو دهغه بدله آخرت کښې جنت دی (۴) خکه چه دا هم يو عظيم الشان نعمت دې. اودراصل د يوعمل بدله کښې نه دې بلکه صرف دهغه احسان او فضل دی. په دې وجه ئې دې نه پس اوفرمائيل چه تاسو به خما د کوم کوم نعمت نه لاپرواهی کوئی؟ درب تعالی ﷻ دمقام نه دويريدو والا دبشارت متعلق ترمذی شريف کښې دا حديث مبارك دی هم خيال کښې وی چه حضور نبی کريم ﷺ فرمائی چه څوك ويريږی نو هغه به د شپې وخت کښې کوچ کوی اوچه څوك د شپې تياری کښې روان شو نو هغه منزل مقصود ته اورسيدو. خبردار شئ: دالله ﷻ سودا ډيره گرانه ده. ياد ساتئ: هغه سودا جنت دی.(۵) امام ترمذی رحمه الله دې حديث مبارك ته غريب وائی. ابودرداء رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ نه ما په منبر باندې وعظ و نصيحت کښې واوريدل چه حضور نبی کريم ﷺ د آيت مبارك ﴿ ولمن خاف ﴾ اولوستو نو ماووئيل چه اگر چه زنا ئې کړې وی اگر چه غلا ئې کړې وی، باقی حديث مبارك مخکښې تير شوې دی.

وَمِنْ دُوْنِهِمَا

او علاوه ددغه دوؤ باغونو نه

او ددې دواړو نه علاوه

جَنَّتٰنِ ۚ | فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۙ | مُدْهَآمَّتٰنِ ۚ

به دوه باغونه نور وی | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گڼړئ تاسو | شنه شنه گڼ باغونه

دوه باغونه نور دی | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گڼړئ | دواړه باغونه تک شنه دی

(۱) صحيح مسلم کتاب الجنة باب اول زمرة تدخل الجنة على صورة القمر ليلة البدر وصفاتهم وازواجهم. ۲۸۳٤.
(۲) صحيح بخاری کتاب الحور العين وصفتهن: ۲۷۹٦.
(۳) احمد: ۱٤۱/۲. صحيح بخاری کتاب الجهاد باب الحور العين وصفتهن: : ۲۷۹٦.
(٤) التفسير بغوی : ۲۵۱/٤،
(۵) الترمذی کتاب صفة القيامة باب فی ثواب الاطعام والسقی والکسو......: ۲٤۵۰،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ | فِيهِمَا | عَيْنَانِ |

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | په هغې دواړو کښې به | دوه چينې وي
نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ |..............په دې باغونو کښې به د اوبو دوه

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَضَّاخَتَانِ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ |

جوش وهونکې (دفوارې پشان) | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو
چينې راخوټکيږي |..............نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيهِمَا | فَاكِهَةٌ | وَنَخْلٌ | وَرُمَّانٌ | فَبِأَيِّ آلَاءِ |

په هغې دواړو کښې به | ميوې وي | او کجورې به وي | او انار به وي | پس کوم يو نعمت به
په دې (باغونو) کښې به ميوې او کهجورې او انار وي |..............نو تاسو به دخپل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ | فِيهِنَّ | خَيْرَاتٌ | حِسَانٌ |

درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | په دې نعمتونو کښې به | نيک خويه | ښائيسته ښځې وي |
رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ | په دې باغونو کښې به نيک خويه ښکلې ښځې وي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ | حُورٌ | مَقْصُورَاتٌ |

پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | حورې به وي | پټې ساتلې شوې |
نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ |..............دا حورې به په خيمو کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي الْخِيَامِ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ | لَمْ يَطْمِثْهُنَّ |

په خيمو کښې | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | ګوتې به نۀ وي وروړې هغوئ له
محفوظې وي | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ | ددوئ نه وړاندې به ورته چا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنْسٌ | قَبْلَهُمْ | وَلَا جَانٌّ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا |

يو انسان | مخکښې ددې جنتيانو نه | او نۀ يو پيرى | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو
انسان يا پيروى لاس نه وي وراوړې |..............نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت

| | | | |
|---|---|---|---|
| تُكَذِّبَانِ | مُتَّكِئِينَ | عَلَىٰ رَفْرَفٍ | خُضْرٍ |

دروغ ګنړئ تاسو | ددې وهونکې به ناست وي | په قالينونو باندې | چې شين رنګې به وي
دروغ ګنړئ |..............دوئ بۀ شنو شنو قيمتي قالينونو

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَعَبْقَرِيٍّ | حِسَانٍ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبَانِ |

صفا سوتره به وي | او ښائيسته به وي | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو
او په ښائسته صوفو ددې وهلي وي | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګنړئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَبَارَكَ | اسْمُ | رَبِّكَ | ذِي الْجَلَالِ | وَالْإِكْرَامِ |

ډير برکتناک دې | نوم | درب ستا | چې خاوند دلويئ دې | او دعزت ورکولو دې |
ستاد رب نوم ډير برکتي دې | چې د لوئي شان او عزت خاوند دې

**قوله تعالى:- مُدْهَآمَّتٰنِ**

**جنت شين دي:**-دا دواړه جنتونه چه دهغې ذکر پدې آيتونو کښې دې دهغه جنتونونه کم درجې والا دی چه دهغې ذکر مخکښې تير شوې دې. او هغه حديث مبارك هم بيان شو چه هغې کښې دی چه دوه جنتونه به دسرو اودوه دچاندئی وی (۱). دا اول خو مقربينو دپاره خاص دې او دا بل اصحاب يمين دپاره. غرض دا درجه او فضيلت دا دواړه ددې دووْ نه کم دی. اوددې دلائل ډير زيات دی. يو دا چه دهغې ذکر مخکښې بيان شوې دې. ا و دا تقديم بيان هم دليل دې دهغې د فضيلت. بيا دلته ﴿ وَمِنْ دُونِهِمَا جَنَّتٰنِ﴾ فرمائيل صفا ظاهروی چه ددې نه کمې مرتبې والا دی. هلته ﴿مُدْهَآمَّتٰنِ﴾ ئې ونيلی وو يعنی په کثرت سره مختلفې مزې او ميوو والا ښاخونو والا. او دلته فرمائی چه ﴿ ذَوَاتَآ أَفْنَانٍ﴾ يعنی د اوبو د پورا تر کيدو نه پورا تور. ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه شين. محمد بن کعب رحمه الله فرمائی چه دشينکی نه ډك. قتاده رحمه الله فرمائی چه دومره ميوې پخې شوې دی تيارې دی چه هغې سره ټول جنت شين معلوميږی. غرض دا چه هغه خائې د ښاخونو خور والئ بيان شوې دې دلته د ونو کثرت بيان شوې دې.نوظاهردی چه هغې کښې او دې کښې ډير فرق دې. ددې دنهرونو باره کښې لفظ﴿تَجْرِيَانِ﴾ دې اودلته لفظ ﴿فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ﴾ دې يعنی راخوټکيدونکې. اودا ظاهر دی چه نضخ نه جاری يعنی راخوټکيدونکی ډير زيات بهتر وی.

**قوله تعالى:- فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ**

**دجنت ميوې** :-ضحاك رحمه الله فرمائی يعنی روانې دی اوبه نه اودريږی (۲). او هلته ئې فرمائيلی وو چه هر قسمه ميوې دی چه جوړه دی. او دلته فرمائی چه دې کښې ميوې او کهجورې دی اوانار دی نو ظاهر دی چه داول الفاظ د عموميت دپاره دی او هغه دقسم او کميت لحاظ سره هم ددې نه افضل دی. ځکه چه دلته لفظ فاکه نکره دې خو سياق کښې اثبات دې. په دې وجه عام به نه وی. په دې وجه ئې د تفسير په طور روستو کښې ئې نخل او رومان اوونيل. لکه عطف خاص عام باندې وی. د امام بخاری رحمه الله وغيره تحقيق هم دا دې (۳)کهجورې انار ئې په دې وجه ذکر کړل چه هغه نورو ميووْ نه اشرف دی.

**د يهودو سوال اود هغې جواب:**- مسندعبد بن حميد کښې دی چه يهود راغلل او حضور نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه آيا جنت کښې ميوې شته دې؟ نو حضور نبی کريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو او ورته اوونيل چه آو. بيا ئې تپوس اوکړو چه آيا جنتيان به د دنيا په شان هغه خائې کښې هم خوراك کوی؟ نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو بلکه ډير زيات ډير زيات. بيا هغوئ تپوس اوکړو چه بيا به هلته فضله هم وی؟ نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه نه نه بلکه خوله به راشی اوهر څه به هضم شی.(۴)دابن ابی حاتم يو مرفوع حديث مبارك کښې دی چه د جنتی کهجورې د ونې د ريش نه به دجنتيانولباس جوړيږی. دا به سور رنګ کښې وی. ددې تنې به شنې او زمرد وی. ددې ميوې به دشهدو نه زياتې خوږې وی.او پيروی نه به زيات نرم وی.دې کښې به ګټکئ بالکل نه وی(۵) يو بل حديث مبارك کښې دی چه ما د جنت انار اوليدلو نو دومره غټ وو لکه اوښ د بوج سره چه وی د خيرات معنی په کثرت او ډير حسين ،ډير نيك او اخلاق او بهتر خلق. يو مرفوع حديث مبارك کښې

---

۱) ددې تخريج آيت نمبر ٤٦ کښې تير شوې دې .

۲)الطبری : ۷۵/۲۳.

۳) صحيح بخاری کتاب التفسير : سورة الرحمان قبل حديث : ٤٨٧٨.

۴) مسند عبد بن حميد : ۳۵،

۵)حاكم: ٤٧٥/٢،

دا معنی هم مروی ده ([1]). يو بل حديث مبارك كښې دی چه حور عين چه كومې سندرې وائی په هغې كښې به دا هم وی چه مونږ ښه اخلاقو والا او ښكلې يو او نيكو خاندانو دپاره پيدا شوې يو. دا پورا حديث مبارك به د سورة واقعه تفسير كښې راځي. انشاء الله. دا لفظ تشديد سره هم لوستلې شوې دی. بيا سوال كيږی چه اوس تاسو د خپل رب دكوم كوم نعمت تكذيب كوئی. حورې دی چه په خيمو كښې اوسی، دلته هم هغه فرق اوګورئی چه هلته ئې فرمائيلی ووچه هغه حورې به خپل نظرونه لاندې ساتی او د لته ئې اوفرمائيل چه دهغوئ نظرونه لاندې كړې شوی دی. نو په خپله يو كار كول او په بل باندې يو كار كولو كښې څومره فرق دې. نوپرده دواړو صورتونو كښې حاصل ده. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی چه هر مسلمان دپاره خيره ده يعنی نيك اوبهترين نورانی حوره او هرې حورې دپاره خيمه ده او هرې خيمې دپاره څلور دروازې دی چه په هغې كښې هره ورځ تحفې او كرامت اوانعامات وركولې كيږی. خو هغه ځائې كښې څه فسادشته دې او نه سختی شته دې او نه ګندګی شته دې. اونه بدبو شته دې. د حورو صحبت دې چه هغوئ لكه د سپينو پړقيدونكو موتيانو په شان دی. صحيح بخاری كښې دی چه حضور نبی كريم ﷺ فرمائی چه جنت كښې يو خيمه ده د درمجوف چه دهغې پلنوالئ شپيته ميله دې او دهرهر ګوټ كښې دجنتی بيبيانې دی چه دبل ګوټ والوته په نظر نه راځی. مومن دې تپولو ته ورځی. ([2]) بل روايت كښې ددې پلنوالئ ديرش ميله ذكر دې ([3]). دا حديث مبارك صحيح مسلم شريف كښې هم دې ([4]). دابودرداء رضي الله عنه فرمائی چه خيمه يو د لؤلؤ ده چه په هغې كښې اويا دروازې دموتيانوی دی. ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه جنت كښې يو خيمه ده چه ديو موتی نه جوړه شوې ده، دا به څلور فرسخه پلنه، او ددې به څلور زره دروازې وی او ددې چوكاټونه به تپول د سرو زرو وی. يو مرفوع حديث مبارك كښې دی چه د ادنی درجې جنتی به اتيا زره خادمان وی او دده به دوه اويا ښځې وی او دده محل به دلؤلؤ اوزبرجدو وی چه د جابيه نه صنعا پورې رسی ([5]). بيا فرمائی چه ددې به مثله حسينو جسمونه داسې دی چه چا ورته لاس نه دې لګولې. او په دوی چرته جن او انس نه دې تير شوې. مخكښې هم داسې آيت تفسير سره تير شوې دې. خو دمخكښې جنتيانو اوصافو كښې دومره جمله زياته وه چه هغوئ د ياقوت او مرجانو په شان دی. دلته هغوئ دپاره دا بيان نه شو. بيا سوال كيږی چه تاسو به درب د كوم كوم نعمت نه انكا ركوئی؟ يعنی تاسو ته پكار دی چه د هيڅ يو نعمت نه هم انكار اونه كړئی.

**قوله تعالى:- وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ**

**دجنت فرشونه او تكيه لګول:-** دا جنتيان به دښينو اعلی فرشونو او تكياګانو باندې تكيه لګونكی ناست وی، تختونه به وی او تختونو باندې به پاكه اعلی درجې والا فرش وی. او بهترين نقش دارې تكيه ګانې به وی. دا تختونه او فرشونه اوتكيه ګانې دجنت باغونو او كيارو كښې وی. دا به اعلی قسم نقش دارې او د ريښمو وی. اوهمدا به دهغوئ فرشونه وی. څه به دسور رنګ وی او څه به د شين رنګ. دجنتيانو كپړې به هم داسې اعلی او ښكلې وی. دنيا كښې هيڅ څيز داسې نشته دې چه هغې سره ورته تشبيه وركړې شی. دا بسترې به مخملی وی چه بالكل نرمې او خالصې به وی. په دې كښې

---

[1] الطبری : ۷۵/۲۳.

[2] صحيح بخاری كتاب التفسير سورة الرحمان : باب (( حور مقصورات فی الخيام )) : ۴۸۷۹.

[3] صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ماجاء فی صفة الجنة وانها مخلوقة: ۳۲۴۳.

[4] صحيح مسلم كتاب الجنة باب فی خيام الجنة : ۲۸۳۸.

[5] ترمذی كتاب صفة الجنة باب ماجاء ما لادنی اهل الجنة من الكرامة: ۲۵۶۲.: ابن حبان : ۴۷۰۱، .

به ډير زيات رنګونه يو ځائې شوي وي. ابوعبيده رحمه الله فرمائي چه عبقر د يوځائې نوم دې چه کوم ځائې کښې نقشداري کپړې جوړيږي. خليل بن احمد رحمه الله فرمائي چه هر نفس او اعلى څيز ته عرب عبقرې وائي. نو يو حديث مبارك کښې دي چه حضور نبي کريم ﷺ دعمر ابن خطاب رضي الله عنه باره کښې اوفرمائيل چه ما يوعبقري اونه ليدو چه د عمر په شان د اوبو لوني لوني ډولچې راکاږي (۱). دلته هم خيال اوکړئې چه اول دوؤ جنتونو فرش او فرشونه او دهغه ځائې تکيه ګانې چه دهغې کوم صفت بيان شوې دې هغه ددې نه اعلى دې. هغه ځائې کښې فرمائيلې شوي وو چه دهغې استر يعني دننه کپړا خالص د ديبزا او ښه رېښمو به وي،بيا د دپاسه کپړې بيان نه دې شوې. په وجه چه دکوم استر دومره اعلى دې نودهغې ابر يعني پورتنئ کپړا به لا څومره ښه وي. بيا د وريسې دوؤ جنتونو دبيان په خاتمه باندې ئې فرمائيلي ووچه د اطاعت بدله د عنايت نه سوابله څه کيدې شي؟ نو دهغه اهل جنت اوصافو کښې ئې اوفرمائيل چه داعلى مرتبې او ډير بهترين دي لکه جبرئيل عليه السلام والا حديث مبارك کښې دي چه هغوئ داسلام سوال کړې وو بيا ئې دايمان سوال اوکړو اوبياد احسان (۲). نو ددې ډير وجوهات دي چه دهغې نه صفا ثابت دي چه د مخکښې دوؤ جنتونو ته په دې دوؤ جنتونو بهترين فضيلت حاصل دې. الله ﷻ نه مونږ سوال کوؤ چه هغه ذات مونږ ته هم دا جنتونه راکړي چه په دې دوؤ جنتونو باندې ورته فضيلت حاصل دې به. اودهغې اوصاف مخکښې بيان شو،آمين.

**قوله تعالى:- تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ**

بيا فرمائي چه ستا درب ذوالجلال نوم برکت والا دې او هغه جلال والا دې يعني ددې لائق دې چه د هغه جلال دې اومنلې شي اودهغه د بزرګئ خيال ساتلو سره دې دهغه نافرمانى اونکړې شي بلکه دهغه دې پورا اطاعت اوکړې شي اوهغه ددې قابل دې چه دهغه ذات اکرام دې اوکړې شي يعني دهغه ذات عبادت دې اوکړې شي. دهغه ذات نه سوادې دنورو عبادت اونکړې شي. دهغه شکر دې ادا کړې شي او دهغه ناشکرى دې اونکړې شي. دهغه ذات ذکر دې اوکړې او هغه دې هير نه کړې شي. هغه ذات عظمت او کبريائي والا دې. حضور نبي کريم ﷺ فرمائي چه دالله ﷻ اجلال کوئي،دهغه عظمت اومنئ هغه به تاسو لره اوبخښي(۳)( احمد )او يو حديث مبارك کښې دي چه دالله ﷻ عظمت منلو کښې داهم داخل دي چه دهغه مسلمان دې عزت اوکړې چه هغه بوډاوي اوهغه دبادشاه او دعامل قران چه قران پاك کښې کمې زياتې نکوي يعني دې غلو نه کوي (۴).ابويعلى رحمه الله کښې دي چه ﴿ يَاذَا الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴾ سره دې محبت اوکړئې. دا حديث مبارك ترمذي شريف کښې هم دې (۵). امام ترمذي رحمه الله ددې سندسره دا حديث مبارك مروي دې. په هغې کښې د يا لفظ نه شته دې (۶). جوهري رحمه الله فرمائي چه کله څوك چا پورې انخلي او هغه راونيسي نو عرب وائي چه ﴿ الظ ﴾ هم دا الفاظ دې حديث مبارك کښې راغلي دي نو مطلب دادې چه ا لحاح وخلوص عاجزئې او مسکينئ سره هميشه او لزوم سره دالله ﷻ نه غوښتنه کوي. صحيح مسلم او سنن اربع کښې عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چه حضور نبي کريم ﷺ به کله سلام اوګرزولو نو دې نه پس به دومره کښيناستل چه داکلمات به اوونيل چه ﴿ اللهم انت

---

(۱)صحيح بخاری کتاب لفضائل اصحاب النبي ﷺ باب مناقب عمر ابن الخطاب رضي الله عنه: ۳۶۸۲، صحيح مسلم: ۲۳۹۳، ابن حبان : ۶۸۹۸.

(۲) صحيح بخاری کتاب سؤال جبريل عليه السلام النبي ﷺ عن الايمان ، والاسلام والاحسان : ۵۰.

(۳)احمد: ۱۹۹/۵،

(۴) ابوداود کتاب الادب باب في تنزيل الناس منازلهم : ۴۸۴۳،

(۵)ترمذی کتاب الدعوات باب قول ( ياحي يا قيوم ..... ، والظايا ذا الجلال والاکرام : ) ۳۵۲۵ وهو صحيح. مسند ابويعلى : ۲۷۳۳.

(۶) احمد: ۱۷۷/۴ ،ژ ح/۱۷۵۹۶، وسنده صحيح .

السلام ومنك السلام تبارکت یاذالجلال والاکرام﴾. (۱)

الحمد لله دالله ﷻ فضل وکرم سره د سورۃ رحمن تفسیر ختم شو،دالله ﷻ ډیر ډیر شکر دي

.............

## د سورۃ واقعه مکی سورۃ تفسیر

**دسورۃ تعارف**:-یو ځل ابوبکرصدیق ﷛حضور نبی کریم ﷺ ته اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! تاسو بوډا ګان شوئی.نوحضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه سورۃ هود او سورۃ واقعه اوسورۃ والمرسلات اوسورۃ عم یتسالون او سورۃ تکویر بوډاکړم. دا حدیث مبارك امام ترمذي ﷫ راوړي دي او دي ته ئې حسن غریب وئیلی دی(۲)دحافظ ابن عساکر ﷫،عبدالله بن مسعود ﷛ واقعاتو کښې یو روایت راوړي دي چه کله عبدالله ﷛ بیمار شو اوهغه بیمارئی نه دوی بچ نشو،دې بیمارئی کښې عثمان بن عفان ﷛ ددوی عیادت دپاره لاړل،نو تپوس ئې اوکړو چه څه شکایت دي؟ وې فرمائیل چه دخپلو ګناهونو.تپوس ئې اوکړو چه څه خواهش دي؟ وې فرمائیل درب درحمت.وې فرمائیل چه کوم یو طبیب اولیږم. نو وې فرمائیل چه هم طبیب خو بیمار کړې یم. وې فرمائیل چه څه مال اولیږم؟ وې فرمائیل چه ما ته د مال هیڅ ضرورت نشته دی. وې فرمائیل چه ستا نه پس به ستا دبچو په کار راشي. وې فرمائیل چه څما دبچو باره کښې ستا د غریبئ ویره ده؟ واوره ما خپلو ټولو لوڼړو ته وئیلی دی چه هره شپه سورۃ واقعه لولئ ،ما حضور نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه کوم سړې هره شپه سورۃ واقعه وائی نوهغه ته به هیڅ کله فاقه نه کیږی ددې واقعې راوی ابوظبیه هم دا سورۃ بلاناغه وئیلو.
مسند احمد کښې جابر ﷛ فرمائی چه حضور نبی کریم ﷺ به مونځونه داسې کول چه څنګه تاسو وائې،خو دحضور نبی کریم ﷺ مونځ تخفیف والا وو.دسحر مونځ کښې به حضور نبی کریم ﷺ سورۃ واقعه او ددې پشان سورتونه لوستل (۳).

| آیاتونه | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|
| | سورۃ الواقعه مکیة وهي ست وتسعون آیة وثلاث رکوعات | | |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ۹۶ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکي دي | | ۳ |

| اِذَا | وَقَعَتِ | الۡوَاقِعَةُ ۙ﴿۱﴾ | لَیۡسَ لِوَقۡعَتِهَا | کَاذِبَةٌ ﴿۲﴾ |
|---|---|---|---|---|
| کله چې | راشي | هغه کیدونکې واقعه | نشته دي راتلو دهغې لره | دروغ کونکي یو نفس |

څه وخت چې قیامت راشي | د هغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته

| خَافِضَةٌ | رَّافِعَةٌ ۙ﴿۳﴾ | اِذَا | رُجَّتِ | الۡاَرۡضُ |
|---|---|---|---|---|
| هغه به ښکته کونکې وی | پورته کونکې به وی | کله چې | اوخوزولې شی | زمکه |

نوخوک به ښکته (ذلیله) کړی | او څوک به اوچت (معزز) کړی | څه وخت چې به په زمکه

۱) صحیح مسلم کتاب المساجد باب استحباب الذکر بعد الصلاة ......۵۹۲، ابوداود : ۱۵۱۲.
۲) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورۃ الواقعه : ۳۲۹۷، وهو صحیح .
۳) احمد: ۱۰۴/۵.

رَجًّا ﴿٤﴾ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ﴿٥﴾ فَكَانَتْ

په خوزولو سختو سره | او ریز مریز کړې شي | غرونه | په ریزه کولو سختو سره | پس شي هغه

په ډیر زور سره زلزله راشي | اوغرونه به ریزه ریزه شي |............ نو

هَبَآءً مُّنۢبَثًّا ﴿٦﴾ وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ﴿٧﴾ فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾

دوړه | خوره وره | او شئ تاسو | قسمونه (ډلي) | درې | پس یوه ډله به وي ښي طرف والا

خوره (الوتلې) دوړه به شي | اوستاسو به درې ډلې شي | نود (عرش د) ښي طرف خاوندان به وي

مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾ وَاَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ﴿٩﴾ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ﴿٩﴾

څه ښه نصیبي دي ښي طرف والا | او بله ډله ګس طرف والا | څه بد نصیبه دي ګس طرف والا |

د ښي طرف خاوندان څومره ښه خلق دي ||او د ګس طرف خاوندان | د ګس طرف خاوندان څومره خراب خلق دي

وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ﴿١٠﴾ اُولٰٓئِكَ

او مخکښې کیدونکي په نیکئ کښې | مخکښې کیدونکي به وي په جنت کښې | هم دغه خلق

اوکوم چې داوچتې مرتبې خاوندان دي |............نوهغوئ د ا وچتې مرتبې خاوندان

الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿١١﴾ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿١٢﴾

نزدیکان دي (الله ته) | په جنتونو دنعمتونو کښې به وي |

دي| هغوئ (الله) ته ډیر نزدې دي| دنعمتونو دکو باغونه کښې به وي|

**قوله تعالى:- اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١﴾**

قیامت بر حق دې: واقعه د قیامت نوم دې ځکه چه ددې واقع کیدل یقیني امردې. لکه یو بل آیت مبارك کښې دي چه ﴿ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴾ په هغه ورځ به چه څه کیدونکي دي هغه به کیږی. ددې واقع کیدل یقیني امردې. نه خو دا څوك اخوا کولې شي اونه ئې څوك روستو کولې شي. هغه به په خپل مقرر وخت رازي. لکه یوبل آیت مبارك کښې دي چه ﴿ اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ ﴾ الخ، دخپل پروردګار خبرې اومنئ ددې نه مخکښې چه هغه ورځ راشي چه دهغې څوك لرې کولو والا نشته دې. اویو ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿سَاَلَ سَآئِلٌ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ﴾ دسائل سوال دهغه عذاب نه دې چه یقیني طور راتلونکئ دې اودهغې څوك ایسارولو والا نشته دې. او آیت مبارك کښې فرماني چه﴿يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ﴾ الخ، چه په کومه ورځ به الله ﷻ اوفرماني چه اوشه نو هغه به اوشي. دهغه قول حق دې اوهغه مالك دې چه په کومه ورځ شپیلئ به پوك وهلې شي، هغه دغیبو اوظاهرعالم دې. اوهغه حکیم دې اوخبیردې. قیامت کاذبه نه دې یعنی برحق دې، ضرورقائمیدو والا دې، په هغه ورځ خو نه دوباره راتلل دي او نه واپس کیدل دي اونه راتلل دي.

**قوله تعالى:- لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴿٢﴾**

دقیامت ذکر: ﴿ كاذبة ﴾ مصدر دې لکه ﴿ عاقبة ﴾ او ﴿عافية﴾، هغه ورځ تنزل او ترقئ والا ده. ډیر خلق به په تنزل کښې کړی اوجهنم ته به ئې داخل کړی. چه په دنیا کښې ډیر عزت او وقعت والا وو. او ډیر خلق به پورته کړی اوهغه اعلى علیین او جنت نعیم ته به ئې اورسوی اګر چه دوی دنیا کښې پست او بې قدر وو. دالله ﷻ دښمنان به ذلیل شي او جهنم ته به لاړسی او دالله ﷻ دوستان به عزیز شي اوجنت ته به داخل شي. کبرکوونکي به هغه ذلیل کړی. او عاجزانو لره به عزیز کړی. او هغه به نزدې اولرې والوته

واوروی اوهر یو لره به رابیدار کړی،هغه رالاندې کړی او قرب و الو لره به پورته کړی او لرې والو ته به واوروی.داحالت به شی لکه چه چانړ کښې څه څیز شته دې چه څوك نې خوزوی. لکه یو بل آیت مبارك دی چه ﴿اِذَازُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾ اویوخائې ارشاد دې چه ﴿يٰاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيْمٌ﴾ انې خلقوا الله ﷻ نه ویرېږئ چه ستاسو رب دې یقین اوکړئ چه دقیامت زلزله ډیر لوئې څیز دې،بیاارشاد دې چه غرونه به په هغه ورخ ریزه ریزه شی. اویوخائې کښې ﴿كَثِيْبًا مَّهِيْلًا﴾ راغلی دی.نو دوی به لکه د غبار په شان پریشانه وی لکه هوا نې یوخوا بل خوا یوسی او هیڅ پاتې نشی. ﴿هَبَآءً﴾ هغه بسرو ته هم وائی چه د اوور بلولو په وخت کښې د پتنګانو پشان الوزی. اوکله چه لاندې راشی نو هیڅ نه وی. ﴿مُّنْۢبَثًّا﴾ هغه څیز ته وائې چه هغه هوا پورته کړی او خور نی او ختم نې کړی. لکه د پاڼو چوره چه هوا خور کړی،د اقسمه نور آیتونه هم ډیر زیات دی چه دهغې نه ثابت دی چه غرونه به دخپل خائې نه اوخوزی. بیا به ریزه ریزه شی. او ختم به شی.

.قوله تعالی:-﴿وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً﴾

**خلق به درې ډلې شی :-** خلق به په هغه ورخ درې قسمونو کښې تقسیمېږی. یو جماعت به د عرش ښی طرفته به وی چی کوم دآدم ؑ دښی طرفنه راویستې شوې دې او اعمال نامه ورته په ښی لاس ورکړې شوې وی. اودوی به ښی طرفته روا نیږی داډله دجنتیانو ده.

دویم جماعت چه دعرش ګس طرفته به وی،دا به هغه خلق وی چه کوم د آدم ؑ د ګس طرفته راویستې شوی وو. دوی ته به اعمال نامه په ګس لاس ملاویږی. او د ګسې لارې په لار استولې شوی وو. د اټول جهنمیان دی،الله ﷻ دې مونږ ټول دې نه محفوظ کړی.

دریم جماعت چه دالله ﷻ مخکښې به وی دا به خاص خلق وی. دا به اصحاب یمین نه هم زیات وقعت والا اوخاص قرب والا وی.دوی دجنتیانو سرداران وی.دوی رسولان دی،نبیان علیهم السلام دی، صدیقین دی او شهداء دی. ددوی شمیربه د ګس والو نه کم وی،نو دا درې قسمه داهل محشر وی. لکه چه ددې سورة مبارك آخر کښې هم اختصار سره ددوی دا تقسیم کړې شوې دې،هم داشان سورة ملائکه کښې دی چه [ثُمَّ اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِالْخَيْرٰتِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ] یعنی بیا مونږ دخپل کتاب وارثان خاص خاص بندګان جوړ کړل،په دوی کښې خوبعضې په خپلوځانونوباندې ظلم کوونکی دی اوبعضې میانه روش دی،او بعضې دالله ﷻ حکم سره نیکو کښې سبقت کوونکی دی.

نودلته هم ددرې قسمونو بیان دې،دا په هغه وخت کښې چه کله د ﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ﴾ تفسیر اوشی چه ددې مطابق دې. ګنی یو قول بل هم دې. چه ددې آیت مبارك د تفسیر په موقع تیر شوې دې. ابن عباس ؓ وغیره هم دا فرمانی،دوه ډلې جنتیان او یو جهنمیان.

**قوله تعالی:-** ﴿فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ﴾

**دنیکو درجات :**ابن ابی حاتم کښې حدیث مبارك دې چه حضور نبی کریم ﷺ فرمانی چه ﴿وَاِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ﴾ هرکله چه خلق جوړې جوړې شی نو وې فرمائیل چه قسم قسم یعنی دهر عمل د عامل یو جماعت دې لکه الله ﷻ فرمانی چه تاسو به درې قسمه شئ یعنی اصحاب یمین،اصحاب یمین او سابقین مسند احمد کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو او دخپل لاس مبارك موتئ نې بند کړو او وې فرمائیل چه دا جنتیان دی ما ته هیڅ پرواه نشته دې[1]

[1] احمد: ۲۳۹/٥،.

مسنداحمد کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه تاسو ته معلوم دی چه دالله ﷻ سیوری طرفته به څوك درومی ټولو نه مخکښې؟ هغوئ عرض اوکړو چه الله اودهغه ﷺ ته ښه معلوم دی. نو حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه هغه خلق چه خپل حق ورکړی او قبول کړی او چه په دوی کوم حق چه په دوی باندې دې چه کله دوی اوغواړی نو دوی هغه ورکوی. او نورو خلقو دپاره هم هغه حکم دې چه کوم دوی دپاره دې. (١)

قوله تعالی:- وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ﴿۱۰﴾

سابقین خلق څوك دی؟ دې باره کښې ډیر اقوال دی. لکه انبیاء کرام علیهم السلام،اهل علیین،یوشع علیه السلام بن نون چه په موسی علیه السلام باندې ئې ټولو نه مخکښې ایمان ر اوړې وو، هغه مومن چه دهغه ذکر په سورة یاسین کښې دې چه کوم په عیسی علیه السلام باندې ایمان راوړې وو، علی بن ابی طالب رضی الله عنه چه په محمد ﷺ ئې ټولو نه مکښې ایمان راوړې وو،هغه خلق چه ټولو نه مخکښې مسجد ته درومی،هغه خلق چه هغوئ دواړو قبلو طرفته مونځ کړې دې،دهر امت هغه خلق چه هغوئ په خپلو نبیانو مخکښې مخکښې ایمان راوړې وو،چه کوم جهاد کښې ټولو نه مخکښې روان وی. دا ټول ا قوال اصل کښې صحیح دی یعنی د اټول خلق سابقین دی.دالله ﷻ فرمان لره مخکښې کړی او په نورو ورته سبقت ورکوی او هغه قبلوی د اټول دې کښې داخل دی. قران پاك کښې یو ځائې دی چه ﴿وَسَارِعُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ ۙ اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ﴾ الخ،د خپل رب بخښش او هغه جنت طرفته زر ځئ چه د هغې پلن والئ لکه د آسمان اوزمکې دې نو چه کوم سړی دې دنیا کښې نیکو طرفته سبقت اوکړو نو هغه به آخرت کښې هم د الله ﷻ نعمتونو طرفته سابق وی. دهر عمل بدله هم ددې پشان ده لکه چه څه کړې هغه به ریبې. په دې وجه دلته ذکر کوی او ددوی باره کښې فرمائی چه دا مقربین الی الله دی. دوی به نعمتونو والا جنت کښې وی.

الله ﷻ نه د فرښتو سوال:- ابن ابی حاتم کښې دی چه عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه مروی دی چه فرښتو دالله ﷻ دربار کښې عرض اوکړو چه ائې الله ﷻ ! تا خو ابن آدم دپاره خودنیا جوړه کړې ده،هغه ځائې کښې خوری څکی،او بچو او ښځې سره ښه خوشحاله دې،نو مونږ لره آخرت اوګرزوه. نو جواب ملاؤ شو چه څه به داسې اونه کړم. هغوئ درې ځل دا دعا اوکړه نو الله ﷻ اوفرمائیل چه کوم لره ماپه خپل لاس پیدا کړل دهغوئ په شان تاسونه چه کوم لره ما او هغوئ لره ما صرف په لفظ کن سره پیدا کړل. امام دارمی رحمه الله هم دا اثر په خپل کتاب الرد علی الجهیمة کښې وارد کړې دې،دهغې الفاظ دادی چه الله ﷻ فرښتو ته اوفرمائیل چه کوم لره ما په خپل لاس پیدا کړې دې دهغه نیك اولاد به څه دهغه په شان نه کړم،او چه څنګه ما غوښتل هغه اوشو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ثُلَّةٌ | مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ | | |
| لویه ډله به وی | داولنو خلقو نه | | |
| په دې کښې به زیات دپخوانو خلقو وی | | | |
| وَقَلِيْلٌ | مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۴﴾ | عَلٰى سُرُرٍ | مَّوْضُوْنَةٍ ﴿۱۵﴾ |
| او لږ به وی | دروستنو خلقو نه | ناست به وی په تختونو باندې | چې بنړلې شوی به وی په ملغلرو سره |
| اولږ به د روستنو خلقو نه وی | ..........دوئ بهٔ دسرو زرو په تارونو بنړلې شوؤ تختونو ، | | |

(١) احمد: ٦/٦٩،

| مُّتَّكِـِٕيۡنَ | عَلَيۡهَا | مُتَقٰبِلِيۡنَ﴿۱۶﴾ | يَطُوۡفُ | عَلَيۡهِمۡ | وِلۡدَانٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| ډډه وهونکي به وي | په هغې باندې | یو بل ته مخ کونکي | گرځي به | په هغوئ باندې | هلکان |

ډډې لګولې یو بل ته مخامخ ناست وي ..................داسې هلکان بۀ ورباندې ځیزونه ګرځوي

| مُّخَلَّدُوۡنَ﴿۱۷﴾ | بِاَكۡوَابٍ | وَّاَبَارِيۡقَ﴿۱۸﴾ | وَكَاۡسٍ |
|---|---|---|---|
| چې همیشه به وي هلکواني دهغوئ | دپیالو سره | او دشیشې دبوتلونو سره | او دجامونو سره |

چې تل به هلکان وي پیالې اود شیشې بوتلې اود بهیدونکو شرابو (ډکې) پیالې به وي

| مِّنۡ مَّعِيۡنٍ﴿۱۸﴾ | لَّا يُصَدَّعُوۡنَ | عَنۡهَا | وَلَا يُنۡزِفُوۡنَ﴿۱۹﴾ |
|---|---|---|---|
| اودرواني چینې دشرابونه | نۀ به سرګردانه کیږي هغوئ | دڅکلو دهغې نه | او نۀ به نې عقل خرابیږي |

دهغه په وجه به نه د هغوی سر درد راځي اونه ئې په عقل کښې خرابي راځي.............

| وَفَاكِهَةٍ | مِّمَّا | يَتَخَيَّرُوۡنَ﴿۲۰﴾ | وَلَحۡمِ طَيۡرٍ | مِّمَّا |
|---|---|---|---|---|
| او دمیوؤ سره | دهغه قسمونونه | چې خوښوي ئې (جنتیان) | اودغوښې دمارغانو سره | دهغې قسم نه |

اوداسې میوې کومې چې هغوئ خوښوي | او د هر هغه مارغه غوښه به وي کومه چې د هغوئ زړونه

| يَشۡتَهُوۡنَ﴿۲۱﴾ | وَحُوۡرٌ | عِيۡنٌ﴿۲۲﴾ | كَاَمۡثَالِ | اللُّؤۡلُؤِ |
|---|---|---|---|---|
| چې زړونه ئې غواړي دهغوئ | او حورې به وي | ښائیسته سترګو والا | پشان | دملغلرو |

غواړي | اوحورې د غټو سترګو میرمنې | داسې پاکې لکه پټې ساتلې شوې

| الۡمَكۡنُوۡنِ﴿۲۳﴾ | جَزَآءًۢ | بِمَا | كَانُوۡا | يَعۡمَلُوۡنَ﴿۲۴﴾ |
|---|---|---|---|---|
| پټو ساتلو شوؤ | دا به دبدلې په طور وي | په سبب دهغې عمل | چې وؤ هغوئ | چې کوؤ به ئې |

ملغلرې |..................دا به دهغوئ دنیکو عملونو بدله وي | چې هغوئ بۀ کول

| لَا يَسۡمَعُوۡنَ | فِيۡهَا | لَغۡوًا | وَّلَا تَاۡثِيۡمًا﴿۲۵﴾ | اِلَّا | قِيۡلًا |
|---|---|---|---|---|---|
| نۀ به اوري هغوئ | په هغې کښې | عبث خبرې | اونۀ دګناه خبرې | مګر | یوه خبره |

نۀ بۀ هلته فضول خبره اوري | اونه دګناه وینا | بس هر طرفته به دسلام سلام اوازونه وي

| سَلٰمًا سَلٰمًا﴿۲۶﴾ |
|---|
| سلام سلام |

**قوله تعالٰی:- عَلٰى سُرُرٍ مَّوۡضُوۡنَةٍ﴿۱۵﴾**

**جنت کښې انعامونه:-** ارشاد دې چه مقربین خاص ډیر مخکښې خلقو کښې دي او څه روستو خلقو کښې هم دي. ددې اولین او آخرین قول کښې ډیر اقوال دی. لکه مخکښې امتونو نه او دې امت نه. امام ابن جریر رحمه الله همدا قول خوښ کړې دې.(١) اودا حدیث مبارك ددې قول په پوخوالی کښې پیش کوی چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مونږ روستو یو او د قیامت په ورځ مخکښې یو(٢). او ددې قول

(١) الطبری : ٩٨/٢٢.

(٢) صحیح بخاری کتاب الجمعة باب فرض الجمعة: ٨٧٦، صحیح مسلم: ٧٥٥.

ناتید د ابن ابی حاتم ددې روایت نه هم کیدې شي چه کله دا ایت مبارك نازل شو نو اصحاب ﷺ باندې ډیر گران پریوتو ،نودا آیت مبارك نازل شو چه ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ﴾ نوحضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خما امید دې چه سبا به تاسود جنت څلورومه حصه يئ بلکه دویمه حصه تاسو بلکه نیم په نیمه تاسو. تاسو به دنیم جنت مالکان يئ او باقی نیم به په ټولو امتونو تقسیم وی چه په هغې کښې تاسو شریك يئ. دا حدیث مبارك مسنداحمد کښې هم دې .([1])ابن عساکر کښې دی چه عمرفاروق رضي الله عنه ددې آیت مبارك آوریدو سره دحضور نبی کریم ﷺ خدمت کښې عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! چه آیا مخکښې امتونو کښې ډیر خلق سابقینو کښې داخل دی اومونږ نه کم خلق؟ دې نه یوکال پس دا آیت مبارك نازل شو چه مخکښې امتونو کښې ډیراو روستو امتونو کښې کم. حضور نبی کریم ﷺ عمر فاروق رضي الله عنه راوبللو او ورته ئې فرمائی چه واوره ! چه آدم علیه السلام نه واخله تر ما پورې ثلة ده او صرف خما امت ثلة دې،مونږ خپل دې ثلة پورا کولو دپاره به دا حبشیان اخلو چه اوښان څروی خودالله ﷻ وحده لاشریك شهادت ورکوی. خو ددې سند کښې خبرې شته دې. خو ډیرو سندونو سره د حضور نبی کریم ﷺ فرمان دا ثابت دې چه خماامید دې چه تاسو به داهل جنت څلورمه حصه يئ،آخر پورې ([2]). نو الحمد لله دا یو بهترینه خوشخبری ده.

امام ابن جریر رحمه الله چه کوم قول خوښ کړې دې په هغې کښې د لږ شان غور کولو ضرورت دې. بلکه اصل کښې دا قول ډیر زیات کمزورې دې خکه چه دقران پاك دالفاظو نه ددې امت او دټول امت افضل او اعلی کیدل ثابت دی. بیا دا څنګه کیدې شی چه دالله ﷻ در صمدیت کښې او نورو امتونو کښې خو ډیر دی او دې بهترین امت کښې دی کم وی. خو دا توجیه کیدیشی چه ددې ټولو امتونو مقرب یو ځانې شی او ددې امت د شمیر نه زیات شی. مخکښې الله ﷻ ته علم دې. دویم قول ددې جملې تفسیر کښې دادې چه ددې امت دشروع د زمانې نه د مقربینو شمیر ډیر زیات دې او روستو خلقو کښې کم دې او هم دا راجح قول دې. نو حسن رحمه الله نه مروی دی چه دوی ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو او دې امت کښې چه کوم مقربین تیر شوی دی هغوئ کښې مقربین ډیر وو. امام ابن سیرین رحمه الله هم دا فرمائی.هیڅ شك نشته دې چه هر ا مت کښې هم داشان کیدل راروان دی چه شروع کښې ډیر مقربین وی او روستو خلقو کښې کم وی. نودا هم ممکن دی چه مراد ترې همداشان وی یعنی دهر امت مخکښې خلق سبقت کولو والا زیات وی په نسبت دهر امت د روستو خلقو.

د صحاح وغیره احادیثو نه ثابت دی چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ټولوزمانو کښې ټولو نه بهتره زمانه خما ده،بیا دې نه پس،بیا دې سره متصل الخ([3])خو یو حدیث مبارك کښې راغلی دی چه خما د امت مثال د باران په شان دې،معلوم نه ده چه اولې زمانې باران به افضل وی او که د آخرې زمانې([4])نودا حدیث مبارك چه ددې د اسنادو دصحت حکم ورکړې شی محمول دې،په دې امر باندې چه څنګه ددین دشروع دخلقو ضرورت وو چه ددې تبلیغ دخپلو بعدوالو دپاره اوکړی،هم داشان آخر کښې هم هغې لره قائم ساتلو ضرورت دې چه خلق په سنت نبی ﷺ باندې اوساتی. ددې روایتونه اوکړی. دا په خلقو ظاهر کړی. خو فضیلت د اول خلقو دې. هم داشان لکه څنګه چه د پټی دپاره د شروع باران او آخری باران ضرورت وی. خو لویه فائده اول باران ورکوی،په دې وجه که دشروع شروع باران نه وی نو دانې به نه زرغونیږی اونه به ددې جرړې راوزی.

---

[1] احمد: ۳۹۱/۲.
[2] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الحشر : ٦٥٢٨.
[3] صحیح بخاری کتاب لفضائل اصحاب النبی ﷺ باب لفضائل اصحاب النبی ﷺ ومن صحب النبی ﷺ .....: ٣٦٥٠، صحیح مسلم: ٢٥٣٥.
[4] احمد: ۳۱۹/٤.

**بې حسابه جنت ته تلونکی:-** هم په دې وجه حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه یو جماعت به خما امت کښې همیشه په حق باندې اوسی او غالب به وی. ددوی دښمنان به دوی ته ضرر نه شی رسولې. ددوی مخالف به دوی رسوا او لاندې نشی کولې. تردې چه قیامت قائم شی او دوی به داشان وی.([1]) الغرض دا امت د باقی ټولوامتونونه ښه افضل او اشرف دې.او په دوی کښې رب ته مقربین د نورو امتونو په نسبت زیات دی او د ډیر رتبې والا دی. ځکه ددین دکامل کیدو او دنبی عالی مرتبه کیدو لحاظ سره دا ټول بهتر دی. تواتر سره دا حدیث مبارك ثبوت ته رسیدلې دې چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دې امت کښې اویا زره خلق بغیر د حساب نه جنت ته به داخلیږی ([2])او هر یو زر سره به اویا زره نور وی ([3]). طبرانی کښې دی چه دهغه ذات قسم چه دهغه قبضه کښې خما روح دې چه تاسو کښې به یو لونې جماعت دقیامت په ورځ اودرولې شی او دا به دومره لونې وی لکه چه شپه راغله،ټوله زمکه به نې ګیره کړې وی. فرښتې به اووائی چه ټولو نبیانو سره څومره امتیان راغلی دی دهغې نه زیات محمد ﷺ سره دی([4]) مناسب مقام دادې چه ډیر لونې جماعت د مخکښې خلقو نه دې اوډیر روستو نه، د آیت مبارك د تفسیر په موقع دا حدیث مبارك ذکر کړې دې. چه حافظ ابوبکر بیهقی رحمه الله دلائل النبوة کښې وارد کړی دی چه حضور نبی کریم ﷺ به کله دسحر مونځ اوکړو نو په ماتو پښو به نې اویا ځل دا ونیل چه ﴿ سبحان الله وبحمده استغفرالله ان الله کان توابا ﴾ بیا فرمائی چه اویا بدله کښې اوؤ دی. چه د چا دیو ورځې ګناهونه اویاؤ نه هم زیاتې شی نوهغه بې خبره دې،بیا دوه ځل دا فرمائی،بیا خلقو طرفته مخ کړی او کینی او چونکه حضور نبی کریم ﷺ ته خوبونه ډیر خوښ وو،په دې وجه به نې تپوس کولو آیا تاسو کښې چه چاخوب لیدلې دې؟

**د یو صحابی خوب اودنبی کریم ﷺ تعبیر:-** ابن زمل رضی الله عنه فرمائی چه هم داشان حسب عادت حضور نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو نو ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ما یو خوب لیدلې دې. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ دې خیراوکړی،مونږ لره دې د خیر جوړکړی او خمونږ دښمنانو لره دې د شر جوړ کړی دهر قسم تعریفونو مالك هغه ذات دې چه دټولو جهانونو پالونکی دې. خپل خوب بیان کړه. ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ا ما اوکتل چه لاره فراخه ده او آسانه اونرمه ده او بې شمیره خلق په دې لار روان دی. او دا لار یو شین باغ ته تلې ده او خما سترګو ددې نه مخکښې داسې شین ګوشین او ښکلې باغ نه وو لیدلې. هر طرفته اوبه روانې دی اوهرطرفته شینکې دې اوهر قسمه ونې اوقسما قسم میوې دی. ما چه اوکتل نو ړومبې جماعت راغلو او دې باغ سره ایسار شو اودې باغ ته راورسیدل نو هغوی خپلې سورلۍ تیزې کړې او یو خوا بل خوا لانړل. او تیزنی سره ددې خائې نه تیر شو. اوبیا بل جماعت راغلو چه تعداد کښې ډیر زیات وو او کله چه دلته راوسیدو نو بعضو خلقو خو خپل خناور څروڼ شروع کړل او بعضو ددې خائې نه څه واخستل او روان شو. اوبیا خو ډیر زیات خلق راغلل. او کله چه هغوی په دې خائې ګل ګلزار باندې تیر شو نو دې خائې ایسار شو او وې ونیل چه دا ټولو نه ښه خائې دې. نو ما هغوی اوکتل چه هغوی یو خوا بل خوا خواره شو. خوځه پخپله روان اووم او لرې لاړم او ما وکتل چه یو منبرچه دهغې اوه پوړنی دی،اوتاسو دهغې په اوچت خائې ناست یئ او ستاسو ښې طرفته یو سړې دې چه غنم رنګی دې او غټو ګوتو والا او لونې قد والا دې،کله چه کلام کوی نو ټول خاموشی سره کینی اوهغه آوری او خلق پورته پورته کیږی دهغه خبرې ښه توجه سره آوری. او ستاسو

---

[1]) صحیح بخاری کتاب المناقب باب : ۲۸، حدیث : ۳٦٤۰، صحیح مسلم : ۱۹۲۰.

[2])صحیح بخاری کتاب الرقاق باب یدخل الجنة سبعون الفا بغیر حساب : ٦٥٤۱. صحیح مسلم: ۲۱٦.

[3])ترمذی کتاب صفة القیامة باب منه دخول سبعین الف بغیر حساب: ۲٤۳۷، ابن ماجه: ٤۲۸٦. وسنده حسن.

[4])طبرانی: ۳٤٥٥،

کس طرفته یو سرې دې د ښه جسم والا او درمیانه قد والا او دهغه په څهره باندې ډیر زیات تور داغونه دي،او ویښته داسې دي لکه چه تر وي،اوکله چه هغه خبرې کوي نو خلق د اکرام په وجه سرونه ټیټ کړي. او بیا دهغه مخکښې یو کس دې چه اخلاق او عادات او دڅهرې نقشه کښې هم ستاسو په شان دې. تاسو خلق هغه طرفته متوجه کیږي او دهغه اراده لرئي. دهغه مخکښې یو بوډئي نرئي نروچکئ اوښه ده او ما اوکتل چه تاسو هغه پورته کوئي.

دخوب تعبیر:-ددې په آوریدو د حضور نبی کریم ﷺ رنګ مبارك بدل شو. لږ وخت پس چه کله د حضور نبی کریم ﷺ دا حالت بدل شو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه د صحیح لارې نه مراد خو هغه دین دې چه ما راوړې دې دالله ﷻ د طرفنه،ا و تاسو دهغې په هدایت یئ. اوتاسو چه کوم شین باغ اولیدو هغه دنیا ده او ددې دعیش وعشرت والا زړه لره لوبونکئ سامان،څه او څما اصحاب خوبه ددې نه تیر شو اودې کښې به مشغول نه شو. نه به هغه مونږ پورې انخلي او نه څمونږ تعلق هغې سره شته دې،اونه دهغې تعلق مونږ سره. نه خو مونږ هغه غواړو او نه هغه مونږ غواړي. څمونږ پس به بل جماعت راشي او څمونږ به شمیر کښې زیات وي. په هغوئ کښې به بعضې دې دنیا کښې انخلي او بعضې به ئې په قدر د حاجت یوسي او څې به اونجات به حاصل کړي. بیا به دې نه پس یو زبردست جماعت راشي چه دې دنیا کښې به مستغرق وي او یو خوا بل خوا به خواره شي. ﴿ فاناالله وانااليه راجعون﴾ اوس تاسو اوسئ نوتاسو په خپله لار روان شوئي تر دې ماسره به ستاسو ملاقات اوشي. چه کوم منبر په آخر اوومه پوړئي تا څه اولیدم دهغې تعبیر دا دې چه ددنیا عمر اوۀ زره کاله دې اوآخری زرمه حصه څه یم. څما نبی طرفته چه تا کوم غنم تلو والا انسان اولیدو هغه موسی علیه السلام دې او هرکله چه هغه کلام کوي نوټول خلق پورته کیږي څکه هغوئ ته دا شرف حاصل شوې وو چه الله ﷻ سره ئې خبرې کړې وې. او تا چه کوم څما کس طرفته اولیدو چه درمیانه قد ئې وو او په بدن ئې ډیر تور داغونه وو او ویښته ئې اوبه سره لمدۀ وو هغه عیسی علیه السلام وو. دهغه اکرام الله تعالی کړې دې په دې وجه مونږئې هم اکرام کوو. او چه کوم سرې تا ماته مخامخ اولیدو هغه څما پلار ابراهیم علیه السلام دې،مونږ ټول دهغه قصد کوو او دهغه تابعداری کوو. او تا چه کومه اوښه اوکتله چه څه ئې پاسوم هغې نه مراد قیامت دې اودا به څما په امت باندې قائمیږي. نوڅما نه پس نه بل نبی شته دې او نه څما امت نه پس بل امت شته دې. فرمائي چه دې نه پس حضور نبی کریم ﷺ دا تپوس کول پریښودل چه چا خوب لیدلې دې؟ خوکه چا به پخپله خپل خوب بیان کړو نو حضور نبی کریم ﷺ به هغه ته تعبیر ورکولو. (۱)

قوله تعالی:- عَلٰى سُرُرٍ مَّوۡضُوۡنَةٍ

د جنتیانو د تختونو او فرشونو وغیره بیان:-دهغوئ د ناستې تختونه او دآرام کولو پالنګونه د سرو زرو د تارونو نه جوړ شوي وي او په هغې به ځائې په ځائې موتیان لګیدلي وي او پکښې یاقوت وي. دا د فعیل معنی کښې د مفعول صیغه ده. په دې وجه د اوښې خیټې لاندې ځائې ته وضین وائي. دټولو مخونه به یو بل ته مخامخ وي او هیچا به بل ته شا کړې نه وي. او هغه غلمان چه ددوی خدمت کښې مشغول وي،عمر کښې به نه زیات وي او نه به کم وي اونه بوډاګان. او نه به کمیږي او نه به په هغوئ تغیر راځي. ﴿بِاَکۡوَابٍ﴾ وائي هغه کوزو ته چه د هغې ټوټۍ او د نیولو ځائې پکښې نه وي. ﴿اَبَارِیۡقَ﴾ هغه آفتابې چه دټوټۍ او نیولو قابلې وي. دا ټول به شرابو روانونهرونو نه ډك وي. او دا شراب به نه ختمیږي او نه به څکه چه دې کښې به چینې رواني وي. جامونه به ئې خپلو لاسونو کښې اخیستی دا ګل اندام ساقی به یو خوا بل خوا ګشت کوي. دې شرابو سره به نه ددوی سر کښې درد وي او نه به

---
(۱) دلائل النبوة للبیهقی: ۳۶/۷.

دوی عقل زائل کیږی بلکه د پورا سرور او کیف نه ددوی عقل او حواس به په خپل ځائې قائم وی او پورا لذت به ورته حاصل وی. شرابو کښې څلور اوصاف دی. نشه،سرور، قې او متیازې،نو حضور نبی کریم ﷺ د جنت د شرابو ذکر کولو نه پس ددې څلورو نقصانونو ذکر اوکړواو ( دجنتی شرابو نه ئې نفی اوکړه چه هغې کښې د ا څلور اوصاف نه شته دې ). او هغه شراب ددې نقصانونو نه پاك د ی. او دوی ته به قسم قسم میوې او د مارغانوغوښې ملاویږی. چه دد وی کومې میوې ته زړه او شی اوکومې غوښې ته ئې زړه اوشی نوهغه به په خپله موجوده شی.دا ټول څیزونه به دهغوئ خادمانو بنه طریقې سره اخیستی وی او ددوی نه به چاپیره تاویږی چه کله هم د څه څیز خواهش اوکړی نو چه هغه واخلی.

**قوله تعالی:- وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ۝**

**دجنت میوې :-** دې آیت مبارك کښې دې چه بنده د خپل خواهش مطابق میوې غونډوی. مسند ابو یعلی موصلی کښې دی چه عکراش بن ذویب فرمائی چه ما دخپل قوم دصدقې مال واخستواو د حضور نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم. حضور نبی کریم ﷺ انصار اومهاجرینو سره ناست وو.ماسره د زکوة ډیر اوښان وو.یعنی دا د شکو کښې څریدلی خوانان اوښان وو. حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته څوك ئې؟ما عرض اوکړو عکراش بن ذویب. نوحضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خپله نسب نامه تر لرې پورې بیان کړه. ما مره بن عبید پورې بیان کړه او دې سره مې اووئیل چه زکوة دمره بن عبید دې. نو حضور نبی کریم ﷺ په خندا شو او وې فرمائیل چه دا خماد قوم اوښان دی دا خما د قوم دصدقې مال دې. بیا ئې حکم اوکړو چه د صدقې د اوښانو نښې په دوی باندې اوکړئی او دې سره داهم یو ځائې کړئی. بیا ئې خما لاس اونیولو او څه ئې د ام المومنین ام سلمی ﵂ کور ته بوتلم او وې فرمائیل چه څه دخوراك شته دې؟ جواب ملاؤ شو چه آؤ. نو لوئې لګن کښې روټئ راوړې شوه، ما او حضور نبی کریم ﷺ اوخوړه. ما یو طرف اوبل طرفنه نمړئی اخستې. نو حضور نبی کریم ﷺ خما لاس اونیولو او وې فرمائیل چه ا ئې عکراش دا یو قسم خوراك دې یو طرفنه خوراك کوه. بیا یو سینئ تالئ دکهجورو یا د خوشکو کهجورو راوړې شوه. نو ما بیا خپلې مخې نه خوراك شروع کړو. خو حضور نبی کریم ﷺ به چه کوم ځائې نه خوښ وو هغه ځائې نه به ئې خوراك کولو. اوماته ئې اوفرمائیل چه ائې عکراش دې کښې هر قسمه کهجورې دی چه د کوم ځائې نه خوراك کوې نو خوره او بیا اوبه راغلې نو حضور نبی کریم ﷺ خپل لاسونه مبارك اووینځل او هم هغه تر لاسونه ئې په خپل مخ مبارك اودواړو لاسونو مبارکو راښکل او بیا ئې په سرمبارك درې ځل راښکل او بیا ئې اوفرمائیل چه ائې عکراش دا اودس دې دهغه څیز نه چه دا اوور متغیر کړې وی (۱) (ترمذی ابن ماجه ) امام ترمذی دې ته غریب وائی.

**د یو صحابیه خوب :**مسنداحمد کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ ته خوب خوښ وو.اکثر به حضور نبی کریم ﷺ تپوس کولو چه چا څه کتلې دې که نه؟ که چا به ذکر کړو نو حضور نبی کریم ﷺ به د هغه خوب نه ډیر خوشحاله شو چه کوم به حضور نبی کریم ﷺ ته ښه معلوم شو. یو ځل یو ښځه حضور نبی کریم ﷺ ته راغله او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ ما نن یو خوب لیدلې دې چه ماته څوك راغلل اوځه ئې مدینې نه بوتلم اوجنت ته اوورسولم. بیا ما د دهماکې یو آواز واریدو چه دې سره جنت کښې شور شو،ما چه کله نظر اوکړو فلانې بن فلانې مې اولیدو،ددولسو کسانو نومونه ئې واخستل، او هم ددې دولسوکسانو یو لښکر حضور نبی کریم ﷺ په مهم روان کړې وو، فرمائی چه هغوئ راوستې شو. دوی د اطلس کپړې اغوستې وې او دوی ډیر خوشحاله شو اوحکم اوشو چه دوی نهر بیدخ ته بوځئ بیا ئې

(۱)ترمذی کتاب الاطعمة باب ماجاء فی التسمیة علی طعام : ۱۸۴۸، ابن ماجه: ۳۲۷۴.:

نهر بیذخ اوونیلو، هرکله چه دې خلقو هغه نهر کښې اولامبل نو ددوی ځهرې لکه د څوارلسمې سپوږمۍ په شان پرقیدلې،بیا د سرو زرو یوسینۍ کښې ګدری کهجورې راوړې شوې او هغوئ په خپله خوښه بنه اوخوړلې.اودې سره هر قسمه میوې هم وې. اوچه کومه میوه به ددوی زړه غوښته نو هغه به ئې خوړه. ما هم هغوئ سره شرکت اوکړو او هغه میوې مې اوخوړې. دې نه پس یوقاصد راغلواووې وئیل چه فلانې فلانې سړې چه تاسو لښکر کښې لیږلې ووهغه شهیدشو.دا بالکل دا دولس سړی دې بی بی صاحبې په خوب کښې لیدلی وو. نو حضور نبی کریم ﷺ بیا دا نیکه بخته بی بی راوغوښته او ورته اوونیل چه خپل خوب بیا بیانکړه. دې بیا بیان کړو او هم ددې خلقو نومونه ئې وا خستل چه کوم قاصد بیان کړی وو(¹)طبرانی وائ چه جنتی کومه یوه میوه راوشوکوی نو هغه ځائې به ددې پشان بله میوه اوشی (²). مسند احمد کښې دی چه جنتی مارغان د بختی اوښ برابر دی چه په جنت کښې څرېږي.ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ ! چه دا مارغان خو به ډیر مزو کښې وی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې خوړونکی به ددې نه زیات مزو کښې وی. درې ځل حضور نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیل،بیا ئې ما ته اوفرمائیل چه خما دالله ﷻ نه امیددې چه انې ابوبکر رضی الله عنه ! ته به دهغه خلقو نه ئې چه کوم ددې مارغانو غوښه خوری (³)

طوبی څه څیز دې :د حافظ ابو عبدالله مقدسی رحمه الله په کتاب صفة الجنة کښې دی چه د حضور نبی کریم ﷺ مخکښې د طوبی ذکراوشو نو حضور نبی کریم ﷺ ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه تاته معلوم دی چه طوبی څه څیز دې؟ نو هغوئ جواب ورکړو چه الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ته ښه معلوم دی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا جنت کښې یو ونه ده چه دهغې د پلن والی علم د الله ﷻ نه سوا بل چاته نشته دې. ددې دیو یو ښاخ لاندې یو تیز سوار اویا کاله تلئ شی او بیا به هم ددې سیورنی نه ختمیږی. ددې پاڼړئ غټې او پلنې پلنې دی،او په دې د بختی اوښ هومره برابر مارغان راځی او کینی. نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمائیل چه بیا خو به دا مارغان ډیر نعمتونو والا وی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې نه زیات نعمتونووالا به خوړونکی وی. اوانشاء الله ته به هم د هغوئ نه ئې. قتاده رحمه الله نه همدا روستئ حصه مروی ده. ابن ابی دنیا کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ نه د کوثر بارهٔ کښې تپوس اوشو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه یو جنتی نهر دې چه الله ﷻ ماته راکړې دې. د پینو نه زیات سپین او شاتو نه زیاتې خوږې ددې اوبه دی. ددې غاړې ته د بختی اوښانو د څټونو په شان مارغان دی. عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی چه هغه مارغان ډیر مزو کښې دی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغې خوړونکی ددې نه زیات مزو کښې دې (⁴) (ترمذی) امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی.

قوله تعالی:- وَلَحۡمِ طَيۡرٖ مِّمَّا يَشۡتَهُونَ

جنتی مارغان ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول اکرم ﷺ فرمائی چه په جنت کښې مارغه دې چه د هغې اویا زره وزرې دی. دا به دجنتی دسترخوان ته راشی او هر وزر نه به ئې یو یو قسم راوزی او دا د پینو نه زیات سپین او کوچو نه زیات نرم او شاتو نه زیات خوږه دې. بیا به دویم وزر نه دویم قسم راوزی،دا به هر یو وزر نه جدا جدا ،بیا هغه مرغئ والوزی. دا حدیث مبارك ډیر غریب دې (⁵) او ددې

[1] احمد: ۱۳۵/۳. وسنده صحیح .
[2] طبرانی : ۱٤٤۹،
[3] احمد: ۲۲۱/۳. وسنده حسن للشاهد .
[4] ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة طیر الجنة: ۲٥٤۲. وسنده حسن. النسائی : فی الکبری : ۱۱۷۰۳. احمد : ۲۲۰/۳
[5] صفة الجنة لابی نعیم : ۳٤۰.

راوي وصافي او دده استاد دواړه ضعيف دي. ابن ابي حاتم كښې كعب ﷺ نه مروي دي چه جنتي مارغان به لكه دبختي اوښ پشان وي چه دجنت ميوې خوري او دجنت د نهرونو اوبه څكي. د جنتيانو زړه چه كوم يو څيز ته اوشي نو هغه به دده مخې ته راشي نو دې چه څومره غواړي اود كوم خائي نه غواړي غوښه به خوښه كړي او هغه به اوخوري، بيا هغه مرغۍ والوزي، او چه څنګه وه هغه شان به شي. عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چه دجنت كوم يومارغه ته غواړي نو هغه به تاته وريت شوې راشي[1]

**قوله تعالى:- وَحُوْرٌ عِيْنٌ**

**د حور عين لفظ:**-دحور بل قرات د راء زير سره دې. پيش سره خو مطلب دادې چه حورې به وي او زير سره مطلب دادې چه ګويا دمخكښې اعراب ماتحتۍ كښې دا اعراب هم دي. لكه ﴿وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ﴾ كښې دزير قرات دې اولكه ﴿عٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُنْدُسٍ خُضْرٌ وَّاِسْتَبْرَقٌ﴾ كښې. اودا معنى هم كيدې شي چه غلمانو سره به حورې هم وي. خودا به ددوي محلونو او خيمو كښې وي عام به نه وي. والله اعلم. دا حورې به داسې وي لكه ښه تازه صفا سپين موتي وي. لكه سورة صافات كښې دي چه ﴿كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ﴾ سورة رحمان كښې دا لفظ هم تفسير سره تير شوې دې. دا ددوي د عملونو صله او بدله ده يعنى دا تحفې ددوي د ښه كارونو په بدله اوانعام كښې دي. دوي به جنت كښې لغوه او بې معنا او خلاف طبع كلمات نه آوري.

**قوله تعالى:- لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا**

**جنت دبيهوده خبرو نه پاك دې:** ددوي غوږونه به دبدئي او حقارت يو لفظ هم نه آوري. لكه چه يو بل آيت مبارك كښې دي چه ﴿لَا تَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً﴾ فضول خبرو نه به دوي غوږونه محفوظ وي. اونه به څه قبيح كلام آوري. خود سلامتيا نه ډك كلمې به يو بل ته واني. لك بل خائې كښې ارشاد دې چه ﴿وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ﴾ ددوي خپلو تحفه به يو بل ته سلام ونيل وي. ددوي خبرې به لغو او ګناه نه پاكې وي.

| فِيْ سِدْرٍ | مَا اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ | وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ |
|---|---|---|
| هغوئ به په بيرو | څومره ښه نصيبي دي ښى لاس والا | او ملګرى دښى لاس |
| او د ښى طرف خاوندان څومره ښه خلق دي | هلته بهٔ او سيږى چې بې ازغو | |

| وَّظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ | وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ | مَّخْضُوْدٍ |
|---|---|---|
| او په سورو اوږدو كښې به وي | او په كيلو قط په قط كښې به وي | بې ازغو كښې وي |
| او اوږده اوږده سيورى به وي | او قط په قط كيلې به وي | بيرې به په كښې وي |

| لَّا مَقْطُوْعَةٍ | وَّفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ | وَّمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ |
|---|---|---|
| چې نهٔ به ختميدونكې وي | او په ميوۀ ډيرو كښې به وي | او په اوبو جاريو كښې به وي |
| نه بهٔ ختميږى | اوډيرې ډيرې ميوې به وي | اوبهيدونكې اوبه بهٔ وى |

| اِنَّآ اَنْشَاْنٰهُنَّ | وَّفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ | وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ |
|---|---|---|
| چې مونږبه پيدا كړيبياني د هغوئ | او په فرشونو اوچتو كښې به وي ايښكه | او نهٔ به پكښې څه منع وي |
| مونږ دهغې خائې ښځې ډيرې ښې روغې | او اوچت اوچت فرشونه بهٔ وي | اونه بهٔ پرې باندې څهٔ بنديز وي |

---

[1] صفة الجنة لابي نعيم : ٣٤٠..

إِنْشَآءً ۝ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ۝ عُرُبًا أَتْرَابًا ۝

به نوز پیدا کولو سره | او جوړې به کړو مونږ هغوئ | نوې پیغلې جونې | ع سانې | همزولې
کړی دی | داسې مو جوړې کړی دی | چې همیشه به پیغلې وی | محبوبې ی | همخولې به وی

لِّأَصْحٰبِ الْيَمِينِ ۝ ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْاٰخِرِينَ ۝

دپاره دملګرو دښی لاس الويه ډله به وی | داولنو خلقو نه | او لويه ډله به وی | دروستنو خلقو نه
دښی طرف د خاوانود پاره | په دوئ کښې به ډیر دپخوانو خلقونه وی | او ډیر به د روستنو خلقو نه وی

قوله تعالى:- وَأَصْحٰبُ الْيَمِينِ ۙ مَآ أَصْحٰبُ الْيَمِينِ ۝

**دنیکوحال** :دسابقینو حال بیانولو نه پس اوس الله ﷻ د ابرارو بیان فرمانی. اودوی دسابقینو نه کم مرتبه کښې دی.اوځه نتیجه چه ده هغه واورئی.دا په هغه جنتیانو کښې دی چه په کوم ځانې کښې د بیرې ونې دی خو ازغی دارې نه دی.او میوې ډیرې زیاتې او بهترینې دی،دنیا کښې د بیرې ونې زیاترد ازغو والا وی او میوې پکښې کمې وی،د جنت دا ونې زیاتې میوه دارې او بالکل بـه د ازغو نه پاکې وی.د میوو د بوج نه به ونې زوړند وی.

**جنتی ونې** : حافظ ابوبکر احمد بن سلمان نجاد رحمه الله نه یو روایت کښې وارد دی چه صحابه کرام رضي الله عنهم وانې چه اعرابیان نبی اکرم ﷺ ته مخامخ راتلل او دمسئلو تپوسونه به ئې کول به مونږ ته ډیره فائده راکوله. یو ځل یو اعرابی راغلواو حضور نبی کریم ﷺ ته ئې اوونیل چه یارسو الله ﷺ ! قران پاك کښې دیو داسې ونې ذکر هم دې چه کومه تکلیف ورکوی،حضور نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه هغه کومه ده؟ هغه اوونیل چه بیرې ونه. حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه بیا خو به تادې سره چه د ﴿مَّخْضُودٍ﴾ لفظ نه وی لوستې؟ ددې ازغی الله ﷻ لرې کړی دی. اوددې په ځانې ئې دې کښې میوې پیدا کړی دی. هره بیره کښې به بهترین قسم ذائقې وی. اوددې رنګ او ذائقه به مختلفې وی. دا روایت نورو کتابونو هم موجود دی[1]. په هغې لفظ کښې ﴿طَلْحٍ﴾ دې اود اویا ذائقو بیان دې. ﴿طَلْحٍ﴾ یو لویه ونه ده چه د حجاز په زمکه باندې کیږی. دا ازغی داره ونه ده. دې کښې ازغی ډیر زیات وی.

ابن جریر کښې ددې شهادت د عربی یو شعر نه هم شوې دې.د ﴿مَّنضُودٍ﴾ معنی قت په قت میوې،میوو نه ډك. ددې دوارو ذکر په دې و چه اوشو چه عربو به ددې ونو لوئې سیوری خوښول. اګر چه دا ونه به ددنیا د ونې په شان وی خو د ازغو په ځانې به دې کښې خوږې میوې وی. جوهری رحمه الله فرمانی چه ﴿ طَلْحٍ ﴾هم وانې او طلع هم. علی رضي الله عنه نه هم دا مروی دی. نو ممکن دی چه د هم د بیرې صفت وی یعنی هغه بیرې به بې ازغی وی او دې کښې به ډیرې میوې وی. والله اعلم. نورو حضراتو د ﴿طَلْحٍ ﴾ نه مراد د کیلې ونه ده. یمن والا کیلې ته طلح وانی. اواهل حجاز ورته موز. ددې به لوئې لوئې سیوری وی.

صحیح بخاری کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه د جنت دسیوری والا ونې لاندې یو سور سل کاله مزل کولې شی خودابه ختم نشی،که تاسو غواړئی نو دا آیت مبارك اووانې. مسلم کښې هم د روایت مبارك موجود دې [2] اومسند احمد کښې هم او ابویعلی کښې هم مسند او د حدیث شك سره دې. یعنی اویا یا سل. اوداهم دی چه داشجر الخلد دې [3]ابن جریر او ترمذی کښې هم دا حدیث

---

[1] حاکم : ۴۷۶/۲.
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الواقعة باب قوله : (( وظل ممدود)) : ۴۸۸۱، صحیح مسلم : ۲۸۲۶. احمد: ۴۱۸/۴.
[3] احمد: ۴۵۵/۲،

مبارك دې نو دا حديث مبارك متواتر او قطعـا صحيح دې. ددې اسناد ډير دی اوددې راوی ثقه دی،ابن ابي حاتم وغيره هم دا حديث مبارك نقل كړي دي.
ابوهريره رضي الله عنه چه كله دا روايت بيان كړو اود كعب رحمه الله غوږونو ته اورسيدو نو دوی اوفرمائيل چه په الله ﷻ قسم چه هغه تورات په موسى عليه السلام او قران په حضور نبى كريم ﷺ باندې نازل كړې دې كه يو سړې په خوانه اوښه باندې سور وی او ترهغه وخته پورې روان وی چه تر كومې دا بوډئى شوې نه وی او پريوزی نو بيا هم ددې انتها ته نه شی رسيدې. الله ﷻ دا په خپل لاس نال كړې ده. او دې كښې نې پخپله روح پوكولې دې. ددې ښاخونه د جنت ديوالو نه بهر وتلی دی. دجنت ټول نهرونه هم ددې ونې د جرړې نه راوزی. ابوحصين وائى چه يو موضع كښې په يودروازه مونږ وو او مونږ سره ابوصالح او شقيق جهنى هم وو،ابو صالح دابوهريره رضي الله عنه والا پورتنى حديث مبارك بيان كړواو وې ونيل چه آيا ته ابوهريره رضي الله عنه په دروغه ګڼړې؟ هغه اوونيل چه نه،هغه نه تا. نو دا په قاريانو ډير ښه اونه لګيدل خه خو وايم چه دا ثابت صحيح او مرفوع حديث مبارك چه څوك په دروغه ګڼړی هغه په غلطه دې. ترمذی شريف كښې دی چه دجنت د هرې ونې تنه د سرو زرو ده.
قوله تعالى:- وَظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ
دجنت سوری -حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه جنت كښې يو ونه ده چه دهغې هر طرفته د سلو كالو مزل دې. جنتيان به ددې لاندې كينى او خپلو كښې به خبرې كوی. هر كله چه چاته ددنيا تماشې او آوازونه راپه يادشي نو هم په هغه وخت كښې به يو جنتى هوا راشى او ددې ونې نه به ټول راګونه او باجې اوتماشې او آوازونه شروع شی. دا اثر غريب دې. اوددې سند قوی دې. عمرو ابن ميمون رحمه الله فرمائى چه داسيورئى د اوياو كالوپه مسافت وی. داسيورئى نه ختميږی او نه په دې نمر رازی او نه ددې نه ګرمی رازی،لكه چه د سبا راختلو نه مخكښې فضا وی دغه شان ددې لاندې وی. ابن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه جنت كښې به هميشه هغه وخت وی لكه څنګه چه د صبا صادق نه تر نمر راختلو پورې وی.دسيورى دمضمون روايتونه هم ددې نه مخكښې تير شوی دی.لكه﴿وَّنُدۡخِلُهُمۡ ظِلًّا ظَلِيۡلًا﴾ او﴿اُكُلُهَا دَآئِمٌ وَّظِلُّهَا﴾ او﴿ فِيۡ ظِلٰلٍ وَّعُيُوۡنٍ﴾ وغيره. اوبه وی روانې خو د نهرونو كندې او كنلې شوې زمكه به نه وی. ددې پورا تفسير په ﴿ فِيۡهَاۤ اَنۡهٰرٌ مِّنۡ مَّآءٍ غَيۡرِ اٰسِنٍ﴾ كښې تير شوې دې. دوی سره رنګ به رنګ په مزيدارې ميوې وی اودا نه يو سترګې ليدلې دی او نه يو غوږ ددې باره كښې آوريدلی دی او نه د انسان زړه كښې ددې خيال هم تير شوې دې،لكه څنګه چه بل آيت مبارك كښې دی چه كله هلته ميوو سره روزی وركولې شی نو وائى چه دا خو مونږ ته مخكښې هم راكړې شوې دې څكه چه دا به بالكل هم شكل وی. خو هركله چه دوی دا اوخوری نو ددې ذائقه به بدله اومومی. بخاری او مسلم كښې دسدرة المنتهى ذكر كښې دی چه ددې پاڼې به د هاتى د غوږونو هومره وی او ميوې به ئې دهجر د غټو غټو منګو په شان وی (١). دابن عباس رضي الله عنهما دې حديث مبارك كښې چه په هغې كښې د نمر د تندر نيولو او د حضور نبى كريم ﷺ د نمر د تندر نيولو دمونځ د واقعې ذكر تفصيل سره بيان شوی دې،هغې كښې دا هم دی چه د فراغت نه پس دوی چه كوم ملګرى وو هغوئ تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ ا مونږ تاسو اوليدئى چه تاسو دې ځائې مخكښې كيدئى اوروستو كيدئى،د اڅه خبره وه؟ نو حضور نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ما جنت اوليدو او دجنت دميوې غنچه مې اخستل غوښتل،خو كه ما اخيستې وې نو دا به باقى دنيا پورې وې او تاسو به هغه خوړه. (٢) ابويعلى كښې دی چه د ماسپخين مونځ كښې حضور

---

١) صحيح بخاری كتاب مناقب الانصار باب المعراج : ٣٨٨٧، صحيح مسلم: ١٦٢ ابن حبان: ٧٤١٥.
٢)صحيح بخاری كتاب الكسوف باب صلاة الكسوف جماة : ١٠٥٢. صحيح مسلم: ٩٠٧، ابوداود: ١١٨٩.

نبی کریم ﷺ مخکښې شو او مونږ هم. بیا لکه چه حضور نبی کریم ﷺ څه ځیز اخستو. بیا روستو شو. هرکله چه دمونځ نه فارغ شو نو ابی بن کعب رضی الله عنه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ا نن خوتاسو داسې خبره اوکړ چه ددې نه مخکښې موکله نه وه کړې. نو حضور نبی کریم ﷺ فرمانی چه ماته مخې ته جنت راوړې شو او چه څه دې کښې میوې وې او شینکې وو هغې نه ما دانګورو یو غنچه اخستل غوښتل چه تاسو ته نې درکړم نو څما اودهغې مینځ کښې پرده حائل کړې شوه. اوکه ما هغه راشکولې وې نو د زمکې او آسمان ترمینځه چه څومره مخلوقات دی هغوئ به خوره اودا به نه ختمیده. ددې په شان دجابر رضی الله عنه صحیح مسلم کښې هم مروی دی [۱]. مسند احمد کښې دی چه یو اعرابی راغلو ا و حضور نبی کریم ﷺ نه د حوض کوثر باره کښې سوال اوکړو او دجنت ذکر ئې هم اوکړو. تپوس ئې اوکړو چه آیا دې کښې میوې هم شته دی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه آؤ دې کښې طوبی نومې ونه هم ده،اوبیا ئې څه اونیل خو ماته هغه یاد نه دی. بیا ئې تپوس اوکړو چه هغه ونه څمونږ دزمکې کومې ونې سره مشابه ده؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه ستاسو په زمکه کښې هیڅ یو ونه دهغې مشابه نشته. آیا ته شام کښې ته تلې ئې؟ شام کښې یو ونه وی چه هغې ته جوزه وانی،دهغې یو تنه وی او دهغې پورتنئ حصه خوره شوې وی. هغه لا البته دهغې مشابه ده. هغه تپوس اوکړو چه جنتی غنچې څومره غټې دی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه یو تورمارغه یو میاشتې پورې الوزی دومره غټې. نو هغه اوونیل چه ددې ونې تنه به څومره وی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه ته د خپلې اوښې بچې پریږدې او هغه غټیږی او تردې چه بوډا شی او پریوزی نوبیا به هم ددې نه چکر پورا نکړې شی. هغه تپوس اوکړو چه دې کښې انګور هم وی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه آؤ. تپوس ئې اوکړو څومره؟ نو حضور نبی کریم ﷺ جواب کښې اوفرمانیل چه کله ستا پلار خپلې رمې نه یو نبه څریه چیلئ ذبح کړې ده اودهغې نه ئې څرمن ویستلې او ستا مور ته ئې ورکړې ده چه دې نه ډول جوړ کړه؟ هغه اوونیل چه آؤ. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه بس دومره غټې د انګورو دانې به وی. بیا هغه اوونیل چه دا خوبه یو دانه مالره او څما کورنئ له کافی وی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمانیل بلکه ستا ټول خاندان لره [۲] اودا میوې به همیشه وی او هیڅکله به نه ختمیږی. اونه به ددې نه منع وی. او دا نه چه یخنی دې وی او ګرمئ کښې دې نه وی،یا ګرمو کښې شته دې او یخنو کښې نشته دې،بلکه دا میوې دوام والا او همیشه والا دی. چه کله ئې هم اوغواړی نو ورته به ملاویږی به دالله ﷺ قدرت سره،اونه به دې کښې څه ازغې وی او نه به په کښې د څه ښاخ آړ وی او نه به لرې وی او نه به ددې حاصلولو کښې څه تکلیف وی. بلکه یو طرفته چه کله دې میوه اوشوکوی نوبل طرفته ددې پشان بله میوه اوشی لکه څنګه چه دې نه مخکښې حدیث مبارک کښې تیر شوی دی. ددې فرشونه به اوچت او نرم او ګدئی به آرام او راحت والا وی،حضور نبی کریم ﷺ فرمانی چه ددې اوچت والئ به دومره وی چه څومره د زمکې اوآسمان دې یعنی پنځه سوه کاله (ترمذی) دا حدیث مبارك غریب دی.

بعضو اهل معانی ونیلی دی چه مطلب ددې حدیث مبارك دادې چه د فرش اوچتوالئ د آسمان او زمکې برابر دې. یعنی یو درجه د بلې درجې نه دومره اوچته ده. دهرو دوؤ درجو مینځ د پنځوو سوؤ کالو مسافت دې [۳] بیا د اهم خیال ساتنې چه دا روایت د رشدین بن سعد نه مروی دې اوهغه ضعیف دې.دا روایت ابن جریر او ابن ابی حاتم وغیره کښې هم دې.حسن رحمه الله نه مروی دی چه دهغې اوچتوالئ

[۱] صحیح مسلم کتاب الکسوف باب ما عرض النبی ﷺ فی صلاة الکسوف : ۹۰۴.
[۲] احمد: ۱۸۳/۴ ،
[۳] ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة الواقعه : ۳۲۹۴.

د اتیاؤ کالو دي. دې نه پس نې ضمیر راوړې دې چه دهغې مرجع مخکښې مذکور نه ده په دې وجه قرینه موجود ده. دبسترې ذکر راغلې دې چه په هغې به د جنتیانو بیبیانې موجود وی. نو دې طرفته نې ضمیر راوړې دې. لکه دسلیمان علیه السلام ذکر کښې د توارت لفظ راغلې دې، دشمس لفظ ددې نه مخکښې نه دې نو قرینه کافي ده. خو ابوعبیده وائی چه مخکښې ذکر ... ی دی (۱). ﴿حُورٌ عِينٌ﴾.

**قوله تعالی:- فَجَعَلْنٰهُنَّ اَبْكَارًا ۝ عُرُبًا اَتْرَابًا ۝**

**دجنت حورې :** نو فرمائی چه مونږ ددوی بیبیانو لره نوی پیدائش سره پیدا کړی دی. دې نه پس چه هغه بالکل بوډئی وې مونږ هغه بیا ځوانې کړو او یو خاص پیدائش سره مو پیدا کړې. او هغوئ د خپل ظرافت، ملاحت، حسن صورت، جسامت، ښه اخلاقو، او حلاوت خپلو خاوندانو ته ډیر خوښې دی.

بعضې وائی چه عربا وائی چه ناز او نعم والا (۲) یو حدیث مبارك کښې دی چه دا هغه ښځې دی چه کومې دنیا کښې بوډئی وې او ا وس جنت کښې داخلې شوې نو ا وس اګر چه دا ښځې پیغلې وې او که ثیبه وی، الله ﷻ به ټولې داسې کړی. یو بوډئی ښځه د حضور نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضره وه او وائ چه یارسول الله ﷺ ما لره دعا اوکړئی چه الله ﷻ ماهم جنت کښې داخله کړی. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې ام فلانئ ! جنت کښې به هیڅ بوډئی نه وی. نو هغه واپس په ژړه لاړه. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه لاړشئ او هغه پوهه کړئی. مطلب دادې چه کله هغوئ جنت کښې وی نو بوډئی به نه وی، الله ﷻ فرمائی چه مونږ به دوی نوی پیدائش سره پیدا اکړواوبیا به نې باکره کړو ( شمائل ترمذي وغیره). (۳)

**د جنت باره کښې د ام سلمه رضی الله عنها تپوسونه او د نبی کریم ﷺ جوابونه:-** طبرانی کښې دی چه ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چه ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! ماته دحورعین باره کښې اوفرمائې. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه سپینې دی او غټو غټو سترګو والا دی، تکو توروالویو وینتو والا دی لکه ګده بازوزر. ما اوونیل چه ماته لؤلؤ مکنون باره کښې اوفرمائې. نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغوئ صفائی او رنګ دهغه موتی په شان دې چه د سیپئ نه نوې نوې راوتلې وی. لکه په هغې د چا لاس نه وی لګیدلې. ما اوونیل چه خیرات حسان څه دی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ښه اخلاقو والا او ښکلې. ماونیل چه ﴿ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ ۝ ﴾ نه څه مراد دی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دهغوئ دنزاکت او نرمی به دانډې هغه جلئ په شان وی چه دکومه دې کښې دننه وی. ما د ﴿عُرُبًا اَتْرَابًا﴾ باره کښې تپوس اوکړو نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې نه مراد د دنیا جنتی ښځې دی چه کومې بوډئی وې. الله ﷻ به دوی لره بیا په نوری شکل سره پیدا کړی او پیغلې اود خاوندانو خوښې او خاوندانو سره عشق لرلو والا اوهم عمر جوړې کړې وی. ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! ددنیا ښځې افضل دی اوکه حورعین؟ وې فرمائیل چه ددنیا ښځې حور عین نه ډیرې افضل دې. لکه استر نه ابرا ښه وی. نو ما اوونیل چه ددې افضیلت څه دې؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مونځ، روژو او دالله ﷻ عبادتونه. الله ﷻ ددوی مخونه د نور نه اوددوی جسمونه د ریښمو نه ښکلې کړې دی. سپین ریښم، او زیړ ریښم، او شین ریښم، او زیړ دسرو کالی بخوردان موتی د سرو ږمنځې، دا به وائی چه:

| | |
|---|---|
| نحن الخالدات فلا نموت ابدا | ونحن الناعمات فلا نباس ابدا |
| ونحن المقیمات فلا نظعن ابدا | ونحن الراضیات فلا نسخط ابدا |

(۱) الطبری : ۱۱۸/۲۳.
(۲) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة الواقعه : ۳۲۹۴. الطبری : ۱۱۹/۲۳.
(۳) الشمائل :ح/۲۳۹.

طوبى لمن كناله وكان لنا

ترجمه: مونږ همیشه اوسیدونکې یو او هیڅکله به نه مرو. مونږ ناز او نعمت والا یو او هیڅ کله به مفلس او بې نعمته کیږو نه، مونږ اقامت کولو والا یو او هیڅکله به په سفر نه خو. مونږ دخپلو خاوندانو نه لره خوشحاله کولو والا یو او هیڅکله به خفه کیږو نه، خوش نصیبه دی هغه خلق چه هغوئ دپاره مونږ یو او خوش نصیبه یو مونږ چه هغوئ زمونږدپاره دی. ما تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ! دبعضو ښځو خو دوه دوه، درې درې او څلور څلور خاوندان وی، او دې نه پس دوی مړې شی. مرګ نه پس که دوی جنت ته لاړې او ټول خاوندان ئې هم لاړل نودا به چاته ملاویږی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دې ته به اختیار ورکړې شی چه دا چاسره تلل غواړی نو ځی به. نودا به هغوئ هغه څوك خوښوی چه د چا دې سره سلوك ښه وو. الله ﷻ نه به سوال کوی چه انې پروردګار! ده ما سره ډیر ښه سلوك کولو په دې وجه ما ده ته نکاح کښې ورکړه. انې ام سلمه! حسن خلق ددنیا او آخرت دپاره دې.[1] دصور مشهور مطول حدیث مبارك دې چه حضور نبی کریم ﷺ به دټولو مسلمانانو جنت ته دتلو سفارش کوی، نو پدې به الله ﷻ فرمائی چه ما ستا سفارش قبول کړو او تاسو ته دا اجازت درکړو چه دوی جنت ته بوځه. حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیا به څه دوی جنت ته بوځم. په الله ﷻ قسم! چه تاسو څومره دخپلو بیبیانو او کور نه واقف یئ نو ددې نه زیات اهل جنت د خپل کوراو بیبیانونه واقف وی. نو یو جنتی به دوه اویا بیبیانې وی اودا الله ﷻ جوړې کړې دی. او دوه دوه ښځې بیبیانې به د ښځو نه وی اوهغوئ ته به دخپل عبادت په وجه په ټولو ښځو فضیلت حاصل وی. جنتی به دوی کښې یو ته ورشی، دا به هغه بالاخانه کښې وی چه هغه د یاقوتو نه جوړه شوې وی او په هغه پالنګ کښې به وی چه د سرو زرو تارونو نه جوړ شوې وی. دې به اویا جوړې اغوستې وی اودا به دباریکو شنو ریشمو رینبمو نه جوړ وی. د ا ښځې به دومره نازکه وی چه ددې په ملا لاس کیږدی نو سینې طرفته به دا لیدې شی اودا به ورته صفا په نظر رازی. کپړې او هډوکی هیڅ یو څیز به دا نه منع کوی. داشان به ددې جسم صفا او د آئینې په شان وی لکه څنګه چه مروارید کښې سورې اوکړې شی او دې رسئ واچوی اودا بل طرفته ښکاری نوداشان به ددې جسم په نظر رازی. داشان به ددې جنتی نورانی بدن وی. الغرض دې به دهغې آئینه وی او هغه به ددې. دې به هغې سره عیش وعشرت کښې مشغول وی. نه به دې ستړې کیږی اونه به هغه، نه به دده زړه مړیږی اونه به دهغې. هرکله چه دې نزدې شی نو پیغلتوب کښې به ئې مومی، نه به دهغې څه اندام سست وی او نه به یو بل ښه نه ګنړی، هلته به خاص اوبه نه وی چه دهغې نه بونی راشی. دوی به داشان مشغول وی چه آوازبه راشی چه دا مونږ ته معلوم ده چه نه ستا ددې نه او نه ددې ستا نه زړه مړیږی خو ستا نورې بیبیانې هم دی. نو بیا دې یو یو ته ورته ورځی او چه چاته هم ورشی او هغه اووینی نو بې ساخته به دده دزړه اوځی چه په الله قسم! جنت کښې ستا نه بهتر څیز بل نشته دې. او نه څما ستا نه چا سره زیات محبت دې.[2]

**جنت کښې جماع شته کنه:** ابوهریره رضی الله عنه حضور نبی کریم ﷺ نه تپوس کوې چه یارسول الله ﷺ! چه آیا جنت کښې به جنتیان جماع کوی؟ نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو. په الله ﷻ قسم چه دهغه قبضه کښې څما روح دې په ښه شان او په ښه طریقه. اوکله چه دهغې نه راپورته شی نو هغه به بیا ښه پاکه صفا پیغله به جوړه شی. حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه مومن ته به جنت کښې ددومره ښځو دپاره طاقت ورکړې شوې وی.[3] انس رضی الله عنه تپوس کوی چه یارسول الله ﷺ! آیاده کښې به دومره طاقت وی؟ نو

[1] الطبرى : ۱۹۳۱۳،
[2] البعث للبيهقى : ٦٦٩،.
[3] عبدالله بن وهب وسنده حسن .

حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ده کښې به د سلو سړو طاقت وی[1] د طبراني یو حدیث مبارك کښې دی چه دې به یو ورځ کښې سلو پیغلو ته ورځی [2]. حافظ عبدالله مقدسی رحمه الله فرمائی چه څما په نزد د حدیث په شرط د صحیح باندې صحیح دې. والله اعلم.

ابن عباس رضی الله عنه دعربا تفسیر کښې فرمائی چه دوی به د خپلو خاوندانو محبوبې وی. دوی د خپلو خاوندانو عاشقې او خاوندان به ددوی عاشقان وی. عکرمه رحمه الله نه مروی دی چه ددې معنی ناز او کرشمه والا ده. او یو سند سره مروی دی چه ددې معنی نزاکت دې. تمیم بن حذلم وائی چه عربا هغې ښځو ته وائی چه خپل خاوند خپل موټی کښې ساتی. زید بن اسلم وغیره نه مروی دی چه دې نه مراد خوش کلامی ده،خپلو خبرو سره به دخپلو خاوندانو زړه راښکونکې وی. هرکله چه څه اووائی نو معلومیږی چه ددوی دخودلو نه ګلونه رژیږی او نور ترې وریږی. ابن ابی حاتم کښې دی چه دا دعرب نه اخیستې شوې دې چه ددوی خبرې اترې به عربئی کښې وی [3]. داتراب معنی کښې دی،هم عمر یعنی د ړې دیرش کالو.او بله معنی ده چه دخاوند طبیعت او خلق به بالکل یو شان وی. هغوئ به دوی نه خوشحاله او دوی به هغوئ نه خوشحاله وی. چه هغوئ نه خوښوی نو هغه به دوی نه خوښوی. دا معنی هم بیان شوې ده چه ددوی په خپلو کښې بغض کینه او خپل پردې اوحسد اوکینه نه وی. دوی ټول به خپلو کښې هم عمر وی چه بې تکلیفه یو بل سره ملاویږی. ترمذی شریف کښې یو حدیث مبارك کښې دی چه داجنتی حورې به یو ښکلی باغ کښې وی جمع شی او ډیر محبت اومینې سره دښکلې مرئی نه ښکلې سندرې وائی اودا به داسې سریلی وی چه داسې به مخلوق هیڅکله نه وی اوریدلې. ددوی سندرې به هغه وی چه کومې بیان شوې،ا بو یعلی کښې دی چه ددوی سندرو کښې به دا هم وی چه :

**نحن خیرات حسان خبئنا لازواج کرام**

**ترجمه** :-مونږ صفا او پاکې او خوش طبع ښځې یو چه د بزرګ او عزت والا خاوندانودپاره ساتلې شوی وو.[4] او یو روایت کښې دی چه دخیرات بدله کښې د جوار لفظ راغلې دې،بیا فرمائی چه اصحاب یمین دپاره پیدا کړې شوی دی او هم ددوی دپاره محفوظ او مصور کړې شوې وو. لیکن زیات ظاهر دادی چه دا متعلق دې د ﴿إِنَّا أَنشَأْنَاهُنَّ إِنشَاءً﴾ الخ. یعنی مونږ دوی دپاره جوړې کړې دی.

ابوسلیمان دارانی رحمه الله نه منقول دی چه ما یو شپه د تهجدو مونځ نه پس دعا شروع کړه او سخته یخنی وه او ډیر یخ وو. دیخنئ په وجه لاسونه نشو پورته کیدې نو په دې وجه ما په یولاس دعا اوغوښتله. او هم په دې حالت دعا غوښتلو غوښتلو کښې ما ته خوب کښې راغلو. خوب ما یو حوره اولیده چه ددې په شان ښکلئ نورانی شکل مه هیچرې نه وولیدلې،هغې اوونیل چه انې ابوسلیمان یو لاس سره دعا غوارې او دا خیال دې نه دې چه الله ﷻ پنځو سوؤ کالو راسې څه تالره په خپلو خاصو نعمتونو کښې پاللې یم. داهم کیدې شی چه دا لام متعلق د ﴿أَتْرَابًا﴾ وی یعنی ددوی هم عمر به وی لکه بخاری اومسلم وغیرد کښې یو حدیث کښې دی چه حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه اولنې جماعت چه کوم به جنت ته ځی دهغوئ څهرې به لکه د څوارلسمې سپوږمئ روښانه وی. اودوی نه پس والا جماعت څهرې به لکه د پرقیدونکی ستوری په شان وی. دا به د پاخانې ،متیاز او خړینګ وغیره نه پاکې وی. ددوی ږمنځې به دسرو وی او ددوی خولې به لکه د خوشبو داره مشکو وی. ددوی ګوتمې به

---

[1] ترمذی کتاب صفة الجنة باب ما جاء فی صفة جماع اهل الجنة : ٢٦٣٦، وهو حديث حسن .

[2] المعجم الاوسط للطبرانی : ٥٢٦٣۔

[3] داروایت منقطع یعنی ضعیف دې .

[4] ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی کلام الحور العین: ٢٥٦٤،

دلو لو وی. ددوی بیبیانې به حورعین وی. ددوی ټولو اخلاق دیوسړی په شان به وی. دا ټول به د خپل آدم علیه السلام پشان شپیته گزه اوږده وی (١). طبرانی کښې دی چه اهل جنت به بې ویښتو اوبې ږیرې سپین رنګي خوش اخلاقه او ښکلي سترګو والا ددرې دیرشو کالو عمر کښې شپیته ګزه اوږده وی او اووه لاسه پلن وی. ددې څه حصه ترمذی شریف کښې هم ده (٢). او یو حدیث مبارك کښې دی اګرچه ددوی مرګ په هر عمرکښې وی خو دوی به د درې دیرشوکالو عمر کښې جنت ته داخلیږی. اودې کښې به همیشه وی. همدا شان جهنمیان هم (٣) (ترمذی شریف) اوروایت کښې دی چه ددوی قدونه به د فرښتو د لاس اعتبار سره شپیته لاسه وی. د آدم علیه السلام قد، دیوسف علیه السلام حسن، دعیسی علیه السلام په پشان عمر یعنی درې دیرش کاله او ژبه به دمحمد عربی ﷺ یعنی عرب به وی، بې ویښتو به وی او تورو سترګو والا به وی. (ابن ابی دنیا).

جنتي لباس:- او یو روایت کښې دی چه دخول جنت سره به دوی ته به دجنتي ونې لباس ورکړې شی او هغه ځائې کښې به دوی ته کپړې ورکړې شی. ددوی کپړې به نه لمدېږی او نه به سخا کیږی او نه به زړیږی او نه به خیرنیږی او نه به ددوی خوانی ځی او نه به دوی نه فنا کیږی (٤). اصحاب یمین د مخکښو نه ډیر دی او روستو نه هم. ابن ابی دنیا کښې دی چه څما مخکښې ټول نبیان علیهم السلام لګه د تابعداره امت پیش شو، بعضې نبیان به تیریدل او بعضو نبیانو سره به یو جماعت وو او بعضو نبیانو سره به صرف درې کسان وو او بعضو سره به یو هم نه وو. راوی دحدیث مبارك قتاده رحمه الله دومره بیان اوکړو او بیا ئې دا آیت مبارك اولوستو چه ﴿أَلَيْسَ مِنكُمْ رَجُلٌ رَّشِيدٌ﴾ آیا تاسو کښې یو هم پوهیدوو الا نشته دې؟ ترډې چه موسی بن عمران علیه السلام تیر شو اوهغه سره دبنی اسرائیلو یو لوئې جماعت وو، ما تپوس اوکړو چه دا څوك دې؟ نو جواب ملاؤ شو چه دا ستا رور موسی بن عمران علیه السلام دې. اودوی سره ددوی تابعدار امتیان دی. نو ما تپوس اوکړو چه ائې الله ﷻ څما امت چرته دې؟ نو وې فرمائیل چه خپل ښی طرفته لاندې اوګوره. نو ما اوکتل او یو لوئې جماعت مې اولیدو چه دې کښې د ډیرو خلقو څهرې پرقیدې. بیا څما نه تپوس اوشو چه اووایه اوس خوشحاله ئې. ما اووئیل چه ائې الله ﷻ اوس خوشحاله یم. بیا حکم اوشو چه خپل ګس طرفته اوګوره ما چه اوکتل نو بې شمیره خلق وو، نوبیا څما نه تپوس اوشو چه اوس خوشحاله ئې؟ ما اووئیل چه آؤ ربه اوس راضی یم. اوفرمائیلې شو چه واوره دوی سره اویا زره خلق نور هم دی چه بغیرحساب نه به جنت ته داخلیږی. دې آوریدو سره عکاشه رضی الله عنه اودریدو اودا د قبیله بنواسد دمحصن خوې وو. دبدر جنګ کښې موجود وو. عرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ دعا اوکړئ چه الله ﷻ ما هم دوی نه اوګرزوی. حضور نبی کریم ﷺ دعا اوکړه. بیا یو بل سړې اودریدو او وې وئیل چه یارسول الله ﷺ! ما دپاره هم دعا اوکړئ. حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه عکاشه رضی الله عنه تاباندې سبقت اوموندو. بیا حضور نبی کریم ﷺ فرمائی چه ائې خلقو! تاسو باندې دې څما مورپلار قربان وی که تاسو نه کیدیشی نو تاسو هم د هغه اویاو زرو نه شئ چه کوم به بې حسابه جنت ته داخلیږی. ګنی کم از کم ښی طرف والو کښې خو شئ که نه. او که دا هم نشئ کولې نو د کنارو والا نه خو شئ کنه. ما اکثر خلق لیدلی دی چه خپل حال کښې به وی. بیا ئې ما ته اوفرمائیل چه څما امید دې چه جنت کښې به ستاسو څلورمه حصه وی. بیا مونږ تکبیر اووئیلو بیا حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څما امید دې چه تاسو نه دریمه حصه جنت کښې

---

١) صحیح بخاری کتاب احادیث انبیاء باب خلق آدم وذریته: ٣٣٢٧، صحیح مسلم: ٢٨٣٤.
٢) ترمذی کتاب صفة الجنت باب ماجاء فی سن اهل الجنة: ٢٥٤٥، وهو حدیث احمد: ٢/٢٩٥.
٣) ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء ما لادنی اهل الجنة من الکرامة: ٢٥٦٢. الزهد لابن المبارک: ٤٢٢.
٤) حلیة الاولیاء: ٣/٥٦.

وی، بیا مونږ تکبیر اوونیلو ،نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئی تاسو به جنت کښې نیم به نیمه یئ. مونږ بیا تکبیر اوونیلو او دې نه پس حضور نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك اوونیلو چه ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿۳۹﴾ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ﴾ اوس مونږ خپلو کښې مذاکره شروع کړه چه دا اویا زره به کوم خلق وی؟ بیا مونږ اوونیل چه هغه خلق چه هغوئ اسلام کښې پیدا شی اوشرك ئې نه وی کړې، نو حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل بلك دا به هغه خلق وی چه داغ نه لګوی او جادو نه کوی او فالونه نه ګوری، او خپل رب باندې بهروسه کوی.(١) دا حدیث مبارك ډیرو سندونوسره

| | | |
|---|---|---|
| وَأَصْحٰبُ الشِّمَالِ ﴿۴۱﴾ | مَآ أَصْحٰبُ الشِّمَالِ ﴿۴۱﴾ | فِي سَمُومٍ |
| او دګس طرف خلق | څه بدنصیبی ده دګس طرف دخلقو | په ګرمو هواګانو کښې به وی |

اوڅوک چې دګس اړخ خاوندان وی(هائې هائې) دګس اړخ خاوندان څومره خراب خلق دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَحَمِيمٍ ﴿۴۲﴾ | وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ ﴿۴۳﴾ | لَّا بَارِدٍ | وَلَا كَرِيمٍ ﴿۴۴﴾ |
| اوپه ګرمو اوبو کښې به وی | اوپه سوری دتورلوګی کښې به وی | چې نۀ به یخ وی | اونۀ به ارام ورکونکې وی |

په ګرمو بادونواو په ویشیدلو اوبو کښې اودتک تور لوګی په سیوری کښې به وی، چې نه به یخ وی او نه به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُمْ | كَانُوا | قَبْلَ ذٰلِكَ | مُتْرَفِينَ ﴿۴۵﴾ | وَكَانُوا يُصِرُّونَ |
| بیشکه هغوئ | وو | مخکښې ددې نه | خوشحاله (دولتمند) | اووو هغوئ چې ټینګتیا به ئې کوله |

زړه خوشحالوی، هغوی ددې قیامت نه وړاندې ډیر خوشحاله وو او په ډیره غټه ګناه (یعنې شرک)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى الْحِنثِ الْعَظِيمِ ﴿۴۶﴾ | وَكَانُوا | يَقُولُونَ | أَئِذَا | مِتْنَا |
| په ګناه لویه باندې | او وو هغوئ | چې وئیل به ئې | ایا هرکله چی | مړه شو مونږه |

باندې انبتې وو ۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔اودائې به وئیل چې ایا مونږ یو ځل مړه شو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكُنَّا تُرَابًا | وَعِظَامًا | أَإِنَّا | لَمَبْعُوثُونَ ﴿۴۷﴾ | أَوَآبَاؤُنَا |
| او شو مونږه خاورې | او هډوکی | ایا مونږ به | دوباره راژوندی کیږو | ایا او پلاران زمونږه |

او خاورې شو او هډوکی شو، نو لابیا به هم راژوندی کیږو، اوکه زمونږ پخوانی پلاران

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْأَوَّلُونَ ﴿۴۸﴾ | قُلْ | إِنَّ الْأَوَّلِينَ | وَالْآخِرِينَ ﴿۴۹﴾ | لَمَجْمُوعُونَ |
| مخکښې هم | ورته اووایه | بیشکه اولنی | او اخرنی خلق | خامخا به راجمع کړې کیږی |

نیکونه؟ (انې محبوبه) ته ورته اووایه، چې وړاندینی او روستنی ټول به د یوې مقررې ورځ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَىٰ مِيقَاتِ | يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿۵۰﴾ | ثُمَّ إِنَّكُمْ | أَيُّهَا الضَّالُّونَ | الْمُكَذِّبُونَ |
| وخت مقررته | دورځې معلومې | بیا به بیشکه تاسو | اے ګمراهانو | دروغ ویونکو |

په معلوم وخت راجمع کیږئ، بیا به تاسو انې ګمراهانو ، دروغ ګنړونکو

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَآكِلُونَ | مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿۵۲﴾ | فَمَالِئُونَ | مِنْهَا الْبُطُونَ ﴿۵۳﴾ |
| خامخا خوړونکی یئ | دونې د زقوم نه | اپس ډکونکې به یئ | دهغې نه خیټو لره |

د زقوم دونې نه خوراک کوئ ۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔۔او هم ددې نه خیټې ډکونکې یې

(١) ابن ابی حاتم ، احمد: ١/٢٠ ٤٠٤.

فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ۚ فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ ؕ

پس څکونکي به يئ | په هغې باندې | د ګرمو اوبو نه | پس څکونکي به يئ | په شان د ترږو جل وهلو اوښانو

بيا په دې باندې ويشيدلې اوبه څښئ |.......... بيا به د سخت ترږي اوښ په شان

هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ ؕ

دا | ميلمستيا ددوئ ده | په ورځ د جزاء |

څکاک کوئ | دا به د قيامت په ورځ د هغوئ ميلمستيا وي |

قوله تعالى:- وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۬

دصحابه کرام رضي الله عنهم نه ډيروکتابونو کښې صحت سره مروی دي ([1])ابن جرير کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دې آيت مبارك کښې دمخکښنو روستونه مراد څما دامت مخکښنې روستی دی ([2]).

**دوزخيانو سزا**:اصحاب يمين ذکر کولونه پس داصحاب شمال ذکر کوی. فرمائی چه ددوی به څه حال وی؟ دوی به څه عذاب کښې وی؟ بيا دهغه عذابونو ذکر کوی او فرمائی چه دوی به دګرمو هواګانو اوګرمو اوبو کښې وی. او په دوی به د لوږی سخت تور سيوری وی. لکه يو بل ځائې کښې دی چه ﴿انْطَلِقُوْٓا اِلٰى مَا كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ﴾ فرمائی چه دهغه دوزخ طرفته ځئ چه هغه تاسوبه دروغه ګنړلو. ځئ درې ښاخونوالاسيوری طرفته چه نه ګنړ دې او نه د اور شغلې نه بچ کيدې شی.دا د دوزخ د محل برابر سکروټې اولی.داسې معلوميږی چه داګنی زيړې اوښې دی. نن تکذيب والو دپاره بربادی ده. هم داشان دلته هم ذکر کوی چه دا خلق چه ددوی ګس لاس کښې به عمل نامه ورکړې شوې ده دوی به سخت تور لوګی کښې وی چه نه په بدن ښه لګی او نه به په سترګو ښه لګی.دا دعربو محاوره ده چه کوم ځائې کښې ديو څيز زيات بدی بيانوی نو هلته دهغې هريوخراب وصف بيانولو نه پس﴿وَّلَا كَرِيْمٍ﴾ وائی.

قوله تعالى:-اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُتْرَفِيْنَ ۚ

**د جهنم د جهنميانو د سزا وجه**:- بيا الله ﷻ فرمائی چه د اخلق ددې سزاګانو پدې وجه مستحق دی چه دوی نه په دنيا کښې کوم ربانی نعمتونه ملاؤ شوی وو په هغې کښې دوی مست شوی وو. درسولانو خبرو ته به نې هډوغوږنه اينښودو. بدکارونوکښې اخته شو او بيا نې توبه ويستلو ته څه توجه ورنکړه ﴿الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ﴾ نه مراد په قول د عبدالله ابن عباس کفر او شرك دې. بعضې وائی چه د دروغو قسم ته وائې. بيا ددوی يو عجيبه بيان کيږی چه دوی دقيامت محال کيدل هم خيال کولو،ددې تکذيب نې کولو،او عقلی استدلال نې پيش کولو چه مړ کيدو او ښاورې کيدو نه پس بيا دوباره څنګه ژوندې کيدې شی؟ دوی ته جواب ملاويږی چه ټول اولادآدم به دقيامت په ورځ نوی ژوند سره پيدا کولې شی او يو ميدان کښې به نې جمع کوی. يو وجود به داسې نه وی چه دنيا ته راغلې وی او هغه دلته نه وی. لکه يو بل ځائې کښې ارشاد چه په هغه ورځ ټول به جمع کيږی. دا دحاضريدوورځ ده. تاسو ته دنيا کښې څه ورځې مهلت دې ،دقيامت په ورځ څوك دی چه دالله ﷻ د اجازت نه بغير خوله هم وازه کړی؟ انسانان به دوه قسمونو کښې تقسيم کړې شی. دقيامت وخت محدود او مقرر دې. کمې او زياتې،تقديم او تاخير په دې کښې بالکل نشته دې. نو بيا تاسو ګواه اوسئ ائې تکذيب کوونکو ا دزقوم ونه به خوړولې شی اودې سره به خيټه درنه شی،څکه چه دا به ستاسو خوله کښې په زور درکولې شی. بيا دې دپاره ويشدلې ګرمې اوبه څکل وی اوهغه همدا شان لکه چه ترږئی اوښ څکل کوی. ﴿الْهِيْمِ﴾ جمع

---

[1]صحيح بخاری کتاب الرقاق باب يدخل الجنة سبعون الفا بغير حساب : ٦٥٤١، صحيح مسلم : ٢١٨.

[2] الطبری: ٣٣٤٤٥،

ده او ددي واحد هيم دي او مونث ئې ﴿ هيما﴾ دي. ﴿هائم﴾ او ﴿ هائمة﴾ هم ونيلې كيږي. سختې تندې والا اوښ ته وائي چه هغه د تندې بيماري وي. اوبه ډيرې څكي چه تنده ئې نه ماتيږي او نه دې بيمارئ سره اوښ ته څه فائده رسي. داشان دي جهنميانو ته به ګرمي اوبه ورکولې شي اودا به پخپله يو بدترين عذاب وي. نودې سره به تنده څه ماته شي؟ خالد بن معدان رحمه الله فرمائي چه په يو سا اوبه څکل داهم د تږي اوښ څکل دی په دې و چه مکروه دی. بيا فرمائي چه ددې مجرمانو ميلمستيا په دې ورځ دا ده لکه چه د متقيانو باره کښې ارشاد دې چه ددوی ميلمستيا جنت الفردوس دی.

| | |
|---|---|
| نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ۝ | |
| مونږه پيدا کړي يئ تاسو \| نو ولې تصديق نۀ کوئ تاسو | |
| اهم مونږ تاسو پيدا کړي يئ انو ولې قيامت نه منئ | |
| اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ ۝ ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗٓ | |
| آيا فکر کړې دې تاسو اهغه نطفې ته اچې تاسو ئې دزنا نه بچه دان ته اچوئ اآيا تاسو بچې جوړوئ دهغې نه | |
| ښه دا راته اووائي چې تاسو کومه منی (رحم) ته رسوئ \| نو تاسو د هغې نه بنيادم پيدا کوئ | |
| اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ ۝ نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ | |
| يا مونږ جوړونکي يو دهغې \| مونږه په اندازه تقسيم کړې دې \| په منځ ستاسو کښې \| مرګ | |
| که مونږ ئې پيدا کوؤ \|..................مونږ ستاسو په مينځ کښې مرګ مقرر کړې دې | |
| وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ ۝ عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ | |
| او نۀ يو مونږه \| چې سبقت اوشي په مونږ باندې (يعني نۀ يو عاجزه ) \| چې بدل کړو مونږه \| | |
| .اومونږ د دې نه عاجزه نه يو \| چې ستاسو په ځائې ستاسو پشان نور خلق پيدا کړو | |
| اَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ | |
| شکلونه ستاسو \| او راپيدا کړو تاسو \| په هغه شکل کښې \| چې تاسو ته هډو معلوم نۀ دی | |
| او تاسو په داسې حالت کښې پيدا کړو \| چې تاسو ته هډو معلوم نه وی | |
| وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝ | |
| او بيشکه معلوم دې تاسو ته \| پيدائش اولنې ( خپل) \| نو ولې سبق نۀ حاصلوئ \| | |
| اوتاسو ته د ړومبي پيدائش حال ښه معلوم دې\| نو ولې سبق نه اخلئ؟ \| | |

**قوله تعالى:- نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ۝**

**د انسان پيدائش دالله ﷻ قدرت دې** :الله ﷻ دقيامت منکرينو ته جواب ورکوی او ددوی لاجواب کولو دپاره دقيامت قائميدواودخلقو د دوباره پيدا کولودليل ورکوی،فرمائي چه کله مونږ په ړومبی ځل چه تاسو ●هيڅ نه وې پيدا مو کړنې نو اوس فنا کيدو نه پس چه کله څه نه څه تاسو يئ ستاسو دوباره پيدا کيدل مونږ لره څه ګران دي؟ کله چه ابتدائی او ړومبي پيدائش منئ نوبيا په دويم ځل د پيدائش نه ولې انکار کوئ؟ اوګورئ د انسان دخاصو اوبو څو قطري خود ښځې بچې داني ته رسول ستاسو کار ود اواوس ددې قطرو نه بصورت انسان پيدا کول دچا کار دې؟ ظاهر دی چه دې کښې ستاسو څه دخل نشته دې،اودې کښې مو څه لاس نشته دې،هيڅ قدرت مو په کښې نشته دې،اوتاسو سره څه تدبير

نشته دي. پيدا كول دا صفت دخالق دي. بيا هم داشان په وژلو هم هغه قادر دي، دټول اسمان اوزمکې مالك دي، نوddاسې لوئي قدرتونو والا مالك دا نشى كولي چه دقيامت په ورځ ستاسو پيدائش كښې تبديلي اوكړي او چه كوم صفت او كوم حال كښې تاسو غواړى نو تاسو دوباره پيدا كړي. نو چه منئ او درته معلوم دى شروع هغه ذات كړې ده او عقل او باور كونى چه په ړومبى ځل پيدائش د دويم ځل پيدائش نه مشكل دې، بياد دويم پيدائش انكار ولې كونى؟او يو ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ الله ﷻ په اول ځل پيداكړى دى او هم هغه ذات به دوباره داسې كوى اودا هغه ذات دپاره ډير آسان دى. سورة ياسين كښې دى چه ﴿أَوَلَمْ يَرَ الْإِنسَانُ﴾ نه تر ﴿عَلِيمٌ﴾ پورې، ارشاد دې فرمائى چه مونږ انسان دنطفې نه پيدا كوؤ، اوبيا دې حجتونه لټوى او خمونږ مخكښې مثالونه بيانوى اووائى چه دا وراسته زاړه هډوكى به څوك راژوندى كوى؟ ائې نبى ﷺ ! تاسو خمونږ د طرفنه جواب وركړئى چه دا به هغه ذات ژوندى كوى چه كوم ذات په اول ځل پيداكول. هغه دهر پيدائش علم لرلو والا دې. سورة قيامه كښې فرمائې چه ﴿أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ﴾ نه تر آخر پورې، يعنى آيا انسان دا وائى چه دې به داشان آواره ګرد پرېښودې شى؟ آيادې يودغليظو نطفې شكل كښې نه وو بيا د وينې ديو ټكړې صورت كښې نمايا وو، بيا الله ﷻ دې پيدا كړو، درست نې كړو، سړى او ښځې نې جوړ كړل، نوداسې الله ﷻ د مړكانو په سيزلو قادر نه دى؟.

أَفَرَءَيْتُم مَّا | تَحْرُثُونَ ۝ | ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ | أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ۝

ايا سوچ كړې دې تاسو هغه تخم | چې كرئ ني تاسو | ايا تاسو زرغونوئ هغه | يا مونږ زرغونونكى يو دهغې

بنه دا خو اووائې چې تاسو چې كوم فصل كرئ | نو هغه تاسو راټوكوئ | كه مونږ ئې رازرغنوؤ؟

لَوْ نَشَآءُ | لَجَعَلْنَٰهُ | حُطَٰمًا | فَظَلْتُمْ | تَفَكَّهُونَ ۝

كه اوغواړو مونږه | خامخا جوړ به كړو مونږ هغه | بوس | پس شئ به تاسو | چې خبرى به جوړوئ قسما قسم

كه مونږ اوغواړو نو هغه به چوري چوري كړو |.............. نو تاسو به حيران پاتې شئ.

إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ۝ | بَلْ نَحْنُ | مَحْرُومُونَ ۝ | أَفَرَءَيْتُمُ

چې مونږه خو تاونيان شو | بلكه مونږه | محرومه كړې شوى يو دحصې نه | ايا سوچ كړې دې تاسو

چې اوس خو مونږ تاوانيان شو | بلكه بالكل خالى لاس پاتى شو |......... ښه دې اوبو ته خو اوګورئ

ٱلْمَآءَ | ٱلَّذِى | تَشْرَبُونَ ۝ | ءَأَنتُمْ | أَنزَلْتُمُوهُ | مِنَ ٱلْمُزْنِ

به دې اوبو باندې | هغه اوبه | چې تاسو ئې څكئ | ايا تاسو | نازل كړې دى هغه | دوريځې نه

..................چې تاسو ئې څكئ |..............ايا دا تاسو د وريځو نه

أَمْ نَحْنُ ٱلْمُنزِلُونَ ۝ | لَوْ نَشَآءُ | جَعَلْنَٰهُ | أُجَاجًا

يا مونږه نازلونكى يو دهغې | كه اوغواړو مونږه | جوړې به كړو مونږه دا اوبه | سختې تروې

راوروئ كه د دې نه ورونكى هم مونږ يو؟ | كه مونږ اوغواړو نو دا به ترخې كړو

فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ۝ | أَفَرَءَيْتُمُ | ٱلنَّارَ | ٱلَّتِى | تُورُونَ ۝

نو ولې تاسو شكر نه اوباسى | آيا سوچ كړې دې تاسو | وورته | هغه وور | چې بلوئ ئې تاسو

نوتاسو ولې شكرنه اوباسئ؟ | ښه نو اور ته اوګورئ كوم چې تاسو بلوئ

| ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ | شَجَرَتَهَآ | اَمْ نَحْنُ | الْمُنْشِئُوْنَ۝ | نَحْنُ جَعَلْنٰهَا |
|---|---|---|---|---|
| آيا تاسو پيدا كړې ده | ونه دهغې | يا مونږه يو | پيدا كونكى دهغې | مونږه جوړه كړې ده دغه ونه |
| آيا ددې ونه تاسو پيدا كړې ده \| او كه (ددې) پيدا كونكى مونږ يو؟ ...................... | | | | |
| تَذْكِرَةً | وَّمَتَاعًا | لِّلْمُقْوِيْنَ۝ | فَسَبِّحْ | بِاسْمِ رَبِّكَ |
| ذريعه د وريادولو | او سامان | دپاره دحاجتمندو (مسافرانو) | پس تسبيح وايه | دنوم درب خپل |
| داخو مونږ دنصيحت يوذريعه اوحاجتمندو كسانو له فائده مند څيز پيدا كړي دې \| نو ته دخپل لوئي رب دنوم | | | | |
| الْعَظِيْمِ۝ | | | | |
| چې لوئ دې | | | | |
| پاكي بيانوه | | | | |

**قوله تعالى:- اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ۝**

**د ميوؤ پيدائش دالله قدرت دې:-** دالله ﷻ ارشاد دې چه تاسو كوم پټي كرئي او زمكه واړوئي او دې كښې كر اوكرئي بيا ددې تخمونو زرغونول هم ستاسو كار نه دې؟ نه نه بلكه ددې زرغونول او دا ګلونه او ميوې كول خمونږ كار دې.ابن جرير كښې دى چه حضورنبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ﴿زرعت﴾ مه وائې بلكه ﴿حرثت﴾وائې يعنى داسې وائې چه اوموكرل اوداسې مه وائې چه زرغون مو كړل.ابوهريره ﷛ ددې حديث مبارك آوريدونه پس داآيت مبارك تلاوت كړو([1]). امام حجر مدرى ﷬ ددې آيتونوداسې سوال په موقع كله چه نې لوښلى نو وائې چه ﴿بل انت يا ربي﴾ مونږ نه بلكه ائې خمونږه ربه تا. بيا فرمائى چه دپيدا كولو نه پس هم خمونږ مهربانى ده چه مونږ دا لوئې كړو او پاخه نې كړو ګنې خمونږ قدرت شته دې چه دا اوچ كړومضبوط نې نه كړواوبرباد نې كړواو بې نشان نې كړو او تاسو به لاسونه مروړئى او خبرې به جوړوئى چه په مونږ آفت راغلو خمونږ خو اصل هم اووړلې شو او ډير نقصان مو اوشو.فائده خو يو طرفته جمع پونجى مو تباه شوه. اود غم په وجه معلوم نه ده چه څه څه وائې او كله وائې چه دې خل.به هډو كر نه كوؤ. كاش چه داسې مو كولې.دا هم كيديشى چه دا مطلب وى چه په هغه وخت كښې تاسويه خپلو ګناهونوباندې شرمنده شئ.دتفكه لفظ په خپلودوؤ معنو كښې دې، فائده او غم.

**قوله تعالى:- اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ۝**

**اوبه د الله ﷻ نعمت دې:-** مزن وريځې ته وائى. بياداوبو په شان لوئې نعمت ذكر كوى چه اوګورئى ددې وريدل هم خما قبضه كښې دى ،څوك شته دې چه دا د وريځې نه راوباسى؟ اوكله چه نازل شوې بيا هم دې كښې خوږ والى او تريخ والى هم خما په قدرت دې. دا خوږې ا وبه ما تاسو ته دركړى دى. چه تاسو دې سره غسل اوكړئى او كپړې پرې اووينځئ او پټې اوباغونه پرې سيراب كړئى او څناور ته نې وركړئى. آيا تاسو ته دا پكار دى چه خما شكر هم نه كوئى؟ حضور نبى كريم ﷺ چه به كله ا وبه اوڅكلې نو دا به نې فرمائيل چه :

﴿الحمد لله الذي سقانا عذبا فراتا برحمته ولم يجعله ملحا اجاجا بذنوبنا﴾ :

يعنى دالله ﷻ شكردې چه هغه ذات مونږ ته خوږې اوبه راكړې او خپل رحمت سره نې راباندې اوڅكولې.اوخمونږ دګناهونو په وجه نې دا ترخې نه كړې ([2]).عربو كښې دوه ونې كيږى مرخ او عفار،

[1] الطبرى : ۱۳۲/۲۳.
[2] الدرالمنثور : ۲٤/۸.

د دې شنه بناخونه چه کله يو بل سره اومخلې شي نو اور بليږي. دا نعمت ورته يادوي او فرمائي چه دا اور چه دې سره تاسو پخلې کوئ اوپه سوځنو فائدې ترې اخلئ ا ووائې چه ددې اصل يعنې د ونې پيدا کولو والا تاسو يئ؟ يا څه؟ دا اور مونږ تذکره کړې دې چه ددې په کتلو سره تاسو ته د جهنم اور ياد شي او دې نه ډيج کيدو کوشش اوکړئ. قتاده رحمه الله يو مرسل حديث مبارك کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا ددنيا اوور د دوزخ د اور اويايمه حصه ده. خلقو اووئيل چه يارسول الله ﷺ ا دا هم ډير زيات دې. نو حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو، بيا دا اويايمه حصه هم دوه ځل اوبو سره مړه شوې ده،اوس دا ددې قابل شو چه تاسو ددې نه فائده اوچتوئي اودې ته نزدې ورځئ. (١) دمرسل حديث مبارك مسند کښې مروی دې اوبالکل صحيح دې. (٢)

مقوين نه مراد مسافر دی. بعضو وئيلی دی چه ځنګل کښې اوسيدونکی خلق. بعضو وئيلی دی چه ددې نه هر اوږنی مراد دې. غرض ترې هر هغه سړې مراد دې چه هغه ته د اور ضرورت وی او ددې نه د فائدې حاصلولو محتاج يئ. هر امير ،غريب،ښار والا و کلی والا،مسافر او مقيم ته ددې حاجت دې، پخولو دپاره،تانبې دپاره او رنړا دپاره وغيره. بياد الله ﷻ کريمئی ته اوګورئ چه په ونه کښې، کښې ئې دا اېښودې دې چه مسافر ئې خپل ځان سره يوسی اود ضرورت په وخت کښې خپل کار اوکړی. ابو داود وغيره کښې دا حديث مبارك دې حضور نبی کريم ﷺ فرمائی چه درې څيزونو کښې د ټولو مسلمانانو حصه ده برابره،اور،واښه اواوبه. (٣)ابن ماجه کښې دی چه ددې درې څيزونو هيچا ته دمنع کولو حق نشته دې (٤)يو روايت کښې ددې دقيمت ذکر هم شوې دې. خو ددې سند ضعيف دې. والله اعلم. بيا فرمائی چه تاسو ټولو ته پکار دی چه دهغه لوئې قدرتونو مالك دالله ﷻ هر وخت پاکی بيان کړئ اوهغه داور په شان سيزونکئ څيز ستاسو دفائدې دپاره جوړ کړې دې. اوهغه ذات اوبه ترخې او خوږې کړې دی چه د تندې په وخت کښې تکليف کښې شئ بلکه دا ئې نورې خوږې او مزيدارې کړې. دنيا کښې درب نعمتونو نه فائده اوچته کړئ اودهغه ذات شکراداکړئ.نوبيا تاسو ته د آخرت هم فائده فائده ده. دنيا کښې دا اور ستاسو دفائدې دپاره جوړ شوې دې او دې دپاره چه دآخرت د اور هم تاسو اندازه اوکړئ او ددې نه ډيج کيدو دالله ﷻ فرمانبردار جوړ شئ.

| فَلَآ | أُقْسِمُ | بِمَوٰقِعِ | النُّجُوْمِ ۙ﴿٧٥﴾ | وَاِنَّهٗ | لَقَسَمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس نه | زه قسم خورم | په ځايونو | دستورو باندې | او بيشکه دا | خامخا قسم دې |

نوزه دستورو په ډوبيدوپه ځايونو قسم خورم.........اوکه تاسو پوهيږئ

| لَّوْ تَعْلَمُوْنَ | عَظِيْمٌ ۙ﴿٧٦﴾ | اِنَّهٗ | لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ ۙ﴿٧٧﴾ | فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ ۙ﴿٧٨﴾ |
|---|---|---|---|---|
| که پوهيږئ تاسو | لوئ | بيشکه دا | خامخا قران عزتمند دې | په کتاب پټ ساتلې شوی کښې |

نو دا ډير لوئې قسم دې | دا ډير عزت مند قران دې اچې په لوح محفوظ کښې رليکلې شوې، دې

| لَّا يَمَسُّهٗٓ | اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ۙ﴿٧٩﴾ | تَنْزِيْلٌ | مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٠﴾ |
|---|---|---|---|
| نشی وروړې ګوتې ده لره | مګر پاکان خلق | نازل شوې دې | دطرفه درب دمخلوقاتونه |

چې دپاکو نه سوا هيڅوك به ورته ګوتې نه اوړي| دا قران پاك د پروردګار دطرفه نازل شوې دې

(١)الطبری : ٢٣/١٤٤.
(٢) احمد: ٢/٢٤٤، والحميدی : ١١٣٦، وسنده صحيح.
(٣) ابوداود کتاب البيوع باب فی منع الماء : ٣٤٧٧، وسنده صحيح احمد: ٥/٣٦٤.
(٤) ابن ماجه کتاب الرهون باب المسلمون شرکاء فی ثلاث : ٢٤٧٣، وهو صحيح .

| رِزْقَكُمْ | وَتَجْعَلُوْنَ | مُّدْهِنُوْنَ | اَنْتُمْ | اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ |
|---|---|---|---|---|
| ایا پس ددې کلام سره | تاسو | ابې پرواهي کونکې يئ | اوګرځوئ تاسو | حصه خپله په دې نعمت کښې |
| نو ایا تاسو ددې کلام په منلو کښې بې پرواهي کوئ | | | اوددې دروغژن کول مو ځان دپاره (لګه، خوراک جوړ | |

| تُكَذِّبُوْنَ | اَنَّكُمْ |
|---|---|
| دروغ ګڼړئ (دا قران) | دا چې تاسو |
| | کړې دې |

**قوله تعالىٰ:- فَلَآ اُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ**

ضحاك رحمه الله فرمائي چه دا قسمونه دکلام شروع کيدو دپاره وی. خو دا قول ضعيف دې. جمهور وائي چه داقسمونه دی او په دوی کښې ددې څيزونود عظمت بيان دې. دبعضو مفسرينو قول دې چه دلته لام زائد دې.او﴿اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ﴾ الخ جواب دقسم دې.اوخلق وائی چه دې ته لام دزائد ونيلو هيڅ وجه نشته دې.کلام عرب ددستور مطابق هغه قسم دشروع کښې رازی هرکله چه په څه څيز باندې قسم خوړلې کيږی هغه منفي وی،لکه عائشه صديقه رضي الله عنها دې قول کښې چه ﴿لاوالله مامست يدرسول الله ﷺ يدامرءة قط﴾ يعنی دالله ﷻ قسم چه حضور نبی کريم ﷺ خپل لاس مبارك ديو ښځې لاس سره نه دې لګولې [1].يعنی بيعت کښې به ئې ښځو سر مصافحه نه کوله. داشان دلته هم لا دقسم شروع کښې مطابق د قاعدې دې نه که زائد. نو دکلام مقصود دادې چه ستاسو خيالات دقران پاك نسبت دې چه دا جادو دې يا کهانت غلط دې. بلکه دا پاك کتاب دالله ﷻ دې. بعضې وائی چه دلا نه ددوی دکلام انکار دې. بياد اصل امر اثبات الفاظ دی.مواقع نجوم نه مراد دقران بتدريج نازليدل دی.لوح محفوظ نه خو قرآن پاك ليلة القدر کښې په يوځائې اول آسمان ته نازل شو،بيا لږ لږ وخت په وخت نازليدو. تر دې چه ډيرو کلونو کښې نازل شو. مجاهد رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد د ستورو طلوع او ظاهريدل او آسماني ځايونه دی. مواقع نه مراد منازل دی.

حسن رحمه الله فرمائي چه د قيامت په ورځ ددوی منتشر کيدل دی. ضحاك رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد هغه ستوری دی چه دهغې باره کښې دمشرکانو عقيده ده چه دفلانی فلانی ستوری په وجه مونږ باندې باران اوشو. بيا بيان کوی چه دا ډير لوئې قسم دې،په دې وجه چه په کوم امر باندې قسم خوړلې کيږی هغه ډير لوئې امر دې.

**قوله تعالىٰ:- لَّا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ**

**ددې پورته ايت مبارك څه مطلب دې؟**:-يعنی دا قرآن پاك ډير عظمت والا کتاب دې. معظم او محفوظ اومضبوط کتاب کښې دی چه دې ته صرف پاك لاسونه لاس لګولې شی. يعنی د فرښتو.خودا بله خبره ده چه دنيا کښې دې ته ټول لاس لګوی. دابن مسعود رضي الله عنه قرآت کښې دی چه ﴿مايمسه﴾. ابوالعاليه رحمه الله فرمائي چه دلته پاك نه مراد انسان نه دې بلکه ګناهګار انسان دې دا دکفارو جواب دې،هغوئ به ونيل چه داقرآن پاك شيطان راوړی. لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ﴾ الخ،يعنی ائې شيطان خو دا نه نازلوی. او نه داد هغه لائق دی،اونه دهغه مجال شته دې،بلکه هغه خوددې د آوريدو نه هم جدا دې. هم داقول ددې آيت مبارك تفسير کښې زړه ته زيات نزدې دې. او نور اقوال هم د دې مطابق دی.

فراء ونيلی دی چه ددې ذائقه اوددې لطف صرف ايماندارو خلقو ته ميسر دې. بعضې وائی چه ددې

---

[1] صحيح بخاری کتاب الشروط باب ما يجوز من الشروط فی الاسلام والاحکام والمبايعة: ۲۷۱۳، صحيح مسلم: ۱۸٦٦ .

نه مراد جنابت او حدث نه پاکیدل دي. یعني دا خبر دې چه ددې نه مراد انشاء ده. او قران پاك نه دلته مراد مصحف دې، مطلب دادې چه مسلمان دې دناپاکۍ حالت کښې دې قران پاك ته لاس نه لګوي.

قوله تعالى:- تَنْزِيلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝

**قران پاك دې ددشمن ملك ته يونه وړ شي:-** يو حديث مبارك كښې دي چه حضور نبی کریم ﷺ قرآنپاك دحربي کافرو ملك ته داوړلو نه منع فرمائيلې ده چه داسې نه وې چه دې ته دښمنان نقصان اورسوي ([1]) (مسلم). حضور نبي كريم ﷺ چه کوم فرمان عمرو بن حزم رضي الله عنه ته ليکلې وو په هغې دا هم ووچه قران پاك ته لاس مه اوړئې خو د پاکوالي حالت کښې. ([2])(موطا امام مالك) مراسيل ابوداود كښې زهري رحمه الله فرماني چه ما پخپله هغه کتاب ليدلې دې او په هغې کښې مې د اجمله ليدلې ده. اګر چه ددې روايت ډير سندونه دي خو هر يو قابل غور دې. والله اعلم.

**قران پاك حق دې:-** بيا ارشاد دې چه داقران پاك شعر او سخن او جادو نه دې بلکه کلام رباني دې او دهغه ذات دطرفنه نازل شويدې. دا سراسر حق دې بلکه صرف هم دا حق دې اوددې نه سوا ددې خلاف چه څه دي هغه باطل او يكسر مردود دي. بيا تاسو دداسې پاکې خبرې نه ولې انکار کوئي او ولې ددې نه روستو او يو طرفته کيږئي؟ آيا ددې شکر دادې چه تاسو دا په دروغه اوګنړئي؟ دقبيله ازدکلام كښې رزق په معني د شكر دې. دمسند يو حديث مبارك كښې دي چه درزق معني شكر ده. تر دې پورې واني چه مونږ د فلاني ستوري په وجه مونږ ته اوبه ملاو شوې او فلاني ستوري په وجه فلانې خيز ([3]). ان عباس رضي الله عنهما فرماني چه د هر باران په وخت بعضې خلق كفريه كلمات واني چه باران وجه فلانې ستورې دې. موطا كښې دي چه مونږ دحديبيه ميدان کښې وو. دشپې باران شوې وو. دسحر مونځ نه پس حضور نبي كريم ﷺ خلقو طرفته متوجه شو او وې فرمائيل چه تاسوته معلوم دي چه ستاسو رب نن شپه څه فرمائيلي دي؟ خلقو اووئيل چه الله ﷻ اودهغه رسول ته معلوم دي،نو حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه واورئې ! الله ﷻ اوفرمائيل نن شپه چه بندګانو کښې ډيرو ماسره کفر اوکړو اوډير ايماندار شو. چا چه اووئيل چه مونږ باندې دالله ﷻ فضل اوكرم سره اوبه اوريدې نوهغه څما په ذات ايمان راوړلووالا او ستورو باندې کفر کولو والا شو. اوچه چا اووئيل چه دفلانې ستوري په وجه مونږ باندې باران اوشو نو هغه ماسره كفر اوكړو او په دې ستورو ئې ايمان راوړو([4]).

مسلم شريف كښې يوحديث مبارك كښې عموم دي چه آسمان نه کوم برکت نازليږي نودهغه دبعضو د ايمان اود بعضو د کفر باعث جوړيږي.([5]) الخ. خودا خيال دې وی چه يو ځل عمرفاروق رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس کړې وو چه ثريا ستورې څومره باقي دې؟ بيا ئې ونيلي وو چه ددې علم والو خيال دې دا د څپل ساقط کيدو نه يو هفته پس نمودار شي. نو هم دا اوشو چه ددې سوال دجواب او د ا ستسقاء اوږ ورځې تيرې شوې وې چه باران اوشو. دا واقعه په عادت و تجربه باندې محمول ده. دا نه چه دا ستورئې اوددې اثر موجد ګنړي. داقسمه عقيده خودکفر ده خو تجربې نه څه څيز معلومول او څه خبره كول بله خبره ده. دې باره کښې احاديث اوآيتونه د ﴿ مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ ﴾ تفسير کښې تير شوی دی. يو سړې حضور نبي كريم ﷺ اوليدوچه ونيل چه د فلانې ستوری اثر سره باران اوشو. نو حضور نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه ته دروغژن ئې. دا خو الله ﷻ وروليې دې. دا دالله ﷻ رزق دې. دا يو مرفوع حديث

[1] صحيح بخاری كتاب الجهاد باب كراهية السفر بالمصاحف الى الارض العدو: ۲۹۹۰. صحيح مسلم: ۱۸۶۹ بخاری کتاب المغازی.
[2] موطا امام مالك : ۱۹۹/۱. ح/۴۷۰، وهو حديث حسن حاكم : ۳۹۵/۱.
[3] ترمذی کتاب تفسير القران ، باب ومن سورة الواقعة : ۳۲۹۵،
[4] صحيح بخاری كتاب المغازی باب غزوة الحديبية : ۴۱۴۷، صحيح مسلم : ۷۱، ابوداود : ۳۹۰۶، موطا امام مالك : ۱۹۲/۱.
[5] صحيح مسلم كتاب الايمان باب كفر من قال مطرنا بالنوء. : ۷۲.

دي. پته نشته چه خلقو باندې څه شوي دي. که اووه کاله قحط سالي وي او بيا الله ﷻ خپل فضل وکرم سره باران اوروي نو دوی زر وائي چه فلاني ستوري باران اوورولو.[1]
مجاهد رحمه الله فرمائي چه خپله روزي تکذيب کښې مه اچوئ. يعنې داسې مه وائي چه دفلاني فراخئ سبب فلاني څيز دې بلکه داسې وائي چه دا ټول هر څه دالله ﷻ دطرفنه دي. نو دا هم مطلب دې چه اودا هم قرآنپاك كښې دي او دقرآن پاك څه حصه نه ده بلکه ددې حصې داده چه دوی دې ته دروغژن وائي. او هم ددې مطلب او ددې تائيد کښې ددې نه مخکښې آيت مبارك تير شوي دي.

فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ
) نو ولې نۀ (واپس کوئ روح) | کله چې | او رسيږي روح
نو څه وخت چې ساه مرئ ته راشي | ...............

الْحُلْقُوْمَ ۝ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ۝ وَنَحْنُ اَقْرَبُ
مرئ ته | او تاسو | په دغه وخت کښې | ګورئ (چې اوزي روح) | مونږه | زيات نزدې يو
............ | او تاسو ورته په هغه وخت کښې ګورئ | او دغه (قريب الموت) ته مونږ ستاسو نه زيات

اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ۝ فَلَوْلَآ
هغه ته | ستاسو نه | وليکن تاسو نۀ وينئ | نو ولې نۀ (واپس کوئ دغه روح) |
نزدې يو | ........ خو تاسو مونږ نه وينئ | ........ نو که تاسو دچا په حکم

اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ۝ تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ
که يئ تاسو | چې نۀ يې دبل دحکم لاند | (نو ولې نۀ) واپس کوئ دغه روح | که يئ تاسو |
نه يئ | نو دغه ساه واپس راولئ (کله چه د هغه نه اوځي اومړ شي) | که تاسو پخپله وينا کښې

صٰدِقِيْنَ ۝ فَاَمَّآ اِنْ كَانَ
رښتيني (په دې خيال کښې چې تاسو دبل دحکم دلاند نۀ يئ) | نو پس بيا | که چرې وی دغه مړی |
رښتوني يئ | ........ نوځوک چې په نزدو خلقو کښې شمير دی | نو

مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝ فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ ۝ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ۝ وَاَمَّآ
دنزديکانو نه | نو دهغه دپاره راحت | او ښه رزق | او جنت دنعمتونو دې | او هر چې دا خبره
هغه دپاره راحت دې | او خوراکونه دی | او د نعمتونو باغونه دی. | ........ او ځوک چې

اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ۝ فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ۝
که چرې وی هغه | ښې طرف دخلقو نه | نو سلامتيا ده | تا لره | (ته) دښې طرف دخلقو نه ئې |
د ښې اړخ خلق دی | هغوئ ته به او ونيلې شي اچې ته په امن وامان سره او سيږه | ځکه چې ته دښې طرف خاوندېې

وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ ۝ فَنُزُلٌ
او هر چې دا خبره | که وی هغه | ددروغ ګڼرونکو | ګمراهانو نه | پس ملمستيا ده
اوکه د دروغ ګڼرونکو ګمراهانو څنې وی | ........ نو هغوئ ته به د ويشيدلو

[1] دارمي: ۲/۵، ۴، احمد: ۷/۳، مسند حميدي: ۲/۳۳۱، وهو حديث حسن.

| مِّنْ حَمِيمٍ ۙ | وَّتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ ۝ | إِنَّ هٰذَا | لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ ۝ |
|---|---|---|---|
| دگرمو اوبو نه | او سوزیدل دی په وور کښې ددوزخ | بیشکه دا خبره | خامخا دیقین حقه ده |

اوبو میلمستیا ورکولې شي او په دوزخ کښې به ورننوځي | بیشکه دا خبره حقه ده

| فَسَبِّحْ | بِاسْمِ رَبِّكَ | الْعَظِيمِ ۝ |
|---|---|---|
| پس تسبیح وایه | په نوم درب خپل سره | چې لوئ دی |

نو ته د خپل لوئي رب دنوم پاکي بیانوه

**قوله تعالی:- فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ ۝**

**دعالم نزع ذکر** :هم ددې مضمون آیتونه سورة قیامه کښې راروان دی. فرمائي چه یو سړې خپل آخري وخت کښې دې او د نزع حالت کښې دې او روح ئې قبض کیږي او تاسو ورسره ناست یئ او ګورئي او خوک هیڅ نشي کولئ،خمونږ فرښتې چه هغه تاسو نه ګورئي ستاسو نه هم زیات نژدې دې مړه ته دي. لکه بل ځائې کښې دی چه ﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً﴾ الخ،الله ﷻ په خپلو بندګانو غالب دې، هغه په تاسود خپل طرفنه محافظ لیږي،هرکله چه تاسو کښې چاته مرګ رازي نو خمونږ لیږلې شوی دا صحیح وخت باندې فوت کوی او بیا دا تولې الله ﷻ طرفته ځي چه حاکم دې او زر حساب اخستو والا دی. دلته فرمائي که په رښتیا تاسو خلق دفرمان منلو والا نه یئ: که دا حق دی چه تاسو د دوباره ژوندي کیدو او دقیامت په ورځ د حاضریدو قائل نه یئ او تاسو دې کښې په حق یئ،که تاسو ته دحشر اونشر یقین نشته دې،او تاسو ته به عذاب نشي درکولې وغیره نو مونږ وایو چه دا روح ولې پریږدئي؟ که ستاسو وس کښې دی نو حلق ته رسیدلئ روح دوباره د مړئ نه خپل اصلي ځائي ته اورسوئي. دا یاد ساتئي چه څنګه چه مونږ ددې روح په جسم کښې اچولو باندې قادر وو اوتاسو اوکتل چه نو همداشان ددې په راویستلو باندې هم قادر وو،او دا هم تاسو په خپلو سترګو اولیدل. یاد ساتئ چه هم دا شان به مونږ دوباره دا روح جسم کښې واچوو او په نوی ژوند ورکولو باندې قادر یو. ستاسو خپل پیدائش کښې کوم ځائي دخل،نو مرګ نه پس دوباره په ژوندي کیدو کښې ستاسو دخل چرته دې؟ اودا چه تاسو وائې چه کله مونږ مړه شو نو دوباره به څنګه ژوندي شو.

**قوله تعالی:- فَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ ۝**

**د سعادتمند مقربینو دمرګ حالت** :- دلته هغه حالات بیانیږي چه دمرګ په وخت کښې کوم سکرات د انسان آخري وخت کښې وي چه یا خودې د الله جل شانه مقرب وي یا ددې نه کم وي اوده ته به په ښی لاس کښې اعمال نامه ورکولې شي. یا بالکل بدنصیب دې. د الله جل شانه نه جاهل وو او د حق لارې نه غافل وو. نو فرمائي چه کوم دالله جل شانه درګاه کښې مقربین دی،چه د کوم د احکامو عامل وو،دنافرمانو نه بچ وو،دوی ته خو فرښتې رنګ په رنګ زیری آوروی. لکه چه څنګه مخکښې دبراء ﷺ روایت تیر شوې دې چه دوی ته به د رحمت فرښتې اووائي چه ائې پاک روحه ادپاک جسم والا روحه! آرام او راحت طرفته څه،هیڅکله نه خفه کیدونکی رب طرفته څه ( )روح نه مراد راحت دې اودریحان نه مراد آرام دې. غرض ددنیا مصائبو نه راحت ملاویږي. اوابدي سرور او ریښتونې خوشحالي په هغه وخت کښې ملاویږي او دې یو فراخي او وسعت وینې. دده مخکښې رزق و رحمت وی دې جنت عدن طرفته ناقراره وی. ابوالعالیه رحمه الله فرمائي چه دجنت یو شین ښاخ راشي او په هغه وخت کښې الله ددې مقرب روح واخستې شي. محمد بن کعب رحمه الله فرمائي چه دمرګ نه مخکښې هر کس ته معلوم وی چه

۱) ددې تخریج سورة ابراهیم آیت نمبر: ۲۷ لاندې تیر شوې دې.

دې جهنمي دی او که جنتي. اګر چه مونږ د سکرات والا حديث د سورة ابراهيم په ايت ﴿يثبت الله﴾ الخ تفسير کښې ذکر کړې دی. خو دا ددې بهترينه موقع ده په دې وجه دلته ئې يو حصه بيانوو. حضور نبی کريم ﷺ فرمانی چه الله جل شانه ملك الموت ﷺ ته فرمانی چه ځما فلانی بنده ته ورشه او هغه ځما دربار کښې حاضر کړه. ما هغه په غم، خوشحالئ، راحت، تکليف، خفګان غرض هر آزميښت کښې اوکتلو او دخپلې مرضئ مطابق مې اوموندو. نو اوس څه هغه ته ابدی راحت ورکول غواړم. لاړشه او هغه ځما خاص دربار کښې پيش کړه. ملك الموت ﷺ پنځه سوه درحمت فرښتو اود جنت کفن او جنتي خوشبيانو سره هغه ته ورشی. اګر چه ريحان يو وی خو ددې شل قسمونه وی. اودهر يو جدا جدا خوشبو وی. ورسره سپين ريښم وی. او په هغې مشك انغښتې شوی وی. الخ. مسند احمد کښې دی چه عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما دحضور نبی کريم ﷺ نه قرات ﴿فَرُوْحٌ﴾ (د را په پيښ سره واوريدو([1]) خود ټولو قاريانو د راء په زبر سره دې يعنی ﴿فَرَوْحٌ﴾ مسند کښې دی چه ام هانی ﷺ حضور نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو آيا مرګ نه به پس مونږ يو بل سره ملاويږو؟ او يو بل به وينو؟ حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه روح به يو مارغه شی.([2]) تردې د ونو نه به ميوې خوری تردې چه قيامت قائم شی. او په هغه وخت کښې به خپل خپل جسم ته واپس شی. دې حديث مبارك کښې د مومن دپاره بشارت دې. مسند احمد کښې دی چه ددې شاهد يو حديث مبارك دې ([3])چه دهغې اسناد ډير صحيح دی اومتن ئې هم قوی دې.

او صحيح روايت کښې دی چه د شهيدانو روحونه د شين رنګو مارغانو قالب کښې وی، اوټول جنت کښې خوراك څکاك کوی. او د عرش لاندې چه کوم قنديلونه دی په هغې کينی ([4]) مسند احمد کښې دی چه عبدالرحمان بن ابوليلی ﷺ په يو خر سور روان وو، دوی په هغه وخت کښې بوډا وو. د سراو ږيرې ويښته ئې سپين وو. نو پدې دوران کښې دوی دا حديث مبارك بيان کړو چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه څوك دالله ملاقات خوښوی نو الله جل شانه هم هغه سره ملاويدل غواړی. او چه څوك د الله جل شانه د ملاقات کولو نه روستو کيږی نو الله تعالی هم دده سره دملاقات کولو نه کراهت کوی. صحابه کرامو ﷺ دا واوريدل نو سرونه ئې ټيټ کړی وو او ژړل ئې. نو نبی کريم ﷺ تپوس اوکړو چه ولې ژاړئ؟ نو صحابه کرام ﷺ اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ا مرګ هم څوك غواړی؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه واورئ اوس مراد نه دې بلکه د سکراتو وخت مراد دی. په هغه وخت کښې نيکې او مقربې فرښتې بندګانو ته دراحت اوانعام او د آرام والا جنتونو زيرې ورکوی، اودې چه دا واوری نو په توپونو شی او وائی چه څنګه به زر ممکن دی چه الله جل شانه سره ملاقات اوکړی چه ددې نعمتونو نه مزې واخلی. نو الله تعالی هم ده سره د ملاقات کولو خواهش کوی. او که بنده بد وی نو ده ته دمرګ په وخت کښې دګرمو اوبو او دجهنم د ميلمستيا خبر ورکوی. او ددې نه دې بيزاره کيږی. او دده روح ډير په تکليف او مصيبت کښې وی. اودده زړه غواړی چه په هيڅ شان هم دالله جل شانه حضور کښې حاضر نشی. نوالله تعالی هم دده ملاقات نه خوښوی ([5]). بيا فرمانی چه که دې نيك بخت وی نو ده ته دمرګ فرښتې سلام کوی، چه په تا دې سلامتی وی، ته داصحاب يمين نه ئې. ته به دالله جل شانه دعذاب نه نجات مومې او فرښتې پخپله تاته سلام کوی. لکه يو آيت مبارك کښې دی چه ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ

---

[1]) ابوداود کتاب الحروف : ۳۹۹۱، وسنده حسن ، ترمذی : ۲۹۳۸، احمد: ٦٤/٦، مسندابی يعلی : ٤٥١٥.
[2]) احمد: ٤٢٤/٦،
[3]) احمد : ٤٥٥/٣، وهو حديث صحيح.
[4]) صحيح مسلم کتاب الامارة باب بيان ارواح الشهداء فی الجنة وانهم احياء عند ربهم يرزقون: ۱۸۸۷.
[5]) احمد: ٢٥٩/٤، وسنده حسن ، همام سمع من عطاء بن السائب قبل اختلاطه انظر مشکل الآثار للطحاوی.

﴿قَالُوارَبُّنَااللهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا﴾ الخ: يعنى رينښتونى او پاخه تو حيد والوته د وفات په وخت كښې فرښتې رازى درحمت او دوى ته بشارت وركوى چه هيڅ غم مه كوئى،هيڅ فكر مه كوئى،ستاسو د جنت وعده شته دې. دنيا اوآخرت كښې مونږ ستاسو دحمايت دپاره موجود يو،چه څه ستا زړه غوارى نو مونږ موجود يو. چه څه خواهش كوې نو هغه به پورا كيږى. الله جل شانه غفور ورحيم سره تاسو دعزت ميلمانه يئ.
بخارى شريف كښې دى چه ستا دپاره سلام دى ته د ا صحاب يمين نه ئې. دا هم كيديشى چه په دې خائې كښې سلام د دعا په معنى كښې وى. والله اعلم (١). اوكه مرده د حق تكذيب كولو والا،او هدايت نه يو طرفته،نوهغه ميلمستيا به هغه گرم حميم سره وى چه كولمې او خُرمن به اوسوزوى. بيا به ئې څلورو وارو طرفونو نه دجهنم اور گير كړى او په هغې كښې به دې سوزى. بيا فرمائى چه يقينى خبره ده چه د چا په حق كښې ددې هيڅ شك نشته دې. نو د خپل عظيم رب تسبيح كوه.

**قوله تعالى:- فَسَبِّحْ**

**ددې حكم په ركوع او سجده كښې**:-مسند احمد كښې دى چه ددې آيت مبارك نازليدو سره(٢)نبى كريم ﷺ فرمائى چه دا په ركوع كښې ساتئ او ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ ( نازليدو باندې ئې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دا په سجده كښې ساتئ. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه چا (سبحان الله العظيم وبحمده) اووئيل نو دده دپاره جنت كښې يو ونه نال كيږى (٣) ( ترمذى ). صحيح بخارى كښې آخره كښې دا حديث مبارك دې چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه دوه كلمې دې په ژبه آسانې دى،ميزان كښې درنې دى،او الله جل شانه ته گرانې دى ( سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم ). (٤)
الحمد لله دسورة واقعه تفسير ختم شو. الله جل شانه دې قبول كړى. ( او خمونږ دټولو واقعاتو انجام دې بهتر كړى ).

### تفسير د سورة حديد چې مدنى دې

**تعارف د سورت**:- ابوداود وغيره كښې دى چه نبى كريم ﷺ به د اوده كيدو نه مخكښې دا سورتونه وئيل چه دكومو په شروع كښې (سَبَّحَ) يا (يُسَبِّحُ) دى او فرمائيل به ئې چه په دې كښې يو آيت مبارك دې چه هغه د زرو آيتونونه افضل دې (٥) يو آيت مبارك دې چه هغه يو ﴿ سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم ﴾ الخ دې. والله اعلم. ددې تفيصيلى بيان نزدې راوران دې. (انشاء الله ).

| اياتونه | | | سورة الحديد مدنية وهي تسع وعشرون اية واربع ركوعات | | | ركوع گانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | | |
| ٢٩ | | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | | ٤ |

| سَبَّحَ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| پاكى بيان كړى ده | الله لره | هر هغه څيز | چې په آسمانونو كښې دي | او په زمكه كښې دې |

په زمكه او اسمانونو كښې چې څوك اوسيږى هغوى ټول د الله تعالى پاكى بيانوى

---

١) بخارى كتاب تفسير القران باب ومن سورة الواقعه قبل حديث : ٤٨٨١.
٢) ابوداود كتاب الصلاة باب ما يقول الرجل فى ركوعه وسجوده : ٨٦٩، وسنده صحيح : ابن ماجه: ٨٨٧. احمد: ١٥٥/٤.
٣) ترمذى كتاب الدعوات باب فى فضائل سبحان الله وبحمده : ٣٤٦٤،
٤) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى (( ونضع الموازين بالقسط ليوم القيامة)): ٧٥٦٣، صحيح مسلم : ٢٦٩٤.
٥) ابوداود كتاب الادب باب مايقول عندالنوم : ٥٠٥٧. وهو حسن ترمذى : ٢٩٢١.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ① | لَهٗ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ ۚ

او هغه غالب دي | دحکمت خاوند دي | هغه لره ده | بادشاهي دآسمانونو | او دزمکي |

اوهغه غالب دي صاحب دحکمت دي | دآسمانونو اود زمکي بادشاهي صرف دهغه ده

يُحْيٖ | وَيُمِيْتُ ۚ | وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ② | هُوَ الْأَوَّلُ

هغه ژوندی کول کوی | او مړه کول کوی | او هغه په هر څیز باندې | قادر دې | هغه اول دې |

هم هغه دې چې ژوندی کول کوی او مړه کول کوی| او الله تعالی په هر څیز قادر دې |هغه (الله) د ټولو

وَالْأٰخِرُ | وَالظَّاهِرُ | وَالْبَاطِنُ ۚ | وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيْمٌ ③

او اخر دې | او ښکاره دې | او پټ دې | او هغه په هر څیز باندې | ښه عالم دې |

نه اول وو| او د ټولو نه روستو به وی| (په قدرتونو سره) ښکاره دې |او پټ هم دې |او په هر څه ښه پوهه دې

**قوله تعالى:-** سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ

**دالله جل شانه تسبیح :-** ټول حیوانات او ټول نباتات دهغه پاکی بیانوی.اووه واړه آسمانونه او زمکې او د دې مخلوق او هرهر څیز دهغه تعریف کولو کښې مشغول دې.اگر چه تاسو دهغه څیزونو تسبیح نه پوهیږئ.حلیم وغفور دې.دهغه مخکښې هر یو څیز پست او عاجز دې.دهغه مقرر شریعت اودهغه احکام دشریعت نه ډك دی. حقیقی بادشاه هم هغه دې چه دهغه په ملکیت کښې زمکه او آسمانونه دی.مخلوق کښې متصرف هم هغه دې. مرگ هم دهغه په قبضه کښې دې،هم هغه فنا کول کوی او هم هغه پیدا کول کوی. چه چاته څه غواړی نو ورکوی. په هر څیز قدرت لری. چه څه غواړی نو کیږی اوچه څه نه غواړی نو نه کیږی.

**قوله تعالى:-** هُوَ الْأَوَّلُ وَالْأٰخِرُ

**الله جل شانه اول او آخر دې :-** دې نه پس آیت (هو الاول )دې،دا هغه آیت دې چه ددې باره کښې پورته حدیث مبارك تیر شوې دې چه دا دیو زر آیتونونه بهتر دې. ابوزمیل ؒ ابن عباس ؓ ته وائی چه څما په زړه کښې یو خبره ده خو په ژبه نې نه شم را وستې. نو په دې ابن عباس ؓ په خنداشو او وې فرمائیل چه ستا په زړه کښې به څه شك وی چه د هغې نه هېڅوك نه دی بچ شوی. تر دې چه قرآن پاك کښې دی چه ﴿فَإِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ﴾ الخ :یعنی چه ستا طرفته څه نازل شوی دی که ته په هغې کښې په شك کښې نې نو ستا نه مخکښې چه کوم کتاب لوستلې شو هغوئ نه تپوس اوکړه. الخ.

بیا نې ورته اوفرمائیل چه ستا په زړه کښې څه شك وی نو دا آیت مبارك لوله چه (هُوَ الْأَوَّلُ وَالْأٰخِرُ)[1] الخ. ددې آیت مبارك تفسیر کښې لسونه زیات اقوال دی. امام بخاری ؒ فرمائی چه یحیی فرمائی چې د ظاهر او باطن نه مراد دعلم په ذریعه په هر څیز باندې ښکاره او پوشیده کیدل دی. دا د یحیی زیاد فراء خوښې دې. ددوی یو تصنیف دې چه دهغې نوم معانی القران دې.

**د اوده کیدو دعا :-** مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ به د اوده کیدو په وخت کښې دا دعا ونیله چه **﴿اللهم رب السماوات السبع ورب العرش العظيم ربنا ورب كل شئ منزل التوراة والانجيل فالق الحب والنوى لا اله الا انت اعوذبك من كل شئ انت اخذ بناصيته انت الاول فليس قبلك شئ وانت الاخر فليس بعدك شئ وانت الظاهر ليس فوقك شئ وانت الباطن ليس دونك شئ اقض عنا الدين واغننا من الفقر﴾**

[1] ابوداود كتاب الادب باب رد الوسوسة : ۵۱۱۰. وسنده حسن.

يعنى ائي الله جل شانه،ائي د اووؤ أسمانونو او عرش عظيم ربه،ائي خمونږ اودهر څيز ربه،ائي د تورات او انجيل نازلوونكيه،ائي د دانو او ګټكو زرغونه ونكيه،ستا نه سوا هيڅوك د عبادت لائق نشته دي،څه ستا پناه كښې راځم،دهر هغه څيز بدى نه چه دهغې سر ستا په لاس كښې دي،ته اول ذات نې ستا نه مخكښې څوك نه وو،هم ته آخر نې او ستا نه بعد څوك نشته دي،ته ظاهر نې ستا نه پورته څوك نشته دي،ته باطن ستانه پټ څوك نشته دي،ته خمونږ قرض ادا كړه او ته خمونږ فقيرى لرې كړه. (١)

ابو صالح رحمه الله به خپلو متعلقينو ته دا دعا خودله او فرمائيل به نې چه د اوده كيدو په وخت كښې په ښى طرف څمله او دا دعا وائې. الفاظو كښې څه ردبدل شته دې. اوګورنى مسلم شريف (٢). ابو يعلى كښې دى چه عائشه رضي الله عنها فرمانى چه د نبى كريم ﷺ حكم سره به د نبى كريم ﷺ بستره مباركه مخ په قبله غوړولې شوه. نبى كريم ﷺ چه به راغلل نو په خپل ښى لاس به نې تكيه اولګوله او آرام به نې كولو. بيا به نې رو رو څه ونيل او په آخرى شپه كښې به نې دا دعا ونيله كومه چه پورته بيان شوې ده. الفاظو كښې نې څه ردوبدل شته دې.

قوله تعالى:-وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ

ددې په تفسير كښې يو روايت:-ددې آيت مبارك تفسير كښې جامع ترمذى كښې دى چه نبى كريم ﷺ خپلو صحابه كرام رضي الله عنهم سره تشريف فرما وو چه پدې كښې وريځ په سر راغله. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ته معلوم دى چه دا څه دى؟ نو صحابه كرامو رضي الله عنهم ډير په ادب سره اونيل چه الله اودهغه رسول ﷺ ته ښه معلوم دى. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دې ته عنان وائي. دا زمكه اوبه كوى. په هغه خلقوهم دا وروليږ شى چه كوم نه خو الله جل شانه شكر ګزار وى او نه دالله جل شانه نه غوښته كوى. بيا نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ته معلوم دى چه ستاسو دپاسه څه دى؟ نو هغوى رضي الله عنهم اوفرمائيل چه الله او دهغه رسول ﷺ ته زيات خبر دې. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه اوچت محفوظ چت او راغونډ موج. تاسو ته معلوم دى چه ستاسو او ددې مينځ كښې څومره فاصله ده؟ نو هغه جواب ملاؤ شو. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه د پنځوسوؤ كالو مزل دې. بيا نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو ته معلوم دى چه ددې دپاسه څه دى؟ نو صحابه كرام رضي الله عنهم بيا د لاعلمۍ اظهار هم په هغه الفاظوسره اوكړو. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ددې دپاسه بل آسمان دې. او ددې دواړو آسمانونو تر مينځه هم د پنځو سوؤ كالو فاصله ده. داشان نبى كريم ﷺ اووۀ آسمانونه شمير كړل او د هر يو مينځ كښې نې هم دومره فاصله اوخودله. بيا د سوال جواب اوريدونه پس هم دومره فاصله كښې عرش دې. بيا نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه تاسوته معلوم دى چه ستاسو لاندې څه دى؟ هم دهغه جواب اوريدو نه پس نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دويمه زمكه. بيا دسوال اوجواب نه پس نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ددې لاندې بله زمكه ده. او ددواړو زمكو ترمينځه هم د پنځوسوؤ كالو فاصله ده. هم داشان نې اووه واړه زمكې د يو بل نه هم په دې فاصله كښې اوخودلې. بيا نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه په هغه الله جل شانه مې دې قسم وى چه دهغه په قبضه كښې د محمد ﷺ روح دې چه تاسو يو رسۍ هم دټولو نه لاندې زمكې طرفته زړوند كړنى نو هغه به هم الله تعالى ته اورسى. بيا نبى كريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو ددې د راوى حسن رحمه الله دخپل استاد ابوهريره رضي الله عنه نه آوريدل ثابت نه دى. لكه چه څنګه د ايوب يونس او على بن زيد محدثينو قول دې. بعضو اهل علم ددې حديث مبارك شرح كښې ليكى چه ددې نه مراد رسۍ دالله جل شانه علم قدرت او غلبې ته رسيدل دى. (ذات بارى پورې نه)، د الله جل شانه علم دهغه

(١)احمد : ٢/٤٠٤.

(٢)صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب الدعاء عند النوم : ٢٧١٣.

قدرت اودهغه غلبه او سلطنت بیشکه هر ځائې کښې دې. خو هغه خپل ذات سره عرش باندې دې لکه چه څنګه هغه خپل وصف په خپل کتاب کښې پخپله بیان کړې دې (١). مسند احمد کښې هم دا حدیث مبارك شته دې. او په هغې کښې د ډدوؤ ز... ترمینځه فاصله د اوؤ سوه کاله ده (٢). ابن ابی حاتم او بزار کښې هم دا حدیث مبارك شته دې. ابن ابی حاتم کښې درسي زرونديدو ذکر نشته دې او دوؤ آسمانونو مینځ فاصله د پنځوو سوؤ کالود. امام بزار رحمه الله دا حدیث مبارك هم بیان کړې دې چه ددې روایت راوی دابوهریره رضی الله عنه نه سوا بل څوك نشته دې. ابن جریر کښې دی چه داحدیث مبارك مرسلا مروی دې. یعنی قتاده رحمه الله فرمائی چه مونږ داسې ذکر شوې دې. بیا حدیث بیانوی اود صحابی رضی الله عنه نوم نه اخلی. ممکن چه هم دا صحیح وی. والله اعلم.

ابوذر غفاري رضی الله عنه نه مسند بزار کښې او کتاب الاسماء والصفات کښې بیهقی کښې دا حدیث مبارك مروی دی خو دهغې اسناد کښې نظر دې. او په متن کښې ئې غرابت او نکارت دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

ابن جریر رحمه الله د آیت ﴿وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ تفسیر کښې دقتاده رحمه الله قول راوړې دې چه د آسمان او زمکې ترمینځه د څلورو فرښتو ملاقات اوشو. خپلو کښې ئې تپوس اوکړوچه چرته نه راغلې؟ یو اوونیل چه اووم آسمان نه څه الله جل شانه لیږلې یم. اوما الله تعالی هم هغه ځائې کښې پرینبودې دې. بلې اوونیل چه اوومې زمکې نه چه الله جل شانه رالیږلې یم او الله جل شانه هم هلته وو. دریمې اوونیل چه څما رب څه د مشرق نه رالیږلې یم او الله جل شانه هم هغه ځائې کښې وو. څلورمې اوونیل چه څه الله جل شانه دمغرب نه رالیږلې یم او ما الله جل شانه هغه ځائې کښې پرینبودې دې. خودا روایت هم غریب دې. بلکه داسې معلومیږی چه دقتاده رحمه الله والا پورتنې بیان شوې حدیث مبارك چه مرسلا دې ممکن دی چه هغه هم دقتاده m خپل قول وی لکه چه دا قول د قتاده m خپل دې، والله اعلم.

| هُوَ الَّذِیْ | خَلَقَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ | ثُمَّ اسْتَوٰی |
|---|---|---|---|---|
| هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړل اسمانونه | او زمکه | په شپږو ورځو کښې | بیا برابر شو (کیناستو) |
| (الله تعالی)داسې ذات دې | چې اسمانونه اوزمکه ئې په شپږو ورځو کښې پیدا کړل | | | بیا په عرش |
| عَلَی الْعَرْشِ | یَعْلَمُ | مَا | یَلِجُ | فِی الْاَرْضِ | وَمَا |
| په عرش باندې | معلومیږی هغه ته | هغه څه | چې ننوځی | په زمکه کښې | او هغه څه |
| باندې قائم شو | الله تعالی پوهیږی په هغه څه چه په زمکه کښې ورننوځي | | | | اوپه هغه څه پوهیږی |
| یَخْرُجُ | مِنْهَا | وَمَا | یَنْزِلُ | مِنَ السَّمَآءِ | وَمَا یَعْرُجُ | فِیْهَا |
| چې راوځی | دهغې نه | او هغه | چې راکوزیږی | داسمان نه | او هغه چې خیژی | په هغې کښې |
| چې د دې نه راوځی | او په هغه څه چې د اسمان نه راکوزیږی | | | | او په هغه څه چې دې (اسمان) ته خیژی | |
| وَهُوَ مَعَكُمْ | اَیْنَ | مَا كُنْتُمْ | وَاللّٰهُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ |
| او هغه ستاسو سره دې | هر ځائې کښې چې | یئ تاسو | او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو |
| اوتاسو چې کوم ځائې هم یئ هغه درسره دې | ............ | | والله تعالی ستاسو ټول کارونه وینی ګوری | | |

(١) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة الحدید: ٣٢٩٨،

(٢) احمد: ٣٧٠/٢،

| بَصِيرٌ ۝ | لَهٗ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط | وَاِلَى اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| بنه لیدونکي دي | هغه لره ده | بادشاهي داسمانونو | او دزمکي | او خاص الله ته |
| داسمانونو او د زمکي بادشاهي صرف دهغه ده|............ اوټولي معاملي بۀ الله تعالى ته | | | | |

| تُرْجَعُ | الْاُمُوْرُ ۝ | يُوْلِجُ | الَّيْلَ | فِي النَّهَارِ | وَيُوْلِجُ النَّهَارَ |
|---|---|---|---|---|---|
| واپس گرزولي کیږي | ټول معاملات | ننباسي | شپه | په ورځ کښي | او ننباسي ورځ |
| پیش کیږي |............ هغه شپه په ورځ کښي داخلوي| او ورځ په شپه کښي داخلوي | | | | | |

| فِي الَّيْلِ ط | وَهُوَ | عَلِيْمٌ | بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ |
|---|---|---|---|
| په شپه کښي | او هغه | خبردار دي | په پټو رازونو دسینو باندي |
| ........او هغه دزړونو په پټو رازونو بنۀ پوهه دي | | | | |

**قوله تعالى:- هُوَالَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ**

**د زمکي او أسمان پیدائش شپږ ورځو کښي** :دالله جل شانه زمکه او آسمان شپږو ورځو کښي پیدا کول اوعرش باندي قرار کیدل د سورة اعراف تفسیر کښي پورا پورا تیر شوی دی. په دي وجه دي ځائي کښي د دوباره بیانولو ضرورت نشته دي. هغه ذات ته بنه علم دي چه څومره دباران څاڅکی زمکي ته لاړل، څومره داني زمکه کښي پریوتي او څه زرغونيدي پیدا شوي. څومره پتي اوشو او څومره میوي اوشوي. لکه چه یو آیت مبارك کښي دی چه ﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ﴾ الخ:

یعنی دغیب کنجیاني هغه سره دی اوهغه ذات نه سوا بل چاته معلومات نشته دي. هغه د اوچي او لمدي ټولو ځیزونو مالك دي. دیو پاڼي غوزاریدل هم دهغه د علم نه بهر نه دی. د زمکي تیرو کښي پټه دانه او یو خشك او لوند ځیز داسي نه دي چه هغه ورته د ښکاره کتاب نه وی. داشان آسمان نه نازلیدو والا دباران ړلي؛ او واوره او تقدیرونه او احکام د فرښتو په ذریعه نازلیږي. ټول د هغه په علم کښي دی. دسورة تفسیر کښي تیر شوی دی چه دالله جل شانه مقرر شوي دي فرښتي د باران یو یو څاڅکی د الله جل شانه مقرر ځائي ته رسوی. د آسمان نه نزول والا فرښتي او اعمال هم دهغه په وسیع علم کښي دی. لکه څنګه چه حدیث مبارك کښي دی دشپه اعمال د ورځي نه مخکښي او د ورځي اعمال د شپي نه وړاندي دهغه په حضور عظیم کښي پیش کیږي (¹)هغه تاسره دي یعنی ستا نګهبان دي.ستاسو عملونو او کارونو ته ګوري. څنګه چه هم وی او چه کوم هم وی،او تاسوهم که په اوچه یئ او که په لمده کښي،شپه وی اوکه ورځ،تاسو کور کښي یئ یا ځنګل کښي،هر حالت کښي دهغه علم دپاره یو شان،هر وخت دهغه په نظر کښي یئ،اودهغه آوریدل ستاسو سره دی. ستاسو کلمات آوری او ستاسو حال ګوری. ستاسو د پټ پناه هغه ته علم دي. لکه چه فرماني چه دهغه نه څوك پټیږی نو د هغه دا فعل فضول دي. بلکه د ظاهر او باطن او د زړه ارادي پوري دهغه نه څوك څه نشی پټولي. او آیت مبارك کښي دی چه پټي خبري،ښکارخبري،دشپي هم چه څه وی په هغه ذات ټول روښانه دی. ربښتیا دی چه هغه رب او هم هغه معبود برحق دي.

صحیح حدیث مبارك کښي دی چه د جبرئیل ﷺ په یوسوال نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه احسان دادي چه ته د الله جل شانه عبادت داشان اوکړي چه ګویا ته الله تعالی وینې (²). نوکه ته هغه ذات نه ګوري

---

¹) صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قول علیه السلام (( ان الله لا ینام)).: ۱۷۹.

²) صحیح بخاری کتاب سؤال جبریل ﷺ النبی ﷺ عن الایمان ، والاسلام والاحسان :۵۰ . صحیح مسلم: ۹.

نو تا هغه وینی. یو سړي راغلو اود نبی کریم ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ ! ما ته څه داسې توښه اوښائې چه هغې سره څما ژوند ښه شي. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله جل شانه لحاظ ساته او دهغه نه داشان شرمیږه لکه چه ته دخپل یو نزدې رښته دار نه شرمیږې او هغه ستا نه هېڅکله هم نه جدا کیږی. داحدیث مبارك ابوبکر اسماعیلی بیان کړې دې. ددې سند غریب دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه چا درې کارونه اوکړل نو هغه د ایمان نه خوند واخستو. دیو الله جل شانه عبادت ئې اوکړو او دخپل مال زکوة ئې خوشحالۍ سره ورکړو او که څناور ئې زکوة کښې ورکړل نو هغه ئې هم بوډاګان کمزوری او بیمار نه بلکه ښه درمیانه مال ئې دالله جل شانه لار کښې ورکړو. او خپل نفس ئې پاك کړو. نو په دې یو سړی سوال اوکړو چه یارسول الله د نفس پاکولو نه څه مطلب دې؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا خبره په خپل زړه کښې محسوس کړی او دا یقین او عقیده اوساتی چه الله جل شانه هر ځائې کښې ده سره دې ( ابونعیم ). او یو حدیث مبارك دی چه افضل ایمان هغه دې چه په دې پوهه شې چه ته هر چرته ئې نو الله جل شانه تا سره دې. (نعیم بن حماد ). امام احمد m به اکثر دا دوه شعرونه ونیل چه :

اذاما خلوت الدهر یوما فلا تقل خلوت ولکن قل علی رقیب

ولا تحسبن الله یغفل ساعة ولا ان مایخفی علیه یغیب

یعنی کله چه ته بالکل تنها ئې او خلوت کښې ئې نو په هغه وخت کښې هم دا مه وایه چه څه خانله یم، بلکه وایه چه په تا یو نګبهان دې یعنی الله جل شانه. هېڅ یو ساعت هم الله جل شانه بې خبره مه ګنړه او پټ نه پټ کار هم دهغه نه پټ مه ګنړه.

**قوله تعالی:- لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

**دا هرڅه د الله ﷻ په اختیار او ملکیت کښې دی:-** بیا فرمائی چه ددنیا او آخرت مالك الله ( دې لکه یو بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَاِنَّ لَنَا لَلْاٰخِرَةَ وَالْاُوْلٰی﴾ یعنی ددنیا اوآخرت ملیکت زمونږ دې. دهغه تعریف په دې بادشاهت هم زمونږ فرض دی. فرمائی چه : ﴿لَهُ الْحَمْدُ فِی الْاُوْلٰی وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ یعنی هم هغه معبود برحق دی. اوهم هغه ذات دحمد او ثناء لائق دې. دنیا کښې هم اوآخرت کښې هم او یو آیت مبارك دی چه الله جل شانه دپاره ټول تعریفونه دی او دهغه په ملکیت کښې دزمکې او آسمانونو ټول څیزونه دی. اود هغه ذات حمد په آخرت کښې او هغه دانا اوخبردار دې. نو هر هغه څیز چه په آسمان او زمکه کښې دې دهغه بادشاهت کښې دې. دټولې زمکې او آسمان مخلوق دهغه ذات غلام او دهغه خدمت ګزار او دهغه په مخکښې پست دی.

لکه فرمائی چه ﴿اِنْ كُلُّ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّاۤ اٰتِی الرَّحْمٰنِ عَبْدًا﴾ الخ یعنی د آسمان او زمکې ټول مخلوقات د رحمان مخکښې دغلامۍ په حیثیت پیش کیدونکی دی. دا ټول دهغه په ګیره کښې دی. او ټول ئې یو یو شمیرلی دی. اوهم هغه ذات طر فته ټول څیزونه واپس کیدل دی. خپل مخلوق کښې چه څه غواړی حکم ورکوی، هغه عادل دې، ظلم نه کوی، بلکه یو نیکی لس چنده کوی. او بیا خپل طرفنه اجر عظیم ورکوی. ارشاد دې چه ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِیْنَ الْقِسْطَ﴾ د قیامت په ورځ به مونږ د عدل تله کیږدو او به هیچا به ظلم نه کیږی. د اورئی د ددانې هومره عمل به هم مونږ راوباسو او مونږ حساب اخستلو او ورکولو دپاره کافی یو. بیا فرمائی چه په مخلوق کښې تصرف هم دهغه ذات چلیږی. د ور ځې شپې ګردش هم دهغه په لاس کښې دې. خپل حکمت سره زیاتوی او کموی. کله ورځې لنډې او کله شپې لنډې او کله دواړه یو شان. کله ګرمی ا و کله یخنی. کله باران او کله بهار او کله خزان. او داټول دبندګانو دښیګړې او مصلحت لحاظ سره دی. هغه ذات دزړه د وړوکې نه وړوکې خبرې او پټ نه پټ راز نه هم واقف دې.

| |
|---|
| اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ |
| ايمان راوړئ \| په الله باندې \| |
| تاسو په الله تعالى او دهغه په رسول ايمان راوړئ |
| وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِيْنَ |
| او په رسول دهغه باندې \| او خرج كړئ \| دهغه څيزونونه \| چې جوړ كړئ يئ تاسو الله \| خليفګان |
| او دهغې مالونو نه يو حصه خيرات كړئ \| چې تاسو ئې په كښې د نورو خلقو خليفه ګان جوړ كړي يې |
| فِيْهِ ۚ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ |
| په هغې كښې \| نو هغه كسان \| چې ايمان ئې راوړو \| ستاسو نه \| او مال ئې خرج كړو \| دپاره دهغوئ |
| په تاسو كښې چې چا \| ايمان راوړې دې \| او خيراتونه يې كړي دي \| هغوئ دپاره لويه |
| اَجْرٌ كَبِيْرٌ ۞ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوْلُ |
| اجر لوئ دې \| اوڅه شوى دى تاسو لره \| چې ايمان نۀ راوړئ \| په الله باندې \| حال دا چې رسول \| |
| بدله مقرر ده \| اودا په تاسو څه شوي دى \| چې په الله باندې ايمان نه راوړئ؟ \| اوحال دادې چې |
| يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ اَخَذَ مِيْثَاقَكُمْ |
| رابللې تاسو \| چې ايمان راوړئ تاسو \| په رب خپل \| او اغستلې ده هغه \| وعده ستاسو نه \| |
| رسول مودې خبرې ته رابللي \| چې تاسو پخپل رب ايمان راوړئ \| او الله تعالى ستاسونه كلكه وعده هم اخستې ده |
| اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞ هُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖٓ اٰيٰتٍۢ |
| كه يئ تاسو \| ايمان راوړونكي \| هغه هغه ذات دې \| چې نازلوى \| په بنده خپل باندې \| ايتونه |
| كه چري تاسويقين كوئ \| ...... الله تعالى هغه ذات دې چې پخپل بنده ئې ښكاره اياتونه نازل كړي دى |
| بَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ |
| واضحه \| دپاره ددې چې راوباسي تاسو \| دتيرونه \| رڼا ته \| او بيشكه الله |
| د دې دپاره چې تاسو د (كفر د) تيارونه (د ايمان) رڼا ته راوباسي \| اويقينا الله تعالى |
| بِكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۞ وَمَا لَكُمْ اَلَّا تُنْفِقُوْا |
| په تاسو باندې \| خامخا مهربانه رحم كونكې دې \| او څه وجه ده تاسو لره \| چې خرج نۀ كوئ \| |
| په تاسوډير مئين او ډير مهربانه دې \| او دا په تاسو څه شوي دى \| چې تاسو دالله تعالى په |
| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ |
| په لاره دالله كښې \| حال دا چې الله لره دې \| ميراث \| داسمانونو \| او دزمكې |
| لار كښې خرچ نه كوئ \| حال دا دې چې اسمانونه او زمكه ټول به اخر الله تعالى ته پاتې كيږي |
| لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ |
| برابر كيدې نۀ شي \| ستاسو نه \| هغه څوك \| چې خرچ ئې اوكړو \| مخكښې \| دفتحې نه |
| په تاسو كښې هغه كسان (دنورو سره) برابر نه دى \| چې د (مكې) فتحې نه مخكښې ئې (د الله تعالى په لار كښې |

| مِّنَ الَّذِيْنَ | دَرَجَةً | اَعْظَمُ | اُولٰٓئِكَ | وَقٰتَلَ ؕ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانو نه | په لحاظ ددرجې سره | ډیر لوئ دی | دا کسان چې دی | او جهاد ئې اوکړو |

خرچونه کړی دي | او جهاد ئې کړي دي | دغه کسان په مرتبه کښې دهغه خلقو نه ډیر اوچت دي

| وَّعَدَ اللهُ | وَكُلًّا | وَقٰتَلُوْا ؕ | مِنْۢ بَعْدُ | اَنْفَقُوْا |
|---|---|---|---|---|
| وعدې کړې دی الله | حال دا چې دهر یو سره | او جهاد ئې اوکړو | روستو دفتحې نه | چې خرچ ئې اوکړو |

چې روستو ئې خرچونه کړي دي | او جنګیدلی دی | او الله تعالی د ټولو سره د ښیګړې وعده کړې ده

| ذَا الَّذِيْ | مَنْ | خَبِيْرٌ ؕ | تَعْمَلُوْنَ | بِمَا | وَاللهُ | الْحُسْنٰى ؕ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه | څوك دی | خبردار دی | چې تاسو ئې کوئ | په هغه کارونو | او الله | ښې ښې |

...............او الله تعالی ستاسو د کارونو نه ښه خبر دی | څوک شته چې

| وَلَهٗ | لَهٗ | فَيُضٰعِفَهٗ | قَرْضًا حَسَنًا | اللهَ | يُقْرِضُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغه لره دي | دپاره دهغه | چې دوچند کړی هغه | قرض ښه | الله ته | چې قرض ورکوی |

الله تعالی ته په ښه شان قرضه ورکړي | نو الله تعالی به ئې دهغه دپاره په څو څو چنده زیاته کړي

| اَجْرٌ كَرِيْمٌ ؕ |
|---|
| اجر عزتمند |

او د هغه دپاره دعزت بدله ده

**قوله تعالی:- اٰمِنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ**

**په الله جل شانه او په رسول ﷺ ایمان راوړئ** :الله جل شانه هدایت کوی چه په ما او په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړئ او په دې باندې مضبوط او همیشه کلك اوسئ. اوخپله لار کښې د خیرات کولو رغبت بیان فرمائي. تاسو چه هغه ذات کوم مال درکړې دی هغه دالله جل شانه اطاعت کښې خرچ کوئ. اوبه دې پوهه شئ چه څنګه تاسوته د نورو لاسونو نه ملاؤ شوی دی داشان به ستاسو نه نورو لاسونو نه لاړشي. اوبه تاسو به حساب او عتاب پاتې شي. او په دې دا هم ارشاد دی چه ستا نه پس ستا وارث ممکن ده چه نیك وی او ستا میراث خما لار کښې خرچ کړی او خما نزدیکت حاصل کړی. او ممکن ده چه هغه بد وی او بدمستئ کښې او سیاکارئ کښې ستا هر څه تباه کړی.اودهغه د بدو باعث ته جوړ شې. که تا نه پریښودې نو هغه به دا سې نه الوزولو. نبی کریم ﷺ سورة (الهاکم التکاثر) تلاوت کړو او وې فرمائیل چه انسان اکثر دا وائی چه دا هم خما مال دا هم خما مال دې، حالانکه دانسان اصل مال هغه دې چه ده اوخوړو، واغوستو او صدقه ئې کړو. وې خوړلو فناء شو او وائی غوستل نو زوړ شو اوتباه شو یا دالله جل شانه لار کښې ورکړه نو دخزانې په طور جمع شو (مسلم). ([1])

او چه څه پاتې شو نو هغه دنورومال دې،تا خوهغه جمع کړې وو او پرینښو دې وو ([2]). بیا هم ددې دوؤ خبرو ترغیب ورکوی او ډیر اجر وعده کوی،بیا فرمائی چه تاسو ایمان نه هیڅ نه شی منع کولې؟ تاسو کښې نبی کریم ﷺ موجود ې هغه تاسو ایمان طرفته رابلي. دلیلونه درکوی او معجزې درنه ښائي. د صحیح بخاری دشرح ابتدائی حصه کتاب الایمان کښې مونږ دا حدیث مبارك بیان کړې دې

[1]) صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن وجنة للکافر : ٢٩٥٨.

[2])صحیح مسلم حواله سابق : ٢٩٥٩.

چه نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه ټولو نه زيات ښه ا يمان والا ستاسو په نيز څوك دى؟ نو وې ونيل فرښتې. نو وې فرمائيل چه هغوئ خو الله تعالى سره دى بيا به ايمان ولې نه راوړى؟ وې فرمائيل چه بيا نبيان عليهم السلام، په هغوئ خو وحى او دالله كلام نازليږى بيا به ولې ايمان نه راوړى؟ بيا نې اونيل چه مونږ. واه تاسو ايمانه څنګه منع كيديشئ؛ تاسو كښې خو څه موجود يم. واورئى ! بهترين او عجيبه ايمان والا به هغه خلق وى چه ستاسو نه روستو رازى. صحيفو كښې به ليكلې شوى ګورى او ايمان به راوړى. دسورة بقره شروع كښې آيت (الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ) تفسير كښې هم مونږ داسې احاديث ليكلى دى.

بيا دوى ته دميثاق دورخې قول ورپادولې شى لكه چه يو آيت مبارك كښې دى چه(وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ الخ. ددې نه مراد نبى كريم ﷺ نه بيعت كول دى. اوامان ابن جرير m فرمائى چه ددې نه مراد هغه ميثاق دې چه د آدم ﷺ خيټه كښې دهغوئ نه اخستې شوې وو. دمجاهد m هم دا مذهب دې. والله اعلم.

هغه الله جل شانه چه هغه په خپل بنده روښانه دليلونه او بهترين دلائل او ښه آيتونه نازل كړل. چه تاسو ظلم او جهل د تيرونو نه او د رائې قياس دبدترينو تيرونه راوباسى او تاسو نورانى او روښانه او صفا لار اوښائى. الله جل شانه رؤف دې اورحيم دې. دا دهغه لوئې ذات كرم دې چه هغه د خلقو د رهنمائى دپاره كتابونه نازل كړل او رسولان ئې اوليږل او شكوك شبهات ئې لرې كړل. د هدايت وضاحت ئې اوكړو. دايمان او خيرات حكم كولو نه پس بيا د ايمان رغبت وركوى او بيان فرمائى چه اوس د ايمان نه قبلولو هيڅ عذر باقى نه دې پاتې. دآسمانونو د خزانوتنها مالك الله جل شانه دې. عرش او كرسى دهغه ده اوهغه تاسو سره ددې خيرات دبدلې وعده كړې ده. فرمائى چه (وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ)يعنى تاسو چه څه دالله جل شانه لار كښې خرچ كوئى نو به د هغې بهترينه بدله د ركوى.اوحقيقت كښې روزئ وركولو والا هغه ذات دې.اوفرمائى چه(مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ) يعنى تاسو به دا فانى مال خرچ كړئى او هغه به تاسو ته هميشه پاتې كيدونكې مال دركړى.

توكل والا خرچ كوى اودعرش مالك هغه دتنګئ اوغربيئ نه محفوظ كوى.هغه ته ددې خبرې اعتماد وى چه مونږ كوم مال فى سبيل الله خرچ كړو نودهغې بدله به مونږ ته په دواړو جهانونو كښې ملاويږى.

قوله تعالى:- لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقٰتَلَ

فضائل صحابه :- بيا ددې امر بيان كيږى چه دفتح مكه نه مخكښې كومو خلقو دالله جل شانه لار كښې خرچونه اوكړل او دالله جل شانه لار كښې ئې جهاد اوكړو او كومو خلقو چه دا اونه كړل،او مكه فتح شوه نو دا دواړه بر ابر نه دى. په دې وجه هم چه په هغه وخت كښې تنګى زياده وه او قوت كم وو. اوپه دې وجه هم چه په هغه وخت كښې به ايمان هغه خلقو قبلولو چه دهغوئ زړونه هرقسم ګند نه پاك وو. دمكې د فتح نه پس خو اسلام ته ښكاره غلبه ملاؤ شوه،اودمسلمانانو شمير زيات شو.او فتوحات زيات شو. اودې سره مال هم ښكاره شو. نو په هغه وخت كښې او په دې وخت كښې چه څومره فرق دې نو دومره فرق په دې خلقو او هغه خلقو كښې دې. هغوئ ته به ډير زيات اجر ملاويږى. اګر چه دواړه اصل نيكئ كښې او اصل اجر كښې شريك دى.

د قبل الفتح نه څه مراد دې؟:- بعضو ونيلى دى چه فتح نه مراد صلح حديبيه ده. او ددې تائيد د مسنداحمد يو روايت نه هم كيږى چه خالد بن وليد ﷺ او عبدالرحمان بن عوف ﷺ مينځ كښې اختلاف پيدا شو،په دې خالد ﷺ اوفرمائيل چه ته په دې خبره ئې چه ما څو ورځې مخكښې اسلام قبول كړې دى. هر كله چه نبى كريم ﷺ ته ددې علم اوشو نو وې فرمائيل چه څما صحابه كرام ﷺ ماته پريږدئى. په الله جل شانه قسم چه دهغه په قبضه كښې څما روح دې كه د اُحد د غر هومره سرۀ او سپين زر جمع

کړې نو بيا هم دهغه اعمالو ته نه شي رسيدې (۱). ظاهر دی چه دا واقعه د خالد بن وليد ؓ د مسلمانيدو نه مخکښې ده او دوی ؓ دصلح حديبيه نه پس او فتح مکه نه مخکښې اسلام قبول کړی وو. اودا اختلاف چه کوم پدې روايت کښې دې د بنوخزيمه باره کښې وو.نبی کريم ﷺ د فتح مکه نه پس دخالد ؓ په امارت کښې هغوئی طرفته يو لښکر ليږلې وو،هرکله چه دوی هغه خائی ته اورسيدل نوهغه اووئيل چه مونږ مسلمانان شوی يو خو دخپل ناواقفيت په وجه ئې دا اونه وئيل چه مونږ اسلام راوړې دې بلکه داسې ئې اووئيل چه مونږ صابيان شو،يعنی بې دينه شو او کفارو به مسلمانو ته هم دا لفظ وئيلو. خالد ؓ غالبا ددې کلمې اصل مطلب ته اونه رسيدو او دهغوئ د قتل کولو حکم ئې اوکړو.او دهغوئ چه کوم نيولې شوی وو دهغوئ د قتل کولو حکم ئې اوکړو. نو په دې د عبدالرحمان ؓ او خالد بن وليد ؓ مينځ کښې مخالفت پيدا شو. ددې واقعې مختصر بيان پورتنی حديث مبارك کښې دې.

**صحابه کرامو ته بد مه وائې:**-صحيح حديث مبارك کښې دی چه صحابه کرام ؓ ته بد مه وائې،په هغه ذات مې دې قسم وی چه دهغه په قبضه کښې خما روح دې که تاسو د أحد غر هومره برابر سرۀ زر او سپين زر هم خرچ کړئی نوبيا هم دهغوئ درې پاوه غلې ثواب ته هم نه شئ رسيدئی. بلکه يو نيم پاؤ ته هم نه شې رسيدې (۲)ابن جرير کښې دی چه حديبيه په کال مونږ نبی کريم ﷺ سره چه کله عسفان ته اورسيدو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه داسې خلق به هم راشی چه تاسو به خپل اعمال دهغوئ د عملونو مقابله کښې حقير اوگنړئی. مونږ اووئيل چه آيا قريشی؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه نه بلکه يمنی نرم دل،خو اخلاق،اوساده مزاج. مونږ عرض اوکړو يارسول الله ﷺ! آيا هغوئ به خمونږ نه بهتر وی؟ نبی کريم ﷺ جواب کښې اوفرمائيل که هغوئ سره دأحد دغربرابر هم سرۀ سپين وی اوهغه خرچ کړی نو بيا هم ستاسونه د يو درې پاوا يا يونيم پاؤ خيرات ته هم نشی رسيدلې. ياد ساتئ مونږ او نورو ټولو خلقو کښې فرق دې. بيا نبی کريم ﷺ هم دا آيت مبارك ( لا يستوی ( تلاوت کړو. خو دا روايت غريب دې. بخاری اومسلم شريف کښې دی چه دابوسعد خدری ؓ روايت کښې د خارجيانو ذکر کښې دی چه تاسو خپل مونځونه دهغوئ د مونځونو باره کښې او خپلې روژې دهغوئ دروژو باره کښې حقير اوکمې گنړئی هغوئ داشان د دين نه خارجيږی لکه څنگه غشئ د ښکار نه (۳)

ابن جرير کښې دی چه عن قريب به يو قوم راشی نوتاسو به خپل اعمال کمتر اوگنړئی چه کله دهغوئ اعمال اوگورئی. صحابه کرام ؓ تپوس اوکړو چه آيا هغوئ به قريشيان نه وی؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه ساده مزاج،نرم زړه والا دلته راروان دی. او نبی کريم ﷺ يمن طرفته نه لاس سرۀ اشاره اوکړه،او بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه خو ديمن خلق دی او ايمان خو د يمن والا خلقو دی او حکمت ديمن د خلقو حکمت دې. مونږ تپوس اوکړو چه هغوئ به خمونږ نه افضل وی؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه په هغه الله جل شانه مې دی قسم وی چه دهغه په قبضه کښې خما روح دې،که هغوئ کښې چاسره دسرو غر وی او هغه دالله جل شانه لار کښې خرچ کړی نو بيا هم ستاسو د يو مد يا نيم مدته مقدارته نشی رسيدې. بيا نبی کريم ﷺ خپلې گوتې بند کړې او خپله کټه او مسواکه گوته ئې نيغه کړه او وې فرمائيل چه دادې فرق خمونږ اودهغوئ ترمينځه. بيا نبی کريم ﷺ هم دا آيت مبارك تلاوت کړو. نودې حديث مبارك د حديبيه ذکر نشته دې. بيا دا هم کيدېشی چه ممکن دی چه د فتح مکه نه مخکښې خبر د فتح مکه نه پس الله جل شانه نبی کريم ﷺ ته ورکړې وی. لکه څنگه چه سورۀ

(۱) احمد: ۳/۲۶۶،

(۲) صحيح بخاری کتاب فضائل اصحاب النبی ﷺ ((لوکنت متخذا خليلا)) : ۳۶۷۳، صحيح مسلم: ۲۵۴۱.

(۳) صحيح بخاری کتاب استتابة المرتدين باب قتل الخوارج والملحدين بعد اقامة الحجة: ۶۹۳۱.

مزمل كښې ابتدائي سورتونو كښې دى چه كوم مكه مكرمه كښې نازل شوى وو. الله جل شانه خبر وركړې وو چه (اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ) يعني څه داسې خلق هم شته دې چه دالله جل شانه لار كښې جهاد كوى.نو كله څنگه چه دا آيت مبارك ديوراتلونكې واقعې ذكركوى نوداشان دا آيت مبارك هم او حديث لره دې هم اوكتلې شى. والله اعلم.

**قوله تعالى:- وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى**

**ټول صحابه كرام ز عظيم دى** :بيا فرمائى چه هر يو سره الله جل شانه د ښيگړې وعده كړې ده يعني فتح مكه نه مخكښې او ددې نه پس هم چه چا څه دالله جل شانه لار كښې خرچ كړى دى دهغې اجر به هغه ته ملاويږى. دابله خبره ده چه چاته به زيات وى او چاته به كم.لكه څنگه چه بل ځائې كښې ارشاد دې چه مجاهد او غير مجاهد چه عذر والا هم نه وى نو برابر نشى كيدې. اگر چه نيكه وعده كښې دواړه شامل دى. صحيح كښې دى چه قوى مومن دالله جل شانه په نيز ضعيف نه افضل دې. خو ښيگړه دواړو دپاره ده. (۱)كه دا فقره په دې آيت كښې نه وې نو ممكن وو چه چا ته به ددې روستو والو خيال تير شوې وى. په دې وجه ئې فضيلت بيانكړو،بيا ئې پرې عطف واچولو اصل اجر كښې ئې دواړه بر ابر كړل. بيا فرمائى چه ستاسو د ټولو عملونو ستاسو رب ته خبر دې. هغه چه درجاتو كښې كوم تفاوت ساتى هغه هم اندازې سره نه بلكه صحيح علم سره.

**قوله تعالى:- فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗۤ اَجْرٌ كَرِيْمٌ**

**الله جل شانه صدقات زياتوى** :حديث مبارك كښې دى چه يو درهم يو لك درهمو پورې زياتيږى (۲)دا هم يادساتئ چه ددې آيت مبارك حصه دار ابوبكر صديق ﷺ دې،څكه چه په دې عمل كولو والا دټولو نبيانو امتونو سردار دوى ﷺ دى. ابوبكر ﷺ دشروع تكليف وخت كښې خپل ټول مال دالله جل شانه لار كښې خرچ كړې وو. او ددې بدله ئې دالله جل شانه دبدلې نه سوا نوره نه وه. عمرفاروق ﷺ اوفرمائيل چه څه د نبى كريم ﷺ خدمت كښې حاضر اوم او ابوبكرصديق ﷺ هم وو. ددوى ﷺ په بدن مبارك صرف يو عبا وه او گريوان كښې ئې ازغى وركړى وو. په دې كښې جبرئيل ﷺ نازل شو او تپوس ئې اوكړو چه څه وجه ده چه ابوبكر صديق ﷺ صرف يو عبا اغوستې ده او په دې كښې ئې ازغى وركړى دى؟ نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه خپل ټول مال څما كارونو كښې دالله جل شانه لار كښې خرچ كړې او اوس هغه سره هيڅ نشته دې. نو جبرئيل ﷺ اوفرمائيل چه ائې محمد ﷺ ! تاسو دوى ﷺ ته اووائې چه الله جل شانه په تا سلام وائى او فرمائى چه آيا دوى ﷺ په دې فقيرئې كښې څما نه خوشحاله دى كه خفا؟ نبى كريم ﷺ داټول هر څه ابوبكرصديق ﷺ ته بيان كړو نو ابوبكرصديق ﷺ اوفرمائيل چه څه خپل رب نه څنگه خفه كيديشم،څه په دې حال كښې ډير خوشحاله يم. داحديث مبارك سنداً ضعيف دې والله اعلم. بيا فرمائى چه څوك دى چه الله جل شانه ته قرض وركړى. ددې نه مراد دالله جل شانه د رضا دپاره خرچ كول دى.

**قوله تعالى:- مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ**

بعضو وئيلى دى چه ددې نه مراد خپل بال بچ باندې خوراك څكاك دې. كيديشى چه دا آيت مبارك د خپل لحاظ سره دواړو دپاره شامل وى. بيا وعده كوى چه ده ته به ډيره لويه بدله ملاويږى او او جنت كښې به ورته پاك رزق ملاويږى. ددې آيت مبارك آوريدو سره ابو دحداح انصارى ﷺ نبى كريم ﷺ ته راغلو اوعرض يې اوكړو چه آيا څمونږ رب څمونږ نه قرض غواړى؟ نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه

---

(۱) صحيح مسلم كتاب القدر باب الايمان بالقدر والاذعان له : ۲٦٦٤، ابن ماجه: ۷۹، احمد: ۳٦٦/۲.

(۲) نسائي كتاب الزكاة باب جهد المقل : ۲۵۲۸،.

او نبی کریم ﷺ ته ئې عرض يې اوکړو چه خپل لاس راکړه. نو نبی کریم ﷺ خپل مبارك لاس وراوږد کړو نو د نبی کریم ﷺ لاس مبارك ئې خپل لاس کښې اخستلو نه پس عرض يې اوکړو چه خما باغ چه په هغې کښې د کهجورو شپږ سوه ونې دی، هغه ما خپل رب ته ورکړل. دهغه بال بچ هم په دې باغ کښې وو. هغه راغلو او د باغ دروازه کښې اودریدو او خپلې ښځې ته ئې آواز اوکړو، هغې لبیك اووئیلو او راغله او وې فرمائیل چه بچې راواخله او رازه، ما دا باغ الله جل شانه ته قرض ورکړو. هغه ډیره خوشحاله شوه او وې وئیل چه تا ډیر د فائدې تجارت اوکړو. او بچې او دکور اثاثه اخستلو نه پس روان شو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله جل شانه دجنت ونې اودهغه خانې باغونه او میوې چه د هغې ښاخونه دیاقوتواو موتیانو دی ابودحداح ته ورکړی (1)

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى

| په هغه ورځ | چې اووینې ته | مومنان سړی | او مومنانې ښځې | چې منډې به وهي

| هغه ورځ (هم ډیاد ساتلو قابله ده) چې ته به مومنان او مومنانې اووینې

نُوْرُهُمْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ

نور دهغوئ | مخکښې دهغوئ نه | او ښی طرف دهغوئ ته | زیرې دې تاسو لره | نن ورځ |

چې (دایمان) خپله رڼا به ترې نه وړاندې اوښی طرف ته خوریږی | نن تاسو ته زیرې درکوو

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ذٰلِكَ

جنتونه دی | چې بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | چې همیشه به وی | په هغې کښې | دا انجام

دداسې باغونو چې دهغې لاندې به ولې بهیږی| همیشه به په کښې اوسیږی | هم دا دټولو نه

هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲﴾ يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ

هم دا | کامیابی ده لویه | په دغه ورځ به | وائی | منافقان سړی | او منافقانې ښځې |

لویه کامیابی ده| ........ دا به هغه ورځ وې چې منافقان سړی او منافقانې ښځې

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ

هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې وی | چې لږ اوګورئ مونږ ته | چې مونږ رڼا واخلو |

به دایمان خاوندانو ته وائی| چې مونږ ته لږ انتظار اوکړئ چې مونږ هم ستاسو د نور نه رڼا واخلو

مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا

دنور (رڼا) ستاسو نه | ورته به اووئیلې شی | چې واپس شئ | شاګانو خپلو ته | او ګورئ

دوئ ته به اووئیلې شی| چې تاسو وا پس لاړشئ ابیا (هلته خان دپاره) رڼا تلاش کړئ| بیا به ددې دواړو (ډلو)

نُوْرًا ۭ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ

رڼا (بل ځائ کښې) | پس اوبه وهلې شی | په منځ دهغوئ کښې | یو دیوال | چې په هغې کښې به

په مینځ کښې یو دیوال اودرولې شی | ...... په هغې کښې به یوه دروازه وی| چې

1) ابن ابي حاتم

بَابٌ ط بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ

بوه دروازه وی | دننه دهغې چې به وی | په هغې کښې به | رحمت وی |او بهر طرف دهغې چې به وی

دننه طرف ته به په کښې رحمت وی| او بهر طرف ته به ترې عذاب وی | منافقان به

مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿۱۳﴾ يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ط

دمخې طرف نه به | عذاب وی | آواز به کوی منافقان مومنانوته | چې آیا نهٔ وؤ مونږ | ستاسو سره

مومنانوپسې چغې وهی | چې (ائې خلقو!) ایا مونږ (په دنیا کښې) ستاسو ملګری نه وو

قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ

اوبه وائی مومنان | چې هو | ولیکن تاسو په فتنه کښې واچول | خانونه خپل | او موقعې ته مو کتل

دوئ بهٔ جواب ورکړی| نه بلکه تاسو خپل خانونه په نفاق کښې اچولی وو|اوتاسو(به په مونږ دمصیبتونو) انتظار

وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ حَتّٰى جَآءَ

او شك به مو کوؤ | او دوکه درکړه تاسو له | امیدونو (ددروغو ) | تر هغې پورې | چې راغې |

کولو|او شک به مو کولو| اوستاسو امیدونو تاسو په دهوکه کښې اچولې وئ| تردې چې دالله

اَمْرُ اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۱۴﴾ فَالْيَوْمَ

حکم دالله | او دوکه درکوله تاسو له | په معامله دالله کښی | دوکه باز(شیطان) | پس نن ورځ به |

تعالی حکم (مرګ) راغلو| اوتاسو دالله تعالی په حق کښې فریبی (شیطان) دهوکه کړئ | نو نن ورځ

لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ط

نهٔ اخستلې کیږی | ستاسو نه | فدیه (معاوضه) | او نهٔ دهغه کسانو نه | چې کفر ئې کړې وؤ |

بهٔ تاسو نه څه فدیه نشی قبلولې|..............اونه د هغه خلقو نه چې کفر ئې اختیار کړې وو

مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ط هِيَ مَوْلٰىكُمْ ط وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾

خائې دورتلو ستاسو | وور دې | دا وور | ملګرې ستاسو دې | او ډیر بد خائې دورتلو دې |

ستاسو د تولو خائې دوزخ دې | هم دغه (دوزخ) ستاسو ملګرې دې |او هغه ډیره خراب خائې دې

**قوله تعالی:- يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ**

**د قیامت په ورځ د مومنانو ښځو او سړو د نور بیان**: دلته بیان کیږی چه دمسلمانانو دنیکو عملونو بدله کښې به دوی ته نورملاویږی.او دابه دقیامت په ورځ دوی سره سره وی. عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چه په دوی کښې به دبعضو نور دغرونو برابر وی. اودبعضو نور به د کهجورې برابر وی. اودبعضو به د ولاړ انسان برابر. دتولو نه کم نورچه دکوم مومن وی دهغه پښې دکتې ګوتې باندې به نور وی. او هغه به کله کمیږی او کله به زیاتیږی (١) ( ابن جریر ).

قتاده فرمائی چه مونږ ته ذکراوکړې شو چه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې چه بعضې مومنان به داسې هم وی چه دهغوئ نور به دومره وی چه څومره مدینې منورې نه عدن پورې فاصله ده.او ابین لرې دې

---

(١) الطبری : ۱۷۹/۲۳.

اوصنعاء لري ده.بعضي ددې نه کم،بعضې دهغې نه هم کم،او تردې پورې به بعضې وی چه دهغوی نور به دهغې لاندې قدمونو پورې وی.

جناده بن ابوامیه رحمه الله اوفرمائیل چه انې خلقو! ستاسونومونه سره د ولدیت الله جل شانه سره لیکلې شوی دی. اوداشان به ستاسو هر باطن علم هم هلته لیکلې شوې وی. د قیامت په ورځ به آواز کیږی چه انې فلانی دفلانی ځویه دا ستا نور دې. او فلانی د فلانی ځویه ستا دپاره مونږ سره هیڅ نور نشته دې. بیا دوی ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو.

**دقیامت ورځ به مومنانو دپاره نور وی:-** ضحاك رضی الله عنه فرمائی چه هر سړی ته به اول اول کښې نور ملاویږی، خو چه کله په پل صراط باندې تیریږی نو بیا د منافقانو نور ختم شی،ددې کتلو سره به مومنان هم ویریږی چه هسې نه خمونږ نور هم لاړ شی. نو الله جل شانه نه به دعاګانې غواړنی چه انې الله جل شانه خمونږ نورمونږدپاره پورا پورا کړه.حسن رحمه الله فرمائی چه ددې آیت مبارك نه دپل صراط نور دې. چه په تیاره کښې په آرام سره تیر شی. نبی کریم ﷺ فرمائی چه دټولو نه مخکښې به دسجدې کولو اجازت ماته ملاؤ شی او داشان به د ټولو نه مخکښې ماته اجازت اوشی چه سجدې نه سر اوچت کړم. خه به مخکښې روستو،ګس او ښیء طرفته نظر واچوم نو خه به خپل امت اوپیژنم. نو سړی اوونیل چه یارسول الله ﷺ! نوح علیه السلام نه ستاسو امت پورې ټول امتونه په دې میدان کښې جمع وی تاسو به په دې کښې خپل امت څنګه پیژنئی؟ نبی کریم ﷺ د بعضو خاص نښو په وجه. خما دامت د اودس اندامونه به پرقیږی او دا صفت به بل امت ته نه وی. او دوی ته ددوی اعمال نامې ددوی په ښی لاس ورکولې شی. او ددوی ځهرې به پرقیږی. او ددوی نور به ددوی مخکښې رو ان وی. او ددوی اولاد به دوی سره وی [1]ضحاك رحمه الله فرمائی چه ددوی اعمال نامې به ددوی ښی لاس کښې وی. لکه څنګه نورو آیتونو کښې تشریح شوې ده. دوی ته به اوونیلې شی چه نن تاسو ته د هغه جنتونو بشارت دې چه هغې به هر ګوټ کښې چینې جاری دی. اودهغه ځائې نه هیڅ کله هم وتل نشته دې. دا یو زبردسته کامیابی ده. ددې نه پس دقیامت د هیبتناك او زړه ویرونکی منظر واقعه بیان شوې ده چه سوا د ریښتونی ایمان والو او نیك اعمالو نه به هیچا ته نجات نه ملاویږی.

**قبر څنګه ځائې دې؟:-** سلیم بن ابن عامر رحمه الله فرمائی چه مونږ یو جنازې سره باب کښې باب دمشق کښې وو،هرکله چه د جنازې مونځ اوشو،او ددفن کار شروع شو نو ابوامامه باهلی رضی الله عنه فرمائی چه انې خلقو! تاسو ددې دنیا منزل کښې نن سحر ماښام کونی،نیکې او بدئی کولې شئ،اودې نه پس تاسو یو بل منزل طرفته کولو والا یئ. اوهغه منزل هم دا د قبر دې.اودا دتنهائی،چینجو،تنګئ او تیارو کوردې. خو هغه چا دپاره نه دې چه د چا دپاره الله جل شانه دې کښې وسعت پیدا کړی. دې ځائې نه به بیا تاسو میدان قیامت طرفته ځئ او هغه ځائې کښې ډیره تیاره ده. او هغه ځائې کښې به ایماندارو کښې نور تقسیم وی او کافران او منافقان به بې رونقه وی. ددې ذکر آیت ﴿أَوْكَظُلُمَٰتٍ﴾ الخ کښې دې. نو لکه څنګه چه سترګو والود نظر نه رونډ ته هیڅ فائدې نشی حاصلیدې نوداشان به کافران او منافقان دایماندراو دنور نه هیڅ فائده نشی حاصلولې. نو منافقان به ایماندارو ته وائی چه تاسو دومره مخکښې مه ځئی،لږ خو آیسار شئ چه مونږ ستاسو دنور په رڼرا کښې ځو. تاسو به چه څنګه دنیا کښې مسلمانانو سره فریب کولو داشان به نن دوی ته اوونیلې چه تاسو واپس شئ او نور تلاش کونئ. دوی به واپس د نور د تقسیم ځائې ته واپس شی. خودوی به هیڅ نه مومی. هم دا دالله جل شانه مکر دې چه ددې بیان ﴿وَهُوَخَادِعُهُمْ﴾ کښې دې. اوس واپس چه دوی دې ځائې ته راشی نو ګوری به چه ددوی

[1] حاکم : ۲/٤۷۸،

او د مومنانو مينځ کښې به يو ديوال حائل شي چه دهغې نه هغه طرفته رحمت دې او دې طرفته عذاب دې. نودا منافقان به د تقسيم په وخت کښې په دهوکه کښې وي. دنور په ملاويدو به ددوی راز ښکاره شي. تميز به نې اوشي. او دامنافقان به دالله جل شانه درحمت نه مايوسه شي. ابو امامه فرمائي چې قيامت کښې به داسې تيارهٔ راپورته شي چې يو مؤمن او کافر به هم خپل لاسونه نشي ليدې، بيا به مؤمنانو ته ددوئ د اعمالو په بدله کښې نور ورکړې شي نو منافقان به آواز ورکوي چې ﴿انْظُرُونَا﴾.

**قوله تعالى:- فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ**

**ددې ديوال نه کوم يو ديوال مراد دې؟:-** ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه کله تياره وی او انسان به خپل لاس هم نه وينی، نو په هغه وخت کښې به الله جل شانه يو نور ظاهر کړی. مسلمانان به يو طرفته ځی. او منافقان به روستو ځی. چه هرکله مومنان ډير مخکښې لاړ شی نو دوی به هغوئ ته د اودريدو دپاره آوازونه کوی. او دوی ته به يادوی چه دنيا کښې خو مونږ تول يو ځائې وو.([1]) د نبی کريم ﷺ ارشاد دی چه د قيامت په ورځ به خلق ددې خلقو د پرده پوشئ دپاره آواز کوی. خو په پل صراط به تميز اوشی. دا مومنان به آوازونه کوی خو په هغه وخت کښې به مومنان په ويره کښې وی. دابه هغه وخت وی چه سړې به فکرمند وی. دکوم ديوال چه په دې ځائې کښې ذکر دې دا به د دوزخ او جنت ترمينځه وی. هم ددې ذکر دې دې آيت مبارك ﴿وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ﴾. نو په جنت کښې به رحمت او په جهنم کښې به عذاب وی صحيح خبرهٔ داده خو دبعضو قول دې چه ددې نه مراد د بيت المقدس ديوال دې اودا به دجنهم وادئی سرد وی. ابن عمر ﷺ نه مروی دی چه دا ديوال د بيت المقدس شرقی ديوال دې. چه ددې په باطن کښې مسجد وغيره دې او ددې ظاهر کښې دجهنم وادی ده. اوبعضو بزرګانو دا هم ونيلی دی. خودا ياد ساتل پکار دی چه بعينه ددې آيت نه مراد هم دا ديوال دې. بلکه ددې ذکر په طور د قرب معنی ددې آيت مبارك تفسير کښې دې حضراتو ذکر کړې دې. ځکه چه جنت آسمان کښې اعلی عليين کښې دې اوجهنم اسفل السافلين کښې دې. او کعب احبار رحمه الله نه چه کوم مروی دی چه د کومې دروازې ذکر دې آيت مبارك کښې دې. دې آيت کښې ددې نه مراد مسجد باب الرحمت دې. دا دبنو اسرائيلو روايت دې. چه مونږ دپاره سند نه شی کيدې. حقيقت دادې چه دا ديوال به د مومنانو او منافقانو ترمينځه وئ. مومنان خو به دې دروازې نه تير شی او جنت ته به داخل شی. بيا به دروازه بنده شی. اومنافقان به حيران اوپريشان تيارو کښې پاتې شی. لکه څنګه چه داخلق په دنيا کښې په کفراو جهالت، شك او حيرت او تيارو کښې وو. اوس به ورته دوی اووائی چه مونږ خو دنيا کښې تاسو سره وو، يو ځائې به مو هر څه کول، عرفات او غزواتو کښې موجود وو، واجباتو به مو ادا کول. ايماندار به اووائی چه تاسو خپلو کرتوتونو او ګناهونو، نفسانی خواهشاتو او دالله جل شانه رحمت کښې تول عمر مو تير کړې دې، تاسو به ونيل چه مونږ بدعملئ اوکړې او دا به مو ونيل چه نن به توبه اوکړو صبا به توبه اوکړو او بد عملونه به پريږدو، او دې انتظار کښې مو عمر تير کړو چه دمسلمانانو څه نتيجه راوزی؟. او تاسو ته ددې هم يقين نه وو قيامت به راځی که نه؟ او تاسو په دې خواهش کښې وې که رازی نو مونږ به ضرور بخښلې شو. ا و تر مرګه پورې دالله جل شانه د طرفنه تاسو ته هغه لونې ذات طرفته د مائل کيدو توفيق ملاؤ نشو. او الله جل شانه سره تاسو دهوکه باز شيطان پ دهوکه کښې اوساتلئ. تر دې چه نن تاسو جهنم ته داخل شوئی.

مطلب دادې چه تاسو بدنی طور مونږ سره وې، خو زړه نه او نيت نه مونږ سره نه وې. بلکه حيرت او شك کښې وې. رياکارئی کښې وې او تاسو ته د زړه نه دالله جل شانه ياد هم نصيب نه شو. مجاهد رحمه الله

---

[1]) الطبری: ۲۳/۱۷۹.

فرماني چه دا منافقان مومنانو سره وو، نكاح واده، مجلس، مرګ او ژوند كښې دوى سره شريك وو خو اوس دلته جدا كړې شو. د سورة مدثر آيتونو كښې دي چه كله مسلمانان مجرمانولره په جهنم كښې اووينى نو تپوس به كوى چه آخر تاسو څه كښې ګير شوئ؟ او دوى به ور ته خپل بدعملونه شميرى. نو ياد ساتئ چه دا سوال به صرف د غصې او ددوى دشرمنده كولو دپاره وى. خو حقيقت حال به مسلمانان ښه خبر وى. بيا ئې هغه ځائې كښې فرمائيلى وو چه دهيڅا سفارش به دوى ته فائده نه وركوى. دلته ئې اوفرمائيل چه نن به دوى ته فائدى نه شى وركولې. اګر چه دټولې زمكې برابر سره زر وركړى، نو دابه هم نشى قبولې. نه منافقانو نه اونه كافرانو نه. ددوى مرجع او ځائې جهنم دې. هم ددې ځائې دوى لائق دى. او ظاهر دى چه هغه بدترين ځائې دې.

| اَلَمۡ يَاۡنِ | لِلَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡۤا | اَنۡ تَخۡشَعَ |
|---|---|---|---|
| ايا وخت لا نۀ دې راغلې | دپاره دهغه كسانو | چې ايمان ئې راوړې دې | چې اويريږى |
| ايا په ايمان دارو باندې لاهغه وخت راغلې نه دې | | چې دهغوئ زړونه دالله تعالى دذكر | |

| قُلُوۡبُهُمۡ | لِذِكۡرِ اللّٰهِ | وَمَا نَزَلَ مِنَ الۡحَقِّ ۙ | وَلَا يَكُوۡنُوۡا |
|---|---|---|---|
| زړونه دهغوئ | دوجې دذكر دالله نه | او دوجې دهغې حق نه چې نازل كړې دې الله | او نۀ شى هغوئ |
| اودهغه دنازل شوى ريښتينى كلام په وړاندې نرم شى | | اودهغې خلقو په شان نشى | |

| كَالَّذِيۡنَ | اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ | مِنۡ قَبۡلُ | فَطَالَ |
|---|---|---|---|
| پشان دهغه كسانو | چې وركړې شوې وو ورته كتاب | مخكښې ددې نه | پس اوږده شوه |
| چې وړاندې ورته كتاب وركړې شوې وو |............بيا په هغې يوه زمانه تيره شوه | | | |

| عَلَيۡهِمُ | الۡاَمَدُ | فَقَسَتۡ | قُلُوۡبُهُمۡ ؕ | وَكَثِيۡرٌ مِّنۡهُمۡ | فٰسِقُوۡنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغوئ باندې | زمانه | پس سخت شو | زړونه دهغوئ | او زيات دهغوئ نه | فاسقان دى |
| نو دهغوئ زړونه سخت شول | او په هغوئ كښې دير كسان (اوس هم) بدعمله دى | | | | |

| اِعۡلَمُوۡۤا | اَنَّ اللّٰهَ | يُحۡيِ الۡاَرۡضَ | بَعۡدَ مَوۡتِهَا ؕ | قَدۡ بَيَّنَّا |
|---|---|---|---|---|
| پوهه شئ | چې بيشكه الله | ژوندئ كوى زمكه | روستو دمرګ دهغې نه | صفاصفا ښودلى دى مونږ |
| پوهه شئ چې الله تعالى زمكه د اوچيدو نه پس بيا زرغونوى |...........مونږ تاسو ته | | | |

| لَكُمُ الۡاٰيٰتِ | لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ ۝ |
|---|---|
| تاسو ته نښې | چې تاسو دعقل نه كار اخلئ |
| واضحه مثالونه څكه بيان كړى دى | چې تاسو پرې پوهه شئ |

**قوله تعالى:- اَلَمۡ يَاۡنِ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنۡ تَخۡشَعَ قُلُوۡبُهُمۡ**

**دالله تعالى جل شانه ويره:-** الله جل شانه فرماني چه آيا مومنانو دپاره هغه وخت لا ندې راغلې څه؟ چه دوى دالله جل شانه ذكراو پند و نصيحت او قرآن پاك آيتونه اواحاديث نبوى ﷺ واورى اوددوى زړونه نرم شى. واورى او اومنى، احكام اومنى، دممنوعاتونه پرهيزاوكړى. ابن عباس ؓ فرمائى چه د قران پاك نازليدو نه پس ديارلس كاله تير شوى وو چه دمسلمانانو دزړونو دې طرفته د راتلو شكايت شوې

وو. حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائي چه ځلور کاله تير شوي وو چه مونږ ته د اعتاب اوشو[1] (مسلم) اصحاب ﷺ په دې ملامته شو او وې ونيل چه يا رسول الله ﷺ څه خبره خو بيان کړئ. ﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ﴾ بيا يو ځل څو ورځې پس هم دا عرض اوشو نو آيت نازل شو چه ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ﴾ بيا څو وخت پس دا اوونيل نو آيت نازل شو چه ﴿أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ﴾ (نبي کريم اوفرمائيل چه د ټولو نه رومبې خير چه ځما دامت نه به اوچت کړې شي هغه به خشوع وي. بيا نبي کريم اوفرمائيل چه تاسود يهوديانو او نصرانيانو په شان مه کيږئ هغوئ دالله جل شانه کتاب بدل کړو. او په لږ لږ قيمت ئې د اخرڅ کړو. نو کتاب الله ئې شاته اوغورزولو او په رائې او قياس پسې شو. او پخپله چه دوي کوم اقول ايجاد کول هغې پسې شو. او دالله جل شانه دين کښې ئې د نورو تقليدو شروع کړو. اود خپلوعالمانو اودرويشانوبې سنده خبرې ئې دين کښې داخلې کړې.دې بد عملونو په وجه الله جل شانه د ددوي زړونه سخت کړل.دوي ته به که هر څه دالله جل شانه خبرې واوروليې شوې خودوي په زړونو به هيڅ اثر نه کيدو. په دوي به هيڅ پندو نصيحت اثر نه کيدو. هيڅ يو وعده او وعيد دوي دالله جل شانه طرفته په رجوع اونکړې شو. او په دوي کښې اکثر فاسقان او بدکار شو.کوټه عملونه ئې هم ښه نه وو.لکه آيت مبارك کښې دي چه ﴿فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ﴾ددوي د بدعهدئي په وجه مونږ په دوي لعنت اوليږلو. اوددوي زړونه مو سخت کړل. دوي به کلمات په خپله بدلول او خمونږ نصيحتونه ئې هيرکړو يعنى ددوي زړونه فاسد شوي دي. دالله جل شانه خبرې ئې بدلې کړې دي. نيکئ کول ئې پريښودې دي. بدو کښې اخته شوي دي. په دې وجه الله جل شانه دوي ته خبردار کوي چه هسې تاسو باندې ددوي اثر اونشي ،اصل اوفرع کښې دوي نه بالکل بيل اوسئ.

قوله تعالى:- ﴿وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ﴾

**قران پاك باندې عمل اوکړئ** :- ابن ابى حاتم کښې دي چه ربيع ابن عميله فرمائي چه د قران وحديث خوږوالئ خو مسلم دې خو ما دابن مسعود ﷺ نه يو خوږه او ښکلې خبره آوريدلې ده چه دا ځما ډيره خوښه زړه ته نزدې ده. دوي فرمائي چه کله د بنى اسرائيلو په کتاب څه وخت تيرشو نو دې خلقو څه کتابونه پخپله تصنيف کړل. او په هغې کښې ئې هغه خبرې اوليکلې چه کومې ددوي خوښې وې او چه کومې دوي د خپل ځان نه جوړې کړې وې. اوس ئې دا په ښه مزو مزو سره لوستل. په دې کښې اکثر مسائل دالله جل شانه دکتاب خلاف وو. چه کوم احکام ددوي زړونونه غوښتل هغه ئې بدل کړل. او خپل کتاب کښې ئې د خپلې مرضئ مطابق مسائل جمع کړې وو. او په دې ئې عمل شروع کړې وو. اوس دوي ته خيال راغلو چه د اپه نورو خلقو هم اومنى اوپه دې آماده کړى چه دوي هم دا خمونږ ليکلې شوى کتاب شرعى کتاب اومنى او په دې عمل اوکړى. دوي خلقو ته ددې دعوت ورکړو او په دې ئې زور کولواو چه چا به ددوي نه منل نوهغوئ ته به ئې تکليف ورکولو او وهل به ئې بلکه تر دې چه قتل کول به ئې. په دوي کښې يو سړې الله والا او متقى وو. هغه ددوي طاقت نه او زياتئ نه مرعوب شو او کتاب الله ئې په يو باريك خيزباندې اوليکلو او په يو نرسنګه کښې ئښې و اچولو اودا ئې خپله غاړه کښې واچولو. ددې خلقو فساداو شر نور هم زيات شو. او دا شر ورځ په ورځ زياتيدو تر دې چه دوي هغه ډير خلق قتل کړل چه کوم په کتاب الله باندې عاملان وو. بيائې خپلو کښې مشوره اوکړه چه تر کومې به داشان يويو قتل کوو. ددوي لوئې عالم خمونږ ددې کتاب بالکل منلو والا نه دې او دټولو نه زيات د کتاب لله عامل دبنى اسرائيلو فلانى عالم دې. هغه راونيسئ اوهغه باندې د خپلې رائې او قياس کتاب اومنئ چه کله ئې هغه اومنى نو بيا خمونږ مزې شوې. اوکه هغه اونه منلو نوهغه

[1]) صحيح مسلم کتاب التفسر باب قول الله تعالى (( الم يان للذين امنو ان تخشع قلوبهم لذکر الله )) : ٣٠٢٧.

قتل کړي. نوبيا به ستاسو دې کتاب هيڅوك مخالفت نه کوي. اونور خلق به خمونږ دکتاب قبول کړي. او د ابه اومني. نو دې رانې قياس والو دکتاب الله عالم او عامل او بزرگ اونيولو او رانې وستلو اوده ته ئې اووئيل چه زمونږ به دې کتاب کښې څه دي هغه ته مني که نه؟ دې بزرگ خو دخپلې وې دا اونه وئيل چه نه منم بلکه خپلې هغه نرسنگئ طرفته ئې اشاره اوکړه چه په دې خما ايمان دې. هغوئ دااوګنړل چه دده اشاره زمونږ کتاب طرفته ده. نو ده ته ئې تکليف ورنکړو. خو دده داطوارو، اقوال او افعالو نه ويريدل. تر دې چه کله دې وفات شو نو دوی تفتيش شروع کړوچه ده سره هسې نه کتاب الله او څه مسائل دکتاب وی. آخرنر سنگا هغوئ ته ملاؤ شوه. هرکله چه ئې اولوستو نو په هغې کښې د کتاب الله اصلي مسائل موجود وو. نو اوس ئې بهانه اوکړه چه مونږ خو هډو دا مسائل اوريدلي نه دي. ددين خو داسې خبرې نه وی. نو يو زبردسته فتنه شروع شوه اودوه اويا ډلې شوې. په دوی کښې چه کوم بهتر او حق والا ډله وه هغه هغه ډله وه چه په دې نرسنگئ باندې عاملان وو. ابن مسعود ﷺ چه کله دا واقعه بيان کړه نو وې فرمائيل چه اې خلقو ا په تاسو کښې چه کوم باقي پاتې کيږی هغوئ به دداسې امورومعائنه کوی اوبالکل به بې بسه وی. ددې کتابونو د ختمولو به په ده کښې قدرت نه وی. نو داسې خراب وخت کښې هم په ده دا فرض دي اوده لره ضروری دی چه دې په الله جل شانه ثابت کړی چه دې دا ټول بنه نه گنړی. امام جعفر طبری رحمة الله عليه هم د روايت نقل کړې دې چه عتريس بن عرقوب عبدالله بن مسعود ﷺ ته راغلو او وې وئيل چه انې ابوعبدالله ا چه کوم سړې د نيکئ حکم نه کوی اودبدئی نه منع نه کوی نوهغه هلاك شو. نو دوی اوفرمائيل چه هلاك خوهغه شو چه په خپل زړه کښې نيکی نيکی اونه گنړی. او بدی بدی اونه مني. بيا دوی د بني اسرائيلو دا واقعه بيان کړه.

بيا ارشاد باری دې چه په دې پوهه شئ چه الله جل شانه به مړه زمکه ژوندئی کړی. په دې ارشاد دې چه دې امر طرفته دسختو زړونو نه پس هم راوستلو او نرم کولو باندې قادر دې. که د گمراهو بيخ ته هم سړې اورسی بياهم الله جل شانه هم دې نيغې لارې ته راولی. لکه څنگه چه خشکه اوبنجره زمکه لمده کړی داشان الله جل شانه مړه زړونه ژوندی کوی. زړونو کښې چه کله بنه تياره شی نو کتاب الله رنړا ددوی زړونه منور کوی. دالله جل شانه وحی د تالې کنجی ده. رينښتنې هادی هغه دې. گمراهئ نه پس صحيح لارې ته راوستلو والا، چه څه غواړی هغه کولو والا، حکمت او وعده کولووالا، لطف او خيروالا، کبر اوجلال والا، بلندئی او علو والا هم هغه ذات دې.

| إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ | | | |
|---|---|---|---|
| بيشکه صدقې ورکونکی سړی ا | | | |
| ا بيشکه صدقه | | | |
| وَالْمُصَّدِّقٰتِ | وَاَقْرَضُوا | اللّٰهَ | قَرْضًا حَسَنًا |
| اوصدقې ورکونکی ښځې ا | او هغه خلق چې قرض ئې ورکړو ا | الله له ا | قرض حسن ا |
| ورکونکی سړی او صدقه ورکونکې ښځې ا | او هغه خلق چې د الله تعالى په لاره کښې په | | |
| يُّضٰعَفُ | لَهُمْ | وَلَهُمْ | اَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿١٨﴾ | وَالَّذِينَ |
| دوچند به ورکړې کيږی ا | هغوئ ته ا | او دپاره دهغوئ ا | اجر عزتمند دې ا | او هغه کسان |
| اخلاص سره خرڅ کوی ا | نو دهغوئ صدقه به څو چنده زياتولې شی ا | او دهغوئ دپاره ډير دعزت اجر دې | او کومو | |

| امَنُوۡا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖۤ | اُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|
| چي ايمان ئې راوړو | په الله باندې | او په رسولانو دهغه باندې | دغه كسان چې دى |
| كسانو چې په الله تعالى او د هغه په رسول ايمان راوړي دي ..........هم دغه خلق | | | |

| هُمُ الصِّدِّيۡقُوۡنَ ۖ | وَالشُّهَدَآءُ | عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؕ | لَهُمۡ | اَجۡرُهُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| هم دوئ رښتني دى | او ګواهان دى دحق | په نز درب خپل | دپاره دهغوئ دې | اجر دهغوئ |
| رښتوني دى او خپل رب په نيز (د حق) ګواهان دى هغوئ دپاره (خصوصي) اجر دې او هغوئ | | | | |

| وَنُوۡرُهُمۡ ؕ | وَالَّذِيۡنَ | كَفَرُوۡا | وَكَذَّبُوۡا | بِاٰيٰتِنَاۤ | اُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او نور دهغوئ | او هغه كسان | چې كفر ئې اوكړو | او دروغ ئې اوګڼړل | آيتونه زمونږ | دا كسان |
| دپاره به رڼرا هم وي او كومو خلقو چې انكار كړي دي او زمونږ آيتونه ئې دروغ اوګڼړل انو هم دغه خلق | | | | | |

| اَصۡحٰبُ الۡجَحِيۡمِ ⑲ |
|---|
| خاوندان ددوزخ دى |
| دوزخيان دى |

**قوله تعالىٰ:- اِنَّ الۡمُصَّدِّقِيۡنَ وَالۡمُصَّدِّقٰتِ**

**دمومنانو درجات**: د فقيرانو اومسكينانو وغيره اومحتاجو اوحاجت مندو ته دالله جل شانه درضا دپاره خلق خپل مالونه په ښه زړه وركوى اوددې بدله كښې الله جل شانه دوى ته ددې نه زيات اجر او ثواب وركوى.لس لس چنده او ددې نه هم زيات اووه اووه سوه پورې بلكه ددې نه هم زيات. دهغه ذات ثواب بې حسابه دې. دهغه اجر او ثواب زيات دې.

په الله او رسول ﷺ باندې ايمان لرلو والا صديق او شهيد دې. ددې دواړو اوصافو مستحق صرف باايمانه خلق دى. بعضي حضراتو(الشُّهَدَآءُ) (لره بيله جمله ګڼړلې ده. نودرې قسمونه شو. مصدقين، صديقين، شهداء. لكه څنګه چه روايت كښې دى چه دالله تعالى او دهغه رسول ﷺ اطاعت ګزار به هغه خلقو سره وى چه كوموباندې انعام شوې دې چه كوم نبيان او صديقين او شهداء او صالحان دى. نو په صديق او شهيد كښې دلته هم فرق كړې شوې دې چه ددې نه معلوميږى چه دا دوه قسمه خلق دى. دصديق درجه د شهيد نه لويه ده. د نبى كريم ﷺ ارشاد دې چه جنتيان به دخپل خان نه بره بالاخانووالوته داسې ګورى لكه څنګه چه تاسو مشرقي يا مغربي ستورى ته آسمان طرفته ګورئ. خلقواووئيل چه دا درجې خوصرف د نبيانو عليهم السلام به وى. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آو قسم دې په هغه ذات چه دهغه لاس كښې خما روح دې چه دا به هغه خلق وى چه دوى په الله تعالى ايمان راوړى او د رسولانو تصديق اوكړى ([1]).(بخارى ومسلم). يو غريب حديث مبارك نه معلوميږى چه دشهيد او صديق دواړا اوصاف په دې آيت مبارك كښې هم ددې مومن دى.

**د شهيدانو روحونه**:-نبى كريم ﷺ فرمائى چه خما د امت مومنان شهيدان دى. بيا نبى كريم ﷺ ددې آيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو.([2]) عمرو بن ميمون رحمه الله فرمائى چه دا دواړه به دقيامت په ورخ ددې دواړه ګوتو په شان رازى. بخارى اومسلم كښې حديث مبارك دې چه د شهيدانو روحونه د شين رنګ

---

[1]) صحيح بخارى كتاب بدء الخلق باب ماجاء في صفة الجنة وانها مخلوقة: ٣٢٥٦، صحيح مسلم: ٢٨٣١.
[2]) الطبرى : ١٩٢/٢٣

قالبونو کښې به وي. په جنت کښې چه کوم خائې کښې غواړي نو خوري ځکي به. او دشپې قنديلونو کښې به سهارا اخلي. ددوي رب دوي طرفته اوکتل او وې فرمائيل چه تاسو څه غواړئ؟ هغوي اووئيل چه مونږ دا غواړو چه ته مونږ دوباره دنيا ته اوليږې چه مونږ بيا ستا لار کښې جهاد اوکړو او شهيدان شو. نوالله جل شانه به ورته اوفرمائي چه داخو ما فيصله کړې ده چه دوباره به څوك دنيا ته نه ځي[1] بيا فرمائي چه دوي ته به اجر او ثواب ملاويږي. چه کوم نور ددوي مخکښې وي او هغه به ددوي عملونو مطابق وي. د مسنداحمد يو حديث مبارك کښې دي چه د شهيدانو څلور قسمونه دي. يو هغه پوخ ايمان والا مومن چه دښمن سره په جنګ شي او جنګ کولو کولو کښې دې ټکړې ټکړې شي نو دده هغه درجه ده چه اهل محشر به ده ته سر اوچت اوچت ګوري او پورته کيږي به دې اوګوري اوددې فرمائيلو په وخت کښې نبی کريم ﷺ دومره خپل سر مبارك اوچت کړو چه د نبی کريم ﷺ سر مبارك نه ټوپۍ پريوتله. اوددې حديث مبارك راوی عمر فاروق ﷛ هم ددې دبيانولو په وخت دومره خپل سر مبارك اوچت کړو چه د دوي دسر مبارك نه ټوپۍ پريوتله. دويم هغه دې چه جهاد دپاره اوځي خو دده زړه کښې جرا ت کم وي. يك دم غشې راغلو او دده روح پرواز اوکړو. دا دويمې درجې جنتی دې. شهيد دې. دريم هغه چه دهغه نيك اعمال نه وو. خو الله تعالى دې خوښ کړو. او ميدان جهاد کښې د کفر د لاسه دې شهيد شو. دا دريمې شهيد دې. څلورم هغه دې چه دهغه ګناهونه ډيروو، جهاد ته لاړ او الله جل شانه ده ته شهادت نصيب کړو. او خپل خان ته ئې اوبللو[2]. ددې نيکو خلقو انجام بيانولو نه پس اوس د بدو خلقو نتيجه بيان کړه چه دا جهنميان دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِعْلَمُوْٓا | اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | لَعِبٌ | وَّلَهْوٌ | |
| او پوهه شئ | چې بيشکه ژوند ددنيا | لوبې دي | او عبث مشغولتيا ده | |
| پوهه شئ چې ددنيا ژوند خوبس لوبه تماشه او (سامان د) | | | | |
| وَّزِيْنَةٌ | وَّتَفَاخُرٌۢ | بَيْنَكُمْ | وَتَكَاثُرٌ | |
| او ظاهري ښائيست دې | او فخر کول دي | په منځ ستاسو کښې | او ديو بل نه دزياتيدو کوشش دې | |
| ښائست دې | اوپخپل مينځ کښې په يو بل باندې فخر کول دي | .....او په مال | | |
| فِى الْاَمْوَالِ | وَالْاَوْلَادِ ؕ | كَمَثَلِ غَيْثٍ | اَعْجَبَ الْكُفَّارَ | |
| په مالونو کښې | او په اولاد کښې | لکه په مثال دباران | چې خوشحاله کړو کروندګر لره | |
| او په اولاد کښې خپله لوئي ښکاره کول دي | (دا دنياوي زيب اوزينت) لکه باران دې اچې د هغې زرغونه | | | |
| نَبَاتُهٗ | ثُمَّ | يَهِيْجُ | فَتَرٰىهُ | مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ |
| بوټو دهغې | بيا | هغه فصل اوچيږي | پس ته وينې هغې لره | زير شوي \| بيا شي هغه |
| زمينداراو ته ښائسته ښکاري | بيا اوچه شي | نوته ئې زيړوينې | ............بيا هغه | |
| حُطَامًا ؕ | وَفِى الْاٰخِرَةِ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۙ | وَّمَغْفِرَةٌ | مِّنَ اللّٰهِ |
| بوس ذره ذره | او په اخرت کښې | عذاب سخت دي | او ښښنه ده | د طرفه دالله نه |
| ريزمريز شي | او په اخرت کښې سخت عذاب هم شته | اود الله تعالى د طرفه ښښنه | | |

[1] صحيح مسلم كتاب الامارة باب بيان ارواح الشهداء فى الجنة وانهم احياء عند ربهم يرزقون: ۱۸۸۷ بتصرف يسير.
[2] ترمذى كتاب فضائل الجهاد باب ماجاء فى فضل الشهداء عندالله : ۱٦٤٤.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَرِضْوَانٌ ؕ | وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ | اِلَّا | مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ۝ | |
| او رضا ده | او نه دي ژوند ددنيا | مګر | سامان ددوکې دی | |
| اوخوشحالي هم شته \| اوددنيا ژوند تش ددهوکې سامان دی \| | | | | |
| سَابِقُوْٓا | اِلٰى مَغْفِرَةٍ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | وَجَنَّةٍ | |
| په منډه منډه ديو بل نه وړاند والي اوکړئ | ببنني ته | درب خپل نه | او هغه جنت ته | |
| نو دخپل رب ببنني طرفته منډه کړئ \|.....................اود خپل رب هغې جنت طرف ته | | | | |
| عَرْضُهَا | كَعَرْضِ | السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۙ | اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ | |
| چې پلنوالي دهغې | اپشان دپلنوالي | داسمان اودزمکې دی | اچې تيارکړې شوې دی | دپاره دهغه کسانو |
| چې د هغې پلنوالي د اسمان او د زمکې په برابر دی \|.....................دادهغه خلقو دپاره | | | | |
| اٰمَنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖ ؕ | ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ | يُؤْتِيْهِ |
| چې ايمان ئې راوړې وی | په الله | او په رسولانو دهغه باندې | دا فضل دالله دی | چې ورکوی دا |
| تيار کړې شوې دی \| چې په الله تعالى اودهغه په رسولانو ئې ايمان راوړې دی \|دادالله تعالى فضل دی | | | | |
| مَنْ | يَّشَآءُ ؕ | وَاللّٰهُ | ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝ | |
| هغه چاته | چې خوښوی هغه | او الله | خاوند دفضل لوئي دی | |
| چې چا ته اوغواړی نو فضل پرې او کړی \|اوالله تعالى دډير لوئي فضل مالک دی\| | | | | |

**قوله تعالى:- اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ**

**دنيا عارضی او فانی ده** :د امردنيا تحقير او توهين بيانيږی. دنيا والوته ددنيا دلهو لعب او زينت او فخر او داولادا و مال د زياتوالي نه سوا نورڅه دی؟لکه چه بل آيت مبارك کښې فرمانی چه ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ﴾ الخ، يعنی خلقو دپاره ددوی دخواهش څيزونه ښائسته کړې شوی دی لکه بچې او ښځې وغيره. الخ.
بيا ددنيا دژوند مثال بيانيږی چه ددې تازه والی فانی دی. او ددې خائې نعمتونه فانی دی. غيث هغه باران ته وانی چه دخلقو د نااميدئی نه پس اووريږی. لکه فرمان دې چه﴿وَهُوَ الَّذِىْ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا﴾ الله جل شانه هغه ذات دې چه هغه د خلقو د نااميدئی نه پس باران ورو ی. نو لکه څنګه چه د باران په وجه پټی پيدا کيږی اوهغه ښه شنه وی اودا زميندار ته ډير ښه ښکاری هم داشان اهل دنيا ددنيا په مال و اسباب باندې ناز کوی. خوددې نتيجه دا وی چه همدا شنه پټی اوچ شی او بيا ذرې ذرې شی.هم دا شان ددنيا تازګی او ددې خائې خوشحالی او ترقی هم ښاورو سره ښاورې کيدونکې ده. ددنيا هم دا صورتونه وی چه يو وخت کښې دا تروتازه وی،بيا ئې عمر زيات شی او بيا زوړ شی.
همداشان دانسان حالت هم دې چه دده وړوکوالی او خوانئ او بوډاوالی ته او بيا دده مرګ ته دې اوکتې شی.چرته د خوانئ د وختونو هغه جوش او جذبه او طاقت او چرته د بوډاوالی هغه کمزوری او ناچاقی او کمزوری بدن او بې طاقته هډوکی لکه دالله جل شانه ارشاد دې چه ﴿اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَيْبَةً ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ۝﴾ الله جل شانه هغه ذات دې چه هغه تاسو دکمزورئی حالت کښې پيداکړئی ،بيا ددې کمزورئی نه پس طاقت درکړو،بيا ئې ددې قوت نه پس کمزوری او بوډاوالئ درکړو هغه ذات چه څه غواړئی نوهغه پيدا کوی اوهغه عالم او قادر دی.دې مثال نه ئې ددنيا فنا او زوال ظاهرکړو او بيا ورته دآخرت دواړه منظرونه ښانی او ويروی ئې او

د بل رغبت ورته ورکوی. بیا فرمانی چه نزدې به راتلونکې قیامت خان سره عذابونه او سزاګانې راوړی. او خان سره به دالله جل شانه مغفرت او رضامندی راوړی. نوتاسوهغه کار اوکړئی چه د ناراضګۍ نه بچ شئ او رضا حاصله کړئی. دسزاګانو نه بچ شئ او د بخښنې حق دار جوړ شئ. دنیا صرف ددهوکې خانې دې. دې طرف ته چه څوك مائل وی نو په هغه داسې وخت راخی چه ده ته دې نه سوا د نور څه هډو خیال نه وی. اوددې په خیالونو کښې شپه ورځ اخته وی. بلکه ددې کم والی او کمښتوب باندې دنیا ته په آخرت ترجیح ورکوی. او په مزه مزه تر دې راشی چه اکثر دې داخرت نه منکر شی. نبی کریم ﷺ فرمانی چه د جنت دیو ټکړې خانې د دنیا دټولو څیزونو ونو نه بهتر دې او وائی قران پاك چه دنیا خو صرف د دهوکې سامان دې. (ابن جریر) دآیت مبارك زیاتوالی نه بغیر دا صحیح حدیث مبارك هم دی، والله اعلم.([1])

**جنت او جهنم دواړه انسان ته ډیر نزدې دی:-** دمسند احمد یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه تاسو کښې هرچاته جنت دومره زیات نزدې دې لکه چه څومره ستاسو د پیزار تسمه او داشان جهنم هم. ([2]) (بخاری) نومعلوم شو چه خیر او شر انسان ته ډیر نزدې دې اوپه دې وجه ده ته پکار دی چه دې نیکو طرفته سبقت اوکړی. اود بدو کارونو نه مخ واړوی. چه دده ګناهونه او خطاګانې معاف شی او دثواب درجې ئې اوچتې شی. په دې وجه ئې دې سره اوفرمائیل چه دخپل رب بخښنې طرف ته په منډه ځئ او جنت طرفته چه دهغې وسعت دزمکې او آسمان د جنس برابر دې. لکه بل خائې کښې یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿وَسَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ﴾ دخپل رب دمغفرت طرفته اوجنت طرفته سبقت حاصل کړئی چه دهغې فراخی د ټولو آسمانونواو زمکو هومره ده. او دا نیکانو خلقو دپاره جوړ شوې دې. دلته ئې اوفرمائیل چه دا په الله جل شانه او په حضور نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړنکو دپاره جوړ شوې دې. دا خلق دالله جل شانه ددې فضل لائق وو. نو په دې وجه هغه لوئې فضل والا خپل کرم دپاره دا خلق غوره کړل او په دوی ئې خپل پورا پورا احسان او اعلی انعام اوکړو. مخکښې یو صحیح حدیث مبارك بیان شوې دې چه د مهاجرینو فقیرانو حضور نبی کریم ﷺ نه سوال اوکړو یارسول الله ﷺ مالدارو خلقو دجنت اعلی همیشګیر نعمتونه حاصل کړل. حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه څنګه؟ نوهغوئ اوفرمائیل چه مونځ او روژه خومونږ ټول کوو اوساتو خود مال به وجه هغوئ صدقې کوی او غلامان آزادوی. اودا د غریبۍ په وجه څمونږ نه نه کیږی. نو حضور نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه راځئ تاسو ته څه یو داسې څیز اوښایم چه دهغې کولو سره به تاسو دهر سړی نه وړاندې شئ سوا دهغو نه چه څوك ستاسو په شان هغه کوئی. تاسو دهر مونځ نه پس درې دیرش (۳۳) ځل سبحان الله وائې، هم دومره ځل الله اکبر او هم دومره ځل الحمد لله وائې، څو ورځې پس دا خلق بیا د حضور نبی کریم ﷺ خدمت اقدس کښې حاضرشواو وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ چه څمونږ مالدارو رونړو ته هم ددې وظیفې اطلاع ملاوشوه اوهغوئ هم ددې ونیل شروع کړل نو حضور نبی کریم اوفرمائیل چه دا دالله جل شانه فضل دې چه چا ته ئې اوغواړی نو ورکونی ئې.([3])

| مَآ أَصَابَ | مِن مُّصِيبَةٍ |
|---|---|
| نه رسیږی | یو مصیبت |
| هر مصیبت چې راخی | |

[1] ترمذی کتاب تفسیر القران باب سورة آل عمران : ۳۰۱۳، وسنده حسن عن ابن هریرة ، بخاری : ۳۲۵۰ عن سهل بن سعد.
[2] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الجنة اقرب الی احدکم من شراك نعله: ۶۴۸۸.
[3] صحیح بخاری کتاب الاذان باب الذکر بعد الصلاة ......۸۴۳، صحیح مسلم : ۵۹۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِي الْأَرْضِ | وَلَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ | إِلَّا | فِي كِتَٰبٍ |
| په زمکه کښې | اونۀ په نفسونو ستاسو کښې | مګر | هغه په کتاب کښې لیکلې دی |

که په دنیا کښې راځي | او که خاص په تاسو باندې راځي | نو دا ټول په یو کتاب

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّن قَبْلِ | أَن نَّبْرَأَهَآ | إِنَّ ذَٰلِكَ | عَلَى ٱللَّهِ | يَسِيرٌ ﴿٢٢﴾ |
| مخکښې ددې نه | چې مونږ پیدا کوؤ هغه | بیشکه دا کار | په الله باندې | اسان دی |

کښې لیکلې شوې دی | د هغې د پیښیدو نه وړاندې | یقینا الله تعالی ته دا کار ډیر اسان دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِّكَيْلَا تَأْسَوْا۟ | عَلَىٰ مَا | فَاتَكُمْ | وَلَا تَفْرَحُوا۟ |
| دپاره ددې چې تاسو غمژن نۀ شئ | په هغه څه باندې | چې اوخې دلاسه ستاسو نه | او خوشحاله نشئ |

(دا خوخکه کوؤ چې) تاسو نه څه واخستې شی | په هغې باندې خفه نشئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمَآ | ءَاتَىٰكُمْ | وَٱللَّهُ | لَا يُحِبُّ | كُلَّ مُخْتَالٍ | فَخُورٍ ﴿٢٣﴾ | ٱلَّذِينَ |
| په هغې چې درکړی | تاسو ته | او الله | نۀ خوښوی | هر متکبره | فخرکونکي | هغه غاوره خلق |

او چې څه درکړې شی نو په هغې خان ته غاوره نشئ | او الله تعالی هیڅ متکبر فخر کوونکې نه خوښوی

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَبْخَلُونَ | وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ | بِٱلْبُخْلِ | وَمَن يَتَوَلَّ |
| چې شومتیا کوی پخپله | او حکم کوی خلقو ته | په شومتیا سره | او هغه څوک چې مخ اړوی |

چې پخپله هم شومتوب کوی | او نورو خلقو ته هم دشومتوب حکم کوی | او څوک چې

| | | |
|---|---|---|
| فَإِنَّ ٱللَّهَ | هُوَ ٱلْغَنِيُّ | ٱلْحَمِيدُ ﴿٢٤﴾ |
| پس بیشکه الله | خاص هم هغه بې پروا دی | ستائیلې شوې دی |

ددین نه) مخ واړوی | نو الله تعالی (دهغه د تابعدارئ نه) بې پرواه او د تعریف لائق دې

**قوله تعالی:- مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ**

**الله جل شانه تقدیر اولیکلو**: الله جل شانه دخپل هغه قدرت خبر ورکوی چه کوم هغه دخپل مخلوقاتو پیدا کولو نه مخکښې دخپل مخلوق تقدیرمقرر کړې وو. نو وې فرمائیل چه دزمکې په څه حصه باندې برانی راشی یا په یو سړی باندې څه خرابې راشی نو ده لره یقین کول پکار دی چه د خلقو د پیدائش نه مخکښې دا دالله جل شانه په علم کښې وو او ددې امر کیدل یقینې وو. بعضې وائی چه د خانونو دپیدائش نه مخکښې. بعضې وائی چه د مصیبتونو د پیدائش نه مخکښې. خو زیاته صحیح خبره داده چه دمخلوق دپیدائش نه مخکښې. دامام حسن رحمه الله نه ددې آیت مبارك باره کښې سوال اوکړې شو نووې فرمائیل چه سبحان الله هر مصیبت چه آسمان او زمکه کښې دې هغه د خلقو د پیدائش نه مخکښې دالله جل شانه کتاب کښې موجود وو. په دې کښې څه شك دې؟ دزمکې د مصیبتونو نه مراد خشك سالی او قحط وغیره دې. او دخلقو مصیبت درد او دك اوبیماری وغیره دی. چا ته چه څه تکلیف اورسی یا ورته څه مصیبت اورسی یا ورته د سخت محنت په وجه څه خوله راشی. نو دا ټول دده د ګناهونو په وجه وی. او دده خو ډیر ګناهونه دی چه الله جل شانه غفور رحیم هغه بخښی. دا آیت مبارك ډیر بهترین او اعلی دلیل دې د قدریه تردید کښې چه هغوئ خیال دې چه سابقه علم هیڅ څیز نه دې الله جل شانه دې هغوی ذلیل کړی.صحیح مسلم شریف کښې دی چه الله

جل شانه تقديرونه مقرر کړل د زمکښي او اسمانونو د پيدانش نه پنځوس زره کاله مخکښې. اوبو بل روايت کښې دی چه دهغه ذات جل شانه عرش په اوبو باندې وو(۱) (ترمذی) بيا فرماني چه دکارونويه وجود کښې د راتلو نه مخکښې اندازه کول،ددې د کيدو علم حاصلول،او دا ليکل الله جل شانه لره څه ګران نه وو. هم هغه ذات خو ددې پيدا کولو والا دې. دهغه ذات محيط علم په کړې شوې،کيدو والا او کوونکو ټولو څيزونو باندې دې. بياارشاد دې چه مونږ تاسو ته خبر درکړو په دې وجه چه تاسو ته يقين اوشی چه تاسو ته څه اورسيدل هغه بالکل هيڅ صورت کښې ختميدو والانه دی. نو د مصيبت وخت کښې صبر او شکر،ثابت قدمی،مضبوط او روحانی طاقت تاسو کښې موجود وی. ستاسو نه افوس او هائې هائې بې صبری او بې ضبطی لرې وی. تاسو باندې جزع او فزع نه وی. تاسو په اطمينان کښې اوسئ چه دا تکليف خو به راتلو. او چه کله تاسو ته مال او دولت ملاؤ شی نو چه تاسو بې قابو کيږئ نه. دا د الله جل شانه يو عطيه اوګڼړئ او تاسو کښې تکبر او غررو رانشي. داسې نه چه تاسو دمال او دولت وغيره په نشه کښې ډوب نشئ او الله جل شانه هير نکړئ. خکه چه په هغه وخت کښې به هم خمونږ تاسو سره وی چه دا خما د لاس پښواو خما دعقل او هوش نتيجه نه ده بلکه د خالق او رازق ده.ددې يو قرآت (اتکم) دې دويم بمعنی (اعطاکم) دې او دوارو کښې تلازم دې. په دې وجه ارشاد دې چه په زړه کښې خپل خان لره لوئې ګڼړلو والا او په نورو فخر کولو دالله جل شانه دښمنان دی. د ابن عباس ﷺ فرمان دې چه غم او راحت،خوشحالی او غم کښې خو هر سړې راځی،خوشحالی شکر کښې اوغم صبر کښې تير کړئ. بيا ارشاد دې چه دا خلق پخپله هم بخيلان او بې شرع کار کولو والا دی او نورو ته هم دا لار ښائی. چه کوم سړې دالله جل شانه د حکم نه اوړغړی هغه دالله جل شانه هيڅ نشی کولې. خکه چه هغه ذات دټول مخلوق نه بې نياز دې او په هر شان د حمد لائق دې. لکه چه موسی ﷺ اوفرمائيل چه ﴿إِن تَكْفُرُوٓا۟ أَنتُمْ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِىٌّ حَمِيدٌ﴾ يعنی که تاسو او په مخ دزمکې ټول انسانان کافران شی نو بيا هم دالله جل شانه هيڅ نشی کولې،الله جل شانه دټول مخلوق نه غنی دې او مستحق د حمد دې.

| | | |
|---|---|---|
| رُسُلَنَا | لَقَدْ أَرْسَلْنَا | |
| رسولان خپل | بيشکه اوليږل مونږه | |
| امونږ خپل پيغمبران | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِالْبَيِّنَٰتِ | وَأَنزَلْنَا | مَعَهُمُ الْكِتَٰبَ | وَالْمِيزَانَ |
| دواضحه هداياتو سره | او نازل کړو مونږه | دهغوئ سره کتاب | او تله (انصاف) |
| په ښکاره دلائلو سره ليږلی وو | | اوهغوئ سره مو کتاب اوانصاف ليږلي ووا چې | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِيَقُومَ | النَّاسُ | بِالْقِسْطِ | وَأَنزَلْنَا | الْحَدِيدَ | فِيهِ |
| دپاره ددې چې ودريږی | خلق | په انصاف باندې | او نازله کړه مونږه | وسپنه | چې په هغې کښې |
| خلق په انصاف (واعتدال) ولاړ پاتې شی | | ........................ | اومونږ اوسپنه راليږلې ده | | چې په |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَأْسٌ | شَدِيدٌ | وَمَنَٰفِعُ | لِلنَّاسِ | وَلِيَعْلَمَ | اللَّهُ |
| زور (طاقت) دې | سخت | او فائدې دی | دپاره دخلقو | او دپاره ددې چې معلوم کړی | الله |
| کښې ډير طاقت دې | اوخلقو ته په کښې نورې ډيرې فائدې دی | | | او دا چې الله تعالی په ظاهری علم سره | |

(۱) صحيح مسلم کتاب القدر باب حجاج آدم وموسی ﷺ: ۲۶۵۳، ترمذی: ۲۱۵۶، احمد: ۱۶۹/۲، ابن حبان: ۶۱۳۸.

| مَنْ يَّنْصُرُهٗ | وَرُسُلَهٗ | بِالْغَيْبِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | قَوِيٌّ | عَزِيْزٌ ﴿۲۵﴾ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| چي څوك امداد كوي دهغه | او درسول دهغه | بې ليدو | بيشكه الله | طاقتور دي | غالب دي |

هغه څوك اوپيژني! چې دهغه ددين او دهغه د رسولانو په ناديده مدد كوي!بيشكه الله ډير طاقتور اوغالب دي

**قوله تعالى:- لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ**

**پيغمبرانو باندې د معجزو نزول:** الله جل شانه فرمائي چه مونږ خپلو پيغمبرانوته معجزې وركړې او ښكاره حجتونه موور كړل او ښه پورا دلائلو سره مو دنيا ته اوليږل. او بيا مو دې سره دوى ته كتاب هم وركړو چه هغه صفا او ربښتونې دې. او عدل او حق مو وركړو چه هغې سره هر عقل دانسان دا خبرې قبلولوباندې مجبوروى. خو خراب رائې والا اوخلاف عقل ددې نه محروم اوسى. لكه چه بل ځائې كښې فرمائي چه﴿اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ وَيَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ﴾ چه كوم سړې دخپل رب د طرف نه په دليل وى او هغه سره ګواه هم وى. بل ځائې كښې ارشاد دې چه دالله جل شانه دا فطرت دې چه په دې هغه ذات مخلوق پيدا كړو. اوفرمائي چه آسمانونه هغه اوچت كړل او ميزان ئې كيخودو. نو دلته فرمان دې اودا په دې وجه چه خلق په عدل او حق باندې قائم اوسى. يعنى اتباع رسول ﷺ باندې اوسى. او امر رسول ﷺ اومنى. د رسول الله ﷺ ټولې خبرې حق اومنى څكه چه ددې نه سوا سراسر حق د بل چا كلام نه دې. لكه چه فرمان دې چه ﴿ وَ تَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّ عَدْلًا ﴾ ستا د رب جل شانه كلمه چه دخپلو خبرونو ربښتونې او خپلواحكامو كښې عدل والا ده. هم دا وجه چه كله ايماندار جنت ته لاړ شى اودالله جل شانه نعمتونه دوى اووينى نو اوبه وائي چه دالله جل شانه شكر دې چه هغه ذات مونږ ته ددې هدات اوكړو. كه مونږ ته هغه هدايت نه وې كړې نو مونږ ته به دا لار نه وه ملاو شوې. خمونږ درب ﷺ مونږ ته حق راورى دى.

**قوله تعالى:- وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ**

**اوسپنه دالله جل شانه نعمت دې :-** بيا فرمائي چه مونږدمنكرين حق د رالاندې كولو دپاره اوسپنه جوړه كړه. يعنى اول خو مونږ كتاب اورسول كريم ﷺ سره حجت قائم كړو، بيا د كږو زړونو والو كږولو دپاره اوسپنه پيدا كړه چه ددوى وسله جوړه شى او دالله جل شانه دوستان د الله جل شانه د دښمنانو زړونه اوچوي. همدا نمونه د حضور نبى كريم ﷺ په ژوند مبارك كښې بالكل ښكاره ښكارى چه (حضور نبى كريم ﷺ) مكه مكرمه كښې ديارلس كاله دمشركانو پوهولو اود توحيد دعوت وركولو او دهغوئ د بدو عقائد اصلاح كولو كښې تير كړل پخپله ئې په ځان مصيبتونه تير كړل او چه كله حجت قائم شو نو شرع مسلمانانو ته د هجرت اجازت وركړو. بيا دوى ته حكم اوشو چه اوس دې مخالفينو ته چه دوى داسلام اشاعت بند كړې دې، مسلمانان ئې تنګ كړي دى، او ددوى ژوند ئې لنډتنګ كړې دې، دوى سره باقاعده جنګ اوكړئي، دوى قتل كړئي اود وحى الهى مخالفينو نه زمكه پاكه كړئي.

مسند احمداو ابوداود كښې دى چه حضور نبى كريم ﷺ فرمائي چه څه د قيامت مخكښې يو توره ليږلې شوې يم. تر دې چه دالله جل شانه عبادت اوكړې شى. او څما رزق څما د غشى لاندې ايښودې شوې دې او په هغه خلقوكمينه پن او ذلت دې چه څوك څما دحكم خلاف اوكړى. اوڅوك چه يو قوم سره مشابهت اوكړى نوهغه به دهغوئ نه وى.[1] نوداوسپنې نه دجنګ كولووسله جوړه شوې ده. لكه توره، غشى، چړې اوداوسپنې قميص(زرها)وغيره. اوخلقو دپاره ددې نه دوى ته ددې(اوسپنې نه) زياتې فائدې دى. لكه كودالې بيلچې، آرې، د پټو سامان، د بونړو سامان، د پخولو لوښى، د روټئ تبخى وغيره وغيره اوډير داسې څيزونه دى چه دانسانى ژوند سره تړلې شوى دى. ابن عباس ﷺ فرمائي چه

[1] احمد: ۲/۵۰، وسنده حسن

درې خیزونه ادم ﷺ سره د جنت نه راغلي دي. نهائي(سنسی ( خټك(ابن جرير). بيا فرمائي چه الله جل شانه ته معلوم دي چه دديې وسلو اوچتولو والو دالله د رسول كريم ﷺ دمدد كولو د چا اراده ده؟ الله جل شانه قوت او غلبې والا دې. څوك چه دهغه ددين مدد اوكړي نو الله جل شانه د هغه مددكوي. هغه ذات جل شانه خو جهاد د خپلو بندګانو دآميښت دپاره مقرراوفرمائيل او غلبه او نصرت خودهغه ذات د طرفنه دي.

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا | نُوحًا | وَإِبْرَاهِيمَ | وَجَعَلْنَا | فِي ذُرِّيَّتِهِمَا |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه لیږلي وو مونږه | نوح | او ابراهیم | اوګرځولی وو مونږ | په اولاد ددواړو کښی |

اوبیشکه مونږ نوح علیه السلام اوابراهیم علیه السلام(خپل خپل قوم ته) لیږلي ووااود دي دواړو په نسل کښې

| النُّبُوَّةَ | وَالْكِتَابَ | فَمِنْهُمْ | مُّهْتَدٍ | وَكَثِيرٌ | مِّنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نبوت (پیغمبری) | او کتاب | پس ځیني دهغوئ نه | لارمونډونکی شو | او زيات | دهغوئ نه |

مو د نبوت اوكتاب سلسله جاري ساتلې وه| بيا په دوئ كښې څوك په سمه لار پاتې شوا او ډير په

| فَاسِقُونَ ۝ | ثُمَّ قَفَّيْنَا | عَلَىٰ آثَارِهِمْ | بِرُسُلِنَا | وَقَفَّيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| فاسقان وو | بيا روستو اوليږل مونږه | په هغوئ پسې | رسولان زمونږه | او روستو اوليږو مونږه |

كښې بدعمله اوختل | بيا ددوئ نه پس مونږ پرله پسې نور پیغمبران اوليږل|اودهغوئ نه پس مو

| بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ | وَآتَيْنَاهُ | الْإِنجِيلَ | وَجَعَلْنَا | فِي قُلُوبِ الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| عیسی خوئې دمریم | او ورکړو مونږه هغه ته | انجیل | او واچوو مونږه | په زړونو دهغه کسانو کښې |

د مريم خوئې عيسى اوليږلو| اوهغه ته مو انجيل وركړو | اوڅوک چې د هغه په لارروان شول

| اتَّبَعُوهُ | رَأْفَةً | وَرَحْمَةً | وَرَهْبَانِيَّةً | ابْتَدَعُوهَا |
|---|---|---|---|---|
| چې پیروی ئې اوکړه دهغه | نرمي | او رحم | او دګوټ ناسته چې ده | دخانه جوړه کړي وه هغوئ هغه |

نو دهغوئ په زړونو كښې مو نرمي او مهرباني واچوله | او رهبانيت هغوئ پخپله ايجاد

| مَا كَتَبْنَاهَا | عَلَيْهِمْ | إِلَّا ابْتِغَاءَ | رِضْوَانِ اللَّهِ |
|---|---|---|---|
| نه وه فرض کړي مونږ هغه | په هغوئ باندې | مګر دپاره دطلب | درضا دالله (هغوئ جوړ کړو دا بدعت) |

كړو | مونږ دا په هغوئ فرض كړې نه وو |خو هغوئ پخپله دالله تعالى د رضا مندئ

| فَمَا رَعَوْهَا | حَقَّ رِعَايَتِهَا | فَآتَيْنَا | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|
| پس وې نۀ کړه پابندي دهغې | الکه څنګه چې حق وو دپابندئ دهغې | پس ورکړو مونږه | هغه کسانو له |

دپاره (اختیارکړې وو) | خو بیا ئې دهغې پوره پوره لحاظ اونه ساتلو | نو چا چې

| آمَنُوا | مِنْهُمْ | أَجْرَهُمْ | وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ | فَاسِقُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړو | دهغوئ نه | اجر دهغوئ | او زيات دهغوئ نه | فاسقان دي |

په كښې اوس ايمان راوړو اهغوئ ته مو پوره پوره اجر وركړو او زيات خلق په كښې نافرمان پاتې شو

قوله تعالى:- وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَٰهِيمَ

دنوح ﷺ او ابراهيم ﷺ ذکر:دنوح ﷺ او ابراهيم ﷺ دي فضيلت ته اوګورئي چه دنوح ﷺ نه پس ابراهيم ﷺ پورې چه څومره پيغمبران راغلي دي ټول ددوی دنسل نه وو.او دبيا دابراهيم ﷺ نه پس چه څومره نبيان او رسولان راغلل ټول په ټو له ددوی دنسل نه وو.لکه چه يو آيت مبارك کښې دي چه ﴿وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتَٰبَ﴾ چه دبنی اسرائيلو پيغمبران عيسی ﷺ دمحمد ﷺ زيرې ورکړو. نو دنوح ﷺ اودابراهيم ﷺ نه پس د رسولانوسلسله جاري وه ترعيسی ﷺ پورې. اوعيسی ﷺ ته انجيل ورکړې شو.اوهغه تابع فرمانبردار اورحم دل او نرم مزاج واقع شو. خشيت الهی او رحمت خلق نه ډك او پاك وو. بيا د نصرانيانو د يو بدعت ذکر دې چه کوم دهغوئ شريعت کښې نه وو. اوداهغوئي د خپل طرفنه ايجادکړو. دې نه پس ديو جملې دوه مطلبونه بيان شوی دی. يو خو دا چه ددوی مقصد نيك وو. د الله جل شانه درضا دپاره هغوئ دا طريقه ايجاد کړې وه. سعيد بن جبير ﷺ او قتاده ﷺ وغيره همدا نقل کړې دی. دويم مطلب دا بيان شوې دې چه مونږ په دوی نه وو واجب کړې،مونږ په هغوئ صرف دالله جل شانه رضا واجب کړې وه.

بيا فرمائي چه دا هم دوی اونه کړې شو. چه څنګه کول پکار وو هغه شان ئې اونه کړو. دوه خرابئ پکښې راغلې.يودا چه يو نوې خبره ئې دالله جل شانه دين کښې ايجاد کړه. دويم دا چه په دې باندې قائم پاتې نشو. يعنی چه کوم دوی د الله جل شانه د قربت ذريعه ګڼړل په هغې باندې هم قائم پاتې نشو.ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ عبدالله بن مسعود ﷺ رابللو. هغوئ لبيك اووئيلو. نو حضور نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دبنی اسرائيلو دوه اويا ډلې شوې وو چه په هغې کښې دريو ته نجات ملاؤ شو.رومبئ فرقې خو چه د بنی اسرائيلو ګمراهی اوکتله نو دهغوئ دهدايت دپاره ئې سختې هلې ځلې شروع کړې اودهغوئ مشرانو ته ئې تبليغ شروع کړو. خوهغه خلقو جنګ ته بلې اووهلې. او بادشاه اوامراء چه ددې تبليغ نه ډير ويريدل په هغوئ لښکرې اوکړې او هغوئ کښې ئې څه قتل کړل او څه قيد کړل. هغه خلقو خو نجات حاصل کړو. بيا دويمه ډله راپورته شوه او په هغوئ کښې د مقابلې کولو توان نه وو نو دخپل دين دقوت په وجه ئې دبادشاهانو اوسرکشو په دربار کښې حق وينا شروع کړه.اودالله جل شانه اصل دين او دعيسی ﷺ مسلك اصلی طرفته ئې دعوت شروع کړو.دې بدنصيبو هغوئ قتل کړل اوپه آرو ئې آرا هم کړل او په اوور ئې اوسيزل. اودا دې ډلې صبر اوشکر سره برداشت کړل او نجات ئې حاصل کړو. بيا دريمه ډله راپورته شوه او دوی د هغوئ نه هم زيات کمزوري وو. هغوئ کښې طاقت نه وو چه اصل دين دې ظالمانو ته اوکړي. نو په دې وجه هغوئ د خپل دين بچ کيدل دې کښې اوګڼړل چه ځنګلونو ته اوخی اوغرونو ته اوخيژی اوعبادت کښې مشغول اوسی اودنيا پريږدی. او هم ددې ذکر رهبانيت والا آيت مبارك کښې راغلې دې[1]همدا حديث مبارك دويم سند سره هم ذکر شوې دې. په هغې کښې د درې اويا فرقو بيان شوې دې. او په هغې کښې دا اهم دی چه اجر به هغوئ ته ملاويږی چه څوك په ما ايمان راوړی. او ځما تصديق اوکړی اودوی کښې اکثر فاسقان دی. اودوی ما په دروغه ګڼړی او ځما خلاف کوی [2].

قوله تعالى:- وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ

دعيسی ﷺ ذکر :ابن عباس ﷺ فرمائي چه دبنی اسرائيل بادشاهانو عيسی ﷺ نه پس تورات او انجيل کښې تبديلئ اوکړې. يوه ډله خو په ايمان قائمه وه او اصلی تورات او انجيل دهغوئ لاس کښې وو او هغوئ به ددې تلاوت کولو چه کوموخلقو په کتاب الله کښې ردوبدل کړې وويوخل ئې خپلو بادشاهانو

---

[1] طبران : ١٠٢٠٦.

[2] الطبری : ٢٠٧/٢٣. حاکم : ٤٨٠/٢. وسنده ضعيف جدا.

نه ددې ربښتونو مسلمانانو شکايت اوکړو چه دا خلق کوم کتاب وائي په هغې کښې مونږ ته کتخل کوي. په هغې کښې ني ليکلي دي چه کوم خلق دالله جل شانه نازل شوي کتاب مطابق حکم نه وي نوهغوئ کافران دي. اوداشان ډير آيتونه دي.او بيادا خلق څمونږ په عملونو کښې عيبونه لټوي. نو تاسو هغوئ خپل دربار ته راوبلئ او هغوئ په دې مجبور کړئ چه يا خو هغوئ دا کتاب وائي چه څنګه ئې مونږ وايو اوداشان عقيده اولري چه څنګه مونږ لرو ګني دوی ته به بدترينه سزا ورکړې شي. نو دا ربښتوني مسلمانان دربار ته راغوښتلي شو او دوی ته اووئيلې شو چه يا خو څمونږ صحيح شوي کتاب وائي او ستاسولاس کښې چه کوم دالله جل شانه نازل شوې کتاب دې هغه پرېږدئ. ګني بيا قتل ته تيار شئ او خپلو خانونو نه لاس اووينځئ. نوبډې ددې پاکو خلقو يو جماعت اووئيل چه ناسو مونږ ته تکليف مه راکوئ. تاسو يو اوچت مکان جوړکړئ او مونږ هغه خائې ته اورسوئ او يو رسئ راکړئ چه هغه رسئ پورې يو لوښې وی او څمونږ خوراك څکاك په هغې کښې اچوئ او مونږ به ئې پورته راکاږو.لاندې به نه راکوزيږو.او ستاسومخې ته به نه رازو. يو ډلې اووئيل چه مونږ به ددې خائې نه هجرت اوکړو، څنګلونو او غرونو ته به اوزو. اوستاسو د بادشاهت حد نه به بهر شو. د چينو او نهرونو او نالونو نه به د ځناورو په شان په خوله اوبه څخو. اوچه کوم ګلونه اوپاڼې وغيره ملاويږي نوپه هغې به ګزاره کوو. دې نه پس که تاسو مونږ په خپل ملك کښې اووينئ نو بيشکه مونږ قتل کړئ. دريمې ډلې اووئيل چه مونږ خپلې آبادئي سره يو خواته خائې راکړئ او مينځ کښې ديوال اوودهئ،مونږ به کوهي اوکنو او پټي به کړو او ستاسو طرفته به بالکل نه راځو. چونکه دې الله والا ډلې سره ددې خلقو رشته دارئي وې نو ددې وجې ئې درخواستونه قبول کړل اودا خلق خپلو خپلو خايونو ته لاړل. خودوی سره نور خلق هم لاړل. اودې نورو خلقو ته دايمان او اصل علم هيڅ خبر نه وو. دوی سره تقليدا ملګری شو. نو دوی باره کښې دا آيت مبارك نازل چه ( ورهبانية( الخ).

.نو کله چه حضور نبی کريم ﷺ مبعوث شو نو په هغه وخت کښې دوی کښې ډير کم خلق پاتې وو. د حضور نبی کريم ﷺ دبعثت خبر آوريدو نه پس خانقاهونو والا دخپلوخانقاهونونه او حصار والا دخپلو حصارونو نه راوتل اود حضور نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شو. حضور نبی کريم ﷺ باندې ئې ايمان راوړو او د حضور نبی کريم ﷺ تصديق ئې اوکړو. او دهغې ذکر د ې آيت مبارك کښې دې چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَءَامِنُواْ بِرَسُولِهِۦ يُؤۡتِكُمۡ كِفۡلَيۡنِ مِن رَّحۡمَتِهِۦ وَيَجۡعَل لَّكُمۡ نُورٗا تَمۡشُونَ بِهِۦ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ﴾ يعنی ائې ايمان والو دالله جل شانه نه ويريږئ او دهغه ﷺ باندې ايمان راوړئ تاسو ته به الله جل شانه د خپل رحمت دوچند حصه درکړی.(يعنی په عيسی ﷺ باندې ايمان راوړل او په محمد ﷺ باندې ايمان راوړل)اوتاسو ته به يونوردرکړی چه هغې کښې به تاسومزل کوئ.(يعنی قران او سنت) چه اهل کتابوته معلوم شي چه ( چه ستاسو په شان دی) چه د الله (دفضل اختيار دوی ته نشته دې اوټولو نه افضل دالله جل شانه لاس دې چه چاته غواړې نوورکوئ ئې او الله جل شانه د ډير لوئې فضل مالك دې. دا سياق غريب دې او دې دواړو مخکښې آيتونو تفسير دې آيت نه پس رازي. (انشاء الله تعالی)

انس ﷺ او رهبانيت:-ابويعلی کښې دی چه دعمر بن عبدالعزيز رحمه الله په زمانه کښې سهل بن ابی امامه اوددئ پلار انس بن مالك ﷺ ته راغلل،دوی په هغه وخت دمدينې امير وو. هرکله چه هغوئ راغلل نو په هغه وخت کښې انس ﷺ مونځ کولو او ډير په مختصر مونځ ئې کولو لکه دمسافر دمونځ يا دې نه نزدې نزدې. هرکله چه دوی سلام اوګرزولو نو خلقو ددوی نه تپوس اوکړو چه تاسو فرض مونځ کولو يا نفلي مونځ؟ نووې فرمائيل چه فرض. اوهم دا مونځ دنبی کريم ﷺ وو. څما خيال کښې خو دې کښې څه کمې يا خطا نه وه.

خوکه څه هيره شوې وی نو دهغې باره کښې نه شم وئيلې. د حضور نبی کريم ﷺ فرمان دې چه په خپلو

خانونو باندې سختي مه کوئي ګنې تاسو باندې به سختي اوکړې شي. يو قوم په خپل ځان سختي اوکړه نو په هغې هم سختي اوکړې شوه. نو د هغوئ بقايا په خانقاهونو کښې او داشان په کورونو کښې اوګورئي. داسختي دترك دنيا وه چه الله جل شانه په هغوئ واجب کړې نه وه.په دويمه ورځ مونږ اوونيل چه راځئ په سورلو سواره شواو عبرت حاصل کړو. انس ﷺ اوفرمائيل چه ډيره ښه ده. نو ټول سواره شواو روان شو او ډير کلي ئې اوکتل چه هغه بالکل تباه شوي وو. او کورونه الټا پراته وو. نومونږ اوونيل چه تاسو ددې ښارونو نه واقف يئ؟ نوهغوئ اوونيل چه ښه ډير بلکه ددې ځاني اوسيدونکو نه هم. دا خلق سرکشو او حسد برباد کړل. حسد دنيکو نور لره تباه کوي. او سرکشي دهغې تکذيب يا تصديق کوي. سترګې هم زنا کوي. او د لاسونواو پښو اوژبې هم زنا شته دې. او شرمګاه دا بچ کوي يا ئې دروغ ګڼړي.([1]) مسند احمد کښې دی چه حضور نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه هر نبی دپاره رهبانيت وو او څما دامت رهبانيت دالله جل شانه لار کښې جهاد کول دی.

يو سړې ابوسعيد خدری ﷺ ته رازی او وائی چه ماته څه وصيت اوکړئي. دوی ورته اوفرمائيل چه تا څو څما نه هغه سوال اوکړو چه کوم ما د حضور نبی کريم ﷺ نه کړې وو. څه تاته وصيت کوم چه دالله جل شانه نه ويريږه. همدا کار د نيکو سر دې. او ته جهاد لازم کړه همدا داسلام رهبانيت دې. او دالله جل شانه په ذکر او تلاوت قران باندې هميش والئ کوه دا ستا د روح راحت دې په آسمانونو کښې او ستا ياد دی په زمکه کښې،دا روايت مسند احمد کښې دې ،([2]) والله اعلم.

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ   اٰمَنُوا   اتَّقُوا اللّٰهَ   وَاٰمِنُوْا   بِرَسُوْلِهٖ |
|---|
| اے هغه کسانوا چې ايمان مو راوړې دې \| اوويريږئ دالله نه \| او ايمان راوړئ \| په رسول دهغه باندې |
| اې د ايمان خاوندانو\| د الله تعالى نه اوويريږئى \|اودهغه په پيغمبر باندې ايمان راوړئ \| هغه |
| يُؤْتِكُمْ   كِفْلَيْنِ   مِنْ رَّحْمَتِهٖ   وَيَجْعَلْ لَّكُمْ   نُوْرًا |
| دربه کړي تاسو له \| دوه حصې \| درحمت خپل نه \| او دربه کړي تاسو له \| داسې نور |
| به درته د خپل رحمت دخزانې نه دوچنده درکړي \| او يوه داسې رڼا به درکړي |
| تَمْشُوْنَ   بِهٖ   وَيَغْفِرْ لَكُمْ ط   وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ   رَّحِيْمٌ ﴿۲۸﴾ |
| چې تلل به کوئ په هغې سره \| اواوبه ښښي تاسو لره \| او الله ښښونکې \| مهربانه دي |
| چې په هغې سره به (وراندې) تګ کوئ \| اوښښنه به درته اوکړي\|او الله تعالى ښښونکې مهربان دې |
| لِّئَلَّا يَعْلَمَ   اَهْلُ الْكِتٰبِ   اَلَّا يَقْدِرُوْنَ   عَلٰى شَيْءٍ |
| دپاره ددې چې وپوهيږي \| اهل   کتاب \|چې نه دی قادران هغوئ \| په هيڅ څيز باندې |
| دابه څکه درکړي) چې کتابيانو ته (په قيامت کښې)دا ښکاره شي |
| مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ   وَاَنَّ الْفَضْلَ   بِيَدِ اللّٰهِ   يُؤْتِيْهِ   مَنْ |
| دفضل دالله نه \| او بيشکه چې فضل \| په لاس دالله کښې دي \| چې ورکو هغه \| هغه چاته |
| (چې دالله تعالى په فضل باندې دهغوئ هيڅ اختيار نشته\|اودا چې فضل خو هم دالله په لاس کښې دې |

[1]) ابوداود كتاب الادب باب في الحسد : ٤٩٠٤.
[2]) احمد: ٢٦٦/٣

| يَشَاءُ | وَاللهُ | ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ |
|---|---|---|
| چې غواړي ئې هغه \| او الله \| | خاوند دفضل لوئ دی \| | |
| چاته چې اوغواړي \| نو هغه ته ئې ورکوي\| او الله: | ی د لوئې فضل مالک دې | |

**قوله تعالى:- يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِ**

**اهل كتاب مومنانو دپاره دوچند اجر دې** :ددې نه مخکښې آيت مبارك کښې بيان اوشو چه ابن عباس ﷺ فرمائي چه دې خائې کښې دکومو مومنانو ذکر دې دهغې نه مراداهل کتابومومنانوذکردې اودوی ته به دوچند اجر ملاويږی لکه څنګه چه دسورة ق آيت مبارك کښې دی.اولکه څنګه چه حديث مبارك کښې راغلی دی چه دريو کسانو ته به الله جل شانه دوچند اجر ورکوي. يو هغه اهل کتاب چه په خپل نبی ئې ايمان راوړو او بيا ئې په ما باندې ايمان راوړو هغه ته به دوچند اجر ملاويږی.اوهغه غلام چه د خپل مالك تابعدارئي سره سره دخپل رب هم حق ادا کوی نو هغه ته به دوچنداجرملاويږی.اوهغه سړې چه هغه خپلې وينځې ته ادب اوښائي اوډير ښه ادب ورته اوښائي. يعني بيا هغه آزاده کړی او ورسره نکاح اوکړی،هغه هم د دوچند اجر مستحق دې. (بخاري ومسلم). حضرت سعيدبن جبير ﷺ فرمائي چه کله اهل کتابو په دې دوچند اجر فخر شروع کړو نو الله جل شانه دا آيت مبارك ددې امت باره کښې نازل شو او دوی ته د دوچند اجر نه پس د نور هدايت هم ورکړې شواو مغفرت وعده هم اوشوه. نو نور انواردمغفرت دوی ته دوباره ملاؤ شو[1](ابن جرير). هم ددې مضمون ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ﴾. يعني ائې ايمان والو که تاسو دالله جل شانه نه ويريږئ نوهغه به ستاسو دپاره فرقان نازل کړی او ستاسو نه به ستاسو خرابی ختمې کړی او تاسو به معاف کړی او الله جل شانه ډير لوئې فضل والا دې.

**دعمر فاروق ﷺ ديهودي عالم نه سوال کول:-** عمر فاروق ﷺ د يهودو يو لوئې عالم نه تپوس اوکړو چه تاسو به په يو نيکئ زيات نه زيات څومره اجر اجر ملاويږی؟ هغه اووئيل چه درې نيم سوه پورې. دوی د الله جل شانه شکر ادا کړو او وې فرمائيل چه مونږ ته ستاسو نه دوچند ملاؤ شوې دې. سعيد ﷺ هم دا بيان کړواوهمداآيت مبارك ئې اولوستواو وې فرمائيل چه همداشان دجمعې دوچنداجردې[2]د مسند احمد يو حديث مبارك کښې دی چه ستاسواوديهود اونصرانيان مثال دهغه سړی په شان دې چه هغه څو مزدوران په کار لګول غوښتل او اعلان ئې اوکړو چه څوك شته دې چه څما نه يو قيراط واخلی اوسحر مونږ نه تر نيمې ورځې پورې کار اوکړی؟ نو يهود تيار شو. بيا ده اووئيل چه ماسپخين نه مازيګر پورې څوك کار کوی نو هغه ته به هم څه يو قيراط ورکوم. نوبه دې نصرانيان تيار شو. کار ئې اوکړو او اجرت ورته ملاؤ شو. ده بيا اووئيل چه مازيګر نه ماښام پورې چه څوك کار کوی نو هغه ته به څه يو قيراط ورکوم. نوهغه تاسومسلمانان يئ. نو په دې يهود او نصرانيان غصه شو او وې وئيل چه کار مونږ ډير اوکړو او اجر هغوئ ته زيات ملاويږی،مونږ ته کم ملاؤ شو. نو هغوئ ته جواب ورکړې شو چه ماخو ستاسوڅه حق نه دې وهلې؟ نو هغوئ اووئيل چه نه داسې خو څه نشته دې.نوبياجواب کښې ورته اووئيلې شو چه بياداڅما فضل دې چه چا ته اوغواړم او ورکوم ئې[3].

صحيح بخاري شريف کښې دی چه دمسلمانانو او يهوديانو او نصرانيانو مثال دهغه سړی په شان دې چه هغه څه خلق په کار اولګول او د مزدورئ خبره ئې ورسره اوکړه او ورته ئې اووئيل چه ټوله ورځ به کار کوئ.هغوئ کار شروع کړو. خو نيمه ورځ کار کولو نه پس ئې اووئيل چه اوس مونږ ته ضرورت

---

[1] بخاری کتاب العلم باب تعليم الرجل امته واهله : ۹۷، صحيح مسلم: ۱۵۴.

[2] الطبری : ۲۱۰/۲۳.

[3] احمد : ۶/۲، صحيح بخاری کتاب الاجارة باب الاجارة الى نصف النهار : ۲۲۶۸ ترمذی : ۲۸۷۱۰ ، ابن حبان: ۶۶۳۹.

نشته دي چه کوم مونږ اوکړل اومونږ ددې مزدورئي هم نه غواړو او نور کار به هم نه کوو. ده ورته ډير اوونيل چه کار پوره کړئي او مزدوري واخلئ. خو هغوئ صفا انکار اوکړو. او کار ئې نيمګړې پريښودو اولاړل. نو ده نور مزدران راوستل او ورته ئې اوونيل چه باقي کار تاسو ماښام پورې پوره کړئي او پوره مزدوري واخلئ. دوی کار شروع کړو. خود مازيګر نه پس دوی هم دکار نه اوتختيدل او وې وئيل چه مونږ نه نور کار نه کيږي او مونږ ته ستا اجرت هم نه دې پکار. ده هغوئ هم ډير پوهه کړل چه ګورئي اوس ورځ کښې څه پاتې دی کار پوره کړئي اومزدوري واخلئ. خو دوی اونه منل او لاړل. بيا ده نور مزدوران راوغوښتل او ورته ئې اونيل چه تاسو ترماښامه پورې کار اوکړئي اود ټولې ورځې مزدوري واخلئ. نو دوی تر ماښام پورې کار اوکړو او ددې دواړو ډلو اجرت هم دوی واخستو. نودا دې دهغوئ مثال او دهغه نور مثال چه هغوئ قبول کړو([1]). بيا فرمائي چه دا په دې وجه چه اهل کتاب يقين اوکړي چه الله جل شانه چاته ورکول غواړي نو دې د هغې دواپس کولو او چه چا ته ورنکړي نو دې دهغې د اخستلو قدرت نه لري. او دوی دې دا خبره هم قبوله کړي چه دفضل اوکرم مالك صرف الله جل شانه دې. دهغه ذات دفضل هيڅ اندازه نشي لګيدلې.

امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه د (لِئَلَّا يَعْلَمَ) معنی (ليعلم)ده. دابن عباس رضی الله عنه قرآت کښې (لكي يعلم) دې. همداشان دعبدالله بن عبدالله رحمه الله او سعيد بن جبير رحمه الله نه هم دا قرآت نقل دې. غرض دا دې چه دعربو کلام کښې(لا) صله دپاره رازی چه دکلام په اول کښې او آخر کښې رازی. اوهغه ځائې ترې انکار مراد نه وی. لکه (مَا مَنَعَكَ أَنْ لَا تَسْجُدَ) کښې او (وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ) کښې او (وَحَرَامٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ) کښې.

الحمدالله دسورة حديد تفسير ختم شو اودې سره اوويشتمه پاره هم ختمه شوه.

[1]) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلاة باب من ادرک رکعة من العصر قبل الغروب : ۵۵۸.

| ياتونه | سورة المجادلة مدنية وهی اثنتان وعشرون اية وثلاث ركوعات | ركوعات |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۲ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم كونكې دې | ۳ |

قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا

يقيناواوريده الله ا خبره ا دهغې ښځې ا چې تكرار كوی ستا سره ا په باره دخاوند خپل كښې ا

بیشكه الله تعالی دهغې ښځې خبره واوریدله اچې دخپل خاوند په حق كښې نې تاسره تكرار كولو

وَتَشْتَكِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ۝

او فریاد كوی ا الله ته ا او الله اوری ا دیو بل سره خبری ستاسو ا بیشكه الله اوریدونكې لیدونكې دې

اوالله ﷻ ته نې شكایت كولو ا اوالله ﷻ ستاسود دواړو خبرې اوریدلې یقینا الله ﷻ هر څه اوری هر څه وینی

**قوله تعالی:- قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا**

**شان نزول او د حضرت خوله رضی الله عنها واقعه:-** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د الله ﷻ ذات د حمد اوثناء لائق دې دچااوریدو چه ټول آوازونه راګیر كړی دی.داشكایت كونكې بی بی راغله اوحضور ﷺ سره نې داسې پټې پټې خبرې كولې چه سره د دې چه په دې كور كښې وه خو ما بالكل دا وانو ریدل چه هغه څه وائی؟ الله ﷻ داپټ آواز هم واوریدو اودا آیت نازل شو[1]او په روایت كښې دحضور ﷺ فرمان داسې نقل دې چه دبركت خاوند دې هغه الله ﷻ چه اوچت او ټیټ آواز اوریدې شی.دا شكایت كونكې بی بی حضرت خوله بنت ثعلبه رضی الله عنها چه كله د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه نو داسې غوږیستنې نې كولې چه آوازخو غوږونوته رسیدو ولې سره د دې چه په دې كور كښې وه زما غوږونوته نه رسیدې چه د خپل خاوند شكایت كولو سره نې اوفرمائیل یارسول الله ﷺ!زما خوانی، هغوی نه خو بچې شوی اوس چه زه بوډئی شوم اود بچو پیدا كولو جوګه پاتې نه شوم نو زما خاوندزما نه ظهاراوكړو. اې الله ﷻ! زه تاته خپل د دې غم ژړا كوم. دې وخت كښې دا بی بی صاحبه لاد كور نه وتلې نه وه چه حضرت جبرائیل علیه السلام دا آیت راوړو نازل شو. د هغې د خاوندنوم حضرت اوس بن صامت وو رضی الله عنه[2])

هغه ته به كله څه لیونتوب شان كیدو نو دې حالت كښې به نې د خپلې بی بی نه ظهار كولو، بیا چه به كله ښه شونو تابه ونیل چه هډو هیڅ هم نه وو. بی بی صاحبه د حضور ﷺ نه فتوی د تپوس كولو اود الله ﷻ په وړاندې خپله سوال زاری بیانولود پاره راغله په كومه چه دا آیت نازل شو.([3])

**دخوله رضی الله عنها شان او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه:-** حضرت ابویزید رحمه الله فرمائی چه حضرت عمر رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه كښې نورو خلقو سره روان وو چه یوې ښځې آواز اوكړو ویدرولو. حضرت عمر رضی الله عنه ډیرزراودریدواودهغې خواته لاړو په توجو او ادب سره نې خپل سر ټیټ كړو د هغې خبرې چه واوریدې. كله چه هغې خپله غوښتنه پوره كړه او پخپله لاړه نو هله حضرت امیرالمؤمنین هم مونږ ته واپس راغلو.یوسړی اوونیل چه امیرالمؤمنین د یوې بوډئی په وینا تاسو اودریدنی اودومره سړی ستاسود

---

[1]) احمد ٦/٣٦ صحیح بخاری كتاب التوحید باب قوله تعالی (وكان الله سمیعًا بصیرا) معلقًا قبل حدیث ٧٣٨٦، ابن ماجه ١٨٨، النسائی ٦/١٦٨ ح ٣٤٦٠ وروایات المدلسین فی الصحیحین محمولة علی السماع

[2]) الطبری ٢٣/٢٢٦.(ابن ابی حاتم)

[3]) ابوداؤد كتاب الطلاق باب فی الظهار ٢٢١٩ وهوحدیث صحیح.

باره اودریدل. هغوی اوفرمائیل افسوس! پوهیږئ چه دا څوك وه؟ ونې فرمائیل چه دا هغه ښځه وه د چاڼریاد چه الله ﷻ په اووم آسمان کښې واوریدو. دا حضرت خوله بنت ثعلبه رضي الله عنها وه که نن دسحر نه ماښام خو پریږده که شپه ئې کوله هم او ماته نې څه وینا کوله نو بیا به هم زه د هغې د خدمت نه نه خوزیدم اود مانځه په وخت کښې به مې مونځ کولو اوبیا به خدمت ته ملا تړلې ولاړ ووم(ابن ابی حاتم). د دې سند منقطع دې او په بل روایت سره هم مروی دې. په یوروایت کښې دی چه دا حضرت خوله بنت صامت رضي الله عنها وه اود هغې د مور نوم معاذه رضي الله عنها وه د چا باره کښې چه دا آیت ﴿ولاتكرهوهن من فتيتكم﴾[1] نازل شوې وو. خو صحیح دا ده چه حضرت خوله رضي الله عنها داوس بن صامت رضي الله عنه بی بی وه، الله ﷻ دې د هغوی نه راضی وی.

| اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ |
|---|
| هغه کسان \| چی ظهار کوی \| ستاسو نه \| دښځو خپلو سره |
| په تاسو کښې چې څوک دخپلو ښځو سره ظهار کوی |
| مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓـِٔیْ |
| نه دی هغوئ \| میندې دهغوئ \| نه دی میندې دهغوئ \| مګر هغه ښځې نې میندې دی \| |
| نو هغه ښځې ددوئ میاندې خو نه دی \| میاندې خونې بس هغه دی چې دوی نې |
| وَلَدْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ |
| چې زیږولې نې دی هغوئ لره \| او بیشکه دوئ \| خامخا وائی \| بې مناسبه \| دخبری نه |
| زیږولی دی \| یقینا چې دوئ یوه غیرمناسبه او دروغ |
| وَزُوْرًا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۝ وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ |
| او دروغ \| او بیشکه الله \| خامخا معاف کونکې \| ښښونکې دې \| او هغه خلق \| چې ظهار کوی |
| خبره کوی\|او بیشکه الله معافی کونکې بخښونکې دې \|...............او څوک چې دخپلو ښځو |
| مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ |
| دښځو خپلو سره \| بیا واپس کیږی \| دهغه خبری نه \| چې ونیلې وه هغوئ \| پس ازادول دی |
| سره ظهار اوکړی بیا د خپلې خبرې نه واپس کیدل (یعنی تلافی کول) غواړی\| نو دهغه په ذمه یو غلام |
| رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ؕ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ |
| دیو مرئی \| مخکښې دلاس وروړلونه یو بل له \| دا حکم دې \| چې نصیحت کیږی تاسو ته \| |
| ازادول دی \| ددې نه وړاندې چې دواړه یو بل سره یوځائې شی\|دا حکم ځکه دې چې تاسوترې نصیحت |
| بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ فَمَنْ |
| په دې سره \| او الله \| په هغه کارونو \| چې کوئ نې تاسو \| خبردار دې \| پس هغه چا |
| واخلئ\| اوتاسو چې کوم کارونه کوئ الله ﷻ پرې ښه خبر دې \| ....................نو څوک چې |

[1] ٢٤/النور:٣٣ .

| لَّمْ يَجِدْ | فَصِيَامُ | شَهْرَيْنِ | مُتَتَابِعَيْنِ | مِنْ قَبْلِ |
|---|---|---|---|---|
| چې بيا نه موندو (غلام) | پس روژې نيول دي | دوه مياشتې | مسلسل | مخکښې |
| غلام بيانه مومي | نو دوه مياشتې پرله پسې (مسلسل) روژې نيول لازم دي | ددې نه وړاندې | | |

| أَنْ يَّتَمَاسَّا | فَمَنْ | لَّمْ يَسْتَطِعْ | فَإِطْعَامُ |
|---|---|---|---|
| دلاس وروړلو نه يو بل له | پس هغه څوک | چې طاقت نې نۀ لرو (دروژو) | پس خوراك وركول دي |
| چې دواړه يو بل سره يوځاى شي | اوڅوک چې دا هم نشي كولې | نو شپيتو | |

| سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا | ذٰلِكَ | لِتُؤْمِنُوْا | بِاللّٰهِ |
|---|---|---|---|
| شپيتو مسكينانوته | دا حكم دي | دپاره ددې چې تاسو ايمان راوړئ | په الله باندې |
| مسكينانو ته خوراک وركول دي | دا (حكمونه) څكه دي | .........چې تاسو په الله اوهغۀ په | |

| وَرَسُوْلِهٖ | وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابٌ |
|---|---|---|---|
| او په رسول دهغه باندې | او دا مقرر كړې شوي حدونه دالله دي | او دپاره دكافرانو | عذاب |
| رسول ﷺ ايمان راوړئ | اودا دالله ﷻ مقرر حدود دي | اود كافرانو دپاره دردناک عذاب مقرر دې | |

| أَلِيْمٌ |
|---|
| دردناك دي |

قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ

دظهار مسئله ا د خوله زباني قصه:-حضرت خوله بنت ثعلبه رضي الله عنها فرمائي دالله ﷻ قسم زمااوزما دخاونداوس بن صامت رضي الله عنه باره كښې ددې سورة مجادله دشروع څلور آياتونه نازل شوى دى.زه د هغوى په كوركښې ووم،هغه د ډير عمر وو اواخلاق ئې هم ډير ښه نه وو. يوه ورځ ما په خبرو خبروكښې د هغه د څه خبرې خلاف اوكړه او هغه له مې څه جواب وركړو په هغې باندې هغه ډير په غصه شو او په غصه كښې ئې اووئيل ته په ما باندې زما د مور د ملا په شان ئې اود كورنه اووتلو او په قومي مجلس كښې د لږ شان ناستې نه واپس راغلو او ماسره ئې خاص خبرې اترې كول غوښتل ما ونيل چه د هغه الله ﷻ قسم د چا په لاس كښې چه د خوله ځان دې ستا د دې وينا نه پس اوس دا خبره ناممكن ده تر دې چه د الله ﷻ اود هغه د رسول الله ﷺ خبره زمونږ فيصله اونه كړي خو هغه اونه منل او زبردستي ئې اوكړه.كمزورې او ضعيف وو زه په هغه باندې غالب راغلم او هغه په خپل مقصد كښې كامياب نه شو. خپلې ګاونډئې كره لاړم اود هغې نه مې كپړه اوغوښتله او رسول الله ﷺ له اورسيدلم. دا واقعه مې هم بيان كړه او خپل نور مصيبتونه او تكليفونه مې هم بيان كړل. حضور ﷺ به هم دا فرمائيل چه خوله د خپل خاوندباره كښې د الله ﷻ نه اوويريږه هغه بوډا دې. اوس لا داخبرې كيدلې چه په حضور ﷺ باندې د وحى كيفيت شروع شواو وحى نازل شوه. حضور ﷺ اوفرمائيل اې خوله ستااوستاد خاوند باره كښې د قرآن كريم آياتونه نازل شو بيا حضور ﷺ د (قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ) نه ( عَذَابٌ أَلِيْمٌ ) پورې واورول.

د ظهار كفاره:-اوونې فرمائيل لاړه شه اوخپل خاوند ته اووايه چه يوغلام آزادكړي.ماعرض اوكړو حضور ﷺ! هغه سره غلام چرته دې؟هغه خوډير مسكين سړې دې.نوحضور ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده دوه مياشتې دې پرله پسې روژې اونيسي. ماوئيل حضور ﷺ! هغه خود ډيرعمر بوډا سړې دې د هغه د دوه مياشتو د روژو ساتلو هم طاقت نشته. بيا حضور ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده شپيتومسكينانوته دې يو

وسق (تقريبا پاخه خلورمنه كهجوري) وركړي. ماوونيل حضور ﷺ! هغه مسكين سره خوداهم نشته. حضورﷺ اوفرمائيل چه بنه ده نيم وسق كهجوري به زه د خپل طرف نه وركړم. ماوونيل ډيره بنه ده نيم به زه وركړم. حضورﷺ اوفرمائيل چه دا ډير بنه كاراوكړو زه دا اداكړه او د خپل خاوندسره چه ستا د تره خوئ دي په مينه محبت خيرخواهئ اوحكم منونكې ژوندتيركړه(١) هغې نوم په بعضو روايتونو كښې دخويله په ځائ خوله هم راغلي دي اود بنت ثعلبه په ځائ بنت مالك بن ثعلبه هم راغلې دې. په دې اقوالوكښې داسې هيڅ اختلاف نشته چه د يوبل خلاف وي. والله اعلم. د دې سورة د شروع آياتونو صحيح شان نزول هم دغه دې.

**د حضرت سلمه بن صخر ﷺ د ظهار واقعه:**-دحضرت سلمه بن صخر ﷺ واقعه چه اوس راخې هغه د دې د نازليدلو ذريعه نه ده. خو چه كوم حكم د ظهارپه دې آياتونوكښې وو هغوى ته هم وركړې شو يعنى د غلام آزادى يا روژې ساتل يا خوراك وركول. دحضرت سلمه بن صخرﷺ واقعه پخپله د هغه په ژبه دا ده چه په ماكښې د جماع طاقت د نورونه زيات وو. په رمضان كښې د دې ويرې چه هسې نه د روژې په وخت كښې بچ نه شم ماد ټول رمضان د پاره د خپلې بى بى نه ظهاراوكړو. يوه شپه چه هغه زما په خدمت كښې لګيا وه د بدن يوې حصې نه نې كپړا اخواشوه نو بيا تاب چرته وو؟هغې سره مې كوروالئ اوكړو.سحرخپل قوم ته راغلم چه د شپې داسې واقعه شوې ده تاسو ما رسول الله ﷺ له بوځئ اود حضورﷺ نه تپوس اوكړئ چه د دې ګناه بدله څه ده؟ ټولو انكار اوكړو چه مونږ خوتاسره نه خو هسې نه چه په قرآن كريم كښې د دې متعلق څه آيت رانازل نه شي او يا حضورﷺ څه داسې خبره اوفرمائي چه د هميشه د پاره زمونږ د پاره شرم جوړشي. ته پوهه شه او ستاكار تاولې داسې كول؟مونږ تاسره نه خو. ماوئيل چه بنه ده زه يوازې ځم. زه لاړم او حضورﷺ ته مې ټوله واقعه بيان كړه. حضورﷺ اوفرمائيل چه تا داسې كړي؟ ماوئيل چه آوجي مانه داسې شوي دي. حضورﷺ اوفرمائيل چه تا داسې كړي؟مابيا همداعرض اوكړوچه اوحضورﷺ مانه داسې شوي.حضورﷺ په دريم خل همداسې اوفرمائيل او ما بيا اقرار اوكړو او عرض مې اوكړو چه حضورﷺ زه حاضريم چه څه سزا زما د پاره وي زه به هغه په صبر سره تيره كړم تاسو حكم اوفرمائي. حضورﷺ اوفرمائيل زه لاړشه يوغلام آزادكړه. ما په خپل سټ باندې لاس كيخودو او عرض مې اوكړو چه حضورﷺ زه خوصرف د دې مالك يم په الله ﷻ قسم زماد غلام آزادولوطاقت نشته. حضورﷺ اوفرمائيل چه بيا پرله پسې دوه مياشتې روژې اوساته نو ما اوونيل چه يارسول الله ﷺ هم د روژو په وجه خوداسې اوشو. بيائې حكم اوكړو چه زه صدقه اوكړه نو ما ونيل چه په الله ﷻ قسم چه تاسو يئې په حقه سره راليږلې يئې ما سره خو هيڅ نشته بلكه نن شپه ټول ټبر په لوږه تيره كړې ده. وئې فرمائيل چه بنه ده د بنوزريق قبيلې د صدقې والا له لاړشه او هغه ته اووايه چه د صدقې مال دې تاته دركړي نو ته د هغې نه يو وسق كهجورې شپيتو مسكينانوته وركړه او باقى ته هغه په خپل كاراود بال بچ په كاركښې راوله. زه خوشحاله خوشحاله خپل قوم له راغلم چه تاسوسره خومابدي اوتنګى موندلې وه او محمدﷺ سره مې وسعت اوبركت اوموندلو.د حضورﷺ حكم دې چه خپله صدقه تاسو مانه راكړئې نو هغوى ماته راكړې (٢)

په ظاهره خوداسې معلوميږي چه داواقعه د حضرت اوس بن صامت او د هغه بى بى حضرت خويله بنت ثعلبه ﷺ د واقعې نه روستوده. د حضرت ابن عباس ﷺ فرمان دې چه د ظهار رومبنئ واقعه د حضرت اوس بن صامت ﷺ ده چه د حضرت زيدبن صامت ﷺ رور وو. د هغه د بى بى نوم حضرت خوله

---

١) ابوداؤد كتاب الطلاق باب الظهار: ٢٢١٤. (مسنداحمد، ابوداؤد)

٢) احمد ٣٧/٤، ابوداؤد حواله سابق، ٢٢١٣، ترمذى:٣٢٩٩، ابن ماجه:٢٠٦٢، المنتقى لابن الجارود:٧٤٤، صحيح ابن خزيمه:٢٣٧٨، حاكم: ٢٠٣/٢، بيهقى:٣٩٠/٧. (مسنداحمد، ابوداؤد وغيره)

بنت ثعلبه بن مالك وه. په دې واقعه باندې حضرت خوله ته ویره وه چه کیدیشی طلاق شوې وی. هغه راغله اوحضور ﷺ ته نې اووئیل چه زما خاوند زما نه ظهاراوکړواوکه مونږ دواړه جدا جدا شو نو دواړه به بربادشو. زه اوس د دې خبرې هم پاتې نه شوم چه زمانه به اولاد اوشی اوزمونږ د دې تعلق هم موده تیره شوه. نورې ئې هم داسې خبرې کولې او ژړلې. تراوسه پورې په اسلام کښې د ظهار هیڅ قسم حکم نه وونو په دې باندې دا آیاتونه د شروع سورت نه تر ﴿ٱلِيمٌ﴾ پورې نازل شو. حضور ﷺ حضرت اوس ﷺ راوغوښتلوچه ته غلام آزادولې شې؟هغه په قسم خوړلو سره انکاراوکړو.حضور ﷺ د هغه د پاره رقم راجمع کړو اوهغه په دې سره غلام آزادکړو اوخپلې ښځې ته ئې رجوع اوکړه([1])حضرت ابن عباس ﷺ نه علاوه د نوروهم ډیرو بزرګانودا قول دې چه دا آیاتونه هم د دوی باره کښې نازل شوی دی. والله اعلم.

دظهارتعریف:-دظهارلفظ مشتق دې د ظهرنه، اود جهالت په زمانه کښې به د ظهارکولوپه وخت کښې داسې وئیل ﴿انت علی کظهر امی﴾ یعنی ته په ماباندې داسې یئې لکه زمادمورشا. په شریعت کښې دا حکم دې چه که داسې هراندام یادکړې شونو ظهارکیږی. ظهاربه د جاهلیت په زمانه کښې طلاق ګڼړلې شو. الله ﷻ په دې کښې د دې امت د پاره کفاره مقررکړه او دا ئې طلاق شمیرنه کړو لکه څنګه چه به د جاهلیت په زمانه کښې دستوروو.سلفوکښې اکثرحضراتوداسې فرمائیلی.حضرت ابن عباس ﷺ جاهلیت د زمانې ددستورذکر کولو سره اوفرمائیل چه په اسلام کښې کله دحضرت خوله ﷺ واقعه پیښه شوه اودواړه ښځه اوخاوند پښیمانه شو نوحضرت اوس ﷺ خپله بی بی د حضور ﷺ په خدمت کښې اولیږله.کله چه دا راغله اوونی کتل نوحضور ﷺ ګمنزه کوله،حضور ﷺ چه دا واوریده نو وئی فرمائیل چه زمونږ سره د دې څه حکم نشته. په دې کښې دا آیاتونه نازل شو او حضور ﷺ حضرت خوله ﷺ ته ئې زیرې ورکړو او وئی لوستل. کله چه د غلام د آزادولو ذکر راغلو نو عذر ئې اوکړوچه مونږ سره خوغلام نشته بیا د روژو ذکر راغلو نو وئی وئیل چه هره ورځ درې ځل اوبه اونه څکو نو د بوډا والې نه به مړه شو. کله چه د خوراك د ورکولوذکر راغلو نو وئی وئیل چه مونږ خو په یوځو نمړوباندې ټوله ورځ تیروو نوروته به څه ورکړو؟نو حضور ﷺ نیم وسق دیرش صاع راوغوښتل اودې ته ئې ورکړه چه داصدقه کړه اوخپل خاوندته رجوع اوکړه([2])د دې اسناد قوی اوپاخه دی خود غرابت نه خالی نه دی.

د حضرت ابوالعالیه ﷺ نه هم داسې روایت دې فرمائی چه خوله بنت دولیج د یوانصاری ښځه وه چه کم نظرې غریب او بداخلاقه وو. یوه ورځ د ښځې خاوند په مینځ کښې په څه خبره جګړه اوشوه نود جاهلیت ددستورمطابق ئې ظهاراوکړو چه د هغوی طلاق وو. دا ښځه د حضور ﷺ کورته لاړه هغه وخت حضرت عائشې ﷺ دحضور ﷺ سرمبارك وینځلوټوله واقعه ئې ورته بیان کړه.حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوس څه اوکړو زما په علم کښې خوته په هغه حرامه شوې. دې اوریدو سره هغې اووئیل یاالله زماعرض اوسوال تاته دې. دې وخت کښې حضرت عائشه ﷺ د حضور ﷺ دسرمبارك یوه حصه اووینځله او بل طرف ته راتاوشوه اوهغه طرف ئې وینځلو نوخوله ﷺ هم بل طرف ته راتاوشوه اوخپله ټوله واقعه ئې واوروله. حضور ﷺ بیا هغه جواب ورکړو. حضرت ام المؤمنین ﷺ اوکتل چه د حضور ﷺ د مخ مبارك رنګ بدل شو نو دې ته ئې اووئیل چه ته اخوا کینه او پخپله هم اخوا شوه او وحی نازلیدل شروع شو. چه کله وحی نازل شوه نوحضور ﷺ اوفرمائیل هغه ښځه څه شوه نو ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ هغې ته آوازاوکړو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل لاړه شه خپل خاوند راوغواړه نو هغه په منډه لاړه او خپل خاوند ئې راوغوښتلو نوواقعی هغه هم داسې وو چه څنګه هغې بیان کړې وو.حضور ﷺ ﴿استعیذ بالله

---

[1] الطبری ۲۲۷/۲۳. (ابن جریر)
[2] الطبری ۲۲۲/۲۳. (ابن جریر)

الحکیم العلیم بسم الله الرحمن الرحیم) لوستلو سره د سورت دا آیاتونه واورول او ونی فرمائیل چه ته غلام آزادولې شې؟هغه ونیل نه.ونی فرمائیل چه دوه میاشتې پرله پسې روژې ساتلې شې؟هغه قسم اوخورلوچه د ورځې دوه درې ځل خوراك اونه کړم نو نظر مې بالکل خی.ونی فرمائیل شپیتو مسکینانو ته ډوډنی ورکولې شې؟ هغه ونیل چه نه اوکه ته زماامدادواوفرمائي نوهغه بله خبره ده. نو حضور ﷺ د هغه امداداوکړو او ورته نی اوفرمائیل چه په شپیتو مسکنانو باندې اوخوروه اود جاهلیت دا رسم نی اخواکړو او الله ﷻ دا ظهارمقرر کړو.(۱).

ایلاء او ظهار په جاهلیت کښې طلاق کنړلې کیدل:-سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی چه ایلاء او ظهارد جاهلیت د زمانې طلاقونه وو. الله ﷻ خود ایلاء د پاره څلورمیاشتې مقررکړې اوپه ظهارکښې کفاره مقررکړه. امام مالك رحمه الله لفظ (منکم) نه استدلال کړې دې چه دلته خطاب مؤمنانوته دې نو په دې وجه کافر په کښې داخل نه دی.دجمهورو مذهب د دې نه خلاف دې.هغوی داجواب ورکوی چه دا په اعتبار د غلبه وئیلې شوېدی پدې وجه دقیدپه توګه ددې مفهوم نه ددې مخالف مرادنه شی اخستې. د(مِن نِّسَآئِهِم) نه جمهورو دا استدلال کړې دې چه وینځې نه ظهار نشته اونه هغه په دې خطاب کښې داخله ده.

د وینځې نه ظهار صحیح نه دې

مسلک حنفی:- د حنفیانو په نیز د وینځې نه ظهار کول صحیح نه دې لکه څنګه چه د امام شافعی احمد او نورو ډیرو فقهاؤ دا مذهب دې (تفسیر مظهری ۹/۲۱۹)-

د کافر ظهار صحیح نه دې

مسلک حنفی:-دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د کافر لکه ذمی وغیره شو دهغه ظهار نه صحیح کیږی ځکه چه هغه په احکامو د شریعت مکلف نه دې (تفسیرمظهری ۹/۲۲۹)-

بیا فرمائی چه په دې وینا سره چه ته په ما د مورپه شان یئی یا زما د پاره ته زما د مور په شان یئی یا زما د مورد شا په شان یئی یاداسې نورقسم الفاظ وئیلوسره هغه ښځه په ریښتیاسره مور نه جوړیږی حقیقی مورخوهم هغه ده د چا د خیټې نه چه دې پیداشوې دې.دا خلق په خپله خُله باندې خرابې او باطلې خبرې کوی الله ﷻ معافی کونکې او ښونکې دې. هغه د جاهلیت دا تنګی تاسو نه لرې کړه. دغه شان هره هغه خبره چه بغیرد سوچ او پوهې نه د ژبې نه بغیرارادې اوځی. په ابوداؤد وغیره کښې دی چه حضور ﷺ واوریده چه یوسړی ښځې ته وئیل چه اې زما خورې نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا ستا خور ده؟(۲)غرض دا وینا ورته خرابه ښکاره شوه نو هغه نی منع کړو خود دې حرمت نی ثابت نه کړو ځکه چه دې نه د هغه مقصد دا نه وو هسې د خُلې نه بغیرارادې وتلې وو ګنی نو خامخا به حرمت ثابتیدلو ځکه چه صحیح قول همدا دې چه خپله ښځه خوك په دې نوم سره یاده کړی کومې چه همیشه محرمات دی مثلاً خور، ترور وغیره نو هغه هم د مور په حکم کښې دی. کوم خلق چه ظهار اوکړی او بیا د خپلې وینا نه واوړی د دې مطلب خو یودا بیان کړې شوچه ظهار نی اوکړو او بیائی بار بار دا لفظ اوونیلو نودا ټیك نه دی.

د ظهارمتعلق د ائمه اقوال:-دحضرت امام شافعی رحمه الله په قول مطلب دا دې چه ظهارنی اوکړواو بیائی هغه ښځه اوساتله تردې چه دومره زمانه په کښې تیره شوه چه که غوښتلې نوپه دې کښې باقاعده طلاق ورکولې شو خو طلاق نی ورنه کړو.امام احمد رحمه الله فرمائی چه بیا واپس شو دجماع طرف ته یا اراده اوکړی نو دا حلال نه دی تر هغه وخت پورې چه ذکر شوې کفاره ادانه کړی.امام مالك رحمه الله فرمائی چه

(۱) الطبری ۲۳/۲۲۰. (ابن ابی حاتم اوابن جریر)
(۲) ابوداؤد کتاب الطلاق باب فی الرجل یقول لامرأته یا اختی: ۲۲۱۰.

دي نه مراد د جماع اراده يا د ساتلو اراده او يا جماع ده. امام ابوحنيفه رحمه الله وغيره وائي چه مراد د ظهار طرف ته واپس كيدل دى.د دې حرمت او د جاهليت د زمانې حكم ختميدو نه پس چه كوم سړي اوس ظهار اوكړى په هغه باندې د هغه ښځه حرامه ده تركومې چه دا كفاره ادانه كړي. حضرت سعيد رحمه الله فرمائي چه مراد دا دې چه كوم څيز هغه په خپل خان باندې حرام كړې وو او اوس بيا دې هغه كار كول غواړي نو كفاره دې ادا كړي.

**قوله تعالى:- مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا**

حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائي چه مجامعت كول غواړي، نو په لاس وړلوكښې وړاندې د كفارې نه هم د هغه په نيز څه خرابي نشته. ابن عباس رضي الله عنه وغيره فرمائي چه دلته د مس نه مراد صحبت كول دى.(۱) زهرى رحمه الله فرمائي چه لاس لګول مينه كول هم د كفارې ادا كولو نه وړاندې جائزنه دي. په سنن كښې دى چه يوسړي اووئيل يارسول الله ﷺ! ما خپلې ښځې نه ظهاركړې وواو بيا د كفارې اداكولو نه وړاندې هغې سره ملاوشوم حضور ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ دې په تا رحم اوكړى تا داسې ولې كول وني وئيل يا رسول الله ﷺ! د سپوږمئ په شپه كښې د هغې د پانزيبو پړق زه بې تابه كړم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه بيا هغې سره نيزديكت مه كوه تركومې چه د الله ﷻ مقرر كړې شوې كفاره ادانه كړې. په نسائى كښې داحديث مرسلاً روايت دې او امام نسائى رحمه الله مرسل ډير صحيح ګڼړي.(۲)

**د ظهار د كفارې نه وړاندې جماع كول جائز نه دي**

**مسلك حنفي:-** ظهار كونكې چې كله ظهار اوكړي نو دې به اول كفاره وركوي او د كفارې وركولو نه پس خپلې بي بي سره جماع وغيره كولې شي كه د كفارې وركولو نه وړاندې ئې جماع اوكړه نو ده حرام كار اوكړو اوګناه ګار شو (تفسيرمظهرى ۹/ ۲۰۵)-

بياد كفارې بيان كيږي چه يوغلام آزادكړنى دلته دا قيدنشته چه هم مؤمن دې وى لكه څنګه چه د قتل په كفاره كښې د غلام مؤمن كيدلو قيددې. امام شافعى رحمه الله خو فرمائي چه دابه مطلق په دې مقيد باندې محمول وى څكه چه آزادى څنګه هلته ده داسې دلته هم ده. د دې دليل دا حديث شريف هم دې چه يوې تورې وينځې باره كښې حضور ﷺ فرمائيلى وو دا آزاده كړنى دا مؤمنه ده.(۳) پورته واقعه تيره شوه چه د هغې نه معلوميږى چه په ظهاركولوسره د كفارې نه وړاندې واقع كيدونكى نه حضور ﷺ د دويمې كفارې نه دى فرمائيلى.

**په كفاره د ظهار كښې د غلام ايمان شرط دې كه نه ؟**

**مسلك حنفي:-** په كفاره د ظهار كښې چې غلام آزادوى نو د غلام ايمان شرط نه دې څكه چه دلته الله تعالى مطلق رقبه ياده كړې ده د ايمان قيد ئې نه دې لګولې نو مطلق د كتاب الله به په خپل اطلاق باندې جارى كولې شى او كافر غلام به هم په كفاره د ظهار كښې جائز وى (تفسيرمظهرى ۹/ ۲۰۰)-

بيا فرمائي چه په دې سره تاسو ته نصيحت كولې شى يعنى ويرولې موشى. الله ﷻ ستاسو د مصلحتونونه خبردار دې اوستاسو په احوالوپوهه دې. څوك چه د غلام په آزادولوباندې قادر نه وى هغه دې پرله پسې دوه مياشتې روژې ساتلونه پس خپلې ښځې سره په دې صورت كښې ملاويدلې شى او كه د دې طاقت هم نه لرى نو بيا دې د شپيتومسكينانو د خوراك وركولو نه پس. اول حديث تيرشو چه د هغې نه معلوميږى چه مقدم اولنې صورت بيا دويم او بيا دريم لكه څنګه چه د بخارى شريف او مسلم شريف په حديث كښې هم دى كوم چه حضور ﷺ په رمضان كښې د يوسړي خپلې ښځې سره په

---

(۱) الطبرى: ۲۳/ ۲۳۱.
(۲) ابوداؤد كتاب الطلاق باب فى الظهار: ۲۲۲۱، وهوحسن، ترمذى: ۱۱۹۹، نسائى: ۳۴۸۷، ابن ماجه: ۲۰۶۵.
(۳) صحيح مسلم كتاب المساجد باب تحريم الكلام فى الصلاة... ۵۳۷، ابوداؤد: ۹۳۰، احمد: ۵/ ۴۴۷، ابن حبان: ۱۶۵.

جماع کولوکښي فرمانيلی وو.(۱) مونږ دا احکام څکه مقررکړی دی چه ستاسو پوره ايمان په الله ﷻ باندې اود هغه په رسول ﷺ باندې شی. دا د الله ﷻ مقرر شوی حدونه دی او د هغه محرمات دی. خبردار دا حرمت مات نه کړئی. چه څوك کافر وی ايمان نه لری او حکم نه منی د شريعت د احکامو بې عزتی اوکړی د هغوی نه بې پروانی اوکړنی هغوی د بلاګانو نه بچ کيدونکی مه ګنړئی بلکه د هغوی د پاره په دنيا اوآخرت کښې دردناك عذاب دی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ يُحَآدُّوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ كُبِتُوۡا

| بيشکه هغه کسان | چې مخالفت کوی دالله | اودرسول دهغه | هغوئ به ذليله کړې شي

څوک چې دالله ﷻ اوددهٔ د رسول ﷺ (دحکم) مخالفت کوی | هغوئ به داسې ذليله شي

كَمَا كُبِتَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ وَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ

لکه څنګه چې | خواراو ذليل کړې شوی دی | هغه کسان | چې مخکښې ددوئ نه ووا | اونازل کړې دی مونږه

لکه څنګه چې پخوانی خلق ذليله شوی ووا ...............او يقينا مونږ خو واضحه اياتونه راليږلی

اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ مُّهِيۡنٌ ۚ﴿۵﴾ يَوۡمَ

ايتونه واضحه | او دپاره دکافرانو | عذاب سپکونکې دی | په کومه ورځ

دی | او کافرانو دپاره رسوا کونکې عذاب مقرر دې | ...................او په کومه ورځ چې

يَبۡعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيۡعًا فَيُنَبِّئُهُمۡ بِمَا

چې به ژوندی راپورته کړی دوئ الله لره | ټول | پس خبر به کړی دوئ لره | په هغه عمل

الله تعالی دا ټول خلق (دقبرونونه) راوچت کړی | بيا چې څه دوی کړی وی هغه ټول به ورته اوښائی

عَمِلُوۡا ؕ اَحۡصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوۡهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ

چې کړې دې دوئ | شمار کړې دې هغه الله | او هير کړې دې دوئ هغه | او الله | په هر څيز باندې

........دغه کارونه الله ﷻ محفوظ کړی دی | او دوئ هير کړی دی | او الله ﷻ په هرڅيز باندې

شَهِيۡدٌ ﴿۶﴾ اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ

ګواه دې | ايا ته نهٔ وينې | چې بيشکه الله | خبريږی | دهغه څه نه | چې په اسمانونو کښې دی

نبه خبر دې | ايا تا په دې خبره غور نه دې کړې | چې الله ﷻ د اسمانونو او د زمکې

وَمَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ مَا يَكُوۡنُ مِنۡ نَّجۡوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ

او هغه چې په زمکه کښې دی | نه وی | دغوږ خبری | ددريو کسانو | مګر هغه

په هر څيز ښه پوهيږی | په دريو کسانو کښې هيڅ د غوږ مجلس داسې نه کيږی

رَابِعُهُمۡ وَلَا خَمۡسَةٍ اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمۡ وَلَاۤ اَدۡنٰى مِنۡ ذٰلِكَ

څلورم دهغوئ وی | اونهٔ دپنځو کسانو | مګر هغه | شپږم دهغوئ وی | او نهٔ کم ددې نه

چې څلورم په کښې الله نه وی | او نه په پنځو کښې چې شپږم به په کښې الله نه وی | او نه ددې نه کم

---

(۱) صحيح بخاری کتاب الصوم باب اذا جامع ل رمضان ولم يکن له شيء...:۱۹۳۶، صحيح مسلم:۱۱۱۱.

| وَلَآ أَكْثَرَ | إِلَّا هُوَ | مَعَهُمْ | أَيْنَ مَا كَانُوا | ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او نه زیات | مګر هغه | دهغوئ سره وی | اهر ځائې کښې چې وی هغوئ | بیا به خبر ورکړی هغوی له |
| اونه ددې نه زیات | خو الله ﷻ ددوئ سره موجود وی | | په هرځائې کښې چې دوی وی | بیا به ورته د |

| بِمَا | عَمِلُوا | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | إِنَّ اللَّهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه څه | چې کړی وی هغوئ | په ورځ دقیامت | بیشکه الله | په هر څيز باندې | ښه خبردار دې |
| قیامت په ورځ د دوی عملونه وړاندې کړی | | | بیشکه چې الله ﷻ په هر څه عالم دې | | |

**قوله تعالی:- إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ كُبِتُوا**

**د الله تعالی اود رسول الله ﷺ مخالفت مه کوئې** :-فرمان دې د الله ﷻ اود هغه درسول الله ﷺ مخالفت کونکی اودشریعت داحکامونه روګردانی کونکی دذلت خوارئی نحوست او عذاب لاتق دی. لکه څنګه چه د دوی نه وړاندې هم د دې اعمالوپه وجه تباه او برباد کړې شو دغه شان به دوی هم په دې سرکشئی تباه اورسوا کړې شی.مونږ داسې واضحه دومره ښکاره او داسې کولاو آیاتونه بیان کړی دی او نبئ مو ښکاره کړی دی چه بغیر دهغه نه د چا په زړه کښې چه سرکشئی وی دې نه انکار نه شی کولې او چه څوك د دې نه انکار اوکړی هغه کافر دې. د داسې کافرانود پاره د دې ځائ د ذلت او رسوائې نه پس د هغه ځائ عذابونه هم دی. دلته د هغوی کبرد ا لله ﷻ طرف ته ټیټیدونه منع کړل هلته به د دې په بدله کښې هغوی ډیرزیات ذلیل کولې شی او ښه نی عذابولې شی. د قیامت په ورځ به الله ﷻ ټول مخکی روستی په یومیدان کښې راجمع کړی او چه چا کوم څه ښه بد کړی وی د هغې نه به نی خبرکړی. لکه چه دوی هغه هیرکړی وو الله ﷻ خو هغه یادساتلې وو،د هغه فرښتو هغه لیکلې وونود الله ﷻ نه څه څیزپټ پاتې نه شو اونه د هغه نه هیرشو.

**قوله تعالی:- أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ**

بیا بیان فرمانی چه تاسو کوم ځائ کښې هم یئ اوپه کوم حالت کښې هم یئ نه به ستاسوخبرې د الله ﷻ د اوریدو نه پاتې شی اونه ستاسو حالات د الله ﷻ د لیدو نه پټ پاتې شی. د هغه علم د ټولې دنیا احاطه کړې ده،هغه ته د زمان اومکان خبرپه هروخت کښې شته. هغه دزمکې اوآسمانونود ټولو کائناتو نه خبردې.

که درې کسان په خپل مینځ ډیر په پټه اورازدارئی سره خپلې خبرې ظاهرکړی هغه الله ﷻ اوری او هغوی دې خپل ځان درې نه ګنړی بلکه څلورم دې الله ﷻ ګنړی اوچه کوم پنځه سری په رازدارئی سره خپلې خبرې کوی هغوی دې هم یقین ساتی چه هغوی چرته هم وی هغوی سره د هغوی الله ﷻ موجود دې یعنی دهغوی په حال او قال باندې خبر دې.د هغوی خبرې اوری اود هغوی حال وینی. او بیا ورسره ورسره د هغه فرښتې هم لیکل کوی. لکه چه یوبل ځا کښې دی (أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ وَأَنَّ اللَّهَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ) آیا خلق نه پوهیږی چه الله ﷻ دهغوی پټ رازونو باندې ښه پوهیږی اوالله ﷻ د ټولوغیبو خبر لرونکې دې.یوبل ځائ کښې ارشاد باری ﷻ دې (أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ ۚ بَلَىٰ وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ) آیادهغوی دا ګمان دې چه مونږ دهغوی پټې خبرې او خفیه مشورې نه اورو؟ برابر نی اورو او زمونږ لیږلې شوې فرښتې هغوی سره موجود دی کوم چه لیکل کوی. اکثرو بزرګانو په دې خبره باندې اجماع نقل کړې ده چه ددې آیت نه مراد معیت علمی دې (یعنی د الله ﷻ وجود هر ځائې نه دې بلکه د هغه علم هرځائ دې. د هرو دریو په ټولی کښې د هغه علم څلورم دې تبارك و ﷻ) بې شکه او شبهې په دې خبره باندې کامل ایمان او کلك یقین ساتل پکار دی چه دلته مراد د ذات په لحاظ موجود کیدل

نه دي بلکه په اعتبار د علم هرځایٔ کښې موجودګی ده او بې شکه د هغه اوريدل او کتل هم د علم سره دي. الله ﷻ سبحان وتعالیٰ په ټول مخلوق باندې خبر دې د هغوی هيڅ کار د هغه نه پټ نه دې بيابه دقيامت په ورځ دهغوی په ټولو اعمالوهغوی ته خبرداري ورکوی اوالله ﷻ په هرڅيزباندې پوهه دې.

حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه د دې آيت شروع نی هم د خپل علم نه بيان کړې وه او ختمول نی هم د الله ﷻ په علم باندې اوکړل(مطلب دا چه په مينځ کښې د الله ﷻ موجودکيدل چه دا کوم بيان شوی دی دې نه مراد هم د علم په رو سره موجودکيدل دی نه چه د ذات په رو سره. مترجم)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ | عَنِ النَّجْوٰى | نُهُوْا | اِلَى الَّذِيْنَ | اَلَمْ تَرَ |
| بيا کویٔ هغویٔ | دغور دخبرونه | چې منع کړې شوی وو | هغه کسان | ايا تا اونه ليدل |

ايا تا دهغه خلقو حال اونه ليدل چې دناجائزه پټو مشورو نه منع شوی وو بيا دکومې خبرې نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْعُدْوَانِ | بِالْاِثْمِ | وَيَتَنٰجَوْنَ | نُهُوْا عَنْهُ | لِمَا |
| او دزيات (ظلم) | دګناه | او پټې خبرې کوی | چې منع کړې شوی وو دهغې نه | هغه کار |

چې دویٔ منع کړې شوی وو هم په هغې خبرو کښې لګيا دی او د ګناه او د ظلم کولو

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِمَا | حَيَّوْكَ | وَاِذَا جَآءُوْكَ | وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ |
| په هغه طريقه | نو سلام کوی تاته | او کله چې راشی تاته | او دنافرمانیٔ درسول |

او درسول ﷺ دنافرمانیٔ پټ پټ مجلسونه کوی او (ائې نبی ﷺ) تاته چې مخامخ شي

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ | وَيَقُوْلُوْنَ | بِهِ اللّٰهُ | لَمْ يُحَيِّكَ |
| په زړونو خپلو کښې | او وائي دویٔ | په هغې سره الله | چې نه دې کړې سلام تاته |

نوبه داسې ټکو درباندې سلام اچوی چې الله درباندې هغه سلام نه دې اچولې او په خپلو زړونو کښې وائي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جَهَنَّمُ | حَسْبُهُمْ | نَقُوْلُ | بِمَا | لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ |
| دوزخ | کافي دې دویٔ له | چې وايو نې مونږه | په هغه خبرو | ولې نه راکوی عذاب مونږ ته الله |

چې څه مونږ وايو الله ﷻ مونږ ته دهغې سزا ولې نه راکوی ..........دې خلقو دپاره دوزخ کافي دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ | يَصْلَوْنَهَا |
| چې ايمان مو راوړې دې | اے هغه کسانو | پس ډير بدځائې دې دورتلو | چې ننوزی به هغې ته |

هغویٔ به ورته داخليږی او دغه ډيره خرابه ټيکانړه ده ائې مومنانو!

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْعُدْوَانِ | بِالْاِثْمِ | فَلَا تَتَنَاجَوْا | اِذَا تَنَاجَيْتُمْ |
| او دزياتی | دګناه | پس پټې خبرې مهٔ کویٔ | کله چې تاسو ديوبل سره پټې خبرې کویٔ |

هرکله چې پټ مجلس کویٔ .............نو دګناه د زياتیٔ او د رسول د نافرمانیٔ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَالتَّقْوٰى | بِالْبِرِّ | وَتَنَاجَوْا | وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ |
| . اواويريږئ دالله نه | او دپرهيزګاریٔ | دنيکیٔ | او کویٔ پټې خبری | او دنافرمانیٔ درسول |

مشورې هيڅ کله مه کویٔ بلکه دنيکیٔ اوپرهيزګاریٔ باره کښې صلاح مشورې کویٔ او دالله نه ويريږیٔ

| الَّذِیٓ | اِلَیۡهِ | تُحۡشَرُوۡنَ۝ | اِنَّمَا النَّجۡوٰی |
|---|---|---|---|
| هغه الله | چي هغه ته | به ورجمع کړي شئ تاسو | بېشکه چي دا پټي دغوړ خبری |
| هغه الله چي تاسوټول به ورته پیش کولي شئ ............ پټي صلاح ګاني | | | |

| مِنَ الشَّیۡطٰنِ | لِیَحۡزُنَ | الَّذِیۡنَ | اٰمَنُوۡا |
|---|---|---|---|
| دشیطان نه دی | دپاره ددې چي غمژن شي | هغه کسان | چي ایمان ئي راوړي دي |
| دشیطان په لمسه کیږی ........... چي مومنان پرې غمژن کړی | | | |

| وَلَیۡسَ بِضَآرِّهِمۡ | شَیۡـًٔا | اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰهِ ؕ | وَعَلَی اللّٰهِ |
|---|---|---|---|
| حالانکه نه دي شیطان ضرررسونکي دوئ ته | هیڅ قدرله | مګرپه حکم دالله سره | اوخاص په الله باندې |
| حال دادې چي دالله ﷻ دحکم نه بغیر شیطان هغوئ ته هیڅ ضرر نشي رسولي \| او خاص په الله تعالی | | | |

| فَلۡیَتَوَکَّلِ | الۡمُؤۡمِنُوۡنَ۝ |
|---|---|
| پکار دی چي توکل اوکړی | مومنان |
| دې مومنان بهروسه ساتی | |

قوله تعالی:- اَلَمۡ تَرَ اِلَی الَّذِیۡنَ نُهُوۡا عَنِ النَّجۡوٰی

د غوږ ایستنو متعلق هدایات:- دغوږ ایستنونه یهودیان منع کړي شوی وو په دې وجه چه کله په هغوی کښې اوحضور ﷺ په مینځ کښې صلح او صفائي شوې وه نودې خلقو به دا حرکت کولوچه کوم ځائ کښې به نی یومسلمان لیدلواوکوم ځائ به هم څوك هغوی له لاړونودوی به اخوادیخوا پټ پټ په اشارو کنایوسره یوبل سره غوږایستنې کولې چه خان له مسلمان به دا ګنړل چه دوی زما د قتل سازش کوی یا زما خلاف اود ایماندارانوخلاف څه پټ ترکیبونه سوچ کوی. د دوی به د هغوی طرف ته په تلوکښې هم ویره وه. کله چه دا شکایتونه ډیر عام شو نوحضور ﷺ هغوی د دې حرکتونونه منع کړل خو هغوی بیا هم دغه کارکولو. د ابن ابی حاتم په یو حدیث کښې دی چه مونږ خلق به په نمبر نمبر د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدلوکه څه کاروغیره وی نو چه اوکړو. یوه شپه هغه د نمبر والا هم راغلو او څه نورخلق هم د ثواب په نیت سره. خلق ډیر راجمع شو نو مونږ خلق ډلې ډلې یوځائ بل ځائ کیناستو او هرې یوې ډلې خپلوکښې خبرې کولې په دې کښې حضور ﷺ تشریف راوړو او ونی فرمائیل څه غوږایستنې کونی؟ آیاتاسو د دې نه منع کړي شوی نه یئی؟هغوی ونیل حضور ﷺ زمونږ تویه ده مونږ خو د مسیح دجال ذکر کولوخکه چه د هغې غم راسره وی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه زه تاسو ته د دې نه هم زیات ویرونکې څیز اوښایم هغه پټ شرك دې. لکه چه یو سړې اودریږی اود بل د خودنې د پاره څه کار اوکړی(یعنی ریاکاری) د دې اسناد غریب دی اوبعضې راویان ضعیف دی.

بیافرمائی چه د دوی کورنئی غوږایستنې خویاد ګناه په کارونوکښې وی په کوم کښې چه د هغوی ذاتی نقصان وی یاپه ظلم باندې وی په کوم کښې چه د نوروخلقو د نقصان باره کښې ترکیبونه سوچ کوی.یاد پیغمبر ﷺ په مخالفت باندې یوبل پخوی اود حضور ﷺ د نافرمانو منصوبې جوړوی.

قوله تعالی:- حَیَّوۡكَ بِمَا لَمۡ یُحَیِّكَ بِهِ اللّٰهُ

د یهودیانوسلام په نبی کریم ﷺ باندې:بیاددې بدکارانو یوډیرخراب خوئ بیانولې شی چه دوی د سلام الفاظ هم بدلوی.عائشه رضي الله عنها فرمائی چه یوخل یویهودی حضور ﷺ له راغلو او ونی وئیل «السام علیك یا

بالقاسم) (دسام معنی مرګ ده) ماواوریدل (وعلیکم السام). نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ای عائشه! الله ﷻ خراب الفاظ او سختي خبري نه خوښوی. ما ووئیل آیا حضور ﷺ نه دی اوریدلی؟ هغه تاسوته (السلام) نه دی ووئیلی (السام) ئی اووئیل. حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاواونه ریدل ما اووئیل (وعلیکم).
(۱) هم د دې بیان کیږی. په بل روایت کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها په جواب کښې فرمائیلی وو (علیکم السام والدام واللعنة) نو حضور ﷺ عائشه صدیقه رضي الله عنها منع کولوسره اوفرمائیل چه زمونږ دعا د مغوی په حق کښې قبوله ده او د هغوی زمونږ رټل قبول نه دی (ابن ابی حاتم وغیره).(۲)
یو ځل نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره په مجمع کښې تشریف فرما وه چه یویهودی راغلو سلام ئی اوکړو صحابه کرامو جواب ورکړو .نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسو ته پته ده هغه څه اووئیل ؟ صحابه کرامو عرض اوکړو چې هغه خو سلام وائی نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه هغه ونیلي وو (سام علیکم) یعنی ستاسو دین دې مغلوب وی او ختم دې شی. بیا حضور ﷺ حکم اوکړوچه دا یهودی راوغواړئی. کله چه هغه راغلو نو حضور ﷺ ورته.اوفرمائیل چه ریښتیا ریښتیا وایه چه تا (سام علیکم) نه وو ونیلی، هغه اووئیل چه او حضرت ما هم داسې ونیلی وو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئی کله خوك اهل کتاب تاسو ته سلام اوکړی نو صرف (علیك) ورته وائي یعنی چه تاڅه ونیلی هغه دې هم په تاوی.(۳) بیا به داخلق په دې خپل کار خوشحاله کیدل او خان سره به ئی وئیل که چرې دا نبی په حقه باندې وو نو الله ﷻ به زمونږ په دې خبرو باندې مونږ ته هم په دنیا کښې عذاب راکولوځکه چه الله ﷻ خو زمونږ په باطنی حال باندې ښه خبردار دې. الله ﷻ فرمائی چه د دوی د پاره صرف د آخرت د کور عذاب هم کافی دې دوی به دوزخ ته ځی او خراب ځاي ته به رسی.
**د دې ایت مبارک شان نزول څه دې؟**:-د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روایت دې چه د دې آیت شان نزول د یهودیانو په دې طریقه باندې سلام دې.(۴) دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چه منافقانو به هم داسې سلام کولو.بیا الله ﷻ مؤمنانو ته ادب ښائی چه تاسو دمنافقانواو یهودیانوغوندې کار مه اختیاروئی. تاسو د ګناه کارونه د حد نه وړاندې کیدل اودنبی ﷺ نه منلومشورې مه کوئی بلکه تاسوته دهغوی خلاف د نیکئی اود خپل ځان بچ کولو مشورې کول پکار دی. تاسو له هروخت د هغه الله ﷻ نه ویریدل پکار دی چه د چا طرف ته به ټول ورجمع کولې شئی چه هغه وخت به تاسو ته د هرې نیکئی او بدئی بدله اوسزا درکوی او په ټولو اقوالواواعمالوباندې به موخبردار کوی سره د دې چه تاسو هیرکړی وی خوهغه سره ټول محفوظ او موجود دی. حضرت صفوان رضي الله عنه فرمائی چه ما د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه لاس نیولې ووچه یوسړې راغلو هغه اووئیل تاسو د رسول الله ﷺ نه د مؤمن د غوږایستنې متعلق چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ سره وی څه اوریدلی؟ هغه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه الله ﷻ به مؤمن بنده خپل ځان ته نیزدې راوغواړی او دومره نیزدې چه خپل مټ به په هغه کیږدی اود خلقو نه به هغه په پرده کښې کړی اود هغه نه به د هغه د ګناهونو اقرار اوکړی اوتپوس به کوی چه یاددې دی؟فلانکې ګناه تا کړې وه فلانکې دې کړې وه هغه به اقرارکوی او زړه به ئی درزیږی چه اوس هلاك شوم. الله ﷻ به فرمائی چه ګوره په دنیاکښې هم ما ستا پالنه کړې وه او اوس هم ته ما اوبخښلې.بیا به هغه ته دهغه د نیکو اعمال نامه ورکړی خود کافر اومنافق باره کښې خو به ګواه چغې وهی چه دا په الله ﷻ باندې دروغ ویونکی خلق دی خبردار شئی په دې ظالمانوباندې دالله ﷻ لعنت

(۱) الطبری ۲۳/۲۳۶، احمد:۶/۲۲۹وهوحدیث صحیح.
(۲) صحیح بخاری کتاب الدعوات باب قول النبی ﷺ ((ایستجاب لنا فی الیهود...)):۱۶۴۰۱، صحیح مسلم:۲۱۶۵-۲۱۶۶.
(۳) الطبری۲۳/۲۴۰، ابن ماجه کتاب الادب باب ردالسلام علی اهل الذمة:۳۶۹۷، مختصراً
(۴) احمد:۲/۱۷۰وسنده حسن وقال الهیثمی واسناده جیدلان حمادًا (ابن سلمة) سمع من عطاء بن السائب فی حالة الصحة،

دي(۱)

**قوله تعالى:- إِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ**

بیافرمائي چه داسې قسم غوړایستنې چه په هغې سره مسلمان ته تکلیف رسی اوهغه ته بدګمانی کیږی د شیطان د طرف نه ده. شیطان د دې منافقانو وغیره نه داکار خکه اخلی چه مومنان خفه دلګیر شی ولې حقیقت خودادې چه د الله ﷻ د اجازت نه بغیر نه شیطان اونه بل څوك هغوی ته ضرر رسولې شی. کله چه داسې څه حرکت معلوم شی هغه له پکار دی چه ﴿اعوذ﴾ اووائی د الله ﷻ پناه واخلی اوپه الله ﷻ باندې یقین اوساتی ان شاءالله هغه ته به هیڅ نقصان نه رسی.داسې غوړایستنې چه د یو مسلمان ناخوښه وی په حدیث شریف کښې د هغې نه هم منع راغلې ده. په مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه کله تاسو درې کسان یئی نو دوه په خپل مینځ کښې په غوږ کښې خبرې کولوته مه کینئی دې سره به د دې دریم زړه خیرن شی (۲) اوپه روایت کښې دی چه که د دې اجازت وی نو څه بدیت نشته.(۳)

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا |
| اے هغه کسانو \| چې ایمان مو راوړې دې \| |
| ائې مومنانو ! |
| اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا |
| کله چې اووئیلې شی\| تاسو ته \| فراښې اوکړئ \| په ځایونو دناستو کښې \| پس فراښې اوکړئ |
| هرکله چې درته اووئیلې شی \| چې په مجلس کښې لږ ځائې فراخه کړئ \| نو تاسو ځائې |
| يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا |
| فراښې به اوکړی الله \| تاسو ته \| او کله چې اووئیلې شی \| چې پاسئ \| نو پاسئ |
| فراخه کوئ \|الله به تاسو ته فراخه ځائې درکړی \|اوچې درته اووئیلې شی چې(د مجلس نه)پاځئ اودریږئ |
| يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَالَّذِيْنَ |
| پورته کوی الله \| هغه کسان \| چې ایمان ئې راوړې دې \| ستاسو نه \| او هغه کسان |
| نو پاځیږئ\| الله ﷻ به په تاسو کښې د مسلمانانو اود علم دخاوندانو |
| اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ |
| چې ورکړې شوې دې علم \| مرتبو ته \| او الله \| په هغه کارونو \| چې کوئ ئې تاسو \| خبردار دې \| |
| مرتبې اوچتې کړی \| ..................اوتاسو چې څه کارونه کوئ الله ﷻ پرې ښه خبر دې |

**قوله تعالى:- اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ**

**د مجلس د آدابو تفصیل:** دلته دایمان خاوندانوته الله ﷻ دمجلس آداب ښائی. هغوی ته حکم ورکوی چه په ناسته پاسته کښې هم دیول خیال او لحاظ ساتئ.کله چه په مجلس کښې ونی او څوك راشی نو لږ

(۱) صحیح بخاری کتاب المظالم باب قول الله تعالی ﴿الالعنة الله علی الظلمین﴾ ۲۴٤۱، صحیح مسلم: ۲۷٦۸، ابن حبان:۷۳٥٦،

(۲) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب اذا کانوا اکثرمن ثلاثة فلا باس....: ٦۲۹۰، صحیح مسلم: ۲۱۸٤، ابوداوٗد:٤۸٥۱، ترمذی:۲۸۲٥، ابن ماجه:۳۷۷٥،احمد:۱/۳۷٥، ابن حبان:٥۸۳. (بخاری ومسلم)

(۳) صحیح مسلم کتاب السلام باب تحریم مناجاة الاثنین دون الثالث:۲۱۸۳، احمد: ۲/۱٤٦.

شان په خوزیدوراخوزیدو سره هغه ته هم ځای ورکوني. په مجلس کښې کولاووالې کوني. ددې په بدله به الله ﷻ تاسوته هم کولاووالې درکړی ځکه چه دهریوعمل بدله هم هغه شان وی.په حدیث کښې دی چه څوك د الله ﷻ د پاره جمات جوړکړی الله ﷻ به د هغه د پاره کورجوړکړی.([1])په یو شریف حدیث کښې دی چه څوك په یوسختئی والا باندې آسانی اوکړی الله ﷻ به په هغه باندې په دنیا اوآخرت کښې آسانی اوکړی. څوك چه د یومسلمان رور په امدادکښې لګیاشی الله ﷻ پخپله د هغه سړی په امداد کښې لګیاکیږی.([2]) په دې باب کښې نورهم ډیر احادیث دی. حضرت قتاده ﷺ فرمائی چه دا آیت د ذکردمجلس باره کښې نازل شوې.مثلاً وعظ کیږی یاحضورﷺ څه دنصیحت خبرې فرمائی خلق ناست دی اوری نو چه اوس څوك بل کس راغلو او څوك د خپل ځای نه نه خوزیږی چه هغه ته هم ځای ملاوشی نو قرآن کریم حکم اوکړو چه داسې مه کونې دې د پاره چه د دې راتلونکی دپاره هم ځای اوشی.([3])

حضرت مقاتل ﷫ فرمائی چه د جمعې په ورځ دا آیت نازل شوې. رسول اللهﷺ هغه وخت په صفه کښې وو یعنی دجمات په دنکانچه باندې ځای تنګ وواود حضورﷺ عادت مبارك ووچه کوم مهاجر او انصارد بدر په جنګ کښې هغویﷺ سره وو حضورﷺ به د هغوی ډیر عزت او اکرام کولو. په هغه ورځ یوڅو د بدر صحابه کرام لږ شان ناوخته راغله نو نبی کریم ﷺ سره اخوادیخوا اودریدل. حضورﷺ سره سلام علیك اوشو هغویﷺ جواب ورکړو بیا د مجلس نور خلقو ته سلام اوکړو هغوی هم جواب ورکړو. اوس دوی هم په دې امید ولاړوو چه په مجلس کښې به لږ شان کولاووالې اووینی نو دوی به هم کینی خو یوکس هم د خپل ځای نه اونه خوزیدو چه د هغوی د پاره هم ځای شوې وو. نبی کریم ﷺ چه دا اوکتل نو پاتې نه شو او یو یوکس ته ئی په نامه نامه آواز اوکړو اود هغه ځای نه ئی اودرول اودا د بدر صحابه کرام ئی کینول. کوم خلق ئی چه اودرولې وو په هغوی لږشان بداولګیدل.بل خوا منافقانوته په لاس خبره ورغله نو بس شروع شو چه دا عدل کونکې نبی دې چه کوم خلق په شوق سره اول راغله خپل نبی سره ئی نیزدې ځای اونیولو او بنه په آرام سره په خپل خپل ځای کیناستل هغوی خو نبی د خپل ځای نه اودرول اوناوخته راتلونکو ته ئی د هغوی ځای ورکړودا څومره بې انصافی ده.بل خوا حضورﷺ د دې د پاره چه د هغوی زړه کښې څه رانه شی دعااوکړه چه اې الله په دوی باندې رحم اوکړه چاچه د خپل مسلمان رور د پاره په مجلس کښې ځای اوکړو. د دې حدیث شریف په اوریدو باندې صحابه کرامو پخپله اخوا دیخوا خوزیدل شروع کړه او د راتلونکو د پاره ئی ځای اوکړو او هم د جمعه په ورځ دا آیت نازل شو(ابن ابی حاتم)

په بخاری مسلم او مسندوغیره کښې حدیث دې چه یوسړې دې بل کس د هغه د ځای نه نه پاسوی چه پخپله کینی بلکه هغه له پخپله پکار دی چه اخوادیخوا شی اود هغه د پاره ځای پیداکړی([4])په مسند شافعی کښې دی چه په تاسوکښې دې د جمعې په ورځ یوکس هم خپل روردهغه دځای نه نه پاسوی بلکه ورته دی وائی چه لږ اخوا شه. په دې مسئله کښې د علماؤ اختلاف دې چه د راتلونکی د پاره اودریدل جائزدی که نه؟ بعضې خلق خو اجازت ورکوی اودا حدیث پیش کوی چه نبی ﷺ اوفرمائیل

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الصلاة باب من بنی مسجدًا : ۴۵۰،صحیح مسلم: ۵۳۳.

[2]) صحیح مسلم کتاب الذکروالدعاء باب فضل الاجتماع لتلاوة القرآن:۲۶۹۹.

[3]) الطبری:۲۳/۲۴۴.

[4]) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب لایقیم الرجل الرجل من مجلسه:۶۲۶۹-۶۲۷۰، صحیح مسلم:۲۱۷۷، احمد:۳/۱۷، مصنف عبدالرزاق:۱۹۸۰۷، ابن ابی شیبه:۸/۵۸۴، ابن حبان: ۵۸۶.

چه خپل سردار طرف ته پاسیږئی(١) اوچه کوم خلق داغواړی چه خلق دې د هغه د پاره نیغ اودریږی هغه به دوزخ کښې خپل ځان له ځائ جوړکړو.(٢)
بعضې بزرگان تفصیل کوی فرمائی چه څوك د سفرنه راغلې وی اود حاکم د پاره د هغه د حکومت په ځائ اودریدل صحیح دی ځکه چه حضورﷺ د چا د پاره اودریدل فرمائیلی وونودا حضرت سعدبن معاذﷺو.دبنوقریظه نی هغه حاکم جوړکړې ووکله چه نی هغه راتلونکې اولیدلونوحضورﷺ فرمائیلي وو چه د خپل سردار د پاره اودریږئی اودا د تعظیم د پاره نه وو صرف د دې د پاره وو چه د هغه احکام په ښه شان سره جاری کړې شی. والله اعلم. اودا عادت جوړول چه په مجلس کښې هرلوئ سړې راشی نو خلق اودریږی نو دا د عجمیانوطریقه ده. د سنن په حدیث کښې دی چه د رسول اللهﷺ نه د هغوی د پاره د ټولونه ډیر محبوب او د عزت خاوند بل هیڅ څوك نه وو خود هغوی ﷺ په لیدو به صحابه کرام نه اودریدل. پوهیدل چه حضورﷺ دا مکروه گنړی.(٣) د سنن په یو بل حدیث کښې دی رسول اللهﷺ به راتلوسره دمجلس په خاتمه کښې کیناستلواوچه کوم ځائ کښې به کیناستلوهم هغه ځائ به د صدارت شو اوصحابه کرام به دخپلو مرتبومطابق په مجلس کښې کیناستل(٤)حضرت ابوبکرصدیق ﷺ د حضورﷺ ښي طرف ته،حضرت عمرفاروقﷺ گس طرف، عموماً به حضرت عثمان ﷺ د حضورﷺ مخامخ کیناستلو ځکه چه دا دواړو بزرگان د وحی کاتبان وو، نبی کریم ﷺ به هغوی ته فرمائیل او هغوی به وحی لیکله. په صحیح مسلم کښې دی چه د حضور ﷺ فرمان دې چه ماسره نیزدې صاحب عقل او فراست خاوندان دې کینی اوبیا درجه په درجه (٥)اودا انتظام د دې د پاره وو چه د حضورﷺ مبارك ارشادات دا صاحبان واوری او ښه پوهه شی. هم دغه وجه وه چه د صفه په مجلس کښې د کوم ذکرچه اوس تیرشو حضورﷺ نورخلق د هغوی دمجلس نه پاسول اوهغه ځائ د بدر صحابه کراموته ورکرونودې سره نورې وجهې هم وې.مثلاً دې خلقو له پخپله پکاروو چه ددې بزرگانوصحابه کرامو خیال او لحاظ نی ساتلې وې او پخپله نی هغوی ته ځائ پریخې وې. کله چه پخپله هغوی داسې اونه کړل نو بیا حکماً په هغوی باندې داسې اوکړې شو.دغه شان اولنوخلقودحضورﷺ کلمات پوره شان سره اوریدلې وو اوس دا حضرات راغله نوحضورﷺ غوښتل چه اوس دوی په آرام سره کینی اوزما حدیث واوری اود اللہ ﷻ تعلیم حاصل کړی. دغه شان امت ته د دې خبرې تعلیم هم ورکول وو چه هغوی خپل مشران او بزرگان خپل امام سره د ناستې د پاره پریږدی اوهغوی د خپل ځان نه مقدم اوگنړی.

**مانځه کښې صفونه درست کول:** په مسنداحمدکښې دی چه رسول الله ﷺ به د مانځه صفونو صحیح کولوپه وخت کښې زمونږ اوږې په خپله نیولوسره صحیح کول دی او نیغولې او زبانی به نی هم فرمائیل چه نیغ شئی کاږه واږه مه اودریږی،هوښیاراوعقلمندماسره نیزدې اوسیږئی درجه په درجه.(٦) حضرت ابومسعودﷺ دا حدیث فرمائیلو سره فرمائی چه سره د دې حکم افسوس چه تاسو اوس هم ډیر کاږه صفونه جوړوئی. مسلم ابوداؤد نسائی او ابن ماجه کښې هم دا حدیث شریف دې. ښکاره خبره دا چه کله د حضورﷺ دا حکم د مانځه د پاره وونود مانځه نه علاوه خو دا حکم په طریقه اولی باندې دې.

---

(١) صحیح بخاری کتاب الاستئذان باب قول النبیﷺ ((قوموا الی سیدکم)) ٦٢٦٢، صحیح مسلم: ١٧٦٨.
(٢) ابوداؤد کتاب الادب باب الرجل یقوم للرجل یعظمه بذلك: ٥٢٢٩وهوحسن، ترمذی:٢٧٥٥.
(٣) ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی کراهیة قیام الرجل للرجل: ٢٧٥٤وهوحسن الادب المفرد:٩٤٦.
(٤) ابوداؤد کتاب الادب باب فی الرجل یقوم الرجل من مجلسه: ٤٧٢٥،ترمذی کتاب الاستئذان باب فی الثلاثة الذین اتبلوا فی مجلس...:٢٧٢٥.
(٥) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب تسویت الصفوف واقامتها: ٤٣٢.
(٦) صحیح مسلم حواله سابق:٤٣٢، ابوداؤد کتاب الصلاة باب من یستحب ان یلی الامام...٦٧٤، ابن ماجه: ٩٧٦، مصنف عبدالرزاق: ٢٤٣٠، ابن حبان: ٢١٧٨، احمد: ١٢٢/٤.

ابوداؤد کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي صفونه صحيح کړئی اوږي ملاؤکړئی د صفونو په مينځ کښې خالي ځائ مه پرېږدئی د خپلوروڼوسره په صفونوکښې په نرمئی سره ورځئی په صف کښې د شيطان د پاره سوړه مه پرېږدئی د صفونو ملاوونکی الله ﷻ ملاووی اوصفونه ماتونکی الله ﷻ پرېکوی[1] دغه شان چه کله به سيدالقراء حضرت ابی بن کعب ﷺ رسيدلو نو په اول صف کښې به نی ضعيف العقل سړي روستوکولو او پخپله به په ړومبی صف کښې ملاويدلو اوهم دا حديث به نی په دليل کښې راوړلو چه حضورﷺ فرمائيلی ماسره سره دې نيزدې د ښه رانې او عقل والا سړي ولاړوی بيا درجه په درجه.[2]

دحضرت عبدالله بن عمرﷺ په ليدو به چه يوسړي اودريدو نوهغه به دده په ځائ نه کيناستلو[3]اودا حديث شريف به نی وړاندې کولوچه څوك پاسولو باندې دې دهغه په ځائ بل کس نه کينی.دلته د نمونې په توګه دايوڅو احاديث او مسئلې ذکرکولوسره وړاندې خودبسط او تفصيل دلته ګنجائش نشته او نه دا موقعه ده.

**مسجد نبوی ﷺ ته د دريو کسانو راتلو واقعه:**-په يوحديث شريف کښې دی چه يوځل حضورﷺ تشريف ايخودې وو چه درې سړی راغله. يوخود مجلس په مينځ کښې خالي ځائ کښې کيناستودويم د مجلس په آخره کښې ځائ جوړکړوکيناستو او دريم واپس لاړو. حضور ﷺ اوفرمائيل اې خلقو زه تاسو ته د دريو سړو باره کښې خبردركوم يو د الله ﷻ طرف ته ځائ واخستو اوالله ﷻ هغه ته ځائ ورکړوبل شرم اوکړو نوالله ﷻ هم د هغه حياء اوکړه دريم مخ واړولو نوالله ﷻ هم د هغه نه مخ واړولو.[4] مسند احمد کښې دی چه د چاد پاره حلال نه دی چه د دوسړو په مينځ کښې تفريق اوکړی اوکه د هغوی په رضا سره وي نو هغه بله خبره ده[5]ابوداؤد و ترمذی دې ته حسن ونيلی. حضرت ابن عباس ﷺ او حسن بصری رحمه الله فرمائي چه د مجلس د کولاووالی حکم د جهاد باره کښې دې[6]دغه شان د پاسيدوحکم هم د جهاد باره کښې دې.

حضرت قتاده رحمه الله چه کله تاسودښيګړې او نيکئی طرف ته رابللې شئی نو تاسوضرورځئی[7] حضرت مقاتل رحمه الله فرمائي مطلب دا دې چه تاسو د مانځه د پاره راغواړی نو زر پاسئی. حضرت عبدالرحمن بن زيد رحمه الله فرمائي چه صحابه کرام به کله دحضورﷺ نه واپس تلل نود هريوبه دا خوښه وه چه د ټولونه په آخره کښې د حضورﷺ نه جدا شی اکثر به د حضورﷺ څه کاروغيره وونو ډير حرج به کيدوخو نبی کريم ﷺ به دمروت په وجه هيڅ نه فرمائيل.په دې باندې داحکم اوشو چه کله تاسوته د پاسيدو اوونيلې شی نو اودريږئی لکه څنګه چه بل ځائ کښې ارشاددې ﴿وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا﴾ که تاسو ته دواپس کيدواوونيلې شی نو واپس شئی. بيا فرمائي چه په مجلسونوکښې تاسوته د ځائ ورکولو اوونيلې شی نو په ځائ ورکولوکښې او د واپس کيدلو د پاره ونيلو سره خپله بې عزتی مه ګڼرئی بلکه دا د الله ﷻ په وړاندې مرتبه اوچتيدل او خپل عزت کول دی دا به الله ﷻ نه ضائع کوی بلکه په دې باندې به په دنيا اوآخرت کښې نيکه بدله درکوی. کوم سړې چه د الله ﷻ په احکامو په عاجزئ سره خپل سر ټيټ

---

[1]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب تسوية الصفوف :٦٦٦وهوحسن، نسائى:٨٢٠.

[2]) احمد:١٤٠/٥، نسائى كتاب الامامة باب من يلى الامام ثم الذى يليه:٨٠٩وسنده صحيح.٧.

[3]) صحيح بخارى كتاب الاستئذان باب ﴿اذاقيل لكم تفسحوا فى المجالس فافسحوا﴾:٦٢٧٠، صحيح مسلم:٢١٧٧.

[4])صحيح بخارى كتاب العلم باب من قعد حيث ينتهى به المجالس:٦٦،صحيح مسلم:٢١٧٦،ترمذى: ٢٧٢٤، احمد:٢١٩/٥،

[5]) ابوداؤد كتاب الادب باب فى الرجل يجلس بين الرجلين بغير اذنهما:٤٨٤٥، وسنده حسن، ترمذى ٢٧٥٢، احمد:٢١٣/٢.

[6]) الطبرى: ٢٤٤/٢٣.

[7]) ايضاً ٢٤٥/٢٣.

کړی الله ﷻ دهغه عزت زیاتوی اودهغه مشهورتیاپه نیکئی سره کوی. دایماندارواوصحیح علم لرونکو هم دغه کاروی چه د الله ﷻ د احکامویه وراندې خپل سرتیټوی نودې سره هغوی د اوچتودرجو خاوندان جوړیږی. الله ﷻ ته ښه علم دې چه د اوچتودرجو حقدار کوم یودې اوکوم یونه دې.

**قوله تعالى:- يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ**

**دکتاب الله په وجه دمؤمنانواوچتوالی:** دنافع بن عبدالحارث ﷺ سره دعمرفاروق ﷺ ملاقات په عسفان کښې اوشو حضرت عمرﷺ هغه د مکې عامل جوړکړې وود هغه نه تپوس اوکړو چه تاسو خپل ځای په مکه کښې چاته پریخې دې راغلې نی؟جواب ملاوشو چه ابن ابزی ته. حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه هغه خو زمونږ مولې دې یعنی آزادکړې شوې غلام، هغه تا د اهل مکه امیر جوړکړې راغلې؟ ونی ونیل او خکه چه هغه د الله ﷻ د کتاب ماهر، د فرائضو پیژندونکې او ښه وعظ کونکې دې.حضرت عمرﷺ هغه وخت اوفرمائیل چه رښتیافرمائیلی دی رسول الله ﷺ چه الله ﷻ به د دې کتاب په وجه یو قوم نه عزت ورکړی او په اوچته مرتبه به نی کړی او نوربه ښکته او کمه مرتبه کښې کړی. (۱) د علم او علماؤ فضیلت چه د دې آیت نه اود نوروآیاتونو او احادیثونه ښکاره دې ما هغه ټول د بخاری کتاب العلم په شرح کښې راجمع کړی دی. **(والحمدلله)**

| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْۤا | اِذَا نَاجَيْتُمُ | الرَّسُوْلَ |
|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | کله چې پټې خبری کوئ تاسو | درسول سره |
| انې مومنانو تاسو چې کله د پیغمبر سره پټې صلاح مشورې کوئ | | | |

| فَقَدِّمُوْا | بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ | صَدَقَةً ؕ | ذٰلِكَ | خَيْرٌ لَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نو وړاندې لیږئ | مخکښې دپټو خبرو کولو نه | صدقه | دا کار | بهتر دې ستاسو دپاره |
| نود خپلو پټو صلاح مشورو نه وړاندې څه (لږ ډیره) صدقه ورکوئ \| داکار ستاسودپاره ډیربهتر دې | | | | |

| وَاَطْهَرُ ؕ | فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|
| او زیات پاکیزه دې | پس که بیا نهٔ مونده تاسو صدقه | پس بیشکه الله | بښونکې | مهربانه دې |
| اودپاکئ ذریعه ده \| اخو که دصدقې وس نه لرئ \| نوبیشکه الله ﷻ بښونکې رحم کونکې دې | | | | |

| ءَاَشْفَقْتُمْ | اَنْ تُقَدِّمُوْا | بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ | صَدَقٰتٍ ؕ |
|---|---|---|---|
| آیا اویریدئ تاسو | چې وړاندې ورکړئ | مخکښې دپټو خبرو کولو نه | صدقې |
| آیاتاسو ددې نه ویریدلئ چې دخپلو پټو مشورو نه وړاندې څه لږ ډیره صدقه ورکړئ ؟! (نوخیر دی) | | | |

| فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا | وَتَابَ اللّٰهُ | عَلَيْكُمْ | فَاَقِيْمُوا |
|---|---|---|---|
| نو کله چې اونهٔ کړو تاسو دا کار | او وکړه رجوع په رحمت سره الله | په تاسو باندې | پس قائیموئ |
| که دا کارونه نشوئ کولی \| اوالله ﷻ تاسوته معافی اوکړه \| نو اوس دمونځ پابند | | | |

(۱) صحيح مسلم كتاب الصلاة المسافرين باب فضل من يقوم بالقرآن ويعلمه: ۸۱۷، ابن ماجه: ۲۱۸، احمد: ۳۵/۱،

| الصَّلٰوةَ | وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ | وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ ط | وَاللّٰهُ | خَبِيْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| مونځ | او ورکوئ زکاة | او خبره منئ د الله | او د رسول دهغه | او الله | خبردار دي |

او سيرئ | او زکوة ورکوئ | او د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ هره خبره منئ | او الله ﷻ ته ستاسو ټول

| بِمَا | تَعْمَلُوْنَ ۝ |
|---|---|
| په هغه کارونو | چې کوئ يې تاسو |

کارونه معلوم دی

**قوله تعالى:- يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ**

**پيغمبر ﷺ سره غوږ ايستنې او د هغې احکام:-** الله ﷻ خپلو مؤمنانو بندګانو ته حکم ورکوی چه زما نبی سره کله تاسو درازخه خبره کونې نو د هغې نه وړاندې زما په لارکښې خيرات کونې دې دپاره چه تاسو پاك صاف شنی او ددې قابل جوړشنی چه زما پيغمبرسره مشوره اوکړې شنی او که څوك غريب مسکين سړې وی نو خيردې د الله ﷻ په ښښنه او رحم باندې نظر ساتل پکار دی يعنی دا حکم صرف هغوی ته دې چه مالداروی. بيا فرمائی چه آيا تاسوته د دې حکم دباقی پاتې کيدو اندېښنه اوويره وه چه دا صدقه به ترکومې واجب وی ښه چه تاسو هم دا اونه کړه او الله ﷻ هم تاسو معاف کړئی نو اوس د دې پورته ذکرشوی فرائضو پوره شان سره خيال ساتنی چه دغوږ ايستنې نه وړاندې د صدقې کولوعزت صرف حضرت علی ؓ ته حاصل شوې وو بيا دا حکم اخوا شو. يو دينار صدقه ورکولو سره حضرت علی ؓ د حضور ﷺ سره پټې خبرې اوکړې اولس مسئلې نی اوپوښتلې. بيا خو حکم اخواشو. د حضرت علی ؓ د پخپله هم دا واقعه په تفصيل سره روايت ده چه هغوی فرمائی په دې آيت باندې زما نه وړاندې چا عمل نه دې کړې اونه زمانه پس چا عمل کړې. ماسره يو دينار وو هغه مامات کړو او لس درهم مې واخستل يو درهم مې د الله ﷻ په نوم يو مسکين ته ورکړو بيا د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او غوږ کښې مې ورسره خبرې اوکړې بيا دا حکم ختم شونو په دې باندې زمانه وړاندې چا عمل نه دې کړې اونه زما نه پس په دې څوك عمل کولې شی. بيا هغوی د دې آيت تلاوت اوکړو([1]) ابن جرير کښې دی چه حضور ﷺ د حضرت علی ؓ نه تپوس اوکړو چه دصدقې مقدار يو دينار مقررول پکار دی نو هغه اووئيل چه دا خو ډير زيات شو. وئی فرمائيل چه نيم دينار نو هغه اووئيل چه هريوسړې د دې هم طاقت نه لری. بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده ته اووايه چه څومره؟ هغه وئيل ديوې اوربشې برابر سره زر نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه واه واه ته خو ډير زيات زړه تنګې يې.
حضرت علی ؓ فرمائی چه زما په وجه الله ﷻ په دې اومت باندې تخفيف اوفرمائيلو([2]) په ترمذی کښې هم دا روايت دې اودې ته نی حسن غريب وئيلې. حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه مسلمانانو به د حضور ﷺ سره د رازدارنی خبرې کولونه وړاندې صدقه ويستله خود زکوة حکم دا ختمه کړه. هغوی فرمائی چه صحابه کرامو ډير زيات تپوسونه شروع کړه چه حضور ﷺ ته به تکليف وو نو الله ﷻ په دې حکم باندې په هغوی ﷺ آسانی کړه څکه چه اوس خلقو سوالونه کول پريخودل. بيا الله ﷻ په مسلمانانو باندې کشادګی اوکړه او دا حکم منسوخ شو([3]) د عکرمه ؓ او حضرت حسن بصری رحمه الله هم دا قول دې چه دا حکم منسوخ دې([4]) حضرت قتاده رحمه الله او حضرت مقاتل رحمه الله هم دا فرمائی. حضرت قتاده رحمه الله

[1]) حاکم: ۲/ ۴۸۲ و سنده حسن.
[2]) ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة المجادلة: ۳۳۰۰.
[3]) الطبری: ۲۳/ ۲۴۹.
[4]) ايضا ۲۳/ ۲۵۰.

فرمائی چه د ورځې د یوځوګړو پورې دا حکم پاتې وو اوحضرت علی ﷺ هم دا فرمائی چه صرف هم ما پرې عمل کړې وو او ډېر لږ وخت په دې حکم نازلیدو باندې شوې وو چه منسوخ شو.

| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | تَوَلَّوْا | قَوْمًا |
|---|---|---|---|
| آیا اونه کتل تا | هغه کسانو ته | اچې دوستی کوی | دهغه خلقو سره |
| آیا تا هغه خلقو ته نه دی کتلی اچې دداسې قوم سره دوستی کوی اپه | | | |

| غَضِبَ اللَّهُ | عَلَيْهِمْ | مَا هُمْ | مِنْكُمْ | وَلَا مِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې غضب کړې دې الله | په هغوئ باندې | نه دی هغوئ | ستاسو نه | او نه د هغوئ نه |
| چا چې د الله ﷻ غضب نازل شوې دې | دا (منافقان) نه تاسو سره دی | او نه دهغوئ (کافرانو) سره دی | | |

| وَيَحْلِفُونَ | عَلَى الْكَذِبِ | وَهُمْ يَعْلَمُونَ | أَعَدَّ اللَّهُ |
|---|---|---|---|
| او خوری قسمونه | په دروغه باندې | او هغوئ پوهیږی (په دروغو) | خپلو تیار کړې دی الله |
| اوسره د پوهې په دروغه قسمونه خوری | ..........او الله ﷻ هغوئ دپاره | | |

| لَهُمْ | عَذَابًا شَدِيدًا | إِنَّهُمْ | سَاءَ | مَا كَانُوا |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغوئ | عذاب سخت | بیشکه هغوئ چې دی | ډیرخراب دی | چې وو هغوئ |
| سخت عذاب مقرر کړې دې | ..............بیشکه هغه کارونه ډیر خراب دی چې هغوئ | | | |

| يَعْمَلُونَ | اتَّخَذُوا | أَيْمَانَهُمْ | جُنَّةً | فَصَدُّوا | عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کول به ئې | انیولی دی هغوئ | قسمونه خپل | یو ډال | پس منع ئې کړل خلق | دلارې دالله نه |
| ئې کوی | ....دوئ خپل قسمونه خان دپاره ډال جوړ کړې دی | او خلق د الله ﷻ دلارې نه منع کوی | | | |

| فَلَهُمْ | عَذَابٌ مُهِينٌ | لَنْ تُغْنِيَ | عَنْهُمْ | أَمْوَالُهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| پس هغوئ لره دې | عذاب سپکونکې | هر گز به دفع نه کړی | دهغوئ نه | مالونه دهغوئ |
| نو هغوئ دپاره د ذلت عذاب مقرر دې | ..........دالله د عذاب په مقابله کښې د هغوئ مال او د هغوئ | | | |

| وَلَا أَوْلَادُهُمْ | مِنَ اللَّهِ | شَيْئًا | أُولَئِكَ | أَصْحَابُ النَّارِ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او نه اولاد دهغوئ | دعذابه دالله نه | څه څیز | دا کسان | خاوندان دوور دی | هغوئ به |
| اولاد هغوئ ته هیڅ فائده نشی ورکولې | هم دغه خلق دوزخیان دی | ..........او همیشه به | | | |

| فِيهَا | خَالِدُونَ | يَوْمَ | يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ | جَمِيعًا |
|---|---|---|---|---|
| په هغې کښې | همیشه وی | په کومه ورځ | چې به ژوندی راپورته کړی دوئ لره الله | ټول |
| په کښې پراته وی | ..........په کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ ټول بیا راژوندی کړی | | | |

| فَيَحْلِفُونَ | لَهُ | كَمَا | يَحْلِفُونَ | لَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نو قسمونه به خوری دوئ | هغه ته | لکه څنګه چې | قسمونه خوری دوئ | تاسو ته |
| نو دالله ﷻ وړاندې به داسې قسمونه خوری | لکه څنګه چې (نن) ستاسو په وړاندې خوری | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَحْسَبُونَ | اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ؕ | اَلَآ | اِنَّهُمْ هُمُ | |
| او گمان به کوي دوئ \| چي ددوئ به څه کار جوړ شي (په دي سره) \| خبردار \| بيشکه دوئ چي دي \| | | | | |
| اودا خيال به کوي \| چي گني ددوئ څه دين ايمان شته \| ................ ښه واوره چي دوي | | | | |
| الْكٰذِبُوْنَ ۝ | اِسْتَحْوَذَ | عَلَيْهِمُ | الشَّيْطٰنُ | فَاَنْسٰهُمْ |
| هم دوئ دروغژن دي \| غالب شوي دي \| په دوئ باندي \| شيطان \| پس هير ئي کړو ددوئ نه | | | | |
| بيخي دروغژن دي \| (خبره داده چي) په دوئ باندي شيطان قابو موندلي دي \| نو د دوي نه ئي | | | | |
| ذِكْرَ اللّٰهِ ؕ | اُولٰٓئِكَ | حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ؕ | اَلَآ | اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ |
| ياد دالله \| دا کسان \| ډله دشيطان ده \| خبردار \| بيشکه ډله دشيطان چي ده \| | | | | |
| دالله ﷻ ياد هير کړي دي \| هم دغه دشيطان ټولگي دي \|او خان خبر کړئ چي دشيطان ټولگي | | | | |
| هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ | | | | |
| هم دوئ خساره موندونکي دي \| | | | | |
| تاوانيان دي | | | | |

قوله تعالىٰ:- اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ؕ

**دمنافقانو ذکر او ددوئ سزا:** دمنافقانو ذکر کولي شي چه دوی په خپل زړه کښې ديهوديانو مينه ساتله. لکه دهغوی هم حقيقي ملگری نه دی اونه ستا دی نه د اخوا دی اونه د ديخوا. صفاد دروغو قسمونه خوری اوايماندارانو له راځي اوهم دهغوی په شان وائي. رسول الله ﷺ له راځي اود دروغو قسمونو خوړلو سره هغوی ته د خپل ايمان يقين ورکوی اوپه زړه کښې د هغې خلاف جذبات لری اوپه خپلې غلطۍ وينا بې دريغه قسمونه خوری.د دوی د دې بدعمل په وجه به دوی ته ډيرسخت عذاب ورکولې شی.د دې دهوکې ورکولوبه دوی ته ډيره خرابه بدله ورکولې شي. دوی داد دروغو قسمونه خوړل خپل ډالونه جوړکړی اود الله ﷻ د لارې نه منع شوی دی. ايمان ښکاره کوی او کفرئې په زړه کښې ساتلې دې اوپه قسمونوخوړلو سره خپل باطنی بدی پټوی.ناخبره خلقو ته د خپلودروغوقسمونو په وجه ثبوت ورکوی اوهغوی خپل ملگری جوړوی او بيا په مزه مزه هغوی هم په خپل رنگ کښې رنگوی.دوی په دروغو قسمونوخوړلودالله ﷻ په زرگونود عزت دنوم بې عزتی کړې وه څکه به دوی ته د ذلت او شرمندگئ عذاب سره مخ کيدل وی.کوم عذابونه چه به نه دهغوی مالونه او نه دهغوی دهغه وخت اولاد دهغوی په څه کار راشی دوی خو دوزخيان شوی دی اود هغه ځائ نه د دوی وتل به هيڅ کله هم نه کيږی.کله چه دقيامت په ورځ د دوی حشرو ی اويوبه هم ددې ميدان دراتلونه نه پاتيږی ټول به جمع کيږی.د دوی خو په ژوندکښې دا عادت وو چه د دروغوپه قسمونوبه ئې خپلې خبرې رښتيا ثابتولې نو نن به هم د الله ﷻ په وړاندې د خپل هدايت او استقامت لوئ لوئ قسمونه خوری اودابه گنړی چه دلته به هم دا چالاکی اوچليږی خود دې دروغژنوبه د الله ﷻ په وړاندې د چالاکی چرته چليدې شی؟ هغه خود دوی دروغژن کيدل دلته هم مسلمانانو ته بيان کړی دی.

قوله تعالىٰ:- وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ؏

**د منافقانو د دروغو قسمونه:**-ابن ابی حاتم کښې دی چه نبی کريم ﷺ يوځل دخپلې کمرې په سوری کښې تشريف فرما ووا و صحابه کرام ﷡ هم خواوشاکښې ناست وو.د سورې ځائ کم وواودې خلقو په گرانه

په هغې کښې پناه اخستې وه. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ګورئې اوس به يوسړې راشي چه شيطانې نظر سره به ګوري چه هغه راشي نو هغه سره خبره مه کوئي. لږ ساعت پس يوګکوسترګووالا سړې راغلو. پيغمبر ﷺ هغه خپل خان له راوغوښتو او ورته ئې اوفرمائيل چه ولې ته اوفلانکې فلانکې ماته کنځلې کوئې؟دې د هغه ځائ نه لاړو او چه دچاچانومونو حضور ﷺ اخستې وو هغه ئې راوستل او بيا ئې په يوه ساقسمونه خوړل شروع کړه چه مونږ خود نبي کريم ﷺ په شان کښې څه بې ادبي نه ده کړې په دې باندې دا آيت نازل شو چه دا دروغژن دی.[1] دغه حال به دمشرکانو هم د الله ﷻ په دربار کښې وی چه قسمونه به خوری چه زمونږ دې په الله ﷻ باندې قسم وی کوم چه زمونږ رب دې مونږ شرک نه دې کړې. بيا فرمائي چه په دوی باندې شيطان غلبه بيامونده ده اود دوی زړونه ئې په خپل موټی کښې نيولې دی.د الله ﷻ د ياد او ذکر نه ئې دوی لرې کړی دی.د ابوداؤد په حديث شريف کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي چه په کوم کلی يا ځنګل کښې درې کسان هم وی او هغوی مونځ نه قائموی نو شيطان په هغوی باندې راخوريږی. نوتاسو ډلې سره اوسيږئ. شرمخ هغه چيلئې ماتوی چه د رمې نه جدا شي. سائب ﷺ فرمائي چه دلته د ډلې نه مراد د مانځه جماعت دې.[2] بيافرمائي چه د الله ﷻ ذکر هيرونکی د شيطاني ډلې کسان دی. د شيطان دا لښکر يقيناً نامراد او تاونيان دی.

إِنَّ الَّذِينَ | يُحَادُّونَ اللَّهَ | وَرَسُولَهُ

| بيشکه هغه کسان | چې مخالفت کوی دالله | او درسول دهغه |

بيشکه څوک چې دالله ﷻ اودهغهٔ د رسول ﷺ مخالفت کوی

أُولَٰئِكَ | فِي الْأَذَلِّينَ ۝ | كَتَبَ اللَّهُ | لَأَغْلِبَنَّ | أَنَا | وَرُسُلِي

هم دا کسان | په ذليلانو کښې دی | ليکلی دی الله | چې خامخا به غالب کيږم | زهٔ | او رسولان زما

نودغه خلق ذليلان دی | ............ الله ﷻ داليکلی دی چې زه او زما رسول به غالب يو

إِنَّ اللَّهَ | قَوِيٌّ | عَزِيزٌ ۝ | لَا تَجِدُ | قَوْمًا | يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

بيشکه الله | قوی دې | غالب دې | بيا به نهٔ مومې ته | يو قوم | چې هغوئ ايمان لری په الله |

بيشکه الله ﷻ دقوت خاوند دې او غالب دې | ته بهٔ هيچرې دا اونه مومې چې په الله ﷻ

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ | يُوَادُّونَ | مَنْ | حَادَّ اللَّهَ

او په ورځ داخرت | چې هغوئ محبت کوی | دهغه چاسره | چې هغه مخالفت کوی دالله |

او په ورځ داخرت باندې ايمان راوړی | هغوئ دداسې خلقو سره دوستانې اوساتی | چې دالله ﷻ او

وَرَسُولَهُ | وَلَوْ كَانُوا | آبَاءَهُمْ | أَوْ أَبْنَاءَهُمْ | أَوْ إِخْوَانَهُمْ

او درسول دهغه سره | او اګر که وې هغوئ | پلاران دهغوئ | يا خامن دهغوئ | يا رونړه دهغوئ |

دهغهٔ د رسول ﷺ مخالف وی | اګر که هغوئ ئې پلاران ، يا خامن يا رونړه

[1] احمد:۲٦٧/١ وسنده حسن، حاکم: ۴۷۲/۲، طبرانی:۲۳۰۸، دلائل النبوة للبيهقي:۲۸۲/۵.

[2] ابوداؤد کتاب الصلاة باب التشديد في ترک الجماعة :۵۴۷ وسنده صحيح؛ نسائی: ۸۴۸، احمد:۱۹٦/۵، ابن حبان: ۲۱۰۱، حاکم: ۲۱۱/۱.

| اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ | اُولٰٓئِكَ | كَتَبَ | فِيْ قُلُوْبِهِمُ | الْاِيْمَانَ |
|---|---|---|---|---|
| يا خپلوان دهغوئ | دا كسان چي دي | ليكلي دي الله | په زړونو دهغوئ كښي | ايمان |
| يا دكورنئ نورخلق وي | هم د دغه كسانوپه زړونو كښي الله تعالى د ايمان (نور) اچولي دي | | | |

| وَاَيَّدَهُمْ | بِرُوْحٍ | مِّنْهُ | وَيُدْخِلُهُمْ |
|---|---|---|---|
| او محكم كړي ني دي هغوئ | په يو روح سره | دطرفه خپل نه | او داخل به كړي هغوئ |
| او هغوئ ني پخپله مهربانئ سره مضبوط كړي دي | اوداسي باغونو ته به ني | | |

| جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| داسي باغونو ته | چي بهيږي به | لاند دهغي نه | نهرونه | چي هميشه به وي | په هغي كښي |
| داخل كړي | چي دهغي لاندي به نهرونه بهيږي | هميشه به په هغي كښي استوګن وي | | | |

| رَضِيَ اللّٰهُ | عَنْهُمْ | وَرَضُوْا عَنْهُ | اُولٰٓئِكَ | حِزْبُ اللّٰهِ | اَلَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| راضي شو الله | دهغوئ نه | او راضي شو هغوئ دهغه نه | دا كسان چي دي | ډله دالله ده | خبردار |
| الله ﷻ به دهغوئ نه راضي وي | او هغوئ به دالله ﷻ نه راضي وي | هم دغه دالله ﷻ ټولګي دي | خبردار | | |

| اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ | هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٢٢﴾ |
|---|---|
| بيشكه ډله دالله | خاص هم دوئ فلاح (خلاصي) موندونكي دي |
| چي هم دالله ﷻ ټولګي كامياب دي | |

**قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ**

**د الله تعالى اورسول الله دښمنان به ذليل وي:** الله ﷻ بيان فرمائي چه كوم خلق د حق نه جدادي او هدايت نه لري دي دالله ﷻ اوهغه درسول الله ﷺ مخالف دي.د شريعت د احكامونه جدادي دا خلق داوچتي درجي ذليل دي بي عزته اوخراب حال دي د الله ﷻ د رحمت نه لري.د الله ﷻ دمهربانئي دډك نظرنه لري او په دنيااو آخرت كښي برباد دي. الله ﷻ خو فيصله كړي ده بلكه په خپل كتاب كښي ليكلي دي او مقدركړي دي. چه كوم ليك او تقدير نه بدليږي نه ورانيږي اونه په چا كښي په هغي كښي د اړولو راړولوطاقت شته. هغه د هغه كتاب اود هغه رسول اود هغه مؤمنان بنديګان به په دنيا اوآخرت كښي غالب وي. بل خائ كښي ارشاد دي﴿اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ﴾ مونږ د خپل رسول اوداېماندارانو بنديګانو ضرور ،ضرور امداد كوو په دنياكښي هم او په آخرت كښي هم. په كومه ورځ چه ګواهان قائم شي اوپه كومه ورځ چه به دګناهګارانوهيڅ عذراومعذرت هغوی ته فائده رسولي نه شي په هغوی به لعنتونه راوريږي اودهغوی د پاره به داوسيدو ډير خراب كور وي.دا ليكونكي الله ﷻ قوی دي اودهغه ليكلاخری دی هغه غالب اوقهار دي په خپلو دښمنانوباندي هروخت قابو لرونكي دي.د هغه دا اټله فيصله او فيصله شوي قضا ده چه په دواړو جهانونوكښي د انجام په اعتبارسره غلبه او نصرت هم د مؤمنانو حصه ده.

**قوله تعالى:- لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ**

**مؤمنان د ټولو نه زيات د الله ﷻ اورسول الله سره مينه لري:** بيا فرمائي چه دا ناممكنه ده چه د الله ﷻ دوستان دهغه دښمنانوسره دوستي اوكړي.بل خائ كښي ارشاددي چه مسلمانانوله پكارنه دي چه مسلمانان پريږدي اوكافران خپل ملګري اودوستان جوړوي.داسي كونكي دالله ﷻ په وړاندي په هيڅ شمير كښي نه دي. البته كه د ويري په وخت كښي كه دفع الوقتي توګه باندي وی نوهغه بله خبره ده. الله ﷻ

تاسودخپل عزتمند ذات نه ویروي.بل ځای کښې دی اې نبي! اعلان اوکړه که چرې ستاسو پلاران نیکونه ځامن نمسي ښځې بچي خاندان قبیله مال دولت تجارت حرفت کور کلي وغیره تاسو په نسبت دالله ﷻ اود هغه درسول ﷺاود هغه د لارې د جهاد نه ډیر خوښ وي نو تاسو د الله ﷻ د طرف نه دراوریدونکي عذاب انتظارکوئې.ددې قسمه فاسقانولارخودنه دالله ﷻدطرف نه هم نه وي. سعیدبن عبدالعزیز رحمه الله فرمائی داآیت دحضرت ابوعبیده عامر بن عبدالله بن جراح رضی الله عنه باره کښې نازل شوې په جنګ بدرکښې دهغه پلارد مسلمانانو په مقابله کښې راغلي ووهغه دې قتل کړې وو(١)

حضرت عمر رضی الله عنه په خپل آخري وخت کښې کله د خلافت د پاره یوه ډله د خلیفه جوړولو له مقررکړه چه خلق څوك غواړي نوخلیفه دې جوړکړي. هغه وخت ئې د حضرت ابوعبیده رضی الله عنه باره کښې فرمائیلي وو که هغه وو نومابه خلیفه جوړولو(٢)اودا هم وئیلې شوي دي چه یویوصفت په یویوبزرګ کښې وي مثلا ابائهم. حضرت ابوعبیده بن جراح رضی الله عنهخو خپل پلارقتل کړې ووأو ابناء هم. حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه : خپل خوئ عبدالرحمن د قتل اراده کړې وه .او اخوانهم اوحضرت مصعب بن عمیر رضی الله عنه د خپل رورعبید بن عمیرقتل کړې وواو حضرت عمر رضی الله عنه حضرت حمزه رضی الله عنه حضرت علي رضی الله عنه او حضرت عبیده بن حارث رضی الله عنه خپل نیزدې رشته دار عتبه شیبه او ولیدبن عتبه قتل کړې وو. والله اعلم.

هم په دې ضمن کښې داواقعه هم داخلیدې شي چه په کوم وخت کښې رسول الله ﷺ بدري قیدیانو په نسبت د مسلمانانوسره مشوره اوکړه نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوفرمائیل چه دوی نه فدیه واخلئی او پریږدئی چه د مسلمانانومالي حالت برابرشي د مشرکانوسره د جنګ کولو د پاره د جنګ سامان او وسله راجمع کړو اوکه دوی پریخودلي شي نو څه عجیبه ده چه الله ﷻ د دوی زړونه د اسلام طرف نه راوګرځوي آخردوي هم زمونږ د خاندان دي. خوحضرت عمر رضی الله عنه ددې نه خپله رائې بالکل خلاف پیش کړه چه یارسول الله د کوم مسلمان چه کوم مشرك رشته دار دې هغه دې هغه ته حواله کړې شي او دا حکم دې ورکړې شي چه هغه به دې قتل کوي مونږ الله ﷻ ته دا خودل غواړو چه زمونږ په زړونو کښې ددې مشرکانو سره هیڅ محبت نشته. ماته زما فلانکی رشته دارحواله کړه اوحضرت علي رضی الله عنه ته عقیل حواله کړه اوفلانکی صحابي ته فلانکي کافرورکړه وغیره.(٣)

بیافرمائي چه څوك خپل زړه دالله ﷻ د دښمنانود محبت نه خالي کړي اومشرکانو رشته دارانو سره هم محبت کول پریږدي هغه د کامل ایمان خاوند دې. د چا په زړه کښې چه ایمان جړې کلکې کړې دي او د چا په قسمت کښې چه سعید لیکلي شوي دې اود چا په نظرکښې چه د ایمان ښائست ښائسته کړې شوي دې اود هغوی تائیدالله ﷻ د خپل خوانه په روح سره کړې دې یعنی هغه ئې قوي جوړ کړي دې. هم دوی به بهیدونکي نهرونووالا جنتونوکښې وي چرته نه به چه چرې هم دوی نه شي ویستلي. الله ﷻ د دوی نه راضي اودوی دالله ﷻ نه خوشحاله. هغوی د الله ﷻ د پاره خپل خاندان اورشته داران خفه کړې ووالله ﷻ دهغې په بدله کښې ددوی نه راضي شو اوهغوی ته ئې دومره ورکړه چه هغوی هم خوشحاله شو.دالله ﷻ لښکر هم دغه دې اوکامیابه ډله هم دغه ده کومه چه د شیطاني لښکر اوناکامه ډلې په مقابله کښې ده.

**قوله تعالی:-أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ**

حضرت ابوحازم اعرج حضرت زهري رحمه الله ته اولیکل عزت په دوه قسمه دې یوهغه چه الله ﷻ د اولیاؤ په لاس ښکاره کوي. کوم حضرات چه د عاموخلقو په نظرکښې ښه نه لګی اود هغوی عام مشهور

---

(١) حاکم:٣/٢٦٥من طريق آخر مرسلاً.
(٢) ايضا:٣/٢٦٨.
(٣) صحيح مسلم كتاب الجهاد باب الامداد بالملائكة في غزوة بدر:١٧٦٣.

بیانه وی اود چا صفت چه د الله ﷻ رسول ﷺ هم فرمائیلي چه الله ﷻ هغه خلق دوستان ساتی کوم چه بې متقیان او پرهیزګار نیکوکار دی که چرې هغوی رانه شي نوځوك ئې تپوس نه کوی اوچه راشي نو څه خاص خیال ئې نه شي ساتلې د هغوی زړونه د هدایت چراغونه دی. د هرقسم تورې تیارې د فتنې نه بهرراوځي.دادی هغه اولیاؤ الله چاته چه الله ﷻ خپل لښکر فرمائیلي اود چا د کامیابئ اعلان چه ئې کړې دې(ابن ابی حاتم) رسول الله ﷺ په خپله دعاکښې فرمائیلي دی اې الله دیوفاسق فاجر هیڅ احسان او سلوك په ما باندې مه ایږده ځکه چه ما ستا په نازل کړې شوې وحی کښې لوستلی دی چه ایماندارد الله ﷻ د مخالفینودوست نه وی.حضرت سفیان ﷺ فرمائی چه د وړاندینوخیال دې چه دا آیت د هغه خلقو باره کښې نازل شوې چه بادشاهانوسره تعلقات ساتی. (ابواحمدعسکری)

(الحمدلله) د سورۃ مجادله تفسیر ختم شو.

**(تفسیر سورۃ حشر) اود حضرت ابن عباس ﷺ په قول (سورۃ بنونضیر)**

په صحیح بخاری اوصحیح مسلم کښې دی چه سعیدبن جبیرﷺ حضرت ابن عباسﷺ ته اووئیل چه دا سورۃ حشر دې نوهغوی اوفرمائیل چه قبیله بنونضیر باره کښې نازل شوې دې.([1]) د بخاری شریف په بل روایت کښې دی چه هغوی په جواب کښې اوفرمائیل داسورۃ سورت بنونضیر دې.([2])

| ایاتونه | | سورۃ الحشرمدنیۃ وهي اربع وعشرون اٰیۃ وثلاث رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ۲۴ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۳ |

سَبَّحَ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الۡاَرۡضِ ۚ

پاکي بیانوی | الله لره | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | او هغه څه | چې په زمکه کښې دی |

په زمکه او اسمانونو کښې چې څه دی ټول د الله ﷻ پاکي بیانوی

وَهُوَ الۡعَزِیۡزُ | الۡحَکِیۡمُ ۝ | هُوَ الَّذِیۡۤ | اَخۡرَجَ | الَّذِیۡنَ

او هغه غالب دې | او حکیم دې | هغه هغه ذات دې | چې وې ایستل | هغه کسان |

او هغه ډیر غالب او صاحب د حکمت دې | الله ﷻ هغه ذات دې چې کتابیان

کَفَرُوۡا | مِنۡ اَهۡلِ الۡکِتٰبِ | مِنۡ دِیَارِهِمۡ | لِاَوَّلِ الۡحَشۡرِ ؔ

چې کفر ئې اوکړو | داهل کتابونه | د کورونو دهغوئ نه | په اول د ایستلو سره |

کافران ئې په ړومبی ځل په جمع د کورونو نه اوویستل | ..................

مَا ظَنَنۡتُمۡ | اَنۡ یَّخۡرُجُوۡا | وَظَنُّوۡۤا | اَنَّهُمۡ

نه کوئ ګمان تاسو | چې اوبه وځي هغوئ | او ګمان کړې وو هغوی | بیشکه هغوئ چې دی |

تاسو دا ګمان هم نه کولو | چې دوئ بۀ اوځي | اوهغوئ دا ګمان کولو چې خپلې

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورۃ الحشر باب نمبر ۱، حدیث:۴۸۸۲، صحیح مسلم:۳۰۳۱.

[2]) صحیح بخاری حواله سابق:۴۸۸۳.

مَّانِعَتُهُمْ حُصُونُهُمْ مِّنَ اللهِ فَاَتٰهُمُ اللهُ مِنْ حَيْثُ

منع کونکي دی هغوئ لره | قلاګانې دهغوئ | دالله نه | پس راغي په هغوئ الله | دداسې طرفنه |

قلعه ګانې به ئې دالله ﷻ د عذاب نه بچ اوساتی | نو دالله ﷻ عذاب پرې دهغه طرف نه راغلو

لَمْ يَحْتَسِبُوْا وَقَذَفَ فِىْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ

چې ګمان نهٔ وو دهغوئ | او واچوله الله | په زړونو دهغوئ کښې | يره | چې ورانول هغوئ |

چې ددوئ په خواخاطر کښې هم نه وو | ........................اودهغوئ په زړونو کښې ئې رعب واچولو

بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَاَيْدِى الْمُؤْمِنِيْنَ فَاعْتَبِرُوْا يٰاُولِى

کورونه خپل | په لاسونو خپلو سره | او په لاسونو دمومنانو | پس عبرت واخلئ | اے خاوندانو

چې خپل کورونه ئې په خپلو اودمسلمانانو په لاسونو نړول | نوائې دسترګو خاوندانو ددې نه

الْاَبْصَارِ۝ وَلَوْلَآ اَنْ كَتَبَ اللهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَآءَ

دسترګو | او که چرې نهٔ وې ليکلې الله | په هغوئ باندې | وتل دوطن خپل نه |

عبرت حاصل کړئ|........ اوکه الله ﷻ دهغوئ په حق کښې جلاوطني ليکلې نه وې | نو په دنيا

لَعَذَّبَهُمْ فِى الدُّنْيَا ؕ وَلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ

نو خامخا به ئې عذاب ورکړې وو هغوئ له | په دنيا کښې | او هغوئ لره دې | په اخرت کښې |

کښې به ئې د(قتل) سزا ورکوله | او(يواځې د دنيا عذاب نه بلکه )په اخرت کښې خو دوی دپاره د

عَذَابُ النَّارِ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ

عذاب دوور | دا کار | په سبب ددې وو چې هغوئ | مخالفت اوکړو دالله | او درسول دهغه

اور سزا مقرر ده | دا ځکه چې دوئ دالله ﷻ اود رسول ﷺ مخالفت کړې دې |

وَمَنْ يُّشَآقِّ اللهَ فَاِنَّ اللهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ۝ مَا قَطَعْتُمْ

اوځوک چې مخالفت کوی دالله |پس بيشکه الله |سخت عذاب ورکونکې دې|هغه چې پرې کړې تاسو

اوځوک چې دالله ﷻ مخالفت کوی | نوالله ﷻ په سزا ورکولو کښې ډير سخت دې | تاسو چې

مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللهِ

دونو دکجورو نه |يا پريښودې تاسو هغه| ولاړې |په جرړو خپلو باندې |پس په اجازت دالله سره دی

دکهجورو کومې ونې کټ کړې يامو په جرړو باندې ولاړې پريخودې| نو دا دالله ﷻ په حکم وو

وَلِيُخْزِىَ الْفٰسِقِيْنَ۝

او دپاره ددې چې الله ذليله کړې | فاسقان خلق |

او(ځکه) چې الله ﷻ نافرمانه خلق رسوا کړی |

قوله تعالى:- هُوَ الَّذِىْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

د بنونضير تفصيلي واقعه:الله ﷻ فرمانی چه دآسمانونو اوزمکې هريوڅيز دالله ﷻ تسبيح تحميد تقديس تمجيد تکبير او توحيد کښې مشغول دې.لکه چه يوبل ځائ کښې ارشاددې ﴿وَاِنْ مِّنْ شَىْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ﴾ يعنی هرڅيزدالله ﷻ پاکوالې او ثناخوانی کوی.هغه د غلبې والا اوچتې درجې والا لوئ سرکاردې او په

خپلو ټولو احکامو او ټول فرمان کښې د حکمت والا دې. چا چه د اهل کتاب کافران یعنی د بنو نضیر قبیلې یهودیان د هغوی د کورونو نه اوویستل. د دې لنډه قصه دا ده چه نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته راغلو نو یهودیانو سره ئې صلح کړې وه چه نه به هغوی دوی سره جنګیږی اونه به دوی هغوی سره جنګیږی. خودې خلقو دا عهدمات کړو د څه په وجه چه د الله ﷻ غضب په هغوی نازل شو. الله ﷻ خپل نبی په دوی غالب کړو او هغوی ئې د دې ځایٔ نه اوویستل. د مسلمانانو دا خیال هم نه وو او پخپله دې یهودیانو هم دا ګنړله چه د دې مضبوطو قلعه ګانو په موجودګنی کښې دهغوی څوك هیڅ نه شی کولې خو چه کله د الله ﷻ نیول راغله نو دا ټول څیزونه هم په خپل ځایٔ پراته پاتې شو او ناڅاپی داسې په نیولو کښې راغله چه حیران پاتې شو او نبی کریم ﷺ هغوی د مدینې نه اوویستل. بعضې خو د شام مقام اذرعات طرف ته لاړل کوم چه د حشر نشر ځایٔ دې او بعضې د خیبر طرف ته لاړل. هغوی ته وئیلې شوی وو چه په خپلو اوښانو څه بار کولې شئ نو یوسئی. په دې وجه هغوی خپل کورونه وران کړل او چه څه ئې اوړې شو نو هغه ئې یوړل او چه کوم پاتې شو هغه د مسلمانانو لاس له ورغله. د دې واقعه بیانولو سره فرمائی چه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د مخالفینو انجام اوګورئی اودې نه عبرت حاصل کړئی چه د الله ﷻ عذاب په هغوی باندې ناڅاپی څنګه راغلو او په دنیا کښې تباه او برباد کړې شو او په آخرت کښې ذلیل او رسوا کړې شو او په دردناکو عذابونو کښې ورېړیوتل.

**د ابی بن سلول او ده د ملګرو په نوم د قریشو خط:**- ابوداؤد کښې دی چه ابن اُبی او دهغه مشرك ملګری چه د قبیلې اوس او خزرج نه وود قریشو کافرانو ته خط اولیکه کله چه حضور ﷺ په مدینه کښې وو او غزوهٔ بدر نه وه پیښ شوې. په دې کښې لیکلې وو چه تاسو نبی کریم ﷺ خپل ځان سره ساتلې دې نو یا خو تاسو هغه سره جنګ اوکړئی او بهرئی اوباسئی اویا به مونږ تاسو اوباسو او په خپلو ټولو لښکرو به په تاسو حمله اوکړو او ستاسو ټول جنګیان به د تیغ نه اوباسو. ستاسو ښځې او جینکئی به وینځې جوړې کړو. د الله ﷻ قسم هم داسې به کیږی تاسو سوچ اوکړئی. عبدالله بن ابی او دهغه مشرکانو ملګرو د دې خط کتلو سره مشوره اوکړه او په پټه باندې ئې د پیغمبر ﷺ خلاف په اتفاق سره دا تجویز منظور کړو. کله چه نبی کریم ﷺ ته دا خبرونه معلوم شو نو پخپله هغوی له لاړو او هغوی ته ئې اوفرمائیل چه ماته معلومه ده چه د قریشو خط په کار راغلو او تاسو خلقو د خپل مرګ سامان په خپلو لاسونو تیار کړو. تاسو خپل اولاد او خپل رونړه په خپلو لاسونو باندې حلالول غواړئی زه تاسو ته یو ځل بیا موقع درکوم چه ښه سوچ اوفکر اوکړئی او د خپلې دې بدې ارادې نه منع شئی. د حضور ﷺ دې ارشاد په هغوی باندې اثر اوکړو او خپل ځایٔ ته لاړل. خو قریشو د بدر نه فارغیدو باندې دوی ته یو بل خط اولیکه او هم داسې اوویرول، هغوی ته ئې خپلې مضبوطې قلعه ګانې دهغوی طاقت او تعداد وریاد کړو. دوی بیا راپاسیده او بنونضیر په صفاتو ګه باندې عهد ماتولو له ملا اوتړله او حضور ﷺ ته ئې سړې اولیګلو چه تاسو دیرش کسان راولئی راشئی اوزمونږ نه هم دیرش پوهان خلق درځی چه زمونږ او ستاسو په مینځ کښې ځایٔ کښې به داشپیته کسان ملاوشی چه خبرې اترې اوشی. که دې خلقو ته ربښتونې اومنلې او ایمان ئې راوړو نو مونږ هم تاسو سره یو. د دې بدعهدئی په وجه په دویمه ورځ سحر نبی کریم ﷺ خپل لښکر واخستو او د هغوی نه محاصره اوکړه او هغوی ته ئې اوفرمائیل چه که اوس تاسو د نوې سر نه د امن او امان معاهده کوئی نو صحیح ده ګنی تاسو ته امن نشته. هغوی صفا انکار اوکړو او د لښکر وړاندې کړو او مړه کیدلو د پاره تیار شو. ټوله ورځ جنګ اوشو او بل سحر حضور ﷺ د بنو قریظه طرف ته جنګیدلو او مړه کیدلو د پاره تیار شو. ټوله ورځ جنګ اوشو او بل سحر حضور ﷺ د بنوقریظه طرف ته

معاهده اوکړئی هغوی منظور کړه او معاهده اوشوه. حضور ﷺ د هغه ځایٔ نه فارغ شو نو بیا بنونضیر ته راغلو جنګ شروع شو او آخر هغوی ماتې اوخوړه. نبی کریم ﷺ هغوی ته حکم اوکړو چه تاسو مدینه

خالي کړي کوم سامان چه اوړل غواړي هغه په اوښانو بارکړي او يوسئ. هغوی د کورونو سامانونه تر دې چه د دروازې او کړکئ هم په اوښانو رابارکړې او وطن ئې پريخودو. د هغوی د کجورو باغونه خاص درسول الله ﷺ شوالله ﷻ دا هم رسول الله ﷺ ته ورکړه لکه چه په آيت (وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ) الخ کښې دی خو پيغمبر ﷺ اکثره حصه مهاجرينوته ورکړه. اوداده چه د انصارو دوو حاجت مندو ته ئې حصه ورکړه او باقي ټوله ئې په مهاجرينو کښې تقسيم کړه او چه کوم باقي پاتې شو نو هم دادرسول الله ﷺ صدقه وه کومه چه د بنوفاطمه لاس ته ورغله. (١)

دَ غزوه بنونضير لنډا قصه: د دې سبب دا ووچه کله مشرکانو په دهوکه سره صحابه کرام رضي الله عنهم بئر معونه سره شهيدان کړل دکومو شميرچه اويا وو. ددوی نه يوحضرت عمرو بن اميه ضمري رضي الله عنه بچ راوتختيدلو. مدينې ته په راتلوراتلوکښې هغه موقعه بيامونده او د قبيله بنوعامر دوه کسان ئې قتل کړل سره د دې چه دې قبيلې رسول الله ﷺ سره معاهده کړې وه او دوی ته امن ورکړې شوې وو خود دې خبر حضرت عمرو رضي الله عنه ته نه وو. کله چه دې مدينې ته راورسيدو او حضور ﷺ ته ئې ذکر اوکړونو حضور ﷺ اوفرمائيل چه تا هغوی قتل کړل، اوس به زه د هغوی وارثانوته ديت يعني د قتل جرمانه ورکوم. بنونضير او د بنو عامر په مينځ کښې هم قسم اووعده ومصلحت وو په دې وجه حضور ﷺ هغوی له لاړو چه څه دوی ورکړي او څه حضور ﷺ پخپله ورکړي او بنوعامر راضي کړي. د قبيله بنونضير کنده د مدينې مشرق طرف ته د يوڅو ميلو فاصله باندې وه کله چه نبي کريم ﷺ دلته راورسيدو نو هغوی وئيل چه حضور ﷺ مونږ دلته موجوديو هم اوس د خپلې خپلې حصې مطابق راجمع کوو اوستاسو په خدمت کښې حاضروو. بل خوا دا خلق د نبي کريم ﷺ نه ځان له شو او خپلوکښې مشوره اوکړه چه دې نه به بنه موقع کله په لاس راشي؟ دې وخت کښې حضور ﷺ په قبضه کښې دې راغلي چه کار ئې خلاص کړو. دا مشوره اوشوه چه په کوم يوکور کښې نبي کريم ﷺ تشريف فرما دې په هغې دې څوك ورواوخيژي او يو لوئ کاڼې دې پرې راګذار کړي چه ورلاندې خښ شي. عمرو بن حجاش ابن کعب په دې کار مقرر شو هغه د رسول الله ﷺ د قتل کولو ذمه واري واخسته په چت باندې اوختلو او دا ئې غوښتل چه کاڼې رااورغړوی. په دې کښې الله ﷻ حضرت جبرائيل عليه السلام نبي کريم ﷺ له راوليږلو اوحکم ئې ورکړو چه تاسو د دې ځائ نه پاسئ. حضور ﷺ زرد هغه ځائ نه پاسيدو او دا بدباطن په خپله اراده کښې ناکامه شو. دې وخت کښې حضور ﷺ سره يو څو صحابه کرام مثلاً حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه وغيره وو.

حضور ﷺ زرد دې ځائ نه مدينې ته لاړو. هلته چه کوم صحابه کرام رضي الله عنهم هغوی ﷺ سره نه وو اوبه مدينه کښې دنبي کريم ﷺ په انتظار وودوخت لګيدوپه وجه خيال پيداشو اودحضور ﷺ د لټولوډپاره راپاسيده خو يوسړی ته پته اولګيده چه مدينې منورې ته رسيدلې دې نودا خلق واپس شو. تپوس ئې اوکړو چه حضور ﷺ څه واقعه وه نو حضور ﷺ ورته ټوله قصه بيان کړه او ورته ئې حکم اوکړو چه د جهاد د پاره تيارې اوکړئ. مجاهدينو ملاګانې اوتړلې او د الله ﷻ په لاړکښې د جهاد د پاره راووتل. يهوديانو چه لښکرې اوليدلې نود خپلوقلعه ګانودروازې ئې بندکړې او پټ شو. نبي کريم ﷺ د هغوی نه محاصره اوکړه او حکم ئې ورکړو چه د دوی د کجورو باغونه پريکړئ او وئې سوزوئ. بس بيا يهوديانو چغې سورې جوړې کړې چه دا څه کيږي؟ تاسو خو په زمکه کښې فسادکولونه نور منع کوئ او فساد نه بدرد وائې نو بيا دا څه دی؟ يوطرف ته د ونو پريکيدوغم او بل طرف ته چه کوم امداد راروان ود د هغې د طرف نه نااميدی ده دواړو څيزونود يهوديانو ملاګانې ماتې کړې. د امداد واقعه داسې وه چه د بنوعوف بن خزرج قبيله کوم کښې چه عبدالله بن ابی بن سلول او وديعه بن مالك ابن ابوقوقل،

(١) ابوداؤدکتاب الخراج باب في خبر النضير: ٣٠٠٤.

سویداوداعس وغیره وو دې خلقو بنونضیرته ونیلې وو چه تاسو په مقابله باندې کلك شئی او قلعه گانې مه پریږدئی مونږ ستاسو په امدادکښې یو ستاسو دښمن زمونږ دښمن دې مونږ به تاسو سره یو ځائ هغوی سره جنګیږو اوکه تاسو راووتلې نو مونږ به هم دراوځو. خو تراوسه پورې د یهودیانو دا وعده پوره نه شوه اوهغوی د یهودیانوهیڅ امداد اونه کړو. بل طرف ته په هغوی رعب پریوتلو نو درخواست ئې اوکړو یارسول الله ﷺ امونږ معاف کړه مونږ مدینه پریږدو خوخو چه مونږ خپل کوم مال په اوښانو بارکولې شو هغه مونږ ته راکړه. حضور ﷺ رحم اوکړو اود هغوی دا درخواست ئې منظورکړو او هغه خلق د دې ځائ نه لاړل. د تلو په وخت کښې خپل دروازو پورې رااوویستلې او راجمع ئې کړئې او یوئې وړئې کورونه ئې راګذار کړل او شام او خیبر ته لاړل آبادشول.دهغوی نه باقی پاتې شوې مال خاص درسول الله ﷺ شو هغوی ﷺ چه څنګه غوښتلو خرچ ئې کړو. نبی کریم ﷺ دا مال اولنو مهاجرینو کښې تقسیم کړو او هلته انصاروکښې صرف دوو کسانوته یعنی سهل بن حنیف رضی الله عنه او ابودجانه سماك بن خرشه رضی الله عنه ته ورکړو اودا خکه چه دا دواړه مسکینان وو. د بنونضیر نه صرف دوه کسان مسلمانان شواود هغوی مال هم هغوی سره پاتې شو.یویامین بن عمرو چه د عمروبن حجاش د تره د خوئ خوئ وو.دا هغه عمرو دې کوم چه په حضور ﷺ باندې د کاڼړی راغورزولو ذمه واری اخستې وه. دویم ابو سعد بن وهب. یوځل حضرت نبی کریم ﷺ د حضرت یامین رضی الله عنه نه تپوس اوکړو اې یامین ستادې د تره خوئ نه اوګوره چه ماسره څومره خراب سلوك کړې وواو ماته د نقصان رسولو څومره په بې باکئی سره کوشش کړې وو؟حضرت یامین رضی الله عنه یوسړی ته څه ورکړه اوعمرو ئې قتل کړو. سورة حشر هم د دې واقعه بنو نضیر په بیان کښې نازل شو.

**قوله تعالی:- لِأَوَّلِ الْحَشْرِ ۚ**

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه څوك په دې کښې شك کوی چه د محشر زمکه دشام ملك دې هغه دې دا آیت اولولی.دې یهودیانو ته چه کله رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو ددې ځائ نه اوځئی نو هغوی ونیل چرته لاړشو حضور ﷺ اوفرمائیل د محشر زمکې ته[1] حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی کله چه حضور ﷺ بنونضیر د وطن نه اوویستل نو وئې فرمائیل چه دا اول حشر دې اومونږ هم د دې نه شاشاته یو (ابن جریر).

د بنونضیر ددې قلعه ګانو محاصره صرف شپږ ورځې وه.محاصرینوته دا خیال هیڅ کله نه وو چه داد مضبوطو قلعه ګانو یهودیانو زیاتی دمنافقانو دیووالی دا سازشونه او خفیه چالونوپه کتلوسره به دوی دا قلعه ګانې دومره زر خالی کړی. بل خوا یهودیانوهم د خپلوقلعه ګانو د مضبوطیا په وجه په دې فخرکولو او پوهیدل چه هغوی هرقسم محفوظ دی خود الله ﷻ امردهغه ځائ نه راغلوچه د هغوی په خیال او ګمان کښې هم نه وو. هم دغه د الله ﷻ دستور دې چه مکر کونکی هم په خپل مکر کښې وی او بې خبرئی کښې په هغوی باندې عذاب راشی.په هغوی باندې رعب پریوتلو او رعب به ولې نه پریوتلوچه محاصره کونکی خو هغه خلق ووچاته چه دالله ﷻ دطرف نه رعب ورکړې شوې وو چه دښمن به دمیاشتې په فاصله کښې وی اوهلته به دهغوی زړه درزیدلو. ﴿صلوات الله وسلامه علیه﴾

**قوله تعالی:- يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُمْ بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ ۚ**

یهودیانو په خپلولاسونو خپل کورونه تباه او بربادکړل. د چتونو لرګی اودروازې د خان سره داوړلود پاره ماتول شروع کړه. مقاتل رحمه الله فرمائی چه مسلمانانو هم د هغوی کورونه ماتول او څومره به وړاندې کیدل اود هغوی کورونه به د هغوی په قبضه کښې راتلل هغه به ئې راغورزول او د جنګ د پاره به ئې میدان هوارولو.دغه شان به یهودیانو پخپله هم د وړاندې نه خپل کورونه محفوظ کول او د روستونه

[1] کشف الاستار:۳۴۲۶، مجمع الزوائد:۳۳۶/۱۰.

به نی کنډرې کولې اود وتلو لارې به نې جوړولې. بیا فرمانی اې سترګووالاعبرت حاصل کړئ د هغه الله ﷻ نه اوویریږئ د چا ډنډه چه بې آوازه ده. که د دې یهودیانو په مقدرکښې وطن پریخودل نه وو نو هغوی ته به د دې نه هم سخت عذاب ورکړې کیدې شو. دوی به قتل کیدل او قید کیدل به وغیره وغیره. بیا د آخرت هم خراب عذاب د دوی د پاره تیار دې. د بنونضیر دا جنګ د بدر نه شپږ میاشتې پس اوشو. هغه مال چه کوم په اوښانو باندې بارکیدې شو د هغې د اوړلو اجازت وو خود وسلې اوړلو اجازت نه وو. دا دهغه قبیلې خلق وو چه دوی د وطن نه چرې هم نه وو وتلی. د عروه بن زبیر ؓ د وینا مطابق د سورة د شروع نه﴿الْفَـٰسِقِينَ﴾پورې آیاتونه هم ددې واقعې په بیان کښې نازل شوی دی.د﴿الْجَلَاءَ﴾ معنی قتل اوخښول هم کړې ده. نبی کریم ﷺ هم د دې وطن پریخودو په وخت کښې هردریوکسانوته یو یواوښ او یوه مشکیزه ورکړې وه. د دې فیصلې نه پس نبی کریمﷺ حضرت محمد بن مسلمه ؓ هغوی ته لیږلې وو اوهغوی ته نې اجازت ورکړې وو چه په دریوورخوکښې خپل سامان تیک کړئ او ځئ. د دې دنیاوی عذاب سره د آخرت د عذاب هم بیان کولې شی هلته هم د دوی د پاره خامخا د دوزخ اور دې.دهغوی د دې سزا اصلی وجه دا ده چه هغوی د الله ﷻ اود هغه د رسول اللهﷺ خلاف کړې وواو په یواعتبارنې ټول پیغمبران دروغ ګڼړلې وو. هریو نبی د حضرت محمد ﷺ باره کښې پیشن ګوئی کړې وه دې خلقو حضورﷺ ښه پیژندلو بلکه اولاد چه څومره خپل پلار پیژنی د دې نه نې هم زیات نبی آخرزمان ﷺ پیژندلوخود سرکشئی او حسد په وجه نې نه منلو بلکه د مقابلې د پاره تیاروو اوداښکاره خبره ده چه الله ﷻ هم پخپلومخالفینوباندې سخت عذاب رالیږی﴿لِّينَةٍ﴾وائی دښوکهجورو باغونو ته، عجوه او برنی چه کوم قسم کهجوری دی د بعضو په قول دا﴿لِّينَةٍ﴾کښې داخل نه دی[1] بعضې وائی چه صرف عجوه نه دی او بعضې وائی چه هر قسم کهجورې په دې کښې داخل دی. یهودیانو چه د پیغور په توګه ونیلې وو د کهجورو ونې پریکوی اود خپل فعل خلاف کولو سره په زمکه کښې فساد ولې خوروی؟ دا د هغې جواب دې دا څه چه کیږی د رب په حکم کیږی اود الله ﷻ په اجازت د الله ﷻ دښمنان ذلیل او خوار اوناکامه کول اود هغوی د ښکته کولو او بدنصیبه کولو د پاره کیږی. کومې ونې چه پریخودې شی هغه په اجازت سره او کومې چه پریکړې شی هغه هم په مصلحت سره.[2]

داهم روایت دې چه بعضومهاجرینوبعضې د دې ونوپریکولونه منع کړې وو چه آخر به هم دامسلمانانو ته د غنیمت د مال په توګه ملاویدونکی دی نو بیا دا ولې پریکړې شی؟ په دې وجه دا آیت نازل شو چه منع کونکی هم په حقه دی او پریکونکی هم په حقه دی. د دوی نیت د مسلمانانو د ګټې دې اود هغوی نیت کافرانوته غصه او غضب کښې راوستلود پاره اوهغوی ته د هغوی د شیطانومزه ورڅکلود پاره دې. اودا نې هم اراده وه چه په دې وجه به هغوی اوسوزی او د غصې نه به بهر راوخی نو بیا به ،، سره یو دوه دوه لاسه جنګ اوکړو چه د دین دا دښمنان خپل انجام ته اورسوو. صحابه کرامو ؓ حو په کولودا کاراوکړو خو بیا اوویریدل چه هسې نه په پریکولویاباقی پریخودلو باندې د الله ﷻ د طرف نه څه نیول اوشی نوهغوی د نبی کریمﷺ نه تپوس اوکړو اوداآیت نازل شو یعنی په دواړو کارونوباندې اجر دې په پریکولوهم او په باقی ساتلو هم. په بعضو روایاتو کښې دی چه پریکړې هم وې او سوزولې هم وې.

**دبنو قریظه دیهودو حالت**:-دبنوقریظه په یهودیانوباندې حضورﷺ هغه وخت کښې احسان اوکړو او هغوی نې هم په مدینه منوره کښې پریخودل. کله چه دوی هم په مقابله کښې راغله نو ماتې نې

---

[1] الطبری:۲۳/۲٦۸.

[2] الطبری:۲۳/۲۲۷۱.

او خوړله دهغوی جنگ کونکی سړی خو قتل کړې شو او ښځې ماشومان او مالونه په مسلمانانو کښې تقسیم کړې شو او څه کوم خلق د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ایمان ئې راوړو نو هغوی بچ شو بیانې د مدینې نه ټول یهودیان اوویستل. بنوقینقاع هم په کوم کښې چه عبدالله بن سلام ﷺ وو او بنو حارثه هم او ټول یهود ئې د وطن نه اوویستل. (۱) دا ټول واقعات د عربو شاعرانو په خپلو شعرونو کښې په ښه شان سره ادا کړی دی کوم چه په سیرت ابن اسحاق ﷺ کښې روایت شوی دی. دا واقعه د ابن اسحاق په قول کښې د اُحد او بیر معونه نه پس ده او د عروه ﷺ په قول د بدر نه شپږمیاشتې پس ده.

وَمَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ

| او هغه چې واپس کړل الله | رسول خپل ته

| او الله ﷻ چې خپل رسول ته څه (د جنګ نه بغیر)

مِنْهُمْ فَمَآ أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ

دهغوی نه | پس نه دی زغلولی تاسو | په هغې باندې | داسونونه | اونه داوښانونه

ددې (یهودو) نه ورکړل | نو په هغې باندې تاسو خپل اسونه یا اوښان زغلولی نه دی

وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُۥ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ

ولیکن الله | غالب راولی | رسولان خپل | په هغه چاباندې چې خوښه ئې شی | او الله

بلکه الله ﷻ په هغه چا خپلو پیغمبرانو ته غلبه ورکوی چه او غواړی | ......... او الله ﷻ

عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ۝ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰ

په هر خیز باندې | قادر دې | هغه مال چې واپس کړو الله | رسول خپل ته | دخلقو دکلونه

په هر خیز پوره قدرت لری | الله چې خپل پیغمبر ته دنورو کلو خلقو نه کوم مال د فئ ورکړې دي

فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ

پس هغه الله لره دې | او رسول لره دې | او رشته دارانو لره دې | او یتیمانو لره دې

نو هغه دالله ﷻ ......... او د رسول ......... او د هغه دخپلوانو ......... او د یتیمانو

وَٱلْمَسَٰكِينِ وَٱبْنِ ٱلسَّبِيلِ كَىْ لَا يَكُونَ دُولَةًۢ

او مسکینانو لره دې | او مسافرانو لره دې | دپاره ددې | چې نه شی | ګرزیدونکې

او د مسکینانو ......... او د مسافرو حق دې | ......... چې دغه مال فئ ستاسو دمالدارو په

بَيْنَ ٱلْأَغْنِيَآءِ مِنكُمْ ۚ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ

په منځ دمالدارو خلقو کښې | ستاسو نه | او هغه چې درکړی تاسو ته | رسول

قبضه کښې رانشی | ......... او رسول چې تاسو ته څه درکوی هغه واخلئ

فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ

نو واخلئ هغه | او هغه چې منع کړی تاسو | دهغې نه | پس منع شئ | او اوویریږئ دالله نه

او چې د څه نه مو منع کوی د هغې نه منع شئ | او د الله ﷻ نه وېریږئ | بیشکه الله ﷻ

(۱) صحیح بخاری کتاب المغازی باب حدیث بنی نضیر:۴۰۲۸، صحیح مسلم:۱۷۶۶.

| | |
|---|---|
| إِنَّ اللَّهَ | شَدِيدُ الْعِقَابِ ۞ |
| بیشکه الله | سخت عذاب ورکونکي دي |
| په سزا ورکولو کښې ډیر سخت دي | |

**قوله تعالی:- وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ مِنْهُمْ**

**د فئ تفصیل:** فئ کوم یومال ته وائي؟د دې صفت څه دې؟ ددې حکم څه دې؟دلته دا ټول بیان کیږي.فئ دکافرانو هغه مال ته وائي چه دهغوی سره بغیرد جنګ جګړې نه دمسلمانانو په قبضه کښې راشي لکه څنګه چه دبنونضیر دامال وود کوم ذکر چه پورته تیرشو.مسلمانانو خپل اسونه یا اوښان نه وو زغلولي یعنی ددغه کافرانوسره مخامخ مقابله یا جنګ نه وو شوې بلکه د هغوی زړونه الله ﷻ د خپل رسول ﷺ د هیبت نه ډك کړل او هغوی خپلې قلعه ګانې خالي کړې چه په قبضه کښې راغلې. دې ته فئ وائي. دا مال دحضور ﷺ شو چه هغوی څنګه غواړي خرچ کولې شي. نو حضور ﷺ د نیکئی او صلاح په کارونو کښې دا خرچ کړو د کوم بیان چه د دې نه پس په دویم آیت کښې دې. نو فرمائي چه د بنونضیر کوم مال د فئ په توګه الله ﷻ د خپل رسول ﷺ په قبضه کښې ورکړوپه کوم چه مسلمانانو خپل اسونه او اوښان نه وو زغلولي بلکه الله ﷻ په خپل فضل سره رسول الله ﷺ له په دې باندې غلبه ورکړې وه او الله ﷻ ته دا څه ګران دی؟د هغه خو په هرڅیز باندې قدرت دې، نه په هغه باندې د چا غلبه ده او نه هغه څوك منع کونکې شته بلکه په ټولو باندې هم هغه غالب اوټول دهغه د فرمان تابع.

**د فئ د مال حکم:**-بیانئ اوفرمائیل چه کوم ښارونه داسې فتح شی د هغې د مال به هم داحکم وی چه رسول الله ﷺ به هغه په خپله قبضه کښې اخلی بیا به ئی هغوی ته ورکوی د کوم بیان چه په دې آیت کښې دې اود دې نه پس راتلونکې آیت کښې دې.دا دې د فئ د مال مصرف اود دې د خرچ کولو حکم. په حدیث شریف کښې دی چه د بنونضیر مال د فئ په توګه خاص د رسول الله ﷺ شوې وو. حضور ﷺ به د دې نه د خپل کور د کال خرچ ورکولو اوکوم به چه بچ شو هغې باندې به ئی د جنګ وسله او سامان کښې خرچ کولو. [1]

**د میراث باره کښې د عمر فاروق ﷺ فیصله:**-په ابوداؤد کښې د حضرت مالك بن اوس ﷺ نه روایت دې چه امیرالمؤمنین حضرت عمر بن خطاب ﷺ زه په رڼاورځ راوغوښتم. کورته ورغلم اومې کتل چه هغوی په یو چوکې په کوم چه څه کپړه وغیره نه وه ناست وو. زما په لیدوباندې اوفرمائیل چه ستا د قوم یو څوکسان راغلې دی ما هغوی ته څه ورکړی ته هغه واخله او په دوی کښې تقسیم کړه. ماووئیل چه ښه به وه که دا کارد بل چا ته حواله کړې وو، هغوی اوفرمائیل چه نه هم ته ئی اوکړه. ماوئیل چه ډیره ښه ده. په دې کښې دهغوی داروغه یرفا راغلوونې ونیل اې امیرالمؤمنین! حضرت عثمان بن عفان ﷺ، حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ، حضرت زبیر بن العوام ﷺ او حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ تشریف راوړې دی هغوی ته اجازت دې؟ حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه اُو رادې شي نو دې حضراتو تشریف راوړو.یرفابیاراغلو چه امیرالمؤمنین حضرت عباس ﷺ اوحضرت علی ﷺ تشریف راوړو هغوی اوفرمائیل اجازت دی.دې دواړوحضراتو هم تشریف راوړو. حضرت عباس ﷺ اوفرمائیل امیرالمؤمنین زما اود ده فیصله اوکړه یعنی د حضرت علی ﷺ. د اول نه چه کوم څلور بزرګان راغلې وو هغوی هم اوفرمائیل چه اواې امیرالمؤمنین د دې دواړو په مینځ کښې فیصله اوکړئی او دوی ته خوشحالی اورسوئی. حضرت مالك ﷺ فرمائي چه دې وخت زما په زړه کښې داخیال راغلوچه داڅلور واړه بزرګان

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب المجن ومن یترس صاحبه: ۲۹۰٤، صحیح مسلم: ۱۷۵۷، ابوداؤد:۲۹٦۵، ترمذی:۱۷۱۹، احمد :۲۵/۱. (سنن ومسند وغیره)

هم دې دواړو حضراتو د خپل خان نه اول راالیرلې وو. حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل اودریږئ. بیا دې څلورو واړو ته متوجه شو او وئې فرمائیل ستاسو دې په هغه الله باندې قسم وی د چا په حکم چه آسمانونه او زمکې قائم دی آیا تاسو ته معلومه ده چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی زمونږ ورثه به نه شی تقسیم کولې کوم څه چه مونږ پریږدو هغه صدقه ده. دې څلورو واړو د دې اقرار اوکړو. بیا هغوی اوفرمائیل چه الله ﷻ د خپل رسول ﷺ د پاره یوه خاصه کړې وه چه د بل چا د پاره نه وه. بیا هغوی هم دا آیت ﴿مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ﴾ اولوستلو او بیا ئې اوفرمائیل چه د بنونضیرمال الله ﷻ د فئ په توګه خپل رسول ﷺ له ورکړې وو. د الله ﷻ قسم نه ما په تاسو باندې چاته ترجیح ورکړې اونه مې پخپله دا ټول په ټول اخستې.رسول الله ﷺ به د دې نه د خپل خان او اهل د پاره د ټول کال خرچ د دې نه اخستلواوباقی ئې د بیت المال د مال په شان کړې وو.بیا ئې دې څلورو واړو بزرګانوته داسې قسم ورکړو چه آیا تاسو ته دا معلومه ده؟ هغوی وئیل چه او.بیا ئې دې دواړو ته قسم ورکړو او تپوس ئې اوکړو نو هغوی هم اقرار اوکړو. بیا ئې اوفرمائیل د حضورﷺ د وفات نه پس حضرت ابوبکر ﷺ خلیفه جوړ شو اوتاسو دواړه د رسول الله ﷺ خلیفه له راغلئ. اې عباس! تاخوبه خپله خپلولی ښکاره کوله اود خپل د تره د خوی د مال نه به دې خپله ورثه غوښتله اودې یعنی حضرت علیﷺخپل حق خودلوسره به د خپلې بی بی حضرت فاطمه ﷺ د طرف نه د هغې د پلار د مال نه ورثه غوښتله د کوم په جواب کښې چه حضرت ابوبکرﷺ فرمائیلی ووچه د رسول اللهﷺ فرمان دې چه زمونږ پاتې مال به نه تقسیمیږی مونږ چه څه پریږدوهغه صدقه ده.الله ﷻ ښه پوهیږی چه حضرت ابوبکرﷺیقیناً راست ګو نیکوکارد رشداو هدایت خاوند اود حق تابع وو.ددې مال ولایت حضرت ابوبکرﷺاوکړو.دهغوی دوفات نه پس ستاسواود رسول اللهﷺ خلیفه زه جوړشوم اوهغه مال زما په ولایت کښې راغلوبیا تاسو دواړو په یوه صلاح باندې ماله راغلئ اوزمانه خو هغه اوغوښتو د کوم په جواب کښې چه ما اووئیل که تاسو په دې شرط باندې دا مال په خپله قبضه کښې اخلئ چه څنګه به دا مال رسول اللهﷺ خرچ کولوتاسو به ئې هم داسې خرچ کوئ نو زه ئې تاسو ته درکوم. تاسو داخبره قبوله کړه او الله ﷻ په مینځ کښې کولو سره تاسو د دې مال ولایت کوئ او بیا چه دا تاسو اوس راغلې یئ آیا د دې نه بله فیصله غواړئ؟ د الله ﷻ قسم چه د قیامته پورې به د دې نه بله هیڅ فیصله اونه کړې شم اودا کیدې شی که تاسو د خپلې وعدې مطابق د دې مال ساتنه او خرچ نه شئ کولې نو تاسو دا بیا واپس کړئ(چه زه ئې پخپله دغه شان خرچ کړم څنګه چه به رسول الله ﷺ خرچ کولو او څنګه چه خلافت صدیقی کښې او ترننه پورې کیدل.([1])

مسنداحمدکښې دی چه خلقو به رسول الله ﷺ له خپلې د کهجورو ونې وغیره ورکولې تردې چه د بنو نضیر او بنوقریظه مالونه د حضورﷺ په قبضه کښې راغله نو حضورﷺ هغه خلقو ته خپل مالونه واپس کول شروع کړه. حضرت انس ﷺ هم د هغه د کور خلقو د حضورﷺ په خدمت کښې لیږلې وو چه زمونږ ورکړې هم که ټول وی یا چه څومره غواړی واپس کړی. حضرت انس ﷺ نبی کریم ﷺ ته وریادکړه نو هغویﷺ هغه ټول هرڅه دوی ته واپس کړه خو هغویﷺ دا ټول حضرت ام ایمن ﷺ ته د خپل طرف نه ورکړې وو. هغې ته چه کله معلومه شوه چه داهرڅه زما د قبضې نه اوخی نو هغه راغله او زما په مرئی کښې کپړا واچوله او ماته ئې اوفرمائیل د الله ﷻ قسم چه د هغه نه بغیر بل معبود نشته حضرت به تاسو ته دا هرڅه درنه کړی هغوی ﷺ خو ماته داهرڅه راکړی دی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ام ایمن! ته مه ویریږه تاته به زه د دې په بدله کښې دومره دومره درکړم خو هغې اونه منل اوهم دا ئې وئیل. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ښه ده نور به دومره دومره درکړو خو هغه بیا هم خوشحاله نه شوه اوهم دغه ئې وئیل.

[1] صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب فرض الخمس:۴۰۹۴، صحیح مسلم:۱۷۵۷، ابوداؤد:۲۹۶۳، ترمذی:۱۶۱۰، ابن حبان:۶۱۰۸.

حضورﷺ اوفرمائیل چه بنه نور به هم دومره دومره درکړو اوترديږ چه څومره نی هغې ته ورکړې وو د هغې په لسمه حصه زيات دورکولو وعده نی اوکړه نو بيا هغه راضي او خاموش شوه اوزمونږ مال مونږ ته ملاو شو[1]) داد فيء مال چه په کومو پنځو ځايونوکښې به خرچ کيږي هم دغه ځايونه د غنيمت د مال د خرچ کولو هم دی. په سورة انفال کښې د دې پوره تشريح وضاحت سره پوره تفسير الحمدالله تيرشوې دې په دې وجه ئې مونږ دلته نه بيانوو.

بيا فرمائي چه د مال فيء دا مصارف مونږ په دې وجه په وضاحت سره دلته بيان کړه چه دا د مالدارانو په لاس کښې ورشي او چرته د هغوی خوراك جوړنه شي اودخپلې خوښې مطابق هغوی دا والوزوی اود مسکينانو په لاس اونه لګی. بيا فرمائي چه د کوم کار د کولو د پاره زما پيغمبر تاسو ته وائي هغه کوئې اودکوم کار نه چه تاسو منع کوی د هغې نه منع شئې.يقين کوئې چه د کوم کارهغوی حکم کوی هغه دښيګړې کارونه دی اود کوم نه چه مو منع کوی هغه د بدئې کارونه دی. ابن ابی حاتم کښې دی چه يوه ښځه حضرت عبدالله بن مسعودﷺ له راغله او وئې وئيل تاسو د خالونو کولو يعنی په څرمن يا لاسونو باندې ښځې په ستن وغيره سره خالونه کوی د دې نه اويه وېښتوکښې نور وېښته يوځاى کولو سره د وېښتو د اوږدولو د پاره کوی دې نه ئې منع فرمائيلې نو آيا دا ممانعت په کتاب الله کښې دی يا په حديث رسول الله ﷺ کښې دی؟ هغوی اوفرمائيل چه په کتاب الله کښې هم دی او حديث رسول الله ﷺ کښې هم دواړو کښې دا ممانعت وينم. هغه ښځې وئيل د الله ﷻ قسم د دواړو لوحونو په مينځ کښې چه څومره په قرآن کښې دی ما ټول ښه لوستلي اوښه خيال مې کړې دې خو ما د دې ممانعت چرته نه دې ليدلې.هغوی اوفرمائيل چه تا دا آيت ﴿وَمَآ اٰتٰكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ﴾ الخ لوستلې؟ هغې وئيل چه او داخومې لوستلې وئې فرمائيل (د قرآن نه ثابت شو چه د رسول اللهﷺ حکم اود رسول الله ﷺ ممانعت باندې عمل کول دی اوس واوره) پخپله ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی چه حضورﷺ د خالونو کولو وېښتوکښې نوروېښته ملاوول د تندی او مخ وېښته وېستلو نه منع فرمائيلې(داهم ښځې د خپل ښائست د پاره کوی اويه دې زمانه کښې خونی سړی هم په کثرت سره کوی) دې ښځې اووئيل حضرت دا خو ستاسو کوروالا هم کوی. هغوی اوفرمائيل چه لاړه شه اوګوره هغه لاړه وئې کتل او راغله وئې وئيل حضرت معاف کړه غلطی اوشوه په دې خبروکښې يوه هم ما ستاسو په کوروالا کښې اونه کتله. هغوی اوفرمائيل چه تانه هيرشوچه دالله ﷻ نيکان (حضرت شعيبﷺ) فرمائيلې وو﴿ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ﴾يعنی زه دا نه غواړم چه د کوم څيز نه تاسو منع کوم پخپله د هغې خلاف اوکړم. ([2])

**د خالونو لګولو مذمت**. بخاری او مسلم شريف کښې دی چه حضرت ابن مسعودﷺ اوفرمائيل الله ﷻ لعنت کوی په هغه ښځه چه خالونه پخپله لګوی اونوروله ئې لګوی څوك چه د تندی نه وېښته واخلی او د خپل ښائست دپاره خپل مخامخ غاښونه کولاووی اود الله ﷻ جوړشوې پيدائښ بدلول غواړی. دې اوريدو سره د بنواسد يوه ښځه چه د هغې نوم ام يعقوب ووهغوی له راغله اوتپوس ئې اوکړو چه آيا تاسو داسې فرمائيلی دی؟هغوی اوفرمائيل چه او زه به ولې په هغوی لعنت نه کوم په چاچه د الله ﷻ رسولﷺ لعنت فرمائيلې دې او چه په قرآن پاك کښې موجوددی. هغې وئيل ما چه څومره هم قرآن پاك دې اول نه ترآخره پورې لوستلي دې خوما داحکم چرته نه دې ليدلې. هغوی اوفرمائيل چه که تا به سوچ اوفکرسره لوستلې وې نوخامخا به دې ليدلې وو.آيا تاداآيت ﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ﴾الخ نه دې لوستلې؟ هغې وئيل چه اودا خو مې لوستلې دې. بيا هغوی هغه حديث شريف واورولو. هغې د دوی د کور والا

---

[1]) صحيح بخاری کتاب المغازی باب مرجع النبیﷺ من الاحزاب: ٤١٢٠، صحيح مسلم :١٧٧١، احمد: ٣١٩/٣، مسندابی يعلی ٤٠٧٩، ابن حبان: ٤٥٠٥.

[2]) احمد: ٤٣٣/١ ،مسند احمد

باره کښې اوونیل چه لاړه نو بیا نی معذرت اوکړو. هغه وخت کښې هغوی اوونیل چه که زما کور والا داسې کول نو ما به هغې سره ملاویدل پریخودې وو(۱)په مسلم او بخاری شریف کښې د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی کله چه زه تاسو ته څه حکم درکړم نو ترکومې چه تاسو نه کیدې شی هغه پوره کونې اوکله چه زه تاسو د څه څیز نه منع کړم نود هغې نه منع شئی. (۲) په نسائی کښې د حضرت عمر او حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د کدو په ډډ کښې او په شنوښاخونو په کنده کړې شوې لوښو کښې او د رال په رنګ کړې شوې رکیبو کښې نبیذ جوړولو یعنی دکهجورو او اوڅکو وغیره لمدولونه منع فرمائیلې ده بیاددې آیت تلاوت اوکړو (۳) (یادساتئی اوس داحکم باقی نه دې. مترجم) بیافرمائی چه د عذابونونه د بچ کیدلود پاره د هغه احکام په ځائ راوړئی اودهغه دممنوعاتونه بچ اوسیږئی.یادساتئی دهغه نافرمانی مخالفت کونکو انکارکونکواودهغه دمنع کړې شوې کارونوکونکوته به سخته سزاورکوی اوپه غمونوکښې به راګیروی

| |
|---|
| لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ |
| دا مال) دپاره دفقیرانو \| هجرت کونکو دي |
| \|..........د هغې حاجتمندو مهاجرینو |
| الَّذِيْنَ أُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ |
| دغه مهاجرین \|چې ایستلې شوی دی \| دکورونو خپلو نه \|او دمالونو خپلو نه \|چې طلب کوی هغوئ |
| (دنورو نه زیات) حق دې \| چې دخپلو کورونو اود مالو نو نه ویستلې شوی دی |
| فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ط |
| فضل \| دالله نه \| او رضا (دهغه) \| او امداد کوی هغوئ دالله سره \| او درسول دهغه سره \| |
| دالله ﷻ فضل او دهغه رضا لټوی \| .اودالله ﷻ (ددین) اودهغهٔ د رسول ﷺ مدد کوی |
| أُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۚ⑧ وَالَّذِيْنَ تَبَوَّءُو |
| دا کسان چې دی \| هم دوئ ربښتینی دی \| او (دغه مال) هغه کسانو لره دې \| چې اوسیدل هغوئ |
| دمدغه کسان ربښتونی (مسلمانان) دی \| او (دامال) دهغه خلقو (حق دې) چې (دهجرت) په کور (مدینه) |
| الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ |
| په دارهجرت (مدینه) کښې \|اوایمان ئې راوړې وو \|مخکښې دراتلو دمهاجرینونه \|هغوئ محبت کوی |
| کښې دراندې نه دیره (انصار) دی اوپه ایمان کښې (ثابت قدم) دی \| اودهغې خلقو سره مینه ساتی |
| مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً |
| دهغه چاسره \| چې هجرت ئې اوکړو هغوئ ته \| او نهٔ مومی هغوئ \| په زړونو خپلو کښې \| څه حاجت |
| چې د هغوئ ښار ته ئې هجرت کړې دې او پخپلو زړونو کښې هیڅ تنګی نه ساتی \| په هغه |

(۱) احمد: ۱/٤۳۳، صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الحشر باب (وماآتاکم الرسول فخذوه):٤٨٨٦، صحیح مسلم:۲۱۲۵، ابوداؤد ٤۱۶۹: ، ترمذی: ۲۷۸۲، ابن ماجه:۱۹۸۹.
(۲) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ:۷۲۸۸، صحیح مسلم: ۱۳۳۱.
(۳) نسائی کتاب الاشربة باب ذکر الدلالة علی النهی للموصوف من الاوعیة....:٥٦٤٦وهوصحیح .

| | | |
|---|---|---|
| مِّمَّآ اُوۡتُوۡا | وَيُؤۡثِرُوۡنَ | عَلٰٓى اَنۡفُسِهِمۡ |

چې ورکړې کیږي مهاجرولہ | او ترجیح ورکوي هغوئ | په ځانونو خپلو باندې (نورولہ) |

ځیز کښې چې دوی ته ورته ورکړې شی |او نور (د حاجت په پوره کولو کښې) د خپلو ځانونو نه وړاندې کوی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَوۡ كَانَ | بِهِمۡ | خَصَاصَةٌ | وَمَنۡ | يُّوۡقَ شُحَّ | نَفۡسِهٖ |

او اګر که وی | په هغوئ باندې | محتاجي | او هغه څوك | چې وساتلې شو | دبخل دزړه خپل نه |

اګر که پخپله اوږي وی | او څوک چې دخپل نفس دشومتیا نه اوساتلې شو |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ۝ | وَالَّذِيۡنَ | جَآءُوۡ |

نو هم دغه کسان | خلاصي موندونکی دی | او دغه مال هغه کسانو لره دې | چې راغلل هغوئ |

نوهم دغه خلق کامیاب دی | ..................اود هغه چا (په کښې حق دې) چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ | يَقُوۡلُوۡنَ | رَبَّنَا | اغۡفِرۡ لَنَا |

روستو ددوئ (مهاجرو او انصارو) نه | وائي هغوئ | اے ربه زمونږه | معافي اوکړه مونږ ته |

د دوئ نه پس راشی | اودا دعا کوی چې ائې زمونږ ربه | ............مونږ ته ببنښه اوکړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلِاِخۡوَانِنَا | الَّذِيۡنَ | سَبَقُوۡنَا | بِالۡاِيۡمَانِ | وَلَا تَجۡعَلۡ |

او رونړو زمونږ ته | هغه رونړه | چې وړاندې شوی دی زمونږ نه | په ایمان سره | او مهٔ پیدا کوه |

اوزمونږ هغه رونړه هم اوبښه چې زمونږ نه وړاندې مسلمانان شوی دی | او زمونږ په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِىۡ قُلُوۡبِنَا | غِلًّا | لِّلَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا | رَبَّنَآ | اِنَّكَ |

په زړونو زمونږ کښې | کینه | هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې دې | اے ربه زمونږه | بیشکه ته

زړونو کښې د هغه رونړو دپاره هیڅ کینه مه پیدا کوه چې ایمان ئې راوړې دې| ائې زمونږه ربه بیشکه ته

| | |
|---|---|
| رَءُوۡفٌ | رَّحِيۡمٌ ۝ |

مهربانه ئې | رحم کونکې ئې |

مهربان رحم کونکې یئ |

**قوله تعالى:- لِلۡفُقَرَآءِ الۡمُهٰجِرِيۡنَ الَّذِيۡنَ اُخۡرِجُوۡا مِنۡ دِيَارِهِمۡ**

**دمهاجرينواو انصاروفضائل:-** پورته بیان شوې ووچه دفئ مال یعنی کوم چه دکافرانونه دمسلمانانوپه قبضه کښې په میدان جنګ کښې دجنګ نه بغیرراغلې وی دهغې مالك رسول الله ﷺ دې.بیابه هغوی ﷺ دامال چاته ورکوی؟ددې بیان هم پورته شوې وو.اوس هم په دې آیاتونوکښې ددغه مستحقینود نور بیان کولې شی چه د دې حقدار هغه غریب مهاجردی چاچه د الله ﷻ د رضامندئی د پاره خپل قوم ناراضه کړوتردې چه هغوی خپل خوروطن اوپه ډیروسختوسره جمع کړې شوې مال وغیره تول پریخودلو سره لاړل.دالله ﷻ په دین اودرسول الله ﷺ په امدادکښې مشغول دی.دالله ﷻ د فضل او خوشحالئ لټونکی دی. هم دغه رښتونی خلق دی کومو چه خپل فعل د قول مطابق کولوسره اوخودلو

دا صفتونه خو په مهاجرینو کښې وو. بیا د انصارو صفت کیږی اود هغوی فضیلت شرافت عزت او بزرګنی اظهار کولې شی.د هغوی دارت زړه،خود خپلو ځانونو قربانئی او سخاوت ذکر کیږی چه هغوی د مهاجرینوسره د اول نه د مدینې په هجرت کښې خپل تعلق او ساتلو اوپه ایمان ئې یقین اوساتلو دمهاجرینود رسیدونه وړاندې دوی ایمان راوړې وو بلکه د ډیرو مهاجرینونه هم وړاندې دوی ایمانداران جوړشوې وو.

**دمهاجرینو او انصارو په حقله د عمرفاروق ؓ فیصله:**-په صحیح بخاری کښې دآیت په تفسیرکښې دا روایت دې چه حضرت عمر ؓ اوفرمائیل زه دخپل ځان نه پس خلیفه ته داوصیت کوم چه مهاجرین د اولین حقداردی ددوی په خاطر مدارات کښې کمې مه کوئې اوزماوصیت دې چه انصاروسره هم نیکی او ښیګړه کوئې چا چه په مدینه کښې ځائ جوړکړو اوپه ایمان کښې ئې ځائ حاصل کړو د هغوی د خو خلقو ښیګړې قبول کړئی اود هغوی خطاګانې معاف کړئی او سترګې پرې پټې کړئی[1]د هغوی د طبیعت شرافت په خیال کښې اوساتئی چه څوك هم د الله ﷻ په لارکښې هجرت کوی راځی هغوی ورله په خپل زړه کښې کور ورکوی اوخپل ځان او مال په هغوی قربانی کول خپل فخر ګڼړی.مسنداحمد کښې دی چه یوځل مهاجرینو اووئیل یارسول الله ﷺ! مونږ خو په دنیاکښې ددې انصارو په شان خلق نه دی لیدلی دلږو نه لږو او د ډیرو نه ډیره برابره حصه مونږ ته راکوی.دموږو نه زمونږه ټوله خرچه اوچتوی بلکه نازونه مو اوړی او کله ئې هم په تندی کښې کونجی نه وی او خدمت کوی خوشحالیږی. ورکړه کوی او احسان نه کوی،کار روزګارپخپله کوی !و ګټه مونږ ته راکوی مونږ خو ویریږو چه چرته زمونږ داعمالوټول اجردوی ته ملاو نه شی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه نه ترکومې چه تاسود دوی یاداش او تعریف کوئې اوددوی دپاره دعاګانې غواړئی[2]صحیح بخاری کښې دی چه حضور ﷺ انصار راوغوښتل او ورته فرمائیل چه زه د بحرین علاقه ستاسو په نوم لیکم. هغوی اووئیل یارسول الله ﷺ ترکومې چه تاسو زمونږ مهاجرو رونړوته هم دومره ورنه کړئی مونږ دا نه اخلو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ښه دد نه اخلئی نو ګورئی چه بیا هم صبرکوئې زما نه پس به هم داسې وخت راځی چه نوروته به ورکړې کیدې شی اوتاسو به پریخودې شئی[3]هم د صحیح بخاری یوبل حدیث شریف دې چه انصارو اووئیل چه یارسول الله ﷺ! زمونږ دکهجوروباغونه په مونږ کښې اوزمونږ په رونړو کښې تقسیم کړه.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه. بیانی اوفرمائیل چه کار روزګار هم تاسوکوئی اوپه پیداوارکښې مونږ شریك ساتئی. انصارو جواب ورکړو یارسول الله ﷺ! مونږ ته دا هم په خوشحالئی سره منظور دے.[4]

**دیو انصاری حبشی قصه:**بیا فرمائی چه دوی پخپل زړه کښې هیڅ حسد د دې مهاجرینو په قدراوعزت کښې ذکراو مرتبت کښې نه کوی،دوی ته چه څه ملاوشی هغوی پرې نه پسخیږی.هم په دې مطلب باندې ددې حدیث دلالت هم دې کوم چه په مسنداحمد کښې دحضرت انس ؓ نه روایت دې چه مونږ خلق رسول الله ﷺ سره ناست وو چه حضور ﷺ اوفرمائیل ګورئی اوس یو جنتی سړې راتلونکې دې. لږ اوبه څڅیدې. بله ورځ هم مونږ داسې ناست وورسول الله ﷺ داسې اوفرمائیل او هم هغه سړې دغه شان راغلواو په دریمه ورځ هم داسې اوشو. حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ؓ نن کتل او چه کله د نبی ﷺ مجلس ختم شو نو دې هم هغه انصاری بزرګ پسې شاته پاسیدو او هغه ته ئې اووئیل چه

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الحشر باب (والذین تبوؤا الدار والایمان):٤٩٩٩.

[2]) احمد:٣/٢٠٠-٢٠١، والترمذی: ٢٤٨٧ وهو صحیح.

[3]) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب قول النبی ﷺ ((للانصار اصبروا حتی تلقونی علی الحوض)): ٣٧٩٤.

[4]) صحیح بخاری کتاب الحرث والمزارعة باب اذا قال اکفنی مؤنة النخل وغیره: ٢٣٢٥.

حضرت زما او زما د پلار په مینځ کښې څه تکرار شوې په کومې چه ما قسم خوړلې چه درې ورځو پورې به خپل کور ته نه ځم نو که تاسو مهربانی اوکړنی او ماته اجازت راکړنی چه دا درې ورځې تاسوسره تیرې کړم. هغه وئیل ډیره ښه ده. نو حضرت عبدالله ﷺ دا درې ورځې د هغه په کور کښې هغه سره تیرې کړې. وئی کتل چه هغه د شپې د تهجدو اوږد مونځ هم نه کوی صرف دومره کوی چه کله ئی سترګې کولاوشی نو هم په خپله بستره په ملاسته د الله ﷻ ذکر او لوئی بیانوی تردې چه د سحر د مانځه د پاره پاسی. اودا ضروری خبره وه چه ما د هغه د خُلې نه دخیردخبرې نه بل څه نه دی اوریدلی. کله چه درې شپې تیرې شوې نو ماته د هغه عمل ډیرکم معلوم شو. اوس ما هغه ته اووئیل چه حضرت نه خو زمااود پلارپه مینځ کښې داسې خبرې شوې اونه ما د خفګان په وجه خپل کور پریخودې وبلکه داسې واقعه شوې وه چه نبی کریم ﷺ درې ځل دا فرمائیلې وو چه اوس به یو جنتی سړې راشی نودریواړه ځل هم تاسو راغلئی. ما اراده اوکړه چه یوڅو ورځې ستاسوېه خدمت کښې پاتې شم او اوګورم چه تاسو داسې کوم عبادتونه کوئې چه د رسول الله ﷺ مبارکې خُلې نه په ژوند باندې ستاسو د جنتی کیدو یقینی خبر مونږ ته راورسیدو. ما دا بهانه اوکړه او درې ورځې ستاسو په خدمت کښې پاتې شوم چه ستاسو عملونه اوګورم او زه هم ستاسو په شان عمل شروع کړم. ولې ما خو ته په څه نوی او اهم عمل کولو سره اونه کتلې او نه په عبادتونوکښې د نورو نه زیات وړاندې اوکتلې. اوس ځم خو زبانی یوسوال دې چه تاسو ئی اوښائې چه هغه کوم یوعمل دې په کوم سره چه ته د پیغمبرﷺ په خُله مبارکه باندې جنتی جوړکړې؟ هغه وئیل چه تا زما اعمال اوکتل بس بل هیڅ څه خاص پټ عمل نشته.ده نه رخصت شو لږ شان لرې تلې وم چه هغه ماته آواز اوکړو چه زمایوعمل واوره او هغه دا چه زما په زړه کښې کله هم یو مسلمان سره دهوکه بازی، حسد او بغض اراده نشته او زه چرې هم د یومسلمان بدخوا نه یم جوړشوې. خضرت عبدالله ﷺ اوفرمائیل چه دې اوریدو سره بس اوس ماته معلومه شوه هم دې عمل ته دې درجې ته رسولې یئی او هم دغه هغه څیز دې چه د هرچا د وس کار نه دې[1] امام نسائی په خپل کتاب عمل الیوم اللیله کښې داحدیث شریف راوړې دې. غرض دا چه په دې انصاروکښې دا صفت وو چه دې مهاجرینوته څه مال دولت ورکړې شی او دوی ته ورنه کړې شی نو بد نه ګنړی.کله چه د بنونضیرمالونه هم په مهاجرینوکښې تقسیم شو نو یوانصاری په دې کښې خبره اونه کړه په کومه چه داآیت ﴿ وَمَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ ﴾ نازل شو.

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو مهاجرینو رونړو هم مال اولاد پریخې ستاسو طرف ته راغلی دی نو انصارو اووئیل چه بیاخو حضورﷺ زمونږ مالونه په دوی او مونږ کښې برابر تقسیم کړه. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې نه هم زیاته قربانی کولې شئی؟هغوی وئیل چه کوم دحضورﷺ حکم وی.وئی فرمائیل چه مهاجرډیتو او باغونو په کار نه پوهیږی تاسو پخپله خپل مال په قبضه اوساتنی،پخپله کارکونی،پخپله په باغونوکښې محنت کونی او دوی خان سره په پیداوار کښې شریك کړنی.انصارو دا هم په کولاونندی سره منظورکړه.[2]

**قوله تعالی:- وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ**

**دانصارو بل غټ صفت**.-بیا فرمائی چه سره د خپل حاجت کیدو به ئی د خپلو نورو رونړو حاجت وړاندې کولو،خپل ضرورت به ئی پاتې شو خوچه دبل مسلمان ضرورت زر پوره شی داهروخت دهغوی غوښتنه

---

[1] احمد:۱۶۶/۳ وسنده صحیح واخطا بعض الناس لضعفه، السنن الکبری:۱۰۶۹۹، مصنف عبدالرزاق: ۲۰۵۵۹، شعب الایمان: ۲۶۰۵،مسندالبزار:۱۹۸۱.

[2] الطبری:۲۸۳/۲۳.

وه. په یوصحیح حدیث کښې دي چه چاسره کمې وی او خپل ضرورت نې وی او بیا هم صدقه کوی نود
هغه صدقه افضل او بهتر ده([1])دا درجه دهغه خلقو د درجې نه هم زیاته ده د کومو ذکر چه بل ځائ
کښې دې چه دمال د غوښتنې سره داد الله ﷻ په لارکښې خرچ کوی.خودا خلق سره د خپل ضرورته
خرچ کوی. محبت نې وی حاجت نه وی د هغه وخت خرچ کول دې درجې ته نه شی رسیدې چه پخپله نې
ضرورت وی او بیاهم د الله ﷻ په لارکښې خرچ کوی. د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ صدقه هم د دې قسم
نه وه چه خپل ټول مال نې راوړو او د رسول اللهﷺ مخې ته نې کیخودو. هغویﷺ تپوس هم اوکړو چه
ابوبکراکورکښې دې هم څه باقی پریخی؟جواب نې ورکړوچه دالله ﷻ اودهغه د رسول ﷺ نوم مې
پریخې راغلې یم([2])دغه شان هغه واقعه ده چه په جنګ یرموك کښې حضرت عکرمه ﷺ اودهغه ملګړو
ته پیښه شوې وه چه په میدان جنګ کښې زخمی پراته وو ښکه او خاوره نې په زخمونوپرته وه، فریاد
کوی تړقیږی، سخته ګرمئی کښې پراته دی د تندې د لاسه نې مرې اوچې دی. په دې کښې یومسلمان
مشك په اوږه زوړندکړې راځی اودې زخمی مجاهدینوته نې وړاندې کوی خو یووائی دې بل ته نې اول
ورکړه اوبل وائی چه دې بل ته نې ورکړه اودویم وائی چه دې دریم ته نې ورکړه. هغه لا دریم ته رسیدلې
هم نه وی چه یوشهیدشو. بل ته ګوری چه هغه هم تکې لاړو او چه دریم له راځی نو هغه هم اوچې
شوندې الله ﷻ سره ملاویږی ([3]) الله ﷻ دې د دې بزرګانو نه خوشحاله شی او دوی دې هم د خان نه
خوشحاله اوساتی. په صحیح بخاری کښې دی چه یوسړې رسول الله ﷺ له راغلو او عرض نې اوکړو زه
ډیرحاجت مندیم په ماځه اوخوروه.نبی کریم ﷺ خپلو کورونوته جواب اولیږلو خو د ټولونه جواب راغلو
چه یارسول اللهﷺ مونږ کره هیڅ هم نشته. دې معلومولونه پس حضورﷺ نورو خلقو ته اوونیل چه څوك
شته چه نن شپه دوی میلمانه جوړ کړی؟ یوانصاری پاسیدو او وئی حضورﷺ زه به دا میلمه اوساتم.
دې نې کورته بوتلو او بی بی ته نې اوونیل چه ګوره د رسول اللهﷺ میلمه دې که نن مونږ ته د خوراك د
پاره هیڅ هم ملاو نه شی خوچه دې اوګې پاتې نه شی. بی بی وئیل چه نن خو په کورکښې هم برکت
دې.اود ماشومانود پاره مې یو څو ټکړې ساتلی دی.انصاری وئیل چه ښه ده ماشومان په څه اوغوله وه
اوده نې کړه اوما اوتابه دواړه په خیټه کېرا اوترلو او ورېې به شپه تیره کړو.دخوراك په وخت کښې ډیوه
مړه کړه چه میلمه دا اوګڼړی چه مونږ خوراك کووخو په حقیقت کښې به مونږ خوراك نه کوو نو هم دغه
شان نې اوکړه.کله چه داسړې انصاری رسول اللهﷺ له راغلوچه ددې سړی اود ده دکوروالا دشپې دعمل
نه الله ﷻ خوشحاله شو او مسکې شو. هم د دوی باره کښې آیت ﴿وَيُؤْثِرُونَ﴾ الخ نازل شو.
په صحیح مسلم کښې د دې انصاری نوم هم دې یعنی حضرت ابوطلحهﷺ([4])بیا فرمائی چه څوك د
خپل نفس د بخیلتوب، حرص اولالچ نه بچ شوده خلاصې بیاموندلو. مسنداحمداو مسلم شریف کښې
دی رسول اللهﷺ فرمائی خلقو د ظلم نه بچ شئی د قیامت په ورځ به دا ظلم تیارې جوړې شی.خلقو د
بخل اوحرص نه بچ شئی هم دا هغه څیز دې چه کوم تاسو نه وړاندې خلق بربادکړی دی،هم ددې په
وجه هغوی وینې تویولې او حرام نې حلال جوړکړی وو. ([5]) په یوبل سندسره دا هم روایت دې چه د
فحش نه بچ شئی الله ﷻ خرابې خبرې او د بې حیائئی کارونه نه خوښوی. د حرص او بخیلې په

---

[1]) ابوداؤد کتاب الوتر باب طول القیام:۱۴۴۹ وسنده حسن، نسائی ۲۵۲۷، احمد:۲/۳۸۵، صحیح ابن خزیمه :۲۴۴۴، ابن حبان:۳۳۴۶، حاکم:۱/۴۱۴.

[2]) ابوداؤد کتاب الزکاة باب الرخصة فی ذلك: ۱۶۷۸، وسنده حسن، ترمذی: ۳۶۷۵، حاکم:۱/۴۱۴.

[3]) حاکم:۳/۲۴۲.

[4]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الحشر باب قوله ﴿ویؤثرون علی انفسهم﴾ :۴۸۸۹، صحیح مسلم ۲۰۵۴،

[5]) صحیح مسلم کتاب البروالصلة باب تحریم الظلم: ۲۵۷۸، احمد:۳/۳۲۳.

خرابوالی کښې دالفاظ هم دی چه هم د دې په وجه وړاندینوظلم، فسق او فجور کړې او تعلقات نې پریخی دی[1] په ابوداوٗد وغیره کښې دی چه د الله ﷻ د لارې دوړه اود دوزخ لوګې د یوبنده په خیټه کښې نه شی جمع کیدې. دغه شان بخیلتوب او ایمان هم په یوسړی کښې نه شی جمع کیدې[2] یعنی دالله ﷻ دلارې دوړه چه په چاپریوتله هغه د دوزخ نه آزاد شو اود چا په زړه کښې چه بخیلتوب کور جوړ کړو نود هغه په زړه کښې د ایمان پاتې کیدو ګنجائش نه پاتې کیږی. حضرت عبدالله ؓ له یو سړې راغلو وئی وئیل اې ابوعبدالرحمن زه خو هلاك شوم هغوی اوفرمائیل څه خبره ده؟ هغه سړې عرض اوکړوچې په قرآن پاك کښې خودی چه څوك دخپل نفس د بخیلتوب نه بچ کړې شو هغه خلاصې بیاموندلو اوزه خو مال ډیر رامنع کونکې یم، په خرچ کولوسره مې زړه بندیږی. هغوی اوفرمائیل چه د کنجوسئی ذکر په دې آیت کښې نشته دلته مراد د بخیلتوب نه دادې چه ته دخپل یومسلمان روز مال په ظلم سره اوخورې.اوبخیلتوب په معنی د کنجوستوب هم دې دا ډیرخراب څیز دې.[3].

حضرت ابوالهیاج اسدی ؓ فرمانی چه د بیت الله طواف کولووخت کښې ما اوکتل چه یوملګرې صرف همدادعا کوی﴿اللهم قنی شح نفسی﴾ یاالله ما دخپل نفس د حرص نه بچ کړې.آخر زه صبرنه شوم ما تپوس اوکړو چه ته صرف هم دا دعاولې غواړی؟هغه وئیل چه که دې نه بچ شوم نو بیا به نه زناکاری کیږی نه غلا او نه څه بل خراب کار. خوچه کله ما اوکتل نوهغه عبدالرحمن بن عوف ؓ وو. (ابن جریر)

په یوحدیث شریف کښې دی چه چا زکوة اداکړو او میلمستیا ئې اوکړه اود الله ﷻ دلارې په ضروری کاروتو کښې ئې ورکړه اوکړه هغه د خپل نفس د بخیلتوب نه لرې شو[4] بیا دمال فئ د دریم قسم خلقو بیان کولې شی چه د انصارو او مهاجرینودفقیرانونه پس د هغوی تابع چه د هغوی نه پس کوم خلق دی په هغوی کښې مسکینان د دې مال حقدار دی چه د الله ﷻ نه دخپل ځان نه د وړاندې خلقو یا د ایماندارو خلقو د پاره د مغفرت دعاګانې کوی. لکه چه په سورة برات کښې دی ﴿ وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِیْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ﴾ یعنی اول اول وړاندې والې کونکی مهاجر اوانصاراود دوی نه پس هغه خلق چه په احسان کښې د هغوی تابعداردی. الله ﷻ د دې ټولونه خوشحاله دې او دوی ټول دالله ﷻ نه راضی دی.یعنی داروستونی خلق د هغه وړاندینو د خو آثارو او ښکلې اوصافو تابعداری کونکی اودوی په نیکودعاګانوسره یادونکی دی. لکه چه ظاهراو باطن د هغوی تابعدار دی.د دې دعانه حضرت امام مالك رحمه الله څومره ښکلې او پاك استدلال کړې دې چه رافضی ته دې دمال فئ نه د وخت امام هیڅ هم نه ورکوی خکه چه هغوی د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ؓ ته ددعا پد ځائ کنځلې کوی. حضرت عائشه صدیقه ؓ فرمانی چه هغه خلقو ته اوګوره چه څنګه د قرآن پاك خلاف کوی.قرآن پاك حکم ورکوی چه دمهاجرو او انصارو دپاره دعاګانې کونې اودوی کنځلې کوی.بیا هغوی هم دا آیت تلاوت اوفرمائیلو.[5]اوبه یوبل روایت کښې دومره نورهم دی چه ما ستاسود نبیﷺ نه اوریدلی دی چه دا امت به نه ختمیږی ترکومې چه د دوی روستونی خلق به خپلو وړاندینویاندې لعنت اونه کړی. په ابوداوٗد کښې دی چه حضرت عمر ؓ اوفرمائیل آیت مَاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰی کښې دکوم مال فئ بیان دې هغه خو خاص د رسول الله ﷺ د پاره دې.دغه شان د دې نه پس

---

[1] ابوداوٗد کتاب الزکاة باب الشح:۱۶۹۸وسنده صحیح، احمد: ۲/۱۵۹-۱۶۰.

[2] نسائی کتاب الجهاد باب فضل من عمل فی سبیل الله علی قدمه: ۳۱۱٤، وهوحسن، الادب المفرد:۲۸۱، حاکم:۲/۷۲، احمد:۲/۳٤۲ ابن حبان:۳۲۵۱.

[3] حاکم:۲/٤۹۰. (ابن ابی حاتم)

[4] الطبری ۲۳/۲۸٦.

[5] دَ دې معنې روایت صحیح مسلم کتاب التفسیر:۳۰۲۲کښې هم موجود دې. (ابن ابی حاتم)

آيت ﴿مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى﴾ والاعام کړل ټول مسلمانان چه پدې کښې شامل دی.اوس يومسلمان هم داسې نشته چه دهغه په دې مال کښې حصه نه وی سوا ستاسو دغلامانونه(١)ددې حديث په سند کښې انقطاع ده.

ابن جرير کښې دی چه عمر ﷛ ﴿اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾اولوستلونو ونی فرمانيل چه دزکوة د مال خوداخلق حقدار دی.

﴿وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ آيت لوستلوسره اوفرمانيل د غنيمت حقداردا بيانی خلق دی بيانی دا آيت ﴿مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى﴾ لوستلو سره اوفرمانيل دمال فئ مستحقين بيان فرمانيلوسره دې آيت ټول مسلمانان ددې مال فئ حقدار کړل، ټول ددې حقدار دی. که چرې زه ژوندې پاتې شوم نوتاسو به ګورنی چه د کلی ښاربانانوله به هم ددې نه حصه ورکوم د چا په تندوباندې چه به د دې مال د حاصلولودپاره خوله هم نه وی راغلې.(٢)

اَلَمْ تَرَ | اِلَى الَّذِيْنَ | نَافَقُوْا | يَقُوْلُوْنَ

آيا تا اونهٔ کتل |هغه کسانو ته |چې هغوئ منافقت اوکړو|وائی هغوئ

| آيا تا هغه خلق نه دی کتلی چې منافقت ئې اختيار کړې دې| هغوئ خپلو

لِاِخْوَانِهِمُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | لَئِنْ

رونړو خپلو ته | هغه رونړو ته | چې هغوئ کفر اوکړو | داهل کتابونه | که چرې

اهل کتابو نه کافرانو رونړو ته وائی | ..................که چرې

اُخْرِجْتُمْ | لَنَخْرُجَنَّ | مَعَكُمْ | وَلَا نُطِيْعُ | فِيْكُمْ

اوويستلې شوئ تاسو|نوخامخا به اوزو مونږه |ستاسو سره ||او نهٔ به منو مونږ |په حق ستاسو کښې

تاسو (دمدينې نه )اوويستلې شوئ |نو مونږ به هم تاسوسره اوځو ||اوستاسو په معامله کښې به

اَحَدًا | اَبَدًا ۙ | وَّاِنْ قُوْتِلْتُمْ | لَنَنْصُرَنَّكُمْ ؕ

خبرهٔ دهيچا | هميشه | او که جنګ اوکړې شو ستاسو سره | خامخا به مونږ امداد کوو ستاسو

دهيچا خبره نه اورو ، | اوکه تاسو سره جنګ کيږی | نو خامخا به ستاسو مدد کوو

وَاللّٰهُ | يَشْهَدُ | اِنَّهُمْ | لَكٰذِبُوْنَ ۝ | لَئِنْ اُخْرِجُوْا

او الله | ګواهی کوی | چې بيشکه دا خلق | خامخا دروغژن دې | که چرې اوويستلې شو هغوئ

او الله ﷻ په دې ګواهی ورکوی چې دوئ دورغژن دی |..................کچرې کتابيان اوويستلې شو

لَا يَخْرُجُوْنَ | مَعَهُمْ ۚ | وَلَئِنْ قُوْتِلُوْا | لَا يَنْصُرُوْنَهُمْ ۚ

نو دوئ به اونهٔ وځي|دهغوئ سره |اوکه جنګ اوکړي شو دهغوئ سره |نودوئ به امدادنهٔ کوي دهغوئ

نودوئ به ورسره نه اوځي | ..........اوکه چرې هغوئ سره جنګ اوشو | نو دوئ به ئې مدد نه کوي

(١) ابوداؤد كتاب الخراج باب ل صفايا رسول الله ﷺ من الاموال: ٢٩٦٦.
(٢) الطبری: ٢٢/٢٧٦.

وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲﴾

او كه دوئ امداد اوكړو دهغوئ | نوخامخا به ګرزوي شاګاني|بيا به امداد اونه كړې شي دهغوئ سره

اوكه چرې مدد ني هم اوكړ | نو په شابه تښتي | .............. اوبيا به دوئ سره مدد نشي كولي

لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ط

خامخا تاسو چې يئ|زيات سخت يئ| په لحاظ ديرې سره|په زړونو ددوئ كښې|په مقابله دالله كښې

(مسلمانانو) بيشكه ددوئ په زړونو كښې د الله ﷻ نه هم زياته ستاسو ويره پرته ده

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿۱۳﴾

دا يره | په سبب ددې ده چې بيشكه دوئ | يو داسې قوم دې | چې نه پوهيږي

دا ځكه چې دوئ داسې خلق دي | چې د كار په انجام باندې نه پوهيږي

لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ

دوئ به جنګ اونه كړي ستاسو سره | ټول په جمع سره | مګر | په كلو قلابندو كښې | يا روستو

دوئ كه ټول راجمع شي|نو هم تاسو سره جنګ نشي كولي |خو په داسې كلو كښې به درسره كوي چې قلعه نما

جُدُرٍ ط بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ ط تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا

دديوالونو نه | جنګ ددوئ | په منځ ددوئ كښې | سخت دې | ته ګمان كوې په دوئ| چې يوه ډله ده

وي| يا د ديوالونو شاته وي | ددوئ جنګ په خپل مينځ كښې ډير سخت وي|ستاپرې داګمان دې چې ګني

وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ط ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۴﴾

او حال داچې زړونه ددوئ اجداجدا دي | دا په دې وجه چې دوئ |يو داسې قوم دي| چې عقل نه لري

يوموټي دي| حالانكه ددوئ زړونه بيل بيل دي | دا ځكه چې دا خلق دعقل نه كار نه اخلي

كَمَثَلِ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيْبًا ذَاقُوْا وَبَالَ

په شان | دهغه كسانو | چې مخكښې ددوئ نه وو| په نزدې زمانه كښې | چې وې څكله | سزا

ددوئ مثال دهغه خلقو پښان دې | چې د دوی نه وړاندې تير شوي دي | هغوئ

اَمْرِهِمْ ج وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۵﴾ كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ اِذْ قَالَ

دعَمل خپل | او دپاره ددوئ | عذاب | دردناك دي | په مثال دشيطان | كله چې| اووئيل هغه

دخپلو كارونو سزا اوڅكله |اودوی دپاره دردناك عذاب دی | د دوئ مثال د شيطان دي

لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ ج فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكَ

انسان ته | چې كفراوكړه |پس هر كله چې |هغه كفر اوكړو| نو وې ونيل |چې زه ذمه وار نه يم ستا

چې انسان ته وائي كافر شه | كله چې هغه كافر شي | نوبيا ورته وائي | چې زه ستا نه بيزاره يم

| اِنِّیۡۤ اَخَافُ اللّٰهَ | رَبَّ الۡعٰلَمِیۡنَ۝ | فَكَانَ | عَاقِبَتَهُمَاۤ | اَنَّهُمَا |
|---|---|---|---|---|
| زۀ خو یریږم دالله نه | اچې پالونکې دمخلوقاتودې | پس وی به | انجام ددواړو | اچې بیشکه هغوئ دواړه به |
| زه خو دالله ﷻ نه ویریږم | چې دټول مخلوق رب العالمین دې | نو د دواړو انجام دا شو | | چه دواړه |

| فِی النَّارِ | خَالِدَیۡنِ | فِیۡهَا | وَذٰلِكَ | جَزٰٓؤُا | الظّٰلِمِیۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په وور کښې وی | همیشه به وی دواړه | په هغې کښې | او دا | بدله ده | دظالمانو |
| به په اورکښې وی | اوهمیشه به په کښې وی | ............ | | او هم دا د ظالمانو سزا ده | |

قوله تعالى:- اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِیۡنَ نَافَقُوۡا

**دمنافقانوچالبازیانې**:- عبدالله بن ابی اود ده په شان د نورومنافقانو دچالبازواو مکارتوب ذکرکولې شی چه هغوی دبنونضیریهودیان په ملا اوټپول د دروغودلاسه او غلطه وعده کولوسره نی مسلمانانو سره اوجنګول،هغوی سره نی وعده اوکړه چه مونږ ستاسو ملګری یو په جنګ کښې به ستاسو ملګرتیا کوو.اوکه تاسو ماتې اوخوړله اودمدینې نه اوویستلې شوې نو مونږ به هم تاسوسره دابنار پریږدو. خود وعدې په وخت کښې د هغوی د پوره کولونیت نی نه وو اوبه هغوی کښې دومره هم حوصله نه وه چه داسې نی کړې وې.نه نی په جنګ کښې دهغوی امداد اوکړواونه نی په خراب وخت کښې دهغوی ملګرتیااوکړه. که د بدنامئی د وجه میدان ته راهم شی نو دلته په راتلوسره د غشواو تورو په کتوسره د هغوی ویښته اودریږی او نامردئی سره تیخته کوی. بیا په مستقل توګه باندې پیش ګوئی فرمائی چه د دوی به ستاسو په مقابله کښې امدادنه شی کولې.دوی دالله ﷻ نه هم دومره نه ویریږی چه څومره تاسو نه ویریږی.لکه څنګه چه بل ځائ کښې ارشاددې ﴿اِذَا فَرِیۡقٌ مِّنۡهُمۡ یَخۡشَوۡنَ النَّاسَ كَخَشۡیَةِ اللّٰهِ اَوۡ اَشَدَّ خَشۡیَةً﴾ یعنی د دوی یوه ډله د خلقو نه دومره ویریږی چه څومره د الله ﷻ نه بلکه د دې نه هم ډیره لویه خبره دا ده چه د نامرده او بزدل خلقو دا حالت دې چه دوی په میدان کښې هیڅ کله هم جنګ نه شی کولې. او که په مضبوطو او محفوظو قلعه ګانوکښې ناست وی یا په مورچوکښې ناست دځه کاروائې موقعه وی نوبیا به څه اوکړی ولې میدان کښې بهادری خودل د دوی نه په میلونولرې ده. دوی په خپل مینځ کښې دیوبل دښمنان دی.لکه چه په بل ځائ کښې ارشاددې﴿وَّیُذِیۡقَ بَعۡضَكُمۡ بَاۡسَ بَعۡضٍ﴾بعضوته د جنګ مزه وروڅکی.تاسو دوی یوموټې په اتفاق اومتحدګڼرئی خوبه اصل کښې دوی ډیر ګډوډ اومختلف دی.د یوزړه د بل سره نه ملاویږی. منافق په خپل ځائ او اهل کتاب په خپل ځائ دیو بل دښمنان دی اووجه داده چه بې عقله خلق دی.

قوله تعالى:- كَمَثَلِ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ قَرِیۡبًا

**دمنافقانو مثال**:- بیا فرمائی د دوی مثال د دوی نه لږشان د وړاندې کافرانو په شان دې چاچه دلته هم د خپلوکړو بدله اوموندله او هلته هم تیرول باقی دی.د دې نه مراد خویاد قریشوکفاردی چه د بدریه ورځ دهغوی ملاګانې ماتې شواود سخت نقصان اوچتولوسره نی هرڅه پریخودل اواوتختیدل.یاد بنوقینقاع یهودیان دی.هغوی هم په شیطانت باندې راغلل نو الله ﷻ په هغوی باندې خپل نبیﷺ غالب کړو او هغویﷺ دوی دمدینې د ښار نه بهراوویستل.دا دواړه واقعات داوس وخت دی اوستاسودعبرت صحیح سبق دې خوچه د دغه وخت نه څوک عبرت حاصلونکې او په انجام باندې سوچ کونکې څوک وی هم.د ډیر مناسب مقام واقعه هم دبنوقینقاع د یهودیانوده.والله اعلم.دمنافقانوبه وعدوباندې د دې یهودیانو په شیطانت باندې راوچتیدل اود هغوی په خبروکښې راتلوسره معاهده ماتول اوبیا د دغه منافقانود موقع په وخت کښې د هغوی په کار نه راتلل، نه د جنګ په وخت کښې امداد رسول اونه په

وطن پريخودوکښې په يومثال سره پوهه کوی چه ګورنی شيطان هم دغه شان سړې په دهوکه کښې اچوی خو چه کله دې کفر کوی نو هغه پخپله دې ملامت کوی اوخپل ځان د الله والا ښکاره کوی.

**قوله تعالى:- كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ**

**دَ يوراهب واقعه:-** هم ددې مثال يوه واقعه هم واورئې. بنی اسرائيلوکښې يوعابد وو شپيته کاله ئې د الله ﷻ په عبادت کښې تيرکړې وو. شيطان هغه غولول غوښتل خو هغه په قابوکښې نه راتلو.هغه په يوه ښځه باندې خپل اثر واچولو اودا ئې ښکاره کړه چه لکه په دې باندې د پيريانواثردې. بل طرف ته ئې دښځې د رونړو په زړه کښې داوسوسه واچوله چه د دې علاج هم دې عابدنه کيدې شی. هغوی دا ښځه دې عابد له راوستله او هغه علاج يعنی دم وغيره شروع کړواو دا ښځه هم دلته پاتې شوه. يوه ورځ دا عابد هم دې ښځې سره وو چه شيطان د هغه خيالات خرابول شروع کړو. هغه دې ښځې سره زنا اوکړه او هغه حامله شوه. اوس د رسوائې نه د ځان خلاصولو د پاره شيطان دا صورت اوخودلوچه دا ښځه مړه کړه ګنی دارازبه ښکاره شی.عابد هغه ښځه مړه کړه اودې لاړودهغې رونړوته ئې شك واچولو نو هغوی په منډه راغله. شيطان راهب له راغلواوورته ئې اووئيل چه هغه خلق راروان دی. اوس به ئې عزت هم ځی او ځان به ئې هم ځی. که ما خوشحالوې نو ځان او عزت به دې دواړه بچ کيدې شی. هغه وئيل چه ته څنګه وائې زه تياريم.شيطان وئيل ماته سجده اوکړه عابدهغه ته سجده اوکړه.هغه وئيل چه په تادې لعنت وی اې کم بخته زه اوس تانه ويزاره يم،زه خودالله ﷻ نه ويريږم چه رب العالمين دې.(١)

په يويل روايت کښې دی چه يوې ښځې چيلئی څرولې اود يوراهب په عبادت خانه کښې به ئې شپه تيروله.دهغې څلور رونړه وو.يوه شپه شيطان هغه راهب اوتخړولو هغه دې ښځې سره زنا اوکړه. د هغې حمل شو.اوس شيطان د راهب په زړه کښې واچول چه داخو به لويه رسوائی وی. دې نه به ښه دا وی چه دامړه کړه او چرته ئې خښه کړه.ستاپاکوالی ته په کتويه ستا طرف ته د چاخيال هم نه وی اوکه بيا هم څه تپوس وغيره اوشونو څه دروغ به اووائې.خوك دی چه ستاخبرې ته دروغ اووائی دهغه په دماغو کښې داخبره راغله. يوه ورځ هغه موقعه بيامونده او د شپې ئې هغه مړه کړه او چرته په شاړځایٔ کښې خښه کړه.اوس شيطان د هغې څلورو واړو رونړو ته په خوب کښې هم يوقسم واقعه ياده کړه اود هغې د خښولو ځایٔ ئې هم ورته اوخودلو. سحرچه راپاسيدل نو يووئيل چه د شپې خو ماعجيبه خوب ليدلې د بيانولو همت مې نشته چه تاسو ته ئې بيان کړم. بل وئيل چه خيردې خوب خو بيان کړه نو هغه خپل ټول خوب بيان کړو چه فلانکی عابد هغې سره بدکاری کړې او بياچه کله حمل شو هغه ئې قتل کړه او فلانکی ځایٔ کښې خښه کړه. دې دريواړو هم وئيل چه مونږ هم داسې خوب ليدلې دې. اوس خود هغوی پوخ يقين پيداشوچه دا رښتونې خوب دې. دې خلقو حکومت ته خبرورکړواود بادشاه په حکم ئې هغه راهب د هغه د عبادت خانې نه ځان سره کړو اوهغه ځایٔ ئې اوکنستلونو لاش ئې راښکاره شو. پوره ثبوت سره ئې هغه شاهی دربارته بوتلو. دغه وخت شيطان د هغه مخې ته ښکاره کيږی او ورته وائی چه دا هرڅه زما کړه دی که اوس هم ماته خوشحالوې نو څه دې بچ کولې شم. هغه وئيل چه ښه ده ته څه وائې. ده وئيل ماته سجده اوکړه هغه داسې هم اوکړل نو چه پوره ئې بې ايمانه کړو نو شيطان اووئيل زه خوتانه ويزاره يم زه خود هغه الله ﷻ نه چه دټولو جهانونو رب دې ويريږم. بادشاه حکم اوکړو اوپادری قتل کړو.مشهوره ده چه ددې پادری نوم برصيصاوو. علی رضی الله عنه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه طاؤس،مقاتل بن حيان رحمه الله وغيره نه دا قصه دمختلفو الفاظوسره کمې بيشې سره روايت ده.والله اعلم

**دَ حضرت جريج واقعه:-** د دې نه برعکس د جريج عابد قصه ده چه يوې بدکاره ښځې په هغه باندې تهمت اولګولو چه ده ماسره زناکړې اودا ماشوم چه ماسره دې هم د ده دې.خلقوحضرت جريج په

---

(١) حاکم:۲/۴۸٤وابن جرير والسيالله، وسنده حسن. (ابن جرير)

عبادت خانه کښې راګیر کړواو ډیره بې ادبي کولوسره ئې اووهلواو په کنځلوکولوسره ئې بهر رااوویستلو او عبادت خانه ئې ورله ورانه کړه. دې غریب به په ډیره ویرې سره تپوس کولو چه آخر واقعه څه ده؟ خو هغه خلق ډیرغصه ووآخر په کښې چا اوونیل د الله ﷻ دښمنه د اولیاء الله په جامه کښې داشیطانی حرکت؟دې ښځې سره تابدکاری کړې. حضرت جریج اوونیل چه ښه ده هغه ماشوم راولئی. هغه پینې ځکونکې ماشوم ئې راوستلو. حضرت جریج د الله ﷻ نه د خپل عزت ساتلو په خاطر دعااوکړه اودې ماشوم نه ئې تپوس اوکړو اې بچې ستاپلارڅوك دې؟ دې ماشوم ته الله ﷻ د خپل ولی د عزت بچ کولو د پاره دخبروطاقت ورکړو اوهغه په واضحه آوازکښې اوونیل زما پلار یو ګډبه دې. دې اوریدو سره بنی اسرائیل حیران شو اود دې بزرګ په وړاندې ئې عذر اومعذرت کولو سره معافی اوغوښتله. هغه وئیل چه اوس ما پریږدئی(۱)خو خلقو وئیل چه مونږ ستا عبادت خانه د سرو زرو جوړوو. هغه وئیل چه بس ځنګه وه هم هغه شان ئې جوړه ئړئی. بیا فرمائی چه آخر انجام د کفر کولو اود حکم ورکونکی هم دغه اوشوچه دواړه د همیشه د پاره دوزخیان شو. هر ظالم د خپل ظلم سزا بیامومي.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا | ٱتَّقُوا ٱللَّهَ | وَلْتَنظُرْ | نَفْسٌ |
|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړی دی | اویریږی دالله نه | او پکار دی چې اوګوری | یو نفس |
| ائی مومنانو ۱ دالله ﷻ نه ویریږئ | ......... اوهر سړي دې سوچ فکر اوکړي | | | |

| مَّا | قَدَّمَتْ | لِغَدٍ | وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ | إِنَّ ٱللَّهَ | خَبِيرٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه | چې مخکښې ئې لیږلی دی | دپاره دصبا | او او یریږئ دالله نه | بیشکه الله | خبردار دی |
| چې د صبا ورځې دپاره ئې څه وړاندې کړی دی | اود الله ﷻ نه ویریږئ | هغه ستاسو دکارونو نه پوره | | | |

| بِمَا | تَعْمَلُونَ | وَلَا تَكُونُوا | كَٱلَّذِينَ | نَسُوا ٱللَّهَ |
|---|---|---|---|---|
| به هغه څه | چې تاسو ئې کوئ | او مه کیږئ تاسو | پشان دهغه کسانو | چې هغوئ هیر کړو الله |
| خبر دی | ... ...... اودهغه چا په شان مه کیږئ | چې الله ﷻ ئې هیر کړې دې | | |

| فَأَنسَىٰهُمْ | أَنفُسَهُمْ | أُولَٰٓئِكَ | هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ | لَا يَسْتَوِىٓ |
|---|---|---|---|---|
| نو هیر کړل الله دهغوئ نه | نفسونه دهغوئ | دا کسان چې دی | هم دوئ فاسقان دی | نه برابریږی |
| نو الله ﷻ ترې نه خپل ځانونه هیر کړل | هم دغه خو نافرمانه خلق دی | ............ دوزخیان | | |

| أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ | وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ | أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ | هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ |
|---|---|---|---|
| ملګری دوور | او ملګری دجنت | ملګری دجنت چې دی | هم دوئ کامیاب دی |
| او جنتیان هیڅ کله برابر نه دی | هم جنتیان کامیاب خلق دی | | |

**قوله تعالى:- يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ**

**دالله تعالى نه ویریدل:** حضرت جریر ﷺ فرمائی چه مونږ رسول الله ﷺ سره په رڼرا ورځ کښې ناست ووچه څه خلق راغله بربنډ اوبیښی ابله وو صرف په څادرونوباندې خپل بدنونه پټ کړي وواوتورې ئې په غاړو کښې زوړند وې.اکثر بلکه ټول په ټول د قبیله مضر نه وو. د دوی دې غریبښی اوناچارې د رسول الله ﷺ

۱) د دې معنې روایت صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قوله تعالی (واذکر فی الکتاب مریم....):۳۴۳۶، صحیح مسلم: ۲۵۵۰ کښې هم موجود دی.

د مخ مبارك رنګ بدل کړو. حضور ﷺ کورته لاړو بيابهرراووتلواو بلال ﷺ ته ئې داذان حکم اوکړو بيا اقامت اوشومونځ اداشوبيائې خطبه شروع کړه اوآيت ﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ﴾ ئې تلاوت کړو بيا ئې دسورت حشر آيت ﴿وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ اولوستلو او خلقو ته ئې د خيرات ورکولو ترغيب ورکړونو خلقو صدقه ورکول شروع کړه. ډير دراهم اودنانير کپړې جامې غنم کهجورې راجمع شوې. حضور ﷺ برابرتقرير کولو تردې چه وئې فرمائيل چه نيمه کهجوره هم ورکړئې شئې نو راوړئې. يوانصاری يوه تهيلئې د نقدو پيسونه ډکه ډيره وزن داره چه په ګرانه ئې اوچتولې شوه راوړله نو بيا خو خلقو ډيرزيات څاروی راوستل شروع کړه. تردې چه د هريوخيز ډيری اولګيدل نو د حضور ﷺ غمګين مخ مبارك روښانه او خوشحاله شو اود سرو زرو په شان اوپړقيدو نو بيا اوفرمائيل چه څوك هم د اسلام څه د خير کارشروع کړی هغه ته خپله اودې نه پس چه څوك هم دا کارکوی د ټولو بدله ملاويږی خود روستووالا د عمل اجر به نه کميږی. دغه شان که څوك په اسلام کښې يوخراب او خلاف شرع کاراوطريقه روانه کړی نوپه ده باندې خپله ګناه هم وی اوچه بيا څومره خلق په دې لار روان وی ټولوته چه څومره ګناه ملاويږی ده ته به هم دومره ملاويږی اود هغې نوروګناهونه به کميږی نه.(١)

په آيت کښې اول حکم کيږی چه د الله ﷻ د عذابونونه د ځان د بچ کولو صورت پيداکړئې يعنی دهغه احکام په ځاې راوړئې اود هغه د نافرمانونه بچ شئې. بيا فرمان دې چه د وخت نه وړاندې خپل حساب په خپله اوکړئې ګورئې چه د قيامت په ورځ کله د رب په وړاندې پيش کيږئې نو بيا په کار راتلونکې د نيکو اعمالو څومره حصه به تاسو سره وی. بيا په تاکيدسره ارشادکيږی د الله ﷻ نه ويريږئې او پوهه شئې چه الله ﷻ ستاسو په ټولواعمالوباندې پوره خبردې. نه دهغه نه ستاسو وړوکې عمل پټ دې اونه لوئې نه پټ او نه ښکاره. بيا فرمائې چه د الله ﷻ ذکر مه هيروئې هغه به ستاسو نيك اعمال کوم چه په آخرت کښې نفع ورکونکې وی هيرکړی. ځکه چه دهر علم بدله د هغې په شان وی. د دې د پاره ئې اوفرمائيل چه دغه خلق فاسق دی يعنی دالله ﷻ د تابعدارئې نه وتونکی اودقيامت په ورځ نقصان موندونکې او په هلاکت کښې پريوتونکی هم دغه خلق دی. بل ځائ کښې ارشاد دې ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ مسلمانانو تاسودې مال اواولاد د الله ﷻ د ياد نه غافله نه کړی څوك چه داسې اوکړی هغه سخت په نقصان کښې دې.

**قوله تعالى:- وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ**

**دابوبکر صديق ﷺ خطبه** په طبرانی کښې دحضرت ابوبکرصديق ﷺ دخطبې يو مختصرحصه نقل ده هغوی فرمائيل چه تاسو نه پوهيږئې چه سحر ماښام تاسو د خپل مقرر وخت طرف ته وروړاندې کيږئې. نو تاسوله پکار دی چه د خپل ژوند وختونه د الله ﷻ عزوجل په حکم منلوکښې تيرکړئې اودا مقصد بغيردالله ﷻ د توفيق او فضل اوکرم نه صرف په خپل طاقت او قوت سره څوك هم نه شی حاصلولې. کوموخلقو چه خپل ژوندد الله ﷻ نه علاوه په نوروکارونوکښې ورکړې دې د هغوی په شان تاسو مه کيږئې. الله ﷻ تاسو دهغوی په شان جوريدونه منع کړی يئې. ﴿نَسُوا اللَّهَ فَأَنسَاهُمْ أَنفُسَهُمْ﴾ خيال اوکړئې چه ستاسو پيژندګلو ستاسوروڼړه نن چرته دی؟ هغوی چه په خپلو تيرو ورځوکښې کوم اعمال کړی وو د هغې بدله اخستلو او يا د هغې سزا تيرولو دپاره هغوی د فيصله کونکې رب دربار ته رسيدلی دی. چه هغوی نيك بختی اوموندله که نامرادی او بدبختی حاصله کړه. چرته دی؟ هغه سرکشه خلق چا چه ښکلی ښارونه آباد کړی وو او هغوی مضبوطې قلعه ګانې اودرولې وې نن هغوی په قبرونوکښې د کاڼړو لاندې خښ پراته دی. دا دې د الله ﷻ کتاب قرآن کريم تاسو دې نه نور او رڼړا حاصله کړئې چه ستاسو

(١) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب الحث على الصدقة ولو بشق تمرة: ١٠١٧، احمد: ٣٥٩/٤. (مسلم)

دقیامت په تیاروکښې په کارراشي.ددې دښکلې بیان نه عبرت حاصل کړنې اوښه خان ډولي کړنې.الله ﷻ د حضرت زکریاؑ اودهغه داهل بیت تعریف بیانولوسره فرمائی ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا ۖ وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ﴾ یعنی هغوی به په نیکو کارونوکښې وړاندیوالې کولو اوپه ډیر لالچ او ډیره ویره به ئې زمونږ نه سوال کولو اوزمونږ په وړاندې به ټیټیدل. واورئی هغه خبره دښیگړې نه خالی ده کومه کښې چه د الله ﷻ رضا مقصد نه وی. هغه مال د خیر اوبرکت والا نه دې کوم چه د الله ﷻ په لار کښې نه خرچ کیږی. هغه سړې د نیك بختئی نه لرې دی د چا جهالت چه د هغه په برداشت او پوهه باندې غالب وی. دغه شان هغه سړې هم د نیکئی نه خالی لاس دې چه د الله ﷻ د احکامو په پوره کولو کښې د یو ملامت کونکی د ملامتیانه وېریږی. د دې اسناد ډیر ښکلی دی او د دې راویان ثقه دی. خود دې صرف یو راوی نعیم بن نمحه په ثقاهت یا عدم ثقاهت سره مشهورنه دې خود امام ابوداؤد سجستانی دا فیصله کافی ده چه د جریربن عثمان ﷺ ټول استاذان ثقه دی اودې هم د هغوی د استاذانو نه دې اود دې خطبې نور شواهد هم نقل دی. والله اعلم

قوله تعالی:- لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۚ

بیا ارشاد فرمائی چه جنتي او دوزخي د الله ﷻ په نیز یوشان نه دی لکه چه ارشاد دې ﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۚ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ یعنی آیا بدکارانودا گنړلې ده چه مونږ به هغوی د ایماندارو نیکانوخلقو په شان کړو، د دوی ژوند اومرګ یو شان دې.ددوی دادعوه بالکل غلطه او خرابه ده.بلې ځائ کښې ارشاد دې ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ﴾ الخ ړوند اوبینا نیك او بد برابر نه دی تاسو ډیرکم نصیحت حاصلوئی اوارشاددې ﴿أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ آیا مونږ به ایمان راوړونکی او نیك عملونه کونکی د فسادیانوپه شان کوو یا به پرهیزګاران د فاجرانو په شان کوو الخ.د دې مضمون نور هم ډیر آیاتونه دی مطلب دا چه د نیکانوخلقو به اکرام کولې شی او د بدکارانو به تضحیك او سپکاوې کیږی. دلته هم ارشاد کولې شی چه څومره خلق چه په مقصدکښې کامیاب او خلاصې بیاموندونکی دی د الله ﷻ د عذابونونه به دوی بچ وی.

| لَوْ أَنْزَلْنَا | هَٰذَا الْقُرْآنَ | عَلَىٰ جَبَلٍ | لَرَأَيْتَهُ | خَاشِعًا |
|---|---|---|---|---|
| که نازل کړې وې مونږه | دا قران | په یو غر باندې | نو خامخا به لیدلې وې تا هغه لره | عاجزی کونکې |
| که مونږ دا قران پاک په یو غرباندې نازل کړې وې | | .........نو تابه لیدلې وو | | |

| مُتَصَدِّعًا | مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۚ | وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ | نَضْرِبُهَا |
|---|---|---|---|
| ټوټې ټوټې کیدونکې | دیرې دالله نه | او دا مثالونه دی | چې بیانوو ئې مونږه |
| چې دالله ﷻ د ویرې نه بهٔ فرمان منونکې چاؤدلې وو | | اودا مثالونه مونږ د خلقو دپاره بیانوو | |

| لِلنَّاسِ | لَعَلَّهُمْ | يَتَفَكَّرُونَ ۝ | هُوَ اللَّهُ الَّذِي | لَا إِلَٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دخلقو | دپاره ددې چې هغوی | فکر اوکړی | هغه الله هغه ذات دې | چې نشته لائیق دعبادت |
| چې هغوی «دالله په وحدانیت کښې» غور اوفکر اوکړی | | | الله ﷻ خو هغه ذات دې چې دهغه نه | |

| إِلَّا هُوَ ۖ | عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۖ | هُوَ الرَّحْمَٰنُ | الرَّحِيمُ ۝ | هُوَ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| مګر هم هغه دې | خبر دې دپټ او دښکاره نه | هغه ښنونکې | مهربانه دې | هغه الله |
| سوا بل څوك دعبادت لائق نشته | دپټ اوښکاره هرڅه نه خبر دې | هغه ډیر مهربان رحم کونکې دې الله ﷻ | | |

الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ

هغه ذات دي | چي نشته لائيق دعبادت | مګر | هم هغه دي | بادشاه دي | پاک دي

هغه ذات دي | ...... چي دهغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | بادشاه دي د هر عيب نه پاک دي

السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ

سلامتيا ورکونکي | امن ورکونکي دي | ساتونکي دي | غالب دي | اخپل حکم په زور جاري کونکي دي

امن ورکونکي دي | حفاظت کونکي دي | زبردست دي | خپل حکم په زور جاري کونکي دي

الْمُتَكَبِّرُ ۭ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝

لوئ دي په حقيقت کښي | پاکي ده دالله | دهغي نه | چي دا خلق ئي شريکوي دهغي سره

ډير لوئي دي | ......................الله ﷻ ددوئ دشرک نه بيخي پاک دي

هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَاۗءُ الْحُسْنٰى ۭ

دغه هم الله دي | راايستونکي دي خيزونو لره | شکل جوړونکي دي | هغه لره دي نومونه ښهٔ ښهٔ

هم الله پيدا کونکي ، ناشنا پيدا کونکي ، صورت جوړونکي دي | دهغه ښکلي ښکلي نومونه دي

يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ

پاکي بيانوي | هغه لره | هغه څه | چي په اسمانونو کښي دي | او په زمکه کښي دي | او هغه

په اسمانونو اوپه زمکه کښي هر څه د هغه پاکي بيانوي | ..............اوهغه

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝

غالب | او حکيم دي |

غالب او صاحب دحکمت دي

**قوله تعالى:- لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰي جَبَلٍ**

**دقرآن کريم عظمت:** دقرآن کريم بزرګي بيانولي شي چه واقعي داپاك کتاب دومره داوچتي درجي کتاب دي چه زړه د دي په وړاندي ټيټ شي، زغوني زير شي ايني اوړچي د دي رښتوني وعدي د دي د حق رټل هريو اوريدونکي اوژړوي اود الله ﷻ په دربارکښي په سجده راپريباسي. که چري دا قرآن پاك الله ﷻ په يوکلك اوچت غرباندي هم نازل کړي وواوهغه ته ئي د غورفکر سوچ او پوهي حس هم ورکړي وونوهغه به هم د الله ﷻ د ويري نه ذره ذره شوي وو.بياد انسانانو زړونه چه نسبتا نرم او واړه دي او هغوي ته پوره سوچ اوپوهه ده په دي باندي ډير اثر پريوتل پکاردي.دا مثالونه الله ﷻ د هغوي په وړاندي د غوراوفکر دپاره بيان فرماني مطلب داچه انسانانوله هم ويريدل اوعاجزي پکار ده.

**قوله تعالى:- لَرَاَيْتَهٗ خَاشِعًا**

**مسجد نبوي کښي د کهجوري د تني فرياد:**-په متواترحديث کښي دي چه د منبرتياريدونه وړاندي رسول الله ﷺ به د کهجوري يوي تني ته اډه لګوله اوخطبه به ئي لوستله. کله چه منبرجوړشو اولګيدو او حضور ﷺ په دي باندي خطبه ورکولو د پاره اودريدواو د هغه تني نه اخواشونودهغه تني نه د ژړا آواز راغلو او داسي ئي سلګئي وهلي لکه چه يوماشوم په چغوچغوژاړي اوهغه چپ کولي شي اوداځکه چه هغي ته د

دي وحی د اوريدونه څه لرې والې پيداشو(۱)اوامام حسن بصری رحمه الله دا حديث بيانولو سره فرمانيل چه اې خلقو د کهجورې يو تنه دومره د رسول الله ﷺ شوق منه وه نوتاسو له پکار دی چه د دې نه زيات شوق اوغوښتنه اوساتئ.(۲)دغه شان دا آيت چه ديوغرداحال وی نوتاسو له پکاردی چه تاسو به دې حال کښې دهغه نه وراندې شئ.بل ځای کښې دالله ﷻ ارشاد دې ﴿وَلَوْ أَنَّ قُرْآنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ أَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتَىٰ ۗ بَل لِّلَّهِ الْأَمْرُ جَمِيعًا ۗ أَفَلَمْ يَيْأَسِ الَّذِينَ آمَنُوا أَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيعًا ۗ وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِيَ وَعْدُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾ يعنی که يوقرآن پاك داسې وی چه د هغې په وجه يوغر روان شی يازمکه پريکړې شی يامړی راوخی(نود دې قابل به هم دا قرآن وو)خوبيابه هم ددې کافرانوايمان نه وی نصيب شوې. يوبل ځای کښې ارشاد مبارك دې﴿وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهَارُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ﴾ يعنی بعضې کانړی داسې دی چه د هغې نه نهرونه بهيږی. بعضې هغه دی چه شليږی اود هغې نه اوبه راوځی. بعضې د الله ﷻ د ويرې نه پريوځی.

**قوله‌تعالی:- هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ**

**د الله ﷻ د قدرت دلائل او صفات حسنه:**-بيا فرمائی چه د الله ﷻ نه بغيرنه څوك پالونکې دې اونه څوك ساتونکې شته نه د هغه نه سوا بل داسې څوك ذات شته چه د هغه څوك يوقسم عبادت هم اوکړی. د هغه نه علاوه چه څوك د کومو کومو خلقو عبادت کوی هغه ټول باطل دی.الله ﷻ د ټول کائنات علم لرونکې دې.کوم څيزونه چه مونږ ته ښکاره دی او کوم چه زمونږ نه پټ دی ټول هرڅه هغه ته ښکاره دی که لوئ دی او تردې پورې چه د تيارو ذرې هم هغه ته ښکاره دی. هغه دومره د لوئ اوکولاو رحمت والا دې چه د هغه رحمت په ټول مخلوق باندې شامل دې. هغه په دنيا او آخرت کښې رحمن هم دې او رحيم هم دې. زمونږ د تفسير په شروع کښې د دې دواړو نومونو پوره تفسيرتيرشوې دې.
په قرآن کريم کښې يوبل ځای کښې ارشاد دې﴿وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ﴾ زما رحمت ټول څيزونه راګير کړی دی. په يوبل ځای کښې ارشاد دې ﴿كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ ستاسو رب په خپل ځان باندې رحم او رحمت ليکلې دې. يوبل فرمان ربانی دې ﴿قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ﴾ اووايه چه د الله ﷻ فضل او رحمت سره خوشحاليدل پکار دی. ستاسو د راجمع کړې شوی څيزونونه دا بهتردې.دهغه مالك رب او معبودنه بغير بل څوك دصفتونو والا نشته دټولو څيزنو هم هغه مختار او مالك دې. په هرڅيزکښې بدلون راوستونکې په ټولوڅيزونوباندې قبضه او تصرف لرونکې هم دغه رب دې. هيڅ څوك نشته چه د هغه مزاحمت او مدافعت اوکړی شی يا هغه منع کړې شی هغه قدوس دې يعنی ظاهر دې. مبارك دې د ذاتی او صفتی نقصانونونه پاك دې. ټولې د اوچتې درجې فرښتې او د اوچتو نه اوچت مخلوق دهغه په تسبيح او تقديس کښې دهميشه نه مشغول دی.د ټولو عيبونو او نقصانونونه پاك او خلاص دې.دهغه يوکار هم د حکمت نه خالی نه وی. په خپلو افعالوکښې د هغه ذات دهرقسم نقصان نه پاك دې.هغه مومن دې يعنی هغه ټول مخلوق د دې خبرې نه بې ويرې ساتلې دې چه په هغوی باندې د يوقسم اوياپه يووخت کښې دخپل طرف نه ظلم وی. هغه دا فرمائيلی چه هغه حق دې او ټول نی په امن سره ساتلی دی. د خپلو ايماندارو بنديګانو د ايمان تصديق کوی. او هغه مهيمن دې يعنی د خپل ټول مخلوق په ټولو اعمالوهروخت يو شان شاهددې

۱) صحيح بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الاسلام:۳۵۸۳-۳۵۸۴، ترمذی:۵۰۵، بيهقی: ۱۹۶/۳، دلائل النبوة للبيهقی: ۵۵۶/۲، ابن حبان: ۶۵۰۶.
۲) ابويعلی:۲۷۵۶، ابن حبان:۶۵۰۷.

اونګهبان دي.لکه چه فرمائی ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ۝﴾ الله ﷻ په هرڅيز باندې شاهددې. بل ارشاد دي ﴿ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ۝﴾ اوالله ﷻ د هغوی په ټولواعمالوباندې ګواه دې. يوبل ځای ارشاد الهی دي ﴿أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۗ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ قُلْ سَمُّوهُمْ ۚ أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ۗ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ۝﴾ مطلب دا چه هريونفس چه څه کوی الله ﷻ هغه ته ګوری. هغه عزيز دې هريوڅيز د هغه تابع فرمان دې. په ټول مخلوق باندې هغه غالب دې نود هغه د عزت عظمت جبروت په وجه د هغه څوك هم مقابله نه شی کولې.

**قوله تعالى:- الْمُتَكَبِّرُ**

هغه جباراومتکبردې. جبريت او تکبرصرف د هغه د شان سره لائق دی. په صحيح حديث کښې دی چه الله ﷻ فرمائی لوئی زما لنګ دې اوکبرزما څادرڅوك چه په دې دواړو کښې مانه يواځستل غواړی زه به هغه په عذاب کوم([1])ځيل مخلوق چه په کوم څيزسره غواړم لرې کولې شم.د ټولو کارونو اصلاح د هغه په لاس کښې ده.هغه دهرې بدئی نه نفرت او لرې کونکې دې.کوم خلق چه د ناپوهنی په وجه څوك د هغه شريك ګرځوی هغه د دې ټولونه ويزاره دې. د هغه ذات د شرکت نه مبرا دې. الله ﷻ خالق دې يعنی مقدرکونکې دې بياباری دې يعني دا جاری کونکې او ظاهرونکې دې. تقدير سره ايجاد او تنفيذ باندې هم قدرت لرونکې ذات هم د الله ﷻ دې. نودخلق نه مراد تقدير او برء نه مراد تنفيذ دې. په عربوکښې دا الفاظ په معنوکښې برابر د مثال په توګه هم رائج دی.دهغه شان دې چه کوم څيز کوم ځای کښې کول غواړی هغې ته وائی شه نو هغه هم په هغه صورت کښې کيږی.لکه چه فرمائی ﴿فِي أَيِّ صُورَةٍ مَّا شَاءَ رَكَّبَكَ ۝﴾ په کوم صورت کښې چه هغه غواړی تاته نی ترکيب درکړو، ځکه دلته فرمائی هغه مصور دې يعنی کوم څيز چه څنګه غواړی هغه شان نی کوی.

**قوله تعالى:- لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ**

**د الله تعالى اسماء حسنى:**ښکلې ښکلې بهترين او بزرګ نومونو والا هم هغه دې. په سورة اعراف کښې د دې جمله تفسير تيرشوې دې. ورسره هغه حديث شريف هم بيان شوې دې کوم چه په بخاری او مسلم شريف کښې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت سره مروی دې چه رسول الله ﷺ فرمائی د الله ﷻ يو کم سل نومونه دی څوك چه دا اوشميری يادئی کړی هغه به جنت کښې داخليږی. هغه طاق دې يعنی واحد دې او يووالې خوښوی ([2]) په ترمذی شريف کښې د دې نومونوتفصيل هم راغلې دې. هغه نومونونه دا دی چه الله نه دې څوك معبود بلکه هم هغه چه ﴿رحمن، رحيم، ملك، قدوس، سلام، مومن، مهيمن، عزيز، جبار، متکبر، خالق، باري، مصور، غفار، وهاب، رزاق، قهار، فتاح، عليم، قابض، باسط، خافظ، رافع، معز، مذل، سميع، بصير، حکم، عدل، لطيف، خبير، حليم، عظيم، غفور، شکور، علی، کبير، حفيظ، مقيت، حسيب، جليل، کريم، رقيب، مجيب، واسع، حکيم، ودود، مجيد، باعث، شهيد، حق، وکيل، قوي، متين، ولی، حميد، محصی، مبدي، معيد، محی، مميت، حي، قيوم، واجد، ماجد، واحد، صمد، قادر، مقتدر، مقدم، موخر، اول، اخر، ظاهر، باطن، والی، متعال، بر، تواب، منتقم، عفو، رؤف، مٰلك الملك، ذوالجلال والاکرام، مقسط، جامع، غنی، مغنی، معطی، مانع، ضار، نافع، نور، هادي، بديع، باقی، وارث، رشيد، صبور﴾

په ابن ماجه کښې هم دا حديث دې([3])اوپه هغې کښې کمې بيشې وړانديوالې روستووالې هم شته. لنډه دا چه د دې ټولو احاديثو پوره شان سره تفسيرپه سورة اعراف کښې تيرشوې دې. په دې وجه دلته

---

[1]) صحيح مسلم کتاب البرباب تحريم الکبير: ۲۶۲۰، ابوداؤد: ۴۰۹۰.

[2]) صحيح بخاری کتاب الدعوات باب لله مائة اسم غير واحدة: ۶۴۱۰،صحيح مسلم: ۲۵۷۷،ترمذی:۳۵۰۶، ابن ماجه:۳۸۶۰، احمد:۲/۲۶۷، ابن حبان: ۸۰۷.

[3]) ترمذی کتاب الدعوات باب حديث فی اسماء الله الحسنی: ۳۵۰۷ابن ماجه: ۳۸۴۱.

صرف دومره ليکل کافي دي. باقي ټول بيا دوباره کول ضروري نه دي. د زمکې او اسمان ټول څيزونه د هغه تسبيح بيانوي. لکه چه په بل ځای کښې ارشاد دې ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ۭ وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا﴾ دهغه پاکوالي بيانوي اووه واره زمکې او آسمانونه چه کوم مخلوق په دې کښې دې اوهيڅ څيز داسې نشته چه دهغه حمداو تسبيح نه بيانوی ولې تاسود هغوی تسبيح باندې نه شئ پوهيدلې. بې شکه هغه بردبار او بښونکې دې. هغه عزيز دې د هغه دحکم والا سرکار خپلو احکامو اودتقدير تقدر کښې داسې نه دې چه يوقسم کمې په کښې رااوريستلې شی يا څه قسم اعتراض اوکړې شی.

**د سورة حشر اخری درې ايتونه**:۔د مسنداحمد په حديث شريف کښې دی چه کوم سړې د سحر په وخت کښې درې ځل **﴿اعوذبالله السميع العليم من الشيطن الرجيم﴾** لوستلونه پس د سورة حشر دا آخرې درې اياتونه اولولی الله ﷻ د هغه د پاره اويازره فرښتې مقرر کوی چه ترماښامه پورې په هغه رحمتونه راليږی. او که هم په دغه ورځ هغه وفات شی نو د شهادت مرتبه به بياموسی.اوکوم سړې چه د دې تلاوت د ماښام په وخت کښې اوکړی هغه هم په دې حکم کښې دی[1] په ترمذی شريف کښې هم دا حديث شريف دې. او امام ترمذی رحمه الله دا غريب ګڼړی.

**﴿الحمدلله﴾** د سورة حشر تفسيرختم شو.

| اياتونه | سورة الممتحنة مدنية وهي ثلاث عشرة اٰية وفيها ركوعان | ركوع ګاني |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ١٣ | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | ٢ |

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ

اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | مه نيسئ تاسو | دشمن زما | او دشمن ستاسو |

اې مومنانو ! زما دشمنان اوخپل دشمنان دوستان مه جوړوئ

اَوْلِيَاۗءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا

دوستان |تاسو غورزوئ |(مخکې ) هغوئ ته | دوستی |حال دا چې انکار کړې دې هغوئ | په هغه څيز

تاسو هغوئ ته ددوستئ (او محبت) پيغام ليږئ | حال دا دې چې هغوئ دهغه حق دين د منلو نه انکار

جَاۗءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ

چې راغلې دې تاسو ته | دحق نه | اوباسي هغوئ | رسول لره | او تاسو لره (دوطن نه) |

کړې دی | کوم چې تاسو ته راغلې دې | هغوئ خو (ستاسو) رسول ﷺ اوتاسو (ستاسو دوطن نه) صرف په

اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ۭ اِنْ كُنْتُمْ

صرف په دې خبره چې ايمان راوړې دې تاسو | په الله باندې | چې رب ستاسو دې | که يئ تاسو |

وجه اوباسي چې تاسو په الله ﷻ چې ستاسو رب دې ايمان راوړې دې | .................. که تاسو

[1] ترمذی کتاب فضائل القرآن باب فی فضل قراءة آخر سورة الحشر: ٢٩٢٢، احمد: ٢٦/٥.

خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِيْ
چې راوتلي يئ تاسو | د پاره د جهاد | په لار زما كښې | او د پاره د غوښتلو | د رضا زما |
زما په لار كښې د جهاد او زما د رضا حاصلولو د پاره (د خپلو كورونو نه) راوتلي يئ نو هغوئ سره دوستي مكوئ

تُسِرُّوْنَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَآ
تاسو پټ پټ ليږئ | هغوئ ته | پيغمبرانونه د دوستي | حال دا چې زه ښه پوهيږم | په هغه څه |
تاسو ورسره پټه پټه مينه ساتئ | او تاسو چې څه پټوئ او څه ښكاره كوئ زه په هغې باندې ښه

أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنْتُمْ وَمَنْ يَّفْعَلْهُ
چې پټوئ ئې تاسو | او په هغې چې ښكاره كوئ ئې تاسو | او هغه څوك چې اوكړئ دا كار |
پوهه يم | ..........................اوڅوك چې (دبيا د پاره) داسې اوكړي

مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿١﴾ إِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ
ستاسو نه | پس وركه كړې ئې ده | نيغه لار | كه بيا مومي هغوئ تاسو
نو هغه د سمې لارې نه بې لارې شو | ..........................كه د هغوئ درباندې لاس بر شي

يَكُوْنُوْا لَكُمْ أَعْدَآءً وَّيَبْسُطُوْٓا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ
نو شي به | تاسو لره | دشمنان | او اوږده به كړي هغوئ | تاسو ته | لاسونه خپل |
نو ستاسو دښمنان به وي | او خپل لاسونه او خپلې ژبې به درته بدئ باندې راوږدې كړي

وَأَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَوَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ ﴿٢﴾ لَنْ تَنْفَعَكُمْ
اوژبې خپلې | په بدئ سره | او غواړي هغوئ | چې كافران شئ تاسو | هر گز به فائيده اونه رسوي تاسو ته
او هغوئ خو دا غواړي چې تاسو كافران شئ | ..........................د قيامت په ورځ به تاسو ته ستاسو

أَرْحَامُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَفْصِلُ
خپلوي ستاسو | او نه اولاد ستاسو | په ورځ د قيامت | فيصله به اوكړي الله |
رشته داران او اولاد هيڅ فائده درنكړي | ..........................الله ﷻ به ستاسو په مينځ كښې

بَيْنَكُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٣﴾
په منځ ستاسو كښې | او الله | په هغه كارونو | چې كوئ ئې تاسو |
فيصله اوكړي | او الله ﷻ ستاسو كارونه وينې گوري |

**قوله تعالى:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ**

**مشركانو سره دوستي مه كوئ:** د حضرت حاطب بن ابوبلتعه ﷺ باره كښې ددې سورة د شروع آياتونه نازل شوي دي. واقعه داسې وه چه حاطب ﷺ د مهاجرينونه وو. د بدر په جنگ كښې هم هغه د مسلمانانو سره په لښكر كښې شركت كړې وو. د هغه بچي مال دولت هم په مكه كښې وو خو يخپله د قريشو نه نه وو. صرف د حضرت عثمان ﷺ حليف وو په دې وجه هغه ته په مكه كښې امن حاصل وو. اوس دې د رسول الله ﷺ سره په مدينه كښې وو. تردې چه كله اهل مكه وعده ماته كړه رسول الله ﷺ په دوى باندې حمله

کول غوښتل نود حضورﷺ خواهش وو چه هغوی ناڅاپی راګیرکړی دې د پاره چه وینې تونی نه شی او په مکه باندې قبضه اوشی. د دې د پاره نبی کریم ﷺ د الله ﷻ نه دا دعاهم کړې وه چه یا الله ﷻ زمونږ د تیارې خبر دې زمونږ وررسیدوپورې اهل مکه ته اونه رسی.دیخوا نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷡ ته د تیارنی کولو حکم ورکړو. حضرت حاطب ﷜ په دې موقع یوخط د اهل مکه په نوم باندې اولیکلو اود یوې قریشی ښځې په لاس نی اولیګلو په کوم کښې چه د رسول الله ﷺ د دې تیارې او د مسلمانانود حملې خبر لیکلې وو. د هغه اراده د دې نه صرف دا وه چه زما په قریشوباندې څه احسان پاتې شی د څه په وجه چه زما ښځه بچی مال دولت محفوظ شی. د حضورﷺ دعا قبوله شوې وه نو دا ناممکن وه چه قریشوته په څه ذریعه هم د دې ارادې علم شوې وو. دغه شان الله ﷻ خپل رسول اللهﷺ د دې پټ راز نه خبردار کړو او حضورﷺ دې ښځې پسې خپل سواره اولیګل په لارکښې هغه راحصاره کړه او خط نی ترې وصول کړو. دا تفصیلی واقعه په صحیح احادیث کښې پوره شان سره تیره شوې ده.

**د حضرت حاطب﷜ دخط واقعه او درسول کریم ﷺ استاذې:-** مسند احمد کښې حضرت علی﷜ فرمانیلی دی زه حضرت زبیر﷜ او حضرت مقداد﷜ رسول الله ﷺ راوغوښتو او ونی فرمانیل تاسودې ځاې نه ډیر زر روان شئ او چه روضه خاخ ته اورسئ نو تاسوته به په اوښ سوره یوه ښځه ملاوشی چاسره چه یو خط دې تاسو هغه په قبضه کښې واخلئ او دلته ئې راولئ. مونږ دریواړه په اسونوسواره شو اوډیر په تیزئی سره لاړواوکله چه روضه خاخ ته اورسیدونو مونږ هغه په اوښ سوره ښځه اولیده. مونږ هغې ته اوونیل چه کوم خط تاسره دې هغه مونږ ته حواله کړه هغې صفاانکاراوکړو چه ماسره هیڅ خط نشته.مونږ ونیل نه غلطه باندې یې تاسره یقیناً خط شته که ته ئې په رضا خوشحالئی نه راکوې نو مونږ به ستا تالاشی په زور اخلواوخط به درنه اخلو.اوس دې ښځې مخ سروهلو او خپله کونسئی ئی کولاو کړه اود هغې نه ئې هغه پرچه رااوویستله او مونږ ته ئې راکړه. مونږ هغه وخت ددغه ځاې نه واپس شواودحضورﷺ په خدمت کښې مو پیش کړه.په لوستلوپته اولګیدله چه حضرت حاطب﷜ لیکلې وه او ددې ځاې خبر ئې ورکړې وو دحضورﷺ د ارادونه ئې کافران خبر کړې وو. نبی کریم ﷺ اوفرمانیل حاطب! دا کوم حرکت دې؟ حضرت حاطب﷜ اوونیل یارسول اللهﷺ تندی اونه کړئی زما عرض هم واورئی زه په قریشوکښې ملاوشوې ووم پخپله قریشی نه ووم. بیا مې په تاسو باندې ایمان راوړو او تاسوسره مې هجرت اوکړو. څومره چه نور مهاجرین دی د هغوی خپلوان په مکه کښې موجود دی اود هغوی بال بچ په مکه کښې پاتې شو او هغوی د دوی حمایت کوی خوزما هیڅ څوك رشته دار نشته چه زماد بچوحفاظت اوکړی. د دې د پاره ما ونیل چه راشه قریشوسره څه سلوك او احسان اوکړه په څه سره چه هغوی زما حفاظت اوکړی اولکه څنګه چه د نورو د نسبت هغوی سره تعلق دې زما د احسان په وجه به زما هم تعلق پاتې شی. یارسول الله ﷺ ما نه څه کفرکړې اونه د خپل دین نه مرتدشوې یم اونه د اسلام نه پس په کفرباندې راضی شوې یم د دې خط وجه صرف زما د بچو د حفاظت یوه حیله وه. نبی کریم ﷺ اوفرمانیل خلقو حاطب چه تاسو ته کومه واقعه بیانوی هغه تکې په تکې صحیح ده. چه د خپلې ګتې په غرض نی یوه غلطی کړې ده نه چه د مسلمانانود نقصان رسولودپاره اویانه د کافرانو امداد هغه په ورانډې. حضرت فاروق اعظم ﷜ په دې موقع باندې موجودوو اودا د هغه په ورانډې شوې وه. هغه له ډیره غصه ورغله او ونی فرمانیل یارسول اللهﷺ ماته اجازت راکړه چه د دې منافق سټ والوزوم. نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه تاته پته نه ده چه بدری صحابی دې اود بدر والا ته الله

ﷺ اوکتل اوونی فرمائیل چه څه غواړنی عمل کوني ماتاسو اوبښلي.دارِوایت داحادیثو په نورو کتابونو کښې هم دي.[1]

صحیح بخاری کتاب المغازی کښې دانورهم دی چه بیاالله ﷻداسورة نازل کړو[2]اوپه کتاب التفسیر کښې دی چه حضرت عمروؓ اوفرمائیل دې باره کښې دا آیت﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِي سَبِيلِي وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِي تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ﴾ نازل شوې خوامام بخاری ته شك دې چه د آیت د نازلیدلوبیان د حضرت عمروؓ دې یا په حدیث کښې دی. امام علی بن مدینی رحمه الله فرمائی چه د حضرت سفیان ؓ نه تپوس اوشو چه دا آیت هم په دې کښې نازل شوې؟ نوسفیان ؓ اوفرمائیل چه دا د خلقو په خبرو کښې دی. ما دا د حضرت عمروؓ نه حفظ کړې اویوحرف مې هم نه دې پریښې اوزما دا خیال دې چه ما نه بغیردا بل چا حفظ کړې هم نه وو.[3] د بخاری اومسلم په یوروایت کښې د حضرت مقدادؓ د نوم په بدله کښې د حضرت ابومرثدؓ نوم دې. په دې کښې دا هم دی چه حضورﷺ دا هم خودلې وو چه د دې ښځې سره د حضرت حاطب ؓ خط دې. د دې ښځې سورلی کینولې شی او تالاشی اخستو باندې هیڅ پرچه نه راوخې چه آخر مونږ عاجز راغلو او چرته نه پرچه ملاونه شوه نومونږ دې ښځې ته اووئیل چه په دې کښې خو بالکل شك نشته چه پرچه هم تاسره ده سره ددې که مونږ ته نه ملاویږی خو تاسره خامخا پرچه شته اودا ناممکن خبره ده چه د رسول الله ﷺ خبره غلطه وی اوس که ته ئی نه راکوې نومونږ به تانه کپړې کوزې کړو او لټوو به دې. کله چه د هغې پوره یقین راغلو چه دوی بغیر د اخستونه نه صبریږی نوهغې خپل سرکولاوکړو اود خپلو ویښتونه ئې پرچه رااویستله او ورئې کړه.مونږ دا واخسته او واپس د نبی کریمﷺ په خدمت کښې حاضرشو. حضرت عمرؓداواقعه کتلو اوریدلو باندې اوفرمائیل هغه د الله ﷻ اود هغه د رسولﷺ اود مسلمانانوخیانت کړې ماته د ده د سټ وهلو اجازت راکړه. حضورﷺ د حضرت حاطب ؓ نه تپوس اوکړو او هغه دا پورته بیان شوې جواب ورکړو. رسول اللهﷺ ټولوته اوفرمائیل چه دد ته هیڅ هم مه وائې اوحضرت عمر ؓ ته ئی هم هغه اوفرمائیل کوم چه پورته تیرشو چه دا بدری صحابی دې د چا د پاره چه الله ﷻ جنت واجب کړې دې. د څه په اوریدو چه حضرت عمرؓ په ژړاشو او وئی فرمائیل هم الله ﷻ ته اود هغه رسول ﷺ ته پوره علم دې[4]دا حدیث په دې الفاظوسره صحیح بخاری کتاب المغازی کښې د غزوه بدر په ذکر کښې دې. په یو بل روایت کښې دی چه حضورﷺ د خپل مکې تلواراده د خپلو یوڅورازدارانو کبار صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ښکاره کړې وه په کوموکښې چه حضرت حاطبؓ هم وو باقی په عام توګه مشهوره وه چه خیبرته خو. په دې روایت کښې داهم دی چه کله مونږ خط په ټول سامان کښې اولټولواو ملاونه شونو حضرت ابومرثدؓ اووئیل چه کیدې شی دې سره څه پرچه نه وی. په دې باندې حضرت علیؓ اوفرمائیل چه ناممکن دی نه رسول الله ﷺ دروغ ونیلې شی اونه مونږ دروغ ونیلی دی. کله چه مونږ هغه اوویروله نو هغې مونږ ته اووییل چه د الله ﷻ نه نه ویریږئی؟ آیاتاسومسلمانان نه یئی؟ په یوروایت کښې دی چه هغې پرچه د خپل بدن نه

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الجاسوس والتجسس:۳۰۰۷، صحیح مسلم:۲٤۹٤، ابوداؤد:۲٦٥۰، ترمذی:3305، مسندابویعلی:۳۹٤، بیهقی:۱۳٦/۹، دلائل النبوة للبیهقی.۱۷/٥، احمد:۷۹/۱، ابن حبان:٦٤۹۹.

[2] صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الفتح:٤۲۷٤.

[3] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الممتحنة باب ﴿لاتتخذوا عدوی وعدوکم اولیاء﴾:٤۸۹۰.

[4] صحیح بخاری کتاب المغازی باب فضل من شهد بدر:۳۹۸۳، صحیح مسلم:۲٤۹٤، ابوداؤد:۲٦٥۱، احمد: ۱۰٥/۱، مسندابویعلی:۳۹۷، ابن حبان: ۷۱۱۹.

راوويسته. د حضرت عمر ﷺ په فرمان كښې دا هم دى چه دې په بدركښې خو موجود وو خو وعده خلافى ئى اوكړه اودښمنانوته ئى زمونږ خبروركړو. يوبل روايت كښې دى چه دا ښځه د قبيله مزينه ښځه وه. بعضې وائى چه د دې نوم ساره وواود عبدالمطلب آزاده كړې شوې وينځه وه. حضرت حاطب ﷺ هغې ته څه وركړې وو اوهغې خط په خپل ويښتوكښې په كمسنى كښې تاوكړې وو. نبى كريم ﷺ خپلو سورو ته فرمائيلى وو چه هغې سره د حاطب ﷺ د لاس د دې مضمون خط دې. د آسمان نه دا خبر حضور ﷺ له راغلې وو. دبنوابى احمد په حليفه كښې دابنځه نيولې شوې وه. دې ښځې ونيلې ووچه تاسو مخ واړونى زه ئى راوباسم.دوى مخ واړولو او هغې رااوويستلو ورنى كړو. په دې روايت كښې دحضرت حاطب ﷺ په جواب كښې دا هم دى چه په الله ﷻ قسم زه په الله اود هغه په رسول ﷺ باندې ايمان لرم زما په ايمان كښې هيڅ بدلون وغيره نه دې راغلې د دې د پاره هم د دې سورة آياتونه د حضرت ابراهيم ﷺ د قصه د ختميدوپورې نازل شو. په يوبل روايت كښې دى چه دې ښځې ته د مزدورې دپاره حضرت حاطب ﷺ لس درهم وركړې ووا وحضور ﷺ د دې خط د وصول كولود پاره حضرت عمر ﷺ او حضرت على ﷺ ليگلې ووا وجحفه كښې ملاوشوې وه.د دې آياتونو مطلب دادې چه اې مسلمانانودمشركانو اوكافرانو چه الله ﷻ اورسول الله ﷺ اومؤمنانوسره جنگيدونكى دى،د چا زړونه چه ستاسود دښمنئى نه ډك دى تاسوله هيڅ كله جائز نه دى چه هغوى سره دوستى تعلق تګ راتګ او خپلولى اوساتئى. تاسو ته د دې خلاف حكم دركړې شوې دې. ارشاد دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ اې ايماندارانو يهوديانو اونصاراو سره دوستى مه ساتئى .خو هغوى په خپل منيځ كښې د يوبل دوستان دى تاسو كښې چه څوك هم هغوى سره تعلق او مينه كوى هغه به هم د دوى نه وى. په دې كښې خومره په غصې سره منع والې فرمائيلې شوې دې. بل ځائ ارشاد دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ دِينَكُمۡ هُزُوٗا وَلَعِبٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ مِن قَبۡلِكُمۡ وَٱلۡكُفَّارَ أَوۡلِيَآءَۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ﴾ مسلمانانو اهل كتاب او كافرانو سره دوستى مه كوئ څوك چه ستاسو دين پورې ټوقې كوى اودا لوبې ټوقې ګڼړى. كه په تاسوكښې ايمان وى نود الله ﷻ نه اوويريږئى. يوبل ځائ كښې ارشاد دې مسلمانانو! مسلمانان پريخودوسره د كافرانو دوستى مه كوئى، تاسودا غواړئى چه په خپل خان باندې د الله ﷻ ښكاره الزام ثابت كړئى.

يو بل ځائ كښې ارشاد دې چه مسلمانانوله پكار دى چه د خپلونه بغيردې كافرانوسره دوستانه نه كوى .څوك چه داسې اوكړى هغه دالله ﷻ د طرف نه په هيڅ څيز كښې نه دې اوكه د وخت تيرولو اود خان دبچ كولو د پاره وى نو هغه بله خبره ده. الله ﷻ تاسو د خپل خان نه ويروى. هم په دې وجه حضرت رسول كريم ﷺ د حضرت حاطب ﷺ عذرقبول كړوچه د خپل مال او اولاد د بچ كولوپه خاطرداكارد هغه نه شوې وو.

**د رسول كريم ﷺ مثالونه.** مسنداحمد كښې دى چه زمونږ په وړاندې رسول الله ﷺ ډير مثالونه بيان كړل. يودې پنځه نهه يولس او بيا په دې كښې په تفصيل سره صرف يوبيان باقى كړوټول ئى پريخودل. وئى فرمائيل يوضعيف مسكين قوم وو په هغوى باندې يوزورآور ظالم قوم حمله اوكړه خوالله ﷻ د دې كمزورو امداد اوكړواو دوى له ئى په خپلو دښمنانوباندې غلبه وركړه. غلبه راتلوسره په هغوى كښې سركشى راغله او په دوى باندې ئى ظلمونه شروع كړه په دې باندې الله ﷻ د هغوى نه د هميشه د پاره ناراض شو[1]بيا مسلمانانوته خبردارې وركوى چه تاسو دې كافرانوسره اود دين اسلام دښمنانوسره ولې مينه اومحبت ساتئى؟سره د دې چه دوى تاسو سره د بدسلوكئى يوه موقع باندې هم څه كمې نه

[1] احمد:٥/٤٠٧. مجمع الزوائد:٥/٢٣٥.

كوي. ايا دا تازه واقعه هم ستاسود زړونونه اخواشوه چه هغوى تاسو بلكه پخپله رسول الله ﷺ په زور د وطن نه رابهر كړلو. اود دې بل څه وجه نه وه بغير ستاسود رسول الله ﷺ دا حكم منل په هغوى باندې ډيرگران تيريدل لكه چه بل ځاىٔ كښې دى ﴿وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ﴾ يعنى مومنانوسره صرف په دې وجه مخاصمت او دښمنى ده چه هغوى په لوىٔ الله ﷻ باندې ايمان لرى. بل ځاىٔ كښې ارشاد دې چه خلق صرف په دې وجه ناحقه د وطن نه اوويستلې شوچه هغوى وئيل زمونږ رب الله دې بيا فرمائى چه كه تاسو رښتيازما د لارې د جهادد پاره وتلې يئى اوزما د رضاغوښتونكى يئى نو هيڅ كله دې كافرانوسره چه زما او ستاسو دښمنان دى زما دين ته او ستاسو مالونوته نقصان رسوى دوستانې مه پيدا كوئى. دا څومره غلطه خبره ده چه تاسو پټ په پټه دوى سره دوستانه اوساتئى؟ آيادا پټوالې دالله ﷻ نه هم پټيدې شى؟ځوك چه د ظاهراو باطن پيژندونكې دې د زړونو رازونه او د نفسونو وسوسې هم د هغه په وړاندې ښكاره دى. نو بس واورئى چه ځوك هم دوى سره مينه محبت ساتى هغه د نيغې لار نه اوړيدلې دې. تاسو نه گورئى چه كه د دې كافرانو وس رسيدې اودوى ته يوه موقع ملاو شى نو نه به په خپلو ښو لاسونو باندې تاسو ته د نقصان رسولونه منع شى اونه به د بدې وينا نه خپلې ژبې بند كړې څه چه د هغوى نه ممكن وى هغه به اوكړى بلكه ټول كوششونه به په دې كښې اوكړى چه تاسو هم د خپل خان په شان كافران كړى. اود هغوى د دننه او بهر دښمننى حال تاسو ته ښه معلوم دې نو بياڅه تياره ده؟ چه تاسو خپل دښمنان دوستان گڼړئى او په خپله لاركښې پخپله ازغې كرئى. غرض دا دې چه مسلمانانوته په كافرانو باندې باوركولو اوهغوى سره ژور تعلقات ساتلو اود زړه مينه لرلونه منع كولې شى او هغه خبرې وريادولې شى چه دوى په جداوالى تيار كړې. ستاسو خپلولنى او رشته دارئى به ستاسو د پارد د الله ﷻ په وړاندې په هيڅ كار رانه شى. كه تاسو الله ﷻ ناراضه كوئى اودوى خوشحالوئى چه تاسو ته به گټه وى او نقصان به لرې شى نو دا ستاسو خامخيالى ده نه به د الله ﷻ د طرف نه څوك راتلونكې نقصان اخواكړې شى اونه به د هغه وركړې شوې نفع څوك بنده كړې شى خپلوانوسره كه چا دهغوى د كفر په وجه تعلق اوساتلو هغه بربادشو. نولكه رشته دارڅنگه هم وى هيڅ گټه نه ده.مسنداحمدكښې دى چه يوسړى درسول الله ﷺ نه تپوس اوكړويارسول الله ﷺ!زما پلارچرته دې هغوى ﷺ اوفرمائيل دوزخ كښې. كله چه هغه لاړو نورسول الله ﷺ راوغوښتو او وئى فرمائيل واوره زما پلاراوستا پلاردواړه دوزخيان دى[1] دا حديث په صحيح مسلم كښې او سنن ابوداوٗدكښې هم دى.

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ | أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ | فِيْ إِبْرٰهِيْمَ | وَالَّذِيْنَ

بيشكه ده دپاره ستاسو | نمونه ښه | په طريقه دبراهيم عليه السلام كښې | او دهغه كسانو كښې

اوتاسو دپاره خو دابراهيم ﷺ اودهغوىٔ دملگرو په (ژوند)كښې يوه اوچته نمونه (موجوده) ده| كله چې هغوى خپل

مَعَهٗ | إِذْ | قَالُوْا | لِقَوْمِهِمْ | إِنَّا بُرَءٰٓؤُا

چې دهغه سره ملگرى وو| كله چې | اووئيل هغوىٔ | قوم خپل ته | بيشكه مونږه بې زاره يو |

قوم ته اووئيل | ........................................................ چې مونږ ستاسو نه

مِنْكُمْ | وَمِمَّا | تَعْبُدُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | كَفَرْنَا

ستاسو نه | او دهغه معبودانونه | چې تاسو ئې عبادت كوىٔ | ماسوا دالله نه | كفر اوكړو مونږه |

بيزاره يو| اودهغې معبودانو نه چې تاسونې دالله ﷻ نه سوا عبادت كوىٔ| مونږ

[1]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب بيان ان من مات على الكفرفهول النار:۲۰۳، ابوداوٗد:۴۷۱۸، احمد:۲۶۸/۳، ابن حبان:۵۷۸.

بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ

په تاسو باندې | او ښکاره شو | په منځ زمونږ | او په منځ ستاسو کښې | دشمني | او بغض |

تاسو نه منکر يو | اوزمونږ اوستاسو په مينځ کښې دهميشه دپاره دښمني اوبغض ښکاره شوې دې

أَبَدًا حَتّٰى تُؤْمِنُوا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ إِلَّا قَوْلَ إِبْرٰهِيمَ

هميشه | تر هغې پورې | چې تاسو ايمان راوړئ | په الله باندې | يوازې | مګر نه وينا | دابراهيم |

تر څو چې تاسو په يو الله ﷻ باندې ايمان رانه وړئ | ............... البته ابراهيم ﷺ

لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَآ أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ

پلار خپل ته | چې خامخا به زهٔ ښښنه غوارم | دپاره ستا | او نهٔ لرم اختيار زهٔ | دپاره ستا | دالله نه |

خپل پلار ته داوئيلي ووا چې زه ستا دپاره ښښني دعا کوم| او زما دالله ﷻ په وړاندې

مِن شَيْءٍ ط رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا

دڅه څيز دحاصلولو | اے ربه زمونږه | په تاباندې ابروسه اوکړه مونږه |او خاص تاته |رجوع اوکړه مونږه

هيڅ اختيار نشته |ائې زمونږه ربه ، مونږ په تاباندې بهروسه کوو| اومونږ هم ستا طرفته رجوع کوو

وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴿٤﴾ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ

او خاص تاته | واپس درتلل دی | اے ربه زمونږه | مهٔ جوړوه مونږه | يوه فتنه | دپاره دهغه کسانو

اوهم ستا طرفته بيرته تګ دې | ائې زمونږ ه ربه ، مونږ د کافرو دپاره امتحان مه جوړه |

كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ج إِنَّكَ أَنتَ

چې کفر ئې کړې دې | او معافي اوکړه مونږ ته دګناهونو | اے ربه زمونږه | بيشکه تهٔ | هم تهٔ

............................او زمونږ ګناهونه معاف کړه| ائې زمونږه ربه بيشکه ته

الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٥﴾ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ

غالب ئې | او دحکمت خاوند ئې | بيشکه ده | ستاسو دپاره | په (ژوند) ددوئ کښې | نمونه

زبردست او صاحب د حکمت يې | د دغې خلقو په وينا کښې ستاسو دپاره بهترينه

حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ط وَمَن يَتَوَلَّ

ښه | دپاره دهغه چا | چې وی | چې اميد لرى دالله | او دورځې داخرت | او هغه څوک چې مخ ګرزوی

نمونه ده | خود هغه چا دپاره چې الله ته د ورتلو اوداخرت دورځې عقيده ساتي |اوڅوک چې مخ واړوی

فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦﴾ ع

پس بيشکه الله | هم هغه بې حاجته دې| ستائيلې شوې دې |

نو الله ﷻ (خوبالکل) بې پرواه اوستائيلي شوې دې|

قوله تعالى:- قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ
حضرت ابراهيم ﷺ يوه بهترينه نمونه:-الله تبارك وتعالیٰ خپلو مؤمنانو بندیګانوته دکافرانو سره تعلقات او دوستی نه کولو هدایت فرمائی اود هغوی په وړاندې د خپل خلیل اودهغه دملګرو نمونه پیش کوی چه هغه په ښکاره باندې خپل رشته دارو خاندان او د قوم خلقو ته فرمائیلې وو چه مونږ تاسونه او د چا چه تاسو عبادت کوئې ویزاره خلاص او خان له اوجدایو. مونږ ستاسود دین او طریقې نه نفرت کوو. تر کوم وخته پورې چه تاسو په دې طریقه او دې مذهب یئی مونږ خپل دښمن ګڼړئی. دا ناممکن ده چه د رور ولئی په وجه به مونږ ستاسود کفر باوجود د دې رورولئی او دوستئی تعلقات قائم اوساتو. اودا یوجدا خبره ده چه د الله ﷻ تاسوته هدایت درنصیب کړی اوتاسو په هغه الله وحده لاشریك له باندې ایمان راوړئی د هغه توحیداومنئی اوهم د هغه یوذات عبادت شروع کړئی او چه کوم کوم تاسو د الله ﷻ شریك اوملګرې ګرځولی دې اود کومو کوموچه تاسو په عبادت کښې اخته یئی هغه ټول پرېږدئی خپله طریقه اوفکر اود شرك لار نه اخوا شئی نو بیا بې شکه زمونږ رونړه یئی، زمونږ خپلوان یئی ګنی په مونږ او تاسوکښې هیڅ اتفاق نشته. مونږ تاسو نه او تاسو مونږ نه جدا یئی.

قوله تعالی:- إِلَّا قَوْلَ إِبْرٰهِيمَ لِأَبِيهِ
او داخبره یادساتئی چه حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ د خپل پلارسره کومه د استغفار وعده کړې وه او بیائی هغه پوره کړه په دې کښې د هغوی اقتداء نشته ځکه چه دا استغفار ترهغه وخته پورې ووترکوم وخت پورې د خپل پلار اود الله ﷻ دښمنی په هغه باندې په وضاحت سره ښکاره شوې نه وه. کله چه هغه ته په یقینی توګه د پلاردالله ﷻ د دښمنئی پته اولګیده نود هغه نه ئی صفاویزاری ښکاره کړه.بعضې مؤمنانوبه د خپل مشرك موریلاردمغفرت دعاګانې کولې اوبه سندکښې به ئی د حضرت ابراهیم ﷺ د خپل پلار د پاره د استغفار غوښتل پیش کول په هغې باندې الله ﷻ خپل فرمان ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ﴾ پوره دوه آیاتونه نازل کړل دلته ئی هم د ابراهیم ﷺ طریقه کښې دهغه استثنا اوکړه چه په دې خبره کښې د هغه پیروی کول ستاسو د پاره منع دی اود حضرت ابراهیم ﷺ ددې استغفار تفصیل ئې هم اوکړواود هغې خاص سبب او خاص وخت ئې هم بیان اوفرمائیلو حضرت ابن عباس ﷺ مجاهد رحمه الله قتاده رحمه الله مقاتل بن حیان رحمه الله او ضحاك رحمه الله وغیره هم دا مطلب بیان کړې دې.[1]

قوله تعالی:- رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ۝
دابراهیم علیه السلام دعاء:-بیاارشادکولې شی چه د قوم نه بې زاری کوی نواوس د رب په رحمت کښې پټیږی اودالله ﷻ په دربار کښې په عاجزئی اوانکسارئی سره عرض کوی اې الله ﷻ په ټولو کارونوکښې زمونږ یقین او باور هم ستا په پاك ذات باندې دې. مونږ خپل ټول کارونه تاته سپارو. هم ستا طرف ته رجوع او رغبت کوو او په آخرت کښې هم مونږ ستا طرف ته واپس کیدونکی یو. بیا فرمائی اې الله ته مونږ د کافرانود پاره فتنه مه جوړه وه یعنی داسې نه وی چه دوی په مونږ غالب راشی او مونږ په مصیبت کښې راګیرکړی. دغه شان داسې هم نه وی چه ستا د طرف نه په مونږ باندې سختی او عذاب نازل شی اوهغه د دوی او زمونږ د خوئیدلوسبب جوړشی،که دوی په حق وې نو الله ﷻ به ولې عذابول؟ که دوی چرته په یومیدان کښې ګټه هم اوکړه نودا به هم د دې د پاره د فتنه سبب وی چه مونږ ځکه غالب راغلوچه هم مونږ په حق یو. دغه شان که چرې دوی په مونږ باندې برې بیاموندونومونږ ته

[1] الطبری:۲۳/ ٤١٨.

تکلیف رسولورسولو باندې چرته ستا د دین نه وانړوی. بیا دا دعاکوی چه یاالله زمونږ گناهونه هم اوبښه او زمونږ پرده هم اوساته اومونږ معاف کړه. ته عزیزیې ستاپه حضورکښې پناه اخستونکې نامراده نه گرځوی ستادروازه ټکونکې خالی لاس نه واپس کیږی.ته دخپل شریعت په تقررکښې خپل اقوالو اوافعالوکښې قضا اوقدرمقررولوکښې حکمت والاییې ستایوکارهم دحکمت نه خالی نه وی

قوله تعالى:- لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ

بیاد تاکیدپه توگه هم هغه اوله خبره بیا راگرځوی چه په دې کښې ستاسود پاره نیکه نمونه ده. څوك هم چه په الله ﷻ باندې اود قیامت د راتلوپه حقانیت باندې ایمان لری دهغوی په اقتداء کښې قدم وړاندې کول پکار دی.اوڅوك چه د الله ﷻ د احکامونه مخ اړوی هغه دې پوهه شی چه الله ﷻ د هغه نه بې پرواه دې هغه د حمداوثناء قابل دې. مخلوق د هغه خالق په تعریف کښې اخته دې. لکه چه بل ځای کښې ارشادربانی دې ﴿إِن تَكْفُرُوا أَنتُمْ وَمَن فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ﴾ که چرې تاسو اوپه مځ د زمکه ټول خلق په کفراود الله ﷻ په نه منلوباندې راشی نود الله ﷻ هیڅ هم نه شی خرابولې. الله ﷻ د ټولونه غنی اودټولونه بې نیازه اودټولونه بې پرواه اودهغه تعریف کړې شوېدې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه غنی هغه ته وائی چه په خپله غناء کښې پوره وی. هم د الله ﷻ دا صفت دې چه هغه د هرقسم نه بې پرواه او بې نیازه دې. د بل چاذات داسې نشته.دهغه سره هیڅ څوك برابرنشته اونه د هغه په شان څوك شته. هغه پاك دې یو دې په ټولو حاکم په ټولو غالب د ټولوبادشاه دې. حمید دې یعنی مخلوق د هغه ستاینه کوی. په خپلو ټولو اقوالوکښې ټولو افعالو کښې هغه د ستاینې او تعریفونووالا دې. دهغه نه سوا بل څوك د عبادت خاوند نشته د هغه نه علاوه بل څوك پالونکې نشته. رب هم هغه دې معبود هم هغه دی.

| | | |
|---|---|---|
| عَسَى اللَّهُ | أَن يَجْعَلَ | |
| نزدې دی الله | چی پیدا کړی | |
| دا څه عجیبه نه ده \| چې الله ﷻ | | |

| بَيْنَكُمْ | وَبَيْنَ الَّذِينَ | عَادَيْتُم | مِّنْهُم | مَّوَدَّةً ط |
|---|---|---|---|---|
| په منځ ستاسو کښې | او په منځ دهغه کسانو کښې | چې دشمنی لرئ تاسو | دهغوئ سره | مینه |
| ستاسو اود هغې کسانو په مینځ کښې محبت پیدا کړی \| چې (ن) ورسره ستاسو دشمنی ده | | | | |

| وَاللَّهُ | قَدِيرٌ ط | وَاللَّهُ | غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ | لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ | عَنِ الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او الله | قادر دې | او الله | بښونکې مهربانه دې | نه منع کوی تاسو لره الله | د هغه کسانونه |
| اوالله ﷻ قادر دې او الله ﷻ بښونکې زیات مهربان دې \| الله ﷻ تاسودهغه چا نه نه منع کوی | | | | | |

| لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ | فِي الدِّينِ | وَلَمْ يُخْرِجُوكُم | مِّن دِيَارِكُمْ |
|---|---|---|---|
| چې جنگ نې اونه کړو ستاسو سره | په دین کښې | اووې نه ویستلې تاسو | د کورونو ستاسو نه |
| چې ددین په باره کښې نې تاسو سره جنگ نه وی کړې\| اونه هغوئ تاسود خپلو کورونو نه ویستلی یئ | | | |

| أَن تَبَرُّوهُمْ | وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ ط | إِنَّ اللَّهَ | يُحِبُّ | الْمُقْسِطِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې تاسو نیکی اوکړئ | او انصاف اوکړئ دهغوئ سره | بیشکه الله | خوښوی | انصاف کونکی خلق |
| چې تاسو هغوئ سره ښه سلوک کوئ او انصاف ورسره کوئ \|بیشکه انصاف کونکی کسان دالله ﷻ خوښ وی | | | | |

إِنَّمَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ | عَنِ الَّذِيْنَ | قٰتَلُوْكُمْ | فِي الدِّيْنِ

بیشکه منع کوی تاسو لره الله | دهغه کسانونه | چې جنګ ئي اوکړو ستاسو سره | په دین کښې |

الله ﷻ خو تاسو دهغه خلقو د دوستئ نه منع کوی | چې ددین په باب کښې درسره جنګیدلی دی

وَأَخْرَجُوْكُمْ | مِّنْ دِيَارِكُمْ | وَظٰهَرُوْا | عَلٰٓى إِخْرَاجِكُمْ

اووې ایستلئ تاسو | دکورونو ستاسو نه | او امداد ئي اوکړو دیوبل سره | په ایستلو ستاسو باندې|

او هغوئ تاسو دخپلو کورونو نه ویستلی یئ | اوستاسو په ویستلو کښې ئې دیوبل

أَنْ تَوَلَّوْهُمْ | وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ | فَأُولٰٓئِكَ

چې تاسو دوستی اوکړئ دهغوئ سره | او څوک چې دوستی کوی دهغوئ سره | نو هم هغوئ |

سره مدد کړې دې | او څوک چې دغې خلقو سره دوستی کوی | نو هم دغه خلق

هُمُ الظّٰلِمُوْنَ۝

ظالمان دی |

ظالمان دی |

**قوله تعالي:- عَسَى اللّٰهُ أَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ**

**هدایت د الله تعالی په لاس کښې دې:-** دکافرانوسره د مینې کولو ممانعت اودهغوی د بغض او دښمنئ ساتلو بیان نه پس اوس ارشاد کیږی چه داسې ممکن دی چه هم اوس په تاسوکښې اوپه هغوی کښې یو شان والې او یوځائ کول اوکړی. دبغض نفرت او جداوالی نه پس مینه محبت اوالفت پیداکړی. کوم یوڅیز دې چه په هغې الله ﷻ قادر نه دې. هغه یوشان او مختلف څیزونه راجمع کولې شی. د دښمنئ او بدبختئ نه پس په زړونوکښې مینه او محبت پیداکول د هغه په لاس کښې دی. لکه یوبل ځائ کښې چه په انصاروباندې دخپل نعمت بیان فرمائیلوسره ارشاد کیږی ﴿وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖٓ إِخْوَانًا ۚ وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ۗ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ۝﴾ په تاسو چه د الله نعمت دې یادساتئ چه ستاسود زړه دښمنی هغه ستاسو د زړه په مینه بدله کړه اوتاسوداسې شوئی لکه دیوې مور رونړه.تاسو د اُورغاړې له رسیدلې وئی خو هغه تاسو د هغه ځائ نه بچ کړئ. نبی کریم ﷺ انصارو ته اوفرمائیل آیا زه تاسو د ګمراهئی په حالت کښې نه ګورم؟بیا الله ﷻ زما په وجه تاسو ته هدایت درکړو تاسو ګدودونی نوالله ﷻ زما په وجه تاسو رایوځائ کړئی(١) په قرآن کریم کښې دی ﴿ هُوَ الَّذِيْٓ أَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ۝ وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ۗ لَوْ أَنْفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيْعًا مَّآ أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۗ إِنَّهٗ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۝﴾ الله ﷻ په خپل امدادسره مؤمنان تاسره کړه اوای نبی ستا امداد ئی اوکړو او په ایماندارانوکښې ئی هغه مینه محبت اویووالې پیداکړو که د مخ د زمکې دولت خرچ کړې او هغه یوځائ والی اویوشان والې کول اوغواړې نو نه شې کولې. دا مینه د الله ﷻ د طرف نه وه چه عزیز او حکیم دې. په یوحدیث شریف کښې دی چه د دوستانود دوستئ په وخت

(١) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الطائف:٤٣٣٠، صحیح مسلم:١٠٦١.

کښې همداخبره وړاندې کړې ده چه څه عجیبه ده چه ده سره یووخت کښې دښمنی پیداشی او په دښمنۍ کښې هم د حدنه مه تیرېږئ هیڅ خبرنشته چه کله به دوستی اوشی.[۱]

﴿وقد يجمع الله الشتيتين بعدما يظنان كل الظن ان لا تلاقيا﴾

یعنی په داسې دوودښمنانو کښې هم چه یود یونه جداشی اودغه شان چه په زړه کښې نی غوټه کړې وی چه د همیشه د پاره به ده سره نه ملاویږی. الله ﷻ اتفاق او اتحاد پیداکوی اوداسې یوکیږی چه لکه دوی هډو دوه وو نه. الله ﷻ ښښونکې اومهربان دې.کافرچه کله توبه اوکړی الله ﷻ به نی قبوله کړی کله چه هغه دالله ﷻ طرف ته تیښتې شی هغه به دې په خپل سوری کښې واخلی.که هرڅنګه ګناه وی اوکه هرڅنګه ګناهګاروی اخوا هغه د مالك طرف ته تیښ شو اودیخواد هغه درحمت غیږ کولاوشوه. حضرت مقاتل بن حیان رحمه الله فرمائی چه دا آیت د ابوسفیان رضی الله عنه صخربن حرب باره کښې نازل شوې دې. د هغه لور بی بی سره رسول الله ﷺ نکاح کړې وه اوهم دغه نکاح کول د محبت سبب جوړشوې وو. خودا قول څه زړه ته نیزدې نه لګی ځکه چه د رسول الله ﷺ دا نکاح دمکې د فتح نه وړاندې شوې وه اود حضرت ابو سفیان رضی الله عنه اسلام راوړل په اتفاق سره د مکې د فتح په شپه شوې وو. بلکه دې نه خو ښه توجیه هغه ده کومه چه په ابن ابی حاتم کښې روایت شوې ده چه رسول الله ﷺ حضرت ابوسفیان رضی الله عنه صخربن حرب رضی الله عنه د یوباغ دمیوو عامل جوړکړې وو. د حضور ﷺ دوفات نه پس دې راروان وو چه په لارکښې ورته ذوالخمار مرتد ملاوشو.هغه ده سره جنګ اوکړونو دمرتدینو سره د ټولو نه اول جنګ کونکې مجاهدفی الدین هم دې وو.دحضرت ابن شهاب رضی الله عنه قول دې چه هم د ده باره کښې دا آیت﴿عَسَى اللَّهُ أَنْ يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِينَ عَادَيْتُمْ مِنْهُمْ مَوَدَّةً ۚ وَاللَّهُ قَدِيرٌ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ نازل شوې.

صحیح مسلم کښې حدیث شریف دې چه حضرت ابوسفیان رضی الله عنه داسلام قبلولونه پس نبی کریم ﷺ ته اووئیل یارسول الله ﷺ زمایودرې درخواستونه دی که اجازت وی نوعرض کړم. حضور ﷺ اوفرمائیل وایه.هغه وئیل چه اول خوداماته اجازت راکړه چه څنګه مې دکفرپه زمانه کښې دمسلمانانوسره مسلسل جنګ کولو د اسلام نه پس دکافرانوسره برابرجنګ جاری اوساتم. نبی کریم ﷺ دا منظورکړه. بیانی اووئیل زما خوئ معاویه رضی الله عنه خپل منشی جوړکړه. نبی کریم ﷺ دا هم منظورکړه (په دې چه کوم کلام دې هغه وړاندې تیرشوې) او زما بهترینه عرب لور ام حبیبه رضی الله عنها په خپله نکاح کښې قبوله کړه. نبی کریم ﷺ داهم قبوله کړه.[۲] (په دې هم کلام مخکښې تیرشوې دې)بیا ارشاد فرمائی چه کومو کافرانوتاسره مذهبی جنګ نه دې کړې نه نی ته دوطن نه ویستی یئ لکه څنګه چه ښځو او کمزوروخلقو وغیره سره په سلوك احسان عدل اوانصاف کولونه الله ﷻ تاسو منع کوی بلکه هغه خو داسې انصاف کونکوخلقوسره محبت کوی. بخاری او مسلم کښې دی حضرت اسماء بنت ابوبکر رضی الله عنهما له دهغې مشرکه مور راغله.داد هغه زمانې ذکر دې په کومه کښې چه د حضور ﷺ اود مکې مشرکانو سره صلح شوې وه نو حضرت اسماء رضی الله عنها د حضور ﷺ په خدمت کښې د مسئلې تپوس کوی زما مور راغلې ده او تراوسه پورې هغه د دې دین نه جدا ده نو زما د پاره جائزدی چه هغې سره ښه سلوك اوکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه اولاړه شه اوهغې سره صله رحمی اوکړه.[۳] دمسنداحمد په دې روایت کښې دی چه دهغې نوم قبیله وو دې به د مکې نه کوچ غوړی او پنیرد تحفه په توګه راوړلو. خو حضرت اسماء رضی الله عنها خو نه خپله مشرکه مور خپل کورته پریخوده او نه نی تحفه او هدیه قبوله کړه. نو بیا نی د

[۱]) ترمذی کتاب البروالصلة باب ماجاء فی الاقتصاد فی الحب والبغض، ۱۹۹۷وسنده حسن.
[۲]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب من فضائل ابی سفیان صخر بن حرب رضی الله عنه:۲۵۰۱.
[۳]) صحیح بخاری کتاب الادب باب صلة المرأة امها ولها زوج: ۵۹۷۹، صحیح مسلم:۱۰۰۳، ابوداؤد:۱۶۶۸، مسندالطیالسی:۱۶۴۳، احمد:۳۴۷/۶، ابن حبان:۴۵۲.

حضور ﷺ نه تپوس اوکړو نو په اجازت سره ئې خپل کور کښې هم پریخوده اوهدیه ئې هم قبوله کړه.(۱) دبزار په حدیث کښې د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها مورنوم هم دې خودا صحیح نه ده ځکه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نوم ام رومان رضي الله عنها وو او هغې اسلام راوړلې وو او هجرت کولو سره مدینې ته راغلې وه.اود حضرت اسماء رضي الله عنها د مورنوم ام رومان نه وو بلکه دهغې نوم په پورتنی حدیث کښې قبیله ذکر دې. والله اعلم.

د (مُقْسِطِيْنَ) تفسیر په سورة حجرات کښې تیرشوې دې کوم چه الله ﷻ خوښوی. په حدیث شریف کښې دی (مُقْسِطِيْنَ)هغه خلق دی چه په عدل سره حکم کوی.که هغه دخپل بال بچ معامله وی که د ماتحتانو دا خلق به د الله ﷻ د عرش ښی طرف ته د نور په منبرناست وی. (۲) بیافرمائی چه د الله ﷻ منع والې خو دهغه خلقو دوستئی نه دې کوم چه ستاسو په دښمنئی کښې ستاسو مقابلې له راوتلې ولاړدې تاسو سره صرف ستاسو د مذهب په وجه جنګ جګړې کوی او تاسو ئې د خپلو ښکارونونه اوویستلې ستاسو د دښمنانو امداد ئې اوکړو. بیامشرکانو سره اتحاد اواتفاق دوستی او یووالې لرونکی ویروی او د هغوی ګناه ښائی چه داسې کونکی ظالمان ګناهګاران دی او یوبل ځائې کښې فرمائی یهودیانواو نصرانیانوسره دوستی کونکی زمونږ په نیز هم د هغوی په شان دی.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوٓاْ | إِذَا جَآءَكُمُ | ٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ |
|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | کله چې راشی تاسو ته | مومنانې ښځې |
| اې مومنانو ! څه وخت چې مومنې ښځې هجرت اوکړی | | | |
| مُهَٰجِرَٰتٖ | فَٱمۡتَحِنُوهُنَّۖ | ٱللَّهُ أَعۡلَمُ | بِإِيمَٰنِهِنَّۖ |
| هجرت کونکی | پس امتحان واخلئ دایمان دهغوئ | الله ښه پوهه دې | په ایمان دهغوئ باندې |
| اوتاسو ته راشی انو د هغوئ امتحان اخلئ الله ﷻ دهغوئ دایمان (او نفاق) نه ښه خبر دې | | | |
| فَإِنۡ عَلِمۡتُمُوهُنَّ | مُؤۡمِنَٰتٖ | فَلَا تَرۡجِعُوهُنَّ إِلَى ٱلۡكُفَّارِۖ | |
| پس که چرې معلومې شی تاسو ته هغوئ | چې مومنانې دی | پس مه واپس کوئ هغوئ کافرانو ته | |
| نو که ستاسو باور اوشی چې هغوئ مومنې دی نو کافرانو ته ئې مه واپس کوئ | | | |
| لَا هُنَّ | حِلّٞ | لَّهُمۡ | وَلَا هُمۡ | يَحِلُّونَ | لَهُنَّۖ |
| نه هغوئ | حلالې دی | دپاره دهغوئ | او نه هغوئ (کافران) | حلالیږی | دپاره دهغوئ |
| نه دغه ښځې کافرانو دپاره حلالې دی او نه کافران سړی د هغوئ دپاره حلال دی | | | | | |
| وَءَاتُوهُم | مَّآ | أَنفَقُواْۚ | وَلَا جُنَاحَ | عَلَيۡكُمۡ | |
| او ورکړئ هغوئ (کافرانو) ته | هغه مهر | چې ورکړې ئې وو ښځوله | او نشته ګناه | په تاسو باندې | |
| او(کافرانو)له هغه هرڅه ورکړئ اکوم چې هغوئ (په دې ښځو) خرڅ کړې وی او په تاسو هیڅ ګناه نشته | | | | | |
| أَن تَنكِحُوهُنَّ | إِذَآ | ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ | أُجُورَهُنَّۚ | | |
| چې تاسو په نکاح سره واخلئ هغوئ | کله چه | ورکړئ تاسو هغوئ له | مهرونه دهغوئ | | |
| که تاسو هغوئ سره نکاح اوکړئ خو په دې شرط چې مهرونه ورته ورکوئ | | | | | |

۱) احمد:۴/۴، حاکم:۴۸۵/۲، مجمع الزوائد:۱۲۳/۷.

۲) صحیح مسلم کتاب الامارة باب فضیلة الامیر العادل:۱۸۲۷، احمد:۱۵۹/۲، ابن حبان:۴۴۸۵.

وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَاسْأَلُوا مَا

او مه ساتئ تاسو په نکاح کښې | ښځې کافرانې (پخپله هم) | او او غواړئ | هغه مهر چې

او چې کومې کافرانې ښځې دي | هغوئ سره (ازواجي) تعلق باقی مه ساتئ | او چې څومره خرچ مو په هغوی

أَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْأَلُوا مَا أَنْفَقُوا ط

تاسو ورکړي وو(خپلو کافرو ښځوله | او دې غواړي هغوئ | هغه مهر چې هغوئ ورکړي وو(خپلو مسلمانانو ښځوله

کړي وي | هغه ترې او غواړئ | او هغوی (کافرانو) چې پرې کوم خرچ کړي وی هغه دې (تاسونه) او غواړي

ذَٰلِكُمْ حُكْمُ اللَّهِ ط يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ط وَاللَّهُ

دا حکمونه چې دی | دا حکم د الله دې | هم هغه فیصله کوی | په منځ ستاسو کښې | او الله

هم دا د الله ﷻ حکم دې | هغه به ستاسو په مینځ کښې فیصله او کړي | ........................او الله ﷻ

عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝ وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ

ډیر پوهه دې | او د حکمت خاوند دې | او که پاتې شي ستاسو نه (یعني ملاؤ نشي تاسو ته) | څه څیز

ډیر پوهه صاحب د حکمت دې | او که چرې ستاسو په ښځو کښې یوه ښځه

مِنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ

د کافرو ښځو د مهرونو ستاسو نه | کافرانو ته | او بیا سزا ورکړه تاسو (په غالب کیدو سره په هغوئ باندې)

کافرانو ته لاړه شي | او بیا تاسو هغو (کافرانو) باندې غلبه حاصله کړه |

فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُمْ

پس ورکړئ تاسو | هغه کسانو له | چې تلې دي ښځې د هغوئ (هلته پاتې شوی دی)

نو دچا دلاس نه چې ښځې وتلې دی (او کافرانو سره شاملې شوې وی)، نو هغوئ ته د مال په اندازه

مِثْلَ مَا أَنْفَقُوا ط وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنْتُمْ

په مثل د هغې (یعني هغومره مال) | چې ورکړې وو هغوئ | او او ویریږئ د الله نه | هغه الله | چې تاسو

ورکړئ | کوم چې هغوی خرچ کړی وو | ........................او د هغه الله ﷻ نه ویریږئ | چې تاسو پرې

بِهِ مُؤْمِنُونَ ۝

په هغه باندې | ایمان راوړونکی یئ

ایمان راوړي دي |

قوله تعالی:- يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ

د مهاجرد ښځو ازمیښت:-د سورة فتح په تفسیر کښې د صلح حدیبیه واقعه په تفصیل سره بیان شوې ده. د دې صلح په موقعه چه د رسول الله ﷺ او کفار قریش په مینځ کښې کوم شرائط مقرر شوي وو په دې کښې یودا هم وو چه د کافرانو نه څوك مسلمان شی حضور ﷺ له لاړشی تاسو به هغه اهل مکه ته واپس کوئې خو قرآن کریم د دې نه ښځې بهر کړې چه کومه ښځه اسلام قبول کړی راشی او په حقیقت کښې هغه په رښتیا سره ایمانداره وی نو مسلمانان به هغه کافرانوته نه واپس کوی. دحدیث تخصیص په قرآن کریم سره د کیدو دا یو ښکلې مثال دې او د بعضې سلفو په نیزدا آیت د دې حدیث ناسخ دې.

**ددې ایت مبارک شان نزول او امتحان اخستلو طریقه:-** د دې ایت شان نزول دا دې چه حضرت ام کلثوم بنت عقبه بن ابومعیط ﷺ مسلمانه شوه هجرت ئې اوکړو مدینې ته راغله. د هغې دواړه رونړه عماره او ولید د هغې د اخستو د پاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل واورئ دا د امتحان آیت نازل شو اود مؤمنې ښځې د واپس کولونه ممانعت اوکړې شو.د حضرت ابن عباس ﷺ نه تپوس کیږی چه حضور ﷺ به د دې ښځو امتحان څنګه اخستلو؟ ونې فرمائیل داسې چه په الله ﷻ باندې قسم اوخوره او رښتیا رښتیا اووایه چه هغه د خپل خاوند د خفګان د وجه نه ده راغلې، صرف د آب وهوا او زمکې بدلولود پاره د سیل په توګه نه ده راغلې یا د څه دنیاوی مطلب د پاره نه ده راغلې. بلکه صرف د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ محبت کښې د اسلام په خاطر ئې وطن پریخې دې او بل ئې هیڅ غرض نشته. قسم ورکول اوداسوالونه کول د حضرت عمرفاروق ﷺ په ذمه وواو په روایت کښې دی چه امتحان به داسې کیدو چه هغه د الله ﷻ د معبودبرحق او لاشریك کیدو ګواهی ورکړی اود نبی کریم ﷺ د الله ﷻ د بنده اود هغه د رالیکلې شوی رسول ﷺ کیدو ګواهی ورکړی. که په امتحان کښې به دڅه دنیاوی غرض پته لګیدله نو هغوی ته دواپس تلو حکم وو.مثلاً چه دا به معلومه شوه چه د ښځې خاوندد جګړې په وجه یا د بل سړی د محبت په وجه راغلې ده وغیره. ([1]د دې آیت په دې جمله چه که تاسو ته معلومه شی چه دا ایمانداره ښځه ده نودا دکافرانوطرف ته مه واپس کوئ. ثابتیږی چه په ایمان باندې په یقینی توګه خبریدل هم ممکن امر دې. ارشاد دې چه مسلمانانې ښځې د کافرانو سړو د پاره او کافران سړی د مسلمانانو ښځود پاره حلال نه دی.

**قوله تعالی:-** وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ

**کافرانو سره درشتې کولو ممانعت:-** دې آیت دا رشته حرام کړه ګنې دې نه وړاندې د مؤمنه ښځو نکاح د کافرانوسړوسره جائز وه. لکه د نبی کریم ﷺ د لور بی بی نکاح ابوالعاص بن ربیع سره شوې وه اودې په هغه وخت کښې کافررو اود رسول الله ﷺ لور مسلمانه وه. د بدر په جنګ کښې دې هم کافرانو سره وو اوچه کوم کافران ژوند راګیرکړې شوپه هغوی کښې دې هم نیولې شوې وو.حضرت زینب ﷺ: حضرت خدیجة الکبری ﷺ خپل مور هار د هغه په فدیه کښې ورکړې ووچه دې آزادشی او راشی. د ده په لیدوبه حضور ﷺ باندې رچیدل شروع شواومسلمانانوته ئې اوفرمائیل که زمادلورقیدی پریخودل تاسو خوښونې نودې پریږدئ. مسلمانانو هغه په خوشحالئی سره بغیرد فدیه پریخودل منظورکړل. حضور ﷺ هغه آزادکړو اوورته ئې اوفرمائیل چه زما لور ماله مدینې ته راولیګه. هغه دا هم منظورکړه او زیدبن حارثه ﷺ سره ئې اولیګلو([2])دا واقعه د ۲هجری ده.حضرت زینب ﷺ په مدینه کښې اوسیدله او داسې ناسته وه تردې چه په ۸هجری کښې دهغې خاوند حضرت ابوالعاص ﷺ ته الله ﷻ اسلام توفیق ورکړو اومسلمان شو. نو حضور ﷺ هم په هغه وړاندینې نکاح سره بغیرد نوی مهر نه خپله لور هغه سره رخصت کړه. او بل روایت کښې دی چه دوه کاله پس حضرت ابوالعاص ﷺ مسلمان شوې وو اوحضور ﷺ هم په هغه اوله نکاح باندې حضرت زینب ﷺ هغه واپس کړې وه([3]) هم دا صحیح دی څکه چه مسلمانې ښځې په مشرکانو سړوباندې د حرامیدو دوه کاله پس هغه مسلمان شوې وو. په یو بل روایت کښې دی چه دهغه د اسلام نه پس د نوی سر نه نکاح اوشوه او نوې مهر ترلې شوې وو.
امام ترمذی ﷫ فرمائی چه د ړومبی روایت راوی حضرت ابن عباس ﷺ دې اوهغه روایت د اسناد په لحاظ سره ډیر اوچت دې او د دویم روایت راوی حضرت عمرو بن شعیب ﷺ دې او عمل هم په دې

[1] الطبری:۲۳/۳۲۶.
[2] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی فداء الامیر بالمال: ۲۶۹۲ وهوحسن.
[3] ابوداؤد کتاب الطلاق باب الی متی تردعلیه امراته اذا اسلم بعدها: ۲۲٤۰،ترمذی:۱۱٤۳، ابن ماجه:۲۰۰۹.

باندي دي. خو دا ياد ساتلي چه د عمرو بن شعيب ﷺ په روايت كښي يو راوى حجاج ابن ارطاة ته حضرت امام احمد رحمه الله وغيره ضعيف وئيلي. دحضرت ابن عباس ﷺ دحديث جواب جمهورو دا وركوى چه داشخصى واقعه ده. ممكن ده چه هغې عدت ختم شوې نه وى. د اكثرو حضراتو مذهب دا دى چه په دې صورت كښې ښځه د عدت موده پوره كړى اوتردغه وخته پورې د هغې كافر خاوندمسلمان شوې نه وى نوهغه نكاح فسخ كيږى. اود بعضې حضراتو مذهب دا هم دې چه عدت پوره كولونه پس ښځې ته اختياردې چه كه غواړى خپله دا نكاح په خائ اوساتى اوكه غواړى نو دا فسخ كړى بله نكاح دې اوكړى. او هم په دې باندې هم د حضرت ابن عباس ﷺ والا روايت محمول كوى. بيا حكم كولې شى چه د دې مهاجروښځو كافرانوخاوندانوته د هغوى خرچ كړې شوې خرچې وركړې لكه مهر. بيا فرمان دې چه اوس د دوى مهر واپس كولونه پس دوى سره بيا نكاح كولوكښې په تاسو څه بدى نشته. د عدت تيرول د ولى مقررول وغيره چه د نكاح امورو كښې ضرورى دى دې شرائط پوره كولوباندې دې مهاجروښځو سره چه كوم مسلمان نكاح كول غواړى كولې شى.

قوله تعالى:- وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ

**كافره نكاح كښې ساتل حرام دى:-** بياارشاد فرمائى چه په تاسوباندې هم اې مسلمانانود دې ښځو په خپلو نكاحونوكښې ساتل حرام دى كومې چه كافرانې دى. دغه شان كافرې ښځې سره نكاح كول هم حرام دى. د دې حكم په نازليدوباندې حضرت عمر ﷺ خپلې دوه كافرانې ښځې طلاقې كړې. په كوموكښې چه يوې خو معاويه بن ابى سفيان ﷺ سره نكاح اوكړه او بلې صفوان بن اميه سره[1] حضور ﷺ كافرانوسره صلح اوكړه او تراوسه خو هغوى د حديبيه په لاندې حصه كښې وو چه دا آيت نازل شو اومسلمانانوته ئې اووئيل چه كومه ښځه مهاجره راشى دهغې ايمان راوړل او په خالص نيت سره هجرت كول هم معلوم كړئى نود دوى كافرانو خاوندانوته د هغوى وركړې شوې مهر واپس كړئى. دغه شان كافرانوته هم دا حكم واوروليې شو[2] د دې حكم وجه هغه لوظ نامه وه اوس اوس ليكلې شوې وه. حضرت عمر فاروق ﷺ چه كومودوو كافرانوښځوته طلاق وركړو په هغې كښې د يوې نوم قريبه وه. دا د ابواميه بن مغيره لور وه اود بلې نوم ام كلثوم وو چه د عمرو بن جرول خزاعى لور وه. دحضرت عبدالله ﷺ مور هم دا وه. دې سره ابوجهم بن حذيفه بن غانم خزاعى نكاح اوكړه دا هم مشرك وو. دغه شان د دې حكم لاندې حضرت طلحه بن عبيدالله ﷺ خپله كافره ښځه اروى بنت ربيعه ابن حارث بن عبدالمطلب ته طلاق وركړو دې سره خالد ابن سعيد بن عاص نكاح اوكړه.

بياارشادكيږى چه ستاسو په ښځوباندې كوم خرچ شوې دې هغه د كافرانونه واخلئ اوهغوى دى خى. دغه شان د كافرانو ښځې چه مسلمانې شوى دى هغوى ته ددوى خرچ واپس كړئى. دصلح او ښځو باره كښې داالله ﷻ فيصله بيان شوه چه هغه په خپل مخلوق كښې اوكړه. الله ﷻ د خپلو بنديگانو د هرقسم مصلحتونو نه خبردې اود هغه يوكار هم د حكمت نه خالي نه وى څكه چه على الاطلاق حكيم هم هغه دې. دې نه پس آيت (وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُم مِّثْلَ مَا أَنفَقُوا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنتُم بِهِ مُؤْمِنُونَ﴿﴾) مطلب حضرت قتاده رحمه الله دا بيان كړې دې چه كافرانوسره ستاسو عهدوپيمان او صلح صفائى نشته كه يوه ښځه د يومسلمان د كورنه لاړه شى او هغوى سره ملاوشى نو ښكاره خبره ده چه هغه به دخپل خاوند كړې شوې خرچه نه واپس كوى نود دې په بدله كښې تاسوته هم اجازت دركولې شى كه د هغوى نه يوه ښځه مسلمانه شى تاسوله راشى نوتاسو هم د هغې خاوندله هيڅ مه وركوئ تر

[1] صحيح بخاري كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب: ۲۷۳۱-۲۷۳۲، ابوداؤد: ۲۷۶۵، احمد: ۳۲۸/۴.
[2] الطبرى: ۳۲۹/۲۳.

کومي چه هغوی درنه کړي[1] حضرت زهري رحمه الله فرمائي چه مسلمانانوخود الله ﷻ د دې حکم پوره والې اوکړواود کافرانو چه کومې ښځې مسلمانانې شوې هجرت ئې اوکړوراغلې دهغوی اخستې شوې مهردهغوی خاوندانوته واپس کړې شو خومشرکانو د دې حکم منلونه انکاراوکړو. په دې باندې دا آیت نازل شواو مسلمانانوته اجازت ورکړې شو که تاسو نه یوه ښځه هغوی له لاړه شي او هغوی ستاسو خرچ کړې شوې خرچه واپس نه کړه نو چه کله د هغوی نه یوه ښځه تاسو له راشي نو تاسو خپله خرچه د هغې نه اوباسئی که باقي څه بچ شو نو هغوی ته ورکړئی ګنې معامله ختمه شوه[2] د حضرت ابن عباس ﷺ نه ددې دا مطلب روایت دې چه په دې کښې رسول الله ﷺ ته داحکم ورکولې شي چه کومه مسلمانه ښځه کافرانو سره ملاوشي اوکافران د هغې خاوندته د هغه کړې خرچه واپس نه کړي نود مال غنیمت نه هغه مسلمان ته د هغه د خرچ مطابق ورکړئی.نو ﴿فَعَاقَبْتُمْ﴾ معنی داشوه چه بیا کله د قریشویا نورو کافرانو نه دغنیمت مال ملاوشي نودې سړو ته د چا ښځې چه کافرانوله تلې دی د هغوی خرچه ورکړئی یعنې مهرمثل. په دې اقوالوکښې هیڅ اختلاف او تضاد نشته. مطلب دا که رومبې صورت ممکن وی نوهغه ټیك دې ګنې د غنیمت د مال نه هغه ته د هغه حق ورکړئی په دواړوخبروکښې اختیار دې او په حکم کښې وسعت دې. حضرت امام ابن جریر رحمه الله دا تطبیق خوښوی. ﴿فالحمدلله﴾

| | |
|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ | إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ |
| اے نبي کله چې | راشي تاته مومنانې ښځې |
| اې پيغمبره ﷺ ! | چې مومنې ښځې درته راشي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُبَايِعْنَكَ | عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشْرِكْنَ | بِٱللَّهِ | شَيْـًٔا | وَلَا يَسْرِقْنَ |
| چې بیعت کوی ستاسره | په دې خبره چې هغوئ به نهٔ شریکوی | د الله سره | هیڅ څيز | او نهٔ به غلا کوی |
| اودې خبرې بیعت درسره کوی | چې الله ﷻ سره به هیڅوک نه شریکوی | | | او غلا به نه کوی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا يَزْنِينَ | وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَٰدَهُنَّ | وَلَا يَأْتِينَ | بِبُهْتَٰنٍ | يَفْتَرِينَهُۥ |
| اونهٔ به زنا کوی | اونهٔ به وژنی اولاد خپل | اونهٔ به راتله کوی | په دروغو سره | چې جوړوی ئې هغوئ |
| اوزنا بهٔ نه کوی | او خپل بچی به نه وژنی | اود دروغو الزام به په چا نه لګوی | | چې هغه ئې |

| | | |
|---|---|---|
| بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ | وَلَا يَعْصِينَكَ | فِى مَعْرُوفٍ |
| په منځ دلاسونو او خپو خپلو کښې (یعنې دخپله خانه) | اونهٔ به نافرمانی کوی ستا | په نیکئ کښې |
| په خپل مینځ کښې جوړ کړی وی ..................... | | او د نیکئ په کارونو کښې به |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَبَايِعْهُنَّ | وَٱسْتَغْفِرْ | لَهُنَّ | ٱللَّهَ | إِنَّ ٱللَّهَ |
| پس بیعت اوکړه دهغوئ سره | او دبښنانې دعا اوغواړه | دپاره دهغوئ | دالله نه | بیشکه الله |
| ستا نافرمانی نه کوی نو ته هغوئ سره بیعت اوکړه | او دهغوئ دپاره د الله نه بښنه غواړه | | | بیشکه الله |

| |
|---|
| غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢﴾ |
| ښښونکې مهربانه دې |
| ښښونکې ډير زيات مهربان دې |

[1] الطبری: ۳۳۸/۲۲.
[2] ایضا.

**قوله تعالى:- يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰ أَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا**

**د ښځو بیعت اودډ طریقه:** په صحیح بخاری کښې دی عائشه ﵂ فرمائی چه کومې مسلمانانو ښځوم به هجرت کولو اوحضور ﷺ له به راتلې نود هغوی امتحان به هم په دې آیت سره کیدلو.کومې ښځې به چه ددې ټولوخبرو اقرار کولوهغې ته به نبی کریم ﷺ زبانی فرمائیل چه ما ستانه بیعت واخستلو. دا به نه وه چه رسول الله ﷺ به هغوی سره لاس ملاوولو. په الله ﷻ قسم رسول الله ﷺ کله هم د بیعت په وخت کښې د ښځولاس سره لاس نه دې لګولې صرف زبانی به ئې ورته فرمائیل چه په دې خبره ماستانه بیعت واخستلو.(۱)

**د بیعت طریقه د یو صحابی په ژبه:**-ترمذی،نسائی،ابن ماجه او مسنداحمد وغیره کښې دی چه حضرت اُمیمه بنت رقیقه ﵂ فرمائی د نورودېروښځوسره زه هم د نبی کریم ﷺ نه دبیعت د پاره حاضره شوې ووم نود قرآن پاك د دې آیت مطابق حضورﷺ زمونږ نه بیعت واخستلو. مونږ به په خوخبروکښې د حضورﷺ نافرمانی نه کوو د اقرار په وخت کښې اوفرمائیل چه دا هم اووایئی ترکوم وخته پورې چه ستاسو طاقت وی. مونږ اووئیل الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ ته زمونږ خیال زمونږ نه ډیر دې اود هغوی مهربانئی په مونږ باندې زمونږ د مهربانونه زیاتې دی. بیامونږ اووئیل حضورﷺا تاسوزمونږ سره لاس نه ملاوونی؟وئی فرمائیل زه پردوښځوسره لاس نه ملاووم. زما یوې ښځې ته ویناکول د سلوښځود پاره کافی دی، بس بیعت اوشولو(۲)امام ترمذی ﵀ دې حدیث ته صحیح حسن وائی. په مسند احمد کښې دومره زیاتوالې نورهم دې چه په مونږ کښې چاسره هم حضورﷺ لاس ملاو نه کړو.داحضرت امیمه ﵂ دحضرت خدیجه ﵂ خوراود حضرت فاطمه ﵂ ترور وه. په مسنداحمد کښې دی حضرت سلمی بنت قیس چه د رسول اللهﷺ ترور وه اودواړو قبلوطرف ته ئې دحضورﷺ سره مونځ ادا کړې وو د بنوعدی بن نجار د قبیلې نه وه. فرمائی چه د انصارو ښځوسره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د بیعت کولودپاره زه هم تلې ووم او په دې آیت کښې چه دکوموخبروذکردې مونږ د هغې اقرار هم اوکړو. بیعت مواوکړو او لاړومانه بیا خیال راغلواویوه ښځه ما حضورﷺ ته اولیګله چه معلومه کړی د خیانت او دهوکې نه ستاسو څه مطلب دې؟ رسول اللهﷺاوفرمائیل چه د هغه مال چاته په پټه مه ورکوه. (۳) د مسند په حدیث کښې حضرت عائشه بنت قدامه ﵂ فرمائی زه خپلې مور رائطه بنت سفیان خزاعیه ﵂سره د حضورﷺ نه د بیعت کونکو ښځوسره ووم حضورﷺ به په دې خبرو بیعت اخستلو اوښځوبه د دې اقرار کولو. زمادمور په فرمان سره ماهم اقرار اوکړواود بیعت اخستونکو ښځوسره شامله شوم(۴) په صحیح بخاری‌کښې حضرت ام عطیه ﵂ نه نقل دی چه مونږ په دې خبرواو په دې امر باندې چه مونږ به په یومړی باندې ویر او ژړا نه کوو د حضورﷺ نه بیعت اوکړو. په دې وخت کښې یوښځې خپل لاس رابنکلو او وئی وئیل چه زه په په مړی باندې د وینا نه کولونه منع کیدلوباندې بیعت نه کوم څکه چه فلانکې ښځې زما فلانکی مړی باندې ویر او ژړا کولوکښې زما امدادکړې وو نو زه به د هغې بدله خامخا خلاصوم. حضور ﷺاوریدو سره چپ پاتې شواو هیڅ ئې اونه فرمائیل هغه لاړه خو لږ ساعت پس بیا راغله او بیعت ئې اوکړو.

په مسلم شریف کښې هم دا حدیث دې اودومره زیاتوالې ورسره دې چه دا شرط صرف هم دې ښځې او حضرت ام سلیم بنت ملحان ﵂پوره کړو(۵) دبخاری شریف په یوبل روایت کښې دی چه داشرط پنځو

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الممتحنة باب ﴿اذاجاءکم المؤمنات مهاجرات﴾:۴۸۹۱، صحیح مسلم:۱۸۸۶، ابن ماجه:۲۸۷۵.
(۲) ترمذی کتاب السیر باب ماجاء فی بیعة النساء: ۱۵۹۷وسنده صحیح، نسائی: ۴۱۸۶، ابن ماجه: ۲۸۷۴، مختصراً، احمد:۳۵۷/۶.
(۳) احمد:۳۷۹/۶-۳۸۰.
(۴) احمد:۳۶۵/۶، مجمع الزوائد:۴۱/۶.
(۵) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الممتحنة باب ﴿اذاجاءك المؤمنات یبایعنك﴾ :۴۸۹۲، صحیح مسلم:۹۳۶.

ښځوپوره کړو. ام سليم، ام علا او ابوسبره ﷺ لور چه د حضرت معاذ ﷺ بی بی وه او دوه نوري ښځي، يادابوسبره ﷺ لوراودحضرت معاذ ﷺ بی بی اويوه ښځه بله[1] حضور ﷺ به د اختريه ورځ هم د ښځوند دې بيعت معاهده اخستله. حضرت ابن عباس ﷺ فرماني چه د رمضان د اختر مونځ ما د حضور ﷺ حضرت ابوبكر ﷺ او حضرت عمر ﷺ سره اداكړې دې.ټولو به دخطبه نه اول مونځ كولوبيانی به د مانځه نه پس خطبه كوله.يوځل نبی كريم ﷺ خطبه وركوله چه راكوزشولكه چه هغه نقشه اوس هم زما د سترګو په وړاندې ده چه خلق ئې كينول او حضور ﷺ د هغوی د مينځ نه تشريف راوړلو. ترديې چه د ښځومينځ ته راغلواوحضرت بلال ﷺ ورسره وو. دلته په رسيدوباندې نبی كريم ﷺ هم د دې آيت تلاوت اوفرمانيلوبيا حضور ﷺ تپوس اوكړو چه آياتاسوپه خپل دې اقرار باندې كلكې يئ؟ يوه ښځه اودريده اوجواب ئې وركړو چه اوحضور ﷺ په دې باندې په مضبوطياسره قائمې يو.بل چا جواب ورنه كړو. راوی حديث حضرت حسن ﷺ ته دا معلومه نه ده چه دا جواب وركونكې ښځه كومه يوه وه. بيا حضور ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده خيرات كوئی او حضرت بلال ﷺ خپله كپړا خوره كړه نو ښځو په دې كښې د غمو او بغيرغمو ګوتې د الله ﷻ په لاركښې واچولې.([2])

دمسنداحمد په روايت كښې د اميمه ﷺ د بيعت په ذكركښې دآيت نه علاوه دومره نور هم دی چه وير اوژړا نه كول او دجاهليت دزمانې غوندې سينګارونه كول اوپردوسړوته نه خودل[3] د بخاری او مسلم شريف په حديث كښې دی چه رسول الله ﷺ په يومجلس كښې سړو ته هم اوفرمائيل چه ماسره په دې خبرو باندې بيعت اوكړئی كومې چه په دې آيت كښې دی. كوم سړې چه دا بيعت پوره كړی د هغه اجر الله ﷻ سره دې او چه څوك د دې نه څه خلاف اوكړی اود مسلمان حكومت نه پټ پاتې وی د هغه حساب د الله ﷻ سره دې. كه غواړی نو اوبه ئې ښنې او كه غواړی نو عذاب به ئې كړی. حضرت عباده بن صامت ﷺ فرماني چه په عقبه اولی كښې مونږ دولسوكسانو د رسول الله ﷺ نه بيعت اوكړو اوهم په دې خبروچه كومې په دې آيت كښې ذكر دې حضور ﷺ زمونږ نه بيعت واخستلو او وئې فرمائيل كه تاسو په دې باندې پوره پاتې شوئی نو يقيناً ستاسود پاره جنت دې.دا واقعه د جهادد فرضيت نه وړاندې ده.د ابن جرير په روايت كښې دی رسول الله ﷺ حضرت عمر بن خطاب ﷺ ته حكم وركړو چه هغه دې ښځوته اووائی چه رسول الله ﷺ تاسو نه په دې خبروبيعت اخلی چه تاسو الله ﷻ سره څوك مه شريكوئی. د دې بيعت د پاره راتلونكوښځوكښې حضرت هنده هم وه چه د عتبه بن ربيعه لور اود حضرت ابوسفيان ﷺ بی بی وه. هم دغه وه چه هغې د كفر په زمانه كښې د نبی كريم ﷺ د تره حضرت حمزه ﷺ خيټه څيرلې وه، په دې وجه هغه د دې ښځوسره په داسې حالت كښې راغلې وه چه څوك هغه اونه پيژنديشی. هغې چه كله فرمان واوريدو نو وئې وئيل چه زه څه وئيل غواړم خو كه خبرې كوم نو حضور ﷺ به ما اوپيژنی اوكه اومې پيژنی نوزما د قتل حكم به اوكړی. زه په دې وجه داسې راغلې يم چه اونه پيژندلې شم خوهغه ښځې ټولې چپ پاتې شوې اود هغې خبره ئې په خپلو خلوكولوسره انكاراوكړو.آخر هم هغې اووئيل چه داصحيح ده چه كله د شرك نه منع كيدل د سړود پاره دی نود ښځو دپاره به ولې نه وی؟ حضور ﷺ د هغې طرف ته اوكتل خو هيڅ ئې اونه فرمائيل. بيائی حضرت عمر ﷺ ته اوفرمائيل چه دې ته اووايه بله خبره دا ده چه غلابه نه كوی. په دې باندې هندې ﷺ اووئيل چه مابه د ابوسفيان ﷺ معمولی معمولی څيز كله كله اخستلو څه پته ده چه دا هم په غلاكښې شامل دی كه نه؟ اوزما د پاره دا حلال هم دی كه نه؟ حضرت ابوسفيان ﷺ هم په دې مجلس كښې ناست وو

---

[1] صحيح بخاری كتاب الجنائز باب ماينهى من النوح والبكاء والزجر عن ذلك: ۱۳۰۶، صحيح مسلم:۹۳۶.
[2] صحيح بخاری كتاب التفسير سورة الممتحنة باب(اذاجاءك المؤمنات يبايعنك) :۴۸۹۵، صحيح مسلم:۸۸۲.
[3] احمد:۱۹٦/۲وسنده حسن، مجمع الزوائد:٦/۳۷.

اوربدوسره هغه اوونیل چه زما په کورکښې کوم څه هم تا اخستې وی اوهغه دې خرچ کړی وی یا اوس هم باقی وی هغه ټول هرڅه ما ستا د پاره حلال کړی دی. اوس خو نبی کریمﷺ ته صفا معلومه شوه چه دا خو زما د تره حضرت حمزه ﷺ قاتله اود هغه اینه څیرونکې او بیا په هغې چکونه لګونکې ښځه هنده ده. نبی کریمﷺ هغه اوپیژندله د هغې خبرې نی واوریدې او هغه نی په دې حالت کښې لیدلوسره مسکې شو او هغه نی خپل خواته راوغوښتله. هغې د حضورﷺ لاس اونیولو او معافی نی اوغوښتله حضورﷺ اوفرمائیل چه ته هم هغه هنده یې؟هغې ونیل تیرې شوې ګناهونه الله ﷻ معاف کړل.حضورﷺ چپ شو اود بیعت په کارکښې بیا مشغول شو اوونې فرمائیل دریمه خبره دا ده چه دې ښځوکښې دې څوك بدکاری نه کوی. په دې باندې حضرت هنده ﷺ اوونیل چه آیا آزادې ښځې هم بدکاری کوی؟ حضورﷺ اوفرمائیل ټیك ده د الله ﷻ قسم آزادې ښځې به په دې خراب کار هیڅ کله هم ځان ګنده نه کړی. بیائې اوفرمائیل څلورمه خبره چه څوك دې هم خپل اولاد قتل نه کړی. هندې ﷺ اوونیل تاسو هغه په بدرکښې قتل کړی تاسو پوهه شئ او هغوی. حضورﷺ اوفرمائیل پنځمه خبره دا ده چه پخپله دې دخپل ځان نه بې سر اوخپو څه خاص بهتان نه لګوی اوشپږمه خبره دا چه زما په شرعی خبرو کښې دې زما نافرمانی نه کوی. اووم عهدئې د هغوی نه دا واخستلوچه ویناګانې دې نه کوی. د جاهلیت په زمانه کښې به ښځوخپلوان مړه کیدوباندې کپړې شلولې مخونه به ئې وهل ویښته به ئې شوکول او چغې سورې به ئې وهلې. (١) دا اثر غریب دې او د دې په بعضې حصوکښې نکارت هم دې ځکه چه د ابوسفیان ﷺ اود هغه د ښځې د اسلام راوړلو په وخت کښې هغوی ته د حضورﷺ نه هیڅ اندیښنه نه وه بلکه هغوی سره هم حضورﷺ د صفائې او محبت اظهار کړې وو. والله اعلم.

په یوبل روایت کښې دی چه د فتح مکه په ورځ داد بیعت والا آیت نازل شو.نبی کریم ﷺ په صفاباندې د سړونه بیعت واخستو اوحضرت عمرﷺ د ښځونه بیعت واخستو. په دې کښې نور دا هم دی چه د اولاد دقتل نه کولو واوریده نو حضرت هنده ﷺ اوفرمائیل مونږخوهغه د وړوکوالی نه اوپالل لوئ مو کړل خودا لوئ تاسو قتل کړل. په دې باندې حضرت عمرﷺ ډیر زیات اوخندل. ابن ابی حاتم کښې دی چه کله هنده بیعت له راغله نود هغې لاسونه د سړوپه شان سپین وو. حضورﷺ اوفرمائیل لاړه شه د دې رنګ بدل کړه. هغې نکریزې اولګولې اوحاضره شوه. د هغې په لاس کښې دوه کړې وې. هغې تپوس اوکړو چه د دې باره کښې څه حکم دې؟ ونې فرمائیل چه د دوزخ د اور دوه سروټکې دی (دا حکم د هغه وخت دې چه کله د دې زکوة نه اداکیږی) د دې بیعت اخستلوپه وخت د حضورﷺ په لاس کښې یود کپړا وه. کله چه د هغوی نه د اولاد د نه قتل کولو وعده اخستې شوه یوې ښځې اوونیل چه د هغې پلارنیکه خوقتل کړې شوی دی اود هغوی د اولاد وصیت مونږ ته کیږی. دا د بیعت د شروع صورت ووبیا د دې نه پس دا دستور وو چه کله به ښځې بیعت له راجمع شوې نو حضورﷺ به دا ټولې خبرې هغوی ته وړاندې کولې هغوی به د دې اقرار کولو او واپس کیدلې به. (٢) نود الله ﷻ فرمان دې چه کومې ښځې د دې بیعت د پاره راځی نود هغوی نه بیعت واخله چه الله ﷻ سره دې شریك نه ګرځوی. د غیروخلقو مالونه دې نه پټوی او هغه ښځه چه هغې ته خاوند د هغې د خوراك څښاك او اغوستو د پاره نه ورکوی نو د هغې د پاره جائز دی چه د خپل خاوند د مال نه د دستور مطابق اود خپل حاجت په اندازه واخلی که دهغې خاوندته پته هم نه وی.د دې دلیل دهندې والا حدیث دې چه هغې درسول الله ﷺ نه معلومه کړې وه چه یارسول اللهﷺ زماخاوند ابوسفیان ﷺ بخیل سړې دې هغه مونږ ته دومره خرچ نه راکوی کوم چه زما اود اولاد د پاره کافی وی. نوکه زه د هغه د مال نه د هغه په

---

(١) الطبری:٢٣/٢٤٢.
(٢) الدرالمنثور:٨/١٤٠.

بې خبرئ کښې څه واخلم نو ماله جائز دي؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه په معروفه طريقه د هغه د مال نه دومره اخستل چه ستا د بال بچ د پاره کافي وي.([1])
اوهغه دې زناکاری نه کوی. لکه چه بل ځائ کښې ارشاد دې ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا﴾ زنا ته مه نيزدې کيږئ هغه بې حيائي ده او خرابه لار ده. د حضرت سمره رضي الله عنهما په حديث کښې د زناسزا دردناك عذاب د جهنم دې([2]) په مسنداحمد کښې دی چه کله فاطمه بنت عقبه رضي الله عنها بيعت له راغله او دې آيت تلاوت د هغې په وړاندې اوکړې شو نو هغې د شرم نه خپل لاس په سر کيخودو. حضور ﷺ ته د هغې داحياء ډيره خوښه شوه. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي هم په دې شرطونوباندې ټولو بيعت اوکړو. دې اوريدوسره هغې هم بيعت اوکړو. ([3]) د حضور ﷺ د بيعت طريقې پورته بيان شوې.

**قوله تعالىٰ:- وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ**

د اولاد نه قتل کولو حکم عام دې. پيدا شوې اولاد قتل کول هم په دې ممانعت کښې دې. لکه څنګه چه به د جاهليت په زمانه کښې د دې ويرې قتل کولې شو چه په دوی باندې به د کوم ځائ نه خورو اوڅکو. حمل غورزول هم په دې ممانعت کښې شامل دی لکه بعضې جاهلوښځو به خپل خپل بچی غورزول.

**قوله تعالىٰ:- وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ**

په خراب غرض وغيره سره بهتان نه لګولومطلب خويوحضرت ابن عباس رضي الله عنه دا بيان کړې دې چه د بل اولاد دخپل خاوند په سر لګول([4])د ابوداؤد په حديث کښې دی چه دملاعنه آيت نازليدلوپه وخت رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کومه ښځه داپه يوقوم کښې داخل کړی چه په قوم کښې نه وی هغه د الله ﷻ په نيز په هيڅ يو شميرکښې هم نه ده اوچه کوم سړې دخپل اولادنه انکاراوکړی اوهغه د هغه په وړاندې موجود وی نوالله ﷻ به د هغه نه ډډه اوکړی اود ټولو وړاندينواو روستونوپه وړاندې به نی رسوا او ذليل کړی. ([5])

**قوله تعالىٰ:- وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ**

د حضور ﷺ نافرماني مه کوئې يعنی دهغوی احکام په ځائ راوړئې اود هغوی دمنع کړې شوی کارونونه منع شئ. دا شرط د معروف کيدلو د پاره ښځو الله ﷻ اولګولو. ([6]) حضرت ميمونه فرمائی الله ﷻ د خپل نبي اطاعت فقط په نيکوکښې منحصرکړې دې او صرف هم معروف اطاعت دې. حضرت ابن زيد رحمه الله فرمائي ګورئې بهترين اخلاق د رسول الله ﷺ حکم منل هم په معروف کښې دی. ([7]) د دې بيعت په ورځ رسول الله ﷺ د ښځونه په مړو وير او ژړا نه کولو اقرار هم اخستې وو لکه څنګه چه د ام عطيه رضي الله عنها په حديث کښې اول تيرشو. حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه مونږ ته ذکر شوی دی چه په دې بيعت کښې داهم وو چه ښځو پردوسړو سره خبرې اترې مه کوئې. په دې باندې حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اوفرمائيل يارسول الله ﷺ ا اکثرمونږ کورکښې نه يو او ميلمانه راځي نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه زما د دې خبرواترونه منع کول مطلب نه دې. زه هغوی سره د کار د خبرکولونه

---

[1]) صحيح بخاری کتاب النفقات باب اذا لم ينفق الرجل للمراة ان تاخذ بغيرعلمه:٥٣٦٤، صحيح مسلم:١٧١٤.
[2]) صحيح بخاری کتاب التعبير باب تعبير الرؤيا بعد صلاة الصبح:٧٠٤٧.
[3]) احمد:١٥١/٦.
[4]) الطبری:٣٤٠/٢٣.
[5]) ابوداؤد کتاب الطلاق باب التغليظ فی الانتفاء: ٢٢٦٣وسنده حسن، نسائی:٣٥١١.
[6]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الممتحنة باب ﴿اذاجاءك المؤمنات يبايعنك﴾ ٤٨٩٣.
[7]) الطبری:٣٤٥/٢٣.

نه منع کوم([1]) ابن ابی حاتم کښې دی چه حضورﷺ د دې بیعت په ورخ ښځې د پردوسړوسره د خبرو کولو نه منع کړې دی او حضرت حسن رحمه الله فرمائیلی چه بعضې خلق هغه هم وی چه پردوښځوسره په خبرو کولوسره هم مزې اخلې تر دې چه اوبه ترې اوځی([2]) پورته حدیث بیان شو چه په مړی د ویر او ژړا نه کولوپه شرط یوې ښځې اووئیل چه د فلانکې قبیلې ښځو ویر او ژړا کولوکښې زما ملګرتیاکړې وه نودهغوی په وښاکښې به زه هم خامخا امدادکوم اود هغې بدله به خلاصوم. بیاراغله او حضورﷺ نه بیعت اوکړو الخ. حضرت ام سلیم رضی الله عنها د چا نوم چه په ویر او ژړا نه کولوښځوکښې وو وو بیعت پوره کړو.دا دملحان ﷺ لور اوحضرت انس ﷺ مور ده. په بل روایت کښې دی چه کومې ښځې په ویر او ژړا کښې د بلې بدلې خلاصولو اجازت غوښتې وو پخپله حضورﷺ هغې ته اجازت ورکړې وو. هم دغه هغه معروف دې په کوم کښې چه نافرمانی کول منع دی.دبیعت کونکوښځونه د یوې بیان دې چه په معروف کښې مونږ د حضورﷺ نافرمانی اونه کړو، د دې مطلب دا دې چه د مصیبت په وخت کښې مخ مه شوکه وه ویښته مه اوباسه کپړې مه شلوه چغې صورې مه وهه.

په ابن اجریرکښې د حضرت ام عطیه رضی الله عنها نه روایت دې چه کله حضورﷺ مدینې ته تشریف راوړو نو یوه ورځ نې حکم اوکړو چه د فلانکی انصاری په کورکښې ټولې ښځې راجمع شنې.بیا نې حضرت عمر بن خطابﷺ هلته راولیګلو. هغه په دروازه کښې اودریدو او سلام نې اوکړو. مونږ د هغه د سلام جواب ورکړو نو هغوی اوفرمائیل چه زه د رسول اللهﷺ قاصد یم. مونږ وئیل چه رسول اللهﷺ ته دې هم په خیر راغلې وی او د هغوی قاصدته هم. حضرت عمرﷺ اوفرمائیل چه ماته حکم شوې دې چه زه تاسو ته حکم اوکړم چه تاسو الله ﷻ سره شریك نه ګرځولو غلا نه کولو او د زناکارئی نه په بچ کیدلو باندې بیعت اوکړئی. مونږ وئیل مونږه ټولې حاضرې یو اواقرار کوو. هغوی هم هلته په دروازه کښې په ولاړه ولاړه خپل لاس دننه کړواومونږ خپل لاسونه هم دننه په دننه وروړاندې کړل بیا هغوی اوفرمائیل چه اې الله ګواه اوسیره.بیاحکم اوشو چه په دواړو اخترونوکښې خپلې حائضه ښځې او خوانانې جینکئی بوځئی په مونږ باندې جمع فرض نه ده، مونږ له جنازوکښې نه دی تلل پکار. حضرت اسماعیل رحمه الله راوی حدیث فرمائی ما د خپلې نیاحضرت ام عطیه رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه ښځې دې په معروف کښې د رسول اللهﷺ نافرمانی نه کوی د دې څه مطلب دې؟ ونې فرمائیل دا په مړودې وینا کانې نه کوی([3]) بخاری اومسلم کښې دی چه کوم خلق په مصیبت کښې خپل مخونه وهی جامې شلوی او د جاهلیت د زمانې په شان چغې صورې اوشورکوی هغه زمونږ نه نه دی. ([4]) بل روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ د هغه خلقو نه برې دې چه تیزې تیزې چغې صورې وهی ویښته راوباسی یاشورکوی ګریوانونه شلوی یا لمنې شلوی.([5])

مسند ابویعلی کښې دی چه زما په امت کښې څلور کارونه د جاهلیت د وخت دی چه هغه به دوی نه پرېږدی په حسب نسب باندې فخرکول، انسان ته د هغه د نسب پیغورورکول د ستورو نه باران غوښتل او په مړی باندې وینا کول او فرمائی چه که په مړی وینا کونکې ښځه بغیرد توبې کولو مړه شی نو هغې ته به د قیامت په ورځ د ګوګړو جامې وراغوستې شی اود ښکارخ څادر به پرې اچولې شی. ([6])

---

[1]) داروایت مرسل دې

[2]) داروایت مرسل دې

[3]) الطبری٢٢/٣٤٦.

[4]) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب ((لیس منا من ضرب الخدود)):١٢٩٧، صحیح مسلم:١٠٣، ابن ماجه:١٥٨٤، احمد:٤٣٢/١

[5]) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب ماینهی من الحلق عند المصیبة:١٢٩٦، صحیح مسلم:١٠٤، ابن ماجه:١٥٨٦.

[6]) صحیح مسلم کتاب الجنائز باب التشدید فی النیاحة:٩٣٤، مسندابی یعلی:١٥٧٧، ابن ماجه:١٥٨١، احمد:٤٣/٥.

مسلم شريف كښې دي چه رسول الله ﷺ ويناګانې كونكوښځو اود هغوى ويناګانوته غوږ كيخودونكوښځو باندې لعنت ونيلي.(١) د ابن جرير په يومرفوع حديث كښې دي چه په معروف كښې نافرمانى نه كولونه مراد په مړى وينا نه كول دي. دا حديث د ترمذى شريف په كتاب التفسيركښې دي او امام ترمذى رحمه الله دي ته حسن غريب وائى.(٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا۟ | لَا تَتَوَلَّوْا۟ | قَوْمًا | |
| اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړي دي | مۀ كوئ دوستي | دهغه قوم سره | |
| اې مومنانو ! هغه خلقو سره ياراني مه ساتئ | | | | |
| غَضِبَ ٱللَّهُ | عَلَيْهِمْ | قَدْ يَئِسُوا۟ | مِنَ ٱلْءَاخِرَةِ | كَمَا |
| چې غضب كړې دي الله | په هغوئ باندې | نااميد شوى دى | داخرت نه | لكه څنګه چې |
| چې د الله ﷻ په غضب اخته وى | د اخرت نه داسې مايوسه دى | لكه چې | | |
| يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ | مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْقُبُورِ ۝ | | | |
| نااميد شوى دى كافران | دخاوندانو دقبرونونه (يعني چې پراته دي په قبرونو كښې) | | | |
| په قبرونو كښې پراته كافران چې مايوسه دى | | | | |

**قوله تعالي:- كَمَا يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ**

**كافران د اهل قبور نه نااميده شوي دي:-** د دې سورة په شروع كښې چه كوم حكم وو هغه په ختميدو كښې هم دې. يهوديان نصارى اونوركافرانوته په چا چه د الله ﷻ غضب اولعنت تيرشوې دې اود الله ﷻ درحمت او شفقت نه لرې شوى دى تاسو د هغوى سره دوستانه او تګ راتګ مه ساتئ هغوى د آخرت د ثواب نه اود هغه ځائ د نعمتونونه داسې نااميده شوى دى لكه د قبرونووالا كافران. د دې نه روستونئي جمله دوه معنى كړې شوى دى لكه څنګه چه ژوندى كافران دخپلو مړه كافرانود بيا ژوندى كيدونه نااميده شوى دى بل دا چه مړه كافران د هرقسم ښيګړې نه نااميده شوى دى. هغوى مړه شو او د آخرت احوال ئې اوليدل او اوس هغوى ته د هيڅ قسم ښيګړې توقع پاتې نه شوه.

**(الحمدلله)** د سورة ممتحنه تفسيرختم شو.

**(تفسير د سورة صف)**

**دسورت تعارف او شان نزول:-**حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه فرمائى چه مونږ صحابه په خپل مينځ كښې په ناسته ناسته دا تذكرې كولې چه څوك دې لاړشي او د رسول الله ﷺ نه دې تپوس اوكړى چه الله ﷻ ته د ټولونه ګران عمل كوم يودې؟ خولااوس څوك ولاړ هم نه وو چه مونږ له د رسول الله ﷺ قاصد راغلو او مونږه ئې يويو رسول الله ﷺ له بوتلو كله چه مونږ ټول راجمع شو نو د دې پوره سورة تلاوت ئې اوفرمائيلو(٣)په دې كښې ذكر دى چه جهاد د ټولونه د الله ﷻ خوښ عمل دې. د ابن ابى حاتم په دې حديث كښې دى چه مونږ درسول الله ﷺ نه په سوال كولو ويريدو. او په دې كښې دا هم دى چه څنګه حضورﷺ پوره سورة لوستلې وو دغه شان د دې روايت كونكى صحابى تابعى ته لوستلوسره اورولې وو او تابعى خپل شاګردانوته او شاګرانو خپل شاګردانوته دغه شان ترآخره پورې. په يوبل روايت كښې

(١) ابوداؤد كتاب الجنائز باب في النوح: ٣١٢٨، احمد: ٦٥/٢، بيهقي: ٦٣/٤.
(٢) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الممتحنة: ٣٣٠٧وسنده حسن، ابن ماجه: ١٥٧٩.
(٣) احمد: ٤٥٢/٥والترمذى: ٣٣٠٩وهوحديث الصحيح.

دی چه مونږ ونیلې ووکه مونږ ته د یوداسې عمل خبراوشي نو مونږ به خامخا په هغې عمل کونکی شو([1])ماته زما استاذ شیخ مسند ابوالعباس احمد ابن ابوطالب حجار رحمه الله هم په خپل سندسره دا حدیث بیان کړې دې اوپه دې کښې هم مسلسل هراستاذ خپل شاګرد ته د دې سورة لوستل اورول نقل دی. تر دې چه زما استاذ هم دا د خپل استاذ نه اوریدلې دې چونکه هغه پخپله امی وو او هغه ته د دې د یادولووخت ملاونه شو هغه ماته نه دې اورولېخو الحمدلله زما بل استاذ حافظ کبیر ابوعبدالله محمد بن احمدبن عثمان رحمه الله په خپل سندسره داحدیث ماته د لوستلو په وخت کښې دا سورة هم پوره اورولې دې.

| اياتونه | | سورة الصف مدنية وهي اربع عشرة اية وفيها ركوعان | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۱۴ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۲ |

سَبَّحَ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الۡاَرۡضِ ۚ

تسبیح وائی | الله لره | هغه څه | چی په آسمانونو کښې دې | او هغه څه | چی په زمکه کښې دی |

په زمکه او آسمانونو کښې چې څومره څه دی دا الله ﷻ پاکوی بیانوی

وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ | الۡحَكِيۡمُ ۞ | يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا | لِمَ تَقُوۡلُوۡنَ

او هغه غالب دې | او حکمت والا دې | اے هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دې | ولې وایئ تاسو |

او هغه غالب اوصاحب دحکمت دې | ائې مومنانو ! تاسې داسې خبرې ولې کوئ

مَا | لَا تَفۡعَلُوۡنَ ۞ | كَبُرَ مَقۡتًا | عِنۡدَ اللّٰهِ | اَنۡ | تَقُوۡلُوۡا

هغه خبری | چی نه ئې کوئ تاسو | لویه ده په لحاظ دغصې سره | په نز د الله | دا خبره | چی اووایئ تاسو

چې هغه نه (پوره) کوئ | د ا د الله ﷻ په نیز د ناراضګئ سبب دې | چې تاسو داسې خبرې کوئ

مَا | لَا تَفۡعَلُوۡنَ ۞ | اِنَّ اللّٰهَ | يُحِبُّ | الَّذِيۡنَ | يُقَاتِلُوۡنَ | فِيۡ سَبِيۡلِهٖ

هغه | چی نه یې کوئ تاسو | بیشکه الله | خوښوی | هغه کسان | چی جنګ کوی | په لار دهغه کښی

چې هغه نه (پوره) کوئ | ........ الله ﷻ هغه کسان خوښوی | چې د هغه په لاره کښې به صف بندئ کښې

صَفًّا | كَاَنَّهُمۡ | بُنۡيَانٌ | مَّرۡصُوۡصٌ ۞

صف تړونکی | داسې لکه چی هغوئ | دیوال وی | دویلی کړې شوی تانبې |

داسې جنګیږی | لکه چی هغوی د ویلې شوې تانبې دیوال دې |

**قوله تعالی:- لِمَ تَقُوۡلُوۡنَ مَا لَا تَفۡعَلُوۡنَ ۞**

**په وعدونه پوره کولو تنبیه:**- دړومبی ایت تفسیرخوخل تیرشوې دې اوس بیاد دې دوباره کولوضرورت نشته. بیاپه هغه خلقو باندې انکارکولې شي چه نورڅه اونه کړی وعده اوکړی او پوره ئې نه کړی. بعضو علماء سلف ددې آیت نه استدلال کړې دې چه وعده پوره کول مطلقًا واجب دی. چاسره چه وعده

[1] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الصف: ۳۳۰۹ وهوصحیح، دارمی:۲/۲۰۰، حاکم:۲/۶۹.

اوکړی که هغه تاکیداوکړی اوکه نه. د هغوی دلیل د بخاری اومسلم دا حدیث شریف هم دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی د منافق درې عادتونه دی کله چه وعده اوکړی خلاف نی کوی کله چه خبره کوی دروغ وانی اوچه کله امانت ورکړې خیانت کوی(۱)په بل صحیح حدیث کښې دی چه په چاکښې څلور خبرې وی هغه خالص منافق دې اوپه چا کښې چه په دې څلوروکښې یوه وی په هغه کښې د نفاق یو خصلت دې. ترکومې چه دا پرینږدی. په هغې کښې یوعادت د وعده خلافئ دې.(۲) د بخاری شریف د شرح په شروع کښې مونږ د دې دواړو احادیثوپوره شرح کړې ده. فالحمدلله. د دې د پاره دلته هم د هغې په تاکیدکښې اوفرمائیلې شو. د الله ﷻ دا خبره ډیره سخته ناخوښه ده چه ته هغه اووانې چه پخپله نې نه کوې.

**قوله تعالی:- كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ**

**چې څه وائې هغه کوه هم:**-مسنداحمد او ابوداؤدکښې د حضرت عبدالله بن عامر بن ربیعه ﷺ نه روایت دې چه مونږ له رسول الله ﷺ راغلو. زه هغه وخت ماشوم بچې ووم د لوبو او منډوترړود پاره لاړم نوزما مورماته آواز راکړوراشه څه واخله. حضور ﷺ اوفرمائیل چه څه ورکوې هم؟زما مور اووئیل او حضور ﷺ کهجورې ورکوم. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیاخوخیردې گنې یادساته که د څه نه ورکولواراده دې وی اوهسې دې وئیل نو تا باندې یو دروغ وئیل لیکلې شو(۳) امام مالك رحمه الله فرمائی چه کله وعدې سره د وعدې کولوتاکید تعلق دې نودغه وعده پوره کول واجب کیږی. مثلاً یوسړی بل سړی ته اووئیل چه ته نکاح اوکړه نو زه به تاته هره ورځ دومره دومره درکوم. هغه نکاح اوکړه نوچه ترکومې نکاح باقی وی نو په دې سړی واجب دی چه دخپلې وعدې مطابق هغه ته ورکوی ځکه چه په دې کښې د سړی د حق تعلق ثابت شوېه څه چه د ده نه په سختنې سره تپوس کیدلې شی.

**قوله تعالی:- اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا**

**د جهادفرضیت او مجاهد فضیلت:**- د جمهورومذهب دې چه وعده پوره کول مطلق واجب نه دی.ددې جواب هغوی داورکوی چه کله خلقودجهادد فرضیت خواهش اوکړواوفرض شونوبعضې خلقو ترې اخوا شوېه کومې چه دا آیت نازل شو. لکه چه بل ځائې کښې دی ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ﴾ یعنی تا هغوی .اونه کتل چاته چه اووئیلې شوخپل لاس بند کړنې.بیاچه کله په هغوی باندې جهادفرض کړې شو نوپه هغوی کښې داسې خلق هم رااوتل چه د خلقو داسې ویریدل لکه چه څنګه د الله ﷻ نه ویریږی بلکه د دې نه هم زیات، اووئیل نی چه پروردگاره تا په مونږ باندې جهادولې فرض کړو؟ مونږ دې ولې یومقرر وخت پورې پرینخودو کوم چه نیزدې هم دې. اووایه چه د دنیااسباب خو ډیر کم دی او د پرهیزګارانود پاره آخرت بهترین څیز دې. په تاسوبه هیڅ ظلم هم نه کیږی. تاسو چه کوم ځائې کښې هم یئې مرګ به تاسو اولتهوی سره د دې که تاسو په مضبوطومحلونوکښې یئې. بل ځائې کښې ارشاد دی ﴿وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ ۙ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاَوْلٰى لَهُمْ﴾

یعنی مسلمانان وائی چه ولې داسې یو سورة نه نازلیږی؟ بیا چه کله یومحکم سورت نازل شی اوپه هغې کښې د جنګ ذکر وی نوته به کورې چه بیمار زړونوولا به تاته داسې ګوری لکه څنګه چه هغه کس ګوری چه په چا باندې دمرګ بې هوشی وی.دغه شان داآیت هم دې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه بعضې مسلمانانو د جهاد د فرضیت نه وراندې وئیلې ووچه څه به ښه وه چه الله ﷻ مونږ ته هغه

۱) صحیح بخاری کتاب الایمان باب علامات المنافق: ۳۳، صحیح مسلم:۵۹.

۲) صحیح بخاری حواله سابق:۳۴، صحیح مسلم:۵۸، ترمذی:۲۶۳۳، احمد:۲/۳۵۷، ابوعوانه:۱/۲۱.

۳) ابوداؤد کتاب الادب باب التشدید فی الکذب: ۴۹۹۱، احمد:۳/۴۴۷.

عمل خودلې ووچه هغه ته د ټولونه خوښ وي دې د پاره چه مونږ په هغې عمل کونکی شوې وو. نو الله ﷻ خپل حبيب پاك ﷺ ته خبروركړو چه زما په نيز د ټولونه زيات خوښ عمل ايمان دې چه د شك شبهې نه پاك وي او د بې ايمانوسره جهادكول دی نو په بعضې مسلمانانو باندې ګران پريوتلو په كوم چه دا آيت نازل شو هغه خبرې ولې د خلې نه اوباسئې چه كونې نه.امام ابن جرير رحمه الله هم دا خوښوی چه مسلمانانو اووئيل چه مونږ ته معلومه شی چه الله ﷻ كوم علم ډيرخوښوی نو مونږ به په هغې باندې خامخا عمل كوو. په دې باندې الله ﷻ عزوجل هغه عمل اوخودلو چه زما په لاركښې صفونه تړل او په مضبوطيا سره كلك اودريدل او جهاد كونكی زه ډير زيات خوښوم. بيا د أحد په ورځ خلقو شا كړه او اوتختيدل په كومې چه دافرمان عالی شان نازل شوې چه ولې هغه وائې چه كونې نه؟[1]بعضې حضرات فرمائی چه دا دهغوی باره كښې نازل شوې چه هسې به خوله وائی مونږ جهاد اوكړو خو جهادې نه دې كړې،وائی مونږ زخمی شوخو زخمی زخی شوی نه وی، وائی مونږ اووهلې شو خو وهلې شوی نه وی، چه وائی مونږ قيدكړې شواونور قيدنه كړې شو. ابن زيد رحمه الله فرمائی چه دې نه مراد منافق دی چه د مسلمانانود امداد وعده به ئی كوله خو په وخت به ئی پوره كوله نه. زيد بن اسلم رحمه الله جهادمراد اخلی.

قوله تعالى:- كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ۝

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې ايت مبارك مصداق كښې حضرت عبدالله بن رواحه انصاری رضی الله عنه هم وو كله چه دا آيت نازل شواومعلومه شوه چه جهاد د ټولونه ښكلې عمل دې نو هغه وعده اوكړه چه زه خوبه خپل ځان د اوس نه واخله تر مرګه پورې د الله ﷻ په لار كښې وقف كړم. او هم په دې باندې قائم هم پاتې شواودالله ﷻ په لاركښې شهيدهمشو.حضرت ابوموسی رضی الله عنه يوځل دبصره قاريان راوغوښتل نو درې سوه قاريان هغوی له راغله په كوم كښې چه هريو كس د قرآن پاك قاری وو. بيائی اوفرمائيل چه تاسود بصرې والا قاريان او په دوی كښې بهترين خلق ئې واورئې مونږ به يوسورت لوستلوچه د مسبحات د سورتونو مشابه وو بيا مونږ هغه هير كړو او ماته په هغې كښې دومره يادده﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ۝(فتكتب شهادة فی اعناقكم فتسألون عنها يوم القيامة)﴾ يعنی اې ايماندارو هغه ولې وائې چه كونې نه بيا به هغه اوليكلې شی اوستاسوپه مروكښې به دګواه په توګه زوروندكړې شی اوبيا به د قيامت په ورځ د هغې باره كښې تپوس كولې شی. بيائی اوفرمائيل چه د الله ﷻ په خوښوخلقو كښې دغه خلق دی چه صفونه اوتړی اود الله ﷻ د دښمن په مقابله كښې كلك اودريږی.دې دپاره چه د الله ﷻ د نوم اوچت والې اوشی اود اسلام حفاظت وی اود دين غلبه وی.مسنداحمد كښې دی چه ددرې قسمه خلقودرې حالتونه دی د كوم په كتو چه الله ﷻ خوشحاليږی او مسكې كيږی.د شپې پاسيدونكی تهجد كونكی،د مانځه د پاره صفونه جوړونكی او په ميدان جنګ كښې صف بندی كونكی.[2]

د جهادفضائل:-ابن ابی حاتم كښې دی چه حضرت مطرف رضی الله عنه فرمائی ماته د حضرت ابوذر رضی الله عنه په روايت سره يوحديث رسيدلې وو.زما په زړه كښې وو چه پخپله دحضرت ابوذر رضی الله عنه سره ملاوشم اود هغه نه نيغ په نيغه دا حديث واورم. يوځل لاړم اوهغوی سره مې ملاقات اوكړو او هغوی ته مې واقعه بيان كړه. هغوی دخوشحالئی ښكاره كونه اوكړه او وئې فرمائيل چه هغه حديث كوم يودې؟ وئی فرمائيل چه الله ﷻ درې قسمه كسان دښمنان ګڼړی او درې قسمه دوستان. وئی فرمائيل چه او زه په خپل خليل حضرت محمد ﷺ باندې دروغ نه شم تړلې دا حديث په حقيقت كښې مونږ ته بيان فرمائيلې شوې دې. ما تپوس اوكړو چه هغه درې څوك دی؟ كوم چه الله ﷻ خوښوی. وئی فرمائيل چه يوخو هغه څوك چه د

---

[1] الدرالمنثور:٨/١٤٦.

[2]ابن ماجه المقدمة باب فيما انكرت الجهمية: ٢٠٠،احمد:٣/٨٠.

الله ﷻ په لارکښې جهاد کوی صرف دالله ﷻ دخوشحالولوپه نیت سره اوځی.کله چه دښمن سره مقابله وی نو په بهادرئی سره جهادکوی اوته د دې تصدیق پخپله هم په کتاب الله کښې کتلې شي. بیا هغوی دغه آیت مبارك بیان کړو اوبیائی پوره حدیث بیان کړو.ابن ابی حاتم کښې داحدیث هم دومره په دې الفاظو کښې راغلې دې اوپه ترمذی اونسائی کښې پوره حدیث دې اومونږ هم داپه بل ځائ کښې پوره لیکلې دې.[1] (فالحمدلله)

**د نبی آخر الزمان صفت:** دحضرت کعب احبار رحمه الله نه ابی حاتم کښې نقل دی الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته فرمانی ته زما متوکل او خوښ بنده یئی.بد اخلاقه بد زبانه اوپه بازارونوکښې شورځوګ کونکې نه یې،د بدئی بدله په بدئی سره نه ورکوې بلکه معافی کوې.د پیداکیدوځائ دې مکه دې اود هجرت ځائ دې طابه دې. ملك ستا شام دې او امت ستا په کثرت سره د الله ﷻ حمد کونکې دې. په هرحال کښې او په هرمنزل دالله ﷻ حمداوثناء بیانونکې دې. دسحر په وخت کښې دالله ﷻ د ذکرپه مزه آواز برابر اوریدې شی لکه د شاتود مچو بنګاري. خپل نوکونه او بریت کټ کوی او خپل تهبند د نیمو پنډو پورې ترې او د هغوی صفونه په میدان جهادکښې داسې وی لکه مانځه کښې چه وی. بیا حضرت کعب رحمه الله هم دا آیت تلاوت کړو.بیافرمانی دنمر خیال ساتونکی چه کوم ځائ کښې دمانځه وخت راشی نومونځ ادا کونکی وی سره ددې چه په سورلئی وی.حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمانی چه حضور ﷺ به ترکومې پورې صفونه نه وو جوړکړی ترهغې پورې به ئی جنګ نه شروع کولو. نود صف جوړولوتعلیم د الله ﷻ د طرف نه مسلمانانوته ورکړې شوې دې. یوبل سره ملاو وی ثابت قدم وی او اخواکیږی نه او یوبل سره ملاوشوی ولاړوی. ته نه ګورې چه د آبادئی والا دا نه غواړی چه د هغه په آبادئی کښې دې څه بنکته پورته وی کوږ وی یاپه ترس وی یا په کښې سوره پاتې شی. دغه شان الله ﷻ نه غواړی چه د هغه په امر کښې دې اختلاف وی په میدان جنګ کښې او په مانځه کښې هغه پخپله صف بندئ کړې ده نو تاسو د الله ﷻ د حکم پوره والې کونی او چه څوك احکام په ځائ راوړی دا به د هغه د پاره عزت او بچاؤ ثابت وی. ابوبحریه رحمه الله فرمانی مسلمانانو به په اسونوباندې سواره شوی جنګ نه خوښولو هغوی ته به دا ښه ښکاریده چه په زمکه به ئی صفونه جوړکړی پیدل یوبل ته مخامخ مقابله کوله. هغوی فرمانی چه کله ته ماته اوګورې چه ماد صف نه اخوادیخوا توجه کړې ده نوچه څه غواړی ملامتیاکوه او بدرد وایه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى | | | | |
| او کله چې اوونیل موسی | | | | |
| او کله چې موسی خپل قوم ته اوونیل | | | | |
| لِقَوْمِهٖ | يٰقَوْمِ | لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ | وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ | اَنِّيْ |
| قوم خپل ته | اے قومه زما | ولې تاسو ضرر رسوئ ماته | حال دا چې پوهه یې تاسو | چې بیشکه زهٔ |
| اې زما قومه | ولې ماته تکلیف راکوئ | ........ | او په دې ښه پوهه یئ چې زهٔ تاسوته د الله ﷻ | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَسُوْلُ اللّٰهِ | اِلَيْكُمْ | فَلَمَّا | زَاغُوْٓا | اَزَاغَ اللّٰهُ | قُلُوْبَهُمْ |
| رسول د الله یم | تاسو ته | پس هر کله چې | کاږه شو هغوئ | نو کاږه کړل الله | زړونه دهغوئ |
| رسول راالیږلې شوېې یم | انو هرکله چې هغوئ ګمراهی اختیار کړه | | | نو الله ﷻ د هغوئ زړونه واړول | |

[1] ترمذی کتاب صفة الجنة باب احادیث فی صفة الثلاثة الذین یحبهم الله:۲۵۶۸وسنده حسن، نسائی ۲۵۸۱، احمد:۵/۱۵۳،

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ الْفٰسِقِينَ ۝ | وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ | |
| او الله \| نه ښايي نيغه لار \| | قوم فاسق ته | کله چې اووئيل عيسى خوى د مريم \| | |
| او الله ﷻ داسې نافرمانه خلقو ته لاره نه ښائي \| او څه وخت چې عيسى عليه السلام د بي بي مريم خوى | | | |
| يٰبَنِيٓ إِسْرٰٓءِيلَ إِنِّي | رَسُولُ اللّٰهِ إِلَيْكُمْ | مُصَدِّقًا | |
| اې بنى اسرائيلو \| چې بيشکه زه \| رسول دالله يم \| تاسو ته \| تصديق کونکي يم \| | | | |
| اووئيل \| اې بنى اسرائيلو! زه تاسو ته دالله ﷻ رسول (راليږلي شوي) يم \| د تورات | | | |
| لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ | مِنَ التَّوْرٰىةِ | وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ | يَأْتِي |
| هغې لره \| چې وړاندې زما دي \| د توراة نه \| او زيرې درکونکې يم \| په يو رسول سره \| چې راځي به | | | |
| تصديق کونکې يم \| کوم چې زما نه وړاندې نازل شوې وو \| او د يو (بل) پيغمبر زيرې درکوم | | | |
| مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ | أَحْمَدُ ۖ | فَلَمَّا جَآءَهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ |
| روستو زمانه \| چې نوم دهغه به \| احمد وي \| پس هر کله چې راغې هغه هغوئ ته \| دواضحه نښو سره | | | |
| چې زمانه پس به راځي \| دهغه نوم به احمد ﷺ وي \| نو هرکله چې (هغه پيغمبر) دوى ته په ښکاره دلائلو سره راغلو | | | |
| قَالُوا هٰذَا | سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝ | | |
| نو اووئيل هغوئ \| دا \| جادوګر دې \| ښکاره \| | | | |
| نو دوئ اووئيل \| دا خو ښکاره جادو دې \| | | | |

قوله تعالى:- وَإِذْ قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهِ

پيغمبران عليهم السلام هم تنګ کړې شوى وو: الله ﷻ فرمائي چه کليم الله حضرت موسى بن عمران عليه السلام خپل قوم ته اوفرمائيل چه تاسو زما د رسالت صداقت پيژنئي نو بيا ولې ماته آزاد رسوئ؟ په دې کښې لکه چه يو قسم حضور ﷺ ته تسلي ورکولې شي.نوچه کله به نبى کريم ﷺ تنګولې شونو هغوئ ﷺ به فرمائيل چه الله ﷻ دې په موسى عليه السلام باندې رحمت نازل کړي هغه به ددې نه ډيرتنګولې شو خوبيا به ئې هم صبرکولو[1] او ورسره دې کښې مؤمنانوته ادب خودلې شي چه هغوى دې دالله ﷻ نبى ته تکليف نه رسوى.داسې مه کوئ چه په هغې سره د هغه زړه خپرن شي لکه چه يوبل ځائ کښې ارشاد دې ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ اٰذَوْا مُوسٰى فَبَرَّأَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوا ۚ وَكَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيهًا﴾ اې دايمان خاوندانوتاسو داسې مه کيږئ لکه څنګه چه موسى عليه السلام ته تکليفونه رسونکي وو.الله ﷻ خپل داعزت مند بنده د هغوئ د بهتانونونه پاک کړو اوداخلق سره د پوهې د حق علم د تابعدارئ نه اخواشو اوکاګه روان شو نوالله ﷻ هم د هغوئ زړونه د هدايت نه اخوا کړل. په هغوئ کښې شك او حيرانتيا واچوله لکه چه بل ځائ ارشاد دې ﴿وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصٰرَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ۝﴾ يعنى مونږ به د هغوئ زړونه او سترګې اولټه کړو لکه څنګه چه دوى په اول ځل زمونږ په آياتونوباندې ايمان نه راوړى اومونږ به دوى د هغوى د سرکشئ په حالت کښې پريږدو او په هغې کښې به سرګردان وى. يوبل ځائ ارشاد ربانى دې ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا ۝﴾ دهدايت ښکاره کيدونه پس چه څوك د رسول الله ﷺ مخالفت کوى اودمؤمنانو د لارې

[1]) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الطائف: ۴۳۳۵، صحيح مسلم: ۱۰۶۲.

نه علاوه د بل چا تابعداری کوی مونږ به هغوی هم هغه طرفته واروؤ کوم طرفته چه دی اوړی.او اخر به مونږ هغوی په دوزخ کښې اوغورزوو او هغه ډیر خراب خایٔ دې. دلته هم ارشاد کیږی چه الله ﷻ د فاسقانو لار خودنه نه کوی. بیا دحضرت عیسی ؑ خطبه بیانولې شی چه هغوی بنی اسرائیلو ته کړې وه. په هغې کښې فرمائیلې ووچه په تورات کښې زما خوشخبری ورکړې وه او اوس زه تاسو ته زما نه پس دیورسول زیرې درکوم چه نبی امی عربی مکی احمدمجتبی حضرت محمد ﷺدې. حضرت عیسی ؑ دبنی اسرائیلودپیغمبرانو ختمونکې اوحضرت محمد ﷺدټولوانبیاؤاومرسلینوخاتم دې.د حضور ﷺ نه پس به نه څوك نبی راځی اونه رسول. نبوت اورسالت ټول په حضور ﷺ باندې ﴿من کل الوجوه﴾ ختم شو.

**قوله تعالی:- مِنۢ بَعۡدِی ٱسۡمُهُۥٓ أَحۡمَدُۖ**

**دٔ حضور ﷺ فضائل ، نومونه او صفات:-** په صحیح بخاری شریف کښې یوډیر صفاسترا حدیث واردشوې دې په کوم کښې چه دی حضور ﷺ اوفرمائیل زما ډیر نومونه دی محمد احمد ماحې د کوم په وجه چه الله ﷻ کفر ختم کړو او زه حاشر یم د چا په قدمونوچه به د خلقو حشر وی او زه عاقب یم دا حدیث په مسلم شریف کښې هم دې[1] ابوداؤدکښې دی چه حضور ﷺ زمونږ په وړاندې خپل ډیر نومونه بیان کړل کوم چه مونږ یادکړل په هغې کښې یوڅو دا دی. زه محمد یم، زه احمد یم، زه حاشر یم، زه مقفی یم، زه نبی الرحمت یم،زه نبی التوبه یم،زه نبی الملحمه یم،دا حدیث هم په صحیح مسلم کښې دې. په قرآن کریم کښې دی﴿ٱلَّذِینَ یَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِیَّ ٱلۡأُمِّیَّ ٱلَّذِی یَجِدُونَهُۥ مَكۡتُوبًا عِندَهُمۡ فِی ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِیلِ یَأۡمُرُهُم بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَیَنۡهَىٰهُمۡ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَیُحِلُّ لَهُمُ ٱلطَّیِّبَٰتِ وَیُحَرِّمُ عَلَیۡهِمُ ٱلۡخَبَٰٓئِثَ وَیَضَعُ عَنۡهُمۡ إِصۡرَهُمۡ وَٱلۡأَغۡلَٰلَ ٱلَّتِی كَانَتۡ عَلَیۡهِمۡۚ فَٱلَّذِینَ ءَامَنُواْ بِهِۦ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَٱتَّبَعُواْ ٱلنُّورَ ٱلَّذِیٓ أُنزِلَ مَعَهُۥٓ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ﴾ څوك چه تابعداری کوی د دې رسول نبی امی کوم چه خپل ځان سره لیکلې شوې مومی په تورات کښې هم او په انجیل کښې هم الخ. بل ځایٔ ارشاد دې﴿وَإِذۡ أَخَذَ ٱللَّهُ مِیثَٰقَ ٱلنَّبِیِّـۧنَ لَمَآ ءَاتَیۡتُكُم مِّن كِتَٰبٖ وَحِكۡمَةٖ ثُمَّ جَآءَكُمۡ رَسُولٞ مُّصَدِّقٞ لِّمَا مَعَكُمۡ لَتُؤۡمِنُنَّ بِهِۦ وَلَتَنصُرُنَّهُۥۚ قَالَ ءَأَقۡرَرۡتُمۡ وَأَخَذۡتُمۡ عَلَىٰ ذَٰلِكُمۡ إِصۡرِیۖ قَالُوٓاْ أَقۡرَرۡنَاۚ قَالَ فَٱشۡهَدُواْ وَأَنَا۠ مَعَكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِینَ﴾الله ﷻ چه کله د انبیاؤ نه وعده واخسته چه کله هم زه تاسو ته خپل کتاب او حکمت درکړم بیا تاسو ته زما رسول راشی چه څوك به هغه پیژنی کوم چه تاسو سره دی تاسوبه خامخا په هغه باندې ایمان راوړئی اودهغه به خامخا امدادکوئی،آیا تاسو په دې باندې اقرار کوئی اوپه دې باندې زماسره وعده کوئی؟ټولواووئیل زمونږه اقراردې نوالله ﷻ اوفرمائیل چه ګواه اوسیږئی او زه هم تاسو سره په ګواهانو کښې یم.

حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه یونبی الله ﷻ داسې نه دې رالیګلې د چانه چه دا اقرار نه وی اخستې شوې که دهغه په ژوند کښې حضرت محمد ﷺ راولیږلې شو نو ته به دهغه تابعداری کوې اود هرنبی نه داوعده هم اخستې شوې ده چه هغه دې دخپل خپل امت نه هم دا وعده واخلی. یوځل صحابه کرامو ؓ معلومات اوکړل چه یارسول الله ﷺ! مونږ ته خپل خبر راکړه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه زه د خپل پلار حضرت ابراهیم ؑ دعایم اودحضرت عیسی ؑ خوشخبری یم. زمادمورچه کله پښه درنه شوه نو په خوب کښې نې اولیدل لکه چه د هغې نه یونور راوتلې وی په کوم سره چه د شام د ښار بصرې محلونه اوبرقیدل (ابن اسحاق) د دې سند ښکلې دې اود نور سندونوسره هم د دې شواهد شته.

**نبی کریم ﷺ دٔ حضرت عیسی ؑ زیرې دې :-**مسنداحمدکښې دی زه دالله ﷻ په نیزد خاتم النبیین ووم هغه وخت کښې چه حضرت آدم ؑ په خپله خاوره کښې اخلې شوې وو.زه تاسو ته دهغه شروع واوروم. زه د خپل پلار حضرت ابراهیم ؑ دعا د حضرت عیسی ؑ زیرې او د خپلې مورخوب یم. د انبیاؤ

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الصف:٤٨٩٦، صحیح مسلم:٢٣٥٤، ترمذی:٢٨٤٠، احمد:٤/٨٠، ابن حبان: ٦٣١٣.

کرامو منیندو ته هم داسې خوب خودلې کیږي(۱) په مسنداحمدکښې په یوبل روایت باندې دی سره نیزدې روایت دې(۲)دمسندپه یوبل حدیث شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ مونږ د نجاشی بادشاه حبشه ته لیګلې وو مونږ تقریبا اتیاکسان وو.په مونږ کښې حضرت عبدالله بن مسعودؓ حضرت جعفرؓ حضرت عبدالله بن رواحه ؓ حضرت عثمان ابن مظعونؓ اوحضرت ابوموسیؓ وغیره هم وو.زمونږ دلته په رسیدوسره قریشو په خبریدوباندې مونږ پسې شاته خپل دوه سفیران عمرو بن عاص اوعماره بن ولیداولیګل. هغوی سره ئی د بادشاه دربارته تحفې هم اولیګلې.کله چه دوی راغله نو بادشاه ته ئی سجده اوکړه او بیا ښې او ګس طرف ته راتاوشو او کیناستل. بیانی خپل درخواست وړاندې کړو چه زمونږ د قبیلې یوڅوکسانوزمونږ دین پریخودې ستاسوملك ته راغلی دی.زمونږ قوم مونږ ددې دپاره تاسوله رالیګلې یو چه تاسو هغوی مونږ ته حواله کړئی.نجاشي تپوس اوکړوهغوی چرته دی؟هغوی وئیل هم دلته په دې ښارکښې دی.حکم اوشوچه هغوی حاضرکړئی نو دامسلمانان صحابه کرام ؓ دربارته حاضر کړې شو. د هغوی خطیب دغه وخت کښې حضرت جعفرؓ وو اوباقی خلق د هغه ماتحت وو. دوی چه کله راغله نو هغه سلام خو اوکړوولې سجده نی اونه کړه. درباریانو وئیل تاسو د بادشاه په وړاندې سجده ولې اونه کړه؟ جواب ملاؤ شوچه مونږ د الله ﷻ نه علاوه بل چاته سجده نه کوو. تپوس ئی اوکړو ولې؟ وئی فرمائیل الله ﷻ مونږ ته خپل رسول راولیګلواو هغه رسول ﷺ حکم کړې چه مونږ دالله ﷻ نه بغیر بل چا ته سجده اونه کړو او حضورﷺ مونږ ته حکم راکړې دې چه مونږ مونځ کوو او زکوة ورکوو.دې وخت کښې عمرو بن عاص چپ پاتې نه شوچه هسې نه د دې خبرواثر په بادشاه باندې اونه شي.درباریان او پخپله بادشاه له غصه وروستلود پاره په مینځ کښې خبرې شروع کړې چه حضور ددوی عقیدې دحضرت عیسی بن مریم ؑ باره کښې ستاسوخلقو نه بالکل مخالف دی. بادشاه تپوس اوکړو چه تاسو د حضرت عیسی ؑ اود هغه د مور باره کښې څه عقیده لرئی.هغوی اووئیل چه زمونږ عقیده دهغوی باره کښې هم هغه ده کومه چه الله ﷻ په خپل کتاب کښې مونږ ته تعلیم راکړې چه کلمة الله دې او روح الله دې کوم روح چه الله ﷻ د پیغلې مریم بتول طرف ته القاء کړو چه پیغله وه اویوانسان ورسره لاس هم نه وو لګولې اونه دهغې د بچی کیدوڅه موقعه وه. بادشاه په دې اوریدوباندې دزمکې نه یوډکې راوچت کړواو وئی وئیل ای دحبشه خلقو او ای عالمانو درویشانو واعظانو د دوی اوزمونږ په دې باره کښې هم یوه عقیده ده. د الله ﷻ قسم زمونږ او د دوی په عقیده کښې د دې ډکی هومره فرق هم نشته. ای دمهاجرو ډلې تاسو ته دې پخیر راغلې وی او ستاسو رسول ته دې هم پخیر راغلې وی د چاد طرف نه چه تاسو راغلی یئی.زما دا ګواهی ده چه هغه د الله ﷻ رښتونې رسول دی. هم هغه دې د چا باره کښې چه مونږ پیشن ګونی په انجیل کښې لوستلې ده. اودا هم هغه دې د چا زیرې چه زمونږ پیغمبر حضرت عیسی ؑ ورکړې دې. زما د طرف نه تاسوته عام اجازت دې چرته چه اوسیږئی اوسئی.دالله ﷻ قسم که د ملك د دې لانجونه زه فارغ شوم نو زه به د حضورﷺ په خدمت کښې حاضر شوې ووم د هغوی څپلنې به مې اوچتولې اود هغوی خدمت به مې کولو اود هغوی اودس به مې کولو. دومره وینا کولوسره ئی حکم اوکړوچه دا دواړه قریشانو کومې تحفې راوړې دی هغه دوی ته واپس کړئی. دې مهاجرینو نه خو حضرت عبدالله بن مسعودؓ ډیرزرحضورﷺ سره ملاوشو په جنګ بدرکښې هم هغه شرکت اوکړو.دحبشه ددې بادشاه دوفات کیدو چه کله حضورﷺ ته خبر اورسیدو نوحضورﷺ د هغه د پاره د بښنې دعا اوغوښتله. (۳) دا ټوله واقعه د

(۱) احمد: ۱۲۷/٤، حاکم: ٤١٨/٢.
(۲) احمد: ۲٦٢/٥ وسندحسن، مسندالطيالسي: ۱۱٤٠.
(۳) احمد: ٤٦١/١.

حضرت جعفر او حضرت ام سلمه نه روایت ده.(۱)
د تفسیرموضوع نه دا جدا جدا څیز دي په دې وجه مونږ دلته مختصراً ذکر کړه او نورتفصیل د سیرت په کتابونو کښې اوګورئ.زمونږ مقصددادې چه دلوئ مرتبې خاوند محمد ﷺ باره کښې وړاندینو پیغمبرانو علیهم السلام برابر پیشن ګویانې کولې اوخپل امتیانوته ئې دخپلوکتابونو نه دنبی کریم ﷺ صفتونه بیانولاود هغوی د تابعدارئی او نصرت ئې هغوی ته حکم کولو. اود حضور ﷺ د امر مشهورتیا د حضرت ابراهیم علیه السلام د دعا نه پس چه د ټولو انبیاؤ کرامو پلار وو. دغه شان د نورې مشهورتیا وجه د حضرت عیسی علیه السلام زیرې شو. په کوم حدیث شریف کښې چه حضور ﷺ د سوال کونکې په سوال باندې د نبوت د امر په نسبت د خلیل دعا او مسیح زیری طرف ته کړې دې د دې نه هم دغه مراد دې. دې دواړوسره د خپلې موربې بی د خوب ذکر کول د دې د پاره ووچه په اهل مکه کښې د حضور ﷺ د شروع نه د مشهورتیاوجه هم دغه خوب وو. الله ﷻ دې په هغوی ﷺ باندې بې شمیره درود او رحمت اولیګی. بیاارشاد کیږی چه سره د دومره مشهورتیا اوسره د انبیاؤ علیهم السلام د متواترو پیشن ګویانو هم چه کله هغوی روښانه دلیلونه راوړل راغلو نو مخالفینو او کافرانو ونیل چه دا خوصفاصفا جادو دې.

| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى |
|---|
| او څوك دې ډير ظالم \| دهغه چانه \| چې جوړني کړل |
| او د هغه چا نه لوئې ظالم څوک دې |

| عَلَى اللَّهِ | الْكَذِبَ | وَهُوَ يُدْعَى | إِلَى الْإِسْلَامِ ط | وَاللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| په الله باندې | دروغ | حال دا چې هغه ته دعوت ورکړې کیږي | طرف داسلام ته | او الله |

چې په الله ﷻ باندې دروغ تړی ؟ | حال دا دې چې هغه داسلام طرفته رابللې شی | او الله ﷻ

| لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ۝ | يُرِيدُونَ | لِيُطْفِئُوا | نُورَ اللَّهِ |
|---|---|---|---|---|
| هدایت نه کوی \| قوم | ظالم ته | دوئ غواړي | چې مړ کړي | نور دالله |

داسې ظالمانو ته هدایت نه کوی | ......... دوئ غواړي چې دالله ﷻ نور دخولې په

| بِأَفْوَاهِهِمْ | وَاللَّهُ | مُتِمُّ | نُورِهِ | وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په خلو خپلو سره | او الله | پوره کونکې دې | دنور خپل | او اګر که نه خوښوی ئې کافران |

پوکو باندې مړ کړي | او الله ﷻ د خپل نور کمال نه رسونکې دې | اګر که په کافرانو بدلګی

| هُوَ الَّذِي | أَرْسَلَ | رَسُولَهُ | بِالْهُدَى | وَدِينِ الْحَقِّ | لِيُظْهِرَهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه هغه ذات دې | چې وې لیږو | رسول خپل | دهدایت سره | اودحق دین سره | دپاره ددې چې غالب کړي دې |

الله ﷻ هغه ذات دې چې خپل رسول ئې په هدایت او په حق دین سره (تاسو ته) راولیږلو

| عَلَى الدِّينِ | كُلِّهِ | وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ۝ |
|---|---|---|
| دین لره | په دینونو ټولو باندې | اګر که نه ئې خوښوی مشرکان |

چې دا دین په نورو ټولو دینونو باندې غالب کړی | اګر مشرکانو ښه نه لګی |

(۱) احمد:۲۰۳/۱،۲۰۱.

**قوله تعالی:- يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللهِ**

**د الله تعالى دين روښانه دي**:- ارشاد دي چه کوم سړي په الله ﷻ باندې دروغ اود خان نه خبره اوتړي او هغه سره شريك مقرر کړي دي نه لوئی ظالم بل نشته. که چرته داسې سړې بې خبره وو نو بيا خو هم يوه خبره ده دلته خو داخبره ده چه هغه د اخلاص او توحيدطرف ته برابر راوبللې شي. د داسې ظالمانو په قسمت کښې هدايت چرته دې؟ د دې کافرانو خوښه خو دا ده چه حق په باطل سره ردکړي. د دې مثال بالکل داسې دې لکه چه سړې د نمر شغلې د خپلې خُلې په پوکوسره بې نوره کول غواړي. لکه څنګه چه دا ناممکن دی چه د ده د خُلې په پوکوبه د نمر رڼرا لاړه شي دغه شان دا هم ناممکن دی چه د الله ﷻ دين به دې کافرانوسره ردشي. الله ﷻ فيصله کړې ده چه هغه بۀ خپل نور پروه کوی که کافران بد ګڼړی نو ګڼړی دې. دې نه پس نی خپل دين اود خپل رسول حقانيت واضح کړلو، د دې دواړو آياتونو پوره تفسير په سورة برات کښې تيرشوې دې. **(فالحمدلله)**

| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا | هَلْ أَدُلُّكُمْ | عَلَىٰ تِجَارَةٍ | تُنجِيكُم |
|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو چې ايمان مو راوړې دې | آيا اوښايم زۀ تاسو ته | يو تجارت | چې خلاص به کړې تاسو |
| اې مومنانو! آيا داسې سوداګری درته اوښايم | | چې د دردناک عذاب | |
| مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۞ | تُؤْمِنُونَ | بِاللهِ | وَرَسُولِهِ | وَتُجَاهِدُونَ |
| دعذاب دردناك نه | ايمان راوړئ | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | او جهاد کوئ |
| نه مو بچ کړی | (هغه دا چې) په الله ﷻ او په پيغمبر ﷺ ايمان راوړئ | | | اود الله تعالى په لار |

| فِي سَبِيلِ اللهِ | بِأَمْوَالِكُمْ | وَأَنفُسِكُمْ ۚ | ذَٰلِكُمْ |
|---|---|---|---|
| په لار دالله کښې | په مالونو خپلو سره | او په نفسونو خپلو سره | دا کار |
| کښې په خپلو مالونو او ځانونوسره جهاد کوئ | | | دا ستاسو دپاره |

| خَيْرٌ لَّكُمْ | إِن كُنتُمْ | تَعْلَمُونَ ۞ | يَغْفِرْ لَكُمْ | ذُنُوبَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بهتره دې ستاسو دپاره | که يئ تاسو | چې پوهيږئ | اوبه بښي تاسو لره | ګناهونه ستاسو |
| غوره دا | که تاسو پوهيږئ | | الله ﷻ به ستاسو ګناهونه معاف کړی | |

| وَيُدْخِلْكُمْ | جَنَّاتٍ | تَجْرِي | مِن تَحْتِهَا | الْأَنْهَارُ | وَمَسَاكِنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او داخل به کړی تاسو لره | داسې باغونو ته | چې بهيږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | اوکورونه |
| او داسې باغونو ته به مو داخل کړی | | چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږی | | | اوښکلې پاک د استوګنې |

| طَيِّبَةً | فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ۚ | ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۞ | وَأُخْرَىٰ |
|---|---|---|---|
| پاك پاك ښۀ ښۀ | په باغونو دهميشه اوسيدو کښې | دا کاميابی لويه ده | او دويم څيز |
| ځايونو ته به مو داخل کړی | چې د هميشه اوسيدو باغونو دی | هم دغه لويه کاميابی ده | او بله يوه |

| تُحِبُّونَهَا ۖ | نَصْرٌ مِّنَ اللهِ | وَفَتْحٌ | قَرِيبٌ ۗ | وَبَشِّرِ |
|---|---|---|---|---|
| چې تاسو خوښوئ هغه | امداد دې دطرفه دالله نه | او فتحه | نزدې ده | او زيری ورکړه |
| (غته ګټه) چې ستاسو ډيره خوښه ده | يعني د الله مدداو (په دشمن باندې) زر کاميابی حاصلول اومؤمنانو | | | |

| الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳﴾ |
|---|
| مومنانو له ا |
| ته (ددې) زيرې ورکړه ا |

قوله تعالى:- هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ

.په الله تعالى باندې ايمان او جهاد ډېرولونه لوئى تجارت دې :دحضرت عبدالله بن سلام ﷺ والاحديث كښې تير شوى دى چه صحابه كرامو د رسول الله ﷺ نه داتپوس كول غوښتل چه الله ﷻ ته د ټولونه زيات محبوب عمل كوم يو دې؟ په دې باندې الله ﷻ عزوجل دا سورت نازل كړو په كوم كښې چه فرمائى راشئى چه زه تاسو ته د سراسر نفع والا تجارت اوښايم په كوم چه د نقصان هيڅ يوصورت هم نشته. او په كوم سره چه به مقصد حاصل او ويره ختمه شي. هغه دا چه تاسو د الله ﷻ په وحدانيت او د هغه د رسول په رسالت باندې ايمان راوړئى. خپل ځان اومال دهغه په لاركښې قربانى كړئى. يادساتئى چه دا د دنياتجارت اود دې د پاره سخت محنت او كوشش كولونه ډير بهتر دې. كه زماد دې خودلى شوى تجارت تاسو تجارتيان شوئى نوستاسو په هره ګناه خطابه زه معافى اوكړم.اود جنتونو صفااوڅتو محلونواوڅتودرجوته به تاسواورسوم.ستاسو بالاخانو اوددې هميشه پاتې كيدونكوباغونو د ونولاندې صفا سترا بهيدونكى نهرونه به په پوره موج سره روان وى. يقين لرئى چه زبردست كاميابى او اوچت مقصدحاصلول هم دغه دى. ښه ده دې نه هم زيات واورئى تاسو هميشه د دښمن په مقابله كښې زما امداد غواړئى نو كه خپله فتح غواړئى زما وعده پوره كړئى نودا به هم تاسوته دركړم. يوطرف ته مقابله اوشوه اوبل طرف ته فتح اوشوه، ديخوامخامخ شوئى او اخوا فتح او نصرت ستاسوقدمونه ښكل كړل. بل ځائ ارشاد دى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾ اې ايماندارو كه تاسو د الله ﷻ د دين امداد اوكړونوالله ﷻ به ستاسو امداد اوكړى او تاسو ته به ثابت قدمى درنصيب كړى. يو بل ارشاد دې ﴿وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ يقينًا الله ﷻ د هغه امداد كوى څوك چه د الله ﷻ د دين امداد كوى. بې شكه الله ﷻ د لوئ طاقت خاوند اوغيرفانى عزت مالك دې.دا امداد او فتح په دنيا كښې اوهغه جنت او نعمت په آخرت كښې به د هغه خلقو په حصه كښې وى چه څوك دالله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ تابعدارى كوى. دالله ﷻ اود هغه د دين په خدمت كښې د مال او ځان ډډه نه كوى. د دې د پاره اوفرمانيلې شو چه اې نبى ﷺ ايماندارو ته زما د طرف نه دا زيرې ورورسوه.

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا | كُونُوا | أَنصَارَ اللَّهِ | كَمَا |
|---|---|---|---|
| ا اے هغه كسانو چې ايمان مو راوړې دې ا | شئ ا | مددګاران دالله ا | لكه څنګه چې |
| ا انې مومنانو ، د الله ﷻ (د دين) مددګار شئ ا ...........لكه څنګه | | | |

| قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ | لِلْحَوَارِيِّينَ | مَنْ أَنصَارِي | إِلَى اللَّهِ ۖ |
|---|---|---|---|
| اوونيل ا عيسى خوى دمريم ا | حواريانو ته | ا څوك دې مددګار زما ا | طرف دالله ته |
| چې عيسى ﷺ د مريم خوى حواريانو ته ونيلى ووا چې څوک ما سره دالله ﷻ په دين كښې مدد كوى | | | |

| قَالَ الْحَوَارِيُّونَ | نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ | فَآمَنَت | طَّائِفَةٌ |
|---|---|---|---|
| اوونيل حواريانو | ا مونږه مددګاران دالله يو | ا پس ايمان راوړو | ا يوې ډلې ا |
| حواريانو جواب وركړوا چې مونږ دالله ﷻ (ددين) مددګاران يوا نوبيا په بنى اسرائيلو كښې | | | |

| مِّنۡۢ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ | وَکَفَرَتۡ طَّآئِفَةٌ | فَاَیَّدۡنَا | الَّذِیۡنَ |
|---|---|---|---|
| دبني اسرائيلونه | او انكار اوكړو بلې ډلې | پس تائيد اوكړو مونږه | دهغه كسانو |
| يوې ډلې ايمان راوړو \| او بلې ډلې انكار اوكړوا ..........نو مونږ د هغوی د دښمن په مقابله كښې | | | |
| اٰمَنُوۡا | عَلٰی عَدُوِّهِمۡ | فَاَصۡبَحُوۡا | ظٰهِرِیۡنَ |
| چې ايمان ئې راوړو | په مقابله ددشمنانو دهغوئ كښې | پس شو هغوئ | غالب |
| دمؤمنانو مدد اوكړوا ..........نو هغوئ غالب اوګرځيدل | | | |

**قوله تعالى:- كُوۡنُوۡۤا اَنۡصَارَ اللّٰهِ**

**د الله ﷻ دين او د پيغمبر ﷺ امداد كوه:** الله ﷻ وتبارك خپلو مؤمنانوبنديګانوته حكم وركوى چه هغوى دې هروخت اوهره لحظه د ځان مال عزت حياء قول فعل نقل و حركت نه دې په زړه او ژبه سره د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ دتولوخبرو په قبوليت كښې وى.بيا مثال وركوى چه دحضرت عيسى ﷺ تابعدارانو ته اوګوره چه دحضرت عيسى ﷺ په آواز باندې ډير زر لبيك اوونيل اود هغه په دې خبره چه څوك شته چه زما سره د الله ﷻ په دې خبروباندې امداد اوكړى هغوى بغيرد سوچ او غورنه اوونيل چه مونږ ټول ستا ملګرى يو اود الله ﷻ د دين په امدادكښې ستا تابعداريو. نو روح الله ﷺ اسرائيليانو اويو نانيانو ته هغوى مبلغ جوړكړل اود شام ښارونو ته ئې اوليګل.

**قوله تعالى:- مَنۡ اَنۡصَارِیۡۤ اِلَی اللّٰهِ**

د حج په ورځو كښې به د رسولانوسردار هم دا فرمائيل چه څوك شته چه ماله ځائ راكړى چه زه د الله ﷻ رسالت اورسوم. قريش خو ما د رب د پيغام رسولونه منع كوى[1]نوداهل مدينې اوس او خزرج قبيلوته الله ﷻ دا دهميشه نيك بختى وراوبښله. هغوى درسول الله ﷺ بيعت اوكړو اود هغوى ﷺ خبرې ئې قبولې كړې اوكلكې وعدې ورسره اوكړې كه چرې تاسو مونږ له راشئى نو بيا د هيڅ سور سپين طاقت نشته چه تاسو ته تكليف اورسوى.مونږ به ستاسود مخه خپل ځانونه اوجنګوو او په تاسو به هيڅ تكليف رانه ولو. بيا چه كله حضور ﷺ د خپلوملګرو سره هجرت اوكړو او هغوى له لاړو نوهغوى خپله وينا په حقيقت كښې پوره كړه او وئې خودل اود خپلې ژبې ساتنه ئې اوكړه. په دې وجه د انصارو په عزت مند لقب سره ممتاز شو اودا لقب لكه چه د هغوى يو جدا نوم جوړشو. الله ﷻ دې د هغوى نه خوشحاله شي او هغوى دې هم راضى كړى آمين. اوس چه كله ئې چه حواريين ځان سره كړه اود الله ﷻ د دين تبليغ د پاره راپاسيدل نود بنى اسرائيلو څه خلق خو په نيغه لارراغله اوڅه خلق رانغله بلكه هغوى ته اودهغوى موربې بى چه ډيره پاكه بى بى وه ته ئې ډير خراب نسبتونه اوكړل. دې يهوديانو باندې دالله ﷻ غضب نازل شو اودهميشه د پاره د الله ﷻ د دربار نه اوشړلې شو.بيا په منونكوكښې يوه ډله دخپل حد نه داسې زياته شوه اوهغه ئې دخپلې درجې نه دومره زيات كړو اوبياپه دې ډله كښې نورې ډيرې ډلې جوړې شوې.بعضوخو اوونيل چه سيدنا حضرت عيسى ﷺ دالله ﷻ خوئ دې (نعوذبالله) بعضو ونيل په دريوكښې دريم دې يعنى پلار خوئ او روح القدس او بعضو خو هم هغه الله ﷻ اومنلو.د دې ټولوذكر په سورة نساء كښې په تفصيل سره اوكورئى. رښتونى ايماندار الله ﷻ د خپل نبى آخر الزمان رسول الله ﷺ په راليكلوسره تائيداوكړو او د هغوى دښمنانو نصرانيانو باندې ئې دوى غالب كړل.

**قوله تعالى:- فَاٰمَنَتۡ طَّآئِفَةٌ**

---

[1]) احمد:٣/٣٢٢ح ١٤٦٥٣ وهوحديث صحيح، دلائل النبوة للبيهقى:٢/٤٤٢.

**د حضرت عيسى ﷺ د ملګرو ذکر:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه کله الله ﷻ اراده اوکړه چه حضرت عيسى ﷺ آسمان ته اوخيژوی نوهغوی ښه غسل اوکړواوخپلو ملګروله راغلودسر نه ئې داوبو څاڅکي څڅيدل.دا دولس صحابه وو چه په يوکورکښې ناست وو.راتلوسره ئې اوفرمائيل چه په تاسو کښې هغه هم شته چه په ما باندې ايمان راوړلې دې خوبيابه په ما کفرکوی اويوځل دوه ځل نه بلکه پوره دولس دولس ځل.بيائی اوفرمائيل چه په تاسوکښې څوك دې خبرې ته تيار دې چه په هغه باندې زماغوندې شکل واچولې شی اوهغه زما په بدله کښې قتل کړې شی اوبه جنت کښې زما په درجه کښې زماملګرې شی؟ يوځوان چه په دغه ټولوکښې کم عمر وو اودريدواوخپل خان ئې وړاندې کړو. هغوی اوفرمائيل ته کينه او بيائی دغه خبره اوکړه دې ځل هم هم هغه کمر عمر ځوان صحابی اودريدو نو حضرت عيسى ﷺدې ځل هم هغه کينولو. بيائی په دريم ځل دغه سوال اوکړو دې ځل هم بيا هغه ځوان اودريدو. هغه اوفرمائيل ډيره ښه ده. هم هغه وخت د هغه شکل او صورت هم د حضرت عيسى ﷺ په شان شو او پخپله حضرت عيسى ﷺ د دغه کور په يو روزان باندې آسمان ته اوچت کړې شو. اوس يهوديانورامنډې کړې او هغوی دغه ځوان حضرت عيسى ﷺ اوګڼړلو او راګيرئی کړو اوقتل ئې کړواوبه سولئی ئې کړو.بعضودولس دولس ځل کفر اوکړو سره د دې چه وړاندې ايماندار وو بيا د بنی اسرائيلود منونکې ډلې درې فرقې شوې. يوې ډلې خو ونيل چه پخپله الله ﷻ زمونږ په مينځ کښې د مسيح ﷺ په شکل کښې ووترکومې چه غوښتل بيا آسمان ته اوختلو، دوی ته يعقوبيه وائي. يوې فرقې ونيل چه په مونږ کښې د الله ﷻ ځویٔ وو ترکومې چه الله ﷻ غوښتلو هغه ئې په مونږ کښې اوساتلو او چه کله ئې أوغوښتل خپل خان ته ئې اوچت کړو. دې ته نسطوريه وائي. دريمه ډله په حق باندې قائمه وه اود هغوی عقيده دا ده چه د الله ﷻ بنده اورسول حضرت عيسى ﷺ په مونږ کښې وو ترکومې چه الله ﷻ غوښتل هغوی په مونږ کښې موجود وو بيا الله ﷻ خپل طرف ته اوچت کړو دا ډله د مسلمانانو ده.بيا د دې دواړو کافرانوډلو طاقت زيات شو او هغوی مسلمانان وهل ټکول او قتل کول ئې شروع کړه اودوی تيټ ماتحت او مغلوب وو ترهغه وخته پورې چه الله ﷻ خپل نبی حضرت محمد ﷺ راوليګلو.نود بنی اسرائيلو هغه مسلماني ډلې په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړو اودې کافرانو ډلو دهغوی نه هم کفر اوکړو. د دې ايماندارو الله ﷻ امداد اوکړواو دهغوی په دښمنانوباندې ئې غالب کړل. د حضوراکرم ﷺ غالب راتلل اود دين اسلام په ټولو دينونوباندې غالب کيدل په اصل کښې دهغوی غالب کيدل او په خپلو دښمنانوباندې فتح موندل دی. د تفصيل د پاره تفسيرابن جرير او سنن نسائي.

نودا امت په حق باندې قائم پاتې کيدوسره به د همېشه د پاره غالب وی تردې چه امرالله يعنی قيامت به راشي اوتردې چه د دې امت آخری خلق به حضرت عيسى ﷺ سره شی او مسيح دجال سره به جنګ کوی لکه څنګه چه په صحيح احاديثوکښې موجود دی. والله اعلم.

د الله ﷻ په فضل اوکرم سره د سورة صف تفسير ختم شو. **(فالحمدلله)**

**(تفسير سورة جمعه)**

په صحيح مسلم کښې د حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د جمعه په مانځه کښې سورة جمعه او سورة منافقون لوستلو.[1]

[1]) صحيح مسلم کتاب الجمعة باب مايقراء فی صلاة الجمعة:۸۷۷،ابوداؤد ۱۱۲٤، ترمذی:۵۱۹، ابن ماجه:۱۱۱۸، احمد:۲/۴۲۹.

| اياتونه | سورة الجمعه مدنية وهي احدى عشراية وفيها ركوعان | ركوع گانې |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑪ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ② |

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

پاكي بيانوي | الله لره | هغه څه | چې په اسمانونو كښې دي | او هغه څه | چې په زمكه كښې دي |

په زمكه او اسمانونو كښې چې څه دي دالله ﷻ پاكي بيانوي

الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ① هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ

چې بادشاه دې | پاك دې | غالب دې | دحكمتونو خاوند دې | هغه هغه ذات دې | چې وې ليږلو |

چې بادشاه دې | پاك دې | ......غالب دې | صاحب د حكمت دې | (الله تعالى) هغه ذات دې چې په

فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ

په اميانو ناپوهانو كښې | يو رسول | دهغوئ نه | چې لولي | په هغوئ باندې | ايتونه دهغه |

اميانو (عربو) كښې ئې هم د دوی نه يو پيغمبر راوليږلو | چې د الله ﷻ اياتونه ورته اوروی

وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۗ وَاِنْ كَانُوْا

او پاكوی هغوئ لره | اوښائي هغوئ ته كتاب | او دحكمت خبرې | حال دا چې | وو هغوئ |

او د كتاب او دحكمت خبرې ورته ښائي | ..........................حال دا چې دوئ وړاندې په ښكاره

مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ② وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ

مخكښې ددې نه | په گمراهئ ښكاره كښې | او ددهٔ پيغمبری دهغه نورو دپاره هم ده | ددوئ نه |

گمراهئ كښې وو | ..........................او په د وئ كښې مو نورو ته هم (ته ليږلی)

لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ③

چې نه دي ملاؤ شوی | ددوئ سره | او هغه | غالب | او حكيم دې

چې هغوئ لا تراوسه رارسيدلی نه دی | او هغه غالب اوصاحب د حكمت دې |

**قوله تعالى:- هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ**

**د رسول درسالت د منصب بيان:** هرخبرې كونكې اونه خبرې كونكې څيزد الله ﷻ پاكوالې بيانوی. لكه چه بل خاۍ ارشاد دې هيڅ څيزداسې نشته چه دهغه حمدد تسبيح سره نه كوی.ټول مخلوق كه هغه په اسمان كښې وی اوكه په زمكه د هغه د تعريفونواوپاكوالی په بيانولو كښې مشغول دې. هغه د زمكې اوآسمان بادشاه او په دې دواړو كښې پوره تصرف كونكې او اټل حكم جاری كونكې دې هغه د ټولو نقصاناتونه پاك او بې عيبه دې. په ټولوصفتونو كماليه باندې موصوف دې هغه عزيز اوحكيم دې.د دې تفسيرخوځل تيرشوې دې. د ((اميون)) نه مراد عرب دی لكه چه بل خاۍ ارشاد دې ﴿وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ۚ فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ۚ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴾ يعنى ته اهل كتاب اوان پړه خلقوته اووايه چه آيا تاسو اسلام قبول كړو؟ پس كه هغوی مسلمانان شونو په نيغه لار شواوكه مخ واړوی نو په تاباندې خو پيغام رسول دی اود خپلو بنديگانو پوره خيال ساتونكې خوالله ﷻ دې.

دلته دعربوذکر ځکه نشته چه دغیرعربو نفي وی بلکه صرف ددې دپاره دې چه په هغوی باندې احسان اواکرام د نور په نسبت ډیرزیات دې. لکه چه
بل ځائ کښې ارشاد باری ﷻ دې ﴿وَإِنَّهُ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ﴾ یعنی دا ستاد پاره هم نصیحت دې او ستاد قوم د پاره هم. دلته هم د قوم خصوصیت نشته ځکه چه قرآن کریم د ټول جهان د خلقو د پاره نصیحت دې. دغه یوبل ځائ ارشاد دې ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ خپل خپلوان او خاندان والا اوویروه. دلته هم دا هیڅ کله مطلب نه دې چه د هغوی خبرې صرف د خپل خاندان د خلقو پورې مخصوص ده بلکه عام ده.
دالله ﷻ ارشاد دې ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ خلقوزه ستاسو ټولو طرف ته د الله ﷻ رسول یم.
بل ځائ ارشاد دې ﴿لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ﴾ یعنی دې سره چه زه تاسو خبردار کړم اوهر هغه سړې چاته چه دا اورسی. دغه شان دقرآن کریم باره کښې اوفرمائیل ﴿وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ﴾ په ټولو ډلو کښې چه څوک هم د دې نه انکاراوکړی هغه دوزخی دې. د دې په شان نور هم ډیر آیاتونه دی د کومونه چه صفا ثابت دی چه د نبی کریم ﷺ رالیګل د زمکې په مخ د ټول مخلوق د پاره پیغمبر وو. د هریوتوراو سپین د پاره هغه نبی جوړکړې رالیګلې شوې وو. ﴿صلوات الله وسلامه علیه﴾ د سورت انعام په تفسیرکښې د دې پوره بیان مونږ کړې دې اوډیر آیاتونه او احادیث بیان شوی دی. ﴿فالحمدلله﴾ دلته دا فرمائیل چه ان پړهویعنی عربوته خپل رسول لیګل د دې د پاره وو چه د خلیل الله ﷺ د دعاد قبلیدل معلوم شی.
هغوی د اهل مکه د پاره دعا غوښتې وه چه الله ﷻ د دوی نه یورسول هم په دوی کښې راولیګه چه دوی ته د الله ﷻ آیاتونه اولولی او واوروی. دوی ته پاکوالې اوښائی اود کتاب او حکمت تعلیم ورکړی. نو الله ﷻ د هغوی دا دعا قبوله کړه اوکله چه مخلوق خدا ته د رسول الله ډیر حاجت وو بغیرد یوڅو اهل کتابونه چه د حضرت عیسی ﷺ په رښتونی دین باندې قائم وو اود زیاتی او کمی نه جدا وو. باقی ټولې دنیا حق دین هیرکړې وو اود الله ﷻ په ناخوښوکارونوکښې اخته وو. الله ﷻ حضرت محمد ﷺ راولیګلو. هغوی دې ان پړهوته د الله ﷻ آیاتونه اولوستل او واورول هغوی ته نی پاکوالې اوخودو او دکتاب اوحکمت تعلیم نی ورکړو. دې نه وړاندې هغوی په ښکاره ګمراهئی کښې وو. واورئی عرب دحضرت ابراهیم ﷺ د دین دعویدار وو خوحالت نی دا وو چه اصل دین نی اړولې راړولې وو. په دې کښې نی دومره بدلون کړې وو چه توحید په شرک سره او یقین په شك سره بدل شوې وو. او ورسره نی د خپل خان نه پیداکړې شوی بدعتونه د الله ﷻ په دین کښې شامل کړې وو. دغه شان اهل کتابوخپل کتاب بدل کړې وو. په هغې کښې نی تحریف کړې وو او بدل کړې ئی وو. دې سره نی معنې هم اړولې راړولې وې.
الله ﷻ حضرت محمد ﷺ ته یوعظیم الشان شریعت او کامل مکمل دین ورکولوسره ددنیاوالا طرف ته راولیګلوچه د دې فساد اصلاح اوکړی. د دنیاخلقو ته دالله ﷻ اصل احکام اورسوی. د الله ﷻ دخوښې او ناخوښې احکام خلقو ته معلوم کړی. جنت ته نیزدې کونکی اود دوزخ نه لرې کونکی ټول اعمال ورته اوښائی. د ټول مخلوق هادی یعنی لارخودونکې جوړشی، اصول او فروع ټول ورته اوښائی چه هیڅ لویه وړه خبره باقی پاتې نه شی اوټولې شك شبهې دټولونه لرې کړی. اوخلق په داسې دین باندې راواړوی په کوم کښې چه هرقسم ښیګړې موجود وی. ددې اوچت خدمت د پاره په هغوی کښې هغه اوچتوالې او بزرګئی راجمع کړې چه نه د هغوی نه وړاندې په چاکښې وې اونه د هغوی نه پس په چا کښې کیدې شی. الله ﷻ دې په هغوی ﷺ باندې د همیشه همیشه د پاره درود او سلام نازلوی آمین.
**قوله تعالی:- وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ**
د دویم آیت په تفسیرکښې د حضرت ابوهریره ﷺ نه په صحیح بخاری کښې نقل دی چه مونږ حضور ﷺ سره ناست ووچه په هغوی باندې سورة جمعه نازل شو. کله چه حضور ﷺ ددې آیت تلاوت اوکړو نو خلقو

تپوس اوکړو (وَاٰخَرِيۡنَ مِنۡهُمۡ) نه څه مراد دي؟دري خل دحضورﷺ نه سوال اوشونوبيا حضور ﷺ د حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه په سر باندي لاس کيخودو او وئی فرمائيل چه چرته ايمان د ثريا ستوري په خواکي يعني په آسمان کښي وو نو بيا به هم دي خلقو کښي يويا ډيرو هغه موندلي وو.[1]

د دي روايت نه ثابته شوه چه دا سورت مدنی دي اوداهم ثابته شوه چه د حضور ﷺ پيغمبری د ټولي دنيا دخلقو د پاره ده صرف د عربود پاره خاص نه ده ځکه چه حضورﷺ ددي آيت په تفسيرکښي د فارس والاد پاره اوفرمائيل هم د دي عام بعثت په وجه حضورﷺ د فارس او روم د بادشاهانوپه نوم د اسلام قبلولو خطونه ورواليګل.حضرت مجاهد رحمه الله وغيره هم فرمائی ([2]) دي نه مراد عجمي خلق دی يعني دعربونه علاوه چه کوموخلقو په حضورﷺ باندي ايمان راوړی اودحضورﷺ دوحی تصديق اوکړی ابن ابی حاتم کښي دی د اوس نه دري دري پشته روستو راتلونکی زما امتيان به بغير حساب کتاب جنت کښي داخليږی بيا حضورﷺ د دي آيت تلاوت اوکړو. ([3]) هغه الله عزت والا اوحکمت والا دي په خپل شريعت او خپل تقديرکښي غالب باحکمت دي.بيا فرمان دي چه داد الله ﷻ فضل دي يعني حضورﷺ په يوداسي زبردست عظيم الشان نبوت سره سرفرازکول اوددي فضل عظيم نه فائده ورکول، داخاص د الله ﷻ فضل دي.الله ﷻ چه خپل فضل چاته غواړی ورکوی هغه دډير فضل اوکرم خاوند دي

| ذٰلِكَ فَضۡلُ اللّٰهِ |
|---|
| دا فضل دالله دي |
| دا د الله ﷻ فضل دي |
| يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِيۡمِ ۞ مَثَلُ الَّذِيۡنَ |
| چي ورکوی ئي هغه چاته \| چي خوښه ئي شي \| او الله \| خاوند دفضل لوئ دي \| مثال دهغه کسانو \| |
| هغه چا ته ئي ورکوی چي وي غواړي\| او الله ﷻ دلوئي فضل خاونددي \| چاته چي تورات باندي |
| حُمِّلُوا التَّوۡرٰىةَ ثُمَّ لَمۡ يَحۡمِلُوۡهَا كَمَثَلِ الۡحِمَارِ يَحۡمِلُ اَسۡفَارًا ؕ |
| چي بار کړي شوي وو پري تورات \| بيا پورته نه کړوهغوئ هغه \| پشان دهغه خر دي \| چي باروی کتابونه \| |
| دعمل کولو حکم شوي وو\| اوهغوئ په دي عمل اونه کړو\| هغوئ مثال دخردي چي کتابونه پري بار وی |
| بِئۡسَ مَثَلُ الۡقَوۡمِ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ |
| ډير خراب دي \| مثال دقوم \| هغه قوم \| چي دروغ ئي اوګنړل \| ايتونه دالله \| او الله \| |
| د هغي قوم مثال ډير خراب دي \| چي د الله ﷻ ايتونو ته ئي نسبت د دروغو اوکړو \| او الله ﷻ |
| لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ ۞ قُلۡ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ هَادُوۡۤا |
| نه کوی هدايت \| قوم ظالم ته \| اووايه \| اے هغه کسانو \| چي يهوديان شوی يئ \| |
| ظالمانو ته هدايت نه کوی \| ..........ته اووايه \| ..........چي اني يهودو ! |

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الجمعة باب قوله (وآخرين منهم لما يلحقوا بهم): ۴۸۹۷، صحيح مسلم:۲۵۴٦، ترمذی:۳۳۱۰.
[2] الطبری:۳۷٤/۲۳.
[3] السنة لابن ابی عاصم:۳۰۸۹.

إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلَّهِ مِنْ دُونِ النَّاسِ

که ګمان کوئ تاسو | چي بیشکه تاسو | دوستان یئ د الله | بي دنورو خلقو نه (یعني یوازي تاسو) |

که تاسو دا دعوه کوئ| .........چي په ټولو خلقو کښي صرف تاسو د الله ﷻ دوستان ئي|

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ۝ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُ أَبَدًا

پس ارزو اوکړئ | دمرګ | که یئ تاسو | رښتینی | او هر ګز به ارزو اونهٔ کړي ددي | همیشه |

نو د مرګ ارزو اوکړئ | که تاسو رښتوني یئ| .........اودوئ به چرې هم دا ارزو اونکړي

بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۚ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ۝

په سبب دهغي | چي مخکښي لیږلي دي | لاسونو ددوئ | او الله | ښهٔ عالم دي | په ظالمانو باندي |

ځکه چي دخپله لاسه وړاندي لیږلي عملونه ورته معلوم دي|او الله ﷻ په دي ظالمانو ډیر عالم دي

قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ

اووایه | بیشکه مرګ | هغه | چي تاسو تښتئ | دهغي نه | پس بیشکه هغه | ملاویدونکي دي ستاسو سره

ته ورته اووایه چي تاسو دکوم مرګ نه تښتئ| هغه به تاسو باندي خامخا راځي

ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

بیا به واپس شئ تاسو|هغه ذات ته چي عالم دي په غیبو|اوپه ښکاره باندي | پس هغه به خبر درکړي تاسو ته

بیا به پټ اوښکاره هر څه عالم (الله ﷻ) ته ور اوړاندي کیږئ| ..........نو هغه به درته خپل

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

په هغه کارونو | چي وئ تاسو | چي کول به مو |

عملونه یو په یو اوښائي (چي تاسو دا عملونه کړي وو)|

قوله تعالى:- مَثَلُ الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ

**د یهودیانو مذمت:**-په دي آیاتونو کښي د یهودیانو مذمت بیانولي شي چه هغوی ته تورات ورکړي شوا و د عمل کولو د پاره هغوی واخستو خو بیا ئي پرې عمل اونه کړو.فرمائي چه د دوی مثال دخر په شان دي که په خر باندي کتابونه رابار کړي نو هغه ته دا پته شته چه په هغه باندي څه بوج دي ولي په دي نه پوهیږی چه په دي کښي څه دی؟ دغه شان دا یهودیان دی چه ظاهری الفاظ خو ورته ښه یاد دی خو نه ورته دا معلوم دی چه مطلب څه دي؟ او نه په دي باندي د هغوی عمل دي بلکه نور بدلونونه په کښي کوی. نو حقیقت دادي چه دي ناپوهه خناور نه هم بدتردی ځکه چه ده ته خو الله ﷻ پوهه نه ده ورکړي خو دوی سره د پوهي لرلو بیا هم ددي استعمال نه کوی.په دي وجه په دویم آیت کښي فرمائیلي شوی دی(أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ۝ )دا خلق د څاروو په شان دی بلکه د هغوی نه هم زیات څونیدلي دا غافل خلق دی.دلته فرمائي چه د الله ﷻ آیاتونه دروغ ګڼړلو والا خراب مثال دي داسي ظالمان د الله ﷻ د لارخودني نه محروم پاتي وی.

قوله تعالى:- كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ۚ

مسنداحمدکښې دی چه کوم سړی د جمعه په ورځ د امام په خطبه کښې خبرې کوي هغه د خر په مثال دې چه کتابونه پرې بار وی او چه څوك ده ته اووائی چپ شه د هغه هم جمعه لاړه.(۱) بیا فرمائی چه اې یهودیانوکه ستاسو دعوی ده چه تاسویه حقه یئی او حضورﷺ او د هغوی صحابه کرام ﷺ په ناحقه دی نو راشئی اودا دعااوغواړئی چه مونږ کښې څوك په ناحقه دی هغه دې الله مړه کړی. بیا فرمائی چه دوئ کوم اعمال وړاندې لیګلي دی هغه د دوی په وړاندې دی مثلاً فسق کفر فجور نافرمانی ظلم وغیره، په دې وجه زمونږ پیشن ګوئی ده چه هغوی به په دې باندې نه راضي کیږی اوظالمان الله ﷻ ښه پیژنی.دسورت بقره آیت ﴿قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ په تفسیرکښې د یهودیانود دې مباهلې پوره ذکر مونږ کړې دې او هلته موداهم بیان کړی دی چه مراد دا دې چه په خپل ځان باندې پخپله ګمراه وی اویا په خپل مقابل باندې که دوی ګمراه وی نود مرګ بددعادې اوکړی لکه څنګه چه د نصرانیانود مباهلې ذکرپه سورة آلعمران کښې تیرشوې دې اوګورئی تفسیر دسورت مریم آیت ﴿فَمَنْ حَاجَّكَ﴾ مشرکانوسره هم د مباهلې اعلان کړې شوې وو اوګورئی تفسیر دسورت مریم آیت ﴿ قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا ۚ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا﴾ یعنی اې نبی دوی ته اووایه چه څوك په ګمرهئی کښې وی رحمن دې هغه نور هم زیات کړی.

**درسول کریم ﷺ مقابلې اومباهلې ته څوک هم نه دی راوتلی:**-مسنداحمدکښې دحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه ابوجهل لعنة الله علیه اووئیل که محمدﷺ مې کعبې سره اوکتلونود هغه سټ به یا مال کوم. کله چه دا حضورﷺ واوریده نو وئې فرمائیل چه که ده داسې کړې وې نود ټولو په وړاندې به دې فرښتې رانیولې وو اوکه یهودیانو زما په مقابله کښې راتلوسره خپل مرګ غوښتلو نو خامخا به هغوی مړه کیدل اوخپل ځایونه به ئې په جهنم کښې لیدلو اوکه دمباهله د پاره خلق راوتلی نو هغوی به په واپس کیدو باندې هیڅ کله هم خپل بال بچ نه لیدلو. داحدیث په بخاری ترمذی او نسائی کښې هم موجود دی(۲)بیا فرمائی چه دمرګ نه خوڅوك بچ کیدې نه شی.لکه چه په سورت نساء کښې دی﴿أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾یعنی چه تاسو هرځائ کښې یئی مرګ به تاسو راګیر کړی که په مضبوطومحلونو کښې هم یئی.

**قوله تعالى:- تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ**

دمعجم طبرانی په یومرفوع حدیث کښې دی د مرګ نه د تختیدونکی مثال داسې دې لکه چه یوه لومبړه وی او په هغې باندې د زمکې څه قرض وی او هغه د دې ویرې چه چرته ئې رانه اونه غواړی په تختیدو تختیدو کله ستړې شی او هغه خپلې سوړې ته ننوځی. چه کله ننوځی نو زمکه ترې بیا تقاضا کړی نوآخر په منډو منډو به هلاکه شی.(۳)

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | إِذَا |
|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دی | کله چې |
| اې مومنانو | هرکله چې | |

۱) احمد:۱/۲۳۰.
۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة اقرا باسم ربك الذی خلق باب قوله تعالی ﴿کلا لئن لم ینته لنسفعا بالناصیة﴾:۴۹۵۸، ترمذی:۳۳۴۵
۳) للمعجم الکبیر:۶۹۲۲، مجمع الزوائد:۲/۳۲۳.

| نُودِيَ | لِلصَّلٰوةِ | مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ | فَاسْعَوْا | إِلٰى ذِكْرِ اللهِ |
|---|---|---|---|---|
| اواز اوکړې شي | دپاره دمانځه | په ورځ دجمعې | نو منډه وهئ | ذکر (یاد) دالله ته |
| دجمعې په ورځ دمونځ دپاره اذان اوشي نو دالله ﷻ د ذکر دپاره (جمات ته) روان شئ | | | | |

| وَذَرُوا الْبَيْعَ | ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | إِنْ كُنْتُمْ | تَعْلَمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپرېږدئ اغستل خرڅول | دا کار | بهتر دې | ستاسو دپاره | که يئ تاسو | چې پوهيږئ |
| او(په دغه وخت کښې) اخستل خرڅول پرېږدئ دا ستاسو دپاره بهتره ده که تاسو پوهيږئ | | | | | |

| فَإِذَا | قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ | فَانْتَشِرُوْا | فِي الْأَرْضِ | وَابْتَغُوْا |
|---|---|---|---|---|
| پس هر کله چې | پوره کړې شي مونځ | نو بيا خواره شئ | په زمکه کښې | او تلاش اوکړئ |
| بيا کله چې مونځ پوره شي نو په زمکه کښې خواره شئ او د الله ﷻ (مقرر کړې | | | | |

| مِنْ فَضْلِ اللهِ | وَاذْكُرُوا اللهَ | كَثِيْرًا | لَّعَلَّكُمْ | تُفْلِحُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دفضل دالله | او ياد کړئ الله | ډير | دپاره ددې | چې تاسو کاميابي بيا مومئ |
| روزي تلاش کوئ ..............او الله ﷻ ډير ډير يادوئ د دې دپاره چې کامياب شئ | | | | |

**قوله‌تعالى:- مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ**

**دجمعه معنى اومفهوم:-** دجمعه لفظ د جمع نه مشتق دې اود اشتقاق وجه دا ده چه په دې ورځ مسلمانان لويو لويو جماتونوکښې د الله ﷻ د عبادت د پاره راجمع کيږي اودا هم يوه وجه ده چه په دې ورځ دا ټول مخلوق کامل شوې. په شپږو ورځوکښې دا ټول کائنات جوړکړې شو او اوومه ورځ د جمعه ده. په دې ورځ حضرت آدم ؑ پيداکړې شو اوهم په دې ورځ په جنت کښې آباد کړې شو او هم په دغه ورځ د هغه ځاې نه راوويستلې شو، هم په دې ورځ به قيامت قائميږي. په دې ورځ کښې يوداسې وخت دې چه په هغې کښې مؤمن بنده د الله ﷻ نه څه اوغواړي الله ﷻ ئې هغه ته ورکوي لکه چه په صحيح احاديثوکښې راغلي دي. ابن ابي حاتم کښې دي چه حضورﷺ د سلمان ؓ نه تپوس اوکړو د جمعه ورځ کومه ده؟ هغه عرض اوکړوالله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ته ښه علم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل هم په دې ورځ ستاسو موريلار (يعنى آدم او حواؑ) الله ﷻ راجمع کړل، يائې داسې اوفرمائيل چه ستاسو پلار ئې راجمع کړو. دغه شان په يوموقوف حديث کښې د حضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې. والله اعلم.

**د جمعه فضائل:-** اول به دې ته يوم العروبه ونيلې شوه. رومبنوامتونوته هم په هرو اووه ورځوکښې يوه ورځ ورکړې شوې وه خود جمعه هدايت هغوى ته نه وو شوې. يهوديانود هفتې ورځ خوښه کړه چه په کښې د مخلقو پيدائش لاشروع شوې هم نه وو. نصارى د اتوارورځ خوښه کړه په کومه کښې چه د مخلوق دپيدا کيدو شروع شوې وه اود دې امت د پاره الله ﷻ جمعه خوښه کړه. په کومه ورځ چه الله ﷻ مخلوق پوره کړې وو لکه چه په صحيح بخارى کښې حديث دې چه مونږ خو په دنياکښې د راتلو په اعتبار سره د ټولونه روستونى يو خو د قيامت په ورځ به د ټولونه وړاندې يو. سوا د هغوى نه چاته چه زمونږنه اول کتاب الله ورکړې شوې دې.بيادهغوى په دې ورځ کښې هغوى اختلاف اوکړو.الله ﷻ مونږ ته نيغه لاراوخودله نوخلق په دې کښې هم زمونږنه روستو دى يهوديان سبااونصرانيان بله ورځ. (١)

---

(١) صحيح بخارى كتاب الجمعة باب فرض الجمعة: ٨٧٦، صحيح مسلم:٨٥٥.

**د جمعه مسائل:-** په مسلم شریف کښې دومره نورهم دي چه دقیامت په ورځ به د ټول مخلوق نه اول فیصله زمونږ باره کښې کیږي. [۱] دلته الله ﷻ مؤمنانوته د جمعه په ورځ د خپل عبادت د پاره د راجمع کیدو حکم ورکوي. لکه چه په دې آیت کښې د سعی نه مراد منډه نه بلکه مطلب دا دې چه د مانځه د پاره اراده اوکړه روان شه کوشش کوه کار روزګار پرېږده پاسه لکه چه په دې آیت کښې سعی دکوشش په معنی کښې ده ﴿وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا﴾ یعنی کوم سړې چه د آخرت اراده اوکړی بیا د هغې د پاره کوشش هم اوکړي. دحضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه اوحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښې به ځائ د ﴿فَاسْعَوْا﴾ کښې ﴿فامضوا﴾ دي [۲] داياد ساتنی چه د مانځه د پاره په منډه تلل منع دی.
بخاری اومسلم کښې دی چه کله تاسو اقامت واورئی نود مانځه د پاره په سکون او وقار سره سره ځنی چه کوم لاندې کړئی اولولې چه کوم فوت شی اداکړه [۳] په یوبل روایت کښې دی چه حضور ﷺ په مانځه کښې وو چه د خلقو د پښو تیز آوازونه ئی واوریدل. چه فارغ شو نو تپوس ئی اوکړو څه خبره ده؟ خلقو ونیل حضرت مونږ په مانځه کښې زر زر شامل شو ونی فرمائیل چه نه مونځ ته په تسلئی سره راتلل کوئی چه کوم لاندې کړې اوکړه اوچه کوم فوت شی پوره ئی کړه. [۴] حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی د الله ﷻ قسم دلته دا حکم نه دې چه په منډه د مانځه د پاره راشه داخومنع دی بلکه مراد زړه، نیت، خشوع او خضوع ده. حضرت قتاده رحمه الله فرمائی په خپل زړه اوعمل سره کوشش کوه [۵] لکه چه بل ځائ فرمان دې ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ﴾ کله چه ذبیح الله د خلیل الله سره ګرځیدو راګرځیدو قابل شو. د جمعه د پاره راتلونکوله غسل هم کول پکار دی. بخاری او مسلم کښې دی چه کله تاسوکښې څوک د جمعه د پاره مانځه له د تلواراده اوکړي نو هغه دې غسل هم کوي [۶] او په یوبل حدیث شریف کښې دی چه د جمعه په ورځ غسل کول په هربالغ باندې واجب دی. [۷] په یوبل روایت کښې دی چه په هربالغ باندې په اوومه ورځ سر او بدن وینځل دی [۸] دصحیح مسلم په حدیث کښې دی هغه ورځ د جمعې ده.
[۹] په سنن اربعه کښې دی چه کوم سړې د جمعه په ورځ ښه غسل اوکړي او د وخته نه د جمات طرف ته لاړشی او پیدل لاړشی سور نه وی اوامام سره نیزدې کینی خطبه ته غوږ کیږدی واوری فضولتیا اونه کړی نوهغه ته به په هر یو قدم باندې د کال د روژو اود ټول کار د قیام ثواب ملاویږی. [۱۰]
**د جمعې مونځ په اول وخت کښې د راتلو ثواب:-** بخاری اومسلم کښې دی چه کوم سړې د جمعه په ورځ لکه د جنابت دغسل په شان غسل اوکړي په اول وخت کښې لاړشی نو لکه ده چه د الله ﷻ په لارکښې یو اوښ قربان کړو او په دویم وخت کښې تلونکی ته د غوا په شان قربانی کونکې دې دریم وخت کښې تلونکې لکه د ګډې قربانی کونکې دې. په څلورم ساعت کښې تلونکې د الله ﷻ په لارکښې د چرګې د

---

[۱] صحیح مسلم: کتاب الجمعة باب هدایة هذه الامة لیوم الجمعة: 856، ابن ماجه: ۱۰۸۳.
[۲] الطبری: ۳۸۱/۲۳.
[۳] صحیح بخاری کتاب الاذان باب لایسعی الی الصلاة ولیاتها بالسکینة والوقار: ۶۳۶، صحیح مسلم: ۶۰۲، ابن ماجه: ۷۷۵، احمد: ۵۳۲/۲، ابن حبان: ۲۱٤٦.
[۴] صحیح بخاری کتاب الاذان باب قول الرجل فاتتنا الصلوة: ۶۳۵، صحیح مسلم: ۶۰۲.
[۵] الطبری: ۳۸۰/۲۳.
[۶] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب فضل الغسل یوم الجمعة: ۸۷۷، صحیح مسلم: ۸٤٤، ترمذی: ٤۹۲، احمد: ۹/۲.
[۷] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب فضل الغسل یوم الجمعة: ۸۷۷، صحیح مسلم: ۸٤٤، ابوداؤد: ۲٤۱.
[۸] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب هل علی من لم یشهد الجمعة غسل: ۸۹۷، صحیح مسلم: ۸٤۹، بیهقی: ۱۸۸/۳.
[۹] نسائی کتاب الجمعة باب ایجاب الغسل یوم الجمعة: ۱۳۷۹، وهوصحیح، احمد: ۳۰٤/۳، مصنف ابن ابی شیبه: ۹۵/۱، ابن حبان: ۱۲۱۹.
[۱۰] ابوداؤد کتاب الطهارة باب الغسل یوم الجمعة: ۳٤۵، وسنده صحیح، ترمذی: ٤۹۶، نسائی: ۱۳۸۲، ابن ماجه: ۱۰۸۷، حاکم: ۱/ ۲۸۲، ابن حبان: ۲۷۸۱.

صدقې کونکی په شان دې. پنځم وخت کښې تلونکي لکه اګئي چه دالله ﷻ په لارکښې ورکونکي وي.
بیاچه کله امام راشي نوفرښتې خطبه اوریدلود پاره حاضریږي[1] مستحب دی چه د جمعه په ورځ د
خپل طاقت مطابق ښه جامې واغوندي خوشبوئي اولګوی مسواك اوكړی په صفائي او پاکوالي کښې
دجمعه دمانځه د پاره راشي. په یوحدیث شریف کښې د غسل سره مسواك كول خوشبوئي مړل هم دی.
([2]) مسنداحمدکښې دی چه کوم سړې د جمعه په ورځ غسل اوکړی اود کور والا خلقو خوشبوئي
اولګوی که چرې وی ښه جامې واغوندي او بیا جمات ته راشي او څه نفلونه اوکړی که زړه ئې غواړي
او چاته څه تکلیف ورنه کړی (یعنی د خلقو په سټونو وانوړی اونه څوك ناست پاسوی) بیا چه کله امام
راشي او خطبه شروع شي په خاموشئي سره ئې واوری نود هغه ګناه چه د هغه جمعه نه واخله تر بلې
جمعه پورې وی د تولوکفاره کیږی([3])ابوداوُد او ابن ماجه کښې دی حضرت عبدالله بن سلام ﷺ فرمائي
چه ماد رسول الله ﷺ نه په منبرباندې اوریدلی دی چه په تاسو کښې په چا څه تکلیف دې که هغه د
خپل روزمره د کاردجامونه علاوه واخلی او د جمعه د پاره ئې خاص کړی([4])حضور ﷺ دا فرمان هغه
وخت اوفرمائیلو کله چه ئې خلقو سره هم هغه معمولی څادرونه اولیدل وئې فرمائیل که طاقت وی نو
داسې ولې نه کوئې.([5])

**دَ جمعه اول او دویم اذان:-** د کومې ورځ چه دلته په دې آیت کښې ذکر دې دې نه مراد هغه اذان دې چه
د امام په منبر باندې د کیناستونه پس وی. د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې به هم دغه اذان وو. کله به چه
هغوی ﷺ د کورنه تشریف راوړو نو منبرته به تلو اود هغوی ﷺ د کیناستونه پس به د هغوی په وړاندې
دا اذان کولې شو. دې نه وړاندې اذان د حضور ﷺ په زمانه کښې نه وو دا امیرالمؤمنین حضرت عثمان
بن عفان ﷺ د خلقو زیاتوالی ته د کتلوسره زیات کړو. په صحیح بخاری کښې دی اود حضرت ابوبکر
صدیق ﷺ اوحضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې به اذان هغه وخت کیدلوکله چه به امام د خطبه د
پاره په منبر کیناستلو.دحضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې چه کله خلق ډیر زیات شونو هغوی دویم اذان
په یویل مکان کښې کول:زیات کړه.ددې مکان نوم زوراء وو([6])جمات سره نیزدې هم دغه د تولونه
اوچت ځائ وو.

د حضرت ابن مکحول ﷺ نه په ابن ابی حاتم کښې روایت دې چه اذان به صرف هم یو ووچه کله به امام
راتلو د هغې نه پس به صرف تکبیروو کله به چه مونځ اودریدو هم د هغه اذان په وخت کښې به اخستل
او خرخول حرام وو. حضرت عثمان ﷺ د دې نه اول د اذان حکم ورکول صرف د دې د پاره زیات کړی
وو چه خلق راجمع شي.په جمعه کښې حاضریدل صرف آزادو سړو له دی د ښځو غلامانواو ماشومانود
پاره نه دی. مسافر مریض او د مریض خیال ساتونکی اودغه شان د نور عذر والا هم معذور کړې دې
لکه څنګه چه په کتابونود فروع کښې د دې ثبوت موجود دې. بیا فرمائي چه بیع پریږدئي یعنی د الله
ﷻ د ذکر د پاره لارښئي تجارت پریږدئي کله چه د جمعه د مانځه اذان اوشي. د علماء کرامو اتفاق دې
چه د دې اذان نه پس اخستل اوخرخول حرام دی. په دې کښې اختلاف دې چه که ورکونکې ورکړی نو
هغه هم صحیح دی که نه؟ د ظاهر آیت نه خوهم دامعلومیږی چه هغه به هم صحیح نه وی. والله اعلم.

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب الاستماع الی الخطبة یوم الجمعة:۹۲۹، صحیح مسلم:۷۵۰، ابوداوُد:۳۵۱، ترمذی:۴۹۹
[2] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب اللبس للجمعة: ۸۸۰، صحیح مسلم:۸۴۶.
[3] احمد:۵/۴۲۰وسنده حسن.
[4] ابوداوُد کتاب الصلاة باب اللبس للجمعة:۱۰۷۸ وهو حسن، ابن ماجه: ۱۰۹۵.
[5] ابن ماجه کتاب اقامة الصّلوات باب ماجاء فی الزینة یوم الجمعة:۱۰۹۶، وهوحسن بالشواهد.
[6] صحیح بخاری کتاب الجمعة باب الاذان یوم الجمعة: ۹۱۲.

قوله تعالی:- وَذَرُوا الْبَيْعَ
د جمعه د پاره خرڅول او اخستل پرېږدئ:- بیا فرمائی چه اخستل خرڅول پریخودل اود الله ﷻ د ذکر او مونځ دپاره ستاسو را تلل ستاسو په حق کښې د دین او دنیا د بهترئ سبب دی که تاسو پوهیږئ. او چه د مانځه نه فارغ شئ نو دې ګنړې نه تلل او د الله ﷻ فضل لټولو کښې لګیا کېدل ستاسو د پاره حلال دی. عراك بن مالك ﷺ به د جمعه د مانځه په فارغیدو باندې د جمات په دروازه کښې اودریدو اودا دعا به ئې کوله (اللهم انی اجبت دعوتك وصليت فريضتك وانتشرت كما امرتنى فارزقنى من فضلك وانت خير الرازقين) یعنی اې الله ماستا په آواز باندې حاضری ورکړه او ستا فرض کړې شوې مونځ مې اداکړو بیا ستا د حکم مطابق د دې ګنړې نه پاسیدم راغلم اوس ته ما ته خپل فضل رانصیب کړه ته د ټولو نه بنه رزق ورکونکې یئ [1] دا آیت خپلې مخې ته وړاندې ساتلو سره بعضې سلف صالحین فرمائی چه کوم سړې د جمعه د مانځه نه پس اخستل او خرڅول اوکړی هغه ته به الله ﷻ اویا درجې زیات برکت ورکړی. بیا فرمائی چه د اخستلو او خرڅولو په وخت کښې هم د الله ﷻ ذکر کوئی د دنیا په ګټه کښې دومره مشغول کیږه مه چه د آخرت ګټه هیره کړې.

بازار ته د تلو دعاء:-په حدیث شریف کښې دی چه کوم سړې بازار ته لاړشی او هلته (لااله الا الله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير) اولولی الله ﷻ د هغه د پاره یولاکه نیکئی لیکی او یولاکه بدئی معاف کوی([2])حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی کثیر الذکر هغه وخت ونیلې شی چه په ولاړه او ناسته هر وخت د الله ﷻ ذکر کوی.

| وَإِذَا رَأَوْا | تِجَارَةً | أَوْ لَهْوًا | انفَضُّوا | إِلَيْهَا | وَتَرَكُوكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او کله چې اولیدو دوئ | تجارت | یا تماشا | نو منډه کړه دوئ | هغې ته | او پرینبودی ته |
| او (بعضو) چې د سودا یا د تماشې څیز اولیدو | | | نو هغې پسې په منډه خواره واره شوا | | او ته ئې ولاړ پریخودلې |

| قَائِمًا | قُلْ | مَا عِندَ اللَّهِ | خَيْرٌ | مِّنَ اللَّهْوِ | وَمِنَ التِّجَارَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ولاړ | اورته اووایه | هغه چې د الله سره دی | بهتر دی | دتماشې نه | او د تجارت نه |
| ته ورته اووایه | چې د الله ﷻ سره کوم ثواب دې | | هغه دتماشو او د سوداګانو نه ډیر بهتر دې | | |

| وَاللَّهُ | خَيْرُ الرَّازِقِينَ |
|---|---|
| او الله | بهتره درزق ورکونکو نه دې |
| او الله ﷻ ډیر بنه روزی رسان دې | |

قوله تعالی:- وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً
جمعه او تجارت:-مدینې ته دجمعه په ورځ د تجارت مال راتللوپه دې وجه چه کوم حضراتو خطبه پریخودې وه اوپاسیدلې وو هغوی ته الله ﷻ غصه کوی چه دا خلق کله څه تجارت یالوبی تماشې وینی نو دهغې طرف ته روانیږی او پاسی اوتا په خطبه کښې ولاړ پریږدی.حضرت مقاتل بن حیان رحمه الله فرمائی چه دا د تجارت مال د دحیه بن خلیفه ﷺ وو د جمعه په ورځ راغلو او په ښار کښې د خبرورکولود پاره ئې ډنډوره اوغږوله. حضرت دحیه ﷺ هغه وخت لامسلمان شوې نه وو. د ډنډورې آوازاوریدو سره ټول خلق اودریدل صرف یوڅو کسان پاتې شو.مسند احمد کښې دی صرف دولس کسان پاتې شو باقی ټول

---

[1]) تفسیر قرطبی:۱۸/۱۰۸. (ابن ابی حاتم)
[2]) ابن ماجه کتاب التجارات باب الاسواق ودخولها:۲۲۳۵.

د دغه تجارتي قافلې طرف ته لاړل په کومې چه دا ایت نازل شو[1] مسندبن ابویعلی کښې دومره نور هم دی چه حضورﷺ اوفرمائیل چه که دا هم باقی نه وې پاتې شوې اوټول تلې وې نو په تاسو ټولوبه دا وادئ اُور جوړشوې وه او رالمبه شوې وو. کوم خلق چه د حضورﷺ د خوانه نه ووتلی په هغوی کښې حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمرفاروق ﷺهم وو. دې آیت نه دا هم معلوم شو چه د جمعه خطبه په ولاړه ورکول پکاردی.

صحیح مسلم کښې دی چه د جمعه په ورځ به نبی دوه خطبې ورکولې او په مینځ کښې به کیناستلو قرآن کریم به نبی لوستلواوخلقوته به نبی دتذکیراونصیحت خبرې کولې[2]دلته دا خبره هم معلومیدل پکاردی چه دا واقعه د بعضوپه قول کښې د هغه وخت ده کله چه به نبی کریم ﷺ د جمعه د مانځه نه پس خطبه ورکوله. په مراسیل ابوداوُدکښې دی چه رسول الله ﷺ به د خطبې نه وړاندې د جمعه مونځ کولو لکه څنګه چه په اخترونو کښې کولې شی. تردې چه یوځل حضورﷺ خطبه اوروله چه یوسړی راغلو ونی وئیل دحیه بن خلیفهﷺ د تجارت مال راوړلې دې راغلې دې دې اوریدوسره بغیرد یو څو کسانو باقی ټول پاسیده لاړه.[3] بیا فرمائی چه اې نبی! دوی ته خبر ورکړه چه د آخرت د کورثواب کوم الله ﷻ سره دې هغه د لوبوتماشونه د اخستلو خرڅولونه ډیر بهتردې. په الله ﷻ باندې توکل ساتل د اجازت په وخت کښې د رزق طلب کول چه څوك کوی الله ﷻ به هغه ته په بهترینه طریقه سره رزق ورکوی.

﴿فالحمدلله﴾ د سورة جمعه تفسیره پوره شو.

| اياتونه | | سورة المنافقون مكية وهي احدى عشرة اية وفيها ركوعان | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| (۱۱) | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | (۲) |

| إِذَا | جَآءَكَ | الْمُنٰفِقُوْنَ | قَالُوْا | نَشْهَدُ | إِنَّكَ | لَرَسُوْلُ اللهِ ۘ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| کله چې | راشي تاته | دا منافقان | نو وائي | مونږ ګواهي کوو | چې بیشکه ته | خامخا رسول د الله ئې |

(انې نبی ﷺ) کله چې تاته منافقان راشي(نو وائي چې مونږ ګواهي کوو چې بیشکه ته د الله رسول یې

| وَاللهُ | يَعْلَمُ | إِنَّكَ | لَرَسُوْلُهٗ ؕ | وَاللهُ يَشْهَدُ | إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او الله | ښه پوهیږی | چې بیشکه ته | خامخا رسول دهغه ئې | او الله ګواهي کوی | چې بیشکه دا منافقان |

او الله ته معلومه ده چې ته د الله ﷻ رسول یې او الله ﷻ (ددې خبرې) ګواهي ورکوی چې منافقان

| لَكٰذِبُوْنَ ۚ﴿۱﴾ | اِتَّخَذُوْٓا | اَيْمَانَهُمْ | جُنَّةً | فَصَدُّوْا | عَنْ سَبِيْلِ اللهِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| خامخا دروغژن دی | جوړ کړی دی دوی | قسمونو خپلو نه | ډال | پس منع کوی خلق | د لارې د الله نه |

دروغژن دی دوی د ځان دپاره خپل قسمونه ډالونه جوړکړی دی بیا دوی (نور خلق هم) د الله

[1] احمد:۳/۳۱۲، صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الجمعة باب ﴿واذا راوا تجارة اولهوا﴾:۴۸۹۹، صحیح مسلم:۸۶۳، ترمذی:۳۳۱۱.
[2] صحیح مسلم کتاب الجمعة باب ذکر الخطبتین قبل الصلاة...:۸۶۲.
[3] کتاب المراسیل: ۵۹.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُمْ | سَآءَ | مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ۝ | ذٰلِكَ |
| بیشکه دوئ چې دي | ډیر بد دي | هغه عملونه | چې دي دوئ | چې کوي ئې | دا هر څه |
| ﷺ دلارې نه منع کوي \| کوم کارونه چې دوی کوی هغه ډیر بد دي \| ......... دا څکه چې | | | | | |
| بِأَنَّهُمْ | اٰمَنُوْا | ثُمَّ | كَفَرُوْا | فَطُبِعَ | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ |
| په سبب ددې چې دوئ | ایمان راوړو | بیا | کفر اوکړو دوئ | پس مهر اووهلې شوا | په زړونو ددوئ باندې |
| دوئ ایمان راوړوا بیاکافران شول \| نو د دوی په زړونو مهر اولګولی شوا ............ | | | | | |
| فَهُمْ | لَا يَفْقَهُوْنَ۝ | وَإِذَا | رَأَيْتَهُمْ | تُعْجِبُكَ | |
| نو اوس دوئ | نه پوهیږي | او کله چې | اووینې ته دوئ لره | نو په تعجب کښې به واچوی تالره | |
| نو اوس دوی نه پوهیږي \| ........... او کله چې ئې ته اووینې \| نو د دوی بدنونه تاته ډیر ښه ښکاره شي | | | | | |
| أَجْسَامُهُمْ ط | وَإِنْ يَقُوْلُوْا | تَسْمَعْ | لِقَوْلِهِمْ ط | كَأَنَّهُمْ | خُشُبٌ |
| جوثې ددوئ | او که خبرې کوي دوئ | نو غوږ نیږدې | خبرو ددوئ ته | لکه چې دوئ | لرګی دي |
| او چې خبرې کوی \| نو ته ددوئ خبرې آورې \| دوئ جخت لکه (په دیوال پورې) ............ | | | | | |
| مُّسَنَّدَةٌ ط | يَحْسَبُوْنَ | كُلَّ صَيْحَةٍ | عَلَيْهِمْ ط | هُمُ الْعَدُوُّ | |
| ودرولې شوی دیوال ته | ګمان کوي دوئ | هر آواز | خلاف دخپل ځان | هم دوئ (یاخه) دشمنان دي | |
| اودرولې شوی لرګی دی \| دوئ هر آواز په خپل ځان ګنړي \| ............ دوئ (ستا) دښمنان دي | | | | | |
| فَاحْذَرْهُمْ ط | قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ | أَنّٰى | يُؤْفَكُوْنَ۝ | | |
| پس ځان اوساته ددوئ نه | هلاک دکړی دوئ لره الله | کوم طرفته | دوئ بوتللې کیږي | | |
| ددوئ نه ځان ساته \| الله تعالی دې دوئ هلاک کړی \| څنګه دوی د حق دین نه اړولی شي | | | | | |

قوله تعالی:- وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ۝
دمنافقانومذمت: الله ﷻ دمنافقانو نفاق ښکاره کوی چه دوی تاله راځی اوقسمونه خوړلوسره دخپل اسلام اظهارکوی. ستاد رسالت اقرارکوی خوپه اصل کښې د زړه نه کوته دی. په حقیقت کښې ته رسول الله ﷺ یې د دوی داقول هم دې خوپه زړه کښې د دې څه اثرنشته نودوی دروغژن دی په دې خبره کښې چه دوی تارسول الله منی. که دوی د ریښتونې کیدوډپاره قسمونه هم اوخوری خوته پرې یقین مه کوه دا قسمونه خوړل خود دوی دکس لاس کاردې. اوداخود دوی د خپلو دروغ سره د ریښتیاجوړولویوه ذریعه ده. مقصدادادې چه مسلمانان دې ددې نه هوښیاراوسی چرته دوی ریښتونی ایماندارونه ګنړی اود دوی په یوه خبره کښې تقلیداونه کړی. دوی به د اسلام په رنګ کښې کفراوکړی. دوی د الله ﷻ دلارنه لرې او بدعمله خلق دی.
د ضحاک رحمه الله په قراءت کښې (ایمانهم) د الف د زیرسره دې نومطلب به داوی چه دوی خپل ظاهری تصدیق دخپل ځان د پاره یوه لارجوړه کړې ده چه د قتل اودکفرد حکم نه به دنیاکښې بچ شو. دانفاق د دوی په زړونوکښې د دې ګناه په وجه ننوتې دې چه د ایمان نه واوختل کفرطرف ته اود هدایت نه اخوا

شو او د ضلالت طرف ته راغلل. اوس د دوی په زړونو باندې مهرلګیدلې دې او د خبرې بیخ ته د رسیدو قابلیت د تولونه ختم شوی دې.
په ښکاره خو ښکلې ښکاري ښې خبرې اوپه داسې فصاحت اوبلاغت سره خبرې اترې کوی چه خامخواه د نوروزړه راکاږي خوپه باطن کښې ډیرکوته ډیرکمزوري زړه نامرد اوبدنیته دی. چرته هم چه څه واقعه اوشوه اودوی پوهه شوچه بس مړه شو. بل ځای کښې ارشاد دې ﴿أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖ فَإِذَا جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۖ فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۚ أُولَٰئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا فَأَحْبَطَ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا﴾ ستاپه مقابله کښې بخل کوی.
اوبیاچه کوم وخت یره وی نوستاطرف ته سترګې داسې اړوی رااړوی ګوری لکه چه په چاباندې د مرګ بې هوشی شروع شی. بیاچه کله دایره لاړه شی نو تا په خپلو خرابوخبروسره پریکوی او د غنیمت د مال باره کښې نه کونکې خبرې کوی. دا بې ایمانه دې د دوی عملونه تباه دی اوپه الله ﷻ باندې داکار ډیر آسان دې.د دوی دا آوازونه د خالی خیتې د ډول دآوچت آوازنه نورڅه زیات وقعت نه لرې. هم دغه ستا دښمنان دی د دوی د چاپروسئ په خبرو د عقل مندواومسکینانوصورتونوپه دهوکه کښې رانه شې. الله ﷻ دې دوی تباه کړی لرسوچ دې اوکړی چه دوی ولې د هدایت لار پریږدی اوبې لارې روان دی؟
**دمنافق علامت:-** مسنداحمد کښې دی رسول الله ﷺ اوفرمائیل د منافقانوډیرې نښې دی په کوموسره چه دوی پیژندلې شی.د دوی سلام لعنت دې د دوی خوراك لوټ ماردې د دوی غنیمت حرام او خیانت دې د دوی د جمات سره نیزدیوالې ناخوښوی دوی مونځونوله په آخری وخت کښې راځی کبرژن او نخوت والا دی نرمی سلوك عاجزئ انکسارئ نه محروم دی نه پخپله داکارکوی اونه نوروخلقوته د دې کارونوکولو په نظر سره ګوری د شپې لرګی او د ورځې چغې اوشور کوی. په یوروایت کښې دی چه د ورځې ښه خوراك څښاك کونکی او د شپې د اوچولرګوپه شان پراته وی.[1]

| وَإِذَا قِيلَ | لَهُمْ | تَعَالَوْا | يَسْتَغْفِرْ | لَكُمْ | رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې اووئیلې شی | دوی ته | اچې راشی | اچې ښښنه اوغواړی | استاسو دپاره | رسول دالله نو تاؤ کړی دوی |
| اوکله چې ورته اووئیلې شی | اچې راځئ چې دالله پیغمبر ستاسو دپاره ښښنه اوغواړی | | | | انو دوی په تکبر سره |
| رُءُوسَهُمْ | وَرَأَيْتَهُمْ | يَصُدُّونَ | وَهُمْ | مُّسْتَكْبِرُونَ ۝ | |
| سرونه خپل | اووینې ته دوی لره | چې منع کیږی دراتلو نه | او دوی | تکبر کونکی دی | |
| خپل سرونه تاؤ کړی | اوته به ئې اووینې | چې دوئ مخونه تاوهی | اوځان غټ ګڼړی | | |
| سَوَاءٌ | عَلَيْهِمْ | أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ | أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ | | |
| یو شان ده | په حق ددوی کښې | که ښښنه اوغواړې ته (اے نبی ﷺ) دپاره ددوی | اوکه ښښنه اونه غواړې | | |
| د دوی دپاره برابره ده | که ته دوی دپاره ښښنه غواړې | او که دوی دپاره ښښنه نه غواړې | | | |
| لَهُمْ | لَن يَغْفِرَ اللَّهُ | لَهُمْ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ |
| دپاره ددوی | هرګز به ښښنه اونه کړی الله | دوی ته | بیشکه الله | لار نه ښائی | قوم |
| الله ﷻ به دوی ته هیچرې ښښنه اونکړی | ............ | | | | |
| بیشکه الله ﷻ نافرمانه خلقو ته | | | | | |

[1] احمد:۲/۲۹۳، مجمع الزوائد: ۱/۱۰۷.

| عَلٰى مَنْ | لَا تُنْفِقُوْا | يَقُوْلُوْنَ | هُمُ الَّذِيْنَ | الْفٰسِقِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په هغه چاباندې | چې خرچ مه کوئ | چې وائي | دا هم هغه خلق دي | فاسق ته |
| هدايت نه کوي \| داخوهغه خلق دي \| چې وائي ځوک چې دالله ﷻ پيغمبر سره ملګري شوي دي | | | | |
| خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ | وَلِلّٰهِ | يَنْفَضُّوْا ط | حَتّٰى | عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ |
| داسمانونو | خزانې | او الله لره دي | چې خوارۀ شي | چې دالله درسول سره دي اتر دې پورې |
| په هغوئ خرچ مه کوئ \| چې خوا ره واره شي ‌احال دا چې داسمانونو اودزمکې خزانې د الله ﷻ سره دي | | | | |
| لَئِنْ رَّجَعْنَآ | يَقُوْلُوْنَ | لَا يَفْقَهُوْنَ ۝ | وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ | وَالْاَرْضِ |
| که واپس لاړو مونږه | وائي دوئ | نۀ پوهيږي | وليکن دا منافقان خلق | او دزمکې |
| خو منافقان په دې نه پوهيږي \| ................... دوئ وائي که مونږ مديني ته واپس لاړو | | | | |
| وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ | الْاَذَلَّ ط | مِنْهَا | الْاَعَزُّ | لَيُخْرِجَنَّ | اِلَى الْمَدِيْنَةِ |
| او الله لره دي عزت | ذليلو خلقو لره | ددې مديني نه | عزتمند خلق | خامخا به اوباسي | مديني ته |
| نو عزت مند خلق به ذليله خلق د مديني نه بهر اوباسي \| اوعزت خو بس دالله ﷻ | | | | | |
| لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ ع | وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ | وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَلِرَسُوْلِهٖ |
| نۀ پوهيږي | وليکن منافقان خلق | او مومنانو لره دي | او رسول دهغه لره دي |
| اود رسول ﷺ اود مومنانو دي \| ........خو منافقان خلق نه پوهيږي | | | |

قوله تعالى:- رءُوْسَهُمْ

دمنافقانو بدخويونه: دملعونو منافقانو ذکر کولې شي چه کله ددوی په ګناه باندې ربنتونی مسلمانان وائی راځئ رسول الله ﷺ به ستاسو دپاره استغفاراوکړي نوالله ﷻ به ستاسوګناهونه معاف کړي نودوی د کبرد وجه نه سرخوزوی اوډډه کوی اومنع کيږی. د دوی بدله هم دغه ده چه د دوی دپاره د ښښې دروازې بندې دی دنبی استغفاربه هم دوی ته څه فائده ورنه کړی.ددې فاسقانوپه قسمت کښې هدايت چرته دې؟ په سورة براءت کښې هم ددې مضمون آيت تيرشوې دې اوهم هلته د هغې تفسيراود هغې متعلق احاديث هم بيان کړې شوی دی.

ابن ابی حاتم کښې دی چه عمرو وائی چه سفيان رحمه الله خپل مخ بل طرف ته واړولو اودغصې او کبر سره نی په ګکه سترګه برنداوکتل او دائی اوخودل چه (لَوَّوْارُءُوْسَهُمْ) دغه دی.دسلفونه داکثرو حضراتو فرمان دې چه دا ټول په ټول بيان د عبدالله بن ابی بن سلول دې لکه چه نيزدې راروان دی ان شاء الله. سيرت محمدبن اسحاق کښې دی چه عبدالله بن ابی بن سلول د خپل قوم لوئ سړې وو. کله چه به نبی کريم ﷺ مديني منورې ته راغلل اود جمعه په ورځ د خطبه ورکولودپاره په منبرکيناستونو دې به اودريدو او ونيل به نی خلقو دا دې د الله ﷻ رسول ﷺ چه په تاسو کښې موجود دې د چا په وجه چه الله ﷻ ستاسو اکرام اوکړو اوتاسوته نی عزت درکړو اوس په تاسوفرض دی چه د رسول الله ﷺ امداد اوکړنی عزت اوتکريم نی اوکړنی خبرې نی واورنی او چه څه اوفرمائی هغه په ځائ راوړنی دې وينا سره به کيناستو. د أحد په ميدان کښې د هغه منافقت ښکاره شو. ده د حضور ﷺ ښکاره نافرمانی اوکړه اودريمه حصه لښکرنی واخستواومديني ته واپس راغلو.کله چه رسول الله ﷺ د غزوه أحدنه فارغ شو اوبه خيرسره مديني ته تشريف راوړو،د جمعه ورځ راغله اوحضور ﷺ په منبرکيناستواو وراندې په شان دې نن هم

اودریدو اووینا کول ئې غوښتل نو بعضې صحابه کرام رضی الله عنهم اخوادیخوادریدل اود ده کیږي ئې اونیولي او ونې وئیل د الله ﷻ دښمنه کینه ته اوس ددې خبروکولو مخ نه لرې تاچه څه اوکړل هغه د چانه پټ نه دی اوس ته د دې اهل نه یئې چه په ژبه دې څه راځي نو وائې.دې خفه شواود خلقو به ستونو واوختوبهر لاړو اودائې وئیل چه ته به وائې چه لکه زه څه بدې خبرې کولوله ولاړووم. زه خود هغه کارنورمضبوط کولوله ولاړووم. یوڅو انصاریان صحابه کرام هغه ته په دروازه کښې ملاو شو نوونیل څه خبره ده؟ ده ورته اوونیل چه زه خود هغه کار نور مضبوط کولوله ولاړووم چه یوڅو صحابه کرامو به ما رااودانګل زه ئې راښکلم او غصې راباندې اوکړې لکه چه زه د څه خرابې خبرې کولود پاره ولاړووم زما نیت خودا ووچه زه د پیغمبر ﷺ د خبرې تائید اوکړم.هغوی ورته اوونیل چه خیرته اوس واپس شه مونږ به رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو حضور ﷺ به ستا د پاره د الله ﷻ نه ښښنه اوغواړی هغه وئیل ماته هیڅ ضرورت نشته.

**د عبدالله بن ابی واقعه:**-حضرت قتاده رحمه الله او سدی رحمه الله فرمائی چه دا آیت د عبدالله بن ابی باره کښې نازل شوې دې. واقعه داسې وه چه هم د دې قوم یو ځوان مسلمان هم داسې یو څو خرابې خبرې رسول الله ﷺ ته اورسولې. حضور ﷺ هغه راوغوښتو نوده صفاانکاراوکړو او قسم ئې اوخوړلو. انصارو دا صحابی ملامت کړو اوغصې پرې اوکړې اودې ئې دروغژن اوګنړلو.په دې باندې دا آیاتونه نازل شو او د دې منافق د دروغود قسمونو اود هغه ځوان صحابی رضی الله عنه د صداقت الله ﷻ واقعه بیان فرمائیلې ده. اوس هغه ته اوونیلې شو چه ته لاړشه اود رسول الله ﷺ نه استغفار اوکړه نوهغه د انکار په لهجه کښې سراوخوزولو او لاړنه شو. (۱)

**قوله تعالی:-** لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ

ابن ابی حاتم کښې دی چه درسول الله ﷺ مبارک عادت وو چه په کوم منزل کښې به کوزشونود هغه ځائ نه به نه تلوترکومې چه به ئې مونځ نه ووکړې. عزوه تبوك کښې رسول الله ﷺ ته خبر اورسیدو چه عبدالله بن ابی وائې چه مونږ عزتداره به دا بې عزته مدینې ته په رسیدو باندې د هغه ځائ نه اوباسو نو رسول الله ﷺ په آخری ورځ دکوزیدونه یوه ورځ وراندې کوچ اوکړو. هغه ته اوونیلې شو چه حضور ﷺ له لاړشه اود الله ﷻ نه د خپلې خطا معافی اوغواړه. د دې بیان په دې آیت کښې دې.د دې اسنادخود ابن جبیر رضی الله عنه پورې صحیح دی خودا وینا کول چه دا واقعه د عزوه تبوك ده په دې کښې نظر دې بلکه دا صحیح نه ده ځکه چه عبدالله بن ابی بن سلول خو په دې غزوه کښې دسر نه وو نه بلکه د لښکر یوه ډله ئې اختوسره واپس شوې وو. دکتب سیرومغازی مصنفینوکښې خودامشهوره ده چه داواقعه عزوه مریسیع یعنی عزوه بنو المصطلق ده. خو په دې قصه کښې حضرت محمد بن یحیی بن حبان او حضرت عبدالله بن ابوبکر او عاصم بن عمر بن قتاده رحمهم الله نه روایت دې چه د دې جنګ په وخت کښې د حضور ﷺ په یوځائ کښې قیام وو هلته حضرت جهجاه بن سعید غفاری رضی الله عنه اوحضرت سنان بن یزید په خپل مینځ کښې په اوبوځه جګړه اوشوه.حضرت جهجاه د حضرت عمر رضی الله عنه سرې وو جنګ اورد شو.سنان انصاروته د خپل امدا کولودپاره آواز ورکړواوجهجاه مهاجرینوته. په هغه وخت کښې زید بن ارقم رضی الله عنه وغیره انصارویوه ډله د عبدالله بن ابی سره ناسته وه. هغه چه کله دافریاد واوریدو نو وئیل زه اوس هم زمونږ په ښارونوکښې داخلق هم په مونږ حملې کوی په الله ﷻ مې دې قسم وی چه زمونږ اود دې قریشیان مثال هم هغه دې چه هغه چاوئیلی دی خپل سپې ښه چاق او تازه کړه چه هم تا اوخوری. د الله ﷻ قسم که چرته مونږ واپس شو او مدینې ته اورسیدو نومونږ به قدرت لرونکی خلق دا بې قدرته خلق د دغه ځائ نه اوباسو. بیاچه د هغه د قوم کوم خلق هغه سره ناست وو هغه ته ئې اوونیل چه دا تول

---

(۱) الطبری: ۳۹۹/۲۳.

مصیبت تاسو په خپل لاس په خان باندې اچولې دې.تاسو خلقو هغوی په خپلو ښاریوکښې اباد کړل د خپلو مالونونیمه حصه موهغوی ته ورکړه اوس هم که تاسو د دوی مالی امداد اونه کړئی نو دوی به تنګ شی او پخپله به د مدینې نه اوځی.حضرت زید بن ارقم ﷺ دا ټولې خبرې واوریدې. هغه دې وخت کښې ډیر کم عمر وو نیغ په دربار نبوت کښې داخل شو اوټوله واقعه ئې ورته بیان کړه. هغه وخت حضرت عمر بن خطاب ﷺ هم رسول الله ﷺ سره ناست وو په غصه شو او وئې وئیل یارسول الله ﷺ! اعبادبن بشر ته حکم اوکړئې چه د ده مرئې جدا کړی. نبی کریم ﷺاوفرمائیل چه بیا خوبه خلقو کښې مشهوره شی چه محمد ﷺ خود خپلو ملګرو ستبونه ماتوی دا صحیح نه دی او لاړشه خلقو ته د تلو اعلان اوکړه. عبدالله بن ابی ته چه کله پته اولګیده چه رسول الله ﷺ ته د دې خبرو اترو خبرشوې دې نو ډیر مغ سټ ئې اووهلواودحضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو معذرت حیلې حوالې تاویل او تحریف ئې اوکړو او قسمونه ئې اوخوړل چه ماداسې هیڅ کله نه دی وئیلی. داسړې په خپل قوم کښې طاقتور عزت مند وو اوخلقو هم وئیل چه حضور ﷺ کیدې شی دې ماشوم نه غلطی شوې وی ده ته وهم شوې وی او واقعه خو ثابتیږی نه.نبی کریم ﷺ ډیر زر د دې ځائ نه د تلود وخت نه وړاندې تشریف یوړو. په لارکښې حضرت اسید بن حضیر ﷺ ملاوشو اود حضور ﷺ د نبوت د شان برابر ئې په ادب سره سلام اوکړواو بیا ئې عرض اوکړو چه حضور ﷺ نن څه خبره ده چه د وخت نه وړاندې تاسو کوچ کوئې.حضور ﷺ اوفرمائیل چه ولې تاته نه ده معلومه چه ستا دوست ابن ابی څه وئیلی دی چه مدینې ته به رسیدو به مونږ عزت مندخلق د ذلیل د هغه ځائ نه اوباسو.حضرت اسید ﷺ اوفرمائیل یارسول الله ﷺ د عزت خاوندان خو تاسو یئې اوذلیل هغه دې یارسول الله ﷺ تاسو د هغه د خبرو خیال هم مه کوئې په اصل کښې دې ډیر سوزیدلې دې.واورئې چه د مدینې خلقو دې خپل سردارجوړولو تاج تیاریدلوچه الله ﷻ رب العزت تاسو راولیګلې د ده د لاس نه ملک اووتلو او دې سوزیږی. حضور ﷺ روان وو او هم په غرمه روان شوې وو ماښام شو شپه شوه او سحرشو تردې چه په نمرکښې تیزی راغله نو هله رسول الله ﷺ ډیره واچوله چه خلق په دې خبره باندې بیا اونه انخلی. ټول خلق ستړې ستومانه اود شپې نه ویښ وو کوزیدوسره ټول اوده شو. اوهلته دا سورة نازل شو[1]

د بیهقی روایت بیهقی کښې دی چه مونږ په غزوه کښې دحضور ﷺ سره وویومهاجریوانصاری په کانړی اوویشتلو. په دې خبره زیاته شوه او دواړو خپلو خپلوډلوته آواز اوکړو.حضور ﷺ سخت خفه شو او وئې فرمائیل چه دا څه د جاهلانوپه شان کار موشروع کړو دا فضول او خراب عادت پریږدئی.عبدالله بن ابی بن سلول وئیل د الله ﷻ قسم مدینې ته په رسیدوباندې به مونږ دا بې عزته او ذلیل د هغه ځائ نه بهر اوباسو.دې وخت کښې دانصارو شمیرد مهاجرینونه ډیرزیات وووروستوبیا مهاجرډیرزیات شو. حضرت عمر ﷺ ته چه کله د ابن ابی د خبرې پته اولګیده نو د رسول الله ﷺ نه ئې د هغه د قتل کولو اجازت اوغوښتو خو هغوی ﷺ منع کړو. ([2])

د زید بن ارقم بیان.-په مسند احمد کښې د حضرت زیدبن ارقم ﷺ نه روایت دې چه په غزوه تبوک کښې ماد دې منافق قول حضور ﷺ ته بیان کړو او هغه راغلوانکارئې اوکړواو قسمونه ئې اوخوړل هغه وخت زما قوم ماته ډیر بدرد اووئیل او هرشان ئې ملامت کړم چه ماداسې ولې اوکړه؟ زما زړه ډیرخفه شو د هغه ځائ نه لاړم او په ډیر غم او خفګان کښې ووم. کله چه حضور ﷺ زه یادکړم او وئې فرمائیل الله ﷻ ستا عذرنازل کړوستاریښتونولی ئې ښکاره کړه اودا آیت نازل شو﴿هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا ۗ وَلِلَّهِ خَزَائِنُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ﴾داحدیث په نورو ډیرو کتابونو کښې هم شته.

---

[1]) دلائل النبوة للبیهقی: ۴/۵۲-۵۳. (سیرة ابن اسحاق)

[2]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المنافقین باب ﴿یقولون لئن رجعنا الی المدینة....﴾:۴۹۰۷، صحیح مسلم: ۲۵۸۴، ترمذی: ۳۳۱۵

په مسنداحمدکښې د حضرت زیدبن ارقم ؓ بیان داسې دې چه زه دخپل تره سره په یوه غزوه کښې ووم اومادعبدالله بن ابی دادواړه خبرې واوریدې ما خپل تره ته اوونیل اوهغه نبی کریم ﷺ ته بیان کړې کله چه حضور ﷺ هغه راوغوښتلونوهغه صفاانکاراوکړواوقسم ئې اوخوړلو نو حضور ﷺ هغه رښتونې او زه دروغژن اوګنړلم. زما تره هم ماته ډیر بدرداوونیل زه دومره خفه اودلګیر شوم چه دکورنه بهر راوتل مې پریخودل.تردې چه داسورت نازل شو اوحضور ﷺ زما تصدیق اوکړو اوماته ئې دا واورولو.(١) د مسندپه یوبل روایت کښې دی د یوسفرپه موقعه باندې صحابه کرامو ؓ ته تنګی پیښه شوه نو هغوی ته د څه ورکولو ممانعت اوشو. الخ. رسول الله ﷺ هغه د دې د پاره راوغوښتوچه د هغه د پاره استغفاراوکړی خوهغه ددې نه هم مخ واړولو. قرآن کریم هغوی ته اډه لګونکی لرګی څکه اوونیل چه دا خلق د ډیر ښکلی بدن والا وو.(٢) په ترمذی کښې د حضرت زید بن ارقم ؓ نه روایت دې چه مونږ په یوه غزوه کښې د حضور ﷺ سره اووتلو مونږ سره څه باندچیان خلق هم وودااوبوخاې ته هغوی وړاندې رسیدل غوښتل دغه شان مونږ هم په دې کوشش کښې وو. یوځل یو اعرابی لاړو او په حوض ئې قبضه اوکړه او کانړی ترې چاپیره کړل اود پاسه ئې پرې څرمن خوره کړه. یوانصاری راغلود دې حوض نه ئې په خپل اوښ باندې اوبه څکل غوښتل نو ده منع کړو. انصاری په اوبوڅکلوباندې زور کولو نوهغه یو لرګې راوچت کړو او انصاری پرې په سر اووهلو دې سره دهغه سرزخمی شو.داد عبدالله بن ابی ملګرې وو نیغ هغه له راغلو او ټوله قصه ئې ورته اوکړه. عبدالله غصه شو وئې ونیل دې اعرابیانوله څه مه ورکوئی دوی به پخپله ولږې مړه کیدو نه اوتختی.دوی به د خوراك په وخت کښې رسول الله ﷺ له راتله او خوراك به ئې کولو. دوی به پاتې شی نو هسې به د ولږې مړه کیږی او تختی به او چه مونږ مدینې ته لاړ شو نودا کمینه به د هغه ځاې نه اوباسو. زه.هغه وخت د رسول الله ﷺ ملګرې ووم او دا هر څه مې واوریدل او خپل تره ته مې ذکر کړل، تره مې رسول الله ﷺ ذکر کړل. نبی کریم ﷺ هغه راوغوښتلو هغه انکار اوکړو اوقسم ئې اوخوړلو. حضور ﷺ هغه رښتونې او زه دروغژن اوګنړلم. تره مې ماله راغلو او وئې ونیل دا تا څه حرکت اوکړو؟ حضور ﷺ تانه خفه شو او ته ئې دروغژن اوګنړلې اونوروسلمانانوهم ته دروغژن اوګنړلې. په ما خودې دغم غرونه رامات کړل اود ډیر زیات غم په وجه مې سرښکته کړې د رسول الله ﷺ سره روان ووم. لږ ساعت به تیرشوې وو چه هغه زما خواله راغلو اوزما غوږ ئې اونیولو کله چه ما سره اوچت کړو نو حضور ﷺ مسکې شو او روان شو په الله ﷻ قسم چه زه دومره خوشحاله شوم چه بیانولې نه شم. که د دنیا د همیشه ژوندون ماته ملاوشوې وو نو بیا به هم زه دومره خوشحاله شوې نه ووم. بیا حضرت صدیق اکبر ؓ ماله خواته راغلو او وئې فرمائیل داحضور ﷺ تاته څه اوونیل؟ ما وئیل چه فرمائیلې خو ئې هیڅ نه دی خو مسکې شو او تشریف ئې یوړو. هغوی اوفرمائیل چه بس بیاخوشحاله اوسه.دې نه پس حضرت عمرفاروق ؓ راغلواومانه ئې دغه سوال دوباره اوکړونوما هم دغه جواب ورکړو.سحر سورت منافقون نازل شو(٣)په بل روایت کښې ددې سورت ﴿مِنۡهَا الۡاَذَلَّ﴾ پورې لوستل هم نقل دی(٤) عبدالله ابن لهیعه رحمه الله او موسی بن عقبه رحمه الله هم دا حدیث په مغازی کښې بیان کړې دې. خود دې دواړو په روایت کښې د خبر ورکونکی نوم اوس بن ارقم ؓ دې چه د قبیلې بنوحارث بن خزرج نه وو نوممکن ده چه زید بن ارقم ؓ هم خبر رسولې وی اوحضرت اوس ؓ هم اودا هم ممکن دی چه د راوی نه په نوم کښې غلطی شوې وی. والله اعلم.

---

١) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المنافقین باب ﴿اتخذوا ایمانهم جنة﴾:٤٩٠٠، احمد:٣٧٣/٤.

٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ﴿واذا رأیتهم تعجبك....﴾:٤٩٠٣، صحیح مسلم:٢٧٧٢، احمد:٣٧٣/٤.

٣) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة المنافقین:٣٣١٣وهو صحیح، دلائل النبوة:٥٤/٤.

٤) حاکم: ٤٨٨/٢-٤٨٩وسنده حسن.

ابن ابی حاتم کښې دی چه داواقعه د عزوه مریسیع ده.داهغه عزوه ده په کوم کښې چه حضرت خالد ﷺ حضور ﷺ لیکلې وو اودمناة بت نی مات کړې ووکوم چه د قفامشلل او سمندرپه مینځ کښې وو. په دې عزوه کښې ددوو کسانو په مینځ کښې جنګ شوې وویومهاجراوبله قبیله بهزوه اوقبیله بهزد انصارو ملګرې وو.بهزی انصاروته او مهاجر مهاجرینوته آواز اوکړو څه خلق د دواړو طرفونه اودریدل او جنګ جوړشو. کله چه جنګ ختم شو نومنافق او د بیمارزړونوخلق عبدالله بن ابی سره راجمع شو اوونیل ئی چه زمونږ خوتانه ډیر امیدونه وو اوته خوزمونږ د دښمنانونه زمونږ بچاو وې. اوس خوته بې کاره غوندې شوې نه د نفع خیال اونه د نقصان هم تا د دې جلبونه دومره خیژولې دی چه په خبره خبره دوی په مونږ رامنډې وهی.نوې مهاجروته به دې خلقو جلالیب وئیل.هغه د الله ﷻ دښمن جواب ورکړو چه اوس مدینې ته اورسونودا ټول به هغه ځایٔ نه اوباسو. مالك بن دخشن چه منافق ووهغه وئیل چه زه خوتاسو ته داول نه لګیایم چه دې خلقوسره تعلقات پریږدئی پخپله به ګډوډشی.داخبرې حضرت عمر ﷺ واوریدې اود نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوعرض ئی اوکړو چه د منافقانود دې مشرخوماته اجازت راکړه چه د ده کارخوخلاص کړم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ښه ده که اجازت درکړم نو ته به دې قتل کړې؟هغه عرض اوکړویارسول الله ﷺ اوس به ئی په خپل لاس باندې کارتمام کړم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ښه ده کینه دې کښې اسیدبن حضیر ﷺ هم دغې ویناکولوسره راغلو حضور ﷺ د هغه نه هم دا تپوس اوکړو او هغه هم داجواب ورکړو. هغه ئی هم کینولو.بیابه لږ ساعت تیرشوې وو چه دکوچ کولوحکم ئی ورکړو اودوخت نه اول لښکرروان شو.هغوی شپه ورځ دبل سحر پورې برابرروان ووچه کله په نمرکښې تیزی راغله نودکوزیدلو حکم ئی اوفرمائیلو.د غرمې اوختوپورې زر کوچ اوکړو اوهم دغه شان روان وو.دریمه ورځ سحر قفامشلل نه مدینې ته اورسیدل.حضرت عمر ﷺ ئی راوغوښتو ورته اوفرمائیل که ماتاته دهغه د قتل حکم درکړې وونوتابه هغه وژلو؟ حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه یقینًا به مې دهغه سرد تنې نه جدا کولو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه که تا هغه به دغه ورځ قتل کړې وونو د ډیرو خلقوپوزې به د خاوروشوې وې. که ما هغه ته وئیل هغه به د ده په قتل کولوکښې سستی نه کوله بیا به خلقو ته د خبروکولوموقعه ملاویده چه محمد ﷺ خپل ملګرې هم بې دردئی سره وژنی. هم د دې واقعه بیان په دې آیاتونوکښې دې. داسیاق ډیر غریب دې اوپه دې کښې ډیرې داسې ښکلې خبرې دی چه په نورو روایتونوکښې نشته.

**د سیرت ابن اسحاق روایت:-** په سیرة محمدبن اسحاق کښې دی چه د عبدالله بن ابی منافق خویٔ حضرت عبدالله چه پوخ او رښتونې مسلمان وو د دې واقعه نه پس د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئی اوکړو یارسول الله ﷺ مااوریدلی دی چه زما پلارکوم بکواس کړې دې د هغې په بدله کښې تاسو هغه قتل کول غواړئی.که هم داسې وی نود هغه د قتل حکم بل چاته مه ورکوئی زه پخپله خم اود هغه سرستاسو په قدمونوکښې لاندې راغورزوم. د الله ﷻ قسم چه د قبیله خزرج یویوسړی ته معلومه ده چه زمانه زیات یوخویٔ هم د خپل پلارسره احسان ښه سلوك مینه اوعزت کونکې نشته (خوزه د رسول الله ﷺ په فرمان باندې خپل پلار قتل کولوته تیاریم) که تاسو بل چاته دا حکم ورکړو او هغه دې مړکړونو هسې نه چه د انتقام په جوش کښې زه هغه قتل نه کړم اوښکاره خبره ده که مانه چرته داسې حرکت اوشو نوزه به د یوکافرپه بدله کښې یومسلمان قتل کړم او دوزخی به جوړشم. تاسوزما د پلار قتل کولو حکم هم ماته راکړئی.حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه زه هغه قتل کول نه غواړم مونږ خوبه هغه سره نوره نرمی کوو اوهغه سره به ښه سلوك کوو ترکومې پورې چه هغه مونږ سره دې. د حضرت عکرمه ﷺ او حضرت ابن زید ﷺ بیان دې چه کله حضور ﷺ د خپلو لښکروسره مدینې ته راورسیدو نوږ دې منافق عبدالله بن ابی خویٔ حضرت عبدالله ﷺ د مدینې په دروازه کښې اودریدو توره ئی

راوویسته او خلق مدینې ته داخلیدل تردې چه د ده پلار راغلونوده اوفرمانیل اخواشه مدینې ته مه زه
هغه ونیل څه خبره ده؟ زه دې ولې منع کړم؟ حضرت عبدالله ﷺ اوفرمانیل چه ته مدینې ته نه شې تلې
ترکومې چه د الله ﷻ رسول ﷺ ستاد پاره اجازت نه وی کړې. د عزت والا هم هغه ﷺ دې اوته ذلیل یې.
دې منع شو اودریدو تردې چه رسول الله ﷺ تشریف راوړو.د حضور ﷺ عادت مبارك ووچه د لښکر په
آخری حصه کښې به وو. نبی کریم ﷺ ته په کتوباندې دې منافق د خپل خوئ شکایت اوکړو.حضور ﷺ
د هغه نه تپوس اوکړوچه دې دې ولې حصار کړې دې؟هغه ونیل په الله قسم دې چه ترکومې تاسو
اجازت نه وی کړې دې دننه نه شی تلې. رسول الله ﷺ اجازت اوکړونو حضرت عبدالله ﷺ پلار ښار دننه
تلوته پریخودو(۱)مسندحمیدی کښې دی چه هغه پلارته اووئیل چه ترکومې دې په خپله خله نه وی
ونیلې چه ته ذلیل یې او رسول الله ﷺ عزت داردې ته مدینې ته نه شې داخلې دې.دې نه وړاندې د
حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشوې وواوعرض ئې کړې وو یارسول الله ﷺ د پلار دهیبت دوجه نه تر
ننه پورې مادپلار مخ ته په اوچتوسترګونه دی کتلې نوکه تاسوخفه ئې نوهم نن ماته حکم اوکړئې د
هغه سریه درته حاضرکړم بل چاته دهغه دقتل کولوحکم مه ورکوه.څکه چه زه دخپل پلارقاتل په
ګرځیدو نه شم لیدې(۲)

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تُلْهِكُمْ | اَمْوَالُكُمْ | وَلَآ اَوْلَادُكُمْ

اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | غافله دنه کړی تاسو | مالونه ستاسو | اونه اولاد ستاسو |

ائې مومنانو ! (یاد ساتئ) ستاسو مالونه او اولاد مو دالله ﷻ دیاد نه غافله نکړی

عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ | وَمَنْ يَّفْعَلْ | ذٰلِكَ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ ۝

دیاد دالله نه | او هغه چاچې اوکړو | دا کار | نو هغوئ | خاص هم هغوئ | په نقصان کښې دی |

.............او څوک چې داسې اوکړی | نو هغوئ تاوانیان دی

وَاَنْفِقُوْا | مِمَّا | رَزَقْنٰكُمْ | مِّنْ قَبْلِ | اَنْ يَّاْتِيَ

او خرچ اوکړئ | دهغې مال نه | چې درکړې دې مونږ تاسو لره | مخکښې ددې نه | چې راشی |

اومونږ چې درته څه درکړی دی | دهغې نه (په صدقاتو کښې) خرځ کوئ | ددې نه وړاندې چې

اَحَدَكُمُ | الْمَوْتُ | فَيَقُوْلَ رَبِّ | لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ | اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ

یو له تاسې ته | مرګ | او بیا وانی اے ربه زما | ولې دروستو نه کړو ماله | نیتې نزدې ته |

په تاسو کښې یو کس ته مرګ راشی انو بیا به وانی ائې زما ربه ! ما ته دې ولې څو ورځې مهلت را نکړو

فَاَصَّدَّقَ | وَاَكُنْ | مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ | وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ | نَفْسًا

چې ماصدقه ورکړې وې | او شوې وې | دصالحانونه | او هرګز نه روستو کوی الله | یو نفس لره |

چې ما خیراتونه کړې وې | اوپه نیکانو کښې شامل شوې وې | او الله ﷻ هیچا ته مهلت نه ورکوی

(۱) الطبری۲۳/۴۰۳.
(۲) مسندحمیدی:۱۲۴۵.

| إِذَا جَآءَ | أَجَلُهَا ۚ | وَاللّٰهُ | خَبِيرٌۢ | بِمَا | تَعْمَلُونَ ﴿١١﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| كله چې راشي | نيته دهغه | او الله | خبردار دې | په هغه كارونو | چې تاسو يې كوئ |

كله چې نې نيته پوره شي او الله ﷻ ستاسو دكارونو نه پوره پوره خبر دې

**قوله تعالى:- لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ**

**د مال اولادمحبت اود الله تعالى د ذكرنه غفلت:** الله ﷻ خپلو مؤمنانو بنديگانو ته حكم وركوى چه هغوى دې په كثرت سره دالله ﷻ ذكركوى اوخبردارې وركوى چه هسې نه د مال اواولاد په مينه كښې اينختو سره دالله ﷻ د ذكرنه غافل نه شئ. بيا فرمائى چه څوك د الله ﷻ د ذكر نه غافل شى اود دنيا دښائست په مينه مست شى دخپل رب په اطاعت كښې سُست شى هغه خپل نقصان كونكې پخپله دې. بيا په خپل اطاعت كښې دمال خرچ كولوحكم وركوى چه د خپل مرګ نه وړاندې خرچ كړه د مرګ د بې كسئ په وخت كښې پښيمانه كيدل او اميدونه تړل هيڅ نفع نه وركوى. هغه وخت به غواړې چه كه لږ وخت ته هم چاپريخودم نو چه څه نيك عمل كيدې شى اوبه كړم اوخپل مال به هم په خوشحاله زړه سره دالله ﷻ په لاركښې وركړم خوافسوس اوس وخت چرته دې؟راتلونكې مصيبت راغلو اونه ختميدونكې آفت په سرولاړ دې. بل ځاى كښې ارشاد دې ﴿وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ۗ أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ﴾ يعنى خلق هوښياركړه كوم وخت چه هغوى له عذاب راشى نوداظالمان به وائى اې زمونږه ربه كه مونږ ته لږشان مهلت ملاوشى چه مونږ ستا دعوت قبول كړواوستادرسول اتباع اوكړوالخ.په دې آيت كښې خود كافرانودمذمت ذكردې.په دويم آيت كښې په نيك عمل كښې دكمې افسوس بيان څه داشان دې﴿حَتَّىٰ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ﴾ يعنى په هغوى كښې چه چاته مرګ راشى نو وائى زما ربه ما واپس كړه نوزه به نيك عمل اوكړم الخ.دلته فرمائى چه د مرګ وخت وړاندې روستوكيږى نه.الله ﷻ خبر لرونكې دې چه څوك په خپل قول كښې رښتونې دې اوبه خپل سوال كښې په حقه دې.كه دا خلق واپس كړې شى نوبيا به هم داخبرې هيرې كړى اوهم هغه كارونه به كوى چه دې نه وړاندې كول.

**قوله تعالى:- لَوْلَآ أَخَّرْتَنِيٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۙ**

ترمذى شريف كښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه هرهغه سړې چه مالداروى اوهغه حج نه وى كړې يازكوة نې نه وى وركړې هغه د مرګ په وخت كښې دنياته د واپس كيدو خواهش كوى. يوسړى عرض اوكړو حضرت دالله ﷻ ويره اوكړه دواپسئ خواهش خوكافران كوى حضور ﷺ اوفرمائيل تندى ولې كوې؟ واوره قرآن فرمائى. بيا حضور ﷺ دا پوره ركوع تلاوت اوفرمائيلو. د هغه نه نې تپوس اوكړو زكوة په څومره كښې واجب دې هغه وئيل سل او زياتوكښې. تپوس نې اوكړوحج كله فرض كيږى ونې فرمائيل چه كله د لارې خرچ او د سورلئ د خرچ طاقت وى. (١) په يومرفوع روايت كښې داسې هم دې خوموقوف ډير صحيح دې.

د ضحاك رحمه الله په روايت كښې د ابن عباس رضی الله عنه والا هم منقطع دې. په دويم روايت كښې يوراوى ابو جناب كلبى دې هغه هم ضعيف دې. والله اعلم. ابن ابى حاتم كښې دى چه يوځل صحابه كرامو د رسول الله ﷺ په وړاندې د عمر د زياتى ذكر اوكړو نوحضور ﷺ اوفرمائيل كله چه اجل راشى بيا روستو كيږى نه. د عمرزياتوالې صرف داسې دې چه الله ﷻ يوبنده ته نيك صالح اولادوركړى چه د هغه د مرګ نه پس د هغه د پاره دعاكوى.(٢)

١) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة المنافقين: ٣٣١٦.
٢) تفسير ابن ابى حاتم كتاب المجروحين: ٣٣١/١.

(فالحمدلله) د الله ﷻ په فضل وکرم اولطف ورحم سره د سورة منافقون تفسیر ختم شو.

(تفسیرسورة تغابن)

دابن عساکرپه یوډیرغریب بلکه منکر حدیث کښې دی چه کوم ماشوم پیداکیږی دهغه دسر په جوړونو کښې د سورة تغابن پنځه آیاتونه لیکلي شوی وی.

| رکوع ګاڼې | | سورة التغابن مكية وهي ثماني عشرة اٰية وفيها ركوعان | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ② | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ⑱ |

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

تسبیح (پاکي) بیانوي |الله لره | هغه څه | چې په اسمانونو کښې دی |اوهغه څه| چې په زمکه کښې دی

په زمکه او اسمانونو کښې چې څه دی ټول د الله ﷻ پاکي بیانوي

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ① هُوَ الَّذِيْ

هغه لره بادشاهي ده | او هغه لره ثناده | او هغه په هر څیز باندې | قادر دې | هغه هغه ذات دې

بادشاهي صرف د هغه ده| او ټول تعریفونه دهغه دپاره دی | اوهغه په هرڅیز قدرت لری | اوهغه (الله)

خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ

چې پیدا ئې کړئ تاسو | پس څینې له تاسو نه | کافر دې | او څینې له تاسو نه | مومن دې

هغه ذات دې | چې ټول ئې پیدا کړئ | نو بعضې په تاسو کښې کافران دی |اوبعضې مومنان دی

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ② خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

| او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | لیدونکې دې | هغه پیدا کړل آسمانونه | او زمکه

او الله ﷻ ستاسو کارونه وینې ګوری| ...................... اسمانونه او زمکه ئې

بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَاِلَيْهِ

په حقه سره |او شکل ئې جوړ کړوستاسو | پس ډیر ښائیسته ئې کړل | شکلونه ستاسو |اوخاص هغه ته

په یومقصد سره پیدا کړل| اوتاسو ته ئې شکلونه درکړل |اوډیر ښائسته ئې درته درکړل |اودهغه طرفته

الْمَصِيْرُ ③ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

واپس ورتلل دی | معلوم دی هغه ته | هغه څه چې په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی

واپس کیدل دی | په زمکه او په آسمانونو کښې چې څه دی ټول هغه (الله) ته معلوم دی

وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

او معلوم دی هغه ته | هغه چې پټوئ ئې تاسو | او هغه چې | ښکاره کوئ ئې تاسو | او الله | عالم دې

او الله تعالی ستاسو په پټو اوښکاره کارونو باندې ښه پوهیږی | ...............او الله ﷻ ته د

| بِذَاتِ الصُّدُوْرِ |
|---|
| په حال دسینو باندې |
| زړونو ټول رازونه ښه معلوم دي |

قوله تعالى:- يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

ذاته تعالى تسبيح:-د مسبحات په سورتونوکښې د ټولونه آخرى سورت هم دا دې. دمخلوقاتو د الله ﷻ د تسبیح بیان خوځل شوې دې.دملك اوحمدوالا هم الله دې.په هرڅيز کښې دهغه حکومت دې په هرکار کښې اود هرڅيز په اندازه مقررولوکښې هغه د تعريف لائق دې. چه د کوم څيزاراده اوکړي هغه پوره قدرت والا دې، نه د هغه څوك مقابله کولې شی اونه هغه څوك بندولې شی.که هغه اونه غواړي نوڅه به هم نه وی هغه د ټول مخلوق خالق دې هم د هغه په اراده باندې بعضې انسانان کافر او بعضې مؤمن اوهغه ته ښه معلوم دی چه څوك دهدايت لائق او څوك دضلالت مستحق دی؟هغه دخپلو بنده ګانو په عملونوګواه دې اودهرعمل به پوره پوره بدله ورکوی.هغه دعدل اوحکمت سره دآسمانونواو زمکې پيدائش کړې دې. هم هغه تاسو ته صفاستره اوښکلې شکلونه درکړي دی. لکه چه بل ځای کښې ارشاد ربانی دې ﴿يٰاَيُّهَا الْاِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ﴾ الخ اې انسانه ته د خپل کریم او مهربان رب نه څه څيزدهوکه کړې هغه ته پيداکړې بيائی ټيك کړې بيا ئې صحيح کړې اوبه کوم صورت کښې غوښتل ته ئې جوړکړې.بل ځای کښې دی ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ﴾هم الله ﷻ دې چه ستاسود پاره ئې زمکه اودروله او آسمان ئې چت جوړ کړو اوتاسو ته ئې بهترين صورتونه درکړه اود خوراك دپاره ئې تاسوته پاك څيزونه درکړل الخ. آخر ټولو له دهغه طرف ته واپس کيدل دی.آسمان زمکه اوهريو نفس اود ټول کائنات علم ورته حاصل دې.ترڅو پورې چه د زړه په پټواراداو خبروهم خبر دې.

| اَلَمْ يَأْتِكُمْ | نَبَؤُا | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
|---|---|---|---|
| آيا نه دې راغلې تاسو ته | خبر | دهغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو |
| آيا تاسوته دپخوانو خلقو خبر راغلې نه دې چې تاسو نه | | | |

| مِنْ قَبْلُ | فَذَاقُوْا | وَبَالَ | اَمْرِهِمْ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ اَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| مخکښې ددې نه | پس اوڅکو هغوئ | عذاب | دعملونو خپلو | او دې دپاره دهغوئ | عذاب دردناك |
| وړاندې ئې کفر کړې وو انو هغوئ دخپلو کارونو په عذاب کښې راګير شول او هغوئ دپاره دردناك عذاب دی | | | | | |

| ذٰلِكَ | بِاَنَّهٗ كَانَتْ | تَّاْتِيْهِمْ | رُسُلُهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| دا انجام | په سبب ددې شو | چې راتلل به هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دواضحه نښو سره |
| دا په دې وجه چې هغوئ ته پيغمبران په ښکاره نښو سره راغلی وو | | | | |

| فَقَالُوْا | اَبَشَرٌ | يَّهْدُوْنَنَا | فَكَفَرُوْا | وَتَوَلَّوْا |
|---|---|---|---|---|
| نو اوبه وئيل هغوئ | آيا انسان دې | چې هدايت به کوی مونږ ته | پس انکار اوکړو هغوئ | او مخ ئې واړووه |
| نو وې وئيل چې آيا زمونږ پشان انسانان به مونږ ته لارې ښائی نو انکارئې اوکړو اومخ ئې واړولو | | | | |

وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ط وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ۝٦ زَعَمَ الَّذِيْنَ

او بې پروا شو الله | او الله | بې پروا دی | ستائيلې شوې دی | په دعوی سره اوونيل هغه کسانو

او الله ﷻ هم د هغوئ څه پرواه اونکړه | او الله ﷻ بې پرواه دی | ستائيلی شوی دی | د کافرانو خيال

كَفَرُوْٓا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا ط قُلْ

چې انکار ئې کړې وو | چې هرګز به هغوئ نه راپاڅولې کيږي (پلس دمرګ نه) | ورته اووايه

دې | چې هغوئ به هيڅ کله دوباره ژوندی نشي راپورته کولې | ..............ته اووايه

بَلٰى وَرَبِّيْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ

ولې نه | قسم دې په رب زما | چې خامخا به تاسو راپاڅولې کيږئ | بيا به خامخا خبر درکړې کيږي تاسو له

چې ولې نه | زما دې په خپل رب قسم وی | چې تاسو به خامخا راپاڅولې شئ | بيا به درته ټول عملونه

بِمَا عَمِلْتُمْ ط وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۝٧ فَاٰمِنُوْا

دهغې کارونو | چې کړې دی تاسو | او دا کار | په الله باندې | اسان دی | پس ايمان راوړئ

په ګوته کولې شی | ..............اودا کار الله ﷻ ته ډير اسان دی | نو په الله ﷻ

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ط

په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | او په (قران) نور باندې | هغه نور | چه نازل کړې دی مونږ |

او د هغه په رسول ﷺ او په هغه نور (قران) باندې ايمان راوړئ | چې مونږ رالېږلې دی

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝٨ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ

او الله تعالىٰ | په هغه کارونو | چې کوئ يې تاسو | خبردار دی | په کومه ورځ | چې به راجمع کړي تاسو |

او الله ستاسو دکارونو نه خبر دی | په کومه ورځ چې به هغه تاسو د جمع کيدو (يعنی دقيامت) په ورځ

لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ط وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ

ورځې دراجمع کيدو ته | دغه به ورځ دګټې تاوان وی | او چاچې ايمان راوړو | په الله باندې |

راجمع کړي | هم دغه د (سود) زيان ورځ ده | ..............اوڅوک چې په الله ﷻ ايمان راوړي

وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ

او عمل ئې اوکړو نيک | لرې به کړي الله | دهغه نه | ګناهونه دهغه | او داخل به کړي هغه | داسې باغونو نه |

اودنيکئ کارونه کوی نو الله ﷻ به دهغه ګناهونه معاف کړي | او هغه به داسې باغونو ته داخل کړي

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ط ذٰلِكَ الْفَوْزُ

چې بهيږي به | لاند دونو دهغې نه | نهرونه | هميشه به وی | په هغې کښې | هميشه | دا کاميابي ده

چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږي | هميشه به په هغې کښې اوسيږي | ..............اودا ډيره لويه

الْعَظِيْمُ ۝٩ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

لويه | او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او دروغ ئې اوګڼړل | ايتونه زمونږه | دغه کسان

کاميابي ده | اوچا چې انکار کړې وی | او زمونږ ايتونه ئې دروغ ګڼړلی وی | نو هغوئ

| أَصْحٰبُ النَّارِ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | وَبِئْسَ | الْمَصِيْرُ |
|---|---|---|---|---|
| خاوندان دوور دی | همیشه به وی | په هغې کښې | او ډیر بد ځائې دی | دورتلو |
| دوزخیان دی | همیشه به په هغې کښې وی | .................... | او دغه ډیر ناکاره ټیکاؤنړه ده | |

**قوله تعالی:- أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ**

**دکافرانو سزا:** دلته دوړاندې کافرانو د کفراودهغوی د خرابوسزاګانو ذکر کولې شی چه آیاتاسوته ستاسو د وړاندېنومنکرانوحال معلوم دې؟چه د رسولانوتکذیب اود حق مخالفت څه رنګ راوړو؟په دنیا او آخرت کښې برباد شول.دلته هم د خپلو خرابواعمالو سزا خوړل اودهغه ځائې سزاخوړل باقی دی چه ډیر د غم نه ډکه ده.د دې وجه بغیرد دې نه هیڅ نه دی چه دلائلو ثبوتونو او ښکاره ننښوسره چه انبیاء الله هغوی له راوړې هغوی دا اونه منل اوخپل خان سره ئې دامحال اوګڼړل چه انسان پیغمبروی اوهم د هغوی په شان یوآدم زاد په لاس هغوی ته هدایت ورکړې شی. انکار ئې اُوکړو او عمل ئې پریخودو. الله ﷻ هم د هغوی نه بې پروائې اوکړه.هغه خو غنی دې او ورسره د حمدوثناء لائق دې.

**قوله تعالی:- زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا أَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا**

**مشرکان د قیامت منکر دی:-** الله ﷻ فرمائی چه کافران مشرکان او ملحدین وائی چه د مرګ نه پس به اوچتیږونه. نو اې نبی اته دوی ته اووایه چه اوپاسئې به اوبیا به ستاسو د ټولو وړو لویوټیو اوښکاره عملونو په تاسو څرګندونه کولې شی. واورئې ستاسو بیا پیداکول او تاسوله بدلې درکول وغیره ټول کارونه په الله ﷻ باندې بالکل آسان دی.دادریم آیت دې چه الله ﷻ خپل نبیﷺ ته قسم خوړلو سره د قیامت دحقانیت بیانولو باره کښې اوفرمائیلو.اولنې آیت په سورت یونس کښې دې﴿وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ أَحَقٌّ هُوَ قُلْ إِيْ وَرَبِّيْٓ إِنَّهٗ لَحَقٌّ وَمَآ أَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ﴾ یعنی دا خلق تانه تپوس کوی چه آیا هغه حق دې؟ نووایه چه زما د رب قسم چه هغه حق دې اوتاسو الله ﷻ ته ماتې نه شئې ورکولې.دویم آیت په سورت سباکښې دې ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَأْتِيْنَا السَّاعَةُ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَأْتِيَنَّكُمْ﴾ کافران وائی چه په مونږ به قیامت نه راځی نوته اووایه چه او زما د رب قسم دې یقینًا او خامخابه راځی. او دریم آیت هم دغه دې.

بیاارشاد فرمائی چه په الله باندې په رسول باندې او په نورمنزل باندې یعنی په قرآن کریم باندې ایمان راورئې ستاسو هیڅ یوپټ عمل د الله ﷻ نه پټ نه دې د قیامت په ورځ به الله ﷻ تاسو ټول راجمع کوی اود دې د پاره دهغې نوم یوم الجمع دې. لکه چه بل ځائې فرمائی﴿ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ﴾داد خلقود جمع کیدو اودهغوی د حاضریدو ورځ ده.یو ځائې دی﴿قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ لَمَجْمُوْعُوْنَ إِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ یعنی د قیامت په ورځ به ټول اولین او آخرین راجمع کولې شی.

**قوله تعالی:- يَوْمُ التَّغَابُنِ**

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه یوم التغابن د قیامت د ورځې یو نوم دې. د دې نوم وجه دا ده چه جنتیان به دوزخیان په نقصان کښې اچوی[1] حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د دې نه به زیات تغابن څه وی چه دهغوی په وړاندې دوی جنت ته او د دوی په وړاندې هغوی دوزخ ته بوځی. لکه چه د دې تفسیر په دې روستونی آیت کښې دې چه د ایماندارو نیک عمل کونکو ګناهونه به معاف کړې شی اود بهیدونکو نهرونو د همیشه والې جنت کښې به ئې داخل کړی اوپوره کامیابئې ته به اورسولې شی. اوکفر او تکذیب کونکی به د دوزخ اُور ته څې چرته به چه پراته سوزیږی اوورتیږی، ښه ده د دې نه خراب بل ځائې کوم یوکیدې شی؟

---

[1] الطبری: ۲۳/ ۴۲۰.

| مَآ اَصَابَ | مِنۡ مُّصِيۡبَةٍ | اِلَّا | بِاِذۡنِ اللّٰهِ ؕ | وَمَنۡ | يُّؤۡمِنۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه رسیږي | څه مصیبت | مګر (رسیږي) | په حکم د الله سره | او هغه څوك | چې ایمان نې راوړو |
| (دنیا کښې) هیڅ مصیبت د الله ﷻ د حکم نه بغیر نه راځي او څوک چې په الله ﷻ ایمان راوړي | | | | | |

| بِاللّٰهِ | يَهۡدِ قَلۡبَهٗ ؕ | وَاللّٰهُ | بِكُلِّ شَيۡءٍ | عَلِيۡمٌ ۝ | وَاَطِيۡعُوا اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په الله باندې | هدایت به اوکړي زړه د هغه ته | او الله | په هر څیز باندې | عالم دې | او حکم اومنئ د الله |
| نو الله د هغه زړه ته هدایت کوي او الله ﷻ په هر څیز ښه پوهه دې او تاسو د الله ﷻ تابعداري اوکړئ | | | | | |

| وَاَطِيۡعُوا الرَّسُوۡلَ ۚ | فَاِنۡ تَوَلَّيۡتُمۡ | فَاِنَّمَا | عَلٰى رَسُوۡلِنَا |
|---|---|---|---|
| او حکم اومنئ د رسول | پس که چرې مخ واړوئ تاسو | پس بیشکه | په رسول زمونږ باندې |
| او د رسول تابعداري اوکړئ نو که مخ مو ترې نه واړولو نو زمونږ په پیغمبر خو په ښکاره باندې | | | |

| الۡبَلٰغُ الۡمُبِيۡنُ ۝ | اَللّٰهُ | لَاۤ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ ؕ | وَعَلَى اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| رسونه ښکاره ده | الله چې دې | نشته دې لائق د عبادت | مګر هم هغه دې | او خاص په الله باندې |
| حکمونه رسول دي د الله ﷻ نه سوا بل څوک معبود نشته .....................او ایمان دار | | | | |

| فَلۡيَتَوَكَّلِ | الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ۝ |
|---|---|
| پکار دي چې توکل اوکړي | مومنان |
| کسان دې صرف په یو الله ﷻ باندې بهروسه ساتي | |

**قوله تعالى:- مَآ اَصَابَ مِنۡ مُّصِيۡبَةٍ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰهِ ؕ**

**مصيبت د الله تعالى په رضا سره راځي:-** سورة حدید کښې هم دا مضمون تیرشوې دې چه څه هم کیږي هغه د الله ﷻ په اجازت او حکم سره کیږي. دهغه د قدر اورضانه بغیرهیڅ هم نه شي کیدې. کوم سړی ته چه څه تکلیف اورسي هغه دې پوهه شي چه دالله ﷻ په رضا اومنشاباندې ده ته تکلیف رسیدلې دې بیادې صبراوکړي اودالله ﷻ په رضادې ثابت قدم اوسیږي اودثواب اوښیګړې امید دې ساتي. رضابه قضانه دې علاوه شوندې نه خوزوي نوالله ﷻ دهغه د زړه ساتنه کوي اوهغه ته دبدله په توګه دزړه هدایت ورنصیب کوي. دیقین صادق پړق هغه په زړه کښې وینی او اکثرداسې هم کیږي چه ددغه مصیبت بدله یاد هغې نه بهتر په دنیا کښې هم ورکوي. د حضرت ابن عباسؓ بیان دې د هغه ایمان مضبوطیږي هغه مصیبتونه کمزورې کولې نه شي هغه ته پته وي چه څه اوشو هغه خطا کونکې نه دې اوچه راورسیدل هغه هډو ملاویدونکې نه وو[1] د حضرت علقمهؒ په وړاندې دا آیت تلاوت کولې شي اود هغوي نه د دې مطلب معلومولې شي نو فرماني چه د دې نه مراد هغه سړې دې چه دهرمصیبت په وخت کښې داعقیده اولري چه د الله ﷻ د طرف نه دې او بیادا په خوشحالئي سره برداشت کړي. دا هم مطلب دې چه هغه ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّاۤ اِلَيۡهِ رٰجِعُوۡنَ﴾ اولولي. په متفق علیه حدیث کښې دی چه په مومن باندې حیرانتیاده چه دهغه په هره هره خبره کښې بهتری ده چه په ضرر او نقصان باندې صبراوبرداشت اوکړي په ښګړه اوګټه باندې شکر او احسان مندې اوکړي نوښیګړې راغونډوي. دا دوه طرفیزه ښیګړه د مومن نه علاوه د بل چا په حصه کښې نشته.[2]

---

[1] الطبري: ۲۳/۲۱.٤

[2] صحیح مسلم کتاب الزهد باب المؤمن امره کله خیر: ۲۹۹۹.

**افضل عمل:**- مسند احمد کښې دي چه يوسړي د رسول الله ﷺ نه معلومات اوکړو چه يارسول الله ﷺ! د تولو نه افضل عمل کوم يودې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل په الله ﷻ باندې ايمان راوړل د هغې تصديق کول اودالله ﷻ په لارکښې جهادکول.هغه وئيل حضرت زه چرته آسان کار غوارم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه کومه فيصله ستا په قسمت باندې جاري شي په هغې باندې د الله ﷻ نه ګيلې مانې مه کوه اودهغه په رضاباندې راضي کيدل د دغې نه آسان عمل دې(١) بيا خپل اود خپل رسول د تابعدارئې حکم درکوې چه په دې شرعي امورو کښې د دې تابعدارئې نه مخ سر مه وړاندې کوه د کوم حکم چه ملاوشي په ځائې راوړه د کوم نه چه منع کړې شي هغې نه منع شه. که ته د دې د منلونه ډډه کوې نه په رسول الله ﷺ باندې هيڅ بوج نشته د هغه په ذمه صرف تبليغ کول وو چه هغه کړې دې اوس به د عمل نه کولوسزا هم ته خورې. بيا فرمان دې چه الله ﷻ واحد اوصمد دې د هغه نه علاوه هيڅ څوک د هيڅ قسم عبادت لائق نه دې. داخبرپه معنی کښې طلب دې يعنی د الله ﷻ توحيداومنه په اخلاص سره صرف د هغه عبادت کوه. بيا فرمائي چه د توکل اويقين لائق هم هغه ذات دې نو ته په هغه باندې يقين ساته. بل ځائې کښې ارشاددې﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا۞﴾ دمشرق اومغرب رب هم هغه دې حقيقي معبود هم د هغه نه علاوه بل څوک نشته ته هم هغه خپل کارساز جوړکړه.

| | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا |
|---|---|---|
| | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې |
| | اې ايمان والو! | |

| اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ | وَاَوْلَادِكُمْ | عَدُوًّا لَّكُمْ | فَاحْذَرُوْهُمْ |
|---|---|---|---|
| بيشکه ځينې دښځو ستاسو نه | او داولاد ستاسو نه | دشمنان دي ستاسو دپاره | پس ځان اوساتئ دهغوئ نه |
| ستاسو په ښځو او اولاد کښې بعضې ستاسو دشمنان دي | | نود هغوئ نه ځان ساتئ | |

| وَاِنْ تَعْفُوْا | وَتَصْفَحُوْا | وَتَغْفِرُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| او که معافي اوکړئ تاسو | او مخ اوګرځوئ تاسو | او ښښنه اوکړئ تاسو | پس بيشکه الله | ښښونکې |
| او که معافي اوکړئ او سترګې پرې پټې کړئ | او وې ښښئ نو الله ﷻ ښښونکې | | | |

| رَّحِيْمٌ۞ | اِنَّمَآ | اَمْوَالُكُمْ | وَاَوْلَادُكُمْ | فِتْنَةٌ | وَاللّٰهُ | عِنْدَهٗٓ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مهربانه دې | بيشکه | مالونه ستاسو | او اولاد ستاسو | يو ازميښت دې | اوالله | چې دې دهغه سره |
| مهربان دې | بيشکه ستاسو مالونونه او ستاسو اولاد يو امتحان دي | | | | او الله ﷻ | سره |

| اَجْرٌ | عَظِيْمٌ۞ | فَاتَّقُوا اللّٰهَ | مَا اسْتَطَعْتُمْ | وَاسْمَعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| اجر دې | لوئې | پس اويريږئ دالله نه | تر څو چې طاقت کيږي ستاسو | او اورئ خبره |
| ډير لوئې اجر دې | .......نود الله ﷻ نه ويريږئ | | خومره چې ستاسو وس وي | او خبره اورئ |

| وَاَطِيْعُوْا | وَاَنْفِقُوْا | خَيْرًا | لِّاَنْفُسِكُمْ | وَمَنْ يُّوْقَ |
|---|---|---|---|---|
| او حکم اومنئ | او مال خرچ کړئ | دا بهتره ده | دپاره دنفسونو ستاسو | او هغه څوک چې اوساتلې شو |
| او حکم منئ | او د الله ﷻ په لاره کښې، خرڅ کوئ | دا به ستاسو دپاره بهتره وي | | او څوک چې |

(١) احمد:٥/٣١٨-٣١٩ ح ٢٢٧١٧.

| شُحَّ نَفْسِهٖ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ⑯ | اِنْ تُقْرِضُوا اللهَ |
|---|---|---|---|
| دبخل دنفس خپل نه | پس دغه کسان چې دي | هغوئ کامیاب دي | که تاسو قرض ورکړو الله له |
| دنفس دشومتیا نه بچ شي | انو هم دغه کسان کامیاب دي | | که تاسو الله ﷻ ته قرض ورکړو |
| قَرْضًا حَسَنًا | يُّضٰعِفْهُ | لَكُمْ | وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۭ | وَاللهُ شَكُوْرٌ⑰ |
| قرض حسن | نو دوچند به کړي هغه | دپاره ستاسو | اواوبه ښښي تاسو لره | او الله قدردان دي |
| | نو هغه به ئې درله په څو څو چنده زیاتوي | | او ستاسو قصور به معاف کوي | او الله ﷻ ډیر قدردان |
| حَلِيْمٌ⑰ | عٰلِمُ الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ⑱ |
| صبر ناك دي | عالم دي په غیبو | او په ښکاره | غالب دي | او دحکمت خاوند دي |
| او ډير برداشت کونکي دي | په پټه | او په ښکاره هرڅه باندې پوهه دي | غالب دي | د حکمت خاوند دي |

**قوله تعالى:- اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ**

**د ښځواوبچوتربیت:** ارشاد کولې شی چه بعضې ښځې خپل سړی اوبعضې اولاد خپل موربلار دالله ﷻ دذکراونیك عمل نه منع کوی چه په حقیقت کښې دښمنی ده دکومې نه چه وړاندې خبرداری ورکړې شوې دې چه داسې نه وی ستاسومال اواولاد تاسودالله ﷻ د ذکر نه غافل کړی که چرې داسې اوشو نو تاسو به په لوئ نقصان کښې پریوځئ. دلته هم فرمائی چه دې نه هوښیار اوسیږئ د خپل دین ساتنه دهغوی په ضرورتونو او د هغوی په فرمانشونوپوره کولوباندې مقدم اوساتئ. د ښځې بچو اومال په خاطرانسان خپلوتئ نه تیریږی دالله ﷻ په نافرمانۍ کښې اخته کیږی دهغوی په مینه کښې په اینختو باندې د الله ﷻ حکمونه شاته غورزوی.

**(وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا) ددې شان نزول:** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه بعضو اهل مکه اسلام قبول کړې وو خود ښځې او خامنو مینې هغوی د هجرت نه منع کړل اوبیا چه کله اسلام ښه خورشو نوبیا داخلق د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشول چه وئی کتل نو وړاندینومهاجرو د دین ډیر علم حاصل کړې وو. د دوی په زړه کښې راغله چه خپل بال بچ ته سزا ورکړي نو په دې باندې دا فرمان جاری شو (وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ⑭) چه اوس معافی کونې اود راتلونکی وخت د پاره هوښیار شئ. الله ﷻ مال اواولادورکولوسره د انسان ازمیښت کوی چه په مصیبت کښې اخته کیدونکې خوك دې؟او تابعدار خوك دې؟ الله ﷻ سره چه کوم اجر عظیم دې تاسو له په هغې باندې نظر ساتل پکار دی. لکه چه یوبل ځائ کښې ارشاد دې (زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۭ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ⑭) یعنی د ازمیښت په توګه د خلقو د پاره دنیاوی خواهشات یعنی ښځه اولاد سرو زرواوسپینوزرو لوئ لوئ ډیری لګیدلی دی د ښکلو اسونو او څاروو اوفصلونومحبت ته ښائسته ورکړې شوې دې خودا د دنیاد یوخوورخوژوندون سامان دې اود همیشه پاتې کیدوښکلې ځائ خوهم د الله ﷻ سره دې.

**د بچو محبت او رسول کریم ﷺ:** مسنداحمد کښې دی یوځل حضور ﷺ خطبه ورکوله چه حضرت حسن ﷺ اوحضرت حسین ﷺ اوړده اوړده قمیصونه اچولی راغله دواړه ماشومان په قمیصونوکښې اینختل رااینختل پریوتونکی راروان وو دا قمیصونه د سور رنګ وو. د حضور ﷺ نظرچه کله په هغوی باندې پریوتلونو د منبر نه راکوزشو او هغوی ئې اوچت کړل راوړل او مخې ته کینول بیا ئې اوفرمائیل الله ﷻ ربښتونې دې اود هغه رسول الله ﷺ ربښتیافرمائیلی دی چه ستاسو مال اولاد ازمیښت دې دادواړه په

راپریوتوکښې په لیدوباندې صبر نه شو اخر خطبه نې پریخودله هغوی راوچت کړل.[1] مسند احمد کښې دی چه حضرت اشعث بن قیس ﷺ فرمائی د کنده قبیلې په جرګه کښې زه هم دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم. حضور ﷺ مانه تپوس اوکړو چه ستاڅه اولادهم شته؟ ماوئیل چه اوس راتلوکښې یو هلك شوې دې افسوس چه د ده په ځائ یوځناور وې. حضور ﷺ اوفرمائیل خبردار داسې مه وایه په هغې کښې د سترګو یخوالې دې اوکه وفات شی نواجر دې او بیانې اوفرمائیل چه او د هم دا د بزدلئ اوغم سبب هم جوړیږی.دا بزدلې او غم خفګان هم دې.[2] بزارکښې دی اولاد د زړه میوه ده اودا د بخل نامرد نې او غم سبب هم دې.[3]

طبرانی کښې دی ستادښمن صرف هغه نه دې چه ستا په مقابله کښې په کفرباندې کلك ولاړ جنګ له راغلې وی ځکه چه که هغه تا قتل کړل نوستاد پاره د نور باعث دې اوکه هغه ته قتل کړې نو ته یقینی جنتی یئ. بیا نې اوفرمائیل کیدې شی چه ستاپوره دښمن ستابچې وی چه هم ستا د شانه راوتې دې او ستاسره به دښمنی کوی.[4] بیا فرمائی د خپل قدرت برابر د الله ﷻ نه ویریږه : هغه د عذابونه نه بچاؤ پیداکړه. بخاری او مسلم کښې دی چه کوم حکم زه اوکړم د هغې د پوره کولو پوره کوشش کوئ کوم نه چه زه منع کړم هغې نه منع شئ.[5]

**قوله تعالی:- فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ**

د مفسرینو فرمان دې چه د سورة آل عمران آیت ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ﴾ناسخ دا آیت دې یعنی اول نې فرمائیلې وو چه د الله ﷻ نه دومره ویریږه څومره چه د هغه نه ویریدل پکار دی خو اوس نې اوفرمائیل چه د خپل طاقت مطابق. حضرت سعیدبن جبیر ﷺ فرمائی چه ړومبې آیت په خلقو باندې ډیر دروندپریوتې وو دومره اوږد قیام به نې کولو چه په پښوباندې به نې پړسوب راتلو اودومره اوږدې سجدې به نې کولې چه تندی به نې زخمی شو نو الله ﷻ دا دویم آیت نازل کړو آسانی اوکړه. نوروهم بعضې مفسرینودا فرمائیلی او ړومبی آیت نې منسوخ او دا دویم نې ناسخ ګرځولې دې. بیا فرمائی د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ حکم منونکی جوړشئ د هغه فرمان نه لږ شان هم اخواد یخواکیږئ مه، مه وړاندې کیږئ مه روستوکیږئ مه امر پریږدئ او مه د نهی خلاف کوئ. کوم څه چه الله ﷻ تاسوته درکړی د هغې نه خپلوانوته فقیرانوته مسکینانوته او حاجت مندوته ورکوئ.الله ﷻ په تاسو احسان اوکړو تاسو په نورمخلوق باندې احسان اوکړئ دې د پاره چه په دې جهان کښې هم د الله ﷻ د احسان مستحق جوړشئ او که داسې نه کوئې نو د دواړو جهانو بربادی به په خپلو لاسونو باندې واخلئ. آیت ﴿وَمَنْ يُّوْقَ﴾ تفسیر په سورت حشر کښې تیرشوې دې.

**قوله تعالی:-يُضٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ**

دالله ﷻ په لاکښې د خرچ کولو دوچند اجر .کله چه تاسو د الله ﷻ په لارکښې څه څیز ورکړئ نو الله ﷻ به د هغې بدله درکوی. د هرې صدقې بدله به درکوی. ستاسو مسکینانوسره ښه سلوك کول لکه چه الله ﷻ ته قرض ورکول دی. د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی الله ﷻ فرمائی څوك دی؟ چه داسې ذات ته

---

[1]) ابوداؤد کتاب الصلاة باب الامام یقطع الخطبة للامر:۱۱۰۹، وسنده حسن، ترمذی:۳۷۷۴، نسائی :۱۴۱۴، ابن ماجه: ۳۶۰۰، احمد:۵/۳۵۴، ابن حبان: ۶۰۳۹.

[2]) احمد: ۲۱۱/۵ ح ۲۱۸۴۰. حاکم:۲۳۹/۴.

[3]) مسند البزار:۱۸۹۲، مسندابن ابی یعلی:۱۰۳۲.

[4]) طبران:۳۴۴۵.

[5]) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ:۷۲۸۸، صحیح مسلم: ۱۳۳۷.

قرض ورکړي چه نه ظالم دې نه مفلس دې نه واپس کونکې دې (١) فرمائي چه هغه به تاسو ډير زيات دروا‌پس کړي. لکه چه په سورت بقره کښې هم فرمائيلي دي چه څو څو درجې زيات به درکړي او ورسره به په خيرات کولوستاسو ګناه معاف کړي الله ﷻ ډير قدردان دې د لوړې شان نيکئي ډير لوئ اجرورکوي. هغه بردبار دې معافي کوي. د ګناهونونه ښښنه کوي او په خطاګاني باندې سترګې پټوي خطاګاني اوبدني معاف کوي. هغه په پټ او ښکاره باندې خبر دې هغه غالب او باحکمت دې. د دې اسماء حسنی تفسیر ډیر خل دې نه وړاندې تیرشوې دې.

**د الله ﷻ په فضل او کرم سره د سورة تغابن تفسير ختم شو (فالحمدلله)**

دې سره د تفسير ابن كثير عربي نهم جز پوره شوه اوس د لسم جز تفسير د سورة طلاق نه شروع کيږي الله ﷻ دې خير اوبرکت سره دا هم پوره کړي. آمين.

| ایاتونه | سورة الطلاق مدنية وهي اثنتاعشرة اية وفيها ركوعان | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| (١٢) | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | (٢) |

يَاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

اے نبي ﷺ | کله چې | طلاق ورکوئ تاسو | ښځو له | نو طلاق ورکوئ هغوئ له | دپاره دعدت دهغوئ

اني نبي (مسلمانانوته اووایه) کله چې تاسو ښځو ته طلاق ورکوئ| نو دعدت دزماني نه وړاندې ني ورکوئ

وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ

او شمارئ | موده دعدت | اواويريږئ دالله نه | چې رب ستاسو دې | مهٔ اوباسئ تاسو هغوئ لره |

او د عدت (دورخو) شمیرکوئ |اودخپل رب نه ویره کوئ| ..........او هغوئ دخپلو کورونو نه بهر

مِنْ بُيُوْتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ

دکورونو دهغوئ نه | او نهٔ دې خپله اوځي | ماسوا ددې نه | چې راتله اوکړي | په کار دبې حيايئ |

مه اوباسئ |او پخپله دې هم نه اوځي | خو هله ! چې د بې شرمئ کار په ښرګنده اوکړي

مُّبَيِّنَةٍ ۭ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ

ښکاره سره | او دا حدونه دالله دی | او هغه څوک چې واوړيدو | دحدونو دالله نه | نو ظلم ني اوکړو |

اودغه دالله (مقرر کړی) حدود دی |اوڅوک چې د الله دمقررو حدودو نه وړاندې تير شي|نوهغه په ځان

نَفْسَهٗ ۭ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ①

دخان خپل سره | نهٔ لرې پته تاته | کيدې شي چې الله | پيدا کړي | روستو ددې نه | څه شکل دزړهٔ لګيدو

زياتي اوکړو| تاته معلومه نه ده کيدې شي چې الله ﷻ ددې نه پس يو نوې خبره پيدا کړي

**قوله تعالى:- اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ**

(١) صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب الترغيب في الدعاء والذكر في آخر الليل:٧٥٨، الاسماء والصفات للبيهقي:٤٩٦.

**د طلاق او عدت مسئلې اود ایت مبارک شان نزول**:- اول خونبي ﷺ ته د شرافت کرامت په توګه خطاب اوکړې شو بیا نی تبعًا د هغه امت ته خطاب اوکړو اود طلاق مسئله ئی ورته واضحه کړه. ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ حضرت حفصه رضي الله عنها ته طلاق ورکړواوخپل پلارکره لاړه په دې باندې دا آیت نازل شو چه دې ته رجوع اوکړه هغه ډیره روژه ساتونکې اوډیر مونځ کونکې ښځه ده.هغه دلته هم ستابې بی ده اوپه جنت کښې به هم ستا په بیبیانوکښې وی.(۱) هم دغه روایت مرسلاً ابن جریر کښې نقل دې اوپه سندونوسره هم راغلې دې. چه رسول الله ﷺ حضرت حفصه رضي الله عنها ته طلاق ورکړو بیائی رجوع اوکړه.(۲)

**دابن عمر رضي الله عنه د حیض په حالت کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکول**:-صحیح بخاری کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه خپلې بی بی ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړو. حضرت عمر رضي الله عنه دا واقعه رسول الله ﷺ ته بیان کړه حضور ناراض شو او وئی فرمائیل چه ده له پکار دی چه رجوع اوکړی بیادې د حیض نه د پاکیدوپورې اوساتی بیا چه دویم حیض راشی او اولامبی نوکه بیائی زړه غواړی نو طلاق دې ورکړی د دې پاکې په حالت کښې د خبرو اتروکولونه وړاندې. هم دغه هغه عدت دې د کوم باره کښې چه د الله ﷻ حکم دې(۳) دا حدیث په نورو ډیرو کتابونوکښې په څو سندونوسره ذکر دې. حضرت عبدالرحمن بن ایمن رضي الله عنه چه د عزه مشر دې د حضرت ابوالزبیر رضي الله عنه په اوریدوسره دحضرت ابن عمر رضي الله عنه نه سوال اوکړو چه دهغه سړی باره کښې تاسو څه فرمائې چا چه خپلې ښځې ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړو نو دغوی اوفرمائیل چه واورئی ابن عمر رضي الله عنه د رسول الله په ژوند کښې خپلې بی بی ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړو نو حضور ﷺ حکم اوکړو هغه راواپس کړه نو ابن عمر رضي الله عنه رجوع اوکړه اودا هم حضور ﷺ فرمائیلی وو د دې د پاکیدونه پس هغه ته اختیار دې که طلاق ورکوی که ساتی. اوحضور ﷺ د دې آیت تلاوت اوکړو ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِذَا طَلَّقۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَطَلِّقُوهُنَّ﴾ (۴)

په دویم روایت کښې ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ﴾ یعنی د پاکئی په حالت کښې د جماع نه وړاندې. ډیرو بزرګانو هم دا فرمائیلی دی(۵) حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی یعنی د حیض په حالت کښې طلاق مه ورکوئی او نه په هغه پاکوالی کښې په کوم کښې چه جماع شوې وی بلکه هغه وخته پورې دې پریږدی چه کله حیض راشی بیا د هغې نه غسل اوکړی نوبیا یوطلاق ورکړه. (۶) حضرت عکرمه رضي الله عنه فرمائی د عدت نه مراد پاکی ده.د قرء نه مرادحیض دې یا دحمل په حالت کښې کله چه حمل ښکاره شی. په کوم پاکوالی کښې چه جماع کړې ده په هغې کښې طلاق مه ورکوه معلومه نه ده چه حامله ده که نه. د طلاق دریم قسم هم دې کوم چه نه طلاق سنت دې اونه بدعت او هغه د نابالغه طلاق دې اود هغه ښځې د کومې چه دحیض د راتلو نه نااميدی شوې وی اودهغه ښځې کومې ته چه دخول نه دې شوې د دې ټولواحکامو تفصیلی بحث ځائ کتب فروع دی نه چه تفسیر. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**قوله تعالى**:- ﴿وَأَحۡصُواْ ٱلۡعِدَّةَ﴾

**دعدت حفاظت**:- بیافرمان دې چه د عدت حفاظت کوئې د دې د شروع او ختمیدو خیال کوئې هسې نه چه دعدت اوږدوالې ښځه د بل خاوند کولونه منع نه کړی اوپه دې باره کښې د خپل پروردګار عالم نه

---

(۱) الدرمنثور: ۳۴۸/۶، حاکم: ۱۵/۴.

(۲) ابوداؤدکتاب الطلاق باب ل المراجعه: ۲۲۸۳ وسنده صحیح، النسائی: ۳۵۰۹، ابن ماجه: ۲۰۱۶، ابن حبان: ۱۳۲۴، حاکم: ۱۹۷/۲، صحیح

(۳) بخاری کتاب الطلاق باب نمبر ۱ حدیث: ۴۹۰۸، صحیح مسلم: ۱۴۷۱.

(۴) صحیح مسلم کتاب الطلاق باب تحریم طلاق الحائض بغیر رضاها: ۱۴۷۱، ابوداؤد: ۲۱۸۵، احمد: ۸۱/۲، بیهقی: ۳۲۷/۷.(مسلم)

(۵) الطبری: ۴۳۲/۲۳.

(۶) ایضاً: ۴۲۵/۲۳.

ویریږي. د عدت په زمانه د طلاقي شوي ښځي د اوسیدوډپاره مکان د خاوند په ذمه دی نه دي هغه اوباسي اونه هغي له پخپله وتل جائز دي ځکه چه هغه د خپل خاوندپه حق کښي رابنده شوي ده.

**قوله تعالى:- فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ**

(فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ[1]) زنا ته هم شامل دي اوهغي ته هم چه ښځه خپل خاوندتنګ کړي د هغه خلاف کوي او تکليف وررسوي بدزباني او بداخلاقي شروع کړي او په خپلو کارونواو خپله ژبه خپلي سخرګنی ته تکليف رسوي. نو په دي صورتونوکښي بي شکه خاوندله جائز دی چه هغه د خپل کورنه اوباسي[1] دا د الله ﷻ مقررکړي شوی حدونه دی او د هغه شريعت اوخودلي شوی احکام دی. کوم سړي چه په دي عمل نه کوی اودايه بي حرمتني سره مات کړی اودي نه وړاندي تيرشي نوهغه هم په خپل خان بد کونکي دي اوهم په خپل خان باندي ظلم کونکي دي. کيدي شی چه الله ﷻ څه نوي خبره پيداکړی د الله ﷻ ارادي او کيدونکي خبري چاته نه شی معلوميدي. دعدت زمانه د خپل خاوندپه کورکښي د تيرولو حکم طلاقوشوو ښځو ته د دي مصلحت لاندي ورکړي شوي دی چه ممکن ده په دي عدت کښي د دي ښځي د خاوند خيالات بدل شی په طلاق ورکولو باندي پښيمانه وی او د واپس راګرخولوخيال نی پيدا شی.او بيا رجوع اوکړی او ښځه خاوند په امن اوامان سره خپله ګذراه اوکړي. د نوی کار پيداکولونه مراد هم رجوع ده[2] په دي وجه بعضي سلف اود هغوی تابعين مثلاً د امام احمدبن حنبل رحمه الله مذهب دي چه مبتوته يعنی هغه ښځه د کومي د طلاق نه پس چه د خاوندد رجوع کولو حق باقي نه وی هغي ته د عدت تيرولود پاره مکان ورکول د خاوند په ذمه نه دی. دغه شان د کومي ښځي خاوندچه مړشی دهغي د عدت تيرولودپاره مکان ورکول د هغه په وارثانوباندي نشته. د دي اعتمادی دليل د حضرت فاطمه بنت قيس فهريه رضي الله عنها والا حديث دي چه کله د هغي خاوند حضرت ابوعمر بن حفص رضي الله عنه هغي ته دريم آخری طلاق ورکړو اوهغه دي وخت کښي دلته موجودنه وو بلکه په يمن کښي وواو هم د هغه ځای نه نی طلاق ورکړي وو نود هغه وکيل چه هغي له لږ شان څه راليګلي ووچه دا ستا خوراک دي. هغه ډيره خفه شوه نو هغه اوونيل غصه کيږي ولي؟ ستا خوراک څښاک او نفقه زمونږ په ذمه نشته. دا رسول الله ﷺ له راغله هغوی ﷺ اوفرمائيل چه ټيک ده ستا نفقه په هغه نشته.

**د عدت نفقه:-** مسلم کښي دی نه ستاد اوسيدوکور اوهغي ته نی اوفرمائيل چه ام شريك په کور کښي خپل عدت تيرکړه. بيانی اوفرمائيل چه هلته خو زما اکثر صحابه کرام خی ته د حضرت عبدالله ابن مکتوم رضي الله عنه په کورکښي خپل عدت تيرکړه هغه يونابينا سړي دي ته ښه په آرام باندي هلته خپلي کپړي هم کيخودلي شي الخ.[3] مسنداحمد کښي دی چه د هغي خاوند حضور ﷺ په يوجهادباندي ليګلي وو هغه هم دهغه ځای نه دي ته طلاق راوليګلو. د هغه رور دي ته اوونيل چه زمونږ دکور نه زه. هغي ونيل چه نه ترڅو چه عدت ختم نه وی زما خوراک څښاک او استوګنه د خاوند په ذمه ده. هغه انکاراوکړو. آخرحضور ﷺ ته دا معامله اورسيدله. کله چه حضور ﷺ ته معلومه شوه چه دا آخريني دريم طلاق دي نو بيانی فاطمه رضي الله عنها ته اوفرمائيل نفقه کوروغيره دخاوندپه ذمه په هغه صورت کښي دی چه هغه ته د رجوع حق حاصل وی کله چه دانشته نو هغه هم نشته.ته ددي ځای نه لاړه شه اوفلانکي ښځي کره خپل عدت تيرکړه. بيانی اوفرمائيل چه هلته خوصحابه خي راخی ته د ابن اُم مکتوم رضي الله عنه کره د خپل عدت زمانه تيره کړه هغه نابينادي تا ليدلي نه شی الخ[4] طبرانی کښي دی چه فاطمه بنت قيس رضي الله عنها ضحاك

---

[1] ايضاً:٤٣٨/٢٣.
[2] ايضاً:٤٤١/٢٣.
[3] صحيح مسلم كتاب الطلاق باب المطلقة البائن لانفقة لها:١٤٨٠، ابن حبان:٤٢٥٣، ابوداؤد:٢٢٨٤ السنن الكبرى: ٦٠٣٣.
[4] احمد:٣٧٢/٦-٣٧٤.

بن قيس قرشي﷢خور وه د هغې خاوندد مخزومی قبيلې نه وو. د طلاق خبر رسيدو نه پس هغې دنفقه غوښتلو باندې دهغې دخاوند وليانواووئيل چه نه خوستا خاوندځه راليګلې دي اونه ئې مونږ ته ددركولوځه وئيلي دي.اود حضورﷺ په فرمان كښې داهم نقل دي چه كله ښځې ته هغه طلاق ملاوشی دځه په وجه چه هغه پخپل وراندينى خاوندباندې حراميږى تركومې چه بل سره نكاح اود هغه خلاصې اونه شي نو په دې صورت كښې د عدت نان اونفقه اود اوسيدو مكان د خاوند په ذمه نشته.(١)

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ

پس هر كله چې | اورسيږى هغوئ | نيتې خپلې ته (دعدت) | نو اوساتئ هغوئ په نكاح خپله كښې

نو چې هغوئ خپل ميعاد ته په رسيدو شي ا نو (يا خو) د رواج مطابق هغوئ (په نكاح كښې) باقي اوساتئ

بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَىْ عَدْلٍ

په ښه طريقې سره | يا جدا كړئ هغوئ لره | په ښه طريقې سره | او ګواهان اونيسئ | دوه تنه خاوندان دعدل

اويائې د رواج مطابق جدا كړئ | او پخپلو كښې پرې دوه كسان معتبر ګواهان مقرر كړئ

مِّنْكُمْ وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ؕ ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ

ستاسو نه | او ټيك ټيك كوئ ګواهي دپاره دالله | دا خبرى دى اچې نصيحت كيدې شي | په دې سره

..... او صحيح طريقه باندې ګواهئ دالله ﷻ دپاره وركوئ | په دې مضمون هغه چاته نصيحت كولې شي

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ

هغه چاته | چې ايمان لرى | په الله باندې | او په ورځ داخرت باندې | او هغه څوك چې يريږئ دالله نه

چې په الله ﷻ او په ورځ د اخرت ايمان راوړى | ........... او څوک چې د الله ﷻ نه ويريږى

يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۙ وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ

پيدا به كړى هغه لره | څه لار دوتلو (دمشكلاتو نه) | او رزق به وركړى هغه لره | ددا سې ځاې نه

نو الله ﷻ به د هغه دپاره دخلاصى څه لار راوباسى | او دداسې طرف نه به ورته روزى وركړى اچې د هغه

لَا يَحْتَسِبُ ؕ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ

چې دهغه په ګمان كښې به نه راځى | او هغه څوك چې بروسه اوكړى | په الله باندې | نو هغه |

به پرې ګمان هم نه راځى | او څوک چې په الله ﷻ بهرسوه كوى | ..................... نو هغه دپاره

حَسْبُهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ؕ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ

كافي دې هغه لره | بيشكه الله | رسونكي دى | كار خپل لره | جوړه كړى ده الله | دپاره دهر څيز |

يواځې الله كافى دى | الله ﷻ خپل كار (په هر حال كښې) سرته رسوى | الله د هر څيز دپاره يوه اندازه

قَدْرًا ۝

يوه اندازه |

مقرر كړي ده |

قوله تعالى:- فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ

(١) نسائى كتاب الطلاق باب الرخصة فى ذلك:٣٤٣٢وهو صحيح وفى السنن الكبرى:٥٥٩٦، المعجم الاوسط:١١٦٤.

**دعدت مسئلې** :-ارشاد دې چه دعدت د ښځې د عدت وخت چه کله پوره کیدو ته نیزدې شي نود هغوی خاوندانوله پکار دی چه په دوو خبروکښې یوه اوکړی یاخودې هغه په ښیګړه او ښه سلوك سره په خپله نکاح کښې اوساتي یعنی چه کوم طلاق ئې ورکړې وو د هغې نه دې رجوع کولو سره باقاعده هغې سره اوسیدل کوی یادې هغې ته بل طلاق ورکړی خود بدو ردو او کنځلو کولو نه بغیر وهلوټکولو او غصو کولو نه بغیرپه ښه طریقه سره (دا یادساتئی چه د رجوع اختیار هغه صورت کښې دې چه کله یو طلاق شوې وی یا دوه)

**قوله تعالی:- وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ**

بیا فرمائی چه که د رجوع اراده وی نورجوع اوکړه یعنی واپس ئې کړه اوته په دې باندې دوه عادل مسلمانان ګواه اوساته. ابوداؤد او ابن ماجه کښې دی چه د حضرت عمر بن حصین ﷺ نه معلومه کړې شوه چه یوسړې خپلې ښځې له طلاق ورکوی او بیا هغې سره جماع کوی نه په طلاق باندې ګواه ساتي او نه په رجعت. نو هغوی اوفرمائیل چه هغه خلاف سنت طلاق ورکړو اوخلاف سنت ئې رجوع اوکړه په طلاق باندې هم ګواه ساتل پکار دی او په رجعت باندې هم اوس بیا داسې اونه کړې. (۱) حضرت عطاء ﷫ فرمائی نکاح طلاق رجعت د بغیردوو عادل ګواهانونه جائز نه دی. لکه چه د الله ﷻ فرمان دې او که مجبوری وی نو بله خبره ده. بیا فرمائی چه د ګواه مقرر کولو اوربښتیاو ګواهي ورکولو حکم هغوی ته کولې شي چه په الله ﷻ باندې او په روستونئې ورځ باندې ایمان لری. د الله ﷻ د شریعت او آخرت د عذاب نه یریدونکې وی. حضرت امام شافعی ﷫ فرمائی چه په رجعت باندې ګواه ساتل واجب دی. لکه څنګه چه د هغوی په نیز د نکاح په شروع کښې ګواه ساتل واجب دی. د هغوی نه یوبل قول هم نقل دې اود یو بلې ډلې هم دا قول دې د دې مسئلې منونکی علماء کرامو د ډلې دا هم وینا ده چه رجعت بغیرد زبانی وینا نه نه ثابتیږی څکه چه ګواه ساتل ضروری دی. اوترکومې چه په څلـه اونه وائی ګواه څنګه مقررولې شي.

**د طلاق نه پس په رجوع کولو ګواه مقرر کول**

**مسلك حنفی**:-په رجوع باندې د ګواهانو مقرر کولو حکم دلته د استحباب دپاره دې واجب نه دې دا د امام ابوحنیفه امام مالک او امام احمد رحمهم الله مذهب دې (تفسیرمظهری ۹/۳۲۱۱).

بیا فرمائی چه کوم سړې د الله ﷻ احکام په ځائ راوړی د هغه د حرام کړې شوې څیزونونه پرهیز اوکړی الله ﷻ د هغه دپاره مخلصی پیداکوی. اود داسې ځائ نه ورته داسې روزی ورکوی چه د هغه په خوب او خیال کښې هم نه وی.

**قوله تعالی:- وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا**

**د قران پاك يو عظيم الشان ايت مبارك**:- مسند احمد کښې دی حضرت ابوذر ﷺ فرمائی یوځل زما په وړاندې رسول الله ﷺ د دې آیت تلاوت اوکړو بیائی اوفرمائیل اې ابوذر! که تاسو ټول خلق صرف هم داواخلئې نوکافی ده. بیاحضورﷺ باربارد دې تلاوت اوکړوتردې چه ماته خوب راغلو. بیاحضورﷺ اوفرمائیل ابوذر ﷺ ته به څه کوې چه ته د مدینې نه اوویستلې شې؟ جواب مې ورکړوچه زه به د نور کشادګئې او رحمت طرف ته لاړشم یعنی مکې ته اوهم د هغه ځائ کونتره به جوړه شم او اوسیږم به. حضورﷺ اوفرمائیل چه بیا به څه کوې چه د هغه ځائ نه هم اوویستلې شې؟ ماونیل د شام پاکې زمکې ته به لاړشم ونی فرمائیل چه کله د شام نه اوویستلې شې نوڅه به کوې؟ ماونیل حضرت د الله ﷻ قسم چاته ته په حقه سره پیغمبرراليګلې ئې بیاخوبه خپله توره په اوږه کړم اومقابلې ته به تیارشم. حضورﷺ اوفرمائیل چه زه تاته ددې نه ښه چل دراوښایم؟ماونیل اوحضور خامخااوښائې. ونی فرمائیل اوره او

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطلاق باب الرجل یراجع ولایشهد:۲۱۸٦، ابن ماجه:۲۰۲۵ وسنده حسن.

منه اګر که خلیفه ستاسو یو حبشی غلام هم وی. [۱] ابن ابی حاتم کښې دی حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی په قرآن پاك کښې یو ډیر جامع آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ﴾ دې اود تړلونه زیات د کولاوالی وعده په دې آیت ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ﴾الخ کښې ده. مسند کښې د رسول الله ﷺ فرمان دې کوم سړې چه په کثرت سره استغفارکوی الله ﷻ هغه ته د هریوغم نه خلاصې اود هرې تنګئی نه فراخی ورکوی اود داسې ځائ نه به ورته رزق ورکوی د کوم ځائ نه چه د ده خیال او ګمان هم نه وی. [۲]
حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه هغه ته به الله ﷻ د دنیااوآخرت د سختو اوبې آرامئی نه خلاصې ورکړی. ربیع رحمه الله فرمائی په خلقوچه کوم کارګران وی هغه به آسان کړې شی. حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی چه مطلب دا دې چه کوم سړې خپلې ښځې ته د الله ﷻ د حکم مطابق طلاق ورکوی الله ﷻ به هغه ته آسانی او خلاصې ورکوی. [۳] د ابن مسعود ﷺ وغیره نه روایت دې چه هغه پوهیږی چه که الله غواړی نو وربه کړی اوکه نه غواړی نو نه به ورکوی. حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د ټولوکارونود شبه نه به اود مرګ د تکلیف نه به ئی بچ کړی اورزق به د داسې ځائ نه ورکړی چه چرته نه به د هغه ګمان هم نه وی. [۴]
د ایت ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا﴾ شان نزول:- حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه دلته د الله ﷻ د یرې معنی داده چه دسنت مطابق طلاق ورکړنی او د سنت مطابق رجوع اوکړنی. هغوی فرمائی چه د حضرت عوف بن مالك اشجعی ﷺ خوئ کافرانو ګرفتارکړو او بوئی تلو هغه ئی په جیل خانه کښې واچولود هغه پلار د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شواود خپل خوئ حالت حاجت مصیبت اوتکلیف ئی بیانولو حضور ﷺ به هغه ته د صبر تلقین کولو اوفرمائیل به ئی چه ډیرزر به الله ﷻ د هغه د خلاصی یوه لار جوړه کړی. لږې ورځې تیرې وې چه د هغه خوئ د دښمنانونه راوتختیدو. په لارکښې د دښمنانو د چیلو رمه ملاوشود هغه ئی هم ځان سره راوستلې اود خپل پلار په خدمت کښې راورسیدو. نودا آیت هم رانازل شوچه متقیانو خلقو ته الله ﷻ خلاصې هم ورکوی اود هغه ګمان هم نه وی د کوم ځائ نه چه هغه ته رزق رسوی. [۵] مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه د ګناه په وجه انسان د خپلې روزې نه محروم کیږی. تقدیر واپس کونکې څیز صرف دعا ده په عمر کښې زیاتوالی کونکې څیز صرف نیکی او ښه سلوك دې. [۶]
سیرت ابن اسحاق کښې دی د حضرت عوف اشجعی ﷺ خوئ حضرت سالم ﷺ چه کله د کافرانو په قید کښې وو نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه په هغه باندې په کثرت سره ﴿لاحول ولاقوة الا بالله﴾ لوله. یوه ورځ په ناسته ناسته د هغه قیدنکی اوده شو اودې د هغه ځائ نه راوتختیدو د هغه خلقو یوه اوښه په لاس ورغله چه په هغې باندې راسور شو او په لار کښې د هغوی د اوښانو رمه ملاوشوه هغه ئی هم ځان سره راوشړل هغه خلقو شاته رامنډې وهلې خو په لاس ورنغلو نیغ خپل کورته راغلو اوپه دروازه کښې آواز اوکړو. پلارئی آواز واوریدو وئی وئیل چه په الله قسم داخوسالم دې. مور ئی وئیل چه افسوس هغه چرته هغه خو د قیدوبندپه تکلیفونوکښې راګیر دې. اوس دواړو مورپلار او خادم دروازې له رامنډې کړې چه کولاوئی کره نود هغوی خوئ حضرت سالم ﷺ دې او ټوله لار د اوښانونه ډکه ده. تپوس ئی

---

[۱] احمد:۵/۱۷۸-۱۷۹، ابن ماجه کتاب الزهد باب الورع والتقوی: ۴۲۲۰ مختصرًا. حاکم: ۲/۴۹۲، شعب الایمان: ۱۳۳۰.
[۲] ابوداؤد کتاب الوتر باب فی الاستغفار: ۱۵۱۸، ابن ماجه: ۳۸۱۹، احمد: ۱/۲۴۸، بیهقی: ۳/۳۵۱.
[۳] الطبری: ۲۳/۴۴۵.
[۴] ایضا: ۲۳/۴۴۸.
[۵] الطبری: ۲۳/۴۴۷.
[۶] ابن ماجه کتاب الفتن باب العقوبات: ۴۰۲۲، احمد: ۵/۲۸۲.

اوکړو دا اوښان ځنګه دی؟ هغوی ته ئی واقعه بیان کړه نو هغه ونیل اودریږه زه د دې باره کښې د حضور ﷺ نه د مسئلې تپوس کوم راځم. حضور ﷺ اوفرمائیل هغه ټول ستا مال دې چه څه کوې کوه اودا آیت نازل شو چه د الله ﷻ نه ویریدونکوته مشکل آسانیږی او بې ګمانه رزق وررسوی.[۱] دابن ابی حاتم په حدیث کښې دی چه کوم سړې د هرطرف نه ځان راکاږي او صرف د الله ﷻ شی الله ﷻ د هغه په هرمشکل کښې ساتنه کوی او بې ګمانه رزق ورکوی او چه څوک د الله ﷻ نه اخواشی د دنیاشی الله ﷻ هم هغه د دې طرف ته ورسپاری.[۲]

مسنداحمد کښې دی یوځل حضرت ابن عباس رضی الله عنه حضوراکرم ﷺ سره د هغوی په سورلئی شاته ناست وو نو حضور ﷺ هغه ته اوفرمائیل بچې زه تاته یوځو خبرې کوم واوره. ته الله ﷻ یادساته هغه به تا یاد اوساتی، ته د الله ﷻ د حکم حفاظت کوه نوته به الله ﷻ خپل ځان سره بلکه خپلې مخې ته اوموﺉ، کله چه څه غوښتل وی نوهم د الله ﷻ نه غواړه، کله چه امدادغوښتل وی نوهم د هغه نه امدادغواړه، که ټول امت یوځائ شی اوتاته نفع رسول غواړی او الله ﷻ ته منظورنه وی نولږه شان نفع هم نشی دررسولې اودغه شان که ټول په ټول راجمع شی اوتاته نقصان رسول غواړی نو نه شی رسولې، که په تقدیرکښې نه وی لیکلې. قلمونه اوچت شوی دی او صحیفې اوچې شو. ترمذی شریف کښې هم داحدیث راغلې دې امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن صحیح ونیلې دې[۳] د مسنداحمدپه یوبل حدیث کښې دی دچا چه څه حاجت وی اوهغه د خلقو طرف ته یوسی نوډیرممکن دی چه هغه په سختنی کښې پریوځی اوکارنی نورهم سخت شی خوچه څوک خپل حاجت د الله ﷻ طرف ته یوسی الله ﷻ خامخاد هغه مرادپوره کوی یاخو ډیر زر په دې دنیاکښې او څه وخت پس یاد مرګ نه پس.[۴] بیا ارشاد کولې شی الله ﷻ خپله قضا او احکام چه ځنګه غواړی په خپل مخلوق کښې پوره کونکې او په ښه شان سره جاری کونکې دې.دهرڅیز هغه اندازه مقررکړې ده. بل ځائ کښې ارشاد دې ﴿وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِمِقْدَارٍ﴾ هریوڅیز هغه سره په یوه اندازه دې.

| وَالّٰٓـِٔيْ | يَئِسْنَ | مِنَ الْمَحِيْضِ | مِنْ نِّسَآئِكُمْ |
|---|---|---|---|
| او هغه ښځې چې نااميده شي | دحيض | نه | دښځو ستاسونه |
| اوستاسو په طلاقو شوؤ ښځو کښې څوک چې دحيض نه مايوسه شوي وي | | | |

| اِنِ ارْتَبْتُمْ | فَعِدَّتُهُنَّ | ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ | وَّالّٰٓـِٔيْ |
|---|---|---|---|
| که چرې په شك کښې يئ تاسو | نو عدت دهغوئ | دري مياشتي دي | او هغه ښځي |
| که چرې ستاسو شک وی | نود هغې عدت دري مياشتي دي | او دغسي | |

| لَمْ يَحِضْنَ | وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ | اَجَلُهُنَّ |
|---|---|---|
| چي حيض ني نه وی راغلي | او ښځې خاوندانې دحملونو چې دی | نيتي دهغوئ |
| دهغې ښځو چې حيض ئي لا راغلی نه وی (نابالغه وی) دري مياشتي عدت دي | او د امېدوارو ښځو عدت | |

---

[۱] داروايت مرسل دي

[۲] المعجم الاوسط:۳۳۸۳.

[۳] ترمذی کتاب صفة القيامة باب حديث حنظله:۲۵۱۶ وسنده حسن، احمد:۲۹۳/۱.

[۴] احمد:۳۸۹/۱، ابوداؤد کتاب الزکاة باب فی الاستعفاف:۱۶۴۵ وسنده حسن، ترمذی:۲۳۲۶.

| لَّهٗ | يَجْعَلْ | يَتَّقِ اللّٰهَ | وَمَنْ | حَمْلَهُنَّ ط | اَنْ يَّضَعْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه لره | پيدا كوي الله | چي يريږي دالله نه | او هغه څوك | حمل خپل | دا دي چي اوزيكوي |
| دا دي چي اولاد اوزيږوي ........او څوك چي دالله ﷻ نه ويريږي نو الله ﷻ به د هغه په هر كار | | | | | |

| وَمَنْ | اِلَيْكُمْ ط | اَنْزَلَهٗ | ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ | يُسْرًا ۝ | مِنْ اَمْرِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغه څوك | تاسو ته | چي نازل كړي ني دي | داحكم دالله دي | آسانتيا | بكار دهغه كښي |
| كښي اساني پيداكړي .................دا دالله ﷻ حكم دي اچي تاسو ته ئي راليږلي دي او څوك چي | | | | | |

| لَهٗ اَجْرًا ۝ | وَيُعْظِمْ | سَيِّاٰتِهٖ | يُكَفِّرْ عَنْهُ | يَتَّقِ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه لره اجر | او لوئ به كړي | گناهونه دهغه | نو لري كوي دهغه نه | چي يره كوي دالله نه |
| دالله ﷻ نه ويره كوي نو الله ﷻ به تري نه گناهونه لري كړي او لوئي اجر به ورته وركړي | | | | |

قوله تعالى:- وَالّٰٓئِيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ

**د حامله او نااميده ښځي عدت:-** د كرموبوډيګانوښځو حيض د خپل زيات عمر په وجه بندشوي وى د دهغوى عدت دلته خودلي شي چه دري مياشتي عدت دي تيركړي لكه څنګه چه د ايام والا ښځو عدت دري حيض دي.دسورة بقره آيت اوګورئ دغه شان هغه نابالغه جينكئ چه دي عمر ته نه وى رسيدلي چه د هغوى جامي راشي دهغوى عدت ني هم دري مياشتي كيخودو. كه ستاسو شك وى د دي په تفسيركښي دوه أقواله دي يوخوداچه داوينه اوګورى اوتاته شك شي چه دادحيض وينه ده كه د استحاضه بيمارى(۱)دويم قول دا دي چه د دوى د عدت په حكم كښي ستا شك باقي پاتي شي اوته دا اونه پيژني نو دري مياشتي يادساته(۲) دا دويم قول ډير واضحه دي. د دي دليل دا روايت هم دي چه حضرت ابى بن كعب ﷺ وئيلي وو يارسول الله ﷺ د ډيرو ښځو عدت لااوس هم نه دي بيان شوي، كم عمره جينكئ، زړي ښځي اود حمل والا ښځي. د دي په جواب كښي دا آيت نازل شو. (۳) بيا د حامله ښځي عدت بيان شو چه د حمل كيدل د دي عدت دي كه طلاق د خاوند د مرګ نه لږ شان پس هم اوشي لكه څنګه چه د آيت مبارك الفاظ دي اود احاديث نبويه نه ثابت دي اود جمهوروعلماؤ خلف او سلف قول دي.اودحضرت علي ﷺ اوحضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دي چه د سورة بقره آيت اوداآيت يوځائ كړي د هغوى فتوى ده چه په دي دواړوكښي كوم په ډيروخت كښي ختم شي هغه دي داعدت تيركړي يعنى كه ماشوم د دريومياشتو نه وړاندي پيداشو نودري مياشتي عدت او دري مياشتي تيري شوي او ماشوم پيدانه شو نود ماشوم د كيدوپوري عدت دي.

صحيح بخارى كښي حضرت ابوسلمه ﷺ نه روايت دي چه يوسړي حضرت ابن عباس ﷺ له راغلو هغه وخت ابوهريره ﷺ هم موجود وو. هغه سوال اوكړوچه دهغه ښځي باره كښي ستا څه فتوى ده د چا چه د خپل خاوند د وفات نه څلويښت ورځي پس ماشوم پيداشي. هغوى اوفرمائيل په دواړو عدتونوكښي به آخرى عدت تيروى يعنى په دي صورت كښي به په دي دري مياشتي عدت وى. ابوسلمه ﷺ اوفرمائيل په قرآن كښي چه دى چه د حمل د ښځي عدت د هغي د بچي پوري دي. حضرت ابوهريره ﷺ اوفرمائيل چه زه هم د خپل تره خوئ حضرت ابوسلمه ﷺ سره يم يعنى زما هم دغه فتوى ده. حضرت

---

(۱) الطبري:۲۳/۴۵۰.
(۲) ايضا:۲۳/۴۵۲.
(۳) حاكم:۲/۴۹۲-۴۹۳، الطبري:۲۳/۴۵۲.

ابن عباس ﷺ هم هغه وخت خپل غلام کریب مور ام سلمه ﷺ له اولیګلو چه لاړشه د هغې نه د دې مسئلې تپوس اوکړه. هغې اوفرمائیل د سبیعه اسلمیه ﷺ خاوند قتل کړې شواوداهغه وخت امیدواره وه څلویښت شپې پس ماشوم اوشو هم هغه وخت غوښتنه راغله او حضورﷺ نکاح اوکړه په غوښتنه اچولوکښې ابوالسنابل ﷺهم وو(۱)داحدیث په لږ شان اوږدوالی سره په نوروکتابونوکښې هم دې حضرت عبدالله بن عتبه ﷺ حضرت عمر بن عبدالله بن ارقم زهری ﷺته اولیکل چه هغه دې سبیعه بنت حارث اسلمیهﷺ له لاړشی اود هغې نه دې هغه واقعې تپوس اوکړی او ماته دې اولیکی. دې لاړو تپوس نی اوکړو او ونی لیکل چه د هغې خاوند حضرت سعدبن خوله ﷺ وو دا د بدر صحابیﷺ وو په حجة الوداع کښې وفات شو هغه وخت کښې دا په امید وه لږې ورځې پس د دې ماشوم پیدا شو کله چه د نفاس نه پاکه شوه نو ښې جامې ئی واغوستې او سنګار نی اوکړو کیناسته. حضرت ابوالسنابل بن بعکك ﷺ چه کله دې له راغلو چه دانی په دې حالت کښې اولیده نو ونی وئیل ته چه دا داسې ناسته ئی نو نکاح کول غواړې والله ته نکاح نه شې کولې ترکومې چه لس ورځې او څلور میاشتې نه وی تیرې شوې. ما چه دا واوریده نو څادرمې په سرکړواوحضورﷺ ته لاړم اود هغوی ﷺ نه مې د دې مسئلې تپوس اوکړو حضورﷺ اوفرمائیل چه د ماشوم کیدوسره ستا عدت ختم شو. اوس تاته اختیار دې که ته غواړې نو خپله نکاح اوکړه (۲)

په صحیح بخاری کښې د دې آیت لاندې د دې حدیث وارد کولونه پس داهم دی چه حضرت محمدبن سیرین ﷺ په یومجلس کښې وو چرته چه عبدالرحمن بن ابولیلی ﷺ هم وو د چا تعظیم اوتکریم به چه د هغوی ملګروډیرزیات کولو هغوی د حامله عدت په آخری دوو عدتونوکښې موده اوخودله په دې باندې ماد حضرت سبیعه ﷺ والا حدیث بیان کړونوزما بعضو ملګرو په ماباندې خبرې لګول شروع کړې. ماوئیل چه ماخوبیا ډیر جراءت اوکړوچه عبدالله باندې ما بهتان اولګولو اوهغه خود کوفې په یو ګوټ کښې ژوندې موجود دې. نو هغه لږ شان اوشرمیدو او وئیل چه د هغه تره خودې نه وو. زه د حضرت ابوعطیه مالك بن عامر سره ملاوشوم هغه ماته د حضرت سبیعهﷺ والا حدیث پوره واورولو ما وئیل چه تاد دې په بابت کښې د حضرت عبدالله نه هم څه اوریدلی دی. ونی فرمائیل مونږ حضرت عبدالله سره ووهغوی اوفرمائیل چه آیاتاسو په دې سختی کوئې او رخصت نه ورکوئې؟سورة نساء قُصری یعنی سورة الطلاق سورة نساء طولې نه پس نازل شوې او په دې کښې فرمان دې چه د حامله ښځې عدت د هغې ماشوم کیدل دی(۳) ابن جریرکښې د حضرت عبدالله ابن مسعودﷺ نه روایت دې چه څوك ملاعنه کول غواړی نو زه هغه سره ملاعنه کولوته تیاریم یعنی زماد فتوې خلاف چه د چا فتوی وی زه تیار یم چه هغه زما مقابلې له راشی او په دروغژن دې الله ﷻ لعنت اوکړی. زما فتوی دا ده چه حمله والا ښځې عدت د هغې بچې پیداکیدل دی. نودا ښځې د هغه ښځونه مخصوص شوې اوس مسئله هم دغه ده چه د کومې ښځې خاوندوفات شو او هغه حامله وی نوچه د حمل نه فارغه شوه دعدت نه اووتله. دابن ابی حاتم په روایت کښې دی چه حضرت ابن مسعودﷺ داهغه وخت فرمائیلې وو چه کله هغه ته معلومه شوه چه د حضرت علی فتوی دا ده چه د هغې عدت په دې دواړو عدتونو کښې چه کوم آخری وی هغه دې. مسنداحمد کښې دی چه ابی بن کعبﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چې اولات الاحمال آیت، دادد یوطلاقووالا د ښځو عدت دې یاد مړشوی خاوند دښځې نوهغوی اوفرمائیل

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الطلاق باب ﴿واولات الاحمال اجلهن....﴾:۴۹۰۹، صحیح مسلم:۱۴۸۵مختصراً.
(۲) صحیح مسلم کتاب الطلاق باب القضاء عدة المتوفی عنها بوضع الحمل:۱۴۸۴، صحیح بخاری:۳۹۹۱، ابوداوٗد:۲۳۰۶، ابن ماجه:۲۰۲۸، بیهقی:۴۲۸/۷، ابن حبان:۴۲۹۴. (مسلم).
(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الطلاق باب ﴿واولات الاحمال اجلهن...﴾:۴۹۱۰.

د دوارو (۱) احاديث ډير غريب دي بلکه ډير منکردي ځکه چه په اسناد کښې مثنی بن صباح دې اوهغه بالکل متروك الحديث دې خود دې نورسندونه هم دی. بيا فرمائی چه الله ﷻ د متقيانو د پاره هر مشکل آسانوی او د هرتکليف نه راحت ورکوی. دا د الله ﷻ احکام او د هغه پاك شريعت دې چه د خپل رسول ﷺ په ذريعه ستاسو د پاره نازليږی. د الله ﷻ نه يريدونکی الله ﷻ د ګيزونو د ويرې نه بچ کوی او د هغوی په لوړ شان عمل ډير اجر ورکوی.

أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ

اوسوئ هغوی | په هغه ځائې کښې | چې اوسيږئ تاسو | د خپل طاقت مطابق | او تکليف مه ورکوئ هغوی ته

دغه (طلاقې شوې) ښځې د خپل حيثيت مطابق هغه ځائې کښې اوسوئ | په کوم ځائې کښې چې تاسو

لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ ۚ وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ

د پاره د دې چې تنګی راولئ | په هغوئ باندې | او که چرې وي هغوئ | خاوندانې د حمل

اوسيږئ | او د هغوئ د تنګولو د پاره ورته تکليف مه ورکوئ | او که هغوئ اميد اوارې وی | نو خرڅ

فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ

نو خرڅ کوئ | په هغوئ باندې | تر هغې پورې | چې اوزيګوی هغوئ | حمل (بچې) خپل

خوراک ورکوئ | ..................تر دې چې اولاد اوزيږوی

فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۚ

پس که چرې پئ ورکړل هغوئ | د پاره ستاسو | پس ورکړئ تاسو هغوئ له | مزدوری د هغوئ

بيا که هغوئ تاسو ته (دغه) ماشوم پالې | نو خپل (مناسب) اجرت ورته ورکوئ

وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوفٍ ۚ وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ

او مشوره کوئ | په منځ ستاسو کښې | په ښه طريقې سره | او که چرې تنګ کړو تاسو يو بل

او په خپل مينځ کښې د رواج مطابق اجر خلاصوئ | ...........او که يو بل سره مو سختي راواخسته

فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ۝٦ لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ

نو پئ به ورکوی | هغه بچې لره | بله ښځه | نفقه دی ورکړی | خاوند د طاقت (مالدار سړی)

نو بله ښځه به ورله (د ماشوم) پالنه اوکړی | مالدار دې د خپل وس (طاقت) مطابق خرچه ورکوی

مِّنْ سَعَتِهِ ۖ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ

د طاقت خپل نه | او هغه څوك | چې تنګ کړې شو | په هغه باندې | رزق د هغه | نو خرڅ دې اوکړی

| او د چاچې لاس تنګ وی (امدنی ئې کمه وی) نو چې څه ورته الله تعالی ورکړی وی

مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ ۚ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آ

د هغه مال نه | چې ورکړې دی هغه ته الله | نه ورکوئ تکليف الله | هيڅ يو نفس ته | مګر | هغه

د هغې نه دې خرچ خوراک ورکوی | الله ﷻ په چا باندې هغه خومره بوج | څوی څومره چې ئې

(۱) احمد: ۱۱٦/٥.

| أَتٰهَا | سَيَجْعَلُ اللّٰهُ | بَعْدَ | عُسْرٍ | يُسْرًا |
|---|---|---|---|---|
| قدر چې ورکړې ئې وي هغه ته | زر دې چې جوړ به کړي الله | روستو | دتنگئ نه | آسانوالي |
| ورته طاقت ورکړې وي | ...............الله ﷻ به پرې د تنگئ نه پس فراخي راولي | | | |

قوله تعالى:- أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ

**په ښځو خرچه کول:-** الله ﷻ خپلو بندیگانوته حکم ورکوی چه کله په هغوی کښې څوك خپلې ښځې ته طلاق ورکړی نود عدت تیریدوپورې هغې ته د اوسیدوډپاره خپل مکان ورکړئی،دا ځائ د خپل طاقت مطابق دې تردې چه حضرت قتاده رحمه الله فرمائی که زیات کولاو نه وی نو هم د خپل مکان یوگوټ هغې ته ورکړه. هغې ته په تکلیف رسولوهغه دومره مه تنگوه چه هغه کورپریږدی او لاړه شی یاستانه د خلاصی د پاره خپل حق مهر پریږدی یاداسې طلاق ئې ورکړوچه گورې یو ورځ دوه د عدت پاتې شی .اود رجوع اعلان ئې اوکړو بیائې طلاق ورکړواوعدت ختمیدوسره نیزدې رجوع اوکړه دې د پاره چه هغه عاجزه نه ناوې جوړه شی او نه کونډه. بیا ارشاد فرمائی چه که د طلاق والا ښځه حامله وی نو د بچی کیدوپورې دهغې خرڅ خوراك د هغې د خاوند په ذمه دې. که هغه په حمل سره وی نوهم اوکه بغیر دحمل نه وی نوهم. او علماء حضرات فرمائی چه داحکم هم ددې ښځو باره کښې بیانیږی د کومو نه چه د رجعت حق حاصل دې ځکه چه پورته هم د دوی بیان وو دائی جدا ځکه بیان کړوچه عموماً د حمل موده اوږده وی نوځوك دې دانه گنړی چه د عدت هومره زمانه خرچه په مونږ ده باقی نه ده. د دې دپاره ئې صفااوفرمائیل چه د رجعت والا ښځه د طلاق په وخت کښې که حامله وی نوچه ترکومې پورې ماشوم نه وی شوې د هغې خرچه د خاوندپه ذمه ده. بیا په دې کښې هم دعلماء اختلاف دې چه خرچ د هغې د حمل د پاره دې یا هم د حمل دې. د امام شافعی رحمه الله وغیره نه دواړه قوله نقل دی.او هم د دې په بنا ډیرو فروعی مسئلوکښې هم اختلاف ښکاره شوې دې.

قوله تعالى:- فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ

**درضاعت د خرچې بیان:** بیافرمائی چه کله داطلاقې شوې ښځې د حمل نه فارغ شی نوکه ستاسو اولادباندې پئې څکوی نوتاسو له د هغوی د پئیوڅکولو خرچه ورکول پکار دی. اوښځې ته اختیار حاصل دې که هغه پرې پئې څکوی که نه څکوی خود اول خل پئې خامخا څکول پکار دی. نوکه بیا پرې پئې نه څکوی ځکه چه عام توگه باندې د ماشوم ژوندهم دې پئیوسره تړلې دې نوکه هغه دې نه پس هم پئې څکوی نوچه د موروپلار په مینځ کښې کوم اجرت مقررشی هغه اداکول پکار دی. ستاسو په خپل مینځ کښې چه کوم کاروی هغه د ښیگړې سره باقاعده د دستور مطابق کیدل پکار دی نه دې دا د هغه په نقصان پسې لگیدلې وی اونه دې هغه دې ته نقصان اوتکلیف رسولوکوشش کوی. لکه چه په سورة بقره کښې فرمائیلی دی ﴿وُسْعَهَا لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُ بِوَلَدِهِ﴾ یعنی دبچی باره کښې دې نه دهغه مورته تکلیف رسولې شی اونه دهغه پلار ته.بیا فرمائی چه که په خپل مینځ کښې اختلاف زیات شی مثلاً د ماشوم پلارکمه معاوضه ورکول غواړی چه د هغه مورته منظور نه وی یامور ئې زیاته غواړی چه پلارته ئې ورکول گران وی اوبرابروالې نه شی کیدې اودواړه په یوه خبره رضاکیږی نه نو اختیار دې چه چرته بلې دائی له دې ورکړی اوچه کوم څه بلې دائی ته ورکول منظورولې شی که هم په دې باندې د بچی مور رضامنده شی نودیره حقداره هغه ده. بیا فرمائی چه د ماشوم پلار یا ولی چه څوك وی هغه له پکار دی چه په ماشوم باندې د خپل وس مطابق خرچ اوکړی. تنگدست دې د خپل طاقت مطابق ورکوی او د طاقت نه زیاتی تکلیف الله ﷻ په چاباندې نه ایږدی. په تفسیر ابن جریرکښې دی چه دحضرت ابوعبیده رضی الله عنه په بابت د حضرت عمر رضی الله عنه نه معلومه کړې شوه نو پته اولگیده

چه هغوی پیره کپړا اغوندي او سپك خوراك كوي. هغوی حكم اوكړو چه هغه ته يوزر ديناره اوليګئي اود چا په لاس چه ئي اوليګي هغه ته اووايه ګوره چه هغه په دې دينارونوڅه كوي؟ كله چه هغه ته دا پيسي ملاو شوې نو هغه پرې نرې كپړې واغوستې اونفيس خوراكونه كول ئي شروع كړه. قاصد واپس راغلو اوحضرت عمر ﷺ ته ئي واقعه بيان كړه. هغوی اوفرمائيل الله ﷻ دې په هغه رحم اوكړي هغه په دې آيت باندې عمل اوكړوچه مالداردې د خپلې مالدارئي مطابق خرچ كوي او غريب دې د خپلې غريبئي مطابق.(١)دطبراني په يوغريب حديث كښې دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل يوسړي سره لس ديناره وو هغه په دې كښې يود الله ﷻ په لاركښې صدقه كړو بل سره لس اوقيه وې د هغې نه ئي يو اوقيه يعني څلويښت درهمه خرچ كړل. دريم سره سل اوقيه وې هغه د الله ﷻ لاركښې لس اوقيه خرچ كړې.نودا ټول دالله ﷻ په نيز په اجركښې برابردي ځكه چه هريودخپل مال لسمه حصه د الله ﷻ په لاركښې خرچ كړه.(٢) بيا الله ﷻ ربښتوني وعده وركوي چه هغه به د تنګئي نه پس آساني كوي.لكه چه بل ځائ كښې ارشاد دې ﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ په تحقيق سختئي سره آساني وي.

قوله تعالى:- سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا۝

دمسنداحمد حديث په دې ځائ كښې د راوړوقابل دې په كوم كښې چه حضرت ابوهريره ﷺ فرماني چه په وړاندې زمانه كښې يوښځه او خاوندوو د ولږې تندې ژوندئي تيرولو ورسره هيڅ هم نه وو. يوځل داسړې د سفر نه واپس راغلو او سخت وږې وو د ولږې د لاسه بيتابه وو. راتلوسره ئي ښځې ته اووئيل چه د خوراك د پاره څه شته؟ هغې ورته وئيل او خوشحاله شه د الله ﷻ راكړې شوي روزي رارسيدلې ده. هغه وئيل چه بيا خوراوره هرڅه چه وي سخت وږې يم. ښځې وئيل لږشان صبراوكړوه د الله ﷻ د رحمت نه زمونږ ډير څه اميددې. كله چه لږساعت نورتيرشونو هغه وئيل چه داڅه تاسره دي ولې نه راكوې؟ماته خود ولږې دوجي نه سخت تكليف دې.ښځې وئيل دادومره تلواروليې كوې؟اوس تنور كولا وو هم. د لږساعت تيريدونه پس چه ښځې اوكتل چه دې بيا تقاضا كول غواړي نوپخپله ئي اووئيل چه اوس پاسم او تنورګورم. چه پاسيده نوګوري د الله ﷻ په قدرت سره دهغې د توكل په بدله كښې د چيلئي د اړخ د غوښې نه ډك وو او چه وئي كتل نود كوردواړه ميچنې پخپله تاويدلې او برابر ترې اوړه راوتل. هغې د تنور نه ټوله غوښه راوويستله اود ميچنونه ئې ټول اوړه راوچت كړل او وئې څنډلې. حضرت ابوهريره ﷺ قسم خوړلوسره فرماني چه د حضور ﷺ فرمان دې كه دې صرف اوړه راخستې وې او ميچنې ئې څنډلې نه وې نودابه د قيامته پورې رواني وې(٣) يوبل روايت كښې دي چه يوسړې د خپل كورطرف ته اووتلو روان وو دلته چه كله د هغې نيك بختې ښځې اوكتل چه خاوندئي خفه دې او دا نظاره نه شي ليدلې نولاړه او ميچنه ئې تيك كړه تنورئي تودكړو اود الله ﷻ نه ئي دعااوغوښتله چه اې الله مونږ ته رزق راكړې پاسيده وئي كتل چه كټوئي د غوښې نه ډكه ده په تنوركښې روټئي لګې او ميچن برابر روانه ده اوړه ترې راوځي. په دې كښې ئي خاوندهم تشريف راوړو تپوس ئي اوكړوچه زمانه پس تاته څه ملاوشو؟ ښځې ئي ووئيل چه او زمونږ رب مونږ ته ډير څه راكړه. هغه لاړه اود ميچنې دويم سرئي واړولو. كله چه حضور ﷺ ته داواقعه بيان كړې شوه نوحضور ﷺ اوفرمائيل كه هغوی دا نه وه اوچته كړې نود قيامته پورې به دا ميچن روانه وه.(٤)

(١) دارواېت مرسل دې.
(٢) المعجم الكبير:٢٤٣٩.
(٣) احمد:٤٢١/٢ وسنده حسن.
(٤) احمد:٥١٣/٢، مجمع الزوائد:٢٥٦/١٠، المعجم الاوسط:٥٥٨٤، شعب الايمان:١٣٣٩، دلائل النبوة للبيهقي:١٠٥/٦.

وَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِ

او ډیر وو | دکلونه | چي مخ ني واړووا | دحکم درب خپل نه | او درسولانو دهغه نه

او څومره کلي دي چي دخپل رب او د هغه دپیغمبرانو دحکم نه ئي مخ اړولي وو

فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَاهَا عَذَابًا نُّكْرًا ۝

پس حساب او کړومونږ دهغوئ سره | حساب سخت | او عذاب ورکړو مونږ هغوئ له | عذاب ناکاره

نو مونږ ورسره سخت حساب او کړوا او مونږ هغوئ ته ډیره درنه سزا ورکړه

فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا ۝ أَعَدَّ اللَّهُ

پس وي څکلو | عذاب دعمل خپل | او وو انجام | دعمل دهغوئ | نقصان | تیار کړي دي الله

غرض دا چي هغوئ دخپلو کارونو په سزا کښي راګیر شول |او انجام ني تاوان وو | الله ﷻ

لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ ۚ الَّذِينَ

دپاره دهغوئ | عذاب | سخت | پس اویریږئ دالله نه | اے خاوندانو دعقلونو | هغه کسانو

د هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر کړي دي| نو دالله ﷻ نه اوویریږئ || ائي هوښیارانو ! | چي

آمَنُوا ۚ قَدْ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ۝ رَّسُولًا يَتْلُو

چي ایمان مو راوړي دي | نازل کړي دي الله | تاسو ته | نصیحت | یعني رسول | چي لولي

ایماندارئ الله ﷻ تاسو ته یو نصیحت (قرآن) رالیږلي دي| ............او رسول ني رالیږلي دي

عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللَّهِ مُبَيِّنَاتٍ لِّيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا

په تاسو باندي | ایتونه دالله | واضحه | دپاره ددي چي راوباسي | هغه کسان | چي ایمان ني راوړي دي

تاسو ته دالله ﷻ ښکاره حکمونه بیانوی | د دي دپاره چي کومو کسانو ایمان راوړي دي

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَمَن يُؤْمِن

او عملونه ني کړي دي نیک | دتیرونه | رڼا ته | او هغه څوک | چي ایمان راوړي |

او نیک عملونه کوی| هغوی د تیارونه رڼا ته راوباسي| ..............او څوک چي په الله

بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي

په الله باندي | او عمل کوی نیک | داخل به کړي هغه لره | داسي باغونو ته | چي بهیږی به

باندي ایمان راوړی | او دنیکئ کارونه کوی | هغوئ به داسي باغونو ته داخل کړي

مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ قَدْ أَحْسَنَ اللَّهُ لَهُ

لاندي دهغي نه | نهرونه | چي همیشه به وی | په هغي کښي | همیشه | ښه کړي دي الله | هغه لره

چي دهغي لاندي به ولي بهیږی | همیشه به په هغي کښي اوسیږی |بیشکه الله ﷻ به ورته

رِزْقًا ۝

په لحاظ درزق سره |

ډیر ښه رزق ورکړی|

قوله تعالى:- وَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ
ذ الله تعالى حکم اومنئی:- کوم خلق چه د الله ﷻ د حکم خلاف اوکړی د هغه رسول ﷺ اونه منی اودهغه په شریعت باندې نه ځی هغوی باندې غصه کولې شی. چه ګوره په وړاندینوخلقوکښې څوك په دې لار روان وو هغه تباه اوبربادشو. چا چه کبر لوئی اوسرکشی اوکړه د الله ﷻ د حکم او رسول د تابعدارئی نه ئی بې پروائی اوکړه نو آخرهغوی له سخت حساب ورکول پریوتل اود خپلې بدکارئی مزه ئی اوڅکله اود هغوی انجام نقصان شو. هغه وخت پښیمانه شو ولې اوس پښیمانتیا د څه کار؟که ددې دنیا په عذابونوسره عذاب شوې وې نو بیا هم یوه خبره وه د هغوی د پاره خو په آخرت کښې هم سخت عذاب او ډیر وهل دی. اوس د سوچ او پوهې والا تاسو له پکاردی چه د دوی په شان مه جوړیږئی اود هغوی نه عبرت واخلئی عقلمندو ایماندارو خلقو الله ﷻ ستاسوطرف ته قرآن پاك نازل کړې دې د ذکر نه مراد قرآن پاك دې لکه چه فرمائی ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ هم مونږ دا قرآن پاك نازل کړې دې اوهم مونږ به د دې حفاظت کونکی یواوبعضوبنیلی دي چه د ذکر نه دلته مراد رسول دې. نوورسره ئی اوفرمائیل رسولا نودابدل اشتمال دې خکه چه د قرآن پیژندونکې هم رسول الله ﷺ دې نو په دې مناسبت سره ئې هغوی ﷺ د ذکر په لفظ سره یاد کړی دی. حضرت امام ابن جریر رحمه الله هم دا مطلب صحیح ګنړی([1]) بیا ئی د رسول ﷺ حالت بیان کړو چه د الله ﷻ روښانه او واضح آیاتونه لولی اوروی دی دپاره چه مسلمانان د تیارونه راوخی او رڼاګانوته اورسی. لکه چه بل ځائ کښې فرمائی ﴿كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِ رَبِّهِمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ﴾ دا کتاب مونږ تاته درکړې دې د دې د پاره چه ته خلق د تیارونه رڼا طرف ته راوباسې. بل ځائ ارشاد دې ﴿اللَّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ الله ﷻ د ایماندارو کارساز دې هغه دوی د تیارونه د رڼا طرف ته راولی یعنی د کفراوجهالت نه د ایمان اوعلم طرف ته. په یوبل آیت کښې الله ﷻ خپلې نازل کړې شوې وحې ته نورفرمائیلې دې خکه چه په دې سره هدایت او نیغه لار حاصلیږی. اود دې نوم ئی روح هم ایخودې خکه چه په دې سره زړونوته ژوند ملاویږی. الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا ۚ مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ وَلَٰكِن جَعَلْنَاهُ نُورًا نَّهْدِي بِهِ مَن نَّشَاءُ مِنْ عِبَادِنَا ۚ وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ یعنی مونږ دغه شان ستاطرف ته د خپل حکم نه د روح وحی اوکړه تاته پته نه وه چه کتاب څه څیز دې اوایمان څه څیز دې؟ خو مونږ هغه نورکړو د څه سره چه مونږ کوم یوبنده ته غواړوهدایت کوو. یقیناً ته د ربښتونې او صحیح لارې طرف ته رهنمائی کوې. بیاد ایماندارو او نیك عمل کونکو هم دغه بهیدونکی د همیشه والی جنت بیان شوې دې د کوم تفسیرچه بار بار تیرشوی دی.

| اَللّٰهُ الَّذِيْ | خَلَقَ | سَبْعَ سَمٰوٰتٍ | وَّمِنَ الْاَرْضِ |
| --- | --- | --- | --- |
| الله هغه ذات دې | چې جوړ ئې کړل | اوه آسمانونه | او دزمکې دقسم نه |
| الله ﷻ هغه ذات دې چې اووه آسمانونه ئې پیداکړی دی | اود | | |
| مِثْلَهُنَّ ۭ | يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ | بَيْنَهُنَّ | لِتَعْلَمُوْٓا |
| په مثل دهغې | نازلیږی حکم | په منځ دهغوئ کښې | دپاره ددې چې معلومه شي تاسو ته |
| هغې په شان زمکه هم | په دې ټولو کښې دالله ﷻ حکمونه جاری کیږی | د دې دپاره چې تاسو ته معلومه شي | |

[1]) الطبری:٢٢/٤٦٨.

| بِكُلِّ | قَدْ اَحَاطَ | وَّاَنَّ اللهَ | قَدِيْرٌ ۙ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | اَنَّ اللهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هر څيز باندې | چاپيره دې | او بيشكه الله | قادر دې | په هر څيز باندې | چې بيشكه الله |
| او د الله ﷻ علم دهرڅيز نه | | | چې الله ﷻ په هرڅه قادر دې........................ | | |
| | | | | عِلْمًا ⑫ | شَيْءٍ |
| | | | | | په لحاظ دعلم سره |
| | | | | | راچاپيره شوې دې |

قوله تعالى:- اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ؕ

اووه زمكې اووه اسمانونه :- الله ﷻ د خپل قدرت كامله او عظيم الشان سلطنت بيان كوى چه مخلوق د هغه د عزت او عظمت خيال اوكړي اود هغه فرمان ته د قدر په نظرسره اوګوري او په دې باندې عمل كونكې شى اوهغه خوشحاله كړى. نووئى فرمائيل چه د اووه آسمانونوخالق الله ﷻ دې لكه څنګه چه نوح ﷺ خپل قوم ته فرمائيلي وو ﴿اَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا﴾ آياتاسونه ګورئى چه الله ﷻ اووه آسمانونه څنګه يود بل د پاسه پيداكړى؟بل ځائ كښې ارشاد دې ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ؕ﴾يعنى اووه واړه آسمانونه زمكې اوپه دې كښې چه څه دى ټول د هغه الله ﷻ تسبيح وانى. بيا فرمائى چه هم د دې په مثال زمكې دى لكه چه د بخارى اومسلم شريف په صحيح حديث كښې دى چه كوم سړې ظلم سره د بل كس نه يولويشت زمكه واخلى هغه ته به د اووه زمكوطوق وراچولې شى. (١) په صحيح بخارى كښې دى چه دې به تراووه زمكوپورې ورخښولې شى. ما د دې ټول سندونه ټول الفاظ دشروع نه ترآخره پورې اود زمكې د پيدائش په ذكر كښې بيان كړى دى. فالحمدلله. كومو بعضو خلقو چه وئيلى دى چه دې نه مراد اووه اقليم دى هغوى بې فائدې منډه تړره كړې ده اوپه بې ځايه اختلاف كښې اينختې دى اوبغيرد دليل نه ئې د قرآن اوحديث خلاف كړې دې.په سورة حديد كښې آيت ﴿هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۞ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ؕ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْاَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيْهَا ؕ وَهُوَ مَعَكُمْ اَيْنَ مَا كُنْتُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۞﴾ تفسير كښې د اووه واړو زمكواود دې په مينځ كښې د لريوالى اود دې د پيروالى چه پنځه سوا كاله دې دې پوره بيان شوې دې.

**د كرسئ مقابله كښې د اسمانونو او زمكو نسبت:-** حضرت ابن مسعود ﷺ وغيره هم دا فرمائى په يوبل حديث كښې هم دى چه اووه واړه آسمانونه اود دې په مينځ كښې چه څه دى او اووه زمكوكښې اود دې په مينځ كښې چه څه دى د كرسئ په مقابله كښې داسې دى لكه چه په يو ډير لوئ اوږدميدان كښې يو كړئ پرته وى. په ابن جريركښې د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې كه چرې زه د دې تفسير ستاسو په وړاندې بيان كړم نودا به اونه منئ اونه منل دروغژن كيدل دى او په روايت كښې دى چه يو سړى د يو آيت د مطلب تپوس كړې وو په هغې باندې حضور ﷺ فرمائيلې وو چه زه څنګه باور اوكړم چه زه تاته څه ښايم ته به د هغې نه انكار نه كوې. او په يو بل روايت كښې دى چه په هره زمكه كښې د حضرت ابراهيم ﷺ اود هغه د زمكې د مخلوق په شان دى اود ابن مثنى والا په دې روايت كښې راغلى دى په هرآسمان كښې دابراهيم ﷺ په مثل دى.د بيهقى كتاب ﴿الاسماءوالصفات﴾كښې د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه په اووه واړو زمكوكښې د هريو نه نبى دې په مثال ستاسو د نبى او آدم ﷺ

---

(١) صحيح بخارى حواله سابق:٣١٩٦.

دي په شان ستاسو د ادم ﷺ او نوح ﷺ دي په شان د نوح ﷺ اوابراهيم ﷺ دي په مثل د ابراهيم ﷺ او عيسى دي په مثل د عيسى ﷺ. بيا امام بيهقي رحمه الله يو بل روايت هم د ابن عباس ؓ نه نقل کړي دي اوفرمائيلي دي چه د دې اسناد صحيح دى خودا بالکل شاذ دي.ابوالضحى چه د دې يوراوى دې زما په علم کښې د هغه متابعت هيڅ څوك نه کوى. والله اعلم. يومرسل او ډير منکر روايت ابن ابى الدنيا راوړلې دې په کوم کښې چه روايت دې چه يوځل حضور ﷺ صحابه کرامو ﷺ په ډله کښې تشريف راوړو. وئي کتل نو ټول په څه سوچ اوفکر کښې چپ ناست وو. تپوس ني اوکړو څه خبره ده وني وئيل چه د الله ﷻ باره کښې سوچ کوو. وني فرمائيل ټيك ده په مخلوقاتو کښې نظر زغلوئى خود الله ﷻ باره کښې په سوچ اوفکر کښې مه پريوځئى. واوړئى د دې مغرب طرف ته يوه سپينه زمکه ده دهغې سپينوالي دهغې نور دې يا وني فرمائيل چه د هغې نور د هغې سپينوالي دې. د نمر لاردڅلويښتوورځو ده، هلته د الله ﷻ يومخلوق دي چا چه د سترګې د يو رپ برابر هم د هغه نافرمانى نه ده کړې. صحابه کرامو ﷺ اوفرمائيل بيا شيطان د هغوى نه چرته دې؟ وني فرمائيل چه هغوى ته دا هم نه دي معلوم چه شيطان پيداشوې هم دې اوکه نه؟ تپوس اوکړې شو چه هغوى انسانان دى؟ وني فرمائيل چه نه د حضرت آدم ﷺ د پيدائش علم هم ورته نشته.

﴿فالحمدلله﴾ د سورة طلاق تفسير هم پوره شو.

| ايا تونه | | سورة التحريم مكية وهي اثنتا عشرة اية وركوعان | | ركوع كاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑫ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ② |

| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ | لِمَ تُحَرِّمُ | مَآ | اَحَلَّ اللهُ | لَكَ | تَبْتَغِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے نبي ﷺ | ته ولې حراموې | هغه څيز | چې حلال کړي دي الله | دپاره ستا | ته غواړې |

انې نبي ! کوم څيز چې الله تعالى ستا دپاره حلال کړي دي هغه ولې حراموې. ته خپلې بيبيانې

| مَرْضَاتَ | اَزْوَاجِكَ | وَاللهُ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ① | قَدْ فَرَضَ اللهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| خوښي (خوشحالي) | دبيبيانو خپلو | او الله | بښونکې | مهربانه دې | بيشکه چې مقرر کړې دې الله |

خوشحالول غواړې . او الله تعالى بخښونکې مهربان دې ........ الله تعالى ستاسو دپاره

| لَكُمْ | تَحِلَّةَ | اَيْمَانِكُمْ | وَاللهُ | مَوْلٰىكُمْ | وَهُوَ الْعَلِيْمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ستاسو | حلالوالي | دقسمونو ستاسو | او الله | مولى (دوست) دې ستاسو | او هغه ښه پوهه دې |

قسمونه ماتول مقرر کړى دى ........ او الله تعالى ستاسو کارساز دې او هغه (الله) پوهه دې

| الْحَكِيْمُ ② | وَاِذْ | اَسَرَّ النَّبِيُّ | اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ | حَدِيْثًا |
|---|---|---|---|---|
| دحکمت خاوند دې | او کله چې | پټه اووئيله نبي ﷺ | يوې بيبيې خپلې ته | يوه خبره |

اوصاحب د حکمت دې او څه وخت چې پيغمبر د خپلو بعضو بيبيانو سره پټه خبره اوکړه

| فَلَمَّا | نَبَّاَتْ | بِهٖ | وَاَظْهَرَهُ اللهُ |
|---|---|---|---|
| پس هر کله چې | خبر ورکړو هغې بى بى | په هغه خبرې سره | او ښکاره کړه هغه خبره الله |

بياهرکله چې هغې دغه خبره (بلې بى بى ته) ښکاره کړه ........ او الله تعالى په هغې

عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ
په نبي ﷺ خپل باندې | نو نبي ﷺ خبر كړه هغه بي بي | د څه حصې دهغه خبرې نه | او څنډه ئي اوكړه
باندې پيغمبر خبرو كړو | ...نو پيغمبر دهغې څه حصه ښكاره كړه | او څه حصه ئي ښكاره نكړه

عَنْۢ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتْ
دڅه حصې نه | پس هر كله چې انبي ﷺ خبرور كړو هغې ته اپه دغه راز ښكاره كولو سره انو اووئيل هغې
(بلكه پټه ئي كړه) | بيا چې پيغمبر هم هغې بي بي ته د خبرې خبر وركړو | نو هغې ورته اووئيل

مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا قَالَ نَبَّاَنِيَ الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ
چا خبر دركړو تالره | ددې خبرې | اووئيل نبي ﷺ | خبر راكړو مالره | په هر څه پوهه | او دهر څيز نه خبر الله
چې دا حال درته چا اووئيلو ، | پيغمبر | ووئيل چې د علم خاوند خبردار( الله تعالى) راته اووئيلو

اِنْ تَتُوْبَاۤ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا
كه توبه اوباسئ تاسو دواړه | الله ته | نو مائل شوي دي | زړونه ستاسو ددواړو
انې دواړو بيبيانو كه تاسو الله ﷻ ته توبه اوويستله |...نو ستاسو زړونه هسې هم مائل شوي دي

وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ
اوكه تاسو دواړه امداد اوكړئ ديوې بلې سره | خلاف دهغه | پس بيشكه الله | هم هغه مددګار دهغه دې
اوكه چرې تاسو دواړو د رسول ﷺ خلاف ديو بل مدد اوكړو | نو (ياد ساتئ چې) الله تعالى پخپله

وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ
او جبريل عليه السلام | او صالحه دمومنانو ئي هم مددګاران دي | او فرښتې | روستو ددغه مددګارئ نه
او جبريل اونيكان مومنان د هغه مددګاران دي | او ددې نه پس فرښتې هم ددهٔ مددګارې دي

ظَهِيْرٌ عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ
مددګارني دي(دهغه) | اري نهٔ ده | چې رب دهغه | كه نبي طلاق دركړي تاسو ته | په بدل كښې وركړي هغه له
دا كيديشي چې كه پيغمبر تاسو ته طلاق دركړي | نو الله ﷻ به ورته ستاسو په عوض كښې غورې

اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰۤئِبٰتٍ
ښځې (بيبياني ) | بهتره | ستاسو نه | مسلماناني | مومناني | حكم منونكې | توبه ايستونكې
بيبياني وركړي | .......................مسلماناني | مومناني | فرمان منونكې | توبه ويستونكې

عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا
عبادت كونكې | روژې نيونكې | كونډې | او جينكۍ |
عبادت كونكې | روژه دارې | د خاوندانو نه پاتې | او پيغلې

**قوله تعالى:- يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ**

**د شان نزول باره كښې د مفسرينو اقوال:**-د دې سورة د شروع آياتونو د شان نزول باره كښې د مفسرينو اقوال دا دي. ① بعضې خوواني چه دا د حضرت ماريه رضي الله عنها باره كښې نازشوي دي.دا نبي كريم ﷺ په خان

حرامه کړې وه په دې باندې دا ایاتونه نازل شو. په نسائی کښې دا روایت موجوددې. چه د حضرت عائشه ﷝ اوحضرت حفصه ﷝ په خبرواوریدلوسره داسې شوې وو چه دیوې وینځې په نسبت حضور ﷺ فرمائیلی وو نوپه دې باندې دا آیاتونه نازل شو([1]) ابن جریرکښې دی چه ام ابراهیم ﷝ سره حضور ﷺ د خپلې یوې بی بی په کورکښې خبرې اترې کړې وې په کوموخبرو چه دغه بی بی وئیلې وو یا رسول الله ﷺ زما په کورکښې اوزما په بستره نو حضور ﷺ هغه په خپل ځان باندې حرامه کړه نو هغې وئیل یارسول الله ﷺ حلال به په تاسو باندې څنګه حرام شي؟ نو هغوی ﷺ قسم اوخوړلوچه بیا به دې سره داسې خبرې اونه کړم. په دې باندې دا آیت نازل شو. حضرت زید ﷛ فرمائی چه دې نه معلومه شوه چه د چاداً وینا ته په ماحرامه شوې بې کاره اوفضول ده([2]) حضرت زیدبن اسلم ﷛ فرمائی حضور ﷺ دا فرمائیلې وو ته په ماحرامه یئې په الله ﷻ قسم زه به تاسره صحبت اونه کړم. ([3]) حضرت مسروق ﷬ فرمائی دحرام کولوپه باب کښې خوپه حضور ﷺ باندې سختی اوکړې شوه اودقسم دکفارې حکم اوشو.
ابن جریر کښې دی چه حضرت ابن عباس ﷛ د حضرت عمر ﷛ نه تپوس اوکړو چه دا دواړه ښځې څوک وې؟ ونی فرمائیل حضرت عائشه ﷝ او حضرت حفصه ﷝ او شروع د قصې ام ابراهیم ﷝ قبطیه باره کښې اوشوه. د حضرت حفصه ﷝ په کورکښې د هغې د نمبر په ورځ حضور ﷺ هغې سره ملاؤ شوې وو په دې باندې حضرت حفصه ﷝ خفه شوه چه زمادنمبرپه ورځ زما په کورکښې زما په بستره. حضور ﷺ د هغې د راضی کولو اوپوخلاکولو د پاره هغې ته اووئیل چه دا په ځان باندې حرام کوم اوس ته د دې خبرې ذکر چاته مه کوه. خوحضرت حفصه ﷝ حضرت عائشه صدیقه ﷝ ته واقعه بیان کړه. الله ﷻ د دې خبر خپل نبی ﷺ ته ورکړواودا ټول آیاتونه نازل شو. حضور ﷺ کفاره ورکړه اوخپل قسم ئې مات کړواودې وینځې سره ملاؤشو.

**يو سړې باندې خپله حلاله ښځه حراموِل څنګه دي؟**:-هم دا واقعه دلیل جوړولوسره د حضرت عبدالله بن عباس ﷛ فتوی ده چه څوك اووائی فلانکې څیز په ما باندې حرام دې هغه له د قسم کفاره ورکول پکار دی ([4]) یوسړی د هغوی نه هم د دې مسئلې تپوس اوکړوچه ما خپله ښځه په ځان باندې حرامه کړې ده نو هغوی اوفرمائیل هغه په تاباندې حرام نه ده. د ټولونه زیاته سخته کفاره د الله ﷻ په لارکښې غلام آزادول دی([5]) د امام احمد ﷫ او نوردیرو علماؤ فتوی ده چه کوم سړې خپله ښځه یاوینځه یا د خوراك څښاك یاد اغوستلو څیزپه ځان حرام کولو باندې خوپه ده کفاره شته په بل چانشته.اوکه د حرام کولو نه د طلاق نیت کړې وی نو بې شکه طلاق به کیږی.دغه شان که د وینځې د آزادولو باره کښې نیت د حرام کولو د لفظ په وئیلو سره کړې وی نوهغه به آزادیږی.

① د ابن عباس ﷛ نه روایت دې چه دا آیت د هغه ښځې په باب کښې نازل شوې دې چاچه خپل ځان حضور ﷺ ته هبه کړې وو خوداغریب دې.بالکل صحیح خبره دا ده چه د دې آیاتونو نازلیدل د حضور ﷺ په خپل ځان باندې شات حرام کول وو.② په صحیح بخاری کښې د دې آیت په موقعه باندې دی چه دحضرت زینب بنت جحش ﷝ په کورکښې حضور ﷺ شات څکلې وو اودهغې په خاطر به هلته لږشان حصاریدلوهم. په دې باندې حضرت عائشه ﷝ اوحضرت حفصه ﷝ خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چه په مونږ کښې چاکره حضور ﷺ تشریف راوړونو وایوبه چه یارسول الله ﷺ نن خو ستاسو د خلې

---

[1] ) نسائی کتاب عشرة النساء باب الغيرة: ۳۴۱۱ وسنده صحیح، حاکم:۲/۴۹۳.
[2] ) الطبری:۲۳/۴۷۵.
[3] ) ایضاً.
[4] ) صحیح بخاری کتاب التفسير سورة التحريم باب (يايها النبي لم تحرم ما احل الله لك...):۴۹۱۱، صحیح مسلم:۱۴۷۳.
[5] ) نسائی کتاب الطلاق باب تاويل قوله تعالى (يايهاالنبي لم تحرم ما احل الله لك ):۳۴۴۹ وهو حسن.

مبارکې نه مغافيرو په شان بوئي راځي کيدې شي تاسو مغافيرخوړلې وي. نو مونږ هم داسې اوکړه حضورﷺ اوفرمائيل چه نه ماخوزينب کره شات څکلي دي. اوس قسم خورم چه بيا به نه څکم خوداچانه مه وائي([1])حضرت امام بخاري رحمه الله داحديث په کتاب الايمان والنذور کښې هم په څه زياتي سره راوړلې دې. وائي چه دلته د دواړوښځو نه مراد حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت حفصه رضي الله عنها دی. او پته خبره کوله داده چه ما شات څکلي دي([2])په کتاب الطلاق کښې امام صاحب رحمه الله داحديث راوړې دې([3])بيا فرمائي مغافيرد ګوندو په شان يوڅيزدې چه په وښوکښې پيدا کيږي اوپدې کښې لږشان خوږوالي وي.

**د شاتو واقعه او د عائشه صديقه رضي الله عنها قصه:** د صحيح بخاري کتاب الطلاق کښې داحديث د حضرت عائشه رضي الله عنها نه په دې الفاظوکښې روايت دې چه حضورﷺ ته خواږه څيزونه او شات ډيرخوښ وو.دمازيګردمانځه نه پس به د خپلو بيبيانوکورته راتللواوچاته به نيزدې کيدو.يوځل حضورﷺ حضرت حفصه رضي الله عنها کره لاړواوچه خومره به حصاريدونو د هغې نه لږشان زيات حصارشو. په ماغيرت سورشو او تحقيق مې اوکړو نومعلومه شوه چه دهغوي دقوم يوې ښځې يوپيالې شات د هديه په توګه رالېګلي وو هغې په حضورﷺ باندې د شاتو شربت اوڅکلو اودومره ساعت ئې راحصارکړو. ماونيل چه خير دا به په څه بهانه باندې رابنده کړم نوما حضرت سوده بنت زمعه رضي الله عنها ته اوونيل چه کله تاکره حضورﷺ راشي اورانيزدې شي نوته ورته اووايه چه نن تاسو مغافيرخوړلي دی حضورﷺ به اوفرماني نه نوته ورته اووايه چه بدبوئي د څه ده؟ حضورﷺ به اوفرمائي چه په مابانډې حفصه رضي الله عنها شات څکولي دی نو ته ورته اووايه چه کيدې شي مچو د عرفط ازغنه ونه چوپلي وي. چه ماکره راشي نوزه به هم دا وايم نو بيا اې صفيه چه تاکره راشي نوته هم دا وايه . حضرت سوده رضي الله عنها فرمائي چه کله حضورﷺ ماکره راغلو نولاپه دراوازه کښې وو چه ما دااراده کړې وه چه تا ماته څه ونيلي وو زه به هغه حضورﷺته وايم خکه چه زه تانه ډيره ويريږم خودې وخت کښې خاموش شوم. کله چه حضورﷺ ماکره راغلونو ما ستاوينا توله پوره کړه بيا حضرت ماکره راغلو ماهم دا اوونيل بيا صفيه رضي الله عنها کره لاړو نوهغې هم دا وينا اوکړه. بياچه حضرت حفصه رضي الله عنها کره لاړو نوهغې ورباندې د شاتوشربت څکول اوغوښتل حضورﷺ اوفرمائيل ماته د دې حاجت نشته. نو حضرت سوده رضي الله عنهااوونيل چه افسوس مونږ په رسول کريم ﷺ دا حرام کړل. ما وئيل خاموش شه([4])د صحيح مسلم په حديث کښې دومره زياتوالي دا هم دې د نبي کريم ﷺ د بدبوئي نه سخت نفرت وو ([5]) په دې وجه دې بيبيانوونيلي ووچه هغوی مغافيرخوړلي دی. په دې کښې هم لږ شان بدبوئي وي. کله چه حضورﷺ جواب ورکړو چه ما شات څکلي دی نوهغه بيبيانواوونيل چه بيا خو به دې مچو د عرفط ونه چوپلي وي. د کومې د چيړ نوم چه مغافير دې اود دې په اثر سره به د دې بوئي د دې شاتو په مچو کښې پاتې شوې وی. په دې روايت کښې لفظ جرست دې د کوم معنی چه علامه جوهري کړې ده اود شاتومچوته هم جوارس وائي اوجرس سپك او رواواز ته هم وائي.عرب وائي (سمعت جرس الطير) کله چه مرغئي دانې راټولوی او د هغې د مښوکې آواز اوري. په يوحديث کښې دی بيا به هغوی د جنتي مرغو رو خواږه او مزيدار آوازونه اوري دلته هم په عربي کښې لفظ جرس دې.

[1] صحيح بخاري کتاب التفسير سورة التحريم باب (ياايهاالنبي لم تحرم ما احل الله لك):٤٩١٢.
[2] صحيح بخاري کتاب الايمان والنذور باب اذاحرم طعاما:٦٦٩١،صحيح مسلم:١٤٧٤.
[3] صحيح بخاري کتاب الطلاق باب (لم تحرم ما احل الله لك):٥٢٦٧.
[4] صحيح بخاري کتاب الطلاق باب (لم تحرم ما احل الله لك):٥٢٦٨.
[5] صحيح مسلم کتاب الطلاق باب وجوب الکفارة على من حرم امراته:١٤٧٤.

**نبی کریم ﷺ ته شات چا ورکړی وو حفصه رضی الله عنها که زینب رضی الله عنها:**- اصمعی رحمه الله وائی چه زه د حضرت شعبه ؓ په مجلس کښې ووم هغه دا لفظ جرس جرش سره د لوئ شین اولوستلو ماونیل په وړوکی سین سره دې حضرت شعبه ؓ زماطرف ته اوکتل اوونی فرمانیل چه دې زمونږ نه زیات پوهیږی هم دا ټیك دې ته اصلاح اوکړه. غرض دا چه شاتوڅکلوواقعه کښې په شاتوڅکونکوکښې دوه نو مونه روایت دی یود حضرت حفصه ؓ اوبل دحضرت زینب ؓ بلکه په دې امریاندې اتفاق کونکو ښځوکښې د حضرت عائشه صدیقه ؓ سره د حضرت حفصه ؓ نوم دې. کیدې شی دا دوه واقعات وی اوتردې پورې خو ټیك ده خود دې دواړو باره کښې دا آیت نازلیدل لږ شان غور غواړی. والله اعلم. په خپل مینځ کښې داسې مشوره کونکوکښې حضرت عائشه ؓ او حضرت حفصه ؓ وې اود دې حدیث نه هم معلومیږی کوم چه مسنداحمد کښې د حضرت ابن عباس ؓ نه نقل دې فرمائی زما د مودونه ارمان وو چه د حضرت عمر ؓ نه د حضور ﷺ د هغه دواړو بیبیانونومونه معلوم کړم د کومو ذکر چه په آیت ﴿إِنْ تَتُوبَا﴾ الخ دی. کله چه د حج په سفرخلیفة الرسول روان شونوزه هم ورسره ووم په یوه لارکښې حضرت عمر ؓ لار پریخوده او یوخنګل طرف ته روان شوماډولچه واخسته او شاشاته لاړم. هغوی د ضروری حاجت نه فارغ شوراغلو ماوبه ورواچولې او اودس نی اوکړو اوس مې موقع بیاموندو او سوال مې اوکړو اې امیرالمؤمنین د چا باره کښې چه دا آیت نازل شوې د هغه دواړه ښځې وې؟ هغوی اوفرمائیل ابن عباس ؓ افسوس! حضرت زهری ؓ فرمائی حضرت عمر ؓ ته د هغه دا سوال بد اولګیدو خوپټول جائز نه ووبه دې وجه نی جواب ورکړو چه دې نه مراد حضرت عائشه ؓ اوحضرت حفصه ؓ دی. بیاحضرت عمر ؓ واقعه بیانول شروع کړه چه قریشوخو به خپلې بیبیانې د خپل حکم لاندې ساتلې خود مدینې په خلقو عموماً د هغوی ښځې حاوی وې. کله چه مونږ هجرت اوکړو مدینې ته راغلونوزمونږه ښځو هم هغوی ته په کتو کتوسره په مونږ باندې غلبه حاصلول غوښتله. زه په مدینه کښې د حضرت امیه بن زید ؓ په کور کښې ووم یوځل په خپله بی بی باندې ناراضه غوندې شوم نوڅه ویناممې کوله نوهغې ماته جواب راکول شروع کړه. ماته ډیر خراب لګیده چه داڅه حرکت دې؟ دانوې خبره په کښې څنګه؟ هغې زما حیرانتیا ته اوکتل نوونی ونیل ته په کوم خیال کښې یئی؟ د الله ﷻ قسم د حضور ﷺ بیبیانې هم هغوی ﷺ ته جواب ورکوی او بعضې وخت خو خبرې اترې هم ټوله ورځ بند وی. اوس زه په یوبل کش مکش کښې پریوتلم نیغ خپلې لور حضرت حفصه ؓ کره لاړم اومعلومات مې اوکړو چه دا صحیح دی چه ته حضور ﷺ ته جواب ورکوې؟ اوکله کله ټوله ورځ خفه هم یئی؟ جواب ملاؤشو رښتیادی. ما ونیل برباده شوې او په نقصان کښې پریوتلې چا چه داسې اوکړه.آیاته د داسې خبرې نه غافله شوې چه د رسول الله ﷺ د غصې په وجه داسې ښځې نه الله ﷻ ناراض شی اوهغه د هیڅ هم پاتې نه شی؟خبردار بیا حضور ﷺ ته هیڅ قسم جواب ورنه کړې مه دهغوی ﷺ نه څه غواړه که څه غوارې نوماته غواړه. حضرت عائشه ؓ ته په کتوباندې د هغې حرص مه کوه هغه تانه ښه ده او تانه ډیره رسول الله ﷺ ته نیزدې ده.اوس نور واوره زما ګاونډی یوانصاری ووما او هغه وار مقرر کړې وو یوه ورځ به ما دحضور ﷺ په خدمت کښې تیروله او یوه هغه. ما به د خپلې ورځې ټول احادیث او آیاتونه وغیره هغه ته اورول او هغه ماته. دا خبره په مونږ کښې هغه وخت مشهوره کیدله چه غسانی بادشاه د خپلو اسونونعلونه لګوی اود هغه اراده په مونږ باندې حمله کول دی. یوه ورځ زما ملګرې د خپل وار په ورځ تلې وو د ماسخوتن په وخت کښې راغلواو زما دروازه نی اوټکوله اوماته نی آوازونه کول زه اوویریدلم او بهر راووتلم چه خیرخودې کنه؟ هغه ونیل چه نن خو ډیر غټ کار اوشو ما ونیل چه ولې غسانی بادشاه راورسیدو؟ هغه ونیل چه د دې نه هم لوئ کار ما تپوس اوکړو هغه څه؟ ونیل رسول الله ﷺ خپلو بیبیانوته طلاق ورکړو ما ونیل افسوسو حفصه ؓ برباده

شوه اوهغې خو نقصان اوکړو زه د اول نه د دې کار نه ویریدلم. د سحر مونځ کولوسره مې کپړې واچولې اونیغ حفصه رضي الله عنها له لاړم. اومې کتل چه هغه ژاړي ما وئیل چه حضورﷺ تاته طلاق درکړو؟ جواب ملاوشو چه دا معلومه نه ده حضورﷺ زمونږ نه جدا په خپله بالاخانه کښې تشریف ایخودي دي. زه هلته لاړم اومې کتل یوحبشي غلام په پهره باندې وو. ماوئیل لاړشه زما دپاره اجازت اوغواړه هغه لاړو بیا راغلو وئیل حضورﷺ هیڅ جواب رانه کړو. زه د هغه ځائ نه واپس جمات ته راغلم اومې کتل چه منبرسره د صحابه کرامو رضي الله عنهم یوه ډله ناسته ده او د بعضو بعضوخو اوښکې هم رواني دي زه لږ شان ساعت کیناستم خو آرام چرته وو؟ بیاپاسیدم او هلته مې غلام ته اووئیل زما د پاره اجازت اوغواړه هغه بیاراغلو چه هیڅ جواب ملاؤ نه شو. زه بیا جمات ته لاړم بیا د هغه ځائ نه ویریدونکې راغلم دلته راغلم بیامې غلام ته اووئیل غلام واپس راغلو او هم هغه جواب ئې اوکړو زه بیا واپس شوې ووم چه غلام آواز اوکړو راشئ تاسو ته اجازت ملاوشو. زه لاړم اومې کتل چه حضورﷺ په یوه بوجئ باندې ډډه لګولې ناست دې د کومې نښې چه د حضورﷺ په بدن مبارك لګیدلې دی ما وئیل یارسول الله ﷺ تاسو خپلو بیبیانوته طلاق ورکړو؟ هغوی ﷺ سر اوچت کړو اوزما طرف ته ئې اوکتل سرئې اوخوزولوچه نه. ما وئیل الله اکبر. یارسول الله ﷺ خبره دا ده چه مونږ قریشوخویه ښځې په خپل دباؤکښې ساتلې خو د مدینې والا باندې ښځې غالبې دی دلته په راتلوسره زمونږ ښځوهم د هغوی په کتو سره داسې حرکت کول شروع کړو. بیا ما د خپلې بی بی واقعه بیان کړه نو داخبرمې واوریدوچه د حضورﷺ بیبیانې هم داسې کوی دا وینا هم بیان شوه چه هغوی ته ویره نشته د رسول الله ﷺ د غصې په وجه به الله ﷻ هم ناراض شی اوهغوی به هلاکې شی. په دې باندې حضورﷺ مسکې شو او ما بیاخپل تګ د حفصه رضي الله عنها کره اوهغه مې د حضرت عائشه رضي الله عنها سره د مقابلې کولونه منع کول بیان کړل. په دې باندې بیا مسکې شو او ما اجازت اوغوښتلوچه زه لږ شان نور حصارشم؟ حضورﷺ اجازت اوکړو زه کیناستم اوس چه مې خلورو واړو طرفوته نظر اوکړو نود حضورﷺ بیټك (خاص دربار) بغیرد دریواوچوڅرمنویل هیڅ څیز اونه کتلو. د زړه غوښتنې سره مې عرض اوکړو یارسول الله ﷺ دعااوکړئ چه الله ﷻ ستاسوپه امت باندې کشادګی اوکړی. که اوګورې فارسیان او رومیان چه د الله ﷻ عبادت هم نه کوی هغوی ته د دنیا په نعمتونوکښې څومره وسعت ورکړې شوې دي؟ دې اوریدوسره حضورﷺ رانیغ شوکیناستو او وئې فرمائیل اې دخطاب خویه! ته په شك کښې یئې؟ د هغه قوم نیکئې هغوی ته په تندنی دنیاکښې ورکړې شوې.ماعرض اوکړوحضورﷺ! زمادپاره دالله ﷻ نه بښنه اوغواړئ.خبره دا وه چه تاسودسخت خفګان په وجه قسم خوړلې ووچه پوره میاشت به خپلو بیبیانوته لاړنه شم تردې چه الله ﷻ تاسوته خبردارې اوکړوداحدیث په بخاری مسلم ترمذی اونسائی کښې هم شته[1]دبخاری اومسلم په حدیث دی ابن عباس رضي الله عنه فرمائی ټول کال په دې امید کښې تیرشو چه موقعه ملاوشی دعمر رضي الله عنه نه به ددې دواړونومونوتپوس کوم خودفاروقی هیبت نه مې همت نه کیدو. تردې چه دحج په واپسئ کښې مې تپوس اوکړو بیائې پوره حدیث بیان کړو چه پورته تیر شو.[2]

**د عمر فاروق رضي الله عنه د فرمان مطابق د قران پاك نزول:** صحیح مسلم کښې دی چه د طلاق د مشهوریدلو واقعه دپردې دآیاتونونازلیدلو نه وړاندې ده. په دې کښې دا هم دی چه حضرت عمر څنګه حفصه رضي الله عنها له د پوهکولود پاره تلې وو دغه شان حضرت عائشه رضي الله عنها ئې هم پوهه کړې وه اودا هم دی چه هغه غلام چه په ډیوټئ کښې ئې پهره ورکوله حضرت رباح رضي الله عنه وو. حضرت عمر رضي الله عنه حضورﷺ ته اووئیل تاسو د ښځو

[1] احمد: ۱/۳۳-۳۴، صحیح بخاری کتاب النکاح باب موعظة الرجل ابنته لحال زوجها: ۵۱۹۱، صحیح مسلم: ۱۴۷۹، ترمذی: ۳۳۱۸.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة التحریم باب (تبتغی مرضات ازواجك): ۴۹۱۳، صحیح مسلم: ۱۴۷۹.

په معامله کښې په دې مشقت کښې ولې پريوځې؟ که تاسو هغوی ته طلاق هم ورکړنې نوتاسو سره الله ﷻ دې اود هغه فرښتې جبرائيل ﷺ او ميکائيل ﷺ دې زه و ابوبکر ﷜ او ټول مؤمنان. حضرت عمر ﷜ فرمائي چه الحمدلله ما چه داقسم خبره کوله زما اميد وو چه الله ﷻ به زما د خبرې تصديق نازلوی. نوپه دې موقعه باندې هم آيت تخيير يعنی ﴿عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا﴾ او ﴿وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظَهِيْرٌ﴾ په حضور ﷺ باندې نازل شو.ماته چه کله نه معلومه شوه چه حضور ﷺ خپل ښيبيانو ته طلاق نه دې ورکړې نوزه جمات ته راغلم په دروازه کښې اودريدم او په اوچت آواز سره مې ټولوته خبرورکړو چه حضور ﷺ ازواج مطهرات ته طلاق نه دې ورکړې.

هم د دې باره کښې آيت ﴿وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ۚ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ۚ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا﴾ نازل شو.يعنی کله چه هغوی ته څه د امن يا ويرې خبر اورسيدوچه دوی دې ته مشهورتياورکوی.که چرې دوی دا خبررسول ﷺ ته يادعقل اوعلم خاوندته رسولې نو بې شکه په هغوی کښې چه کوم خلق تحقيق کونکی دی هغوی به په دې باندې پوهه شوې وو. عمر ﷜ تر دې دا آيت لوستلوسره فرمائي چه ددې امريه استنباط کونکو کښې زه هم يم. (۱)

**د«صَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ» نه څوک مراد دی؟:-** د نوروهم ډيرو بزرګانومفسرينونه روايت دې چه ﴿وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ نه مراد حضرت ابوبکر ﷜ او حضرت عمر ﷜ دې.(۲)بعضو د حضرت عثمان ﷜ نوم هم اخستې دې او بعضو د حضرت علی ﷜. په يوضعيف حديث کښې مرفوعاً صرف دحضرت علی ﷜ نوم دې خوسند ضعيف دې او بالکل منکر دې. په صحيح بخاری کښې دی چه د نبی کريم ﷺ ښيبيانې په غيرت کښې راغلې په دې باندې ما اووئيل چه که حضور ﷺ تاسو ته طلاق درکړی نوالله ﷻ به ستاسو نه بهتر ښيبيانې رسول الله ﷺ ته ورکړی. نوهم زما په الفاظوکښې د قرآن دا آيت نازل شو. (۳)

**مواقعات عمريه:-** اول دا بيان تيرشوې دې چه حضرت عمر ﷜ په ډيرو خبروکښې دقرآن پاک موافقت کړې لکه د پردې باره کښې، د بدرد قيديانوباره کښې، مقام ابراهيم قبله ګرځولو باره کښې.دابن ابی حاتم په روايت کښې دی چه کله ماته د امهات المؤمنين دخفګان داخبرراورسيدو نود هغوی په خدمت کښې لاړم او هغوی ته مې هم دغه وئيل شروع کړه تردې چه آخر ام المؤمنين له راورسيدم نو ماته جواب ملاؤشو چه آيامونږ ته نصيحت کولودپاره پخپله رسول الله ﷺ کم دې چه ته راغلې؟په دې باندې زه چپ شوم خو قرآن کښې ﴿عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا﴾ نازل شو.(۴)

په صحيح بخاری کښې دی چه جواب ورکونکې ام المؤمنين حضرت ام سلمه ﷞ وه. (۵) حضرت ابن عباس ﷜ فرمائي چه کومه خبره حضور ﷺ پټه غوندې خپلې بی بی ته کړې وه د دې واقعه دا ده چه د حضرت حفصه ﷞ په کورکښې حضور ﷺ وو. هغې چه کله تشريف راوړو اوحضرت ماريه ﷞ سره نی حضور ﷺ مشغول اوليدو نوورته نی اوفرمائيل چه ته حضرت عائشه ﷞ ته خبر مه ورکوه زه تاته يوزيرې اوروم. زما د وفات نه پس به د حضرت ابوبکر ﷜ د خلافت نه پس ستا پلار راځي. حضرت حفصه ﷞ حضرت عائشه ﷞ خبرکړه نو حضرت عائشه ﷞ رسول الله ﷺ ته اووئيل چه تاسوته

---

۱) صحيح مسلم كتاب الطلاق باب فى الايلاء واعتزال النساء:۱۴۷۹.
۲) الطبرى:۲۳/۴۸۶.
۳) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة التحريم باب (عسى ربه ان طلقكن ان يبدله....):۴۹۱۶.
۴) الطبرى:۲۳/۴۸۸.
۵) صحيح بخارى كتاب التفسيرسورة البقرة باب (واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى):۴۴۷۳.

داخبر چادر کړو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه ماته عليم او خبير الله ﷻ راکړو. عائشه صديقه رضي الله عنها اووئيل چه زه به ستاسوطرف ته اونه ګورم چه ترڅو دې حضرت ماريه رضي الله عنها په ځان حرامه کړې نه وی. حضور ﷺ اوکړه نو په دې باندې آيت ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ ۖ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ نازل شو (طبرانی). خود دې سند مخدوش دې. مقصددا دې چه د دې ټولو رواياتونه خود دې مبارکو آياتونو تفسير ظاهر دې. د (سٰئِحٰتٍ) يوتفسيرخودا دې چه روژې ساتونکې ښځې. په يو مرفوع حديث کښې هم دا تفسير ددې لفظ راغلې دې چه کوم حديث د سورت براءت د دې لفظ په تفسيرکښې تيرشوې دې. د دې امت سياحت روژې ساتل دی[1]دويم تفسيردادې چه دې نه مراد هجرت کونکې ښځې دی خواول قوم اولی دې. والله اعلم.

قوله تعالیٰ:- ثَيِّبٰتٍ وَّأَبْكَارًا۝

د پيغمبر ﷺ بيبيانې :- بيا فرمائی چه په دوی کښې به بعضې کونډې وی او بعضې پيغلې د دې د پاره چه زړه ئې خوشحاله وی. د قسمونويدلون په نفس ښه لګی. په معجم طبرانی کښې ابن يزيد د خپل پلار نه روايت کوی چه هغوی اوفرمائيل الله ﷻ چه خپل نبی ﷺ سره په دې آيت کښې کومه وعده فرمائيلې ده د دې نه مراد کونډه حضرت آسيه رضي الله عنها چه د فرعون ښځه وه اود پيغلې نه مراد حضرت مريم ؑ ده چه د عمران لور وه. ابن عساکر کښې دی چه حضرت جبرائيل ؑ رسول الله ﷺ له راغلو دغه وخت حضرت خديجه رضي الله عنها حضور ﷺ له خواله راغله نو جبرائيل ؑ اوفرمائيل چه الله ﷻ په حضرت خديجه رضي الله عنها باندې سلام وائی او فرمائی چه دې ته د خوشحالی وی د جنت د چاندنی د يوکور چرته چه نه ګرمی شته نه تکليف شته نه شور او ټکوهلې شوی مرغلرونه جوړشوې دې د کوم ښی او ګس طرف ته مريم بنت عمران اود آسيه بنت مزاحم کورونه دی. په يوبل روايت کښې دی چه د حضرت خديجه رضي الله عنها د وفات په وخت کښې حضور ﷺ اوفرمائيل اې خديجه رضي الله عنها په خپلو بنو باندې زما سلام وايه. حضرت خديجه رضی الله عهنااوفرمائيل يارسول الله ﷺ مانه وړاندې هم تاچاسره نکاح کړې وه؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه نه خو الله ﷻ مريم بنت عمران آسيه د فروعون ښځه اوکلثوم د موسی ؑ خور دريواړه زما په نکاح کښې راکړې دی. داحديث هم ضعيف دې.دحضرت امامه رحمه الله نه په ابويعلی کښې روايت دې چه حضور ﷺ اوفرمائيل آياتاته معلومه ده چه الله ﷻ زما نکاح په جنت کښې مريم بنت عمران کلثم د موسی ؑ خوراوآسيه د فرعون ښځې سره کړې ده. ماوئيل يارسول الله ﷺ تاته دې مبارکی وی داهم ضعيف حديث دې او ورسره مرسل هم دې.

| | | |
|---|---|---|
| | يَاأَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا |
| | اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دی |
| | او پيغلې | اې مومنانو ! |

| قُوا | أَنفُسَكُمْ | وَأَهْلِيكُمْ | نَارًا | وَقُودُهَا | النَّاسُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوساتئ | ځانونه خپل | او بال بچ خپل | دوور نه | چې خشاك دهغې | خلق دی |

خپل ځانونه اوخپل کور والا د هغې اور نه اوساتئ ..............چې دهغې خشاك خلق

| وَالْحِجَارَةُ | عَلَيْهَا | مَلَائِكَةٌ | غِلَاظٌ | شِدَادٌ | لَّا يَعْصُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او کاڼې دی | مقرر دی په هغې باندې | فرښتې | سخت زړه والا | قوت ناکې | چې نافرمانی نه کوی |

او کاڼې دی | په هغې باندې سخت خويه مضبوطې فرښتې مقرر دی | چې په هيڅ کار کښې دالله ﷻ

[1] الطبری: ١٤/٥٠٨.

اللّٰهَ مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ۝

دالله | په هغې كښې | چې حكم ئې كړې دې هغوئ ته | او كوي هغوئ | هغه كار | چې حكم كولې شي هغوئ ته

نافرماني نه كوي | او هم هغه كار كوي | د كوم چې هغوئ ته حكم كولې شي |

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ ط اِنَّمَا تُجْزَوْنَ

اے هغه كسانو | چې كفر مو كړې دې | عذر مه كوئ | نن ورځ | بيشكه بدله دركړې كيږي تاسو له

اې كافرانو نن ورځ عذر معذرت مه پيش كوئ | تاسو ته خو به هيله دخپلو كارونو

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْٓا

دهغې عمل | چې وئ تاسو | چې كوۆ به مو | اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | توبه اوباسئ |

سزا دركولې شي | ........................ اې مومنانو الله ﷻ ته توبه ريښتينې

اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا ط عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ

الله ته | توبه خالصه | نزدې ده | چې رب ستاسو | چې لرې به كړې | ستاسو نه

توبه اوباسئ | ...................... اميد دې چې ستاسو رب ستاسو گناهونه ستانو لرې كړې

سَيِّاٰتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

گناهونه ستاسو | او داخل به كړې تاسو | داسې باغونو ته | چې بهيږې به | لاتد دهغې نه |

او تاسو به داسې باغونو ته داخل كړې | ......................چې دهغې لاندې به ولې بهيږې

الْاَنْهٰرُ لا يَوْمَ لَا يُخْزِى اللّٰهُ النَّبِيَّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

نهرونه | په هغه ورځ | چې نۀ به رسوا كوي الله | نبي لره | او هغه كسانو لره | چې ايمان ئې راوړې دې

په هغه ورځ به الله ﷻ نبي ﷺ او د هغه مومنانو ملگرې نه شرموي |

مَعَهٗ ج نُوْرُهُمْ يَسْعٰى بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ يَقُوْلُوْنَ

دهغه سره | نور دهغوئ به | منډې وهي | مخكښې دهغوئ نه | او په ښي طرف دهغوئ | وائي به هغوئ

دهغوئ نه به د هغوي رڼا وړاندې او ښي طرفته روانه وي | ......................او دا به وائي چې

رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْلَنَا ج اِنَّكَ

اے ربه زمونږه | پوره كړې | دپاره زمونږه | نور زمونږه | او اوبښه مونږ لره | بيشكه چې ته |

اې زمونږه ربه ! دا رڼا راته تر اخره پورې قائمه اوساته | او ښښنه راته اوكړه | بيشكه ته په

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ۝

په هر څيز باندې | قادر ئې |

هر څه پوره پوره قدرت لرې

قوله تعالى:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا

د دوزخ نه بچ شئی اوخپل کور والایچ کړئی:- حضرت علی ﷺفرمائی د الله ﷻ ارشاددې د خپل کور خلقو نه علم اوادب اوښائی([1])اوحضرت ابن عباس ﷺفرمائی د الله ﷻ حکم په ځایْ راوړئی دهغه نافرمانی مه کونې دخپل کورخلقوته د الله ﷻ د ذکر تاکید اوکړئی دې د پاره چه الله ﷻ تاسود دوزخ نه بچ کړی([2]) مجاهد رحمه الله فرمائی دالله ﷻ نه اوویریږئی اودخپل کورخلقوته هم ددې تلقین اوکړئی([3]) قتاده رحمه الله فرمائی دالله ﷻ د تابعدارئی حکم کونې اود نافرمانونه منع کیږئی په هغوی باندې دالله ﷻ حکم قائم کړئی اوهغوی ته دالله ﷻ دحکم په ځای راوړلوتاکید کوئی په نیکوکارونوکښې د هغوی امداد کوئی اوپه خرابو کارونوهغوی ته زورنه ورکوئی. ([4]) ضحاك رحمه الله اومقاتل رحمه الله فرمائی په هرمسلمان باندې فرض دی چه د خپلې رشتې اوخاندان خلقوته او خپلووینځوغلامانوته دالله ﷻ د فرمان پوره کولواودهغه د نافرمانونه د بندیدلو تعلیم ورکول پکار دی. مسنداحمد کښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه کله ماشومان د اووه کالوشی هغوی ته د مانځه وینا کوئی کله چه د لسوکالوشی اوپه مانځه کښې سستی کوی نوهغوی وهئی اومونځ پرې کوئی.داحدیث په ابوداؤد اوترمذی کښې هم دې.([5])فقهاء فرمائی چه دغه شان د دې عمرنه د روژې تاکیدهم کول پکار دی چه د بالغ کیدوپورې پوره شان سره د مونځ روژې عادتی جوړشی. او د حکم منلو د ګناه نه د بچ کیدلو اود بدو نه لرې اوسیدلو طریقه په کښې پیداشی. په دې کارونوبه تاسواوهغوی د دوزخ نه بچ شی د کوم خشاك چه د انسانانوغوښې او کانړی دی. هم په دې څیزونوباندې دا اُور سورکړې شوې دې. بیا خیال کوئی چه څومره به تیز وی د کانړو نه مرادخو یا هغه کانړی دی د کوموچه په دنیاکښې عبادتونه شوی دی لکه چه بل ځایْ کښې ارشاد دې ﴿اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ ستاسو معبودان د دوزخ لرګی دی یاد ګندهکو (ګوګړ) بدبودار کانړی دی. یوروایت کښې دی چه حضور ﷺ د دې آیت تلاوت اوکړو هغه وخت د حضور ﷺ په خدمت کښې بعضې صحابه کرام ووپه کوموکښې چه یوبزرګ معلومات اوکړو چه یارسول الله ﷺ! آیا د دوزخ کانړی ددنیاد کانړوپه شان دی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل په الله ﷻ قسم د چاپه قبضه کښې چه زما خان دې د دوزخ یوکانړی د ټولې دنیاد کانړونه لوئْ دې. هغه چه دا واوریده نو بې هوشی پرې راغله. حضور ﷺ د هغه په زړه باندې لاس مبارك کیخودونو زړه ئی درزیدو. حضور ﷺ هغه ته آواز اوکړو اې شیخ اووایه ﴿لااله الاالله﴾هغه دا اووئیل بیاهغه ته رسول الله ﷺ د جنت زیرې ورکړو نوصحابه کراموعرض اوکړو چه په مونږ ټولوکښې صرف ده ته زیرې ورکولې شی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل ګورئی په قرآن پاك کښې دی ﴿ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِیْ وَخَافَ وَعِیْدِ﴾ دا دهغوی د پاره دې چه زما مخې ته د اودریدو نه اوزما د ویرولونه ویریږی. دا حدیث غریب دې او مرسل دې.

**قوله تعالی:- غِلَاظٌ شِدَادٌ**

بیاارشاد کولې شی په دغه اُور باندې عذاب ورکونکې فرښتې سخت طبیعتې دی د چا په زړونو کښې چه دکافرانود پاره الله ﷻ رحم نه دې ایخودې چه په ډیروخرابو ترکیبونوباندې ډیرې لوئْ سزا ګانې ورکوی چه د هغې په کتلوباندې هم اینه سکې راوځی. عکرمه رحمه الله فرمائی چه کله دوزخ ته د دوزخیانو رومبنی ډله لاړه شی نوګوری به چه په اوله دروازه باندې عذاب ورکونکې څلورلاکهه فرښتې ولاړې دی دکومو مخونه چه ډیر هیبت ناك او تك توردی اننکی ئی بهر راوتلې دی ډیرې بې

---

[1]) حاکم:۲/۲۹٤.
[2]) الطبری: ۲۳/٤۹۱.
[3]) ایضًا:۲۳/٤۹۲.
[4]) ایضًا.
[5]) احمد:۳/٤۰٤، ابوداؤد کتاب الصلاة باب متی یؤمر الغلام با لصلاة: ٤۹٤ وسنده حسن، ترمذی:٤۰۷.

رحم دی الله ﷻ د هغوی په زړونوکښې د یوې ذرې برابر رحم نه دې ایخودې. دومره د غټو بدونونو والادی چه که دیوې اوږې نه ئې مرغئې والوزی نوبلې اوږې ته رسیدوباندې به دوه میاشتې تیرې شی. بیا به په دروازه باندې نورلس فرښتې ګوری د چا د سینوپلنوالې چه به د اویاؤ کالو په مسافت وی. بیا به د یوې دروازې نه بلې ته دیکه کولې شی پنځو سووکالوپورې به غورزیږی راغورزیدونه پس به بله دروازه راشی هلته به هم داسې او هم دومره فرښتې اووینی اودغه شان به په هره دروازه باندې دا فرښتې د الله ﷻ د حکم تابعدارې دی. دیخوا حکم اوفرمائیلې شو او اخوائی پرې عمل اوکړو.د دوی نوم زبانیه دی الله ﷻ دې مونږ ته د خپلو عذابونونه خپله پناه راکړی. آمین.

قوله تعالى:- تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا

ددې نه څۀ مراد دی؟:-د قیامت په ورځ به کافرانوته اوفرمائیلې شی نن تاسو بې کار عذر مه پیش کوئی زمونږ په وړاندې به هیڅ معذرت اونه چلیدې شی. ستاسو د کړې شوو عملونویدله به تاسو څکنئ.بیا ارشاد دې چه ایمانداروتاسو رښتونې اوخالص توبه اوکړئ په کومه چه ستاسووړاندینی ګناهونه معاف کړې شی خیری وغیره اووینځلې شی. د بدو عادت درنه اخوا شی. نعمان بن بشیر﷛ په خپله خطبه کښې بیان اوفرمائیلو خلقو ما د حضرت عمر بن خطاب﷛ نه اوریدلی دی چه خالص توبه داده چه انسان د ګناه معافی اوغواړی اوبیا هغه ګناه اونه کړی([1]) بل روایت کښې دی بیا د هغې د کولواراده هم اونه کړی.د حضرت عبدالله ﷛ نه هم د دې په شان یوروایت نقل دې. په یومرفوع حدیث کښې هم دا راغلی دی([2]) چه ضعیف دې او ټیك دادی چه هغه هم موقوف دې. والله اعلم.

علماء سلف فرمائی خالص توبه داده چه کومه ګناه شوې ده هغه هم دغه وخت پریږدی په دې پښیمانه شی اودبیا نه کولوپخه اراده اوکړی اوکه په ګناه کښې د یوانسان حق شته نوڅلورم شرط دادې چه هغه حق دې باقاعده اداکړی. حضور ﷺ فرمائی چه پښیمانه کیدل هم توبه ده([3])حضرت ابی بن کعب ﷛ فرمائی چه مونږ ته وئیلې شوی ووچه د دې امت خلق به د قیامت سره نیزدې نیزدې کوم کوم کارونه کوی؟ په دې کښې یودا دې چه انسان به د خپلې ښځې یا وینځې سره د شاطرف نه وطی کوی کوم چه الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ مطلق حرام کړې ده او په دې کارداللهﷻ اورسول الله ﷺ خفګان دې. دغه شان به نر نرسره بدفعلی کوی چه د الله ﷻ او رسول الله ﷺ د ناراضګئی ذریعه ده. د دې خلقو مونځ هم د الله ﷻ په نیزد قبول نه دې ترکومې چه دې د نصوح غوندې توبه اونه کړی. حضرت زر﷛ د حضرت ابی﷛ نه تپوس اوکړو توبه نصوح څۀ ته وائی. ما د حضور ﷺ نه دغه شان تپوس کړې وو وئی فرمائیل په خطاباندې ګناه اوشوه بیا په دې باندې پښیمانه کیدل د الله ﷻ نه معافی غوښتل اوبیاد دې ګناه طرف ته نه مائل کیدل. حضرت حسن بصری ﷫ فرمائی توبه نصوح دا ده چه څنګه ګناه سره محبت وودغه شان بغض په زړه کښې کینول پکاردی چه کله هغه ګناه دریاده شی استغفار کول. کله چه یو سړې په توبه کولوباندې کلکوالې کوی او په خپله توبه باندې ولاړ وی نوالله ﷻ دهغه ټول مخکینی ګناهونه معاف کوی.لکه چه په صحیح حدیث کښې دی داسلام راوړلونه وړاندې ټولې خطاګانې اسلام فناکوی. اود توبې نه وړاندې ټولې خطاګانې توبه سوزوی. ([4]) اوس پاتې شوه داخبره چه په توبه نصوح کښې دا شرط هم دې چه توبه کونکې به بیا ترمرګه پورې دغه ګناه نه کوی لکه چه.احادیث او آثار اوس بیان شو په دې کښې دی چه بیا به ئې هیڅ کله هم نه کوی یاد دې کلکه اراده.کافی ده چه دابه

[1]) حاکم: ۲//٤٩٥.
[2]) احمد:۱/٤٤٦.
[3]) ابن ماجه کتاب الزهد باب ذکر التوبة: ٤٢٥٢وهوحسن، احمد:۱/۳۷٦.
[4]) بې اصل روایت دې صحیح مسلم (۱۲۱) حدیث د دې نه بې نیازه کوی.

اوس کله هم نه کوم خو که د بشریت په تقاضا هیره وغیره اوشی لکه چه اوس حدیث تیرشو چه توبه د
خان نه وراندې گناهونه بالکل ختموی. نو په توبه هم هم دغه گناه معاف کیږی یابیا ترمرگه پورې د
دې کار نه کول دمعافئی دشرط په توگه دي؟داولنئی خبرې دلیل خوداصحیح حدیث دی چه کوم سړی
په اسلام کښې نیکئی اوکړی هغه به د جاهلیت د زمانې په گناهونوباندې نه شی رانیولی. اوچه څوک
اسلام راوړی اوپه بدوکښې اخته وی هغه به د اسلام او جاهلیت په دواړو گناهونو کښې راگیرولی شی
([1]) نواسلام چه د گناهونو په لرې کولوکښې د توبه نه زیات دې نوچه کله د دې نه پس هم د خپلو بد
کاروپه وجه باندې په ړومبوگناهونوکښې راگیرشونود توبې نه پس خو په طریقه اولی باندې کیدل
پکار دی. والله اعلم.

لفظ عسٰی د تمنا امید او امکان معنی ورکوی خو په کلام الله کښې د دې معنی تحقیقي وی نوفرمان
دې چه خالص توبه کونکی به قطعاً خپل گناهونه معاف کړی او شنواو آبادو جنتونو ته به خې. بیا
ارشاد دې چه الله ﷻ به رسول الله ﷺ اودهغه ایماندارملگری هیڅ کله هم شرمنده او رسوا نه کړی.
هغوی ته به د الله ﷻ د طرف نه نوروركولې شی چه دهغوی نه به وړاندې وړاندې بنی طرف ته وی او
نور به ټول په تیاروکښې وی او دوی به په رڼاکښې وی. لکه څنگه چه دسورة حدید په تفسیرکښې اول
تیرشو. کله چه دوی اوگوری چه منافقانو ته کومه رڼا ورکړې شوې وه هغه ترې په عین وخت کښې
واخستلې شوه اوهغوی په تیاروکښې ورك شو نو دعا به کوی چه اې الله مونږ سره داسې مه کوه زمونږ
دا رڼا دې د آخرت وخته پورې مونږ سره هم داسې وی. زمونږ د ایمان نور دې مړ نه شی. د بنوکنانه یو
صحابی ﷺ فرمائی چه د مکې د فتح په ورځ رسول الله ﷺ پسې ما مونځ اوکړو نوما د حضور ﷺ دا دعا
واوریده (اللهم تخزنی یوم القیامة) زما الله ما د قیامت په ورځ مه رسوا کوې([2]) په یوحدیث کښې حضور
ﷺ فرمائی د قیامت په ورځ به د ټولونه وړاندې د سجدې اجازت ماته راکولې شی. اودغه شان به د
سجدې نه د ټولونه وړاندې سراوچتول به هم ماته نصیب کیږی.زه به خپلې مخې ته بنی طرف ته او
گس طرف ته اوگورم نو خپل امت به اوپیژنم. یوصحابی ﷺ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ هغوی به څنگه
پیژنې؟ هلته خو به ډیر امتونه گډوډوی. ونی فرمائیل زماد امت د خلقو خو به یوه نښه دا وی چه د
هغوی د اودس اندامونه په زلیږی. په بل امت کښې به داخبره نه وی. دویمه پیژندگلوبه دا وی د هغوی
عمل نامې به د هغوی په بنی لاس کښې وی دریمه نښه به دا وی چه د هغوی د سجدو نښې به د
هغوی په تندوباندې وی په کومو چه به ئې زه پیژنم. څلورم علامت دا دې چه د هغوی نور به د هغوی
نه وړاندې وړاندې وی.([3])

| وَالْمُنٰفِقِيْنَ | جَاهِدِ الْكُفَّارَ | يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ |
|---|---|---|
| او دمنافقانو سره | جهاد اوکړه کافرانو سره | اے نبی ﷺ |
| | اې پیغمبره ! دکافرانو او منافقانو سره جهاد اوکړه | |

| وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝ | جَهَنَّمُ ۭ | وَمَاْوٰىهُمْ | عَلَيْهِمْ ۭ | وَاغْلُظْ |
|---|---|---|---|---|
| او ډیر بد خائې دې دورتلو | دوزخ دې | او خائې دهغوی | په هغوی باندې | او سختي کوه |
| او هغه ډیره خراب خائې دې | .......... | اودهغوئ ټیکانړه دوزخ دې | | اوپه هغوئ سختي کوه |

([1]) صحیح بخاری کتاب استتابة المرتدین باب اثم من اشرك بالله وعقوبته فی الدنیا والآخرة: ۶۹۲۱، صحیح مسلم: ۱۲۰، ابن ماجه: ۴۲۴۲
([2]) احمد: ۲۳۴/۴، المعجم الکبیر: ۲۵۲۴.
([3]) احمد: ۱۹۹/۵، مجمع الزوائد: ۳۴۴/۷، حاکم: ۴۷۸/۲.

| ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ |
|---|
| بيانوي الله \| يو مثال \| دپاره دهغه كسانو \| چي كفر ئي كړي دي \| دښځي دنوح عليه السلام \| |
| الله ﷻ كافرانو د پاره د نوح عليه السلام دښځي اود لوط عليه السلام د ښځي مثال بيانوي |
| وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ |
| او ښځي دلوط عليه السلام \| چي وې دواړه \| لاند دنكاح \| د دوو بندگانو \| دبندگانو زمونږ نه \| چي نيكان وو |
| ...................... هغه دواړه زمونږ د بندگانو نه د دوو نيكانو بندگانو په نكاح كښې وې |
| فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا |
| پس خيانت ئي اوكړو دهغوئ سره \| پس دفع نۀ كړل دغه دواړو خاوندانو \| ددغه دواړو ښځو نه \| |
| مگر هغه دواړوښځو د هغوی (پيغمبرانو) حق ضائع كړو \| نو هغه دواړه بندگان د الله په مقابله كښې |
| مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ۝ |
| دعذابه دالله نه \| هيڅ څيز \| اواوئيلې شو دواړو ته \| چي ننوزئ \| وور ته \| دننوتونكو سره \| |
| د هغوئ هيڅ په كار رانغلل او ورته اووئيلې شو چي دنورو داخليدونكو سره تاسو هم دوزخ ته داخل شئ |

**قوله تعالى:- ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا**
**د حضرت نوح عليه السلام اود حضرت لوط عليه السلام د ښځو ذكر:-** الله ﷻ خپل نبي پاك ﷺ ته حكم وركوی چه كافرانو سره په وسله جهاد اوكړه اومنافقانوسره جهاد اوكړه د الله ﷻ حدونه جاري كولوسره په هغوی باندې په دنياكښې سختي اوكړه. په آخرت كښې هم دهغوی د اوسيدوځائ دوزخ دې چه ډير خراب ځائ دې. بيا مثال وركولوسره فرمائي چه د كافرانو مسلمانانوسره يوځائ كيدل او گډوډ اوسيدل دهغوی دكفر سره د الله ﷻ په نيزد هيڅ فائده نه شي وركولې. اوگوره هغه د پيغمبرانو عليهم السلام ښځې دحضرت نوح عليه السلام اودحضرت لوط عليه السلام چه هروخت دنبيانوپه صحبت كښې اوسيدونكې او شپه ورځ هغوی سره ناستې پاستې خوراك څښاك كونكې بلكه اوده كيدونكې پاسيدونكې وې خو په ايمان كښې د هغوی ملگرې نه وې او په خپل كفرباندې قائمې وې خود پيغمبرانو هروخت صحبت كښې پاتې كيدل د هغوی هيڅ په كار رانغله.دالله ﷻ انبياء كرامو هغوی ته هيڅ اخروی فائده اونه رسولې شوه اونه به ئې داخروی نقصان نه بچ كړې شي. بلكه دې ښځوته هم د دوزخيانوسره د تلو وئيلې شوی دی.دا يادساتئ چه د خيانت نه دلته مراد بدكاری نه ده د انبياء عليهم السلام حرمت اوعصمت د دې نه ډير اوچت او اعلی دې دهغوی كوروداني دې فاحشه وی مونږ د هغې پوره بيان په سورة نورپه تفسيركښې بيان كړې دې بلكه دلته مراد خيانت په دين كښې دې يعنی په دين كښې د خپل خاوند خيانت اوكړو د هغوی ملگرتيا ئې اونه كړه. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائي د هغوی خيانت زناكاری نه وه بلكه دا وه چه د حضرت نوح عليه السلام ښځې خو به خلقوته وئيل چه دې مجنون دې.
د لوط عليه السلام ښځې به چه كوم ميلمانه حضرت لوط عليه السلام كره راتله كافرانوته به ئې د هغې خبروركولو دا دواړه بددينه وې[1]د نوح عليه السلام رازداری اوپه هغه باندې په پټه ايمان راوړونكو خبره به ئې كافرانوته وركولو.دغه شان د لوط عليه السلام ښځه هم دخپل خاوند ،د الله ﷻ د رسول مخالف وه اوكوم خلق چه به هغه كره ميلمانه كيدل دا به تله اوخپل قوم به ئې پرې خبرولو د كومو چه د بدفعلئ عادت وو[2]بلكه د

[1] حاكم:۲/۴۹۶.
[2] الطبری:۲۳/۴۹۸.

حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د یوپیغمبر یوې ښځې هم چرته بدکاری نه ده کړې (۱) دغه شان د عکرمه ﷫ سعیدبن جبیر ﷫ او ضحاك ﷫ وغیره نه روایت دې دې نه استدلال کولو سره بعضو علماؤ ونیلی دی چه هغه په کوموعاموخلقو کښې مشهوره ده چه په حدیث کښې دی چه کوم یوکس داسې کس سره خوراك اوکړي چه بخښلې شوې وی هغه به هم بخښلې شی دا حدیث بالکل ضعیف دې او حقیقت هم دغه دې چه دا حدیث صرف بې اصل دې. اود یوبزرګ نه روایت دې چه هغه په خوب کښې د حضور ﷺ زیارت اوکړو اوتپوس نی اوکړوچه حضور ﷺ دا حدیث ارشاد فرمائیلې دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه خو اوس زه وایم.

| وَضَرَبَ اللهُ | مَثَلًا | لِّلَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | امْرَاَتَ | فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او بیانوی الله | یو مثال | دپاره دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې دې | د ښځې | دفرعون |
| او الله ﷻ د مومنانو دپاره د فرعون دښځې مثال بیانوی ........ | | | | | |

| اِذْ قَالَتْ | رَبِّ | ابْنِ | لِيْ | عِنْدَكَ | بَيْتًا | فِي الْجَنَّةِ | وَنَجِّنِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کله چې اووئیل هغې | اے ربه زما | جوړ کړې | ماله | دخان سره | یو کور | په جنت کښې | اوبچ کړه ما |
| څه وخت چې هغې دعا اوکړه اچې ائې زما ربه ا ماته په جنت کښې خپل خوا کښې یو کور جوړکړه او | | | | | | | |

| مِنْ فِرْعَوْنَ | وَعَمَلِهٖ | وَنَجِّنِيْ | مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| دفرعون نه | او دعمل دهغه نه | او خلاصه کړه ما | دقوم ظالمانونه |
| ما د فرعون اود هغه د عمل نه محفوظ اوساته \| اوما دظالمانو نه هم بچ اوساته | | | |

| وَمَرْيَمَ ابْنَتَ | عِمْرٰنَ | الَّتِيْٓ | اَحْصَنَتْ | فَرْجَهَا |
|---|---|---|---|---|
| او بیانوی مثال دمریم | دلور دعمران | هغه | چې په حفاظت کښې ئې ساتلې وو | دشرم ځانې خپل |
| اوبل د مریم مثال بیانوو \| چې د عمران لور وه \| چې خپله شرمګاه ئې (د زنا نه) بچ ساتلې وه | | | | |

| فَنَفَخْنَا | فِيْهِ | مِنْ رُّوْحِنَا | وَصَدَّقَتْ | بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا |
|---|---|---|---|---|
| پس پوك وهو مونږ | په هغې کښې | دروح خپل نه | او تصدیق اوکړو هغې | دحکمونو درب خپل |
| نو مونږ (دهغې) په (ګریوان) کښې خپل روح پوك وهلو \| اوهغې د خپل رب خبرې | | | | |

| وَكُتُبِهٖ | وَكَانَتْ | مِنَ الْقٰنِتِيْنَ ۝ |
|---|---|---|
| او دکتابونو دهغه | او وه هغه | دحکم منونکونه |
| اوکتابونه اومنل \| او هغه د تابعدارو په جماعت کښې وه | | |

**قوله تعالى:- وَضَرَبَ اللهُ مَثَلًا**

**دحضرت آسیه اوحضرت مریم فضائل:** دلته الله ﷻ د مسلمانانود پاره مثال بیانولوسره فرمانی که دوی د خپل ضرورت د پاره کافرانوسره یوځائ شي نودوی ته به هیڅ نقصان نه وی بل ځائ کښې دی﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۭ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ﴾ ایماندارو له پکار دی چه د مسلمانانونه علاوه نوروسره دوستانه نه کوی ځوك چه داسې کوی هغه ته به دالله ﷻ د طرف نه هیڅ ښیګړه نه ملاویږی اوکه دبچاؤ په توګه وی او یا د وخت تیرولو په

(۱) ایضاً.

ترګه وی نو هغه بله خبره ده. قتاده رحمه الله فرمانی چه په مخ د زمکې د ټولونه زيات ظالم فرعون وو خود هغه کفردهغه ښځې ته هیڅ نقصان اونه رسولو ځکه چه هغه په خپل زبردست ایمان باندې کلکه ولاړه وه.خبرشنی الله ﷻ عادل حاکم دې هغه د يوبه ګناه باندې بل نه نسی(۱)حضرت سلمان رضی الله عنه فرمائ چه فرعون به هغه نیك بخته ښځې ته قسم قسم تکلیفونه ورکول په سخته ګرمئ کښې به ئ په نمر کښې اودروله خوالله ﷻ به دخپلو فرښتود وزرو سورې په هغې باندې کولواوهغه به نی د ګرمئ نه بچ کوله بلکه هغې ته به ئي خپل جنتی مکان خودلو(۲) چه د هغې سره به د دې روح تازه کيدلو اوایمان به نی زیاتیدلو. د فرعون او حضرت موسی علیه السلام باره کښې به نی تپوس کولوچه څوك غالب شو نوهروخت به نی دا اوريدل چه موسی علیه السلام غالب شو اوهم دادهغې دايمان ذريعه جوړه شوه اودې چغې کړې چه د موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام په رب زما ایمان دې. فرعون ته چه کله دا معلومه شوه نو ونی ونیل چه کوم د لوئ نه لوئ کاڼړې تاسوته ملاو شی راوړنی هغه سملونی اوورته اووایئی چه ددې خپلې عقیدې نه منع شه که منع شوه نو زما ښځه ده په عزت اوحرمت ئي واپس راولئی اوکه نه منئ نو هغه کاڼړې پرې راګذارکړئ او قیمه قیمه نی کړئی. کله چه دې خلقو کاڼړې راوړو دائي بوتله راسیملوله کاڼړې نی په دې دراغورزولود پاره اوچت کړو نوهغې دآسمان طرفته سترګې اوچتې کړې پروردګار پردې اخوا کړې جنت اوهلته چه د هغې د پاره کوم کورجوړشوې وو هغه دې په خپلوسترګوباندې اولیدو اوهم په دې کښې د هغې روح لاړو.کوم وخت چه کاڼړې راګذارکړې شوهغه وخت په هغې کښې روح وو هم نه. (۳)

قوله تعالی:-رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ

**دشهادت په وخت کښې د اسیه رضی الله عنها دعاء**:-دخپل شهادت په وخت کښې دعاغواړی یاالله په جنت خپل خان سره نیزدې ځائ ماله راکړه. د دې دعا په باریکئ باندې خیال اوکړئ چه اول د الله ﷻ ګاونډتوب غوښتلې شی بیا دکور درخواست کولې شی. په دې واقعه کښې مرفوع حدیث هم دې. بیا دعاکوی چه ماته د فرعون اود هغه د عمل نه خلاصې راکړه زه د هغه د کفریه حرکتونونه ويزاره یم. ما د دې ظالم قوم نه په عافیت کښې اوساته.

**د اسیه د ایمان راوړل واقعه**:-د دې بی بی نوم حضرت آسیه بنت مزاحم وو. د دې د ایمان راوړلو واقعه ابوالعالیه رحمه الله داسې بیانوی چه د فرعون د داروغه د ښځې ایمان دهغې دایمان راوړو ذريعه جوړه شوه. هغې يوورځ د فرعون د لورسرکتلو ناڅاپې ګمنز دلاسه پریوتله اودهغې دخلې نه اووتل کفاربرباد کړې.د فرعون لور ونیل چه ته زما د پلارنه علاوه بل څوك رب منې؟ هغې ونیل زما ستا د پلار او هر څيز رب الله ﷻ دې هغه په غصه کښې راغله او هغه نی ښه اووهله اوخپل پلار ئي په دې خبرکړو. فرعون هغه راوغوښتله او پخپله نی ترې تپوس اوکړو چه ته زما نه بغیرد بل چاعبادت کوې؟ جواب نی ورکړو چه او زما ستا او ټول مخلوق رب الله دې زه هم د هغه عبادت کوم. فرعون حکم اوکړو چه دا راسملونی او د دې په لاسونو او پښوباندې میخونه ټکوهئ اوماران ئي پرې پریخودل چه دې له به نی ټکونه ورکول. بیا یوه ورځ راغلوچه اوس هم ستا خیالات ټیك شوکه نه؟ د هغه ځائ نه جواب راځی زما ستا اوټول مخلوق رب هم الله دې. فرعون ونیل اوس به زه ستا دسترګوپه وړاندې ستا ماشوم ټکړې ټکړې کړم ګنې اوس هم زما وینا اومنه اود دې دین نه منع شه. هغې ونیل چه ته څه کولې شې اوکړه دې ظالم د هغې ماشوم راونیولو اود هغې په وړاندې نی اووژلو کله چه د دې ماشوم روح وتلونو هغه ونیل اې مورې خوشحاله شه ستاد پاره الله ﷻ لوئ لوئ ثوابونه تیارکړی دی اوفلانکې فلانکې

---

(۱) الطبری:۲۳/ ۵۰۰.
(۲) الطبری:۲۳/ ۵۰۰، حاکم:۲/ ۴۹٦.
(۳) الطبری:۲۳/ ۵۰۰.

نعمت به تاته ملاوېږي. هغې دا روح لړزونکې واقعه په خپلو سترګو اوليدله صبر ئې اوکړو او په قضاباندې راضي کېناستله. فرعون به هغه دغه شان راواچوله او ماران ئې پرې پرېخودل. بيا يوه ورځ راغلو او خپله خبره ئې دوباره کړه دې بی بی بيا په صبر او استقلال سره هم هغه جواب ورکړو هغه بيا هم هغه دهمکي ورکړه او بل بچې ئې د هغې د سترګو په وړاندې قتل کړو د هغه روح هم هغه شان خپلې مور ته خوشخبري ورکړه اود صبر تلقين ئې ورته اوکړو. د فرعون ښځې د مشرخوئ د روح زيرې اوريدلې وو اوس ئې د دې وړوکي ماشوم زيرې هم واوريدو اوايمان ئې راوړو. دلته د دې بی بی روح الله ﷻ واخستو اود هغې مرتبه اودرجه چه الله ﷻ سره وه الله ﷻ پرده اخواکړه اود فرعون ښځې ته ئې اوخودله. دا په خپل ايمان او يقين کښې ډيره کلکه شوه تردې چه فرعون ته هم د دې د ايمان خبر اورسيدلو. هغه يوه ورځ خپلو درباريانوته اووئيل چه تاسو ته زما د ښځې څه خبرشته؟ تاسو هغه څه ګنړئ تولو ډير تعريف اوکړو اود هغې ښيګړې ئې بيان کړې. فرعون ونيل تاسو ته نه ده معلومه؟ هغه زما نه بغيرپل الله منی بيامشوره اوشوه چه داقتل کړئ ميخونه ئې پرې ټکوهل اود هغې پښې لاسونه ئې اوتړل وانيچوله. هغه وخت حضرت آسيه د خپل رب نه دعا اوکړه الله ماله په خپل خواکې جنت جوړکړه الله ﷻ د هغې دعاقبوله کړه اوپرده اخواشوه هغې ته ئې خپله جنتی درجه اوخودله په هغې دا مسکئی شوه ټيك هم هغه وخت فرعون راغلو او دائی په خنداکښې ليدوسره اوونيل خلقو تاسو ته حيرانتيا نه کيږی؟ په دومره سخته سزا کښې راګيره ده او بيا هم خاندی يقيناً د دې دماغ په ځائ نه دی غرض داچه هم په دې عذابونوکښې داشهيده شوه. رضي الله عنها.

**دويم مثال د مريم بی بی:** بيا دويم مثال د حضرت مريم بنت عمران بيانولې شی چه هغه ډيره پاکدامنه ښځه وه مونږ د خپلې فرښتې جبرائيل عليه السلام په معرفت باندې په هغې کښې روح پوك وهلو. حضرت جبرائيل عليه السلام الله ﷻ په انسانی شکل کښې راليګلې وو اوحکم ئې ورکړې وو چه ته په خپله څله د هغې په ګريوان کښې پوکې اووهه هم دې نه ئې حمل شو او عيسی عليه السلام پيدا شو نو ارشاد دې چه مونږ په هغه کښې خپل روح پوك وهلو. بيادحضرت بی بی مريم نورتعريف کولې شی چه هغې د خپل رب تقديراو شريعت رښتيامنونکې ښځه وه اوپوره حکم منونکې وه. مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ په زمکه باندې څلور کرښې راښکلې د صحابه کرامو نه ئې تپوس اوکړو پوهيږئ دا څه دی؟ هغوی جواب ورکړو الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ته پوره علم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل واورئ په ټولو جنتی ښځو د ټولو نه غوره خديجه رضي الله عنها بنت خويلد او فاطمه رضي الله عنها بنت محمد ﷺ او بی بی مريم بنت عمران او بی بی آسيه بنت مزاحم چه د فرعون ښځه وه([1]) په صحيح بخاري او مسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائيلی چه په سړوکښې خود کمال خاوندان ډير دی ولې په ښځو کښې کاملې ښځې حضرت آسيه چه د فرعون ښځه وه ، حضرت مريم بنت عمران اوحضرت خديجه رضي الله عنها بنت خويلد اود حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فضيلت په ښځوکښې داسې دې لکه په ترکارئ کښې ميده شوې روټئ فضيلت چه په باقی خوراکونوباندې وی. ([2]) مونږ په خپل کتاب البدايه والنهايه کښې د حضرت عيسی عليه السلام د قصې په بيان کښې د دې حديث سندونه او الفاظ بيان کړی دی.

فالحمدلله اود الله ﷻ په فضل سره هم د دې سورة د الفاظو ﴿ثَيِّبٰتٍ وَّاَبۡکَارًا﴾ د تفسير په موقع هغه حديث هم مونږ بيان کړې دې په کوم کښې چه دی د نبی کريم ﷺ جنتی بيبيانو کښې يوه حضرت آسيه رضي الله عنها بنت مزاحم هم ده.

﴿الحمدلله﴾ د سورة تحريم تفسيرختم شو اودې سره د اته ويشتمې سپارې تفسيرهم ختم شو.

---

[1] احمد: ۱/۲۹۲وسنده صحيح، مسندابي يعلى: ۲۷۲۲، حاكم: ۳/۱۸۵.

[2] صحيح بخاری كتاب فضائل اصحاب النبي ﷺ باب فضل عائشه رضي الله عنها: ۳۷۶۹، صحيح مسلم: ۲۴۳۱.

## (تفسير د سورة ملک)

**د سورت ملک فضيلت او فوائد:** مسند احمد کښې د اروايت د حضرت ابوهريره ﷺ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ فرمانيل چه په قرآن کريم کښې د ديرشو آياتونو يو سورت دی چه د خپلو لوستونکو سفارش به کوی. تر دې چه هغوی به او بخښلې شی هغه سورت ﴿تَبٰرَكَ الَّذِىْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾ دی. ابوداؤد نسائی ترمذی او ابن ماجه کښې هم دا حديث دی. امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی.[1]

تاريخ ابن عساکر کښې د حضرت انس بن مالک ﷺ نه روايت دی چه رسول الله ﷺ او فرمانيل تاسو نه د وراندې يو سړی مړشوچا سره چه د الله تعالی په کتاب کښې د سورة ﴿تَبٰرَكَ الَّذِىْ﴾ نه علاوه بل هيڅ څيز نه وو. کله چه هغه خښ کړې شو او فرښته هغه له راغله نو دا سورت د هغې په وړاندې اودريدو. فرښتې وئيل ته د الله تعالی کتاب ئی زه تا خفه کول نه غواړم. تا ته دا معلومه ده چه ماته ستا د خپل خان يا د دې مړی د څه نفع هيڅ اختيار نشته. که ته هم داغواړې نو الله تعالی ته سفارش او کړه نو دا سورت به الله تعالی عزوجل له لاړشی او وائی به چه الله ستاد کتاب نه فلانکی سړی زه زده کړې اولوستلې ووم اوس به ته دې په اور کښې سوزوې؟ سره د دې چه زه د ده په سينه کښې محفوظ يم اوته به دې په عذاب کوې؟ که هم داسې کوی نوما د خپل کتاب نه وران کړه. الله تعالی به او فرمانی چه دې وخت کښې ته ډير غصه کښې ئی دا به وائی چه ماته حق دی چه خپل خفګان ښکاره کړم. الله تعالی به او فرمانی چه زه دا ما تاله درکړو او ستا سفارش مې قبول کړو. اوس به دا سورت هغه له راشی اود عذاب فرښته به اخوا کړی اود هغه خُلې سره به خپله خُله يوخائی کړی او وائی به مرحبا دې وی هم دې به زما تلاوت کولو. دې سينې ته دې ډير شاباش وی دې زه يادکړې ووم. دا دواړه قدمونه دې مبارک وی هم دا به اودريدل او د شپې به ئی زما قراءت سره قيام کولو. اودا سورت به د هغه په قبر کښې امدادی او غمخوار جوړيږی او هيڅ قسم يره او خفګان به هغه ته رسيدو ته نه پريږدی. د دې حديث په اوريدو ټولو لويو واړو آزادو او غلامانو دا زده کړو. ددې دې نوم رسول الله ﷺ ﴿مُنْجِيه﴾ کيخودو يعنی د خلاصې والا سورت. خو دا ياد ساتئی چه دا حديث ډير منکر دی د دې راوی فرات بن سائب ته امام احمد امام يحيی بن معين امام بخاری امام ابوحاتم او امام دارقطنی رحمهم الله وغيره ضعيف وئيلې دی.

او په دويم سند کښې د اروايت دی چه دا قول د زهری رحمه الله دی مرفوع حديث نه دی. امام بيهقی رحمه الله په کتاب "اثبات عذاب القبر" کښې د حضرت ابن مسعود ﷺ نه يو مرفوع حديث هم بيان کړې دی او موقوف هم. په دې کښې چه هم کوم مضمون دی هغه د دې په شهادت کښې کارور کولې شی. مونږ هغه په کتاب الجنائز احکام کبری کښې بيان کړې دی ولله الحمد. طبرانی وغيره کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمانی په قرآن کريم کښې يو سورت دی کوم چه د خپل لوستونکی د پاره الله تعالی سره جګړه اوکړه اوهغه ئی په جنت کښې داخل کړو او هغه سورت ﴿تَبٰرَكَ الَّذِىْ﴾ دی. ترمذی شريف کښې دی چه يو صحابی ﷺ په خنګل کښې ډيره لګولې وه چرته چه قبر هم وو خوده ته علم نه وو هغه واوريده چه يو سړی دې سورت ﴿ملک﴾ لولی او هغه دا پوره اولوستلو. هغه نبی کريم ﷺ ته توله واقعه بيان کړه نو حضور ﷺ اوفرمانيل دا سورت بندونکې دی، دا سورت خلاصونکې دی چه د عذاب قبر نه خلاصې ورکوی.[2]

دا حديث غريب دی.

د ترمذی شريف په دويم روايت کښې دی چه حضور ﷺ به ذ اوده کيدو نه وړاندې سورة ﴿الٓمٓ تَنْزِيْلُ﴾ او سورة ﴿تَبٰرَكَ الَّذِىْ﴾ ضرور لوستلو. د حضرت طاؤس رحمه الله په روايت کښې دی چه دا دواړه سورتونه د قرآن

[1] ابوداؤد کتاب شهر رمضان باب فی عددالآی: ۱۴۰۰ وسنده حسن، ترمذی: ۲۸۹۱، ابن ماجه: ۳۷۸۶، السنن الکبری: ۷۱۰
[2] ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل سورة الملک: ۲۸۹۰، دلائل النبوة للبيهقی: ۴۱/۷.

پاك په نوروسورتونوباندې اويا نيكئي زيات فضيلت لرى. (١) طبراني كښې دى چه حضور ﷺ فرمائى زماد زړه خوښه ده چه داسورت دې زما د امت دهريوپه زړه كښې وى. يعنى سورت ملك(٢)داحديث هم غريب دې اوددې راوى ابراهيم رحمه الله ضعيف دې اوهم د دې په شان روايت د سورت ياسين په تفسير كښې تيرشوې دې. مسند عبدبن حميد كښې لږشان وضاحت سره بيان دې چه حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه يوسړى ته اوفرمائيل تاته داسې تحفه دركړم چه ته پرې خوشحاله شې﴿تَبٰرَكَ الَّذِىْ﴾ لوله او دا خپل اهل اوعيال اولاد كوروالا بچوته ګاوندیانو ته اوښايه.دا سورت د خلاصى وركونكې اود شفاعت كونكې دې د قيامت په ورځ به د خپل لوستونكى د طرف نه الله تعالى ته سفارش كوى اوهغه به د اور د عذاب نه بچ كوى اود قبرد عذاب نه هم. د رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دې زه خو غواړم چه زما د يو امتى په زړه كښې داوى.(٣)

| اياتونه | | سورة الملك مكية وهى ثلثون اية وفيها ركوعان | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۳۰ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ۲ |

تَبٰرَكَ الَّذِىْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

ډير بركت والا دې | هغه ذات | چې په لاس دهغه كښې | بادشاهى ده | او هغه | په هر څيز باندې |

دلوئي بركت خاوند دې | هغه (الله ﷻ) چې په لاس كښې ئې ټوله بادشاهى ده| او هغه په هرڅه

قَدِيْرُۨ ۝١ الَّذِىْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ

قادر دې | هغه (الله) | چې پيدا ئې كړو | مرګ | او ژوند | دپاره ددې چې وازمائى تاسو |

قادر دې | (الله ﷻ) هغه ذات دې چې مرګ او ژوندئې پيدا كړى دى| چې په تاسو امتحان اوكړى

اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ۝٢

چې كوم يو له تاسو نه | زيات ښه دې | په لحاظ دعمل سره | او هغه غالب دې | ښښونكې دې |

چې په عمل كښې څوك ښه دې |......................او هغه ډير غالب ډير ښښونكې دې

الَّذِىْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ؕ مَا تَرٰى فِىْ خَلْقِ

هغه (الله) | چې پيدا ئې كړل | اوه اسمانونه | لاندې باندې | اوبه نۀ وينې تۀ | په پيدا وښت |

هغه ذات دې چې اووۀ اسمانونه ئې لاندې باندې پيدا كړل| ته به د رحمان ( الله ﷻ ) په پيدا وښت كښې

الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ ؕ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ تَرٰى

درحمن كښى | څه خلل (بې ربطى) | واپس اوګرزوه | نظر (خپل) | ايا وينې تۀ |

هيڅ فرق اونه وينې | ............... نو ته (اسمان طرف ته) بيا اوګوره | چې څه خلل درته ښكارى ؟

---

(١) ترمذى كتاب فضائل القرآن باب ماجاء فى فضل سورة الملك: ٢٨٩٠.

(٢) حاكم: ٥٦٥/١ ح ٢٠٧٦.

(٣) المنتخب لعبدبن حميد: ٦٠١.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ فُطُوْرٍ ۝ | ثُمَّ ارْجِعِ | الْبَصَرَ | كَرَّتَيْنِ | يَنْقَلِبْ | إِلَيْكَ | الْبَصَرُ |
| څه چاوډ دي (خرابتيا) | بيا اوګرزوه | نظر | دوه دوه ځلې | واپس به راشي | تاته | نظر |
| بيا په بار بار اوګوره ستړګې به دې ذليلې او ستومانه واپس شي (خو په اسمان کښې به ........ | | | | | | |
| خَاسِئًا | وَّهُوَ حَسِيْرٌ ۝ | وَلَقَدْ زَيَّنَّا | السَّمَاءَ | الدُّنْيَا | | |
| نامراده | او هغه به ستړې ستومانه وي | او بيشکه ښائيسته کړې دې مونږه | اسمان | نزدې | | |
| نقص بيا نه مومې | ........ او بيشکه مونږ ددنيا اسمان (د ستورو) په ډيوؤ سره | | | | | |
| بِمَصَابِيْحَ | وَجَعَلْنٰهَا | رُجُوْمًا | لِّلشَّيٰطِيْنِ | وَاَعْتَدْنَا | | |
| په ډيوؤ سره | او جوړې کړې دي مونږ دا ډيوې | ويشتونکې | دپاره دشيطانانو | او تيار کړې دې مونږه | | |
| ښائسته کړې دي او هغه مو د شيطانانو د ويشتلو ذريعه ګرځولې ده او هغوئ دپاره مو | | | | | | |
| لَهُمْ | عَذَابَ السَّعِيْرِ ۝ | | | | | |
| دپاره ددوئ | عذاب سوزونکې | | | | | |
| ددوزخ عذاب تيار کړې دې | | | | | | |

**قوله تعالى:- اَلَّذِیْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَیٰوةَ لِیَبْلُوَكُمْ اَیُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ط**

**د مرګ اوژوند خالق الله دې:** الله تعالى خپل تعريف بيانوى او خبرورکوى چه په ټول مخلوق باندې د هغه قبضه ده چه څه غوارې کوى څوک دهغه حکم روستوکولې نه شى.دهغه د غلبه حکمت اوعدل په وجه د هغه نه څوک تپوس قدرې هم نه شى کولې.هغه په ټولوخيزونوباندې قدرت لرونکې دې.بيا خپل مرګ او ژوند پيداکول بيانوى.ددې آيت نه دهغه خلقودپاره استدلال کړې دې چه مرګ يووجودى امردې څکه چه هغه هم پيداکړې شوې دې.دآيت مطلب دا دې چه ټول مخلوق ئې د عدم نه په وجودکښې راوستلوچه دښوعملونوکونکو ازميښت اوشى لکه چه بل ځائى کښې ارشادمبارک دې (كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ) تاسو الله ﷻ سره ولې کفرکوئې؟تاسوخومړه وئې بياهغه تاسوراژوندى کړئى. نو اول حال يعنى عدم ته هم دلته مرګ اوونيلې شواودې پيدائش ته حيات اوونيلې شو.هم په دې وجه ددې نه پس ارشادکولې شى (ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝) هغه به بياتاسو وژنى اوبيا به موژوندى کوى.
ابن ابى حاتم کښې دى رسول الله ﷺ فرمائى بنيادم دمرګ په ذلت کښې وو الله تعالى د حيات کورجوړ کړو بيادمرګ اوآخرت د جزا او بيا دبقا[1] خوهم داروايت بل ځائى دحضرت قتاده رحمه الله خپل قول کيدل بيان شوى دى. امتحان د دې خبرې دې چه تاسوکښې نيک عمل کونکې څوک دى؟د اکثر عمل والا نه بلکه دبهتر عمل والا.هغه د غلبه او اوچت ذات کيدو نه سره کله چه ګناه ګار او سرکش خلق کله رجوع اوکړى اوتوبه اوکړى نو معاف کونکې اوبخښونکې هم دې.چا چه يود پاسه بل اووه آسمانونه لاندې باندې پيداکړل. بعضې خلقو دا هم ونيلى دى چه يوسره بل ملاؤ شوې دې خوبل قول دا دې په مينځ کښې ځائى شته اود يوبل نه په فاصله دى.ډيرصحيح قول هم دغه دې اود معراج د حديث نه هم دغه خبره ثابتيږى.دالله تعالى په پيدائش کښې خو به څوک څه کمې ياعيب اونه مومى بلکه ته به ګورې چه هغه برابردې نه اخواديخوا نه مخالفت نه بې ترتيبى نه کمې نه عيب اونه خلل. خپل نظردآسمان طرف ته اوچت کړه او غوراوکړه چه چرته څه نقص مات رامات جوړ چاوډې سورې ښکارى؟که بيا دې هم څه

[1] ابن ابى حاتم.

شك وی نوبیا بیا اوگوره هیڅ کمې به نه ښکاری که تاسو په ښه ژور نظرسره لټون کړې وی خوبیا هم ناممکن دی چه تاته څه کمې بیشې په نظرراشی.ستا سترګې به ستړې شی ناکامه به شی او لاندې به شی دکمی نفی کولوسره به اوس دکمال اثبات کولې شی.فرمانی چه ددنیادا آسمان مونږ په دې قدرتی چراغونو سره په ستوروسره ښانسته کړې دې په کومو کښې چه بعضې ګرځیدونکی دی اوبعضې به بو خانی حصاریدونکی دی.بیاد دې یوه بله فائده بیانولې شی داچه په دې سره شیطانان ویشتلې شی د دې نه شغلې اوځی اوپه هغوی باندې راپریوځې دانه ده چه پخپله ستورې په هغوی راماتیږی.والله اعلم د شیطان په دنیاکښې خودارسوائی ګورې په آخرت کښې به هم د لمبه کولواو سوزیدلو عذاب وی لکه چه دسورت صافات په شروع کښې دی چه مونږ ددنیاآسمان ته په ستورو ښانست ورکړې دې اود سرکش شیطانانو نه حفاظت په دې سره کړې دې.هغه د اوچتو فرښتو خبرې نه شی اوریدې او په شغلې سره شړلې شی. اودهغوی دپاره دهمیشه عذاب دې اوکه دوی کښې یونیمه خبره واخلی اوتختی نوهغه پسې پړقیدونکې شغله وی.قتاده رحمه الله فرمانی ستوری ددرې قسم فائدې د پاره پیدا کړې شوی دی دآسمان ښائشت دشیطانانوویشتلواولارموندلود ښبود پاره.کوم سړی چه ددې نه بله خبره اولټوله هغه د لارې نه واختو او خپله صحیح حصه نې ورکه کړه اود نه د نښت والې په وجه نې تکلف اوکړو[1]

وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ

| او دې دپاره دهغه کسانو | چې کفر نې کړې دې | درب خپل سره

|..............او چا چې د خپل رب نه انکار کړې دې هغوئ دپاره

عَذَابُ جَهَنَّمَ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝٦ إِذَا أُلْقُوا فِيهَا

عذاب ددوزخ | او ډیر خراب خانې دې دورتلو | کله چې اوغورزولې شی | په هغې کښې |
ددوزخ عذاب تیار دې | اوهغه ډیره خرابه ټیکانړه ده | څه خت چې دوئ دوزخ ته غوزار کړې شی

سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ ۝٧ تَكَادُ تَمَيَّزُ

نو وابه وری هغوئ | هغه دوزخ لره | هیبتناك اواز | او هغه به خوټکیږی | نزدې ده | چې شلیږی به
نو ګرزار به ئې اوری | او هغه دوزخ به داسې ویشیږی | چې د ډیره قهره به شلیدو ته نزدې وی

مِنَ الْغَيْظِ ۖ كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ

دغصې نه | هر کله چې اوراوغورزولې شی | په هغې کښې | یوه ډله | نو تپوس به اوکړی دهغوئ نه
.......... څه وخت چې یوه ډله ورغورزولې شی | نو محافظې فرښتې به ترې

خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ۝٨ قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا

نوکران ددوزخ | ایا نه وو درغلې تاسو ته | یو یرونکې | نو اوبه وائی هغوئ | هو | راغلې وو مونږ ته
تپوس اوکړی | چې ایا تاسو ته څوک ویرونکې درغلې نه وو؟ | هغوئ به اووائی چې ولې نه ؟ ویرونکې خو

نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا

یرونکې | اخو دروغ اوګڼړو مونږه | اواوونیل مونږه | نه دې نازل کړې الله | هیڅ څیز | نه یئ تاسو | مګر
راغلې وو | اخو مونږ دروغژن ګڼرلې وو | اوورته موونیلی وو | اچې الله خوهیڅ څیز نازل کړې نه دې | اوتاسو پخپله

---

[1] الطبری:۲۳/۵۰۸. (ابن جریر او ابن ابی حاتم).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِیْ ضَلٰلٍ كَبِیْرٍ۝ | وَقَالُوْا | لَوْ كُنَّا | نَسْمَعُ | اَوْ نَعْقِلُ |
| په گمراهۍ لويه كښي | اواوبه وائي هغوئ | كه چرې وې مونږه | اچې اوريدلي مو | ياموده عقل نه كار اغستلي |
| لويه گمراهۍ كښې ئي | اودابه هم اووائي چې كه چرې مونږ اوريدلي وې يا مو دعقل نه كار اخستې وې | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا كُنَّا | فِیْٓ اَصْحٰبِ السَّعِیْرِ۝ | فَاعْتَرَفُوْا | بِذَنْۢبِهِمْ |
| نو نۀ به وې مونږه | په ملګرو د وور كښي | پس هغوئ به اومني | ګناهونو خپلو لره |
| نو نن بۀ په دوزخيانو كښې نه وو شامل شوې | ........... | نو د خپلو ګناهونو اقرار به اوكړي | |

| | |
|---|---|
| فَسُحْقًا | لِّاَصْحٰبِ السَّعِیْرِ۝ |
| پس لرې والي دې درحمت نه | دپاره دملګرو ددوزخ |
| نو د دوزخيانو دپاره دې هلاكت وې | |

قوله تعالى:- وَلِلَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ ؕ

**د الله تعالى اياتونه دروغ ګڼړونكي بدانجام:-** د الله تعالى ارشاددې چه څوك هم د هغه نه كفراوكړي هغه دوزخي دې.د غه انجام او ځائى دبدنه بد دې.دا د اوچت او مكروه خرپه شان آوازونه وهونكې او جوش وهونكې دوزخ دې په هغې سوزيږي او وريتيږي.د جوش او غضب د وجې نه داسې كړنګيږي لكه چه اوس به مات شي.دادوزخيان ډير ذليل كول اوآخرى حجت قائمول اود اقبالي مجرم جوړلود پاره د دوزخ فرښته دهغوى نه تپوس كوى چه اې بدنصيبو د الله تعالى رسول ﷺ تاسوددې نه ويرولي نه وني؟ نو دوى به چغې او افسوس كولوسره خپل خان باندې بدوئيلوسره جواب وركوى چه راغلې خو وو خو زمونږ بدنصيبي چه مونږ هغه دروغ ګڼړلو اود الله تعالى كتاب مو هم نه منلواو پيغمبرموهم بې لارې ګڼړلو.اوس د الله تعالى عدل صفا ثابت شوې دې اودالله تعالى فرمان پوره نازل شوې دې كوم چه هغه فرمائيلي(وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِیْنَ حَتّٰی نَبْعَثَ رَسُوْلًا۝)تركومې چه مونږ رسول نه وى ليګلې تر هغې پورې عذاب نه ورليګو(په دې آيت كښې دنياوى عذاب طرف ته اشاره ده د آخرت د عذاب طرف ته نه ده).
بل ځائى ارشاد دې(حَتّٰۤی اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا)كله چه دوزخيان دوزخ ته اورسى اود دوزخ دروازې كولاو كړې شى اود دوزخ داروغه دوى نه تپوس اوكړى چه آيا تاسوله هم ستاسونه رسول نه ليګلې شوې؟ چه تاسو ته به ئي ستاسود رب آياتونه لوستل اوتاسو به ئي ددې ورځې دملاقات نه ويرولې نو وائى به چه اوراغلې وو او ويرولې ئى هم وو خو په كافرانوباندې دعذاب كلمه حقه شوې وه. اوس به خپل ځان ملامت كوى او وائى به كه زمونږ غوږونه وې كه په مونږ كښې عقل وې نويه دهوكه كښې به نه پريوتلو خپل مالك اوخالق سره به موكفر نه كولونه به مورسولان دروغ ګڼړل او نه به مود هغوى د تابعدارئى نه مخ اړولو.الله تعالى به فرمائى چه اوس خودوى پخپله دخپلې ګناه اقرار اوكړو دوى دپاره دې لعنت وى اودوى دپاره دې لريوالي وى.رسول الله ﷺ فرمائى چه تركومې خلق په خپل ځان باندې په دنيا كښې غوراونه كړى اوخپلې بدئى پخپله اونه وينى هلاك كيږى به نه[1] بل حديث شريف كښې دى چه دقيامت په ورځ به داسې حجت قائمولې شى چه پخپله به انسان پوهه شى چه زه دوزخ ته دتلو قابل يم.

| | |
|---|---|
| اِنَّ الَّذِیْنَ | یَخْشَوْنَ |
| بيشكه هغه كسان | چې يريږي |
| كوم كسان چې د خپل رب نه بې ليدو | |

[1] احمد:۴/۲۶۰، ابوداؤد كتاب الملاحم باب الامروالنهى:۴۳۴۷وسنده صحيح، احمد:۵/۲۹۳.

| رَبَّهُم | بِالْغَيْبِ | لَهُم | مَّغْفِرَةٌ | وَّأَجْرٌ | كَبِيرٌ۝ | وَأَسِرُّوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| درب خپل نه | په غيبو سره | دپاره دهغوئ | بښنه ده | او اجر | لوئ دي | او كه پټوئ تاسو |
| ويريږي | نو هغوی دپاره بښنه ده | او لوئي اجر دي | ............اوكه تاسو خپله خبره پټوئ | | | |

| قَوْلَكُمْ | أَوِ اجْهَرُوا | بِهِ | إِنَّهُ | عَلِيمٌ |
|---|---|---|---|---|
| خبره خپله | يا كه ښكاره والي كوئ | په هغې سره | بيشكه هغه | خبردار دي |
| اوكه ښكاره كوئ يې | ........... هغه (الله) دزړونو په حال ښه عالم دي | | | |

| بِذَاتِ الصُّدُورِ۝ | أَلَا يَعْلَمُ | مَنْ خَلَقَ | وَهُوَ |
|---|---|---|---|
| په خبرو دسينو باندې | ايا نه پوهيږي هغه | چې پيدا كړي ني دي زړونه | او هغه |
| ............ | ايا هغه به تري نه خبر نه وي | ..........چا چې پيدا كړي دي | او هغه |

| اللَّطِيفُ | الْخَبِيرُ۝ | هُوَ الَّذِي | جَعَلَ | لَكُمُ |
|---|---|---|---|---|
| باريك ليدونكي دي | خبردار دي | هغه خو هغه ذات دي | چې جوړه ني كړه | ستاسو دپاره |
| دير باريك بين په هرڅه خبر دي | .............الله ﷻ هغه ذات دي چا چې تاسو دپاره زمكه | | | |

| الْأَرْضَ | ذَلُولًا | فَامْشُوا | فِي مَنَاكِبِهَا | وَكُلُوا | مِن رِّزْقِهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| زمكه | تابع | پس ګرځئ | په اطرافو (سينه) ددې كښې | او خورئ | درزق دهغه نه |
| داستعمال قابله جوړه كړه | ددې دپاره چې تاسو ددې په لارو كښې تګ راتګ كوئ | او دالله د رزق نه خورئ | | | |

| وَإِلَيْهِ | النُّشُورُ۝ |
|---|---|
| اوخاص هغه ته | دوباره ژوندي راپاسيدل دي |
| او هغه (الله) ته بيا پيش كيدل دي | |

**قوله تعالىٰ:- إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ۝**

**د الله ﷻ نه غائبانه ويريدلو فضيلت:-** الله ﷻ هغه خلقو ته زيرې وركوي چه د خپل رب په وړاندې اودريدلو نه ويريږي.سرد ددې كه يوازې وي اودچا نظرېه دوی نه پريوځي. خو بياهم د الله تعالى د وېرې د نافرمانئ يوكار نه كوي.نه دتابعدارئ اوعبادت نه سترګي پټوي.دهغوی ګناه به هم الله تعالى معاف كړي اوهغوی ته به زبردست ثواب اوښكلي اجر هم وركوي لكه چه د بخاري او مسلم شريف په حديث كښې دي چه كومو اووه كسانوته به الله تعالى دعرش سورې په هغه ورځ وركوي په كومه ورځ چه به بل سورې نه وي په هغوی كښې به يوهغه كس وي چه دمال او جمال والا ښځه هغه ته دزنا دعوت وركړي اوهغه اووائي چه زه دالله تعالى نه ويريږم او هغه ته هم چه داسې په پټه صدقه اوكړي چه د ښي لاس خرچ كولونه د هغه ګس لاس هم خبرنه شي.

مسنداحمد كښې دي چه صحابه كرام رضی الله اجمعين يوخل عرض اوكړويارسول الله ﷺ زمونږ د زړونو چه كوم كيفيت ستاسو په وړاندې وي ستاسو نه پس هغه نه وي. حضور ﷺ اوفرمائيل چه دا اووائې چه د رب سره ستاسو څه حال وي؟ هغوی جواب وركړېه ظاهر او باطن هم الله تعالى رب منو حضور ﷺ اوفرمائيل چه ځنې دا نفاق نه دي.([1])

---

[1]) مسندالبزار ۵۲، مسندابي يعلى: ۳۳۶۹، احمد: ۱/ ۳۰، ۵۲، ابن حبان: ۷۳۰.

**قوله تعالى:- وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ**
**الله تعالى ته ول پيژني:** بيافرمائي ستاسو پټو او ښکاره خبرو ماته علم دې او د زړونود خطرونه هم خبريم. دا ناممکن دی چه کوم خالق وی هغه به عالم نه وی، د مخلوق نه خالق بې خبره وی هغه خو ډېر باريک بين او بې حده خبرلرونکې دې. دې نه پس دخپل نعمت څرګندونه کوی زمکه ئی ستاسو د پاره مسخر کړه او په آرام سره ولاړه ده. خوزيدو سره تاسو ته هيڅ نقصان نه درکوی. د غرونوميخونه ئی په دې ورټکوهلې دی. د اوبوچينې په دې کښې روانې کړی دی. لارې ورکړې دی. قسم قسم ګټې په دې کښې ايخودې دی. ميوې غلې د دې نه راوځی. کوم ځائی ی ته چه تاسو تلل غواړئی تلې شئی. قسم قسم اوږده فائده ورکونکې سوداګرئی تاسو کوئې. ستاسو کوشش هغه کاميابوی تاسو ته خپل رزق په دې اسبابو سره درکوی. معلومه شوه چه د اسبابوحاصلولو کوشش د توکل نه خلاف نه دې.

**قوله تعالى:- وَكُلُوا مِنْ رِّزْقِهِ**
**هر چا ته رزق رسونکې صرف الله تعالى دې:** دمسنداحمدپه حديث کښې دی که تاسو د الله تعالى په ذات باندې پوره پوره يقين اوکړئی نوهغه به تاسوته داسې رزق درکړی لکه څنګه چه مرغوته ورکوی چه دخپلو جالونه خالی خيټې اوځی اومړې واپس راځی([1]) نود هغوی سحرمابنام تلل راتلل او رزق لټول ئی هم په توکل کښې داخل اوګنړل څکه چه د اسبابوپيداکونکې او هغه آسانونکې هم هغه يو الله تعالى دې هم دهغه طرف ته دقيامت په ورځ واپس کيدل دی. حضرت ابن عباس ﷺ وغيره خود مناکب نه لارې او اخوا ديخوا خايونه مراد اخلی ([2]) اود قتاده رحمه الله وغيره نه نقل دی چه مراد ترې غرونه دی. حضرت بشيربن کعب رحمه الله د دې آيت تلاوت اوکړو او خپلې وينځې ته چه دهغې نه د ده اولاد هم شوې وواوونيل که د مناکب صحيح تفسير دې اوخودلو نه ته به آزاده شې. هغې ونيل دې نه مراد غرونه دی. هغه د حضرت ابودرداء ﷺ نه تپوس اوکړو نوجواب ملاوشو چه دا تفسيرصحيح دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ءَأَمِنْتُمْ | مَّنْ | فِي السَّمَآءِ | |
| آيا په امن کښې يئ تاسو | دهغه ذات نه | اچې په آسمان کښې دې | |
| آيا تاسو ددې نه بې غمه يئ | اچې څوک په آسمان کښې دې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ يَّخْسِفَ | بِكُمُ | الْأَرْضَ | فَإِذَا | هِيَ | تَمُوْرُ ﴿١٦﴾ |
| ددې خبرې چې ډوب به کړی | تاسو | په زمکه | بيا به ناساپه | دا زمکه | اګرځي يعنی تالی وهي |
| هغه مو په زمکه کښې ورخخ کړی | | ............نو هغه (زمکه) به ناګهانه اولړزيږی | | | |

| | | |
|---|---|---|
| أَمْ أَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ | أَنْ يُّرْسِلَ | عَلَيْكُمْ |
| يا په امن کښې يئ تاسو دهغه ذات نه چې په آسمان کښې دی | ددې خبرې نه چې رااوبه ليږی | په تاسو باندې |
| ايا تاسوددې نه بې غمه شوئ | چې څوک په آسمان کښې دې هغه دربادې دکانړو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَاصِبًا | فَسَتَعْلَمُوْنَ | كَيْفَ | نَذِيْرِ ﴿١٧﴾ | وَلَقَدْ كَذَّبَ |
| باران دکانړو | پس زر به معلوم شي تاسو ته | چې څرنګې وه | يرونه زما | او دروغ ګنړلې دی |
| باران راوروی ر نو تاسو ته به زر معلومه شي چې زما ويرول څنګه دی؟ | | | | او ددوئ نه پخوا |

[1] ترمذي کتاب الزهد باب في التوكل على الله: ٢٣٤٤ وسنده حسن، ابن ماجة: ٤١٦٤، احمد: ٣٠/١، ٥٢، ابن حبان: ٧٣٠.
[2] الطبری: ٥١٢/٢٣.

| الَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ | فَكَيْفَ كَانَ | نَكِيرِ |
|---|---|---|---|
| هغه كسانو | چې مخكښې ددوئ نه وو (پيغمبران خپل) | پس څرنګې وو | عذاب زما |
| خلقو هم (خپل پيغمبران) دروغژن ګڼړلی وو | بيا (اوګوره چې په دوئ) زما عذاب څنګه راغلو ؟ | | |

| اَوَلَمْ يَرَوْا | اِلَى الطَّيْرِ | فَوْقَهُمْ | صٰٓفّٰتٍ | وَّيَقْبِضْنَ |
|---|---|---|---|---|
| ايا نهٔ ګوری دوئ | مرغانوته | دپاسه دخان خپل | چې وزری خورونکې دی | او راغوندونکې دی |
| ايادوئ بره مارغانو ته نه ګوری | چې ورزې ئې خورې کړې وی | اوغونډې کړې ئې وی | | |

| مَا يُمْسِكُهُنَّ | اِلَّا الرَّحْمٰنُ | اِنَّهٗ | بِكُلِّ شَيْءٍ | بَصِيرٌ |
|---|---|---|---|---|
| نهٔ ټينګوی دوئ لره (په هوا کښې) | مګر رحمن | بيشکه هغه | په هر څيز باندې | ليدونکې دې |
| دوئ صرف رحمان (په هوا کښې) راټينګ کړی دی | ............هغه هر څيز وينی ګوری | | | |

**قوله تعالى:- ءَاَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ اَنْ يَخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ**

**د الله تعالى دعذاب نه بې ويرې كيدل نه دی پكار:** په دې آياتونوکښې هم الله تعالى د خپل کرم او رحمت بيان کوی چه دخلقودکفر اوشرك په وجه هغه په قسم قسم دنياوی عذابونوباندې قادر دې خود هغه حکم اوعفو ده چه زرعذاب نه ورکوی. لکه چه بل ځائی ی ارشاد دی﴿وَلَوْيُؤَاخِذُاللهُ النَّاسَ بِمَاكَسَبُوْامَاتَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ﴾يعنی كه الله تعالى خلق د هغوی په بدو نيول نو په مخ د زمکې به ئې هيڅ څوك نه وو پريخی.هغه دوی ته ديو مقرروخت پورې مهلت ورکړې دی.کله چه هغه وخت راشی نوالله تعالى به دې مجرمانو خلقو سره پخپله پوهه شی. دلته ئې هم اوفرمائيل چه كه زمکه خوزيدله او اخوادیخواکيدله نو دا ټول به په هغې کښې ورخښ شوې وې يا په هغوی به ئې داسې سيلئی راليګله چه په هغې کښې به کانړی وو اود هغوی دماغ به ئې ماتول.

يوبل ځائی کښې ارشاد دی ﴿اَفَاَمِنْتُمْ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ﴾ آيا تاسو نه ويريږئی چه د زمکې په يوه غاړه کښې به ورخښ شئی په تاسوبه هغه کانړی راووروی هيڅ څوك به نه وی چه ستاسو وکالت اوکړې شی. دلته هم فرمان دې چه هغه وخت به تاسو ته معلومه شی چه زما د دهمکيانو او ويرولوانجام څه شو؟ تاسوپخپله اوګورئی چه اول خلقوهم اونه منل او انکارکولوسره ئې زما خبرې دروغ اوګڼړلې نود هغوی څومره خراب او د عبرت نه ډك انجام شو.

**قوله تعالى:- اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ**

تاسوزمادهرې ورخې دقدرتونو مشاهده نه کوئی چه مرغئي ستاسو په سرونوباندې الوزی کله په دواړو وزروباندې اوکله څه بندکړی نوزما نه بغير هغه چانيولې وی؟ماهواګانې مسخرکړې دی اودوی په کښې زوړند الوزی.داهم زما لطف کرم رحمت اونعمت دې.د مخلوقاتو حاجتونه ضرورتونه دهغوی د اصلاح او بنيګړو خيال ساتونکې اوکفالت کونکې هم زه يم. لکه چه بل ځائی ارشاد دی ﴿اَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِيْ جَوِّ السَّمَآءِ﴾ آيا دوی دامرغنی نه دی ليدلې چه دزمکې اوآسمان په مينځ کښې مسخردی د چا نيونکې چه دالله تعالى نه بغيربل څوك نشته.يقيناً په دې کښې دايماندارودپاره لوئ لوئ نښې دی.

| اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ | هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ | يَنْصُرُكُمْ |
|---|---|---|
| ايا څوك دې هغه كس | چې هغه لښکر دې ستاسو دپاره | چې هغه امداد کوی ستاسو |
| ايا د رحمان نه سوابل څوک دې | ........چې ستاسولښکر جوړ شی | اوستاسو مدد اوکړی |

مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ۚ اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِيْ غُرُوْرٍ ۚ اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ

په مقابله درحمن كښې | نه دي دا كافران | مگر | په دوكه كښې پراتۀ دي | ايا څوك دي هغه

دا كافران خو په لويه دهوكه كښې پراته دي| ..................ايا داسې څوك شته چې تاسو ته

يَرْزُقُكُمْ اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ ۚ بَلْ لَّجُّوْا

چې رزق دركولې شي تاسو ته | كه بند كړي هغه | رزق خپل | بلكه ننوتلي (محكم شوي) دي دوئ |

روزي دركړي| كه هغه (الله ﷻ) دربانډې خپله روزي بنده كړي | بلكه دوي په

فِيْ عُتُوٍّ وَّنُفُوْرٍ ۞ اَفَمَنْ يَّمْشِيْ مُكِبًّا

په سركشئ كښې | او په نفرت كولو كښې دحق نه | ايا پس هغه څوك | چې گرځي | نسكور |

سركشئ اوپه نفرت كښې پراته دي| ..................ايا هغه كس چې

عَلٰى وَجْهِهٖٓ اَهْدٰٓى اَمَّنْ يَّمْشِيْ سَوِيًّا

په مخ خپل باندې | زيات صحيح لار موندونكې دي| يا هغه څوك چې گرځي | برابر نيغ |

پرمخې تک کوي | هغه په سمه لار دي؟ | ..................اوكه هغه چې په هواره

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۞ قُلْ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ

په نيغه لار باندې | اووايه | الله هغه ذات دې | چې پيدا ني كړئ تاسو | او درنې كړو تاسو له

لاره سم روان وي | ..................ته ورته اووايه چې الله ﷻ هغه ذات دې | چې تاسو ئې پيدا كړي يئ

السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۚ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ۞ قُلْ

طاقت داوريدو | او طاقت دليدو | او زړونه (دپاره د سوچ) | ډير لږ تاسو شكر اوباسئ | اووايه |

او غوږونه اوسترگې اوزړونه ئې دركړي دي | .................. خوتاسو ډير كم شكر كوئ اورته اووايه

هُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۞

الله هغه ذات دې | چې خوارۀ ني كړئ تاسو | په زمكه كښې | اوخاص هغه ته به | تاسو ورجمع كيږئ

الله ﷻ هغه ذات دې | چې تاسو ئې په زمكه كښې خواره كړي يې | او بيا به هغه ته جمع كولې شئ

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۞ قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ

او وانې دوئ | كله به وي | دا وعده | كه يئ تاسو | رښتينې | اورته اووايه | چې بيشكه دغه علم

اودوئ وائي چې داوعده به كله پوره كيږي | كه تاسو رښتوني يئ؟ | اورته اووايه چې (ددې) علم

عِنْدَ اللّٰهِ ۠ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۞ فَلَمَّا رَاَوْهُ

| دالله سره دې | او بيشكه زۀ | يرونكې يم | ښكاره | پس هر كله چې | اووينې دوئ هغه

د الله ﷻ سره دې | او زه خو بس يو ښكند ويرونكې يم | .................. بيا چې دوئ قيامت نزدې اووينې

زُلْفَةً سِيْٓـَٔتْ وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقِيْلَ

نزدې | نو وران به شي | مخونه | دهغه كسانو | چې انكار ني كړي دي | اواوبه ونيلې شي

نو د كافرانو مخونه به وران شي | ..................اورته به اوونيلې شي

| هٰذَا الَّذِيْ | كُنْتُمْ | بِهٖ | تَدَّعُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|
| چې دا هغه څيز دي | چې وئ تاسو | په دغه څيز سره | چې غوښتو به مو |
| چې دا هغه عذاب دي | چې تاسو به (په دنيا کښې) غوښتلو | | |

قوله تعالىٰ :- اَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَجُنْدٌ لَّكُمْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ط

د باطلې عقيدې ترديد: الله تعالى د مشركانو د دې عقيدې ترديد کوی کوم چه هغوی خيال کوی د کومو بزرګانو چه هغوی عبادت کوی هغوی د دوی امداد هم کولې شی او دوی ته رزق رسولې شی. نو فرمائی چه بغير د الله تعالى نه نه څوك امداد کولې شی نه رزق رسولې شی نه څوك بچ کولې شی د کافرانو دا عقيده صرف يوه دهوکه ده. که اوس الله تعالى ستاسو رزق بند کړی نو بيا ئې څوك هم هغه نه جاری کولې. په ورکولو اخستلو پيداکولو فناکولو رزق ورکولو او امداد کولو باندې صرف د الله تعالى چه وحده لاشريك دې ته قدرت حاصل دې. د اخلق پخپله هغه دزره نه پيژنی او په عملونو کښې نور هغه سره شريك کوی. حقيقت دا دې چه کافران په ګمراهئ غلطو لارو ګناه او سرکشئ کښې بهيږی روان دی. د دوی په طبيعتونو کښې کبر ضد او د حق نه انکار بلکه د حق سره دښمنی کول ناست دی. تردې چه د بنو خبرو اوريدل هم نه شی برداشت کولې عمل کول خولرې خبره ده؟ بيا د مؤمن او کافر مثال بيانولې شی د کافر مثال داسې دې لکه چه څوك ملاټبنې کړی سرټيټ کړی سترګې بنکته روان وی نه لار ته ګوری او نه هغه ته دا معلوم وی چه چرته روان دې بلکه حيران او پريشان لار هيره شوې وار خطا دې. او د مؤمن مثال داسې دې لکه چه يوسړې په نيغه لار نيغ روان وی لار پخپله صفا او نيغه ده دا سړې هغه پخپله هم بنه پيژنی او په برابر او صحيح چال باندې روان دې.

دغه حال به د قيامت په ورځ د دوی وی چه کافران په پرمخې د دوزخ طرف ته راجمع کولې شی او مسلمانان به په عزت سره جنت ته رسولې شی. لکه چه ارشاد دې (اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ۝ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ۝) ظالمان او د هغوی په شان او د هغوی معبودان کوم چه د الله تعالى نه بغير وو راجمع کړنی او د دوزخ لار ورته اوښائی الخ. مسند احمد کښې دی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو حضور ﷺ خلق به پرمخې کولو سره څنګه حشر کولې شی؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل چا چه په پښو باندې روان کړی دی هغه ذات په پرمخې روانولو باندې هم قادر دې[1] په مسلم او بخاری شريف کښې هم دا روايت دې الله تعالى هغه ذات دې چا چه تاسو. په اول خل تاسو هيڅ هم نه وئی پيداکړنی. تاسو ته ئې غوږونه سترګې او زړه درکړو يعنی په تاسو کښې ئې عقل او پوهه پيداکړه خو تاسو ډير کم شکر ګذاری کونی. يعنی خپل دا قوتونه د الله تعالى په حکم منلو کښې او دهغه د نافرمانونه په بچ کيدو کښې ډير کم خرچ کونی. هم الله تعالى دې چه تاسونی په زمکه کښې خواره کړنی ستاسو ژبې جدا ستاسو رنګونه جدا ستاسو په شکلونو او صورتونو کښې اختلاف او تاسو ئې د زمکې په جدا جدا حصه کښې آباد کړنی. بيا به د دې ګډوډوالی او شيندلو نه پس هغه وخت هم راشی چه تاسو ټول به دهغه په وړاندې اودرولې شئ. هغه چه څنګه تاسو اخوا ديخوا خواره کړی ئې هم دغه شان به مو يو طرف ته راغونډ کړی. او څنګه چه په اول خل هغه تاسو پيدا کړنی بيا به تاسو راواپس کړی. بيا بيان کولې شی چه دا کافران د بيا ژوندی کيدلو قائل نه دی او هغوی دا دويم ژوند محال او ناممکن ګڼری د دې بيان په اوريدو سره اعتراض کوی چه بنه ده هغه وخت به کله راځی د کوم چه مونږ ته خبر راکولې شی که

[1] احمد: ۱۶۷/۳، صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الفرقان باب قوله (الذين يحشرون على وجوههم الى جهنم) : ٤٧٦٠، صحيح مسلم: ۲۸۰٦.

ربښتونې نی نو اوښایه چه د دې ګډوډ کیدونه پس به هغه اجتماع کله وی؟

**قوله تعالى:- قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ**

**د پیغمبرانو کار خبرورکول دی:** الله تعالى خپل نبی ته فرمائی چه دوی ته جواب ورکړه دهغې علم ماته نشته چه قیامت به کله وی؟داخو صرف هم هغه علام الغیوب پیژنی. اودومره ماته ونیلې شوی دی چه هغه وخت به ضرور راځی.زما حیثیت صرف دادې چه زه تاسو خبرکړم اودهغه ورځ دسختونه مو خبر کړم. زما فرض خو صرف تاسو ته رسول ووکوم چه الحمدلله ماکړی دی. بیا د الله تعالی ارشاد دې چه کله قیامت قائم شی اوکافران ئی په خپلو سترګوباندې اوګوری او معلومه کړی چه اوس خوهغه رانیزدې شو او هر راتلونکې څیز خو راځی که هغه هرڅومره په مزه راځی اوکله چه دوی دا راتلونکې اووینی کوم چه ئی تراوسه پورې دروغ ګڼړلو نو هغوی ته به ډیر خراب اولګی څکه چه د خپل غفلت نتیجه به مخامخ اووینی اود قیامت تباهئی به بدحواسه کونکې وی آثار به ټول مخامخ وی په هغه وخت کښې به دوی ته د رټلو اوذلیل کولو په توګه ونیلې شی هم دا دې د کوم چه تاسو تندی کوله.

| قُلْ أَرَءَيْتُمْ | |
|---|---|
| ورته اووایه \| ایا وینئ تاسو | |
| ته ورته اووایه چې ښه دا اوښایئ | |

| فَمَنْ | أَوْ رَحِمَنَا | وَمَنْ مَّعِيَ | إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|
| پس څوک | یا رحم اوکړی په مونږ باندې | او هغه څوک چې زما سره دی | که هلاک کړی ما الله |
| ......نو | یا راباندې رحم اوکړی | ...................... | که الله ﷻ ما او زما ملګرې هلاک کړی |

| هُوَ الرَّحْمٰنُ | قُلْ | مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ | الْكٰفِرِينَ | يُجِيرُ |
|---|---|---|---|---|
| چې هغه خدائې رحم کونکې دې | ورته اووایه | دعذب دردناک نه | کافران | به بچ کوی |
| رحمان دې | ته ورته اووایه چې هغه الله ﷻ | | کافران به د دردناک عذاب نه څوک بچ کړی | |

| فَسَتَعْلَمُونَ | وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا | بِهٖ | اٰمَنَّا |
|---|---|---|---|
| پس زربه معلوم شی تاسو ته | بروسه کړی ده مونږ | او په هغه باندې | ایمان راوړی دې مونږ په هغه |
| تاسو ته بهٔ زر معلومه شی | ........... | او په هغه مو بهروسه کړې ده | مونږ په هغه ایمان راوړی دې |

| إِنْ أَصْبَحَ | أَرَءَيْتُمْ | قُلْ | فِي ضَلٰلٍ مُّبِينٍ | مَنْ هُوَ |
|---|---|---|---|---|
| که چرې شی | ایا وینئ تاسو | ورته اووایه | چې په ګمراهئ ښکاره کښې دې | چې څوک دې هغه |
| راته اوښائې که | ورته اووایه چې ښه دا | | .................په ښکاره ګمراهئ کښې دې | چې څوک |

| مَّعِينٍ | بِمَآءٍ | فَمَنْ يَّأْتِيكُمْ | غَوْرًا | مَآؤُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| جاری | او به | پس څوک به راولی تاسو له | ښکته | اوبه ستاسو |
| | دچینې اوبهٔ راولی | نو څوک به ستاسو دپاره | ښکته غائبې شی | ستاسو اوبه |

**قوله تعالى:- فَمَنْ يُجِيرُ الْكٰفِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ**

**کافران به د دردناک عذاب نه څوک بچ کوی:** الله تعالی فرمائی چه اې نبی دې مشرکانوته اووایه کوم چه دالله تعالی دنعمتونوانکارکوی داتاسوچه ددې خبرې په ارزوکښې ئی چه مونږته به نقصان اورسونی نو

فرض کړه چه مونږ ته دالله تعالى دطرف نه نقصان راورسيدو ياهغه په ماوزما په ملګرو باندې رحم اوکړو نوستاسوپه دې څه صرف په دې کارخوستاسوخلاصي نه شي کيدلې؟ستاسودخلاصي خودا صورت نه دې؟ خلاصي په توبه پورې موقوف دې،دالله تعالى طرف ته په تهيدوباندې،دهغه دين منلوباندې.زمونږ په بچ کيدو يا هلاك کيدوباندې ستاسو خلاصې نشته. تاسوزمونږ خيال پريږدئى او د خپلې بښنې صورت اولټوئى.

**قوله تعالى:-** فَمَن يَأْتِيكُم بِمَآءٍ مَّعِينٍ۝

**اوبه دالله تعالى نعمت:** بيافرمائى مونږ په رب العالمين رحمن او رحيم باندې ايمان راوړلې دې په خپلو ټولوکارونو کښې زمونږ يقين اوتوکل هم دهغه په پاك ذات باندې دې.لکه چه ارشاددې ﴿فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾هم دهغه عبادت کوه اوهم په هغه باندې يقين ساته. اوس به ډيرزر تاسو ته معلومه شي چه په دنيا اوآخرت کښې خلاصې چاته ملاويږى اوپه نقصان او تاوان کښې څوك پريوځي؟درب رحمت په چا باندې دې اوپه هدايت باندې څوك دې؟ د الله تعالى غضب په چاباندې دې اوپه خرابه لارڅوك دې؟ بيا فرمائى چه دا اوبه په کوموچه د انسانى ژوند دارومداردې زمکه راکاږى يعنى د زمکې نه هلته راونه وځى نوتاسوبه په کنستلوکنستلوستړې شئى نوبغيردالله تعالى نه بل څوك شته چه دا بهيدونکې راخوټکيدونکى او روانيدونکې اوبه تاسو ته درکړې شي.

د الله په فضل اوکرم سره د سورة ملك تفسير ختم شو. **﴿فالحمدلله رب العالمين﴾**

| آياتونه | | سورة القلم مكية وهى اثنتان وخمسون اٰية وفيها ركوعان | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٥٢ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ٢ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نٓ وَالْقَلَمِ | وَمَا | يَسْطُرُوْنَ۝ | مَآ اَنْتَ | بِنِعْمَةِ رَبِّكَ |
| ن قسم دې په قلم | او په هغه څيز | چې ليکونکې ئې ليکى | نه ئې ته | په فضل درب خپل سره |
| نون | په قلم باندې قسم دې | او په هغې چې (فرښتې) څه ليکى | ستا د رب مهربانى ده چې ته | |
| بِمَجْنُوْنٍ۝ | وَاِنَّ لَكَ | لَاَجْرًا | غَيْرَ مَمْنُوْنٍ۝ | وَاِنَّكَ |
| ليونې | او بيشکه تالره دې | خامخا اجر | چې نه دې ختميدونکې | او بيشکه ته |
| ليونې نه يې | اوستا دپاره داسې اجر دې | چې ختميدونکې نه دې | اوته د اوچتو اخلاقو په | |
| لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ۝ | فَسَتُبْصِرُ | وَيُبْصِرُوْنَ۝ | بِاَيِّكُمُ | |
| داوچتو اخلاقو مالک يې | انو ډير زر به ته هم اووينې | او هغوئ به هم اووينى | اچې په کوم يو له تاسو نه | |
| اوچته مرتبه يې | نوته به هم اووينې اودوئ به هم اووينى | .........چې په تاسو کښې | | |
| الْمَفْتُوْنُ۝ | اِنَّ رَبَّكَ | هُوَ اَعْلَمُ | بِمَنْ | ضَلَّ |
| ليونتوب دې | بيشکه رب ستاسو چې دې | هغه ښه پيژنى | هغه څوك | چې بې لارې شوې دې |
| څوك ليونې دې | بيشکه ستا رب په هغه چا ښه پوهه دې | څوک چې ئې د لارې نه بې لارې | | |

| عَنْ سَبِيلِهِ | وَهُوَ أَعْلَمُ | بِالْمُهْتَدِينَ ۝ |
|---|---|---|
| دلارې دهغه نه \| | او هغه ښه پيژني \| | نيغه لار موندونکی \| |
| شوې وي\|او هغه ته هغه خلق ښه معلوم دي په نيغه لار روان دي\| | | |

قوله تعالىٰ:- وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ۝

**دنون مفهوم اود ټولو نه اول پيدا شوې څيز:** د نون وغيره په شان د حروف هجي بيان په تفصيل سره د سورة بقره په شروع کښې تير شوې دې ځکه نی دلته دبياسردوباره کولوضرورت نشته. وئيلې شی چه دلته د نون نه مراد هغه لوئ کب دې چه په يومحيط عالم اوبوباندې دې او اووه واړه زمکې نی اوچتې کړی دی.دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه د ټولو نه اول الله تعالى قلم پيداکړو ورته نی اوفرمائيل چه ليکه نوهغه اووئيل څه اوليکم؟ وئی فرمائيل تقديرليکه. نو د هغه ورځ نه واخله ترقيامته پورې چه به څه کيږي په هغې باندې قلم روان شو. بيا الله تعالى کب راپيداکړو اود اوبوچينې راوچتې کړې د کمې نه چه آسمان جوړ شواوزمکه نی د دغه کب په شا کيخوده. کب حرکت اوکړو په څه سره چه زمکه هم اوخوزيده نو په زمکه کښې غرونه ورخښ کړل اوزمکه نی مضبوطه او ساکن کړه. بيا هغوی د دې آيت تلاوت اوکړو.(١)

مطلب دا چه دلته د نون نه مراد داکب دې. په طبرانی کښې مرفوعًا روايت دې چه د ټولونه اول الله تعالى قلم اوکب پيداکړو.قلم تپوس اوکړو چه زه څه اوليکم؟حکم اوشوچه هرهغه څيزکوم چه د قيامت پورې کيدونکې دې. بيا هغوی د اولنی آيت تلاوت اوکړو (٢) نود نون نه مراد هم داکب دې او قلم نه مراد هم دا قلم دې. د ابن عساکر په حديث کښې دی د ټولونه اول الله تعالى قلم پيداکړو بيا نون يعنی دوات بيانی قلم ته اوفرمائيل چه ليکه نو هغه وئيل څه اوليکم؟ اوفرمائيلې شو چه څه کيږی او څه کيدونکی دی عمل رزق عمر مرګ وغيره. نو قلم هرڅه اوليکل د دې آيت نه هم دا مراد دې. بيا په قلم باندې مهراولګيدلو هغه به ترقيامت پورې نه چليږی. بيانی عقل پيداکړو او وئی فرمائيل چه په خپل عزت مې دې قسم وی په خپلو دوستانوکښې به.زه تا کمال ته رسوم او په خپلو دښمنانوکښې به زه تاناقص ساتم. فرمائی چه دا مشهوره وه چه د نون نه مراد هغه کب دې کوم چه د اووه واړو زمکولاندې دی.بغوی رحمه الله وغيره مفسرين فرمائی چه د دې کب په ملاباندې يوکانړې دې د کوم پيروالې چه د زمکې اوآسمان برابر دې. په دې باندې يو غوايه دې چه دهغه څلويښت زره ښکرې دی اود هغه په ملا باندې اووه واړه زمکې اود هغې ټول مخلوق دې. والله اعلم.

**دعبدالله بن سلام سوالونه اود رسول کريم ﷺ جوابونه:-** او ډيره د حيرانتياخبره خودا ده چه بعضې مفسرينودا حديث هم په دې معنی کښې محمول کړې دې کوم چه په مسنداحمدوغيره کښې دې. کله چه عبدالله بن سلام رضي الله عنه ته خبرملاوشو چه رسول الله ﷺ مدينې ته راغلې دې نوهغه دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوډيرسوالونه نی اوکړل. وئی وئيل چه زه د هغه خبرو تپوسونه کول غواړم چه هغه د انبياؤ نه بغير بل څوك نه پيژني. اوښايه د قيامت ړومبنی نښه کومه يوه ده؟دجنتيانو ړومبې خوراك څه دې؟اودا څه وجه ده چه کله بچې د پلار په شان وی اوکله د مور په شان؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه دا خبرې اوس اوس ماته حضرت جبرائيل عليه السلام اوخودلې. ابن سلام رضي الله عنه اووئيل چه په فرښتوکښې هم دغه فرښته ده چه د يهوديانو دښمنه ده. حضور ﷺ اوفرمائيل واوره چه د قيامت اوله نښنه دا ده چه يوأور به راوځی چه خلق به د مشرق نه مغرب طرف ته بوځی اود جنتيانوړومبې خوراك د کب د اينې زياتوالې

---

(١) حاکم: ٤٩٨/٢. (ابن ابي حاتم)

(٢) المعجم الکبير ١٢٢٢٧، مجمع الزوائد: ١٣١/٧.

دې اوچه د سرې اوبه د ښخې په اوبه ور ورانديږ شي نو هلك پيداكيږي او چه د ښځې اوبه د سړي په اوبوباندې ورانديږ والې اوكړي نو هم د هغې طرف ته ځي(١) په بل حديث كښي دومره زياتوالي دې چه تپوس ئې اوكړو جنتيانوته به د دې خوراك نه پس څه ملاويږي؟ وئې فرمائيل جنتي غوابه به حلال كړې شي چه په جنت كښې څرن كوي. تپوس اوشو چه هغوي ته به اوبه څنګه ملاويږي؟ اوفرمائيلې نو دسلسبيل نومې د نهر نه(٢) دا هم وئيلې شوي دي چه د "ن" نه مراد د نورتختئي ده. په يومرسل غريب حديث كښي دي چه رسول الله ﷺ دا آيت اولوستلو او وئې فرمائيل دې نه مراد د نورتختئي اود نورقلم دې چه د قيامت پورې په احوالو چليدلې دې. ابن جريج فرمائي ماته خبر راكړې شوې دې چه دا نوراني قلم د سلوكالو پورې اوږدوالې لرى اوداهم وئيلې شوي دي چه د "ن" نه مراد دوات او د قلم نه مراد قلم دې. حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله هم دا فرمائيلي دي. په يو ډير غريب مرفوع حديث كښې داهم روايت دې كوم چه په ابن ابي حاتم كښي دې الله تعالى "ن" پيدا كړواوهغه دوات دې.(٣)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه الله تعالى نون يعنى دوات پيدا كړو قلم ئې پيداكړو بيائې اوفرمائيل ليكه هغه تپوس اوكړو څه اوليكم؟ اوفرمائيلې شو چه څه د قيامته پورې كيدونكي دي. عملونه كه هغه نيك وي كه بد، رزق كه حلال وي كه حرام، بيا داهم چه كوم څيز به كله دنياته راځي، څومره اندازه باندې به وي او څنګه به اوځي؟ بيا الله تعالى په بنديګانوباندې حفاظت كونكې فرښتې مقرر كړې او په كتاب باندې داروغه مقرركړې. محافظې فرښتې هره ورځ د خازن فرښتونه معلومات كوي او ليكي. كله چه رزق ختميږي عمر پوره كيږي مرګ رارسي نو محافظې فرښتې داروغه فرښتو له ورځي تپوس كوي چه د نن ورځې كوم يوسامان دې؟ هغوي به وائي چه د دې سړي د پاره زمونږ سره هيڅ هم نشته. دې اوريدو سره فرښتې لاندې راكوزيږي نوګوري چه هغه مړ شوې وي.د دې بيان نه پس حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل تاسوخو عرب ئې آيا تاسو په قرآن پاك كښې دمحافظو فرښتوپاره كښې دا نه دي لوستلي ﴿إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ مطلب دا دې چه مونږ ستاسو اعمال د اصل نه نقل كول اوليكل.داخوور دلفظ "ن" متعلق بيان.

**د قلم ذكر:-** اوس دقلم باره كښې واورئې. په ظاهره دلته عام قلم مراد دې په كوم سره چه ليكل كيږي لكه چه بل ځائې كښې ارشاد رباني دې ﴿الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ﴾ يعنى الله تعالى په قلم سره ليكل اوخودل نود دې قسم خوړلوسره ددې خبرې خبرروكوي چه په مخلوق باندې زمايونعمت داهم دې چه ما دوي ته ليكل اوخودل په كوم سره چه د دوي علوموته رسيدل اوشي. په دې وجه ئې ددې نه پس اوفرمائيل ﴿وَمَا يَسْطُرُونَ﴾ يعنى دهغه څيزقسم چه ليكل كوي.دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ددې تفسيردا هم نقل دې چه دهغه څيز چه پيژني.سدى رحمه الله فرمائي چه دې نه مرادد فرښتوليكل دي چه د بنديګانو اعمال ليكي. اونورمفسرين وائي چه دې نه مراد هغه قلم دې كوم چه په قدرتي توګه روان شواوتقدير ئې اوليكلو. د زمكې او آسمان د پيدا كيدونه پنځوس زره كاله وړاندې اود دې قول په دليل كښې دغه دله هغه احاديث واردكوي كوم چه دقلم په ذكر كښې روايت شوي دي. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه دقلم نه مراد هغه قلم دې په كوم سره چه ذكر ليكلې كيږي.

**قوله تعالى:- ﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾**

**د نبى كريم ﷺ د اخلاقو يوڅو واقعات:-** بيافرمائي چه اې نبى الحمدلله ته ديوانه نه ئې لكه څنګه چه ستا دقول منكران حق وائي بلكه ستاد پاره لوئ اجرونه اوبې حسابه ثوابونه دي چه نه ختميږي نه پريكيږي.

(١) صحيح بخارى ك تاب احاديث الانبياء باب خلق آدم وذريته: ٣٣٢٩، احمد:٣/١٠٨، ابن حبان:٧١٦١.
(٢) صحيح بخارى كتاب الحيض باب بيان صفة منى الرجل والمراة: ٣١٥، حاكم:٣/٤٨١، ابن حبان:٧٤٢٢.
(٣) الشريعة للآجرى:١٧٩.

اونه کېږي څکه چه تاد رسالت حق اداکړې دې اوزمونږ په لارکښې دې د سخت نه سخت تکلیفونه برداشت کړي دي مونږ به تاته بې حسابه بدله درکوو. ته په ډېرو ښو اخلاقو باندې ئې یعنی په دین اسلام باندې ئې او په بهترین ادب باندې ئې.

د حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه د حضور ﷺ د اخلاقوباره کښې تپوس کېږي نو هغه جواب ورکوي چه دحضور ﷺ اخلاق خو قرآن پاك وو. حضرت سعید ﷺ فرمائي لکه څنګه چه په قرآن پاك کښې دی[1] په دویم حدیث شریف کښې دی حضرت صدیقه ﷺ تپوس اوکړو چه ولې تاقرآن پاك نه دې لوستلې؟ تپوس کونکی حضرت سعیدبن هشام ﷺ اوونیل چه اولوستلې مې دې. نو هغې اوفرمائیل چه نود حضور ﷺ اخلاق قرآن کریم وو. په مسلم شریف کښې دا حدیث پوره پوره دې ([2]) کوم چه به مونږ په سورت مزمل کښې بیانوو. ان شاء الله تعالی. د بنوسواد یوسړي دحضرت عائشه صدیقه ﷺ نه هم دا سوال کړې وو نو هغوی هم دا فرمائیلي وواوبیانی داآیت ﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ تلاوت اوفرمائیلو. هغه وئیل چه یوه نیمه واقعه خو بیان کړئي.حضرت عائشه ﷺ اوفرمائیل واوره یوخل ما هم د حضور ﷺ د پاره خوراك تیارکړو او حضرت حفصه رضي الله عنه هم . ما خپلې وینځې ته اوونیل چه ګوره که زما د خوراك نه اول د حضرت حفصه ﷺ خوراك تیار شوراغلو نو راګذارئي کړه. نو هغې هم داسې اوکړه او لوښې هم مات شو. حضور ﷺ شیندلي شوې خوراك راغونډکړو او ونی فرمائیل چه د دې لوښي په بدل کښې به ته ثابت لوښې ورکوې او هیڅ غصه اورټنه ئې اونه کړه([3])

مطلب دا حدیث په ډېرو طریقو سره په مختلفوالفاظوسره په مختلفوکتابونوکښې دې چه یوخود پیغمبر ﷺ د شروع اوپیدا کیدونه الله تعالی خوښ کړې شوی اخلاق بهترین خصلتونه او پاك عادتونه کیخودې وو نودغه شان د حضور ﷺ عمل په قرآن پاك باندې هم داسې وو لکه چه د قرآن پاك یومجسم عملي نمونه وو.د هریوحکم په خاتې راوړلوا ود هرې نهي نه بندیدلو کښې دحضور ﷺ حالت دا ووچه په قرآن پاك کښې کوم څه دي نو هغه هم دحضور ﷺ د ښکلې اوعزت مندو اخلاقو بیان دې.دحضرت انس ﷺ بیان دې چه مادرسول الله ﷺ لس کاله خدمت اوکړو خویو ورځ ئې راته اف قدرې هم نه دې فرمائیلې. که د کولویوکار به مې اونه کړو او یا د نه کولوکاربه مې اوکړو نو غصه اورټل خو څه چه دومره به ئې هم نه فرمائیل چه داسې دې ولې اوکړه([4])حضور ﷺ د ټولونه زیات دخواخلاقو مالك وو.

([5]) دحضور اکرم ﷺ د تلی(ورغوی) نه زیات نرم نه ریښم وو او نه څه بل څه څیز. د حضور اکرم ﷺ د خولې نه زیات خوشبودار څیز ما نه دې بوئې کړې نه مشك نه اونه عطر([6])په صحیح بخاری کښې دی چه حضرت براء ﷺ فرمائي رسول الله ﷺ د ټولونه زیات ښائسته او د ټولونه زیات خلیق وو. د حضور ﷺ قد نه ډېر اوږد اونه ډېر ټیټ وو([7]) په دې باره کښې نورهم ډېر احادیث دي.

شمائل ترمذی شریف کښې د حضرت عائشه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ نه چرې په خپل لاس باندې یوخادم یا غلام وهلې اونه ئې بیبیانې او بچی اونه ئې بل څوك، اود الله تعالی د لارې جهاد خو یو بله خبره ده. کله به چه حضور ﷺ ته په دوو کارونوکښې اختیاورکړې شو نو حضور ﷺ به هم هغه

---

[1]) الطبری:۵۲۹/۲۳.
[2]) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب جامعة صلاة اللیل ومن نام عنه اومرض:۷۴٦.
[3]) احمد:۱۱۱/٦،ابن ماجه کتاب الاحکام باب الحکم فیمن کسر شیئا:۲۳۳۳. (مسنداحمد)
[4]) صحیح بخاری کتاب الادب باب حسن الخلق والسخاء: ٦۰۳۸، صحیح مسلم:۲۳۰۹، ابوداؤد:۴۷۷۴، احمد:۲۵۵/۲.
[5]) صحیح مسلم کتاب الفضائل باب حسن خلقه ﷺ:۲۳۱۰.
[6]) صحیح بخاری کتاب الصوم باب مایذکر من صوم النبي ﷺ والفطاره:۱۹۷۳، صحیح مسلم:۲۳۳۰.
[7]) صحیح بخاری کتاب المناقب باب صفة النبي ﷺ:۳۵۴۹، صحیح مسلم:۲۳۳۷.

خوښولو چه کوم به ډير اسان وو. اودايوه بله خبره وه که په هغې کښې به څه ګناه وه نود هغې نه به ډيرلرې کيدو. حضور ﷺ کله هم خپله بدله د چا نه نه ده اخستې اودا خبره ده چه که چا به د الله تعالى حرمتونه ماتول نو نبى کريم ﷺ به د الله تعالى د احکاموجارى کولود پاره خامخا انتقام اخستلو[1] مسنداحمدکښې حضور ﷺ ارشاد فرمائى چه زه د بهترينو اخلاقو او پاکيزه عاتونوپوره کولود پاره راغلې يم[2] بيا فرمائى چه اې نبى ﷺ ته اوستا مخالف اومنکربه ډير زر پوهه کړې شى چه په حقيقت کښې دهوکه شوې او ګمراه څوک دې؟ لکه چه بل ځائى کښې فرمائى ﴿سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ﴾ دوى ته به اوس ياصبامعلومه شى چه دروغژن او ځان خودونکى شرارتى څوک وو؟ يوبل ځائى کښې ارشاد دې ﴿ وَإِنَّا أَوْ إِيَّاكُمْ لَعَلَىٰ هُدًى أَوْ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ مونږ يا تاسو په هدايت باندې که په ښکاره ګمراهئ باندې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى چه داحقيقت به د قيامت په ورځ راښکاره شى[3]دهغوى نه روايت دې چه مفتون مجنون(ليونى) ته وائى[4]دمجاهد رحمه الله وغيره هم دا قول دې[5]قتاده رحمه الله فرمائى چه څوک شيطان سره ډير نيزدې دې؟دمفتون ظاهرى معنى داده چه دحق نه واوړى اوګمراه شى. په ﴿بِأَييِّكُمُ﴾ باندې "ب" څکه داخل کړې ده چه هغه دلالت شى﴿فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ﴾کښې تضمين فعل دې نو تقدير عبارت ملاوولوسره به ترجمه داسې شى چه ته به هم او هغوى به هم ډير زر اوپيژنى او تاته هم اوهغوى ته به هم ډير زر د مفتون خبرورکړې شى. والله اعلم. بيا فرمائى چه په تاسوکښې دهوکه خوړونکې او په نيغه لار باندې تلونکې ټول الله تعالى ته ښکاره دى هغه ته ښه معلوم دى چه د نيغې لار نه د چا قدم خوئيدلې دې.

<table>
<tr><td colspan="4">فَلَا تُطِعِ ۝ الْمُكَذِّبِينَ ۝</td></tr>
<tr><td colspan="4">پس مه منه خبره | ددروغ ګڼړونکو خلقو</td></tr>
<tr><td colspan="4">نو ته ددروغ ګڼړونکو تابعدار مکوه</td></tr>
<tr><td colspan="4">وَدُّوا ۝ لَوْ تُدْهِنُ ۝ فَيُدْهِنُونَ ۝ وَلَا تُطِعْ ۝ كُلَّ حَلَّافٍ</td></tr>
<tr><td colspan="4">غواړى دوئ | که ته نرمى اوکړې | نو دوئ به هم نرمى اوکړى | او خبره مه نه | دهر قسم خور</td></tr>
<tr><td colspan="4">دوئ خو دا غواړى چې ته نرم شې | نودوئ به هم نرم شى | او د هر قسم خور تابعدارى هم کوه</td></tr>
<tr><td colspan="4">مَّهِينٍ ۝ هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ ۝ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ</td></tr>
<tr><td colspan="4">سپک سړى |عيب ويونکى | وړونکې دچغلئ | منع کونکې خير لره |دحدنه اوړيدونکې |</td></tr>
<tr><td colspan="4">چې سپک دې| عيب لګونکې دې | ګرزنده چغل خور دې | د نيکئ د کارونو منع کونکې دې|دحد نه</td></tr>
<tr><td colspan="4">أَثِيمٍ ۝ عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ۝ أَن كَانَ ذَا مَالٍ</td></tr>
<tr><td colspan="4">سخت ګنهګار |بدخويه | پس ددې ټولو عيبونو نه |بداصله دې | په دې وجه چې وو هغه|خاوند دمال</td></tr>
<tr><td colspan="4">تيريدنکې دې غټ ګناهګار دې | بدخويه دې | د دې هرڅه نه علاوه بدذاته دې| دا څکه چې دې دمال</td></tr>
</table>

[1] احمد/٦/٢٣٢، ابوداؤد ٤٧٨٦وهوحديث صحيح، اصله عند مسلم:٢٣٢٨
[2] احمد: ٢/٣٨١.
[3] تفسيرقرطبى:١٨/٢٢٩.
[4] الطبرى:٢٣/٥٣١.
[5] ايضا.

| |
|---|
| وَبَنِيْنَ ۞ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۞ |
| او داولاد \| كله چي \| اولوستې شي \| په هغه باندې\|ايتونه زمونږه\| نو واني قيصې دي د ړومبنو خلقو |
| اواولاد خاوند دې \|كله چې ورته زمونږ اياتونه اولوستې شي\|نووائي چې داخو دپخوانو خلقوافسانې دی |
| سَنَسِمُهٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ ۞ |
| زر دې چې داغ به كيږدو هغه لره \| په خر تم (پوزه) باندې \| |
| مونږ به روله زر په پوزه داغ اولګوو |

**قوله تعالى:- فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِيْنَ۞**

**دخرابو اخلاقو تفصيلي مذمت:** الله تعالى ارشادفرمائي اې نبی ﷺ كوم نعمتونه چه مونږ تاته دركړې، كوم صراط مستقيم او خلق عظيم مونږ تاته دركړې اوس تاله پكار دې چه زمونږ د نه منونكو ته اونه منې د هغوی خو دا خواهش دې چه ته لږه شان هم نرمی اوكړې نو دوی به چغې صورې جوړې كړې. اودائي هم مطلب دې چه تاله پكاردی د دوی دباطلو معبودانوطرف ته خو لږ شان مخ كړه د حق نه لږ شان اخوا ديخوا شه. بيافرمائي چه ډېر قسمونه خوړونكو كمينه سړی هم مه منه. د دروغژن سړی د خپلې دروغ وينا د ښكاره كيدلو ويره وی په دې وجه هغه په قسمونوخوړلوسره نورو ته خپل يقين وركول غواړی. د قسم د پاسه قسم خوری اود الله تعالى نومونه بې موقعې استعمالونكې ګرځي.

ابن عباس ﷺ فرمائي چه د (مَهِيْنٍ) نه مراد كاذب يعنې دروغژن دې[۱] مجاهد رحمه الله فرمائي دكمزوری زړه والا حسن رحمه الله وائي (حَلَّافٍ) مكابره كونكې او (مَهِيْنٍ) ضعيف كمزورې (هَمَّازٍ) غيبت كونكې چغل خورچه ديوخائي بل خائي نه نې غوږ لګولې وی دې دپاره چه فساداوشی.په طبيعتونو كښې خرابوالې او زړونوكښې خيرنوالې راشي. د رسول الله ﷺ په لاركښې دوه قبرونه راغله نو وئې فرمائيل دواړه په عذاب دی اويه څه لوئې كارنه بلكه يوخو به په متيازوكولوكښې پرده نه كوله او بل چغل خور وو[۲] فرمائي چغل خور به جنت ته نه خي.[۳]

په بل روايت كښې دی چه حضرت حذيفه ﷺ دا حديث هغه وخت اوروليې ووكله چه هغوی ته اووئيلې شوچه دا سړې د خفيه پوليس سړې دې[۴] دمسنداحمد په حديث كښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه زه تاسوته اونه ښايم چه تاسوكښې د ټولونه ښه سړې څوك دې؟ خلقو عرض اوكړو ضرور ارشاد اوفرمائې.وې فرمائيل چه كله هغه ته اوكورې اوالله تعالى درته ياد شي.او واورئې د ټولونه خراب سړې هغه دې چه چغل خور وی په دوستانو كښې فساد اچونكې وی، په پاكو اوصفاخلقو باندې تهمت لګونكې وی[۵] دحلالو كارونواوحلالوخيزونونه اخواكيږی اودحرام خوراك اوحرام كارئې كښې پريوځي. ګناهګار بدكار او محرمات استعمالونكې بدخويه اوبدء ويناجمع كونكې اونه وركونكې دې.

د مسنداحمد په حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائيلې دی جنتی خلق پريوتې عاجز اوضعيفان دی چه د الله تعالى په نيز په هغه اوچته مرتبه دی كه هغوی قسم اوخوری نو الله تعالى ئې پوره كوی او دوزخی خلق سركش متكبر او خان خودونكی دی[۶] يو بل حديث كښې دی چه جمع كونكی اونه وركونكی

---

[۱] الطبری:۵۳۲/۲۲.
[۲] صحيح بخاری كتاب الوضوء باب من الكبائران لايستتر من بوله:۱۲۱۶، صحيح مسلم:۲۹۲.
[۳] صحيح بخاری كتاب الادب باب مايكره من النميمة:۶۰۵۶، صحيح مسلم:۱۰۵، ابوداؤد:۴۸۷۱، ترمذی:۲۰۲۶، احمد:۳۸۶/۵.
[۴] صحيح بخاری كتاب الايمان باب بيان تغليظ تحريم النميمة:۱۰۵، احمد:۳۸۹/۵.
[۵] احمد:۴۵۹/۶ ح ۲۷۵۹۹ وسنده حسن، شهربن حوشب حسن الحديث والحملة.
[۶] صحيح بخاری كتاب التفسير سورة ن والقلم باب (عتل بعد ذلك زنيم):۴۹۱۸، صحيح مسلم: ۲۸۵۳، ترمذی: ۲۶۰۵،

بده وينا كونكي او سخت اخلاق خلق. (١) په يو بل روايت كښې دي چه د حضوراكرم ﷺ نه تپوس اوشو(عتل زنيم) څوك دی؟ وئی فرمائيل بداخلاق بنه خوراك څښناك كونكی په خلقو باندې ظلم كونكی خيټوان سړی(٢)خودا روايت اكثرو راويانو مرسل بيان كړې دې. په يو بل حديث كښې دی چه په هغه نالائق باندې آسمان ژاړی چاته چه الله تعالی صحت وركړې د خوراك د پاره ئی په ډكه خيټه وركړی مال او عزت هم وركړی بيا هم په خلقو باندې ظلم كوی. داحديث هم په دوو مرسل طريقوباندې روايت دې.غرض عتل وائی دچابدن چه صحيح وی طاقتوروی اوښه خوراك كونكې اوزوراور سړې وی ذ زَنِيۡمٍ مفهوم اوددې مصداق:(زَنِيۡمٍ) نه مرادبدنام دې چه په بدنی كښې مشهور وی.په عربی لغت كښې زنيم هغه سړی ته وائی چه په يوقوم كښې پوهه گنړلې شی خود هغه قوم نه نه وی. عربو شاعرانو هغه هم په دې معنی كښې تړلې دې. يعنی د چانسب چه صحيح نه وی. ونيلې شی چه دې نه مراد اخنس بن شريق ثقفی دی چه د بنوزهره حليف وو. او بعضې وائی چه دا اسود بن عبديغوث زهری دې. عكرمه ﷺ فرمائی ولدالزنا مراد دې.داهم بيان شوې دې چه څنگه يوه چيلئی د نورو چيلونه خان له او جدائی خپل خيرلې غوږ په خپل سټ زړوندكړې وی نو هغه په يونظركښې پيژندلې شی دغه شان كافريه مؤمنانو كښې پيژندلې شی دغه شان نور هم ډير اقوال دی خوخلاصه د ټولوصرف دومره ده چه زنيم هغه سړې دې كوم چه په بدنی سره مشهور وی او په عام توكه داسې خلق د اخوا ديخوانه ملاوشوې وی د چا چه د صحيح نسب او حقيقی پلار پته نه وی. په داسې خلقو باندې د شيطان غلبه ډيره زياته وی. لكه چه په حديث شريف كښې دی د زنااولاد به جنت ته نه ځی (داحديث بعضې خلقو موضوع گنړی).(٣)

قوله تعالی:-أَنۡ كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِيۡنَ ۝

په يوبل روايت كښې دې چه د زنا اولاد د دريوخراب خلقو د بدئی مجموعه ده كه هغه هم د خپل مور پلارپه شان كاراوكړی(٤) بيافرمائی د دوی د دې شرارتونوجه داده چه دوی مالدار او د خامنوپلاران جوړ شو.زمونږ ددې نعمت تعريف كول خوڅه چه زمونږ آياتونه دروغ گنړی او بې عزتی كولوسره كرخی وائی چه داخوزړې قصې دی.يوبل خائی كښې الله تعالی ارشادفرمائی(ذَرۡنِيۡ وَمَنۡ خَلَقۡتُ وَحِيۡدًا)ما پريږدی اوهغه كوم چه مايوازې پيداكړی دی اوډير مال مې وركړې دې او تكړه خامن مې وركړی دی او نور مې هم ډير آسانتی وركړی دی بياهم په دې طمع كښې دی چه زه به دوی ته نورهم وركړم هيڅ كله داسې نه شی كيدې. دوی خوزما د آياتونومخالف دی. زه به دوی ډير زر په ډيرخراب مصيبت كښې اخته كړم. هغه غوراوفكركولوسره اندازه اولگوله چه دا تباه شی څومره خراب سوچ ئې اوكړو.زه بيا وايم دادې برباد وی هغه څنگه خراب تجويز اوكړو هغه بيا نظر واچولو اوخفه شو شكل ئی جوړكړو مخ نی واړولوپاسيدو اوونی ونيل دا د الله تعالی كلام خو پخوانې نقل كړې شوې جادو دې صفا معلومه ده چه دا انسانی كلام دې د دوی په دې خبره به زه هم دوی په سقركښې ورواچوم. تاته څه معلومه ده چه سقرڅه څيز دې؟ هغه هيڅ څيز نه باقی ساتی اونه ئی باقی پريږدی په بدن پورې اينخلی او په دې باندې نورلس فرښتې مقرر دی. دغه شان دلته ئی هم اوفرمائيل چه د دوی په پوزه به مونږ داغ اولگود يعنی داسې به ئی رسواكړو چه دهغوی بدی به د چانه پټه نه وی. هريوبه هغه اوپيژنی.لكه نښه لگولې شوې پوزې والا چه په زرگونو سړو كښې خلق پيژنی. او چه څوك داغ پټوی نو پټولې به ئی نه شی. دا

---

(١) احمد:٣/١٦٩وسنده صحيح، مجمع الزوائد:١٠/٣٩٦.
(٢) احمد:٤/٢٢٧، مجمع الزوائد:١٠/٣٩٦.
(٣) احمد:٣/٢٠٣ ح ٦٨٩٢،مجمع الزوائد:٦/٢٥٧، حلية الاولياء: ٣/٣٠٧،الموضوعات لابن الجوزی:٣/١١٠.
(٤) احمد:٦/١٠٩، ابوداؤد: ٣٩٦٣،وسنده صحيح بلفظ ولدالزناشر الثلاثة، مشكل الآثار:١/٣٩١، حاكم:٢/٢١٤.

هم ونیلی شوی دی چه دبدر په ورځ به د دوی پوزې په توره لګی اودا هم ونیلې شوی دی چه د قیامت په ورځ به پرې د دوزخ مهر لګی یعنی مخ به ورله تورولې شی نو د پوزې نه مراد پوره مخ شو.
امام ابوجعفر ابن جریر رحمه الله دا ټول اقوال نقل کولوسره فرمائیلی دی چه په دې ټولوکښې داسې تطبیق کولې شی چه دا ټول کارونه به په هغوی کښې کیږي. دا به هم وی او هغه به هم او په دنیاکښې به هم رسوا کیږی او په رښتیابه ئی په پوزه نښه لګی. په آخرت کښې به هم د نښې والا مجرمان جوړیږی. او په حقیقت کښې دا ده هم ډیره صحیح. ابن ابی حاتم کښې د رسول الله ﷺ فرمان دې چه بنده د الله تعالی په نیزد باندې په زرګونوکلونو پورې مؤمن لیکلې شی خومرکیږی په هغه حال کښې چه الله تعالی ترې ناراض وی. او یوبنده په زرګونوکلونو پورې د الله تعالی په نیزد کافر لیکلې کیږی خود مرګ په وخت الله تعالی دهغه نه خوشحالیږی. اوچه کوم سړې د عیب لګولو او چغلئی خوړلو په حالت کښې مرکیږی اوچه د خلقو بدنامونکې وی نود قیامت په ورځ به د هغه په پوزه باندې د دواړوشونډو د طرف نه نښه لګولې شی کوم چه به د دې مجرم غلامت جوړیږی.

| |
|---|
| إِنَّا بَلَوْنَٰهُمْ |
| ابیشکه مونږه په ازمینبت کښی واچولی دی دوی |
| مونږ ددوی داسې |

| كَمَا بَلَوْنَآ | أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ | إِذْ |
|---|---|---|
| لکه څنګه چې مونږ په ازمینبت کښی اچولی ووا خاوندان (مالکان) دباغ | | کله چې |
| امتحان اخلو \| لکه څنګه چې مو د باغ دخاوندانو امتحان اخستې ووا څه وخت چې هغوی | | |

| أَقْسَمُوا | لَيَصْرِمُنَّهَا | مُصْبِحِينَ |
|---|---|---|
| هغوی قسمونه اوخوړل | چې خامخا به پریکوی میوه دهغې | په وخت دصبا کښې |
| قسم خوړلې ووا ............ چې میوه بهٔ ترې سحر وختی کټ کړو | | |

| وَلَا يَسْتَثْنُونَ | فَطَافَ | عَلَيْهَا | طَآئِفٌ | مِّن رَّبِّكَ |
|---|---|---|---|---|
| او استثنائې نهٔ کوله | پس اوګرزیدو | په هغې باندې | یو ګرزیدونکې (افت) | دطرفه درب ستا نه |
| اوانشاء الله ئې هم ونیلې نه وهٔانو په دغه باغ ستادرب د طرف نه یو تاویدونکې عذاب راتاؤ شو | | | | |

| وَهُمْ | نَآئِمُونَ | فَأَصْبَحَتْ | كَٱلصَّرِيمِ | فَتَنَادَوْا |
|---|---|---|---|---|
| او هغوی | اوده وو | پس شو هغه باغ | پشان دریبلی شوی فصل | نو هغوی اواز اوکړو یو بل ته |
| هغوی لا اوده پراته ووا اوهغه باغ لکه د ریبلې شوې پټې پشان پاتې شوا نو هغوی | | | | |

| مُصْبِحِينَ | أَنِ ٱغْدُوا۟ عَلَىٰ حَرْثِكُمْ | إِن كُنتُمْ | صَٰرِمِينَ |
|---|---|---|---|
| په وخت دصبا کښی | چې سحر وختی ورشئ فصل خپل ته | که یئ تاسو | رشتونکی (لوکونکی) |
| صبایوبل ته نعرې کړې \| چې خپل پټی ته وختی اورسیږئ \| که میوه ټولول غواړئ | | | |

| فَٱنطَلَقُوا۟ | وَهُمْ يَتَخَٰفَتُونَ | أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا |
|---|---|---|
| پس روان شو هغوی | او هغوی دیو بل سره پټې پټې خبری کولې | اچې هرګز داخل نهٔ شی دې باغ ته |
| غرض دا چې ټول روان شول \| اوپټې پټې خبرې ئې کولې \| چې (ګوری) نن تاسو ته | | |

| عَلٰى حَرْدٍ | وَّغَدَوْا | مِّسْكِيْنٌ | عَلَيْكُمْ | اَلْيَوْمَ |
|---|---|---|---|---|
| په فيصله دنه ورکولو فقيرانو ته | او سحر وختي لاړل | يو مسکين | په تاسو باندې | نن ورځ |

يو مسکين هم رانشي ........... او پخپل قدرت (او تدبير) غاوره په تيزئ سره سحر وختي

| قَالُوْٓا | رَاَوْهَا | فَلَمَّا | قٰدِرِيْنَ |
|---|---|---|---|
| نو وې وئيل | وې ليدو هغه باغ | پس هر کله چې | (لکه چې) هغوئ قادر دی (په شوکولو دميوو) |

اورسيدل ............................نو چې دا (تباه شوې باغ) ئې اوليدو نو وې وئيل

| اَوْسَطُهُمْ | قَالَ | مَحْرُوْمُوْنَ | بَلْ نَحْنُ | اِنَّا لَضَآلُّوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| بهتر سړی دهغوئ | اووئيل ادټولونه | محرومه پاتې شو | ابلکه مونږه | بيشکه مونږه لاره ورکه کړې ده |

چې (غالبا) مونږ لاره خطا کړې ده | بلکه رښتيادا ده چې قسمت موبندد چې اپه هغوئ کښې لږ ښه سړې دا ووئيل

| سُبْحٰنَ | قَالُوْا | لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ | لَّكُمْ | اَلَمْ اَقُلْ |
|---|---|---|---|---|
| پاکي ده | اووئيل هغوئ | چې ولې نه وايئ تاسو تسبيح | تاسو ته | ايا ما نه وو وئيلي |

ما تاسو ته نه وو وئيلي چې دالله ﷻ پاکي ولې نه بيانوئ | ..........بيانې اووئيل چې پاک دې

| عَلٰى بَعْضٍ | بَعْضُهُمْ | فَاَقْبَلَ | ظٰلِمِيْنَ | اِنَّا كُنَّا | رَبِّنَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| خينو نورو ته | خينو دهغوئ | بيا مخ کړو | ظالمان | چې بيشکه وو مونږه | رب زمونږ لره |

زمونږ رب | بيشکه هم مونږ خطاکار وو | بيا ئې يوبل ته کتل او الزامونه لګول ئې شروع کړل

| طٰغِيْنَ | اِنَّا كُنَّا | يٰوَيْلَنَآ | قَالُوْا | يَتَلَاوَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| سرکشه | بيشکه وو مونږه | اے افسوسه زمونږه | اووئيل هغوئ | چې يو بل ئې ملامته کولو |

بيانې اووئيل | .........چې هائې افسوس دې په مونږ ا | هم مونږ د حد نه تيريدونکي يو

| اِنَّآ | مِّنْهَآ | خَيْرًا | اَنْ يُّبْدِلَنَا | عَسٰى رَبُّنَآ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه مونږه | ددې نه | بهتره | په بدله کښې راکړې مونږ له | اميد دې چې رب زمونږه |

اميد دې چې مونږ ته خپل رب ددې نه غوره (باغ) په بدله کښې راکړي | بيشکه مونږ

| اَكْبَرُ | وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ | كَذٰلِكَ الْعَذَابُ | رٰغِبُوْنَ | اِلٰى رَبِّنَا |
|---|---|---|---|---|
| ډير لوئ دې | او خامخا عذاب دآخرت | همدارنګې وی عذاب | رجوع کونکي يو | رب زمونږ ته |

خپل رب ته رجوع کونکي يو | عذاب (چې راغې نو) داسې راځي او د آخرت عذاب ډير لوئې دې

| يَعْلَمُوْنَ | لَوْ كَانُوْا |
|---|---|
| چې پوهيدلې | افسوس که وې دوئ |

کاش! دوئ پرې پوهيدلې

**قوله تعالى:- كَمَا بَلَوْنَآ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ**

١ **د باغ والا تفصيلي واقعه:-** دلته د هغه کافرانو چه رسول الله ﷺ ئې دروغ ګڼړلو مثال بيانولې شي چه څنګه د باغ والا وو دالله تعالى ناشکری اوکړه اود الله تعالى په عذابونو کښې خپل ځان ورواچولو. هم دغه حال

د دې کافرانوهم دې چه دالله تعالی نعمت یعنی حضوراکرم ﷺ دپیغمبرنې ناشکری اوانکار هغوی د الله تعالی ناراضګئې مستحق اوګرځول نو ونې فرمائیل چه مونږ دوی هم ازمیښت کړل څنګه چه مونږ د باغ والا ازمیښت کړې وو. په کوم باغ کښې چه قسم قسم میوې دانې وغیره وې. دې خلقو په خپل مینځ کښې قسمونه اوخوړل چه د سحر کیدونه وړاندې وړاندې به په شپه کښې میوې راکوزې کړو چه فقیرانو مسکینانو او سوال کونکو ته پته هم اونه لګی چه هغوی راشی اودرپړی اومونږ هغوی له هم ورکوو بلکه ټولې میوې دانې به پخپله یوسو. په خپل دې چل باندې اوکامیابئی باندې د هغوی شرور وو او په دې ډیر خوشحاله وو تردې چه الله تعالی ترې هم هیرشو ان شاء الله پورې د چا د ژبې نه اونه وتلو. په دې وجه د هغوی داقسم پوره نه شو هم د شپې شپې د هغوی د رسیدو نه وړاندې آسمانی آفت هغه ټول باغ اوسوزولو او هیره ئې ´ړ داسې شولکه توره شپه او پریکړې شوې فصل.ددې د پاره حضوراکرم ﷺ ارشاد فرمائی چه خنفو د ګناهونوه بچ شئ د ګناهونو په وجه انسان د هغه رزق نه هم محروم کولې شی کوم چه دهغه دپاره تیارکړې شوې وی. بیا ئې د دې دواړو آیاتونو تلاوت اوفرمائیلو چه دا خلق د خپلې ګناه په سبب د خپل باغ د میوې او پیداوار نه بدنصیبه شو.(ابن ابی حاتم)

د سحر په وخت کښې دوی یوبل ته آوازونه ورکوی که د میوو شوکولواراده مووی نو وخت مه لګونی اوسحر وختی اوځئ.عبدالله ابن عباس﷛ فرمائی چه داباغ دانګورو وو.اوس دوی پټ پټ خبرې کولې چه څوك ئې وانوری اوغریبانانومسکینانوته پته اونه لګی.نود دوی غوړایستنې خود هغه الله تعالی نه پټیدې نه شوې چه دزړه د ارادونه هم پوره شان سره واقف دې.هغه بیان فرمائی چه ددوی دا پټې خبرې داوې چه ګورئ هوښیار اوسیږئ چامسکین ته پته اونه لګی اودلته رانه شی هیڅ کله یوفقیرهم په باغ کښې مه پریږدئ.اوس پوره طاقت اوسختئی سره په پخه اراده سره اوپه غریبانانوباندې غصې سره باغ ته لاړل. سدی ﷬ فرمائی چه حروان دکلی نوم وو خوداځه ډیر صحیح نه معلومیږی دوی پوهیدل چه اوس په میوو باندې قابض دی اوس به ئې راکوزې کړو او ټولې به راوړو.خو چه هلته اورسیدل نو حیران او پریشان پاتې شو. ګوری چه چپې وهونکې تك شین ډك باغ د میوو نه ډکې ونې پخې میوې ټولې غرقې او تباه شوی دی په ټول باغ کښې سیلئی ګرځیدلې او ټول باغ سره د میوو سوزیدلې سکاره شوې دې.یوه میوه د نیم قیمت هم پاتې نه وه ټول تازه والې اینختلو سره بدل شوې. ټول باغ سوزیدلې ایره شوې دې د ونو تور تور ویرونکې ښاخونه ولاړ دی نو اول خوئې وئیل چه مونږ لارهیره کړې ده چرته بل باغ ته راغلې یو اودا مطلب هم کیدې شی چه زمونږ طریقه کار غلط وو د کوم چه دا نتیجه شوه. بیاچه کله په غورسره کتلونه پس ئې دا یقین اوشو چه باغ خو هم زمونږ دې نو هله پوهه شو او ونې ونیل دې خو دا ولې مونږ بدقسمته یو زمونږ په نصیب کښې د دې میوې اوفائده نه وه. په دې ټولو کښې چه د عدل او انصاف والا ښیګړې او بهترنې والا وو هغه ونیل ګورئ ماخو به د اول نه تاسو ته ونیل چه تاسو ان شاء الله ولې نه وائې؟سدی ﷬ فرمائی چه د هغوی په زمانه کښې سبحان الله ونیل هم د ان شاء الله په ځائی وو.امام ابن جریر ﷬ فرمائی چه هم د دې معنی ان شاء الله ونیل دی.اودا هم اوونیلې شو چه د هغوی بهتر سړی دوی ته اوونیل چه ګورئ ماخوتاسو ته اول ونیلې وو چه تاسو ولې د الله تعالی پاکوالې او حمدوثنا نه ونې؟ دې اوریدو سره اوس هغوی ونیل چه زمونږ رب پاك دې. بې شکه مونږ په خپلو ځانونوباندې ظلم اوکړو. اوس به تابعداری په ځائی راوړو چه عذاب خو راورسیدو اوس ئې خپل تقدیر اومنلوچه سزائې ورکړه.اوس خو ئې یوبل ملامت کولو چه مونږ ډیر بد اوکړو د مسکینانو حق مو وهل غوښتل اود الله تعالی دحکم منلونه موانکار رامنځ شو بیا ټولواوونیل چه هیڅ شك نشته زمونږ سرکشئ دحد نه زیاته شوې وه پدې وجه دالله تعالی عذاب راغلو

دا واقعه دکوم کلی ده؟:- بیا وائی چه کیدې شی زمونږ رب مونږ ته ددې نه ښه بدله راکړی یعنی په دنیا کښې اودا هم ممکن دی چه د آخرت د خیال نه هغوی دا وئیلې وی. والله اعلم. د بعضو سلفو وینا ده چه دا واقعه د اهل یمن ده. حضرت سعید بن جبیر ﷺ فرمائی چه دا خلق د ضروان اوسیدونکی وو چه دصنعانه د شپږو میلوپه فاصله باندې یو کلې دې.مفسرین وائی چه دا اهل حبشه وو او د مذهب په سلسله کښې اهل کتاب وو دا باغ دوی ته د خپل پلار نه په میراث کښې ملاوشوې وو.دهغه دا دستور وو چه د باغ نه به نې خپله خرچه اوویستله اود خپل بال بچ د ټول کال خرچ به نې ترې اوویستلو او باقی ګټه به نې د الله تعالی په نوم باندې صدقه کوله. د هغه د وفات نه پس دې بچو نې په خپل مینځ کښې مشوره اوکړه او وئی وئیل چه زمونږ پلار خو بې وقوف وو چه هرکال به نې دومره لوئی رقم اخوا دیخوا ورکولو.که مونږ دې فقیرانوته ورنه کړو او خپل مال سمبال کړو نو ډیر زر به دولت مندجوړشو. دا اراده دوی پخه کړه نوپه دوی باندې عذاب راغلو چه د هغوی هغه اصل مال نې هم تباه کړو او خالی لاس پاتې شو. بیا فرمائی چه کوم سړې هم د الله تعالی د حکم خلاف اکړی اود الله تعالی په نعمتونو کښې بخل اوکړی اود مسکینانو او محتاجانو حق ادا نه کړی اود الله تعالی دنعمتونو ناشکری اوکړی په هغوی باندې هم دا قسم عذابونه وی. اودا خو د دنیاعذابونه دی او د آخرت عذاب خو لاباقی دې کوم چه ډیرسخت او ډیر خراب دې.دبیهقی په یوحدیث شریف کښې دی چه رسول الله ﷺ د شپې فصل ریبکول اودباغ میوې راشوکول منع فرمائیلې دی.[1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ لِلْمُتَّقِیْنَ | عِنْدَ رَبِّهِمْ | جَنّٰتِ | |
| بیشکه دپاره دمتقیانو | په نزد درب دهغوئ | جنتونه دی | |
| دپرهیزګارانو دپاره خپل د رب سره د | | | |
| النَّعِیْمِ ۝ | اَفَنَجْعَلُ | الْمُسْلِمِیْنَ | کَالْمُجْرِمِیْنَ ۝ |
| دنعمتونو نه ډك | آیا پس اوګرځوو مونږه حال | دمسلمانانو | پشان دمجرمانو |
| ارام باغونه دی \| نوآیا مونږ به منونکی دمجرمانو سره برابرو | | | |
| مَا لَکُمْ | کَیْفَ | تَحْکُمُوْنَ ۝ | اَمْ لَکُمْ | کِتٰبٌ |
| څه شوی دی تاسو لره | څرنګې | حکم کوئ تاسو | آیا ستاسو سره | کتاب شته |
| دا په تاسو څه شوی دی \| دا تاسو څنګه فیصلې کوئ! آیا تاسو سره(آسمانی) کتاب شته | | | |
| فِیْهِ | تَدْرُسُوْنَ ۝ | اِنَّ لَکُمْ | فِیْهِ | لَمَا |
| چې په هغې کښې | تاسو لولئ (دا) | چې بیشکه تاسو لره دی | په هغې کښې | خامخا هغه څیز |
| چې تاسو په کښې (حکمونه)لولئ \| چې په هغې کښې ستاسو د خوښې څیزونه لیکلی | | | |
| تَخَیَّرُوْنَ ۝ | اَمْ لَکُمْ | اَیْمَانٌ | عَلَیْنَا | بَالِغَةٌ |
| چې تاسو ئې خوښوئ | یا دی تاسو لره | قسمونه | په مونږ باندې | چې رسیدلی وی |
| (پراته) دی \| یا زمونږ په ذمه ستاسوباره کښې قسمونه (خوړلی) پراته دی | | | |

[1] بیهقی:۹/۲۹۰.

| إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ | إِنَّ لَكُمْ | لَمَا | تَحْكُمُونَ |
|---|---|---|---|
| دورخې دقیامته پورې | چې بیشکه وی به تاسو لره | خامخا هغه | چې تاسو پرحکم کوئ |
| چې تر قیامته به باقي پاتې وی \| اوتاسوته به دخپلو فیصلو مطابق (نعمتونه) درکولې شي | | | |

| سَلْهُمْ | أَيُّهُمْ | بِذَٰلِكَ | زَعِيمٌ | أَمْ لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| تپوس اوکړه ددوئ نه | چې کوم یو ددوئ | په دې باندې | ذمه وار (ضامن) دې | یا دوئ لره دی |
| د دوی نه تپوس اوکړه ...... چې په دوئ کښې څوک ددې ذمه وار دې؟ \| یا دوئ(د الله ﷻ) شرکان جوړ | | | | |

| شُرَكَاءُ | فَلْيَأْتُوا | بِشُرَكَائِهِمْ | إِنْ كَانُوا | صَادِقِينَ |
|---|---|---|---|---|
| شریکان | پس رادولې | شریکان خپل | که وی دوئ | رښتینی |
| کړی دی \| که داسې وی نو پکار دی چې دوئ خپل شریکان راولی \| که چرې دوئ رښتونی وی | | | | |

قوله تعالىٰ:- أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ

**نیکان او ګناهګاران به برابر نه وی:** پاس خوددنیاوی جنت اوباغ حال بیان شوې وواودالله ﷻ د نافرمانئ اودهغه د حکم خلاف کولونه په هغوی چه کوم بلا او آفت راغلو د هغې ذکر شوې وو د دې دپاره اوس دهغه متقی او پرهیزګارو خلقو حال ذکر کړې شو چاته به چه په آخرت کښې جنتونه ملاویږی د کومو نعمتونه چه به نه فناکیږی اونه به کمیږی نه به ختمیږی او نه به سخاکیږی. بیا فرمائی چه آیا دا کیدې شی چه مسلمان او ګناهګار په بدله کښې یوشان شی؟ قسم دې د زمکې او آسمان د رب چه دا نه شی کیدې څه دریاندې شوی دی تاسو څنګه دا غواړئ؟ آیا ستاسو په لاس کښې د الله تعالی د طرف نه نازل کړې شوی داسې یوکتاب شته چه په خپله تاسوسره هم محفوظ وی اود وړاندینوبه لاسونو تاسو روستونو ته هم رسیدلې وی او په هغې کښې هم دا وی کومه چه ستاسوخوښه ده اوکوم چه تاسو وائې؟ یا زمونږ چرته مضبوطه وعده او لوظ تاسو سره دې چه دا تاسو څه وائې هم دغه به کیږی او ستاسو د بې ځایه او غلط خواهشونه به پوره کیږی؟ دوی نه لږ شان تپوس اوکړه چه د دې خبرې به څوک ضامن وی اود چا په ذمه دا کفالت دې؟ تیک ده ستاسو د دروغو دا خدایان دی هم دوی په خپل صداقت کښې په ثبوت کښې پیش کړئ.

| يَوْمَ يُكْشَفُ | عَنْ سَاقٍ | وَيُدْعَوْنَ | إِلَى السُّجُودِ |
|---|---|---|---|
| په کومه ورځ چې به ښکاره کړې شي | پنډئ | او خلق رااوبللې شی | سجدې کولو ته |
| په کومه ورځ چې پنډئ به بربنډې کړې شی \| . . اودوئ به سجدې ته راغوښتې شی \| خو سجده به | | | |

| فَلَا يَسْتَطِيعُونَ | خَاشِعَةً | أَبْصَارُهُمْ | تَرْهَقُهُمْ |
|---|---|---|---|
| پس هغوئ به طاقت نه لری دسجدې کولو \| ښکته (ذلیله) به وی \| سترګې ددوئ \| راګیر کړی به وی دوئ لره | | | |
| نشی کولې \| ........ سترګې به ئې ټیټې وی \| ذلت به پرې راخور وی \| حال دا دی چې | | | |

| ذِلَّةٌ | وَقَدْ كَانُوا | يُدْعَوْنَ | إِلَى السُّجُودِ | وَهُمْ | سَالِمُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ذلت | او بیشکه وو دوئ | چې رابللې کیدل به | سجدې کولو ته | او دوئ | صحیح سالم وو |
| (په دنیا کښې)دوئ به سجدې ته رابللې شول \| ........................ اوښه روغ رمټ وو | | | | | |

| فَذَرۡنِي | وَمَن يُكَذِّبُ | بِهَٰذَا ٱلۡحَدِيثِۖ | سَنَسۡتَدۡرِجُهُم |
|---|---|---|---|
| پس پرېږده ما \| او هغه څوک چې دروغ ګڼړي \| دا کلام (قرآن) \| ډير زر به رو رو بوځو دوئ لره تباهۍ ته | | | |
| نو ته پرېږده ما او دا کلام دروغ ګڼونکی \| ............. مونږ دوئ رو رو داسې ځائې ته ورانديې کوؤ | | | |

| مِّنۡ حَيۡثُ | لَا يَعۡلَمُونَ | وَأُمۡلِي | لَهُمۡۚ | إِنَّ كَيۡدِي |
|---|---|---|---|---|
| په داسې طريقه \| چې دوئ به پر نه پوهيږي \| او زه مهلت ورکوم \| دوئ له \| بيشکه تدبير زما | | | | |
| چې دوئ ته خبر هم نشته \| ............. اوزه دوئ ته مهلت ورکوم \| بيشکه زما تدبير | | | | |

| مَتِينٌ | أَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ | أَجۡرٗا | فَهُم | مِّن مَّغۡرَمٖ |
|---|---|---|---|---|
| سخت محکم دی \| ايا ته غواړې ددوئ نه \| څه اجر \| چې دوئ ګنې \| د تاوان دوجې نه | | | | |
| ډير پوخ دې \| ايا ته د دوئ نه څه اجر غواړې \| چې دوئ دهغې د تاوان (ادا کولو) نه | | | | |

| مُّثۡقَلُونَ | أَمۡ عِندَهُمُ | ٱلۡغَيۡبُ | فَهُمۡ | يَكۡتُبُونَ |
|---|---|---|---|---|
| درانه کړې شوي دي \| ايا ددوئ سره \| علم غيب دې \| چې دوئ ئې \| ليکي \| | | | | |
| عاجزه دي؟ \| اوکه دوئ سره د غيبو څه خبر دې \| ............. چې دوئ هغه ليکي \| | | | | |

**قوله تعالى:- وَيُدۡعَوۡنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ فَلَا يَسۡتَطِيعُونَ**

**مجرم به د قيامت په ورځ سجده نه شي کولې:-** پورته خودا بيان شوی وو چه د پرهيزګاروخلقود پاره به دنعمتونو والا جنتونه وی د دې د پاره دلته اوس دا بيان کيږی چه دا نعمتونه به دوی ته کله ملاويږی؟ نوفرمائی چه په هغه ورځ په کومه ورځ چه به پنډئی کولاوولې شی يعنی د قيامت په ورځ کومه ورځ چه د ډيرو يرو ډيرو زلزلو د ډير امتحان او د ډيرو ازميښتونووالا ورځ ده اودلويلويو کارونو د ښکاره کيدلو ورځ به وی. په صحيح بخاری کښې په دې ځائی کښې د حضرت ابوسعيد خدری ﷺ دا حديث دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی فرمائيلې چه زمونږ رب به خپله پنډئی کولاوکړی نو هر يو مؤمن سړې اومؤمنه ښځه به په سجده کښې راپريوځی اوچه کوموخلقو په دنياکښې دځان خودلودپاره سجدې کولې هغوی به هم سجده کول غواړی خود هغوی ملاګانې به د تختې په شان شی يعنی سجده به اونه کړې شی.دا حديث په بخاری او مسلم دواړوکښې دې.([1])

په نوروکتابونوکښې هم دې چه په څو څو سندونواود الفاظو په وړاندې روستوکولوسره روايت دې اودا حديث مطول او مشهوردې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه ددې کشف ساق(يعنی پنډئی ښکاره کول)نه مراددې چه داورځ به دتکليف سختوالی اوغم دردورځ وی([2])کوم چه دلته په محاوره کښې بيان کړې شوې دې.(ابن جرير) اوابن جريردا په بل سند شك سره بيانوی چه د ابن مسعودﷺ يا ابن عباسﷺ نه د ﴿يُكۡشَفُ عَن سَاقٖ﴾ په تفسير کښې يوډير لوئ عظيم الشان امر نقل دې لکه چه د شاعر قول دې ﴿شالت الحرب عن ساق﴾ دلته هم د جنګ لوئی والې او عظمت بيان کړې شوې دې. د مجاهد ﷺ نه همدا روايت دې.حضرت عبدالله ابن عباسﷺ فرمائی چه د قيامت په ورځ به دا ساعت ډير سخت وی.هغوی فرمائی چه دا امرډيرسخت ډير ويرونکې او خطرناك دې.هغوی فرمائی چه کوم وخت به امر کولاوکړې شی اعمال به ښکاره شی اودا کولاويدل د آخرت راتلل دی اودې نه مراد د کار ښکاره کيدل

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة ن والقلم باب (يوم يکشف عن ساق):۴۹۱۹، صحيح مسلم:۱۸۳، ترمذی:۲۵۹۸، ابن ماجه:۱۷۹، احمد:۳/۱۶، ابن حبان:۷۳۷۷.

[2]) حاکم:۲/۴۹۲وسنده حسن.

دی دا ټول روایتونه په ابن جریر کښې دی. دې نه پس داحدیث دې چه رسول الله ﷺ ددې په تفسیر کښې فرمائیلی امر به ډیر لویٔ نوروی. خلق به د دې په وړاندې په سجده کښې راپریوځی(۱) اودا حدیث په ابویعلی کښې هم دې اوددې په اسنادو کښې یومبهم راوی دې. والله اعلم.

قوله تعالى:- خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ

سرګښ به سترګې نه شی اوچتولې: بیا فرمائی په نن ورځ به ددې خلقو سترګې پورته اوچتې نه شی اوخوار او ذلیل به وی څکه چه په دنیا کښې ډیر سرکش کبرژن او غرورکونکی وو. دصحت او سلامتیا په حالت کښې چه به دوی دسجدې کولو د پاره رابللې شو نو منع کیدل به د کوم سزا چه نن دا ملاوشوه نن سجده کول غواړی خو کولې نه شی. اول به نی کولې شوه خونه نی کوله. دالله تعالی تجلی او نور کتلو سره به ټول مؤمنان په سجده کښې راپریوځی خو کافراومنافق به سجده نه شی کولې ملاګانی به نی تخته شی ټیټیدلې به نه شی بلکه پرمخې به په شا پریوځی. دلته هم د هغوی حالت د مؤمنانو خلاف وو دلته به هم خلاف وی. بیا فرمائی چه ما اوزما داحدیث یعنی قرآن دروغ ګنړونکی خو پریږده په دې کښې سخت وعیداو سخته رټنه ده چه ته خو اودریږه زه به دوی سره پخپله ګورم. ګوره خو صحیح چه څنګه په نمبریاندې نی راګیروم. دوی به په خپله سرکشئی اوغرور کښې زیاتیږی اوزماد ډهیل ورکولو په راز به پوهه نه شی او بیا به یوناڅاپه دا ګناه دا کنده راخوټکیږی اوزه به ناڅاپه دوی راګیرکړم. زه به دوی زیاتوم دوی به نور هم بدمست کیږی دوی به هغه عزت ګڼړی خوهغه به بې عزتی وی. بل ځائی کښې ارشاد دې ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم﴾ یعنی آیا د دوی ګمان دې چه د مال اولاد زیاتیدل د دوی د پاره زمونږ دطرف نه د څه ښیګړې په وجه دی؟ نه بلکه داخو بې عقله دی. بل ځائی فرمائی ﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ﴾ کله چه دوی زمونږ وعظ اونصیحت هیرکړو نومونږ په دوی باندې د ټولو څیزونودروازې کولاو کړې تر دې چه هغوی ته څه ورکړې شوی وو په هغې باندې سرکشی اوکړه نومونږ هغوی ناڅاپه راګیرکړل او د هغوی امیدونه مو پرې کړل. دلته هم ارشاد دې چه زه به دوی ته وخت ورکوم زیاتوم به نی اوچتوم به نی دا زما چل دې اوزما تدبیرزما مخالفانواو زما نافرمانوسره ډیردې. بخاری اومسلم کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل الله تعالی ظالم ته مهلت ورکوی بیائی چه کله راګیر کړی نوپرینږدی نه. بیا حضور ﷺ دا آیت اولوستلو ﴿وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَىٰ وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ﴾ یعنی داسې دی ستاد رب نیول چه ډیر سخت او دردناك دی.(۲) بیا فرمائی چه ته خو څه د دوی نه اجرت او بدله نه غواړې چه هغوی ته ګرانه ده اودکومې په تاوان سره چه دوی ټیټیږی. نه دوی سره څه علم غیب دې کوم چه دوی لیکی. د دې دواړو جملوتفسیر سورة ﴿والطور﴾ کښې تیرشوې دې. خلاصه مطلب دا دې چه اې نبی ﷺ ته دوی د الله تعالی طرف ته بغیرد اجرت او بغیرد مال غوښتلونه اوبغیرد څه بدلې غوښتلو نه راغواړې ستا غرض بغیرد ثواب حاصلولو نه بل هیڅ نه دی نو په دې باندې هم داخلق د خپل جهالت او سرکشئی په وجه تادروغ ګڼړی.

| فَاصْبِرْ |
|---|
| ا پس صبر کوه |
| ا نو ته دخپل |

(۱) مسندابی یعلی: ۷۲۸۳.
(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة هود باب قوله (وكذلك اخذ ربك اذا اخذ القرى...): ۴۶۸۶، صحیح مسلم: ۲۵۸۳، ترمذی: ۳۱۱۰، ابن حبان: ۵۱۷۵.

لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ إِذْ نَادٰى

حكم درب خپل ته | او مه کیږه ته | پشان دملګرې دمهې | کله چې | هغه اواز اوکړو |

رب حکم راتلو ته صبر کوه او د مهی دخاوند (حضرت یونس) په شان مه کیږه چې خپل رب ته ئې اواز اوکړو

وَهُوَ مَكْظُوْمٌ لَوْلَآ أَنْ تَدٰرَكَهٗ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ

او هغه وو | ډک دغم نه | که نه وی دا خبره | چې اورسیږی هغه ته | نعمت | د طرفه درب خپل نه

او په غم کښې ډوب وو | ......................که دخپل رب نعمت راتینګ کړې نه وې |

لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُوْمٌ فَاجْتَبٰهُ

نوخامخا به غوزولې شوی وې په سپیره میدان او په هغه به ملامتی ونیلې کیده پس غوره کړو هغه لره

نو په ډاګه میدان به غورزیدلې پروت وو | او په بدحال به اخته وو | نو بیا خپل رب هغه نور

رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ وَإِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ

رب دهغه | پس وې ګرځ وو هغه | دصالحانو نه | او بیشکه نزدې دی | هغه کسان

غوره کړو | او په صالحانو کښې ئې شامل کړو | ....................او داسې ښکاری چې داکافران

كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِأَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ

چې کفر ئې کړې دې | چې اوبه خویوی تالره | په سترګو خپلو سره | هر کله چې هغوئ واوریدو قرآن

به تا د سترګو په نظر اوخویوی | څه وخت چې دوئ قرآن پاک واوری

وَيَقُوْلُوْنَ إِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ

او وایې هغوئ | چې بیشکه دې | خامخا لیونې دې | او نه دې دا قرآن | مګر | نصیحت دې

او دوئ وائی چې داخو لیونې دې | ....................حال دا دې چې داقرآن پاک خو د ټولو

لِّلْعٰلَمِيْنَ

دپاره دمخلوقاتو دټول جهان |

جهانونو دپاره نصیحت دې

قوله تعالى:- وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ

دیونس علیه السلام (کب والا) واقعه: الله تعالى فرمائی چه اې نبی ﷺ دخپل قوم په تکلیف اودوی په دروغ ګنړلو باندې صبر اوبرداشت کوه، ډیر زر دالله تعالى فیصله کیدونکې ده او آخرکار به ستا اوستا د ماتحتانو غلبه وی په دنیاکښې هم اوپه آخرت کښې هم. ګوره ته د کب والا د نبی په شان مه کیږه. دې نه مراد حضرت یونس بن متی علیه السلام دې. کله چه هغه په خپل قوم باندې غصه شو او اووتلو بیا چه څه اوشو نو هغه اوشو یعنی د هغه په کشتئی کښې سوریدل د کب هغه تیرول اود سمندر په بیخ کښې کیناستل او داسې قط په قط تیاروکښې دومره لاندې په سمندرکښې د هغوی د الله تعالى پاکی بیانولوسره اوریدل اوبخپله د هغه هم آواز کول (لَآ إِلٰهَ إِلَّآ أَنْتَ سُبْحٰنَكَ إِنِّىْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ) لوستل. بیا د هغه دعاقبلیدل اود دې نه خلاصې موندل وغیره. د کومې واقعه چه په تفصیل سره بیان تیر شوې دې.

دکوم دبیان نه پس چه دالله تعالی سبحانه وتعالی ارشاددې چه مونږ هم داسې ایماندارو ته خلاصې ورکووا فرمائی که هغه تسبیح نه کوله نو د قیامته پورې به د کب په خیټه کښې پروت وو.دلته هم فرمان دې چه کله هغه د غم او تکلیف په حال کښې مونږ ته آواز اوکړو. اول بیان شوې دې چه د یونس ﷺ د خلې نه وتلې دا کلمه عرش ته اورسیده. فرښتواووئیل د دې کمزورې غیرمعروف سړی آواز خوداسې معلومیږی لکه د مخکې نه اوریدلې شوې وی الله تعالی اوفرمائیل چه ولې تاسودې اونه پیژندلو؟فرښتوعرض اوکړونه.الله تعالی اوفرمائیل دا زما د بنده حضرت یونس ﷺآواز دې. فرښتو عرض اوکړوچه بیاخودا ستاهغه بنده دې دچانیك اعمال چه به هره ورځ آسمان ته راختل دچادعا ګانې چه به هروخت د قبولیت درجه بیامونده. الله تعالی اوفرمائیل رښتیا دی. فرښتواووئیل چه بیا خو اې ارحم الراحمین د ده د آسانود وخت د نیکو اعمال په وجه ده ته د دې سختئی نه خلاصې ورکړې. نود الله تعالی ارشاد اوشو اې کبه ته دې اوغورزوه. نوکب دې په غاړه باندې رااوویستلو.دلته هم دغه بیان کولې شی چه الله تعالی هغه بیا بزرك جوړکړو او په نیکانوکښې ئی کړو.

**د یونس علیه السلام هیڅ قسمه مذمت جائز نه دې:-** مسند احمدکښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه چاله هم نه دی پکار چه هغه ځپل ځان دحضرت یونس بن متی ﷺ نه غوره اوښائی.بخاری او مسلم کښې هم داحدیث دې(۱) (بس دالفاظو وړاندیوالې روستووالې دې.په یو روایت کښې داسې دی "چه ما د حضرت یونس بن متی ﷺ نه غوره مه ښائی" دا د دې د پاره چه چرته خلق د الله تعالی ددې فرمان نه داسې اونه وائی "چه اې محمد ﷺ د کب والا په شان مه کیږه" چه دې نه دحضرت یونس ﷺ بدی او مذمت شان اوځی)د وړاندینی آیت مطلب دادې چه ستاد بغض اوحسد په وجه داکافرانوخو په برندو برندو تاته ګوری اوخویول دی غواړی.که دالله تعالی د طرف نه ستاحمایت او بچاؤ نه وونو یقیناً دوی خو به داسې کړی وو. په دې آیت کښې دلیل دې په دې امر باندې چه د نظر لګیدل اود دې اثر د الله تعالی په حکم سره حق دې لکه چه په ډیرواحادیثو کښې هم دی چه په ځوځو سندونوسره نقل دی.

**قوله تعالی:-** لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ

**دبدنظر علاج اود بدګمانئی مذمت:-** په ابوداؤد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه دم پوکوهل صرف د بدنظردزهرژن خناور اونه اودریدونکې وینې دې(۲)په بعضې سندونوکښې د نظر لفظ نشته. داحدیث په ابن ماجه کښې هم دې اوپه صحیح مسلم او ترمذی کښې هم دې.(۳) ابویعلی کښې یوغریب حدیث دې چه نظر په حکم دالله تعالی انسان راغورزوی.(۴)مسنداحمدکښې دی چه کیرئ اونظرکښې هیڅ هم حق نشته. د تولونه ښه شګون فال دې. دا حدیث په ترمذی شریف کښې هم دې اوامام ترمذی رحمه الله دې نه غریب وائی(۵)په بل روایت کښې دی چه کیرئی کښې څه بد فالی نشته اونظر حق دې اونیك فال د تولونه ډیرزښتونې فال دې.یوبل روایت کښې دی نظرحق دې نظرحق دې هغه داوچت ځائی ښتونکې هم راکوزه وی.(۶)

---

(۱) احمد:۱/۲۹۰، صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی ﴿وان یونس لمن المرسلین﴾ :۳۴۱۶، صحیح مسلم:۲۳۷۹، ابوداؤد:۴۶۶۹،ابن حبان:۶۲۳۸.

(۲) ابوداؤد کتاب الطب باب فی الرقی:۳۸۸۹، حاکم:۴/۴۱۳.

(۳) ابن ماجه کتاب الطب باب مارخص فیه من الرقی:۳۵۱۳،وهوصحیح، صحیح مسلم کتاب الایمان باب الدلیل علی دخول طوائف من المسلمین الجنة بغیرحساب:۲۲۰،صحیح بخاری کتاب الطب باب من اوکوی غیره:۵۷۰۵.

(۴) احمد:۵/۱۴۶ ح ۲۱۳۰۲.

(۵) احمد:۵/۷۰، ترمذی کتاب الطب باب ماجاء ان للعین حق والغسل لها:۲۰۶۱ وسنده حسن، الادب المفرد:۹۱۴.

(۶) احمد:۱/۲۹۴.

**يو شو فائده مندعمليات:**- صحيح مسلم كښې دى چه نظرحق دې كه.يوڅيز د تقديرنه وړانديوالې كونكې وو نو نظر به كولو. كله چه په تاباندې غسل اوكړې شى نو غسل كوه([1])په مصنف د عبدالرزاق كښې دى چه حضور ﷺ به حضرت حسن ؓ او حضرت حسين ؓ په دې الفاظوسره پناه كښې وركولو (اعيذكما بكلمات الله التامة من كل شيطن وهامة ومن كل عين لامة) يعنى تاسو دواړه دالله تعالى د پوره كلماتوپه پناه كښې وركوم د هرشيطان نه د هريو زهرژن څناور نه اود هريو لګيدونكى نظر نه اوفرمائى چه حضرت ابراهيم ؑ به هم حضرت اسحق ؑ او حضرت اسماعيل ؑ په دې الفاظوسره د الله تعالى په پناه كښې وركولو.دا حديث په سنن كښې او بخارى شريف كښې هم دې.([2]) ابن ماجه كښې دى چه حضرت سهل بن حنيف ؓ غسل كولو عامر بن ربيعه ؓ وئيل چه ما خوترننه پورې داسې پنډنۍ د يوې پرده كونكې ښځې هم نه ده ليدلې.نو په لږ شان ساعت كښې هغه بې هوشه راپريوتلو. خلقو حضور ﷺ ته عرض اوكړو يارسول الله ﷺ د هغه خبر واخلئ دې خو بې هوشه شو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ستاسو په چا شك هم شته؟ خلقو عرض اوكړوچه اوعامر بن ربيعه ؓ باندې.حضور ﷺ اوفرمائيل چه تاسو كښې ولې څوك خپل رور قتل كوى؟ كله چه تاسو نه يوكس د خپل رور يوداسې څيز اووينى چه په هغه باندې ډير ښه اولګى نو هغه له پكار دى چه د هغه د پاره د بركت دعا اوكړى. بيا ئې اوبه راوغوښتې او عامر ته ئې اوفرمائيل ته اودس اوكړه د مخ او ګيټو پورې لاسونه ترڅنګلوپورې او زنګونونه او د بډې پورې دننه حصه اووينځه. بل روايت كښې دى چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه يولوښې د ده په شانه باندې راواړونئ([3]) په نسائى وغيره كښې هم دا روايت موجود دې. حضرت ابوسعيد ؓ فرمائى چه نبىكريم ﷺ به د پيريانواو انسانانود بد نظر نه پناه غوښتله. كله چه معوذتين سورتونه نازل شو نو حضور ﷺ هغه واخستل او ټول ئې پريخودل.([4])

په مسندوغيره كښې دى حضرت جبرائيل ؑ حضور ﷺ له راغلو او ونى ونيل اې نبى ﷺ آيا ته بيمار ئې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل او. نوجبرائيل ؑ اووئيل (بسم الله ارقيك من كل شئ يؤذيك من شرك كل نفس وعين والله يشفيك بسم الله ارقيك)([5]) په بعضې روايتونوكښې د الفاظوړانديوالې روستووالې هم دې. د بخارى او مسلم په حديث كښې دى چه يقينا د نظر لګيدل حق دى([6]) دمسندپه يوحديث كښې د دې نه پس داهم ليكلې دى چه ددې سبب شيطان دې اودبنيادم حسددې([7])دمسندپه يوبل روايت كښې دى چه د حضرت ابوهريره ؓ نه تپوس اوكړې شو چه تا د حضور ﷺ نه اوريدلى دى چه شګون په دريو څيزونو كښې دې كور، اس او ښځه. نو ابوهريره ؓ اوفرمائيل چه بيا خوبه زه په رسول الله ﷺ باندې هغه اووايم چه هغه نه دى فرمائيلى.او ما د حضور ﷺ نه دا اوريدلى دى د ټولونه ښه شګون نيك فال دې او د نظر لګيدل حق دى([8]) ترمذى وغيره كښې دى چه حضرت اسماء ؓ عرض اوكړويارسول الله ﷺ د حضرت جعفر ؓ ماشومانوته نظرلګى نو زه پرې څه دم كووم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه اوكه څه څيز د تقديرنه وړانديوالې كولې شونو هغه به نظروو.([9])

---

[1]) صحيح مسلم كتاب السلام، باب الطب والمرضى والرقى:۲۱۸۸، المعجم الكبير:۱۰۹۰۵، بيهقى: ۳۵۱/۹.
[2]) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء:۳۳۷۱، ابوداؤد:۴۷۳۷، ترمذى: ۲۰۶۰، ابن ماجه:۳۵۲۵، احمد:۲۳۶/۱، ابن حبان:۱۰۱۳.
[3]) ابن ماجه كتاب الطب باب العين:۳۵۰۹، وهوصحيح، احمد:۳۸۶/۴، ابن حبان:۶۱۰۶.
[4]) ترمذى كتاب الطب باب ماجاء فى الرقية بالمعوذتين:۲۰۵۸، نسائى :۵۴۹۶، ابن ماجه:۳۵۱۱.
[5]) صحيح مسلم كتاب السلام باب الطب والمرض والرقى:۲۱۸۶،ترمذى:۹۷۲، احمد: ۲۸/۳.
[6]) صحيح بخارى كتاب الطب باب العين حق:۵۷۴۰، صحيح مسلم:۲۱۸۷، مصنف عبدالرزاق:۹۷۷۸، احمد:۳۱۹/۲، ابن حبان:۵۵۰۳.
[7]) احمد:۴۳۹/۲.
[8]) احمد:۲۸۹/۲.
[9]) ترمذى كتاب الطب باب ماجاء فى الرقية من العين:۲۰۵۹ وهوصحيح، ابن ماجه:۳۵۱۰، احمد:۴۳۸/۶.

د حضرت عائشه صدیقه ﵂ نه هم د حضور ﷺ دبدنظرنه ددم کولو حکم روایت دی[۱] حضرت عائشه ﵂ فرمائی چه د نظرلګونکی ته به حکم کولې شو چه اودس اوکړی او چاته چه به نظرلګیدلې ووېه هغه باندې به نی په دې اوبوغسل کولې شو[۲] اوپه حدیث کنبې دی چه نشته کیری اونظر حق دې اود ټولونه بنه شګون فال دې. مسنداحمد کنبې هم دسهل ﵁ اوعامر ﵁ قصه کومه چه پورته بیان شوه لږه په تفصیل سره نقل ده[۳] بعضې روایاتوکنبې دا هم دی چه دواړه بزرګان د غسل په اراده لاړل اوعامر ﵁ په اوبوکنبې دغسل دپاره کوزشو نود هغه بدن لیدلوسره دسهل ﵁ نظر اولګیدو اوهغه هم هلته په اوبوکنبې خرارې شروع کړې. ما درې خل آواز ورکړوخو جواب ملاونه شو. زه دحضور ﷺ په خدمت کنبې حاضرشوم او ټوله واقعه مې ورته بیان کړه. هغوی لوبنې راوړو او په لړوشان اوبو کنبې نی لاس اووهلو تهبندنی پورته اوچتولوسره ترهغه خائی پورې اورسیدو او په سینه نی ورته لاس اووهلو او دادعا نی اوکړه ﴿اللهم اصرف عنه حرها وبردها ووصبها﴾ اې الله ته د ده نه د ده ګرمې یخی اوتکلیف لرې کړه الخ[۴] مسندبزاز کنبې دی چه زما د امت قضااوقدر نه پس به اکثر مرګ د نظرنه وی[۵] فرمائی چه نظر حق دې اوانسان قبرته رسوی او اوښ کټوئی ته. زما د امت اکثر هلاکتونه هم دې کنبې دی[۶] د یوبل صحیح سندنه دا روایت هم نقل دې رسول الله ﷺ فرمائی چه د یوبیماری بل ته نه لګی اونه د ګونګی په وجه د بربادئی یقین کول څه واقعیت نه لری اونه حسد څه څیز دې او نظر حق دې.[۷]

ابن عساکر کنبې دی چه حضرت جبرائیل ﵇ حضور ﷺ ته تشریف راوړو حضور ﷺ دغه وخت کنبې خفه شان وو سبب نی تپوس اوکړو نو وئی فرمائیل چه حسن ﵁ اوحسین ﵁ ته نظرلګیدلې دې. وئی فرمائیل چه د رښتیاؤقابل څیز دې نظرواقعی لګی. تاسو دا کلمات لوستلوسره ولې په پناه کنبې ورنه کړل؟ حضوراکرم ﷺ تپوس اوکړوهغه کلمې کومې دی؟ وئی فرمائیل داسې وایه ﴿اللهم ذاالسلطان العظیم والمن القدیم ذاالوجه الکریم ولی الکلمات التامات والدعوات المستجابات عاف الحسن والحسین من انفس الجن واعین الانس﴾ یعنی اې الله اې د ډیرې لوې بادشاهئی والا، اې زبردست احسانونووالا، اې د ټولونه د بزرګ مخ والا، اې د پوره کلماتووالا، اې دعاګانو ته د قبولیت درجه ورکونکیه ته حسن او حسین د ټولوپیریانود نظرونو او د ټولوانسانانود سترګونه خپله پناه ورکړه. حضور ﷺ دادعااوکړه اوهم هلته دواړه ماشومان راپاسیدل اود حضور ﷺ په وړاندې لوبې کولې. نوحضور ﷺ اوفرمائیل خلقو خپل خانونه خپلې بیبیانې خپل اولاد ته هم په دې پناه سره پناه ورکوئی. د دې په شان بله د پناه څه دعا نشته. بیافرمائی چه کله داکافرانو د خپل سپکاوی نه ډک نظر په تاسو اچوی او ورسره د پیغورونو ډکه ژبه هم په تاسوباندې کولاووی او وائی چه دې خو په قرآن پاک راوړوکنبې مجنون دې نوالله تعالی د دوی په جواب کنبې فرمائی قرآن پاک خود الله تعالی د طرف نه د ټول عالم د پاره نصیحت نامه ده.

﴿الحمدلله﴾ د سورت قلم تفسیر ختم شو.

---

[۱] صحیح بخاری کتاب الطب باب رقیة العین:۵۷۳۸، صحیح مسلم:۲۱۹۵ ابن ماجه:۳۵۱۰،احمد:۵/63 ابن حبان:۶۱۰۲. (ابن ماجه)
[۲] ابوداؤد کتاب الطب باب ماجاء فی العین:۳۸۸۰. (احمد)
[۳] احمد:۴۴۷/۳ والمستدرک:۲۱۵/۴، ابن ماجه:۳۵۰۶،مختصرًا وهوحدیث حسن، امیة بن هندحسن الحدیث وثقه ابن حبان والحاکم وغیرهما.
[۴] احمد:۴۴۷/۳ وهوحدیث حسن.
[۵] مسندالبزار ۳۰۵۲.
[۶] محمد بن المنذر الهروی فی کتاب العجائب
[۷] احمد:۲۲۲/۲، مجمع الزوائد:۱۰۱/۵.

| اياتونه | | سورة الحاقة مكية وهي اثنتان وخمسون آية وفيها ركوعان | | ركوع كاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ٥٢ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ١ |

اَلۡحَآقَّةُ ۙ﴿١﴾ مَا الۡحَآقَّةُ ۚ﴿٢﴾ وَمَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا الۡحَآقَّةُ ؕ﴿٣﴾

حق ثابتونكې (قيامت) | څه دې حق ثابتونكې | او څه معلوم دې تاته | چې څه دې حق ثابتونكې |

هغه ضرور واقع كيدونكې دې | هغه واقع كيدونكې څيز څه دې ؟ او تاته څه معلومه ده چې هغه واقع كيدونكې

كَذَّبَتۡ ثَمُوۡدُ وَعَادٌۢ بِالۡقَارِعَةِ ﴿٤﴾ فَاَمَّا ثَمُوۡدُ

دروغ اوګڼړو | ثموديانو | او عاديانو | څيزونه يو بل ته رااچونكې آفت لره | پس هر چې ثموديان وو

څيز څه دې | ثموديانو او عاديانو (دواړو) هغه ګرزيدنكې واقعه دروغ ګڼړله | نو ثموديان خو په

فَاُهۡلِكُوۡا بِالطَّاغِيَةِ ﴿٥﴾ وَاَمَّا عَادٌ فَاُهۡلِكُوۡا

پس هلاك كړې شو هغوئ | په سخته حادثې سره | او هر چې عاديان وو | پس هلاك كړې شو هغوئ

يو چغه هلاک كړې شول | ..................پاتې شول عاديان نو هغوئ موپه يوه

بِرِيۡحٍ صَرۡصَرٍ عَاتِيَةٍ ۙ﴿٦﴾ سَخَّرَهَا عَلَيۡهِمۡ

په هوا سره | چې سخته يخه وه | دحدنه اوړيدونكې وه | مقرر كړې وه الله دغه هوا | په هغوئ با ندې

يخه سخته تيزه سيلئ هلاک كړل | ............. الله ﷻ په هغوى باندې

سَبۡعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ ۙ حُسُوۡمًا ۙ فَتَرَى الۡقَوۡمَ فِيۡهَا

اوه شپې | او اته ورځې | پرله پسې | پس تابه ليدلې وې هغه خلق | په هغې كښې

دغه تيزه سيلئ اووۀ شپې او اته ورځې پرله پسې والوزوله | نو تا به په كښې هغه خلق داسې

صَرۡعٰى ۙ كَاَنَّهُمۡ اَعۡجَازُ نَخۡلٍ خَاوِيَةٍ ۚ﴿٧﴾ فَهَلۡ تَرٰى لَهُمۡ

راپريوتى | لكه چې هغوئ | تنې دكجورو دى | راپريوتلى | پس آيا وينې ته | هغوئ لره

راغورزيدلى ليدل | لكه چې د غورزيدلو كهجوروتنې دى | .............نو آيا ته په هغوى كښې

مِّنۡۢ بَاقِيَةٍ ﴿٨﴾ وَجَآءَ فِرۡعَوۡنُ وَمَنۡ قَبۡلَهٗ

څوك باقي پاتې شوى | او راغې فرعون | او هغه څوك | چې مخكښې ووه دهغه نه

څوک پاتې وينې | ........اوفرعون اودهغه نه وړاندې د اوړيدلې شوې كلو

وَالۡمُؤۡتَفِكٰتُ بِالۡخَاطِئَةِ ۚ﴿٩﴾ فَعَصَوۡا رَسُوۡلَ رَبِّهِمۡ

اولاند باندې كړې شوى كلى | په لوئ خطا سره | پس هغوئ نافرمانى اوكړه | درسول | درب خپل

خلقو (غټ غټ) جرمونه كړى وو | ..........نو ټولو دخپل رب د پيغمبر نافرمانى اوكړه

| فَأَخَذَهُمْ | أَخْذَةً رَّابِيَةً ⑩ | إِنَّا | لَمَّا | طَغَا الْمَاءُ |
|---|---|---|---|---|
| نو راوي نيول هغوئ | په نيولو سختو سره | بيشكه مونږه | هر كله چې | سركشي اوكړه اوبو |
| الله ﷻ هغوى لره ډير مضبوط راونيول | ............ | هر كله چې اوبه زياتې شوې | نو تاسو مو په | |

| حَمَلْنَاكُمْ | فِي الْجَارِيَةِ ⑪ | لِنَجْعَلَهَا |
|---|---|---|
| سواره كړئ مونږه تاسو | په كشتئ كښې | دپاره ددې چې جوړ كړو مونږ دې واقعې لره |
| بيړئ كښې سواره كړئ | ............ | چې دا واقعه ستاسو دپاره يو يادګار كړو |

| لَكُمْ | تَذْكِرَةً | وَّتَعِيَهَا | أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ ⑫ |
|---|---|---|---|
| دپاره ستاسو | يو عبرتناك يادګار | او ياد اولرې هغې لره | غوږونه يادساتونكې |
| ............ | او ياد ساتونكي غوږونه ئې ياد اوساتي | | |

**قوله تعالى:-** الْحَاقَّةُ ①

**دقيامت نوم حاقه:** (حَاقَّةُ) دقيامت يونوم دې اوددې نوم وجه داده چه دوعدې اووعيد د حقانيت هم دغه ورځ ده.په دې وجه ئې د دې ورځې دهشت بيانولوسره فرمائي چه ته ددې (حَاقَّةُ) د صحيح حال نه خبر نه ئې.بيائي دهغه خلقو بيان اوكړو كوموكوموخلقو چه دادروغ ګنړلې وه اوبيائې بدله بياموندې وه.

**قوله تعالى:-** فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ ⑤

**دعاداوثمود عذاب:** اوفرمائيلې شوچه ثموديانوته اوګوره يوطرف ته خود فرښتوهيبت ناك اواينې شلونكې آواز راځي بل طرف ته په زمكه كښې دغضب نه ډكه زلزله راځي اوټول لاندې باندې كيږي نو دحضرت قتاده رحمه الله په قول (طاغية) معنى ده داړې چينګونكې[1] او مجاهد رحمه الله فرمائي چه دې نه مراد ګناه ده يعنى هغوى دخپلوګناهونو په وجه تباه برباد كړې شو.د ربيع رحمه الله ابن انس رضي الله عنه او ابن زيد رضي الله عنه قول دې چه دې نه مراد د هغوى سركشى ده. ابن زيد رضي الله عنه د دې په ګواهئ كښې داآيت اولوستلو (كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِطَغْوَاهَا) يعنى ثموديانود خپلې سركشئ په وجه دروغ اوګنړلو يعنى د اوښې پنډئ ئې پريكړې او عاديان د يخو هواګانوپه تيزو چپو كوموچه دهغوى زړونه اوخيرل تباه برباد كړل. دا سيلئ چه دخيراوبركت نه خالى وې اود فرښتود لاسونونه وتونكې وې برابر يوشان اووه شپې او اته ورځې روانې وې په دې ورخوكښې د هغوى د پاره بغيرد سپيره والى او بربادئ نه بل هيڅ ښيګړه نه وه.لكه څنګه چه بل ځائې كښې ارشاد دې (فِي أَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ)

**قوله تعالى:-** سَبْعَ لَيَالٍ

**د هوا اغاز دكومې ورځې نه شوې وو؟** حضرت ربيع رحمه الله فرمائي چه دجمعه د ورځې نه داشروع شوې وې بعضې وائي چارشنبه نه. دې هواګانوته عرب اعجاز د دې د پاره هم وائي چه قرآن پاك فرمائيلى دى د هواګانې د زمى په آخركښې وى او عجزوائى آخرته. او بله دا وجه هم بيانولې شي چه په عاديانوكښې دې عاديانوحالت داعجاز يعنى د كهجورو د ډډوتنو په شان وو. دويمه وجه دا هم ده چه په عام توګه دا يوه بوډئ ښځه په يوغاركښې ننوتې وه چه په دې هواګانو سره په اتم ورځ هم هلته تباه شوه او بوډئ ته په عربى كښې عجوزوائى والله اعلم.د (خاوية) معنى ده خراب سخاډډ ،مطلب دادې چه هواګانو دوى

[1] الطبرى:٥٧١/٢٣.

په اوچتولو راخلاصولو او اولتهه کولو سره او سر ماتونکی او چوری چوری کولوسره باقی بدنونه داسې پاتې شو لکه چه د کهجورو د ونونه چه د پانړووالا حصه اوسر کټ کړې او صرف تنه ئې پاتې شي.
د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی زما امداد اوکړې شو په صباسره ي يعنی په ښکلوهواگانوسره اوعادیان هلاك کړې شو په دبورسره يعنى تباه کونکې هوا سره(١) ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائي چه د عاديانود هلاك کولود پاره د هواگانود خزانې نه صرف د يوې گوتې برابر ځائی کولاو کړې وو(٢) د کوم نه چه هواگانې راوتلې اول هغه په کلی والو باندې راغلې. د هغوی ټول سړی ښځې لوئ واړه مالونه او ځناوروسره د آسمان او زمکې په مينځ کښې زوړند کړل د ښاريو خلقو ته د ډير اوچتوالی په وجه دا معلوم شوچه د تور رنګ اوريځ راښتلې ده خوشحاله شو چه د گرمئی په وجه د هغوی کوم دا خراب حال شوې دې اوس به اوبه راووريږی. په دې کښې هواگانوته حکم اوشو نو هغوی ټول ئی په دې ښاريو والا باندې راگذار کړل دا اوهغوی ټول هلاك شول. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا دهوا وزر او لکۍ وه بيا فرمائی اوښائې ته د هغوی نه يا د هغوی د نسل نه يو کس هم وينې؟ يعنی ټول په ټول تباه برباد کړې شو هيڅ نوم اونښه ئې باقی پاتې نه شوه.

**قوله تعالی:-** وَجَآءَ فِرۡعَوۡنُ وَمَن قَبۡلَهُۥ

**د فرعونيانو او وړانديونو بربادی:** بيا فرمائی د فرعون او وړانديونو گناهگارانو د رسول د نافرمانی کونکو همدغه انجام اوشو. ﴿قَبۡلَهُۥ﴾ دويم قراءت ﴿قِبَلَهُ﴾ هم دې نومعنی به دا وی چه فرعون اودهغه سره خواوشا خلق يعنی فرعون قبطی کافران﴿مؤتفكت﴾نه مرادهم پيغمبران دروغ گنړونکی وړاندينی امتونه دی. ﴿خاطئة﴾ نه مطلب گناه خطا ده. نو اوفرمائيلې شو چه په دوئ کښې هريود خپلې خپلې زمانې رسول ﷺ دروغ گنړلې لکه چه بل ځائی کښې ارشاد دی ﴿ كُلّٞ كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيدِ ﴾ يعنی دې ټولود رسولانو تکذيب کړې اوپه دوی باندې عذاب راغلې.اودا هم ياد ساتئی چه ديوپيغمبر انکار لکه د ټولو انبياؤعليهم السلام انکار دې. لکه چه قرآن پاك فرمائيلی دی﴿كَذَّبَتۡ قَوۡمُ نُوحٍ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ او فرمائی ﴿كَذَّبَتۡ عَادٌ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ يعنی د نوح ﷺ قوم عاديانو او ثموديانو رسولان دروغ گنړل سره د دې چه ټولو له يعنی هريوامت ته يورسول راغلې وو. هم دغه مطلب دلته هم دې چه هغوی د خپل رب د پيغمبر نافرمانی اوکړه نو الله تعالی هغوی په سخت هلاك کونکی او دردناك عذاب نيولو کښې راگير کړل. دې نه پس خپل احسان ښائی چه گوره د نوح ﷺ د دعا په وجه په زمکه کښې طوفان راغلو اواوبه د حد نه تيرې شوې هرطرف ته اوبه اوبه وې د تجارت د پاره هيڅ ځائی پاتې نه شو نوهغه وخت مونږ ته په کشتئ کښې اوخيژولې.

**قوله تعالی:-** إِنَّا لَمَّا طَغَا ٱلۡمَآءُ حَمَلۡنَٰكُمۡ فِي ٱلۡجَارِيَةِ

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه کله د نوح ﷺ قوم خپل پيغمبر دروغ اوگنړلو اود هغه مخالفت او هغه ته تکليف رسول شروع کړه د الله تعالی نه بغيرد نور عبادت ئی کولو هغه وخت حضرت نوح ﷺ تنگ راغلو اود هغوی د هلاکت دعائی اوکړه کومه چه الله تعالی قبوله کړه اومشهور طوفان نوح ﷺ رانازل شو په کوم سره چه بغيرد هغه خلقو نه کوم چه حضرت نوح ﷺ سره په کشتئ کښې سواره ووپه مخ د زمکې څوك هم بچ نه شو. نو دا ټول خلق د نوح ﷺ دنسل اود هغه د اولاد نه دی.
حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه د اوبو يويوڅاڅکې د الله تعالی په اجازت سره د اوبو د فرښتې په ناپ تول سره وريږی دغه شان د هوا يو وړه غوندې چپه هم بې ناپه او بې توله نه راځی. خو چه په عاديانوباندې

---

(١) صحيح بخاری کتاب الاستسقاء باب قول النبی ﷺ ((نصرت بالصبا)): ١٠٣٥٠، صحيح مسلم: ٩٠٠.
(٢) ابن ابی حاتم.

قومې هواګانې راغلې وې اود نوح ﷺ په قوم چه کوم طوفان راغلې وو هغه بې حده بې شميره او بې نابه او بې تولې راغلې وو. د الله تعالى په اجازت سره اوبو اوهوا هغه زور اولګولو چه د خيال ساتونکې فرښتو هيڅ وس هم نه چليدو په دې وجه په قرآن کښې ﴿طَغَا الْمَآءُ﴾ او ﴿بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ﴾ الفاظ دې. د دې دپاره دا اهم احسان الله تعالى وريادوی چه په داسې خطرناک وخت کښې مونږ تاسو په کشتۍ کښې سواره کړې دې د پاره چه دا کشتۍ ستاسو د پاره نمونه جوړه شي نو نن هم په داسې کشتو کښې سوريدو سره د سمندر لوئ اوږده سفرونه کونې. لکه چه بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ مِنَ الْفُلْكِ وَالْاَنْعَامِ﴾ يعنى ستاسو د سورلود پاره کشتۍ او څاروی او ځناور پيداکړه چه تاسو په دې باندې سورلې اوکړئی اوپه سوريدوکښې دخپل رب نعمت يادکړئی.بل ځائې کښې ارشاد دې ﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهِ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾

قوله تعالى:- لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً

يعنى دهغوی د پاره د قدرت يوه نښه دا هم ده چه مونږ د هغه نسل په ډکه کشتۍ کښې سواره کړه اود هغې په شان نورې سورلئی هم مونږ پيداکړې. حضرت قتاده رحمه الله د دې پورته بيان شوی آيت په مطلب کښې دا هم فرمائی چه هم هغه د نوح ﷺ کشتۍ باقى پاتې وه ترديې چه د دې امت وړاندينوخلقو هم هغه اوليدله.خو ډيرښکاره مطلب هم اولنې دې.بيافرمائی چه داددې دپاره هم چه يادساتونکې اوريدونکې غوږونه دا ياد کړې او محفوظ ئې کړې اودا نعمت هير نه کړې.يعنى د صحيح پوهې او رښتيا اوريدونکې دعقل سليم اوفهم مستقيم لرونکې چه د الله تعالى دخبرو اودهغه دنعمتونونه بې پروائی اوبې خيالې نه کوی د هغوی د نصيحت او پند يوه ذريعه دا هم جوړه شوه.ابن ابى حاتم کښې دی چه حضرت مکحول رحمه الله فرمائی چه کله دا الفاظ نازل شو نوحضور ﷺ اوفرمائيل ماد خپل رب نه سوال اوکړوچه هغه دې حضرت علي ؓ هم داسې جوړکړی.حضرت علي ؓ به فرمائيل د رسول الله ﷺ نه د يوځيز اوريدل مابيا نه دی هيرکړی.(١) داروايت په ابن جرير کښې هم دې خو مرسل دې.د ابن ابى حاتم يوبل حديث کښې دې چه حضوراکرم ﷺ حضرت علي ؓ ته حکم اوفرمائيلوچه زه تا نيزدې کړم لرې نه کړم اوتاته تعليم درکړم اوته هم هغه يادکړې او هم دغه تاله هم پکار دی په دې باندې دا آيت نازل شو.(٢) دا روايت په بل سندسره هم ابن جرير کښې روايت دې خوهغه هم صحيح نه دې.

| فَاِذَا نُفِخَ | فِي الصُّوْرِ | نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ۝ | وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ |
|---|---|---|---|
| پس هر کله چې پوکې اووهلې شي | په صور (شپيلۍ) کښې | پوکې يو ځل | اواوچت کړې شي زمکه |
| کله چې يو ځل شپيلۍ پوک وهلې شی | او زمکه او غرونه اوچت کړې شی | | |

| وَالْجِبَالُ | فَدُكَّتَا دَكَّةً | وَّاحِدَةً ۝ | فَيَوْمَئِذٍ | وَّقَعَتِ |
|---|---|---|---|---|
| او غرونه | انو ريزه ريزه به کړې شي دواړه | په يووار سره | پس په دغه ورځ به | واقع شي |
| نردواړه په يو وارې ذره ذره کړې شی | .......... او په هغې ورځ کښې به واقع کيدونکې | | | |

| الْوَاقِعَةُ ۝ | وَانْشَقَّتِ | السَّمَآءُ | فَهِيَ | يَوْمَئِذٍ | وَّاهِيَةٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه واقع کيدونکې (قيامت) | اواوبه شليږی | اسمان | پس هغه به | په دغه ورځ | سست وی |
| حادثه واقع شی | .......... اواسمان به اوشليږی | .......... او هغه به په دغه ورځ ډير کمزورې وی | | | |

(١) الطبرى:٢٣/٥٧٩.
(٢) الطبرى:٢٣/٥٧٩، ابن عساكر:٢/٤٢٣.

| |
|---|
| وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآئِهَاؕ وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ |
| او فرښتي به \| په غاړه داسمان وی \| اواوچت کړي به وی \| عرش درب ستا \| دپاسه دخان \| |
| اوفرښتي به ددې په غاړه ولاړې وی \| ............اوستا د رب عرش به په دغه ورځ اتو (۸) (فرښتو) |
| يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌؕ ﴿١٧﴾ يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُوْنَ لَا تَخْفٰى |
| په دغه ورځ \| اتو فرښتو \| دغه ورځ به وی \| چې تاسو به پيش کړې شئ \| پټ به پاتې نه شی \| |
| دخان دپاسه اوچت کړې وی \| په کومه ورځ چې تاسو پيش کړې شئ \| نو ستاسو هيڅ خبره |
| مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿١٨﴾ |
| د (عملونو) ستاسو نه \| يو پټ راز \| |
| به پټه پاتې نشی \| |

قوله تعالى:- فَاِذَا نُفِخَ فِى الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿١٣﴾

**د شپیلئ پوک وهلووخت:** دلته دقيامت د تباهوذكر كولې شی.دټولونه ړومبې يره خورونکې څيز به د شپيلنی پوك وهل وی په څه سره چه به د ټولوزړه اوړچی. بيابه شپيلنی پوك وهلې شی كوم سره چه به د زمكې او آسمان ټول مخلوق بې هوشه شی خوچه څنګه الله تعالى غواړی نو بيابه شپيلنی پوك وهلې شی په كوم آواز چه به ټول مخلقو د الله تعالى په وړاندې اودريږی.دلته دهغه ړومبنی شپيلنی بيان دې دلته ئې د تاكيدپه توګه دا هم بيان كړه چه دا د راپاسيدو شپيلنی هم يوه ده. د دې د پاره چه كله د الله تعالى حكم اوشی نو نه به د هغې خلاف كولې شی اونه به څوك خوزيدې شی اونه د بيا فرمان كولو ضرورت شته اونه تاكيد.

امام ربيع رحمه الله فرمائی دې نه مراد آخری نفخه ده خوظاهر قول هم هغه دې چه مونږ اول كړې. د دې دپارد دې سره اوفرمائيلې شو چه زمكه او آسمان به اوچت كړې شی اود څرمن په شان به خواره كړې شی اوزمكه به بدله كړې شی او قيامت به قايم شی.

حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه په آسمان باندې د كولاويدو ځائی باندې به اوشليږی لكه چه په سورة نباء كښې دی﴿وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا﴾ يعنی آسمان به كولاو كړې شی اوپه هغې كښې دروازې پيداشی. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه په آسمان كښې به سوری او غارونه پيداشی او اوبه شليږی. عرش به د هغې مخې ته وی او فرښتې به په غاړوباندې وی كومې غاړې چه دې وخته پورې نه وی شليدلې. په دروازوكښې به وی او د آسمان په اوږدوالی كښې خورې وی اود زمكې والا ته به ګوری. بيا فرمائی د قيامت په ورځ به اته فرښتې د الله تعالى عرش په خپل ځانونوباندې اوچت كړې وی. نوياخومراد د عرش اوچتول دی يا د هغه عرش اوچتول مراد دی په كوم به چه د قيامت په ورځ الله تعالى د خلقو د فيصلود پاره وی. والله اعلم بالصواب.

قوله تعالى:- وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ

**د عرش اوچتونكې فرښتې:** حضرت عباس رضی الله عنه بن عبدالمطلب فرمائی چه دافرښتې به د غريزوبكرو په شكل كښې وی[1] حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه د دوی ديوې سترګې د سر نه به د بلې سترګې پورې دسلو كالوپورې لاروی.(مطلب دا چه ډير لونی به وی) د ابن ابی حاتم په مرفوع حديث كښې دی

---

[1] ابوداؤد كتاب السنة باب فی الجهمية: ٤٧٢٣، ترمذی:٣٣٢٠، ابن ماجه:١٩٣، حاكم:٢/٥٠٠.

چه ماته خبر راکړې شوې دې چه زه تاسو د عرش د اوچتونکوفرښتې نه د يوې فرښتې خبردرکړم چه د هغې دسې اوغوږ لاندې د پوستکي فاصله دومره ده چه الوتونکي مرغئي د اووه سووکالوپورې والوزي اولاړه شي(۱) د دې اسناد ډير ښکلي دي اوټول راويان ثقه دي. امام ابوداؤد رحمه الله هم په خپل سنن کښې روايت کړي دي چه رسول الله ﷺ داسې فرمائيلي دي(۲)حضرت سعيدبن جبير رضي الله عنه فرمائي چه دې نه مرادد فرښتواته صفونه دي.دنورو ډيروبزرګانو نه هم داروايت دې.حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه د اعلي فرښتواته حصې دي په کوموکښې چه د هرې يوې حصې شمير د ټولوانسانانو پيريانو اود ټولو فرښتوبرابر دې. بيا فرمائي چه د قيامت په ورځ به تاسو د هغه الله تعالى په وړاندې پيش کولې شئي چه پټ او ښکاره ښه پيژني. څنګه چه هغه د ښکاره نه د ښکاره څيز عالم دې دغه شان دپټ نه پټ څيز هم هغه پيژني. د دې د پاره اوفرمائيلې شو چه ستاسو يوپټ راز به په هغه ورځ پټ نه شي.

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه قول دې خلقو د خپلو ځانونوحساب اوکړئ د هغې نه وړاندې چه ستاسو نه حساب واخستلې شي اود خپلو عملونو پخپله اندازه اوکړئ د هغې نه وړاندې چه ستاسو د دې عملونو تول اوکړې شي د دې د پاره چه صبا د قيامت په ورځ په تاسو آساني وي په کومه ورځ چه به ستاسو پوره پوره حساب اخستلې شي. او په لويه پيشئ کښې به تاسو د الله تعالى په وړاندې پيش کولې شئي. مسنداحمدکښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي د قيامت په ورځ به خلق درې ځل د الله تعالى په وړاندې پيش کولې شي. په ړومبي او دويم ځل کښې خو عذر معذرت او جګړې فيصله کولې شي خو دريمه پيشي چه آخرى به وي هغه وخت به عمل نامې ورشيندلې شي د چا به په ښي لاس کښې راشي اود چا به ګس لاس کښې. داحديث په ابن ماجه کښې هم دې.(۳)د حضرت عبدالله رضي الله عنه په قول سره هم دا روايت په ابن جرير کښې دې اود حضرت قتاده رحمه الله نه هم داسې مرسل روايت نقل دې.

| كِتٰبَهٗ | اُوْتِيَ | فَاَمَّا مَنْ |
|---|---|---|
| عملنامه خپله | چې ورکړې شوه | نو هر هغه څوك |
| نوچاته چې عملنامه په ښي لاس کښې ورکړې شي | | |

| اِنِّيْ ظَنَنْتُ | كِتٰبِيَهْ | اقْرَءُوْا | هَآؤُمُ | فَيَقُوْلُ | بِيَمِيْنِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه ما يقين کوؤ | عملنامه زما | اولولئ | راشئ | پس وائي به | په ښي لاس دهغه کښې |
| ......................چې | زه په دې پوهه ووم | راشئ زما عمل نامه اولولئ | | (خلقو) | نو هغه به وائي |

| رَّاضِيَةٍ | فِيْ عِيْشَةٍ | فَهُوَ | حِسَابِيَهْ | مُلٰقٍ | اَنِّيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ښه کښې وي | په عيش (ژوند) | نو هغه به | دحساب خپل سره | ملاويدونکې يم | چې بيشکه زهٔ |
| نوهغه به ښه دمزو ژوند تيروي | | ......... | زه به خپل حساب ته مخامخ کيږم | | |

| دَانِيَةٌ | قُطُوْفُهَا | عَالِيَةٍ | فِيْ جَنَّةٍ |
|---|---|---|---|
| لاندې زنګيدونکې وي | چې غنګو چې دميوؤ دهغې به | داوچتې مرتبې | په جنت کښې به وي |
| چې ميوې به ئې راښکته وي ................ | | | په اوچت جنت کښې به وي |

(۱) وسنده صحيح.
(۲) ابوداؤد کتاب السنة باب ل الجهمية:٤٧٢٧ وسنده صحيح.
(۳) ابن ماجه کتاب الزهد باب ذکر البعث:٤٢٧٧، ترمذی:٢٤٢٥، احمد:٤١٤/٤.

| كُلُوْا | وَاشْرَبُوْا | هَنِيْٓـًٔا | بِمَآ | اَسْلَفْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| خورئ | اوڅکئ | ښه په مزه سره | په بدل دهغه عملونو کښې | چې مخکښې ليږلي وو تاسو |
| (او زمونږ د طرفه به ورته وئيلې شي) ښه په مزه خورئ څکئ د هغې عملونو په بدله کښې چې په تيرو | | | | |
| فِى الْاَيَّامِ | الْخَالِيَةِ | | | |
| په ورځو | تيروشوو کښې | | | |
| ورځو کښې مو کړې وو | | | | |

قوله تعالى:- فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ

**چاته چه به عمل نامه په ښى لاس كښى ملاويږى:** دلته بيان كولې شى چه كوموخوش نصيبوته به د قيامت په ورځ عمل نامې په ښى لاس كښې وركولې شى هغه نيك بخته حضرات به ډير زيات خوشحاله وى اوډيرخوشحالئى نه به هريوته وائى چه زماعمل نامه خو اولوله اودا ددې د پاره چه كوم گناهونه د بشريت په وجه شوې وو هغه هم د دوى د توبه په وجه د دوى د عمل نامې نه ختم كړې شوى دى اونه صرف ختم كړې شوى دى بلكه دهغې په ځائى نيكئى ليكلې شوى دى. نو دوى به دا د سراسر نيكو عمل نامې يو يو ته په خوشحالوسره ښائى. حضرت عبدالرحمن بن زيد رحمه الله فرمائى چه د (ها) نه پس لفظ(وُم) زيات دې خو ښكاره خبره دا ده چه (هانوم) معنى كښې د(هاكم) دې.حضرت ابوعثمان رحمه الله فرمائى چه پټ په پرده كښې به مؤمن ته خپله عمل نامه وركولې شى كوم كښې چه به د هغه گناهونه ليكلې شوى وى هغه به دا لولى اود هرې گناه په ليدو به د ده هوش الوزى.د مخ رنگ به ئى پيكه كيږى په دې كښې به دده نظر په خپلو نيكو باندې پريوځى نو گورى به چه د ده بدئى به ئى هم په نيكو بدلې كړې وى.دهرې بدئى په ځائى نيكى ليكلې شوې ده او اوس به دهغه وينكى كولاؤ شى او دخوشحالئى نه به راوخى اودريږى اوچه څوك هم ملاويږى هغه ته به وائى لږه شان زماعمل نامه اولوله حضرت حنظله رضي الله عنه چاته چه فرښتودهغه د شهادت نه پس غسل وركړې وو دهغه نمسى حضرت عبدالله رحمه الله فرمائى چه الله تعالى به خپل بنده دقيامت په ورځ خپلې مخې ته اودروى اود بدى به د هغه د عمل نامې په شا ليكلې شوې وى چه ده ته به خودلې شى اوالله تعالى به ده ته وائى چه اوښايه تادا اعمال كړى دى؟هغه به اقرار كوى چه اوالله تعالى دا بدئى زما نه شوى دى الله تعالى به فرمائى چه گورد ماته په دنياكښې رسوا نه كړې نه مې دې فضيحت اوكړو اوس دلته هم زه تاته معافى كوم او ستاټول گناهونه معاف كوم.كله چه دې نه دې فارغ شى نوهله به خپله عمل نامه په خوشحالئى سره يو بل ته ښائى گرځى به.دحضرت عمر رضي الله عنه صحيح حديث چه اول بيان كړې شوې دې په كوم كښې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى الله تعالى به خپل بنده د قيامت په ورځ خپل ځان له راوبلى اود هغه نه به د ده دگناهونوباره كښې تپوس كوى چه فلانكې گناه دې كړې؟فلانكې گناه دې كړې؟ هغه به اقرار كوى ترديې چه پوهه به شى چه بس اوس هلاك شوم. دغه وخت به الله تعالى اوفرمائى اې زما بنده په دنيا كښې ما ستاپه دې گناهونوپرده اچولې وه اوس به زه تا څه رسوا كوم؟ زه ما ته معاف كړې بيا به د هغه عمل نامه په ښى لاس كښې وركړې په كومه چه به صرف نيكئى وى خود كافرانواومنافقانوباره كښې خو به گواه چغې وهې چه دا هغه خلق دى كومو چه په الله تعالى باندې دروغ ونيل خلقو واورئى په دې خلقوباندې د الله تعالى عذاب دې.([1])

---

[1] صحيح بخارى كتاب المظالم باب قول الله تعالى ﴿الا لعنة الله على الظلمين﴾: ٢٤٤١، صحيح مسلم: ٢٧٦٨.

بیافرمانی چه دادښی لاس دعمل نامې والا وائی چه ماته خوهم په دنیاکښې پوره یقین ووچه داد حساب ورځ خو یقیني راتلونکې ده لکه چه بل ځائی کښې ارشاد دی﴿الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾یعنی ددوی یقین ووچه دوی خپل رب سره ملاویدونکی دی.اوفرمانیلې شوچه د دوی بدله دا ده چه دوی به خوښ او د زړه د خوشحالولو ژوندبیامومی او په اوچتو اوچتو جنتونوکښې به اوسیږی د کومو محلونه چه به اوچت اوچت وی د کومو حورې چه ښکلې شکل او نیك سیرته وی هغه کورونه به د نعمتونو دډکوخزانووالاوی اوداتول نعمتونه به نه اخوا کیدونکی اونه ختمیدونکی بلکه د کمی نه به هم محفوظ وی. یوسړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ داوچتو اوچتو جنتونووالا به خپل مینځ کښې یوبل سره ملاقاتونه هم کوی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل چه اوداوچتو درجووالا خلق به د کمې مرتبې والا خلقو له راکوزیږی او په ښه مینه او محبت سره به سلام او مصافحه او هرکلې وی اودا ده چه د لاندې والا خلق به دخپل عمل دکمی په وجه پورته نه شی ختې.په یوبل صحیح حدیث کښې دی چه په جنت کښې سل درجې دی او په هرو دوو درجوکښې دومره فاصله ده چه څومره په زمکه او آسمان کښې ده[١] بیافرمانی چه د دې میوې به لاندې لاندې وی.

حضرت براء بن عازب ﷺ وغیره فرمائی چه دومره ټیټې به وی چه جنتی به په خپل چپرکټ باندې په ملاسته ملاسته دا میوې راشوکوی[٢] رسول الله ﷺ فرمائی چه هریوجنتی ته به د الله تعالی د طرف نه یو لیکلې شوې پروانه ملاویږی په کوم کښې چه به لیکلې وی﴿بسم الله الرحمن الرحيم هذا كتاب من الله لفلان ابن فلان ادخلوه جنة عالية قطوفها دانية﴾ د الله تعالی چه رحمن او رحیم دې د هغه په نوم شروع،دا پروانه ده د الله تعالی د طرف نه د فلانکی سړی دپاره چه د فلانکی څوئ دې اې د اوچتو او ټیټیوشوو کو غونچو والا مزیدار جنت ته ئې پریږدئی[٣] بعضې روایتونوکښې دی دا پروانه به په پل صراط باندې ملاویږی.

بیا فرمائی چه د احسان په توګه او د نور لطف اوکرم په توګه به دوی ته زیاتی هم د خوراك څښاك آسانتی ورکولې شی او وئیلې به شی چه دا ستاسو د نیکواعمالوبدله ده د اعمالو بدله وئیل صرف د لطف اوکرم په وجه دی ګنی په صحیح حدیث کښې دی حضور ﷺ فرمائی عمل کونی نیغ او نیزدې نیزدې اوسئی او پوهه شئی چه صرف اعمال جنت ته بوتللود پاره کافی نه دی. خلقو عرض اوکړو حضور ﷺ ستاسو اعمال هم نه دی؟ وئی فرمائیل چه نه، اودابله خبره ده چه د الله تعالی فضل اوکرم شامل حال شی.[٤]

| وَأَمَّا مَنْ | أُوتِيَ | كِتَابَهُ | بِشِمَالِهِ |
|---|---|---|---|
| او هر هغه څوك | چې ورکړې شو | عملنامه خپله | په ګس لاس دهغه کښې |

| او چاته چې عملنامه په ګس لاس کښې ورکړې شي |
|---|

| فَيَقُولُ | يَا لَيْتَنِي | لَمْ أُوتَ | كِتَابِيَهْ | وَلَمْ أَدْرِ |
|---|---|---|---|---|
| پس وائی به | اے کاش چې نۀ وې راکړې شوې ماته | | عملنامه زما | او معلوم نۀ وې ماته |
| نو هغه به اووائی | ښه به وه چې دا عملنامه هډو راکړې شوې نه وې | | ......... | او زۀ هډو |

[١] صحیح بخاری کتاب الجهاد والسیر باب درجات المجاهدین فی سبیل الله :۲۷۹۰.
[٢] الطبری:۵۸۶/۲۳.
[٣] المعجم الکبیر:۶۱۹۱. (طبرانی)
[٤] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب القصد والمداومة العمل:۶۴۶۷، صحیح مسلم:۲۸۱۸.

مَا حِسَابِيَهْ ﴿٢٦﴾ يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ مَآ أَغْنٰى

چي څه دي حساب زما | اے کاش چي دا مرګ | وي فيصله کونکي (يعني اخري) | هيڅ دفع اونه کړه

خبر نه وي چي زما حساب څه دي ؟! | اني افسوس! چي په مرګ مي قصه ختمه شوي وي! زما مال څو

عَنِّيْ مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ هَلَكَ عَنِّيْ سُلْطٰنِيَهْ ﴿٢٩﴾ خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ﴿٣٠﴾

مال زما | برباد شو (ختم شو) | زمانه | اقتدار زما | اونيسئ دي | او | پټئ واچوئ ده ته

ماته هيڅ فائده رانکړه | زما اختيار هم لاړو | (حکم به اوشي) دي اونيسئ او طوق ورته واچوئ

ثُمَّ الْجَحِيْمَ صَلُّوْهُ ﴿٣١﴾ ثُمَّ فِيْ سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُوْنَ

بيا دوزخ ته | اوغورزوئ دي | بيا په يو زنځير کښي | چي ګزونه دهغي | او یاګزونه وی

بيا ئي دوزخ ته ورداخل کړئ! | بيا ئي په داسي زنځيرونو کښي اوتړئ | چي دهغي اوږدوالي

ذِرَاعًا فَاسْلُكُوْهُ ﴿٣٢﴾ إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ ﴿٣٣﴾

پس ننباسئ ده لره (په دوزخ کښي) | بيشکه دي وؤ | چي ايمان ئي نۀ راوړوا | په الله | لوئ باندي

اوياګزه دي | ......................ده به په لوئي الله ﷻ ايمان نه راوړو

وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ﴿٣٤﴾ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هٰهُنَا

او تيزول ئي نۀ کول | په طعام ورکولو | مسکين ته | پس نشته | ده لره | نن ورځ | دلته |

اومسکين ته به ئي د روټئ ورکولو ترغيب نه ورکولو | نو نن ئي دلته څوک

حَمِيْمٌ ﴿٣٥﴾ وَّلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِيْنٍ ﴿٣٦﴾ لَّا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُوْنَ ﴿٣٧﴾

څوك دوست | اوند طعام شته | ماسوا | نو ددزخمونونه | چي نۀ به خوری هغه |ماسوا دخطا کارونه

دوست نشته | اود وينونه سوا ئي بل څه خوراک نشته| هغه خوراک چه د ګناهګارانو بغير ئي بل څوک نه خوري

**قوله تعالى:- وَأَمَّا مَنْ أُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ**

**کومو ته چه به عمل نامه په ګس لاس ورکولې شي:** دلته دګناهګارانو حال بيانولې شي چه کله د قيامت په ورځ هغوی ته د هغوی عمل نامه په ګس لاس کښې ورکولې شي دوی به ډير پريشانه او پښيمانه وی اوپه حسرت او ارمان سره به وائی چه څه به ښه وه چه مونږ ته دا عمل نامه نه ملاويدله او افسوس چه مونږ د خپل حساب د دې کيفيت نه خبرشوې نه وې او افسوس چه مرګ زمونږ کار خلاص کړې وې دا دويم ژوندون مونږ ته هډو ملاوشوې نه وو. د کوم مرګ نه چه په دنياکښې مونږ ډيريريدلو نن به دهغې تمناګانې کوی وائی به چه زمونږ مال اودولت هم نن زمونږ ملګرتياپريخوده اوزمونږ دې خيزونو هم زمونږ نه داعذاب اخوانه کړې شو. يوازې زمونږ په ذات باندې دا مصيبت راپريوتلو نه څوك امداد کونکې مونږ ته ښکاری اونه د بچ کيدو څه صورت په نظر راځي. الله تعالى به فرښتوته حکم اوکړی دې راونيسئ اود ده په مرئی کښې طوق واچونی دې دوزخ ته بوځئ او په هغې کښې ورواوغورزوئ. حضرت منهال ابن عمرو؆ فرمائی د الله تعالى دا فرمان چه دې اونيسئ اوريدو سره به اويازره فرښتې د ده طرف ته راټوپ کړی په کوموکښې چه که يوې ته هم الله تعالى داحکم اوکړی نو يوخوځه چه اويازره کسان به راګيرکړی اودوزخ ته به ئې اوغورزوی. په ابن ابی الدنياکښې دی چه څلور لاکهه فرښتې به د ده طرف ته رامنډې کړی اوهيڅ څيز به باقی نه وی او هغه به مات رامات کړی. دې به

واني ستاسوماسره څه تعلق دي؟ هغوی به واني الله تعالی تبارك وتعالی په تاباندې غضب کړې دې په دې وجه هريوځيز تاته په غصه دې.
فضيل بن عياض رحمه الله فرماني چه د الله تعالی د دې فرمان جاري کيدو سره به اويازره فرښتې ده ته په غصه کښې رامنډې کړي په کوموکښې چه به هره يوه په بله باندې وړاندېوالې کول غواړي چه ده ته به زه طوق اچوم. بياهغه د دوزخ په اورکښې ورغوړته کولو حکم کيږي. بيا به په هغه زنځيرونو کښې راګيرولې شي کومو يوسر چه به دکعب بن احبار رضی الله عنه په قول د ټولې دنياد اوسپنې برابر وی.حضرت ابن عباس رضی الله عنه او ابن جريج واني چه دا ناپ تول د فرښتود لاس دې. دعبدالله بن عباس رضی الله عنه قول دې چه دا زنځيرونه به د هغه په بدن کښې اوپيللې شي د ډکومتيازو په ځاني کښې به ورکولې شي اوپه خله به ترې راويستلې شي اوداسې به په اورکښې وريتولې شي لکه په سيخ کښې کباب اوډکی کښې ملخ.
داهم روايت دې چه د روستونه به دا زنځيرونه اچولې شي اود سپيږمو د دواړو سورونه به راويستلې شي د کومو په وجه چه به هغه په پښوباندې اودريدې هم نه شي.(١)دمسند احمدپه يومرفوع حديث کښې دی که يولوی شان کاڼړې د آسمان نه راګذارکړې شي نو په زمکه باندې به هغه په يوه شپه کښې راورسی خوکه دا د دوزخيانود ترلوولاد زنځير په يوسر باندې پريخودلې شي نو بل سرته رسيدوکښې به څلوينښت کاله لګي.داحديث په ترمذی کښې هم دې اوامام ترمذی رحمه الله دې ته حسن واني.(٢)

**قوله تعالی:- إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ**

**په الله ﷻ باندې ايمان اومسکين باندې خوراک کول:-** بيافرماني چه دوی په الله ﷻ باندې ايمان نه لرلو اونه به ئې چاته دمسکين د خوراك ورکولوترغيب ورکولو يعنی نه به ئې د الله ﷻ طاعت او عبادت کولو نه به ئې د الله ﷻ د مخلوق حق اداکولو سره هغوی ته نفع رسوله.د الله ﷻ حق خو په مخلوق باندې دې چه دهغه توحيد اومنې هغه سره څوك شريك نه کړي اود بنديګانوپه خپل مينځ کښې په يوبل حق دادې چه يوبل سره احسان او ښه سلوك اوکړي او په خوکارونوکښې ديوبل سره امداداوکړي په دې وجه الله ﷻ دا دواړه حقونه په يوځاني بيان اوفرمانيل لکه چه مونځ اوکړئې او زکوة ورکړئې. او نبی کريم ﷺ د خپل انتقال په وخت کښې دا دواړه يوځائې بيان فرمانيلې چه د مانځه حفاظت اودخپلو ماتحتانوسره نيك سلوك کوئې. بيا فرمان دې چه په نن ورځ د ده دلته څوك خالص دوست داسې نشته هيڅ څوك نيزدې خپلوان يا سفارشی نشته چه دې د الله تعالی د عذابونونه بچ کړې شی اونه د هغه د پاره څه خوراك شته بغير د خراب مردار او سخا بې کاره ځيزنه د کوم نوم چه غسلين دې. دا د دوزخ يوه ونه ده او ممکن ده چه هم د دې دويم نوم زقوم وی اود غسلين معنی داهم کيدې شی چه د دوزخيانود بدن نه کوم وينې نونه اوبه بهيږی هم دغه دی او دا هم وئيلې شوی دی چه د هغوی پيپ وغيره.

| فَلَآ | أُقْسِمُ | بِمَا | تُبْصِرُونَ ۝ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|
| پس نه | زه قسم خورم | په هغه ځيزونو باندې | چې تاسو ئې وينئ | او په هغه ځيزونو باندې |
| نوزه په هغه څه قسم خورم چې تاسوئې وينئ | ..........او په هغه څه چې تاسو ئې | | | |

| لَا تُبْصِرُونَ ۝ | إِنَّهُ | لَقَوْلُ | رَسُولٍ كَرِيمٍ ۝ |
|---|---|---|---|
| چې تاسو ئې نه وينئ | بيشکه (دا قران) | خامخا قول دې | درسول کريم (محمد ﷺ) |
| نه وينئ | ..........بيشکه داقران ديوې عزت مندې فرښتې راوړې کلام دې | | |

(١) الطبری:٢٣/٥٨٩.
(٢) احمد:٢/١٩٧، ترمذی کتاب صفة الجهنم باب ل بعد لعرجهنم:٢٥٨٨وسندحسن، کتاب الزهد:٢٩٠.

| وَلَا بِقَوۡلِ كَاهِنٍ | تُؤۡمِنُوۡنَ | مَّا | قَلِيۡلًا | وَّمَا هُوَ بِقَوۡلِ شَاعِرٍ |
|---|---|---|---|---|
| اونۀ دې قول (كلام) دكاهن | چې تاسو ايمان راوړئ | هغه | ډير لږ دي | او نۀ دې دا قول (كلام) دشاعر |
| اونه دچا كاهن كلام دې | ........ | تاسوډير كم ايمان راوړئ | | اود چا شاعر كلام نه دې |

| مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ | تَنۡزِيۡلٌ | تَذَكَّرُوۡنَ | قَلِيۡلًا مَّا |
|---|---|---|---|
| دطرفه درب العالمين نه | نازل شوې دې | چې تاسو نصيحت اخلئ | ډير لږ دي هغه |
| دا د رب العالمين د طرفه نازل شوې دې | ........ | | تاسوډير كم پوهيږئ |

**قوله تعالى :- فَلَآ اُقۡسِمُ بِمَا تُبۡصِرُوۡنَ**
**قرآن پاک دالله تعالى كتاب دې** :الله تعالى قسم خوری،پخپلومخلوقاتوكښې دخپلوهغه ښنبوقسم خوری كوم چه خلق ګوری.اودهغې هم كوم چه دخلقو د نظرونونه پټ دی په دې خبره چه قرآن كريم د هغه كلام اودهغه وحی ده كوم چه هغه په خپل بنده او غوره رسول ﷺ باندې نازل كړې دې. كوم چه هغه د امانت د اداكولو اود رسالت د تبليغ د پاره خوښ كړې دې. د رسول ﷺ نه مراد حضرت محمدمصطفیﷺ دې د دې اضافت د رسول اكرم ﷺ طرف ته په دې وجه اوكړې شو چه د دې تبليغ كونكې او پيژندونكې هم هغویﷺ دی.د دې د پاره نی د رسول لفظ راوړو. ځکه چه رسول الله ﷺ خوپيغام د خپل راليګونكی رسوی.داسې ده چه ژبه د هغه وی خو وينا د ليګونكی وی. هم دغه وجه ده چه په سورة تكوير كښې د هغه نسبت په هغه رسول سره كړې دې كوم چه د فرښتونه دې. فرمان دې ﴿اِنَّهٗ لَقَوۡلُ رَسُوۡلٍ كَرِيۡمٍ الخ ﴾يعنی دا قول د هغه بزرګ رسول دې چه د قوت والا اود عرش د مالك په نيز د مرتبې والا دې. هلته د هغه ويناملې شی اوهغه دې هم امانت دار،دې نه مراد حضرت جبرائيلؑ دې. د دې پاره نی د دې نه پس اوفرمائيل ستاملګرې يعنې محمدﷺ مجنون او ليونې نه دې بلكه هغه حضرت جبرائيلؑ د هغه په خپل اصلی شكل كښې د آسمان په غاړوكښې ليدلې هم دې اوهغه په پټ علم باندې بخيل هم نه دې. او نه دا د شيطان رټلې شوی قول دې.
دغه شان دلته هم ارشاد كيږی چه نه د شاعركلام دې اونه د كاهن قول دې البته ستاسو په ايمان كښې اود نصيحت په حاصلولوكښې كمې دې. نوكله نی د خپل كلام نسبت د رسول انسی طرف ته كړې اوكله درسول ملكی طرف ته ځکه چه هم دې د دې پيژندونكې راوړونكې او په دې باندې امين دې. او په اصل كښې كلام د چا دې؟ دا نی هم ورسره ورسره بيان اوفرمائيلو چه داد رب العالمين نازل رې شوې دې.
**د اسلام نه وړاندې د عمر فاروق ؓ خپله يوه واقعه**:-حضرت عمر بن الخطابؓ د خپل اسلام راوړونه وړاندې يوه خپله واقعه بيانوی چه زه حضورﷺ له لاړم اومې كتل چه حضورﷺ مسجدحرام ته رسيدلې دې،زه هم لاړم اودريدم. نبی كريمﷺ سورت حاقه شروع كړو د كوم په اوريدوسره چه ماته د دې ښكلې الفاظو مضامينود بندش او فصاحت او بلاغت باندې حيرانتيا راغله. آخره كښې زما په زړه كښې خيال راغلو چه قريش ټيك وائی چه دا سړې شاعر دې اوس زه لا په دې خيال كښې ووم چه نبیكريمﷺ دا آيت تلاوت كړو چه دا قول د رسول كريمﷺ دې د يوشاعر نه دې په تاسوكښې د ايمان كمې دې. نو ماخيال اوكړو چه ښه ده شاعر نه دې نو كاهن خو خامخادې اخواد هغویﷺ په تلاوت كښې دا راغله چه دا د كاهن قول هم نه دې تاسو نصيحت كم اخستې دې. دې نه پس حضورﷺ لوستلوتردې چه پوره سورت ختم شو. فرمائی چه دا رومبئی موقعه وه چه زما په زړه كښې اسلام پوره

خاني اوکړو او په رګ رګ کښې مې د اسلام صداقت ورننوتلو. (۱) نوداهم د هغه ټولو اسبابوچه حضرت عمرﷺ اسلام راوړلوپوره یوخاص سبب وو. مونږ د هغوی د اسلام راوړلو پوره کیفیت "سیرت عمرﷺ" کښې لیکلې دي. (ولله الحمدوالمنة)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَاَخَذْنَا | بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴿٤٤﴾ | عَلَيْنَا | | وَلَوْ تَقَوَّلَ |
| خامخا به نیولې وو مونږه | یو خبره | په مونږ باندې | جوړه کړه محمد ﷺ | او که دخانه اوونیله |
| او که دې پیغمبر په مونږ باندې (د خان نه) څه خبره تړلې وي ا......نو مونږ به ترې نه | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا مِنْكُمْ | الْوَتِيْنَ ﴿٤٦﴾ | مِنْهُ | ثُمَّ لَقَطَعْنَا | بِالْيَمِيْنِ ﴿٤٥﴾ | مِنْهُ |
| پس نۀ به وو له تاسو نه | رګ دزړه | دهغه نه | بیا به پریکړې وو مونږه | ښي لاس | دهغه نه |
| ښي لاس نیولې وو ا بیا به مو ورله د زړه رګ کټ کړې وو ا...........................نو بیا به | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٨﴾ | لَتَذْكِرَةٌ | وَاِنَّهٗ | حٰجِزِيْنَ ﴿٤٧﴾ | عَنْهُ | مِّنْ اَحَدٍ |
| دپاره دمتقیانو | یو نصیحت دې | او بیشکه دا قران | منع کونکي | ددې نه | هیڅوک |
| په تاسو کښې هیڅوک ددې سزا نه بچ کوونکي نه وو ا اوداقرآن د پرهیزګارانو دپاره نصیحت دې | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُّكَذِّبِيْنَ ﴿٤٩﴾ | اَنَّ مِنْكُمْ | لَنَعْلَمُ | وَاِنَّا |
| دروغ ګنړونکی دی | چې بیشکه څه خلق له تاسو نه | خامخا پوهیږو | او بیشکه مونږه |
| او مونږ په تاسو کښې (پیغمبرانو لره) دروغژن ګنړونکی ښه پیژنو | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِنَّهٗ | عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٥٠﴾ | لَحَسْرَةٌ | وَاِنَّهٗ |
| او بیشکه دا قران | په کافرانو باندې | خامخا به دافسوس وي | او بیشکه دا دروغ ګنړل دقران |
| اوداقران دکافرانو دپاره د پښیمانتیا سبب دې ا اودا قران یېخي | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعَظِيْمِ ﴿٥٢﴾ | بِاسْمِ رَبِّكَ | فَسَبِّحْ | لَحَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٥١﴾ |
| چې لوئ دی | په نوم درب خپل | پس پاکي وایه | یقیني حق دې |
| یقیني خبره ده(نو داني پیغمبره) ته دخپل رب دنوم تسبیح وایه ا چې لوئې دې | | | |

**قوله تعالىٰ:- وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴿٤٤﴾**

**رسول ﷺ ته په قرآن پاک کښې د کمې زیاتې اختیارنشته:**-دلته دالله تعالی ارشاد دې چه څنګه تاسو وائې او په واقعې کښې زمونږ دا رسول ﷺ داسې وي چه زمونږ په رسالت کښې ئې څه کمې زیاتې کولو یا زمونږ نه ونیلې شوې خبره ئې زمونږ نوم سره بیانوله نو یقیناً مونږ به هم هغه وخت هغه ته خرابه سزا ورکوله یعنی په خپل ښی لاس باندې د هغه ښي لاس نیولو اوهغه رګ به مو پریکړې وې په کوم سره چه زړه زورند دې او زمونږ اود هغه په مینځ کښې به څوک هم نه شو راتلې چه د هغه د بچ کولوکوشش به ئې کولو. نومطلب دا شو چه حضورﷺ رښتوني پاکباز او د هدایت والا دې د دې د پاره الله تعالی د دین زبردست تبلیغ خدمت د حضورﷺ په ذمه کړې دې اود خپل طرف نه ئې زبردست معجزې اود هغوی ﷺ د صدق بهترین او لوئ لوئ نښې نبی کریم ﷺ ته ورنصیب کړې دی.

(۱) احمد: ۱/۱۷، مجمع الزوائد: ۹/۶۵.

**قوله تعالى:-** وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ

**قرآن پاك نصيحت دي:** بيا فرمائي چه دا قرآن پاك د متقيانو دپاره تذكره ده.لكه چه بل خائي كښې ارشاد دي اووايه چه دا قرآن پاك د ايماندارانود پاره هدايت اوشفاده او بې ايمانه خوړانده اوكاڼه دي. بيافرمائي سره د دې صفائي او كولاؤ حق مونږ ته ښه معلوم دى چه په تاسوكښې بعضې دا دروغ ګنړي. دا تكذيب به د دغې خلقو د پاره د قيامت په ورځ د ارمان او افسوس ذريعه وي. يادا مطلب ني دې چه دا قرآن پاك او په دې ايمان به په حقيقت كښې په كافرانوباندې د حسرت اوارمان باعث وي. لكه چه بل خائي ارشاد دې چه دغه شان مونږ دا د ګناهګارانو په زړونوكښې وركوزوو چه هغوى په دې باندې ايمان نه راوړي.بل خائي ارشاددي ﴿وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ﴾ دوى كښې اود دوى په خواهش كښې مو پرده اچولې ده. بيا فرمائي داخبربالكل حق رښتيا او بې شك او شبهې دې. بيا خپل نبي اكرم ﷺ ته حكم وركوى چه د دې قرآن پاك د نازلونكي رب عظيم د نوم بزرګي او پاكي بيانوه.د الله تعالى په فضل اوكرم سره د سورت حاقه تفسير ختم شوالحمد لله رب العلمين.

| ركوع ګاني | | سورة المعارج مكية وهي اربع واربعون اٰية وركوعان | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ٢ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ٤٤ |

سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ① لِّلْكٰفِرِينَ لَيْسَ لَهُ

اوغوښتو | غوښتونكي | هغه عذاب | چې واقع كيدونكي دې | دپاره دكافرانو دي | نشته هغې لره

يوسوال كونكي دهغه عذاب د راتلو په باره كښې تپوس اوكړوا چې په كافرانو به واقع كيږي| اودهغې

دَافِعٌ ② مِّنَ اللهِ ذِي الْمَعَارِجِ ③ تَعْرُجُ الْمَلٰئِكَةُ وَالرُّوحُ

دفع كونكي | دطرفه دالله نه دې | اچي مالك داندرپايو دي | خيژي | فرښتې | او روح (جبريل عليه السلام)

خوک دفع كونكې نشته | دالله ﷻ دطرفه به وي|چې داوچتو درجو مالک دې| فرښتې اوروح به ورته په

إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ ④ فَاصْبِرْ

هغه ته | په داسې ورځ كښې | چې دې مقدار دهغې | پنځوس زره كاله | پس صبر كوه

په داسې ورځ كښې ورخيژي | چې دهغې اندازه به پنځوس زره كاله وي| نو ته صبر كوه

صَبْرًا جَمِيلًا ⑤ إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا ⑥ وَنَرٰىهُ قَرِيبًا ⑦

صبر ښائيسته | بيشكه دوئ | وينې هغه عذاب | لرې | او مونږه وينو هغه | نزدې |

اوبې فرياده صبر كوه | دوئ ته (د) دغه ورځ (راتلل) لرې ښكاري |..............اومونږ ته نزدې ښكاري

**قوله تعالى:-** سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ

﴿بِعَذَابٍ﴾كښې چه كومه "ب" ده هغه ښائي چه دلته د فعل تضمين دې لكه چه فعل مقدردې. يعنى دا كافران دعذاب په واقع كيدلو كښې تندى كوى لكه چه بل خائي ارشاددې ﴿وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُخْلِفَ اللهُ وَعْدَهُ﴾ يعنى دوى په عذاب غوښتلوكښې جلدى كوى اوالله تعالى هيڅ كله وعده خلافى نه كوى يعنى دهغه عذاب به په خپل وخت مقرر باندې راځي.

په نسائي کښې د حضرت ابن عباس نه روايت دې چه کافرانود الله تعالى عذاب اوغوښتلوچه په هغوی باندې يقينًا راتلونکې دې[1] يعنې په آخرت کښې. دهغوی دغوښتلوداالفاظ هم بل ځائې په قرآن پاك کښې نقل دی وائی ﴿اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ يعنی الله تعالى که چرې داستاد طرف نه حق وی نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼي راووره وه، په مونږ باندې چرته دردناك عذاب راوله. ابن زيد رحمه الله وغيره وائي دې نه مراد هغه دعذاب وادی ده چه دقيامت په ورځ به دعذابونونه بهيږی. خوداقول ضعيف دې اودمطلب نه ډيرلرې دې. صحيح اولنې دې په کوم باندې چه دکلام دلالت دې. بيافرمائی چه هغه عذاب دکافرانود پاره تياردې اوپه هغوی باندې راتلونکې دې کله چه راشی نوهغه څوك لرې کونکې نشته اونه په چاکښې دومره طاقت شته چه هغه اخوا کړی.

**قوله تعالى:- مِّنَ اللَّهِ ذِي الْمَعَارِجِ**

**د معارج مفهوم:** ﴿ذِي الْمَعَارِجِ﴾ معنی دابن عباس رضی الله عنه د تفسيرمطابق ددرجو والايعنی داوچتوالي او بزرگئی والا[2] حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دمعارج نه دآسمان پاوړې مراددی[3] قتاده رحمه الله فرمائی د فضل رحم کرم او نعمت والايعنی داعذاب دهغه الله تعالى د طرف نه دې چه د صفتونو مالك دې. د هغه طرف ته فرښتې او روح ورخيژی. دروح په تفسيرکښې حضرت ابوصالح رحمه الله فرمائی چه دا د يو قسم مخلوق دې انسان خو نه دې ولې بالکل د انسان په شان دې. زه وايم چه دې نه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام دې اودا عطف وی عام په خاص اوممکن دی چه دې نه مراد د بنيادمو روحونه دی ځکه چه هغه هم د قبض کولونه پس د آسمان طرف ته خيژی. لکه څنګه چه د حضرت براء رضی الله عنه په اوږد حديث کښې دی چه کله فرښتې پاك روح اوباسی نو هغه اخلی اود يوآسمان نه بل آسمان ته خيژوی تردې چه اووم آسمان ته رسی سره[4] د دې چه د دې په بعضې راويانوکښې کلام دې. خودا حديث مشهوردې اود دې په شهادت کښې دابوهريره رضی الله عنه حديث هم دې[5] لکه چه اول دا روايت امام احمد رحمه الله ترمذی او ابن ماجه کښې تيرشوې دې. د کوم د سند راوی چه د يوجماعت په شرط باندې دې. اولنې حديث هم مسند احمد ابوداؤد نسائی او ابن ماجه کښې دې. مونږ د دې الفاظ اود دې د طرق بسيط بيان په آيت ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ په تفسيرکښې کړې دې.

**قوله تعالى:- خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ**

**د پنځوسوزروکالود قيامت ورځ:** بيا فرمائی چه په هغه ورځ کښې چه د هغې مقدارد پنځوسوزرو کالوده. په دې کښې څلور اقوال دی يوخودا دې چه دې نه مراد هغه لرېوالې دې چه د اسفل السافلين نه عرش معلی پورې دې. اودغه شان د عرش نه لاندې نه واخله ترپورته پورې فاصله هم دومره ده اوعرش معلی د سرو ياقوتودې لکه چه امام ابن ابی شيبه رحمه الله په خپل کتاب "صفت العرش" کښې ذکرکړې دې. ابن ابی حاتم کښې دی حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د دې د حکم انتهاء د لاندې زمکونه د آسمانونود پاسه پورې پنځوس زره کاله دې. او يوه ورځ د زروکالو ده. هم دغه روايت په دويم طريق سره د حضرت مجاهد رحمه الله په قول سره نقل دې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د قول نه نه دې. دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په ابن ابی حاتم کښې روايت دې چه د هرې زمکې پيروالې د پنځوسوکالو په فاصله دې اود يوې زمکې

---

[1] الطبری:۲۳/۵۹۹.
[2] الطبری:۲۳/۶۰۰.
[3] ايضًا.
[4] احمد:۴/۲۸۷، ابوداؤد:۴۷۵۳وهوحسن دا روايت مختصرًا ابن ابی شيبة:۳/۳۱۰، کتاب الزهد:۳۳۹، الشريعة اللآجری:۳۶۷
[5] احمد:۲/۳۶۴-۳۶۵، ابن ماجه کتاب الزهد باب ذکرالموت والاستعداد له:۴۲۶۲وسنده حسن.

نه د بلې زمکې پورې د پنځو سوو کالوپورې لرېوالې دې نو اووه زره کاله داشو اودغه شان د اسمان نو څوارلس زره کاله (۱۴۰۰۰) دا شو اود اووم آسمانه د عرش عظيم پورې شپږ ديرش زره کاله فاصله شوه. هم دا معنى ده د الله تعالى د دې فرمان چه په هغه ورځ کښې د کومې مقدارچه د پنځوسوزرو (۵۰۰۰۰)کالوبرابردې. دويم قول دا دې چه دې نه مراد دا دې چه د کله نه الله تعالى دا جهان پيدا کړې نود هغه وخت نه واخله د قيامته پورې د دې د بقا آخرى موده پنځوس زره کاله ده. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه د دنياټول عمر د پنځوسوزروکالودې اوهم دا يوه ورځ ده چه په دې آيت کښې مراد اخستې شوې دې. حضرت عکرمه رضی الله عنه فرمائي چه د دنيا پوره موده هم دا ده خوچا ته معلومه نه ده بغيرد الله تعالى نه چه څومره تيره شوه او څومره باقي پاتې ده .دريم قول دادې چه دا هغه ورځ ده چه په دنيااوآخرت کښې فاصله ده. حضرت محمد بن کعب رحمه الله هم دا فرمائي خودا قول ډير غريب دې. څلورم قول دا دې چه دې نه مراد د قيامت ورځ ده اودا د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په صحيح سندسره روايت دې.

حضرت عکرمه رضی الله عنه هم دافرمائي[1] دابن عباس رضی الله عنه قول دې چه دقيامت ورځ الله تعالى به په کافرانو باندې د پنځوسوزروکالوکوي[2]دمسنداحمدپه حديث کښې دی چه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړې شو چه دا ورځ خو ډيره اوږده ده. حضورﷺ اوفرمائيل چه په هغه ذات مې دې قسم وی د چا په لاس کښې زما ځان دې دا به په مؤمن باندې دومره آسانه وی چه د دنيا په يوفرض مونځ کښې څومره وخت لګې د دې نه به هم کم وی[3] داحديث په ابن جرير کښې هم دې.د دې دوه راويان ضعيف دی. والله اعلم. د مسندپه يوبل حديث کښې دی چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه سره د قبيله بنوعامر يو سړې تيرشو. خلقو وئيل حضرت داپه خپله قبيله کښې دټولونه مالدارسړې دې.هغوی دې راوغوښتواوورته ئې اوفرمائيل واقعې ته د ټولونه زيات مالدارئې؟هغه عامری اوئيل چه او ماسره رنګ په رنګ په سوونو اوښان قسم قسم غلامان اود اوچتاوچتو درجو اسونه وغيره دی. حضرت ابوهريره رضی الله عنه اوفرمائيل چه ګوره هسې نه چه دا څناور تاد خپل پښولاندې کړدی اوپه خپلو ښکروباندې تا اووهي. باربار ئې هم دا فرمائيل تردې چه د عامر د مخ رنګ والوتلو او هغه اوونيل چه حضرت دا ولې؟ هغوی اوفرمائيل چه واوره ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دی چه څوك د خپلو اوښانوحق نه اداکوی دهغوی په سختئي او د هغوی په نرمئي کښې نو هغه به الله تعالى په کولاو هوار صفا او پلن ميدان کښې راسملوی اودا ټول څناور به ښه تکړه او چاق کړی اوحکم به ورکړی چه په ده باندې خيژئي او تيريږئي.نو يويوبه په ده باندې تيريږی اوکله چه د آخر والا تيرشي نو اولنى به بيا راواپس شي. هم دغه شان عذاب به ورکولې شي. په هغه ورځ د کومې مقدارچه د پنځوسو زرو کالوده. تردې چه د خلقو په مينځ کښې به فيصله اوشي. بيا به هغوی خپله لار اووينی. دغه شان به غوا اسونه چيلئي وغيره ښکرور څناور به ئې په خپلو ښکرو باندې وهي هيڅ يوبه په هغوی کښې بې ښکر يا مات ښکرې نه وی. عامری تپوس اوکړو اې ابوهريره رضی الله عنه اوفرمائې په اوښانوکښې د الله تعالى حق څه دې؟ وئې فرمائيل مسکينانو ته د سورلئي د پاره په تحفه کښې ورکول غريبانانوسره ښه سلوك کول د پئيود پاره څناور ورکول د هغوی د نرانود ضرورت چه د ښځې څناوردپاره وی بغيرد قيمت غوښتلونه ورکول. داحديث په ابوداؤد اونسائی کښې هم په بل سندسره ذکر دې.[4]

---

[1] الطبرى:۶۰۱/۲۳.

[2] ايضاً:۶۰۳/۲۳.

[3] احمد:۷۵/۳، مسندابى يعلى:۱۳۹۰، ابن حبان:۷۳۳۴.

[4] احمد:۴۷۹/۲، ابوداؤدکتاب الزکاة باب فى حقوق المال:۱۶۶۰وسنده حسن، نسائى:۲۴۴۴.

د مسندپه يوحديث كښې دی چه د سرو زرو سپينوزرو د خزانووالا به د دې حق نه ادا كوی د هغه سره زر او سپين زر به د تختوپه شكل كښې جوړولې شي اود دوزخ په اُوركښې به ګرم كولې شي اود هغه تندې اړخ او شا به پرې داغلې شي. تردې چه الله تعالى به د خپلو بنديګانو فيصله اوكړی. په هغه ورخ به مقدار ستاسو په شميركښې د پنځو زرو كالووی.بيا به هغوی خپله لار دجنت يا د دوزخ طرف ته اووينی.بيا وړاندې د چيلو او اوښانو بيان دی لكه چه پورته تير شو اودا بيان هم دې چه اسونه د دريو قسم خلقو د پاره دی يوقسم خود اجر وركونكی، دويم قسم د پرده كونكو اودريم قسم د بوج لټونكو الخ.(۱) دا حديث پوره پوره په صحيح مسلم كښې هم دې. د دې روايتونو د پوره بيانولو اود دې ټولو سندونو او الفاظ ټول نقل كولو مناسب ځائی احكام كتاب الزكوة دې دلته د هغې د نقل كولو زمونږ مقصد صرف هغه الفاظوسره دې چه تردې چه الله تعالى په خپلو بنديګانو كښې فيصله اوكړی په هغه ورخ د كومې مقدار چه پنځوس زره كاله دې. د حضرت عبدالله ابن عباسؓ نه چا تپوس اوكړو هغه كومه ورخ ده چه د هغې مقدار د پنځوسوزروكالوده. ابن عباسؓ اوفرمائيل هغه به كومه د پنځوسو زرو كالو ورخ وی؟ هغه وئيل حضرت زه خو پخپله د تپوس كولود پاره راغلې يم هغوی اوفرمائيل واوره دا دوه ورځې دی د كوموذكر چه الله تعالى په خپل كتاب كښې كړې دی. هم الله تعالى ته د هغې د حقيقت علم دې زه خو سره د نه پيژندلو په كتاب الله كښې څه وئيل مكروه ګڼړم.

بيا فرمائی چه اې نبیﷺ ته د خپل قوم په دروغ ګڼړلو او د عذاب غوښتلو په تندنی باندې كوم چه هغوی خپل ځان ته نه راتلونكې ګڼړی صبراوبرداشت اوكړه لكه چه بل ځائی دی﴿يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهَا ۚ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مُشْفِقُوْنَ مِنْهَا ۙ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهَا الْحَقُّ ۗ اَلَآ اِنَّ الَّذِيْنَ يُمَارُوْنَ فِى السَّاعَةِ لَفِىْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ﴾ يعنی بې ايمان خو د قيامت د زرراتلوخواهش كوی اوايماندارد دې راتلل حق ګڼړی اودې نه ويريږی ددې د پاره نې دلته هم اوفرمائيل چه دوی خو هغه لرې ګڼړی بلكه محال اونه كيدونكی نی ګڼړی خو مونږ دا نيزدې وينو يعنی مؤمن خو د دې راتلل حق ګڼړی او پوهيږی چه اوس به راشی نه ده معلومه چه كله به قيامت قايميږی اوكله به عذاب راځی خكه چه د هغې صحيح وخت خو بغيرد الله تعالى نه بل څوك نه پيژنی نو هر هغه څيز چه د هغې په راتلو او كيدوكښې هيڅ شك نه وی د هغې راتلل نيزدې ګڼړی اود هغې د كيدو هروخت يره وی.

يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ۙ﴿۸﴾ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ
دغه عذاب به په هغه ورځ وی | چې شی به آسمان | پشان دويلی كړې شوؤ زرو | او شی به | غرونه
به دغه ورځ به آسمان دويلې شوې تانبې په شان وی | ..............................او غرونه به درنګينې

كَالْعِهْنِ ۙ﴿۹﴾ وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا ﴿۱۰﴾ يُّبَصَّرُوْنَهُمْ ۭ
پشان دوهلی شوی وړی | او تپوس به نهٔ كوی | يو دوست | دبل دوست نه | حالانكه يو بل به وينی هغوی
وړی په شان وی | اودوست به د دوست پوښتنه نه كوی | ددې باوجود چې مخامخ به ئې وينی

يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ مِنْ عَذَابِ يَوْمِىِٕذٍۢ بِبَنِيْهِ ۙ﴿۱۱﴾
غواړی به مجرم سړې | چې په فديه كښی وركړی | دعذابه ددغې ورځې نه | اولاد خپل
مجرم به په دغه ورځ ارزو كوی | چې ددغې ورځې د عذاب نه دبچ كيدو دپاره (په بدله كښې) خپل ځامن

(۱) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب اثم مانع الزكاة :۹۸۷، احمد:۲/۲۶۲.

وَصَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ﴿١٢﴾ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُـْٔوِيْهِ ﴿١٣﴾ وَمَنْ

او ښځه خپله | او رور خپل | اوخاوندان دقبيلې خپل | هغه | چې پناه ني وركوله ده ته | او هغه څوك

اوخپله ښځه | اوخپل رونړه | اوخپل هغه خاندان ټول وركړي | په كوم كښې چې به دې اوسيدو

فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ثُمَّ يُنْجِيْهِ ﴿١٤﴾ كَلَّا اِنَّهَا لَظٰى ﴿١٥﴾

چې په زمكه كښې دي | ټول | بيا | نجات وركړي ده ته | هرګز نه | بيشكه هغه وورلمبې وهونكې دې

اود ټولې زمكې استوګن خلق | او د دې په بدله كښې خپل خان بچ كړي | خو هيڅكله نه هغه داسې شغله ده

نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى ﴿١٦﴾ تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ﴿١٧﴾

ايستونكې دې | اغوښې پوستكي لره | رابلي به | هغه څوك | چې شاني كړه | او مخ ني واړوو دحق نه

چې «روغه» څرمن غورزوي | .......اوهغه كس به خانته راغواړي چې شا كړې به ئې وه | اومخ به ئې اړولو

وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ﴿١٨﴾

او جمع ني كړو مال | پس سنبال ني كړو

اومال ئې جمع كړلو | اوهغه ئې سنبالولو

قوله تعالى:- يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ﴿٨﴾

دقيامت تباهئ: الله تعالى فرمائي چه كوم عذاب دوى غواړي نو هغه عذاب به پدې غوښتونكو كافرانو باندې په هغه ورځ راځي په كومه ورځ چه به آسمان د مهل په شان شي يعني د تيلود خيرې په شان به شي اوغرونه به داسې شي لكه ويشنلې شوې وړئې. هم دا فرمان بل ځائې كښې دې ﴿وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ﴾ بيا فرمائي چه هيڅ يو نيزدې خپلوان به د خپل نيزدې رشته دار نه تپوس قدرې هم نه شي كولې سره د دې چه يوبل به په خراب حالت كښې ګوري ولې پخپله به داسې مشغول وي چه د بل د حال د تپوس خيال به ني هم نه وي. هريو به په خپل خان اخته وي. ابن عباس ﷺ فرمائي چه يوبل ته به ګوري پيژني به ولې بيابه ترې تختي. لكه چه بل ځائې ارشاد دې ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَاْنٌ يُّغْنِيْهِ﴾ يعني هر سړې به په داسې شغل كښې لګيا وي چه د بل طرف ته د توجه موقعه به ورته نه وي.[1] بل مقام كښې ارشاد رباني دې چه خلقو د خپل رب نه اوويريږئې اودهغه ورځ نه ويره اوكړئې په كومه ورځ چه به پلار د خپل اولاد او اولاد د خپل پلار په هيڅ كار نه راځي الخ. بل ځائې ارشاد دې چه خپلوان به وي خو څوك به د چا بوج نه شي اوچتولې. يوبل فرمان دې ﴿فَاِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ﴾ يعني دشپيلئي پوك وهلو سره به دخپل مينځ يوبل سره خپلولئي او تعلق وغيره ختم شي. او يوبل ځائې فرمان دې ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ ۙ وَاُمِّهٖ وَاَبِيْهِ ۙ﴾. يعني په هغه ورځ به انسان د خپل رور نه مور نه پلار نه ښځې نه او خامنونه تختي هرسړې به د پريشانئي په وجه د بل نه غافل وي. دا به هغه ورځ وي چه په دغه ورځ به د هريو ګناهګار زړه دا غواړي چه خپل اولاد په فديه كښې وركړي اود دوزخ د عذاب نه خلاص شي او خپله ښځه خپل روراو خپله رشته او خاندان او خپله قبيله بلكه كه غواړي نو په مځ د زمكې چه څومره خلق دی دوزخ كښې واچولې شي خوچه هغه آزاد كړې شي.

افسوس څومره زړه سوزونكې منظر دې چه د خپل زړه ټكړې خپل ښاخونه او جرړې او خپل هرڅه

---

[1] الطبرى: ۶۰۵/۲۳.

قرباني کولوته تيار دي دي د پاره چه پخپله بچ شي. (فصيلة) يوه معنی د مال سره هم کړې ده. لندا دا چه خپلې ټولې محبوب هستيانې د خپل طرف د خان په خلاصی کښې د زره نه راضی دې خو هيڅ څيز به په کار نه راځي. هيڅ بدله او فديه به نه شي قبلولې هيڅ عوض او معاوضه به نه شي قبلولې بلکه د هغه اورپه عذابونوکښې به اچولې شي چه اوچتې اوچتې اه. تيزې شغلې غورزونکې او د سخت براس والا دې چه د سر د څرمنې پورې سوزوی او راکاږی. د بدن څرمن لرې کوی او کوپړنی پرسوی هډوکی د غوښې نه جدا کوی رګونه او پټې راکاږی پښې لاسونه شليږی پنډنی پريکيږی مخ ورانيږی هراندام ورانيږی چغې صورې وهی هډوکی ميده کوی څرمنې سوزوی د اور په خپله فصيح ژبه او اوچت آواز سره دخپلو خلقو کومو چه په دنياکښې بدکارنی کړی اود الله تعالی نافرمانئی نی کړی وی آواز کوی اوبيا څنګه چه مرغئی دانه راټولوی دغه شان به د محشر د ميدان نه بدکاره خلق يويو ښه په خيال سره راغونډوی.

قوله تعالی:- تَدْعُوا مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ ۝

**د جهنميانو د عملونو بيان:** -اوس دهغوی بدعملونه بيانولې شي چه دوی دزړه نه دروغ ګنړونکي او په بدن باندې عمل نه کونکي وو دا د مال جمع کونکي او په هغې باندې سربندونکي وو د الله تعالی په ضروری کارونوکښې به هم د مال خرچ کولونه بنديدل بلکه زکوة پورې به نی نه ادا کولو.

حديث شريف کښې دی چه راغونډول او شميرل مه کوه ګنی الله تعالی به نی ستانه هم رامنع کړی.[1]

حضرت عبدالله بن عکيم خو به په دې آيت باندې د عمل کولو په وجه د تيلئی څله هم نه راښندوله.

امام حسن بصری رحمه الله فرمانی چه اې د آدم خويه د الله تعالی وعيداورې بيا هم مال راغونډوې.

حضرت قتاده رحمه الله فرمانی چه د مال په راجمع کولوکښې د حلال او حرام خيال نه ساتلو اوسره د الله تعالی د فرمان به نی د خرچ کولو همت نه کولو.

<table>
<tr><td colspan="3">إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا ۝</td></tr>
<tr><td colspan="3">ا بيشکه انسان ا پيدا کړې شوې دې ا بې صبره</td></tr>
<tr><td colspan="3">ا ......يقينا انسان بې صبره پيدا شوې دې</td></tr>
<tr><td colspan="3">إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوعًا ۝ وَإِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ</td></tr>
<tr><td colspan="3">کله چې اورسيږی هغه ته ا مصيبت ا نو يريدونکي وی ا او کله چې اورسيږی هغه ته ا خير</td></tr>
<tr><td colspan="3">هرکله چې ورته تکليف اورسيږی ا نوفريادونه کوی ا او چې دولت ورته ملاؤ شی ا نو شومتيا کوی</td></tr>
<tr><td colspan="3">مَنُوعًا ۝ إِلَّا الْمُصَلِّينَ ۝ الَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ</td></tr>
<tr><td colspan="3">نو منع کونکي وی ا ماسوا دمونځ کونکو نه ا هغه مونځ کونکی ا چې هغوئ ا په خپل مونځ باندې</td></tr>
<tr><td colspan="3">...... ا د هغه مونځ ګزارو نه سوا چې خپل مونځونه هميشه په پابندئ سره کوی</td></tr>
<tr><td colspan="3">دَائِمُونَ ۝ وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ۝</td></tr>
<tr><td colspan="3">هميشوالي کونکي وی ا او هغه کسان ا چې په مالونو دهغوئ کښی ا حق وی ا معلوم (مقرر)</td></tr>
<tr><td colspan="3">...... او د کوم په مالونو کښې چې د سوال کونکو او محتاجو دپاره حق مقرر دې</td></tr>
</table>

[1] صحيح بخاری کتاب الزکاة باب الصلاة فيما استطاع: ۱۴۳۴، صحيح مسلم: ۱۰۲۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِّلسَّآئِلِ | وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۲۵﴾ | وَالَّذِیْنَ | یُصَدِّقُوْنَ | بِیَوْمِ الدِّیْنِ ﴿۲۶﴾ |
| دپاره دسوال کونکی | او دمحرومو خلقو | او هغه کسان | چی حقه منی | ورځ دجزا |

او هغه خلق چې دبدلې په ورځ یقین ساتی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِیْنَ | هُمْ | مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ | مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ | اِنَّ |
| او هغه کسان | چی هغویٰ | دعذاب د رب خپل نه | یریدونکی وی | خکه چی بیشکه |

اوهغه خلق چې د خپل رب دعذاب نه ویرېږی | ......حقیقت دادې چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَذَابَ رَبِّهِمْ | غَیْرُ | مَاْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾ | وَالَّذِیْنَ | هُمْ |
| عذاب درب دهغویٰ | داسې نه دې | چې څوك تر په امن کړې شی | او هغه کسان | چی هغویٰ |

ددویٰ د رب عذاب ډیر خطرناك دې | ......اوڅوک چې دخپل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِفُرُوْجِهِمْ | حٰفِظُوْنَ ﴿۲۹﴾ | اِلَّا | عَلٰۤی اَزْوَاجِهِمْ | اَوْ مَا |
| شرم ځایونو خپلو لره | حفاظت کونکی وی | بغیر | دښځو خپلو نه | یا دهغه وینځو نه |

شرمگاه خیال ساتی | ...... خوکه د ښځو او وینځو نه ئې حفاظت

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَلَکَتْ | اَیْمَانُهُمْ | فَاِنَّهُمْ | غَیْرُ مَلُوْمِیْنَ ﴿۳۰﴾ |
| چی مالکان شي دهغویٰ | ابنې لاسونه دهغویٰ | پس بیشکه هغویٰ | نه دی ملامته کړې شوی |

نه کوي | ......نو دوی (په خپل دې تعلق) ملامته نه دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَمَنِ ابْتَغٰی | وَرَآءَ ذٰلِكَ | فَاُولٰٓئِكَ هُمُ | الْعٰدُوْنَ ﴿۳۱﴾ |
| پس هغه چاچی طلب اوکړو | علاوه ددې نه دبل څه | پس هم دغه خلق | دحدنه اوړیدونکی دی |

نوڅوک چې ددې نه سوا خواهش اوکړی | نو هم داسې خلق د حد نه تیریدونکی دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِیْنَ | هُمْ | لِاَمٰنٰتِهِمْ | وَعَهْدِهِمْ | رٰعُوْنَ ﴿۳۲﴾ | وَالَّذِیْنَ |
| او هغه کسان | چی هغویٰ | امانتونه خپلو لره | او وعده خپلو لره | ساتونکی وی | او هغه کسان |

اوڅوک چې د خپلو امانتونواو وعدو خیال ساتی | ......اوپه خپلو گواهو باندې

| | | | |
|---|---|---|---|
| هُمْ | بِشَهٰدٰتِهِمْ | قَآئِمُوْنَ ﴿۳۳﴾ | وَالَّذِیْنَ هُمْ عَلٰی صَلَاتِهِمْ |
| چی هغویٰ | په گواهو خپلو باندې | قائم اوسیدونکی وی | او هغه کسان چی هغویٰ په مونځ باندې |

ټینگ ولاړ وی | اوهغه څوک چې دخپلو مونځونو

| | | | |
|---|---|---|---|
| یُحَافِظُوْنَ ﴿۳۴﴾ | اُولٰٓئِكَ | فِیْ جَنّٰتٍ | مُّکْرَمُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
| حفاظت کوی | دا کسان چی دی | په باغونو دجنت کښې به وی | عزتمند کړې شوی |

حفاظت کوی | هغویٰ به جنتونو ته په عزت سره ورداخلیږی |

**قوله‌تعالى:-** إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا﴿١٩﴾

**انسانی عادتونه:**-دلته د انسانی جبلت کمزوری بیانولې شی چه ډیر بې صبره دې.د مصیبت په وخت کښې دیرې د وجه اود پریشانئی نه لیونې کیږی لکه چه زړه نی الوزی اولکه چه اوس نی هیڅ آسرا باقی پاتې نه شوه اود راحت په وخت کښې بخیل او کنجوس جوړیږی.د الله تعالی حق هم هضم کوی. رسول الله ﷺ فرمائی چه بدترین څیز په انسان کښې بې حده بخیلتوب او ډیره زیاته نامردی ده.[1] بیا فرمائی چه د دې خراب خوئی نه هغه خلق لرې دی په چاچه د الله تعالی خاص فضل دې اوچاته چه د خیرتوفیق د ازل د ورځ نه ملاوشوې دې. د هغوی صفتونه دادی چه پوره مونځ گذار وی د وختونوخیال ساتونکی دمانځه واجبات په ښه شان سره په ځائی راوړونکی په سکون تسلئی خشوع او خضوع او پابندئی سره مونځ کونکی دی. لکه چه فرمائی ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١﴾ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ ﴿٢﴾﴾.هغه د ایمان خاوندانوخلاصې بیاموندلو چه خپل مونځ د الله تعالی د ویرې نه اداکوی. ولاړو او بې حرکته اوبو ته هم عرب (ماءدائم) وائی. دې نه ثابته شوه چه په مانځه کښې اطمینان کول واجب دی کوم سړې چه خپله رکوع سجده په پوره ولاړه او په تسلئی سره نه اداکوی هغه په خپل مانځه باندې دائم نه دې ځکه چه نه هغه سکون کوی او نه اطمینان بلکه د کارغه په شان ټونګې وهی د هغه مونځ به هغه خلاص نه کړې شی. اوداهم ونیلې شوی دی چه دې نه مراد په هریونیك عمل باندې همیشه والې کول دی لکه چه د نبیﷺ فرمان دې چه الله تعالی ته د ټولونه خوښ عمل هغه دې په کوم چه همیشه والې وی سره د دې که هغه کم وی.[2] پخپله د حضورﷺ عادت مبارك هم ووچه کوم یوکاربه نی هم کولو نو همیشه به نی کولو.[3]

حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه مونږ ته ذکر شوې دې چه حضرت دانیال ﷺ پیغمبردحضرت محمدﷺ د امت تعریف کولوسره فرمائیل چه هغوی به داسې مونځ کوی که دنوح ﷺ قوم داسې مونځ کولونو ډوبیدل به نه اوکه دقوم عاد داسې مونځونه وې نو په هغوی به دبې برکتئی هواګانې نه شوې رالیګلې اوکه دقوم ثمود مونځونه داسې وې نو هغوی به په چغه نه شو هلاکولې. نو اې خلقو مونځ په ښه پابندئی سره ادا کوئې دا د مؤمن کالې او د هغه بهترین خلق دې.

**قوله‌تعالى:-** وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ﴿٢٤﴾

**په مالونو کښې دغریب حصه:**بیافرمائی چه د دوی په مالونوکښې دحاجت مندوهم مقررحصه ده [سائل] او [محروم]پوره تفسیر په سورت ذاریات کښې تیرشوې دې. دا خلق دحساب او بدلې په ورځ هم کامل یقین او پوره ایمان لری. هم په دې وجه هغوی اعمال کوی په کوموسره چه به ثواب مومی اود عذاب نه به خلاصیږی. بیا د هغوی صفت بیانولې شی چه هغوی د خپل رب د عذاب نه ویریږی او ویره خوړونکی دی. دکوم عذاب نه چه یوعقل مندانسان بې ویرې نه شی پاتې کیدې اودا ده چه چاته الله تعالی امن ورکړی. اودا خلق خپل شرمګاهونه د حرام کارئی نه منع کوی چرته چه د الله تعالی اجازت نه وی د هغه ځائی نه نی بچ کوی اود خپلو بیبیانواو خپل مملوکه وینځونه خپل خواهش پوره کوی نو په دې کښې په هغوی باندې هیڅ ملامتیانشته خو چه کوم سړې دې نه علاوه بل ځائی کښې او په بله طریقه باندې شهوت پوره کوی هغه یقینًا د الله تعالی د حدونونه وړاندې کیدونکې دې.د دې دواړو پوره تفسیر﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١﴾﴾کښې تیرشوې دې دلته بیا د سردوباره کولو ضرورت نشته.دا خلق د

---

[1] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی الجراة والجبن:۲۵۱۱وسنده صحیح،احمد:۲/۳۲۰، ابن حبان:۳۲۵۰، حلیة الاولیاء:۹/۵۰. (ابوداؤد)

[2] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب القصد والمداومة علی العمل:٦٤٦٥، صحیح مسلم:۷۸۳.

[3] صحیح بخاری کتاب الصیام باب صوم شعبان:۱۹۷، صحیح مسلم:۷۸۵،

امانت اداکونکی وعدې او معاهدې او قول اقرار پوره کونکی او په ښه شان سره سرته رسونکی دی. نه خیانت کوی اونه بې وعدګی.دا ټول صفتونه د مؤمنانودی اود دې نه خلاف عمل کونکی منافقان دی. لکه چه په صحیح حدیث کښې دی چه د منافق درې خصلتونه دی کله چه خبره کوی نو دروغ به وائی کله چه وعده اوکړی نو د هغې خلاف کوی اوچه کله هغه سره امانت کیخودې شی نو خیانت کوی[1] او په یوبل روایت کښې دی چه کله وعده اوکړی نو هغه ماتوی اوچه کله جنګ کوی نو کنځلې کوی[2] دوی د خپلو شهادتونوهم حفاظت کونکی دی یعنی نه په دې کښې کمی کوی اونه زیاتې د ګواهئی کولو نه نه تختی او نه دا پټوی او چه څوک ئې پټ کړی نود هغه زړه ګناهګار دې.

بیافرمائی چه هغوی د خپل مانځه پوره خیال کوی یعنی په وخت باندې ارکان واجبات اومستحبات پوره شان سره په خائې راوړی او مونځ اداکوی. دلته داخبره د خاص توجه لائق ده چه ددې جنتیانو صفتونه بیانولو په شروع کښې وصف هم د مانځه د ادائیګې بیان اوکړو او ختم نې هم په دې کړو. نو معلومه شوه چه د دین په کارونو کښې مونځ د ټولونه یوعظیم الشان کار دې اودټولونه زیات د عزت اوفضیلت والا څیز هم دا څیزدې ددې آداکولو سخت ضروری اود دې بندوبست ډیر تاکیدوالا دې. په سورة ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ کښې ټیک هم داسې بیان شوې دې اوهلته نې د اوصافونه پس بیان فرمائیلې دې چه هم دغه خلق د جنت فردوس د همیشه همیشه وارثان دی اودلته فرمائی چه هم داخلق جنتیان دی اوهلته په قسم قسم خوندونو او خوشبوګانوسره عزت او قدر سره به خوشحاله او محفوظ وی.

| |
|---|
| فَمَالِ الَّذِينَ . كَفَرُوا قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ﴿۳۶﴾ |
| پس څه شوی دی هغه کسانو لره \| چې کفر نې کړې دې \| چې طرف ستا ته \| منډې وهونکی دی \| |
| په دې کافرانو څه چل شوې دې \| چې ستا طرفته رامنډې وهی |
| عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِينَ ﴿۳۷﴾ أَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ |
| ښی طرفنه \| او ګس طرفنه \| ډلې ډلې \| آیا طمع لری \| هر سړې \| ددوئ نه \| |
| چې ښی طرف اوګس طرف غاړې نه ډلې جوړیږی \| آیاپه دوئ کښې هر کس |
| أَنْ يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ ﴿۳۸﴾ كَلَّا ۖ إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ |
| چې داخل به کړې شی \| جنت دنعمتونو ته \| هرګز نه \| بیشکه مونږه پیدا کړی دی دوئ \| |
| دا امید لری‌چې دې به د نعمت په باغ کښې ورداخل شی\| نه هیچری نه\|مونږ دوئ دهغې څیزنه پیداکړی دی |
| مِمَّا يَعْلَمُونَ ﴿۳۹﴾ فَلَا أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ |
| دهغې څیزنه \| چې دوئ نې پیژنی \| پس نه \| زهٔ قسم خورم \| په رب دمشرقونو \| او دمغربونو \| |
| چې ټول ترې نه واقف دی \| ............نوزما دې قسم وی دمشرقونو \| او دمغربونو په رب \| چې |
| إِنَّا لَقَادِرُونَ ﴿۴۰﴾ عَلَىٰ أَنْ نُبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ |
| چې بیشکه مونږه قادر یواپه دې باندې \| چې بدل راولو \| بهتره \| ددوې نه \| اونهٔ یو مونږه \| |
| مونږ په دې قادر یو \| چې ددوئ په خائې ددوئ نه ښه خلق راولو \| ...............اومونږ |

[1] صحیح بخاری کتاب الایمان باب علامات المنافق:۳۳، صحیح مسلم:۵۹.

[2] صحیح بخاری حواله سابق :۳٤، صحیح مسلم:۵۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَسْبُوقِيْنَ۝ | فَذَرْهُمْ | يَخُوْضُوْا | وَيَلْعَبُوْا | حَتّٰى |
| عاجزه کړې شوی | پس پرېږده دوئ | چې مشغولېږي | او لوبې کوی | تر دې پورې |
| خه بې وسه خو نه یو \| نو ته دوئ دغسې پرېږده \| چې په خپلو کښې مشغول وی | | | | |
| يُلٰقُوْا | يَوْمَهُمُ | الَّذِيْ | يُوْعَدُوْنَ۝ | |
| چې ملاقات اوکړې (اوورسی) | ورځې خپلې ته | هغه ورځ | چې ددوئ سره ئې وعده کيږي | |
| تردې چې هغه ورځ ورته راشی \| ...دکومې چې ورسره وعده شوې ده | | | | |
| يَوْمَ | يَخْرُجُوْنَ | مِنَ الْاَجْدَاثِ | سِرَاعًا | كَاَنَّهُمْ |
| دغه ورځ | چې رااوځی به دوئ | دقبرونو نه | منډې وهونکی به وی | لکه چې دوئ |
| په کومه ورځ چې به دقبرونو نه په منډه منډه راوځی \| داسې لکه چې | | | | |
| اِلٰى نُصُبٍ | يُّوْفِضُوْنَ۝ | خَاشِعَةً | اَبْصَارُهُمْ | تَرْهَقُهُمْ |
| دبارونو دبتانو | منډې وهی | ټیټې بریدونکی به وی | سترګې ددوئ | پټ کړې به وی دوئ لره |
| دوئ یو نښې طرفته منډې وهی \| .........(په دغه ورځ به) ددوئ سترګې ټیټې وی | | | | |
| ذِلَّةٌ | ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِيْ | كَانُوْا | يُوْعَدُوْنَ۝ | |
| ذلت (خوارئ) | دغه ورځ ده هغه | چې دی دوئ | چې وعده ئې ورسره کيږي | |
| او ذلت به په دوئ راخور وی \| هم دغه خوهغه ورځ ده چې دکومې به دوی سره وعده کولې شوه | | | | |

قوله تعالى:- فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ۝

الله تعالى په دې کافرانوباندې انکارکوی کوم چه د حضورﷺ په مبارکه زمانه کښې وو. پخپله به هغوی حضورﷺ ليدلو اوحضورﷺ چه کوم هدايت راوړلې وو هغه د دوی په وړاندې وو اود حضورﷺ ښکاره معجزې به ئې هم په خپلو سترګوليدلې اوبيا به سره د دې ټولوخبرو هغوی تيختنه کوله او ډلې ډلې به شواوښې اوګس طرف ته اوخوئيدل لکه چه بل ځائې کښې ارشاددې ﴿فَمَالَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ۝﴾ دوی د نصيحت نه مخ اړوی او د هغه خرو په شان د ازمری نه تختی ولې تختی؟الخ. دلته هم داسې فرمائی چه په دې کافرانوباندې څه شوی دی اودوی ولې نفرت کوی اوتانه تختی؟ ولې ښی او ګس طرف ته خوئيږی؟ اوخه وجه ده چه په ځان له توګه اختلاف سره اخواديخوا کيږی.

حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله د نفس په خواهش باندې د عمل کونکوباره کښې هم دا فرمانيلی دی چه هغوی د الله تعالى د کتاب مخالف وی اوپه خپل مينځ کښې چه جدا وی اود کتاب الله په مخالفت کښې ټول متفق وی. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په روايت د عوفی نقل دی چه هغوی ډلې ډلې بې پرواهئی سره ستابنې او ګس طرف ته شی او په ټوقوسره تاته ګوری. حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه ښی او ګس طرف ته جداکيږی او تپوس کوی چه دې سړی څه اووئيل؟ حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه ښی طرف ته او ګس طرف ته ډلې شی اود حضورﷺ نه چاپيره ګرځی نو نه د کتاب الله په غوښتنه کښې اونه د رسول اللهﷺ په رغبت کښې. يوحديث کښې چه رسول الله ﷺ خلقو ته تشريف راوړوهغوی جدا

جدا او ډلي ډلي وو نو هغوی ﷺ اوفرمائيل چه زه تاسو ولې د جدا جدا ټولو په شکل کښې وينم؟[1] دا په ابن جرير کښې په يوبل سندسره هم نقل دي.

**قوله تعالى:- أَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَنْ يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ**

**د کافرانو خواهش:-** بيا ارشادکولې شی چه د دوی خواهش دې چه د جنت په نعمتونوکښې داخل کړی؟ داسې به هيڅ کله هم نه کيږی يعنی چه ترکومې د دوی دا حالت دې چه د کتاب الله او رسول الله ﷺ نه اخوادېخوا تختې نوبيا د دوی دا خواهش پوره کيدې نه شی بلکه دا د دوزخيانوډله ده اوس چه کوم خيز دوی ناممکن گڼړی نود هغې بهترين ثبوت هم د دوی په معلوماتو اواقرار سره بيانولې شی چه چا تاسو د کمزورې اوبونه پيداکړئی لکه څنگه چه تاسو ته پخپله پته ده نوبيا ولې هغه تاسو دوباره نه شی پيداکولې؟ لکه چه بل ځائی کښې ارشاددې (أَلَمْ نَخْلُقكُّم مِّن مَّاءٍ مَّهِينٍ)آيا مونږ تاسو د بې قدره اوبو نه پيداکړی نه ئی؟ارشادباری تعالی دې ( فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ مِمَّ خُلِقَ ۞ خُلِقَ مِن مَّاءٍ دَافِقٍ ۞ يَخْرُجُ مِن بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ ۞ إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ ۞ يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ ۞ فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا نَاصِرٍ ) انسان له کتل پکار دی چه هغه د څه خيز نه پيدا کړې شوې دې؟د توپ وهونکی اوبونه پيداکړې شوې دې کومې چه د ملا اوسينې د مينځ نه راوخی. يقينًا هغه الله تعالی ددوی په واپس راپيداکولوباندې قادر دې. او په کوم ذات چه پټې خبرې ښکاره وی نه به دهيچا طاقت وی او نه امداد. نودلته هم دافرمائی زما قسم دې په هغه ذات چا چه زمکه اوآسمان پيدا کړل اومشرق اومغرب ئی مقررکړو اود ستورو د پټيدو او ښکاره کيدو ځايونه ئی مقررکړل. مطلب دا دې چه اې کافرانو څنگه چه ستاسوگمان دې داسې معامله نه ده چه نه به حساب کتاب وی اونه به حشر اونشر وی بلکه دا ټول يقينًا کيدونکی ځيزونه دی. د دې د باره د قسم نه وړاندې دهغوی دباطل خيال تکذيب اوکړو اوهغه ئی داسې ثابت کړل چه د خپل قدرت کامله مختلف نمونې ئی د هغوی په وړاندې پيش کړې. مثلاً د زمکې اوآسمان د شروع نه پيداکول اوپه دې کښې ځناور کانړی اود مختلف قسم مخلوق موجودگی لکه چه بل ځائی فرمائی (لَخَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ)يعنی د آسمان او زمکې پيداکول د خلقوپيدا کولونه ډير زيات لوئ دی خواکثرخلق بې علم دی.مطلب دادې چه کله په لويولويوځيزونو پيدا کولو الله تعالی قادر دې نو په وړو وړوځيزونوپيداکولو به ولې قادر نه وی؟ بل ځائی کښې ارشاد دې(أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ ۚ بَلَىٰ إِنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)يعنی آيا دوی نه گوری چه چا آسمانونه او زمکې پيداکړې اود دوی په پيدا کولو سترې نه شو نوولې هغه د مړو په ژوندی کولوباندې قادر نه دې؟بې شکه هغه قادر دې اوپه دې نه بلکه هغه ته په هريوځيزباندې قدرت حاصل دې. بل ځائی کښې ارشاد دې (أَوَلَيْسَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يَخْلُقَ مِثْلَهُم ۚ بَلَىٰ وَهُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ ۞ إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَن يَقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ )آياد زمکې اوآسمان پيداکونکې ددې په شان پيداکولوباندې قادرنه دې؟ اوقادر دې اوهم هغه پيداکونکې او پيژندونکې دې. هغه چه د کوم ځيز اراده اوکړی نو وائی چه شه نو هغه هم په هغه وخت اوشی.

**قوله تعالى:- فَلَا أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ إِنَّا لَقَادِرُونَ**

**د مشرق اومغرب رب:-** دلته ارشاد کولې شی چه د مشرقونو او مغربونود رب قسم مونږ به د هغوی بدنونه څنگه چه اوس دی د دې نه هم په ښه شکل او صورت کښې بدلولوباندې پوره پوره قادر يو. نه يوځيز نه يو سړی اونه يوکار مونږ عاجز او کمزورې کولې نه شی. لکه چه ارشاد دې ( أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ ) آياد يوسړی داگمان دې چه مونږ به دهغه هډوکی راغونډنه کړې شو؟غلط گمان دې بلکه

---

[1] احمد:۹۳/۵، صحيح مسلم كتاب الصلاة باب الامر بالسكون في الصلاة:۴۳۰. (احمد)

مونږ خوبه دهغه یوه یوه زره راجمع کړواوصحیح سلامت به ئې جوړکړو.بل خائې فرمائي ﴿نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ﴾ مونږ ستاسو په مینځ کښې مرګ مقدر کړې دې اومونږ دې نه عاجز نه یو چه تاسو به بدل کړواو تاسو به په دې نوی پیداکولو سره پیدا کړو کوم چه تاسو ته معلوم هم نه دی. نو یو خود دې پورته آیت مطلب دا دې بل مطلب امام ابن جریر﷫ دا هم بیان کړې دې چه مونږ په دې امر باندې قادریو چه ستاسو په بدله کښې داسې خلق پیداکړوچه زمونږ تابعدار او حکم منونکې وی او زمونږ د نافرمانونه رابندشوې وی. لکه چه بل خائې فرمان دې ﴿وَإِنْ تَتَوَلَّوْا﴾ الخ یعنی که تاسو مخ واړولو نو الله تعالی ستاسو په خائې بل قوم راولې اوهغه به ستاسو په شان نه وی.خواولنې مطلب د نورو آیاتونود صفا دلالت په وجه ډیر ظاهر دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

قوله تعالی:- ﴿يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ يُوفِضُونَ﴾

**د دروغ ګڼړونکو د قیامت په ورځ پیښی:-** بیافرمائي چه اې نبي ﷺ! دوی په خپلو دروغ ګڼړلو کفرکولو سرکشی کول کښې وړاندې کیدو ته پریږده د کوم بوج او نقصان چه به په دوی په هغه ورځ راځی د کومې چه دوی سره وعده شوې ده په کومه ورځ چه به الله تعالی دوی دمحشر میدان ته راوغواړی چرته به چه دوی د حساب د پاره اودرولې شی. داسې په ټوپونوبه روان وی لکه څنګه چه بت جهنډې چلې ته لاس اوړلو او ټوپونه وهلو د پاره د یوبل نه وړاندې کیږی. د شرم او پښیمانتیا په وجه به ئې سترګې په زمکه کښې ورخښې کړې وی او په مخونو به ئې سپیره والې راوریږی. دا ده په دنیاکښې د الله تعالی د حکم نه سرکشی کولونتیجه. اودا ده هغه ورځ کومه چه دوی نه ګڼړله او په ټوقومسخروکښې به ئې د نبی کریم ﷺ شریعت او کلام الله سپکاوې کولوسره وئیل چه قیامت ولې نه راځی او په مونږ باندې عذاب ولې نه راځی.

﴿الحمدلله﴾ سورت معارج تفسیرهم ختم شو.

﴿تفسیرسورت نوح مکیه﴾

| ایاتونه | سورة النوح مکیة وهی ثمان وعشرون اية وفیها رکوعان | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۲۸ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان ٭ زیات رحم کونکې دې | ۲ |

| إِنَّا أَرْسَلْنَا | نُوحًا | إِلَىٰ قَوْمِهِ | أَنْ أَنْذِرْ | قَوْمَكَ | مِنْ قَبْلِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه اولیږو مونږه | نوح علیه السلام | قوم دهغه ته | چې اویروه | قوم خپل | مخکښې ددې نه |

مونږحضرت نوح ﷺ خپل قوم ته اولیږلو | چې ته خپل قوم ویروه | د دې نه وړاندې چې

| أَنْ يَأْتِيَهُمْ | عَذَابٌ أَلِيمٌ | قَالَ | يَا قَوْمِ | إِنِّي | لَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې راشي هغوئ ته | عذاب دردناک | اووئیل هغه | اے قومه زما | بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره |

دردناک عذاب پرې راشي | ......هغه ورته اووئیل | انې زما قومه زه ستاسو دپاره ښکاره

| نَذِيرٌ مُبِينٌ | أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ | وَاتَّقُوهُ | وَأَطِيعُونِ |
|---|---|---|---|
| یرونکې ښکاره یم | چې عبادت اوکړئ دالله | اوویریږئ دهغه نه | اواومنئ خبره زما |

ویرونکې یم | ............چې د الله ﷻ عبادت کوئ | او د هغه نه ویریږئ | او زما تابعداری اوکړئ

| يَغْفِرْ لَكُمْ | مِّنْ ذُنُوبِكُمْ | وَيُؤَخِّرْكُمْ | إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ |
|---|---|---|---|
| معاف به کړي تاسو ته | گناهونه ستاسو | اوروستو به کړي تاسو لره | دنيتي مقرري پوري |
| هغه به ستاسو گناهونه معاف کړي او تريو مقرر وخته پوري به مهلت درکړي | | | |

| إِنَّ | أَجَلَ اللَّهِ | إِذَا جَاءَ | لَا يُؤَخَّرُ | لَوْ كُنتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه | نيته دالله | كله چي راشي | نو بيا نې څوك روستو كولې نه شي | كاش چي تاسو |
| يقينا دالله ﷻ مقرر وخت چې يو ځل راشي | | ..............نو (په هيڅ) صورت نه روستو كيږي | | كاش |

| تَعْلَمُونَ ۝ |
|---|
| پوهيدلي |
| چې تاسو پوهيدلي |

قوله تعالى:-أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاتَّقُوهُ وَأَطِيعُونِ ۝

**دحضرت نوح ﷺ تبليغ:** الله تعالى بيان فرمائي چه هغه حضرت نوح ﷺ دهغه دقوم طرف ته خپل رسول جوړکړو وني ليګلو اوحکم نې ورکړوچه د عذاب راتلونه وړاندې خپل قوم خبرکړه که توبه اوباسی اود الله تعالى طرف ته ټيټيږی نود الله تعالى عذاب به د هغوی نه اوچت کړې شي. حضرت نوح ﷺ د الله تعالى دا پيغام خپل قوم ته اورسولو او هغوی ته ئې صفا اووئيل چه ګورئې زه په صفا الفاظوسره تاسو ته خبردرکوم. زه صفا صفا وايم چه د الله تعالى عبادت د هغه ويره او زما تابعداری لازمی څيزونه دی کوم کار چه ستاسو رب په تاسو باندې حرام کړې دې د هغې نه بچ شئ د ګناه د کارونونه جداشئ څه چه زه وايم هغه په ځانی راوړئ کوم نه چه منع کوم منع شئ. زما د رسالت تصديق اوکړئ نو الله تعالى به ستاسو خطاګانې معاف کړي. ﴿وَيَغْفِرْلَكُمْ ذُنُوبَكُمْ﴾ کښې لفظ من دلته زائدې د اثبات په موقع باندې هم کله لفظ من زائد راځی لکه د عربومقوله ﴿قدكان من مطر﴾ کښې او دا هم کيدې شی چه دا د عن په معنی کښې وی بلکه ابن جريرؒ خو هم دا خوښوی. بل قول دا دې چه د تبعيض د پاره دې يعنی ستاسو څه ګناهونه به معاف کړې يعنی هغه ګناه په کومه چه د سزا وعيددې او هغه لوئ لوئ ګناهونه دی. که تاسو دا درېواړه کارونه اوکړل نو معاف به ئې کړې او په کومو عذابونوسره چه هغه اوس ستاسو د خطاګانو او غلطوکارونوپه وجه باندې بربادونکې دې هغه عذاب به درنه اخواکړې او ستاسو عمرونه به زيات کړي. د دې آيت نه دا استدلال هم کړې شوې دې چه د الله تعالى تابعداری او د نيکئی سلوك او صله رحمئی سره حقيقتًاعمر زياتيږی. په حديث کښې داهم دی چه خپلولی ساتل عمر زياتوی(١) بيا ارشاد دې چه نيك اعمال دې نه اول اوکړئ چه د الله تعالى عذاب راشی په دې وجه چه کله هغه راشی نو بيا هغه څوك اخواکولې نه شی اونه ئې بندولې شی. د الله ﷻ لوئ لوئې هر څيز ښکته کړې دې د هغه د عزت اوعظمت په وړاندې ټول مخلوق ښکته دی.

| قَالَ | رَبِّ | إِنِّي دَعَوْتُ | قَوْمِي | لَيْلًا وَنَهَارًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل نوح | اے ربه زما | بيشکه رااوبلو ما | قوم زما | دشپې او دورځې |
| (نوحﷺ) اووئيل ائې زما ربه! ما خپل قوم شپه ورځ (ستا دين ته) راوبله | | | | |

(١) دَ دې تخريج دَ سورة الرعد آيت ۳۹لاندې تيرشوې دې.

فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَاءِيَ إِلَّا فِرَارًا ۝ وَإِنِّي
پس زیات نه کړو هغوئ لره | بلنې زما | مګر | تیښته (زمانه) | او بیشکه زه چې یم |
خو زما بلنې (دین نه) د هغوئ تیښته نوره هم زیاته کړه | ..........او ما چې کله هم دوی

كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوا
هر کله چې ما رااوبلل هغوئ | دپاره ددې چې ته اوبښې هغوئ لره | نو هغوئ به ننباسلي |
رااوبللي دي | ..........د دې دپاره چې ته ورته ښښنه اوکړې | ..........نو هغوئ خپلې

أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ
ګوتې خپلې | په غوږونو خپلو کښې | او پټ به کړل هغوئ ځانونه | په جامو خپلو کښې |
ګوتې په غوږونو کښې ورکړې | اودخپلو ځانونو او مخونونه جامې راتاؤ کړې |

وَأَصَرُّوا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ
او ټینګ به شو (په طریقه خپله) | اولوئی به نې اوکړه | په لوئې سره | بیا ما رااوبلل هغوئ |
او (په خپله خبره) ټینګ ولاړ دي | او ځان ئې ډیرغټ ګنړاوګنړل | ..........بیا ماهغوئ په اوچت اواز

جِهَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنْتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ
په اوچت اواز سره | بیا | ماپه ښکاره وینا اوکړه | هغوئ ته | او پټ پوهه کړل ما | هغوئ لره |
سره رااوبلل | بیا مې په ښکاره هم پوهه کړل | او په پټه مې هم پوهه کړل

إِسْرَارًا ۝ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ
په پټ پوهه کولو سره | پس ما اووئیل | معافي اوغواړئ | درب خپل نه | بیشکه هغه دې |
نو هغوی ته مې اووئیل | تاسو د الله ﷻ نه ښښنه اوغواړئ | هغه ډیر

غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُمْ
ډیرمعاف کونکې | رااوبه وروی اسمان | په تاسو باندې | ډیر وریدونکې | اوامداد به اوکړی ستاسو
زیات ښنونکې دې | هغه به درباندې د اسمان نه زیات بارانونه اوروی | ..........اود

بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ
په مالونو سره | او په ځامنو سره | او جوړ به کړی تاسو لره | باغونه | او جوړ به کړی تاسو لره
مالونو او ځامنو په صورت کښې به ستاسو مدد اوکړی | او تاسو دپاره به باغونه رازرغون کړی | او

أَنْهَارًا ۝ مَا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا ۝
نهرونه | څه شوی دی تاسو لره | چې تاسو ارزو نه لرئ | دالله دپاره | دعزت |
ستاسو دپاره به نهرونه روان کړی | دا په تاسو څه شوی دی | چې د الله ﷻ په لوئې یقین نه ساتئ

وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ۝ أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ
او حال دا چې هغه پیدا کړی یئ تاسو | په قسم قسم طریقو سره | ایا نه وینئ تاسو | چې څرنګې
او حال دا چې هغه تاسو په قسم قسم طریقو سره پیدا کړی یئ | ..........ایا تاسو نه ګورئ

خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ﴿۱۵﴾ وَّجَعَلَ الْقَمَرَ فِيْهِنَّ نُوْرًا

پیدا کړل الله | اوه اسمانونه | لاند باندې | او جوړه ني کړه سپوږمئ | په هغې کښې | نور والا

چې الله ﷻ څنګه اووهٔ اسمانونه لاندې باندې پیدا کړی دی | او سپوږمئ ئې په کښې روښانه

وَّجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ﴿۱۶﴾ وَاللّٰهُ اَنْۢبَتَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ نَبَاتًا ﴿۱۷﴾

او جوړ ني کړو نمر | ډیوه | او الله | زرغون کړئ تاسو | دزمکې نه | په زرغونولو سره

اونمر ئې په کښې ډیوه ګرځولې ده | او الله ﷻ تاسود زمکې نه په خاص طریقه راټوکولی (پیدا کړي ئي)

ثُمَّ يُعِيْدُكُمْ فِيْهَا وَيُخْرِجُكُمْ اِخْرَاجًا ﴿۱۸﴾ : وَاللّٰهُ

بیا | به واپس ننباسی تاسو | په هغې کښې | اوراوبه باسی تاسو | په رایستلو سره | او الله

بیا به مو دې (زمکې) ته واپس ورولی |............اوبیابه مو ددې (زمکې) نه بهر اوباسی | او الله ﷻ

جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ بِسَاطًا ﴿۱۹﴾ لِّتَسْلُكُوْا مِنْهَا

جوړه کړه | ستاسو دپاره | زمکه | فرش | دپاره ددې چې ګرځئ تاسو | په دې کښې |

ستاسو دپاره زمکه فرش جوړه کړې ده | ............چې تاسو دهغې په کولاؤ لارو

سُبُلًا فِجَاجًا ﴿۲۰﴾

په لارو فراښو باندې |

کښې روان يئ |

**قوله تعالى:-** قَالَ رَبِّ اِنِّيْ دَعَوْتُ قَوْمِيْ لَيْلًا وَّنَهَارًا ﴿۵﴾

**د حق خلاف د حضرت نوح ؑ دقوم ضد:-** دلته بیان کولې شی چه حضرت نوح ؑ خپل قوم نهه نیم سوا کاله پورې په قسم قسم طریقود هدایت طرف ته راوغوښتو، قوم څنګه څنګه ډډه اوکړه، څنګه څنګه تکلیفونه ئې دالله تعالى نیازبین پیغمبر ته اورسولو او څنګه په خپل ضدباندې کلك وو. حضرت نوح ؑ د شکایت په توګه د الله تعالى په دربارکښې عرض کوی چه اې الله ماپه پوره شان سره ستا د حکم پوره کول اوکړل ستا د فرمان عالی شان مطابق مې نه ورخ ته ورخ اوونیل اونه شپې ته شپه بلکه ملاتړلې مې هروخت دوی ته د نیغې لار دعوت ورکړې اوهغوی هم په دغه شان سختئی سره زمانه تختیدلی، د حق نه ئې مخ اړولې تردې پورې اوشوه چه ما هغوی ته اوونیل راشئ د رب خبره واورئ چه رب هم تاسو اوبښی خوهغوی زما د دې الفاظواوریدل هم برداشت نه کړل اوغوږونه ئې بند کړل. هم دغه حال د قریشود کافرانوهم ووچه قرآن پاك اوریدل به ئې نه خوښول لکه چه فرمائی ﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴾ یعنی کافرانواوونیل دا قرآن مه اورئ اوچه کله دا لوستلې کیږی شور کوئ چه تاسو غالب ئې. د نوح ؑ قوم یوطرف ته په غوږونوکښې ګوتې کیخودې نو بل طرف ته ئې مخونه په کپړوباندې پټ کړل چه هغوی اونه پیژندلې شی اونه څه واوری. په خپل کفر اوشرك باندې په خپل ضد کلك شواود حق د تابعدارئی نه ئې نه یوازې انکاراوکړو بلکه دې نه ئې بې پرواهی اوکړه او دا ئې سپك اوګڼړلو او د کبرنه ئې ورته شاکړه. حضرت نوح ؑ فرمائی چه د عاموخلقو په ګڼړه کښې هم ما دوی ته اوونیل په اوچت آواز مې ورته هم اوونیل د هغوی غوږونه مې کولاوکړل او ډیر خلې مې یویو ته پټ پټ هم اوونیل.

لهذا دا چه ټول کوشښونه مې اوکړل چه داسې نه نوداسې به پوهه شی اوکه داسې نه وی نوداسې به په لار راشی. ما هغه ته اوونیل چه کم نه کم تاسو د دې خپلې بدکارئی نه خو توبه اوکړئی هغه ښښونکې دې خپل طرف ته ټیټیدونکی ته توجه فرمائی اوکه د نه هرقسم بدعمل ولې نه وی شوې په یوساعت کښې معانی کوی او صرف دا نه بلکه په دنیاکښې به هم تاسو ته ستاسو د استغفار کولو په وجه تاسو ته قسماقسم نعمتونه درکړی اود غم دردنه به مویچ کړی.

فائده:- هغه به په تاسو باندې ښه مزیدار باران راووروی. دا یادساتئی چه د اوچ کالنی په موقع کله چه مسلمانان داستسقاءد مانځه د پاره اوځی نو مستحب دی چه په دې مونځ کښې داسورت تلاوت کړی. د دې یو دلیل خو هم دا آیت دې بل د حضرت عمر فاروق ﷺ هم دا فعل وو. د هغوی نه روایت دې چه د باران غوښتلود پاره کله تاسو اوځئی نو په منبرباندې اوختلو او هغوی ښه استغفاراوکړو اود استغفاروالا د آیاتونو تلاوت ئی اوکړو په کوم کښې چه یو دا آیت هم وو. بیا به ئې اوفرمائیل چه ما باران د باران د ټولولارونه چه په آسمان کښې دی اوغوښتلو.یعنی هغه کارمې اوکړو په کوم سره چه به الله تعالی باران راووروی.

حضرت نوحؑ فرمائی ای زما دٌ قوم خلقوکه تاسو استغفارکوئی نود باران سره سره به د رزق برکت هم تاسو ته ملاوشی. د زمکې اوآسمان په برکتونوبه تاسو ماړه شئی، فصلونه به ښه کیږی د خناورو غلانزې به د پئیو نه ډکې وی په مال اولادکښې به ترقی وی. د قسم قسم میوونه به ډك باغونه تاسو ته نصیب شی د کوموپه مینځ کښې چه به ځلورو واړو طرفوته اودبرکت نه ډکې اوبه روانې وی هرطرف ته به نهرونه او دریابونه روان وی. دغه شان رغبتونه ورکولوسره بیا لږه شان ویره هم ورکوی اوفرمائی چه تاسو د الله تعالی د عظمت قائل کیږئی نه؟د هغه د عذابونونه ولې بې باکه شوې ئی؟ گورئی نه چه الله تعالی په کومو کومو حالاتوکښې په څنګه څنګه اوړیدو راوړیدو پیداکړی ئی؟ اول د اوبوڅاڅکې بیا چك وینه بیاد غوښې ټکړه او بیا شکل او حالت وغیره. دغه شان گورئی خوسهی چه هغه څنګه د یو آسمان د پاسه بل آسمان پیداکړو که هغه صرف په اوریدوسره معلوم شوې وی یا په هغه وجوهاتوسره معلوم شوې وی چه محسوس دی کوم چه د ستورو چال او د هغې کسوف (تندر)سره پوهیدلې شی لکه څنګه چه د دې علم والا بیان دې.

قوله تعالی:- وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا

په دې کښې هم د هغوی ډیر سخت اختلاف دې چه گرځیدونکی ستوری لوئ لوئ اووه دی. یو بل بې نوره کوی د ټولونه په نیزدې آسمان کښې خو سپوږمئی ده چه نور ئی تت کړی دی. په دویم آسمان باندې عطارد دې، په دریم آسمان زهره ده ځلورم آسمان کښې نمر دې پنځم آسمان کښې مریخ دې شپږم آسمان کښې مشتری ده اووهم آسمان کښې زحل دې. اوباقی ستوری کوم چه ثوابت دی هغه په اتم آسمان کښې دی د کوم نوم چه داخلق فلك ثوابت ایږدی او په دوی کښې چه کوم د شرع والا دی هغوی دې ته کرسئی وائی او نهم فلك د دې په نیزد اطلس او اثیردی. د کوم حرکت چه د هغوی په خیال کښې د نورو افلاکو د حرکت خلاف دې. د دې د پاره چه د دې حرکت اود حرکتونومبداء دې هغه د مغرب نه د مشرق طرف ته حرکت کوی او باقی ټول آسمانونه د مشرق نه مغرب طرف ته اوهم دې سره ستوری هم گرځی. خودسیارو حرکت د افلاك د حرکت نه بالکل برعکس دې هغه ټول د مغرب نه د مشرق طرف ته حرکت کوی اوبه دوی کښې هریودخپل آسمان چکردخپل مقدورمطابق وهی. سپوږمئی خو په هره میاشت کښې یوخل، نمر په هرکال کښې یوخل، زحل هردیرش کالوکښې یوخل د مودې دا کمې زیاتې د آسمان د اوږدوالی پلنوالی په اعتبارسره دې گڼی د ټولوحرکت په تیزوالی کښې بالکل مناسبت لری.

داد دعفوی د تپولو خبرو خلاصه په کوموکښي چه دهغوی په خپل مینځ کښي هم ډیر اختلاف دی نه مونږ هغه دلته وارد کول غواړو اونه د هغې د تحقیق او تفتیش دې وخت کښي څه غرض دی. مقصد صرف دومره دې چه الله تعالی سبحانه وتعالی اووه آسمانونه پیداکړی دی او هغه د یوبل د پاسه دی. بیانی په دې کښي سپوږمئ اونمر پیداکړی دی. د دواړو پرق پړوق اورڼا جداجدا ده په کوموسره چه د شپې ورځې فرق کیږی. بیا د سپوږمئ مقرر منزلونه او بروج دی بیا د دې رڼا زیاتیږی اوکمیږی اوداسې وخت هم راځي چه هغه په خپله پوره رڼا کښي وی په کوموسره چه میاشتې او کال معلومیږی لکه چه فرمائی ﴿هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِیَآءً﴾ الله تعالی هغه ذات دې کوم چه نمر اوسپوږمئ ښه روښانه او پرقیدونکې پیداکړل اود سپوږمئ منزلونه ئې مقرر کړل دې د پاره چه تاسو ته کال او حساب معلوم شی. د دوی پیداکول په حقه سره دی د عالمانو مخې ته د قدرت دا نښې جداجدا موجود دی.بیا فرمائی چه الله تعالی تاسو د زمکې نه رااوټوکولې. دلته نباتا اسم مصدر دې او ددې راوړل دلته حسن دی.بیا به ستاسو د وژلو نه پس هم دې واپس کولې شئی او بیا به د قیامت په ورځ هم دې نه راوباسی لکه څنګه چه ئې په اول ځل پیداکړې وئی.اوالله تعالی زمکه ستاسودپاره فرش جوړکړو اوهغه خوزیږی راخوزیږی نه په هغې کښي مضبوط غرونه ورخښ کړی دی. هم د دې زمکې په کولاو لارو تاسو ګرځئ راګرځئ هم په دې باندې اوسیږئ دیخوانه اخوا څئ راځئ. د نوح ﷺ غرض دا دې چه دا د الله تعالی دعظمت او قدرت نښې د خپل قوم مخې ته ایږدی او هغوی اماده کوی چه د زمکې برکتونه ورکونکې د هرخیز پیداکونکې د اوچت قدرت رازق خالق په تاسو دومره هم حق نشته چه تاسو د هغه عبادت اوکړئ : هغه لحاظ اوساتئ اودهغه په وینا د رښتونی نبی حضرت محمد مصطفی ﷺ لار اختیار کړئ؟ تاسو نه خامخا هم د هغه عبادت کول پکار دی د بل چا عبادت مه کوئ د هغه په شان دهغه شریك اود هغه مثیل بل څوك مه ګڼړئ. هغه د ښځې لونړو نمسووزیرانو مشیرانو د عدیل او نظیر نه پاك اوګڼړئ او هم هغه اوچت لوئی عظیم او اعلی اوګڼړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ نُوْحٌ | رَّبِّ | اِنَّهُمْ | عَصَوْنِیْ | وَاتَّبَعُوْا |

| اوونیل نوح ﷺ | اے ربه زما | بیشکه دوئ | نافرمانی اوکړه زما | اوپیروی ئې اوکړه |
|---|---|---|---|---|

| حضرت نوح ﷺ اوونیل اني زما ربه ! دوئ زما نافرمانی اوکړه اودهغه چا |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | لَّمْ یَزِدْهُ | مَالُهٗ | وَوَلَدُهٗۤ | اِلَّا خَسَارًاۚ | وَمَكَرُوْا |

| دهغه چا | چې زیات نه کړو هغه لره | مال دهغه | اواولاد دهغه | سوا دنقصان نه | او مکر اوکړو هغوئ |
|---|---|---|---|---|---|

| په لاره روان شول چې مال او اولاد ورته د تاوان نه سوا بل څه نه دی ورکړی او دوئ غټ غټ |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَكْرًا كُبَّارًاۚ | وَقَالُوْا | لَا تَذَرُنَّ | اٰلِهَتَكُمْ | وَلَا تَذَرُنَّ | وَدًّا |

| مکر لوئ | اواونیل هغوئ | چې مه پریږدئ | معبودان خپل | او مه پریږدئ | ود |
|---|---|---|---|---|---|

| سازشونه اوکړل اودوئ (یوبل ته) اوونیل اچې خپل معبودان بالکل مه پریږدئ اومه پریږدئ ود بت |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّلَا سُوَاعًاۙ | وَّلَا یَغُوْثَ | وَیَعُوْقَ | وَنَسْرًاۚ | وَقَدْ اَضَلُّوْا | كَثِیْرًاۚ |

| او نه سواع بت او نه یغوث | او یعوق | او نسر | او ګمراهه کړی دی دوئ | ډیر خلق |
|---|---|---|---|---|

| او سواع بت او نه یغوث بت او یعوق بت او نه نسربت اودوئ (ځان سره) ډیر خلق ګمراه کړل |
|---|

| وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ | اِلَّا ضَلٰلًا ۝ |
| --- | --- |
| او مه زیاتوه ظالمانو لره \| | سوا دګمراهۍ نه \| |
| اوته ددې ظالمانو ګمراهي نوره هم سوا کړه \| | |

**قوله تعالی:- قَالَ نُوحٌ رَبِّ اِنَّهُمْ عَصَوْنِیْ**

**د الله ﷻ دربار کښې د نوح علیه السلام فریاد:-** حضرت نوح ﷺ د خپل تیرشوی شکایتونوسره د الله تعالی په دربارکښې د خپل قوم د خلقو دا طریقه هم بیان کړه چه زما دا آواز د هغوی د پاره سراسر د فائدې او ګټې وو هغوی ورته غوږ قدرې کینخودو اود خپلو مالدارانو او بې فکرو ئې اومنل کوم چه ستا د امر نه بالکل غافل وو او په مال اولاد باندې مست وو سره د دې چه دغه مال اولادهم د دوی د پاره نقصان وو ځکه چه هم د هغوی په وجه به هغوی غټیدل اوالله تعالی به ئې هیرولو او په ډیر نقصان کښې به پریوتل. د (وَلَدُهٗ)دویم قراءت (وَلَدُهٗ)هم دې.اودا مالداران کوم چه دشان اوشوکت والا وو دوی سره ډیره مکاری اوکړه. (كُبَّارًا) په دواړومعنوکښې (کبیر) دې یعنی ډیر لوئ. د قیامت په ورځ به هم داخلق هم دغه وائي چه ستاسو د شپې ورځې د مکارئی نه مونږ ته دکفر او شرك حکم کولو وو اودې غټانودې ورو ته اووئيل چه خپل دا بتان د کومو چه تاسو عبادت کوئی هیڅ کله مه پریږدئی.

**قوله تعالی:- وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا**

**د قوم نوح ﷺ بتان او غرب:-** په صحیح بخاری کښې دی چه د قوم نوح ﷺ بتان د عربو کفارو واخستل او دومته الجندل کښې کلب قبیلې د "ود" عبادت کولو هذیل قبیلې د سواع تابعدار وو او قبیله مراد بیا قبیله بنوغطیف کوم چه جرف اوسیدونکي وو او دا د ښار سبا سره خواکې وو دیغوث عبادت به ئې کولو همدان قبیله د یعوق عبادت کونکی وو آل ذی کلاع قبیله د حمیرنسر بت منونکی وو. دا ټول بتان د قوم نوح ﷺ نیکان بزرګان اولیاء خلق وو. د هغوی د وفات نه پس شیطان د هغوی په زړه کښې دا خبره واچوله چه د دې بزرګانو په عبادتخانو کښې د دوی څه یادګارقایم کړئي. نوهغوی هلته نښې جوړې کړې اود هریوبزرګ په نوم ئې مشهور کړه. ترکومې چه دا خلق ژوندی وو نو هغه وخته پورې خو د دوی عبادت نه شو کیدې خو دا نښې او یادګارونه قایمونکی خلقو د مرګ نه پس اود علم د اوچتیدونه پس چه کوم خلق راغله د جهالت په وجه هغوی باقاعده د دې څایونواو نومونو عبادت شروع کړو.(۱)

**شرك د عقیدت نه شروع شوې دی:-** حضرت عکرمه رحمه الله حضرت ضحاك رحمه الله حضرت قتاده رحمه الله او حضرت ابن اسحاق رحمه الله هم دا فرمائی. حضرت محمدبن قیس رحمه الله فرمائی چه دا بزرګ عابد د الله تعالی والا دالله ﷻ دوستان دحضرت آدم ﷺ اوحضرت نوح ﷺ رښتونې تابعدار او نیکان خلق وو. دچاتابعداری چه نوروخلقوهم کوله.کله چه دوی مړه شونوددوی مقتد یانواووئیل که مونږددوی تصویرونه جوړکړو نوزمونږ به په عبادت کښې نورهم زړه لګی اوددې بزرګانوشکل کتلوسره به زمونږ د عبادت شوق نورهم زیاتیږی. نوهم دغه شان ئې اوکړه. کله چه داخلق هم مړه شواوفناشونو د هغوی نسلونه راغله نوشیطان په هغوی باندې داګوتې اوڅکله چه ستاسومشرانوخوبه ددې عبادت کولواوهم د دوی نه به ئې دعاغوښتله نوهغوی په پوره توګه د دې بزرګانود تصویرونوعبادت شروع کړو

**قوله تعالی:- وَلَا سُوَاعًا ۙ وَّلَا يَغُوْثَ وَيَعُوْقَ وَنَسْرًا ۚ**

حافظ ابن عساکر رحمه الله د حضرت شیث ﷺ په قصه کښې بیان فرمائی چه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل دحضرت آدم ﷺ څلویښت بچی وو شل خامن اوشل لونړه. په دوی کښې چه د کومو عمرونه

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة نوح: ۴۹۲۰.

زيات وو په هغوی کښې هابيل قابيل صالح اوعبدالرحمن وو د کوم چه ړومبې نوم عبدالحارث وو بل ود وو کوم ته چه به نی شيث او هبة الله هم وئيلې شو ټولورونړو سرداری دې رور ته ورکړې وه د هغه اولاد دا خلور واړه وو يعنی سواع يغوث يعوق او نسر. حضرت عروه بن زبير رضی الله عنه فرمائی چه د حضرت آدم علیه السلام د بيمارئی په وخت کښې د هغه اولاد ود يغوث يعوق سواع او نسر وو ود په دوی کښې د ټولو نه لوئ او د ټولونه نيك سلوك وو.

ابن ابی حاتم کښې دی ابوجعفر رحمه الله مونځ کولو چه خلقو د يزيدبن مهلب ذکر اوکړو هغوی چه فارغ شو نو وئی فرمائيل چې تاسو د يزيد بن مهلب تذکره اوکړه. هغه هلته قتل کړې شوچرته چه به د ټولونه اول د غيرالله عبادت کولې شو. او بيا يې د ودد تذکره ا وکړه او وې فرمائيل چې واقعه داسې اوشوه چه ود يودیندار ولی الله مسلمان وو کوم چه د خلقو ډير خوښ وو اوډير معتقدوو هغه مړشو. داخلق منجوران جوړ شو اود هغه په قبرکيناستل اوژړا فرياد او هغه نی يادول شروع کړه اوډير بې آرامه او په مصيبت کښې وو. ابليس لعين چه دا اوکتل نوپه انسانی شکل اوصورت کښې هغوی له راغلواو ورته نی اووئيل چه د دې بزرګ يادګار ولې نه جوړوئی؟ چه هروخت ستاسو په وړاندې وی او تاسوهغه نه هيروئی. ټولود ده رائې اومنله نو ابليس د هغه بزرګ تصوير جوړکړواود هغوی په وړاندې نی اودرولو کوم چه به هغوی په کتوکتوسره يادولواود هغه د عبادت تذکرې به نی کولې کله چه دا ټول په دې کښې ښه مشغول شو نو ابليس اووئيل چه تاسو ټول خودلته راځئی نو ښه به دا وی چه زه د ده ډير تصويرونه جوړکړم تاسو هغه په خپلو کورونوکښې کيږدئی نو هغوی ټول په دې هم راضی شو نو داهم اوشو. تراو،ـه پورې دا تصويرونه هم د يادګار په توګه وو نود دوی دويم پشت نيغ په نيغه د دوی عبادت کوځ شروع کړو او اصلی واقعه ټولوهيره کړه اوخپل پلاران اونيکونه ئې هم د دوی عبادت کونکی اوګڼل او پخپله هم په بت پرستنی کښې مشغول شو. د هغه نوم "ود" وو اود ټولونه اولنی هم دا بت وودکوم چه دالله تعالی نه بغيرعبادت اوکړې شو.هغه ډيرمخلوق ګمراه کړو.دهغه وخت نه واخله تر اوسه پورې په عربواو عجموکښې بغيرد الله تعالی نه د نوروعبادت کول شروع شو اود الله تعالی مخلوق دسوکه شو.

**قوله تعالى:-وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا ضَلٰلًا**

**دنوح عليه السلام بد دعاء:-** خليل الله علیه السلام په خپله دعاکښې عرض کوی اې زماربه ما اوزما اولاد د بت پرستنی نه بچ کړه ياالله هغه اکثرمخلوق ګمراه کړې دې.بيا حضرت نوح علیه السلام دخپل قوم د پاره بد دعا کوی خکه چه د هغوی سرکشی ضد د حق سره دښمنی هغه ښه ليدلې وه. نو وائی چه الله تعالی دوی په ګمراهئی کښې نورهم ورزيات کړه لکه چه موسی علیه السلام د فرعون او فرعونيانود پاره بددعاکړې وه چه اې الله د دوی مالونه تباه کړې د دوی زړونه سخت کړې چه د دوی ايمان نصيب نه شی د کوم وخت پورې چه دوی دردناك عذاب اونه وينی.د نوح علیه السلام دعاقبوله شوه اود هغوی د خپل تکذيب په وجه هغوی غرق کړې شو.

| مِمَّا خَطِيْٓـٰٔتِهِمْ | اُغْرِقُوْا |
|---|---|
| نه \| په سبب دګناهونو دهغوئ | غرق کړې شو هغوئ |
| نو دخپلو ګناهونو په سبب هغوئ ډوب کړې شول | |

| فَاُدْخِلُوْا | نَارًا | فَلَمْ يَجِدُوْا | لَهُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| پس داخل کړې شو | وور ته | پس بيا نه موندو هغوئ | دپاره دخان خپل | بې الله نه |
| او اور ته اورسيدل \| نوهغوی د الله جل جلاله په مقابله کښې خان دپاره هيڅوک مددګار بيا نه موندو | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْصَارًا۝ | وَقَالَ نُوْحٌ | رَّبِّ | لَا تَذَرْ | عَلَى الْاَرْضِ | |
| مددګاران | او اووئیل نوح علیه السلام | اے ربه زما | مهٔ پرېږده | په زمکه باندې | |
| او حضرت نوح علیه السلام داهم اووئیل چې اې زما ربه ! ته دزمکې په مخ ............ | | | | | |
| مِنَ الْكٰفِرِيْنَ | دَيَّارًا۝ | اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ | يُضِلُّوْا | عِبَادَكَ | |
| دکافرانونه | يو کوروالا | بیشکه که تا پرېښودل دوئ | نو ګمراهه کوی به دوئ | بندګان ستا | |
| دکافرانو يو استوګن هم باقي پاتې نکړې | که ته دوئ پرېږدې | نو ستا بندګان به هم ګمراه کړي | | | |
| وَلَا يَلِدُوْٓا | اِلَّا | فَاجِرًا كَفَّارًا۝ | رَبِّ اغْفِرْ لِيْ | وَلِوَالِدَيَّ | |
| اونهٔ به زیګوی دوئ | مګر | بدکاره ناشکره | اے ربه زما معاف کړې ماله | او مور او پلار زما لره | |
| اوچې کوم اولاد زیږوی هغه هم بدعمله کافر (اولاد) وي | اې زما ربه ما اوبښه اوزما پلار اومور اوبښه | | | | |
| وَلِمَنْ | دَخَلَ بَيْتِيَ | مُؤْمِنًا | وَّلِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ ط | |
| او هغه چالره | چې داخل شو کور زما ته | په حیثیت دمومن | او مومنانوسړو لره | او مومنانو ښځو لره | |
| اوخوک چې زما کورته دمومن په حیثیت راننوتولو | او ټول مومنان اوټولې مومنانې اوبښه | | | | |
| وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ | اِلَّا تَبَارًا۝ | | | | |
| او مهٔ زیاتوه ظالمانو لره | سوا دهلاکت نه | | | | |
| اودا ظالمان په تباهئ کښې نور هم زیات کړه | | | | | |

**قوله تعالی:-**

**د حضرت نوح علیه السلام بددعا اوعذاب:-** د ﴿خطیئتهم﴾ دویم قرائت ﴿خطایاهم﴾ هم فرمائیلې شوې دې چه د خپلو ګناهونوداکثریت په وجه داخلق هلاك کړې شو.هغوی سرکشي او ضد په وجه خبره نه منل اودهغوی مخالف او دښمني د رسول سره د حدنه تیره شوه نوهغوی په اوبوکښې ډوب کړې شو. اود دې خائی نه وړاندې کندې ته ورديکه کړې شو او هیڅ څوك اونه درېدل چه دوی د عذاب نه بچ کړې وې لکه چه ارشاد دې ﴿قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ﴾ یعنی په نن ورځ د الله تعالی د عذاب نه هیڅ څوك نه شي بچ کولې صرف هم هغه به خلاصې بیامومي په چا چه الله تعالی رحم اوکړی.حضرت نوح علیه السلام د دې بد نصیبود خپل آقا ذوالجلال الله تعالی وتبارکه په درباندې خپل تندي ایخودې فریادکوی اوهغه مالك ته په دوی باندې د عذاب راالیګلودرخواست وړاندې کوی چه اوس خو د دې ناشکرونه یوکس هم الله تعالی په دې زمکه باندې ګرځیدونکې مه پرېږده. اوهم داسې اوشو چه ټول په اوبوکښې غرق کړې شوتردې چه د نوح علیه السلام خپل سکه څوئ هم چه د پلار نه جدا شوې وو هغه هم بچ نه شو. هغه دا ګنړل چه اوبه به زما څه اوکړی زه به چرته یولوئ غرته اوخیژم. ولې هغه اوبه خونه وې دالله تعالی عذاب وود الله تعالی غضب وواودحضرت نوح علیه السلام بددعاوه دې نه څوك بچ کیدې شو؟ اوبه هغه هم هلته راګیروی او هغه پلارسره په خبروخبرو کښې د هغه په وړاندې ډوبیږی او مړ کیږی.

ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی که د نوح علیه السلام په طوفان کښې الله تعالی په چاباندې رحم کولو نود دې لائق هغه ښځه وه چه اوبه راخوټکیدل او راوریدل نی اوکتل نو راپاسیده او غرته کتلې وه کله چه اوبه هلته هم اورسیدې نو ماشوم ني اوچت کړو او په خپلو اوږو نی کینولو کله چه اوبه هلته هم اورسیدې نوهغه نی په سر کینولو کله چه اوبه سرته هم اورسیدې نو خپل بچې نی په لاسونوکښې د سر

نه هم اوچت اونیولوخواخر اوبه هلته هم اورسیدلي موراوخوئ ډوب شول نوکه په هغه ورځ په کافرانو کښي څوك د رحم قابل وي نو هم دغه ښځه وه خوهغه هم نه بچ شوه اونه ئی څوك بچ کړي شو(١) دا حدیث غریب دي خوراویان ئی ثقه دی.

**قوله تعالی:-رَبِّ اغْفِرْلِیْ وَلِوَالِدَیَّ**

**د نوح علیه السلام دعاءاو بددعاء:-** غرض داچه د مخ د زمکې کافران غرق کړې شول صرف هغه ایماندار هستئی پاتې شوې چه حضرت نوح ﷺ سره په کشتئی کښې وو اود الله تعالی په حکم حضرت نوح ﷺ هغوی خپل ځان سره په کشتئی کښې سواره کړې وو. د حضرت نوح ﷺ ډیره سخته ترخه تجربه شوې وه په دې وجه خپله ناامیدی ښکاره کولوسره فرمائی چه یاالله زما زړه غواړی چه داټول کافران تباه کړې شی په دوی کښې چه څوك هم باقي او بچ پاتې شی نوهغه به دنورود گمراهئی ذریعه جوړیږی او چه د هغوی کوم نسل خوریږی هغه به هم د دوی په شان بدکاران او د کافرزړه والا وی. دې سره د خپل ځان د پاره بښنه غواړی او فرمائی اې زما ربه ما اوبښه زما مورپلار اوبښه او هر هغه سړې چه زما کورته راشی اوهغه وی هم ایماندار. د کورنه مراد جمات هم اخستې شوې دې خو عام مراد هم دغه دې.مسنداحمد کښې دې رسول الله ﷺ فرمائی هم مؤمن سره کینئی پاسئی پاك او پرهیزگاره خلق دې ستا خوراك اوخوری. (٢) داحدیث په ابوداؤداو ترمذی شریف کښې هم دې. امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه صرف هم په دې اسنادوسره دا حدیث معروف دې.

بیا خپله دعاعام کوی او فرمائی چه ټول ایماندار سړی او ښځې هم اوبښه که هغه ژوندی وی اوکه مړه وی په دې وجه مستحب دی چه هرسړې دې په خپله دعاکښې نور مؤمنان هم شاملوی چه د نوح ﷺ اقتداء هم وی اوپه دې احادیثوباندې هم عمل اوشی کوم چه په دې باره کښې دی او هغه دعاگانې هم راشی کومې چه نقل دی. بیاد دعاپه خاتمه کښې وائی چه یاالله تعالی داکافران داسې تباهئی اوبربادئی هلاکت او نقصان کښې نور هم ورزیات کړې په دنیااو آخرت کښې دې دوی برباد وی.

**(الحمدلله)** د سورت نوح تفسیر هم ختم شو.

| ایاتونه | | | سورة الجن مکیة وهی ثمان وعشرون آیة وفیها رکوعان | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | | | |
| ⟨٢٨⟩ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | | ⟨٢⟩ |

| قُلْ | اُوْحِیَ | اِلَیَّ | اَنَّهُ اسْتَمَعَ | نَفَرٌ | مِّنَ الْجِنِّ | فَقَالُوْٓا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووایه | وحی شوی ده | ماته | چې بیشکه غوږ اینبې وو | یوې ډلې | دپیریانو نه | پس اووئیل هغوئ |

(ائې رسوله) اووایه چې ماته وحی راغلې ده | چې دپیریانو یوې ډلې قرآن پاک واوریدلو | نو وې وئیل

| اِنَّا | سَمِعْنَا | قُرْاٰنًا عَجَبًا ۙ① | یَّهْدِیْٓ | اِلَی الرُّشْدِ |
|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه مونږه | واوریدو | یو قرآن عجیبه | چې لاربښودنه کوی | نیکۍ ته |

چې مونږ عجیبه قرآن واوریدو | ..........چې د هدایت لارې ته بلنه کوی

---

(١) دا روایت حاکم :٣٤٢/٢کښې مختصراً دحضرت عائشه رضی الله عنها نه مروی دې وسنده حسن، موسی بن یعقوب حسن الحدیث راوی دې.

(٢) ابوداؤد کتاب الادب باب من یؤمر ان یجالس:٤٨٣٢وسنده صحیح، ترمذی:٢٣٩٥، احمد:٣٨/٣٨،٣/٣.

| فَاٰمَنَّا بِهٖ ؕ | وَلَنْ نُّشْرِكَ | بِرَبِّنَآ | اَحَدًا ۙ |
|---|---|---|---|
| بس ایمان راوړو مونږه په هغه باندې | او مونږ به هرګز نه شریکوو | درب خپل سره | هیڅوک |
| نو مونږ پرې ایمان راوړو او مونږ به خپل رب سره (اوس) هیڅوک نه شریکوو | | | |

| وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى | جَدُّ رَبِّنَا | مَا اتَّخَذَ | صَاحِبَةً | وَّلَا وَلَدًا ۙ |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه چې لوئ دې | شان درب زمونږه | نه ده نیولې (جوړه کړې) هغه | ښځه | او نه خوئې |
| اودا چې زمونږ د رب شان ډیر لوئې دې \| هغه نه ښځه کړې ده \| ........................اونه ني اولاد شته | | | | |

| وَّاَنَّهٗ كَانَ | يَقُوْلُ | سَفِيْهُنَا | عَلَى اللّٰهِ | شَطَطًا ۙ | وَّاَنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| او بیشکه وو | چې ونیل به | ناپوهانو زمونږه | په الله باندې | خبرې دحق نه خلاف | او بیشکه مونږه |
| او دا چې زمونږ کم عقلو به د الله ﷻ په باره کښې د حدنه زیاتې خبرې کولې \| او زمونږ خو دا خیال وو | | | | | |

| ظَنَنَّآ | اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ | الْاِنْسُ | وَالْجِنُّ | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا ۙ | وَّاَنَّهٗ كَانَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ګمان کولو | چې هرګز به نهٔ وائې | انسان | او پیرې | په الله باندې | دروغ | او بیشکه چې وو |
| ........چې انسانان او پیریان به د الله ﷻ په باره کښې دروغ نه وائې \| .........................او دا چې | | | | | | |

| رِجَالٌ | مِّنَ الْاِنْسِ | يَعُوْذُوْنَ | بِرِجَالٍ | مِّنَ الْجِنِّ |
|---|---|---|---|---|
| ډیر سړي | ـ انسانانونه | چې پناه به ئې غوښتله | په سړو پورې | دپیریانونه |
| بنیادمو کښې ډیر کسان داسې هم تیر شوی دی \| ..........چې هغوئ به د بعضو سړونه دپیریانو | | | | |

| فَزَادُوْهُمْ | رَهَقًا ۙ | وَّاَنَّهُمْ |
|---|---|---|
| پس زیات کړو انسانانو هغوئ پیریانو لره | په لحاظ دغرور سره | او بیشکه چې انسانانو هم |
| په ذریعه پناه غوښتله \| نو د هغوئ (پیرانو) تکبر ئې نور هم زیات کړو \| او د هغوئ | | |

| ظَنُّوْا | كَمَا ظَنَنْتُمْ | اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ | اَحَدًا ۙ |
|---|---|---|---|
| ګمان اوکړو | لکه څنګه چې ګمان کړې وو تاسو | چې هرګز به نهٔ رالیږی الله | یو (رسول) |
| داګمان وو \| لکه چې تاسو ګمانونه کوئ \| چې الله ﷻ به هیڅوک بیا نه راژوندي کوی | | | |

**قوله تعالىٰ:- قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ**

**دپیریانوقران اوریدل اوپدې باندې ایمان راوړل:-** الله تعالى سبحانه وتعالى خپل رسول حضرت محمد مصطفى ﷺ ته فرماني چه خپل قوم ته د دې واقعه خبرورکره چه پیریانوقرآن پاك واوریدو هغه نی رښتونې بیاموندو په دې نی ایمان راوړو اود دې تابعدارشو. نو فرمانی چه اې نبی ته اووایه زما طرف ته وحی رالیګلې شوې ده چه د پیریانو یوې ډلې قرآن پاك واوریدو او خپل قوم ته لاړل او خبرنې ورکړو چه نن مونږ ډیر عجیبه او حیرانونکې کتاب واوریدو چه رښتونې اود خلاصی لار ښانی. مونږ خو دا منلې دې او نامکمن دی چه اوس مونږ دالله تعالى سره د بل چا عبادت اوکړو.هم دامضمون په دې آیاتونوکښې تیرشوې دې. ﴿وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۚ﴾ یعنی چه کله مونږ د پیریانو یوه ډله ستا طرف ته راوګرځوله دې د پاره چه هغوی قرآن پاك واوری الخ. اود دې تفسیرمې هم هلته په احادیثو سره بیان کړې دې دلته د بیا بیانولوضرورت نشته. بیا دا پیریان خپل قوم ته وائی زمونږ د

رب د قدرت کار امر ډیر اوچت او د لوئ شان اوعزت والا دې دهغه نعمتونه قدرتونه او په مخلوق باندې مهربانئی ډیردوقعت والا دی ددې جلالت او عظمت ډیراوچت دې.دهغه جلال اواکرام ډیر اوچت خیژولې شوې دې د هغه ذکر د اوچتې درجې دې د هغه شان ډیر اوچت دې.
په یوروایت کښې د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه جد وائی پلار ته که چرته پیریانوته دا علم وی چه انسانانوکښې هم جد وی نوهغوی به د الله تعالی په نسبت سره دا لفظ نه ونیلو نولکه دا قول سنداً قوی دې خوکلام جوړېږی نه او هیڅ مطلب په پوهه کښې نه راځی. ممکن ده چه په دې کښې څه کلام پاتې شوې وی. والله أعلم. بیا خپل قوم ته وائی چه الله تعالی د دې نه اوچت او بزرګ دې چه د هغه ښځه وی یا د هغه اولاد وی.

**قوله تعالی:-** يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوهُمْ رَهَقًا

بیا فرمائی چه زمونږ بې وقوف یعنی شیطان په الله تعالی باندې د دروغو تهمت لګوی اوداهم کیدې شی چه دې نه مراد عام وی یعنی چه کوم سړی الله تعالی له اولاد او ښځه ثابتوی بې عقله دې دورغ وائی باطل عقیده لری او د ظلم خبره د خلې نه اوباسی. بیا فرمائی چه مونږ خو په دې خیال کښې وو چه پیریان او انسانان په الله تعالی باندې دروغ نه شی تړلې. خو د قرآن پاك په اوریدو سره معلومه شوه چه دا دواړه ډلې په رب العالمین باندې تهمت تړی اوپه أصل کښې د الله تعالی ذات د دې عیب نه پاك دې. بیا فرمائی چه د پیریانو د ډیر دهوکه کیدو سبب دا اوشو چه هغوی کتل کله چه یو انسان په ځنګل یا بیابان ته ځی نود پیریانو پناه غواړی او دا به نې ګڼړل چه داسې ونیا کولو سره لکه چه د جاهلیت د زمانې د عربوعادت وو چه کله به نې چرته ډیره اچولې نو ونیل به نې چه د دې ځائې د لوئ پیری په پناه کښې مونږ راځو. اودابه نې ګڼړل چه په داسې وینا کولو سره د ټولوپیریانود شر نه به مونږ محفوظ شو. دغه شان چه به ښارونوته تلل د لوئ رئیس پناه به نې اخستله دې د پاره چه د ښار نور دښمنان خلق هغوی ته تکلیف اونه رسولې شی. پیریانوچه دااوکتل چه انسانان هم زمونږ پناه اخلی نود هغوی سرکشی نوره هم زیاته شوه اوهغوی نور هم ډیر انسانان تنګول شروع کړه. اوداهم مطلب کیدې شی چه پیریانودا حالت په لیدوسره انسانان نور هم ډیر ویرول شروع کړی وی او هغوی نې قسم قسم سره تنګول. په اصل کښې به پیریان د انسانانو نه ویریدل لکه چه انسان د پیریانونه بلکه د دې نه هم ډیر چه کوم ځنګل او بیابان ته به انسان رسیدلو نود هغه ځائې نه به پیریان تختیدل. خو چه د کله نه مشرکانو د دوی نه پخپله پناه غوښتل شروع کړه او ونیل به نې چه د دې وادئی د لوئ پیری په پناه کښې مونږ راځو د هغې نه چه زمونږ مال اولاد ته نقصان اورسی. اوس پیریان په دې پوهه شو چه داخوزمونږ نه پخپله ویرېږی نوهغوی نور هم بهادران شو اوس هغوی قسم قسم ویرول تنګول او چیړل شروع کړه هغوی په ګناه کښې ویره کښې ظلم او سرکشئ کښې نورهم زیات شو.

**پیریانو سره د پناه اخستلو واقعه:-** کردم بن ابوسائب انصاری ﷺ فرمائی چه زه د خپل پلار سره په مدینه کښې د یوکارد پاره بهر اووتلم هغه وخت د حضور ﷺ بعثت شوې وو اوپه مکه مکرمه کښې هغوی د پیغمبر ﷺ په حیثیت سره ښکاره شوې وو.د شپې په وخت کښې مونږ یو ګډبه سره په یوځنګل کښې پاتې شو د نیمې شپې په وخت کښې یو لیوه راغلو او چیلئی اوچته کړه اوتختیدو. ګډبه هغه پسې منډه کړه اوپه چغه نې اوونیل ای د دې ځنګل آباد ساتونکیه ستا په پناه کښې راتلونکي سړی لوټ شو ورسره یوآواز راغلو هیڅ څوك سړی موجود نه وو ای لیوه دا چیلئی پریږده. لږ ساعت پس مونږ اوکتل چه هم هغه چیلئی په منډه منډه واپس راغله او په رمه کښې یوځائې شوه او هغه زخمی شوې هم نه وه[1] هم دا بیان په دې آیت کښې دې کوم چه په رسول الله ﷺ باندې مکه کښې نازل شو چه

[1] المعجم الكبير للطبراني: ۱۹/۱۹۱-۱۹۲، مجمع الزوائد:۷/۱۲۹.

بعضې خلقو به د پیریانوپناه غوښتله. داسې هم ممکن دی چه دا لیوه جوړیدونکی راغلې هم پیرې وی اودچیلنی بچې نی نیولې وی اودګډبه په دې فریاد باندې نی پریښې وی چه ګډبه ته او نورو اوریدونکوته ددې خبرې اوریدو سره په دې باندې نور هم کامل یقین پیداشی چه د پیریانوپه پناه کښې راتلوسره د نقصان نه محفوظ پاتې کیدې شی. او بیا په دې عقیده سره هغه نورهم ګمراه شی او د الله تعالی د دین نه خارج شی والله اعلم. دا مسلمانان پیریان خپل قوم ته وائی چه اې پیریانوڅنګه چه ستاسو ګمان وودغه شان انسان هم په دې خیال کښې وو چه اوس به الله تعالی یورسول نه رالیګی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَّاَنَّا | لَمَسْنَا السَّمَآءَ | فَوَجَدْنٰهَا | مُلِئَتْ |
| او بیشکه چې مونږه | اورسیدو آسمان ته | پس بیا موندو مونږه هغه | چې ډک کړې شوې دې |
| اودا چې مونږ آسمان ته اورسیدو | .......................نو هغه مو د سختو څوکیدارانو فرشتو | | |
| حَرَسًا شَدِيدًا | وَّشُهُبًا | وَّاَنَّا كُنَّا | نَقْعُدُ |
| دڅوکیدارانو سختونه | او دشغلو دوور نه | او بیشکه چې وو مونږه (پخوا) | چې کیناستو به |
| او دشغلو نه ډک بیاموندلو | ........................ اودا چې مونږ به دآسمان په بعضې ځایونو کښې | | |
| مِنْهَا | مَقَاعِدَ | لِلسَّمْعِ | فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ |
| په دې آسمان کښی | په ځاې دناستې کښې | دپاره داوریدو | پس څوك چې غوږ ږدی اوس |
| د خبرونو اوریدو دپاره کیناستلو | نو اوس چې څوک د اوریدو دپاره غوږ تکیا کړی | | |
| يَجِدْ | لَهٗ | شِهَابًا رَّصَدًا | وَّاَنَّا لَا نَدْرِيْٓ اَشَرٌّ |
| نو مومی | دپاره دخان خپل | شغله انتظار کونکی | او بیشکه چې مونږه نه پوهیدو \| چې آیا دشر |
| نو یوه تیاره شغله به بیامومی | ........................او مونږ په دې نه پوهیږو \| چې ددې نه | | |
| اُرِيْدَ | بِمَنْ | فِي الْاَرْضِ | اَمْ اَرَادَ بِهِمْ |
| اراده کړې شوې ده | په هغه چا باندې | چې په زمکه کښې دی | یا اراده کړې ده \| په هغوئ باندې |
| زمکې خلقو ته تکلیف ورکول مراد دی | .......................اوکه د دوی په باره کښې د دوی | | |
| رَبُّهُمْ | رَشَدًا | | |
| رب دهغوئ | دنیغې لارې دښودلو | | |
| د هدایت کولو اراده کړې ده | | | |

**قوله تعالی:-** وَّاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ

**د پیریانو اوریدل ئې بندکړل:** دحضورﷺ د بعثت نه وړاندې به پیریان آسمانونوته تلل او یوځائی کښې به کیناستل اوغوږبه نې کیخودو دفرښتوخبرې به نې اوریدې اوبیابه نې کاهنانوته خبر ورکولو او کاهنانوبه دې خبروته بنه مرچ مالګه اولګوله اوپه یوه کښې به نې سل دروغ یوځائی کړل او خپلو منونکوته به نې ونیل. اوس چه کله نه حضورﷺ پیغمبرجوړکړې شواو په هغویﷺ باندې قرآن کریم نازلیدل شروع شو نو په آسمانونوباندې زبردستی پهرې کینولې شوې او دې شیطانانو ته د اول په شان خبرې اوریدو او د خبرود الوزولو موقع پاتې نه شوه. دې د پاره چه د قرآن کریم اوکاهنانوکلام ګډوډنه

شي اود حق لټونکوته مشکلات پيدانه شي. دې مسلمانانو پيريانوبه خپل قوم ته ونيل چه اول خو به مونږ په آسمانونوکښې کيناستو ولې اوس خو سختې پهرې لګيدلې دی اود اور شغلې په شيش کښې ناستې دی اوداسې راخلاصيږی چه هرو خطاکيږی نه لوله په کوی يعني سيزی.اوس مونږ دا نه شو ونيلی چه دې نه حقيقي مرادڅه دې د زمکې والا څه بدی خوره شوه ياد هغوی سره د هغوی د رب اراده د نيکئی او ښيګړې ده. خيال اوکړنی چه دا مسلمانان پيريان څومره د ادب نه ډك وو چه د بدنی د اسناد د پاره ئې د چا فاعل ذکر اونه کړاود ښيګړې اضافت ئې د الله تعالی طرف اوکړو او ونی ونيل چه په اصل کښې د آسمان څوکئی اوحفاظت نه څه مطلب دې؟ دامونږ نه پيژنو.
دغه شان په حديث کښې هم راغلی دی چه اې الله ستاد طرف نه شر او بدی نه ده (١) ستورې به د دې اول هم کله کله راجداکيدل خوداسې په کثرت سره د هغوی اور ورول د قرآن کريم د حفاظت او صيانت په وجه شوې وو. په يوحديث کښې دی مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو چه ناڅاپې يوستورې راجداشو او ډيره رڼرا شوه. نو حضورﷺ زمونږ نه معلومه کړه چه چه اول به داسې ستورې راجداشوتاسو به څه ونيل؟ هغوی عرض اوکړو يارسول الله ﷺ! زمونږ به داخيال وو چه داخو ياد لوئ سړی په پيداکيدو سره راجداکيږی اوياد يولوئ په مرګ باندې. حضورﷺ اوفرمائيل نه نه بلکه الله تعالی چه کله هم په آسمان باندې د چافيصله کوی الخ. (٢) داحديث په پوره توګه د سورت سبا په تفسيرکښې تيرشوې دې.
په اصل کښې د ستورو په کثرت سره راپريوتل د پيريانوپه دې سره هلاکيدل د آسمان حفاظت زياتيدل د آسمان د خبرونونه محروم کيدل د دې امر سبب جوړشوچه دوی بهر راووتل اوهغوی څلورو ډاړو طرفونوته لټون شروع کړو چه څه وجه ده چه زمونږ آسمانونوته تګ موقوف شو. نوپه دوی کښې د يوې ډلې تيريدل په عربوباندې اوشو اودلته ئې رسول الله ﷺ د سحر په مانځه کښې په قرآن کريم اوريدو سره واوريدو او پوهه شو چه ددې نبی ﷺ د بعثت اود ده د کلام نازليدل زمونږ د بندش سبب دې. نو خوش نصيب او عقل مند پيريان خومسلمانان شو باقي نورو پيريانوته ايمان نصيب نه شو.دسورت احقاف آيت ﴿وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ﴾ کښې د دې پوره بيان تيرشوې دې. د ستورو پريوتل د آسمان محفوظ کيدل صرف د پيريانود پاره نه دی بلکه د انسانانود پاره هم يود خطرې علامت وو ويريدل به او په انتظارکښې به وو چه نتيجه به څه کيږی. په عام توګه د انبياء کرام عليهم السلام د تشريف راوړو اود الله تعالی د دين د اظهار په وخت کښې به هم داسې کيدل.
حضرت سدی رحمه الله فرمائی شيطانان به اول په آسمانی بيټکونوکښې کيناستل او د فرښتو خپل مينځ کښې خبرې به ئې راوړلې.کله چه حضورﷺ پيغمبر جوړکړې شو نويوه شپه پدې شيطانانوباندې ډيرې شغلې اوورولې شوې د کومو په ليدو چه د طائف خلق اوويريدل چه کيدې شی د آسمان والا هلاك شوی وی. هغوی اوکتل چه بې نمبره ستوری ماتيږی شغلې اوچتيږی اولرې لرې پورې په تيزئی سره خی.هغوی د غلامانوآزادول او څناور د الله تعالی په لارکښې پريخودل شروع کړل. آخر عبدياليل بن عمروبن عمير هغوی ته اوونيل اې د طائف خلقو تاسو ولې خپل مالونه برباد کونی؟تاسو نجوم اوګورنی که ستوری په خپل خپل ځائی موجود وی نو پوهه شئی چه د آسمان والا نه دی تباه شوی بلکه دا ټول انتظامات صرف د دين ابی کبشه د پاره کولې شی.(او که تاسو اووينئی چه په حقيقت کښې ستوری په خپل مقرر ځائی باندې نشته نو بې شکه د آسمان والا هلاك اوګڼرئی) هغوی نجوم اوکتلو نو ستوری ټول په خپل خپل مقرر ځائی باندې موجود وونو هله هغوی ته آرام راغلو.

---

(١) صحيح مسلم کتاب صلاة المسافرين باب صلاة النبیﷺ ودعائه بالليل: ٧٧١.
(٢) صحيح مسلم کتاب السلام باب تحريم الكهانة واتيان الكهان: ٢٢٢٩، ترمذی: ٣٢٢٤، احمد: ١/٢١٨، ابن حبان: ٦١٢٩.

**شیطانانو کښې بې آرامي:** شیطانانو کښې هم منډې ترړې شروع شوې دوی ابلیس له راغله نو ابلیس اوونیل چه ماله د هرې هرې علاقې خاوره راوړئ. هغه بوئی کړه او وئې ونیل چه د دې سبب په مکه کښې دې. اووه پیریان د نصیبین اوسیدونکی مکې ته راورسیدل.دلته حضورﷺ په مسجد حرام کښې مونځ کولواود قرآن کریم تلاوت ئې کولو د کوم په اوریدوباندې چه د دوی زړه نرم شو.ډیر نیزدې شو او قرآن پاک ئې واوریدو بیاد هغې په اثرباندې مسلمانان شو اوخپل قوم ته ئې هم د اسلام دعوت ورکړو. (د قرآن مجید د عبارت نه دا معلومیږي چه دا ټولې خبرې پیریان حضورﷺ ته وانی خپل قوم ته نه. او په سورت احقاف کښې چه کوم د پیریانو ذکر دې په هغې کښې د هغوی خپل قوم ته د دعوت ورکولو ذکر دې. دې نه وړاندې مضمون هم اوګورئ. والله اعلم. الحمدلله مونږ دا پوره پوره واقعه په خپل کتاب السیرت کښې د حضورﷺ د نبوت د شروع په بیان کښې لیکلې دې. والله اعلم.

| |
|---|
| وَّاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا |
| \| او بیشکه خینی زمونږ نه \| صالحان دی \| او خینی زمونږ نه \| |
| \| اودا چې بعضې په مونږ کښې نیکان دی \| او بعضې |
| دُوْنَ ذٰلِكَ ؕ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ۙ وَّاَنَّا ظَنَنَّاۤ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ |
| بې ددې نه دی \| یو مونږه \| په لارو \|مختلفو\|او بیشکه پوهیدو مونږه\|چې هرګز به مونږه عاجزه نۀ کړو الله |
| بل قسم خلق هم \| (غرض دا چې) مونږ په مختلفو لارو چارو روان وو \| او مونږ په دې پوهه شوی |
| فِي الْاَرْضِ وَلَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ۙ وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا |
| په زمکه کښې \| او هرګز به مونږه عاجزه نۀ کړو هغه \| په تیښتې سره \| او بیشکه \|هر کله چې واوریدو مونږه |
| یو \| چې مونږ د زمکې په مخ (هیڅ ځائې کښې) الله عاجزه کولې نشو\|او نه ترې په تیښته خلاصیدې شو \| اودا |
| الْهُدٰۤى اٰمَنَّا بِهٖ ؕ فَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِرَبِّهٖ |
| هدایت \| نو مونږه ایمان راوړو په هغې \| پس هغه څوک چې ایمان راوړی \| په رب خپل |
| چې مونږ د هدایت خبره واوریده \| نو ایمان مو پرې راوړو \|نو څوک چې په خپل رب |
| فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا ۙ وَّاَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ |
| پس نۀ به یریږي \| د کمې د نیکئ نه \| او نۀ د زیاتو د بدئ نه \| او بیشکه خینی زمونږ نه \| مسلمانان دی |
| ایمان راوړی \|نو هغه سره نه خو د نقصان ویره وی\|او نه د زیاتی\|او په مونږ کښې بعضې مسلمانان دی |
| وَمِنَّا الْقٰسِطُوْنَ ؕ فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا |
| اوخینی زمونږ نه \| د حق نه بې طرفه دی \| پس هغه چا چې اسلام قبول کړو \| پس هغوئ \| فکر اوکړو |
| او بعضې د حق نه بې لارې دی \| ...........نو چا چې اسلام قبول کړو \| نو هغوئ د نیکئ د لارې سوچ |
| رَشَدًا ۝ وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ۙ |
| \| د نیغې لارې \| او څوک چې د حق نه بې طرفه دی \| پس دی هغوئ \| دپاره د دوزخ \| خشاک \| |
| کړې دې\| ............ او څوک چې (د اسلام نه) بې لارې شو \| نو هغوئ د دوزخ خشاک شو |

وَّاَنْ لَّوِاسْتَقَامُوْا عَلَى الطَّرِيْقَةِ

او دا (وحي هم راغلې ده) كه چرې دا خلق په مضبوطيا سره تللې | په نيغه لار باندې |

او كه دا خلق په سمه لاره ولاړ پاتې وې | ..................نو مونږ به په ډېرو اوبو سره

لَاَسْقَيْنٰهُمْ مَّآءً غَدَقًا ۝ لِّنَفْتِنَهُمْ

نو خامخا به څكولې مونږ په هغوئ | اوبه ډېرې | دپاره ددې چې مونږ ازمېښت اوكړو دهغوئ |

خړوب كړې وو | ..................چې ددوئ امتحان پرې اوكړو

فِيْهِ ط وَمَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ

په دې نعمت كښې | او هغه څوك | چې مخ اړوي | دذكر درب خپل نه | نو ننباسي به هغه لره |

او څوك چې د خپل رب د ذكر نه مخ واړوي | نو الله ﷻ به ئې سخت

عَذَابًا صَعَدًا ۝

عذاب سخت ته |

عذاب ته داخل كړي |

قوله تعالى:- وَّاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ ط

**دپیریانوعقیدې او اعمش سره دیو پیروی واقعه:** پیریان دخپل قوم اختلاف بیانوی چه په مونږ کښې نیکان هم شته او بدکاره هم شته.مونږ په مختلفولارو باندې لګیدلې وو. حضرت اعمش رحمه الله فرمائی چه یو پیرې مونږ له راغلې وو ماد هغه نه یوه ورځ تپوس اوکړو چه په تاسو کښې ستاسو کوم خوراك ډیر خوښ دې؟ هغه ونیل اوریژې. ماراوړې ورمې کړې چه اومې کتل نو نوړنې برابر اوچتیدله خود خوړونکې په نظر نه راتلو. ما تپوس اوکړو چه داکوم خواهشات په مونږ کښې دی هغه په تاسو کښې هم دی؟هغه ونیل او.ماتپوس اوکړوچه په تاسوکښې رافضی څنګه شمیرلې شی؟هغه ونیل ډیر خراب. حافظ ابوالحجاج مزی رحمه الله فرمائی چه د دې سندصحیح دې.

ابن عساکر کښې دی چه حضرت عباس بن احمد دمشقی رحمه الله فرمائی چه ما د شپې یو پیرې به دې اشعارو ونیلو واوریدو چه زړونه د الله تعالی د محبت نه ډك شوی دی تردې چه په مشرق اومغرب کښې د دې جرړې کلکې شوی دی اوهغه حیران او پریشان د الله تعالی په محبت کښې ګرځی. کوم چه د هغوی رب دې هغوی د مخلوق نه خپل تعلقات کټ کړل او خپل تعلقات ئې الله تعالی سره اوتړل.

بیاوائی چه مونږ ته معلومه شوه چه د الله تعالی قدرت په مونږ باندې حاکم دې مونږ د دې نه په تیخته نه شو بچ کیدې اونه په څه بل شان هغه عاجز کولې شو اوس په فخر سره وائی چه مونږ خودا هدایت نامه اوریدو سره په دې ایمان راوړلې دې. په حقیقت کښې دې هم دا د فخر مقام دې نه زیات عزت او فضیلت بل څه کیدې شی چه د رب کلام زراثر اوکړی.

بیاوائی چه د مؤمن خو به نه نیك عمل ضائع کیږی اونه به په ده باندې هسې بدئی رابارکړې شی لکه چه بل ځائی ارشاد دې ﴿ فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا ۝﴾ یعنی نیك مؤمن ته د ظلم او نقصان ویره نه وی. بیا وائی چه په مونږ کښې بعضې خو مسلمانان دی او بعضې د حق نه اخواشوی دی عدل نی پریخې دې. مسلمانان د خلاصی لټونکی دی اوظالمان د دوزخ لرګی اوخشاك دې.

دأنْ لَّوِاسْتَقَامُوْا دوه مطلبونه :-دې نه پس آیت ﴿وَّاَنْ لَّوِاسْتَقَامُوْا﴾ دوه مطلبونه بیان کړې شوی دی یوخودا که. ټول خلق په اسلام باندې په نیغه لار اود الله تعالی په تابعدارئی باندې کلك شوې وو نو په هغوی

باندې به نې په کثرت سره بارانونه نازل کړي وو او په بنه وسعت سره به نې رزق ورکړي وو لکه چه بل خائې کښې دي ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم ﴾ که چرې دوی په تورات انجیل او آسمانی کتابونوباندې صحیح عمل کولو نو دوی ته به د آسمان او زمکې نه رزق ملاویدلو.

بل ارشاد دې ﴿ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ که داکلې والاایمان راوړلې اوداسې پرهیزګاره جوړیدلې نو مونږ به په هغوی د زمکې او آسمان برکتونه کولاوکړې وې اودا د دې د پاره چه هغوی پوره اوکتلې شي چه څوک په هدایت باندې کلك ولاړدې اوڅوك بیا د ګمراهۍ طرفته واپس کیږي.

حضرت مقاتل رحمه الله فرمانی چه دا آیت د قریشو د کافرانوپاره کښې نازل شوې دې کله چه په هغوی باندې اووه کاله قحط راغلې ووو. بل مطلب نې دا بیان کړې دې که دا ټول په ټول په ګمراهئي باندې ولاړ وو نو په دوی به د رزق دروازې کولاوولې شوې چه دوی نورهم مست شي اوالله تعالی هیرکړي اود سختو سزاګانو قابل شي. لکه چه د الله تعالی فرمان دې ﴿ فَلَمَّا نَسُوا ﴾ یعنی چه کله هغوی نصیحتونه هیر کړل نومونږهم په هغوی باندې دهریوخیز دروازې کولاوکړې په څه سره چه هغوی مست شو او ناڅاپې مونږ هغوی راګیرکړل او بیا هغوی نااميده شو. دغه شان آیت ﴿ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم ﴾ هم دې. بیافرمانی چه څوک هم د خپل رب د ذکر نه بې پروائی کوی د هغه رب به هغه په دردناك تباه کونکی او سخت عذابونوکښې راګیرکړي. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه ﴿صعد﴾ د دوزخ د کوهي نوم دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ | لِلَّهِ | فَلَا تَدْعُوا | مَعَ اللَّهِ | أَحَدًا ۝ |
| او دا چې جوماتونه | الله لره دی | پس مه رابلئ تاسو | دالله سره | هیڅوك |

او دا چې جماعتونه خو هم دالله جل جلاله (دعبادت) دپاره دي نو الله جل جلاله سره بل هیڅوک مه بلئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَأَنَّهُ | لَمَّا | قَامَ عَبْدُ اللَّهِ | يَدْعُوهُ | كَادُوا | يَكُونُونَ |
| او دا چې بیشکه | هر کله | ودریدو بنده دالله | چې رابلی هغه لره | نزدې وو خلق | چې شوی دی |

او دا چې دالله جل جلاله خاص بنده دهغه عبادت ته اودریږي نو دا پیریان پرې

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | لِبَدًا ۝ | قُلْ | إِنَّمَا أَدْعُوا رَبِّي |
| په هغه باندې | حمله کونکی په جمع سره | ووایه اے نبی | چې بیشکه رابلم زه رب زما |

راټول شي ............. ته اووایه چې زه خو بس دخپل رب عبادت کوم او هغه سره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا أُشْرِكُ بِهِ | أَحَدًا ۝ | قُلْ | إِنِّي لَا أَمْلِكُ | لَكُمْ | ضَرًّا |
| او نه شریکوم دهغه سره | هیڅوك | ورته اووایه | چې بیشکه زه اختیار نه لرم | ستاسو دپاره | دضرر |

هیڅوک نه شریکوم ............. ته اووایه چې زه تاسو ته نه د نقصان درکولو اختیار لرم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا رَشَدًا ۝ | قُلْ | إِنِّي | لَن يُجِيرَنِي | مِنَ اللَّهِ | أَحَدٌ |
| اونه دخیر | ورته اووایه | بیشکه زه چې یم | هرګز به بچ نه کړي شی مالره | دالله نه | هیڅوك |

اونه دهدایت | ته اووایه چې ماته دالله جل جلاله نه سوا بل هیڅوک پناه نشی راکولی

وَّلَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ﴿۲۲﴾ اِلَّا بَلٰغًا

او هرگز به بیا نۀ مومم زۀ | بې دهغه نه | خائې دپناه | مګر (کار زما) | رسونه ده دخبری |

اونه دهغه نه سوا بل څوک پناه موندې شم | ..................البته زما کار دالله ﷻ حکمونه اودهغۀ

مِّنَ اللّٰهِ وَرِسٰلٰتِهٖ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

دطرفه دالله نه | او (رسونه ده) دپیغامونو دهغه | او څوك چې نافرمانی کوی دالله | او درسول دهغه |

پیغامونه رسول دی | او څوک چې د الله او دهغه د رسول ﷺ نافرمانی کوی

فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴿۲۳﴾ حَتّٰٓى

پس بیشکه | دې هغه لره | وور ددوزخ | همیشه به وی | په هغې کښې | همیشه | تر دې پورې |

نو ده دپاره د دوزخ اور تیار دې | چې همیشه به په کښې اوسيږی| ...............تردې چې

اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ فَسَيَعْلَمُوْنَ

چې کله اووینی دوئ | هغه | چې وعده نې کیدې شی ددوئ سره | نو زر به معلوم شی دوئ ته |

کله هغوئ هغه (عذاب) اووینی | دکوم چې ورسره وعده کيږی| ..........نو هغه وخت به پوه شی

مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾

چې څوك ډیر کمزورې دې | په حیثیت دمددګار سره | او ډیر کم دې | په لحاظ دشمار سره |

چې د چا مددګاران کمزوری دی | ..............او د چا شمیره کمه ده

**قوله تعالى:-** وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ﴿۱۸﴾

**صرف الله تعالى رابله او دفَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا مطلب :-** الله تعالى خپلو بندیګانوته حکم ورکوی چه د هغه د عبادت خايونه د شرك نه پاك اوساتئی.هلته د بل چانوم مه اخلئی اومه بل څوك د الله تعالى په اطاعت اوعبادت کښې شریکونی.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه یهودیانواونصاری به په خپلوګرجواو کلیسا ګانو کښې د الله تعالى سره سره په عبادت کښې نورهم شریك کول نودې امت ته حکم کولې شی چه داسې مه کونی خکه چه نبیﷺکریم ﷺ هم او امت نی هم د توحیدوالا دی. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه د دې آیت د نازلیدو په وخت صرف مسجداقصی او مسجد حرام وو.حضرت اعمش رحمه الله د دې آیت تفسيرداهم بیان کړې دې چه پیریانود رسول الله ﷺنه اجازت غوښتې وو چه ستاسو په جمات کښې د نوروانسانانوسره مونځ اداکړی.نولکه داسې ده چه هغوی ته ونیلې شی چه مونځ اوکړنی خو انسانانو سره ګډوډ کیږنی مه.

**د مساجد نه مراد څه دی؟** حضرت سعیدبن جبیر ﷺ فرمائی چه پیریانوحضور ﷺ ته عرض اوکړوچه مونږ ډیر لرې لرې اوسيږو نو څنګه ستاسو جمات ته رسیدلې شونوهغوی ته ونیلې شی چه مقصدخو مونځ اداکول دی اوصرف هم د الله تعالى عبادت په ځانی راوړل دی که هغه هر چرته وی. حضرت عکرمه ﷺ فرمائی چه دا آیت عام دې اوټولوجماتونه ته شامل دې.

حضرت سعیدبن جبیر ﷺ فرمائی چه دا آیت د سجدې د اندامونوپاره کښې نازل شوې دې یعنی په کومو اندامونوچه تاسو سجده کونی هغه ټول هم د الله تعالى دی. نو په تاسو باندې په دې اندامونو نوروته سجده کول حرام دی. په صحیح حدیث کښې دی چه ماته په اووه اندامونوباندې د سجدې کولو

حکم راکړې شوې دي. تندې او د لاس په اشاره سره ئې پوزه هم دې کښې شامله کړه دواړه لاسونه دواړه زنګونونه او دواړه پښې. (۱)

د﴿لَمَّا قَامَ﴾ مطلب:-دایت ﴿لَمَّا قَامَ﴾ یومطلب خودادې چه پیریانوکله د حضورﷺ په ژبه مبارکه د قرآن پاك تلاوت واوریدونوداسې په وړاندې کیدو سره تیټیدل لکه چه د یوبل په سرونویاندې ورخیژی. اودویم مطلب دادې چه پیریان خپل قوم ته وائی چه د حضورﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم د اطاعت او چاهت حال دا دې چه کله حضورﷺ مانځه ته اودریږی او صحابه کرام رضی الله عنهم شاته وی نو برابر په اطاعت او اقتداء کښې تراخره پورې مشغول وی لکه چه یوه حلقه وی. دریم قول دادې چه کله رسول الله ﷺ په خلقو کښې دالله تعالی د توحید اعلان کوی نوکافران خلقو غاښونه چیچې اواینخلی. پیریان اوانسانان یو خانی کیږی چه د دین دا امر ختم کړی اود دې رڼرا پټه کړی خود الله تعالی اراده د دې خلاف شوې ده. دادریم قول ډیر ښکاره او واضحه معلومیږی ځکه چه د دې نه پس دی چه زه خو صرف د خپل رب نوم اخلم اود بل چا عبادت نه کوم یعنی چه کله د توحید اوحق آواز د هغوی په غوږونوکښې پریوتلو چه د ډیرې مودې نه اشنا شوې وو نودې کافرانو په تکلیف ورکولو مخالفت کولو او تکذیب کولویاندې ملا اوتړله اوحق ئې ختمول اوغوښتل اود رسول الله ﷺ په دښمنئ ئې غونډه اوکړه دې وخت کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه خویه د خپل پالونکی رب وحده لاشریك له په عبادت کښې مشغول یم زه هم د هغه په پناه کښې یم هم په هغه باندې زما توکل دې او هم هغه زما آسره دې مانه دا توقع هیڅ کله اونه کړئی چه زه به بل چاته تیټ شم یا به د هغه عبادت اوکړم. زه ستاسو په شان انسان یم ستاسو د نفع نقصان مالك نه یم، زه خو د الله تعالی یو غلام یم د الله تعالی د بندیګانونه یوبنده یم ستاسو د هدایت او ضلالت مختیار او مالك نه یم. ټول څیزونه د الله تعالی په قبضه کښې دی اوزه خو صرف پیغام رسونکې یم. که زه پخپله هم د الله تعالی ګناه اوکړم نو الله تعالی به ماته ضرور عذاب راکوی او هیڅ څوك به ما بچ نه کړې شی ماته چرته د پناه ځائی بغیرد هغه نه نه ښکاری زما حیثیت خوصرف د مبلغ او رسول دې.

**په الا کښې دلا مطلب**:- بعضې خووائی چه د﴿الا﴾ استثناد﴿لااملک﴾نه ده یعنی زه د نفع نقصان هدایت اوضلالت مالك نه یم زه خو صرف تبلیغ کونکې اوپیغام رسونکې یم اوکیدې شی چه ﴿لَنْ يُّجِيْرَنِيْ﴾ نه دا استثناوی یعنی دالله تعالی د عذابونونه نه ما صرف زما د رسالت ادائیګی بچ کولې شی لکه چه ارشاد دې ﴿يَاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسٰلَتَهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ۝﴾ یعنی اې رسول ﷺ ستاطرف ته چه کوم ستاد رب د طرف نه نازل کړې شوې دې دا اورسوه که چرې تا دا اونه کړه نوتاد رسالت حق ادا نه کړو الله تعالی به تاد خلقو نه بچ کړی.د نافرمانود پاره دهمیشه والی د دوزخ أور دې د کوم نه چه به هغوی نه اوخی اونه ترې تختیدې شی. کله چه دامشرکان پیریان اوانسانان د قیامت په ورځ ویرونکی عذابونه اووینی نوهغه وخت به ورمعلومه شی چه د کمزورو امدادکونکې اوبې فاندې شمیر والا څوك دی؟یعنی موحدمؤمن که مشرك. حقیقت خودادې چه دمشرکانوبه صرف په نوم باندې هم په هغه ورځ څوك امدادکونکې نه وی اود الله تعالی د لښکرو په مقابله باندې به د هغوی شمیرهم لکه د نشت وی.

| قُلْ | إِنْ أَدْرِيْٓ | أَقَرِيْبٌ مَّا | تُوْعَدُوْنَ |
| --- | --- | --- | --- |
| ورته اووایه | نۀ ده معلوم ماته | چې ایا نزدې دې هغه (عذاب) | چې ستاسو سره نې وعده کیږی |
| ته ورته اووایه | چې ماته معلومه نه ده | چې تاسو سره د کوم څیز وعده کولې شي | هغه |

(۱) صحیح بخاری کتاب الاذان باب السجود علی الانف: ۸۱۲، صحیح مسلم:۴۹۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ يَجْعَلُ | لَهٗ | رَبِّيْٓ | اَمَدًا۝ | عٰلِمُ الْغَيْبِ | فَلَا يُظْهِرُ |
| يا مقرر وي | هغي لره | رب زما | موده لري | هغه عالم دي په غيبو | پس نه خبروي هغه |
| نږدې راغلې دي \| او که زما رب هغې ته اوږده نيټه مقرر کړه ده \| ..........هغه په غيبو خبر دي | | | | | |
| عَلٰى غَيْبِهٖٓ | اَحَدًا۝ | اِلَّا | مَنِ ارْتَضٰى | مِنْ رَّسُوْلٍ | |
| په غيبو خپلو باندې | هيڅوک | سوا دهغه چانه | چې خوښ کړي وي هغه | يعني سوا د رسول نه | |
| نو هغه په خپلو غيبو هيڅوک نه خبر وي \| البته دا که يو غوره پيغمبر ته د غيبو | | | | | |
| فَاِنَّهٗ | يَسْلُكُ | مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ | وَمِنْ خَلْفِهٖ | رَصَدًا۝ | |
| پس بې شکه هغه | روانوي | مخکښې دهغه نه | او روستو دهغه نه | محافظان | |
| خبرورکول غواړي، نو د هغه وړاندې روستو محافظان راوليږي | | | | | |
| لِيَعْلَمَ | اَنْ قَدْ اَبْلَغُوْا | رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ | وَاَحَاطَ | | |
| د پاره ددې چې پوهه شي هغه | چې اورسول هغوئ | پيغامونه درب خپل | او چاپېره دي هغه | | |
| چې هغه ته ښکاره شي \| چې هغوئ د خپل رب پيغامونه اورسول \| ..........او الله ﷻ | | | | | |
| بِمَا لَدَيْهِمْ | وَاَحْصٰى | كُلَّ شَيْءٍ | عَدَدًا۝ | | |
| دهغي نه چې دهغوئ سره دي | او شمارلي دي هغه | هر څيز | په شماره سره | | |
| دهغه د دوی په ټولو معاملو په علم سره احاطه کړي ده \| او هغه هر څيز شميرلي دي | | | | | |

قوله تعالى:- قُلْ اِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ

اَيا حضور ﷺ په غيبو پوهيدلو: الله تعالى خپل رسول ﷺ ته حکم ورکوی چه دې خلقوته اووايه چه قيامت به کله وی ددې علم ماته نشته بلکه زه داهم نه پيژنم چه دهغې وخت نيزدې دی که لرې اوداوږدې مودې نه پس راتلونکې دې.

فائده:- په آيت مبارک کښې د دې خبرې دليل دې چه په اکثروجاهلانوکښې مشهوره ده چه حضور ﷺ ته د زمکې دننه څيزونوعلم وو دا خبره بالکل غلطه ده د دې روايت هيڅ څه اصل نشته صرف دروغ دی اوبالکل بې اصل خبره ده. مونږ خودا په کتاب کښې اونه ليدله اوددې خلاف صفاثابت دی. د حضور ﷺ نه به دقيامت دقانميدو باره کښې تپوس کولې شو اوحضور ﷺ به ددې د مقرروخت نه بې خبرې ښکاره کولې. داعرابی په شکل چه حضرت جبرائيل ؑ هم دقيامت باره کښې تپوس کړې وو نو حضور ﷺ صفافرمائيلې وو چه د دې علم نه تپوس کونکی ته دې اونه هغه ته د چانه چه تپوس کولې شی.[1]

د پيغمبر ﷺ د علم غيب نفی:- يوبل حديث کښې دی چه يوکلي وال په ډير اوچت آواز کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه حضور ﷺ قيامت به کله راځی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه هغه خو به خامخا راځی خو اوښايه تاد هغې د پاره څه تيارې کړې ده؟ هغه وئيل چه ماسره خود مونځ روژې کثرت نشته خود الله تعالى اود هغه د رسول ﷺ مينه شته. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ته خوبه بياهم هغوی سره ئې چاسره چه محبت ساتې. حضرت انس ؓ فرمائی چه مسلمانان په يوحديث سره داسې نه دی خوشحاله شوی څومره چه په دې حديث شريف سره خوشحاله شو.[2] د دې حديث نه هم معلومه شوه چه حضور ﷺ ته هم

---

[1] صحيح بخارى كتاب الايمان باب سوال جبرائيل النبي ﷺ عن الايمان....: ٥٠، صحيح مسلم: ٩.

[2] صحيح بخارى كتاب الادب باب ماجاء في قول الرجل ويلك: ٦١٦٧، صحيح مسلم: ٢٦٣٩، ترمذى: ٢٣٨٥.

د قیامت صحیح وخت معلوم نه وو. ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل اې خلقو که تاسو نه څه علم وي نوخپل خان په مړوکښې شمیرکړئ په الله تعالی قسم د کوم چه تاسو سره وعده کولې شی هغه یقیناً یووخت راتلونکې دې. (۱) دلته ئې هم د هغې څه مقررشوې وخت اونه خودلو. ابوداؤد کښې په کتاب الملاحم آخره کښې دی چه د دې امت د پاره څه عجیبه ده چه دوی ته الله تعالی د نیمې ورځې پورې هم مهلت ورکړی. (۲) په یوبل روایت کښې دومره نورهم دی چه د حضرت سعد ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د نیمې ورځ څه مطلب دې؟ونې فرمائیل پنځه سوه کاله. (۳) بیا فرمائی چه الله تعالی عالم الغیب دې هغه په خپل غیب باندې څوک نه خبروی خو په رسولانوکښې چه څوک خوښ کړې هغوی خبروی.لکه چه بل ځائې کښې دی ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ﴾ یعنی دهغه په علم کښې څه څیز نه شي راګیرولې(یعنی معلومولې شي) خوچه څه الله تعالی اوغواړی یعنی رسول الله ﷺ که د انسانانونه وی که دفرښتونه وی څوک چه الله ﷺ څومره غواړی ورښائی بس هغوی هم دومره پوهیږی.

فائده:- بیاد هغې نورتخصیص کیږی چه د دې د حفاظت او ورسره د دې علم خورونې د پاره کوم چه الله تعالی هغه ته ورکړې هغه سره خواوشا هروخت حفاظت کونکې فرښتې مقرر وی.

د ﴿لِيَعْلَمَ﴾ ضمیرچاته راجع دې :د﴿لِيَعْلَمَ﴾ ضمیر خوبعضو ونیلی چه د نبی ﷺ طرف ته راجع دې. یعنی د حضرت جبرائیل ﷺ نه به وړاندې روستو څلور څلور فرښتې وې چه حضور ﷺ ته یقین راشی چه هغه د خپل رب پیغام په صحیح توګه ماته رسولې.

اوبعضې وائی چه اهل شرک ته ضمیرراجع دې یعنی په نمبر نمبر راتلونکې فرښتې د الله تعالی د نبی ﷺ حفاظت کوی د شیطان نه اود هغه د اولادنه دې د پاره چه اهل شرک ته معلومه شی چه رسولانو د الله تعالی رسالت اداکړې دې یعنی چه درسول دروغ ګڼرونکی هم درسولانویه رسالت باندې پوهه شی خوبه دې کښې لرشان نظر دې. د یعقوب قراءت په پیښ سره دې یعنی چه خلقو ته معلومه شی رسولانوتبلیغ کړې دې اوممکن دی چه دامطلب وی چه الله تعالی اوپیژنی یعنی هغه د خپلورسولانو د خپلوفرښتو په لیګلوسره حفاظت کوی چه هغوی درسالت حق اداکړې شی اود الله تعالی وحی محفوظ اوساتلې شی او الله تعالی اوپیژنی چه هغوی رسالت ادا کړو.لکه چه فرمائی ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ﴾ یعنی په کومه قبله چه ته وې نو هغه مونږ صرف د دې دپاره مقررکړې وه چه مونږ د رسول رښتونی تابعدار اومرتدان اوپیژنو. بل ځائی ارشاد دې ﴿وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ﴾ یعنی الله تعالی به ایماندار اومنافقان یوشان اوپیژنی (چه مؤمن څوک دې اومنافق څوک دې؟) داسې نورهم آیاتونه دی. مطلب داچه الله تعالی د اول نه پیژنی خود دې د ظاهرکولو سره هم پیژنی د دې د پاره دلته د دې نه پس اوفرمائیلې شو چه هرڅیز اود هر څه شمیر هم د الله تعالی د علم په احاطه کښې دې.

﴿الحمدلله﴾ د سورت جن تفسیرهم ختم شو.

﴿تفسیر د سورة مزمل﴾

د سورت شان نزول:- بزارکښې د حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه قریش په دارالندوه کښې راجمع شو او خپل مینځ کښې اوونیل چه د حضور ﷺ دپاره یوداسې نوم خوښ کړئ چه د ټولو د ژبې نه هم هغه اوځی دې د پاره چه د بهر خلق هم یوآواز اوریدو سره پوهیږی. نوبعضوونیل د هغه نوم کاهن کیږدئ

---

(۱) حلیة الاولیاء:۹۱/۶، ابن عساکر:۳۴۸/۲.
(۲) ابوداؤد کتاب الملاحم باب قیام الساعة: ۴۳۴۹وسنده صحیح، حاکم:۴۲۴/۴.
(۳) ابوداؤد کتاب الملاحم باب قیام الساعة: ۴۳۵۰.

نو په دې باندې نورو اوونيل چه هغه خو كاهن نه دې. ونيل بنه ده د هغه نوم مجنون كيږدنى په دې باندې هم نورو اوونيل چه هغه خو مجنون هم نه دې. بيا بعضوونيل ساحر نوم پرې كيږدنى په دې باندې نوروخلقو ونيل چه هغه خو ساحر اوجادوگرهم نه دې. غرض داچه هغوى داسې خراب نوم خوښ نه كړې شو په كوم چه د ټولو اتفاق وى اوداډله هم داسې پاسيده. نبىكريم ﷺ دې خبراوريدوسره مخ پټ كړو او كپړه ئې واغوسته سملاستو حضرت جبرائيل عليه السلام تشريف راوړو او هم دغه شان ئې مخاطب كړو چه اې كپړه اغوستونكيه(١)د دې روايت نه يوراوى معلى بن عبدالرحمن داهل علم جماعت روايت اخلى اوهغه په دې سره حديثونه نقل كوى خود هغه په روايتونوكښې ډير داسې احاديث هم دى په كوم باندې چه د هغه متابعت نه شى كولې.

| ركوع ګانې | | سورة المزمل مكية وهى عشرون اية وفيها ركوعان | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ② | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ⑳ |

يٰۤاَيُّهَا الۡمُزَّمِّلُ ۙ① قُمِ الَّيۡلَ اِلَّا قَلِيۡلًا ۙ② نِّصۡفَهٗۤ اَوِ انۡقُصۡ مِنۡهُ قَلِيۡلًا ۙ③

اې خان نغښتونكيه (په څادر كښې)|اودريږه دشپې | مگر لږ | نيمه شپه | ياكم كړه | ددې نه لږ |

انې خان په څادر كښې انغښتونكيه|اودريږه سوا د لږې شپې يعنى نيمه شپه يا ددې نه كم يا څه لږ زيات

اَوۡ زِدۡ عَلَيۡهِ وَرَتِّلِ الۡقُرۡاٰنَ تَرۡتِيۡلًا ؕ④ اِنَّا سَنُلۡقِىۡ

يا زيات كړه|په دې باندې |او په قلاره لوله قرآن|په قلاره لوستلوسره|بيشكه زر دې چې نازلوو به مونږ

اوقرآن ښه ښكاره لوله| ........................مونږ په تاباندې يو درروند كلام اچوو يعنى تاته

عَلَيۡكَ قَوۡلًا ثَقِيۡلًا ⑤ اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيۡلِ هِىَ اَشَدُّ

په تاباندې | كلام درون | بيشكه پاسيدل دشپې چې دى | دا ډير دفائيدې كار دې

يو لويه ذمه وارى حواله كوو) ستا خو دورځې هم ډيره مشغولتيا ده بيشكه دشپې راپاڅيدل (نفس) په سختئ

وَطۡاً وَّ اَقۡوَمُ قِيۡلًا ؕ⑥ اِنَّ لَكَ

دپاره دتابع كولو دنفس | او زيات قوى (مناسب وخت) دې | دپاره لوستلو دقران | بيشكه دا تالره

سره پامال كوى | اوكومه خبره چې دې د خولې نه اوځى چې درسته وځى | بيشكه چې ستا

فِى النَّهَارِ سَبۡحًا طَوِيۡلًا ؕ⑦ وَاذۡكُرِ اسۡمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلۡ

په وختونو دورځ كښې | ناوزگارتيا ده | ډيره | او يادوه نوم | درب خپل |او را جدا شه دهر څه نه

خو د ورځې هم ډيره مشغولتيا ده |......................اوته دخپل رب د نوم ذكر كوه| او هغه ته په

اِلَيۡهِ تَبۡتِيۡلًا ؕ⑧ رَبُّ الۡمَشۡرِقِ وَالۡمَغۡرِبِ لَاۤ اِلٰهَ

| هغه ته | په پوره جدا كيدو سره | هغه رب دمشرق او مغرب دې | نشته لائق دعبادت

كامله توجه سره متوجه شه | چې د مشرق او مغرب رب دې | ......................د هغه نه سوا بل څوك

(١) مسندالبزار:۲۲۷۶، مجمع الزوائد:۱۳۳/۷.

| إِلَّا هُوَ | فَاتَّخِذْهُ | وَكِيلًا ۝ |
|---|---|---|
| مگر هم هغه دې | بس اونيسه هغه لره | وكيل (كارساز) |
| دعبادت لائق نشته | نو هم دې خپل كارساز اوګنړه | |

**قوله تعالى:-** يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ۝ قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ۝

**پيغمبر ﷺ ته د تهجد د مونځ حكم:** الله تعالى خپل نبى اكرم ﷺ ته حكم وركوى چه د شپې په وخت كښې كېږې اغوستلوسره سملاستل پرېږده اودتهجدودمانځه قيام اختيار كړه.لكه چه ارشاددې (تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ۝) د هغوى اړخونه د بسترونه جداوى اوخپل رب په ويره او لالچ سره يادوى اوزمونږ د وركړې نه وركوى. رسول الله ﷺ ټول عمر د دې حكم پوره كول كړى. د تهجد مونځ صرف په هغه واجب ويعني په امت باندې واجب نه دې. بل ځائي ارشاددې (وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَّكَ عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ۝) د شپې تهجد كوه داحكم د نفل په توګه صرف تاته دې ستا رب تامقام محمود ته رسونكې دې.دلته دې حكم سره اندازه هم بيان كړه چه نيمه شپه ياكم زيات. د مزمل معنى اوده كيدونكې اوكپړه اغوستونكې ده. (1) دې وخت كښې رسول الله ﷺ خپل څادراغوستې پروت وو اوداهم ونيلى شوى دى چه اې د قرآن پاك په ښه شان سره اخستونكيه ته ترنيمې شپې پورې په تهجدكښې مشغول اوسيږه ياڅه زياتوه اوكمه وه اوقرآن كريم په مزه مزه په سا سا لوله دې د پاره چه ښه پرې پوهه شې. د دې حكم هم حضورﷺ عمل كونكې وو. د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها بيان دې چه رسول الله ﷺ به قرآن كريم په ترتيل سره لوستلو په څه سره چه به په ډير زيات وخت كښې سورت ختميدلو. لكه وړوكې سورت به د لوئ نه لوئ كيدلو.(2)

**قوله تعالى:-** وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ۝

**د حضورﷺ د تهجد تفصيل او د ترتيل مطلب:-** صحيح بخارى شريف كښې دى چه د حضرت انس رضي الله عنه نه به د رسول الله ﷺ د قراءت وصف تپوس كولې شو نوهغوى به فرمائيل چه رسول الله ﷺ به ښه مد راښكلو سره لوستلو.بيانى (بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ) لوستلو سره واورولو په كوم كښې چه په لفظ الله باندې لفظ رحمن باندې اولفظ رحيم باندې مد اوكړو(3)ابن جريركښې دى چه په هريوآيت باندې به حضورﷺ وقف كولو.لكه (بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ) لوستلوباندې وقف كولو الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝) لوستلو باندې وقف (الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ۝) باندې وقف (مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ۝)لوستلوسره اودريدل. (4) داحديث مسند احمد ابوداوُد او ترمذى شريف كښې هم دې. د مسنداحمد په يوحديث كښې دى چه د قرآن پاك قارى ته به د قيامت په ورځ ونيلې شى چه لوله او خيژه او په ترتيل سره لوله لكه څنګه چه به دې په دنيا كښې په ترتيل سره لوستلو ستادرجه هم هغه ده چرته چه ستا آخرى آيت ختم شو. (5) داحديث په ابوداوُد ترمذى او نسائى كښې هم دې اوامام ترمذى رحمه الله دې ته حسن وائي. مونږ د دې تفسير په شروع كښې هغه احاديث وارد كړي دى چه د ترتيل په مستحب كيدلو او په ښكلې آوازسره قرآن پاك لوستلو باندې دلالت كوى.لكه هغه حديث په كوم كښې چه دى قرآن پاك په خپلو آوازونوباندې ښائسته كړنى(6) اوهغه سړې زمونږ نه

(1) الطبرى: ٦٧٧/٢٢.
(2) صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب جواز النافلة قائما وقاعدا:٧٣٣.
(3) صحيح بخارى كتاب فضائل القرآن باب مدالقراءة: ٥٠٤٦، ابن حبان:٦٣١٧.
(4) ابوداوُد كتاب الحروف:٤٠٠١،ترمذى: ٢٩١٤، احمد:٣٠٢/٢.
(5) ابوداوُد كتاب الوتر باب كيف يستحب الترتيل فى القراءة:١٤٦٤، سنده حسن، ترمذى:٢٩١٤، احمد:١٩٢/٢،ابن ابى شيبه:٤٩٨/١٠
(6) ابوداوُد حواله سابق:١٤٦٨ وهوصحيح، نسائى:١٠١٦، ابن ماجه: ١٣٤٢، احمد:٢٩٦/٤.

نه دي (مسلمان نه دي) چه په خوش اوازني سره قران نه لولي (۱) او دحضرت ابوموسى اشعرى ﷺ په نسبت د حضورﷺ دا فرمائيل چه ده ته د آل داؤد خوش آوازى ورکړې شوې ده (۲) اود حضرت ابوموسيﷺ فرمائيل که ماته معلومه وه چه تاسو ﷺ اورنى نو ما به د دې نه هم په ښه آواز سره لوستلو (۳) اودحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دا فرمائيل چه د شګې په شان قرآن پاك مه خوروني اود شعرونوپه شان قرآن پاك بې تهذيبئ سره مه لولئى د دې په عجانبوباندې غوراوکړني او په زړونوکښې اثر اخلئى اودې پسې شاته مه غورزيږئى چه زرسورت ختم شي. (بغوى)يوسړي راغلو اوحضرت ابن مسعودﷺ ته ئې اووئيل چه ماد مفصل ټول سورتونه په نن شپه کښې هم په يورکعت کښې اولوستل نوهغوى اوفرمائيل چه بيا خويه تاد شعرونوپه شان زر زر لوستلي وى.ماته هغه برابر برابر سورتونه ښه يادى کوم چه به رسول الله ﷺ يوځائى كول او لوستل به نى(۴) بيا ئى دمفصل سورتونونومونه واخستل په دې کښې دوه دوه سورتونه به حضورﷺ په يويوركعت كښې لوستل.

**قوله تعالى:-قَوۡلًا ثَقِيلًا﴿**

**د قول قَوۡلًا ثَقِيلًا﴿ مطلب اود نزول قران کيفيت:-** بيا الله تعالى فرمائى چه مونږ به په تا ډير زر يوډير درونډ بوج والا خبره نازل كړو يعنى په عمل كښې به ثقيل وى او د نازليدلو په وخت كښې به د خپل عظمت په وجه ډير قدرمند وى. حضرت زيدبن ثابت ﷺ فرمائى يوځل په رسول الله ﷺ باندې وحى نازل شوه هغه وخت د هغوى زنګون زما په زنګون وو د وحى دومره بوج پريوتلو چه زه خو اوويريدلم چه چرته زما پندنى ماته نه شى.(۵)

مسنداحمدكښې دى چه حضرت عبدالله بن عمروﷺ فرمائى چه ماد رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو د وحى احساس هم تاسو ﷺ ته كيږى؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه زه داسې آواز اورم لكه چه د زنځير آواز وى زه غلې شم كله هم چه وحى نازليږى په مادومره بوج پريوځى چه زه وايم كه زما روح اوځى(۶) صحيح بخارى په شروع كښې دى چه حضرت حارث بن هشام ﷺ تپوس كوى چه يارسول الله ﷺ تاسو له وحى څنګه راځى؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه كله خود ټلئى د آواز په شان وى چه په ماباندې ډير درونډپريوځى اوچه كله هغه د غږيدو هغه آواز ختم شى نو چه په دغه وخت كښې څه وئيلې شوى وى هغه ماته ښه يادشي اوكله فرښته په انسانى شكل كښې ماله راشى اوما سره كلام كوى اوزه ئې يادوم. حضرت عائشه ﷺ فرمائى چه ماكتلى دى چه د سختې يخنئى په ورځ كښې هم چه كله په حضورﷺ باندې وحى نازليدله نود هغوىﷺ د تندى مبارك نه به د خولې څاڅكى څڅيدل. (۷) مسنداحمدكښې دى چه كله به حضورﷺ په اوښه سور وو اودې حال كښې به وحى نازليدله نو اوښه به ټيټه شوه. (۸) ابن جريركښې داهم دى تركومې چه به وحى نازليدله نود اوښې نه به قدم نه شو اخستې كيدې اونه به هغې سټ اوچتولې شو. مطلب دا چه پخپله د وحى نازليدل دومره اهم او درانه وو اوبيا د احكامو په

۱) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿واسروا قولكم اواجهروبه...﴾:۷۵۲۷، ابوداؤد:۱٤٦۹، احمد:۱/۱۷۵، ابن حبان:۱۲۰، حاكم:۱/۵٦۹.

۲) صحيح بخارى كتاب فضائل القرآن باب حسن الصوت بالقراءة للقرآن :۵۰٤۸، صحيح مسلم:۷۹۳.

۳) حاكم:۳/٤٦٦، بيهقى:۱۰/۲۳۱، مجمع الزوائد:۷/۱۷۱.

۴) صحيح بخارى كتاب الاذان باب الجمع بين السورتين فى ركعة: ۷۷۵، صحيح مسلم:۸۲۲.

۵) صحيح بخارى كتاب التفسيرسورة النساء باب ﴿لايستوى القاعدون من المؤمنين﴾:٤۵۹۲.

٦) احمد:۲/۲۲۲.

۷) صحيح بخارى كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله ﷺ:۲، صحيح مسلم:۲۳۳۳، مؤطاامام مالك:۱/۲۰۲، ابن حبان:۳۸.

۸) احمد:۵/۱۱۸وسنده حسن.

خاني راوړل او په هغې باندې عمل کول هم دا شان وو. هم دا قول د امام ابن جرير رحمه الله هم دې. د حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه نه نقل دی لکه څنګه چه دا په دنيا کښې دروندکار دې دغه شان په آخرت کښې د دې اجربه هم دروندملاويږي. بيافرماني چه د شپې اوچتيدل د نفس شکته کولود پاره او د ژبې د صحيح کولود پاره اکسيردې. د نشا معنی په حبشی ژبه کښې د قيام کولوده. په ټوله شپه کښې چه ويښ وی هغې ته ﴿نَاشِئَةَ الَّيْلِ﴾ وائی.([1])

**قوله تعالى:- إِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْأً وَأَقْوَمُ قِيلًا۞**

**د تهجدفائدې:-** د تهجدد مانځه خوبی داده چه زړه اوژبه يوشی اود تلاوت کوم الفاظ چه د ژبې نه اوځی په زړه کښې خانی کيږی اوپه نسبت د ورځې د شپې په يوازيوالی کښې معنی اومطلب ښه په ذهن کښې کينی ځکه چه د ورځې شورشر اوګټې وټې وخت وی. حضرت انس رضي الله عنه ﴿وَأَقْوَمُ قِيلًا۞﴾ په خانی ﴿اصوب قيلا﴾ اولوستلو نو خلقو ونيل چه مونږخو ﴿اقوم﴾ لولونوهغوی اوفرمائيل چه ﴿اقوم،اصوب،اهياء﴾ او د دې په شان ټول الفاظ په يو معنی دی. بيا فرمانی چه په ورځ کښې تاسو ته ډير فراغت دې خوب کولې شئی اوده کيدل اوکيناستلې شئی آرام حاصلولې شئی نفلونه په کثرت سره کولې شئی خپل دنياوی کارونه روزګارونه پوره کولې شئی نو بيادا شپه د آخرت د کارد پاره خاص کړنی. په دې بنياد داحکم هغه وخت ووکله چه د شپې مونځ فرض وو. بيا الله تعالی په خپلو بنديګانوباندې احسان اوکړو اود تخفيف په توګه ئې په دې کښې کمې اوکړو اوونی فرمائيل چه د شپې لږ شان قيام کوئی. د دې فرمان نه پس حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه بن زيد بن اسلم د ﴿إِنَّ رَبَّكَ﴾ نه واخله ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ﴾ پورې اولوستلو او آيت ﴿وَمِنَ الَّيْلِ﴾ تلاوت ئې هم اوکړو. ([2]) د هغوی دا قول ټيک هم دې.

**د سعيد بن هشيم خپلې ښځې ته د طلاق او جهاد هت د تلو ارادې واقعه:-** مسند احمد کښې دی چه حضرت سعيد ابن هشام رحمه الله خپلې بی بی ته طلاق ورکړواومدينې طرف ته لاړو چه هلته خپل مکانونه خرڅ کړی اودهغې په قيمت باندې وسله وغيره واخلی او جهاد له لاړشی او روميانوسره اوجنګيږی. تردې چه يا خوروم فتح شی او ياشهادت ورنصيب شی. په مدينه کښې د خپل قوم خلقو سره ملاؤ شو او خپله اراده ئې ښکاره کړه نوهغوی ونيل واوره هم د رسول الله ﷺ په زمانه کښې ستا دقوم شپږو کسانو هم دا اراده کړې ود چه ښځو ته به طلاق ورکړو او کورونه به خرڅ کړو اود الله تعالی په لارکښې به اوډريږو. حضور ﷺ ته چه کله دامعلومه شوه نوهغوی ته نی اوفرمائيل څنګه چه زه کوم ولې دغه شان کولو کښې ستاسو دپاره بهتري نه ده؟خبردار داسې اونه کړنی اود خپلې ارادې نه منع شئی. دا حديث اوريدوباندې حضرت سعيد هم خپله اراده پريخوده او هم هلته ئې دغه ډلې ته اوونيل تاسو ګواه اوسيږئی چه ما خپلې ښځې ته رجوع اوکړه بيا حضرت سعيد رحمه الله لاړواوچه کله ئی دې ډلې سره ملاقات اوشو نو وئی ونيل چه دې خانې نه تلونه پس زه حضرت ابن عباس رضي الله عنه له لاړم اود هغه نه مې د حضور ﷺ د وترو کولو د حال تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائيل چه دا مسئله د ټولو نه حضرت عائشه رضي الله عنها ښه بيانولې شی ته هلته لاړ شه او هم د هغې نه ئې معلومه کړه اود هغې نه چه څه واورې نوهغه لرشان ماته هم اووايه. زه حضرت حکيم بن افلح رحمه الله له لاړم اوهغه ته مااوونيل ما حضرت ام المؤمنين رضي الله عنها له بوزه.هغه ونيل چه زه هلته نه ځم ځکه چه ما هغوی ته مشوره ورکړې وه چه د دې دواړو خپل مينځ کښې جنګيدونکو ډلو يعنی حضرت علي رضي الله عنه اود هغوی د مقابلې باره کښې تاسو څه دخل مه ورکوئی خوهغې اونه منل او دخل ئې اوکړو. ما هغه ته قسم ورکړو چه نه ته ما هلته ضرور بوزه خير

---

[1]) الطبرى:۶۸۳/۲۳.

[2]) الطبرى:۶۸۳/۲۳.

ډیر په مشکل مې راضي کړو اوزه هغه سره لاړم. ام المؤمنین د حضرت حکیم اواز اوپیژندلو نو وئې فرمائيل آيا حکیم دې؟ جواب ملاوشو چه اوجي زه حکیم بن افلح یم. تپوس ئې اوکړو تاسره څوك دې؟ وئیل سعید بن هشام دې. تپوس اوشو چه هشام څوك؟ د عامرخوئ؟ وئیل اود عامر خوئ نو حضرت عائشه رضي الله عنها د حضرت عامر رضي الله عنه د پاره د رحمت دعااوکړه او وئې فرمائيل عامر رضي الله عنه ډیر ښه سړې وو الله تعالی دې په هغه رحم اوکړي. ماعرض اوکړو ام المؤمنین ماته اوښایه چه د رسول الله ﷺ اخلاق څه وو؟ هغوی اوفرمائيل چه ولې ته قرآن پاك نه لولې؟ ماوئیل ولې نه. وئې فرمائيل چه بس د حضور ﷺ اخلاق قرآن پاك وو. بیاماد اجازت غوښتلواراده اوکړه خو زر رایادشو چه درسول الله ﷺ د شپې دمونځ حال هم معلوم کړم.ددې سوال په جواب کښې ام المؤمنین اوفرمائيل ولې تا سورت مزمل نه دې لوستلې؟ ماوئیل چه اولوستلې مې دې. واوره د دې سورت په اوله حصه کښې قیام لیل فرض شو او پوره کال پورې حضور ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم د تهجدمونځ د فرضیت په توګه ادا کولو تر دې چه په پښومبارکونې پرسوب راغلو. دولس میاشتې پس بیاد دې سورت د آخرې آیاتونه نازل شواوالله تعالی تخفیف اوکړوفرضیت ختم شو او نفل باقي پاتې شو. مابیا د پاسیدو اراده اوکړه خو بیا خیال راغلو چه د وترومسئله هم تپوس کوم. ماعرض اوکړو چه د حضوراکرم ﷺ د وتروکولو کیفیت هم راته بیان کړئ. هغوی اوفرمائيل چه ښه ده واوره مونږ به د حضور ﷺ مسواك د اودس اوبه وغیره تیارې یوطرف ته کیخودلې کله چه به هم الله تعالی غوښتل د حضور ﷺ سترګې مبارکې به کولاوشوې مسواك به ئې کولو اودس به ئې کولو او اته رکعته به ئې کول او په مینځ کښې به په تشهدکښې بالکل نه کیناستلوآخرې رکعت پوره کولوسره به په التحیات کیناستلو د الله تعالی ذکر به ئې کولو دعابه ئې کوله اوبه زوره به ئې ګرځولوچه مونږ هم واورو بیا به ئې په ناسته ناسته دوه رکعته کول(اویووتربه ئې کول) بچې دا ټول یولس رکعته شو بیاچه کله هغوی کمزورې شو او بدن ئې دروندشو نو حضور ﷺ اووه وترکول بیابه ئې سلام ګرځولونه پس کیناستو دوه رکعته به ئې اداکړل نو بس بچې دا نهه رکعته شو. د حضوراکرم ﷺ عادت مبارك ووچه کله به ئې مونځ کولونو په دې به ئې همیشه والې کولو.اوکه دڅه شغل خوب درد تکلیف یابیمارئ په وجه به ئې مونځ ادانه کړې شو نود ورځې به ئې دولس رکعته اداکول. ماته یاد نه دی چه رسول الله ﷺ په یوه شپه کښې پوره قرآن پاك ترسحر پورې لوستلې وی اونه ئې د رمضان نه علاوه د بلې میاشت پوره میاشت روژې ساتلې وی.اوس زه دحضرت ام المؤمنین نه رخصت شوم او حضرت ابن عباس رضي الله عنه له راغلم اودهغه ځائې ټول سوال جواب مې ورته اووئیل هغوی دټولوخبروتصدیق اوکړو او وئې فرمائيل چه که زه هم هلته تلې ووم نوپخپلو غوږونو به مې ترې اوریدلې وو. داحدیث په صحیح مسلم کښې هم دې.(١)

**درسول کریم ﷺ تهجد او د عائشه رضي الله عنها بیان:**-ابن جریرکښې دی حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما به د رسول الله ﷺ د پاره بورئ کیخودلې په هغې باندې به ئې د تهجدمونځ ادا کولو. خلقوته هم چرته پته اولګیدله اود شپې دمانځه د پاره د حضور ﷺ په اقتداء کولود پاره هغوی هم راغله. حضور ﷺ په غصه شو او بهر راووتلو د حضور ﷺ په امت باندې شفقت او مهربانی وه اودې سره دا ویره هم وه هسې نه چه دامونځ فرض شي نوحضور ﷺ هغوی ته اووفرمائيل خلقو د هغه اعمالوکولوتکلیف اوچتوئی د کومو چه په تاسو کښې طاقت وی الله تعالی په ثواب ورکولوباندې سترې کیږي نه خوتاسو به په عمل کولوباندې سترې شئ. د ټولونه بهترعمل هغه دې په کوم باندې چه همیشه والې اوشي او انسان هغه پوره کړې شي. دیخوا په قرآن کریم کښې دا آیاتونه نازل شو او صحابه کرامو رضي الله عنهم په قیام اللیل باندې عمل کول شروع کړو تردې چه ځان پورې رسئ اوتړلې چه خوب رانه شي اته میاشتې دغه شان تیرې

(١) احمد:٦/٥٢-٥٤، صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب جامع صلاة اللیل ومن نام عنه اومرض:٧٤٦، ابوداؤد:١٣٤٢.

شوي د هغوی دا کوشش کوم چه هغوی د الله تعالی د رضا د پاره کولو کتلوسره الله تعالی هم په هغوی باندې رحم اوکړو اوهغوی نی د ماسخوتن د فرضوطرف ته راوګرځول اوقیام لیل نی پریخودلو دا روایت په ابن ابی حاتم کښې هم دې خود دې راوی موسی بن عبیده ربذی ضعیف دې. اصل حدیث بغیرد سورت مزمل د نازلیدلود ذکر نه صحیح کښې هم دی. (۱) اود دې حدیث د الفاظو د روانئی نه خودامعلومیږی چه دا سورت په مدینه کښې نازل شوې حالانکه داسورت په مکه مکرمه کښې نازل شوې.

دغه شان په دې روایت کښې دی چه اته میاشتې پس د دې آخری آیاتونه نازل شوداقول هم غریب دې صحیح هغه دې کوم چه د مسند په حواله اول تیرشو چه د کال نه پس دا آخری آیاتونه نازل شو. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم ابن ابی حاتم کښې نقل دی چه د سورت مزمل د شروع آیاتونو د نازلیدلو نه پس صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان د رمضان قیام کولو اود دې سورت د اول اوآخر آیاتونو نازلیدوکښې تقریبًا د پوره کال فاصله وه. د حضرت ابواسامه رضي الله عنه نه هم په ابن جریرکښې داسې روایت دې. حضرت ابوعبدالرحمن رحمه الله فرمائی د شروع د آیاتونود نازلیدلونه پس صحابه کرامو رضي الله عنهم پوره کال قیام کولو تردې چه د هغوی پښې او پنډئی اوپړسیدې بیا ﴿ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ﴾ نازل شو نو خلق په آرام شو. (۲) د حسن بصری رحمه الله او سدی رحمه الله هم دا قول دې(۳) ابن ابی حاتم کښې په روایت دحضرت عائشه رضي الله عنها د شپاړسو میاشتو موده روایت ده. حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه یوکال یادووکالوپورې نی قیام کولو پښې او پنډئی اوپړسیدلې نو بیاد سورت آخری آیاتونه نازل شو اوآسانی اوکړې شوه.حضرت سعید بن جبیر رحمه الله لسوکالوموده بنائی.(ابن جریر)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه د اول آیت د حکم مطابق ایماندارو قیام لیل شروع کړوخوډیرمشقت به نی کولو.بیا الله تعالی رحم اوفرمائیلو او ﴿عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ ۙ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ ۙ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ﴾ نازل کړې شو وسعت اوشو او تنګی لرې شوه. (۴) بیا ارشاد دې چه دخپل رب دنوم ذکر کوه اودهغه د عبادت دپاره فارغ شه یعنی ددنیاد کارونونه فارغیدو سره پوره د زړه په اطمینان سره ښه په کثرت سره ذکر کوه د هغه طرف ته مائل شه اوپوره راغب شه لکه چه بل مقام کښې ارشاد دې ﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ﴾ یعنی کله چه د خپل شغل نه اوزګارشې نو زمونږ عبادت په محنت سره کوه. په اخلاص آسانئی کوشش محنت د زړه په مینه او یوشان د الله تعالی طرف ته تیتیږه.

قوله تعالی:- وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا

دې پورته ایت مبارک نه څه مراد دې؟:-په یوحدیث شریف کښې دی حضوراکرم ﷺ د تبتل نه منع فرمائیلې (۵) یعنی بال بچ او دنیا پریخودلونه، دلته مطلب دا دی چه د دنیاوی تعلقاتوختمولوسره د الله تعالی په عبادت کښې توجه او پوره تیارئی له هم ضرور وخت اوباسه. هغه مالك دې هغه متصرف دې مشرق اومغرب ټول دهغه په قبضه کښې دی د هغه نه بغیرد بل څوك د عبادت لائق نشته. ته چه څنګه صرف دهغه عبادت کوې نو هم دغه شان صرف هم په هغه باندې بهروسه اویقین ساته.لکه چه بل آیت کښې دی ﴿فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾هم دهغه عبادت کوه اوهم په هغه باندې توکل کوه.هم دا مضمون په ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الصلاة المسافرین باب فضیلة العمل الدائم من قیام اللیل وغیره: ۷۸۲.
(۲) الطبری:۲۳/۶۷۹.
(۳) ایضا:۲۳/۶۸۰.
(۴) ایضا.
(۵) ترمذی کتاب النکاح باب ماجاء فی النهی عن التبتل:۱۰۸۲ وهوصحیح، نسائی: ۳۲۱۶، ابن ماجه:۱۸۴۸.

وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ کښې هم دي. په دې معنې نور هم ډيرآياتونه دی چه عبادت طاعت توکل او د يقين لائق هم يود غه ذات پاك دي.

وَاصْبِرْ عَلٰى مَا
| او صبر کوه | په هغه خبرو باندې
| ...........اوددوئ په ويناګانو

يَقُوْلُوْنَ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيْلًا۝ وَذَرْنِيْ
| چې وائي ني دا خلق | او جدا شه ددوئ نه | په جدا کيدو ښکلو سره | (او کار دفيصلې ته) پريږده ما
صبر کوه | اوپه ښه مناسبه طريقه ترې نه جدا شه | او ما پريږده

وَالْمُكَذِّبِيْنَ أُولِي النَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيْلًا۝
| او دروغ ګنړونکي خلق | چې خاوندان دنعمت دي | او مهلت ورکړه دوئ له | څه لږ وخت
اودا دروغ ګنړونکي د نعمتونو خاوندان پريږده | او دوئ ته لږ مهلت ورکړه

إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالًا وَّجَحِيْمًا۝ وَّطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ
| بيشکه زمونږ سره | زنځيرونه دی | او دوزخ دې | او خوراك دې | نښتونکي (په مرئ کښې)
بيشکه مونږ سره خو بس بيړئ او دوزخ دې |............او په مرئ کښې انښتونکي خوراک دې

وَّعَذَابًا أَلِيْمًا۝ يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ
او عذاب دردناك دې | په هغه ورځ | چې خوزيږي به زمکه | او غرونه | او شي به غرونه
اودردناک عذاب دې | دا په هغه ورځ چې زمکه اوغرونه به اوجړقيږي | اوغرونه به

كَثِيْبًا مَّهِيْلًا۝ إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُوْلًا۵ شَاهِدًا
| ډيرئ دشګو | خواره واره | بيشکه رااوليږو مونږه | تاسو ته | يو رسول | چې ګواهي کونکي دې
د دوړې په شان الوزی | مونږ تاسو ته يورسول درليږلي دې | ........... په تاسو

عَلَيْكُمْ كَمَا أَرْسَلْنَا إِلٰى فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا۝ فَعَصٰى
| په تاسو باندې | لکه څنګه چې ليږلي وو مونږه | فرعون ته | يو رسول | پس خبره اونه منله
موګواه کړې دی| لکه څنګه چې مو فرعون ته يو رسول ليږلي وو | ...........نو فرعون

فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ فَأَخَذْنٰهُ أَخْذًا وَّبِيْلًا۝ فَكَيْفَ تَتَّقُوْنَ
| فرعون | درسول | نو رااونيوو مونږه هغه | په رانيولو سختو سره | پس څه رنګ به | بچ شئ تاسو
دهغه رسول ﷺ نافرمانی اوکړه | نو مونږ ډيرمضبوط راونيول | ...........تاسوبه دهغې ورځې

إِنْ كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيْبًا۝ السَّمَاءُ
| که خبره اونه منله تاسو | دهغه ورځې نه | چې جوړ به کړی | بچو لره | بوډاګان | اسمان به
(دمصيبت) نه څنګه خان بچ کړئ| چې بچې به (دويرې نه) بوډاګان کړی | ...........اواسمان به پرې

| مُنفَطِرٌ | بِهٖ | كَانَ وَعۡدُهٗ | مَفۡعُوۡلًا۞ |
|---|---|---|---|
| چودونکې وی | په سختئ دهغې سره | ده وعده دهغه | خامخا کیدونکې |
| راوشلیږی | ........................ | د الله ﷻ وعده پوره کیدونکې ده | |

**قوله تعالی:-وَاصۡبِرۡ عَلٰی مَا یَقُوۡلُوۡنَ**

**دمنکرانود پاره عذاب اونبی کریم ﷺ ته دصبر حکم:** الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته دکافرانودپیغورونونه ډکو خبروباندې دصبر کولو هدایت کوی او فرمائی چه هغوی په خپل حال باندې بغیرد څه رټنې وغیره نه پرېږده ،زه به پخپله دوی سره ګورم.زمادغضب اوغصې په وخت کښې به ګورې چه څنګه داخلق خلاصې بیامومی.اود دوی مالداران او خوشحال خلق کوم چه بې فکره دی اوستاد تنګولود پاره خبرې جوړوی په کومیاندې چه ډېل حقوق دی دمال او خان اودوی په دې کښې یوهم نه اداکوی ته د دوی نه بې تعلق شه بیاګوره چه زه دوی سره څه کوم؟ په دنیاکښې خو که دوی غواړی نولږ ساعت به فائده واخلی خوآخرکاربه په عذابونوکښې راګیر شی اوعذاب هم کوم یو؟

د سخت قیداوبند خراب سورکړې شوې نه مړکیدونکې اونه کمیدونکې اُور اوهغه خوراك چه په حلق کښې به اینخلی، نه به نی تیرولې شی اونه به نی توکلې شی او نوربه هم قسم قسم دردناك عذابونه وی. بیا به وخت هم هغه وخت وی چه په زمکواوغرونوکښې به زلزله راغلې وی اوسخت او لوئ لوئ غرونه به په خپل منیخ کښې جنګیدوسره ټکړه ټکړه او ذره ذره شی لکه د اُوچې شګې شیندلې شوې ذرې کوم چه به هوااخوادیخوا اوړی اونوم اونښه به نی ختمه کړی او زمکه به د کولاو هوار صفامیدان په شان پاتې شی په کومه کښې به چرته هم ښکته پورته په نظر نه راځی.

**قوله تعالی:-اِنَّآ اَرۡسَلۡنَآ اِلَیۡکُمۡ رَسُوۡلًا**

**د درسول لیږل او د کافرانورانیول:** بیافرمائی ای خلقو!اوخاص کراې کافرانو!مونږ په تاسو باندې ګواهی ورکونکې خپل صادق رسول تاسوته درلیګلې وو څنګه چه فرعون ته مونږ خپل احکام رسولود پاره خپل یو رسول لیګلې وو هغه چه کله د دغه رسول اونه منل توتاسو ته معلومه ده چه مونږ هغه ډیر خراب تباه کړواو په سختئ سره مو راګیرکړو. دغه شان یادساتئ که د دې نبی ﷺ هم تاسو اونه منل نوستاسو هم خیرنشته د الله تعالی عذاب به په تاسوهم راشی او تباه اوبرباد به موکړی. ځکه چه دا رسول د رسولانوسردار دې د ده دروغ ګنړلونقصان به هم د نورو نقصانونونه زیات وی. د دې نه پس د آیت دوه معنې دی یوه خودا چه که تاسو کفر اوکړو نو داخواوښائې چه د هغه ورځې د عذابونونه به څنګه خلاصې حاصلونې؟د کومې ورځې ویره هیبت چه به ماشومان بوډاګان کړی او بله معنی دا چه که تاسود دومره لونې خطرناکې ورځې هم کفراوکړواود هغې هم منکر پاتې شونې نوتاسو ته په تقوی اود الله تعالی ویره څنګه حاصله شی؟

**قوله تعالی:-یَّوۡمًا یَّجۡعَلُ الۡوِلۡدَانَ شِیۡبَا**

**د اګومه ورځ ده:-** دادواړه معنې خوډیرې ښکلې دی خواولنئ معنی اولی ده.والله اعلم. طبرانی کښې دی چه رسول مقبول ﷺ دې آیت تلاوت اوکړواوونی فرمانیل چه داد قیامت ورځ ده په کومه چه به الله تعالی حضرت آدم ﷺ ته اوفرمائی د خپل اولاد نه دوزخیان جداکړه. هغه به تپوس کوی د څومره نه څومره؟ حکم به اوشی دهر زرونه یوکم زر. دې اوریدوسره دمسلمانانو وارخطاشو او ویریدوحضور ﷺ هم دهغوی مخونوته په کتو پوهه شو دتشفی په توګه یې اوفرمائیل چه واورئ بنیادم ډیر دی یاجوج ماجوج هم د آدم ﷺ اولاددی په کوموکښې چه یویوخپل شاته خاص خپل صلبی اولاد یویو زرپرېږدی اوځی نو په دوی کښې اود دوی په شان به یو ځانی شی نود دوزخیانو شمیریه داسې شی. جنت به

ستاسو اوتاسو به د جنت د پاره شني. (۱) داحديث غريب دي اود سورت حج د تفسيرپه شروع کښې د دې په شان د احاديثو تذکره تيره شوې ده. د دې ورځ د هيبت او دهشت د ويرې به آسمان هم اوشليږي. د بعضو د دې ضمير د الله تعالى طرف ته راجع کړې دې خودا قوى نه دې ځکه چه دلته هډوذکر نشته. د هغې ورځ وعده يقيناً رښتياده اوکيږي به اود هغه ورځ په راتلوکښې هيڅ شك نشته.

| اِنَّ هٰذِهٖ |
|---|
| بيشکه دا |
| دا (قران پاك) يو |

| تَذْكِرَةٌ | فَمَنْ | شَآءَ | اتَّخَذَ | اِلٰى رَبِّهٖ | سَبِيْلًا ۝ | اِنَّ رَبَّكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يو نصيحت دي | پس څوك | چي غواړي | او دنيسي | رب خپل ته | لاره | بيشکه چي رب ستا |

نصيحت دي | نو چې د چا زړه غواړي | نودخپل رب په لار دې روان شي | ستارب ته ښه

| يَعْلَمُ | اَنَّكَ | تَقُوْمُ | اَدْنٰى | مِنْ ثُلُثَيِ الَّيْلِ | وَنِصْفَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| پوهيږي | چي بيشکه ته | ودريږې | نزدې | په دريو کښې دوؤ حصوته دشپې | او نيمه شپه |

معلومه ده اچې ته اوستا بعضې ملګرى د شپې په دريو کښې تر دوؤ برخو اوکله ترنيمې شپې

| وَثُلُثَهٗ | وَطَآئِفَةٌ | مِّنَ الَّذِيْنَ | مَعَكَ | وَاللّٰهُ يُقَدِّرُ | الَّيْلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او دريمه دشپې | او يوه ډله | دهغه کسانو نه | چي ستاسو سره دى | او الله اندازه کوى | شپه |

اوکله تر دريمې حصې ولاړ يئ | ..............................اود شپې ورځې اندازه يو ازې

| وَالنَّهَارَ | عَلِمَ | اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ | فَتَابَ |
|---|---|---|---|
| او ورځ | هغه ته معلومه ده | چي هرګز تاسو ټيك شمارلي نشئ هغه | پس توجه درحمت ئې اوکړه |

الله کوى|هغه ته معلومه ده |چې تاسودا قيام الليل ترسره کولې نشئ|نو دخپل رحمت توجه ئې درته

| عَلَيْكُمْ | فَاقْرَءُوْا | مَا تَيَسَّرَ | مِنَ الْقُرْاٰنِ | عَلِمَ | اَنْ سَيَكُوْنُ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تاسو باندې | پس اولولئ | هغه چي آسان وى | دقران نه | هغه ته معلومه ده | چي وى به |

اوکړه | نو څومره قران چې په آسانتيا سره لوستې شئ | نو هومره لولئ | هغه ته داهم معلومه ده | چې

| مِنْكُمْ | مَّرْضٰى | وَاٰخَرُوْنَ | يَضْرِبُوْنَ | فِى الْاَرْضِ | يَبْتَغُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ځيني له تاسو نه | مريضان | او ځيني نور خلق به | سفر کوى | په زمکه کښې | چي تلاش کوى به |

په تاسو کښې به څوک ناجوړه وى | او څوک به په زمکه کښې په سفر وتلي وى |

| مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ | وَاٰخَرُوْنَ | يُقَاتِلُوْنَ | فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | فَاقْرَءُوْا |
|---|---|---|---|---|
| دفضل (رزق) دالله نه | او ځيني نور خلق به | جنګ کوى | په لاره دالله کښې | پس لولئ |

چې دالله ﷻ فضل به تلاش کوى| اوبعضې خلق به دالله ﷻ په لاره کښې جهاد کوى|نوتاسو چې څومره

(۱) المعجم الکبير: ۱۲۰۳٤، مجمع الزوائد: ۱۳۳/۷.

| مَا تَيَسَّرَ | مِنْهُ ۙ | وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ | وَآتُوا الزَّكٰوةَ | وَأَقْرِضُوا اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه چې آسان وي | دهغه قرآن نه | او قائيموئ مونځ | او وركوئ زكات | او قرض وركوئ الله ته |
| په اسانۍ لوستلې شئ | هومره لولئ | اودمونځ پابندي كوئ | اوزكوة وركوئ | اود الله ﷻ په لاره كښې |
| قَرْضًا حَسَنًا ۚ | وَمَا تُقَدِّمُوا | لِأَنْفُسِكُمْ | مِّنْ خَيْرٍ | تَجِدُوهُ |
| قرض حسن | اوهغه چې وړاندې ليږئ تاسو | اوپاره دنفسونو خپلو | دنيكۍ نه | تاسو به بيا مومئ هغه |
| په خوشحالۍ خرڅ كوئ | اوكومه نيكي چې تاسو دخان نه وړاندې اوليږله | | | نو الله ﷻ ته درسيدلو سره به د |
| عِنْدَ اللّٰهِ | هُوَ خَيْرًا | وَّأَعْظَمَ | أَجْرًا ۚ | وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ۚ إِنَّ اللّٰهَ |
| دالله سره | دا بهتره ده | او زياته لويه ده | په لحاظ داجر سره | او بښنه غواړئ دالله نه / بيشكه الله |
| دغې نه بښه بيا مومئ | چه ښه به وي او زياته به وي | | | اود الله ﷻ نه بښنه غواړئ / بيشكه الله تعالى |
| غَفُورٌ | رَّحِيمٌ ۝ | | | |
| بخښونكې | رحم كونكې دې | | | |
| ډير بښونكې رحم كوونكې دې | | | | |

**قوله تعالى:-** إِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ ۚ
الله تعالى فرمائى چه داسورت سراسردعقل مندودپاره نصيحت او عبرت دې څوك هم چه د هدايت غوښتونكى وى هغه به دالله تعالى په مرضئ سره د هدايت لاربيامومى اودخپل رب طرف ته د رسيدو ذريعه به حاصله كړى لكه چه بل سورت كښې ارشاد فرمائيلې دي ﴿إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ۝﴾.

**قرآن پاک سراسر هدايت او نصيحت:-** ستاسو غوښتنه په كارنه راځى هغه كيږى څه چه الله تعالى غواړى د صحيح علم خاوند او د پوره حكمت مالك هم الله تعالى دي. بيافرمائى اې نبى ﷺ ته اوستا د صحابه كرامو يوه ډله دريو كښې د دويمې حصې د شپې پورې قيام ليل كښې مشغول اوسيږئ كله نيمه شپه په دې كښې تيرونى كله دريمه حصه د شپې تهجدكونى الله تعالى ته ښه معلومه ده سره د دې كه ستا مقصد هغه وخت پوره كول نه وى اودې هم هغه گران كار څكه چه د شپې ورځې صحيح اندازه خو هم الله تعالى ته ده كله دواړه برابر وى كله شپه وړه ورځ لويه وى اوكله ورځ وړه اوشپه لويه وى او هم الله تعالى نې پيژنى. د دې د پوره كولوطاقت په تاكښې نشته ته اوس د شپې مونځ هم دومره اداكوه كوم چه ته په آسانۍ سره كولې شې هيڅ وخت مقرر نه دې چه فرضًا به دومره وخت لګول وى.
دلته نى د صلوة تعبيريه قراءت سره كړى دې لكه چه په سورت سبحان كښې دى ﴿وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا﴾ يعني خپل قراءت مه اوچتوه او مه نى بالكل ښكته كوه.

**قوله تعالى:-** فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۙ
**فاتحه خلف الامام مسئله:-** د امام ابوحنيفه رحمه الله ملګرو د دې آيت نه استدلال كړى دې اودامسئله نى ونيلې ده چه په مانځه كښې د سورت فاتحه لوستل متعين نه دى كه دا اولولى كه څوك بل څوك نى د چرته نه اووانى يوآيت ونيل كافى دى اوبيا نى د دې مسئلې مضبوطيا په دې حديث سره كړې ده په

کوم کښې چه دی ډیر زرزرمونځ اداکونکی ته حضورﷺ فرمائیلی ووچه بیا اولوله کوم چه تاته اسان وی د قرآن پاك نه.[1]

جمهورو هغوی ته داجواب ورکړې دې چه د بخاری اومسلم شریف د حضرت عباده بن صامت ﷺ والا حدیث کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی مونځ نه دې مګردا چه ته سورت فاتحه اولولې.[2]
اوپه صحیح مسلم کښې د حضرت ابوهریره ﷺ په روایت نقل دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی هرهغه مونځ په کوم کښې چه سورت فاتحه اونه لوستې شی هغه بالکل نیمګړې ناکاره ناقص او ناتمام دې.[3] په صحیح ابن خزیمه کښې هم په دې روایت سره نقل دی چه حضورﷺ فرمائیلی د هغه سړی مونځ نه کیږی کوم چه سورت فاتحه اونه لولی.[4]

**مسلک حنفی:-** د عالمانو ﷺ په دے باره کښې اختلاف دې.چه په مانځه کښې دننه د قرآن قرات په څومره مقدار فرض او رکن دې.① زمونږ د عالمانو مذهب دا دې.چه مطلقاً د قرآن قرات فرض دی.که یو آیت ئې اووئیل.نو رکن قرات ادا شو.باقی د سورة فاتحه لوستل او ددے سره د سورت ملاوول دا دواړه زمونږ په نیز په واجباتو کښے دی.(تسهیل الهدایه شرح هدایه (۳۲۳/۱).

بیافرمائی چه په دې امت کښې دعذر والاخلق هم شته چه د قیام لیل په ترك کولوباندې معذوره دی مثلاً بیمار چه دهغوی ددې طاقت نه وی مسافر چه د رزق په لټون کښې اخوادیخواخی راخی. مجاهد چه په ډیر شغل کښې مشغول وی. دا آیت بلکه دا ټول سورت مکی دې او په مکه کښې نازل شوې. هغه وخت جهادنه وو بلکه مسلمانان په ډیر ښکته حالت کښې وو. بیاد غیب دا خبرورکول اودغه په ښکاره کیدوکښې راتلل چه مسلمانان پوره په جهادکښې مشغول شو. دا د نبوت اعلی او بهترین دلیل دې. نود دې عذرونوپه وجه تاته آسانی درکولې شی چه څومره قیام تاته کول آسان وی کوه.

**قوله تعالی:-** عَلِمَ أَنْ سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ

حضرت ابورجاء محمد ﷺ دحضرت حسن ﷺ نه تپوس اوکړواې ابوسعید ﷺ د هغه سړی باره کښې ته څه وائې چه د پوره قرآن پاك حافظ دې خو تهجدنه کوی صرف فرض مونځ کوی؟ هغوی خپل نیك غلام د پاره فرمائیلی دی هغه زمونږ د علم پیژندونکې وو او اوفرمائیلې شو چه تاسو ته هغه خودلې شوی دی کوم چه نه تاسو پیژندل اونه ستاسوپلارنیکه. ما وئیل ابوسعید ﷺ الله تعالی خو فرمائې چه کوم قرآن پاك تاسوپه آسانئ سره لوستلې شئ لولئ وئ فرمائیل چه اوتیك خوده هم پنځه آیاتونه لوله نو په ظاهره معلومیږی چه د حافظ قرآن د شپې په مونځ کښې څه نه څه قیام کول د امام حسن بصری ﷺ په نیزد حق او واجب وو.

یوحدیث په دې دلالت کوی کوم چه د حضورﷺ نه دهغه سړی باره کښې تپوس اوشو چه څوك د سحر کیدوپورې اوده کیږی. وئ فرمائیل داهغه سړې دې د چاپه غوږ کښې چه شیطان متیازې کړی وی.[5] ددې خویو مطلب دا بیان کړې شوې دې نه مراد هغه سړې دې چه د ماسخوتن فرض هم اونه کړی اودا هم وئیلی شوی دی چه څوك د شپې نفلی قیام اونه کړی.دسنن په حدیث کښې دی چه اې د

[1] صحیح بخاری کتاب الاذان باب وجوب القراءة للامام والماموم فی الصلوات کلها:۷۵۷، صحیح مسلم:۳۹۷.
[2] صحیح بخاری حواله سابق:۷۵۶، صحیح مسلم:۳۹٤.
[3] صحیح مسلم کتاب الصلاة باب وجوب قراءة الفاتحة فی کل رکعة: ۳۹۵، احمد:۲/۲٤۱، ابن حبان:۱۷۸۸.
[4] صحیح ابن خزیمه:٤۹۰وسنده صحیح، احمد:۲/٤۵۷، ابن حبان:۱۷۸۹، مواردالظمان:٤۵۷.
[5] صحیح بخاری کتاب بدءالخلق باب صفة ابلیس وجنوده: ۳۲۷۰، صحیح مسلم:۷۷٤.

قران والوور کوئی([1]) بل روایت کښې دی چه څوك وتر اونه کړی هغه زمونږ نه نه دې([2]) د حضرت حسن بصری رحمه الله نه زیات غریب قول د ابوبکرابن عبدالعزیزحنبلی رحمه الله دې چه وائی د رمضان په میاشت کښې قیام فرض دې. والله اعلم.

«دابادساتل پکار دی چه صحیح مسلك خوهم دادې چه دتهجدمونځ نه په رمضان کښې واجب دې اونه په غیررمضان کښې. د رمضان مبارك باره کښې هم په حدیث کښې صفاراغلی دی **(قیام لیلة تطوعا)** یعنې الله تعالی د هغې قیام نفل ګرځولې دې. وغیره مترجم) د طبرانی په حدیث کښې د دې آیت په تفسیرکښې مرفوعاً روایت دې که سل آیاتونه وی. خوداحدیث ډیر غریب دې صرف په معجم طبرانی کښې ما لیدلې دې. بیاارشاد دې چه د فرض مونځونوحفاظت کوئی اوفرض زکوة اداکوئی. دا آیت د هغه حضراتو دلیل دې چه فرمائی د زکوة د فرضیت حکم هم په مکه کښې نازل شوې وو او څومره اوویستلې شی؟ نصاب څه دې؟ وغیره داټول په مدینه کښې بیان شو. والله اعلم.

**ایا دا ایت وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ د شپې قیام لره ناسخ دې کنه؟** حضرت ابن عباس رضی الله عنه عکرمه رحمه الله مجاهد رحمه الله حسن رحمه الله قتاده رحمه الله وغیره سلفو بیان دې چه دې آیت د دې نه وړاندې حکم د شپې قیام منسوخ کړو. د دې دواړو حکمونوپه مینځ کښې څومره موده وه؟ په دې کښې چه کوم اختلاف دې د هغې بیان پورته تیرشو. د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی حضوراکرم ﷺ یوسړی ته اوفرمائیل پنځه مونځونه په شپه ورځ کښې فرض دی هغه تپوس اوکړو چه دې نه سوا هم په ماڅه مونځونه فرض دی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل باقی ټول نوافل دی.([3])

**قوله تعالی:- وَأَقْرِضُوا اللَّهَ**

**د الله تعالی په لارکښې خرچ کوئی:-** بیا فرمائی چه الله تعالی ته ښه قرض ورکړئی یعنی د الله تعالی په لارکښې صدقه اوخیرات کوئی په کوم چه به الله تعالی تاسو ته ډیره بهتر اوچته او پوره پوره بدله درکوی. لکه بل ځائې ارشاد دې داسې څوك دی چه الله تعالی ته قرض حسن ورکړی اوالله تعالی هغه ډیرزیات او اوچت کړی. تاسو چه کومې نیکئی هم کوئی او لیګئی هغه ستاسو دپاره د هغه څیز نه کوم چه تاسو پریږدئی او ځئی ډیر بهتر او په اجر او ثواب کښې ډیر زیات دې. د ابویعلی موصلی په روایت کښې دی رسول الله ﷺ یوځل د خپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه تپوس اوکړو تاسو کښې څوك دی چه هغه ته د خپل وارث مال د خپل مال ډیر ګران وی هغوی ونیل حضور ﷺ مونږ کښې خویوهم داسې نشته. حضور ﷺ اوفرمائیل سوچ اوکړئی هغوی بیا عرض اوکړو حضور ﷺ هم دغه خبره ده. وئی فرمائیل واورئی ستاسو مال هغه دې کوم چه تاسو د الله تعالی په لار کښې خرچ کوئی اولیګئی اوکوم چه پریږدئی نوهغه ستاسو مال نه دې هغه خوستاسو د وارثانومال دې.([4]) داحدیث په بخاری اومسلم کښې هم روایت دې.

بیافرمان دې د الله تعالی ذکر په کثرت سره کوئی اوپه خپلوټولوکارونوکښې استغفارکوئی څوك چه استغفار کوی هغه ښه حاصلوی ځکه چه الله تعالی ښنونکې او مهربانئی کونکې دې.

**(الحمدلله)** د الله تعالی په فضل اوکرم سره د سورت مزمل تفسیرختم شو.

....

---

[1] ابوداؤد کتاب الوترباب استحباب الوتر:١٤١٦، ترمذی:٤٥٣،النسائی:١٦٧٦،ابن ماجه:١١٦٩.

[2] ابوداؤد کتاب الوتر باب فیمن لم یوتر:١٤١٩،احمد:٤٤٣/٢.

[3] صحیح بخاری کتاب الایمان باب الزکاة من الاسلام:٤٦، صحیح مسلم:١١٠.

[4] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب ماقدم من ماله فهوله:٦٤٤٢، احمد:٣٨٢/١.

| آیاتونه | | سورة المدثر مكية وهي ست وخمسون اٰية وفيها ركوعان | | ركوع گاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۵۶ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۲ |

يٰۤاَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ ۝ قُمۡ فَاَنۡذِرۡ ۝ وَرَبَّكَ فَكَبِّرۡ ۝

اې څان نغښتونكيه | پاسه او اویروه | او رب ستا چې دی | پس لوئي بيا ن كړه دهغه |

انې څان په جامه كښې انغښتونكيه | ..........پاڅه او خلق اوویروه | او دخپل رب لوئی بیان كړه

وَثِيَابَكَ فَطَهِّرۡ ۝ وَالرُّجۡزَ فَاهۡجُرۡ ۝

او جامې ستا چې دی | پس پاكې ساته هغه | او گندگی چې ده | پس لرې وسه دهغې نه |

او خپلې جامې پاكې كړه |......................... او دگندگئ (شرك) نه لرې او سيږه

وَلَا تَمۡنُنۡ تَسۡتَكۡثِرُ ۝ وَلِرَبِّكَ فَاصۡبِرۡ ۝ فَاِذَا

او داسې احسان مه كوه | چې بدل نې ډیر غواړې | او دپاره درب خپل | صبر كوه | پس هر كله چې |

اوداسې احسان مه كوه | چې زيات عوض پرې غواړې | اودخپل رب په رضا صابره اوسه

نُقِرَ فِي النَّاقُوۡرِ ۝ فَذٰلِكَ يَوۡمَئِذٍ يَّوۡمٌ عَسِيۡرٌ ۝ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ

پوكې اووهلې شي | په صور كښې | پس دغه | په دغه ورځ كښې | ورځ سخته ده | په كافرانو باندې |

نو څه وخت چې شپیلئ پوك وهلې شي انو دغه ورځ به په كافرانو باندې سخته ورځ وی

غَيۡرُ يَسِيۡرٍ ۝

نه ده اسانه |

اسانه به نه وی |

**قوله تعالى:- يٰۤاَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ ۝**

**د قرآن پاك اوله وحې كومه يوه ده؟ اقراء كه مدثر او راجح قول:-** دحضرت جابر ؓ نه په صحيح بخاری كښې روايت دې د ټولونه اول د قرآن كريم هم دا آيت ﴿يٰۤاَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ ۝﴾ نازل شوې دې[1] خود جمهورو قول دا دې چه د ټولونه اولنئ وحی ﴿اِقۡرَاۡ بِاسۡمِ﴾ آياتونه دی لكه[1] چه د دې سورت د تفسير په موقع كښې به ان شاء الله راشی. يحيى بن ابوكثير ؒ فرمائی چه ما د حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن ؓ نه سوال اوكړوچه د ټولونه اول دقرآن كريم كوم آياتونه نازل شوی؟ نو وئی فرمائيل ﴿يٰۤاَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ ۝﴾ ماونيل خلق خو ﴿اِقۡرَاۡ بِاسۡمِ﴾ ښائی؟ نوهغوی اوفرمائيل چه ماد حضرت جابر ؓ نه تپوس كړې وو نوهغوی دا جواب راكړې وو ماتاته دركړواوما هم دا اووئيل داتاچه ماته اووئيل د هغې په جواب كښې حضرت جابر ؓ اوفرمائيل چه زه خوتاته هم هغه وايم كوم چه مونږ ته رسول الله ﷺ فرمائيلې چه ماپه حراء كښې الله تعالى يادولو كله چه زه دهغه ځائې نه فارغ شوم اوواپس راكوزشوم نوماواوريده چه لكه څوك ماته آوازكوی ما خپلې وراندې روستو ښی طرف اوگس طرف ته اوكتل خو څوك په نظررانغلو نوماسر

[1] صحيح بخاری كتاب التفسير سورة المدثر:۴۹۲۲، صحيح مسلم:۱۶۱.

اوچت کړو او پاس مې اوکتل نوماته هیڅ ښکاره نه شو. زه حضرت خدیجه ؓ له راغلم او ورته مې اوونیل چه په ما څادر واچوه ا، ،ه ما یخې اوبه واچوه.هغې هم داسې اوکړه اود ﴿يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ آیاتونه نازل شو(۱)

صحیح بخاری اومسلم کښې دی حضورﷺ د وحی بندیدو حدیث پاك بیانولوسره اوفرمائیل چه یوځل زه روان ووم چه ناڅاپی د آسمان نه ماته آواز اوشو ما پورته نظر اوچت کړو اومې کتل چه کومه فرښته به ماته په غارحراء کښې راتله هغه د زمکې او آسمان په مینځ کښې په یوه کرسئی ناسته ده زه د ویرې د وجې د زمکې طرف ته ټیټ شوم اوکورته په راتلوسره مې اوونیل چه ماپه کپړا پټ کړه نود کوروالا په ما کپړا واچوله اود سورت مدثر ﴿فَاهْجُرْ﴾ پورې آیاتونه نازل شو.ابوسلمه ؓ فرمائی د رجز نه مراد بت دې. بیاوحی یو بل پسې په ګرمه ګرمئی سره نازلیدله(۲)داد بخاری لفظ دې او هم دغه سیاق محفوظ دې. دې نه صفاپته لګی چه دې نه اول هم څه وحی راغلې وه ځکه چه د حضورﷺ هغه فرمان موجود دې چه داهم هغه وو کوم چه به غارحراء کښې ماله راتلو یعنی حضرت جبرائیلؑ کله غارحراء کښې د سورت اقراء آیاتونه ﴿لَمْ يَعْلَمْ﴾ لوستلې وو. نودې نه پس د څه زمانې پورې وحی رانغله.بیا چه کله د دې راتلل شروع شو نوپه هغې کښې د ټولونه اول وحی د سورت مدثر د شروع آیاتونه وو اودغه شان په دواړو احادیثوکښې تطبیق هم کیږی چه په اصل کښې د ټولونه اول وحی د ﴿اقْرَأْ﴾ آیاتونه دی بیا د وحی د بندیدلو نه پس د ټولونه رومبئی وحی د دې سورت آیاتونه دی. د دې تائیدد مسنداحمد وغیره د احادیثونه هم کیږی په کوم کښې چه دی د وحی بندیدلونه پس رومبئی وحی د دې سورت د شروع آیاتونه دی.(۳)

ذ سورت شان نزول:- طبرانی کښې د دې سورت شان نزول داسې روایت شوې دې چه ولید بن مغیره د قریشو دعوت اوکړو کله ئې چه خوراك څښاك اوکړو نو وئې ونیل تاسو د دغه سړی باره کښې څه وائې؟نو بعضو ونیل جادګردې بعضو ونیل نه دې. بعضوونیل کاهن دې خوچاونیل چه کاهن نه دې. بعضوونیل شاعردې بعضو اوونیل شاعر نه دې. بعضو ونیل چه د هغه داکلام یعنی قرآن نقل شوې جادو دې. نو په دې باندې اجماع اوشوه چه منقول جادو ورته وائې. حضورﷺ ته چه کله داخبر اورسیدو نوپه سر باندې کپړاواچوله اوخفه شواوکپړانی اغوستلې هم وه چه په دې باندې آیاتونه د ﴿فَاصْبِرْ﴾ پورې نازل شو(۴) بیافرمائی چه اودریږه یعنی په کلکه او قوی اراده سره ملا اوتړه تیارشه اوخلق زمونږ د ذات نه د دوزخ نه اود هغوی د بدو عملونود سزا نه اوویروه. د هغوی غوږونه رابیدار کړه د هغوی نه غفلت لرې کړه. د اولنئی وحی سره په نبوت سره حضورﷺ ممتاز کړې شواو په دې وحی سره رسول ﷺ جوړکړې شو. د خپل رب تعظیم اوکړه.

**قوله تعالی:-** ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ اوخپلې کپړې پاکې کړه یعنی دې ګناه بې وعدګئی وغیره نه ځان بچ اوساته. لکه چه د شاعر په شعرکښې دی چه د الله تعالی په فضل سره زه د فسق او فجور د لباس نه اود غدر د روما نه خلاص یم. په عربی محاوره کښې دابرابر راځی چه کپړې پاکې ساته یعنی ګناه پریږده د اعمالواصلاح اوکړه داهم مطلب خودلې شوې دې چه په حقیقت کښې خو حضورﷺ نه کاهن دې نه جادوګر که داخلق هرڅه هم وائی تاسو پرواه هم مه کوئې. په عربی محاوره کښې کوم دګناه ککړې او د

---

(۱) ایضا.

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة المدثر:۴۹۲۵، صحیح مسلم: ۱۶۱، ترمذی: ۳۳۲۵.

(۳) صحیح بخاری کتاب بدءالخلق باب اذاقال احدکم آمین والملائکة فی السماء:۳۲۳۸، احمد:۳/۳۲۵.

(۴) طبرانی:۱۱۲۵۰، مجمع الزوائد:۷/۱۳۴.

بې وعدګئ په هواسره خيرنې شوې ګنده کپړو والا وائي اوکوم چه بې ګناه او د وعدې پابندوی هغه ته پاکو کپړووالا وائي شاعر وائي:

﴿اذاالمرءلم يدنس من اللوم عرضه﴾ ﴿فكل رداء يرتديه جميل﴾

يعني انسان چه کله د ګناه نه جدادې نويه هروکپړو کښې ښانسته دې اودامطلب هم دې چه غير ضروري لباس مه اغونده خپلې کپړې په ګناه مه ګنده کوه کپړې پاکې اوصفاساته خيري وينځه د مشرکانو په شان خپل لباس ناپاکه مه ساته. په اصل کښې دا ټول مطلبونه صحيح دی چه دا هم وی هغه هم وی اوورسره زړه هم پاك وی په زړه باندې هم د کپړې اطلاق د عربو په کلام کښې موندلې شي. لکه چه د امرؤاالقيس په شعرکښې دی اود حضرت سعيدابن جبيرؓ نه د دې آيت په تفسيرکښې نقل دی چه خپل زړه او خپل نيت صفاساته[1]محمدبن کعب قرظي رحمه الله او حضرت حسن رحمه الله نه هم دا روايت دې چه خپل اخلاق ښه ساته. بيا فرمائي چه ګندګی پريږده يعني بتان اود الله تعالی نافرماني پريږده لکه چه بل ځائي کښې ارشاد دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ ٱتَّقِ ٱللَّهَ وَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ﴾ اې نبی د الله تعالی نه اوويريږه اود منافقانواوکافرانومه منه. حضرت موسی عليه السلام خپل رور هارون عليه السلام ته ونيلې وو اې هارون عليه السلام زما نه پس زما په قوم کښې ته زما په ځائي کينه اصلاح کوه او د فساد کونکو په لار باندې مه لګه. بيا فرمائي چه عطيه ورکولوسره زياتې مه خوښوه. د ابن مسعودؓ په قراءت کښې ﴿ان تستكثر﴾دې. دا مطلب هم بيان شوې دې چه د خپل نيکواعمالو احسان په الله تعالی باندې د زياتي په طلب کولوکښې مه ساته اودا هم ونيلی شوی دی د خيرد غوښتلو په کثرت سره کمزوري مه کوه.[2] او دا هم ونيلی شوی دی چه دخپل نبوت بوج احسان په خلقو باندې کيخودوسره د دې په عوض کښې دنيا مه غواړه. دا څلور اقوال شوځو اولنې اولي دې والله اعلم. بيافرمائي چه د دې په تکليفونوکوم چه دالله تعالی په لارکښې تاته اورسي نود رب د رضاپه خاطر په دې صبراوبرداشت کوه.الله تعالی چه تاته کوم منصب درکړې دې په هغې کښې لګيااوسه اوکلك اوسيږه د﴿ٱلنَّاقُورِ﴾ نه مرادصور يعني شپيلئ ده.[3]

**قوله تعالى:- فَإِذَا نُقِرَ فِي ٱلنَّاقُورِ**

**شپيلئ پوک وهل:-** مسنداحمد، ابن ابی حاتم وغيره کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه څنګه په آرام سره اوسيږم سره د دې چه د شپيلئ والا فرښتې شپيلئ په خُله کښې نيولې ده اوتندې ښکته کړې د الله تعالی د حکم په انتظاردې چه کله به حکم اوشي اوهغه به شپيلئ پوك وهي. صحابه کرامو عرض اوکړو يارسول الله ﷺ بيا مونږ ته څه ارشاد کولې شي؟ ونې فرمائيل وائي ﴿وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ﴾[4] بيانې د شپيلئ د پوك وهلو ذکر کولوسره اوفرمائيل کله چه شپيلئ پوك وهلې شي بيا فرمائي چه هغه ورځ او هغه وخت به په کافرانو باندې ډيرسخت وی چه په هيڅ شان سره به آسان نه وی لکه چه بل ځائي کښې پخپله د کافرانو قول دې چه ﴿يَقُولُ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ﴾ د نن ورځ خو ډيره زياته ګرانه اوډيره سخته ورځ ده.حضرت زراره بن ابی اوفی رحمه الله چه دبصرې قاضي وويوځل نې خپلو مقتديانو ته دسحر مونځ ورکولو ددې سورت تلاوت نې اوکړو چه کله دې آيت ته راورسيدو نو ناڅاپي

---

[1] الطبری: ١٣/٢٤.
[2] الطبری: ١٦/٢٤.
[3] ايضا: ١٨/٢٤.
[4] الحمد: ٣٢٦/١، ترمذی: کتاب التفسير القرآن باب و من سورة الانبياء: ٣٢٣٤، حاکم: ٥٥٩/٤، ابن حبان: ٨٢٣، عن ابي سعيد الخدریؓ.

نی یوه تیزه چغه دخلې نه اووتله او راپریوتلو چه خلقو اوکتلونو روح نی تلې وو الله تعالی دې په هغوی باندې خپل رحمت نازل کړی.(۱)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذَرۡنِیۡ | وَمَنۡ خَلَقۡتُ | وَحِیۡدًا ۟ۙ | وَّجَعَلۡتُ | لَهٗ | مَالًا مَّمۡدُوۡدًا ۟ۙ | |
| پریږده ما | اوهغه څوک چې پیدا کړو ما | یوازې | او ورکړو ما | هغه له | مال ډیر | |

اماو هغه څوک پریږده چې یوازې مې پیدا کړې دې او هغه ته مې ډیر مال ورکړې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّبَنِیۡنَ | شُهُوۡدًا ۟ۙ | وَّمَهَّدۡتُّ | لَهٗ | تَمۡهِیۡدًا ۟ۙ |
| او خامن | حاضر وسیدونکي | او تیاره کړه ما | هغه ته (لاره دسرداری) | په تیارولو سره |

اوحاضریدونکی خامن مې وته ورکړې دی او په سرداری ورکولو سره مې ورته سرداری ورکړې ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ یَطۡمَعُ | اَنۡ اَزِیۡدَ ۟ۙ | کَلَّا ؕ | اِنَّهٗ | کَانَ | لِاٰیٰتِنَا |
| بیا هغه طمع لری | چې زیات به نور ورکړم | هر گز نه | بیشکه هغه | دې | دآیتونو زمونږ سره |

بیا هغه طمع کوی چې د هغه مال نور هم زیات کړم. هیڅکله نه دې خو زمونږ د آیاتونو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَنِیۡدًا ؕ | سَاُرۡهِقُهٗ | صَعُوۡدًا ؕ | اِنَّهٗ | فَکَّرَ |
| عناد ساتونکي | ډیر زر به زه وروخیژوم هغه لره | په سختو خیژولو سره | بیشکه هغه | سوچ اوکړو |

سره عناد ساتونکي دې اوس به ئې زه دوزخ ته داور غرته په زور اوخیژوم هغه فکر اوکړو

| | | |
|---|---|---|
| وَقَدَّرَ ۟ۙ | فَقُتِلَ | کَیۡفَ قَدَّرَ ۟ۙ |
| او اندازه ئې اوکړه دخبری | پس دالله غضب دوی په هغه باندې | چې دځنګه خبری اندازه ئې اوکړه |

نو بیا ئې سوچ اوکړو نوبرباد دې شی چې څنګه خراب سوچ ئې اوکړو

| | | |
|---|---|---|
| ثُمَّ قُتِلَ | کَیۡفَ قَدَّرَ ۟ۙ | ثُمَّ نَظَرَ ۟ۙ |
| بیا دغضب دالله وی په هغه باندې | چې دځنګه خبری اندازه اوکړو هغه | بیا ئې اوکتل (خلقو ته) |

بیا دې هلاک شی چې څنګه خراب سوچ ئې اوکړو ............... بیا ئې اوکتلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ عَبَسَ | وَبَسَرَ ۟ۙ | ثُمَّ اَدۡبَرَ | وَاسۡتَکۡبَرَ ۟ۙ | فَقَالَ |
| بیا ئې تندې تریو کړو | او خله ئې بوټه کړه | بیا ئې شا کړه | او تکبر ئې اوکړو | اووې وئیل |

بیا ئې تندې تریو کړو او خوله ئې ورانه کړه مخ ئې واړولو اوخان ئې غټ اوګڼړلو نو وې وئیل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنۡ هٰذَاۤ | اِلَّا سِحۡرٌ | یُّؤۡثَرُ ۟ۙ | اِنۡ هٰذَاۤ | اِلَّا قَوۡلُ الۡبَشَرِ ؕ |
| نه دی دا قرآن | مگر جادو دې | چې نقل کولې کیږی | نه دی دا | مگر کلام دانسان دې |

چې دا(قرآن) خو د(پخوانو) راغلې جادو دې ............... داخو تش د انسان کلام دې

(۱) سنن ترمذی کتاب الصلاة باب اذا نام عن صلاته بالليل صلی بالنهار تحت حديث ٤٤٥، حاکم:۲/۵۰۶.

| سَأُصْلِيهِ | سَقَرَ | وَمَا أَدْرَاكَ | مَا سَقَرُ | لَا تُبْقِي |
|---|---|---|---|---|
| زر به ننباسم زۀ هغه لره | دوزخ ته | او تۀ څه خبر نې | چې څه دې سقر | چې باقي نۀ پاتې کوي |
| زه به ئې زر دوزخ ته ورداخل کړم | ........ اوته څه خبر یې چې دوزخ څه څیزدې | | | نه روغ پرېږدي |
| وَلَا تَذَرُ | لَوَّاحَةٌ | لِلْبَشَرِ عَلَيْهَا | تِسْعَةَ عَشَرَ | |
| او نۀ پرېږدي هیڅ څیز | سوزونکې دې څرمن لره | مقرر دي په هغې باندې | نو لس (فرښتې) | |
| او نه به ئې خلاصوی | د مخونو ورانونکې دې | ........ په هغې به نولس فرښتې مقرر وي | | |

**قوله تعالى:- ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا**

**د ولیدبن مغیره مذمت:-** کوم خبیث سړی چه د الله تعالى د نعمتونو کفراو کړو او قرآن پاك ته ئې انسانی قول اووئیلو د هغه د سزاګانو ذکر کولې شی. اول چه کوم نعمتونه په هغه باندې انعام کړې شوی دی د هغې بیان کولې شی چه دې خان له اویوازې دنیاته راغلې و،مال اولاد یانورڅه ورسره نه وو.بیاالله تعالى هغه مالدار کړو په زرګونولاکهونو دینارونه دولت او جائیدادونه ئې ورکړی وو اوپه اعتبارد اقوالو دیارلس اود بعضې نورو اقوالو لس خامن ئې ورکړل چه ټول به د هغه سره ناست وو. نوکرانو مزدورانو وینځو غلامانو به کارونه روزګارونه کول او ده به په مزه سره خپل ژوند د اولادسره تیرولو. غرض چه هرقسم مال دولت وینځې غلامان هرقسم آرام او مزې ورته حاصلې وې بیانی هم د نفس خواهش نه پوره کیدلو اوغوښتل ئې چه الله تعالى دې نورهم زیات کړی حالانکه داسې اوس نه کیدل. دې زمونږ د خبرودعلم نه پس کفراوسرکشی کوی دې خو به په صعود(دوزخ کښې د اوریوغردې) ورخیژولې شی.

**صعود نه څۀ مراد دی؟** د مسنداحمد په یوحدیث کښې دی چه ویل د دوزخ د یوې کندې نوم دې کومه کښې چه به کافران ورغورزولې شی. ترڅلوېښتوکالوپورې به هم دننه دننه روان وی خوبیابه هم بیخ نه او نه رسی.اوصعود د دوزخ د اور د غر نوم دې په کوم چه به کافران ورخیژولې شی د اویاؤ کالوپورې خویه هم ورختل کوی بیا به د هغه ځائی نه لاندې راغورزولې شی. اویاؤکالوپورې به لاندې رارغړېږی او هم په دغه همیشه والی سزا کښې به راګیروی.[1] دا حدیث په ترمذی کښې هم دې او امام ترمذی رحمه الله دې ته غریب وئیلې دې اوورسره په دې کښې نکارت هم دې.ابن ابی حاتم کښې دی چه صعود د دوزخ د یوغرنوم دی کوم چه د اوردې. دې به مجبورکولې شی چه پدې اوخیژه لاس کیخودو سره به تک سور شی او اوچتولوسره به هم دغه شان شی داشان به ئې ښنې هم.[2]

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه صعود د دوزخ د یوکاڼړی نوم دی په کوم چه به کافر پرمخې رابنکلې شی.[3] سدی رحمه الله فرمائی چه داکاڼړې ډیر خوئیدونکې دی.مجاهد رحمه الله وائی چه د آیت مطلب دا دې چه مونږ به دله د مشقت والا عذاب ورکوو.[4] قتاده رحمه الله فرمائی چه داسې عذاب په کوم کښې چه به ده له کله هم آرام حاصل نه شی. امام ابن جریر رحمه الله هم دا خوښوی.

**قوله تعالى:- إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ**

**جهنم ته د ورغوزارولو سبب:-** بیافرمائی چه مونږ ده لره دې تکلیف ورکونکی عذاب ته خکه ورنیزدې کړوچه دې دایمان نه ډیر لرې ووهغه به په سوچونو سوچونو کوشش کولو چه دې قرآن ته څه نوم ورکړی

---

[1] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الانبياء: ۳۱۶٤، احمد: ۷۵/۳، مسندابی یعلی: ۱۳۸۳،ابن حبان: ٦٤٦٧، البعث للبیهقی: ۲٦۵.
[2] الطبری: ۲٦٦/۸، ۲۳، ۲٦٦/۲۳.
[3] الدرمنثور: ۳۳۱/۸.
[4] الطبری: ۲۳/۲٤.

اوخه خبره جوړه کړي. بیا به په ده باندې افسوس کولې شي اودعربود متل مطابق د ده د هلاکت کلمې ونیلې شي دې غرق کړې شي او دې برباد کړې شي. څومره خرابه خبره نې سوچ کړه او څومره بې حیا دروغ خبره نې راوویستله. د ډیر زیات غور اوفکرنه پس نې تندې گونجې کړو اوخُله ورانه کولوسره دحق نه لرې اودبنیگرې نه مخ اړولو سره داالله تعالی د تابعدارئی نه سراړولې زړه نې اودرولو سره صفااوونیل داقرآن خود الله تعالی کلام نه دې بلکه دا محمدﷺ د خپل خان نه د وړاندې خلقو جادو منتر نقل کوی اوهم هغه بیانوی داخود الله تعالی کلام نه دې بلکه انسانی قول دې اوجادو دې چه نقل کولې شی. ددې لعنتې نوم ولیدبن مغیره مخزومی وواود قریشو سردار وو.

دولید واقعه څه وه؟:-حضرت ابن عباسؓ فرمائی چه واقعه داسې ده چه یوځل دا ولید پلیت حضرت ابوبکر صدیقؓ له راغلو اوخواهش نې ښکاره کړو چه هغوی لږ شان قرآن واوروی. حضرت صدیق اکبرؓ یوڅو آیاتونه اولوستل چه د هغه په زړه کښې ئې خانی اوکړو. کله چه د دې خانی نه پاسیدو او د قریشوټولی ته اورسیدو نوونیل خلقو د حیرانتیا خبره ده(حضرت محمدﷺ) چه کوم قرآن لولی د الله تعالی قسم نه خو هغه شعردې اونه هغه جادومنتر دې نه د لیونووینا ده بلکه په الله قسم هغه خو هم خاص د الله تعالی کلام دې په دې کښې هیڅ شك نشته. قریشو دې اوریدوسره سرونه اونیول او ونی ونیل که دې مسلمان شونو بس بیاخوبه په قریشوکښې.یوکس هم بغیرد اسلام راوړو نه باقی پاتې نه شی. کله چه ابوجهل ته داخبر اورسیدونو هغه ونیل ویرېږئی مه گورئی زه به دې په یوچل باندې د اسلام نه واړوم. دې وینا سره هغه په زړه کښې یوترکیب سوچ کړو اود ولیدکورته لاړو ورته نې اوونیل چه ستاقوم تاله څه چنده کړې او ډیرمال ئې راجمع کړې دې او هغوی هغه تاته په صدقه کښې درکول غواړی. هغه ونیل واه څه د مزې خبره ده ماته د چندواو صدقوڅه ضرورت دې دنیاته پته ده چه دوی کښې زمانه زیات مال او اولاد بل چاسره نشته. ابوجهل ونیل چه دا خوټیك ده ولې په خلقو کښې داسې خبرې کیږی دا ته چه ابوبکرؓ له ځې راځې صرف د دې د پاره چه د هغه نه څه وصول کړې. ولید ونیل افسوس زما په خاندان کښې زما باره کښې داسې خبرې کیږی ماته خو بالکل پته نه وه اوس د الله قسم نه به زه ابوبکرؓ له لاړشم اونه به عمرؓ له لاړشم اونه به رسول اللهﷺ له لاړشم او هغوی خو چه څه وائی هغه جادو دې کوم چه نقل کولې شی. په دې باندې الله تعالی داآیاتونه نازل کړل (ذرنی) نه (لاتذر)پورې.([1])

دویم روایت :- حضرت قتادهؒ فرمائی هغه ونیلې ووچه زه د قرآن باره کښې د ډیر سوچ اوغورفکر نه پس په دې نتیجه رسیدلې یم چه داشعرخونه دې په دې کښې حلاوت دې په دې کښې چمك دې، دا غالب دې مغلوب نه دې خودې یقیناً جادو. په دې باندې دا آیاتونه نازل شو.ابن جریرکښې دی چه ولیدحضورﷺ له راغلې وو اوقرآن پاك اوریدوسره دهغه زړه نرم شوې ووااوپوره اثر پرې شوې وو. خوچه کله ابوجهل ته دامعلومه شوه نو په منډومنډو راغلو اود دې ویرې چه دې چرته په ښکاره مسلمان نه شی دې غصه کولود پاره نې دروغ مروغ اوونیل تره ستاقوم ستاد پاره مال راجمع کول غواړی. تپوس نې اوکړو ولې؟نوونی دې د پاره چه تاته نې درکړی ته د محمدﷺ خواله تلل پریږده خکه چه ته هم د مال حاصلولوبه غرض هلته ځې. هغه په غصه کښې اوونیل چه زما قوم ته معلومه نه ده چه په هغوی ټولو کښې زه ډیر مالداریم؟ابوجهل ونیل دا خو ټیك ده ولې دې وخت کښې د خلقو داخیال پوخ شوې دې چه ته د محمدﷺ نه دمال حاصلولو په غرض د هغه شوې نې. که ته داغواړې چه دا خبردې د خلقو د زړه نه اوځی نوته دهغه باره کښې څه سختې خبرې اوکړه دې د پاره چه دخلقو یقین اوشی چه ته د هغه مخالف نې اوستاد هغه نه هیڅ غرض نشته. هغه ونیل گوره خبره خودا ده چه هغه ماته کوم قرآن

---

[1]) الطبری: ٢٤/٢٤.

اورولي دي قسم دي دالله تعالى چه هغه خو نه شعر دي اونه څه قصيده اوجزر دي نه د پيريانوقول ياد هغوی اشعاردی. تاته ښه پته ده چه دانسان اوپيريانو كلام ماته ښه يادديٖ زه پخپله ښه مشهور شاعريم د كلام دښه والي او خراب والى نه ښه خبريم،د الله قسم چه دي كښي دمحمد ﷺ هيڅ كلام نشته الله تعالى ته معلومه ده چه په دي كښي عجيبه خواږه حلاوت خوند مزه او دلبری ده چه هغه د ټولو كلامونو سرداردي د هغي په وړاندي بل يوكلام ښه كيدلي نه شي هغه په ټول خوريږي په دي كښي زړه رابنكل اوچتوالى اوجذب دي.اوس ته اووايه چه زه د دي كلام باره كښي څه اووايم؟ ابوجهل ونيل واوره تركومي چه ته هغه په بدني سره يادنه كړي ستاد قوم خيالات به ستا په نسبت صفانه شي. هغه ونيل ماته ته مهلت راكړه زه سوچ كوم چه د دي باره كښي څه داسي كلمه وايم. د ډير سوچ اوفكر نه پس ئي د خپل قوم په خاطر او پوزه كيخودو په خاطر داسي اوونيل چه داخو جادو دي چه هغه ئي نقل كوي. په دي باندي ﴿ذَرْنِي﴾ نه واخله ﴿تِسْعَةَ عَشَرَ﴾ پوري آياتونه نازل شو.(۱)

**دريم روايت:-** سدى رحمه الله وائي چه په دارالندوه كښي كيناستل اودي ټولوخلقو مشوره اوكړه چه د حج په موسم كښي به خلق د خلورو واړو طرفونه راځي نو هغوى ته اووائي چه د محمد ﷺ په نسبت څه اووايو؟ څه داسي خبره تجويز كړئي چه ټول په يوه ژبه هم هغه يوه خبره كوو چه په ټولو عربوكښي او په نورو ځايونوكښي هم هغه مشهوره شي. نودي وخت كښي چاشاعر اوونيل چا جادوګر اوونيل چاكاهن او نجومي اوونيل چا مجنون او ليوني اوونيل. وليد ناست وو سوچ ئي كولو غوراوفكركولو سره ئي په ښه خيال تندي ګونجي‌كړوخُله ئي جوره كړه اوونيل دادپخوانو جادوګرو قول دي كوم چه دي نقل كوي.

**قوله تعالى:-** سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ۝

**د دوزخ ذكر اوددي د منكر سزا:** قرآن پاك كښي بل ځائي ارشاد دي ﴿انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ۝﴾ يعنى لږ شان ګوره خو سهى ستا څنګه څنګه مثالونه جوړوى خو غلى غلى پاتي كيږى او په څه نتيجه باندي نه شي رسيدلي. اوس د هغه د سزا ذكر كولي شي چه زه به هغه د دوزخ په اُوركښي ورغرق كړم كوم چه د زبردست اوويرونكى عذاب اُوردي چه غوښه څرمن او رګونه اوبتي خورى. بيا به دا ټول نوى راځي او بيابه سوزولي شى نه به مرګ راځي اونه به د آرام والا ژوندملاويږى. څرمن راويستونكي هغه اُور دي چه په يوتږق كښي بدن د شپي نه زيات توره وى. بدن او څرمن وريتوى.

**قوله تعالى:-** عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ۝

**ديهوديانو دصحابه كرامو نه تپوس او د ايت نزول:-** په دي باندي نورلس فرښتي مقرردى چه نه ستړي كيږى اونه رحم كوى.دحضرت براء ﷺ نه روايت دي چه يوڅويهوديانود صحابه كرامو رضي الله عنهم نه تپوس اوكړد دااوښائى چه د دوزخ د فرښتو شميرڅه څومره دي؟ هغوى ونيل الله تعالى اود هغه رسول ﷺ ښه پوهيږى. بيايوسړى حضور ﷺ ته داواقعه بيان كړه نو هم هغه وخت ﴿عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ﴾ نازل شو.حضور ﷺ صحابه كرامو ته واورولو اوونى فرمائيل چه هغوى لږ شان ماله راولئى چه زه هم د هغوى نه تپوس اوكړم چه د جنت خاوره د څه ده؟اونى فرمائيل واورئى هغه د سپينى ميدي په شان ده. بيا يهوديان حضور ﷺ له راغله اوتپوس ئى اوكړود دوزخ د فرښتو شمير څومره دي؟ حضور ﷺ د دواړو لاسونو ګوتي دوه ځل ښكته كړي په دويم ځل ئى ترې غټه ګوته پريخوده يعنى نورلس.بيا حضور ﷺ اوفرمائيل اوس تاسو اوښائى چه دجنت خاوره څنګه ده؟ هغوى ابن سلام ﷺ ته اوونيل چه هم ته اووايه. ابن سلام ﷺ ونيل هغه لكه چه دسپينى روټئى ده.حضور ﷺ اوفرمائيل چه يادساتئى هغه سپينه روټئى كومه چه

---

(۱) حاكم:۲/۵۰۶-۵۰۷.

د خالص میدې وي. (۱)مسندبزارکښې دي چه کوم سړي حضورﷺ ته د صحابه کرامو ﷺ د بې جوابه کیدوخبرورکړې وو هغه راغلې وو او وئیلې وو چه نن خوستا صحابه کراموابانیلله وني فرمائیل څنګه؟هغه وئیل هغوی جواب ورنه کړې شو اودانې اووئیل چه مونږ به دخپل نبي ﷺ نه تپوس کوو. حضورﷺ اوفرمائیل بنه ده دا هم بیلل ګڼړلې کیدې شي د چا نه چه د کومې خبرې تپوس کولې شي چه هغوی ته نه وي پته نوهغوی وائي چه مونږبه دخپل نبيﷺ نه تپوس کووبیا به جواب درکوو دا یهودیان دالله تعالی دښمنان خو لږ شان ماله راولئي هغوی خو د خپل نبي نه د الله تعالی د لیدو سوال کړې وو اوبه هغوی باندې عذاب رالیګلې شوې وو. جواب ئې ورکړواودرسول الله ﷺ په سوال کولو باندې هغوی ډیر پریشانه شو اویوبل ته ئې کتل. الخ(۲)

| وَمَا جَعَلْنَآ | أَصْحٰبَ النَّارِ | إِلَّا | مَلٰٓئِكَةً ص | وَّمَا جَعَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او نه دي جوړې کړې مونږه | کارکناني دوزخ | مګر | فرښتې | اونه دي جوړ کړې مونږه |
| اومونږ خو بل څوک نه بلکه فرښتې په دوزخ مقرر کړې دي \| اود هغوئ دا | | | | |

| عِدَّتَهُمْ | إِلَّا فِتْنَةً | لِّلَّذِيْنَ | كَفَرُوْا لا | لِيَسْتَيْقِنَ |
|---|---|---|---|---|
| شمار دهغوئ | مګر یوه فتنه | دپاره دهغو خلقو | چې کفر ئې اوکړو | دپاره ددې چې یقین راشي |
| شمیر مو دکافرانو دپاره تش د امتحان په غرض مقرر کړې دې \| ........نتیجه به ئې دا شي \| چې | | | | |

| الَّذِيْنَ | أُوْتُوا الْكِتٰبَ | وَيَزْدَادَ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا |
|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانو | چې ورکړې شوې دې ورته کتاب | او زیات شي | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو |
| اهل کتاب به پرې یقین اوکړي \| ...............او دایماندارو به پرې ایمان نور زیات شي | | | | |

| إِيْمَانًا | وَّلَا يَرْتَابَ | الَّذِيْنَ | أُوْتُوا الْكِتٰبَ | وَالْمُؤْمِنُوْنَ لا |
|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دایمان سره | او چې اونه کړي شك | هغه کسان | چې ورکړې شوې دې کتاب | او مومنان |
| اواهل کتاب او مومنان به په کښې هیڅ شك شبه نه کوي \| | | | | |

| وَلِيَقُوْلَ | الَّذِيْنَ | فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ |
|---|---|---|---|
| او دپاره ددې چې اووائي | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض دنفاق دې |
| اونتیجه به ئې دا شي \| چې دچا په زړونو کښې چې مرض وي \| هغه کسان | | | |

| وَّالْكٰفِرُوْنَ | مَاذَآ أَرَادَ اللّٰهُ | بِهٰذَا مَثَلًا ط | كَذٰلِكَ | يُضِلُّ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| او کافران (دا خبره) | چې څه اراده کړې ده الله | په دې شمار سره | دارنګې | بې لارې کوي الله |
| اوکافران به دا وائي چې ددې په بیانولو کښې دالله ﷻ څه غرض دې \| دغه شان الله ﷻ هغه څوك ګمراه | | | | |

| مَنْ | يَّشَآءُ | وَيَهْدِيْ | مَنْ يَّشَآءُ ط | وَمَا يَعْلَمُ | جُنُوْدَ رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه څوك | چې غواړي هغه | او لار ښائي | هغه چاته چې غواړي هغه | او نه پیژني | البنکرې درب ستا |
| کوي \| چې وې غواړي \| اوچاته چې اوغواړي هدایت ورته کوي \| او ستادرب لښکرې صرف هغه ته معلومې دی | | | | | |

۱) البعث للبیهقی:۹۰۵ مختصراً.
۲) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة المدثر:۳۳۲۷.

إِلَّا هُوَ ۚ وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ ۝ كَلَّا

| مګر خاص هم هغه | او نه دي دا دوزخ | مګر | يو نصيحت دي | دپاره دانسان | هرګز نه |

اودا (د دوزخ) بيان دخلقو دپاره نصيحت قدرله دي | قسم دي

وَالْقَمَرِ ۝ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ۝ وَالصُّبْحِ

قسم دي په سپوږمۍ باندي | او په شپه باندي | کله چي په شاشي | او په صبا باندي |

په سپوږمۍ اوشپه چي په تيريدوشي | ..........................او په صبا چي

إِذَا أَسْفَرَ ۝ إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ۝ نَذِيرًا لِلْبَشَرِ ۝

کله چي روښانه شي | چي بيشکه دا دوزخ | خامخا يوه نښه ده دلويو نښونه | يرونکي دي | انسان لره

کله روښانه شي | چي دغه (دوزخ) يوډير لوئي مصيبت دي | د خلقو دپاره ويرونکي دي

لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ۝

| دپاره دهغه انسان | چي غواړي | ستاسو نه | چي وړاند شي (دنيکۍ په لاره) | يا روستي شي (کفرته)

يعني په تاسو کښي دهغه چا چي (په نيکۍ کښي) وړاندي کيدل غواړي اوکه روستو پاتي کيدل غواړي

قوله تعالى:- وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً

**د دوزخ د دلروغه ګانو ذکر:**- الله تعالى فرمائى چه په عذاب کولواودوزخ په خيال ساتلو باندي مونږ فرښتي مقرر کړي چه نه رحم کونکى دى اوسختي خبري کونکى دى. په دي کښي د قريشود مشرکانو ترديددي هغوى ته چه کله د دوزخ ددلاروغه ګانو شميراوخودلي شو نوابوجهل اووئيل چه اې قريشو که هغه نورلس دى نو زيات نه زيات که مونږ لس کم دوه سوه يوځائى شو نو هغوى ته به ماتي ورکړو. په دي باندى وانى چه هغه فرښتي دى انسانان نه دى نه به تاسو ماتي ورکړي شئى اونه به هغه تاسو ستړي کړي شئى. دا هم ونيلى شوى دى چه ابوالاشدين د چانوم چه کلده بن اسيدبن خلف ووهغه چه دا شميرواوريدو نو وني ونيل اې قريشو تاسو ټول راجمع شئى په هغې کښي صرف دوه رامنع کړئى باقى اووه لسوله زه کافى يم. دا ډير مغروره سړي وو او ډير طاقتور هم وو دي به د غوا په څرمن اودريدو بيا به لسو کسانوهغه د ده د پښونه راښکله څرمن به ټکړي شوه خود هغه پښي به خوزيدي هم نه. هم دغه سړي وو چه رسول الله ﷺ له مخامخ راغلو وني ونيل ته ماسره پرزول اوکړه که تا زه راګذار کړم نوزه به ستانبوت اومنم. حضور ﷺ هغه سره پروزل اوکړي او څو ځل ئى راګذار کړو خوهغه ته ايمان راوړل نصيب نه شو.

قوله تعالى:- إِلَّا فِتْنَةً لِلَّذِينَ كَفَرُوا

**دفرشتو د شمير خودلوڅه وجه ده ؟:**- امام ابن اسحق ته د پرزونو والا واقعه د رکانه بن عبديزيد بن هاشم بن المطلب خودلي ده. زه وايم په دي دواړوکښي څه منافات نشته(ممکن ده چه دي دواړوسره ئى پرزوني کړي وى)والله اعلم. بيانى اوفرمانيل چه د دي شمير خودل خو وود امتحان د پاره يوطرف ته د کافرانو کفر راښکاره شوبل طرف ته د اهل کتابو يقين کامل شو چه د رسول الله رسالت حق دي ځکه چه پخپله د هغوى په کتاب کښي هم دغه شميردي اودريمه دا چه ايماندار په خپل ايمان کښي کامياب شو. دحضوراکرم ﷺ د خبري تصديق او د هغوى ايمان زيات شو. اهل کتاب او مسلمانانوته هيڅ شك شبه پاتي نه شوه د ناجوړه زړونومنافقان راپاسيدل چه ښه ده اوښايه چه دلته د دي د ذکر کولوڅه حکمت دي الله تعالى فرمائى چه هم داسي خبري د ډيروخلقو د ايمان د مضبوطولود پاره سبب

جوړېږي اوډ ډېرو خلقو د شك والا زړه نور هم ګډوډ شي. د الله تعالی دا ټول كارونه د حكمت او راز نه ډك دي. ستا د رب د لښكرو صحيح شمير او صحيح تعداد اوډ هغې د كثرت هيڅ چا ته علم نشته هم هغه ښه پوهيږي. دا مه ګنړئ چه بس هم نورلس دي لكه چه يوناني فلسفيانو اوډ هغوی هم خيال خلقو دخپل جهالت په وجه دا ګنړل چه دې نه مرادعقول عشره اونفوس تسعه دي حالانكه دادهغوی مجرد دعوی ده په كوم چه هغوی د دليل قائمولونه بالكل عاجز دي. افسوس چه د آيت په اول باندې خود هغوی نظر دې ولې آخري حصې نه هغوی كفر اوانكاركوی چرته چه صفا الفاظ موجود دی چه ستا درب د لښكرو بغيرد هغه نه چاته پته نه لګی بيا صرف د نورلسوڅه معنی ده؟ د بخاری اومسلم د معراج والا په حديث كښې ثابته شوې ده. حضور ﷺ د بيت المعمور صفت بيانولوسره فرمائيلی چه هغه په اووم آسمان باندې دې اودې ته هره ورځ اويازره فرښتې ځی دغه شان په دويمه ورځ بيا اويازره فرښتې ځی اودغه شان هميشه خود فرښتوشمير دومره ډير دې چه كومې نن لاړې شی د هغوی نمبربيا د قيامته پورې نه شی راتلې.(١)

قوله تعالى:-وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ

**د فرښتو دكثرت ذكر او ددې متعلق احاديث:-** مسنداحمد كښې رسول مقبول ﷺ فرمائی زه هغه ګورم څه چه تاسو نه ګورئی هغه اورم كوم چه تاسونه اورئی آسمان چنړيږی اوهغه ته د چنړيدلوحق دې د يوې ګوتې د كيخودوخانی داسې خالی نشته چرته چه د يوې فرښتې سجده نه وی لګيدلې. كه تاسوته هغه معلوم شوې وې كوم چه ماته معلوم دی نوتاسو به ډير كم خندل اوډيرزيات به موژړل او په بسترو باندې به مو خپلو ښځو سره خوندونه نه اخستې بلكه فرياد او زاری كولوسره به ځنګلونوته وتلې وئی. دا حديث بيانولوسره به د حضرت ابوذر ﷺ د خُلې نه ناڅاپی داوتل چه افسوس زه ونه وې چه پرې كړې شوې وې. (٢)داحديث په ترمذی او ابن ماجه مكښې هم دې اوامام ترمذی رحمه الله دې ته حسن غريب وائی اوډ حضرت ابوذر ﷺ نه مرفوعاً هم روايت شوې دې.

طبرانی كښې دی چه په آسمان باندې د يوې لويشتې برابرخانی يا د تلی برابر خانی هم داسې نشته چرته چه يونه يوفرښته د قيام، ركوع ياسجدې په حالت كښې نه وی بيا به هم دا ټول د قيامت په ورځ وائی الله تعالی پاك نی اومونږ له چه څنګه عبادت كول پكار وو هغه شان مونږ ادانه كړې شو خودا ده چه مونږ تاسره څوك شريك نه دې ګرځولې(٣)داامام محمدبن نصر مروزی "كتاب الصلوة" كښې دی چه حضور ﷺ يوځل د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه تپوس اوكړو كوم چه زه اورم هغه تاسو هم اورئی؟ هغوی جواب وركړويارسول الله ﷺ مونږ خو څه نه اورو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه د آسمان چرچركول زه اورم او هغه په دې چرچر كولوباندې ملامت كولې نه شی ځكه چه په دې كښې دومره فرښتې دی چه يولويشت ځای خالی نشته چرته څوك په ركوع كښې دی او څوك په سجده كښې دی.(٤)

دويم روايت كښې دی چه د دنيا آسمان كښې د يوقدم كيخودو خانی داسې نشته چرته چه په سجده يا قيام كښې يوه فرښته نه وی د دې د پاره د فرښتوداقول په قرآن كريم كښې موجود دې ﴿ وَمَا مِنَّا إِلَّا لَهُ مَقَامٌ مَعْلُومٌ ۝ وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّافُّونَ ۝ وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ ۝﴾ يعنی په مونږ كښې د هريوې د پاره مقررخانی دې اومونږ صفونه تړونكی او د الله تعالی تسبيح بيانونكی يو. د دې حديث مرفوع كيدل ډير غريب دی. په دويم روايت كښې دا قول د حضرت ابن مسعود ﷺ بيان كړې شوې دې. په يوبل سندسره دا روايت د حضرت

---

١) صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم:٣٢٠٧، صحيح مسلم:١٦٤.
٢) ترمذی كتاب الزهد باب ماجاء فی قول النبی ﷺ((لوتعلمون ماأعلم)):٢٣١٢وهوحسن، ابن ماجه: ٤١٩٠، احمد:١٧٣/٥.
٣) المعجم الاوسط:٣٥٩٢، مجمع الزوائد:٥٧/١.
٤) الصلاة لابن نصر:٢٥٠.

علا بن سعد رضی الله عنه نه هم مرفوعانقل دي. داصحابي دمکي د فتح اودي نه پس په جهادونوکښې حضور اکرم ﷺ سره ووخو سنداً داهم غريب دي. په يوبل ډيرزيات غريب بلکه سخت منکر حديث کښې دي چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه راغلو مونږ ولاړوو اودري کسان ناست وويه کوموکښې چه يوابوجحش ليثي وو. هغه اوفرمائيل پاسئي حضور ﷺ سره په مانځه کښې شرکت اوکړئي نو دوه کسان خو اودريده او ابوجحش اووئيل چه که څوك داسې سړي راشي چه زما نه په طاقت او قوت کښې زيات وي ماسره پهلواني اوکړي اوما راګذارکړي بيا زما څله په خاورروکښې اومږي نو بيا به زه پاسم ګني نه پاسم. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه وئيل نور به څوك راځي راشه زه راغلې يم. پهلواني مو اوکړه او ما هغه راخلاص کړو بيا مې د هغه څله په خاورو ککړه کړه. په دې کښې حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه راغلواوهغه نې زما نه خلاص کړو. زه ډيرغصه شوم اود دغه غصې په حالت کښې حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم. حضور ﷺ ماته په کتوسره اوفرمائيل ابوحفص نن څه خبره ده؟ ماټوله واقعه واورولـه نوونې فرمائيل چه که د حضرت عمر رضی الله عنه مرضي داسې وی نود الله تعالى قسم زما په نيزد خود دغه خبيث سر راپريکړې وو نو ښه به وه. دې اوريدوسره حضرت عمر رضی الله عنه هسې پاسيدو اود هغه طرف ته نې ورتوپ کړو هغه ډير لرې تلې وو حضور ﷺ هغه ته آواز ورکړو او ونې فرمائيل کينه واوره الله تعالى د ابوجحش د مونږ نه بالکل بې پرواه دې. د دنياپه آسمان کښې په خشوع اوخضوع سره بې شماره فرښتې د الله تعالى په وړاندې سجده کښې پرتې دی چه د قيامته پورې به سراوچت نه کړي. په قيامت کښې به د سجدې نه سر اوچت کړي اودې وينا کولوسره به حاضرې شي اې زمونږ ربه مونږ نه ستا د عبادت حق ادانه کړي شو دغه شان په دويم آسمان کښې به هم داحال وی.

**د ملائکو تسبيحات:**-حضرت عمر رضی الله عنه تپوس اوکړو حضور ﷺ د دوی تسبيح څه دی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه د دنيا د آسمان فرښتې خو وائي ﴿سبحان ذی الملك والملكوت﴾ د دويم آسمان فرښتې وائي ﴿سبحان ذی العزت والجبروت﴾ د دريم آسمان فرښتې وائي ﴿سبحان الحي الذی لايموت﴾ عمر رضی الله عنه ته هم په خپل مانځه کښې داسې وايه. حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړويارسول الله ﷺ دی نه وړاندې چه کوم تاسو لوستل خودلې دی اود کوم د لوستلو د پاره تاسوفرمائيلی دی د هغې به څه کوو؟ ونې فرمائيل کله دا وايه کله هغه لوله. اول چه د لوستلوډپاره حضور ﷺ فرمائيلې وو هغه دادی ﴿اعوذ بعفوك من عقابك واعوذ برضاك من سخطك واعوذبك منك جل وجهك﴾ يعنی الله تعالى زه ستا د عذابونونه ستاد معافئي په پناه کښې راځم اوستاد ناراضګئي نه ستا د رضامندئي پناه غواړم اوستانه هم ستا پناه غواړم ستا مخ د جلال والا دی.(١)

اواسحق مروزی کوم چه د حديث راوی دې د هغه نه حضرت امام بخاری رحمه الله روايت کوی او امام ابن حبان رحمه الله هم هغه په ثقه راويانوکښې شميری خو حضرت امام ابوداؤد رحمه الله امام نسائی رحمه الله امام عقيلي رحمه الله اوامام دراقطني رحمه الله هغه ته ضعيف وائي. امام ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائي وو خوهغه رښتوني ولې نابيناشوې وو اوکله کله به نې تلقين قبلولو. اود هغوی د کتابونو روايتونه صحيح دی. دهغه نه داهم روايت دې چه دا مضطرب دې اود هغه استاذ عبدالملك بن قدامه ابوقتاده حمجی کښې هم کلام دې. حيرانتياده چه امام محمد بن نصر رحمه الله د هغه داحديث څنګه نقل کړې دې نه نې په هغه باندې کلام کړې نه نې د هغه حال معلوم کړې نه نې د هغه نه پس د راويانوضعف بيان کړې اودومره نې کړي دی چه هغه نې په بل سندسره مرسلاً روايت کړې دې اود مرسل دوه سندونه نې راوړی دی يود حضرت سعيدابن جبير رضی الله عنه نه اودويم د حسن بصری رحمه الله نه.

بيائي يوبل روايت راوړې دې چه حضرت عدی بن ارطاة رضی الله عنه د مدئن په جامعه مسجدکښې خپله خطبه

---

(١) کتاب الصلاة لمحمدبن نصر:٢٥٦،حاکم:٣/٨٧-٨٨، شعب الايمان:١/١١٤.

کښې فرمائیل چه ماد یوصحابیﷺ نه اوریدلی دی هغه د نبیﷺ کریم ﷺ نه اوریدلی دی حضور ﷺ فرمائیلی چه د الله تعالی ډیرې زیاتې فرښتې دي چه هروخت د الله تعالی د ویرې نه رچیږی د هغوی اوښکې راپریوځی اوهغه په دغه فرښتوباندې راڅڅیږی کومې چه په مانځه کښې مشغول دی. او په هغوی کښې داسې فرښتې هم دی چه د دنیاد شروع نه هم په رکوع کښې دی اوبعضې هم په سجده کښې دی د قیامت په ورځ به خپله شا اوسر اوچتوی اوډیر په عاجزنې سره به د الله تعالی په دربار کښې عرض کوی یاالله ته پاک ئې اومونږ ستا د عبادت حق ادانه کړې شو([1])ددې حدیث په اسنادو کښې هیڅ نقصان نشته بیا فرمائی چه هغه اور د کوم صفت چه تاسو واوریدو دا د خلقو د پاره سراسر دعبرت اونصیحت سبب دې. بیا د سپوږمئې د شپې د تلود سحر د رڼرا کیدو قسم خوړلو سره فرمائی چه هغه اور یوزبردست او ډیر لوئ څیز دې څوک چه دا ویره قبوله کړی اود حق په لار لګیدل غواړی او دې لګی اوکه څوک غواړی چه سره د دې د حق کیدو هم شاکړی نوده نه لرې تختنی او هغه رد کونی.

| كُلُّ نَفْسٍ | بِمَا | كَسَبَتْ | رَهِيْنَةٌ ﴿٣٨﴾ | اِلَّآ اَصْحٰبَ الْيَمِيْنِ ﴿٣٩﴾ |
|---|---|---|---|---|
| هر انسان | په سبب دهغې عمل | چې اوکړی هغه | ګانړه دې | غیر دښی لاس والو نه |
| هربنده به پخپل عمل کښې ګانړه پروت وی | | ......................... | | خو دښی اړخ خاوندان نه |
| فِيْ جَنّٰتٍ ﵜ | يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿٤٠﴾ | عَنِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٤١﴾ | مَا سَلَكَكُمْ | |
| هغوئ به په باغونو کښې وی | چې تپوسونه به کوی هغوئ | دمجرمانو نه | څه څیز ننویستئ تاسو | |
| هغوئ به په باغونو کښې وی | د مجرمانو نه به تپوسونه کوی | | چې تاسو کومې خبرې | |
| فِيْ سَقَرَ ﴿٤٢﴾ | قَالُوْا | لَمْ نَكُ | مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ﴿٤٣﴾ | وَلَمْ نَكُ |
| په دوزخ کښې | اوبه وائی هغوئ | نه وو مونږه | دمونځ کونکونه | اونه وو مونږه |
| دوزخ ته داخل کړئ | هغوئ به په جواب کښې اووائی | مونږ مونځ ګزار نه وو | | او مسکینانوته |
| نُطْعِمُ | الْمِسْكِيْنَ ﴿٤٤﴾ | وَكُنَّا | نَخُوْضُ | |
| چې ډوډئ مو ورکړې وې | مسکینانوته | او وو مونږه | چې مشغولیدو به مونږه | |
| به مو خوراک نه ورکولو | او په عبثو خبرو او کارونو کښې مشغولیدونکو سره مونږ هم | | | |
| مَعَ الْخَآئِضِيْنَ ﴿٤٥﴾ | وَكُنَّا | نُكَذِّبُ | بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿٤٦﴾ | |
| دحق خلاف مشغولیدونکو سره | او وو مونږه | چې دروغ به مو ګنړو مونږه | ورځې دقیامت لره | |
| مشغولیدو | ........................ | اومونږ به د جزاء ورځې (قیامت) ته دروغ ونیل | | |
| حَتّٰى | اَتٰىنَا | الْيَقِيْنُ ﴿٤٧﴾ | فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ | |
| تر دې پورې | چې راغې مونږ ته | هغه څیز یقینی (مرګ) | پس هیڅ فائیده به ورنه کړی هغوئ له | |
| تردې چې مرګ راباندې راغلو | | | نو داسې خلقو ته به دسفارشیانو سفارش هیڅ فائده اونه رسوی | |

[1] كتاب الصلاة لمحمد بن نصر: ۲٦٠.

| الشَّفِعِينَ ﴿٤٨﴾ | فَمَا لَهُمْ | عَنِ التَّذْكِرَةِ | مُعْرِضِينَ ﴿٤٩﴾ |
|---|---|---|---|
| سفارش دسفارش کونکو | پس څه شوي دي دوئ لره | چې د نصيحت نه | مخ اړونکي دي |
| نو په دوئ څه شوي دي | چې د نصيحت نه مخ اړوي؟ | | |

| كَأَنَّهُمْ | حُمُرٌ | مُّسْتَنفِرَةٌ ﴿٥٠﴾ | فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾ | بَلْ يُرِيدُ | كُلُّ امْرِئٍ | مِّنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دوئ داسې دي لکه | خره | تښتيدونکي وي | دشرمخ نه | بلکه غواړي | هر سړی | ددوئ نه |
| لکه چې دوئ (ځنګلي) خره دي | چې د زمري نه تښتي | خبره داده چې په دوئ کښې هر کس دا غواړي | | | | |

| أَن يُؤْتَىٰ | صُحُفًا | مُّنَشَّرَةً ﴿٥٢﴾ | كَلَّا | بَلْ لَّا يَخَافُونَ | الْآخِرَةَ ﴿٥٣﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ورکړې شي هغه ته | صحيفي (خط) | غوړيدلي | هر ګز نه | بلکه نه يريږي دوئ | داخرت نه |
| چې هغه ته دې پرانستلي صحيفي ورکړې شي | دانه شي کيدې | خبره دا ده | چې دوي داخرت نه نه ويريږي | | |

| كَلَّا | إِنَّهُ | تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾ | فَمَن | شَاءَ | ذَكَرَهُ ﴿٥٥﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| هر ګز نه | بيشکه دا | يو نصيحت دې | پس هغه څوك | چې غواړي | نصيحت د حاصل کړي ددې نه |
| خبردار دا (قران) خو نصيحت دې | نو څوک چې غواړي له دې (کتاب) نه نصيحت واخلي | | | | |

| وَمَا يَذْكُرُونَ | إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ | هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ |
|---|---|---|
| او نصيحت نشي حاصولي دوئ | مګر هغه چې اوغواړي الله | هغه لائق دې ددې چې يره تر اوشي |
| او نصيحت خودوی هله حاصلوی شي | چې الله اوغواړي | هم هغه ذات د ويرې لائق دې (چې ويره ترې اوشي) |

| وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾ |
|---|
| او خاوند دې دبښنې (متقيانو لره) |
| او هم هغه دبښنې خاوند دې |

**قوله تعالى:- كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ ﴿٣٨﴾**

**هرنفس به په خپل عمل نيولې کيږی:** الله تعالى خبرورکوی چه هرسړی به د قيامت په ورځ په خپل عمل کښې اينختې اوګيروی. خوچه دچاپه ښي لاس کښې عمل نامه راغلې وی هغوی به د جنت په بالا خانو کښې په آرام سره ناست وی دوزخيان به په خرابوعذابونو کښې کتلوسره د هغوی نه تپوس کوی چه تاسودلته څنګه راورسيدئ؟هغوی به جواب ورکړی چه نه مونږ درب عبادت کړې اونه مو مخلوق سره احسان کړې بغيرد علم نه چه څه په ژبه راتلل راويستل مو. که څوك مو په اعتراض کولو ليدل نو مونږ به هم ورسره کيدلو اوخبرې به موجورولې اود قيامت د ورځې تکذيب موکولو تردې چه مرګ راغلو د يقين معنی مرګ هم په دې آيت کښې هم ده. ﴿وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ﴾ يعنی د مرګ د وخت پورې د الله ﷻ په عبادت کښې لګيااوسه اود حضرت عثمان بن مظعونؓ د مرګ په نسبت حديث کښې هم د يقين لفظ راغلې دې. [1] اوس الله تعالى فرمائی چه داسې خلقو ته به د چا سفارش او شفاعت فائده ورنه کړی ځکه چه شفاعت هله فائده مندوی کوم ځائی چه دشفاعت محل يعنی ځائی وی خوچه د چا سره هم په کفر باندې وتلې وی دهغوی د پاره شفاعت چرته دې؟هغوی به دهميشه دپاره هاويه ته ځي.

[1] صحيح بخاری کتاب الجنائزباب دخول علی الميت بعد الموت اذا درج فی الکفاله: ۱۲۴۳.

بيا فرماني څه خبره ده؟ څه وجه ده؟ چه دا کافرانو ستاد دعوت اونصيحت نه مخ اړوي اودقران او حديث نه داسې تختي لکه خنګلي خرچه د ازمرې نه تختي په فارسي ژبه کښې چه کوم ته شيرواني په عربي ژبه کښې هغې ته اسدواني اوحبشي ژبه کښې قسوره وائي اوپه نبطي ژبه کښې ورته اوبا. بيا فرماني چه دامشرکان خوغواړي چه په دوی کښې په هريوسړي باندې خان له خان له کتاب نازل شو لکه چه يو بل ځاي کښې د هغوی مقوله ده ﴿حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ مَآ اُوْتِىَ رُسُلُ اللّٰهِ﴾ يعني چه کله هغوی له يوآيت راځي نوواني چه مونږ خو به هيڅ کله هم ايمان راونړو ترکومې چه هغه رانه کړې شي کوم چه د الله تعالى رسولانوته ورکړې کيدې شي. الله تعالى ته ښه علم دې چه د رسالت قابل څوك دی؟ اودا هم مطلب کيدې شي چه مونږ ته بغيرد څه عمل نه خلاصې راکړې شي.[1] الله تعالى فرماني چه اصل کښې وجه داده چه د دوی د آخرت ويره هډو نشته ځکه چه د دوی دايقين هم نه دې په دې باندې ايمان نشته بلکه دا دروغ ګڼړي نو ويرېږي به ولې؟ بيا فرماني چه رښتيا خبره داده چه دا قرآن پاك خوصرف نصيحت او موعظت دې چه څوك غواړي عبرت دې حاصل کړي او نصيحت دې واخلي لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَا يَذْكُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ يعني ستاسوغوښتنې دې د الله تعالى دغوښتنې تابع شي بيا فرماني د هغه ذات د دې قابل دې چه د هغه دې اوويرېږي او هغه داسې دې چه د هررجوع کونکي توبه قبلوي. مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ ددې آيت تلاوت اوکړو او وئې فرمائيل ستاسو رب فرماني چه زه د دې حقدار يم چه مانه اوويريږئي اوماسره دې دويم معبود اونه ګرځولې شي څوك چه زماسره دشريك جوړولونه بچ شوهغه خوزمادبښنې حقدار شو.[2] ابن ماجه ترمذي اونسائي وغيره کښې دا حديث هم دې اوامام ترمذي رحمه الله دې ته حسن غريب وائي. سهيل د دې راوي قوی نه دې.

د الله تعالى په احسان سره د سورت مدثر تفسيرهم ختم شو.

| اياتونه | | | سورة القيامة مکية وهي اربعون اية وفيها رکوعان | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | | |
| ۴۰ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | | ۲ |

لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۝۱ وَلَآ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ۝۲

نه | زه قسم خورم | په ورځ دقيامت | اونه | زه قسم خورم | په نفس | ملامته کونکې باندې |

زه دقيامت په ورځ قسم خورم او زه په هغه نفس قسم خورم چې په بدئ ملامته کونکې دې

اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَلَّنْ نَّجْمَعَ عِظَامَهٗ ۝۳ بَلٰى قٰدِرِيْنَ

ايا ګمان کوي | انسان | چې مونږ به راجمع نکړې شو | هډوکي دهغه | ولې نه | قادر يو مونږه |

ايا انسان داخيال کوي چې مونږ به دهغه هډوکي راجمع نکړو | ضرور به ئې راجمع کړو | مونږخو په دې قادريو

عَلٰٓى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ ۝۴ بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ

په دې چې برابر کړو مونږه | بندونه دګوتو دهغه | بلکه اراده لري | انسان | چې ګناه کوي |

چې د هغه دګوتو بندونه هم برابر کړو |......بلکه انسان دا غواړي | چې اننده دې هم بد عملونه کوي

[1] الطبري: ۲۴/۲۴.
[2] احمد: ۱۴۲/۳، ترمذي كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة المدثر: ۳۳۲۸، ابن ماجه: ۴۲۹۹، مسندابي يعلى: ۳۳۱۷، حاكم: ۵۰۸/۲.

| اَمَامَهٗ | يَسْـَٔلُ | اَيَّانَ | يَوْمُ الْقِيٰمَةِ | فَاِذَا | بَرِقَ الْبَصَرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| انينده دپاره | تپوس كوى | چې كله به وى | ورځ دقيامت | پس هر كله چې | او بريښى ستركې |

...... دقيامت د ورځې تپوس كوى چې كله به وى| په كومه ورځ چې ستركې سپينې اوتښتي

| وَخَسَفَ الْقَمَرُ | وَجُمِعَ الشَّمْسُ | وَالْقَمَرُ | يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ | يَوْمَىِٕذٍ |
|---|---|---|---|---|
| او توره شى سپوږمۍ | او يوځاى كړې شى نمر | او سپوږمۍ | اوبه وائى انسان | په دغه ورځ |

او سپوږمۍ بې نوره شى | اونمر اوسپوږمۍ په يو حال كښې شى| نو انسان به په دغه ورځ وائى چې

| اَيْنَ الْمَفَرُّ | كَلَّا | لَا وَزَرَ | اِلٰى رَبِّكَ | يَوْمَىِٕذِ | الْمُسْتَقَرُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې چرته دې ځاى دتيښتې | هر گز نه | نشته ځاى دپناه | رب ستا ته | په دغه ورځ | ځاى دقرار دې |

كوم خوا اوتښتم انه ، اوس د پناه هيڅ ځاى نشته| په دغه ورځ ستا د رب نه سوا بل ځاى كښې پناه نشته

| يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ | يَوْمَىِٕذٍ | بِمَا | قَدَّمَ |
|---|---|---|---|
| خبر به وركړې شى انسان ته | په دغه ورځ | په هغې | چې مخكښى ئې ليږلې وى |

په دغه ورځ به انسان ته خپل وړاندينى او روستنى ټول عملونه پيش كړې شى

| وَاَخَّرَ | بَلِ الْاِنْسَانُ | عَلٰى نَفْسِهٖ | بَصِيْرَةٌ | وَّلَوْ اَلْقٰى |
|---|---|---|---|---|
| اوروستو ئې پريښى وى | بلكه انسان به | په نفس خپل باندې | ليدونكې وى | اگر كه پيش كړى هغه |

بلكه انسان به پخپله هم په خپل حالت باندې گواه وى | ........... اگر كه بهانې لټوى

| مَعَاذِيْرَهٗ | لَا تُحَرِّكْ | بِهٖ | لِسَانَكَ | لِتَعْجَلَ | بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| عذرونه خپل | مه خوزوه | په دې وحى | ژبه خپله | چې تلوار كوې | په يادولو ددې |

............(اې رسول ﷺ) ته د قران په لوستلو كښې د زر ونيلو دپاره خپلې ژبې ته حركت مه وركوه|

**قوله تعالى:-لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ**

**دقيامت قسم:** داخوځل تيرشوى دى چه په كوم ځيزباندې قسم اوخوړلې شى نوكه هغه د ردكولوځيز وى نودقسم نه اول دلا كلمه دنفى دتاكيددپاره راوړل جائزكيږى.دلته دقيامت په كيدوباندې اود جاهلانو د دې قول په ترديدباندې چه قيامت به نه كيږى قسم خوړلې شى نوفرمانى چه قسم دې د قيامت په ورځ اوقسم دې د ملامت كونكى ځان. حضرت حسن رحمه الله خو فرمانى چه د قيامت قسم دې اود ملامت كونكى نفس قسم نه دې. حضرت قتاده رحمه الله فرمانى چه د دواړوقسم دې[1]د حسن رحمه الله او اعرج رحمه الله قراءت ﴿لَاُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ دې.دې سره هم دحسن رحمه الله دقول تائيد كيږى خكه چه د هغه په نيزداولنې قسم دې اوددويم نه دې خوصحيح قول هم دغه دې چه د دواړوقسم خوړلې شوې دې.لكه چه د حضرت قتاده رحمه الله بيان دې. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت سعيدبن جبير رضي الله عنه نه هم دا روايت دې او د امام ابن جرير رحمه الله مختارقول هم دغه دې. د قيامت ورځ خو هرسړې پيژنى.

[1] الطبرى:۴۸/۲۴.

قوله تعالى:- وَلَآ أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ﴿٢﴾
قسم دې د نفس لوامه: په نفس لوامه کښې د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روايت دې چه دې نه مراد د مؤمن نفس دې چه هغه هروخت خپل ځان ملامت کوی چه داسې دې ولې اوونيل؟دادې ولې اوخوړلو؟ داخيال په زړه کښې ولې راغلو؟اوفاسق اوفاجر غافل وی په هغه باندې څه شوی دی چه خپل نفس ملامت کړی(١) داهم روايت دې چه د زمکې اوآسمان ټول مخلوق به خپل ځان ملامت کوی. دخيروالا به دخيرپه کمی اود شروالا به د شر په کيدو باندې. داهم ونيلی شوی دی چه دې نه مرادمذموم نفس دې چه نافرمان وی په پاتې کيدونکی باندې پښيمانه اوپه دې باندې ملامته کونکې. امام ابن جرير رحمه الله فرمائی چه دا ټول اقوال نيزدې نيزدې دی مطلب دا دې چه دا هغه نفس والا دې چه د نيکئی په کمی باندې او د بدئی په کيدوباندې نفس ملامت کوی او په فوت شوی باندې پښيمانتيا کوی. بيا فرمائی چه انسان دا سوچ کړې دې چه مونږ به د قيامت په ورځ د هغوی د هډوکو په راجمع کولوباندې قادر نه يو. داخو ډير غلط خيال دې مونږ به دا د جدا جدا ځايونونه راجمع کوو اوبيا به ئې اودرو اودا به پوره پوره جوړوو. حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغيره فرمائی چه مونږ قادر يو چه دوی د اوبښ يا اس د تلی په شان جوړکړو. امام ابن جرير رحمه الله فرمائی چه که په دنيا کښې مونږ غوښتلې نو دوی به مو هم داسې جوړکړې وی. د آيت دلفظونو نه خوپه ظاهره هم دا معلوميږی چه ﴿قَٰدِرِينَ﴾ حال دې د ﴿نجمع﴾ نه يعنی انسان آيا داګمان کوی چه مونږ به د هغه هډوکی راجمع نه کړې شو؟ او مونږ ئې ډيرزر راجمع کړو مونږ د دې د راجمع کولوقدرت لرو بلکه که مونږ غواړو نو څومره چه دې وو نود هغې نه به ئې هم څه زيات جوړکړو راوچت به ئې کړو. د دوی دګوتوسرونه به برابرکړو دابن قتيبه رحمه الله اوزجاج رحمه الله د قول هم دغه معنی ده.

قوله تعالى:- بَلْ يُرِيدُ الْإِنسَٰنُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُۥ ﴿٥﴾
د انسان اعمال: بيافرمائی چه الله ﷻ خپلې مخې ته فسق اوفجورکول غواړی يعنی قدم په قدم وړاندې کيږی وائی چه ګناه خوکوم توبه به هم اوباسم. د قيامت ورځ کومه د هغه په وړاندې ده د هغې نه کفرکوی اوهغه ئې په خپل سر به سوره ده وړاندې روان دې هروخت هم دغه وينی چه يوقدم به خپل نفس دالله تعالی د ګناه طرف ته وړاندې کوم خو چه په چا باندې د رب رحم دې. د اکثروسلفوقول د دې آيت په تفسير کښې هم دغه دې چه په ګناهونوکښې تندی کوی اوتوبه کښې تاخيرکوی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی د حساب د ورځ نه انکاری دې ابن زيد رضی الله عنه هم دغه وائی اوهم دا ډير ښه مطلب دې ځکه چه هم دې نه پس دی چه هغوی تپوس کوی قيامت به کله راځي؟د هغوی دا سوال هم د انکارپه توګه دې داخوپيژنی چه دقيامت راتلل محال دی بل ځائی ارشاددې ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ وائی چه کد ته رښتونې ئې نو اوښايه چه قيامت به کله راځي؟ دوی ته اووايه چه د هغې يو ورځ مقرر ده دکومې نه چه نه تاسويوساعت وړاندې کيدې شئی نه روستوکيدې شئی. دلته هم فرمائی چه کله مو سترګې بقې پاتې شی لکه چه بل ځائی ارشاددې ﴿لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۖ وَأَفْـِٔدَتُهُمْ هَوَآءٌ﴾ يعنی بانړه به ئې ريږی نه بلکه درعب اوددهشت دوجه به ئې سترګې بقې نيولې اخواديخوابه ګوری. د ﴿بَرِقَ﴾ دويم قرائت ﴿بَرَقَ﴾ هم دې معنی نيزدې نيزدې دې اود سپوږمئی رانړابه بالکل ختمه شی اونمر سپوږمئی به راجمع کړې شی يعنی دواړه به بې نوره کړې شی او راغونډبه کړې شی لکه چه فرمان دې ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴿١﴾ وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ ﴿٢﴾﴾
دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښې ﴿وجمع بين الشمس والقمر﴾ دې انسان چه کله دا پريشان شوې او د ويرې اود دنيا د انتظام دا خطرناک حال اووينی نوتختئی به او وائی به چه د پناه ځائی کوم ځائی دې؟

---
(١) تفسير قرطبی: ١٩/٩٣.

د الله تعالى د طرف نه به جواب ملاوېږي چه هيڅ پناه نشته درب ورانديې اوهغه سره د اودريدونه بغير بله هيڅ لار نشته.لکه چه بل ځائې ارشاد دې ﴿مَا لَكُم مِّن مَّلْجَإٍ يَوْمَئِذٍ وَمَا لَكُم مِّن نَّكِيرٍ﴾ يعنى نن نه يوځائى د پناه شته اونه داسې يوځائى شته چرته چه تاسو لاړشئى اوتاسو بې انجام او بې پيژندګلو شئى. نن به هر سړى ته د هغه وړاندې روستو لوئ واړه نيوى اوزاړه ټول اعمال وروړاندې کړې شى. لکه چه ارشاد دې ﴿وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا﴾ يعنى چه څه ئې کړې وو هغه به اووينى اوستارب به په چا باندې ظلم نه کوى.
انسان خپل ځان ډير ښه پيژنى د خپلوعملونوپخپله آئينه ده سره د دې که انکارکوى ياعذر اومعذرت کوى ګرځى.
لکه چه ارشاد بارى تعالى دې﴿ اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴾ خپله عمله نامه پخپله اولوله او خپل ځان هم پخپله اوګوره.دهغه غوږونه سترګې لاسونه پښې اونوراندامونه به هغه د ګواهئى د پاره کافى دى. خوافسوس چه دې د نورو عيبونه او نقصانونه ګورى اود خپل ځان نه غافله دې. ونيلى شى په توراة کښې ليکلى دى اې بنيادمه ته خود نورو دسترګوډکې وينې اودخپلوسترګو پوره تير تاته نه ښکارى؟دقيامت په ورځ به انسان فضول بهانې جوړکړى اوددروغودليلونه به وړکوى اوبې کاره عذرونه به پيش کړى يويه هم نه شى قبلولې.ددې آيت يوه معنى داهم کړې ده چه هغه به پردې راواچوى اهل يمن پردې ته عذار وائى خوصحيح معنى دپاسه ده لکه چه بل ځائې ارشاد دې يومعقول عذريه ورسره نه وى نود خپل شرك نه به د سر نه انکار اوکړى چه د الله تعالى قسم مونږ خو د سره مشرکان نه وو. بل ځائې دى چه د قيامت په ورځ به هم د الله تعالى په وړاندې قسمونه خوړلوسره به خپل ځان رښتونى ثابتول غواړى لکه څنګه چه په دنياکښې دهغوى ستاپه وړاندې حال دې ولې الله تعالى ته خود هغوى دروغ ښکاره دى که هغوى خپل ځان هرڅه ګڼړى. غرض دا چه عذر معذرت به د قيامت په ورځ دهغوى هيڅ په کار رانه شى لکه چه بل ځائې فرمائى﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَعْذِرَتُهُمْ﴾ ظالمانو ته به د هغوى معذرت هيڅ کار ورنه کړى دوى به د خپل شرك سره دخپلو ټولوبدعملوانکار اوکړى خوبې فائدې.

| لَا تُحَرِّكْ | بِهِ | لِسَانَكَ | لِتَعْجَلَ | بِهِ ۞ |
|---|---|---|---|---|
| مه خوزوه | په دې وحى | ژبه خپله | چې تلوار کوې | په يادولو ددې |

(اے رسول ﷺ) ته د قران په لوستلو کښې د زر ونيلو دپاره خپلې ژبې ته حرکت مه ورکوه

| إِنَّ عَلَيْنَا | جَمْعَهُ | وَقُرْآنَهُ ۞ | فَإِذَا قَرَأْنَاهُ | فَاتَّبِعْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه په مونږ دى | جمع کول ددې | او لوستل ددې | پس هر کله چې لولو مونږ دا | پس پيروى کوه |

ددې رايوځائې کول اوتاته لوستل زمونږ په ذمه دى| نو چې مونږ ئې (تاته) ولولو نو ته

| قُرْآنَهُ ۞ | ثُمَّ | إِنَّ عَلَيْنَا | بَيَانَهُ ۞ | كَلَّا |
|---|---|---|---|---|
| دلوستلو ددې | بيا | بيشکه زمونږه ذمه ده | بيان(يعنى مطلب درښودل) ددې | هر ګز نه |

د هغې پيروى کوه|........ بيا (خلقو ته ) د هغې بيانول هم زمونږ په ذمه دى |............مګر

| بَلْ تُحِبُّونَ | الْعَاجِلَةَ ۞ | وَتَذَرُونَ | الْآخِرَةَ ۞ | وُجُوهٌ | يَوْمَئِذٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| بلکه تاسو خوښوئ | زر حاصليدونکې دنيا | او پريږدئ | اخرت | خينې مخونه به | په دغه ورځ |

تاسو خلق دنياسره محبت کوئ | اواخرت موپريښې دې | ..................ډير مخونه به په دغه ورځ

| نَّاضِرَةٌ | اِلٰى رَبِّهَا | نَاظِرَةٌ | وَوُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍۭ | بَاسِرَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| تازه وي | رب خپل ته به | کتونکی وي | او ځيني مخونه به | په دغه ورځ | غمگين وي |
| تازه وي | خپل رب ته به گوري | .................. | اوډير مخونه به په دغه ورځ بې رونقه وي | | |

| تَظُنُّ | اَنْ يُّفْعَلَ | بِهَا | فَاقِرَةٌ |
|---|---|---|---|
| گمان به کوي (پوهه به وي) | چې کيږي به | په دغه مخونو باندې (دهغوئ سره) | سخت سلوك |
| دوئ به خيال کوي | چې دوئ سره به داسې سختي کولې شي | چې ددوئ ملا به ماته کړي | |

**قوله تعالى:-لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴿﴾ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ﴿﴾**

**قرآن پاك لوستل او يادول:** دلته الله تعالى ﷻ خپل نبي کريم ﷺ ته تعليم ورکوي چه دفرښتې نه څنگه وحي واخلي حضورﷺ به دهغې په اخستلوکښې ډيره تندي کوله اوبه قراءت کښې به فرښتې سره بالکل يوشان وو.نوالله ﷻ حکم فرمائي چه کله فرښته وحي راوړي راشي نو ته صرف اوره اوبيا د کومې ويرې چه ته داسې کوې د دې خبرې بابت تسلي ورکوي چه ستا په سينه کښې جمع کول او په خپل وخت ستا د ژبې نه لوستل دا زمونږ په ذمه دي دغه شان دا واضح کول او د دې تفسير او بيان ستانه کول داهم زمونږ په ذمه دي.نواولنې حالت خو يادول بيا تلاوت کول بيا تفسير مضمون وضاحت اومطلب بيانول د دې دريواړوکفالت الله تعالى په خپله ذمه اخستې دی لکه چه بل ځائې ارشاددې﴿ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰۤى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ﴾يعني ترکومې چه تاسره پوره وحي رانه شي نو ته په لوستلوکښې تندي مه کوه زمونږ نه دعا غواړه چه زما ربه زما علم زيات کړې. بيافرمائي چه دا ستا په سينه کښې جمع کول اودا په تا باندې لوستل په مونږ دی کله چه مونږ دا اولولو يعني زمونږ نازل کړې شوې فرښته دا تلاوت کړي نوته اوره چه کله هغه اولولي نو بيائي ته وايه زمونږ په مهربانئ سره به تاته پوره يادوی. دومره هم نه بلکه د حفظ کولو اوتلاوت کولونه پس مونږ به تاته د دې معنې مطلبونه په ښکاره والي او وضاحت سره پوهه کوو دې دپاره چه زمونږ اصلي مراداو صفاشريعت باندې ته پوره شان سره خبرشې.

مسندکښې دی چه حضورﷺ ته د دې نه وړاندې په وحی اخستوکښې ډير سخت تکليف کيدلواود دې ويرې چه چرته زه ئې هيرنه کړم فرښتې سره سره به ئې لوستلو اود حضورﷺ شونډمبارکې به خوزيدلې. ابن عباس رضي الله عنه راوی حديث خپلې شونډاوخوزولې او وئې خودلې چه داسې اود هغه شاگرد سعيد رضي الله عنه به هم د خپل استاذ په شان شونډې خوزولې او خپلوشاگردانوته به ئې خودلې. په دې باندې دا آيت نازل شو چه دومره تندي مه کوه او خپلې شونډې مه خوزوه. دا ستا په سينه کښې جمع کول او په تاباندې تلاوت کول زمونږ په حواله دی بخاری او مسلم کښې هم دا روايت دې [1] اوبخاری کښې داهم دی چه کله به وحي نازليدله نوحضورﷺ به سترگې مبارکې ښکته کړې وې اوچه کله به نازل شوه نو حضورﷺ به لوستلو[2]ابن ابی حاتم کښې هم د ابن عباس رضي الله عنه په روايت سره نقل دی اوډيرومفسرينو او سلفو صالحينوهم دافرمائيلي دي.داهم روايت دې چه حضورﷺ به هروخت تلاوت کولوداسې نه چه زه ئې هير نه کړم په دې باندې دا آياتونه نازل شو.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت عطيه عوفی رحمه الله فرمائي د دې بيان په مونږ باندې دې يعني حلال او حرام واضح کول. د حضرت قتاده رحمه الله هم دا قول دې. بيا فرمان کولې شی چه دې کافرانو د قيامت نه

---

[1] احمد:۳۴۳/۱، صحيح بخاری کتاب بدء الوحي باب کيف کان بدء الوحي الى رسول الله ﷺ، صحيح مسلم:۴۴۸، ترمذی:۳۳۲۹.

[2] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة القيامة (فاذا قرانه فاتبع قرآنه):۴۹۲۹.

انکار کول اود الله تعالی پاك کتاب نه منل اود الله تعالی د عظیم الشان رسول ﷺ تابعداری نه کولو باندې اماده کونکې څیز چه کله دنیا اوآخرت پریخودل دی سره د دې چه د آخرت ورځ ډیره د اهمیت والا ورځ ده. په دې ورځ به ډیر خلق خو داسې وی چه د هغوی مخونه به ډیر خوشحاله تروتازه وی اود خپل رب په دیدار باندې به مشرف کیږی لکه چه صحیح بخاری کښې دی چه ډیر زر به تاسو خپل رب صفاصفا اوښکاره په ښکاره خپلې مخې ته اوګورئی په ډیرصحیح حدیث اومتواتروسندونو سره کوم چه داحادیثو آئمه په خپلوکتابونو کښې وارد کړې دې ثابته شوې ده چه ایماندار به قیامت په ورځ د خپل رب په دیدارباندې مشرف کیږی. دا احادیث خو به نه څوك اخواکړې شی اونه به ددې نه انکار اوکړې شی.

صحیح بخاری اوصحیح مسلم کښې دحضرت ابوسعید ؓ اوحضرت ابوهریره ؓ نه روایت دې چه خلقوتپوس اوکړو یارسول الله ﷺ مونږ به خپل رب دقیامت په ورځ وینو؟حضور ﷺ اوفرمائیل چه نمر او سپوږمئی کتلوکښې چه کله آسمان صفاوی اواوریځ اوګرد نه وی څه رکاوټ یارش وغیره وی؟هغوی ونیل نه.حضور ﷺ اوفرمائیل دغه شان به تاسو الله تعالی وینئی.[1] بخاری اومسلم کښې دحضرت جریر ؓ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ دڅوارلسمې شپې سپوږمئی اوکتله اوونی فرمائیل تاسو به دغه شان خپل رب وینئی څنګه چه دا سپوږمئی وینئی. نوکه تاسو نه کیدې شی د نمرد راښتلونه وړاندې مونځ (یعنې د سحرمونځ) اود نمر د ډوبیدونه اول مونځ (یعنی دمازیګر مونځ) کښې هیڅ شان سستی مه کونې.[2] دابوموسی ؓ نه هم په دې دواړومتبرك کتابونو کښې روایت دې رسول الله ﷺ فرمائیلی هغه جنتونه د سروزرو دی د هغه ځائی لوښی لرګی هرڅه د سرو زرودی. دوه جنتونه د سپینوزرودی او د هغې لوښی لرګی ټول د سپینوزرو دی.د دې جنتونو او الله تعالی د دیدار په مینځ کښې به صرف د لوئې د څادرونونه بغیر بل هیڅ نه وی. دا د جنت عدن ذکردې.[3]

د صحیح مسلم په حدیث کښې دی چه کله جنتی جنت ته اورسی نو الله تعالی به د هغوی نه معلومه کړی که څه غواړئی نوچه زیات کړم؟هغوی به وائی الله تعالی تازمونږ مخونه سپین نورانی کړی مونږ دې جنت ته اورسولود دوزخ نه دې بچ کړو اوس مونږ ته د څه ضرورت دې؟هم هغه وخت به پردې اوچتې کړې شی اوددې جنتیانو سترګې به د الله ﷻ په جمال باندې منورې شی په دې کښې چه هغوی ته کوم خوند اومزه ورحاصله شی هغه به په هیڅ څیز کښې نه حاصلیږی. د ټولونه زیات محبوب او خوښ څیز به هغوی ته د الله ﷻ دیدار وی.هم دا په دې آیت کښې په لفظ ﴿زِيَادَةٌ﴾ سره تعبیرکړې شوې دې. بیاحضور ﷺ دا آیت اولوستلو ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ﴾ یعنی احسان کونکوته به جنت هم ملاویږی او د الله تعالی دیدارهم.[4]

صحیح مسلم کښې د حضرت جابر ؓ والا روایت کښې دی چه الله تعالی به په مؤمنانوباندې په میدان حشر کښې په مسکی کیدوسره تجلی اوفرمائی[5] نومعلومه شوه چه ایماندار به د قیامت په عرصاتو کښې اوجنتونو کښې د الله تعالی په دیدار باندې مشرف کولې شی. د مسنداحمد په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه د ټولو نه د کمې درجې والا جنتی به خپل ملکیت ته دوه زره کالوپورې ګوری د لرې اونیزدې څیزونه به ورته یوشان ښکاری هرطرف او هرځائی به د هغه بیبیانې او خادمان په نظر

---

[1] صحیح بخاری کتاب التوحیدباب قول الله تعالی ﴿وجوه یومئذ ناضرة﴾:۷۴۳۷، صحیح مسلم:۱۸۲، احمد:۲/۲۹۳، ابن حبان:۷۴۲۹.
[2] صحیح بخاری حواله سابق:۷۴۳۴، صحیح مسلم:۶۳۳، ابن حبان:۷۴۴۳.
[3] صحیح بخاری حواله سابق: ۷۴۴٤، صحیح مسلم: ۱۸۰،ترمذی:۲۵۲۸،ابن ماجه:۱۸٦، احمد:٤/٤۱۱.
[4] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اثبات رؤیة المؤمنین فی الآخرة ربهم سبحانه وتعالی:۱۸۱.
[5] صحیح مسلمکتاب الایمان باب ادنی اهل الجنة منزلة فیها:۱۹۱.

راخي اود اوچتې درجې جنتي به يوه يوه ورځ دوه دوه ځل د الله تعالى مخ مباركويني[1] په ترمذى كښې هم داحديث دې. داحديث په روايت دحضرت ابن عمر رضي الله عنه مرفوعاً هم نقل دې. زمونږ ويره ده كه د دې قسم ټول احاديث روايتونه اودهغې سندونه اودهغې مختلف الفاظ دلته راجمع كړې شي نو مضمون به ډير اوږدشي.ډير صحيح او حسن احاديث په مسنداود سنتو په كتابونوكښې روايت دى په كومو كښې چه اكثر زمونږ په دې تفسيركښې په مختلفومقاماتوكښې هم راغلى دى.اوتوفيق د الله تعالى په قدرت كښې دې. د الله تعالى شكر دې چه په دې مسئله كښې يعنى د الله تعالى په ديدار كښې مؤمنانوته دقيامت په ورځ نصيب كيدوكښې د صحابه كرامو رضي الله عنهم تابعين رحمهم الله اودامت د اسلافو په اتفاق سره اجماع ده.

أئمه حضرات او بزرگان دين په دې باندې متفق دى چه كوم خلق د دې تاويل كوى اووائى چه دې نه مراد دالله جل جلاله نعمتونه كتل دى لكه څنګه چه د مجاهد رحمه الله اوابوصالح رحمه الله نه په تفسيرابن جريركښې روايت دې دهغوى قول د حق نه لرې اوسراسر د تكلف نه ډك دې. هغوى سره د دې آيت څه جواب دې كوم چه د بدكارانو باره كښې فرمانيلې شوې دې ﴿كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ﴾ يعنى فاجران به د قيامت په ورځ د خپل پروردګار نه په پرده كښې كولې شى. حضرت امام شافعى رحمه الله فرمانى چه د فاجرانو د الله جل جلاله ددېدار نه محروم پاتې كيدلوصفامطلب هم دادې چه ابرار يعنى نيكان خلق به دالله جل جلاله په ديدارباندې خروب كولې شى او د متواترواحاديثونه ثابت شوى دى اوهم په دې باندې د دې آيت د الناظروانى صفادلالت كوى چه ايماندار به د الله تعالى په ديدارباندې خوشحاليږى.حضرت حسن رحمه الله فرمانى چه دوى به د ښكلى اوښائسته مخونووالا وى څكه چه د رب په ديدار باندې به د هغوى نظر پريوځى نوبيا به دوى منور اوښكلې ولې نه وى. اوډير مخونه به په هغه ورځ وران شوى وى بد شكله كيږى به بدرنګ او خفه به وى د هغوى به دايقين وى چه په مونږ به اوس د الله تعالى هلاكت او د هغه راګيرول راشى اوس به مونږ ته د دوزخ د تلوحكم اوشى. لكه بل ځائى چه ارشاد دې ﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾ يعنى په هغه ورځ به بعضې مخونه تك سپين ښائسته او ښكلې وى اوبعضې به د تور مخ والا وى بل ځائى دى ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ۝ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ۝ تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً ۝﴾ يعنى د قيامت په ورځ به ډير مخونه ويريدونكى بوګنيدونكى بدرنګه او ذليل وى كوم عمل چه نى كولو تكليف به اوچتوى خو نن به سوركړې شوى أوركښې ورننوځى الخ. بيافرمائى ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ۝﴾ يعنى بعضې مخونه به په هغه ورځ د نعمتونووالاخوشحاله تازه پرقيدونكى اوروښانه وى چه په خپلو تيرو اعمالوبه خوشحاله وى او په اوچتو جنتونوكښې به اوسيږى. هم د دې مضمون نورهم ډير آياتونه دى.

| كَلَّآ | إِذَا | بَلَغَتِ | التَّرَاقِيَ ۝ | وَقِيلَ | مَنْ ۜ | رَاقٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هرګز نه | كله چې | اورسيږى ساه | حلق (مرئ) ته | اواووئيلې شي | څوك شته | دم اچونكې |

البته څه وخت چې روح مرئ ته اورسيږى | او دا اووئيلې شى | چې څوک دم اچونكې شته؟

| وَظَنَّ | أَنَّهُ الْفِرَاقُ ۝ | وَالْتَفَّتِ السَّاقُ | بِالسَّاقِ ۝ | إِلَىٰ رَبِّكَ | يَوْمَئِذٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| او پوهه شي | چې بيشكه دا جدائي ده | او تاؤ شي پنډئ | دبلې پنډئ نه | رب ستا ته | په دغه ورځ |

اودې به ګمان اوكړى چه دا جدائى ده | اويوه پنډئ به د بلې پنډئ سره يوځائې شي | په دغه ورځ ستا

[1] ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة القيامة: ۳۳۳۰، احمد: ۱۳/۲، مجمع الزوائد: ۴۰۱/۱۰، مسند ابى يعلى: ۶۷۱۲، الشريعة للآجرى: ۶۳۱، البعث للبيهقى: ۴۷۷.

الْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ﴿٣١﴾ وَلٰكِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ﴿٣٢﴾

روانيدل دی | پس هغه نهٔ رښتيا اومنل | اونهٔ ئي مونځ اوکړو | ليکن دروغ اوګڼړو | او مخ ئي واړوؤ |

رب طرف ته روانيدل دي|بيا نه خوهغه تصديق اوکړو|اونه ئي مونځ اوکړو|بلکه (د الله حکمونه ئي) دروغ اوګڼړل|او مخ

ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ يَتَمَطّٰى ﴿٣٣﴾ اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿٣٤﴾

بيا لاړو | کوروالو خپلو ته | چې غرور ئي کوؤ | مناسب ده تالره | او هم ستا سره ښائي |

ئي واړولو| اوبيا خپل کورته په تکبر سره واپس روان شو | ستا دپاره تباهي ده |

ثُمَّ اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿٣٥﴾ اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَنْ يُّتْرَكَ

بيا مناسب ده تالره |او هم ستا سره ښائي دا طريقه |ايا ګمان کوی انسان اچې پرې به ښودې شي هغه

بيا ستادپاره تباهي پس ډيره تباهي ده |ايا انسان په دې خيال کښې پروت دې اچې دې به هسې بې کاره

سُدًى ﴿٣٦﴾ اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ يُّمْنٰى ﴿٣٧﴾ ثُمَّ كَانَ

بې مطلبه |ايا نهٔ وؤ هغه | يو نطفه | دمنئ نه | اچې اچولې کيږي په خيټه دمور کښې|بيا شوه هغه

پريخودې شي | آيا دې د منئ يو څاڅکی نه وو| چې (په رحم کښې) تونئ کړې شوه | اوبيا

عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوّٰى ﴿٣٨﴾ فَجَعَلَ

| يوه ټوټه دويني | بيا ئي جوړ کړو (بدن دهغه) | بيا ئي برابر کړه اندامونه دهغه | بيا ئي جوړ کړل

دويني يوه ټوټه شوه | نو الله ﷻ تري نه انسان جوړ کړو | او سم برابر ئي کړو| بيا ئي

مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ﴿٣٩﴾ اَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى

| دهغې نه | جوړې نر | او ښځه | آيا نهٔ دې | دغه ذات | قادر | په دې

د ده نه دوه جوړې يعنی سړې او ښځه جوړ کړل | آيا هغه ( الله ﷻ ) په دې قادر نه دې

اَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى ﴿٤٠﴾

| اچې ژوندی کړی | مړی |

چې مړی بيا راژوندی کړی

قوله تعالىٰ:- كَلَّآ اِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴿٢٦﴾

د عالم نزع ذکر:دلته د مرګ دسکراتو بيان کولې شي الله ﷻ دې په هغه وخت کښې مونږ په حق باندې کللك اوساتی(کلا)که دلته د رټلوپه معنی کښې واخستلې شي نودامعنی به وی چه اې بنيادمه تاچه دا زما خبرې دروغ ګڼړلې هغه صحيح نه دی بلکه د هغې مقدمات خو به تا روزانه ښکاره په ښکاره کتل.اوکه دالفظ د(حقا)په معنی کښې واخستلې شي نومطلب به نورهم زيات واضح شي يعنی داخبره يقينی ده کله چه ستا روح ستا د بدن نه اوخی اوستا د مرې پورې راورسی.(تراقی)جمع ده د(ترقوة) هغه هډوکو ته وائی چه د سينې اود اوږو په مينځ کښې دی کوم ته چه د مرنی هډوکې وائی لکه چه بل خائی راشاد دې (فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ ۙ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ۙ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ۝ فَلَوْلَآ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ۙ تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝) يعنی چه کله روح د حلق پورې راورسی او ته ګورې نومونږ تانه هم دې ته ډير نيزدې يوخو ته نه شی ليدلې.اوس که ته د الله تعالی د حکم ماتحت نه نی اوپه خپل قول کښې

رښتونې نې نوهغه روح ولې واپس نه راګرځوې؟په دې مقام باندې په دې حديث باندې هم نظر واچونې کوم چه د بشر بن حجاج په روايت سره د سورت يس په تفسير کښې تير شوې دې.(١) ﴿تراقي﴾جمع ده د ﴿ترقوة﴾ هغه هډوکې ته وائي کوم چه حلق ته نيزدې دې. دغه وخت کښې چغې صورې وهي چه چرته څوک دم والا نشته؟يعنې ديوطبيب وغيره سره شفا کيدلې شي اوداهم ونيلې شوي دی چه دا د فرښتو قول دې يعنې دا روح په څوک اخلې خيژی به د رحمت فرښتې ياد عذاب؟

قوله تعالىٰ:-وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ۝

اوښدنې په پنډنۍ سره د مړلويومطلب خوداابن عباس﷛ وغيره نه دا نقل دې چه دنيااوآخرت به ده باندې راجمع کيږی ددنياآخرى ورځ وی اودآخرت رومبنې ورځ وی په څه سره چه دسختنې دپاسه سختې کيږی خوچه په چاباندې درب رحيم کريم رحم اوکرم وی(٢)دويم مطلب دعکرمه نه دا روايت دې چه يوډير لوئ امر د يوبل ډير لوئ امرسره ملاويږی د بلاد پاسه بلا راځی. دريم مطلب دحضرت حسن بصری ﷫ نه دا روايت دې چه پخپله د مړکيدونکې دبې آرامنې اوسخت درددد وجه نه يوه پښه په بله باندې اچول مراد دی(٣)اول خو دې په دې پښوباندې ګرځيدو راګرځيدو خواوس په هغې کښې ساچرته ده؟اودا هم ونيلې شوی دی چه دکفن په وخت کښې يوه پنډنۍ دبلې سره ملاويدل مراد دی.

څلورم مطلب دحضرت ضحاک ﷫ نه دا روايت دې چه دوه کارونه دووطرفونوته جمع کيږی يو خوا خلق دهغه بدن ته غسل ورکولودپاره اوخاوروته سپارلودپاره تيارددی او ديخوافرښتې د هغه روح اوړلو کښې مشغول دی که نيک وی نو ښکلې تيارې په ښه شان سره اوکه بد وی نوبه ډير بد او خراب حالت سره.اوس د واپس کيدلو او پاتې کيدلو ځائې اوسيدلوځائې اود رسيدلوځائې ته تلل او رسيدلو ځائې هم دالله تعالی طرف ته دې. روح د آسمان طرف ته خيژی او بيا حکم کولې شي چه دا د زمکې طرف ته واپس اوګرځونې ما دا ټول هم د دې نه پيدا کړی دی اوهم دې ته به ئې واپس کوم اوبيابه ئې هم د دې نه واپس راوباسم.

لکه څنګه چه د براء﷛ په اوږد حديث کښې راغلی دی(٤)هم دا مضمون بل ځائې بيان شوې دې.﴿وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ﴾هم هغه په خپلوبندګانوباندې غالب دې هم هغه ستاسودحفاظت دپاره تاسوله فرښتې راليګی. تردې چه کله په تاسوکښې د چا د مرګ وخت راشی نوزمونږ ليګلې شوې فرښتې هغه وفات کوی اوهغوی هيڅ قصور نه کوی او بيا ټول په ټول د خپل رښتونی مولا طرف ته واپس کولې شی. يقين اوکړنی چه حکم هم د هغه چليږی اوهغه د ټولونه ډير زر حساب اخستونکې دې.

قوله تعالىٰ:- فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى۝

بيا د هغه کافرانسان حال بيانولې شي چه په خپل زړه او خپله عقيده د حق دروغ ګنړونکې اوپه خپل عمل د حق نه مخ اړونکې دې. د چا چه ظاهر اوباطن برباد شوې وو او په هغه کښې هيڅ ښيګړه باقی پاتې نه وه نه هغه د الله تعالی د خبروپه زړه سره تصديق کولو اونه په بدن باندې د الله تعالی عبادت پوره کولو تردې چه د مانځه هم غل وو. اوپه دروغ ګنړلو او مخ اړولوکښې بې باکه وو او په خپل دې ناکاره عمل به ئې فخر کولواو په خوشحالو سره بې همتئې او بدعملئې سره د خپل خان په شان خلقو سره به ملاويدلو. لکه چه بل ځائې فرمان دې ﴿وَاِذَا انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمُ انْقَلَبُوْا فَكِهِيْنَ۝﴾يعنې چه کله به د خپل خان په شان خلقوته واپس کيدلو نوښه خبرې جوړونکې مزې کونکې اوخوشحاله خوشحاله به تلو.

(١) ابن ماجه كتاب الوصايا باب النهى عن الامساك فى الحياة والتبذير عندالموت:٢٧٠٧وسنده صحيح، احمد:٤/٢١٠.

(٢) الطبرى:٢٤/٧٦.

(٣) ايضا:٢٤/٧٨.

(٤) اوګورنې سورت اعراف آيت: ٤٠.

بل ځائی ارشاد دی ﴿إِنَّهُ كَانَ فِيْ أَهْلِهِ مَسْرُوْرًا﴾ یعنی دخپل کوروالاکښې به خوشحاله وو او دانی گنړل چه د الله تعالی طرف خوهډووابس کیدل نشته. دهغه داخیال غلط وو د هغه د رب نظر په هغه باندې وو. بیا الله تعالی هغه خبردار کوی اوویره ورته اوروی اوفرمانی چه خرابی دې وی په تاته الله تعالی باندې کفرکولوسره بیا فخرکوې لکه چه بل ځائی ارشاد دی ﴿ذُقْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ﴾ دقیامت په ورځ به کافر ته د رټنې په توگه اوپه سپکاوی سره ونیلې شی چه واخله اوس مزه اوڅکه ته خودېردعزتدار او قدر مندوې.

یوبل فرمان باری تعالی دې ﴿كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا إِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ﴾ څه اوخوره ،وڅکه آخر ته بدکاره گناهګارنی بل ځائی دی﴿ فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ﴾ څه دالله ﷻ نه بغیرچه دچاغواړې عبادت کوه وغیره وغیره. غرض دا چه په دې ټولوځایونوکښې دا احکام دغصې اورټنې په توگه دی.دحضرت سعیدبن جبیر رضی الله عنه نه چه کله دا آیت ﴿أَوْلٰى لَكَ﴾ باره کښې تپوس اوکړې شونو هغه اوفرمائیل چه حضوراکرم ﷺ ابوجهل ته ونیلی وو بیا په قرآن پاك کښې هم دغه الفاظ نازل شو. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم د دې سره نیزدې نیز دې روایت په نسائی کښې موجود دې[1]ابن ابی حاتم کښې د قتاده رحمه الله روایت دې د رسول الله ﷺ په دې ارشاد باندې دې د الله تعالی دښمن اوونیل چه ته ماویروې؟ د الله تعالی قسم ته اوستا رب زما هیڅ هم نه شی کولې. د دې دواړوغرونوپه مینځ کښې تلونکې د ټولونه زیات د عزت خاوندهم زه یم. فرمائی چه آیاانسان داگنړی چه هغه به هم داسې پریخودې شی؟یعنی دمرگ نه پس به نی بیا راژوندې نه کړی؟ده ته به هیڅ حکم او د یوڅیز ممانعت نه شی کولې داسې هیڅ کله نه ده بلکه په دنیاکښې هغه ته حکم اوممانعت اوپه آخرت کښې دخپلو اعمالوبرابر بدله اوسزا ضرورملاویږی.دلته مقصد د قیامت ثبوت اودقیامت دمنکرانو رددې په دې وجه ددلیل په توگه ونیلی شی چه انسان دنطفه په شکل کښې بې سا او بې بنیاده وو د اوبویوذلیل ځاڅکې وو چه د شانه رحم ته راغلو.بیا د وینې یو چکنی جوړه شوه بیا د غوښې یوه ټکړه شوه بیا الله تعالی شکل اوصورت ورکړواو روح نی په کښې پوك وهلو اود پوره اندامونو بنیادم نی جوړ کړواود ښځې یاسړی په شکل نی پیداکړو.آیا هغه الله ﷻ چا چه د یوکمزوری نطفه نه صحیح سالم او کلك وجود والا انسان جوړ کړو هغه په دې خبره باندې قادر نه دې چه دې فناکړی او بیانی راپیداکړی؟ یقیناً په اول خل پیداکونکې په بیا جوړولوباندې په طریقه اولی قادر دې یاکم نه کم دومره چه څومره په اول خل وو. لکه چه فرمائی ﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾هغه په شروع کښې پیداکړوهم هغه به نی دوباره واپس راګرځوی اوداپه هغه باندې ډیر آسان دی.ددې آیت په مطلب کښې هم دوه أقواله دی خو اولنې قول زیات مشهوردې لکه چه د سورت روم په تفسیر کښې د دې بیان اوتقریر تیرشوې دې. والله اعلم.

**قوله تعالی:-أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقٰدِرٍ**

**فائده**:ابن ابی حاتم کښې دی چه یوصحابی رضی الله عنه به خپل چت باندې په اوچت آواز قرآن پاك لوستلوکله چه نی ددې سورت آخری آیت تلاوت کړونوونی فرمائیل(سبحنك بلی)اې الله ﷻ ته پاك نی اوبیشکه قادرنی خلقوددې ویناکولوسبب دتپوس اوکړونوونی فرمائیل چه مارسول الله ﷺ ددې آیت هم داجواب ورکونکې اوریدلې دې.ابوداؤد رحمه الله هم دا حدیث دې[2] خو په دواړو کتابونوکښې د دې صحابی نوم نشته خود دې نوم نشتوالې مضر نه دې. د ابوداؤد په یو بل حدیث کښې دی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په تاسو کښې کوم یوسړې د ورت والتین آخری آیت ﴿أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ﴾اولولی نو هغه دې ﴿بلی

---

[1] حاکم:۲/۵۱۰وسنده صحیح، السنن الکبری للنسائی:٦/٥٠٤ ح١١٦٣٨.
[2] ابوداؤد کتاب الصلاة باب الدعاء فی الصلاة: ۸۸٤.

وانا علی ذلك من الشهدين﴾ وانی یعنی او اوزه هم په دې باندې ګواه یم.اوکوم سړی چه دسورت قیامت آخری آیت ﴿أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ﴾ اولولی نووائی دې ﴿بلي﴾ اوکوم سړی چه دسورت والمرسلات آخری آیت﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ﴾اولولی نو وائي دې ﴿امنابالله﴾[1] داحدیث په مسند اوترمذی شریف کښې هم دې. ابن جریرکښې د حضرت قتاده رحمه الله نه روایت دې نبی کریم ﷺ به د دې سورت د آخری آیت نه پس فرمائیل ﴿سبحنك بلی﴾دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه د دې آیت په جواب کښې داوینا ابن ابی حاتم کښې نقل ده.

﴿الحمدلله﴾ د سورت قیامت تفسیرختم شو

.........

## ﴿د سورة د هر تفسير ﴾

دسورت تعارف:د صحیح مسلم په حواله داحدیث اول تیرشوې دې چه د جمعه په ورځ د سحر په مانځه کښې حضور ﷺ سورت الم تنزیل یعنی سورت السجدة او سورت ﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا مَّذْكُورًا﴾ لوستلو[2] په یومرسل غریب حدیث کښې دی چه کله دا سورت نازل شو اوحضور ﷺ د دې تلاوت اوکړو په دغه وخت کښې حضور ﷺ سره یود ښکلی رنګ صحابی رضی الله عنه ناست وو.کله چه د جنت د صفتونوذکر راغلو نودهغه د خلې نه ناڅاپی یوه چغه اووتله او ورسره ئې روح لاړو. جناب رسول مقبول ﷺ اوفرمائیل ستاسو د ملګری او ستاسو د رور روح د جنت په شوق کښې اووتلو.[3]

| آیاتونه | | سورة الدهر مكية وهي احدى وثلثون اية وفيها ركوعان | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ۳۱ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۲ |

| هَلْ أَتَىٰ | عَلَى الْإِنسَانِ | حِينٌ | مِّنَ الدَّهْرِ | لَمْ يَكُن | شَيْئًا |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه راغلې دې | په انسان باندې | یو وخت | دزمانې نه | چې نه وو هغه | یو څیز |

بیشکه په انسان باندې یوه زمانه داسې هم تیره شوې ده | چې هغه هډو د ذکر قابل څیز نه وو|

| مَّذْكُورًا | إِنَّا خَلَقْنَا | الْإِنسَانَ | مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ |
|---|---|---|---|
| یاد کړې شوې (قابل ذکر ) | بیشکه پیدا کړو مونږه | انسان | دنطفې شریکې نه |

.......... بیشکه مونږ انسان د ګډې شوې نطفې نه پیدا کړې دې (یعنی د سړی او ښځې

| نَّبْتَلِيهِ | فَجَعَلْنَاهُ | سَمِيعًا | بَصِيرًا | إِنَّا |
|---|---|---|---|---|
| مونږه امتحان اخلو ددۀ | پس جوړ کړو مونږه دۀ لره | اوریدونکې | لیدونکې | بیشکه |

مونږ پرې امتحان کوو په ده | نو هغه مو آوریدونکې او لیدونکې انسان جوړ کړو| بیشکه مونږ

[1] احمد:۲/۲۴۹، ابوداؤد کتاب الصلاة باب مقدار الركوع والسجود:۸۸۷، ترمذی::۳۳۴۷، حاکم:۲/۵۱۱.
[2] صحيح مسلم كتاب الجمعة باب مايقرا فى يوم الجمعة:۸۷۹.
[3] الدرالمنثور۶/۴۸۰.

| هَدَيْنٰهُ | السَّبِيْلَ | اِمَّا شَاكِرًا | وَّاِمَّا كَفُوْرًا۝ |
|---|---|---|---|
| اوښودله مونږ ده ته | لاره | که شکر ګزاره جوړيږي | که کفر کونکي (ناشکره) |
| ورته نيغه لار اوخودله | ......... | نو هغه ياشکرګزار شو | اويا کافر(ناشکره) شو |

**قوله تعالى:- هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ**

**د انسان د پيدائش نه وړاندې او روستو والا حالت:-** الله تعالى بيان فرمائي چه هغه انسان پيداکړوسره د دې چه ددې نه اول د خپل سپکوالي اوکمزوري والي په وجه څه داسې څيز نه وو چه د هغې ذکر اوکړې شي.دې دسړي اوښخې د يوخائي شوو اوبونه پيداکړو اود عجيبه عجيبه اړولونه پس ئي داموجوده شکل اوصورت اختيار کړو دې مونږ ازميښت کوو لکه چه بل ځائي ارشاد دې ﴿لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا﴾ دې دپاره چه هغه تاسوازميښت کړي چه په تاسوکښې نيك عمل کونکي څوك دي؟هغه تاسو ته سترګې اوغوږونه درکړه چه په تابعدارئي اوګناه کښې فرق اوکړې شئي. مونږ هغه ته لار اوخودله ښه واضحه اوصفا او په هغه باندې مو خپله نيغه لار کولاوکړه لکه چه بل ځائي ارشاددې ﴿وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى﴾ يعني ثموديانوته مونږ هدايت اوکړوخوهغوی ړوندوالي له په هدايت باندې ترجيح ورکړه.بل ځائي فرمائي﴿وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ﴾يعني مونږانسان ته دواړه لارې اوخودلې يعني دښيګړې او بدئي.

د دې آيت په تفسيرکښې د حضرت مجاهد رحمه الله ابوصالح رحمه الله ضحاك رحمه الله او سدی رحمه الله نه روايت دې چه ده ته مونږ لاراوخودله يعني دمورد خيټې نه د بهر راتلو. خوداقول غريب دې اوصحيح قول ړومبې دې اودجمهورونه هم دانقل دې.د ﴿شَاكِرًا﴾ او﴿ وَّاِمَّا كَفُوْرًا۝ ﴾ نصب حال په وجه سره ذوالحال "ه" ضميردې چه ﴿اِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ﴾کښې دې.يعني هغه په دې حال کښې يابدبخت دې اويا نيك بخت لکه چه د صحيح مسلم په حديث کښې دی هرسړې دسحر وخت کښې د خپل نفس اخستل او خرڅول کوی يا خو هغه هلاك کوی اوياهغه آزادوی[1]مسنداحمد کښې دی چه کعب بن عجره رضی الله عنه ته حضور ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالى دې تا د بې وقوفانود سردارئي نه بچ کړی. حضرت کعب رضی الله عنه اوفرمائيل يار رسول الله ﷺ هغه څه څيز دي؟ وئي فرمائيل هغه به زمانه پس سرداران وی چه نه به زما په سنتوعمل کوی اونه به زما په طريقه تګ کوی نوچه کوم خلق د هغوی د دروغ تصديق اوکړی اود هغوی د ظلم امداد اوکړی نه هغوی زمانه دی اونه زه د هغوی يم. يادسائی هغوی زما په حوض کوثر باندې هم نه شی راتلې .اوڅوك چه د هغوی دروغ رښتيانه کړی اود هغوی په ظلمونوکښې د هغوی امدادی جوړنه شی هغه زما دې او زه دهغه يم.داخلق به زما په حوض کوثرباندې ماسره ملاويږی.اې کعب رضی الله عنه روژه ډال دې اوصدقه خطا ګانې ختموی.اومونځ د الله تعالى نيزديکت سبب دې ياوئی فرمائيل چه د خلاصی دليل دې.اې کعب رضی الله عنه هغه غوښه اوبدن جنت ته نه شی تلې کوم چه په حرام باندې پاللې شوې وی هغه خوهم په دوزخ کښې د تلوقابل دې.اې کعب رضی الله عنه خلق هرسحردخپل نفس خرڅول اواخستل کوی څوك خو دې آزادوی او څوك هلاك کوی تيريږی[2]دسورت روم د آيت ﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا﴾ په تفسيرکښې د حضرت جابر رضی الله عنه په روايت سره دحضور ﷺ دا فرمان هم تيرشوې دې چه هرماشوم د اسلام په فطرت باندې پيداکيږی تردې چه کله ئی ژبه روانيږی نو بياخوياشکر ګذار جوړيږی ناشکره[3]د مسنداحمد

[1] صحيح مسلم كتاب الطهارة باب فضل الوضوء:٦٢٣، ترمذی ٣٠١٧، احمد:٣٤٢/٥، ابن حبان: ٨٤٤.

[2] احمد:٣٢١/٣وسنده حسن، مجمع الزوائد:٢٤٦/٥.

[3] احمد:٣٥٣/٣، ابن حبان:١٦٥٨، بيهقی:١٣٠/٩ بتصرف يسير.

په یوبل حدیث کښې دي چه کوم وتونکې اوځي د هغه په دروازه باندې دوه جهنډې وي یوه د فرښتې په لاس کښې بله د شیطان په لاس کښې. نو که هغه د یوکار د پاره اوځي چه د الله تعالی د مرضۍ کار وي نو فرښته خپله جهنډا اخلي او د هغه سره کیږي اودې د واپس کیدو پورې د فرښتې د جهنډې لاندې وي اوکه دې چرته د الله تعالی د ناراضګۍ په څه کار پسې اوځي نو شیطان خپله جهنډا لګولې د هغه سره کیږي. اوهغه د واپس کیدو پورې د شیطان د جهنډې لاندې پاتې وي.(۱)

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ سَلَٰسِلَا۟ وَأَغْلَٰلًا وَسَعِيرًا ۝٤

بیشکه تیار کړي دي مونږه | د کفر کونکو دپاره | زنځیرونه | او دغاړې پړی | او دغرغندو وور |

بیشکه مونږ کافرانو دپاره زنځیرونه تیزندئ او دغرغندو اور تیار کړي دي

إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا

بیشکه نیکان خلق چې دی | څکی به هغوئ | دشرابو داسې پیالئ | چې وی به خلط دهغې سره |

بیشکه نیکان خلق به د داسې شرابو جامونه څکی | چې په هغې کښې به دکافورو

كَافُورًا ۝٥ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ

کافور | دا یوه چینه ده | چې څکی به شراب | دهغې داوبو سره | بندګان دالله |

ګډون وی | هغه یوه چینه ده | ..........چې دهغې اوبه به د الله ﷻ بندګان څکی |

يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ۝٦ يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ

چې هغوئ به روانوی ولې دهغې نه | په روانولو (اسانو) سره | هغوئ پوره کوی | نذر لره |

هغوئ به دغه ولې څنګه چې غواړی نو روانوی به ئې|.......... هغوئ خپلې نذرانې پوره کوی

وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُۥ مُسْتَطِيرًا ۝٧ وَيُطْعِمُونَ ٱلطَّعَامَ

او هغوئ یریږئ | دهغه ورځې نه | چې دې شر دهغې | هر طرف ته خور شوې | او هغوئ طعام ورکوی

او دهغې ورځې نه ویریږی چې مصیبت به ئې ګیرچاپیره هر طرفته خور وی | او د الله ﷻ په مینه کښې

عَلَىٰ حُبِّهِۦ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ۝٨ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ

| په مینه دالله | مسکین ته | او یتیم ته | او قیدی ته | اووائی چې بیشکه مونږ طعام درکوؤ تاسو له |

مسکینانو، یتیمانو او قیدیانو ته طعامونه ورکوی | او( وائی) چې مونږ خوتاسو ته صرف دالله ﷻ

لِوَجْهِ ٱللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَآءً وَلَا شُكُورًا ۝٩ إِنَّا نَخَافُ

دپاره درضا دالله | مونږ اراده نه لرو | ستاسو نه | دبدلې | اونه دشکرئې | بیشکه مونږه یریږو |

د رضا دپاره خوراکونه درکوؤ | نه مونږ ستاسو نه څه معاوضه غواړو | اونه شکریه | مونږ د خپل

مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ۝١٠

دطرفه درب زمونږ نه | دورځې | تریو مخې (غمجنې) | تر یو تندی (ډیرې سختې) نه |

رب نه د هغه ورځې (په حق کښې) ویریږو | چې ډیره سخته اوترخه به وی

(۱) احمد:۲/۲۲۳وسنده حسن، المعجم الاوسط:۴۷۸۳، کتاب الزهد للبیهقی:۶۹۹.

| فَوَقٰىهُمُ اللّٰهُ | شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ | وَلَقّٰىهُمْ | نَضْرَةً | وَّسُرُوْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| پس بچ به کړي هغوئ لره الله | دشر ددغې ورځې نه | او وربه کړي هغوئ له | تازګي | او خوشحالي |

نو الله ﷻ به هغوئ د هغې دسختو نه بچ اوساتي | اوهغوئ ته به تازګي او خوشحالي ورکړي

| وَجَزٰىهُمْ | بِمَا | صَبَرُوْا | جَنَّةً | وَّحَرِيْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او بدله به ورکړي هغوئ له | په سبب دهغې | چې صبر اوکړو هغوئ | جنت | او جامې رېښمينې |

اود هغوی د صبر بدله به ورته د جنت اود ریښمو جامو په صورت کښې ورکړي

**قوله تعالى:-** إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَا۟ وَأَغْلٰلًا وَّسَعِيْرًا ۝

دلته الله ﷻ خبرورکوی چه دهغه په مخلوق کښې څوك هم دهغه نه کفر اوکړي دهغوی دپاره زنځيرونه طوق اود شغلووالا سورکړي شوې تيزاُورتيار دي.لکه چه فرمائی ﴿إِذِ الْأَغْلٰلُ فِىٓ أَعْنٰقِهِمْ وَالسَّلٰسِلُ يُسْحَبُوْنَ ۝ فِى الْحَمِيْمِ ثُمَّ فِى النَّارِ يُسْجَرُوْنَ ۝﴾ يعنې طوق به دهغوی په غاړه وی اوبیړنی به دهغوی په پښوکښې وی اودوی به په حميم راښکلې شی بيا به په دوزخ کښې سوزولې شی.

**قوله تعالى:-** إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا ۝

ذ نیکوبدله :- د هغه بدنصيبو د سزا ذکرکولونه نه پس اوس د نیکانوخلقو د بدلې ذکرکولې شی چه په هغوی باندې به هغه جامونه څکولې شی کوم چه به د کافور نومې نهر د اوبووی اود هغې خوند هم ډیر اوچت خوشبونی هم ډیره مزيداره او فائده هم د بهترکافوروپه شان يخه اود سونړ په شان بوئی. کافورد يو نهر نوم دې د کوم نه چه د الله تعالى خاص قسم بنديګان اوبه څکی اوصرف هم په دې باندې خان مړوی د دې د پاره ئی دا په "ب" سره متعدی کړو او د تميزاوفرق په بنياد ئی عينا باندې نصب کړو. دا اوبه په خوشبوزکښې د کافوروپه شان دی اويادا ټيك هم کافور دی. اود عينا زبر د يشرب په وجه دې. بيا دې نهر ته د هغوی د راتلوضرورت نشته دوی به په خپلو باغونو محلونو مجلسونو بيټکونوکښې چرته چه هم غواړی دا اوړی اوهلته به هغه رسی.﴿تفجير﴾ معنی روانيدل او جاری کيدل ده لکه آيت ﴿حَتّٰى تَفْجُرَ لَنَا﴾ کښې او ﴿وَّفَجَّرْنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا ۝﴾ کښې چه دی.

**قوله تعالى:-** يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُوْنَ

بيا ددغه خلقو نيکئی بيانولې شی چه کوم عبادتونه د الله تعالى دطرف نه دهغوی په ذمه وو هغه خو به ئی په خانی راوړل بلکه دوی چه به کوم څيز په خپل خان باندې کولو هغه به ئی هم پوره کولو يعنی نذر به ئی هم پوره کولو.

په حديث شريف کښې دی چه څوك د الله تعالى د طاعت نذر اومنی هغه دې پوره کوی اوچه څوك د نافرمانی نذر اومنی هغه دې نه پوره کوی ([1]) امام بخاری رحمه الله دا دامام مالك رحمه الله په روايت باندې بيان کړې دې. اود الله تعالى د نافرمانونه تختی خکه چه د قيامت د ورځې ويره ده د کومې ويره چه په عام توګه ټول راګيروی او هريو به په مشکل کښې پريوځی خو چه په چا باندې د الله تعالى رحم اوکرم وی د زمکې او د آسمان پورې به خورېږی.﴿استيطار﴾معنی ده خوريدل او اطراف راګيرونکی. دا نيکان خلق به د الله تعالى په محبت کښې په مستحق خلقو باندې د خپل طاقت مطابق خرچ هم کولو. اود "ه" ضمير بعضې خلقو طعام ته راجع کړې دې ډيره ښکاره هم دا ده يعنی سره د خوراك د محبت خواهش او ضرورت به ئی د الله تعالى په لارکښې غريبانانو اوحاجت مندو ته ورکول. لکه چه بل خائی کښې

[1] صحيح بخاری كتاب الايمان والنذور باب النذور فى الطاعة: ٢٦٩٦، ابوداؤد:٣٢٨٩، ترمذى:١٥٢٦، احمد:٣٦/٦، موطاء:٤٧٦/٢.

ارشاد دی ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ یعنی د مال د غوښتنې نه باوجودبه ئې د الله تعالی په لارکښې ورکولو. بل ارشاد دی﴿لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ تاسو هیڅ کله ښیګړه نه شئ حاصلولې ترکومې چه د خپلې خوښې څیزدالله تعالی په لارکښې خرچ نه کړئ.نافع ﷫ فرمائی عبدالله بن عمر ﷛ بیمار شو د هغوی په بیمارنې دانګورو موسم راغلو کله چه انګورپاخه شونودهغوی زړه هم غوښتل انګور اوخوری.دهغوی بی بی حضرت صفیه ﷞ د یودرهم انګور راوغوښتل. هغه سړی کوم چه انګور راوړل هغه سره یو سوال کونکې راغلو او هغه آواز اوکړو چه زه سوال ګریم.حضرت عبدالله ﷛ اوفرمائیل چه دا ټول ده له ورکړئی نو ورکړې شو بیا په دویم خل سړې لاړو او انګورئی راوغوښتل دې خل هم سوال کونکې ورسره راغلو د هغه په سوال کولوباندې ئې هغه ټول هغه ته ورکړل خودې خل حضرت صفیه ﷞ سوال کونکی ته صرف دومره اووئیل که بیا راغلې نوتاته به څه نه ملاویږی اوبیائی په دریم خل د یو درهم انګورراوغوښتل. (بیهقی)

**افضل صدقه:**-صحیح حدیث کښې دی چه افضل صدقه هغه ده کومه چه ته په خپل صحت کښې سره د مال دمحبت او د مالدارئی د غوښتنې اود غریبئی د ویرې د الله تعالی په لارکښې ورکړې (١) یعنی چه د مال حرص دې هم وی محبت هم وی اوحاجت او ضرورت هم وی اوبیاهم هغه د الله تعالی په لارکښې قربان کړې.یتیم اومسکین څه ته وائی؟ددې تفصیلی بیان اول تیرشوې دې.د قیدی باره کښې حضرت سعید﷛ وغیره فرمائی چه مسلمان اهل قبله قیدی مراد دې (٢) خود ابن عباس﷛ وغیره بیان دې دغه وخت قیدیانوکښې بغیرد مشرکانونه څوک مسلمان قیدی نه وو.

اود دې تائیدد دې حدیث نه هم کیږی په کوم کښې چه دی حضور ﷺ د بدرد قیدیانوباره کښې صحابه کرامو ﷢ ته فرمائیلې وو چه د دوی اکرام اوکړئی نو په خوراك څښاك کښې صحابه کرامو ﷢ د خپل خان نه هم زیات خیال د هغوی ساتلو. حضرت عکرمه ﷛ فرمائی چه دې نه مراد غلام دې. امام ابن جریر﷛ په سبب د آیت د عام کیدو داخوښوی اومسلمان اومشرك ټول شامل ګڼړی(٣)غلامانواو ماتحتانو سره ښه سلوك کولوتائید په ډیرواحادیثوکښې راغلې دې.بلکه دحضورسرورکائنات حضرت محمد مصطفی ﷺ آخری وصیت خپل امت ته هم دغه دې چه د خپلومونخونوخیال اوساتئی (٤) او خپلوماتحتانوسره ښه سلوك کوئې اود هغوی پوره خیال ساتئی. دوی خونه د دې ښه سلوك د چانه بدله غواړی نه شکریه بلکه لکه چه د خپل حال نه اعلان کوی چه مونږ تاسو ته صرف د الله تعالی په لارکښې درکوو په دې کښې هم زمونږ بهتری ده چه په دې سره دالله تعالی رضا اود رب مرضی حاصله شی اومونږ د ثواب اواجر مستحق شو.

حضرت سعید﷛ فرمائی چه د الله تعالی قسم دا خبره هغه خلق د خُلې نه نه اوباسی دائی د زړه اراده وی د کوم علم چه هم الله تعالی ته دې نو الله تعالی دا ښکاره کړو چه د خلقو د رغبت ذریعه جوړه شی. (٥) دا پاك اوصفا ډله صدقه اوخیرات کوی اود هغه ورځ د تباهونه او عذابونونه خان بچ کول غواړی چه تنګ ترش تیاره او اوږد دې. د هغوی عقیده ده چه د دې په وجه به الله تعالی په مونږ باندې رحم اوکړی اود هغه محتاج اوبې کسئی په ورځ به زمونږ نیکئی زمونږ په کار راشی. حضرت ابن عباس﷛

---

(١) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب فضل صدقة الشحیح الصحیح:١٤١٩، صحیح مسلم:١٠٣٢، ابوداؤد:٢٨٦٥بتصرف یسیر، ابن ماجه:٢٧٠٦،احمد: ٢٥/٢، ابن حبان:٣٣١٢.

(٢) الطبری:٦٧/٢٤.

(٣) ایضًا: ٦٨/٢٤.

(٤) ابوداؤد کتاب الادب، باب فی حق المملوك:٥١٥٦، ابن ماجه:٢٦٩٨، احمد:١١٧/٣، ابن حبان:٦٦٠٥.

(٥) الطبری:٩٨/٢٤.

د ﴿عبوس﴾ معنی د تنګئې والا اود ﴿قمطرير﴾معنی اوږد مراد دې(¹) عکرمه رحمه الله فرمائي چه د کافرخله به په هغه ورځ ورانه وی د هغه تندې به ګونجې وی اود هغه د دواړو سترګو په مینځ کښې خوله بهيږی چه په شان د ګندهك د تيلو به وی. (²) مجاهد رحمه الله فرمائي شونډې به ئې راوچتې شوی وی اومخ به ئې راغونډ شی.دسعيد رحمه الله اوحضرت قتاده رحمه الله قول دې چه د ويرې اودهشت په وجه به د هغوی شکلونه وران شی او تندی به ئې تنګ شی.

ابن زيد رحمه الله فرمائي دبدئې اوسختئې ورځ به وی خود ټولونه زيات واضح او بهتراومناسب قول دابن عباس رضي الله عنه دې د قمطرير لغوی معنی امام ابن جرير رحمه الله د سختئې کوی يعنی ډيرسختئې والا. دهغوی د دې نيك نيتئې او پاك عمل په وجه الله تعالی د دې ورځې د بدئې نه هغوی بالکل بچ کړل اودومره هم نه بلکه هغوی ته په خائې د تريوتندی رونړتندی اود زړه د دهشت په خائې تسلی اود زړه سرور ورکړو.خيال اوکړئې چه دلته په عبارت کښې څومره ډير تجانس استعمال کړې شوې دې.بل خائې ارشاددې﴿وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ مُّسۡفِرَةٌ ۙ ضَاحِكَةٌ مُّسۡتَبۡشِرَةٌ ۚ﴾ په دغه ورځ به ډير مخونه پرقيږی چه په خندا خوشحالو باندې به وی.داخو ښکاره خبره ده چه کله زړه خوشحاله وی نومخ به ئې روښانه وی. د حضرت کعب بن مالك رضي الله عنه په اوږدحديث کښې دی چه کله به نبی کريم ﷺ خوشحاله وو نود هغوی ﷺ مخ مبارك به پرقيدو اوداسې به معلوميده لکه د سپوږمئې ټکړا.(³)

د حضرت عائشه رضي الله عنها په اوږد حديث کښې دی يوځل حضرت رسول کريم ﷺ ماله تشريف راوړو مخ مبارك ئې د خوشحالئې نه روښانه وو اود مخ مبارك رګونه ئې پرقيدل الخ(⁴) بيا فرمائي چه د هغوی د اوسيدو د پاره به کولاؤ جنت پاك ژوند اود اغوستلو د پاره ريښمين لباس ملاويږی. ابن عساکر کښې دی چه ابوسليمان رحمه الله دارانی په وړاندې د دې سورت تلاوت اوشو. کله چه قاری دا آيت اولوستلو نو هغه اوفرمائيل چه هغوی د دنيا خواهشونه پريخې وو. بيا داشعر اولوستلو:

﴿کم قتيل لشهوة وأسير   اف من مشتهی خلاف الجميل﴾
﴿شهوات الانسان تورثه الذل   وتلقيه فی البلاء الطويل﴾

افسوس چه د نفس شهوت د نورو نيکوخلاف د بدود غوښتلو د ډيرو مرئې خفه کړه او ډير خلق ئې راګير کړل. هم نفسانی خواهشونه دی کوم چه انسان بدترين ذلت او په بلا اومصيبت کښې اخته کوی.

| مُّتَّكِئِيۡنَ | فِيۡهَا | عَلَى الۡاَرَآئِكِ | لَا يَرَوۡنَ | فِيۡهَا | شَمۡسًا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تکيه وهونکی به وی | په هغې کښې | په تختونو باندې | نه به وينی هغوی | په هغې کښې | نمر |
| هغوی به په تختونو باندې ډډې لګونکی وی ......هلته به هغوئ نه د نمر ګرمی محسوسوی | | | | | |
| وَّلَا زَمۡهَرِيۡرًا | وَدَانِيَةً | عَلَيۡهِمۡ | ظِلٰلُهَا | وَذُلِّلَتۡ | |
| اونه يخنی | او رازورند به وی | په هغوئ باندې | سوری دهغې | او تابع کړې شوی به وی | |
| اونه يخه يخنی \| اود هغې د ونو سيورې به هغوئ ته نزدې وی \| | | | | | |

(¹) الطبری:۲٤/۹۸.
(²) الطبری:۲٤/۱۰۰.
(³) صحيح بخاری کتاب المغازی باب حديث کعب بن مالك رضي الله عنه:٤٤١٨، صحيح مسلم٢٧٦٩، ترمذی:٣١٠٢، ابن حبان: ٣٣٧٠.
(⁴) صحيح بخاری کتاب المناقب باب صفة النبی ﷺ:٣٥٥٥، صحيح مسلم: ١٤٥٩.

قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ۝ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِآنِيَةٍ
ميوې دهغې | په تابعوالي سره | او ګرزولي کيږي به | په هغوئ باندې | لوښي |
او دهغې ميوې به هم راټيټې وي | .........او سپينو زرو لوښي به پرې ګرځولی شي

مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا ۝ قَوَارِيرَا
چې جوړ به وي دسپينو زرونه | او پيالئ | چې جوړې به وي دشيشې نه | هغه شيشې |
........ ......... | ......... او د شيشې ګلاسونه به وي | داسې شيشې چې دسپينو

مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ۝
چې وي به دسپينو زرو | چې هغوئ به په اندازه کړې وي هغه | په انداز کولو سره |
زرو نه به جوړې شوې وي | او په اندازه باندې به ئې پيمانه کړې وي |

وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ۝
او څکولې کيږي به په هغوئ باندې | په هغې کښې | پيالئ دشرابو | چې وي به خلط سره | زنجبيل |
او (دشرابو داسې) جامونه به پرې څکولی شي | ............چې سونډ به په کښې اچولې شوې وي

عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلًا ۝ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ
دا به يوه چينه وي | په هغې کښې | ونيلې کيږي هغې ته | سلسبيل | او ګرځي به په هغوئ باندې |
(دادجنت) يوه چينه ده | چې نوم ئې سلسبيل دې | او داسې خادمان به ترې نه تاويږي راتاويږي

وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ
هلکان | چې هميشه به وي هلکوانې دهغوئ | کله چې ته اووينې هغوئ | ګمان به کوې په هغوئ باندې
چې هميشه به هلکان وي | که ته ئې اووينې نو دا ګمان به دې راشي | چې

لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ۝ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ۝
ملغلرې خورې کړې شوې | او کله چې اوګورې ته هلته | نو اوبه وينې ته | نعمتونه | او بادشاهي لويه
خورې ورې ملغلرې دی | .....او چې اوئې وينې | نو ډير لوئې نعمت او غټه بادشاهي به اووينې

عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ وَحُلُّوا
دپاسه دهغوئ به | جامې وي | دنرو ريښمو | شنې | او دغټو ريښمو | او وابه چولې شي هغوئ ته
هغوئ به د نرو او د غټو ريښمو شنې جامې اغوستې وي | ......... او دسپينوزرو

أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ
ابنګړې | چې جوړ به وي دسپينو زرونه | او وابه څکوي په هغوئ باندې | رب دهغوئ
بنګړې به ورته اچولې شي | ............او خپل رب به ورته پاکيزه شراب

| شَرَابًا طَهُوْرًا ۝ | اِنَّ هٰذَا كَانَ | لَكُمْ | جَزَآءً | وَّكَانَ سَعْيُكُمْ | مَّشْكُوْرًا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| شراب پاکيزه | بيشکه داده | ستاسو دپاره | بدله | اودی کوششونه ستاسو | قبول کړی شوی |

دڅکلو دپاره ورکوی((اودوئ ته به اووئيلې شي، داستاسو بدله ده((اوستاسو کوشش قبول شوې دې

**قوله تعالٰی:- مُّتَّكِئِيْنَ فِيْهَا عَلَى الْاَرَآئِكِ**

**په جنتيانوباندې د انعاماتوباران:-** دجنتيانود نعمتونو د هغوی د راحتونو دهغوی د ملك اومال اوشان او شوکت ذکرکيږی چه داخلق به په پوره اطمينان اوخوشحاله زړه سره دجنت په تکياګانو او ښکلی پيللي شوی تختونوباندې تکيه لګولې په خوند اومزو سره ناست وی.دسورت والصفات په تفسير کښې د دې پوره شرح تيره شوې ده داهم بيان شوې دې چه ﴿اتکا﴾ نه مرادسملاستل ياکوندنی لګول دی ياپه خلوربولی کيناستل دی په ملاسره دډه لګول دی اوداهم بيان شوې دې چه ﴿اَرَآئِكِ﴾چپر کټونو ته وائی. بيا يويل نعمت بيانولې شی چه هلته به نه د نمر د تيزو شغلونه دوی ته تکليف رسی اونه د ژمی ډير يخې هواګانې په هغوی باندې ګرانې پريوځی بلکه د سپرلی غوندې موسم به هروخت او هميشه وی. د ګرمواويخنو د تکليفونونه به لرې وی دجنتو ونو ښاخونه به په تاويدو راتاويدو سره په هغوی باندې سورې کړې وی اوميوې به هغوی ته بالکل نيزدې وی که غواړی نو په ملاسته ملاسته نی راشوکولې اوخورلې شی که غواړی نو په ناسته ناسته دې اخلی اوکه غواړی نو په ولاړه دې خوری. ونوته د ختواو تکليف کولوبه هيڅ ضرورت نه وی. په سرونوباندې به د ميووغونچې ډکې زوړندوی پرې کوی به اوخوری به.که ولاړنوميوې به هم دومره اوچتې وی اوکه ناست وی نو هم دومره به ښکته وی که ملاست وی نو نوربه هم نيزدې وی نه به د ازغوڅه ويره وی او نه به د لريوالی څه دردسر وی.

**د جنت زمکه:-** حضرت مجاهد ﷺ فرمائی چه د جنت زمکه دسپينوزروده او ددې خاوره دخالص مشك ده.ددې دونوتنې دسرو زرواوسپينو زرو دی ښاخونه ئی د لؤ لؤ زبرجداوياقوتودی. ددې په مينځ کښې پاڼې اوميوې دی د کوموپه راشوکولوکښې چه هيڅ تکليف اومشکل نشته.که غواړې نو په ناسته نی راشوکوه اوکه غواړې نو په ولاړه ولاړه بلکه که غواړې نو په ملاسته ملاسته. يوطرف ته خوشحاله تازه د خوشحاله زړه سره، ښائسته په ادب اوطريقه حکم منونکی خادمان قسم قسم خوراکونه د سپينوزرو په رکيبوکښې لګولې شوی ولاړ وی او بل طرف ته به د شراب طهور نه ډك بلوری جامونه اخستې د شرابوساقيان د ارشارې په انتظارولاړ وی. داګلاسونه به په صفائې کښې د شيشې په شان او په سپين والی کښې دسپينوزرو په شان به وی. په اصل کښې به وی د سپينوزرو خو د شيشې په شان به صفا پرقيدونکی وی اوددننه څيز به بهرښکاری.د جنت دڅيزونو هسې په نوم باندې مشابهت ددنياپه څيزونوکښې موندې شی خود دې سپينوزرو بلوری ګلاسونوچرته مثال نه ملاويږی. اودا ياد ساتئی چه رومبې لفظ ﴿قَوَارِيْرَا﴾باندې زبر ددې دپاره چه هغه ګانَ خبردې اوبل باندې زبردبدليت په وجه دې اوياد امتياز په وجه دې. بيا دا جامونه په يوه مقرره اندازه دی د ساقی په لاس کښې هم ښه ښکاری اود هغه په تلوکښې ښه معلوميږی اود څکونکو د خواهش برابر طهور شراب په دې کښې خانی کړې شی چه نه بچ شی اونه کم شی. په دې نه بياموندونکو ګلاسونوکښې چه دا پاك مزايداراود سرور والا بې نشې شراب دوی تل ملاويږی نو هغه به د سلسبيل د نهر اوبوکښې ګدوډشوی ورکوی لکه پورته تيرشوی دی چه دکافورد نهر په اوبوسره يوخائی شوی دوی ته ورکوی نومطلب دا دې چه کله خو به د دې يخو او يخ مزاجه اوبوسره اوکه د دې ترمو اوبوسره دې د پاره چه اعتدال قائم وی.دا د نيکانوخلقو ذکر دې او خاص مقربين به خالص د دې نهر شربت څکی.

سلسبیل دعکرمه رحمه الله په قول د جنت د یوې چینې نوم دې خکه چه هغه په تیزئی سره یوشان په روانئی سره د چېوپه چال بهیږی. د دې اوبه ډیرې سپکې ډیرې خوږې ښائسته خونداوښائسته بوئی والا دی چه په آسانئی سره څکلې شی او ازمولې شی.د دې نعمتونوسره ښائسته ښکلی خوانان کم عمرد ملکان به دهغوی دخدمت د پاره ملاتړلې ولاړ وی.داغلمان چه جنتیان په کوم عمرسره وی په هغې کښې به دوی هم وی.دابه نه وی چه عمرئې زیات شی نو شکل به نی وران شی دا مزیدار لباسونه او ډیرزیات قیمتی پیللې شوی کالی اغوستې په ډیرشمیرکښې اخوادیخواپه مختلفو کارونو کښې تقسیم شوی وی کوم چه به په منډو تړرو سره تیزئی سره او چالاکئی سره پوره کونکی وی.داسې به معلومیږی لکه چه سپین د اوبومرغلرې اخوادیخوا په جنت کښې شیندلې پراته دی. په حقیقت کښې د دې نه زیاته ښه تشبیه د هغوی د پاره بله نه وه چه د دې ښکلې شکل او خویونو والا صاحبانو مناسب قدوالا سپین نورانی مخونووالا پاك صفا ښائسته کړې شوی لباسونه په کالوکښې بارشوی د خپل مالك حکم منونکی منډو تړروسره اخوادیخواګرځیدونکی داسې ښکلې به وی لکه په مزین کړې شوی د تکلف نه ډك فرش باندې پرقیدونکی مرغلرې اخوادیخواارغړی.

**د یو جنتی ته به څومره خادمان وی:** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی چه د هریوجنتی به زر خادمان وی چه په مختلفوکارونو روزګارونو کښې به لګیاوی[1] بیا فرمائی چه اې نبیﷺ ته چه په جنت کښې په کوم خائی نظراوکړې تاته به نعمتونه او عظیم الشان سلطنت ښکاری. ته به ګورې چه نعمت او سروراو په نورسره هریوخائی معموره دې. په صحیح حدیث کښې دی چه د ټولونه روستوچه د دوزخ نه راوباسی اوجنت ته اولیګی هغه ته به الله تعالی اوفرمائی چه ماتاته په جنت کښې دومره څه درکړه لکه په شان د دنیابلکه د دې نه هم لس حصې زیات.[2]

اود حضرت ابن عمرﷺپه روایت سره هغه حدیث هم اول تیرشوې دې په کوم کښې چه دی د ادنی جنتی ملکیت اوملك به د دوو زروکالوپه فاصله باندې وی. په هریو لرې اونیزدې څیز باندې به په یونظرد هغه سترګې وی. داحال خودې د ادنی جنتی نو اندازه اولګوئی چه د اعلی جنتی درجه به څه وی؟اود هغه نعمتونه به څنګه وی؟[3](اې الله ﷻ اې بغیرزمونږ ددعا اوعمل مونږته موردپنیو چینې راکونکیه مونږ په ډیره عاجزئی سره ستا په پاك دربارکښې عرض کوو چه ته زمونږ دبې صبر طبیعتونو ارمانونه پوره کړې اومونږ ته هم جنت الفردوس راکړې که داسې اعمال مونه هم وی نوزمونږ ایمان دې چه ستا رحمت په اعمالوباندې موقوف نه دې. )آمین مترجم)

د طبرانی په یوډیر غریب حدیث کښې دی چه یوحبشی د سرورکائنات په درباکښې حاضرشو حضورﷺ هغه ته اوفرمائیل ته چه د څه تپوس کوې نو په کوزه خبره چه پوهیږې د هغې تپوس اوکړه. هغه وئیل یا رسول الله ﷺ په شکل صورت رنګ نبوت اورسالت کښې تاته په مونږ باندې فضیلت درکړې شوې دې نواوس تاسو دا اوفرمائی چه که زه هم په دې څیزونوباندې ایمان راوړم په کوم چه تاسو ایمان راوړې او په کومو چه تاسو عمل کوئی زه هم په هغې عمل اوکړم نو آیا په جنت کښې تاسو سره کیدې شم؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه اوقسم دې په هغه الله تعالی د چا په قبضه کښې چه زما خان دې چه د تور رنګ خلقو ته به په جنت کښې هغه سپین رنګ ورکړې شی چه د زرو کالود فاصلې نه به ښکاری. بیا حضورﷺ اوفرمائیل چه څوك (لااله الاالله)اووائی الله ﷻ سره وعده مقررکیږی او چه کوم سړې (سبحان

---

[1] البیهقی فی البعث والنشور:۴۱۲،والمروزی فی زوائد الزهد:۱۵۸، والطبری فی تفسیر۲۹/۱۳٦.

[2] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار:٦۵۷۱، صحیح مسلم:۱۸٦.

[3] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة القیامة: ۳۳۳،احمد:۱۳/۲، مسندابی یعلی:۵۷۱۲، الشریعة للآجری:٦۳۱، البعث للبیهقی:۴۷۷.

الله ومحمد) اووانی دهغه دپاره یولاکھ څلیریش زره نیکئی لیکلې شی. نویوسړی اوونیل یارسول الله ﷺ بیا به مونږ څنګه هلاك کړې شو؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه واورنی یوسړې به دومره نیکئی راوړی که په یولوئ غربانډې کیخودلې شی نوهغه به نی درنې اوګنړی خوچه بیا د هغې په مقابله کښې د الله تعالی نعمتونه راوړلې شی نو نیزدې به وی چه دا ټولې به فنا شی خودا بله خبره ده چه د الله تعالی رحمت متوجه شی دغه وخت دا سورت﴿مُلْكًا كَبِيرًا﴾پورې نازل شو نوهم دې حبشی اوونیل یارسول الله ﷺ کوم څه چه ستاسو سترګې په جنت کښې وینی زما سترګې به نی هم وینی؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه او، او نو هغه په ژړا شو تردې چه د هغه روح لاړو.

دجنتیانو لباس:- حضرت عبدالله ﷺ فرمانی ما اوکتل چه رسول الله ﷺ هغه په خپل لاس مبارك ښخ کړو[1] بیادجنتیانود لباس ذکر کولې شی چه هغه به دشین ښنن رنګ مهین اوپرقیدونکی ریښم وی﴿سُنْدُسٍ﴾داوچتې درجې خالص ریښم چه بدن سره به لګیدلې وی ﴿اِسْتَبْرَقٌ﴾ ښکلې ډیر قیمتی ریښم کوم کښې چه پرقیدل وی اود پاسه به اغوستلې شی اوورسره به سپینوزرو ښکړی په لاسونو کښې وی د الباس د ابرار دې.

اودخاص مقربینو باره کښې بل ځائی کښې ارشاد دی﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ﴾ دوی ته به د سروزرو مرغلرې پیللې شوی ښکړی اچولې شی اوخالص نرم ریښمین لباس به وی. ددې ظاهر بدنی استعمال د نعمتونوسره به د خوند نه ډك د سرور والا پاك او پاکوونکی شراب څکولې شی چه ټوله ظاهری اوباطنی بدئی به ختموی حسد کینه بداخلاقی غصه وغیره به لرې کوی. لکه څنګه چه د امیرالمؤمنین حضرت علیﷺ بن ابی طالب نه روایت دې چه کله جنتیان د جنت دروازې ته اورسی نوهغوی ته به دوه نهرونه ښکاره شی اود هغوی به پخپله خیال راپیداشی چه که د یودوی اوبه اوڅکی نوددوی په زړونوکښې چه څه وو هغه به لرې شی په دویم کښې به غسل کوی په څه سره چه به د هغوی مخونه تازه او خوشحاله شی. ظاهری اوباطنی دواړه قسم خوبیانې به د کمال په درجه حاصلې شی د کوم بیان چه دلته کولې شی.

بیا به په دې سره د هغوی د زړونود خوشحالولودپاره اود هغوی خوشحالئی دوچنده کولود پاره به بار بارونیلې شی داستاسوداعمالوبدله اوستاسود ښوکوششونو قدردانی ده لکه چه ارشاد دې ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ﴾ په دنیاکښې چه کوم اعمال تاسوکړی نن تاسو ښه په آرام او اطمینان سره خورئی څکئی. بل ځائی ارشاد دې ﴿وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ یعنی اعلان به کولې شی چه ددې جنتونووارثان تاسو ستاسود نیکو اعمالو په وجه جوړکړې شوئی. دلته نی هم اوفرمائیل ستاسو سعی مشکورده په لږعمل باندې ډیر اجردې الله تعالی دې مونږ ته هم د دې نه راکړی. آمین.

| إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا | عَلَيْكَ | الْقُرْآنَ | تَنْزِيلًا | فَاصْبِرْ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږه نازل کړې دې | په تاباندې | دا قرآن | په نازلولو سره | پس صبر کوه |
| بیشکه مونږ په تا باندې قران پاك لږ لږ نازلوو | ...... ...... | | | .نو ته د الله ﷻ |

| لِحُكْمِ رَبِّكَ | وَلَا تُطِعْ | مِنْهُمْ | آثِمًا | أَوْ كَفُورًا | وَاذْكُرِ |
|---|---|---|---|---|---|
| په حکم درب خپل باندې | او خبره مه منه | ددوئ نه | دچاګنهګار | یا دچا ناشکره | او یادوه |
| په حکم ټینګ ولاړ اوسیږه | اوپه دوئ کښې دچا فاسق یا کافر تابعداری مکوه | | | | ...........او |

[1] المعجم الکبیر:۱۳۵۹۵، مجمع الزوائد:۳۵۶/۱۰.

اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۝ وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ

نوم درب خپل | سحر | او مابنام | او دځه برخې دشپې نه | پس سجده كوه | هغه ته

سحر اومابنام دهغه د نوم ذكر كوه | ..................اود شپې په يوه حصه كښې هغه ته سجده كوه

وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا ۝ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّوْنَ

او تسبيح وايه دهغه | په شپه اوږده كښې | بيشكه دا خلق چې دي | مينه كوي |

اودهغه تسبيح د شپې په لويه حصه كښې وايه | بيشكه دي خلقو خودنيا خوښه كړې ده

الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُوْنَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيْلًا ۝

دزر حاصليدونكې دنيا سره | او پريږدي | روستو دخانونو خپلو نه | ورځ درنه |

..................اوو پړاندې راتلونكې يوه درنه ورځ ئې بيخې پريښودې ده |

نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ ۚ

خاص هم مونږه پيدا كړي دي دوئ | او مضبوط كړې دي مونږه | بندونه ددوئ |

هم مونږ دوئ پيدا كړي دي | ..................اوددوئ بندونه مو كلك كړي دي

وَاِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَآ اَمْثَالَهُمْ تَبْدِيْلًا ۝ اِنَّ هٰذِهٖ

او كله چې اوغواړو مونږه | بدل به كړو مونږه شكلونه ددوئ | په بدلولو سره | بيشكه دا قرآن |

او دركله چې اوغواړو | نو ددوئ په ځائې به ددوئ غوندې نور خلق بدل كړو | دا (قرآن پاك)

تَذْكِرَةٌ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ۝

نصيحت دي | پس هغه څوك | چې غواړي | اودنيسي | رب خپل ته | لار |

خو يو نصيحت دي | نو څوك چې اوغواړي نود خپل رب طرفته دې لار اونيسي

وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

او هيڅ نه كيږي په غوښتلو ستاسو | مگر كيږي هغه | چې غواړي الله | بيشكه الله |

اوتاسو خوبس هغه څه غوښتلې (كولې) شئ | چې الله ﷻ ئې اوغواړي | بيشكه الله ﷻ

كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝ يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ وَالظّٰلِمِيْنَ

دې عالم او حكيم | داخلوي | هغه څوك | چې خوښه ئې شي | په رحمت خپل كښې | اوظالمان چې دي

ددير علم او حكمت خاوند دې | څوك چې اوغواړي نو په خپل رحمت كښې ئې داخلوي | اوظالمانو

اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝

| تيار كړې دې الله | دپاره دهغوئ | عذاب دردناك |

دپاره الله ﷻ دردناك عذاب تيار كړې دې

**قوله تعالى:- اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ تَنْزِيْلًا**

**د قرآن پاک نازلیدل وارپه وار اوشو:-** الله تعالی چه په خپل نبیکریم ﷺ باندې خپل کوم خاص کرم کړې دې دهغې یاداشت کولې شی چه مونږ په تاباندې وارپه وار لږ لږدا قرآن پاک نازل اوفرمائیلو اوس د دې اکرام په مقابله کښې تالره هم پکار دی چه زما په لارکښې دصبراوبرداشت نه کاراواخلې زما په ضا او قدرباندې صابر اوشاکر پاتې شې نوزما حسن تدبیرته ګوره چه زه تاد کوم خاې نه کوم خائی ته رسوم.د دې کافرانواومنافقانو په خبرو کښې مه راخه. که دوی تاد تبلیغ نه منع کوی خوته مه منع کیږه. بغیرد څه نرمئی اورعایت اوبغیردناامیدئی اوستړیوالی هروخت وعظ اونصیحت ارشاد او تلقین سره غرض لره. زما په ذات باندې یقین ساته زه به تاد خلقو د تکلیفونونه بچ کوم. ستا د عزت ذمه دار زه یم.فاجر وائی بدعمله اوګناهګارته اوکفور وائی د زړه نه منکر ته، دورځې په اوله اوآخره حصه کښې رب یادوه.د شپې دتهجد مونځ کوه اود ناوخته پورې د الله ﷻ تسبیح کوه لکه چه بل ځائی دی ﴿وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ﴾ د شپې تهجد کوه ډیر زر به تاته الله تعالی مقام محمود درکړې. د سورت مزمل په شروع کښې اوفرمائیل اې د کمبلې اغوستونکیه د شپې قیام کوه لږه شپه نیمه شپه یاد دې نه کم یا زیات اوقرآن پاک په ترتیل سره لوله. بیا کافران منع کوی چه په دنیاکښې اونخلئی اوآخرت مه پریږدئی هغه ډیره درنه ورځ ده د دې فانی دنیاشاته پریوځئی اودهغه ویرونکې ورځ د سختونه غافل نی نودا د عقل مندوکارنه دې.بیا فرمائی چه د ټولوخالق مونږیو اود ټولو مضبوط پیدائش او قوی قوی هم مونږ جوړکړی دی اومونږ بالکل قادریو چه د قیامت په ورځ هغوی بدل کړو او په نوی پیدائش سره نی پیدا کړو.دلته نی ابتدائی پیدائش د دوباره راګرځولو دلیل جوړکړو.

اود دې آیت دامطلب هم دې چه که مونږ غواړو اوکله غواړو مونږ ته قدرت حاصل دې چه هغوی فنا کړو اوختم نی کړو اوددوی په شان نور انسانان د هغوی په ځائی قایم کړو.لکه بل ځائی ارشاددې ﴿اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ﴾ که الله تعالی اوغواړی نواې خلقو تاسو ټول به بربادکړی او نور به راولی او الله ﷻ په دې باندې هروخت قادر دې.بل ځائی ارشاددې که اوغواړی تاسوبه فناکړی اونوې مخلوق به راولی الله ﷻ ته داګران نه دی.

**قوله تعالى:- اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ**

بیافرمائی چه داسورت سراسر عبرت اونصیحت دې ځوك چه غواړی دې نه دې نصیحت واخلی اود الله تعالی سره ملاویدنکې لار باندې دې روان شی. لکه څنګه چه په بل مقام کښې ارشاد ربانی دې ﴿وَمَاذَا عَلَيْهِمْ﴾ په هغوی به څه بوج پریوتې وې که الله تعالی اود قیامت ورځ نی منلې وې؟ بیا فرمائی چه خبره داده ترکومې الله تعالی نه غواړی نوستاسوبه د هدایت هڅو غوښتنه نه وی. الله تعالی علیم او حکیم دې اود هدایت مستحق خلقو ته هغه د هدایت لار آسانوی اود هدایت اسباب ورنصیب کوی او چه ځوك خپل ځان د ګمراهئی مستحق جوړوی هغه دهدایت نه اخوا کوی په هرکارکښې د هغه حکمت بالغه او حجت تامه دې. ځوك چه غواړی د خپل رحمت لاندې راولی اوبه نیغه لارئی.اودروی اوچاله چه غواړی بې لارې کړی او په نیغه لارنی نه پوهه کوی دهغه هدایت خوبه نه ځوك ورك کړی اونه به د هغه ګمراهی ځوك په لاربدله کړې شی.دهغه عذاب د ګناهګارانو ظالمانواوناانصافود پاره خاص دې.

د الله تعالی شکر دې چه د سورت دهر تفسیر ختم شو.

**﴿تفسیرسورت مرسلات﴾**

**د سورت پیژندګلو:-** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د منی په یوغارکښې ووکله چه دا سورت نازل شو.حضور ﷺ د دې تلاوت کولو اوما اوریدلو اویادولومې چه ناڅاپې یومار په مونږ باندې راټوپ کړو.حضور ﷺ اوفرمائیل دا مړکړه مونږ وراودانګل خو هغه اووتلو نوحضور ﷺ اوفرمائیل ستاسو د سزا

نه بچ شو لکه څنګه چه تاسو د هغه د بدنې نه بچ شوئ.(۱) دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه مور بي بي حضرت ام الفضل رضي الله عنها فرمائي چه ما نبی کریم ﷺ د ماښام په مانځه کښې د دې سورت تلاوت کولو سره واوریدو(۲)بل روایت کښې دی چه عبدالله رضي الله عنه ددې سورت په لوستلوسره حضرت ام الفضل رضي الله عنها واوریدونو ونې فرمائیل ګرانه بچیه نن خوتاماته رایادکړل چه ما د رسول الله ﷺ د مبارکې ژبې نه د ماښام په مانځه کښې په آخر ځل دا سورت اوریدلې وو.(۳)

| اياتونه | | | سورة المرسلات مكية وهي خمسون اية وفيها ركوعان | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑤ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ② |

| وَالۡمُرۡسَلٰتِ | عُرۡفًا ۙ﴿۱﴾ | فَالۡعٰصِفٰتِ |
|---|---|---|
| قسم دې په لیږلو شوؤ نرمو هواګانو باندې \| چې لیږلې کیږي بې درپې \| بیا تیزې چلیدونکې وی \| | | |
| په هغه بادونو قسم دې چې رالیږلې شوی دی\| بیاپه هغه بادونو چې | | |

| عَصۡفًا ۙ﴿۲﴾ | وَّالنّٰشِرٰتِ | نَشۡرًا ۙ﴿۳﴾ | فَالۡفٰرِقٰتِ |
|---|---|---|---|
| په تیزو چلیدلو سره \| اواوچتونکې وی وریځې \| په اوچتولو سره \| بیا جدا کونکې وی (وریځو لره) \| | | | |
| تیز الوزی \| بیا په هغې وریځو چې خوربیږي\| .........بیا په هغې (وریځو) چې ګډې وډې ځې | | | |

| فَرۡقًا ۙ﴿۴﴾ | فَالۡمُلۡقِيٰتِ | ذِكۡرًا ۙ﴿۵﴾ | عُذۡرًا | اَوۡ نُذۡرًا ۙ﴿۶﴾ |
|---|---|---|---|---|
| په جدا کولو سره \| بیا په زړه کښې اچونکې وی \| یاد دالله لره \| په طور دعذر \| یا په طور دیروني \| | | | | |
| .........بیا په هغه فرښتو چې وحی راکوزوی\| په طور د عذر یا په طور د ویرولو | | | | |

| اِنَّمَا تُوۡعَدُوۡنَ | لَوَاقِعٌ ؕ﴿۷﴾ |
|---|---|
| بیشکه دکوم څیز چې وعده کیږي ستاسو سره \| هغه خامخا واقع کیدونکې دې \| | |
| بیشکه تاسو سره چې کومه وعده کولې شي \| هغه خامخا پوره کیدونکې ده | |

| فَاِذَا النُّجُوۡمُ | طُمِسَتۡ ۙ﴿۸﴾ | وَاِذَا السَّمَآءُ | فُرِجَتۡ ۙ﴿۹﴾ | وَاِذَا الۡجِبَالُ |
|---|---|---|---|---|
| پس هر کله چې ستوری \| بې نوره شي \| او کله چې اسمان \| اوشلولې شي \| او کله چې غرونه \| | | | | |
| کله چې ستوری بې نوره شي \| ..........او څه وخت چې اسمان اوشلیږي \| او کله چې غرونه | | | | |

| نُسِفَتۡ ۙ﴿۱۰﴾ | وَاِذَا الرُّسُلُ | اُقِّتَتۡ ؕ﴿۱۱﴾ | لِاَىِّ يَوۡمٍ |
|---|---|---|---|
| والوزولې شي \| او کله چې رسولان \| په مقرر وخت حاضر کړې شي \| دکومې ورځې دپاره \| | | | |
| والوزولې شي \| او کله چې تول پیغمبران په مقرر وخت راجمع کړې شي \| دا کارکومې ورځې | | | |

(۱) صحيح بخاري كتاب التفسير سورة المرسلات باب (هذايوم لاينطقون):۴۹۲۴، صحيح مسلم:۲۲۳۴،احمد:۴۲۸/۱، حاکم:۴۵۳/۱
(۲) احمد:۳۳۹/۶وهوحديث صحيح والبخاري:۴۴۲۹، مسلم:۴۶۲.
(۳) صحيح بخاري كتاب الاذان باب القراءة في المغرب:۷۶۳، صحيح مسلم: ۴۶۲، ابوداؤد: ۸۱۰، ترمذي:۳۰۸، ابن ماجه: ۸۳۱.

| أُجِّلَتْ ﴿١٢﴾ | لِيَوْمِ الْفَصْلِ ﴿١٣﴾ | وَمَا أَدْرٰىكَ | مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ﴿١٤﴾ |
|---|---|---|---|
| روستو کړې شوي دي دا کار | د فيصلې دورځې دپاره | او څه معلومه ده تاته | چې څه ده ورځ دفيصلې |
| ته روستو شوي دي | د فيصلې ورځې ته | او تاته څه معلومه ده چې د فيصلې ورځ څه ده | |

| وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ | لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١٥﴾ |
|---|---|
| تباهي ده په دغه ورځ | دپاره ددروغ گڼرونکو |
| په دغه ورځ دروغ گڼرونکو دپاره لوئې هلاکت دې | |

**قوله تعالى:-** وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا ﴿١﴾

**د الله تعالى قسمونه:**-دبعضې بزرگانوصحابه کرامو ﷺ او تابعين ﷺ نه خوروايت دې چه دا ذکر شوی قسمونه ددې صفتونووالا فرښتو خورلی دی بعضې وائي چه اولنی څلورقسمونه د هواګانودي او پنځم قسم دفرښتودې. بعضوتوقف کړې دې.﴿وَالْمُرْسَلٰتِ﴾ نه مرادفرښتې دی یاهواګانې دی ﴿فَالْعٰصِفٰتِ﴾ کښې وئيلی شوی دی چه دې نه مراد هواګانې دی. بعضې په ﴿الْعٰصِفٰتِ﴾ کښې دا فرمانی او﴿وَالنّٰشِرٰتِ﴾ کښې څه فيصله نه کوی.داهم روايت دې ﴿وَالنّٰشِرٰتِ﴾ نه مرادباران دې اوپه ظاهره خوهم دامعلوميږی چه ﴿وَالْمُرْسَلٰتِ﴾ نه مرادهواګانې دی لکه چه بل ځائی د الله تعالي ارشاد دې ﴿وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ﴾ يعنی مونږ هواګانې روانې کړې چه اوريځې درنه وی بل ځائی دی ﴿يُّرْسِلَ الرِّيٰحَ بُشْرًا﴾ دخپل رحمت نه وړاندې د دې زيرې ورکونکی يخې يخې هواګانې هغه چلوی. ﴿الْعٰصِفٰتِ﴾ نه مرادهواګانې دی هغه نرمې سپکې او ښانسته ښانسته هواګانې وې او دا لړ شان د تيزو چپووالا او آواز والا هواګانې دی.﴿وَالنّٰشِرٰتِ﴾ نه مراد هم هواده کوم چه اوريځې په آسمان کښې هرو خلورو وارو طرفونوته خوروی اوکوم ځائی چه د الله تعالی حکم وی هلته نی بوځی ﴿الْفٰرِقٰتِ﴾ او ﴿فَالْمُلْقِيٰتِ﴾ نه مراد البته فرښتې دی چه دالله تعالی کريم ذات دطرف نه رسولانوته وحی راوړی.په کوم سره چه په حق اوباطل حلال اوحرام ضلالت اوهدايت کښې فرق اوجدا والی کيږی د دې د پاره چه د خلقو عذر ختم شی اومنکرانوته خبردارې اوشی.

**قوله تعالى:-** اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ ﴿٧﴾

**قيامت راتلونکې دې :-**ددې قسمونونه پس فرمان دې چه دکوم قيامت تاسوسره وعده شوې ده په کومه ورځ چه به تاسو ټول اول اوآخر والا د خپلو خپلو قبرونونه بياراژوندی کولې شئی اود خپل کړو ميوه به بيامومئی. دنيکئی بدله اود بدئې سزا. شپيلئی به پوك وهلې شی اوپه يوهوارميدان کښې به تاسو ټول راجمع کړې شئی.داوعده يقيناً حق او کيدونکې ده اوخامخاراتلونکی ده. په هغه ورځ به د ستورو رڼا اوبرق پرق تت شی. لکه چه فرمانې ﴿وَاِذَا النُّجُوْمُ انْكَدَرَتْ﴾ بل ځائی ارشاد دی﴿وَاِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ﴾ ستورې به بې نوره شی او راپريوبه ځی. آسمان به اوشليږی ټکړې ټکړې به شی غرونه به ذره ذره شی وابه لوزی تردې چه نوم اونښه به نی هم باقی پاتې نه شی. بل مقام کښې دی ﴿وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْجِبَالِ﴾ يوبل ځائی ارشادرباني دې ﴿وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ﴾ يعنی غرونه به ذره ذره شی وابه لوزی او په هغه ورځ به هغه روان شی او نوم نښه به نې ختمه شی اوزمکه به هواره بغيرد ښکته پورته پاتې شی اورسولان به راجمع کړې شی او په مقرر وخت به هغوی راوستلې شی.

بل ځائی ارشاد دې ﴿يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ﴾ په هغه ورځ به الله ﷻ رسولان راجمع کړی اود هغوی نه به ګواهئی واخلی لکه چه بل ځائی دی ﴿وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ﴾ زمکه به د خپل رب په حکم باندې اوبرقيږی عمل نامې به.ورکړې شی. نبيان او ګواهان به راوستلې شی اوپه حق اوانصاف سره به فيصلې کولې

شي اوپه چاباندې به ظلم نه شي کولی. بیا فرمائي چه دا رسولان اودرولې شي چه د قیامت په ورځ به فیصله کولې شي.بل ځائې فرمان دې ﴿فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ﴾ داخیال مه کوئی چه الله تعالی به خپلو رسولانوسره وعده خلافی اوکړي.نه نه الله تعالی ډیرغلبې والا او بدلې اخستونکې دې. په کومه ورځ چه به دازمکه بدله کړې شي او آسمان هم بدل کړې شي اوټول به د الله تعالی چه واحداوقهار دې په وړاندې پیش کولې شي. هم دغه ورځ ته دلته د فیصله ورځ ونیلې شوې ده.بیا نې د دغه ورځ عظمت ښکاره کولود پاره اوفرمائیل زما نه د معلومولونه بغیر اې نبی ته هم د دغه ورځ د حقیقت نه نه شې خبریدې. په دغه ورځ د دې تکذیب کونکود پاره سخته خرابی ده. په یوغیرصحیح حدیث کښې دا هم تیرشوی دی چه ویل د دوزخ د یوې کندې نوم دې.[1]

| | |
|---|---|
| اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ۝ | |
| آیا مونږه هلاك نه کړل \| اولنی خلق | |
| آیا مونږ پخوانی خلق تباه کړی نه دی | |
| ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخِرِيْنَ ۝ كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ۝ وَيْلٌ | |
| بیا به مونږ وروستو په هغوئ پسې \| دا روستنی خلق \| درانګې \| کوو مونږه \| دمجرمانو سره \| تباهي ده | |
| بیا به دا روستنی هم ورپسې بوځو (اوهلاك به ئې کړو) مونږ نافرمانو سره هم دغه شان معامله کوو | |
| يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ۝ | |
| په دغه ورځ \| دپاره ددروغ ګڼرونکو \| آیا مونږه پیدا نه کړئ تاسو \| داوبو بې قدرونه | |
| په دغه ورځ دروغ ګڼرونکو دپاره لویه تباهي ده \| آیا مونږ تاسودبې قدره اوبو نه پیدا کړی نه یئ | |
| فَجَعَلْنٰهُ فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ۝ اِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ۝ | |
| بیا اوساتو مونږه هغه \| په ځائې دقرار مضبوط کښی \| دنیتې معلومې پورې | |
| بیا موهغه اوبه په یو محفوظ ځائې (رحم) کښې ایساری کړې \| تر مقرر وخته پورې | |
| فَقَدَرْنَا ۖ فَنِعْمَ الْقٰدِرُوْنَ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ | |
| پس مونږ اندازه اولګوله \| پس ډیر ښهٔ قدرت لرونکی یو \| تباهي ده \| په دغه ورځ | |
| غرض دا چې مونږ یوه اندازه مقرر کړه انو څومره ښهٔ اندازه مقررونکی یو \| په دغه دروغ ګڼرو دپاره | |
| لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ كِفَاتًا ۝ اَحْيَآءً وَّاَمْوَاتًا ۝ | |
| دپاره ددروغ ګڼرونکو \| آیا مونږه جوړه نه کړه \| زمکه \| جمع ساتونکی \| دژوندو دپاره \| او دمړو دپاره | |
| هلاکت دی \| ..........ایامونږ زمکه رانغښتونکې جوړه کړې نه ده \| د ژوندو او د مړو دپاره | |
| وَّجَعَلْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ شٰمِخٰتٍ وَّاَسْقَيْنٰكُمْ مَّآءً فُرَاتًا ۝ وَيْلٌ | |
| او ودردول مونږه \| په هغې کښې \| غرونه \| لوړ لوړ \| اواوڅکولې مونږ په تاسو \| اوبهٔ \| خوږې \| تباهي ده | |
| اومونږ په زمکه باندې دنګ دنګ غرونه پیدا کړی دی \| اومونږ په تاسو خوږې اوبهٔ څکولې دی | |

[1] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الانبیاء: ۳۱٦٤.

| يَّوۡمَئِذٍ | لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ |
|---|---|
| په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼړونکو |
| په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دپاره هلاکت دې | |

**قوله تعالى:- اَلَمۡ نُهۡلِكِ الۡاَوَّلِيۡنَ**

**دګناهګارانوانجام هلاکت شو:-** الله تعالى فرمائي چه تاسو نه وړاندې هم کوم خلقو زمادرسولانو رسالت دروغ ګڼړلې ووماهغوی تباه برباد کړل بيادهغوی نه پس نورراغله هغوی هم داسې اوکړه نو مونږ هغوی هم دغه شان غرق کړل. مونږ د مجرمانود غفلت هم دغه شان بدله ورکونکی راوان يو. په دغه ورځ به د دې تکذيب کونکو بده ورځ وی.

**قوله تعالى:- اَلَمۡ نَخۡلُقۡكُّمۡ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِيۡنٍ**

بياخپل مخلوق ته خپل احسان وريادوی. د قيامت د منکرانو په وړاندې دليل پيش کوی چه مونږ دوی د حقيراوذليل قطرې نه پيدا کړل چه دکائناتود خالق په وړاندې هيڅ څيز هم نه وو لکه چه د سورت يٰس په تفسيرکښې تيرشوی دی اې بنيادمه ته به ما عاجز کړې شې؟ (١)ماخوته د داسې څيز نه پيداکړې بيا مونږ دغه قطره په رحم کښې راجمع کړه چه د دغه اوبود راجمع کولو ځاي دې دا لويوی او محفوظ کوی.د مقرره مودې پورې هم هلته پاتې شو يعنی د شپږ،وميا شتونه ترنهو مياشتوپورې. زمونږ دې اندازې ته اوګوره څومره صحيح او بهترده نوکه بيا هم تاسو دا راتلونکې ورخ نه منئ نو يقين اوګڼړئ چه د قيامت په ورځ به تاسو ته ډير ارمان او سخت افسوس وی. بيافرمائي چه آيامونږ دې زمکې ته داخدمت حواله کړې نه دې؟ چه هغه تاسو په خپل ژوندکښې په خپله شاباندې ګرځوی اود مرګ نه پس هم هغه تاسو په خپله خيټه کښې پټ ساتي.بيا د زمکې دنه خوزيدو د پاره مونږ په دې کښې مضبوط اواوچت غرونه ورخښ کړل اود اوريځونه وريدونکی اودچينونه راوتونکی سپکې زر هضميدونکی او مزيدارې اوبه مونږ تاسوته درکړې.که د نعمتونونه پس هم تاسوزماخبرې دروغ ګڼړئ نو يادساتئي وخت راروان دې چه افسوس اوارمان به کوئ خو هيڅ په کار به نه راځي.

| اِنۡطَلِقُوۡۤا | اِلٰى مَا | كُنۡتُمۡ | بِهٖ |
|---|---|---|---|
| ورشئ | هغه څيز ته | چې وئ تاسو | په هغې سره |
| (داوبه وئيلې شي) چې هغه (عذاب) ته ورشئ چې تاسوبه دروغ | | | |

| تُكَذِّبُوۡنَ | اِنۡطَلِقُوۡۤا | اِلٰى ظِلٍّ | ذِىۡ ثَلٰثِ شُعَبٍ | لَّا ظَلِيۡلٍ |
|---|---|---|---|---|
| چې دروغ به مو ګڼړلو | ورشئ | سورى ته | چې درې خانګووالا دې | چې نه به وی يخ |
| ګڼړلو تاسو (ددوزخ دلوګی) هغه سيوری ته لاړشئ چې دهغې درې حصې دی په کښې نه | | | | |

| وَّلَا يُغۡنِىۡ | مِنَ اللَّهَبِ | اِنَّهَا | تَرۡمِىۡ | بِشَرَرٍ | كَالۡقَصۡرِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه به دفع کوی | دلمبې نه | بيشکه هغه وور چې دې | ولی به هغه | داسې سپرغۍ | لکه ماڼۍ |
| سيوریٔ شته اونه داور دتاؤ نه څوک بچ کيدې شی هغه اور به دومره غټې غټې سکروټکې اولی لکه (لوړې) | | | | | |

١) اوګورئ سورة يٰس آيت: ٧٧.

كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ هٰذَا يَوْمُ

لکه چې هغه | اوښان دی | زیړ | تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ گڼرونکو | دا هغه ورځ ده |

مانړۍ| لکه چې هغه د زیړرنگ اوښان دی | په دغه ورځ دروغ گڼرونکو دپاره هلاکت دې | دا هغه

لَا يَنْطِقُوْنَ ۝ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُوْنَ ۝

چې هغوئ به خبرې نه کوی | او نه به اجازت ورکړې کیږي | هغوئ لره | چې عذر اوکړي هغوئ |

ورځ ده | چې دوئ به خبرې نشی کولې | او نه به دوئ ته اجازت وی | چې عذر پیش کړي

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۚ جَمَعْنٰكُمْ

تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ گڼرونکو | دا ورځ دفیصلې ده | راجمع کړي یئ مونږ تاسو |

په دغه ورځ دروغ گڼرونکو دپاره هلاکت دې| هم دغه د فیصلې ورځ ده |مونږ به تاسو او اولنی تول

وَالْاَوَّلِيْنَ ۝ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيْدُوْنِ ۝

او مخکښې خلق | پس که چرې وی | تاسو لره | څه تدبیر | نو زما خلاف یئ اوچلوئ |

راجمع کړو| ......... نوکه تاسو څه چل ول جوړول غواړئ | نو زما په مقابله کښې جوړ کړئ

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝

تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ گڼرونکو |

په دغه ورځ دروغ گڼرونکو دپاره هلاکت دې|

**قوله تعالى:-** اِنْطَلِقُوْا اِلٰى ظِلٍّ ذِيْ ثَلٰثِ شُعَبٍ ۝

**درې ښاخونو والا وور**:کوم کافرانو چه د قیامت ورځ جزا اوسزا اوجنت دوزخ دروغ گڼرلو هغوی ته به د قیامت په ورځ ونیلې شی چه کوم ځیز موربښتونې نه منلو هغه سزا اودوزخ دادې موجود دې دې ته ځنی اودشغلې لمبې وهی او په اوچتیدوسره سره دې کښې درې پاتکی کولاویږی اود دې درې حصې کیږی اودې سرد لوګې هم پورته اوچتیږی د څه په وجه چه لاندې سورې شان کیږی دا سورې معلومیږی خو په حقیقت کښې نه هغه سورې وی اونه د اورګرموالې کموی.دادوزخ دومره تیز اوتند سخت او د ډیر زیات اور والا دې چه ددې کوم بڅری الوزی هغه هم دقلعه په شان اودیوې سرورې ونې په شان مضبوط اواوږدې اوپلنې تنې په شان دی کتونکی ته داښکاری لکه چه دتوررنګ اوښ دې یاد کشتورسنی اویاد تانبې ټکرې دی.

**د دوزخ ذکر**:-ابن عباس رضي الله عنه وائی چه مونږ به د ژمی په موسم کښې درې درې لاسه یادې نه لږ شان اوږده لرګی راژچتول دې ته به مونږ قصر ونیل[1] دکشتنی رسنی چه کله یوځانی شی نوپوره زیات اوچتیږی هم دغه دلته مراد اخستې شوې دې. په دې مکذبینویاندې ارمان او افسوس دې چه نن به نه دوی خبرې کولې او نه به دوی ته عذر اومعذرت اجازت وی خکه چه په دوی باندې حجت قایم شوې دې.او په ظالمانوباندې د الله تعالی خبره ثابته شوې ده اوس دوی ته د خبروکولواجازت نشته. دایاد ساتنی چه په قرآن کریم کښې د هغوی وینا کول منکرکیدل پټول عذر کول هم بیان شوی دی. نومطلب دا دې چه د حجت قائمیدونه وراندې به عذر معذرت وغیره پیش کوی کله چه هرڅه مات کړې شی اودلیلونه

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المرسلات باب ﴿انها ترمی بشرر کالقصر﴾:۴۹۳۲.

ورمخکښې کړې شي نو وینا خبرې کول اوعذر معذرت به ختم شي. غرض دا چه د میدان حشر به مختلف مواقع اود خلقو به مختلف حالتونه وی یووخت کښې دایو وخت کښې هغه.ددې دپاره د هر یو کاربه خاتمه باندې دتکذیب کونکود خرابئ خبرورکولې شي. فرمائي چه دا د فیصلې ورځ ده وراندې روستوټول راجمع دی.که تاسو په څه چالاکئ مکرهوښیارئ اودهوکې سره زماد قبضې نه خان ویستلې شئ نو اوخئ پوره کوشش اوکړئ.خیال کوئ چه داخومره د زړه درزونکې فقره ده چه الله ﷻ رب العالمین پخپله د قیامت په ورځ دې منکرانوته فرمائي چه اوس ولې چپ ئې؟ هغه چالاکي تیزی او بې باکی څه شوه؟ گورئ ماتاسوټول د وعدې مطابق په یومیدان کښې راجمع کړئ که نن په څه چل ول مانه خلاصیدې شئ نوڅه کمې مه کوئ.لکه بل خائي ارشاد دی﴿يَامَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا مِنْ أَقْطَارِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾یعني اې د انسانانو پیریانوډلې تاسود زمکې اوآسمان دغاړو نه دوتلو طاقت لرئ نو اوخئ خودومره پوهه شئ چه بغیرد قوت نه تاسو بهر نه شئ تلې(اوهغه په تاسو کښې نشته). بل خائي کښې ارشاد دی﴿وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا﴾یعنی تاسودالله تعالی هیڅ نه شئ کولې. په حدیث کښې دی چه الله ﷻ فرمائي اې زمابندیگانونه خوتاسوماته څه نفع رارسولواختیارلرئ اونه د نقصان رسولو. نه تاسوماته څه فائده رسولې شئ اونه زما څه کولې شئ([1])حضرت ابوعبدالله جدی رحمه الله فرمائي زه بیت المقدس ته لاړم اومې کتل چه هلته حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه او حضرت کعب احبار رضی الله عنه ناست دی خبرې کوی.زه هم کیناستم نوما واوریده چه حضرت عباده رضی الله عنه فرمائي د قیامت په ورځ به الله تعالی ټول مخکی روستي په یوهواراوکولاو میدان کښې راجمع کړی. آواز کونکې به آواز کولوسره ټول رابیدار کړی. بیا به الله تعالی اوفرمائي نن د فیصلوورځ ده تاسو ټول وراندینی اوروستونی ما راجمع کړی ئې اوس زه تاسو ته وایم که څوك ماسره دهوکه مکر فریب یاڅه حیله کولې شئ نواوکړئ. واورئ کبرژنوسرکشومنکرانواوتکذیب کونکو نن زماد رانیولونه بچ کیدې نه شئ اونه څوك نافرمانه شیطان زما دعذابونونه خان خلاصولې شي. حضرت عبدالله رضی الله عنه اوفرمائیل یوحدیث زه هم بیانوم. په هغه ورځ به دوزخ خپله غړانگه د خلقو مینځ ته وراورسوی اوبه اوچت آواز سره به وائي اې خلقو د دریوقسم خلقو د رانیولواوس ماته حکم شوې دې زه هغه ښه پیژنم یو پلار به خپل اولاد یا اولاد به خپل پلار دومره نه پیژنی څومره چه زه هغوی پیژنم. نن هغوی زمانه چرته پټیدې شی اونه ئې زمانه څوك پټولې شي. یوهغه چا الله تعالی سره ئې څوك شریك گرځولې وی. دویم هغه چه منکر او کبرژن وی اودریم هغه چه نافرمانه شیطان وی. بیا به هغه په راتاویدو او راغونډولوسره د دې صفتونوخلق په میدان حشر کښې چانړکوی اویویوبه رانیسي او تیروی به ئې اود حساب کتاب نه وړاندې به دوی څلوېښت کاله مخکښې دوی دوزخ ته اورسی.(الله تعالی دې مونږ په حفاظت اوساتي. آمین)

| إِنَّ الْمُتَّقِينَ | فِي ظِلَالٍ |
|---|---|
| او بیشکه متقیان خلق (نن) | په سورو کښې دی |
| ابیشکه (د الله ﷻ) نه ویریدونکي | (دهغه د رحمت) سیوری |

| وَعُيُونٍ | وَفَوَاكِهَ | مِمَّا يَشْتَهُونَ | كُلُوا | وَاشْرَبُوا |
|---|---|---|---|---|
| او په چینو کښې دي | او په میوو کښې دي | هغه چې غواړي یې هغوی | خورئ | او څکئ |
| اوچینو کښې وی | او(هغوی به) په هغه میوو کښې وی | اچې دهغوئ به خوښې وی | | اورته به اووئیلې شي چې) |

---

[1]) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب تحریم الظلم:۲۵۷۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَنِيْٓـًٔا | بِمَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ۝ | اِنَّا كَذٰلِكَ | |
| په دمزې سره | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو | بیشکه مونږه همداسې | |
| په فراخه خورئ څښئ \| دهغه عملونو په بدله کښې \| چې تاسو به کول \| (او) مونږ نیکانو | | | | | |
| نَجْزِي | الْمُحْسِنِيْنَ۝ | وَيْلٌ | يَوْمَئِذٍ | لِّلْمُكَذِّبِيْنَ۝ | كُلُوْا |
| بدله ورکوو | نیکانو خلقو له | تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼرونکو | خورئ |
| نه هم دغه شان بدله ورکوو \| په دغه ورځ دروغ ګڼرونکو دپاره هلاکت دې (اې کافرانو) | | | | | |
| وَتَمَتَّعُوْا | قَلِيْلًا | اِنَّكُمْ | مُّجْرِمُوْنَ۝ | وَيْلٌ | يَوْمَئِذٍ |
| او فائده واخلئ | لږ وخت | بیشکه تاسو | مجرمان یئ | تباهي ده | په دغه ورځ |
| بوخو ورځې (په دنیا کښې) او خورئ \| او لږه فائده واخلئ \| یقیناً تاسو مجرمان یئ \| په دغه ورځ د دروغ | | | | | |
| لِّلْمُكَذِّبِيْنَ۝ | وَاِذَا قِيْلَ | لَهُمُ | ارْكَعُوْا | لَا يَرْكَعُوْنَ۝ | وَيْلٌ |
| دپاره ددروغ ګڼرونکو | او کله چې اوویلې شي | دوئ ته | ټیټ شئ (الله ته) | نو نه ټیټیږي | تباهي ده |
| ګڼرونکو دپاره هلاکت دې \| او څه وخت چې دوئ ته اوویلې شي (چې الله ته) ټیټ شئ نو دوئ نه ټیټیږي | | | | | |
| يَوْمَئِذٍ | لِّلْمُكَذِّبِيْنَ۝ | فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ | بَعْدَهٗ | يُؤْمِنُوْنَ۝ | |
| په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼرونکو | پس په کوم کلام باندې | روستو دې قرآن نه | ایمان راوړي دوئ | |
| په دغه ورځ د دروغ ګڼرونکو دپاره هلاکت دې \| اخر دې (قرآن پاک) نه پس به په کومه خبره دوئ ایمان راوړي | | | | | |

**قوله تعالی:- اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ظِلٰلٍ وَّعُيُوْنٍ۝**

**جنت او د جنتیانو ذکر:** پورته د بدکارانو د سزا ګانو بیان شوې وو دلته د نیکوکارو د بدلې بیان کولې شي کوم خلق چه متقیان او پرهیزګاره وو د الله ﷻ عبادت کونکي وو د فرانضو او واجباتو پابند وو د الله ﷻ د نافرمانو او حرامو کارونو نه بچ کیدل هغوی به د قیامت په ورځ په جنتونو کښې وي. کوم ځائې چه قسم قسم نهرونه روان دي ګناهګار به په تك تور بدبویه لوګي کښې راګیروي او نیکان به د جنتونو په ګڼړو یخواو د سورو نه ډکو خایونو کښې ناست او ملاست وي مخامخ به د صفا او مزیدار او اوبو چینې په پوره روانئ سره جاري وي. قسم قسم میوې ګلونه ترکاریانې به موجود وي. کوم څیز چه کله غواړي خوري څکي دې نه نه منع کول شته نه کمیدل شته او نه د نقصان څه اندیښنه شته. نه به د فناکیدو او نه ختمیدو څه خطره وي. بیا د حوصلې زیاتولو او د زړه خوشحالولو دپاره د الله تعالی د طرف نه باربار فرمان کولې شي اې زما خوږ وبند یګانو اې جنتیانو تاسو ښه په اوزګارتیا او خوشحالئ سره ښه خورئ څکئ مونږ به هر یو نیك پرهیزګار او مخلص انسان ته دغه شان د ښیګړې بدله اونیکه جزا ورکوو او د تکذیب کونکو خو په دې ورځ ډیره خرابي ده.

**قوله تعالی:- كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا اِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ۝**

دا تکذیب کونکي ویروي چه ښه ده په دنیا کښې خو تاسو څه خورئ څکئ فائدې او چتې کړئ ډیر زر به دا نعمتونه فنا شي او تاسو به هم مړه شئ بیا ستاسو نتیجه هم دوزخ دې (د کوم ذکر چه پورته تیر شو) ستاسو بدعملو او خرابو کارونو سزا مونږ سره تیاره ده. یو مجرم هم زمونږ د نظر نه به نه دې. قیامت زمونږ نبي ﷺ زمونږ وحی نه منونکي او دا دروغ ګڼرونکي به د قیامت په ورځ په سخت نقصان کښې او خساره کښې وي. د دوی به سخته خرابي وي لکه چه بل ځائې ارشاد دې (نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ اِلٰى

عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ په دنیاکښې به مونږ دوی ته لږه شان فائده اورسوو بیا به مونږ دوی د سخت عذاب طرف ته بې بس کړو. بل ځائې ارشاد دې ﴿قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ﴾ یعنی په الله تعالی باندې دروغ تړونکې کامیابیدې نه شی. په دنیاکښې به هسې لږه شان فائده اوچته کړی بیا د هغوی واپس راګرځیدل خو هم زمونږ طرف ته دی. مونږ به هغوی ته د هغوی د کفر سخته سزا ورکړو. بیا فرمانی چه دې نادانو منکرانوته کله اونیلې شی چه راشئ د الله تعالی په وړاندې ټیټ شئ جمعې سره مونځ اداکړئ نو دوی نه دا هم نه شی کیدې او دې نه هم ځان پټوی بلکه دې ته په سپکوالی سره ګوری اود تکبر سره انکارکوی.دهغوی دپاره کوم چه په تکذیب کښې عمرونه تیروی دقیامت په ورځ به سخت مصیبت وی
بیا فرمانی چه کله خلق په دې پاك کتاب باندې هم ایمان نه راوړی نوکوم یوکلام به منی؟ لکه ارشاد دې ﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ﴾ یعنی چه په الله تعالی باندې اود هغه په آیاتونویاندې دوی ایمان نه راوړی نو اوس به دوی په کومه خبره باندې ایمان راوړی؟ ابن ابی حاتم کښې د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې رسول الله ﷺ فرمانیلی دی کوم سړې چه د دې سورت دا آیت اولی نو هغه ته د دې په جواب کښې ﴿امنت بالله وبما انزل﴾ ونیل پکار دی یعنی ما په الله تعالی باندې اود هغه په نازل کړې شوی کتابونویاندې ایمان راوړې.[1] داحدیث په سورت قیامت کښې هم تیرشوې دې.

﴿الحمدلله﴾د سورت مرسلات تفسیرختم شو.

د الله تعالی شکر دې چه د یوکم دیرشمې سپارې تفسیرهم پوره شو. ﴿فالحمدلله﴾

الله تعالی دې په خپل کلام پاك باندې پوره پوهه اوپه دې باندې د عمل توفیق راکړی او دا دې قبول کړی.
﴿امین یارب العالمین﴾

[1] ابوداؤد كتاب الصلاة باب مقدار الركوع والسجود:۸۸۷، ترمذی:۳۳٤۷، حاکم:۵۱۱/۲.

| اياتونه | سورة النباء مكية وهي اربعون اٰية وفيها ركوعان | ركوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ٤٠ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ٢ |

عَمَّ يَتَسَآءَلُوۡنَ ۝١ عَنِ النَّبَاِ الۡعَظِيۡمِ ۝٢ الَّذِىۡ هُمۡ

دځه څيز په پاره كنبي | دوئ تپوسونه كوي ديوبل نه | په باره د لوئ خبر | هغه | چې دوئ |

داخلق دكوم څيز په باره كنبې ديوبل نه تپوسونه كوي| دهغه لوې خبر(قيامت) په باره كنبې چې

فِيۡهِ مُخۡتَلِفُوۡنَ ۝٣ كَلَّا سَيَعۡلَمُوۡنَ ۝٤ ثُمَّ كَلَّا

په دغې كنبي | اختلاف كونكې دی | هرگز نه | ډير زر به معلومه شي دوئ ته | بيا هر گز نه |

دوئ په كنبې دی | داسې نه ده| زر به دوئ پوهه شي| ................. بيا داسې پكار نه ده

سَيَعۡلَمُوۡنَ ۝٥ اَلَمۡ نَجۡعَلِ الۡاَرۡضَ مِهٰدًا ۝٦ وَّالۡجِبَالَ اَوۡتَادًا ۝٧

ډير زر به معلومه شي دوئ ته | آيا جوړه كړې نه ده مونږ | زمكه | فرش | او غرونه | ميخونه |

دوئ به زر پوهه شي |آيا مونږ زمكه فرش نه ده گرځولې او غرونه موږې ميخونه نه دی لگولی

وَّخَلَقۡنٰكُمۡ اَزۡوَاجًا ۝٨ وَّجَعَلۡنَا نَوۡمَكُمۡ سُبَاتًا ۝٩ وَّجَعَلۡنَا

او پيدا كړې مونږه تاسو | جوړې | او جوړ كړو مونږه | خوب ستاسو | دارام ذريعه | او جوړه كړه مونږه

اومونږ تاسو جوړې جوړې پيدا كړې ئې| او مونږ ستاسو دپاره خوب آرام اوگرزولې | او مونږ

الَّيۡلَ لِبَاسًا ۝١٠ وَّجَعَلۡنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ۝١١ وَّبَنَيۡنَا فَوۡقَكُمۡ

شپه | پرده | او جوړه كړه مونږه | ورځ | وخت د روزئ گټلو | او جوړ كړل مونږه | دپاسه ستاسو |

شپه د پردې څيز جوړ كړې دې| او ورځ مو د رزق گټلو ذريعه گرزولې ده | اومونږ ستاسو نه پورته

سَبۡعًا شِدَادًا ۝١٢ وَّجَعَلۡنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا ۝١٣ وَّاَنۡزَلۡنَا

اوه آسمانونه | مضبوط | او جوړ كړو مونږه | (ډيوه) نمر | روښانه اوگرم | او رااوورولې مونږه |

اووه مضبوط آسمانونه جوړ كړی دی| او مونږ يوه روښانه ډيوه(يعنی نمر) جوړ كړې دې| او مونږ

مِنَ الۡمُعۡصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ۝١٤ لِّنُخۡرِجَ بِهٖ

دوريځو نه | اوبه | مسلسل راوريدونكې | دپاره ددې چې رااوباسو مونږه | په ذريعه ددې |

له ډكو وريځونه په شيبو شيبو باران راوورو | چې مونږ په دې (باران) سره

حَبًّا وَّنَبَاتًا ۝١٥ وَّجَنّٰتٍ اَلۡفَافًا ۝١٦

دانې (غلې) | او بوټئ (سبزی) | او باغونه | گڼر گڼر |

غله اوگياه اوگورگور باغونه رزرغون كړو

**قوله تعالى:-** عَمَّ يَتَسَاءَلُوْنَ

**قيامت به يقيناراځي:** كومومشركانوخلقو چه دقيامت دراتلونه انكاركولواودهغي ددروغ ګڼلوپه نيت به ني پخپل مينځ كښي قسم قسم خبري كولې.دلته الله ﷻ دهغه سوالونوجواب اودهغي حقيقت بيانولو سره دهغوى ترديد كوى چه داخلق په خپل مينځ كښي دځه باره كښي سوالونه كوى؟يعني دكوم څيز باره كښي تپوسونه كوى؟آياد قيامت باره كښي تپوسونه كوى؟سره ددي چه هغه خويوډيرلوئ خبردي. يعني خطرناك اوخراب خبردي اود روښانه ورځ په شان ښكاره دي.حضرت قتاده رحمه الله اوابن زيد رحمه الله د دي نباعظيم(ډيرلوئي خبر)دمرګ نه پس بيارا ژوندى كيدل مراداخستې دي.بياددي آيت(اَلَّذِيْ هُمْ فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ)په كوم كښي چه داخلق اختلاف لرى)كښي چه د كوم اختلاف ذكردي هغه دادي چه خلق په دي باره كښي په دوو مختلفومحاذونو باندي دي.يوخو دامنى چه دابه كيږي اوبل دا نه منى.

بياالله ﷻ دي دقيامت منكرانو له دهمكي وركولوسره فرمائي چه يقينابه دوى ته د دي حقيقت ډير زر معلوم شى اوډيرزرخوځه چه هم اوس به معلوم شى.هغوى ته الله ﷻداډيره سخته دهمكي اووعيد اورولي دي.بيا الله ﷻ دخپل عجيبه اوحيرانونكي مخلوقاتوباريكئي خودلوسره دخپل عظيم الشان قدرت نښي بيانوى.دكوم نه چه دا ثابتيږى چه كله الله ﷻ داسي داسي څيزونه بغيردځه نموني په اول ځل پيداكولي شى نوآيادوى بيانه شى راپيداكولي؟

**قوله تعالى:-** اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا

**دزمكي جوړښت:** الله ﷻ فرمائي چه آيامونږزمكه ستاسودپاره فرش نه دي خوركړي؟يعني د ټول مخلوق دپاره ني داهواره نه ده خوره كړي.دغه شان هغه ستاسو په وړاندي عاجزه او حكم منونكي ده.بغيرد څه خوزيدونه چپ چاپ كلكه پرته ده.اوغرونه ني ددي ميخونه جوړكړى دي يعني دائي ميخونه جوړكړه اودي كښي ورخښ كړل دي دپاره چه هغه په دي باندي كلكه ولاړه وي.اودمځكي په شان خوزيږى راخوزيږى نه اودخپل ځان د پاسه اوسيدونكي مخلوق پريشان نه شي.

**قوله تعالى:-** وَّخَلَقْنٰكُمْ اَزْوَاجًا

**انسان ئي جوړه پيداكړو:** بيافرمائي چه دي نه پس خپل ځان ته اوګوره مونږه تاسو جوړه جوړه پيدا كړني يعني نراوماده،سړي اوښځه چه په خپل مينځ كښي د يوبل نه فائده اخلي اوخپل خواهش پوره كوى او دغه شان دهغوى نسل زياتيږى.لكه چه يوبل ځاى كښي ارشاددي(وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ)يعني دالله ﷻ په نښونوكښي يوه داده چه هغه پخپله تاسو نه ستاسو جوړي پيداكړي دي دپاره چه تاسو په دي سكون حاصل كړني. هغه په خپله مهربانئي سره په تاسوكښي مينه اورحم واچولو. بيافرمائي چه مونږ ستاسوخوب د حركت دكمي كيدلوسبب جوړكړو دي د پاره چه تاسو آرام اواطمينان حاصل كړني اود ټولي ورځي ستړيوالي بي آرامي خفګان لري شي.هم ددي معني يوبل آيت په سورت فرقان كښي تيرشوي دي.شپه مونږ لباس جوړكړوچه د دي تياره او توروالي په ټولوخلقو باندي خورشي.يوبل ځاى ارشاد دي (وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰهَا)قسم دي دشپي كله چه هغه پټ كړي. د عربو شاعران هم په خپلوشعرونوكښي شپي ته لباس وائي.حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه شپه د سكون سبب جوړيږى.او په خلاف د شپي ورځ مونږ روښانه رڼا اوبغيردتياري نه جوړه كړه دي دپاره چه تاسو په كښي كار روزګار اوكړني، لاړشئي بيوپار سوداګرى او لين دين اوكړي شئي اوخپل رزق روزى حاصله كړي شئي.اومونږ ستاسو د اوسيدو د پاره زمكه جوړه كړه نو بل طرف ته مونږ ستاسو په سرونوباندي اووه آسمانونه جوړكړل چه ډيراوږده پلن مضبوط ياځه اوښكلي مزيداردي. تاسوګورني چه په دي كښي دمرغلروپه شان پرقيدونكي ستورى دى. بعضي په كښي روان دى او بعضي په يوځاىٔ قايم دى.

قوله تعالى:- وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا

دنمرجوړول: بیافرمائي مونږه نمر پرقیدونکي چراغ جوړکړوچه ټوله دنیا روښانه کوي. هریوڅیز پرقوي او دنیاروښانه کوي.او ګورئي چه مونږ داوبونه د ډکواوریځونه باران راوړولو.ابن عباس ﷺ فرمائي چه هواګاني رواني دی د یوځوانه بل خواته اوریځي اوړي. بیاد دې اوریځونه ښه باران راوریږي.([1]) اوزمکه خړوب کوي نوروهم ډیرو مفسرینوهم دا فرمائیلی دی.د﴿ الْمُعْصِرَاتِ ﴾ نه بعضوخوهوامراد اخستي ده او بعضواوریځي چه یویوڅاڅکی برابر راوروي. ﴿مراة معصرة﴾ په عربوکښي هغه ښځي ته وائي دکومې چه دحیض وخت بالکل نیزدې راغلي وی خولاتراوسه پورې حیض جاری شوې نه وی.حضرت حسن ﷫ او قتاده ﷫ فرمائیلی دی د﴿الْمُعْصِرَاتِ﴾ نه مراد آسمان دې.خوداقول غریب دې اود ټولونه واضحه قول دا دې چه دې نه مراد اوریځي دی. بل ځائ ارشاد دې ﴿اللَّهُ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا فَيَبْسُطُهُ فِي السَّمَاءِ كَيْفَ يَشَاءُ وَيَجْعَلُهُ كِسَفًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ ۖ فَإِذَا أَصَابَ بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ الله ﷻ هواګاني رالیږي کومې چه اوریځي راوچتوی اوداد رب د منشا مطابق په آسمان باندې خوروی اودهغه ټکړې ټکړې کوی بیاته ګورې چه دهغې دمینځ نه اوبه راوځی. ﴿ثَجَّاجًا﴾ معنی ښه یوشان بهیدل دی.چه ډیر بهیږی اوښه راوریږی([2])

قوله تعالى:- مَاءً ثَجَّاجًا

دثجاجامعنی: یوحدیث شریف کښې دی چه غوره حج هغه دې په کوم کښې چه(لبیك)ښه په زوره اوکړې شی اووینه ډیره اوبهیولې شی([3]) یعنی چه قربانئی زیاتي اوکړی.په دې حدیث کښې هم لفظ(ثج) دې. یو بل حدیث کښې دی چه د حیض دمسئلې تپوس کونکې یوه صحابیه ﷞ ته حضور ﷺ اوفرمائیل چه د مالوچو پټئی کیږده([4])هغې وئیل حضور ﷺ هغه خوډیرې زیاتې دی زه خوهروخت ډیرهزیاته وینه بهیوم.پدې روایت کښې هم﴿اثج ثجا﴾دې یعنی بغیردبندیدو برابروینه راځی.نودلته هم په دې آیت کښې هم دغه مراددې چه اوبه داوریځونه برابربغیرد بندیدو راوریږی. والله اعلم.

بیامونږ په دې اوبوباندې چه پاکې صفا او د برکت نه ډکې دی ګټه حاصلوو غلې دانې پیداکوو چه د انسان او څناورو ټولو د خوراك په کارراځی اوسبزئی راټوکوچه تازه خوړلې شی.اوغله په پنډیرو کښې کیخودې شی او بیاخوړلې شی.اودې اوبوسره باغونه آبادیږی اود قسم قسم خوندونواورنګونو میوې دانې اوګلونه راپیداکیږی اودزمکې هم په یوه ټکړه باندې یوځائ دی. ﴿أَلْفَافًا﴾معنی دجمع ده([5])بل ځائ ارشاد دی﴿وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُتَجَاوِرَاتٌ وَجَنَّاتٌ مِنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقَى بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ په زمکه کښې مختلف ټکړې دی چه خپل مینځ کښې یوځائ شوی دی.دانګورو ونې دی بعضې دښاخونواوبعضې بغیرښاخونودی.او هغه ټول هم په یواوبو باندې خړوب کولې شی.او مونږ د یو نه یوه میوه زیاتوو او یقینًا د عقل مندو دپاره په دې کښې نښې دی.

| کَانَ | إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ |
|---|---|
| هغه دې | بیشکه ورځ دفیصلې چې ده |
| بیشکه دفیصلې دورځې وخت | |

[1] الطبری : ١٥٣/٢٤.
[2] الطبری : ١٥٥/٢٤.
[3] ترمذی کتاب الحج باب ماجاء فی فضل التلبیة : ٨٢٧.
[4] ابوداود کتاب الطهارة باب اذا اقبلت الحیضة تدع الصلاة : ٢٨٧ ، ترمذی : ١٢٨ ، ابن ماجة : ٦٢٧.
[5] الطبری : ١٥٦/٢٤.

مِيقَاتًا ۝ يَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَتَأْتُونَ أَفْوَاجًا ۝

وخت مقرر | په کومه ورځ | چې پوکې اووهلې شي | په شپیلۍ کښې | پس راځئ به تاسو | ډلې ډلې |

مقرر دی | چې شپیلۍ به پوک وهلې شي | نو تاسو به ډلې ډلې (میدان حشر ته) راځئ

وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ أَبْوَابًا ۝ وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ

او پرابه نستې شي آسمان | نو شي به هغه | دروازې دروازې | او روان به کړې شي | غرونه |

او آسمان بهٔ پرانستې شي انو ټول به دروازې دروازې شي | ...............او غرونه به والوزولې شي

فَكَانَتْ سَرَابًا ۝ إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ۝ لِّلطَّاغِينَ

نو شي به هغه | پړقنده شګې | بیشکه دوزخ چې دی | دی | ځاني دګیریدو | دپاره دسرکشانو |

نو هغه به دشګو په شان شي ....... | بیشکه جهنم په انتظار کښې دی | ............د سرکشو دپاره

مَآبًا ۝ لَّابِثِينَ فِيهَا أَحْقَابًا ۝ لَّا يَذُوقُونَ

ځاني داوسیدو | چې وخت تیرونکي به وي | په هغې کښې | په مودو مودو | نهٔ به څکي هغوئ |

تیکاؤنړه ده | چې په مودو مودو به په کښې اوسیږي | نه به په کښې دیخنئ خوند څکي |

فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ۝ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ۝ جَزَاءً

په هغې کښې | مزه دیخوالی | اونهٔ څکلو دڅیز | مګر څکی به | ګرمي اوبه | او نو دزخمونو | بدله |

اونه دڅکلو څه څیز | ..................سوا د یشیدلو اوبو اودوینو زوؤنه | ..............دا

وِفَاقًا ۝ إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ۝ وَكَذَّبُوا

موافقه دعمل سره | بیشکه هغوئ | وو | چې امید ئې نهٔ لرو | دحساب کولو | او دروغ ئې اوګنړل |

پوره پوره بدله ده | دا ځکه چې دوئ دحساب کتاب (دورځې) امید ونه لرلو | ............. او زمونږ

بِآيَاتِنَا كِذَّابًا ۝ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا ۝

آیتونه زمونږ | په دروغ ګنړلو سره | او هر څیز چې دی | په شمار ساتلې دي مونږه هغه | په لیکلو سره

ایتونه ئې دروغ ګنړل | ..............او مونږ هر څیز په یو لیک (لوح محفوظ) کښې راجمع کړي دي

فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ۝

| نو اوڅکئ مزه | نو هر ګز به نهٔ زیاتوو مونږه ستاسو دپاره | مګر زیاتوو به | عذاب |

نو اوس خوند اوڅکئ | ............مونږ به تاسو ته نور څه نه خو هم دغه عذاب درزیاتوؤ

**قوله تعالی:- إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيقَاتًا ۝**

**دَ قیامت د ورځ علم صرف الله تعالی سره مقدردې** :یعنی د قیامت ورځ زمونږ په علم کښې مقرره ورځ ده نه هغه وړاندې کیدې شي اونه روستوکیدې شي صحیح په خپل وخت به راځي. کله به راځي د دې صحیح علم بغیرد الله ﷻ نه بل چاته نشته.لکه چه بل ځائ کښې ارشاد دی﴿وَمَا نُؤَخِّرُهُ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ﴾ نه ورکوو وخت مونږ هغې ته مګر نیتې مقررې پورې. په هغه ورځ به په شپیلئ کښې پوکې وهلې شي

اوخلق به ډلې ډلې راځي. هريوامت به دخپل خپل نبي سره جداجد وي. بل ځاۍ فرماني (يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ) په كومه ورځ چه مونږتول خلق دخپلوامامانوسره راوغواړو.په صحيح بخاري كښې حديث شريف دې رسول الله ﷺ فرماني ددواړوشپيلوپه مينځ كښې به څلويښت وي.خلقو تپوس اوكړو څلويښت ورځې هغوی ﷺ اوفرمائيل نه شم ونيلې،تپوس اوشو څلويښت مياشتې ونی فرمائيل ماته پته نشته. تپوس اوشو څلويښت كاله ونی فرمائيل داهم نه شم ونيلې.بيابه الله ﷻ دآسمان نه اوبه راوروی لكه څنګه چه ونې راټوكيږی دغه شان به داخلق دزمكې نه راټوكيږی. انسان ټول به ټول سخا كيږی خوېوهډوكې اوهغه د ملاد تيرهډوكې دې. هم د دې نه به د قيامت په ورځ مخلوق بوځاني كولې شي[1] آسمان به كولاوكړې شي اوددې نه به د فرښتودراتلولارې اودروازې جوړې شي.غرونه به روان كړې شي اوبالكل د شګود ذروپه شان به جوړشي.لكه چه فرماني (وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ صُنْعَ اللَّهِ الَّذِي أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ) يعنی تاسوغرونوته ګورئ اوبوهيږئ چه هغه پاخه مضبوطاوكلك دی دا به د اوريځو په شان روان شي.بل ځاۍ دی (وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ) غرونه به د ويشنلې شوی وړئ په شان شي.دلته فرماني غرونه به سراب غوندې شي يعنی كتونكې به دا ګنړی چه څه دی خوپه حقيقت كښې به هيڅ نه وی او په آخره كښې به بالكل برباد شي او نوم نښه به نی پاتې نه شي.بل ځاۍ ارشادربانی دې (وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا) خلق تانه دغرونوپاره كښې معلومات كول غواړی نورته اووايه چه زمارب به ئې ختم كړی اوزمكه به بالكل هوارميدا پاتې شي په كوم كښې به چه نه څه ګوټ وی اونه موړه.بل ځاۍ ارشاد دې (وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً) په كومه ورځ چه مونږ غرونه روان كړونو ته به ګورې چه زمكه بالكل كولاوشوه.

قوله تعالى:- إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا

بيافرماني دشركش نافرمان اودرسول د مخالفينوپه شيش كښې دوزخ لګيادې اوهم دغه دهغوی د واپس كيدو اواوسيدوځاۍ دې.د دې معنی حضرت حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله داهم كړې چه يوسړې جنت ته هم نه شي تلې تركومې چه په دوزخ باندې تيرنه كړې شي. كه اعمال ئې صحيح وو نو خلاصې ئې بيامونډلواوكه اعمال ئې بد وو نورامنع كړې شو اوپه دوزخ كښې وراوتونبلې شو.حضرت سفيان ثوری رحمه الله فرماني په دې باندې درې پلونه دی. بيا فرماني چه هغوی به په دې كښې د زمانې راسې پراته وی (احقاب)جمع د (حقب)ده يوې اوږدې زمانې ته وائي.بعضې وائی چه حقب داتيااوكالووی،كال د دولسو مياشتو مياشت د ديرشو ورځو اوره ورځ د زرو كالو. بشيربن كعب رحمه الله خو وائي يوه يوه ورځ به دومره لويه اوداسې د دريوسوو كالويوحقب.په يومرفوع حديث كښې دی چه حقب مياشت،مياشت ديرش ورځې كال دولس مياشتې دكال ورځې درې سوااوشپيته او هره ورځ ستاسود شميريوزركاله[2] (ابن ابي حاتم)

خوداحديث سخت منكر دې د دې راوی قاسم چه د جعفربن زبير خوۍ دې دا دواړه متروك دی. په يو بل روايت كښې دی چه ابن مسلم ابوالعلاء دسيلمان تيمی رحمه الله نه تپوس اوكړوآيادوزخ به خوك راوځی هم؟ نو جواب ئې وركړو چه ما د نافع رحمه الله نه اوهغه د ابن عمر رضی الله عنه نه اوريدلی چه رسول الله ﷺ فرمائيل د الله ﷻ قسم د دوزخ نه به هيڅ خوك هم بغيرد اوږدې مودې نه راونځي. بيا فرماني چه هم د دې نه لږ شان د پاسه حقب وی اوهر كال درې سوه شپيته ورځې كوم چه تاسو شميرئ.[3]

---

[1] صحيح بخاری كتاب التفسير سورة عم يتسالون : ۴۹۳۵، صحيح مسلم: ۲۹۵۵، بتصرف يسير.
[2] المعجم الكبير : ۷۹۵۷.
[3] مسند البزار : ۵۳۰۳.

سدي رحمه الله فرمائي چه اووه سوه حقب به وي. هر حقب د اوياؤكالو هركال د دريوسوو شپيتو ورځو او هره ورځ به د دنياد زرو كالوبرابر وي.حضرت مقاتل ابن حيان رحمه الله فرمائي دا آيت﴿فَذُوقُوا﴾په آيت سره منسوخ شوي دي. خالدبن معدان رحمه الله فرمائي چه دا آيت او آيت ﴿إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ﴾يعني دوزخيان چه تر .كومې الله ﷻ غواړي په دوزخ كښې به وي. دا دواړه آياتونه دتوحيدوالا باره كښې دي(1)امام ابن جرير رحمه الله فرمائي داهم ممكن دى چه داحقاب پورې اوسيدل متعلق وى آيت﴿إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا﴾ پورې. يعنى هم هغه يوعذاب ګرمې اوبه او بهيدونكې پيپ به دمودو پورې وى بيابه دويم قسم عذاب شروع شي.خو صحيح دادى چه د دې خاتمه به نه وي.

حضرت حسن رحمه الله نه چه كله تپوس اوكړې شو نو ونى فرمائيل د احقاب نه مراد هميشه په دوزخ كښې اوسيدل دى.خوحقب وائي اوياؤكالوته د كوم هره يوه ورځ چه ددنياد زروكالوبرابره ده(2)حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه احقاب كله هم نه ختميږي.كله چه يوحقب ختم شي نو بل به شروع شي.د دې احقابو د صحيح مودې اندازه صرف يوالله ﷻ ته ده.اودا مونږ اوريدلى دى چه يوحقب داتياؤ كالو يوكال د دريو سوو شپيتوورځو او هره ورځ د دنياد زروكالو. دې دوزخيانوته خو به نه د زړه يخيدل نصيب كيږى او نه به څه ښه اوبه د څكلود پاره ملاويږى. اوديخوالې په ځائ به ورته ګرمې سرې كړې اوبه ملاويږى اود خوراك څښاك څيزبه ورته پيپ ملاويږى. حميم دومره سخت ګرم ته وائى د كوم نه پس چه دګرمائش بله درجه نه وى.اوغساق وائى ددوزخيانووينونونوخولې اوښكې اودزخمونونه بهيدونكې وينوزووته. ددې ګرم څيز په مقابله كښې به دادومره سخت يخ وى چه پخپل ځائ عذاب دې اوډيرخراب بوئ والا دې.

په سورت ص كښې د غساق پوره تفسيرتيرشوي دې. بيا دلته د سردوباره كولو هيڅ ضرورت نشته. الله ﷻ دې پخپل فضل اوكرم سره مونږدخپلوټولوعذابونونه بچ كړى.بعضوئيلى دى د﴿بَرْدًا﴾ نه مراد خوب دې.د عربوشاعران په خپلو شعرونوكښې هم ﴿بَرْدًا﴾ د خوب په معنى كښې مومى. بيا فرمائي چه دهغوى د اعمالو پوره پوره بدله ده. د هغوى بد عملئى هم اوګوره چه د هغوى عقيده وه چه دحساب هيڅ ورځ نه ده راتلونكې. مونږ چه په خپل نبى ﷺ باندې كوم كوم دليلونه نازل كړى وو هغه ټول دوى دروغ ګڼړلې وو﴿كِذَّابًا﴾مصدردې په دې وزن باندې اومصدرهم راځى.بيافرمائى چه مونږ دخپلو بندى ګانو ټول اعمال اوافعال شميرلې دى.او هغه ټول زمونږ سره ليكلې دى اود ټولويدله هم زمونږ سره تياره پرته ده. دې دوزخيانوته به وئيلې شى چه اوس د دې عذابونومزه اوڅكئى. داسې هم او د دې نه نور زيات هم عذابونه به تاسو ته په زياتولو دركولې شي.(3)

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائي چه د دوزخيانود پاره د دې سخت زيات نااميده كونكې بل يو آيت نشته.د هغوى عذابونه به هروخت زياتيږى.دحضرت ابوبرزه اسلمى رضي الله عنه نه سوال اوكړې شو چه د دوزخيانو دپاره د ټولو نه زيات سخت آيت كوم يودې؟ فرمائي حضور ﷺ دا آيت تلاوت كولو سره اوفرمائيل چه دا خلق د الله ﷻ نافرمانو تباه كړل. خوددې حديث راوى جسربن فرقدبالكل ضعيف دې.

| إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ | مَفَازًا ﴿٣١﴾ | حَدَائِقَ | وَأَعْنَابًا ﴿٣٢﴾ | وَكَوَاعِبَ | أَتْرَابًا ﴿٣٣﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه پرهيزګارانو لره دي | ځائې دكاميابئ | باغونه دي | او انګور دي | او پيغلې جينكئ | همزولې |
| بيشكه پرهيزګارانو لره كاميابى ده | (دوئ دپاره) باغونه اوانګور به وي | | | او همزولې پيغلې جينكئ | |

(1) الطبرى : ١٦٢/٢٤.
(2) الطبرى : ١٦٢/٢٤.
(3) الطبرى : ١٦٢/٢٤.

| وَّكَاسًا | دِهَاقًا | لَا يَسْمَعُوْنَ | فِيْهَا | لَغْوًا | وَّلَا كِذّٰبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| او جامونه دشرابو | ډك ډك | نه به اوري هغوئ | په هغې كښې | عبث خبري | او نه دروغ خبري |
| او ډك ترخلې خلې جامونه | ........دوئ به هلته عبث خبره نه اوري | ............اونه به دروغ اوري | | | |

| جَزَآءً | مِّنْ رَّبِّكَ | عَطَآءً حِسَابًا |
|---|---|---|
| دا بدله ده | دطرفه درب ستا | وركړه ده كافي |
| دا بدله ستا د رب له طرفه نه | پوره پوره انعام دي | |

**قوله تعالى:- اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا**

**په جنت كښې دالله تعالى نعمتونه:**-دنيكانوخلقو دپاره الله ﷻ سره نعمتونه اورحمتونه دي دهغې بيان كيږي چه دوی په مقصد كښې كامياب او د نصيب خاوندان دي چه د دوزخ نه ني خلاصې بيا موندو او جنت ته اورسي.حدائق وائي د كهجورو وغيره باغونوته. هغوی ته به ځوانې پيغلې حورې هم ملاويږي چه دجګوسينو والا په يوعمر كښې به وی لكه څنګه چه په سورت واقعه كښې ددې پوره بيان تيرشوې دي.په يوحديث كښې روايت دې چه د جنتيانو لباس به هم د الله ﷻ رضامندي وی.او وريخې به په هغوی راځي اوهغوی ته به وائي چه اوښانې مونږ په تاسو څه اوورو؟بياچه هغوی څه وائي نو هغه پرې راوروی. تردې چه ځواناني پيغلې جينكئي به هم په دوی راوريږي. (ابن ابی حاتم)

دوی ته به دشراب طهورنه ډك پاك صفا جامونه ملاويږي په هغې كښې به نشه نه وی چه فضول بې هوده خبرې به ني دخُلونه اوځي او په غوږونوئي اولګي.بل ځائ كښې ارشاد دې(لَغْوٌفِيْهَاوَلَاتَاْثِيْمٌ)په دې كښې نه فضول خبرې نه بدې خبرې او نه د ګناه خبرې وی. هيڅ خبره دروغ او فضول نه وی.

هغه د سلامتياكور دې چرته چه به هيڅ عيب او د بدئي خبره نه وی. دا كومې بدلې چه دې پاكو خلقو ته ملاويږي داد هغوی د نيكو عملونوتيجه ده چه د الله ﷻ په فضل اوكرم سره اودهغه داحسان او انعام په بنيادوی ته ملاويږي.ډيرې زياتې اوكافي دي ډيرې په كثرت سره دی.عرب وائي(اعطاني فاحسبني)انعام ني وركړواوپوره ني وركړو.دغه شان وائي(حسبي الله)يعني الله ﷻ ماله هرشان سره كافي دي

| رَّبِّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ |
|---|---|
| چې رب دي داسمانونو | او دزمكې |
| چې داسمانونو اود زمكې اوددې | |

| وَمَا بَيْنَهُمَا | الرَّحْمٰنِ | لَا يَمْلِكُوْنَ | مِنْهُ |
|---|---|---|---|
| او هغه چې په منځ ددواړو كښې دی | چې مهربانه الله دې | چې طاقت نه لرې هغوئ | دهغه سره |
| دواړو مينځ كښې دتولو څيزونو پالونكې دې | مهربان دې | هيڅوك ترې (هيڅ قسمه) مطالبه نشي | |

| خِطَابًا | يَوْمَ | يَقُوْمُ | الرُّوْحُ | وَالْمَلٰٓئِكَةُ | صَفًّا | لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دخبرو كولو | په كومه ورځ | چې ودريږي | روح | او فرښتې | په قطار كښې | نه به خبرې كولې شي هيڅوك |
| كولې | په هغه ورځ چې جبريل او ټولې فرښتې به صف ترلې ولاړې وی | ............او هيڅوك | | | | |

| اِلَّا | مَنْ | اَذِنَ | لَهُ | الرَّحْمٰنُ | وَقَالَ | صَوَابًا | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مګر | هغه څوك | چې اجازت اوكړی | هغه ته | مهربانه خدائې | او اووائی | خبره ټيك | دغه |
| به خبرې نشي كولې | اخو چاته چې مهربان الله ﷻ اجازت وركړی | او هغه خبره هم سمه كوی | دغه | | | | |

| إِنَّآ | مَآبًا | إِلَىٰ رَبِّهِۦ | ٱتَّخَذَ | شَآءَ | فَمَن | ٱلْيَوْمُ ٱلْحَقُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږه | واپسی لار | رب خپل ته | اونیسی | چې غواړي | پس هغه څوك | ورځ حقه ده |

ورځ حقه ده | .......نود چا چه خوښه وی نو خپل رب ته دې رجوع اوکړی | ............... بیشکه مونږ

| مَا | يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ | يَوْمَ | عَذَابًا قَرِيبًا | أَنذَرْنَٰكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| هغه هر څه | چې اوبه وینی هر سړې | په کومه ورځ | دعذاب نزدې نه | اویرولې تاسو |

تاسو دنزدې راتلونکی عذاب نه ویروو | په هغه ورځ چې هرسړې به خپل عمل په

| تُرَٰبًا | كُنتُ | يَٰلَيْتَنِى | ٱلْكَافِرُ | وَيَقُولُ | يَدَاهُ | قَدَّمَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خاورې | چې وې زهٔ | افسوس دې مالره | کافر | اواوبه وائی | لاسونو دهغه | چې مخکښې لیږلې دی |

خپلو سترګو اووینی | اوکافر به وائی چې اې کاش که زهٔ بناورې وې (نو څومره به ښه وه)

قوله تعالى:- لَّا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ ٱلرَّحْمَٰنُ وَقَالَ صَوَابًا

**دقیامت په ورځ به بغیرد اجازت نه هیڅ څوک خبرې نشی کولې** :الله ﷻ دخپل عظمت اوجلال خبر ورکوی چه دآسمان اوزمکې اود دې په مینځ کښې دټولومخلوقاتو پالونکې هم هغه یوذات دې.هغه رحمن دې د هغه رحم ټول څیزونه راګیرکړی دی.ترکومې چه دهغه اجازت نه وی ترهغه وخته پورې دهغه په وړاندې شوندې هم نه شی خوزولې. لکه چه بل ځائ ارشاد دې(مَن ذَا ٱلَّذِى يَشْفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ)یعنی څوك دې چه د هغه د اجازت نه بغیردهغه مخې ته سفارش یوسی.بل ځائ ارشاد دې (يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ)یعنی په کومه ورځ چه هغه وخت راشی څوك به هم دهغه داجازت نه بغیرهغه سره خبره نه شی کولې.

قوله تعالى:- يَوْمَ يَقُومُ ٱلرُّوحُ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا

دروح نه مرادخویادټولوانسانانوروحونه دی یاټول انسانان.یادیوقسم خاص مخلوق دې چه د انسانانود شکلونو په شان دی.خوری څکی نه هغه فرښتې دی اونه انسانان.یا مراد حضرت جبرائیل ﷺ دې. حضرت جبرائیل ﷺ ته یوبل ځائ کښې هم روح ونیلې شوې دې .ارشاد دې (نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ۝ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ)دا امانتدار روح ستا زړه ته درکوزکړې دې دې د پاره چه ته ویرونکې جوړ شې. دلته مراد یقیناً حضرت جبرائیل ﷺ دې.

حضرت مقاتل رحمه الله فرمائی چه په ټولوفرښتوکښې بزرګ الله ﷻ سره ډیر نیزدې اووحی راوړونکې هم دغه دې.یاد روح نه مراد قرآن کریم دې.ددې په دلیل کښې داآیت پیش کولې شی(وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا)یعنی مونږ په خپل حکم سره ستاطرف ته روح نازل کړو.دلته د روح نه مراد قرآن کریم دې. شپږم قول دا دې چه دا یوه فرښته ده چه د ټول مخلوق برابره ده.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دا فرښته د ټولوفرښتونه ډیره لویه ده. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه داد روح په نوم فرښته په څلورم آسمان کښې ده.دټولوآسمانونوټولوغرونواو ټولو فرښتونه لویه ده.هره ورځ دولس زره تسبیحات وائی. د هرې یوې تسبیح نه یوه فرښته پیداکیږی د قیامت په ورځ به هم هغه خان یوصف جوړیږی خودا قول ډیرغریب دې.

طبرانی کښې حدیث دې چه رسول الله ﷺ فرمائی په فرښتوکښې یوه فرښته هغه هم ده که هغې ته حکم اوشی چه ټول آسمانونه او زمکې یوه نوړنی جوړه کړه نو هغه به ټول هرڅه په یوه نوړنی واخلی.د هغې

تسبیح داده (سبحانك حيث كنت) اې الله ته چه چرته هم نې پاك نې(¹)داحديث هم ډيرغريب دې بلكه د دې درسول ﷺ په فرمان كيدوكښې هم شك دې.ممكن دې چه دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ قول وي او هغه هم د بنی اسرائيلونه اخستې وي. والله اعلم.

امام ابن جرير رحمه الله دا ټول اقوال واردكړي دي خوڅه فيصله ئې نه ده كړې.زما په نيزد خو په دې ټولو اقوالو كښې بهترقول دا دې چه دلته د روح نه مراد ټول انسانان دي. والله اعلم. بيافرمانى چه په هغه ورځ به صرف هغه كس خبرې كوى چاته چه رحمن اجازت وركړى.لكه چه فرمانى(يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ)يعنى په كومه ورځ چه هغه وخت راشى چه يونفس به بغيرد هغه د اجازت نه خبرې هم نه شى كولې.په صحيح حديث كښې هم دي چه په هغه ورځ به بغيردرسولانونه هيڅ څوك خبرې نه شى كولې. (²)

بيا فرمانى چه د هغه خبره هم ټيك اوصحيح ده. د ټولونه زياته حقه خبره (لااله الاالله)ده. بيافرمانى دا ورځ حق ده اويقينا راتلونكې ده. څوك چه غواړى خپل رب ته د واپس ګرځيدو لار اوبه هغه لار روان شى كومه چه نيغه هغه طرف ته رسى. مونږ تاسو بالكل نيزدې راغلى آفت نه خبركړنى. راتلونكې څيز خوهم راغلې ګنړل پكاردى.هغه ورځ به نوى اوزاړه لوئى اوبدېنه اوخراب اعمال ټول دانسان په وړاندې وى لكه چه فرمانى(وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا)كوم چې موكړى هغه به مخې ته بيامومنى.لكه ارشاد دې (يُنَبَّؤُا الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ)هرانسان به د هغه د وړاندې روستواعمالونه خبركړې شى. په دغه ورځ به كافران خواهش كوى چه افسوس مونږ خاورې شوې وې، پيداكړې شوې نه وې او په وجود نه نه وې راغلې.د الله ﷻ عذابونه به په سترګو اووينى.خپلې بدكارنى به ئې په وړاندې وى كوم چه دپاكو انصاف كونكو فرېښتو په لاس ليكلې شوې وى.نو يوه معنى خو هم داشوه چه په دنيا كښې خاورې شوې وې يعنى د نه پيداكيدو خواهش به كوى.بله معنى داچه كله دخناورو فيصله كولې شى اود هغوى قصاص وركولې شى.ترڅو كه ښكروړې چيلئى بې ښكرو چيلئى وهلې وى نوهغې ته به هم بدله وركولې شى. بيابه هغوى ته وائى چه خاورې شئى. هغوى به خاورى شى. دغه وخت كښې به داكافران انسانان وائى چه كاش مونږ هم خناور وې او خاورې شوې وې. د صور يعنى شپيلئى په اوږد حديث كښې هم دا مضمون وارد شوې دې اود حضرت ابوهريره ﷺ او حضرت عبدالله بن عمر ﷺ وغيره نه هم دا روايت نقل دې.

د سورت نباء تفسيرختم شو (والحمدلله رب العالمين)

.....

(تفسير سورت نازعات مكيه)

| اياتونه | | سورة النازعات مكية وهي ست واربعون اية وفيها ركوعان | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ۴۶ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ۲ |

وَالنَّازِعَاتِ غَرْقًا ۝ وَالنَّاشِطَاتِ

قسم دې په راښكونكو فرېښتو | چې راښكل كوى په سختئ سره | قسم دې په آسانه ايستونكو فرېښتو |

قسم دې په هغه فرېښتو چې په سختئ سره روحونه راوباسى |او په هغې چې په نرمئ سره

---

¹) المعجم الكبير:١١٤٧٦،

²) صحيح بخارى كتاب الايمان باب فضل السجود :٨٠٦، صحيح مسلم:١٨٢.

| | | |
|---|---|---|
| نَشْطًاۙ | وَّالسّٰبِحٰتِ | سَبْحًاۙ |

چي رانښکل کوي په آسانۍ سره | قسم دی په ګرځيدونکو فرښتو | چي ګرځي په تيزۍ سره |
روحونه راکاږي | ..................(په فضا کښي) لامبو وهي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَالسّٰبِقٰتِ | سَبْقًاۙ | فَالْمُدَبِّرٰتِ | اَمْرًاۘ | يَوْمَ |

بيا وړاندي کيدونکي وي | په وړاندي کيدو سره | بيا انتظام چلونکي وي | دهر کار | په کومه ورځ |
اوبيو تربله ور وړاندي کيږي | اودهر کار تدبير کوي | (چي قيامت به راځي).......... په هغه ورځ

| | | |
|---|---|---|
| تَرْجُفُ | الرَّاجِفَةُۙ تَتْبَعُهَا | الرَّادِفَةُؕ |

چي خوريدونکي (زلزله) | چي روستو به راځي په هغې پسي | روستو راتلونکي (دويمه زلزله) |
چي رپيدونکي زمکه اورپيږي | ورپسي به دويم (زور دار آواز) راشي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلُوْبٌ | يَّوْمَئِذٍ | وَّاجِفَةٌۙ | اَبْصَارُهَا | خَاشِعَةٌۘ | يَقُوْلُوْنَ |

(خيني) زړونه به | په دغه ورځ | رپيدونکي وي | سترګي دهغي به | يريدونکي وي | وائي دا خلق |
ډير زړونه به په دغه ورځ درزيږي | دهغوئ سترګي به کوزي وي | ............دوئ وائي چي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ | فِي الْحَافِرَةِؕ | ءَاِذَا | كُنَّا | عِظَامًا | نَّخِرَةًؕ |

آيا مونږ به بيا راوستلي کيږو | په واپسي کښي | آيا کله چي | شو مونږ | هډوکي | وراسته |
ښه مونږ به لابيا راژوندي کيږو | ..................کله چه مونږ رژيدلي هډوکي شوی يو!

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوْا | تِلْكَ اِذًا | كَرَّةٌ | خَاسِرَةٌۘ | فَاِنَّمَا هِيَ | زَجْرَةٌ | وَّاحِدَةٌۙ |

وائي هغوئ | دا خو به بيا | واپسي وي | تاوان وركونكي | پس بيشکه دابه | سخت آواز وي | يو |
وائي چي يره دا خو به هسي دتاوان نه ډکه واپسي وي | (واوره) هغه خو به بس يوه زورداره چغه وي

| | |
|---|---|
| فَاِذَا هُمْ | بِالسَّاهِرَةِؕ |

پس يو دم به هغوئ | په مخ دزمکي وي |
اودوئ به ناځاقه ميدان (دحشر) کښي موجود وي|

**قوله تعالى:- وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًاۙ وَّالنّٰشِطٰتِ نَشْطًاۙ**

**دفرشتوقسمونه** :دې نه مرادفرښتې دی چه دبعضي خلقونه روح په سختنی سره راکاږي.بعضي روحونه ډير په آسانئ سره راوباسی.لکه څنګه چه د چا بندکولاوکړې شی دکافرانوروحونه راکاږي بيا بند کولاوی اودوزخ کښي وردوبوی.داذکردمرګ د وخت دې.بعضي وائي(وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًاۙ) نه مرادمرګ دې[1]

بعضي وائي چه د دواړو رومبی آياتونومطلب ستوری دی. بعضي وائي مراد ترې نه د سخت جنګ کونکي دی.خو صحيح خبره هم اولننی ده چه دروح ويستونکي فرښتي.دغه شان د دريم آيت باره کښي هم دادريواړه تفسيرونه نقل دی يعنی فرښتي مرګ اوستوری.حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه دې

[1]) حاکم :۲/۵۱۳.

نه مراد کشتئي دي.دغه شان د سبقت په تفسیرکښې هم درېواړه اقوال دي.معنی داده چه د ایمان او تصدیق طرف وړاندې کیدونکي. عطاء رحمه الله فرمائی چه د مجاهدینواسونه ترې مراد دي.
بیاالله تعالیٰ دحکم اوتدبیرپوره کونکي دې نه مرادهم فرښتې دی لکه چه دحضرت علی رضی الله عنه وغیره قول دې.دآسمان نه دزمکې پورې دالله تعالیٰ د حکم تدبیرکوی.امام ابن جریر رحمه الله پدې اقوالو نبې هیڅ فیصله نه ده کړې.د رپیدونکی رپیدل اوشاته راتلونکی پسې شاته راتلونکې نه مرادداوړه نفخې یعنی شپیلئی پوك وهل دی. اول د شپیلئی پوك وهلو بیان په دې آیت کښې هم دې ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ﴾ په کومه ورځ چه زمکه او آسمان اورپیږي. د دویمې شپیلئی بیان په دې آیت کښې دې ﴿وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً﴾ اوزمکه او غرونه به اوچت کړې شی. بیا به دواړه هم په یوځل ذره ذره کړې شی.

**قوله تعالی:- يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ**

د مسنداحمد په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی رپیدونکې به راځی دې نه روستو به روستو راتلونکې راځی یعنی مرګ به خان سره ټول آفتونه راولی راځی به. یوسړی عرض اوکړویارسول الله ﷺ که زه دخپلې وظیفې ټول وخت په تاسو باندې درودشریف ونیلو کښې تیرکړم نو؟حضور ﷺ اوفرمائیل چه بیا خو به الله تعالیٰ تاد دنیا اوآخرت د غم نه بچ کړی. (۱)
ترمذی شریف کښې دی چه دریمه حصه شپه دریدونه پس به رسول الله ﷺ اودریدو اوفرمائیل به نی ای خلقو الله تعالیٰ یادکړئی.د رپولوواالا به راځی اوبیا به دې نه پس نورراځی(۲) مرګ خپل خان سره ټول آفتونه راخستې راروان دې.په هغه ورځ به ډیر زړونه ویریږی.د داسې خلقو نظرونه به په ذلت او سپکاوی سر ښکته وی خکه چه هغوی به دخپلوګناهونواود الله تعالیٰ دعذابونو کتنه کړې وی.مشرکان چه د قیامت د ورځې منکر وو اونیل به ئې چه آیا قبرونوته دتلونه پس به هم مونږ بیاژوندی کولې شو؟ هغوی به نن خپل ژوند د رسوائې او خرابئې سره په خپلو سترګواوګوری.

**قوله تعالی:- الْحَافِرَةِ** :-قبرونوته هم وائی یعنی قبرونوته دتلونه پس دبدن او هډوکو سخاکیدو او ذره ذره کیدونه پس به بیاهم مونږ راژوندې کړې شو؟ نوبیاخوبه دا دوباره راژوندی کیدل د خسارې او نقصان ژوند وی.د قریشرود کافرانو دایوه مقوله وه.د﴿الْحَافِرَةِ﴾ معنی دمرګ نه پس د ژوندهم نقل ده اود دوزخ نوم هم دې.د دې ډیر نومونه دی لکه جحیم،سقر،جهنم، هاویه، حافرة، لظې حطمه وغیره. اوس الله تعالیٰ فرمائی چه کوم څیز دوی ډیر ګران نه کیدونکې او ناممکن ګڼړی دا زمونږ د کامل قدرت په وړاندې یومعمولی خبره ده. دیخوا یوآواز ورکول او بل خوا به ټول ژوندی په یومیدان کښې جمع شی.یعنی الله تعالیٰ به حضرت اسرافیل علیه السلام ته حکم اوکړی هغه به شپیلئی پوك وهی اودهغه به شپیلئی پوك وهلو سره ټول مخکې تیرشوی راژوندی شی اود الله تعالیٰ په وړاندې به په یومیدان کښې اودریږی.لکه چه بل خایٔ ارشاد دې﴿ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا﴾ په کومه ورځ چه هغه تاسو راوبلی اوتاسو به د هغه په تعریف کولوسره جواب ورکړئی اومعلومه به شی چه ډیر کم اودریدل. بل ارشاد فرمائی ﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ﴾ زمونږ حکم به هم بس یوځل کیږی لکه د سترګې رپ.
بل خایٔ ارشاد دې ﴿وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ﴾ د قیامت امر د سترګې د رپ په شان دې بلکه دې نه هم زیات نیزدې دې. دلته هم دغه بیانولې شی چه بس صرف د یو آواز خبره ده. په دغه ورځ به پروردګارډیره سخت غضبناك وی. دا آواز به هم په غصه کښې وی دا به آخری نفخه یعنی شپیلئی پوك

---

(۱) احمد:۵/۱۳۶.
(۲) ترمذی کتاب صفة القیامة باب فی الترغیب فی ذکر الله وذکر الموت:۲٤۵۷.

وهل وی چه ټول خلق به د زمکې د پاسه راشي حالانکه دې اول لاندې وو. ﴿ بِالسَّاهِرَةِ ﴾ د زمکې مخ ته وائي اونيغ صفاميدان ته هم وائي. ثوري رحمه الله وائي چه دې نه مرادد شام زمکه ده.دعثمان بن ابو العاليه رحمه الله قول دې چه دبيت المقدس زمکه مراد ده.وهب بن منبه رحمه الله وائي دبيت المقدس نه يو طرف ته غردې. قتاده رحمه الله وائي چه دوزخ ته هم ﴿بِالسَّاهِرَةِ﴾ وائي خودا ټول اقوال غريب دي صحيح قول رومبې دې يعني دزمکې مخ. ټول خلق به په زمکه راجمع کړې شي چه تکه سپينه به وی اوبالکل صفااوخالي به وی لکه چه دميدې روټئی وی. بل ځائ ارشاد دې﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْأَرْضُ غَيْرَ الْأَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴾يعني په کومه ورځ چه دا زمکه بدله کړې شي او بله زمکه شي اوآسمان به هم بدل کړې شي.او ټول مخلوق د الله ﷻ واحد اوقهار په وړاندې مخامخ اودريږي. بل ځائ ارشاد فرماني چه خلق تاته د غرونو بابت کښې تپوس کوی نو ته دوی ته اووايه چه زما رب به دا ټکړې ټکړې کړی اوزمکه به بالکل هوار ميدان جوړه شي.په کومه کښې چه به نه هيڅ کوټ نه ښکته پورته ځائ وی.يوبل ځائ ارشاددې چه مونږ به غرونه روان کړو او زمکه به صفا ښکاره شي غرض دا چه بالکل به يوه نوې زمکه وی په کومه چه به نه څه خطا شوې وی نه قتل اونه څه گناه.

| |
|---|
| هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ۝ |
| آيا رارسيدلې دې تاته \| خبر د واقعه \| دموسی |
| آيا تاته دموسی عليه السلام دواقعې خبر رارسيدلې دې |
| اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۝ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ |
| کله چې آواز اوکړو هغه ته\|رب دهغه \| په ميدان پاک کښې \| دطوی \| لاړشه فرعون ته \| بيشکه هغه |
| چې خپل رب ورته د طوی په پاکيزه وادئ کښې آواز اوکړو\|اودا ئې ورته اوفرمائيل\|چې فرعون ته ورشه |
| طَغٰى ۝ فَقُلْ هَلْ لَّكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى ۝ |
| سرکشه دې \| پس اووايه ورته \| آيا تيارئې ته \| دې خبرې ته چې ته پاکوالي اختيار کړې \| |
| چې هغه دحدنه تير شوې دې \| نو ورته اووايه چې ايا د پاکيدو خواهش لرې (چه د گناهونو نه پاک شې) |
| وَاَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى ۝ فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى ۝ |
| او زۀ لاره اوښايم تاته \| طرف د رب ستاته \| چې تۀ اوبريږې \| نو وې ښودله هغه ته \| نښه \| لويه \| |
| او چې زه درته دخپل رب لاره اوښايم\|چې ته ترې نه ويره اوکړې\|نو هغه ته ئې يوه لويه معجزه اوخودله |
| فَكَذَّبَ وَعَصٰى ۝ ثُمَّ اَدْبَرَ يَسْعٰى ۝ |
| نو دروغ اوگڼړله فرعون \| او نافرماني ئې اوکړه \| بيا واپس شو \| چې کوشش کوی \| |
| نو فرعون هغه دروغ اوگڼړله \| اونافرماني ئې اوکړه\|بيا مخ په شا په منډه لاړو |
| فَحَشَرَ فَنَادٰى ۝ فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى ۝ |
| نو جمع ئې کړل خلق \| نو اعلان ئې اوکړو \| نو وې وئيل \| زۀ يم رب ستاسو \| لوئ \| |
| نو خلق ئې راټول کړل\|اواعلان ئې اوکړو \| نو وې وئيل چې زۀ خو ستاسو لوئې رب يم |

| فَأَخَذَهُ | اللَّهُ | نَكَالَ الْآخِرَةِ | وَالْأُولَىٰ ۝ | إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً |
|---|---|---|---|---|
| پس راواونیوو هغه لره | الله | په عذاب دآخرت | اوددنیا کښې | بیشکه په دې کار کښې لوئ عبرت دې |
| نو الله ورته په آخرت اودنیا دواړو کښې عذاب ورکړو\| په دې کښې هغه ټولو خلقو دپاره عبرت دې | | | | |
| لِمَن | يَخْشَىٰ ۝ | | | |
| دپاره دهغه چا | چې یریږي | | | |
| چې (دالله ﷻ )نه ویریږي | | | | |

قوله تعالى:- هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ ۝

دحضرت موسی عليه السلام واقعه:-الله ﷻ خپل رسول الله حضرت محمد ﷺ ته خبر ورکوی چه هغه خپل بنده اورسول حضرت موسی عليه السلام دفرعون طرف ته اولیګلو او په معجزباندې د هغه تانیداو امداد اوکړو خو سره د دې فرعون د خپلې سرکشئی او کفر نه منع نه شو. آخرد الله ﷻ عذاب نازل شواوهغه برباد شو.اې پیغمبر آخر زمان ﷺ ستا دمخالفینو به هم دغه حشروی.په دې وجه نی د دې واقعه په آخر کښې اوفرمائیل د ویریدونکو دپاره په دې کښې عبرت دې نوفرمائی چه تاته خبر هم دې؟موسی عليه السلام ته د هغه رب آواز ورکړو کله چه هغه په یو مقدس میدان کښې وو د کوم نوم چه طوی دې.د دې تفصیلی بیان په سورت طه کښې تیرشوې دې.آواز نی ورکړو ونی فرمائیل چه فرعون سرکشی کبر لوئی اوظلم اختیارکړې دې ته هغه ته اورسه اوهغه ته زما پیغام ورکړه چه آیا هغه غواړی چه زما خبره اومنې او په دې پاکه لار روان شی کومه چه دپاکیزګئی لار ده.زماواوره زما اومنه اوسلامتئی سره پاکیزګی حاصله کړه زه به تاته د الله ﷻ د عبادت دوه طریقې اوښایم په څه سره چه به ستا زړه نرم او روښانه شی.په دې کښې به خشوع اوخضوع پیدا شی.اود زړه سختئی اوبدبختی به دې لرې شی. حضرت موسی عليه السلام فرعون ته اورسیدو اود الله ﷻ پیغام نی ورته اورسولو حجت نی پوره کړو اودلیل نی بیان کړو.تردې چه دخپل صداقت په ثبوت کښې معجزې هم پیش کړې خوهغه هم هغه شان دحق تکذیب کولو اود حضرت موسی عليه السلام د خبرونافرمانی کوله.په زړه کښې نی کفر کلك شوې وودهغې نه نی طبیعت نه اخواکیدو.سره د دې چه حق واضحه شوې وو خو ایمان اومنل نی نصیب نه شو.دا یوه بله خبره وه چه په زړه سره نی غوښتل چه دا حق نبی دې اود ده تعلیم هم حق دې.

خو د زړه معرفت بل څیز دې او ایمان یوبل څیز دې. د زړه په معرفت بندې د عمل کولونوم ایمان دې چه دحق حکم منونکې جوړشی اود الله ﷻاود هغه درسول په خبروباندې دعمل کولو دپاره تیټ شی. بیا هغه د حق نه مخ واړولو اود حق خلاف کوششونوکښې لګیاشو.جادوګرئی راجمع کړل اود هغوی په ذریعه نی حضرت موسی عليه السلام بنکته کول غوښتل. خپل قوم نی راجمع کړو او هغوی ته نی اعلان اوکړو چه ستاسودټولونه اوچت رب هم زه یم.دې نه خلوبښت کاله وړاندې هغه ونیلې ووچه ﴿مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِي﴾ یعنی زه نه پوهیږم چه زما نه بغیر به ستاسو بل څوك رب هم وی.اوس خو د هغه سرکشی د حد نه زیاته شوه اوصفائی اوونیل چه هم زه اوچت رب یم او په ټولو غالب یم.الله ﷻ فرمائی چه مونږ هم دهغه نه هغه بدله واخسته چه د ټولو سرکشود پاره د همیشه همیشه د عبرت سبب جوړشو. په دنیا کښې هم اود آخرت هغه خراب عذابونه خولا باقی دی.لکه چه فرمائی﴿وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُنصَرُونَ ۝﴾یعنی مونږ هغه د دوزخ طرف ته راغوښتې مشر جوړکړو. د قیامت په ورځ به دا امداد نه شی ورکولې.نود آیت صحیح معنی هم داده چه دآخرت اواولی نه مراد دنیا اوآخرت دې.بعضو ونیلی دی چه د اول آخر نه مراد د دې دواړه اقوال دی.یعنی اول دا وینا کول چه زما په علم کښې نشته

چه زمانه بغیربه ستاسو بل رب وی. بیادا وینا کول چه ستاسو د تولو نه اوچت هم زه یم. بعضې وائی چه مرادکفر اونافرمانی ده.خو صحیح قول اولنې دې اوپه دې کښې هیڅ شك نشته. په دې کښې د هغه خلقو د پاره عبرت او نصیحت دې څوك چه نصیحت حاصل کړی او منع شی.

| ءَاَنْتُمْ | اَشَدُّ | خَلْقًا | اَمِ السَّمَآءُ |
|---|---|---|---|
| آیا تاسو | زیات سخت یئ | په لحاظ دپیدانش سره | یا آسمان |
| آیا ستاسو پیدا کول گران دی او که د آسمان؟ | | | |

| بَنٰهَا | رَفَعَ | سَمْكَهَا | فَسَوّٰهَا | وَاَغْطَشَ |
|---|---|---|---|---|
| چې الله جوړکړو هغه | اوچت ئې کړو | چت دهغې | بیا ئې برابر کړو هغه | او توره تیاره ئې کړه |
| چې هغه جوړکړو | دهغې چت ئې اوچت اوکړو | اوبرابر ئې کړو | ............ | او شپه ئې ورله |

| لَيْلَهَا | وَاَخْرَجَ | ضُحٰهَا | وَالْاَرْضَ | بَعْدَ ذٰلِكَ | دَحٰهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| شپه دهغې | او راوویستله هغه | رنړا(ورځ) دهغې | او زمکه | روستو ددې نه | اوغوړوله الله هغې لره |
| تیاره کړه | اوورځ ئې ورله رنړا روښانه کړه | اوزمکه ئې ددې نه پس اوغوړوله | ........ | | |

| اَخْرَجَ | مِنْهَا | مَآءَهَا | وَمَرْعٰهَا | وَالْجِبَالَ | اَرْسٰهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| راوویستلې ئې دی | دهغې نه | اوبه دهغې | اوواښه (خوراك) دهغې | او غرونه | ودرول ئې هغې لره |
| دهغې نه ئې اوبه او ورشوگانې راوویستلې | | او غرونه ئې پرې قائم کړل | (داهرڅه)ستاسو اوستاسو | | |

| مَتَاعًا | لَّكُمْ | وَلِاَنْعَامِكُمْ |
|---|---|---|
| سامان دژوند | دپاره ستاسو | او دپاره دخاروو ستاسو |
| د خاروو دفائدې دپاره دی | | |

قوله تعالی:- ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ بَنٰهَا

د الله تعالی د قدرت دلائل:کوم خلق چه دمرگ نه پس د ژوندې کیدونه منکروهغوی ته پروردگار دلیلونه ورکوی چه ستاسود پیداکولونه خودیرسخت د آسمانونوپیداکول دی.لکه چه ارشاددې﴿لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ﴾یعنی دزمکې او آسمان پیداکول د انسانانود پیداکولونه ډیرسخت دی. بل ځائې ارشاد دې﴿ اَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ۚ بَلٰى ۚ وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ﴾ آیا چا چه زمکه اوآسمان پیداکړل هغه ددوی په شان انسانان دوباره پیداکولوباندې قدرت نه شی لرلې؟ضرور قادردې.اوهم هغه ډیرلوئ پیداکونکې او ښه پیژندگلوکونکې دې.آسمان هغه جوړکړو یعنی ښه اوچت ښه پلن ارت او بالکل برابر ئې جوړکړو. بیا په تیاروشپوکښې پرقیدونکی ستوری پدې کښې اولگول. شپه ئې توره او د تیارې والا جوړه کړه او ورځ ئې رښانه اود رنړا والا جوړه کړه. او زمکه ئې د دې نه پس خوره کړه یعنی اوبه او واښه ئې راوویستل. په سورت حم سجده کښې دا بیان تیرشوې دې چه د زمکې پیداکول خو د آسمان نه اول دی. اود دې د برکتونو ځرگندونه د آسمانونود پیداکولونه پس شوې.د کوم بیان چه دلته کیږی.د ابن عباس رضی الله عنه او ډیرومفسرینونه هم دا روایت دې.امام ابن جریر رحمه الله هم دا خوښوی.د دې تفصیلی بیان تیرشوې دې.اوغرونه هغه ښه مضبوط ورخښ کړی دی. هغه د حکمتونووالا او فصیح علم والا دې اودې سره په خپل مخلوق باندې بې حده مهربان دې.

**قوله تعالى:-** وَالْجِبَالَ أَرْسٰهَا ۝

**الله ﷻ نه د فرښتو سوال:-** مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی کله چه الله ﷻ زمکه پیداکړه نو هغه به خوزیدو شوه. پروردګار غرونه راپیداکړه او په هغې کښې ورخښې کړل نودې سره زمکه اودریده. فرښتې په دې سره ډیرې زیاتې حیرانې شوې او تپوس نې ازکړو اې الله ستا په مخلوق کښې د دې غرونه نه هم سخت څیز شته؟ ونی فرمائیل او اوسپنه. هغوی ونیل دې نه هم سخت څیز؟ ونی فرمائیل اور بیانې تپوس اوکړو دې نه هم سخت؟ ونی فرمائیل او اوبه. تپوس نې اوکړو دې نه هم زیات سخت څیز شته؟ ونې فرمائیل هوا. تپوس نې اوکړو پروردګار آیاستا په مخلوق کښې ددې نه هم سخت څیز بل څه شته؟ ونې فرمائیل چه او هغه بنیادم دې چه په ښی لاس باندې څه خرچ کړی نو ګس لاس ته پته هم اونه لګی. (۱)

**الله ﷻ ته د زمکې شکایت:-** ابن جریر کښې د حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه کله الله ﷻ زمکه پیدا کړه نوهغه رچیدله او ونیل نی چه په ماباندې به ته حضرت آدم ﷺ اود هغه اولاد پیداکونکې نی چه خپله ګندګی به په ما راغورزوی او زما په شا باندې به ستا نافرمانی کوی. الله ﷻ پرې غرونه ورخښې کړل او ونی دروله.ډیرغرونه تاسو وینئی اوډیرستاسونه پناه دی.دزمکې دغرونونه پس سکون حاصلول بالکل داسې وولکه چه اوښ په حلالولوسره د هغه غوښه رچیږی بیا څه وخت پس اودریږی. بیا فرمائی چه دا ټول ستاسواو ستاسو د څناورو د فائدې د پاره دی. یعنی د زمکې نه چینې او نهرونه جاری کول پټې خزانې ښکاره کول، فصلونه او ونې لګول د غرونو ورخښول چه د زمکې نه تاسو پوره پوره فائده حاصله کړې شنی. دا ټولې خبرې د انسانانو د فائدې د پاره دی اود هغوی د څناورود فائدې د پاره دی.بیا دا څناور هم د دوی د فائدې دپاره دی چه دبعضو غوښه خوری او په بعضو باندې سورلی کوی او خپل عمر په دنیاکښې په آرام او راحت سره تیروی.

| فَإِذَا جَآءَتِ | الطَّآمَّةُ | الْكُبْرٰى ۝ | |
|---|---|---|---|
| پس هر کله چې راشي | | هغه افت لوئ | |
| نو څه وخت چې (دقیامت) هغه لویه هنګامه راشي | | | |

| يَوْمَ | يَتَذَكَّرُ | الْإِنسَانُ | مَا سَعٰى ۝ | وَبُرِّزَتِ | الْجَحِيمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| په کومه ورځ | چې رایادوئ به | انسان | هغه څه چې کړی وی هغه | او ښکاره کړې شي | دوزخ |
| نو بنیادم ته به خپل عملونه ټول په ټول یاد شي ...... | | | | او هرلیدونکی ته به | |

| لِمَن | يَرٰى ۝ | فَأَمَّا مَن | طَغٰى ۝ |
|---|---|---|---|
| دپاره دهغه چا | چې لیدل کوی | پس هر چې دې هغه خوك | چې سرکشي یې کړې وی |
| دوزخ ښکاره شي ...... | | نو چا چې سرکشي اوکړه ...... | |

| وَءَاثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۝ | فَإِنَّ | الْجَحِيمَ | هِيَ الْمَأْوٰى ۝ |
|---|---|---|---|
| او غوره کړې نی وی ژوند ددنیا | پس بیشکه | دوزخ چې دی | هم هغه ځائې دوسیدو دې دهغه |
| اوددنیا ژوند نې (د آخرت په مقابله کښې) غوره اوګڼلو | | نو دوزخ به دهغه ټیکاوئ ره وی | |

(۱) احمد: ۱۲۴/۳، ترمذی کتاب التفسیر باب فی حکمة خلق الجبال: ۳۳۶۹ وسند حسن.

| وَأَمَّا مَنْ | خَافَ | مَقَامَ رَبِّهِ | وَنَهَى | النَّفْسَ |
|---|---|---|---|---|
| او هر چې دي | هغه څوك | چې اوېريدو | دمخامخ كيدو درب خپل نه | او منع ئې كړو | نفس (خپل) |
| او څوک چې دخپل رب په وړاندې دپیشئ نه ویریدلی وی | او خپل نفس ئې دخواهشاتو |

| عَنِ الْهَوَى | فَإِنَّ الْجَنَّةَ | هِيَ الْمَأْوَى |
|---|---|---|
| دغلطو خواهشاتو نه | پس بیشکه جنت چې دې | هغه ځاني دوسيدو دي دهغه |
| نه منع کړې وی | ........ نو جنت دهغه ټیکاونړه ده | ........ |

| يَسْأَلُونَكَ | عَنِ السَّاعَةِ | أَيَّانَ | مُرْسَاهَا | فِيمَ أَنْتَ |
|---|---|---|---|---|
| دا خلق تپوس کوی ستا نه | په باره دقیامت کښې | چې کله به وی | راتلل دهغې | په څه کښې ئې ته |
| دوی ستا نه دقیامت په باره کښې تپوس کوی | چې کله به (قیامت) راځي | ........ تاته ددې وخت څه |

| مِنْ ذِكْرَاهَا | إِلَى رَبِّكَ | مُنْتَهَاهَا | إِنَّمَا أَنْتَ | مُنْذِرُ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دوخت دیادولو دهغې نه | خاص رب ستاته دې | اخری علم دهغې | بیشکه ته | ایرونکې ئې | هغه چالره |
| معلوم دې | ددې اخری علم خو صرف الله ﷻ سره دې | ستا کار خو صرف هغه څوک ویرول دی | چې |

| يَخْشَاهَا | كَأَنَّهُمْ | يَوْمَ | يَرَوْنَهَا |
|---|---|---|---|
| چې یریږی دهغې نه | لکه چې وی هغوئ | په هغه ورځ | چې اووینی دا قیامت |
| دقیامت نه ویریږی | دوئ چې دقیامت ورځ اووینی نو داسې به وی لکه چې (په دنیا ........ ........ |

| لَمْ يَلْبَثُوا | إِلَّا عَشِيَّةً | أَوْ ضُحَاهَا |
|---|---|---|
| چې وخت ئې تیر نهٔ کړو | دغرمې نه روستنې وخت | یا دغرمې نه مخکینې وخت |
| کښې ئې) هیله دنمردزیږې یادڅابنت هومره وخت تیر کړې وی ........ |

**قوله تعالى:- فَإِذَا جَاءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى**
قیامت ډیر تریخ دې: (الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى) نه مراد د قیامت ورځ ده. ځکه چه هغه ډیره خطرناکه او د هنګامې ورځ ده. لکه بل ځائ ارشاد دې (الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى) یعنی قیامت ډیر سخت دد برداشت نه بهر خیزدې په دې ورځ به بنیادم خپل ښه او بدعملونه یادوی اوکافی نصیحت به حاصلوی. یوبل ځائ ارشاد دې (يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنْسَانُ وَأَنَّى لَهُ الذِّكْرٰى) یعنی په هغه ورځ به سړې نصیحت حاصلوی خودنن ورځې نصیحت به ده ته څه فائده نه ورکوی. دخلقو مخې ته به دوزخ راوړې شی اوهغوی به ئې په خپلو سترګو اووینی. په دغه ورځ به دسرکښنی کونکو اودنیاته ترجیح ورکونکو ځائ دوزخ وی. دهغوی خوراك به زقوم وی او دهغوی څښاك به حمیم وی. اوزمونږ په وړاندې اودریدونکی ویریدونکی خپل ځان د نفسانی خواهشاتو نه بچ کونکی د الله ﷻ ویره په زړه کښې ساتونکی اود بدو نه خپل ځان ساتونکی به په جنت کښې وی. اود هغه ځائ د ټولونعمتونو حصه داربه صرف هم دغه وی.
**قوله تعالى:- يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا**
بیافرمائی دقیامت باره کښې تاته تپوس کوی نوورته اووایه چه دهغې نه ماته څه علم دې اونه په مخلوق کښې بل چاته اوصرف هم الله ﷻ ته معلومه ده چه قیامت به کله راځی؟ د دې صحیح وخت هیڅ چا ته نه دې معلوم. هغه په زمکه او آسمان باندې دروند پریوځی هغه به ناڅاپی راځی. خلق تاته

داسې تپوسونه کوی لکه چه ته هغه پېژنې حالانکه دهغې علم بغیرد الله ﷺ نه بل چا ته نشته. حضرت جبرائیل ﷺ هم چه کله په انسانی شکل کښې د حضور ﷺ خواته راغلو او څه سوالونه ئې اوکړه د کومو جوابونه چه نبی کریم ﷺ ورکړه. بیا ئې هم د دغه قیامت د ورځې د مقررولو باره کښې تپوس اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د چانه تپوس کوې نه هغه ته معلومه ده اونه پخپله تپوس کونکی ته د هغې څه علم دې. (۱)

بیا فرمائی چه اې نبی ﷺ ته خو صرف د خلقو ویرونکې ئې اودې نه به نفع هغه خلقو ته رسی چه د دې ویرونکې ورځ ویره لری. هغوی به تیاری اوکړی اودهغه ورځ د خطرې نه به بچ شی.باقی چه کوم خلق دی هغوی به ستاسو د فرمان نه عبرت حاصل نه کړی بلکه مخالفت به کوی.اوبه هغه ورځ به په بدترین عذابونو او نقصانونوکښې راګیروی. خلق چه د خپلو خپلوقبرونونه راپاسی او د محشر میدان کښې راجمع کیږی هغه وخت به دوی ته د دنیاژوندون ډیر کم ښکاری. او داسې به معلومیږی چه د ــحریامابنام څه حصه وخت ئې په دنیاکښې تیرکړې دې.دماسپښین نه واخله ترنمرډوبیدو پورې وخت ته عشیه وائی اود نمر د راختونه واخله د نیمې ورځ پورې وخت ته ضحی وائی.(۲) مطلب دا دې چه آخرت ته اوکوری نود دنیا دا دومره اوږد وخت به ورته کم محسوس شی.

د سورت نازعات تفسیرختم شو (فالحمدلله رب العلمین)

| آیاتونه | | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة عبس مکیة وهی اثنتان واربعون اٰیة وفیها رکوع واحد | | |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ۴۲ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۱ |

| |
|---|
| عَبَسَ وَتَوَلّٰىٓ ۙ﴿۱﴾ اَنۡ جَآءَهُ الۡاَعۡمٰى ؕ﴿۲﴾ وَمَا یُدۡرِیۡكَ |
| تندې ئې تریو کړو \| او مخ ئې واړوؤ \| چې راغې هغه ته \| هغه ړوند \| او څه پته ده تاته \| |
| تندې ئې تریو کړو \| او مخ ئې واړولو \| چې یو ړوند ورته راغلو \| اوتاته څه معلومه ده |
| لَعَلَّهٗ یَزَّکّٰىٓ ۙ﴿۳﴾ اَوۡ یَذَّکَّرُ فَتَنۡفَعَهُ الذِّکۡرٰى ؕ﴿۴﴾ |
| کیدې شی چې هغه \| پاک شی \| یا په نصیحت غور اوکړی \| پس فائده ورکړی هغه ته \| نصیحت \| |
| چې هغه (په دین زده کولو) پاک شی \| یانصیحت اومنی \| نوهغه ورته فائده ورکړی |
| اَمَّا مَنِ اسۡتَغۡنٰى ۙ﴿۵﴾ فَاَنۡتَ لَهٗ تَصَدّٰى ؕ﴿۶﴾ |
| هرچې دې \| هغه خوك \| چې بې پرواهی ئې اوکړه \| پس ته \| هغه ته \| توجه کوې \| |
| باقې شوهغه سړې چې بې پرواه دې \|............ نو تا هغه ته توجه اوکړه |
| وَمَا عَلَیۡكَ اَلَّا یَزَّکّٰى ؕ﴿۷﴾ وَاَمَّا مَنۡ جَآءَكَ |
| حال دا چې نشته په تاباندې ذمه واری \| چې پاك نه شی هغه \| او هر چې دې هغه خوك \| چې راغې تاته \| |
| اوستا په کښې څه تاوان دې \| که هغه پاک نشی \| او څوک چې تاله په منډه منډه راغلو |

(۱) صحیح بخاری کتاب الایمان باب سوال جبریل النبی ﷺ عن الایمان.....۵۰، صحیح مسلم: ۹.
(۲) الدرالمنثور:۸/۴۱۳.

يَسْعٰى ﴿٨﴾ وَهُوَ يَخْشٰى ﴿٩﴾ فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿١٠﴾ كَلَّآ اِنَّهَا

چې رامنډې وهي | او هغه يريږي (دالله نه) | پس ته | دهغه نه | مخ اړوې | هرګز نه | بيشکه دا (قرآن)

او هغه د (الله ﷻ) نه ويريږي| نو دهغه نه بې پرواه شوې | ............بيا داسې مه کوه

تَذْكِرَةٌ ﴿١١﴾ فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ﴿١٢﴾ فِيْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾

يو نصيحت دې | پس هغه څوك | چې غواړي | قبول كړي هغه | (دا قرآن) په پاڼرو معززو كښې دې |

داخو يو نصيحت دې | نو چې دچا خوښه وي| هغه دې قبول كړي |په عزت منډو صحيفو كښې دې

مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴿١٤﴾ بِاَيْدِيْ سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾ كِرَامٍۭ

چې داوچتو مرتبو دی | پاكې دی | په لاسونو | دليكونكو فرښتو كښې دی | چې عزتمنډې دی |

چې اوچتې او پاکې دی| دا دداسې ليكونكو (فرښتو) په لاسونو كښې دی | چې عزت منډې

بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾ قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَآ اَكْفَرَهٗ ﴿١٧﴾

نيكانې دی | لعنت دې وی په (كافر) انسان باند | چې څومره سخت منكر دې هغه (دحق نه) |

اونيكانې دی| انسان (كافر) دې هلاک شي دې | څومره ناشكره دې

**قوله تعالى:- عَبَسَ وَتَوَلّٰى ﴿١﴾ اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰى ﴿٢﴾**

**شان نزول، دحضرت ابن ام مكتوم ﷺ فضيلت:-** د ډيرومفسرينونه روايت دې رسول الله ﷺ يوځل د قريشو سردارنوته د دين اسلام تعليم وركولو او په شغل سره دهغوی طرف ته متوجه وو په زړه كښې دا خيال وو چه څه عجيبه ده چه الله ﷻ دوی ته اسلام ورنصيب كړی. ناڅاپی حضرت عبدالله ابن ام مكتوم ﷺ حضور ﷺ له راغلو. زوړ مسلمان وو عموماً به د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضريدلو اود دين اسلام تعليم به ئې زده كولو اودمسئلوتپوسونه به ئې كول. نن هم عادت مطابق راتلوسره ئې سوالونو تپوسونه شروع كړل او په وړاندې كيدو كيدو به ئې حضور ﷺ خان ته متوجه كول غوښتل. دغه وخت حضور ﷺ د دين په يواهم كاركښې مشغول وود هغه طرف ته ئې توجه اونه فرمائيله بلكه خاطر ئې لږ شان دروندشو اوپه تندی مبارك كښې ئې ګونجې راغله. په دې باندې دا آياتونه نازل شوچه ستاسو اوچت شان او اخلاق د دې خبرې لائق نه ووچه دا نابينا كوم چه زمونږ د ويرې منډې تړړې وهلې ستاسو په خدمت كښې د دين اسلام د علم حاصلولود پاره راغلو تاسو د هغه نه مخ واړولو اود هغوی طرف ته متوجه شوې كوم چه سركش مغرو اومتكبردی ډير ممكن دی چه دا پاك شي اود الله ﷻ خبرې واوری د بدو نه بچ شي اود احكامود تعليم د پاره تيارشي. دا څه خبره ده چه تاسو ﷺ د دې بې پرواه خلقو طرف ته ټوله توجه اوفرمائې؟ په تاسو باندې د دوی په نيغه لار راوستل څه ضروری خونه دی؟ كه دوی ستا خبرې اونه منی نوته د دوی په اعمالوراګيرولې نه شې. مطلب دا چه د دين په تبليغ كښې شريف، ضعيف، فقير، غنی، آزاد، غلام، ښځه او سړې لوئ او وړوكې ټول برابر دی. ته ټولوته يو شان نصيحت كوه هدايت د الله ﷻ په لاس كښې دې. كه هغه څوك د نيغې لارې نه لرې اوساتی نو د دې حكمت هم هغه پيژنی. څوك چه په پخپله لار اولګوی نو هغه هم ښه پيژنی. د حضرت ابن ام مكتوم ﷺ د راتلو په وخت كښې د حضور ﷺ مخاطب ابی بن خلف وو. دې نه پس به حضور ﷺ د ابن ام مكتوم ﷺ ډير اكرام او خيال ساتلو. (مسند ابويعلی)

قوله تعالى:- وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّىٰ
د دین تبلیغ: حضرت انس ﷺ فرمائی چه ماحضرت ابن ام مکتوم ﷺ دقادسیه په جنګ کښې لیدلې دې زغره ئې اغوستې وه او توره جهنډا ورسره وه(۱) حضرت عائشه ﷺ فرمائي چه کله دې راغلو او وې وئیل حضور ﷺ ماته د ښیګړې خبرې اوښایه نوهغه وخت کښې د قریشو رئیسان د حضور ﷺ په مجلس کښې ناست وو. حضور ﷺ د هغه طرف ته پوره توجه اونه فرمائیله هغوی به ئې پوهه کول او فرمائیل به ئې وائې زما خبره ټیك ده؟ (۲)هغوی به وئیل اوحضرت ټیك ده. په دې خلقو کښې عتبه بن ربیعه ابوجهل بن هشام او عباس بن عبدالمطلب وو. د حضور ﷺ ډیر کوشش وو او پوره حرص ئې وو چه داخلق به څنګه د حق دین قبول کړي. دې وخت کښې دې راغلو او وئې وئیل حضور ﷺ ماته د قرآن پاك یوآیت واوروه اود الله ﷻ خبرې راته اوښایه. حضور ﷺ ته دغه وخت کښې د هغه خبره بې موقع غونډې ښکاره شوه مخ ئې ترې واړولو اوهم اخوا متوجه وو. کله چه د هغوی سره خبرې پوره شوې او حضور ﷺ کورته روان شو نو سترګو ته ئې تیاره خوره شوه سرمبارك ئې ښکته کړو اودا آیاتونه نازل شو بیا به حضور ﷺ د هغه ډیر عزت کولو او په پوره توجه سره به ئې غوږ کیخودو اود هغه خبرې به ئې اوریدې. تلوراتلو اوهروخت به ئې تپوس کولوچه څه کارشته څه حاجت شته څه وائې څه غواړې (ابن جریروغیره) په دې روایت کښې غرابت دې نکارت دې اود دې سند کښې هم کلام دې. حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائي چه ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي فرمائیل ئې چه بلال ﷺ به د شپې اذان ورکوی نوتاسو پیشمنې خورئې څکئې تردې چه د ابن ام مکتوم ﷺ اذان واورئې. دا هغه نابینا دې د چا باره کښې چه ﴿عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ ۝ أَن جَاءَهُ الْأَعْمَىٰ ۝﴾ نازل شوې. داهم موذن وو. په نظرکښې ئې نقصان وو کله چه به خلقو صبح صادق اوکتلو اوهغه ته به ئې خبرورکړو چه سحرشو نوهله به ئې اذان ورکولو (ابن ابی حاتم) دابن ام مکتوم ﷺ مشهور نوم خوعبدالله وواو بعضو وئیلي دي چه دهغه نوم عمرو دې. والله اعلم.

قوله تعالى:-﴿إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ۝﴾ یعنی دا نصیحت دې. د دې نه مراد یاخودا سورت دې یادا مساوات چه د دین په تبلیغ کښې ټول یوشان دي مراد دې. سدی ﷬ فرمائي چه دې نه قرآن پاك مراد دې کوم سړې چه غواړي نو یادې کړي. یعنی الله ﷻ دې یاد کړي اوپه خپلو ټولوکارونوکښې دې د هغه فرمان مقدم اوساتي. یادا مطلب دې چه د الله ﷻ وحی دې یاده کړي. دا سورت اودا وعظ اونصیحت بلکه ټول په ټول قرآن پاك په موقر معزز اومعتبر صحیفوکښې دې چه ډیر اوچت او د اعلی مرتبې والا دې. چه د خیرې وغیره اوکمی زیاتی نه محفوظ اوپاك دې. د فرښتو په پاکولاسونوکښې دې. اودا هم مطلب کیدې شي چه د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په پاکولاسونوکښې دې. د حضرت قتاده ﷬ قول دې چه دې نه مراد قاري دې.

ابن عباس ﷺ فرمائي چه دا د نبطي ژبې لفظ دې معنی ئې قاری ده. امام ابن جریر ﷬ فرمائي چه صحیح قول هم دا دې چه دې نه مراد فرښتې دی چه د الله ﷻ اومخلوق په مینځ کښې سفیر دی. سفیر هغه ته وائي چه د صلح او ښیګړې د پاره په خلقو کښې کوشش کوی. د عربود یوشاعر په شعر کښې هم دغه معنی موندلې شی. امام بخاری ﷬ فرمائي چه دې نه مراد فرښتې دی هغه فرښتې چه د الله ﷻ دطرف نه وحی راوړي. هغه هم داسې دی لکه د خلقو په مینځ کښې سفیر چه وي(۳)هغه په ظاهر او باطن کښې پاکې دی ښکلې مخونه شریف او بزرګ ښکاری. په باطن کښې اخلاق او افعال صفا ستره. ددې ځائې نه دا هم معلومول پکار دی چه د قرآن پاك لوستونکو له اخلاق او اعمال ښکلې ساتل

---

(۱) مسند ابی یعلی: ۳۱۲۳،
(۲) الترمذی :۳۳۲۸. وقال حسن غریب.
(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة عبس قبل حدیث :۴۹۳۷،.

پکاردی. دمسنداحمد په یوحدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه څوك قران پاك اولولی اود دی مهارت حاصل کړی هغه به د بزرګانو لیکونکې فرښتو سره وی. او چه څوك نی سره دمشقته لولی هغه ته به ډبل اجر ملاویږی.(۱)

| |
|---|
| قُتِلَ الْإِنسَانُ مَآ أَكْفَرَهُ ﴿١٧﴾ |
| لعنت دې وی په (کافر) انسان باندې \| چې څومره سخت منکر دې هغه (دحق نه) \| |
| انسان (کافر) دې هلاک شي دې \| څومره ناشکره دې |
| مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ﴿١٨﴾ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ﴿١٩﴾ |
| دکوم څیز نه \| الله پیدا کړو هغه \| دنطفې نه \| الله پیدا کړو هغه \| بیا ئې تقدیر مقرر کړو دهغه \| |
| دڅومره حقیر څیز نه ئې پیدا کړې دې \| دیو څاڅکی نه الله ﷻ پیدا کړې دې \| بیا ئې په یو خاص اندازه جوړ کړو |
| ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴿٢٠﴾ ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ﴿٢١﴾ ثُمَّ إِذَا |
| بیا ئې لار (دژوند) \| اسانه کړه هغه ته \| بیا ئې مړ کړو هغه \| پس قبر ته ئې اورسولو هغه \| بیا چې کله \| |
| ورته ئې لار اسانه کړه \|...................... بیائې مړ کړو \| نو قبر کښې ئې کیخودو \| بیا چې کله ئې |
| شَاءَ أَنشَرَهُ ﴿٢٢﴾ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ أَمَرَهُ ﴿٢٣﴾ |
| خوښه شي دهغه \| را ژوندې به کړې هغه لره \| هرګز نه \| اونهٔ کړو هغه \| هغه کار \| چې حکم کړې وو الله هغه ته |
| خوښه شي \| نو راژوندې به ئې کړي \|.............. البته ده هغه حکم پوره نکړو کوم چه ورته الله کړې وو |
| فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ ﴿٢٤﴾ أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ |
| نو اودې ګوری \| انسان \| خوراك خپل ته \| بیشکه مونږه را بیوو \| اوبهٔ \| |
| نو انسان دې خپل خوراک ته اوګوری \| چې مونږ څومره اوبه (د اسمان د طرفه) راورووو |
| صَبًّا ﴿٢٥﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا ﴿٢٦﴾ فَأَنبَتْنَا فِيهَا |
| په رابیولو سره \| بیا څیرې کړه مونږه \| زمکه \| په څیرولو سره \| بیا زرغون کړې مونږ \| په هغې کښې \| |
| ............................ بیا مو زمکه اوچوله \|.............................. نو په هغې کښې مو غلې |
| حَبًّا ﴿٢٧﴾ وَعِنَبًا وَقَضْبًا ﴿٢٨﴾ وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ﴿٢٩﴾ وَحَدَائِقَ غُلْبًا ﴿٣٠﴾ وَفَاكِهَةً |
| دانې غلې \| او انګور \| او ترکاریانې \| او زیتون (خونه) \| او کجورې \| او باغونه \| ګڼرګڼر \| او میوې \| |
| او انګور او ترکاریانې ...................... اوزیتون او کهجورې اوګنړګور باغونه او رنګ رنګ میوې |
| وَأَبًّا ﴿٣١﴾ مَّتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ ﴿٣٢﴾ |
| او خوراکونه \| په طور دسامان دژوند \| دپاره ستاسو \| او دپاره دڅارووُ ستاسو \| |
| او ګیاه زرغون کړل \| چې ستاسو او ستاسو د څاروو په کار راځی |

**قوله تعالی:- قُتِلَ الْإِنسَانُ مَآ أَكْفَرَهُ**

**د مرګ نه پس د راپاسیدو عقلی دلیلونه:**-کوم خلق چه دمرګ نه پس د بیا ژوندی کیدونه انکاری وود هغوی

---

(۱) صحیح بخاری حوالا سابق :۴۹۳۷، صحیح مسلم : ۷۹۸، ابوداود :۱۴۵۴. ترمذی :۲۹۰۴.

دلته مذمت بیانولې شي. ابن عباس ﷺ فرمائي په انسان دې لعنت وي چه دا څومره لوئ ناشکر دې اودا ئې هم معنی کړې ده چه عموما ټول انسانان دروغ ګڼرونکي دي بغیرد څه دلیل نه صرف یو څیز په خپل خیال باندې ناممکن ګڼړل دعملي سرمایه د کمې په وجه ډیر زر د الله ﷻ دخبرو تکذیب کوي.اوداهم ونیلې شوي دي چه دې په دې دروغ ګڼرلوباندې کوم یوڅیز رضاکوي؟دې نه پس هغه ته خپل اصلیت خودلې شي چه هغه دې خیال اوکړي چه دکوم حقیر سپك اوذلیل څیز نه الله ﷻهغه جوړکړې دې نوهغه به د ده د بیا راپیداکولو قدرت نه لري؟ هغه انسان د نطفه نه پیداکړو بیائي د هغه تقدیر مقرر کړویعني عمر رزق عمل نیك او بدکیدل. بیائي د هغه د پاره د مورد خیټې نه د راوتلولار آسانه کړه.دا هم معنی ده چه مونږ د خپل دین لار آسانه کړه یعني واضح او ښکاره کړه لکه چه بل ځائ ارشاددې ﴿إِنَّا هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا﴾ یعني مونږ هغه ته لاراوخودله بیاهغه شکر کونکې جوړ شو او یا ناشکر. حسن ﷫ او ابن زید ﷫ هم دا راجح ګڼړي. والله اعلم.

د ده د پیداکولونه پس بیا ده ته مرګ ورکړواوبیا قبرته اورسولو. د عربو متل دې چه هغوی کله یوکس خښ کړي نووائي ﴿قبرت الرجل﴾ او وائي چه ﴿اقبره الله﴾ دغه شان نورې محاورې هم دي.مطلب دا چه اوس الله ﷻ هغه د قبروالا جوړکړو بیا چه کله الله ﷻ غواړي هغه به دوباره راژوندې کوي هم دې ژوندون ته بعث هم وائي او نشور هم.لکه بل ځائ ارشاد دې ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ إِذَا أَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُونَ﴾ د دغه په نښوکښې یوه داهم ده چه هغه تاسود خاورې نه جوړکړئ بیا تاسو انسانان جوړیدوسره راپاسیدئ بل ځائ دي ﴿كَيْفَ نُنْشِزُهَا﴾ هډوکوته ګوره چه مونږ څنګه هغه کینوو پاسوو بیا په هغې باندې څنګه غوښه ورخیژوو. د ابن ابی حاتم په حدیث کښې دي رسول الله ﷺ فرمائي چه د انسان ټول اندامونه وغیره خاوره خوري خود ملاهډوکې. خلقو ونیل هغه څه دي؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه یود اوربې د دانې هومره دې هم د دې نه به بیا ستاسو پیدائش کولې شي.دا حدیث بغیرد سوال جواب د زیاتي بخاري او مسلم کښې هم شته چه بنیادم سخاکیږي خود ملاهډوکې چه هم دې نه پیداکړې شوې دې او هم د دې نه به بیا جوړولې شي.(1)

بیاالله ﷻ فرمائي چه څنګه دا ناشکر او بې قدره انسان وائي چه دهغه په ځان اومال کښې دالله ﷻ کوم حق وو هغه ئې ادا نه کړو ولې داسې هیڅ کله نه ده بلکه تراوسه پورې خو هغه دالله ﷻ د فرائضو پوره کولونه هم اوزګاریدل نه دي حاصل کړي.دحضرت مجاهد ﷫ فرمان دې چه دیو سړي نه هم د الله ﷻ فرائض پوره نه شي اداکیدلې.دحسن بصري ﷫ نه هم داسې معنی نقل ده.په متقدمینونه کښې خوما د دې نه علاوه بل یو کلام هم نه دې موندلې. اوماته د دې دا معنی معلومیږي چه د الله ﷻ د فرمان دا مطلب دې چه بیا کله هغه غواړي نو دوباره به ئې راپیداکوي. تراوسه پورې د هغه د فیصله مطابق لاوخت راغلې نه دې. یعني اوس به هم هغه داسې نه کوي تردې چه مقرر موده ختمه شي اود بنیادم تقدیر پورد شي.

دهغوي په قسمت کښې دې دنیا ته راتلل اودلته ښه او بد کول وغیره چه کوم مقدرشوي دي هغه ټول دالله ﷻ د اندازې مطابق پوره شي نو هغه وخت به الله ﷻ ټول مخلوق راژوندې کړي.لکه څنګه چه ئې په اول ځل پیداکړي وو په دویم ځل به ئې هم راپیداکړي. ابن ابی حاتم کښې د حضرت وهب بن منبه﷫ نه نقل دي چه حضرت عزیر ﷺ اوفرمائیل چه ماله یوه فرښته راغله هغې ماته اوونیل قبرونه د زمکې خیټه ده اوزمکه د مخلوق مور ده. چه کله ټول مخلوق راپیداشي نو بیا به قبرونوته رسي او قبرونه به ټول ډك شي هغه وخت به د دنیا سلسله ختمه شي او چه څوك هم په زمکه باندې وي هغه به ټول مړه

---

(1) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة عم یتساءلون:۴۹۳۵، صحیح مسلم:۲۹۵۵.

شي.اوکوم څه چه په زمکه کښې دی هغه به زمکه رابهرکړي او په قبرونو کښې چه کوم مړی دی هغه به ټول بهراوويستلې شي.داقول مونږ ددې تفسير په دليل کښې پيش کولې شوو الله سبحانه وتعالی اعلم.

**قوله تعالى:- فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ**

**د الله تعالى احسانات:-** بيا ارشادکولې شي چه زما دې احسان ته اوګوره چه ما هغوی ته خوراك ورکړو يا په دې کښې هم دليل دې د مرګ نه پس د ژوندي کيدو لکه څنګه چه د اوچې بنجر زمکې نه مونږ تازه ونې راوټوکولې اود دې نه مو غله وغيره پيداکړه ستاسو د پاره ترې خوراك پيداکړو دغه شان سخاشوی او ډډشوی او چوره شوی هډوکي به هم مونږ يوه ورځ راژوندی کړو اوهغې ته به غوښه او څرمن واچوو او بيابه تاسو راژوندي کړو. تاسو ګورئ چه مونږ د آسمان نه يوشان اوبه راورولې بيا هغه مونږ زمکې ته اورسولې بيا مو هغه تخم ته اورسولې او په زمکه کښې مو پرتودانوته اورسولې په کوموسره چه هغه دانې راوټوکيدې ونې راوټوکيدې اوچتې شوې او فصلونو چپې اووهلې. يو طرف ته غله پيداشوه بل طرف ته انګور او ترکاريانې. حب وائي هرې يوې دانې ته .عنب وائي انګوروته او قضب هغه شنې ګياته وائي کوم چه څاروی خوري.زيتونه موپيداکړل چه روښنی سره د ترکارئ کاروړکوی سوزولې شي او تيل ترې ويستې شي. د کهجورو ونې مو راپيدکړې چه کچه هم خوړلې شي. لمدې هم خوړلې شي او اوچې هم. پخې هم اود دې شيره هم جوړولې شي او سرکه هم. باغونه مو راپيدا کړه. غلباً معنی دکهجورو لوئ لوئ د ميوو ډکي ونې هم دی.حدائق وائي هر هغه باغ ته کوم چه ګنړ وی او ښه ډك وی ښه سوری والا او د لويوونو والا وی. د پيړ سټ والا سړی ته هم عرب اغلب وائي.ميوې راپيداکړې.او "أبّ" وښوته د زمکې هغه شينکې کوم چه څاروی خوري او انسان هغه نه خوري. "أبّ" د څناورو دپاره داسې دی لکه د انسان د پاره فاکهه يعنی ميوې.

د حضرت عطاء رحمه الله قول دې چه په زمکه باندې کوم راټوکيږی هغې ته "أبّ" وائي. ضحاك رحمه الله وائي چه بغير د ميوونه باقي ټول "أبّ" دی. ابوالسائب رحمه الله فرمائي چه "أبّ" د سړي په خوراك کښې هم راځي او د څناور په خوراك کښې هم. د حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه نه د دې باره کښې سوال کولې شي نو فرمائي چه کوم يوآسمان به ماته لاندې سوری راکړی؟ اوکومه يوه زمکه به ما په خپله شا اوچت کړي؟ که زه د الله ﷻ په کتاب کښې هغه بيان کړم د کوم چه ماته علم نه وی خودا اثر منقطع دې.ابراهيم تيمي رحمه الله حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه نه دې موندلې او البته سند صحيح دې. په ابن جريرکښې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه روايت دې چه هغوی په منبرباندې سورت عبس اولوستلو اوتردې ځای رسيدو پورې ئې اوفرمائيل چه فاکهه خومونږ پيژنو خودا "أبّ" په کښې څه څيز دې؟ بياپخپله فرمائي عمر دا تکليف پريږده. (۱) دې نه مراد دا دې چه د دې شکل اوصورت اود دې تعيين معلوم نه دې ګنې دومره خو د آيت د لوستلونه صفامعلوميږی چه دا د زمکې نه راټوکيدونکې يوڅيز دې ځکه چه اول دا لفظ موجود دې.(فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا) الخ. بيافرمائي دا ستاسو د ژوند قايمولو او تاسو ته فائده رسولو د پاره اوستاسو د څناورو د پاره دی چه د قيامت پورې به دا سلسله روانه وی اوتاسو به د دې نه فائده اوچتوئ.

| وَأَبِيهِ | وَأُمِّهِ | مِنْ أَخِيهِ | يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ | الصَّاخَّةُ | فَإِذَا جَاءَتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوهرکله چې راشي\| هغه اواز سخت\|په هغه ورځ به تښتي سړی\|ادرور خپل نه\|اودمورخپلې نه\|اودپلار خپل نه | | | | | |
| نو هرکله چې د قيامت چغه راشي\| په دغه ورځ به سړی د خپل رور ...او خپلې مور او خپل پلار | | | | | |

(۱) الطبری : ۲۲۹/۲۴.

| وَصَاحِبَتِهٖ | وَبَنِيْهِ ؕ | لِكُلِّ امْرِئٍ | مِّنْهُمْ | يَوْمَئِذٍ |
|---|---|---|---|---|
| او د ښځې خپلې نه | او د خامنو خپلو نه | د پاره د هر سړي به | د دوئ نه | په دغه ورځ |
| او خپلې ښځې او خپل اولاد نه تښتي | ......... چې په دوئ کښې د هر سړي به داسې حال وي | | | |
| شَاْنٌ | | يُّغْنِيْهِ ؕ | وُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍ |
| يو داسې حالت وي | چې بې پرواه کوي به هغه لره (د ټولو احوالونه) | (بعضې) مخونه به | په دغه ورځ | |
| چې د بل (د پوښتنې نه) به ئې غافله کړې وي | ............ ............بعضې مخونه به په دغه ورځ | | | |
| مُّسْفِرَةٌ ۙ | ضَاحِكَةٌ | مُّسْتَبْشِرَةٌ ۚ | وَوُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍ |
| ځليدونکې وي | خنديدونکې به وي | خوشحاليدونکې به وي | او (ځينې) مخونه به | په دغه ورځ |
| روښانه وي | ........خاندي به | .........خوشحاله بهٔ وي | .........او ځينې مخونه به په دغه | |
| عَلَيْهَا | غَبَرَةٌ ۙ | تَرْهَقُهَا | قَتَرَةٌ ؕ | اُولٰٓئِكَ |
| (داسې وي) چې په هغې باندې به | گردوى | پټ کړي به وي هغه لره | توروالې | دغه کسان چې دي |
| ورځ خړ پړ وي | ...........چې د غم تياره به پرې راخوره شوې وي هم دغه کسان | | | |
| هُمُ الْكَفَرَةُ | الْفَجَرَةُ ۧ | | | |
| هم هغوئ کافران دي | فاجران دي | | | |
| بدعمله کافران دي | | | | |

**قوله تعالى:- فَاِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ ۫**

**قيامت غوږونه کڼ ونکې دې** :حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه صاخة د قيامت نوم دې او د دې نوم وجه داده چه د دې د شپيلئ آواز اوشور زگ به د غوږونو پردې اوشلوی. په هغه ورځ به انسان خپل نيزدې رشته دار اووينې خوتختې به هيڅ څوك به د چا په کارنه راځي. خاوندبه ښځې ته په کتوانې چه وايه کنه تاسره ما په دنياکښې څومره ښه سلوك کړې وو. هغه به وائي چه اوتاماسره ډير ښه سلوك کړې وو ډيره مينه او محبت دې ساتلې ووم. دې به وائي چه نن ماته د يوې نيکئ ضرورت دې راکړه چه د دې مصيبت نه خلاص شم. نو هغه به جواب ورکړي چه ستاسوال خود ډير لږ څيز دې خوځه اوکړم هم دغه ضرورت ماته هم دې اوماته خو هم د دې ويره ده نوزه نيکی نه شم درکولې. خوئ به پلار سره ملاويږی اوهم دغه به وائي نوهم دغه جواب به ورته ملاويږی.

**قوله تعالى:- يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ ۙ وَاُمِّهٖ وَاَبِيْهِ ۙ**

**شفاعت اودهر انسان نفسانفسي**:په صحيح حديث کښې د شفاعت بيان فرمائيلوسره دحضور ﷺ ارشاد دې چه د اولوالعزم پيغمبرانو نه به خلق شفاعت غواړی اوپه هغوی کښې به هريوهم دا وائي چه نفسی نفسی تردئ چه حضرت عيسی عليه السلام روح الله به هم دا فرمائي چه زه نن د الله ﷻ نه د خپل ځان نه بغير د بل چا د پاره هيڅ هم نه شم ونيلې. زه به په نن ورځ د خپلې مور بی بی مريم د پاره هم هيڅ اونه وايم د چا د خپتې نه چه زه پيدا شوې يم(1) غرض دا چه دوست به د دوست نه رشته دار به د رشته دار نه پټ مخ گرځي. هريوبه د خپل ځان په غم کښې لگياوی. چاته به د بل هيڅ خيال نه وی. رسول الله ﷺ

---

1) دې پشان روايات صحيح بخاری کتاب التفسير سورة بنی اسرائيل باب « ذرية من حملنا مع نوح...» ۴۷۱۲، صحيح مسلم: ۱۹۴. وغيره کښې موجود دي

فرمائی چه تاسو به پښې ابله بربنډ سر او بربنډ بدن او ناسونته د الله ﷻ په وړاندې جمع کولې شئ. دحضور ﷺ بی بی اوفرمائیل یارسول الله ﷺ بیا خوبه د یوبل په شرمګاهونو باندې نظر پریوځی ونی فرمائیل دهغه ورځې ویره د هغه ځائ حیرانونکې هنګامه به هرسړی داسې مشغول ساتی چه چاته به د بل طرف ته د کتلوموقع به چرته وی؟ (ابن ابی حاتم)بعضې روایاتوکښې دی چه حضور ﷺ بیاد دې آیت تلاوت اوفرمائیلو ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ﴾ (١)دویم روایت کښې دی چه دا بی بی صاحبه حضرت ام المؤمنین عائشه صدیقه ﷞ وه.یوبل روایت کښې دی چه یو ورځ حضرت عائشه صدیقه ﷞حضور ﷺ ته اووئیل یارسول الله ﷺ زما مورپلار دې په تاقربان شی زه د یوې خبرې تپوس کوم لږ شان راته اوښائې. حضور ﷺ اوفرمائیل که ماته معلومه وی نو ضرور به درته اوښایم. تپوس نې اوکړو حضور ﷺ د خلقو حشربه څنګه وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل بربنډې پښې اوبربنډ بدن. لږ شان ساعت پس نې تپوس اوکړو چه ښځې به هم داسې وی؟ ونی فرمائیل او. دې اوریدو سره ام المؤمنین افسوس اوکړو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل عائشه دا آیت واوره نو بیا به تاته د دې هیڅ غم او خفګان نه وی چه کپړې اغوستې دی که نه؟ تپوس نې اوکړو حضور ﷺ هغه آیت کوم یه دې هغه ونیل ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ﴾ (٢)یوروایت کښې دی چه حضرت سوده ﷞ تپوس اوکړودا اوریدوسره چه خلق به بربنډ بدن بربنډې پښې او ناسونته راجمع کولې شی. په خوله کښې به ډوب وی د چا به د خلې پورې خوله رسیدلې وی د چا د غوږونوپورې نو نبی کریم ﷺ دا آیت تلاوت کړو.(٣)

**قوله تعالى:- وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ**

**قیامت کښې دخلقو دوه ډلې:**-بیا ارشاد فرمائی چه هلته به دخلقو دوه ډلې وی بعضې به هغه وی دچا مخونه چه به دخوشحالئی نه پړقیږی زړه به نې دخوشحالئی نه مطمئن وی مخ به نې ښانسته او نورانی وی،دا جنتی ډله ده. دویمه ډله به د دوزخیانووی دهغوی مخونه به تور وی دوړې به پرې وی. په حدیث کښې دی دهغوی خوله به په شان دواګې وی بیابه پرې دوړې پریوځی.داهغه دی دچا به زړونو کښې چه کفر وو او په اعمالوکښې بدکاری وه لکه چه بل ځائ کښې دی ﴿ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴾ یعنی د دې کافرانو اولاد هم به بدکاره کافران وی.

د سورت عبس تفسیر ختم شو. **﴿فالحمدلله والمنه﴾**

**﴿تفسیر د سورت تکویر چې مکی دې﴾**

**د سورت تعارف:**- مسنداحمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړی قیامت په خپلوسترګو لیدل غواړی نو هغه دې ﴿ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴾ او ﴿ إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ﴾ او ﴿ إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ ﴾ اولولی.(٤)

| آیاتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة التكوير مكية وهي تسع وعشرون آية وركوعا واحدا | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ⑤ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ① |

| إِذَا الشَّمْسُ | كُوِّرَتْ ① | وَإِذَا النُّجُومُ | انكَدَرَتْ ② | وَإِذَا الْجِبَالُ |
|---|---|---|---|---|
| کله چې نمر | اونغښتې شی | او کله چې ستوری | بې نوره او خواره واره کړې شی | او کله چې غرونه |
| څه وخت چې نمر | راونغښتې شی | او څه وخت چې ستوری | بې نوره شی | اوڅه وخت چې غرونه |

(١) ترمذی کتاب تفسیر القران باب و من سورة عبس :٣٣٣٢، وقال حسن صحیح وسنده حسن نسائی : ٢٠٨٣
(٢) نسائی کتاب الجنائز باب البعث :٢٠٨٥، وهو صحیح بالشواهد.
(٣) حاکم : ٢/٥١٤.
(٤) ترمذی کتاب تفیرالقران باب ومن سورة اذا الشمس کورت : ٣٣٣٣، وسنده حسن ، احمد: ٢/٢٧.

| | | |
|---|---|---|
| سُيِّرَتْ ۝ | وَإِذَا الْعِشَارُ | عُطِّلَتْ ۝ |
| روان کړې شي | او کله چې دلسو میاشتو بلاربې اوښې | په خانې پرېښودې شي |
| روان کړې شي | اوکله چه لس میاشتینی بلاربې (اوښې) هیرې کړې شي | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ ۝ | | وَإِذَا الْبِحَارُ | سُجِّرَتْ ۝ | وَإِذَا النُّفُوسُ |
| او کله چې ځنګلي ځناور راجمع کړې شي | | او کله چې دریابونه | لمبه کړې شي | او کله چې روحونه |
| اوځه وخت چې ځنګلي ځناورراجمع کړې شي | | اوځه وخت چې دریابونه اور شي | | اوځه وخت چې روحونه |

| | | |
|---|---|---|
| زُوِّجَتْ ۝ | وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ | سُئِلَتْ ۝ |
| یو ځانې کړې شي (دبدنونو سره) | او کله چې ژوندۍ ښخې شوې جینۍ | اوپوښتلې شي |
| (دبدنونو سره) جوړې کړې شي | اوځه وخت چې د ژوندۍ ښخې کړې شوو جینکونه تپوس اوشي | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِأَيِّ ذَنْبٍ | قُتِلَتْ ۝ | وَإِذَا الصُّحُفُ | نُشِرَتْ ۝ | وَإِذَا السَّمَاءُ |
| چې په کومه ګناه سره | وژلې شوې وه هغه | او کله چې عملنامې | خورې کړې شي | او کله چې آسمان |
| چې په کومې ګناه وژلې شوې دی | | او ځه وخت چې عملنامې پرانستلې شي | | اوځه وخت چې آسمانونونه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كُشِطَتْ ۝ | وَإِذَا الْجَحِيمُ | سُعِّرَتْ ۝ | وَإِذَا الْجَنَّةُ | أُزْلِفَتْ ۝ |
| ابې پردې کړې شي | او کله چې دوزخ | لمبې کړې شي | او کله چې جنت | رانژدې کړې شي |
| پوستکې اوویستلې شي | اوهر کله چې دوزخ لمبه کړې شي | | او ځه وخت چې جنت رانژدې کړې شي | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلِمَتْ | نَفْسٌ | مَّا أَحْضَرَتْ ۝ | |
| معلوم به شي | هر انسان ته | هغه چې حاضر کړې وې هغه | نو ئۀ |
| نو هر یو نفس ته به عمل معلوم شي | | | |

**قوله تعالی:- إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝**

**د قیامت واقع کیدو منظرونه** :-یعني نمربه بې نوره شي اوخې به اولته به راغونډکړې شي او په زمکه به راګذارکړې شي.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه نمر سپوږمئ اوستورې به راغونډولوسره بې نوره کړې شي اوپه سمندرکښې به اوغورزولې شي. بیا به هواګانې چلیږي او اوربه اولګي. یومرفوع حدیث کښې چه دا به قط کړې شي اودوزخ کښې به واچولې شي(ابن ابي حاتم) او په یوحدیث کښې د نمرسره دسپوږمئ ذکر هم دې خو هغه ضعیف دې([1]) په صحیح بخاری‌کښې داحدیث د الفاظوپه وړاندیوالې روستووالی سره نقل دې په دې کښې دی چه نمراوسپوږمئ به د قیامت په ورځ راغونډولې شي([2]) امام بخاری رحمه الله دا په کتاب بدء الخلق کښې راوړې دې خو دلته راوړل زیات مناسب وویا د عادت مطابق هلته او دلته دواړوځایونوکښې راوړلې وې لکه چه د امام صاحب رحمه الله عادت دې.

حضرت ابوهریره ﷺ چه کله داحدیث بیان کړو چه د قیامت په ورځ به داسې کیږي نوحضرت حسن رحمه الله اوونیل چه د دوی څه ګناه ده؟ونی فرمائیل چه ما حدیث اوونیلو او ته په کښې خبرې جوړوې. د نمربه

---

[1]) مسند ابي يعلى: ٤١١٦).

[2]) صحيح بخاري كتاب بدء الخلق باب صفة الشمس والقمر: ٣٢٠٠.

د قیامت په ورځ دا حالت وي.ستورې به ټول متغیر کیدوسره راورژولي شي.لکه چه بل ځای ارشاد دی ﴿وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ﴾دابه هم خیرن او بې نوره شي اومړه به شي.حضرت ابی بن کعب‌رضی الله عنه فرمائي چه د قیامت نه په وړاندې شپږ نښې وي.خلق به په خپلوبازارونوکښې وي چه ناڅاپې به دده رڼا لاړه شي اوبیا به ناڅاپې ستورې په ماتیدوسره راپریوځي. بیا به ناڅاپي غرونه په زمکه راپریوځي او زمکه به په زوره زوره جټکې وهي او ډیره خرابه به رقیږي. نو بس بیا څه انسان څه ځناور او څه پیریان او څه ځنګلي ځناوردا ټول به په خپل مینځ کښې ګډوډشي.ځناور هم چه د انسان نه به تختیدل انسانانوله به راشي خلق به داسې وارخطا او ویریدونکې وي چه د ښځو نه ښې اوښې کوم چه لوشل غواړي دهغوی به هم خیرخبرنه اخلي. پیریان به وائي مونږ خو چه پته اولګوچه داڅه کیږي؟خوچه هغوی راشي اوګوري چه په سمندرکښې هم اورلګیدلي دي هم په دې حال کښې به یودم زمکه اوشلیږي آسمان به هم رامات شي د اووه واړوزمکواو اووه واړو آسمانونوبه هم داحال وي.بل طرف نه به یوه تیزه هوا راشي او ټول سا والا به مړه شي. (ابن ابی حاتم) په یوبل روایت کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي چه ټول ستورې او د کوموکومو چه دالله ﷻ نه بغیر عبادت کړې شوې دې ټول به دوزخ کښې وراچولي شي. صرف حضرت عیسی علیه السلام اوحضرت بی بی مریم علیها السلام به بچ شي.که دوی هم پخپل عبادت باندې خوشحالیدل نو دوی به هم دوزخ کښې داخلولي شو (ابن ابی حاتم) غرونه به د خپل ځای نه اخواشي او بې نوم اوبې نښې به شي. زمکه به صفاهوارمیدان پاتې شي اوښې به بې کاره پریخودې شي نه به د هغوی څوک خیال ساتي اونه به هغوی څوك څروی نه به ترې پنی لشی اونه به پرې سورلی کوی. عشار جمع ده د عشراء. کومه بلاربه اوښه چه په لسمه میاشت کښې داخله شي هغې ته عشراء وائي مطلب دا چه ویره او وارخطائي بې آرامي او پریشاني به دومره زیاته وي چه د ښه نه د ښه مال به هم پرواه نه شي کولې.دقیامت دې تباهو به ترې زړه ویستې وي اینې به نی ځلوله راغلي وي.

بعضې خلق وائي چه دا به د قیامت په ورځ وي اود خلقو به دې سره هیڅ کارنه وي.اودهغوی به کتلو کښې به دا وي.ددې قول قائل خلق د عشار ډیرې معنې کوی یوخودا وائي چه دې نه مراد اوریځې دی چه ددنیاد بربادنې په وجه به د آسمان اوزمکې ترمینځه ګرځي.بعضې وائي چه دې نه مرادهغه زمکه دد د کومې چه عشر ورکړې شوې وي.بعضې وائي چه دې نه مرادکورونه دې چه اول آباد وو اوس وران دي.امام قرطبي رحمه الله دا ټول اقوال بیانولوسره ترجیح دې ته ورکوی چه دې نه مراد اوښې دی اود اکثرو مفسرینو هم دغه قول دې اوزه خووایم چه د سلفونه اود آئمه حضراتونه د دې نه علاوه بل هیڅ هم نه دی واردشوی. والله اعلم.

وحشي ځناوربه راجمع کولي شي لکه چه فرمان دي ﴿وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ﴾یعنې په زمکه باندې ګرځیدونکی ټول ځناوراوپه هواکښې الوتونکې ټولې مرغنې هم ستاسو په شان ډلې دی.مونږ په خپل کتاب کښې هیڅ څیز نه دې پریخې بیا به دا ټول د خپل رب طرف ته راجمع کولې شي.دټولو ساه لرونکو حشر به هم هغه سره وی ترددې چه مچني هم.ددې ټولوبه الله ﷻ په انصاف سره فیصله اوکړي.د دې ځناوروحشر هم د دوی مرګ دې. خو انسانان او پیریان به د الله ﷻ په وړاندې اودرولي شي اودوی سره به حساب کتاب وي.ربیع بن خثیم رحمه الله وائي چه دوحشیانودحشر نه مراد په دوی باندې دالله ﷻ امر راتلل دی خوابن عباس‌رضی الله عنه دې اوریدو سره اوفرمائیل دې نه مرادمرګ دې. دا ټول ځناور به هم انسانانوسره شي. پخپله په قرآن پاك کښې بل ځای ارشاد دې ﴿وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً﴾مرغنې جمع کړې شوې.نوصحیح مطلب د دې آیت هم دا دې چه وحشي ځناور به راجمع کولي شي. حضرت علي‌رضی الله عنه د یویهودي نه تپوس اوکړو دوزخ چرته دې؟ هغه ونیل په سمندرکښې. هغوی اوفرمائیل چه زما په خیال کښې دا ریښتیادی قرآن پاك وائي ﴿وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ﴾ او

فرمائی ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ﴾ حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره فرمائي الله ﷻ به هواګانې راولیګی هغه به دا نیز کړی او شغلې وهونکې أوربه ترې جوړشی. آیت ﴿وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ﴾ په تفسیرکښې د دې پوره تفصیلی بیان تیرشوې دې.

حضرت معاویه بن سعید رضی الله عنه فرمائي چه په بحرروم کښې برکت دې داد زمکې په مینځ کښې دې ټول نهرونه هم په دې کښې راخی اوبحرکبیرهم په دې کښې پریوځی. دې نه لاندې کوهیان دی د کوموخلې چه په تانبه سره بندکړې شوی دی د قیامت په ورځ به هغه راخوټکیږی.دا اثرعجیبه دې اودې سره غریب هم دې.اوپه ابوداؤد کښې کوم حدیث دې چه د سمندرسفردې صرف حاجی کوی اوعمره کونکی یا جهادکونکی غازی. ځکه چه د سمندرلاندې أور دې اود أور لاندې اوبه دی.الخ(۱) د دې بیان هم د سورت فاطر په تفسیرکښې تیرشوې دې.دسجرت معنی دا هم کړې شوې ده چه اوچ به کړې شی بوخاڅکې به هم باقی پاتې نه شی. دامعنی هم کړې ده چه اوبه بهیولې شی اواخوادیخوابه اوځی. بیا فرمائي چه هرقسم خلق به یوځای راجمع کړې شی.لکه چه ارشاددې ﴿احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ﴾ ظالمان او د هغوی جوړې یعنی د هغوی په شان راجمع کړی.

په حدیث شریف کښې دی چه د هرسړی حشربه هغه قوم سره وی چه د هغوی په شان اعمال کوی. الله ﷻ فرمائی﴿وَكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً ۝ فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ۝ وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ۝ وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ ۝﴾ تاسو به درې قسمه ډلې شئی څه هغه دچا په ښی لاس کښې چه به عمل نامه وی څه دګس لاس والا او څه وړاندې کیدونکی. (۲)

ابن ابی حاتم کښې دی حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د خطبه لوستلو په وخت کښې داآیت تلاوت کړو او وئې فرمائیل چه هره یوه ډله به د خپل خان په شان سره ملاوشی. بل روایت کښې دی چه هر هغه دوه سړی دکوموعمل چه یوشان وی هغه به یاپه جنت کښې یوځای وی اویا به دوزخ کښې یوځای سوزیږی. (۳)

د حضرت عمر رضی الله عنه نه د دې آیت تفسیرتپوس اوکړې شونوونی فرمائیل نیک به نیکانوسره ملاوشی او بد بدانوسره په أورکښې. حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه یوځل ددې آیت تفسیردخلقو نه تپوس اوکړونوټول خاموش شو هغوی اوفرمائیل زه اوبنایم د سړی جوړه به په جنت کښې داسې وی اودغه شان به په دوزخ کښې هم.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دې نه هم دامطلب دې چه درې قسم خلق به شی یعنی اصحاب الیمین د ښی لاس والا اصحاب الشمال د ګس لاس والا او سابقین یعنی وړاندې کیدونکی. مجاهد رحمه الله فرمائي چه هرقسم خلق به یو ځای وی. هم دا قول امام ابن جریر رحمه الله هم خوښوی اوهم دا نیک هم دې.

دویم قول دادې چه د عرش دخوانه به داوبویودریاب روانیږی چه د څلویښتوکالوپورې به بهیږی او ډیر زیات به پلن وی. د دې سره به ټول مړه شوی سخاشوی راوځی. داسې به شی چه څوك هغوی پیژنی نو په یونظر کتلوسره به ئې اوپیژنی بیا به روحونه پریخودې شی اوهرروح به په خپله جوثه کښې راشی. هم دا معنی ده د ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ یعنی روحونه به بدنونوسره یوځای کړې شی.اودامعنی هم کړې ده چه د مؤمنانو جوړه به حوروسره اولګولې شی اود کافرانو د شیطانانوسره (تذکره قرطبی) بیا ارشاد دې ﴿وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ﴾ الخ د جمهوروقراءت هم دا دې.

(۱) ابوداود کتاب الجهاد باب فی رکوب البحر فی الغزو ۲٤۸۹،
(۲) الطبری : ۲٤/۲٤٥.
(۳) ابن ابی حاتم .

قوله تعالى:- وَإِذَا الْمَوْءُدَةُ سُئِلَتْ
د جاهليت د زمانې يوبدرسم:-د جاهليت په زمانه کښې به خلقو لونړه نه خوښولې او هغه به ئې ژوندې خښولې دهغوی نه به د قيامت په ورځ تپوس کولې شی چه دوی موولې قتل کولې دې دپاره چه د دوی قاتلانوته ډيره رټنه او شرمندګی وی. په دې هم پوهه شنی چه کله د مظلوم نه سوال اوشو نود ظالم څه وينا ده؟ اودا ئې هم وئيلی دی چه پخپله به تپوس کوی چه هغوی مو په څه وجه ژوندئی خښې کړې وې؟د دې متعلق احاديث واورئې. مسنداحمدکښې حضورﷺ فرمائی چه ماراده اوکړه چه خلق د حمل دوران کښې د کوروالی نه منع کړم خو ماواکتل چه روميان او فارسيان داکارکوی اود هغوی اولاد ته دې نه هيڅ نقصان نه رسی. خلقو د حضورﷺ نه د عزل باره کښې تپوس اوکړو يعنی په عين وخت کښې نطفه بهرغورزولو باره کښې نوحضورﷺ اوفرمائيل چه دا پټ ژوندې خښول دی.او په (وَإِذَا الْمَوْءُدَةُ سُئِلَتْ) کښې هم د دې بيان دې[1] سلمه بن يزيد ﷺ اودهغې رور دحضورﷺ په درباركښې حاضر شو او سوال ئې اوکړوچه زمونږ مور مالداره وه هغې به صله رحمی کوله ميلمستيا به ئې کوله اونوربه ئې هم ډير د نيکئی کارونه کول خو هم په جاهليت کښې مړه شوې وه نو هغې ته به دا د نيکئی کارونه څه فائده اورسوی. حضورﷺ اوفرمائيل نه. هغوی اووئيل چه هغې زمونږ يوه خور ژوندئی خښه کړې وه آيا هغه به هم څه فائده ورکړی. حضورﷺ اوفرمائيل چه ژوندئی خښه شوې او ژوندئی خښونکې دوزخ کښې دی اودا بله خبره ده چه هغه اسلام قبول کړی. (۲) (مسنداحمد)ابن ابی حاتم کښې دی ژوندئی خښونکې ښځه اوځوك ئې چه خښه کړې دا دواړه دوزخ کښې دی. د يوې صحابيه ﷺ په تپوس باندې چه جنت ته به څوك ځي حضورﷺ اوفرمائيل چه نبی شهيداو ژوندئی خښې شوې(۳)دا حديث مرسل دې دحضرت حسن ﷺ نه چاته چه بعضومحدثينود قبوليت درجه ورکړې ده.حضرت ابن عباسﷺ فرمائی چه د مشرکانو په وړوکی عمر کښې مړه شوی بچې جنتيان دی ځوك چه دوی ته دوزخی وائی هغه دروغژن دی. الله ﷻ فرمائی (وَإِذَا الْمَوْءُدَةُ)(ابن ابی حاتم).

قيس بن عاصم ﷺ سوال کوی چه يارسول الله ﷺ ما د جاهليت په زمانه کښې خپلې لونړه ژوندئی خښې کړې دی زه څه اوکړم؟ حضورﷺ اوفرمائيل دهرې يوې په بدله کښې يوغلام آزاد کړه.هغه عرض اوکړو حضورﷺ دغلام آزادولوخو زه نه يم خواوښان راسره شته. وئی فرمائيل دهرې يوې په بدله کښې يو يواوښ دالله ﷻ په لارکښې قربانی کړه(۴) (عبدالرزاق)

بل روايت کښې دی چه ما خپلې اته لونړه داسې ژوندئی خښې کړې دی.دحضورﷺ په فرمان کښې دی که غواړې نوداسې اوکړه.يوبل روايت کښې دی چه ما دولس ديارلس لونړه ژوندئی خښې کړی دی حضورﷺ اوفرمائيل د هغې هومره غلامان آزادکړه. هغه وئيل ډيره ښه ده زه داسې کوم. بل کال هغه سل اوښان راوستل او وئی وئيل حضورﷺ دا زما د قوم صدقه ده چه د هغې په بدله کښې دی کوم چه ما مسلمانانوسره کړی.

حضرت علی ﷺ فرمائی مونږ دااوښان بوتلل او ددې نوم مو قيسيه کيخودلې وو.بيا ارشاد دی چه عمل نامې به تقسيم کولې شی چاته په ښی لاس کښې اوچاته په ګس لاس کښې. اې بنيادمه ته ليکلې کيږی کوم چه به راغونډيږی اوخورولو سره به تاته درکولې شی.اوګوره څه دې ليکلې شوی دی. آسمان به راښکلې شی او راغونډبه کړې شی او بربادبه کړې شی. دوزخ به لمبه کولې شی د الله ﷻ په

---

[1]) احمد: ۴۳۴/۶، صحيح مسلم کتاب النکاح باب جواز الغيلة وهی وطن المرضع :۱۴۴۲، ترمذی :۲۰۷۶، ابن ماجة : ۲۰۱۱.
[2]) احمد: ۴۷۸/۳، وسنده صحيح المعجم الکبير : ۶۳۱۹.
[3]) ابوداود کتاب الجهاد باب فی فضل الشهادة : ۲۵۲۱ .
[4]) مسندالبزار :۲۲۸۰، وسنده حسن ، بيهقی :۱۱۶/۸.

غضب او د بنيادمانوپه ګناهونوبه ددې اورتيزکړې شي. جنت به جنتيانوله راشي کله چه دا ټول کارونه اوشي هغه وخت به هرسړې پوهه شي چه هغه د دنيا په خپل ژوند کښې کوم اعمال کړې وو هغه ټول اعمال به د هغه په وړاندې موجود وي. لکه چه بل ځاۍ ارشاد دې ﴿يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۚ وَمَا عَمِلَتْ مِن سُوءٍ ۚ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ ۗ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ﴾ په کومه ورځ چه به هرسړي خپل اعمال اووينی که نيك وی نو مخامخ به ئې اووينی اوکه بد وی نوهم اوپه هغه ورځ به هغه تمناکوی چه افسوس ددې او د هغه په مينځ کښې ډير لريوالې وو. بل ځاۍ دی ﴿يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ په هغه ورځ به دانسان په ټولو وړاندينوا‌و روستونواعمالوسره تنبيه کولې شی.عمر ﷺ داسورت اوريدلو اواوريدو سره ئی اوفرمائيل وړاندې ټولې خبرې هم د دې د پاره بيان شوې وې.

| |
|---|
| فَلَآ أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ﴿١٥﴾ |
| نو نهٔ \| زهٔ قسم خورم \| په واپس کيدونکو |
| نو زهٔ قسم خورم په راتاويدونکو |
| الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ﴿١٦﴾ وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿١٧﴾ وَالصُّبْحِ |
| سيده تلونکو \| پټيدونکو روستوکيدونکو باندې \| او په شپه باندې \| کله چې واپس راشي \| او په صبا باندې |
| ګرځيدونکو او پټيدونکو ستورو \| .........او په شپه څه وخت چې را خوره شي \| اوپه وخت د صبا |
| إِذَا تَنَفَّسَ ﴿١٨﴾ إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾ |
| کله چې ساه واخلی \| بيشکه دا قرآن \| خامخا خبره ده \| دپيغام وړونکی عزتمند (جبريل عليه السلام) \| |
| چې کله راوخيژی \| چې بيشکه دا (قرآن) ديوې عزتمندې فرښتې په ژبه راليږلې شوې دې \| |
| ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ مُّطَاعٍ ثَمَّ |
| چې خاوند دقوت دې \| دعرش والا په نيز \| دغټې مرتبې خاوند دې \| حکم ئې منلې کيږی \| هلته |
| چې ډيرمضبوط دعرش خاوند (الله ﷻ) سره دلوئې مرتبې خاونده ده \|..............خبره ئې هلته |
| أَمِينٍ ﴿٢١﴾ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ رَآهُ |
| امانتدار دې \| اونهٔ دې ملګرې ستاسو \| ليونې \| اوبيشکه ليدلې ئې دې هغه \| |
| منلې شی او امانت ګر دې \| اوستاسو ملګرې (محمد ﷺ) ليونې نه دې \| اوده هغه (جبريل عليه السلام) |
| بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ﴿٢٣﴾ وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ ﴿٢٤﴾ وَمَا هُوَ |
| په لمن داسمان روښانه باند \| اونهٔ دې هغه \| په رسولو دغيبو دعلم کښې ابخيل \| اونهٔ دې دا قران \| |
| داسمان غاړې سره ليدلې هم دې \| اودا پيغمبر د غيبو خبرو په خودلو کښې شوم نه دې \| اودا کلام |
| بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ﴿٢٥﴾ فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ﴿٢٦﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ |
| قول (وينا) \| دشيطان رټلی شوی \| نو کوم خوا روان يئ تاسو \| نهٔ دې دا \| مګر \| يو نصيحت \| |
| درټلې شوی شيطان کلام نه دې \| نو تاسو بل کوم اړخ ته روان يئ \| دا (کتاب) خو بس ټول مخلوق |

لِّلْعٰلَمِيْنَ | لِمَنْ شَآءَ | مِنْكُمْ | اَنْ يَّسْتَقِيْمَ
دپاره دخلقو | دپاره دهغه چاچي غواړي | ستاسو نه | چي په نيغه لار لاړ شي |
ته يو نصيحت دي |د هغه چا دپاره چي څوک په تاسو کښې په نيغه لار تلل غواړي

وَمَا تَشَآءُوْنَ | اِلَّآ اَنْ | يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ
اونهٔ کيږي هغه چي غواړئ تاسو | مګر کيږي هغه | چي غواړي الله چه رب د مخلوقاتو دي |
او تاسو هغه څه غوښتلي شئ چي الله ﷻ ئې اوغواړي| چي دټول مخلوق رب دي

**قوله تعالىٰ:- فَلَآ اُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ**

**د حضرت محمد مصطفى ﷺ شان:** حضرت عمروبن حريث رضي الله عنه فرمائي چه دسحر په مانځه کښې مارسول الله ﷺ ددې سورت په تلاوت کولو واوريدو. په دې مونځ کښې زه هم په مقتديانو کښې شامل ووم(١) (مسلم) داقسمونه ئې د ستورو خوړلې دي چه د ورځې په وخت کښې روستو کيږي يعنې پټيږي اود شپې ښکاره کيږي.حضرت علي رضي الله عنه هم دافرمائي (٢) او صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله وغيره نه هم دا تفسير نقل دې. بعضې آئمه حضراتو فرمائيلې دي چه د راختلوپه وخت کښې ستورو ته خنس ونيلې شي اوپه خپل خپل ځائ دې ته جوار ونيلې شي. بعضوونيلي دي چه دې نه مراد ځنګلي غوا ده اودا هم روايت دې چه مراد ترې هوسئي ده. ابراهيم رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله نه د دې د معنې تپوس اوکړونوحضرت مجاهد رحمه الله اوفرمائيل چه مونږ ددې باره کښې هيڅ نه دي اوريدلي البته خلق وائي چه دې نه مراد ستورې دي. هغه بياسوال اوکړو چه تا کوم اوريدلي دي هغه اووايه هغه اوفرمائيل چه دې نه مراد نيل غواده کومه چه په خپل ځائ پټه شي.حضرت ابراهيم رحمه الله اوفرمائيل هغه په مادروغ تړې. د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت کوی چه هغوی اسفل د اعلى او اعلى د اسفل ضامن اوخودلو.

امام ابن جرير رحمه الله په دې کښې د چا هم تعين اونه کړو اوونې فرمائيل چه ممکن دی دريواړه څيزونه مراد وی ستورې نيل غوا او هوسنې.د ﴿عَسْعَسَ﴾ معنى ده د تيارې والا او پاسيدلې او خلق پټونکې. د سحر په وخت کښې يوخل حضرت علي رضي الله عنه اووتلو اوونې فرمائيل چه د وتروتپوس کونکې چرته دی؟ بيانئې دا آيت اولوستلو. امام ابن جرير رحمه الله هم دا خوښوی چه هم دا معنى ده چه کله شپه لاړه شي څکه چه د دې په مقابله کښې دی کله چه سحراوږقيږی ﴿عَسْعَسَ﴾ ئې د ﴿اَدْبَرَ﴾ په معنى کښې ترلې دې. زما په نيز تيك معنى دا ده چه قسم دې د شپې کله چه هغه راشي اوتياره خوره کړي اوقسم دې د ورځې کله چه هغه راشي اورنړاخوره کړی. لکه بل ځائ ارشاد دې.﴿وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى ۝ وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى ۝﴾ بل ځائ دی ﴿وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى ۝﴾ بل ځائ دی ﴿فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا﴾ نورهم د دې قسم آياتونه دی مطلب د ټولويودې.اوبې شکه ددې لفظ معنى د روستواخواکيدوهم ده.علماؤ اصول فرمائيلی دی چه دا لفظ په وړاندې راتلواو په روستوکيدو دواړو معنو کښې راځی په دې وجه دا دواړه معنې تيک کيدې شي. والله اعلم.

او قسم دې د سحر کله چه هغه راخيژی اود رڼرا سره راشي بيا د دې قسمونونه پس فرمائی چه دا قرآن پاك يوبزرګ شريف پاکيزه اوخوش منظر فرښتې کلام دې يعنى د جبرائيل عليه السلام او هغه د قوت والا دې.لکه بل ځائ ارشاددې ﴿عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ۝ ذُوْ مِرَّةٍ ۚ فَاسْتَوٰى ۝﴾ يعنى سخت مضبوط سخت نيونکې او.

---

[١] صحيح مسلم كتاب الصلاة ل القراة ل الصبح: ٤٥٦.

[٢] الطبرى : ٢٥١/٢٤.

سخت فعل والا فرښته هغه د الله ﷻ سره چه د عرش مالك دى اوچت او د مرتبې والا دې هغه دنور اوباؤ پردوته تلې شى اوهغه ته عام اجازت دې چه دهغه خبره هلته اوريدې شى.اوچتې فرښتې دهغه د حکم تابعدارې دى په آسمانونوکښې دهغه سردارى ده.نورې فرښتې د هغه د حکم منونکې دى او هغه په دې پيغام رسولوباندې مقرردې چه دالله ﷻ دهغه رسول ﷺ ته اورسوى دافرښتې دالله ﷻ آمين دى.

**قوله تعالى:- وَلَقَدْ رَاٰهُ بِالْاُفُقِ الْمُبِيْنِ﴿۲۳﴾**

**دنبى كريم ﷺ او د جبرائيل عليه السلام ملاقات:** مطلب دا چه فرښتوکښې كومې په دې رسالت باندې مقررده هغه هم پاکې صفادى اوپه انسانانوکښې چه كوم رسول ﷺ مقرر دې هغه هم پاك او اوچت دې. د دې دپاره نى د دې نه پس اوفرمائيل چه ستاسوملګرې يعنى محمد ﷺ ليونې نه دې.دې پيغمبر ﷺ دا فرښته د هغې په اصلى شكل كښې هم ليدلې ده كوم وخت كښې چه هغه دخپلو شپږو سوو وزرو سره ښكاره شوې وه.دا واقعه دبطحا ده او داد اول خل ليدل وو.دآسمان په كولاؤ غاړو باندې د جبرائيل ﷺ دا ديدار حاصل شوې وو.

ددې بيان په دې آيت كښې دې﴿ عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى﴿۵﴾ ذُوْ مِرَّةٍ ؕ فَاسْتَوٰى﴿۶﴾ وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى﴿۷﴾ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى﴿۸﴾ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى﴿۹﴾ فَاَوْحٰۤى اِلٰى عَبْدِهٖ مَاۤ اَوْحٰى﴿۱۰﴾﴾ يعنى هغه ته يوه فرښته تعليم كوى چه ډيره طاقتوره اوقوى ده كومه چه د آسمان په اوچتوغاړو باندې په خپل اصلى صورت كښې ښكاره شوې وه بياهغه نيزدې راغله اوډيره نيزدې راغله صرف ددوو كمانونوفاصله پاتې شو بلكه ددې نه هم كمه بياچه كومه وحى الله ﷻ په خپل بنده باندې نازلول غوښتل نازل نى كړه. ددې آيت تفسير په سورت النجم كښې تيرشوې دې.

په ظاهره خودامعلوميږى چه دا سورت د معراج نه اول نازل شوې دې ځكه چه په دې كښې صرف د اول خل ليدل ذكر دى اود دوباره ليدل په دې آيت كښې ذكردى ﴿وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى﴿۱۳﴾﴾ يعنى حضور ﷺ هغه يو خل بيا هم په سدرة المنتهى كښې ليدلې دې كوم سره نيزدې چه جنت الماوى دې كله چه دا ونه يوډير عجيبه او حيرانونكى ځيز پټه كړې وه. په دې آيت كښې د دويم خل ليدلوذكر دې.

داسورت د معراج د واقعه نه پس نازل شوې وو﴿بِضَنِيْنٍ﴾دويم قراءت ﴿بظنين﴾هم نقل دې يعنى په هغوى باندې هيڅ تهمت نشته. اوچه كله په ضاد سره اولوستلې شى نو معنى به وى دابخيل نه دې بلكه هر سړى ته چه كومې دغيب خبرې هغه ته دالله ﷻ دطرف نه معلومولې شى دې ورته ښائى.دادواړه قراءتونه مشهوردى او صحيح دى.نو حضور ﷺ نه دتبليغ په احكاموكښې كمې اوكړونه تهمت اولګيدو.

**قوله تعالى:- وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ﴿۲۵﴾**

**دقرآن پاك شان:**-دا قرآن پاك د شيطان مردود كلام نه دې اونه شيطان دا اخستې شى او نه د هغه د مطلب دا ځيز دې اونه هغه د دې قابل دې لكه چه بل ځاى ارشاد دې ﴿وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ﴿۲۱۰﴾ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ﴿۲۱۱﴾ اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ﴿۲۱۲﴾﴾نه د دې اخستوسره شيطان راكوز كړې نه هغه ته دا لائق دى نه د هغه ددې طاقت دې هغه خود دې د اوريدونه هم محروم اولړې دې. بيا فرمائى تاسو چرته ځې؟يعنى د قرآن حقانيت ددې صداقت د ښكاره كيدونه پس تاسو ولې دادروغ ګڼړې؟ستاسوعقلونه چرته تلى دى؟

**قوله تعالى:- فَاَيْنَ تَذْهَبُوْنَ﴿۲۶﴾**

حضرت ابوبكرصديق ﷺ له چه كله د بنوحنيفه قبيلې خلق مسلمانان شو راغله نو هغوى اوفرمائيل مسيلمه چاچه د نبوت ددروغو دعوى كړې ده كوم چه تاسو تراوسه پورې منلو هغه چه دخان نه كوم كلام جوړكړې دى لږ شان هغه خو واوروئى. كله چه هغوى واورولو نو وئى كتل چه ډير فضول الفاظ دى بلكه صرف بكواس دې. نو هغه اوفرمائيل چه ستاسو عقلونه چرته تلى؟ لږ شان سوچ خو اوكړئى

بې فضول بکواس نه تاسو د الله ﷻ کلام منئی. ناممکن ده چه داسې بې معنی او بې نوره کلام د الله ﷻ کلام وی.دا هم مطلب بیان کړې شوي دې چه تاسو دکتاب الله نه اود اطاعت الله نه چرته تختئی؟ بیا فرمائی چه قرآن پاك د ټولوخلقو د پاره پند اونصیحت دې.
د هدایت هر یوطالب له پکار دی چه په دې قرآن پاك باندې عمل کونکې جوړشی هم دا د خلاصی او هدایت کفیل دې د دې نه بغیر په بل کلام کښې هدایت نشته. ستاسو غوښتنې په کار نه راخی چه څوك غواړی هدایت واخلی او څوك غواړی ګمراه شی بلکه دا هرڅه د الله ﷻ د طرف نه دی. رب العالمین چه څه غواړی کوی هم د هغه غوښتنه چلیږی. د دې نه وړاندې آیت اوریدو سره ابوجهل ونیلې وو بیا خودا هدایت او ضلالت زمونږ د وس کار نه دې د دې په جواب کښې دا آیت نازل شو.[1]
﴿الحمدلله﴾ د سورت تکویر تفسیرختم شو.

## ﴿تفسیر سورت انفطار﴾

**دسورت تعارف**: نسائی کښې دی چه حضرت معاذ ﷺ دماسخوتن مونځ ورکړو اوپه هغې کښې اوږد قراءت اولوستلو.مقتدیان یې رسول کریم ﷺ ته شکایت اوکړو.نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه معاذ ته خلق په فتنه کښې اچونکې یې لې؟داسورتونه نه وو ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۝ الَّذِي خَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝﴾او ﴿ وَالضُّحَىٰ ۝ وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَىٰ ۝﴾او ﴿ إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ۝ وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ ۝﴾.د دې حدیث شریف اصل په بخاری اومسلم کښې هم دې [2].او﴿ إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ۝﴾[3]ذکر صرف په نسائی کښې روایت دې او هغه حدیث اول تیرشوې دې په کوم کښې چه بیان شوې دې چه کوم سړې قیامت په خپلوسترګولیدل غواړی نو هغه دې ﴿ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝﴾او﴿ إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ۝﴾او﴿ إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ ۝﴾اولولی. [4]

| اياتونه | | سورة الانفطار مكية وهي تسع عشرة اية وركوعاواحداس | | ركوع كانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ١٩ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ١ |

إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ۝ وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ ۝ وَإِذَا الْبِحَارُ

کله چې اسمان | اوچوی | او کله چې ستوری | خواره واره شی | او کله چې دریابونه
څه وخت چې اسمان اوچوی | ...او چې ستوری خواره واره شی |.................. اودریابونه

فُجِّرَتْ ۝ وَإِذَا الْقُبُورُ بُعْثِرَتْ ۝ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا

اوشلولې شی | او کله چې قبرونه | رااوسپړدلې شی | معلوم به شی هر انسان ته | هغه څه |
یو بل سره په بهیدو یو ځائې شی | اوهرکله چې قبرونه اونړولې شی | نو هرنفس ته به معلومه شی

قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ ۝ يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ مَا غَرَّكَ

وړاندې ئې لیږلی دی|اوروستو ئې پریښودی دی | اې انسانه | څه څیزا په دهوکه کښې واچولې ته |
چې څه ئې کړی دی او څه ئې پریخودی دی |اې انسانه ته دخپل مهربان رب په باره کښې کوم

---

[1] الطبرى : ٢٦٤/٢٤.
[2] صحيح بخارى كتاب الاذان باب من شكا امامه اذا طول ، : ٧٠٥، صحيح مسلم : ٤٦٥.
[3] نسائى كتاب الافتتاح باب القراة فى العشاء الاخرة ( سبح اسم ربك الاعلى.....)) : ٩٩٨.
[4] ترمذى كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة اذا الشمس كورت : ٣٣٣٣، وسنده حسن ، احمد: ٢٧/٢.

| بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ۙ | الَّذِيْ | خَلَقَكَ | فَسَوّٰىكَ |
|---|---|---|---|
| دخپل رب عزتمند په حقله | هغه رب | چې پیدا ئې کړې ته | نو برابر ئې کړې ته |
| خیز دهوکه کښې اچولې ئې | هغه رب چې ته ئې پیدا کړې | .........نو برابر ئې کړې | |

| فَعَدَلَكَ ۙ | فِيْٓ اَيِّ صُوْرَةٍ | مَّا شَآءَ | رَكَّبَكَ ۭ | كَلَّا |
|---|---|---|---|---|
| نو برابر ئې کړې ته | په کوم صورت کښې | چې خوښه شوه دهغه | (هغسې ئې) پیوند کړې ته | هرګز نه |
| نو درمیانه حال ئې کړې | په کوم صورت کښې چې ئې خوښه وه هغسې ئې جوړ کړې | نه بلکه | | |

| بَلْ تُكَذِّبُوْنَ | بِالدِّيْنِ ۙ | وَاِنَّ | عَلَيْكُمْ | لَحٰفِظِيْنَ ۙ |
|---|---|---|---|---|
| بلکه تاسو دروغ ګڼړئ | جزا سزا لره | او بیشکه | مقرر دی په تاسو باند | خامخا نګرانی کونکی فرښتې |
| تاسو خودقیامت نه انکار کوئ | حال دا چې نګرانې فرشتې درباندې مقرر دی | | | |

| كِرَامًا | كَاتِبِيْنَ ۙ | يَعْلَمُوْنَ | مَا | تَفْعَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| عزتمندې | لیکونکې (فرښتې) | چې معلوم دی هغوئ ته | هغه عملونه | چې کوئ ئې تاسو |
| چې معززې لیکونکې دی | .........تاسو چې څه کوئ په هغې ښهٔ پوهیږی | | | |

**قوله تعالی:- اِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ ۙ**

**دقیامت د واقع کیدو مناظر:-** الله ﷻ فرمائی چه دقیامت په ورځ به آسمان ټکړې ټکړې شی. لکه چه فرمائی ﴿السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌۢ بِهٖ﴾ اوستوری به ټول راپریوځی. خوږ او تریخ سمندریه په خپل مینځ کښې ګډوډ شی اوبه به اوچې شی قبرونه به اوشلیږی. دهغې د شلیدونه پس به مړی راژوندی شی. بیا هرسړې خپل وړاندینی او روستونی ټولو اعمالونه خبرشی.بیا الله ﷻ خپلو بندیګانولهٔ دهمکی ورکوی چه تاسو ولې مغروره شوی ئی؟ دا نه چه الله ﷻ ددوی نه جواب غواړی یانی هغوی ته ښائی. بعضودا هم ونیلی دی بلکه هغوی جواب ورکړې چه الله ﷻ غافل ساتلې وو.دامعنی بیانول بالکل غلطه ده. صحیح مطلب هم دغه دې چه اې بنیادمو د خپل عظمت والا د رب نه تاسو ولې بې پرواهی کړې ده؟ کوم څیز دهغه په نافرمانئی باندې تاسوتیار کړې ئې؟ اوته د هغه په مقابله کښې ولې تیارشوې ئې؟ حدیث کښې دی چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ اوفرمائی ته زما دطرف نه کوم څیز مغرور ساتې وې او اې بنیادمه اوښایه تا زما نبیانوته څه جواب ورکړې وو؟ (1)

**دکریم رب نه ولې لرې ئې:** حضرت عمر ؓ یوسړی ددې آیت په تلاوت کولوسره واوریده نوونی فرمائیل اې چه انسانی جهالت هغه غافل ساتلې وو.د ابن عمر ؓ او ابن عباس ؓ وغیره نه هم دا نقل دی چه د ده دهوکه کونکې هم شیطان دې. حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمائی که مانه دا سوال وی نو زه به جواب ورکړم چه ستا زورندې کړې پردو. حضرت ابوبکر وراق رحمه الله فرمائی چه زه خویه وایم چه د کریم کرم بې فکره کړې ووم. بعضې هوښیاران فرمائی چه دلته د کریم لفظ راوړل لکه چه د جواب طرف ته اشاره خودل دی خودا قول څه فائده مندنه دې. بلکه صحیح مطلب دا دې چه د کرم والا الله ﷻ د کرم په مقابله کښې بدکارونه او بداعمال نه دی کول پکار. کلبی رحمه الله او مقاتل رحمه الله فرمائی چه د اسود بن شریق باره کښې دا نازل شوی. دې خبیث نبیکریم ﷺ وهلې وو او په هغه وخت په هغه باندې څه

(1) لا اصل له المرفوع ورواه عبدالله بن احمد فی السنة : ۲۹۸/۱، ح/۴۷۵، من حدیث عبدالله بن مسعود ؓ.

عذاب رانغلو نو هغه فخر اوکړو په دې باندې دا آيت نازل شو. بيافرمائي هغه الله ﷻ چاچه ته پيدا کړې بيائي صحيح کړې بيائي درله درميانه قداوقامت درکړو ښکلې شکل او ښانسته ئي جوړ کړې.

**بنده ته د الله ﷻ خطاب:**-د مسنداحمد حديث کښې دی چه حضور ﷺ په خپل تلي کښې توك کړل بيائي په دې باندې خپله گوته کيخوده وئې فرمائيل چه الله ﷻ فرمائي اې بنيادمه آيا ته ما عاجزکولې شې؟ حالانکه ما ته د داسې څيز نه پيدا کړې ئې بيا صحيح سلامت کړې بيا صحيح جوړه درکړه بيا تاته اغوستنه اوکړه او تګ راتګ مې درته اوخودلو. آخر ستا ځایْ په زمکه کښې دننه دې. تا ښه جمع واري اوکړه او زما په لارکښې د ورکولونه منع پاتې شوې تردې چه کله دې ساه حلق له راغله نو تاونيل چه زه صدقه کوم ښه ده نواوس د صدقه وخت چرته دې؟ ([1]) په کوم شکل کښې چه مې غوښتلې ترکيب مې درکړو يعنې د مور په شان پلار په شان د ماما تره په شکل باندې مې پيدا کړې. يوسړي ته حضور ﷺ اوفرمائيل ستا به څنګه بچې کيږي هغه اووئيل ياهلك يا جينئي. وئې فرمائيل د چا په شان به وی. وئې وئيل زما په شان يا د مور په شان، وئې فرمائيل چپ داسې مه وايه نطفه چه کله رحم کښې حصاره شي نود حضرت آدم ﷺ پورې نسب د هغې په وړاندې وی. بيا حضور ﷺ آيت ﴿ فِيٓ أَيِّ صُورَةٖ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ﴾ اولوستلواو وئې په کوم صورت کښې چه هغه غوښتل ته ئې جوړ کړې([2]) که دا حديث صحيح وو نود آيت معني ظاهرولو د پاره کافي وو خود دې اسناد ثابت نه دی. مظهر بن هيثم ﷺ چه د دې راوی دې دا متروك الحديث دې په ده باندې نوره جرح هم شته.

**قوله تعالى:-** مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ۞

**ديوسړي دخپل ځوئي باره کښې شک:**-د بخاری اومسلم په يوبل حديث کښې دی يوسړي حضرت محمد ﷺ له راغلوونی وئيل زما د ښځې چه کوم بچې پيداشوې دې هغه خو بالکل تك تور دې. حضور ﷺ اوفرمائيل تاسره اوښان هم شته؟ هغه وئيل او. وئې فرمائيل کوم رنګ کښې دی؟ وئيل: سره. وئې فرمائيل چه په هغې کښې چرته برګ هم شته؟ وئيل او. وئې فرمائيل د دې رنګ بچې د سور رنګ په نراو ماده کښې څنګه پيداشوې دې؟ وئيل کيدې چرته د پورته نسل طرف نه ئې رګ راښکلې شوې وی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه دغه شان ستا د بچی تور رنګ وجه هم داسې کيدې شي.([3]) حضرت عکرمه ﷺ فرمائي چه که غواړی نو د بيزو شکل به ترې جوړ کړی اوکه غواړی نود بدخنزير شکل به جوړ کړی.ابوصالح ﷺ فرمائي که غواړی نودسپی شکل به ترې جوړ کړی که غواړی نودخراوکه غواړی نو د بدخنزير.

حضرت قتاده ﷺ فرمائي چه دا ټول رښتيادی او الله ﷻ په ټولو څيزونوقادر دې خوهغه مالك مونږ ته بهترين ښکلې شکل او زړه خوشحالونکې او پاك شکلونه راکړی دی. بيافرمائي چه د هغه کريم رب په نافرمانو باندې تيارونکې څيز صرف دغه دې چه ستاسو په زړونوکښې دقيامت دورځې تکذيب دې تاسو د دې راتګ حق نه ګڼرئي په دې وجه د دې نه بې پرواهی کوئي. تاسو يقين ساتئي چه په تاسو باندې بزرګ محافظ او ليکونکې فرښتې مقرر دی تاسو له پکاردی چه دهغوی لحاظ اوساتئي هغوی ستاسو اعمال ليکی تاسو له بدی کولوباندې شرم کول پکار دی. رسول الله ﷺ فرمائي چه دا فرښتې تاسو نه د جنابت او اودس ماتی د وخت نه علاوه بل يو وخت کښې هم نه جدا کيږی. تاسو د دوی

---

[1] ابن ماجة كتاب الوصايا باب النهى عن الامساك في الحياة......:٢٧٠٧، وسنده صحيح ، احمد: ٢١٠/٤.
[2] المعجم الكبير: ٤٦٢٤.
[3] صحيح مسلم كتاب الطلاق باب اذا عرض بنفي الولد:٥٣٠٥، صحيح مسلم: ١٥٠٠.

احترام کوئي اود غسل په وخت کښې هم پرده کوئي د دیوال نه یا د اوښ نه اوکه دا هم نه وي نو خپل بو ملګري اودروئي چه هم هغه پرده شي. (۱) (ابن ابی حاتم)

د بزار ﷺ په دې حدیث کښې د الفاظو وراندیوالي روستووالي دي. پدې کښې داهم دی الله ﷻ تاسو د بربنډیدونه منع کوي. د الله ﷻ ددې فرښتونه اوشرمیږئ. دې کښې داهم دي چه د غسل په وخت کښې هم دا فرښتې لرې کیږي(۲) یوبل حدیث کښې دي چه کله دا کراماً کاتبین د بنده د هرې ورځ اعمال الله ﷻ ته پیش کوي نوکه په شروع اوآخر کښې استغفاروي نو الله ﷻ فرمائی د دې په مینځ کښې ټولې خطاګانې ما خپل بنده ته معاف کړې.(بزار) (۳)

د بزار ﷺ په یوبل ضعیف حدیث کښې دي چه د الله ﷻ بعضې فرښتې د انسانانو اعمال پیژني. کله چه یوبنده په نیکئي کولو کښې مشغول وینی نو په خپل مینځ کښې وائي چه نن شپه فلانکي سړي خلاصي بیاموندلو اوخلاص شو اوکه د هغې خلاف کوي نو په خپل مینځ کښې ذکر کوي چه نن شپه فلانکي سړي هلاک شو.(۴)

| إِنَّ الْأَبْرَارَ | لَفِي نَعِيمٍ ﴿١٣﴾ | وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي |
|---|---|---|
| بیشکه چې نیکان خلق به | خامخا په نعمتونو کښې وي | او بیشکه چې بدکار خلق به |
| بیشکه نیک خلق به دنعمتونو په جنت کښې وي | | او بیشکه بدکار خلق به په |

| جَحِيمٍ ﴿١٤﴾ | يَصْلَوْنَهَا | يَوْمَ الدِّينِ ﴿١٥﴾ | وَمَا هُمْ | عَنْهَا |
|---|---|---|---|---|
| خامخا په دوزخ کښې وي | ننوزي به هغې ته | په ورځ دجزا | او نهٔ به وي هغوئ | دهغې نه |
| جهنم کښې وي | کوم کښې چې به دوئ دقیامت په ورځ داخلیږي | | اودوئ به ددغې | |

| بِغَائِبِينَ ﴿١٦﴾ | وَمَا أَدْرَاكَ | مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٧﴾ | ثُمَّ مَا أَدْرَاكَ | مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٨﴾ |
|---|---|---|---|---|
| غائبه ونکی | او څه معلومه ده تاته | چې څه ده ورځ دجزا | بیا څه پته ده تاته | چې څه ده ورځ دجزا |
| جهنم نه پټیدې نشي | اوتاته څه معلومه ده چې دبدلې ورځ څه ده | | ابیا تاته څه معلومه ده چې دبدلې ورځ څه ده | |

| يَوْمَ | لَا تَمْلِكُ | نَفْسٌ | لِنَفْسٍ | شَيْئًا | وَالْأَمْرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه ورځ | چې اختیار (طاقت) به نهٔ لري | یو نفس | دپاره دبل نفس | دهیڅ څیز | او حکم (فیصله) به |
| هغه داسې ورځ ده | چې هیڅوک به دهیڅا په کار رانشي | | | اوپه دغه ورځ به | |

| يَوْمَئِذٍ | لِلَّهِ ﴿١٩﴾ |
|---|---|
| په دغه ورځ | خاص الله لره وي |
| حکم صرف د یو الله ﷻ چلیږي | |

خوک چه د الله ﷻ اطاعت ګزار او حکم منونکی دی د ګناهونونه لرې اوسیږي هغوی ته الله ﷻ د جنت زیرې ورکوي. په حدیث کښې دي چه هغوی ته "ابرار" ځکه وائي چه دوی د خپل مور پلار حکم

(۱) تفسیر قرطبی : ۲۴۸/۱۹،
(۲) ابن ابي حاتم.
(۳) مسند البزار : ۳۲۵۲،
(۴) مسند البزار: ۳۲۱۴، مجمع الزوائد: ۲۲۶/۱۰،

منونکی وو او خپل اولاد سره ئې نیك سلوك کولو. بدكاره خلق به د همیشه په عذاب كښې پراته وي. د قیامت په ورځ چه د حساب او بدلې ورځ ده د هغوی داخله به په دې كښې وي يوساعت به هم په هغوی باندې عذاب سپكولې نه شي. نه به ورله مرګ راځي اونه به راحت او آرام راځي اونه به لږ شان هم د هغې نه اخواكولې شي.

**قوله تعالى: يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْـًٔا**: بيا د قيامت لوئي او تباهي ښكاره كولو د پاره دوه دوه ځل فرماني چه تاسو څه څيز خبر كړئي چه هغه ورځ څنګه ده؟ بيا هم پخپله ښائي چه په هغه ورځ به هيڅ څوك هم چاته څه فائده نه شي رسولې. نه به ئې د عذابونو نه خلاص كړې شي اودا بله خبره ده چه چا ته د الله ﷻ د طرف نه د سفارش اجازت پخپله الله ﷻ وركړي. په دې موقع باندې داحديث وارد كول بالكل مناسب دى چه رسول الله ﷺ فرماني اې بنوهاشم خپل ځانونه د دوزخ نه د بچ كولود پاره د نيك عمل تيارې اوكړئي. زه تاسو په هغه ورځ د الله ﷻ د عذابونو نه د بچ كولو اختيار نه لرم. ([1]) داحديث د سورت شعراء د تفسير په آخره كښې تيرشوې دې. دلته ئې داهم اوفرمائيل چه په دغه ورځ به امر صرف هم د الله ﷻ وي. لكه چه بل ځاى فرمائي ﴿ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴾ يو بل مقام كښې ارشاد دې ﴿ اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذِنِ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ﴾ بيا فرمائي ﴿ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ﴾ مطلب د ټولو يودې چه په هغه ورځ به بادشاهي صرف دالله ﷻ چه واحد قهار اورحمن دې وي. نن هم د هغه ملكيت دې هم دغه يوازې مالك دې د هغه حكم چليږي خو هلته خو به ښكاره حكومت ملكيت او د امر والا هم نه وي.

﴿فالحمدلله﴾ د سورت انفطار تفسير ختم شو.

| ركوع ګانې | | سورة المطففين مكية وهي ست وثلاثون اٰية وركوعا واحدا | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ① | | شروع كوم په نوم د الله چه ډېر مهربان زيات رحم كونكې دې | | ٣٦ |

وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ اِذَا اكْتَالُوْا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُوْنَ ۝

تباهي ده | دپاره دكم ناپ تول كونكو | هغه كسان | كله چې خان ته اخلي | دخلقو نه | نو پوره اخلي |

دكم تول كونكو دپاره تباهي ده| هغه چا دپاره چې د خلقو نه پيمانې اخلي نو پوره ئې اخلي

وَاِذَا كَالُوْهُمْ اَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ ۝

او كله چې پيمانه وركوى خلقو ته | يا تول كوى هغوئ ته | نو كمې كوى هغوئ ته |

او چې خلقو ته پيمانه وركوى او يا ورته ئې تلي نو كم وركوى

اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ ۝ لِيَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝

ايا نه كوى ګمان | دا خلق | چې بيشكه دوئ | به دوباره ژوندى كړې شي | دپاره د ورځې لوئ |

ايادوئ دا باور نه كوى اچې دوئ به (دقيامت) په لوبه ورځ راژوندي كيږي؟ ..............

يَّوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝

په كومه ورځ | چې به ودريږى خلق | رب العالمين ته |

په كومه ورځ چې به ټول خلق رب ته پيش كيږي|

---

[1] صحيح مسلم كتاب الايمان باب في قوله تعالى (( وانذر عشيرتك الاقربين )) : ٢٠٤.

**قوله تعالى:- وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ۝**

**په ناپ تول کښې کمې کونکو دپاره هلاکت:-** نسائی او ابن ماجه کښې دی حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی کله نبی کریم ﷺ مدينې ته تشريف راوړونو هغه وخت کښې د مدينې خلق د ناپ تول په اعتبارسره ډير خراب وو. کله چه دا آيت نازل شو بیاهغوی ناپ تول ډير صحيح کړو. (۱) ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت بلال بن طلق ﷺ يو ځل حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته اوونيل چه د مکې اومدينې خلق ډيرښه ناپ تول ساتی. هغوی اوفرمائيل چه ولې به نی نه ساتی د الله ﷻ فرمان دې ﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ۝﴾ الخ. نود تطفيف نه مراد په ناپ تول کښې کمې دې که هغه په دې صورت کښې وی چه د خلقو نه نی اخستلو په وخت کښې زيات واخلی اود ورکولو په وخت کښې کم ورکړی. په دې وجه نی هغوی اوويرول چه دانقصان اوچتونکی او هلاکيدونکی دی چه کله درنه خپل حق اخلی نو پوره اخلی بلکه زيات اخلی اوچه نوروله ورکول وی نوکم ورکوی. صحيح دادی چه ﴿كَالُوْ﴾ او ﴿وَّزَنُوْهُمْ﴾ متعدی اومنی او﴿هم﴾ ته (محلاً) منصوب اووائی سره ددې چه بعضواضمير مؤکد منلې دې. چه دکالو اووزنو د پټ ضمير تاکيد دپاره دې اومفعول محذوف نی منلې دې په کوم چه د کلام دلالت موجود دې. دواړو شانوته مطلب نيزدې نيزدې يوشان دې. قرآن کريم ناپ تول صحيح ساتلوحکم په دې آيت کښې هم ورکړې دې ﴿اَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ ۝ وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ۝﴾ يعنی چه کله ناپ کوئی نو پوره ناپ کوئی او وزن هم په نيغه تله باندې تلنی ورکوئی. بل ځائ حکم دې ﴿وَاَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ بِالْقِسْطِ ۚ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۚ وَاِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوْا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۚ وَبِعَهْدِ اللّٰهِ اَوْفُوْا ۚ ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝﴾ يعنی ناپ تول په انصاف سره برابر ورکوئی مونږ چاته دهغه د طاقت نه زيات تکليف نه ورکوو.

بل ځائ ارشاد دې ﴿وَاَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ۝﴾ يعنی تول قايم اوساتنی اوتله مه کمونی. د حضرت شعيب ﷺ قوم الله ﷻ د دې بد عادت په وجه غرق او تباه کړل. دلته هم الله ﷻ يرول کوی چه دخلقو حق وهونکی دقيامت د ورځې نه ويريږی په کومه ورځ چه به د هغه پاك ذات په وړاندې اودرولې شی چانه چه نه پټه خبره پټه ده اونه ښکاره خبره. هغه ورځ هم ډيره ويرونکې اوخطرناکه ده ډيرد ويريدواو پريشانو ورځ ده. په هغه ورځ به دا نقصان رسونکی خلق د دوزخ اورته داخلولې شی. په کومه ورځ چه خلق دالله ﷻ په وړاندې اودرولې شی په دې حال کښې به بربنډې پښې اوبربنډبدنونه وی او ناسونته به وی. هغه ځائ به هم ډير تنګ او تياره وی او ميدان به د مصيبتونواو بلاګانو نه ډك وی اومصيبتونه به نازليږی.زړونه به پريشانه وی بې حاله به وی.صحيح حديث کښې دی د نيمونيمو غوږونو پورې به ئی خوله رسيدلې وی. (موطاامام مالك رح) (۲)

**قوله تعالى:- لِيَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝ يَّوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝**

**دقيامت د ورځې سخت والې او اوږدوالې:-** د مسند احمد حديث کښې دی په هغه ورځ به : رحمن عزوجل د عظمت په وړاندې تول رچيدونکی ولاړ وی.(۳) بل حديث کښې دی چه د قيامت په ورځ به نمر خلقو ته دومره نيزدې وی چه د يوې يادوو نيزوبرابر به اوچت وی او سخت تيز به وی هرسړې به د خپلو خپلو اعمالومطابق په خولوکښې ډوب وی. د بعضو به د ګيټو پورې خوله وی د بعضو د زنګونوپورې د بعضود ملا پورې او بعضوله خوبه د هغوی خولې واګې جوړې شوی وی. (۴)بل حديث کښې دی چه

(۱) ابن ماجة كتاب التجاوزات باب التول ل الكيل والوزن: ۲۲۲۳. وسنده حسن ، المعجم الكبير: ۲۰٤۱؛ حاكم ۳۳/۲
(۲) صحيح بخاری كتاب التفسر سورة ويل للمطففين : ٤۹۳۸، صحيح مسلم.۲۸٦۲، ترمذی : ۲٤۲۲.
(۳) احمد: ۳۱/۲، وحديث البخاری :٤۹۳۸.
(۴) صحيح مسلم كتاب الجنة باب ل يوم القيامة: ۲۸٦٤، ترمذی : ۲٤۲۱، احمد: ۳/٦.

نمر به دومره تیزوی چه کوپړنی به خوټکیږی او په دې کښې به داسې جوش راوچتیږی لکه څنګه چه کټوئی خوټکیږی. (۱) بل روایت کښې دی حضور ﷺ په خپله خُله مبارکه باندې ګوتې مبارکې کیخودې او وئی فرمائیل چه دغه شان به د خُولې واګې اچولې شوی وی. بیا حضور ﷺ په خپل لاس مبارک سره اشاره کولوسره اوخودل چه بعضې به بالکل ډوب وی. (۲) بل حدیث کښې دی چه د اویاؤ کالوپورې به بغیرد خبرو کولونه ولاړ وی. دا هم وئیلې شوی دی چه دریوسوو کالوپورې به ولاړ وی او دا هم وئیلې شوی دی چه څلویښت زرو کالوپورې به ولاړ وی او په لس زره کاله کښې به فیصله کولې شی.

صحیح مسلم کښې د حضرت ابوهریره ؓ نه مرفوعا روایت دې په هغه ورځ د کومې مقدارچه پنځوس زره کاله به وی(۳) د ابن ابی حاتم په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ بشیرغفاری ؓ ته اوفرمائیل ته به څه کوې په کومه ورځ چه به خلق د الله رب العلمین په مخکې درې سوه کاله ولاړوی نه به د آسمانه څه خبر راځی او نه به څه حکم کولې شی. حضرت بشیر ؓ اوفرمائیل چه هم الله ﷻ امدادی دې. حضور ﷺ اوفرمائیل واوره کله چه بسترې له لاړشې نو د الله ﷻ نه د قیامت د ورځې د تکلیفونو نه اود حساب د بدنی نه پناه اوغواړه(۴) سنن ابوداؤد کښې دی رسول الله ﷺ د قیامت په ورځ د اودریدو د تنګ ځای نه پناه غوښتله(۵) د حضرت ابن مسعود ؓ نه روایت دې چه ترڅلویښتو کالوپورې به خلقو سر اوچت کړې ولاړوی. هیڅ څوك به خبرې نه کوی نیك او بد به ټولوته د خولو واګې لګیدلې وی(۶) ابن عمر ؓ فرمائی تر سلوکالوپورې به ولاړوی. (ابن جریر) ابوداؤد نسائی ابن ماجه کښې دی چه حضور ﷺ به کله د شپې پاسیدو او د تهجدمونځ به ئې شروع کولو نولس خل به ئې الله اکبر وئیل لس خل به ئې الحمدلله وئیل او لس خل به ئې سبحان الله وئیل لس به ئې استغفرالله وئیل بیا به ئې وئیل (اللهم اغفرلي واهدني وارزقني وعافني) اې الله ما اوبښې ماته هدایت راکړې ماته رزق راکړې اوماته عافیت نصیب کړې. بیا به ئې د الله ﷻ نه د قیامت دورځې د ځای دتنګنې نه پناه غوښتله. (۷)

| | |
|---|---|
| كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ | |
| \| هرګز نه \| بیشکه عملنامه دبدکارو خلقو \| | |
| \| داسې دې نه کوی \| بیشکه دبدکارو کسانو | |
| لَفِيْ سِجِّيْنٍ ؕ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سِجِّيْنٌ ؕ | |
| خامخا په (رجسټرد) قید خانې کښې ده \| او څه معلومات دی تاته \| چې څه دې دقید خانې رجسټر \| | |
| عملنامې په سجین کښې دی \| او تاته څه معلوم دی چې سجین څه څیز دی | |
| كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ؕ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ | |
| یو کتاب دی \| لیکلې شوې \| تباهي ده \| په دغه ورځ \| دپاره ددروغ ګڼرونکو \| هغه \| | |
| دا یو لیکلې شوې کتاب دی\| په دغه ورځ د دروغ ګڼرونکو دپاره تباهی ده\| چې څوک | |

(۱) احمد: ۲۵٤/۵، وسنده حسن.
(۲) احمد: ۱۵۷/٤، حاکم: ۵۷۱/٤، ابن حبان: ۷۳۲۹.
(۳) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب اثم مانع الزکاة: ۹۸۷.
(۴) الطبری: ۲۸۰/۲٤، و ابن ابی حاتم.
(۵) ابو داود کتاب الصلاة باب ما یستفتح به الصلاة من الدعاء: ۷۶۶، نسائی: ۶۱۸، ابن ماجة: ۱۳۵۶، وسنده حسن
(۶) الطبری: ۲۸۱/۲٤.
(۷) ابوداود کتاب الصلاة باب ما یستفتح به الصلاة من الدعاء: ۷۲۲، نسائی: ۱۶۱۸، ابن ماجة: ۱۳۵۶، وسند حسن.

| يُكَذِّبُوْنَ | بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿١١﴾ | وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖٓ | اِلَّا | كُلُّ مُعْتَدٍ | اَثِيْمٍ ﴿١٢﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي دروغ گنړي هغوئ | ورځ دجزا | او دروغ نه گنړي دا | مگر | هر دحدنه اوړيدونکي | گنهگار |
| دقيامت ورځ دروغ گنړي \| اوددې ورځې نه انکار يواځې هغه کس کوي اچې سرکشه گناهگار وي | | | | | |

| اِذَا تُتْلٰى | عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا | قَالَ | اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٣﴾ | كَلَّا |
|---|---|---|---|---|
| کله چي اوروليي کيږي | هغه ته ايتونه زمونږ | نو واني | چې قيصې دي دپخوانو خلقو | هرگز نه |
| هرکله چې زمونږ ايتونه ورته اولوستلې شي انو واني چې دا خو دمخکنو خلقو واقعات دي داسې نه ده | | | | |

| بَلْ ۜ | رَانَ | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | مَّا | كَانُوْا | يَكْسِبُوْنَ ﴿١٤﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| بلکه | زنگ لگولي دي | په زړونو دهغوئ باند | هغه گناهونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې |
| بلکه ددوئ (بدو) عملونو ددوئ په زړونو باندې زنگ لگولي دې ........................ | | | | | |

| كَلَّآ | اِنَّهُمْ | عَنْ رَّبِّهِمْ | يَوْمَئِذٍ | لَّمَحْجُوْبُوْنَ ﴿١٥﴾ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| هرگز نه | بيشکه دوئ به | ددیدار درب خپل نه | په دغه ورځ | په پرده کښې ساتلې شي | بيا به |
| هرگزنه \| دوئ به دخپل رب د ليدو نه په دغه ورځ بند (محروم) کړې شي \| ...................... بيا يقينا | | | | | |

| اِنَّهُمْ | لَصَالُوا الْجَحِيْمِ ﴿١٦﴾ | ثُمَّ يُقَالُ | هٰذَا الَّذِيْ |
|---|---|---|---|
| بيشکه دوئ | خامخا ننوتونکي وي دوئ دوزخ ته | بيا به اووئيلي شي | دا هغه څيز دي |
| دوئ به جهنم ته داخليږي \| بيابه ورته اووئيلې شي چې دا هغه جهنم دې \| چې ........ | | | |

| كُنْتُمْ | بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿١٧﴾ |
|---|---|
| چې وئ تاسو | چې هغه به مو دروغ گنړو |
| تاسو به دروغ گنړلو | |

**قوله تعالی:- كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْنٍ ﴿٧﴾**

**سجين اود گناهگارانو عمل نامه:** مطلب داچه دبدانوخلقو مقام سجين دي. دا لفظ د **(فعيل)** په وزن باندې **(سجن)** نه ماخوذ دې. سجن واني لغتًا تنگئى ته **(ضيق شريب خمير سكير)** وغيره په شان دا لفظ هم سجين دې بيا د دوی نورې بدئي بيانولوسره فرمانی تاسوته د دې حقيقت معلوم نه دې هغه ډير د خفگان اودهميشه درد اوتکليف والا ځاې دې. روايت دې چه داځاې د اووه زمکولاندې دې. دحضرت براء بن عازب رضی الله عنه په يومطول حديث کښې داتيرشوى دی چه د کافرد روح باره کښې الله تبارك وتعالى فرمانی چه دده کتاب سجين کښې اوليکئي(۱) اوسجين د اوومې زمکې لاندې دې. ونيلې شي چه دا د اوومې زمکې لاندې يو شين کانړې دې او دا هم وئيلې شوې دی چه دا په دوزخ کښې يوه کنده ده. د ابن جرير په غريب منکر اوغيرصحيح حديث کښې دی چه فلق د دوزخ يوبند خلې والا کوهې دې او سجين د کولاوخلې والا کنده ده(۲) صحيح خبره دا ده چه ددې معنى ده تنگ ځاې دجيل خانه په لاندې مخلوق کښې تنگى ده او پورته مخلوق کښې ارتوالې دې. په آسمانونوکښې هرپورته آسمان د لاندې آسمان نه کولاودې اوپه زمکوکښې د هرې يوزمکې لاندې زمکه تنگه ده. تردې چه دټولونه لاندې

(۱) ددې تخريج سورة الاعراف آيت : ۴۰ لاندې تير شوې دې
(۲) الطبرى : ۲۸٤/۲٤، وسنده حسن .

زمکه بالکل تنګه ده.اود ټولو نه زيات تنګ ځای د اوومې زمکې مينځ دې. د کافرانود پاره د واپس کيدلوځای دوزخ دې اوهغه د ولولاندې دې.بل ځای دی﴿ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَۙ۝ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ يعنی بيامونږ هغوی د لاندې نه لاندې کړل مګر چه کوم د ايمان والادی اود نيک اعمال والا دی.غرض داچه سجين اوتنګ او قطـ والا ځای دې لکه چه قرآن کريم کښې يوبل ارشاددې﴿وَاِذَآ اُلْقُوْا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيْنَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُوْرًاؕ۝﴾ کله چه هغوی ددوزخ په تنګ ځای کښې پنبې لاسونه تړلې ورواچولې شی نوهلته به هم د مرګ چغې وهی.

﴿كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌؕ۝﴾داد سجين تفسيرنه دې بلکه دا تفسيردې دهغوی چه د هغوی د پاره ليکلې شوې دې چه آخر به دوزخ ته رسی.دهغوی نتيجه دا ليکلې شوې ده اود دې نه فراغت حاصل کړې شوې دې. نه به په دې کښې اوس څه زياتې کولې شی نه کمی. نواوفرمائيلې شو چه د هغوی انجام زمونږ په کتاب کښې داول نه هم سجين ليکلې شوې دې.ددې تکذيب کونکو به په دغه ورځ خرابی وی. دوی له به د دوزخ قيدخانه اودرسوائې والا دردناک عذاب وی.د ﴿وَيْلٌ﴾ پوره تفسيردې نه اول تيرشوې دې. د مطلب خلاصه دا ده چه د دې به ډيره زياته بربادی او هلاکت اوخرابی وی لکه چه ونيلې شی ﴿ويل لفلان﴾. (١)

**قوله تعالی:-** ﴿الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِؕ۝﴾

بيانی د دې دروغ ګڼړونکويدکاره کافرانونوره تشريح اوکړه او وئی فرمائيل دا هغه خلق دی چه د بدلې ورځ نه منی دې ته خلاف عقل وئيلوسره واقع کيدل محال ګڼړی. بيافرمائی چه قيامت دروغ ګڼړل د دې خلقو کاردې کوم چه په خپلوکارونوکښې د حد نه تيرشی حرام کارونه اوکړی او يا په حلالوکارونوکښې دحد نه وړاندې شی. دغه شان په خپلو اقوالوکښې ګناهګاران وی دروغ وائی وعده خلافی کوی اوکنځلې کوی وغيره.

داهغه خلق دی چه زمونږ آياتونه اوری اوهغه دروغ ګڼړی. بدګمانی کوی او وائی چه د پخوانو کتابونونه ئی راجمع کړی دی لکه بل ځای ارشاددې﴿ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ مَّاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ۙ قَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَۙ۝﴾کله چه هغوی ته اووئيلې شی چه ستاسو رب څه نازل کړی نو وائی چه د پخوانوقصې. بل ځای دی ﴿وَقَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا۝﴾ يعنی دوی وائی چه د وړاندينو قصې دی. چه دوی ته سحر او ماښام ليکلې شی. الله ﷻ هغوی ته په جواب کښې فرمائی چه په حقيقت کښې خبره د هغوی دقول او د هغوی د خيال مطابق نه ده بلکه په حقيقت کښې دا قرآن کريم کلام الله دې د هغه وحی ده چه هغه په خپل بنده باندې نازل کړې ده.

**قوله تعالي:-** ﴿كَلَّا بَلْ ۜ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ۝﴾

**په زړه باندې د ګنا ه اثر**:-اودهغوی په زړونوباندې دهغوی بدعمل پردې اچولې دی دګناهونواوخطا ګانو د کثرت په وجه د هغوی زړونه زنګ شوې دی. د کافرانو په زړونوباندې شپه وی او د نيکانو خلقو په زړونو باندې رڼا وی. ترمذی نسائی ابن ماجه وغيره کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه کله بنده يوه ګناه کوی نودهغه په زړه باندې يوتورداغ جوړيږی که توبه کوی نوهغه صفاکيږی اوکه ګناه کوی نونور تور والې پرې هم خوريږی. هم د دې بيان په ﴿كَلَّا بَلْ ۜ رَانَ﴾کښې دې.(٢)دنسائی په الفاظو کښې څه اختلاف هم دې. په مسنداحمدکښې هم داحديث دې(٣)دحضرت حسن بصری ؒ وغيره فرمان دې په ګناهونو باندې ګناه کولوسره زړه ړنديږی او بيا مړکيږی. بيافرمائی چه دا خلق په دې

---

(١) ابوداود کتاب الادب باب التشديد في الكذب: ٤٩٩٠. وسنده حسن. ترمذی : ٢٣١٥، احمد: ٦٠٥/٥.

(٢) ترمذی کتاب التفسير باب ومن سورة ويل للمطففين :٣٣٣٤، وهو حسن ، ابن ماجة : ٤٢٤٤.

(٣) احمد: ٢٩٧/٢، وابن ماجة :٤٢٤٤ وهو حديث حسن .

عذابونو کښې راګیر یدو سره د الله ﷻ د دیدارنه هم محروم او محجوب کړې شي.

**قوله تعالى:- كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾**

**فائده:** حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي د دې آيت په دليل کښې دی چه مؤمن به د قيامت په ورځ د الله ﷻ ديدارسره مشرف کولې شي. د امام صاحب دافرمان بالکل صحيح دې اود آيت صفامفهوم هم دا دې. بل ځائې کښې په کولاوالفاظوسره هم دا بيان موجوددې. ارشاد دې ﴿يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ۝ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ يعنې په هغه ورځ به ډير مخونه تروتازه وي اوخپل رب ته به ګوري. دصحيح او متواتر احاديثونه هم دا ثابت دی چه ايماندار به د قيامت په ورځ خپل رب عزوجل په خپلوسترګو سره د قيامت په ميدان کښې اود جنت په ښکلي باغونوکښې ګوري. حضرت حسن رحمه الله فرمائي چه پردې به لرې شي مؤمنانو او کافران به خپل رب اووينې. بيابه کافران د پردو شاته کړې خو مؤمن به هرسحر اومابنام پروردګار عالم ديدار حاصلوی. يا هم د دې په شان بل کلام دې.بيافرمائي چه نه به صرف د الله ﷻ نه محروم وي بلکه داخلق به دوزخ کښې ورداخل کړې شي اودوی ته به دسپکاوی ذلت او رټينې په توګه په غصه سره ونيلې شي چه هم دغه دې کوم چه تاسو دروغ ګڼړلو.

| | | |
|---|---|---|
| كَلَّآ | إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْأَبْرَارِ | |
| \| هرګز نه \| او بيشکه علمنامه دنيکانو خلقو \| | | |
| بلکه دنيکانو عملونه په .................. ...... | | |
| لَفِى عِلِّيِّينَ ﴿١٨﴾ | وَمَآ أَدْرَىٰكَ | مَا عِلِّيُّونَ ﴿١٩﴾ |
| خامخا داوچتو خلقو په رجسټر کښې ده \| او څه پته ده تاته \| چې څه دي داوچتو خلقو رجسټر \| | | |
| علين کښې ليک وي\| ........................او تاته څه معلوم دی چې علين څه ځائي دې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كِتَٰبٌ | مَّرْقُومٌ ﴿٢٠﴾ | يَشْهَدُهُ | ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴿٢١﴾ | إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ |
| يو کتاب دې \| ليکلې شوې \| چې حاضريږی هغې ته \| مقربې فرشتې \| بيشکه نيکان خلق به \| | | | | |
| دايو ليکلې شوې کتاب دې \| چې مقربې فرښتې ورته حاضرې وی \|.......... بيشکه نيکان به | | | | |
| لَفِى نَعِيمٍ ﴿٢٢﴾ | عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ | يَنظُرُونَ ﴿٢٣﴾ | تَعْرِفُ | |
| خامخا په نعمتونو کښې وی \| ناست په تختونو باند \| کتل به کوی \| تاته به ښکاری \| | | | | |
| دنعمت (په باغونو) کښې وی\| په تختونو ناست کتل به کوی \| ...............دهغوئ په مخونو به | | | | |
| فِى وُجُوهِهِمْ | نَضْرَةَ ٱلنَّعِيمِ ﴿٢٤﴾ | يُسْقَوْنَ | مِن رَّحِيقٍ | مَّخْتُومٍ ﴿٢٥﴾ |
| په مخونو دهغوئ کښې \| تازه والې دنعمتونو \| څکولې کيږی به په هغوئ \| شراب صفا \| سربند \| | | | | |
| د نعمتونو تازګی ښکاری \| په هغوئ به مهرلګولې شوی خاص (پاک) شراب څکولې شی | | | | |
| خِتَٰمُهُۥ | مِسْكٌ | وَفِى ذَٰلِكَ | فَلْيَتَنَافَسِ | |
| مهر دهغې به \| مشک وی \| او په دې کښې \| پکار دی چې دبرې موندلو کوشش اوکړی \| | | | | |
| چې مهرونه به ئې د مشکو وی \|اود دغه خيز په حاصلولو کښې دې رغبت کونکی | | | | |

| يَشْرَبُ | عَيْنًا | مِنْ تَسْنِيمٍ ۙ | وَمِزَاجُهٗ | الْمُتَنَافِسُونَ ۙ |
|---|---|---|---|---|
| چي څكي به | دا يوه چينه ده | دتسنيم نه | او شامل به وي دهغې سره | بري غوښتونكي خلق |
| دايوه چينه ده چې مقرب خلق | | اوپه هغې كښې به د تسنيم(اوبه) ګډولې شي | | رغبت اوكړي |

| الْمُقَرَّبُونَ ۙ | بِهَا |
|---|---|
| الله ته نزدې خلق | دهغې نه |
| به ترې نه څكل كوي | |

قوله تعالىٰ:- كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ ۙ

**د نيكانوعمل نامه** :-د بدكارانود حشربيانولونه پس اوس د نيكانوخلقو بيان كولې شي چه د هغوى ځاى عليين دې كوم چه دسجين بالكل برعكس دې.حضرت ابن عباس رضي الله عنه د كعب رضي الله عنه نه دسجين سوال اوكړو نوهغه اوفرمائيل چه هغه اوومه زمكه ده په دې كښې دكافرانوروحونه دى.اود عليين د سوال په جواب كښې اوفرمائيل چه دا اووم آسمان دې اوپه هغې كښې د مؤمنانوروحونه دى.([1])حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه دې نه مراد جنت دې([2])عوفي رحمه الله دهغوى نه روايت كوى چه دهغوى اعمال دالله ﷻ په نيزد په آسمان كښې دى. قتاده رحمه الله فرمائي چه دادعرش ښئى پايه ده اوخلق وائي دا په سدرة المنتهى كښې ده([3])ښكاره خبره ده چه لفظ علويعني اوچتوالى نه ماخوذ دې. څومره چه يوځيز اوچت او بره وى هم هغه هومره به لوئ اوكولاووى.د دې د پاره د دې د عظمت او بزرګئ د څرګندونې د پاره اوفرمائيل تاسوته دهغې حقيقت نه دې معلوم.بيائې ددې تاكيداوكړوچه دا يقيني ځيز دې په كتاب كښې ليكلې شوې دې چه دا خلق به عليين ته ځي د كوم خواته چه د هرآسمان مقرب فرښتې ځي. بيا فرمائي چه د قيامت په ورځ به دا نيكان دهميشه نعمتونواو باغونوكښې وى اود الله ﷻ عام فضل اوكرم به په هغوى لګه د باران راوريږي. دوى به په پالنګونوباندې ناست وى خپل ملك اومال ته نعمتونو راحتونو عزتونو شان شوكت اومال اومتاع ته به ګورى خوشحاليږى به. داخير اوفضل دانعمت اورحمت به نه كله كميږى نه به ختميږى اونه به وركيږى. اودا هم معنى ده چه په خپل د آرام ځايونوكښې د سلطنت په تخت به ناست اود الله ﷻ ديداربه كوى. نولګه د فاجرانو به بالكل برعكس وى. په هغوى باندې به د الله ﷻ ديدار حرام وى او دوى ته به هروخت اجازت وى. لګه څنګه چه د ابن عمر رضي الله عنه په حديث كښې دى كوم چه اول بيان شوې دې چه د ټولونه د ښكته درجې جنتي خپل ملك اوملكيت د دوو زروكالو د فاصلې نه وينى.اودا د ټولونه دآخرى ځيزونه به داسې د هغه د نظر په وړاندې وى لګه څنګه چه د ټولونه اول ځيزونه.اود اعلى درجه جنتي خو به په يوه ورځ كښې دوه دوه ځل د الله ﷻ ددیدار په نعمت باندې خپل زړه خوشحالوى اوخپلې سترګې به د نور نه ډكوى([4])كه څوك دهغه په مخ باندې نظر واچوى نو په يونظر به خوشحاله اسوده خوند او نور اووينى د هغوى مرتبه اوګورئى او خيال اوكړئى چه په راحت او آرام كښې خوشحال دې. د جنتي شرابوجامونه به روان وى.

قوله تعالىٰ:- يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ ۙ

**رحيق اومختوم**:-رحيق دجنت يوقسم شراب دې.رسول الله ﷺ فرمائي څوك چه يوتږى مسلمان باندې اوبه اوڅكوى په هغه به الله ﷻ "رحيق اومختوم" اوڅكوى يعنى د جنت د مهر والا شراب اوچه څوك په يو اوږى

[1]) الطبرى : ۲۹۱/۲۴.
[2]) الطبرى : ۲۹۱/۲۴.
[3]) الطبرى : ۲۹۲/۲۴.
[4]) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة القيامة : ۳۳۳۰.

مسلمان باندې خوراك اوكړي الله ﷻ به په هغه دجنت ميوې اوخوروي اوچه څوك يوبربنډ مسلمان ته كپړې واغوندوي الله ﷻ به هغه ته د جنت د شنوريښمو جوړې واغوندوي. (مسنداحمد)[1]

قوله تعالى:- خِتٰمُهٗ مِسْكٌ

د (ختام) معنى گډوډ يايوځاى شوى.دا الله ﷻ پاك صفاكړي دى اودمشكومهرېرې لگولې دې.داهم معنى ده چه ددې انجام مشك دې. يعنى هيڅ بدبوئى نشته بلكه د مشكوپه شان خوشبوده.دچاندې په شان سپين رنگ والا شراب په كومو چه به مهرلگى يابه نې يوځاى كوى. دومره د خوشبووالا دى چه كه ددنياد خلقودې سره گوته اولگى اوهغه نې هم په هغه وخت راوباسى نوټوله دنيابه په هغې سره خوشبوېه شى.اود (ختام) معنى خوشبوئي هم كړې شويده. بيافرمائى چه حرص كونكى فخرلونى كونكى كثرت او سبقت كونكوله پكار دى چه د هغه طرف ته ټوله توجه اوكړى. لكه بل ځائ ارشاد دې (لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ) د داسې څيزونودپاره عمل كونكو له پكاردى چه عمل اوكړى.تسنيم د جنت د بهترينو شرابونوم دې دايونهر دې كوم نه چه سابقين خلق خو برابر څكى اود ښى لاس والا به خپل شراب په رحيق كښې ملاووى څكى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | | اَجْرَمُوْا | | كَانُوْا |
| بيشكه هغه خلق | | چې جرمونه نې كړى دى | | ووبه هغوئ |
| بيشكه څوك چې مجرمان دى ........................ | | | | |
| مِنَ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | يَضْحَكُوْنَ | وَاِذَا مَرُّوْا | بِهِمْ |
| په دغه كسانو پورې | چې ايمان نې راوړې وو | چې خندل به نې | او كله چې به تيردل | په هغوئ باند |
| دغوئ به (په دنيا كښې) په مؤمنانو پورې خندگانې كولې | | | او چې مسلمانان به نې خوا كښې تيريدل | |
| يَتَغَامَزُوْنَ | وَاِذَا انْقَلَبُوْٓا | اِلٰٓى اَهْلِهِمُ | انْقَلَبُوْا | فَكِهِيْنَ |
| نو سترگې به نې وهلې يو بل ته | او كله چې به واپس تلل | دكورخلقو ته | نو تلل به | خوشحاله |
| نويوبل ته به نې سترگې وهلې | او چې خپلو كورونو ته به واپس تلل | | نوهلته به نې هم (مسلمانانو) پورې توقې كولې | |
| وَاِذَا رَاَوْهُمْ | قَالُوْٓا | اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ | لَضَآلُّوْنَ | |
| او كله چې به نې ليدل هغوئ | نو وئيل به نې | بيشكه دا خلق | خامخا بې لارى دى | |
| اوچې مسلمانان به نې اوليدل نو دابه نې اووئيل | | چې داخلق گمراهان دى | | |
| وَمَآ اَرْسِلُوْا | عَلَيْهِمْ | حٰفِظِيْنَ | فَالْيَوْمَ | |
| او حال دا چې نه دى ليږلې شوي دا كافران | په مومنانو باند | نگرانى كونكى | نو نن ورځ | |
| حال دا چې دوئ په مسلمانانو باندې نگران مقرر شوى نه دى | | | نو نن (دقيامت) ........................ | |
| اَلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مِنَ الْكُفَّارِ | يَضْحَكُوْنَ | عَلَى الْاَرَآئِكِ |
| هغه كسان | چې ايمان نې راوړې دې | په كافرانو پورې | خندا كوى | ناست په تختونو باند |
| په ورځ به مسلمانان په كافرانو پورې خندا كانې كوى | | | ........................ په تختونو به ناست وى | |

[1] احمد: ۱۳/۲، ۱٤، ترمذى كتاب صفة القيامة باب فى ثواب الاطعام والسقى والكسو......: ۲٤٤۹،

| يَنظُرُونَ ۝ | هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ | مَا | كَانُوا | يَفْعَلُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| ګوري هغوئ ته | آيا ملاؤ شوه بدله كافرانو ته | دهغې | چې وو هغوئ | چې كول به ئې |

نظاره به ئې كوي | چې آيا كافرانو ته دخپل عمل پوره پوره كړو بدله اورسيده كه نه ؟

**قوله تعالى:-** إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ ۝

**په ايماندارو پورې دخنداګونكو انجام:-** يعنې په دنيا كښې خود دې كافرانو بنه تعلق وو په ايماندارانو پورې به ئې توقې كولې په تګ راتګ كښې به ئې وربسې آوازونه كول او سپكاوې او بې عزتي به ئې كوله.او خپلو خلقوسره به تلل او بنه خبرې به ئې جوړولې.چه څه به ئې غوښتل هغه به ئې موندل. خو شكرخو څه چه نور كفر به ئې كولو اومسلمانانو ته به ئې تكليفونه وركول.مسلمانانو به د هغوى نه منل نودوى به هغوى ګمراه كولو كوشش كولو. الله ﷻ فرمائي چه دا خلق خو مونږ د هغوى حفاظت كونكي نه وولېږلي د هغوى په مؤمنانو باندې څه. ولې هروخت هغوى پسې لګيدلي دي اود هغوى د اعمالواوافعالوخيال ساتي او پيغورنې خبرې جوړوي. لكه چه فرمائي ﴿قَالَ اخْسَئُوا فِيهَا﴾ الخ يعنې په دې دوزخ كښې پراته سوزيږئ ماسره خبره مه كوئ. زما خاص بنديګانو به ونيل چه اې زمونږه پروردګار مونږ ايمان راوړو نو مونږ اوبښه په مونږ باندې رحم اوكړه ته د ټولونه ډير رحم اوكرم كونكې ئې. نو تاسو هغوى پورې توقې اوكړې اوداسې غافل شوئ چه زما ياد موهيركړو اودوى پورې موټوقې مسخرې كولې. اوګورئ نن ما د هغوى د صبر بدله وركړه اوهغوى په هرشان كامياب دي. دلته هم د دې نه پس ارشاد دې چه نن د قيامت په ورځ ايماندار په بدكاروپورې خاندي او په تختونوباندې ناست خپل الله ﷻ ته ګوري چه د دې خبرې صفاثبوت دې چه دا ګمراه نه وو تاسو به دوى ته ګمراه ونيلې بلكه دوى په اصل كښې اولياء الله وو اود رب مقربين وو. په دې وجه نن د الله ﷻ ديدار د هغوى دسترګو په وړاندې دې. دوى د الله ﷻ ميلمانه دي اود هغه دعزت وِلا په كوركښې اوسيږي. لكه كوم څه چه دې كافرانو په دنياكښې مسلمانانو سره كړې وو د هغې پوره بدله هغوى ته په آخرت كښې ملاوشوه كه نه؟ د هغوى د مسخرو په بدله كښې نن په هغوى پورې خنداګانې كولې شي دوى به ئې ختمول الله ﷻ هغوى زيات كړل. غرض دا چه پوره پوره بدله وركړې شوه.

﴿الحمدلله﴾ د سورت مطففين تفسيرختم شو.

## ﴿سورت انشقاق مكيه﴾

**د سورت تعارف:-** موطاامام مالك رحمه الله كښې دي ابوهريره رضي الله عنه خلقو ته مونخ وركړواوپه هغې كښې ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ ۝﴾سورت اولوستلو او سجده ئې اوكړه فارغ شو نووئې فرمائيل رسول الله ﷺ هم د دې د لوستلو نه پس سجده كړې وه([1]) دا حديث په مسلم او نسائي كښې هم دې.بخاري شريف كښې دي چه حضرت ابورافع رحمه الله فرمائي چه ماحضرت ابوهريره رضي الله عنه پسې د ماسخوتن مونځ اوكړو. هغوى په دې كښې ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ ۝﴾ تلاوت اوكړواو سجده ئې اوكړه.ما تپوس اوكړو نو جواب ئې راكړوچه ما ابوالقاسم ﷺ پسې سجده كړې ده(يعنې حضورﷺ دا سورت په مانځه كښې اولوستلو اودسجدې په آيت ئې سجده اوكړه اومقتديانوهم سجده اوكړه) نو چه زه كله هم تاسوسره ملاويږم (په دې موقعه به)سجده كوم([2])(يعنې ترمرګه پورې)د دې حديث نورسندونه هم دي.صحيح مسلم اوسنن نسائي كښې روايت دې چه ابوهريره رضي الله عنه فرمائي مونږ رسول الله ﷺ سره سورت﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ ۝﴾ كښې او په سورت

---

[1]) صحيح مسلم كتاب المساجد باب سجود التلاوة : ٥٧٨، نسائي: ٩٦٣، موطا امام مالك : ٢٠٥/١.

[2]) صحيح بخارى كتاب الاذان باب الجهر في العشاء : ٧٦٦، صحيح مسلم : ٥٧٨، ابوداود : ١٤٠٨.

(اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ) کښې سجده کړي. ([1])

| اياتونه | | سورة الانشقاق مكية وهي خمس وعشرون اٰية وركوعا واحدا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۲۵ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۱ |

اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ ۝۱ وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝۲

كله چي آسمان | اوشليږي | او حكم اومني | درب خپل | او حق دادې چي حكم اومنى |

ځه وخت چي آسمان اوشليږي | اودخپل رب حكم اومني | اوهغه هم ددې قابل دې (چه دخپل رب حكم اومني)

وَاِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ ۝۳ وَاَلْقَتْ مَا فِيْهَا

او كله چي زمكه | خوره يعني همواره كړې شي | او راوغورزوي | هغه څه چي په هغې كښې دننه دي |

او هركله چي زمكه رابشكلې شي | او هرڅه چي په كښې دي هغه بهر ته راوغورزوي

وَتَخَلَّتْ ۝۴ وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝۵ يٰۤاَيُّهَا الْاِنْسَانُ اِنَّكَ

او خالي شي | او حكم اومني | درب خپل | او حق دادې چي حكم اومني | اې انسانه | بيشكه ته |

| اوخالي شي | اودخپل رب حكم اومني | او هغه هم ددې قابله ده (چه داسې اوكړي) | اې انسانه ! ته

كَادِحٌ اِلٰى رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلٰقِيْهِ ۝۶

عمل كونكي روان ئې | رب خپل ته | په عمل كولو سره | نو ته ملاويدونكي ئې دهغه سره |

لګيا يې دخپل رب طرف ته كوشش كوې | او خامخا ورسره مخامخ كيدونكې يې

فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۝۷

نوهر چي هغه څوك دى | چي وركړې شوه | عملنامه دهغه | په ښى لاس دهغه كښې |

نوهغه څوك چه عملنامه ورته په ښى لاس وركړې شي ..............................

فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا ۝۸ وَّيَنْقَلِبُ اِلٰۤى اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ۝۹

نو حساب به اوكړې شي دهغه سره | حساب آسان | او واپس به شي | اهل خپل ته | خوشحاله |

نو هغه سره به آسان حساب اوشي | او خپلو خپلوانو ته به خوشحاله خوشحاله ورشي

وَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ وَرَآءَ ظَهْرِهٖ ۝۱۰ فَسَوْفَ يَدْعُوْا

او هر چي هغه څوك دى | چي وركړې شوه | عملنامه خپله | دشا دهغه نه | نو اوازونه به كوي |

او چا ته چي عمل نامه د شا د طرفه وركړې شي | ..................... نو هغه به د هلاكت دعاګاني

[1] صحيح مسلم كتاب المساجد باب سجود التلاوة : ۵۷۸، ابو داود:۱۴۰۷، ترمذى :۵۷۳، ابن ماجة :۱۰۵۸.

| ثُبُوْرًا | وَّيَصْلٰى سَعِيْرًا | اِنَّهٗ كَانَ | فِيْٓ اَهْلِهٖ | مَسْرُوْرًا |
|---|---|---|---|---|
| هلاكت ته | او ننوزي به بل اور ته | بيشكه هغه وو | په كوروالو خپل كښي | خوشحاله |
| ......اوهغه به بليدونكي اور ته داخليږي | دي به په (دنيا) كښي خپلو خپلوانو كښي ډير خوشحاله اوسيدو | | | |

| اِنَّهٗ ظَنَّ | اَنْ لَّنْ يَّحُوْرَ | بَلٰٓى | اِنَّ رَبَّهٗ |
|---|---|---|---|
| بيشكه هغه خيال كوو | چي هرگز به هغه واپس نشي الله ته | ولي نه | بيشكه رب دهغه |
| دده داگمان وو چي (الله ﷻ) ته به نه پيش كيږم | ...............ولي نه بيشكه الله ﷻ دده | | |

| كَانَ بِهٖ | بَصِيْرًا |
|---|---|
| وو د عمل دهغه | ليدونكي |
| كارونه ليدل كتل | |

**قوله تعالى:- اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ**

**آسمان به اوشليږي:**-الله ﷻ فرمائي دقيامت په ورځ به آسمان اوشليږي اودخپل رب دحكم منلودپاره به ني خپل غوږ نيولي وي.دشليدوحكم ملاويدوسره به اوشليږي او ټكړې ټكړې به شي.ده له هم پكار دى چه دالله ﷻ حكم په ځاى راوړي خكه چه داد هغه الله ﷻ حكم دې كوم چه هيڅ څوك نه شى بندولي د چانه چه بل لوى څوك نشته څوك چه په ټولو غالب دې په هغه باندې هيڅ څوك غالب نشته. هريوځيز د هغه په وړاندې ښكته اولاچاره دې. بې طاقته او مجبوردې.

**قوله تعالى:- وَاِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ**

بله زمكه به خوره كړې شي اوبه غوړولې شي او پلنه به كړې شي. په حديث شريف كښې دى چه الله ﷻ به دقيامت په ورځ زمكه د څرمن په شان راكاږي تردې چه هريوانسان ته به د اودريدلودپاره صرف د دوو پښوځاى ملاويږي. د ټولونه اول به زه رابللې شم. حضرت جبرائيل ؑ به د الله ﷻ نه ښي طرف ته وي.دالله ﷻ قسم دې نه وړاندې هغه دې كله هم نه دې ليدلې نوزه به وايم اې الله جبرائيل ؑ ماته ونيلي ووچه دې ستا راليږلي شوي ماله راځي.الله ﷻ به اوفرمائي رښتيادى نو زه به وايم بيامانه د شفاعت اجازت راكړه. په مقام محمود كښې به اودريږم اوشفاعت به كوم او وايم به اې الله ستادې بنديگانو د زمكې په گوټ گوټ كښې ستا عبادت كړې دې. (ابن جرير) ([1])

بيافرماني چه زمكه به د خپلې خيټې دننه چه څومره مړي دى راوباسي اوخالي به شي. دابه هم د رب د فرمان په انتظاروى اودې له هم دا پكاردى. بياارشاد كيږي چه اې انسانه ته كوشش كوه او د خپل رب طرف وړاندې كيږه اعمال كوني تردې چه يوه ورځ به هغه سره ملاوشې. اود هغه په وړاندې به اودريږې اوخپل عمل اوخپل كوشش به خپلې مخې ته اووينې.ابوداؤداو طيالسي كښې دى چه حضرت جبرائيل ؑ اوفرمائيل اې محمد ﷺ ژوندې اوسيږه تركومې چه غواړې خوآخربه مرگ راځي. چاسره چه غواړې زړه اوتړه خويوه ورځ به د دوى نه جدا كيدل وي. چه څه غواړې عمل اوكړه خو يوه ورځ هغه سره ملاقات كيدونكي دې. ([2])

---

[1]) الطبري: ۳۱۱/۲٤.

[2]) مسند الطيالسي : ۱۷۵۵.

قوله تعالی:- ﴿فَمُلَٰقِيهِ﴾

د﴿فَمُلَٰقِيهِ﴾ ضمیر مرجع بعضو لفظ رب ته هم خودلې دي نودا معنی به شي الله ﷻ سره ستاملاقات کیدونکې دې هغه به تاله ستاد تولوعملونوبدله درکوي. اوستاد ټولو کوششونو اومحنتونو میوه به تاته درنصیب کړي. دواړه خبرې خپل مینځ کښې یوبل ته لازم او ملزوم دی.

قوله تعالی:- ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾

**چا سره چې حساب سختي اوشوه هغه هلاک شو:**-قتاده رحمه الله فرمائي چه بنیادمه ته کوشش کونکې نې خو په خپل کوشش کښې کمزورې نې. چانه چه دا اوشي خپل ټول کوشش اومحنت د نیکود پاره اوکړي نوهغه دې اوکړي خو په اصل کښې د نیکوقدرت اودبدونه د بچ کیدو طاقت سواد الله ﷻ د امدادنه حاصلیدې نه شي. بیافرمائي چاته چه په ښي لاس کښې عمل نامه ملاوشوه د هغه حساب به بغیرد سختئي نه په آسانئي سره کیږي. د هغه واړې بدئي به معاف هم کړې شي اود چانه چه د هغه د ټولو اعمالو حساب اخستلې شي هغه هلاک شو. حضرت رسول مقبول ﷺ فرمائي چه چاسره چه حساب شروع شو هغه تباه شو. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه په قرآن پاك کښې خودي چه دنيکانو خلقو سره به هم حساب کیږي ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ حضور ﷺ اوفرمائیل چه په اصل کښې داهغه حساب نه دې داخوصرف پیشي ده. د چانه چه په حساب کښې تپوس پوښتنه کیږي هغه به تباه کیږي. (مسنداحمد)[1]

بل روایت کښې دي چه دې بیان سره حضور ﷺ خپله ګوته په خپل لاس باندې کیخوده اولکه چه څنګه یو څیزراګرولې شي اغه شان نې خوزوله. مطلب داچه د چانه تپوس کیږي او څوك لټولې شي هغه به د عذاب نه نشي بچ کیدلې. پخپله د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه چاسره باقاعده حساب کیږي هغه بې د عذاب نه نشي پاتې کیدلې. اود حساب یسیرنه مرادصرف پیشي ده. سره د دې چه الله ﷻ بنه ګوري. د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه ما یوځل د حضور ﷺ نه واوریدل چه هغوی ﷺ په مانځه کښې دادعاغوښتله ﴿اللهم حاسبني حسابا يسيرا﴾ کله چه حضور ﷺ فارغ شونوماتپوس اوکړو حضور ﷺ داآسان حساب څه څیزدې؟ جواب کښې اوفرمائیل چه صرف عمل نامه باندې به نظراچولې شي او ونیلې به شي چه زه مونږ معاف کړې. خواې عائشه رضي الله عنها چاسره چه الله ﷻ په حساب شوهغه هلاك شو(مسنداحمد)[2] غرض دا چه د چا په ښي لاس کښې عمل نامه راغله هغه به الله ﷻ ته پیش کیدوسره پریخودې شي او خپلوانو له به په خوشحالوسره جنت ته واپس راځي. طبراني کښې دي رسول الله ﷺ فرمائي چه تاسو خلق اعمال کوئي اود حقیقت علم چاته هم نشته زردې هغه وخت راتلونکې دې چه تاسو به خپل عملونه اوپیژنئي. بعضې به هغه خلق وي چه په خنداخوشحالئي به خپلوانوسره ملاوېږي اوبعضې به داسې وي چه په خفګان غمګین اوخفه به واپس راځي اوچاته چه په شابیرته ګس لاس کښې عمل نامه ورکړې شي هغه به د نقصان او تاوان چغې وهي. هلاکت او مرګ به رابلي او دوزخ ته به ځي. په دنیاکښې بنه تازه تکړه وو او بې فکره ئې مزې کولې د آخرت ویره د عاقبت اندیښنه مطلق نه وه اوس هغه غم فکر خفګان نااميدئي د هرطرف نه راګیر کړو.ده ګنړل چه د مرګ نه پس ژوندون نشته هغه ته دا یقین نه وو چه د الله ﷻ طرف ته واپس هم تلل دی. بیا فرمائي چه او دې به ضرور الله ﷻ راژوندې کوي لکه څنګه چه په اول ځل هغه راپیدا کړي. بیابه دهغه د نیك اوبدسزا او جزاورکولې شي.د بندیګانو د اعمالو او احوالوهغه ته خبر دې اوهغه دا ګوري.

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة اذا السماء انشقت : ۴۹۳۹، صحیح مسلم:۲۹۷۶.

[2] احمد:۴۸/۶، وسنده حسن.

فَلَآ أُقۡسِمُ بِالشَّفَقِ ۝ وَالَّيۡلِ

| نو نهٔ | قسم خورم | دماښام په سرخئ باندې | او په شپه باند |

| نو زما دې په سورخئ باندې قسم وی | او په شپه اوپه هغه څیزونو چې شپې

وَمَا وَسَقَ ۝ وَالۡقَمَرِ إِذَا اتَّسَقَ ۝ لَتَرۡكَبُنَّ

او په هغه چې راجمع کړی دا شپه | او په سپوږمئ باند | کله چې کامله شي | خامخا به تاسو ورخيژئ

راغونډ کړی وی| او په سپوږمئ څه وخت چې پوره (بدر) شی چې تاسو به پوړئ

طَبَقًا عَنۡ طَبَقٍ ۝ فَمَا لَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ۝

یو حالت ته | دبل حالت نه پس |نو څه شوی دی په دوی | چې دوئ ایمان نهٔ راوړی |

په پوړئ خیژئ |.................... نو دا په دوئ څه شوی دی چې دوئ ایمان نه راوړی

وَإِذَا قُرِئَ عَلَيۡهِمُ الۡقُرۡآنُ لَا يَسۡجُدُونَ ۝ بَلِ الَّذِينَ

کله چې لوستلې کیږی | په دوئ باند | قران | نو دوئ سجده نهٔ کوی | بلکه هغه کسان |

او کله چه دوئ ته قران پاک اولوستلې شي| نو دوئ سجده نه کوی | ..................بلکه

كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ۝ وَاللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا

چې کفر ني کړې دې | هغوئ دروغ ګڼړی قران | او الله عالم دې | په هغه څه باند |

کافران (دا هرڅه) دروغ ګڼړی | .................. اوددوئ د زړونو په حال الله ﷻ ښه

يُوعُونَ ۝ فَبَشِّرۡهُمۡ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝

چې دوئ نې ساتي په زړه کښی | نو زیرې ورکړه دوئ ته | د عذاب دردناک |

عالم دې | ..................نو دوئ ته د دردناک عذاب زیرې ورکړه

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمۡ أَجۡرٌ

مګر هغه کسان چې ایمان نې راوړې دې | او عملونه نې کړی دی نیک | هغوئ دپاره | بدله ده |

خو څوک چې مومنان دی | اونیک کارونه کوی| هغوئ دپاره نه ختمیدونکې اجر

غَيۡرُ مَمۡنُونٍ ۝

نهٔ ختمیدونکې

مقرر دې

قوله تعالى:- فَلَآ أُقۡسِمُ بِالشَّفَقِ ۝

د سرخئ قسم:-دشفق نه مراد هغه سرخی ده کومه چه دنمرپریوتونه پس د آسمان په مغربی غاړو باندې ښکاره کیږی.حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابن عباس رضی الله عنه حضرت عباده ابن صامت رضی الله عنه حضرت ابو هریره رضی الله عنه حضرت شداد بن اوس رضی الله عنه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه محمدبن علی بن حسین رحمه الله مکحول رحمه الله بکربن عبدالله مزنی رضی الله عنه بکیربن اشج رحمه الله مالك ابن ابی ذنب رضی الله عنه ابوسلمه ماجشون رحمه الله هم دافرمائی چه شفق هم

دغه سرخئی ته وائی([1]) د حضرت ابوهریره ﷺ نه هم دا روایت دې چه مراد دا سپینوالي دې نوشفق د غاړوسرخئی ته وائی. که هغه د راختونه وړاندې وی که دپریوتونه پس وی اوداهل سنت په نیزدهم دامشهوره ده. خلیل وائی دماسخوتن د وخت پورې دا سرخی باقی وی([2]) جوهري وائی د نمرد ډوبیدونه پس چه کومه سرخی اورڼا باقی پاتې وی هغې ته شفق وائی. دا د شپې د اول نه د ماسخوتن د وخته پورې باقی وی. عکرمه ﷺ فرمائی د ماښام نه واخله ترماسخوتن پورې. د صحیح مسلم په حدیث کښې دی چه د ماښام وخت د شفق د غائبیدو پورې دې.([3]) دمجاهد رحمه الله نه دا روایت دې چه دې نه مراد ټوله ورځ ده. اوبه یوروایت کښې دی مراد ترې نمر دې. غالبًا د دې مطلب وجه د دې نه پس جمله ده نولکه چه د رڼا اوتیارې قسم نې اوخوړلو. امام ابن جریر رحمه الله فرمائی د ورځ د تلو اود شپې د راتلو قسم دې. نورو وئیلی دی دسپینوالی اوسوروالی نوم شفق دې. یوبل قول دې چه دا لفظ په دې دواړومختلفو معنوکښې وئیلې شی. د وسق معنی ده جمع کړې شو. یعنی دشپې د ستورو او د شپې د ځناورو قسم. دغه شان د شپې په تیاره کښې د ټولوځیزونوپه خپل خپل ځای تلل. اود سپوږمئی قسم چه کله هغه پوره شی اود پوره رڼاوالا جوړه شی.

**قوله تعالی:- لَتَرۡكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٖ**

**(لَتَرۡكَبُنَّ)** الخ تفسیر بخاری کښې په مرفوع حدیث سره نقل دې چه دیوحالت نه به بل حالت ته به ډورته ورخیژئی([4]) حضرت انس ﷺ فرمائی چه کوم یوکال راځی هغه به د وړاندینی نه ډیر خراب وی. ما دغه شان ستاسو د نبی ﷺ نه اوریدلی دی([5]) د دې حدیث او پورتنی حدیث الفاظ بالکل یوشان دی. په ظاهردامعلومیږی چه دا مرفوع حدیث دې. والله اعلم. اود دې حدیث دامطلب هم بیان کړې شوې دې چه دې نه مراد د نبی کریم ﷺ ذات گرامی دې. اود دې تائید حضرت عمر ﷺ ابن مسعود ﷺ ابن عباس ﷺ اودعام اهل مکه اواهل کوفه قراءت هم دادې. د هغوی قراءت **(لَتَرۡكَبُنَّ)** (د ب په زیر سره دې). شعبی رحمه الله وائی چه مطلب دا دې چه اې نبی ﷺ ته به د یوآسمانه پس بل آسمان ته خیژې. دې نه مراد معراج دې یعنی منزل په منزل به خیژې. سدی رحمه الله وائی چه مراد دادې چه د خپل خپل عمل مطابق به منزلونه پوره کوئی. لکه چه په حدیث کښې دی تاسو به د خان نه د وړاندینوخلقو په طریقوباندې ځئی. بالکل برابر برابر او تردې پورې چه که په هغوی کښې څوک د سمسارې په سوره کښې داخل شوې وی نو تاسو به هم دغه شان کوئی. خلقو وئیل چه د وړاندینونه مراد ستاسو یهود او نصاری دی. حضور ﷺ اوفرمائیل بیانورڅوک دی؟([6]) حضرت مکحول ﷺ فرمائی چه هروشلوکالوکښې به تاسوداسې کار ایجاد کوئی چه دې نه وړاندې به نه وو. عبدالله فرمائی چه آسمان به شلیږی بیا به سور رنګ کښې شی او بیا به هم رنګونه بدلوی.

ابن مسعود ﷺ فرمائی چه کله خوبه آسمان لوګې جوړشی اوبیابه اوشلیږی. حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله فرمائی یعنی ډیرخلق چه په دنیاکښې ښکته او ذلیل وو په آخرت کښې به د اوچتودرجو والا او عزت دارجوړشی. ډیر خلق کوم چه په دنیاکښې عزت دار او مرتبې والا وو هغوی به په آخرت کښې خوار زار او نامراد وی. عکرمه ﷺ دا مطلب بیانوی اول نی پئی څکل اوس خوراك کوی. اول خوانان وو بیا بوډا

---

[1]) الطبری :۲۷٤/۱۹.
[2]) الطبری :۲۷۵/۱۹.
[3]) صحیح مسلم کتاب المساجد باب اوقات الصلوت الخمس:٦١٢،
[4]) صحیح بخاری کتاب التفسرسورة اذ السماءانشقت ، باب ( لتركبن طبقا عن طبق): ٤٩٤٠.
[5]) صحیح بخاری کتاب الفتن باب لا یاتی زمان الا الذی بعده شرمنه : ۷۰۷۸، ترمذی: ۲۲٦، احمد: ۱۷۹/۳.
[6]) صحیح بخاری کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب قول النبی ﷺ لتتبعن سنن من کان قبلکم، ۷۳۲۰، صحیح مسلم: ۲٦٦۹ بتصرف یسیر.

کان شو.حسن بصری رحمه الله فرمائی د نرمئی نه پس سختی او سختئی نه پس نرمی. د مالدارئی نه پس غریبی او غریبئی نه پس مالداری. د صحت نه پس ناجوړتیا، اوناجوړتیانه پس جوړیدل. یومرفوع حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی بنیادم په غفلت کښې دې هغه پرواه نه کوی چه څه څیز له نی پیداکړې یم. الله ﷻ چه څوك پیداکوی نو فرښتې ته وائی چه د ده رزق د ده اجل د ده ژوند او د ده بد کیدل یانیك کیدل اولیکه. بیا هغه فارغ شی اوخی اودویمه فرښته راخی اود ده حفاظت کوی تردې چه دې پوهه شی بیا هغه فرښته لاړه شی او دوه فرښتې د ده عمل نامه لیکونکې راشی.دمرګ په وخت کښې هغه هم لاړې شی او د مرګ فرښته راخی د خپل کار نه پس هغه هم لاړه شی. بیا قبرته د هغه روح واپس کولې شی اودمرګ فرښته هم لاړه شی.اودسوال جواب کولو فرښتې راشی د خپل کار نه پس هغوی هم لاړې شی. د قیامت په ورځ به د ده د بدوفرښته راخی اود ده د سټ نه به د هغه عمل نامه راپرانستې کړی او بیابه هم هغه سره وی یوسائق دې بل شهید.

بیابه الله ﷻ اوفرمائی ﴿ لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا ﴾ ته د دې نه غافل وې. بیارسول الله ﷺ آیت﴿لَتَرْكَبُنَّ﴾الخ اولولی یعنی د یوحال نه بل حال بیافرمائی خلقو ستاسو په وړاندې لوئ لوئ کارونه دی د کوم چه تاسوکښې طاقت نشته.د الله ﷻ نه چه اوچت دې امداد اوغواړئی. داحدیث په ابن ابی حاتم کښې دې او منکر حدیث دې.د دې په سندکښې ضعیف ضعیف راویان دی خود دې مطلب بالکل صحیح او ټیك دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

امام ابن جریر رحمه الله دا ټول اقوال بیانولوسره فرمائیلې دی صحیح مطلب دا دې چه اې محمد ﷺ ته به د یو نه پس په بل سخت کار کښې پریوتونکې ئی. نوروته خطاب کول هم حضور ﷺ ته دی خومراد ترې ټول خلق دی چه هغوی به د قیامت په ورځ د یونه پس بل تکلیف وینی. بیا فرمائی چه نه دا څه شوی دی دوی ایمان ولې نه راوړی؟ اود دوی قرآن پاك اوریدوسره د سجدې کولونه څوك منع کوی؟ بلکه داکافران خو ئی بالکل دروغ ګنړی اود حق خبرې مخالفت کوی اوپه سرکشئی او بدئی کښې اینختی دی.الله ﷻ د دوی د زړونوخبرې کومې چه دوی پټوی ښه پیژنی.اې نبی ﷺ ته دوی ته خبر اورسوه چه الله ﷻ د دوی د پاره دردناك عذاب تیار ساتلې. بیا فرمائی د دې عذاب نه محفوظ شوی خلق د بهترین اجر مستحق ایماندار او نیك کردار خلق دی دوی ته به پوره پوره بغیر کمی بې حسابه اجر ملاویږی.

لکه چه بل ځائ ارشاد دې ﴿ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ ﴾ بعضې خلقو دا هم وئیلی دی چه بغیرد احسان نه. خودا معنی ټیك نه ده. هروخت هره لمحه د الله ﷻ په جنتیانوباندې به احسان اوانعام وی. بلکه صرف د هغه په فضل اوکرم سره هغوی ته جنت نصیب شوې دې دانه چه د هغوی د عمل په وجه نود دې مالك خو په خپل مخلوق باندې د همیشه او مدام احسان والادې دهغه ذات پاك هرقسم اوهروخت د تعریفونو لائق د همیشه همیشه د پاره دې. د دې د پاره به په جنتیانوباندې د الله ﷻ تسبیح اود هغه ثناء داسې کولې شی څنګه چه ساه بغیرد تکلیف او بغیرد تکلف بلکه بې ارادې روانه وی.قرآن پاك فرمائی ﴿وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ یعنی دهغوی به آخری قول دا وی ټول تعریفونه د جهانونو د پالونکی الله ﷻ د پاره دی.

﴿الحمدلله﴾دسورت انشقاق تفسیر ختم شو. الله ﷻ دې مونږ ته د خیر توفیق راکړی اومونږ دې د بدو نه بچ کړی. (آمین)

| اياتونه | | سورة البروج مكية وهي اثنتان وعشرون اية وركوعا واحدا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑳ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكي دي | | ① |

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ۝١ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ۝٢ وَشَاهِدٍ

قسم دي په آسمان | چه خاوند د برجونودي || او په ورځ وعده كړې شوې باند | او په حاضريدونكي باند

قسم دي په آسمان چي دبرجونو خاونددي || او په هغه ورځ چي وعده ئي شوې ده | اوقسم دي په ګواه

وَّمَشْهُوْدٍ ۝٣ قُتِلَ اَصْحٰبُ الْاُخْدُوْدِ ۝٤ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ ۝٥

اوپه هغه ورځ چه حاضريدل ورته كولي شي | قتل كړې شول | خاوندان دكندو | د اور | چي خاوند د ډير خشاك وه

اودځاخلاف چه ګواهي وركولي شي | د خندق جوړونكي قتل كړې شول || او داور خاوندانو چي ډيرخشاك په كښي

اِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُوْدٌ ۝٦ وَّهُمْ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ

كله چي هغوئ | په غاړه ددغه كندو | ناست وو | او هغوئ | په هغه څه چي كول هغوئ |

پروت وو | څه وخت چي دوئ د اور په غاړه ناست وو | اوڅه چي دوئ په مومنانو باندي

بِالْمُؤْمِنِيْنَ شُهُوْدٌ ۝٧ وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ

په مومنانو باند | حاضر وو (يعني ليدل ئي ) | او نه كوله دشمني هغوئ | دهغوئ سره |

كول هغه ئي په خپلو ستركو ليدل | ...................اوهغوئ (كافرانو) د دوئ (مسلمانانو) نه صرف

اِلَّآ اَنْ يُّؤْمِنُوْا بِاللهِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۝٨ الَّذِيْ

مكر په دي وجه | چي ايمان راوړې وو هغوئ | په الله غالب ستائيلي شوې باند | هغه (الله) |

ددي خبري بدله اخستله | چي دوئ په الله ﷻ ايمان واوړې وو | چي غالب او ستائيلي ذات دي

لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاللهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝٩

چي هغه لره ده | بادشاهي دآسمانونو او دزمكي | او الله | په هر څيز باند | نظر لرونكي دي |

هغه ذات چه حكومت ئي په آسمانونو اوزمكه كښي دي || او الله ﷻ په هرڅه باندي خبردار دي

اِنَّ الَّذِيْنَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ

بيشكه هغه كسان | چي ظلم ئي اوكړو | په مومنانو سړو باند | او په مومنانو ښځو باند |

بيشكه كومو خلقو چي مومنانوسړو او ښځو ته عذاب وركړو

ثُمَّ لَمْ يَتُوْبُوْا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيْقِ ۝١٠

بيا ئي توبه اونه ويستله | نو دي هغوئ دپاره | عذاب ددوزخ || اودي هغوئ دپاره | عذاب داور سوزونكي

او د دي نه پس ئي توبه اونه ويستله | .........نو هغوئ دپاره د جهنم عذاب مقرر دي

قوله تعالى:- وَالسَّمَاۤءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ۝

دَ أسماني بروج قسم د بروج نه مرادلوئ لوئ ستوری دی لکه چه ﴿جَعَلْنَا فِي السَّمَاۤءِ بُرُوْجًا﴾ په تفسير کښې تيرشو. دحضرت مجاهد رحمه الله نه روايت دې چه بروج هغه دی په کوم کښې چه حفاظت کونکی اوسيږی. يحيى رحمه الله فرمائی دا آسمانې محل دې. منحال بن عمرو رضي الله عنه وائی چه دې نه مراد د ښکلی جوړخ والا آسمان دې.(¹) ابن خيثمه رحمه الله فرمائي دې نه مراد د نمرسپوږمنې منزلونه دی کوم چه دولس دی اونمر په دې هريوکښې په مياشت کښې روان وی او سپوږمنی په دې کښې دوه ورځې او د يوې ورځ دريمه حصه ګرځی. نودا اتويش ورځې شوې اودوه ورځې هغه پټه وی نه راوځی. (²) د ابن ابی حاتم په حديث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی د ﴿وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ۝﴾ نه مرادد قيامت ورځ ده اود شاهدنه مرادد جمعه ورځ ده. نمرچه په کوموکومو ورځور اوخی اوډوبيږی په دې کښې د ټولو نه افضل اواعلی ورځ دجمعه ده. پدې کښې يوساعت داسې دې چه په هغې کښې بنده کومه يوه ښيګړه اوغواړی نو ملاويږی اود کومې بدئی نه پناه غواړی اخواکيږی اود ﴿ مَشْهُوْدٍ ۝ ﴾ نه مراد د عرفه ورځ ده.

قوله تعالى:- وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ۝

يوم مشهود څه څيز دې :ابن خزيمه کښې هم دا حديث دې(³) موسی بن عبيده نه د دې روايت دې اودې ضعيف دې.دارِوايت پخپله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د قول نه نقل دې اوهم دا ډير صحيح معلوميږی. مسندکښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه هم دا روايت دې (⁴) اود حضراتونه هم دا تفسير نقل دې اوپه دې کښې اختلاف نشته. فالحمدلله.يوبل روايت کښې مرفوعاً نقل دی چه دجمعه ورځ ته دلته شاهد ونيلې شوې دې دائی خاص زمونږ دپاره دخزانې په توګه پټه کړې وه(⁵)يوبل حديث کښې دی چه د ټولو ورځو سرداره ورځ د جمعه ده(⁶)دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دا هم روايت دې چه د شاهد نه مراد پخپله د حضرت محمد ﷺ ذات دې اودمشهودنه مراد دقيامت ورځ ده.بيا هغوی دا آيت اولوستلو﴿ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ۝﴾ يعنی د هغه ورځ دپاره به خلق راجمع کړې شی اودا ورځ مشهوديعنی حاضره کړې شوې ده.

يوسړی دحضرت حسن بن علی رضي الله عنه نه سوال اوکړوچه شاهد اومشهودڅه څيز دې؟ هغوی اوفرمائيل تاد بل چانه تپوس کړې؟ونی ونيل اود ابن عمر رضي الله عنه او ابن زبير رضي الله عنه نه. ونی فرمائيل هغوی څه جواب درکړو ونيل د قربانئی ورځ اود جمعه ورځ. ونی فرمائيل چه نه بلکه د شاهدنه مراد حضرت محمد ﷺ دې لکه چه قرآن پاك کښې ارشاد دې ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰۤؤُلَاۤءِ شَهِيْدًا ۝﴾ يعنی څه حال به وی چه کله مونږ د هريوامت نه ګواه راولو اوتا په هغوی باندې ګواه جوړکړو اود مشهودنه مراد د قيامت ورځ ده.قرآن پاك وائی ﴿وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ۝﴾داهم روايت دې چه دشاهدنه مراد حضرت آدم عليه السلام اود مشهود نه مراد د قيامت ورځ اود مشهودنه مراد د جمعه ورځ هم روايت ده اود شاهدنه مراد پخپله الله ﷻ هم دې اود عرفه ورځ هم ده.

يوحديث کښې دی رسول الله ﷺفرمائيلی دی دجمعه په ورځ په ما په کثرت سره درود وائې هغه مشهود ورځ ده په کومه کښې چه فرښتې حاضريږی.حضرت سعيدبن جبير رحمه الله فرمائی شاهد الله ﷻ دې. قرآن

---

(¹) تفسير قرطبی :۱۹/۲۸۳.
(²) الطبری : ۲۴/۳۳۲.
(³) الطبری : ۲۴/۳۳۳، ابن خزيمه: ۳/۱۱۶،
(⁴) احمد: ۲/۲۹۸،
(⁵) المعجم الکبير : ۳٤۵۸،
(⁶) الطبری : ۲٤/۳۳٤.

پاك واني(وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا) اومشهودمونږ یو.دقیامت په ورځ به مونږ ټول د الله ﷻ په وړاندې حاضرولې شو.د اکثروحضراتودا فرمان دې چه شاهدد جمعه ورځ ده اومشهود د عرفه ورځ ده.د دې قسمونونه پس ارشاددې چه دخندوقونو والا باندې لعنت وی.دا د کافرانویوه ډله وه کومو چه ایماندار مغلوب کولوسره هغوی ددین نه اړول غوښتل ا. دهغوی په انکارباندې ئی کندې اوکنستلې او په هغې کښې ئی لرګی بل کړل او اور ئی سورکړو اوبـ ی هغوی ته اووئیل چه اوس هم ددین نه واوړئی.دې الله والاخلقوانکاراوکړو.اودې دالله ﷻ نه نه ویریدونکو کافرانوهغه مسلمانان په هغه سورکړې شوی اورکښې واچول.هم دابیانولې شی چه داخلق هلاك شو.دادخشاك نه ډك سورکړې شوی اورد خندوقونو په غاړوناست د هغه مؤمنانود سوزیدو تماشه کتله.د دې دښمنئی اوعذاب سبب د مؤمنانوهیڅ قصور نه وو اود هغوی صرف د دوی په ایماندارئی باندې غضب اوغصه وه. په اصل کښې غلبه لرونکې هم الله ﷻ دې د هغه په پناه کښې راتلونکی هیڅ کله هم نه برباد کیږی اوهغوی په خپلو ټولو افعالو او اقوالو کښې په شریعت او تقدیرکښې د تعریف قابل دی اوکه الله ﷻ څه وخت کښې خپلو خاص بندی ګانوته دکافرانود لاسه تکلیف هم اورسوی اود هغې رازچاته معلوم نه شی نونه دې وی خوبه اصل کښې هغه دڅه مصلحت اوحکمت په بنیادباندې وی.دالله ﷻپه پاکو صفتونوکښې داهم دی چه هغه د زمکوآسمانونواوټولومخلوقاتومالك دې اوهغه دهریوڅیز حاضراوناظردې هیڅ څیزدهغه نه پټ نه دې.

**دا واقعه دکومې علاقې اوکومې زمانې ده؟**:علیؓ فرمائی چه داواقعه د اهل فارس ده.دهغوی بادشاه دا قانون جاری کول غوښتل چه محرمات ابدیه یعنی مورخور لور وغیره ټول حلال دی.دهغه وخت علماء کرامود دې نه انکاراوکړو او منع ئی کړو. په دې باندې هغوی خندقونه اوکنستل په هغې کښې ئی اور بل کړوهغه حضرات ئی په دې کښې اوغورزول. دااهل فارس ترننه پورې دابنځې هم حلال ګڼړی. دا هم روایت دې چه دا خلق یمنیان وو.مسلمانانواوکافرانوکښې جنګ اوشو مسلمانان غالب راغلل بیا په دویم جنګ کښې کافران غالب راغلل نوهغوی کندې اوکنستلې اوایمانداران ئی په کښې اوسوزول. داهم روایت دې چه دا واقعه د اهل حبش ده.دا هم روایت دې چه دا واقعه د بنی اسرائیلوده. هغوی دانیال او دهغه ملګروسره دا سلوك کړې وو. نوراقوال هم دی.

**دَخندقونوواقعه**:- مسنداحمدکښې دی رسول الله فرمائیل چه پخوانئی زمانه کښې یوبادشاه ووهغه سره یوجادوګروو. کله چه جادوګربوډا شونو بادشاه ته ئی اووئیل اوس زه بوډا شوم اوزما د مرګ وخت رانیزدې شو ماته یوماشوم راکړه نوزه به هغه ته جادواوښایم. یوهوښیارهلك ته هغه تعلیم ورکول شروع کړه. هلك چه به هغه له تلونو په لارکښې دیوراهب کور ووچرته چه به هغه په عبادت کښې او کله په وعظ کښې مشغول وو.دې به هم اودریدو اود هغه د عبادت طریقه به ئی کتله اود هغه وعظ ئی اوریدلو.تلورراتلوکښې به دلته اودریدلو جادوګربه هم وهلو او موریلارهم ځکه چه هلته به هم ناوخته رسیدلواودلته هم. یوځل دې ماشوم راهب ته خپل شکایت وړاندې کړو.راهب ورته اووئیل چه کله جادوګرتانه تپوس اوکړی چه ولې دې ناوخته کړو؟ نوته ورته وایه دکورخلقو راحصارکړې ووم او چه د کوروالا دې راګیرکړی نوورته وایه چه جادوګرحصارکړې ووم. دغه شان یوه زمانه تیره شوه. یوطرف ته هغه جادو زده کولو او بل طرف ته د الله ﷻ کلام اودالله ﷻ دین.یوه ورځ هغه اوکتل چه په لارکښې یو خطرناك ځناور پروت دې دخلقو تګ راتګ بنددې.داخواخلق دیخوانه شی راتلې اوددیخوا خلق اخوانه شی تلې. ټول خلق اخوادیخوا پریشانه ولاړدی. هغه په خپل زړه کښې سوچ اوکړو چه نن موقعه ده زه خپل ازمینښت کوم چه د راهب دین د الله ﷻ خوښ دې که د جادوګر.هغه یوکاڼړې راوچت کړو اوپه هغه ځناور ئی ورګذار کړو اوونی وئیل اې الله که ستا په نیزدد راهب دین اوتعلیم د جادوګر د کارنه ډیرمحبوب دې نودا ځناور په دې کاڼړی باندې هلاك کړې دې د پاره چه خلق د دې بلانه خلاص شی. د

کاڼږي په لګيدو باندې هغه ځناور مړشو اود خلقو تګ راتګ شروع شو بيا لاړو او راهب ته ئې خبرکړو نو هغه اوونيل خوږه بچيه! ته مانه غوره ئې. اوس به د الله ﷻ دطرف نه ستا ازميښت کيږي که چرې داسې اوشي نو ته زما خبر چاته مه ورکوه.اوس دې ماشوم ته دحاجت مندو خلقوقطارونه اولګيدل. اود هغه په دعاسره د مورنه پيداشوې ړانده جذاميان شل اوهرقسم بيماران جوړيدل.دبادشاه د يونابينا وزيرغوږ ته هم دا خبره اورسيده. هغه ډيرې تحفې تحائف واخسته راغلو. هغه وئيل که تاماته شفا راکړه نودا ټولې به تاله درکړم. هغه وئيل شفازما په لاس کښې نه ده اوزه چاله شفانه شم ورکولې شفا ورکونکې خو الله وحده لاشريك له دې. که ته په هغه باندې د ايمان راوړو وعده کوې نو زه به د هغه نه دعا اوکړم. هغه اقرار اوکړو ماشوم د هغه د پاره دعااوکړه او الله ﷻ هغه ته شفاورکړه اوهغه د بادشاه دربارته راغلواو چه څنګه ئې د ړندو په شان اول کار کولو کارئې شروع کړو سترګې ئې بالکل بينا وې. بادشاه حيران شو اوتپوس ئې اوکړو تاته سترګې چادرکړې؟هغه وئيل زما رب. بادشاه وئيل يعنې ما. وزيروئيل نه نه زما اوستارب الله ﷻ دې. بادشاه وئيل چه بنه ده زما نه علاوه بل څوك هم ستارب شته. وزير وئيل اوزما اوستا رب الله ﷻ عزوجل دې. اوس هغه په وهلوټکولو سره هغه ته قسم قسم تکليفونه اوسزاګانې ورکول شروع کړه اوتپوس ئې کولوتاته داتعليم چا درکړې؟ آخر هغه اوخودل چه د دغه ماشوم په لاس ما ايمان راوړې.اوس هغه داماشوم راوغوښتو او ونې وئيل چه ته خو په جادوکښې بنه ماهرشوې چه ړانده هم جوړول او بيماران ټيك کول دې شروع کړه.هغه وئيل غلطه ده نه زه چاته شفا ورکولې شم اونه جادو. شفاخو الله ﷻ په لاس کښې ده. وئيل چه بنه يعنې زما په لاس کښې ده خکه چه الله خو هم زه يم. هغه وئيل هيڅ کله نه . بادشاه وئيل چه بيا ته خوزما نه بغيربل څوك الله منې.هغه وئيل اوزمااوستارب الله ﷻ دې. هغه ده ته هم قسم قسم سزاګانې ورکول شروع کړه تردې چه د راهب پته ئې معلومه کړه. راهب ئې راغوښتو چه ته اسلام پريږده اود دې دين نه واوړه. هغه انکار اوکړونوبادشاه هغه په آره اوڅيرلواو دوه ټکړې کړو ونې غورزولو.بيا دې ځوان ته اوونيل چه ته هم د دين نه واوړه نوهغه هم انکار اوکړونو بادشاه حکم اوکړو زماسپاهيانودې فلانکې فلانکې غرته بوځئې اودهغې اوچتوسوکوته په رسيدو باندې ده ته اووايئ چه دادين پريږده که دې منې نو ټيك ده ګنې د هغه ځائ نه ئې راړه کړئې. دې خلقو هغه بوتلواو چه د هغه ځائ نه ئې دبکه ورکول اوغوښتل نوهغه دالله ﷻ ته دعا اوکړه(اللهم اکفنيهم بماشئت)اې الله ﷻ څنګه چه غواړې د دوی نه خلاصې راکړې. دې دعاسره غراوخوزيدواوهغه سپاهيان رالړه شول او هغه ماشوم بچ شو.دهغه ځائ نه په خندا خوشحالئې باندې هغه ظالم بادشاه له بياراغلو. بادشاه وئيل دا څه اوشو؟زما سپاهيان څه شو؟ وئيل زماالله زه دهغوی نه بچ کړم.هغه څه نور سپاهيان راوغوښتل او هغوی ته ئې اوونيل چه دې په کشتئ کښې کينوئې او بوئې زئې او د سمندر په بيخ کښې ورډوب کړئې. دوی هغه واخستلو اولاړل د سمندر مينځ ته اورسيدل. کله چه ئې هغه په سمندرکښې غورزول غوښتل نوهغه بيا هغه دعا اوکړه ياالله څنګه چه غواړې ماد دوی نه بچ کړه. يوڅپه راوچته شوه اوهغه سپاهيان ټول په سمندرکښې ډوب شول صرف هغه ماشوم باقي پاتې شو. دې بيا بادشاه له راغلو او ونې وئيل زما الله زه بيا د هغوی نه بچ کړم. اې بادشاه که ته هرڅومره چلونه اوکړې خو ما هلاك کولې نه شې. او چه څنګه زه وايم که هغه شان دې اوکړه نو زما روح به اوخې. هغه وئيل څه اوکړم؟ ونې فرمائيل ټول خلق په يوميدان کښې راجمع کړه بيا د کهجورې په تنه باندې په سولئې مې اوځيژوه او زما ترکش نه يو غشې راوباسه اوهم زما په لينده باندې خيژوه او (بسم الله رب هذا الغلام) يعنې دهغه الله ﷻ په نوم چه د دې ماشوم رب دې وايه اوغشې زما طرف ته اووله هغه باندې به زه اولګم اوزه به مړشم. بادشاه هم داسې اوکړه او غشې د هغه په کوپړئې باندې اولګيدو هغه خپل لاس هم په هغه ځائ کيخودو او شهيدشو. په دې طريقه

باندې دشهید کیدلوسره خلقو ته د هغه په دین باندې یقین راغلو خلورو وارو طرفونه اوازونه راغله چه مونږتولو ددې ماشوم په رب باندې ایمان راوړلې دې.ددې حال په کتوباندې دبادشاه ملگری اوویریدل او بادشاه ته نی اوونیل د دې هلك ترکیب باندې خو مونږ پوهه نه شو. گورنی د هغې دا اثر اوشو چه دا ټول خلق هم دهغه په مذهب باندې شو. مونږ خو هغه په دې وجه قتل کړو چه د ده مذهب خور نه شی ولې هغه ویره خو مخې ته راغله او ټول مسلمانان شو.بادشاه ونیل چه بڼه ده ټولو محلونو اولاروکښې خندقونه اوکنئی هغه د لرگونه ډك کړئی اواُور ورته کړئی.څوك چه د دې دین نه واوړی هغه پریږدئی او چه څوك اونه منی هغه په اُورکښې واچوئی.دې مسلمانانو په صبراوبرداشت سره په اُورکښې سوزیدل منظورکړه اوپه هغې کښې په ټوپونو وراودانګل.خو یوه ښځه چه د هغې په غیږ کښې یو پټی څکونکې ماشوم ووهغه لږه شان اوویریدله نودې ماشوم له الله ﷻ دخبرو طاقت ورکړو هغه ونیل مورې څه کوې ته خوپه حق نی صبرکوه او دې ته وراودانگه[1] داحدیث په مسنداحمدکښې هم دې اود صحیح مسلم په آخر کښې هم دې او په نسائی کښې هم په څه اختصار سره دې.

د ترمذی شریف په حدیث کښې دی چه حضرت صهیب رضی الله عنه فرمائی چه نبیﷺکریم ﷺ د مازیګرمونځ کولو نه پس عموماً د شونډې لاندې څه فرمائیل نود حضور ﷺ نه تپوس اوشو چه حضور ﷺ! دا تاسو څه فرمائې؟ونی فرمائیل چه په انبیاوکرامو کښې یونبیﷺ ووچه په خپل امت باندې به نی فخرکولو. ونی ونیل چه د دوی خیال به څوك ساتی نو الله ﷻ د هغوی طرف ته وحی راولیگله چه دوی ته اختیاردې که داخبره خوښوی چه زه پخپله د دوی نه انتقام اوبدله واخلم یاپخپله داخبره خوښوی چه په دوی باندې دښمن مسلط کړم.هغوی انتقام خوښ کړو نو په یوه ورځ د هغوی نه اویازره مړه شو دې سره هغوی داحدیث هم بیان کړو کوم چه پورته تیرشو.بیا په آخره کښې دقتل نه واخله ترمجیدپورې آیاتونه تلاوت کړل.داخوان شهیدخښ کړې شوې وواود حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې د هغه دقبرنه هغه راویستلې شوې وودهغه گوته هم هغه شان په کوپړنی باندې پرته وه څنگه چه د شهادت په وخت کښې وه.امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن غریب وائی.خوپه دې روایت کښې داصراحت نشته چه داواقعه نبیﷺکریم ﷺ بیان فرمائیلې.ممکن دی چه دحضرت صهیب رومی رضی الله عنه بیان فرمائیلې وی هغه سره د نصرانیانو داسې ډیر حکایتونه وو. والله اعلم.

**د سیرت ابن اسحاق روایت:-** امام محمد بن اسحاق رحمه الله هم دا قصه په نورو الفاظوکښې بیان کړې ده چه ددې خلاف ده.هغه وائی نجرانی خلق بت پرست مشرکان وو.اونجران سره یوووړوکې غوندې کلې وو په هغې کښې یوجادوگروو.نجرانیانو ته به نی جادوخودلو.فیمون نومې یوبزرگ عالم دلته راغلواود نجران اوهغه کلی په مینځ کښې هغه خپله ډیره واچوله.دښارهلکان کوم چه به دجادوگرنه جادوزده کولو دپاره تلل.په هغوی کښې دسوداگریوخوی عبدالله نومې هلك وو.هغه ته به په تلوراتلوکښې د راهب دعبادت اودهغه د مونځ وغیره د زده کړې موقعه هم ملاویدله په دې به نی سوچ اوفکر کولو او په زړه کښې نی دهغه دمذهب صداقت ځائ کړې وو.بیا هغه دلته تګ راتګ شروع کړو اومذهبی تعلیم نی دهغه راهب نه حاصلول شروع کړو.یوڅو ورځې پس هغه پدې مذهب کښې داخل شو او اسلام نی قبول کړو.دتوحید پابندشو اوهم دیو الله ﷻ عبادت نی کولو اود دین علم نی په ښه شان سره حاصل کړو. هغه راهب اسم اعظم هم پیژندلو. هغه ډیرخواهش کولو چه ده ته نی اوښائی خوهغه اونه خودلو او ورته نی اوونیل اوس لا په تاکښې د دې صلاحیت نه دې راغلې ته لااوس د کمزوری زړه خاوندنی د دې طاقت زه په تاکښې نه وینم. دعبدالله پلار ته د خپل ځوئ د مسلمان کیدو علم نه وو. هغه خو خپل خان سره دا گنړل چه زما ځوئ جادو زده کوی اوهم هلته خې راځی. عبدالله چه کله دا اوکتل چه راهب

[1] احمد: ۱۶/۶. صحیح مسلم کتاب الزهد باب قصة اصحاب الاخدود والساحر:۳۰۰۵.

ماته اسم اعظم نه ښانی هغه ته زماد کمزورني ويره ده نو يوه ورځ هغه غشي واخستل اوچه خومره نومونه دالله ﷻ هغه ته ياد وو په هريوغشي باندې ئې يويو نوم اوليکلو بيانی اُور بل کړو اوکيناستو او يويوغشې ئې په هغې کښې اچول شروع کړه. کله چه هغه غشي راغلوپه کوم چه اسم اعظم وو هغه اُورکښې پريوتوسره راټوپ کړو بهر راووتلو اوپدې باندې اُور بالکل اثر اونه کړو. هغه ته پته اولګيدله چه هم دا اسم اعظم دې. خپل استاذ له راغلو او ورته ئې اووئيل ماته داسم اعظم علم معلوم شوه. استاذ تپوس اوکړو چه اوښايه څه دې نوهغه اوخودلو. راهب تپوس اوکړوچنګه معلومه شوه نوهغه ټوله واقعه بيان کړه. هغه اووئيل چه اوتاښه معلومه کړه هم دغه اسم اعظم دې دا هم خپل خان پورې اوساته خوماته ويره ده چه ته به ئې ښکاره کړې. د هغه داحالت شو چه نجران ته راغلو په کوم بيمار په کوم خفه اوپه کوم ستم شوی سړی باندې به ئې نظر پريوتلو هغه ته به ئې وئيل که ته موحد جوړيږې اودين اسلام قبول کړې نوزه دخپل رب نه دعاکوم هغه به تاته شفا او خلاصي درکړی او ګوره بلا به درنه اخوا شی. هغه به دا قبوله کړه. ده به په اسم اعظم سره دعا اوغوښتله الله ﷻ به هغه روغ جوړکړو. اوس د نجرانيانوپيره اولګيدله اوډلوډلوبه روزانه اسلام قبلولواوکاميابيدل به. آخربادشاه ته ددې پته اولګيده اوهغه ئې راوغوښتو دمکی ورکړه چه تا زما رعيت وران کړو زما اوزماد پلار نيکونو په مذهب دې حمله اوکړه زه به ستانه پښې لاسونه کټ کړم اولنډې بوچې به دې کړم. عبدالله بن تامر جواب ورکړوته داسې نه شی کولې. بادشاه هغه د غر نه راګذارولوخو هغه لاندې په راتلوباندې صحيح سالم وو. په ټول بدن باندې چرته زخم هم نه وو راغلې. د نجران په طوفانی سمندرونوکښې ئې ورواچولو د څه نه چه څوک بچ کيدې نه شی خودې د هغه ځائ نه هم صحيح سلامت راغلو. غرض دا چه عاجز راغلو نو بيا عبدالله بن تامر اووئيل اې بادشاه واوره ته به زما په قتل کولو باندې چرې هم قادر نه شې تردې چه ته دا دين اومنه کوم چه زه منم اود يوخدائی عبادت کوه که تا دا اوکړه نو ته به بيا ما قتل کړې شې. بادشاه هم داسې اوکړه اودعبدالله خودلې شوې کلمه ئې اولوستله اوکوم لرګې چه د هغه په لاس کښې وو په هغې باندې ئې حضرت عبدالله اووهلو په دې سره په هغه باندې هسې لږشان ګريدل راغله او هم د دې نه هغه شهيدشو. الله ﷻ د هغه نه خوشحاله شو اوخپل خاص رحمتونه ئې په هغه باندې نازل کړل. د نجران ټول خلق مسلمانان شو اود حضرت عيسیٰ ﷺ په رښتونې دين باندې قايم شو. هم دغه مذهب هغه وخت په حق باندې وو. دغه وخت کښې حضور ﷺ نبی نه وو جوړشوې خوبيايوزمانه پس په هغوی کښې بدعتونه راپيدا شو او خواره شو اود حق دين نور د هغوی نه واخستې شو. غرض په نجران د عيسائيت د خوريدلو اصلي سبب دا وو. بيا د يوزمانې نه پس ذونواس يهودی خپل لښکر سره په دې نصرانيانوباندې حمله اوکړه او غالب شو. بيانی هغوی ته اووئيل چه ياخو يهوديت قبول کړنې يامرګ. هغوی قتل کيدل منظورکړه. هغه خندقونه اوکنستل اُورئې په کښې بل کړو او وئې سوزول. بعضې ئې قتل هم کړل. اود بعضو پښې لاسونه پوزه غوږونه وغيره پريکړل.

تقريباً شل زره مسلمانان دې ظالم قتل کړل. هم د دې ذکر په آيت ﴿قُتِلَ أَصْحٰبُ الْأُخْدُوْدِ﴾ کښې دې. د ذو نواس نوم زرعه وودهغه د بادشاهت په زمانه کښې به ئې هغه ته يوسف وئيل. دهغه دپلار نوم اسعدابی کريب ووکوم چه تبع دې اوهغه په مدينه کښې جنګ اوکړو اوکعبه باندې. کپړه واچوله هغه سره دوه يهودی عالمان وو. د يمن والا هم د هغه په لاس باندې يهودی مذهب کښې داخل شو. ذونواس هم په يوه ورځ صرف د سحر په وخت کښې په دې خندقونوکښې شل زره د ايمان خاوندان قتل کړل. په دوی کښې صرف يوکس پاتې شو د هغه نوم دوس ذی ثعلبان وو دې په اس باندې اوتختيدو. خوهغه پسې هم اسونه اوزغلول خودې په لاس ورنغلو. دې نيغ د روم بادشاه قيصر له لاړو اوهغه د حبشو بادشاه نجاشی ته اوليکل. دوس د هغه ځائ نه د نصرانيانو لښکر واخستو يمن ته راغلو د هغوی سرداران

ارياط اوابرهه وو.يهوديان مغلوب شو او يمن د يهوديانود لاس نه اووتلو. ذوانواس اوتختيدو خو هغه په اوبوكښې غرق شو. بيا د اوياؤكالوپورې دلته د حبشو نصرانيانو قبضه وه.آخر سيف بن ذى يزن حميرى د فارس د بادشاه نه امدادى فوځيان واخستل او په اووه سوو قيديانو خلقو ئې په هغوى حمله اوكړه فتح ئې حاصله كړه او بيا حميرى سلطنت قايم شو.د دې څه بيان به په سورت فيل كښې هم راځي. ان شاء الله ﷻ.سيرت ابن اسحاق كښې دى چه يونجرانى د حضرت عمر ﷺ په زمانه كښې د نجران يو شاړه اوغيرآباده زمكه دځپل څه كارد پاره اوكنستله نو وئې كتل چه دعبدالله بن تامر جوسه په هغې كښې وه. هغوى ناست وو په سرباندې چه په كوم ځائ زخم راغلې وو هم هلته ئې لاس وو. كه لاس به دې اخواكولونو وينه به روانيدله چه بيا به دې لاس پريخودو لاس به پځپله ځپل ځائ ته تلو او وينه به بنديدله. د لاس په يوه گوته كښې يوه گوته هم وه چه په هغې ربى الله ليكلې وو يعنى زما رب الله دې. ددې واقعه خبر دخلافت محل ته اورسيده ددې ځائ نه د فاروق اعظم ﷺ حكم راغلو چه دا هم داسې پريږدئى اودلارې نه چه كومه خاوره اخواكړې شوې ده هغه پرې واچوئى او چه څنگه وو هغه شان ئې كړئى اونښه پرې اولگوئى. نو هم داسې اوشو.

**ديو بل بزرگ جوسه:**-ابن ابى الدنيا ﷫ ليكلي دى چه كله حضرت ابوموسى اشعرى ﷺاصبهان فتح كړونو يوديوال ئې اوليدوچه هغه غورزيدلې وو په حكم ئې جوړكړوخوبياراپريوتلو بيانى جوړكړو نو بيا راپريوتلو. آخر معلومه شوه چه د دې لاندې يونيك بخت سړې خښ دې.كله چه زمكه اوكنستلې شوه نووئى كتل چه ديوسړى جوسه ولاړه ده.ورسره يوه توره ده په هغې ليكلي دى زه حارث بن مضاض يم چاچه د خندقونووالا نه انتقام واخستلو .ابوموسى اشعرى ﷺ هغه جوسه راوويستله او هلته ئې ديوال اودرولو نو برابر شو. زه وايم چه دا حارث ابن مضاض بن عمرو جرهمى دې كوم چه د كعبة الله متولى شوې وو. ثابت ابن اسمعيل بن ابراهيم د اولاد نه پس د هغه خوئ عمروبن حارث ابن مضاض وو چه په مكه كښې د جرهم قبيلې آخرى بادشاه وو.كوم وخت چه خزاعه قبيلې هغه ددې ځائ نه اوويستلو اوديمن طرف ته ئې جلاوطن كړو.هم دغه هغه سړې دې چاچه په عربو كښې اول اول شعراووئيل په كوم شعركښې چه ورانه مكه آبادول او دزمانې داوختوراوختوسره بيادهغه ځائ نه ويستل هغه بيان كړې دى.ددې واقعه نه خودا معلوميږى چه داقصه داسماعيل ﷺ د څه زمانې نه پس او ډيره زړه ده چه د اسماعيل ﷺ نه تقريبًا پنځه سوه كاله پس معلوميږى خود ابن اسحاق ددې مطول روايت نه كوم چه پورته تيرشوداخبره ثابتيږى چه داقصه دعيسى ﷺ نه پس اود محمد ﷺ نه وړاندې ده. زيات صحيح هم دا معلوميږى. والله اعلم.اوداهم كيدې شى چه داواقعه په دنياكښې څوځل شوې وى لكه چه د ابن ابى حاتم د روايت نه معلوميږى چه حضرت عبدالرحمن بن جبير﷫ فرمانى چه د تبع په زمانه كښې په يمن كښې خندقونه كنستلې شوې وواودقسطنطين په زمانه كښې په قسطنطنيه كښې هم مسلمانانوته دغه عذاب وركړې شوې وو. اونصرانيانو خپله قبله بدله كړه او په دين مسيح كښې ئې بدعتونه راپيداكړل توحيد ئې پريخودو.هغه وخت كښې چه كوم ربنتونى ديندار وو هغوى ددوى ملگرتياونه كړه اوپه اصلى دين باندې پاتې شونوهغه ظالمانو خندقونه اوكنستل اود اورنه ئې ډك كړل اوهغوى ئې اوسوزول. اوهم دغه واقعه د بابل په زمكه باندې په عراق كښې د بخت نصر په زمانه كښې اوشوه كوم چه يوبت جوړ كړې وو اوپه خلقو باندې به ئې هغه ته سجده كوله.حضرت دانيال اود هغه دواړه ملگرى عزريا او ميشايل ددې نه انكار اوكړو نوهغه دوى دغه د اور په خندق كښې واچول. الله ﷻ اور په هغوى باندې يخ كړو اوهغوى ئې په سلامتياسره اوساتل.صفاخلاصې ئې وركړواودغه ظالمان ئې پدغه خندق كښې واچول.دا نهه قبيلې وې او ټول اوسوزيدل ايره شو. سدى ﷫ فرمانى چه په دريوځايونو كښې دا معامله اوشوه په عراق كښې شام كښې او په يمن كښې.

مقاتل رحمه الله فرمائي چه خندقونه دريو ځايونو کښې وو يود يمن په ښارنجران کښې بل شام کښې او دريم فارس کښې. په شام کښې د دې باني انطنانوس رومي وو او فارس کښې بخت نصر او د عربو په ژمکه يوسف ذونواس شام او فارس د خندقونوذکر په قرآن کښې نشته. دا ذکرد نجران دې.ربيع بن انس رضي الله عنه فرمائي چه مونږ اوريدلي دي دفترة په زمانه کښې يعنې دعيسى عليه السلام اوپيغمبرآخرزمان ﷺ په مينځنۍ زمانه کښې يوقوم وو کله چه هغوى اوکتل خلق فتنه اوښارکښې راګيرکړې شو اوډلې ډلې شوى دى او هره ډله په خپلو خيالاتوکښې خوشحاله ده نودوى دا خلق پريخودل اودې ځاىٔ نه ئې هجرت اوکړو جدا جدا ځايونه ئې جوړکړل اوهلته ئې استوګنه شروع کړه اود الله ﷻ عبادت کښې په يوشان اخلاص سره مشغول شو. د مونځونوپابندى د زکوة ورکولوکښې لګياشو اود هغوى نه ځان له اوسيدل. تردې چه يوسرکش بادشاه ته د دې الله والا ډلې پته اولګيده. هغه دوى له خپل سړى راوليګل او هغوى ئې پوهه کړل چه تاسو هم مونږ سره يوځاىٔ شئ او بت پرستى شروع کړئ دې ټولو بالکل انکار اوکړوچه مونږ نه دا نه کيږى چه د الله ﷻ وحده لاشريك له نه بغيرد بل چا عبادت اوبندګى اوکړو.بادشاه اووئيل که تاسوته دا منظورنه وى نوزه به تاسو قتل کړم. جواب ملاوشو چه څه کولې شې اوکړه خو مونږ دين نه شوپريخودې. دې ظالم خندقونه اوکنستل اور ئې بل کړو اودا ټول ښځې سړى اوماشومان ئې راجمع کړل اود هغه خندقونو په غاړونى اودرول اووئيل وائې دا آخرى سوال اوجواب دې. آيا بت پرستى قبلونى که په اورکښې غورزيدل قبلوئى. هغوى وئيل مونږ ته سوزيدل اومره کيدل قبول دى خو وړو وړو ماشومانو چغې صورې شروع کړې مشرانوهغوى پوهه کړل چه بس د نن نه پس به اور نه وى. مه ويريږئ اود الله ﷻ نوم واخلئ ورداننګئ. نو ټولو وراودانګل په هغوى باندې څه تاوْ هم نه وه راغلې چه الله ﷻ دهغوى روحونه قبض کړل او اورد خندقونونه بهر راووتلو اودا بدکرداره سرکش چه څومره وو راګيرئې کړل او ټول ئې اوسوزول. ددې خبر په دې آياتونو ﴿قتل﴾الخ کښې دې. نو په دې وجه د فتنوا معنى شوه سوزول.نو فرمائي چه دې خلقو مسلمانان ښځې اوسړى اوسوزول که هغوى توبه اونه کړه يعنې دخپل دې کار نه منع نه شو او پخپلو کړوباندې پښيمانه هم نه شو نود هغوى دپاره دوزخ دې او د سوزيدلوعذاب دې دې د پاره چه بدله هم د هغوى د عمل په شان وى. حضرت حسن رحمه الله فرمائي چه الله ﷻ ديرلوئ او بزرګ اواوچت رحم اوکرم اومهربانئى ته اوګوره چه کوموبدکاروهغه ګران بندى ګان پداسې بدترين عذابونوکښې اووژل هغوى ته هم الله ﷻ د توبه وائى اوهغوى سره هم دمغفرت اوښنې وعده کوى. اې الله مونږ ته هم د خپلو وسيع رحمتونونه پوره حصه راکړې. آمين.

| إِنَّ الَّذِينَ | آمَنُوا وَعَمِلُوا | الصَّالِحَاتِ | لَهُمْ | جَنَّاتٌ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک | دى هغوئ دپاره | باغونه |
| بيشکه چاچې ايمان راوړې دې او نيک عملونه ئې اوکړل هغوئ دپاره | | | | |

| تَجْرِي | مِن تَحْتِهَا | الْأَنْهَارُ | ذَٰلِكَ الْفَوْزُ | الْكَبِيرُ ۝ | إِنَّ بَطْشَ | رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې بهيږى به | لاند دهغې نه | نهرونه | دا کاميابى ده | لويه | بيشکه نيول | درب ستا |
| باغونه دى | چې دهغې لاندې به ولې بهيږى | دا ډيره لويه کاميابى ده | بيشکه ستا درب نيول ډير | | | |

| لَشَدِيدٌ ۝ | إِنَّهُ هُوَ | يُبْدِئُ | وَيُعِيدُ ۝ | وَهُوَ الْغَفُورُ |
|---|---|---|---|---|
| ډير سخت دى | بيشکه هم هغه | په اول خل پيدا کول کوى | او دوباره به ئې هم کوى | او هغه ښنونکې دې |
| سخت دى | الله ﷻ په ړومبى ځل هم پيدا کول کوى | اودوباره به هم پيدا کول کوى | او هغه ښنونکې | |

الْوَدُوْدُ ۝ ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيْدُ ۝ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ۝

محبت کونکي دي | خاوند دعرش دي | لوئي دي | کونکي دي | هغه کار لره چي وي غواړی |

او مينه کونکي دي | دعرش خاوند دي | لوئي ذات دي | .....څه چي غواړی هغه کوی

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْجُنُوْدِ ۝ فِرْعَوْنَ وَثَمُوْدَ ۝ بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

ايا راغلي دي تاته | خبر | دلښکرو | دفرعون او دثمود | بلکه هغه کسان | چي کفر ني کړي دي |

ايا تا د لښکرو قصي اوريدلی دی ؟| دفرعون او د (قوم د) ثمود د (لښکرو) بلکه کافران

فِيْ تَكْذِيْبٍ ۝ وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ مُّحِيْطٌ ۝ بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ

(حق ته) په دروغ ونيلو کښي اخته دي | او الله | چاپيره ددوئ نه | احاطه کونکي دي | بلکه دا قران دي

په انکار کښي (غافل) پراته دي| او الله ﷻ هر طرفته دوئ راګير کړی دي| په اصل کښي دا قران پاک

مَّجِيْدٌ ۝ فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ۝

لوئي دي | (پروت دي) په لوح محفوظ کښي |

د لوئي شان کتاب دي اچي په لوح محفوظ کښي سنبال دي

قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ جَنّٰتٌ

**د جنت نهرونه:-** دخپلو دښمنانو انجام بيانولو سره دخپلو دوستانو نتيجه بيانوی چه دهغوی دپاره جنتونه دی دکومود لاندي چه نهرونه روان دی. د دوی په شان کاميابی به نوره چاته ملاويږی. بيا فرمائی ستاد رب نيول ډيرسخت دی. هغه به خپل دا دښمنان کوم چه رسولان دروغ ګڼړی اود هغوی په نافرمانو کښي اخته دی په ډير طاقت سره داسي راګير کړی چه د هغوی د پاره به د خلاصی هيڅ لار باقی پاتي نه شی.

قوله تعالي:- ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيْدُ ۝

**الله ﷻ ډيرو قدرتونو والا دي:-** هغه د ډيرو قوتونو مالك دي. څه چه ني اوغوښتل وني کړل څه چه غواړی هغه په يوساعت کښي کيږی. دهغه قدرتونو طاقتونو ته اوګوره چه هغه تاسو اول هم پيدا کړني او بيا د رژلو نه پس به مو دوباره بيارا پيدا کوی هغه نه څوك بندولي شی نه څوك وړاندي راتللي شی اونه څوك وړاندي کيدي شی. هغه د خپلو بنديګانو ګناهونه معاف کونکي دي خو په دي شرط چه د هغه طرف ته تيټ شي او توبه اوکړی اود هغه په وړاندي پوزه اومږی. نو بيا که هرڅنګه خطاګاني وی په يودم کښي معاف کولي شی. خپلو بنديګانو سره هغه مينه اومحبت ساتی هغه د هغه عرش والا دي کوم چه د ټولو نه اوچت دي اود ټولو مخلوقاتو د پاسه دي. دمجيد دوه قراءتونه دی د دال پيش هم اود دال زير هم. په پيش سره د الله ﷻ صفت جوړيږی اوپه زيرسره د عرش صفت دي. د دواړو معني بالکل صحيح اوټيك پريوځي. هغه چه د کوم يو کار کله اراده اوکړی په کولوئی قدرت لری. دهغه عظمت ،عدالت د حکمت په بنياد نه څوك بندولي شی اونه هغه نه څوك تپوس کولي شی. صديق اکبر ؓ ته د هغه په هغه بيمارنی کښي په کومه کښي چه هغه وفات کيږی خلق وائی چه چرته طبيب ته کتلي ئی. وني فرمائيل او، تپوس ني اوکړو چه څه جواب ني درکړو وني فرمائيل جواب ني راکړو (فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ۝) بيا فرمائی چه تاته څه خبرهم شته چه په فرعونيانو او ثموديانو باندي کوم کوم عذابونه راغله. څوك هم داسي نه وو چه دهغوی ني څه امداد کړي وي اونه تري چا هغه عذاب اخوا کړي شو. مطلب دا چه د هغه نيول ډير سخت دی کله چه هغه يو ظالم راونيسی نو په سختئی او په ډير زبردست نيولو سره ني راګيروی.

**فائده:-** ابن ابی حاتم کښي دي رسول الله ﷺ تشریف اورلو چه هغوی ﷺ واوریدل چه یوه بی بی د قرآن پاك دا آیت لولی ﴿هَلْ أَتٰكَ حَدِيثُ الْجُنُودِ﴾ حضور ﷺ اودریدو او غوږ نې کیخودو اوونی فرمائیل ﴿نعم قدجآءنی﴾ یعنی اوماته هغه نبرونه راغلې[1] یعنی د قرآن پاك د دې آیت جواب نې ورکړو چه تاته د فرعونیانو اوثمود یانو خبر رسیدلې دې؟ بیا فرمائی چه کافر په شك شبه اوکفر اوسرکشئی کښې دی.الله ﷻ په هغوی قادر دې نه به هغوی د هغه نه اورك شی اونه به هغه عاجز کړې شی. بلکه دا قرآن د عزت اوکرامت والا دې او په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې دې. د اوچتومرتبو فرښتوسره دې. د زیاتی او کمی نه پاك اود سرنه ترپښوپورې محفوظ دې نه په دې کښې څه بدلون شته اونه تحریف.

**قوله تعالی:-** ﴿فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ﴾

**لوح محفوظ چرته دې:** انس ﷺ فرمائی چه دالوح محفوظ د اسرافیل ﷺ په تندی باندې دې. عبدالرحمن بن سلمان رحمه الله فرمائی چه په دنیاکښې څه اوشو روان دی کیږی یا به راتلونکی وخت کښې کیږی هغه ټول په لوح محفوظ کښې موجود دی اولوح محفوظ د حضرت اسرافیل ﷺ د دواړو سترګو په وړاندې دې. خوچه ترکومې هغه ته اجازت نه ملاویږی هغه دا کتلې نه شی.دحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د لوح محفوظ په تندی باندې دا عبارت دې هیڅ څوك معبود نشته بغیرد الله ﷻ نه هغه یوازې دې د هغه دین اسلام دې محمد ﷺ د هغه بنده اود هغه رسول دې. چا چه په الله ﷻ باندې ایمان راوړو اود هغه وعده نی رښتونې اوګنړله اودهغه درسولانوتابعداری اوکړه الله ﷻ به هغه جنت کښې داخل کړی.فرمائی چه دا لوح محفوظ دمرغلرو دې د دې اوږدوالې د آسمان اوزمکې دمینځ برابردې اود دې پلنوالې دمشرق اومغرب برابردې.د دې دواړه غاړې د مرغلرو او یاقوتو دی. د دې دواړه پټې د سرویاقوتودی.دهغه قلم د نوردې د هغه کلام عرش سره تړلې دې. دهغې لیکل د نور دی. الله ﷻ هره ورځ درې سوه شپیته ځل هغې ته ګوری.هغه پیداکوی رزق ورکوی وژل کوی ژوندی کول کوی عزت ورکوی ذلت ورکوی اوڅه چه غواړې کوی.([2])

﴿الحمدلله﴾ د سورت بروج تفسیر ختم شو.

## ﴿تفسیر سورت طارق﴾

**د سورت تعارف:-** مسنداحمد کښې دی چه خالدبن ابی حبل ﷺ عدوانی د ثقیف قبیلې د مشرق طرف ته رسول الله ﷺ لرګی ته یالندې ته اړه لګولې دا پوره سورت لوستلوسره واوریدو هغوی د خلقو نه د امداد پاره دلته راغلی وو. حضرت خالد ﷺ دا یادکړو کله چه دې ثقیف له راغلو نوثقیف د هغه نه تپوس اوکړودا څه وانی دې هم دغه وخت کښې مشرك وو.هغوی بیان کړو نوچه کوم قریش هلته وو د یر تندئی سره نی اوونیل چه که دا حق وو نوتراوسه پورې به مونږ نه منلو([3]) نسائی کښې حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه حضرت معاذ ﷺ د ماښام په مانځه کښې سورت بقره یا سورت نساء اولوستلو نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه اې معاذ ﷺ ولې ته فتنه کښې اچول کوې؟آیاستاد پاره دا کافی وه نه چه ﴿ وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ﴾ او ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا﴾ اوداسې سورتونه دې لوستلې وې. ([4])

---

[1]) داروایت مرسل دې .

[2]) المعجم الکبیر:۱۲۵۱۱.

[3]) احمد:۳۳۵/٤، حسن بن مروان بن معاویه الفزاری صرح بالسماع عند الطبرانی فی الکبیر: ٤١٢٦.

[4]) ددې تخریج دسورة انفطار په اول کښې تیر شوې دې.

آياتونه ۱۷ — سورة طارق مكية وهي سبع عشر اٰية وركوعا واحدا — ركوع ګانې ۱

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې

وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ۙ﴿۱﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ

قسم دې په اسمان باندې | او راښكاره كيدونكې باندې په شپه كښې | او څه پته ده تاته |

قسم دې په اسمان او په هغه څيز چې د شپې ښكاره كيږي | او تاته څه معلوم دى چې

مَا الطَّارِقُ ۙ﴿۲﴾ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ۙ﴿۳﴾ اِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا

چې څه دې ښكاره كيدونكې دشپې | ستورې ځليدونكې دې | نشته يو نفس | چې نه وى په هغې باند

دشپې راتلونكې څيز څه دې ؟| هغه يو ځلانده ستورې دې | داسې يو نفس نشته چې په هغه يو نه يو

حَافِظٌ ؕ﴿۴﴾ فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ ؕ﴿۵﴾

| ساتونكې (نګران) | پس او دې ګوري | انسان | چې دڅه څيز نه | پيدا كړې شوې دې |

محافظ مقرر نه وى انو بنيادم دې اوګوري چې هغه د څه نه پيدا كړې شوې دې

خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ۙ﴿۶﴾ يَّخْرُجُ مِنْۢ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَآئِبِ ؕ﴿۷﴾

پيدا كړې شوې دې | داوبو ټوپ وهونكو نه | چې راوځي | دمنځ دشا | او دسينې دهډوكى نه

هغه ديو ټوپ وهونكو اوبو نه پيدا كړې شوې دې | چې د ملا او د سينې دمينځ نه راوځي

اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ ؕ﴿۸﴾ يَوْمَ

بيشكه چې هغه (خالق) | په دوباره پيدا كولو دهغه (انسان) باند | خامخا قادر دې | په كومه ورځ |

بيشكه الله ﷻ دده په دوباره پيدا كولو پوره پوره قدرت لرى | ............په كومه ورځ

تُبْلَى السَّرَآئِرُ ۙ﴿۹﴾ فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ وَّلَا نَاصِرٍ ؕ﴿۱۰﴾

چې به ظاهرولې شي | پټ رازونه | پس نه به وى هغه لره | څه طاقت | او نه مددګار |

چې پټ رازونه ښكاره كړې شي | نو نه به دده خپل طاقت وى او نه به ئې څوك مددګار وى

قوله تعالى:- وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ۙ

دستوروقسم: الله ﷻ د آسمانونو او دهغې دروښانه ستورو قسم خورى. دطارق تفسيرنى پرقيدونكى ستورى سره كړې دې. وجه نى داده چه د ورځې پټيږى او دشپې ښكاره كيږى. يو حديث شريف كښې دى چه رسول الله ﷺ منع فرمائيلى دى دينه چه څوك خپل كورته د شپې په وخت كښې بې خبر راشى(۱) دلته هم لفظ طروق دې. د حضور ﷺ په يوه دعاكښې هم د طارق لفظ راغلې دې(۲) ثاقب وائى پرقيدونكى رڼاكونكى ته چه شيطان پرې ويشتلې شى او هغه سوزوى. په هرسړى باندې دالله ﷻ د طرف نه يو محافظ مقرر دې چه هغه د آفتونونه بچ كوى. لكه چه بل ځاى ارشاد دې ﴿لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ

---

(۱) صحيح بخارى كتاب العمرة باب لا يطرق اهله اذا بلغ المدينة: ۱۸۰۱، صحيح مسلم: ۷۱۵،

(۲) احمد: ۴۱۹/۳، وسنده حسن.

﴿يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهِۦ يَحۡفَظُونَهُۥ مِنۡ أَمۡرِ ٱللَّهِ﴾ وراندي روستونه په نمبرنمبر راتلونکي فرښتي مقرردي چه د الله ﷻ په حکم باندې د بنده حفاظت کوی بیاد انسان د کمزورتی بیان کولي شی چه ګوره دده اصل څه دی؟ او لکه چه په دې کښې ډېرې باریکئی سره د قیامت یقین ورکړې شوې دې چه په اول پیداکولو باندې قادردې نو هغه به په واپس کولو ولې قادر نه وی.

بل ارشاددې ﴿وَهُوَ ٱلَّذِي يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ وَهُوَ أَهۡوَنُ عَلَيۡهِ﴾ یعنی چاچه په اول خل پیداکړی هم هغه به نی واپس راګرځوی اوداپه هغه باندې ډېرآسان دی. انسان د ټوپ وهونکی اوبونه یعنی دښځې اوسړی د منئی نه پیداکړې شوې دې چه د سړی د ملانه او ښځې د سینې نه راوځی. د ښځې دااوبه د زیړ رنګ او نرئی وی اود دواړونه د ماشوم پیدانش کیږی تریبه وانی د بار ځائ ته. د اوړو نه واخله ترسینې پورې ځائ ته هم وئیلې شی او د مرئی نه لاندې ځائ ته هم وانی.دسینې د پاسه حصې ته هم وئیلې شی او لاندې طرف ته څلوروپښتوته هم وئیلې شی. دواړو سینو دواړو پښو او دواړو سترګو په مینځ ته هم وئیلی شی.د زړه نچوړولو ته هم وانی.دسینې او شا مینځ ته هم وئیلې شی.هغه د دې په واپس ګرځولو باندې قادردې یعنی راوتلې اوبه د هغې ځائ ته واپس رسولوباندې. اودا مطلب چه دې دوباره راپیداکول اود آخرت طرف ته په واپس ګرځولوباندې هم. روستونې قول ښه دې. او دا دلیل څو خل بیان شوې دې.

بیافرمائی چه د قیامت په ورځ به پټ رازونه کولاوکړې شی رازونه به ښکاره شی پټې خبرې به هم راوځی.رسول الله ﷺ فرمائی چه د هرغدار(وعده ماتونکې او خیانت کونکې)د پنړو په مینځ کښې د هغه دغدر (وعدې ماتولو) جهنډا به ورخښولې شی او اعلان به کیږی چه دا د فلانکی خوئ د فلانکی دغدارئ(وعدې ماتولو یاخیانت کولو) دی([1]) په هغه ورځ به نه پخپله انسان ته څه قوت حاصل وی او نه به د هغه څوك امدادی اودریږی.یعنی نه به پخپله ځان د عذابونونه بچ کړې شی اونه به بل څوك وی چه هغه د الله ﷻ د عذابونونه بچ کړې شی.

| وَٱلسَّمَآءِ | ذَاتِ ٱلرَّجۡعِ ۝ | وَٱلۡأَرۡضِ | ذَاتِ ٱلصَّدۡعِ ۝ |
|---|---|---|---|
| قسم دې په آسمان | باران ورونکی باند | او په زمکه | چاودونکی باند (په تخم راختلو سره) |
| قسم دې چې په آسمان بارانونه وروی | او په زمکه چې (شینکی ته) اوچوی | | |

| إِنَّهُۥ | لَقَوۡلٞ | فَصۡلٞ ۝ | وَمَا هُوَ | بِٱلۡهَزۡلِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه دا قرآن | خامخا وینا ده | جدا کونکی (دحق اوباطل) | اونه دې هغه | بې فائدې |
| بیشکه دا قرآن پاك(دحق او دباطل ترمینځه)فیصله کونکې کلام دې | اودا څه عبث خبره نه ده | | | |

| إِنَّهُمۡ | يَكِيدُونَ | كَيۡدٗا ۝ | وَأَكِيدُ |
|---|---|---|---|
| بیشکه دا کافران (دمکې) | تدبیرونه (چلونه) کوی | په چلونو کولو سره | اوزه تدبیر کوم |
| هغه خلق په خپل خپل تدبیر کښې لګیا دی | ..................اوزه (الله ﷻ) هم تدبیر کوم | | |

| كَيۡدٗا ۝ | فَمَهِّلِ | ٱلۡكَٰفِرِينَ | أَمۡهِلۡهُمۡ | رُوَيۡدَۢا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په تدبیر کولو سره | نو مهلت ورکړه | دې کافرانو ته | مهلت ورکړه دوئ ته | (مهلت) لږ |
| پس ته کافرانو ته (لږنور) مهلت ورکړه او څه موده دوئ پرېږده | | | | |

[1] صحیح بخاری کتاب الجزیة باب اثم الغادر للبر والفاجر : ۳۱۸۸، صحیح مسلم:۱۷۳۵.

**قوله تعالی:- إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ**
د قرآن پاك فيصلې په حق دي:-د رجع معنى باران،اوريخى د باران والا.وريدونكي،هركال د بنديگانو رزق راكرخول د كوم نه بغيرچه دوى اود دوى خناورهلاكيږي.د نمر سپوږمئ اوستورو اخوادېخوا واپس كول روايت دي. زمكه چوى داني وابنه كيا راوخي.دا قرآن حق دې دعدل حكم دې،داخه بې كاره قصه خبرې نه دي.كافران دا دروغ كنړي د الله ﷻ د لار نه خلق منع كوي.په قسم قسم خبروسره خلق دقرآن پاك خلاف راپاسوي. نواې نبي دوى ته لږشان مهلت وركړه بيا به دوى ډير زر اووينې چه په څنګه څنګه خرابو عذابونو كښې دوى راګيرېږي. بل ځاى ارشاددې ﴿نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ يعنى مونږ به دوى ته هسې فائده وركړو بيا به دوى د ډير سخت عذاب طرف ته بې بس كړو.

﴿الحمدلله﴾ د سورت طارق تفسير ختم شو.

............................

**﴿تفسير سورت اعلى﴾**

د سورت تعارف:- د دې سورت د مكى كيدو دليل داحديث دې كوم چه په صحيح بخارى كښې دې. حضرت براء بن عازب ﷺ فرمائى د رسول الله ﷺ صحابه كرامو ﷺ كښې د ټولونه اول مونږ له حضرت مصعب بن عمير ﷺ او حضرت ابن ام مكتوم ﷺ راغلو مونږ ته ئې قرآن پاك خودل شروع كړو. بيا حضرت عمار ﷺ حضرت بلال ﷺ اوحضرت سعد ﷺ راغلو. بياحضرت عمر ﷺ خان سره شل صحابه كرام ﷺ راوستل بيا حضور ﷺ تشريف راوړو، مانه دى كتلې چه د مدينې والا په بل څه باندې دومره خوشحاله شوې وى لكه چه په دې باندې خوشحاله شو تردې چه واړه واړه بچي او نابالغ هلكانو هم دا وئيل چه دا دې رسول الله ﷺ چه تشريف ئې راوړو. دحضور ﷺ د راتلونه وراندې مادا سورت سبح اسم د دې په شان نورو سورتونوسره ياد كړې وو.([1]) مسند احمد كښې دى چه حضور ﷺ ته دا سورت ډير خوښ اوګران وو([2]) د بخارى اومسلم په حديث كښې دى حضور ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته اوفرمائيل چه سورت ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ او ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا﴾ او ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ﴾سره ولې مونځ اونه كړو؟([3]) مسند احمد كښې روايت دې چه حضوررسول الله حضرت محمد ﷺ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ او ﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ﴾ به د دواړو اخترونو په مونځونوكښې لوستلو اود جمعه په ورځ كه اختر به وو نو په اختر او جمعه دواړو كښې به ئې هم دا دواړه سورتونه لوستل. ([4]) داحديث په صحيح مسلم كښې هم دې. ابوداؤد ترمذى او نسائى كښې هم دې. ابن ماجه وغيره كښې هم نقل دې.

مسنداحمد كښې د حضرت عائشه صديقه ﷺ نه روايت دې چه د وترو په مونځ كښې به رسول الله ﷺ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ او ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ او ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ لوستلو. په يو روايت كښې دومره زياتوالي هم شته چه سورت معوذتين يعنى ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ به ئې هم لوستلو([5]) داحديث هم د ډيرو صحابه كرامو ﷺ نه په ډيرو طريقو سره مروى دې. كه مونږ ته د كتاب

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسر سورة سبح اسم ربك الاعلى : ۴۹۴۱.
[2]) احمد :۹۶/۱.
[3]) ددې تخريج په سور انفطار كښې تير شو بدې.
[4]) صحيح مسلم كتاب الجمعة باب ما يقرأ فى صلاة الجمعة: ۸۷۸، ابوداود: ۱۱۲۲. ترمذى :: ۵۳۳.
[5]) ابوداود كتاب الوتر باب ما يقر فى الوتر :۱۴۲۳، وهو صحيح : ۱۴۲۴، ترمذى : ۴۶۳. ۴۶۳.

د اوږدیدو ویره نه وه نو دا سندونه اود دې ټولو روایتونوالفاظ به مودلته راوړې وو خوچه څومره په اختصار باندې بیان کړې شو هم دومره کافي دی. والله اعلم.

| اياتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | سورة الاعلیٰ مکیة وهي تسع وعشرة اٰیة ورکوعًا واحدًا | | |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ١٩ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ١ |

سَبِّحِ اسۡمَ رَبِّكَ الۡاَعۡلَى ۙ الَّذِیۡ خَلَقَ

پاکي بیان کړه | دنوم درب خپل | چې دټولو نه اوچت دې | هغه رب | چې پیدا ئې کړو (هر څیز) |

دخپل رب دنوم پاکي بیان کړه | .........چې اوچت دې | ..................هغه ذات چې مخلوق ئې پیدا کړو

فَسَوّٰى ۙ وَالَّذِیۡ قَدَّرَ فَهَدٰى ۙ وَالَّذِیۡۤ

نو برابر ئې کړو هغه | او هغه رب | چې تقدیر ئې جوړ کړو | بیا ئې لار اوښودله | او هغه رب |

نو برابر ئې کړو | او هغه ذات چې دهر څیز اندازه ئې مقرر کړه | بیا ئې لاره اوخودله | اوهغه ذات

اَخۡرَجَ الۡمَرۡعٰى ۙ فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحۡوٰى ؕ سَنُقۡرِئُكَ

چې راویې ویستل | بوټی (واښه) | نوکړل ئې هغه | وچ | تور | مونږ به لولوو (یعنی اوروو) تاته

چې ګیاه ئې رازغون کړه | ..................بیا ئې هغه تور بوس کړل | ..........مونږ به تاته (قرآن پاک) لولو

فَلَا تَنۡسٰۤى ۙ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ یَعۡلَمُ الۡجَهۡرَ

بیا به ته نه هیروې هغه | مګر هغه | چې اوغواړي الله | بیشکه هغه | پوهیږی | په ښکاره |

نوستانه به نه هیریږی | مګر هغه څه چې الله ﷻ ئې اوغواړي | .......هغه په څرګنده هم پوهیږی

وَمَا یَخۡفٰى ؕ وَنُیَسِّرُكَ لِلۡیُسۡرٰى ۚۖ فَذَكِّرۡ

او په هغې چې پټ وی | او مونږه اسانتیا درکوو تاته | طرف داساني طریقي ته | نونصیحت کوه ته |

او په هغه څه هم چې پټ دی | اوتاته به داسان دین لاره اسانوو | ..........................نو ته نصیحت کوه

اِنۡ نَّفَعَتِ الذِّكۡرٰى ؕ سَیَذَّكَّرُ مَنۡ یَّخۡشٰى ۙ وَیَتَجَنَّبُهَا

که فائده ورکوی | نصیحت | نصیحت به قبلوی | هغه څوک چې یریږی | او ځان به ساتی ددې نه |

که نصیحت څه فائده ورکوی | څوک چې ویریږی نو هغه به نصیحت قبلوی | او څوک چې بدنصیبه دی

الۡاَشۡقَى ۙ الَّذِیۡ یَصۡلَى النَّارَ الۡكُبۡرٰى ۚ ثُمَّ لَا یَمُوۡتُ فِیۡهَا

لوئ بدبخته سړې | هغه بدبخته | چې ننوځي به | وور | لوئ ته | بیا به نه مری | په هغې کښې |

هغوئ به ترې نه ډډه کوی | هغه کس چې لوئې اور ته داخلیږی | ..................بیا به په کښې نه مری

وَلَا یَحۡیٰى ؕ

اونۀ به ژوندې کیږی |

اونه رغیږی |

**قوله تعالی:- سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۙ**

**دخالق قدرتونه او د الله ﷻ دتسبيح حکم** :مسند احمد کښې دی عقبه بن عامر جهني ﷺ فرمائي چه کله آيت ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ نازل شو نورسول الله ﷺ اوفرمائيل ته دا په رکوع کښې کړه([1]) کله چه ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ نازل شونو حضور ﷺ اوفرمائيل دا په خپله سجده کښې کړه. د ابوداؤد وغيره په حديث کښې دی چه کله رسول الله ﷺ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾لوستلو نو وئ فرمائيل(سبحان ربي الاعلى)([2]) د حضرت علي ﷺ نه هم روايت دې د حضرت ابن عباس ﷺ نه هم روايت دې او چه کله به حضور ﷺ ﴿لَآ أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾لوستلو او آخرى آيت ﴿ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ﴾بانديې اورسيدلو نو فرمائيل به ئې(سبحانك وبلى)الله ﷻ دلته ارشاد فرمائي د خپل اوچت اوپالونکي د الله ﷻ د پاك نوم پاكي او تسبيح بيانوه چا چه ټول مخلوق پيداکړواوټولوله ئې ښکلې شکل اوصورت ورکړو. انسان ته ئې د نيك بختئ او بدبختئ څرګندونه اوکړه. څناور ته د څرن اودانو ټولولوغيره. بل ارشاددې﴿رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾يعنى زمونږ رب هغه دې چا چه هرڅيز له د هغه پيدائش ورکړو او بيائې لارخودنه اوکړه.دصحيح مسلم په حديث کښې دی چه دزمکې او آسمان دپيداکيدونه پنځوس زره کاله وړاندې الله ﷻ خپل مخلوق تقدير اوليکه اودهغه عرش په اوبوباندې وو([3])کومونه چه هرقسم بوټي اوفصلونه راووتل بيا ئې داشنې ګياه ګاني اوچې اوتوررنګ کښې کړې.بعضې دعربوکلام پيژندونکو خلقو وئيلي دی چه دلته کوم بعضې الفاظ ذکر کښې موخردی د معنې په لحاظ سره مقدم دی. يعنى مطلب دا چه کوه ذات د شين رنګ وابنه تور ښين پيداکړه بيائې هغه اوچ کړل نودامعنی هم جوړيدې شی خو ويره ئې نه ټيکرې خکه چه د مفسرينود اقوالوخلاف ده. بيافرمائي اې محمد ﷺ مونږ به تاته داسې خودل اوکړو کوم چه به ته هيرنه کړې. اوکه پخپله الله ﷻ درته يوآيت هيرول غواړي نوهغه بله خبره ده. امام ابن جرير ﷺ خو هم دا مطلب خوښوی اود دې آيت مطلب دا دې چه کوم قرآن مونږ تاته لولوهغه ته مه هيروه.اوچه کوم مونږ پخپله منسوخ کړو دهغې خبره بله ده.الله ﷻ ته د بنديګانو پټ اوښکاره اعمال احوال او عقيدې ټولې ښکاره دی. مونږ به په تابانديې نيې خبرې اود ښيګړې خبرې او شرعی امر آسان کړو. نه به په هغې کښې څه کوګوالې وی نه سختی اونه جرم. ته نصيحت کوه که نصيحت فائده ورکړی.دې نه معلومه شوه چه نالائقوته نه دی خودل پکارلکه څنګه چه اميرالمؤمنين حضرت علي ﷺ فرمائي که ته نوروسره هغه خبرې کوې چه دهغوی په عقل کښې نه راخی نو نتيجه به دا وی چه په هغوی به ستاښې خبرې هم بدې لګی او د فتنې سبب به شی.بلکه خلقو سره د هغوی د پوهې مطابق خبرې اترې کوه چه خلق الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ دروغ نه ګڼری.

بيافرمائي چه دې نه به نصيحت هغه خلق حاصل کړی د چا په زړه کښې چه د الله ﷻ ويره وی څوك چه د هغه په ملاقات باندې يقين لری اودې نه هغوی عبرت نه شی حاصلولې چه بدبخت وی دوزخ ته تلونکې وې چرته چه نه د آرام والا ژوندون دې اونه ئې مرګ بلکه هغه دهميشه عذاب او د مودام د پاره بدې دد پدې کښې قسم قسم عذابونه او ډيرې خرابې سزاګاني دی.مسند احمد کښې دی چه کوم اصلی دوزخيان دی هغوی ته خو به نه مرګ راځی او نه د کاروالا ژوندون اوچه کوموخلقو سره د الله ﷻ اراده د رحمت دد هغوی به په اور کښې پريوتوسره مړه شی بيابه سفارشی خلق لاړشی اوهغوی به راخلاص کړی اودحياة په نهر کښې به ورواچولې شی.د جنتی نهرونواوبه به په دوی باندې واچولې شی

---

[1]) ابوداود كتاب الصلاة باب ما يقول الرجل في ركوعه وسجوده: ۸٦۹، وسنده صحيح : ابن ماجة : ۸۸۷، احمد: ۱۵۵/٤.

[2]) ابوداود كتاب الصلاة باب الدعاء في الصلاة: ۸۸۳.

[3]) صحيح مسلم كتاب القدر : باب حجاج ادم وموسى : ۲٦۵۳، ترمذی : ۲۱۵٦، احمد: ۱٦۹/۲.

اوهغوی به داسې راژوندی شی لکه دانه چه د ناوې په غاړه باندې راټوکيږي. اول شنه شی بيا زيړه او بيا راشنه شی. خلقو ونيل چه حضورﷺ خوداسې خبرې کوی لکه چه د ځنګل نه هم واقف وی[1] دا حديث په مختلفوالفاظوسره په ډيروکتابونوکښې ذکردې.قرآن کريم کښې يوبل ځای ارشاد دې ﴿وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ﴾ يعنی دوزخيان خلق به په چغو چغو وائی اې ددوزخ داروغه فرښتې الله ﷻ ته اووايه چه مونږ له مرګ راکړی. جواب به ملاوشی چه اوس خو به تاسو په دې کښې پراته ئې. بل ځای ارشاد دې ﴿لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا ۚ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ كُلَّ كَفُوْرٍ﴾ نه به هغوی له مرګ راځی اونه به عذاب کميږی نور هم د دې معنې آياتونه دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَدْ اَفْلَحَ | مَنْ | تَزَكّٰى | وَذَكَرَ |
| بيشکه چی کامياب شو | هغه څوک | چی پاکوالی ئې اختيارکړو | او ياد ئې کړو |
| هغه څوک کامياب شو | ........چاچې ځان پاک کړو | ..........اودخپل رب نوم ئې | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اسْمَ رَبِّهٖ | فَصَلّٰى | بَلْ | تُؤْثِرُوْنَ | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةُ | |
| نوم درب خپل | بيا ئې مونځ اوکړو | بلکه تاسو | غوره کوئ | ژوند ددنيا | حالانکه آخرت | |
| يادولو | اومونځ ئې کولو | بلکه تاسو ددنيا ژوند غوره کوئ | ..................حال دا دې چې آخرت | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خَيْرٌ | وَّاَبْقٰى | اِنَّ هٰذَا | لَفِي الصُّحُفِ الْاُوْلٰى | |
| بهتر دی | او باقی پاتې کيدونکې دی | بيشکه دا خبره | خامخا په صحيفو رومبنو کښې وه | |
| ډير پائيدار دی | ...................بيشکه دا مضمون په پخوانو صحيفو کښې هم بيان شوې وو | | | |

| | | |
|---|---|---|
| صُحُفِ | اِبْرٰهِيْمَ | وَمُوْسٰى |
| په صحيفو دابراهيم | او دموسی کښې | |
| (يعنی) دابراهيم ؑ او موسی ؑ په صحيفو کښې | | |

**قوله تعالیٰ:- قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى**

**کامياب څوک دی:** الله ﷻ فرمانی چاچه د رذيلواخلاقونه ځان پاک کړود اسلام داحکامو تابعداری ئې اوکړه مونځ ئې په صحيح وخت باندې صرف دالله ﷻ د خوشحالولو او د هغه د رضا د پاره قايم کړو هغه نجات او خلاصې بيامومندو.رسول اللهﷺ ددې آيت تلاوت کولوسره اوفرمائيل چه کوم سړی د الله ﷻ د وحده لاشريك دوحدانيت ګواهي ورکړی د هغه نه بغيرد بل چا عبادت اونه کړی اوزما رسالت اومنی اود پنځووختو مونځونوپوره شان سره حفاظت اوکړی هغه خلاصې بيامومندو. ([2]) (بزار)

ابن عباس ؓ فرمائی چه دې نه مراد پنځه وخته مونځ دی.حضرت ابوالعاليه ؒ يوځل ابوخلده ؒ ته اوفرمائيل چه صباله کله عيدګاه ته لاړې نوماسره ملاوشه نو لاړ شه. کله چه زه لاړم نوماته ئې اوونيل څه دې خوړلې دی؟ ما ونيل او ونی فرمائيل اودې لامبل؟ماونيل او. ونی فرمائيل زکوة فطر دې اداکړو؟ماونيل او. ونی فرمائيل چه بس هم دا مې ونيل چه په دې آيت کښې هم دا مراد دې.اهل مدينه د فطره او اوبوڅکولونه غوره بله صدقه نه پيژندله. حضرت عمر بن عبدالعزيز ؒ به هم خلقو ته دفطره اداکولوحکم کولو بيا به ئې هم د دې آيت تلاوت کولو.حضرت ابوالاحوص ؒ فرمائی چه

[1]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب اثبات الشفاعة واخراج الموحدين من النار: ١٨٥.

[2]) مسند البزار : ٢٢٨٤، مجمع الزوائد:٧/١٤٠.

تاسو کښې څوك د مانخه اراده اوکړې اوڅوك سوال کونکې راشي نو هغه ته خيرات ورکړنې بيانې دا آيت تلاوت کړو.(۱)

حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه هغه خپل مال پاك کړو اوخپل رب ئې راضي کړو(۲) بيا ارشاد کولې شي چه تاسو ددنياژوندله د آخرت په ژوندباندې ترجيح ورکونې او په اصل کښې ستاسو مصلحت او ستاسوګټه اخروی ژوندله د دنياپه ژوندباندې ترجيح ورکولوکښې ده.دنياذليل ده فانی ده اوآخرت شريف دې باقی دې.يوعاقل داسې نه شي کولې چه فانی په باقی باندې اختيارکړې اود هغې په انتظام کښې پريوخی اود اخرت اهتمام او تيارې پرېږدی. مسنداحمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی دنيادهغه کور دې دچا چه په آخرت کښې کورنه وی.دنياد هغه مال دې د چا چه هلته مال نه وی. د دې په جمع کولوپسې هغوی لګی چه څوك بې وقوف وی.(۳) ابن جرير کښې دی چه حضرت عرفجه ثقفی رحمه الله داسورت د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه لوستلو کله چه دې آيت ته راورسيدو نو تلاوت ئې پريخودو اوخپلوملګروته ئې اوفرمائيل چه رښتيادی مونږ دنياله په آخرت باندې ترجيح ورکړې. خلق خاموش پاتې شو نوهغوی بيااوفرمائيل دا خکه چه مونږ د دنياليونی يو د دې ځای ښائست د دې ځای ښځو او د دې ځایٔ د خوراك څښاك څيزونه مونږ ليدلی او آخرت د سترګو نه پناه دې نومونږ دې مخامخ څيزونوله توجه ورکړه اود هغه ځای والا نه مو سترګې وارولې. ياخودا فرمان د حضرت عبدالله رضی الله عنه د عاجزئی په توګه دې يادجنس انسان باره کښې فرمائی. والله اعلم. رسول الله ﷺ فرمائی چا چه دنياسره محبت اوکړو هغه خپل آخرت ته نقصان اورسولو اوچاچه آخرت سره محبت اوکړو هغه دنياته نقصان اورسولو.تاسو اې خلقوا باقی پاتې کيدونکی ته په فناکيدنکی باندې ترجيح ورکړنې. (مسنداحمد)(۴) بيافرمائی چه د ابراهيم عليه السلام او حضرت موسی عليه السلام په صحيفوکښې هم دا وو. رسول الله ﷺ فرمائی چه دا ټول بيان په هغه صحيفوکښې هم وو. (۵) (بزار) نسائی کښې د حضرت ابن عباس نه دا روايت دې. او چه کله آيت﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰىٓ﴾ نازل شو نوونې فرمائيل دې نه مراد دې چه د يوبوج به بل نه اوچتوی سورت نجم کښې دی ﴿اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ بِمَا فِيْ صُحُفِ مُوْسٰى﴾ د آخری مضمون پورې ټول آياتونه يعنی دا ټول احکام په وړاندينوکتابونوکښې هم وو. دغه شان دلته هم مراد ﴿ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى﴾ دا آياتونه دی. بعضو پوره سورت ونيلې دې بعضو د﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ﴿بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى﴾ پورې ونيلې دې. ډير قوی هم دا معلوميږی. والله اعلم.

﴿الحمدلله﴾ د سورت سبح اسم تفسيرختم شو. الله ﷻ دې هرسړی له په دې د عمل کولوتوفيق ورکړی اود دوزخ د عذاب نه دې بچ کړی. آمين.

## ﴿تفسيرسورت غاشيه﴾

**د سورت تعارف:-** داحديث اول تيرشوې دې رسول الله ﷺ سبح اسم اوغاشيه به د اخترونو او جمعه په مانخه کښې لوستلو. موطاامام مالك رحمه الله کښې دی چه د جمعه په ورځ اول رکعت کښې سورت جمعه او دويم کښې ﴿ هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ﴾ لوستلو.(ابوداؤد) په صحيح مسلم ابن ماجه او نسائی کښې هم داحديث دې. (۶)

---

۱) الطبری : ۳۷٤/۲٤.
۲) الطبری : ۳۷٤/۲٤.
۳) احمد:۷۱/٦.
٤) احمد: ٤١٢/٤،
۵) مسند البزار : ۲۲۸٤
٦) صحيح مسلم كتاب الجمعة باب مايقر ل صلاة الجمعة : ۸۷۸، ابوداود : ۱۱۲۳. نسائی : ۱٤۲۳.

| ایاتونه | سورة الغاشيه مكية وهي ست وعشرون اٰية وركوعا واحدا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۲۶ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

هَلۡ اَتٰىكَ | حَدِيۡثُ الۡغَاشِيَةِ | وُجُوۡهٌ | يَّوۡمَئِذٍ | خَاشِعَةٌ

ایا راغلې دې تاته | خبر دخوریدونکې آفت | (بعضي) مخونه به | په دغه ورځ | یریدونکې وی |

(ائې پیغمبره) ایاتاته دچاپیره خوریدو واقعې (قیامت) څه خبر راغلې دې | ډیر مخونه به هغه ورځ ذلیله

عَامِلَةٌ | نَّاصِبَةٌ | تَصۡلٰى نَارًا | حَامِيَةً | تُسۡقٰى | مِنۡ عَيۡنٍ

مشقت کونکې | ستړې ستومانه به وی | سوزی به په اور | ګرم کنبې | څکولې کیږی به پرې | دچینې |

زبلې او ستړې وی | (داخلق به) بل شوی اور ته داخلیږی | چې د ویشیدونکې چینې نه به پرې اوبه

اٰنِيَةٍ | لَيۡسَ لَهُمۡ | طَعَامٌ | اِلَّا مِنۡ ضَرِيۡعٍ | لَّا يُسۡمِنُ

یشیدلې نه | نۀ به وی هغوئ لره | خوراك | سوا د ازغنې وچې ګیاه نه | چې نۀ به څربول کوی |

څکولې شي | بغیر دازغو د بوټی نه به دوی دپاره بل خوارک نه وی | ..........چې نه به پرې څربیږی

وَلَا يُغۡنِيۡ | مِنۡ جُوۡعٍ

اونۀ به دفع کوی | دلوږې نه | (

اونه به پرې لوږه تنده ختمیږی |

**قوله تعالی:- هَلۡ اَتٰىكَ حَدِيۡثُ الۡغَاشِيَةِ**

**قیامت پټونکې دې:-** غاشیه د قیامت نوم دې خکه چه هغه به په ټولوباندې راځی. ټول به راګیر کړې وی او هریو به پټ کړی. ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ چرته روان وو چه د یوې ښځې د قرآن پاك د لوستلو آواز راغلو حضور ﷺ اودریدو اوریدل نی. هغې هم دا آیت ﴿هَلۡ اَتٰىكَ﴾ اولوستلو آیا تاله د پټونکی قیامت خبر دررسیدلې دې؟ نو حضور ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل (نعم قد جآءنی) یعنی اوماته رارسیدلې دې[۱] په غه ورځ به ډیرخلق د ذلیل مخونووالا وی ښکته والې به په هغوی راوریږی د هغوی اعمال به غرق وی او لوئ لوئ اعمال به نی کړی وی سخت تکلیفونه نی اوچت کړې وو. هغوی به په سورکړې شوی اور کښې داخلیږی.

**قوله تعالی:- عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ**

یو خل عمر ﷺ یوخانقاه سره تیریدلو د هغه خائ راهب ته نی آواز ورکړو نو هغه حاضرشو، هغوی چه دې اولیدونو په ژړاشو. خلقو تپوس اوکړو حضرت څه خبره ده؟ نوونی فرمائیل د ده په کتو دا آیت رایاد شو چه عبادتونه به کوی خو آخر به دوزخ ته ځی. (۲) حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی دې نه مراد نصرانی دې(۳) عکرمه ﷫ او سدی ﷫ فرمانی چه په دنیاکښې د ګناهونوکار کولو او په آخرت کښې به د عذابونواو تکلیفونو وهل برداشت کوی. دوی به په سخت سورکړې شوی ګرم اور ته ځی چرته به چه بغیرد ضریع نه د خوراك هم بل څه نه ملاویږی. دا د دوزخ ونه به وی اود دوزخ کاڼړی به

---

[۱] ددې تخریج سورة البروج آیت: ۲۲ لاندې تیر شوې دې.
[۲] حاکم: ۵۲۲/۲،
[۳] صحیح بخاری کتاب التفسیر تحت سوره (هل اتاک)

وي. دا به د عفور زيلني وي او په هغې كښې به د زهرو ازغيژنه ميوه لګيدلې وي اودابه ډير خراب خوراك وي او ډير زيات بد به وي نه به اولږه ختموي اونه به نقصان لرې كوي.

| وُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍ | نَّاعِمَةٌ ۝ |
|---|---|---|
| (بعضې) مخونه به | په دغه ورځ | تازه وي |
| ډير مخونه به په هغه ورځ تازه وي | | |

| لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ۝ | فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۝ | لَّا تَسْمَعُ | فِيْهَا |
|---|---|---|---|
| كوشش خپل ته به خوشحاله وي | په جنت اوچت كښې به وي | نه به اوري هغه | په هغې كښې |
| پخپل عمل به خوشحاله وي | په اوچتو باغونو كښې به ناست وي | چې هيڅ عبث خبره به | |

| لَاغِيَةً ۝ | فِيْهَا | عَيْنٌ جَارِيَةٌ ۝ | فِيْهَا | سُرُرٌ مَّرْفُوْعَةٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| فضول خبرى | په هغې كښې به | چينه جاري وي | په هغې كښې به | تختونه اوچت وي |
| نه اوري | په هغې كښې به چينې بهيږي | په هغې كښې به اوچت اوچت تختونه وي | | |

| وَّأَكْوَابٌ | مَّوْضُوْعَةٌ ۝ | وَّنَمَارِقُ | مَصْفُوْفَةٌ ۝ |
|---|---|---|---|
| او پيالې به وي | كېښودلې شوي | او تكيه ګانې به وي | قطار په قطار لګيدلي شوي |
| اوپه سمون ايښى ګلاسونه به وي | او په قطارونو كښې ايښى بالختونه به وي | | |

| وَّزَرَابِيُّ | مَبْثُوْثَةٌ ۝ | أَفَلَا يَنْظُرُوْنَ | إِلَى الْإِبِلِ | كَيْفَ خُلِقَتْ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او فرشونه به وي | غوړيدلي شوي | ايا نو نه ګوري دا خلق | اوښانو ته | چې څرنګې جوړ كړې شول |
| او هر خواته غوړيدلي قالينونه به وي | ايا دوئ اوښ ته نه ګوري چې څنګه پيدا شوي دي | | | |

**قوله تعالى:- وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ۝**

**په نيكانو باندې انعامونه:** پورته د بدكارانو بيان اود هغوى د عذابونو ذكر شوې وونو دلته د نيكانو اود هغوى د ثوابونو ذكر كولې شي. فرمائي چه په هغه ورځ به ډير مخونه داسې هم وي په كومو چه به د خوشحالئې اوتازګئې آثار ښكاره وي. دوى به په خپلو عملونو خوشحاله وي د جنت په اوچتو بالاخانو كښې به وي په كوم كښې چه به هيڅ فضول خبره په غوږ كښې نه پريوځي. لكه چه فرمائي ﴿لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا اِلَّا سَلٰمًا﴾ پدې كښې به د سلامتيا اوسلام نه بغير بله څه خرابه خبره نه شي اوريدې. اوفرمائي ﴿لَا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ ۝﴾ نه په دې كښې بې هودګۍ شته اونه د ګناه خبرې.

بيا فرمائي ﴿ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا ۝ اِلَّا قِيْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ۝﴾ نه به په دې كښې فضول خبرې اوري نه بدې خبرې بغير د سلام او سلام نه به بل هيڅ نه وي. په دې كښې به بهيدونكې نهرونه وي دلته دا ده نكره د اثبات په سياق كښې هم يو نهر مراد نه دې بلكه صرف جنس نهر مراد دې يعنې نهرونه به بهيږي. رسول الله ﷺ فرمائي د جنت نهرونه د مشكو د غرونونه او د مشكو د غونډو نه راوځي (١) په دې كښې اوچت اوچت تختونه دي په كومو چه بهترين فرشونه دي او هغې سره حورې ناستې دي لكه چه دا تختونه ډير اوچت او ډير لوئ دي خو چه كله د الله ﷻ دوستان په هغې باندې كيناستل غواړي نو هغه به راټيټ شي د شرابو ډك جامونه به اخوا ديخوا ښه په طريقه لګيدلې وي څوك چه غواړي اود كوم قسم چه غواړي او

---

١) ابن حبان : ٧٤٠٨، وسنده حسن دوسرا نسخه: ٧٣٦٥.

په کومه اندازه باندې غوارې اخلې به اوځکې به. او تکیه ګانې دی په یو قطار کښې لګیدلې او یو خوا بل خوابهترین بسترې او باقاعده فرش خورکړې شوې دې.
ابن ماجه وغیره کښې حدیث دې رسول الله ﷺ فرمانی څوك شته چه تهبند اوتړی اود جنت تیاری اوکړی دهغه جنت د کوم اوړدوالې پلنوالې چه بې حسابه دې. دکعبه درب قسم چه دهغه یو پړقیدونکې نوردې هغه یوه خوزیدونکې شنکې دې هغه اوچت اوچت محلونه دی هغه بهیدونکې نهرونه دی هغه په کثرت سره ربنمینې جامې دی هغه پخې شوې تیارې میوې دی هغه د همیشه والی ځائ دې هغه سراسر میوه جات شینکې راحت اونعمت دې هغه تازه اواوچت ځائ دې. تولوخلق ونیل چه مونږ تول د دې خواهش لرو اود دې د پاره به تیاری کوو. ونی فرمانیل چه ان شاء الله ﷺ اووایئی. صحابه کرامو ﷺ ان شاء الله ﷺ اوونیل. (1)

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَفَلَا یَنۡظُرُوۡنَ | اِلَی الۡاِبِلِ | کَیۡفَ خُلِقَتۡ ﴿۱۷﴾ | |
| ایا نونهٔ کوری دا خلق | اوښانوته | چې څرنګې جوړ کړې شول | |
| ایا دوئ اوښ ته نه ګوری چې څنګه پیدا شوی دی | | | |
| وَاِلَی السَّمَآءِ | کَیۡفَ رُفِعَتۡ ﴿۱۸﴾ | وَاِلَی الۡجِبَالِ | کَیۡفَ نُصِبَتۡ ﴿۱۹﴾ وَاِلَی الۡاَرۡضِ |
| او اسمان ته | چې څرنګې اوچت کړې شو | او غرونو ته | چې څرنګې مضبوط ودرلې شو \| او زمکې ته |
| او اسمان ته نه ګوری چې څنګه اوچت کړې شوې دې؟ | اوغرونو ته چې څنګه اودرولې شوې دی؟ اوزمکې ته | | |
| کَیۡفَ سُطِحَتۡ ﴿۲۰﴾ | فَذَکِّرۡ | اِنَّمَاۤ اَنۡتَ | مُذَکِّرٌ ﴿۲۱﴾ |
| چې څرنګې اوغوړولې شوه | نو نصیحت کوه | بیشکه چې ته | نصیحت کونکې نې |
| نه ګوری چې څنګه خوره کړې شوې ده | نو ته نصیحت کوه ځکه چې ته نصیحت کونکې یې | | |
| لَسۡتَ عَلَیۡهِمۡ | بِمُصَیۡطِرٍ ﴿۲۲﴾ | اِلَّا مَنۡ | تَوَلّٰی |
| نه یې ته په هغوئ باند | مسلط کړې شوې (جبر کونکې) | مګر هغه څوك | چې مخ نې واړوؤ |
| ته په دوئ نګران مقرر شوې نه یې ......... | خوچا چې مخ اوګرځولو | | |
| وَ کَفَرَ ﴿۲۳﴾ | فَیُعَذِّبُهُ | اللّٰهُ | الۡعَذَابَ الۡاَکۡبَرَ ﴿۲۴﴾ اِنَّ اِلَیۡنَاۤ |
| او انکار نې اوکړو | پس اوبه عذابوی هغه لره | الله | په عذاب لوئ سره \| بیشکه مونږ ته دی |
| او انکار نې اوکړو | نو الله ﷻ به ورته ډیر لونې عذاب ورکوی ......... | بیشکه مونږ طرفته | |
| اِیَابَهُمۡ ﴿۲۵﴾ | ثُمَّ اِنَّ | عَلَیۡنَا | حِسَابَهُمۡ ﴿۲۶﴾ |
| واپس راتلل ددوئ | بیا بیشکه | په مونږ باند دی | حساب کول ددوئ |
| ددوئ واپسی ده | ......نو بیا به مونږ ورسره حساب کوو | | |

**قوله تعالی:- اَفَلَا یَنۡظُرُوۡنَ اِلَی الۡاِبِلِ کَیۡفَ خُلِقَتۡ﴿﴾**

**ایا منکرین د الله ﷻ نخښښې ګوری:-** الله ﷻ خپل بندیګانوته حکم ورکوی چه هغوی دې دهغه په مخلوقاتوباندې په سوچ سره نظرواچوی او اودې ګوری چه په دې کښې ډیر زیات قدرت په دوی کښې د هریوځیز نه داسې ظاهریږی چه د هغه په پاك ذات باندې هریوځیزڅنګه دلالت کوی. اوښ ته اوګورئ

(1) ابن ماجة كتاب الزهد باب صفة الجنة: ۴۳۳۲،

چه خنګه يوعجيبه او حيرانونکي ترکيب او شکل سره دې څومره مضبوط اوقوي دي اوسره د دې څومره په آسانۍ او نرمۍ سره بوج اوړي او يوماشوم سره هم څنګه حکم منونکې روان وي.دهغه غوښه هم ستاسو په کارراځي اودهغه ويښته هم ستاسو په کارراځي دهغه پښې تاسو څکښې اوقسم قسم فائدې ترې اوچتونئ. د ټولونه اول ئې دا خکه بيان کړو چه عموماً د عربويه ملك کښې او عربو سره هم دا څناوروو. دې څناورطرف ته په خاص توګه توجه خکه راوګرځولې شوه چه د ده د خوراك څښاك تلوکيناستو متيازوکولو اود تناسل طريقه د ټولو څناورو نه جداده. که يوخل خوراك څښاك اوکړي نو په هفتوورله کافي وي. کينې هم عجيبه شان. (علی هذالقياس۱۲)

حضرت شريح قاضي رحمه الله په فرمائيل چه راځئ چه لاړشو اوګورو چه د اوښ پيدائش څنګه دې اود آسمان اوچتوالې دزمکې نه څنګه دې وغيره. بل ځاے ارشاد دې ﴿أَفَلَمْ يَنظُرُوا إِلَى السَّمَاءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا وَزَيَّنَّاهَا وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ﴾ آيادې خلقو د خپل ځان د پاسه آسمان نه دې کتلې چه مونږ هغه څنګه جوړکړې يا څنګه موښائسته کړې او يوه سوره په کښې نه ده پريخودې. بيا غرونوته اوګوره چه څنګه ئې ورخښې کړې دې دپاره چه زمکه اونه خوزي او غرونه هم خپل ځاے پريږدي. بيا په دې کښې چه کوم د ښيګړې اوګټې خيزونه پيداکړي دی په هغې باندې نظرواچوئې زمکې ته اوګورئې چه څنګه ئې خوره کړې غوړولې ده.غرض دا چه دلته ئې د هغه څيزونو ذکراوکړو چه د قرآن پاك مخاطب عربوته په هروخت مخې ته وو.يوکلې وال چه په خپل اوښ باندې سور شي راوځي نو زمکه دهغه لاندې وي آسمان دهغه دپاسه وي غرونه د هغه د سترګو په وړاندې وي او په اوښ باندې پخپله سور دې. د دې خبرو نه د خالق دکامل قدرت اوکاريګرې بالکل واضحه اوصفاښکاره دی چه خالق صانع يعنی جوړونکي د عظمت والا رب اودعزت والا مالك اومتصرف اومعبودبرحق او حقيقي الله ﷻ صرف هم هغه دې اود هغه نه بغيرڅوك داسې نشته چه مونږ د هغه په وړاندې خپله عاجزي اوغريبي ښکاره کړوکوم چه مونږ د حاجتونو په وخت کښې رابلو د چا د نوم چه ذکراوکړو اود چا وړاندې سرټيټ کړو.

قوله تعالى:- أَفَلَا يَنظُرُونَ

ضمام ؓ چه کوم سوالونه د حضور ﷺ نه کړې وو هغه ئې داسې قسمونه ورکولوسره کړې وو. بخاري مسلم ترمذي نسائي مسنداحمد وغيره کښې حديث دې انس ؓ فرمائي چه مونږ د باربار سوالونو کولونه منع کړې شوي وو نو زمونږ به داخواهش وو چه د بهر نه څوك عقل مندسړې راشي هغه سوالونه اوکړي اومونږ هم موجوديو اوبيا د حضور ﷺ په ژبه مبارکه باندې جوابونه واورو.يوخل د بهرنه يوکس راغلواووئې وئيل اې محمد ﷺ ستاسو قاصد مونږ له راغلو اومونږ ته ئې اووئيل چه تاسو فرمائې چه الله ﷻ ته خپل رسول جوړکړې ئې. حضور ﷺ اوفرمائيل هغه رښتيا وئيلي هغه وئيل اوښايه دا آسمان چاپيداکړې دې؟حضور ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ.هغه وئيل زمکه چاپيداکړې؟حضور ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ. هغه وئيل غرونه چاپيداکړي؟او په دې کښې دادفائدې څيزونه چاپيداکړي حضور ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ. وئيل ستادې قسم وي په هغه الله ﷻ چاچه آسمان اوزمکه پيداکړي اودا غرونه ئې ورخښې کړي هم الله ﷻ ته خپل رسول جوړکړې راليګلې؟حضور ﷺ اوفرمائيل او. هغه وئيل چه ستاسو قاصد داهم وئيلي چه په مونږ باندې په شپه ورځ کښې پنځه مونځونه فرض دی وئې فرمائيل چه هغه رښتيا وئيلي. هغه وئيل چه ستادې قسم وي په هغه الله ﷻ باندې قسم وي چاچه ته راليګلې ئې چه آيادا د الله ﷻ حکم دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل او. وئيل ستاسو قاصد داهم وئيلي چه زمونږ په مالونوکښې زکوة فرض دې وئې فرمائيل رښتيادی. هغه وئيل ستادې په خپل راليګونکي الله باندې قسم وي چه داحکم هغه کړې دې؟وئې فرمائيل اوستاسو قاصد وئيلي چه په مونږکښې طاقت لرونکو باندې الله ﷻ دحج حکم هم ورکړې دې؟حضور ﷺ اوفرمائيل اوهغه رښتيا وئيلي دی.هغه دې ويناواوريدوسره روان شووئيل چه د

هغه الله ﷻ لاشريك قسم چاچه ته په حقه سره رااليګلي نه به زه پدې باندې څه زياتي اوکړم نه به په دې کښې کمي اوکړم. نبی ﷺ اوفرمائيل که هغه رښتياوائی نو جنت ته به داخليږي([1]) بعضې رواياتوکښې دی چه هغه ونيل زه ضمام بن ثعلبه ﷺ يم اود سعدبن بکر رور. ([2])

ابويعلی کښې دی رسول الله ﷺ به اکثرداحديث بيانولو چه دجاهليت په زمانه کښې يوه ښځه په غرباندې وه هغې سره دهغې يوورکې بچې وو دې ښځې به چيلئې څرولې.دهغې خوئ دهغې نه تپوس اوکړو موري ته چا پيداکړې؟ هغې ونيل الله تپوس نی اوکړو زه هغې ونيل الله بيانی ونيل آسمان هغې ونيل الله بيانی تپوس اوکړو زما پلارچاپيداکړې دې؟هغې ونيل الله ﷻ.تپوس نی اوکړو دا غرونه هغې ونيل داټول هم الله ﷻ پيدکړی دی. ماشوم بيا تپوس اوکړو چه ښه ده داچيلئې چا پيدا کړې؟هغې ونيل داهم الله ﷻ پيداکړی دی د ماشوم د خلې نه بې اختياره اووتل الله ﷻ خود ډير لوئ شان خاوندې.دهغه زړه دالله ﷻ دعظمت نه ډک شو هغه په خپل نفس باندې قابواونه کړې شوه اود غرونه راپريوتل او ټکړې ټکړې شو.ابن دينار رحمه الله فرمائی چه حضرت ابن عمر ﷺ به هم داحديث مونږ ته اکثر بيانولو.د دې حديث په سند کښې عبدالله بن جعفر مدينی ضعيف دې.

فائده:-امام علی بن مدينی رحمه الله کوم چه دهغه خوئ او دجرح او تعديل امام دې هغه دې يعنی خپل پلارضعيف ښائی.بيا فرمائی چه اې نبی ﷺ ته دالله ﷻ د رسالت تبليغ کوه په تاباندې صرف رسول دی حساب زمونږ په ذمه دې ته په دوی باندې مسلط نه نی جبرکونکې نه نی ددوی په زړونوکښې ته ايمان پيدا کولې نه شې ته دوی په ايمان راوړلوباندې مجبورکولې نه شې. رسول الله ﷺ فرمائی ماته حکم کړې شوې دې چه زه خلقو سره اوجنګيږم تردې چه هغوی لااله الاالله اووائی کله چه هغوی دا اووائی نو هغوی زما نه خپل خان اومال بچ کړو مګرحق داسلام سره اودهغوی حساب دالله ﷻ سره دې. بيا حضور ﷺ هم د دې آيت تلاوت اوفرمائيلو([3]).(مسلم ترمذی مسند وغيره)

بيافرمائی هغه چه مخ واړوی اوکفر اوکړی يعنی نه ايمان راوړی اونه عمل اوکړی اونه اقرار اوکړی لکه چه فرمائی﴿فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ۝ وَلٰكِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ۝﴾ نه خوئی دحق خبرې تصديق اوکړواونه نی مونځ اوکړو بلکه دروغ نی اوګڼرل اومخ نی ترې واړولو په دې وجه به په دوی باندې ډيرلوئ عذاب وی.

حضرت ابوامامه باهلی رحمه الله حضرت خالدبن يزيد بن معاويه ﷺ له لاړو ونی ونيل چه تاد نبی ﷺ نه د ټولو نه د آسان نه آسان حديث اوريدلی وی هغه ماته واوروه. هغه اوفرمائيل چه ما د حضور ﷺ نه اوريدلی دی په تاسو کښې به هريوجنت ته خی خو هغه چه داسې سرکشی اوکړی لکه چه شريراوښ په خپل مالک باندې کوی.(مسنداحمد) د دې ټولو واپس کيدل هم زمونږ طرف ته دی او بيا به هم مونږ د هغوی نه حساب اخلو اوهغوی ته به بدله ورکوو. د نيکئی نيکه او د بدئی بده.

﴿الحمدلله﴾ د سورت غاشيه تفسيرختم شو.

## ﴿تفسيرسورت فجر﴾

**د سورت تعارف**:- نسائی کښې دی چه حضرت معاذ ﷺ مونځ ورکړو يوسړې راغلو او په جمع کښې شامل شو. حضرت معاذ ﷺ په مانځه کښې قراءت اوږد کړو نو هغه د جماعت په يوګوټ کښې خپل مونځ اوکړو او فارغ لاړو. حضرت معاذ ﷺ ته هم دا واقعه معلومه شوه نود حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اود شکايت په توګه نی دا واقعه بيان کړه.حضور ﷺ هغه خوان راوغوښتو اوتپوس نی ترې

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب السوال عن اركان الاسلام: ١٢، ترمذی : ٦١٩.

[2]) صحيح مسلم كتاب العلم باب القراة والعرض على المحدث:٦٣، ابوداود:٤٨٦، ابن ماجة : ١٤٠٢.

[3] صحيح مسلم كتاب الايمان باب الامر بقتال الناس حتى يقولوا لا اله الاالله .......:٣٣٤١.

اوکړو هغه ونیل حضورﷺ زه څه اوکړم ما دوی پسې مونځ کولو دوی اوږد قراءت شروع کړو نو زه راتاؤ شوم او د جمات په کوټ کښې مې مونځ اداکړو بیامې خپلې اوښې ته ګیاواچوله. حضورﷺ اوفرمائیل اې معاذ﷛ آیا ته په فتنه کښې اچونکې ئې؟ ته د دې سورتونونه چرته ئې؟ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ الخ ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا﴾، ﴿وَالْفَجْرِ وَلَيَالٍ عَشْرٍ﴾ ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى﴾ ([1])

| رکوع ګانې | سورة الفجر مكية وهي ثلثون اٰية وركوعا واحدا | اياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ① | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۳۰ |

وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝ وَّالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝ وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ۝

قسم دې په سحر | او په شپو لسو | او په جفت | او په طاق | او په شپه | کله چې تیریږی |

قسم دې په وخت د سحر او په لسو شپو او قسم دې په جفت او په طاق باندې او په شپه چې په تیریدو شی

هَلْ فِي ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ ۝ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ

آیا شته دې په دې کښې | قسم | د پاره د خاوند د عقل | آیا اونه لیدل تا | چې څه اوکړل | رب ستا |

بیشکه عقل مندو د پاره دا ډیر لوئې قسم دې | .... آیا تا اونه لیدل (یعنې تاته علم نشته) چې ستا الله ﷻ

بِعَادٍ ۝ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ۝ الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ

د عادیانو سره | (یعنې) د ارم قوم سره | چې خاوندان د ستنوو | هغه | چې نه وو پیدا شوی |

د عادیانو یعنې د ارم د قوم سره څه اوکړل | چې ستنو غوندې لوړدنګ وو او چې د هغوئ په شان (مضبوط

مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ۝ وَثَمُودَ الَّذِينَ

په شان د هغوئ | په ملکونو کښې | او څه ئې اوکړل د ثمودیانو سره | هغه (ثمودیان) |

په هیڅ وطن کښې نه وو پیدا شوی | او د ثمود د قوم سره (ئې څه اوکړل) چې په وادی القری کښې

جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ۝ وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ ۝

چې تراشلی ئې وو کاڼړی (په واد (القری) کښې | او څه ئې اوکړل د فرعون سره | چې خاوند د میخونو وو

ئې (کورونو د پاره) ګټې تراشل | .......... او فرعون د میخونو والا سره (ئې څه اوکړل)

الَّذِينَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ ۝ فَأَكْثَرُوا فِيهَا

دا هغه کسان وو | چې سرکشی ئې کړې وه | په ملکونو کښې | نو ډیر ئې اوکړو | په هغې کښې |

دې ټولو په (خپلو خپلو) ښارونو کښې سرکشی کړې وه | .......... نو ډیر فساد ونه ئې په کښې

الْفَسَادَ ۝ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ۝ إِنَّ رَبَّكَ

فساد | پس راپرېباسو | په هغوئ باندې | رب ستا | شرق د عذاب | بیشکه رب ستا |

جوړ کړې وو | نو ستا رب پرې د عذاب یوه کوړه (حصه) راولیږله | .......... بیشکه ستا رب

([1]) د دې تخریج د سورة انفطار په شروع کښې تیر شوې دې.

| لَبِالْمِرْصَادِ ۝ |
| --- |
| خامخا په تاك كښې دې (پټ نظر ساتونكې دې) ..................... |
| دنافرمانو په تاک کښې دې |

**قوله تعالى:- وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝**

**د فجر قسم:-** فجر خو هر سرې پيژنى يعنى سحر اودا مطلب هم دې چه د لوئ اختر د ورځ سحر اودا هم مراد دې چه د سحر د وخت مونځ اوپوره ورځ اود لس شپونه مراد د ذى الحجه دمياشت اول لس شپې([1]) د صحيح بخارى په حديث كښې دى يوعبادت هم د دې لسو ورځو د عبادت نه غوره نه دې. خلقو تپوس اوكړو دالله ﷻ لارې جهاد هم؟ وئى فرمائيل چه داهم نه مگر هغه سړې چه خان اومال والى اوخى اوبيا هيڅ هم خان سره واپس راونړى([2]) بعضو ونيلى دمحرم لس ورځې مراددى. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى د رمضان اول لس ورځې. خو صحيح قول هم ړومبې دې يعنى د د ذى الحجه د شروع لس شپې.

**قوله تعالى:- وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝**

مسند احمد كښې دى رسول الله ﷺ فرمائى د عشر نه مراد د لوئ اختر لس ورځې دى اود وترنه مراد د عرفې ورځ ده اود شفع نه مراد د قربانئى ورځ ده([3]) د دې په اسنادو كښې خو هيڅ مضائقه نشته خو په متن كښې نكارت دې. والله اعلم. د وترنه مراد د عرفې ورځ ده دا نهم تاريخ وى نو د شفع نه مراد لسم تاريخ دې يعنى د لوئ اختر ياد قربانئى اختر ورځ. هغه طاق دى دا جفت. حضرت واصل بن سائب رحمه الله د حضرت عطاء رحمه الله نه تپوس اوكړو چه آيا د وترنه مراد دا د وتر مونځ دې؟ هغوى اوفرمائيل نه شفع د عرفې ورځ ده اووتر د لوئ اختر شپه ده. حضرت عبدالله بن زبير ﷺ خطبه وركوله يو سړې اودريدو تپوس نى اوكړو شفع څه ده او وتر څه دى. هغوى اوفرمائيل ( فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ ) كښې چه د كومو دوو ورځو ذكر دې هغه شفع ده او( وَمَنْ تَأَخَّرَ ) كښې چه د كومې يوې ورځ ذكر دې هغه وتر دې. يعنى يولسم دولسم ذى الحجه شفع ده اوديارلسمه شپه وتر ده. هغوى دا هم اوفرمائيل چه د ايام تشريق مينځ والا ورځ شفع ده او آخرى ورځ وتر ده.

**جفت او طاق:-** د بخارى اومسلم په حديث كښې دى دالله ﷻ يو كم سل نومونه دى خوك چه دا ياد كړى هغه جنتى دې هغه وتر دې او وتر دوست لرى. ([4]) زيد بن اسلم رحمه الله فرمائى دې نه مراد ټول مخلوق دې په دې كښې شفع هم ده او وتر هم. داهم ونيلې شوى دى چه مخلوق شفع دې اوالله ﷻ وتر دې. داهم ونيلى شوى دى چه د سحر مونځ شفع دې اود مابنام وتر دې. داهم ونيلى شوى دى چه د شفع نه مراد جوړه جوړه او وترنه مراد الله عزوجل دې لكه آسمان زمكه لمده اوچه پيريان انسانان نمر سپوږمئى وغيره. قرآن كښې دى ( وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ۝ ) مونږ هر څيز جوړه جوړه پيدا كړى دى دې د پاره چه تاسو عبرت حاصل كړئى. يعنى پوهه شئى چه ددې ټولو څيزونو خالق صرف هم يو الله دې. دچا چه څوك شريك نشته. داهم ونيلى شوى دى چه دې نه مراد شمير دې په كوم كښې چه جفت هم دى اوطاق هم. يو حديث شريف كښې دى چه شفع نه مراد دوه ورځې دى اووترنه مراد دريمه ورځ ده([5]) داحديث د

---

[1]) الطبرى : ٢٤/٣٩٦.
[2]) صحيح بخارى كتاب العيدين باب فضل العمل فى ايام التشريق :٩٦٩، ابوداود : ٢٤٣٨، ترمذى :٧٥٧.
[3]) احمد: ٣/٣٢٧.
[4]) صحيح بخارى كتاب الدعوات باب لله مائة اسم غيرواحدة : ٦٤١٠، صحيح مسلم: ٢٦٧٧.
[5]) الطبرى : ٢٤/٣٩٧.

دي حديث مخالف دي كوم چه دي نه اول تيرشوي دي. يوقول داهم دي دي نه مراد مونځ دي په دې كښي شفع ده لكه د سحر دوه ماسپښين مازيگر ماسخوتن څلور څلور او وتردی لکه د ماښام درې رکعتونه کوم چه د ورځې وتردی اودغه شان د آخرې شپې وتر. يومرفوع حديث مطلق د لفظ مونځ سره مروی دي(^١) دبعضو صحابه کرامو ﷺ نه فرض مونځ روايت دي خودا مرفوع حديث نه دي بلکه ډير صحيح هم دا معلوميږي چه حضرت عمران بن حصين ﷺ باندې موقوف دي. والله اعلم.

امام ابن جرير ﷫ دي اته نهه اقوالو كښي يوهم فيصله كن نه دي كړخولې. بيافرماني دشپې قسم كله چه لاړه شی اوداهم معنى كړې شوې ده چه كله راشي بلكه هم دا معنى ډيره مناسب اووالفجر سره ډير مناسبت لرى.فجروانى د شپې تلوته اودورځ راتلوته نودلته دشپې راتلل اودورځې تلل مراددى لكه ﴿وَالَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ۝ وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ۝﴾ كښي عكرمه ﷺ فرمانى مراد د مزدلفه شپه ده.د حجرنه مراد عقل دې حجروائى بنديدو ته عقل هم د غلطو کارونو او دروغوخبرونه منع كول كوى څكه دې ته عقل وانى. حطيم ته هم حجرالبيت څكه وانى چه هغه طواف كونكى د شامى ديوال د طرف نه منع كوى اوهم دي نه ماخوذ دي حجريمامه اود دې د پاره عرب وانى ﴿حجرالحاكم على فلان﴾ كله چه يوسړي بادشاه د تصرف منع كړى او وانى ﴿ حِجْرًا مَّحْجُورًا ۝﴾ نوفرمانى چه په دې كښي دعقل والا د پاره قابل عبرت قسم دي. يوطرف ته خو قسمونه دى د عبادتونو اوچرته د عبادتونو د وختونو لكه حج مونځ وغيره په كومو سره چه دهغه نيكان بنديگان د هغه قرب او نيزديكت حاصلوى اود هغه په وړاندې خپله عاجزى او د خپل خان هيرول بنكاره كوى؟ چه كله نى د دې پرهيزگارانونيكانو خلقو اود هغوى د عاجزنى او تواضع خشوع اوخضوع ذكراوكړو نو اوس هم دې سره د هغوى خلاف كونكو سركش اوبدكارخلق دى د هغوى ذكركولې شي. نو فرمانى چه آيا ته نه دى ليدلى چه څنگه الله ﷻ عاديان غرق كړل كوم چه سركش او متكبروو دالله ﷻ نافرمانى درسولانو تكذيب او په گناهونو به راتيټ وو.هغوى له د الله ﷻ رسول حضرت هود ﷺ راغلې وو دا عاد اولى دى كوم چه د عاد بن ارم بن عوص بن سام بن نوح په اولاد كښي وو.الله ﷻ په هغوى كښي ايماندارانو له خو خلاصي وركړو او بې ايمانه ئې په تيزو خوفناكو او هلاكونكو هواگانوسره هلاك كړل. اووه ورځې او اته شپې دا تباه كونكى طوفان روان وو اودا تول په تول داسې غرق كړې شو چه د دوى سرونه جداوواو تنې جداوې. په دوى كښي يوهم باقي پاتې نه شود كوم تفصيلي بيان چه په قرآن كريم كښې ډيرو خايونو كښي دي.

سورت الحاقه كښي هم دا بيان دي ﴿إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ۝﴾ دا د عاد تفسيرنى د عطف په توگه بيان كړې دي دې د پاره چه ښه وضاحت اوشى.داخلق به د اوچتوستنو مضبوطوكورونوكښي اوسيدل اودخپلې زمانې د نورو خلقو نه ډير طاقتور وجود والا د قوت او طاقت والا وو. په دې وجه حضرت هود ﷺ دوى ته د نصيحت كولو د پاره فرمانيلې وو ﴿وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِنْ بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝﴾ يادكړنى چه الله ﷻ د نوح ﷺ د قوم نه پس تاسو په زمكه كښي خليفه جوړ كړنى او تاسو ته ئى پوره بدنى كولاووالى دركړو تاسو له پكار دى چه د الله ﷻ نعمتونه يادكړنى او په زمكه كښي فسادیان جوړيدوسره مه اوسيږئى. بل خاى دى چه عاديانو ناحقه په زمكه سركشى اوكړه او ونيل نى چه مونږ نه د ډير قوت والا څوك دى؟ آيا هغوى دا هيركړل چه د هغوى پيداكونكى د هغوى نه ډير زبردست قوت او طاقت والا دې. دلته هم ارشاد كولې شى چه د دې قبيلې په شان طاقتور بل ښاركښي نه وو. ډير اوږد قد او قوى وجودونووالا وو ارم د هغوى دارالخلافه وه دوى ته به د ستنووالا ونيلې شو په دې وجه هم چه داخلق ډير د اوږد قد خاوندان وو بلكه صحيح وجه هم دا ده

^١) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة الفجر : ٣٣٤٢.

چه د ﴿مِثْلُهَا﴾ د ضمیرمرجع عماد خودلې شوې دې د دوی په شان په نورو ښارونوکښې نه وو دا احقاف کښې جوړشوی اوړده اوړده وو اوبعضو د ضمیر مرجع قبیله خودلې ده یعنی د دې قبیلې په شان خلق په نورو ښارونوکښې نه وو اوهم دا قول صحیح دې او وړاندینې قول ضعیف دې د دې د پاره هم چه هم دامراد وی نو ﴿لم يجعل﴾ ونیلې شی نه چه ﴿لَمْ يُخْلَقْ﴾ ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی په دوی کښې داسې زورور طاقت وو چه په دوی کښې به یوکس پاسیدو او یولوئ کاڼړې به نی په یوه قبیله ورغورزولونو غریبانان به ټول د هغې لاندې ځبن شو مړه به شو. حضرت ثور بن زید دیلی رحمه الله فرمانی چه په یوه پاڼړه دالیکلې لیدلې وو چه زه شداد بن عاد یم ماستنې اوچتې کړی دی مالاس مضبوط کړې دې ماد اووه ذراع خزانې راجمع کړی دی چه د حضرت محمد ﷺ امت به نې راوباسی. غرض دا چه که داسې اووانی چه هغوی د ښکلې اوچتو مضبوطو کورونووالا ووکه داسې اووانی چه هغوی د اوچتو ستنووالا وو یاداسې اووانی چه هغوی د بهترینووسلووالا وویاداسې اووانی چه د اوږدو اوږدو قدونه والا وو. مطلب دا چه یوقوم وود کوم ذکر چه په قرآن کریم کښې په ډیرو ځایونو کښې د ثمودیانو سره راغلې دې.دلته هم دغه شان د عادیانو اوثمودیانو دواړو ذکر دې. والله اعلم.

بعضې حضراتوداهم ونیلی دی چه ﴿إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ﴾ یوښاردې یاخودمشق یا اسکندریه خودا قول صحیح نه معلومیږی ځکه چه د عبارت صحیح مطلب نه جوړیږی. ځکه چه یاخوابدل جوړیږی یا عطف بیان. بل په دې وجه هم چه دلته دا مقصددې چه هریوسرکش الله ﷻ بربادکړو د کوم نوم چه عادی وو نه چه یوښار. مادا خبره دلته ځکه بیان کړه چه د کومو مفسرینوجماعت دلته دا تفسیرکړې دې چه په هغوی یوکس په دهوکه کښې پرینوځی. هغه لیکی چه داد یوښار نوم دې د کوم چه یوه خښته د سرو زرو او بله د سپینو زرو. د هغې کورونه باغونه او محلونه وغیره ټول د سپینوزرو او سرو زرودی کاڼړې لولو جواهر دی خاوره نی مشك دی نهرونه نی روان دی میوې تیارې دی هیڅ څوك اوسیدونکې نشته. کورونه دیوالونه خالی دی هیڅ هاهو والا نشته. دا ښار بدلیږی کله په شام کښې کله په یمن کښې کله په عراق کښې کله چرته اوکله چرته وغیره. دا ټول خرافات د بنواسرائیلو دی د هغوی بد دینه خلقو د ځان نه جوړکړی دی دې د پاره چه په جاهلانوکښې خبرې جوړې کړی.

ثعلبی وغیره بیان کړی دې چه یو أعرابی د حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه په زمانه کښې خپل ورك شوی اوښان لټول چه په ځنګل او بیابان کښې نی هم د دې په شان یو ښاراولیدو. هغې ته لاړو اوګرځیدو بیا راغلو خلقوته نی ذکر اوکړو خلق هم هلته لاړل خو بیا څه په نظر رانغله. ابن ابی حاتم دلته داسې اوږدې اوږدې قصې نقل کړی دی داحکایت هم صحیح نه دې اوکه دا د اعرابی والا قصه سنداً صحیح اومنلې شی نوممکن ده چه د هغه په سوچ او خیال کښې داسې شوی وی او په خپل خیال کښې دانقشه جوړه کړې وی اودخیالاتوپوخوالی او د عقل د کمې په وجه د هغه دایقین شوې وی چه هغه هم په صحیح توګه داسې وینی او په واقع کښې داسې نه وی.

**د جاهلانو جوړې کړې قصې.** بالکل هم دغه شان چه کوم جاهل حریص او د کچه خیالاتو والا داسې پوهیږی چه دیوخاص زمکې لاندې دسروسپینوډل دې اوقسم قسم قیمتی کاڼړی لولو اومرغلې چه اکسیرکبیردی خوداسې یوڅو مواقع دی چه هلته خلق رسیدلې نه شی. مثلاً د خزانې په خُله باندې یو اژدها ناسته ده،د یوپیری څوکې ده وغیره.دا ټولې فضول قصې اود ځان نه جوړې شوی خبرې دی دا جوړوی اوبې وقوفانو اودمال حرص ناك په خپل جال کښې راګیرولوسره د هغوی نه څه وصولی د پاره مکارانومشهورې کړی دی او بیاکله د چله ویستلو په بهانه کله د عودو زعفرانو په بهانه اوکله په بل څه مکرروینې وصول کوی اوخپله خیټه ډکوی.اودا ممکن دی چه د زمکې نه د جاهلیت د زمانې یاد مسلمانانود زمانې ځبن کړې شوې مال راوځی نود هغې پته چه چا ته اولګی نود هغه په لاس ورځی نه

هلته څه د خزانې مار وی او نه چرته دیو پیری خاپیرنی. څنګه چه دې خلقو مشهوره کړې ده دا بالکل غلط دی.دا هم د داسې خلقو د ځان نه خبرې دی یاهم د داسې خلقو نه نی اوریدلی وی.الله ﷻ سبحانه وتعالی دې ورته نیکی اوکړی.
امام ابن جریر رحمه الله هم ونیلې دی چه ممکن ده دې نه قبیله مراد وی او ممکن ده چه ښار مراد وی خو صحیح نه ده.دلته خو صفاښکاره خبره ده چه دیوقوم ذکر کیږی نه چه دیوښار.ددې دپاره نی دې نه پس دثمود یانوذکراوکړوکوموچه به کاڼړی تراشل لکه بل ځای چه فرمانی﴿وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فَارِهِينَ﴾ یعنی تاسو په غرونوکښې خپل کولاو اړ ارام ورکونکی کورونه په خپلولاسونو په کاڼړو کښې تراشئ.
د دې په ثبوت کښې چه د دې معنی د تراشلوده په عربی شعرکښې هم ده ابن اسحاق رحمه الله فرمانی ثمود عرب وواو په وادی قری کښې اوسیدل.د عادیانو قصه پوره پوره مونږ په سورت اعراف کښې بیان کړې ده.اوس د دوباره کولو ضرورت نشته. بیا فرمانی د میخونووالا فرعون. د اوتاد معنی حضرت ابن عباس رضی الله عنه په لښکر سره کړې ده چه د هغه کارونه به نی مضبوطول. داهم روایت دې چه فرعون به د غصې په وخت کښې د خلقو په پښو لاسونو میخونه ټکوهل اومړه کول به نی. په څلور بولی (خپې لاسونه زنګونونه اوسر ښکته ) کولوسره به نی پرې یو لوئ کاڼړې راګذارولو په څه سره چه به هغه چخړی شو. بعضې خلق وائی چه په رسو او میخونو باندې به نی د هغه په وړاندې لوبه کوله د هغې یوه وجه دا هم بیان کړې شوې ده چه هغه خپله بی بی چه مسلمانه شوې وه سملولې وه او د هغې په دواړو لاسونو او دواړو پښوباندې میخونه ټکوهلې وو بیا یو لوئ شان پلن د میچنې کاڼړې په هغې باندې کیخودو اومړه نی کړه. الله ﷻ دې په هغې رحم اوکړی.
قوله تعالی:- فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ﴿۱۳﴾
دفسادیانوهلاکت:- بیا فرمانی چه دغه خلقو په سرکشئی باندې ملاتړلې وه اوفسادیان خلق وو.خلق به نی ذلیل اوسپك ګنړل اوهریو ته به نی سزا ورکوله. نتیجه دا شوه چه د الله ﷻ دعذاب کوړه پرې راوریده اوهغه عذاب پرې راغلو چه په اخواکولونی نه شو اخواکولې اوتباه اوبرباد شو.ستا رب په شیش کښې دې ګوری اوری پوهیږی په مقرر وخت به د نیکو او بدو بدله اوسزا ورکوی.دا ټول خلق د هغه خواله تلونکی دی ځان له او یوازې دهغه په وړاندې اودریدونکی دی هغه به په عدل او انصاف سره د هغوی فیصلې کوی او هریوسړی ته به پوره بدله ورکوی د کوم چه هغه حقدار وی هغه د زور ظلم نه پاك دې.
دلته ابن ابی حاتم یوحدیث وارد کړې دې چه ډیر غریب دې د کوم په سند کښې چه کلام دې او په صحت کښې هم نظر دې. په دې کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمانی اې معاذ رضی الله عنه مؤمن د حق قیدی دې اې معاذ رضی الله عنه مؤمن په تذبذب کښې وی ترکومې چه د پل صراط نه تیرنه شی.اې معاذ رضی الله عنه قرآن مؤمنان د زړه د ډیروخواهشاتو نه منع کړی دی دې د پاره چه هغوی د هلاکت نه بچ شی.قرآن د هغوی دلیل دې ویره د هغوی حجت دې شوق د هغوی سورلی ده مونځ د هغوی پناه ده روژه د هغوی ډال دې. صدقه دهغوی خلاصې دې صداقت د هغوی امیر دې شرم د هغوی وزیردې اود هغوی رب د دې ټولو نه پس د هغوی نه واقف او خبر دې هغه په تیزو تیزو نظرونو هغوی ته ګوری. د دې راوی یونس الحذا، ابوحمزه مجهول دې بیا په دې کښې ارسال هم دې ممکن دی چه دا هم د ابوحمزه کلام وی. هم په دې ابن ابی حاتم کښې دی چه ابن عبدالکلاعی په خپل یووعظ کښې اوونیل خلقو د دوزخ اووه پلونه دی په دې ټولوباندې پل صراط دې هم په اولنی پل به خلق رابند کړې شی دلته به د مانځه حساب کتاب کیږی. چه دلته نه خلاصې اوشی نو په بل پل باندې به رامنع کړې شی دلته به د امانتدارنی سوال کولې شی چه څوك امانت دار وی هغه خلاصې بیامونداوچه څوك خیانت والا وو هغه هلاك شو. په

دریم پل باندې به د صله رحمئ تپوس کولې شي د دې پريکونکې به د دې ځائ نه خلاصې نه شي بیامونډلې او هلاك به شي. رشته داری یعنې صله رحمي به هم هلته موجود وي او دا به وائي اې الله چاچه زه يوځائ کړې يم ته هغه یوځائ کړې او چاچه زه ماته کړې يم هغه ته مات کړې. هم دغه معنی ده ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ دا اثر هم دومره دې پوره نه دي.

فَأَمَّا الْإِنسَانُ

پس هر چې انسان دی |

د (كافر) انسان خو دا حال دې چې

إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ

کله چه په امتحان کښې واچوي هغه رب دده | پس عزت ئې ورکړو هغه ته | او نعمت ئې ورکړو هغه ته |

چه کله پرې الله ﷻ امتحان اوکړی | ..................نو عزت ورکړی او نعمت ورکوی

فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ وَأَمَّا إِذَا

نو وائي هغه | رب زما | عزت راكړو ماته | او هر چې دا خبره ده | چې كله ئې |

نو دې وائی | .........چې ماته زما رب عزت راكړو | ...................او كله چې پرې داسې

مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ فَيَقُولُ رَبِّي

په امتحان کښې واچوي هغه ته | نو تنګ ئې کړو | په هغه باند | رزق دهغه | نو وائي | چې رب زما

امتحان اوکړی | ............... چې روزي پرې تنګه کړی | نو وائي چې زما رب زه

أَهَانَنِ كَلَّا بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ وَلَا تَحَاضُّونَ

ذلیله کړم زه | هرګز نه | بلکه نه کوئ عزت تاسو | دیتیم | او نه تیزوئ تاسو یو بل |

ذليله کړم |......خبره داسې نه ده | بلکه تاسو دیتیم پالنه نه کوئ | ..............او مسکین ته خوراک

عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا وَتُحِبُّونَ الْمَالَ

په طعام دمسکین | او خورئ تاسو | مال د میراث | په خوړلو ټولو سره | اومحبت کوئ تاسو دمال سره

ورکولو باندې یو بل ته ترغیب نه ورکوئ | او دمیراث مال (حق ناحق) ټول خورئ | او (ددنیا) مال مو ډير

حُبًّا جَمًّا كَلَّا إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا

په محبت ډير سره | هرګز نه | کله چې | وټکولې شي زمکه | په ټکولو سختو سره |

زیات خوښ دي | په دې نه کیږی | هر کله چه زمکه ریزه ریزه کړې شي |

قوله تعالى:- فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ

مطلب داچه کوم خلق وسعت او کولاووالې بیاموميٰ او دا اوګنړی چه الله ﷻ دهغوی اکرام اوکړو دا غلط دی بالکل دا امتحان دې لکه چه ارشاد دې ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِ﴾ یعنې د مال اولاد زیاتوالې دا خلق د نیکوزیاتوالې ګنړی. په اصل کښې دا دهغوی ناپوهي ده دغه د دې خلاف هم. یعنې تنګی سختی انسان خپل سپیره والې ګنړی اودا هم د الله ﷻ دطرف نه وی ازمینښت دې د دې د پاره دلته ﴿كلا﴾ راوړلو سره ددواړو خیالاتو تردید اوکړې شو چه دا واقعه نه ده چاته چه الله ﷻ مال ورکړی هغه نه خوشحاله دې او په چا چه تنګی اوکړی هغه نه خفه دې بلکه د خوشحالنې او خفګان مدار په دې

دواړو حالاتو کښې په عمل دی. غني کيدو سره شکر کوه د الله ﷻ محبوب او فقير کيدو سره صبر کوه نو د الله ﷻ محبوب. الله ﷻ داسې او هغسې ازميښت کوي. بيائی د يتيم د عزت کولو حکم ورکړو. په حديث کښې دی د ټولونه ښه کور هغه دې په کوم کښې چه يتيم وی او د ټولونه نی ښه پالنه کيږی. اوبدترين کورهغه دې کوم کښې چه يتيم وی او د هغه سره بدسلوکی کولې شی. بيا حضور ﷺ ګوتې اوچتې کړې او وئی فرمائيل زه اوديتيم پالونکی به په جنت کښې داسې يو ځای يعنی نيزدې نيزدې. (¹) د ابوداؤد په حديث کښې دی چه د شهادت او مينځ والا ګوته نې يوځای کړه وئی خودله او وئی فرمائيل چه زه اود يتيم پالونکې به په جنت کښې دغه شان يو(²) بيافرمائی چه داخلق د فقير او مسکين سره دښه سلوک او احسان کولو هغوی ته خوراك څښاك ورکولو يوبل ته رغبت او لالچ نه ورکوی اوداعيب هم په هغوی کښې دې چه د ميراث مال حلال وی که حرام هضموی اود مال محبت هم په هغوی کښې بې شانه دې.

| وَّ جَآءَ رَبُّكَ | دَكًّا دَكًّا | دُكَّتِ الْاَرْضُ | اِذَا | كَلَّآ |
|---|---|---|---|---|
| او راشي رب ستا | په ټکولو سختو سره | وټکولې شي زمکه | کله چې | هرګز نۀ |
| په دې نه کيږی | هرکله چه زمکه ريزه ريزه کړې شي | اوستارب (ميدان حشرته) راشي | | |

| يَوْمَئِذٍ | بِجَهَنَّمَ | يَوْمَئِذٍ | وَجِايْٓءَ | صَفًّا صَفًّا | وَالْمَلَكُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو په دغه ورځ به | دوزخ | په دغه ورځ | او راوړې شي | په قطار قطار کښې | او فرشتې (ولاړې وی) |
| او فرشتې قطار قطار اودريږی | اوپه هغه ورځ به جنهم راوړې شی | ............نو په دغه ورځ به | | | |

| يَقُولُ | الذِّكْرٰى | لَهُ | وَاَنّٰى | الْاِنْسَانُ | يَّتَذَكَّرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| وانی به هغه | وريادېدل | هغه ته | او څه فائده به ورکړی | انسان ته | ياد شي |
| انسان ښه پوهه شي | خود پوهيدو موقع به ترې تيره شوې وی | ............... وانی به چې | | | |

| لِحَيَاتِي | قَدَّمْتُ | يٰلَيْتَنِي |
|---|---|---|
| ای افسوس دې مالره | چې مخکښې تياری کړې وې ما | دپاره دژوند زما (په آخرت کښې) |
| انې کاش ! دې (د آخرت) ژوندن له مې وړاندې (چه زه په دنيا کښې وم) څه راليږلی وې | | |

| وَّلَا يُوْثِقُ | اَحَدٌ | عَذَابَهُ | لَّا يُعَذِّبُ | فَيَوْمَئِذٍ |
|---|---|---|---|---|
| نو په غه ورځ به | نۀ ورکوی عذاب | پشان دعذاب دهغه | بل هيڅوك | اونۀ به تړل کوی |
| نو په دغه ورځ به هيڅوک د الله ﷻ په شان عذاب نشی ورکولې | او نه به څوک د الله ﷻ غوندې | | | |

| اِلٰى رَبِّكِ | ارْجِعِيْٓ | الْمُطْمَئِنَّةُ | يٰٓاَيَّتُهَا النَّفْسُ | اَحَدٌ | وَثَاقَهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| پشان دتړلو دهغه | بل هيڅوك | ای نفسه | د اطمينان | واپس شه | رب خپل ته |
| مضبوط تړل کولې شی (د الله ﷻ به نيکانوته اووائی) انې مطمئن نفسه ! ته خپل رب ته واپس شه | | | | | |

(¹) ابن ماجة کتاب الادب باب حق اليتيم : ٣٦٧٩،
(²) صحيح بخاری کتاب الطلاق باب اللعان: ٥٣٠٤، ابوداود : ١٥٠، ترمذی : ١٩١٨.

| راضِيَةً | مَّرْضِيَّةً ﴿٢٨﴾ | فَادْخُلِي |
|---|---|---|
| په داسې حال چې ته خوشحاله يې ( په نيك انجام ) | او خوښ يې (خپل رب ته ) | نو شامل شه |
| په داسې حال کښې چې ته دهغه نه راضي يې | ......او هغه ستانه راضي دې | بيا زما په نيکانو بندګانو |
| فِي عِبٰدِي ﴿٢٩﴾ | وَادْخُلِي جَنَّتِي ﴿٣٠﴾ | |
| په بندګانو زما کښې | او داخل شه جنت زما ته | |
| کښې شامل شه | او زما جنت ته داخل شه | |

**قوله تعالیٰ:-** كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ﴿٢١﴾

**د قيامت تباهئ:-** دقيامت د خطرناك حالات بيان کولې شي چه په يقين سره به په هغه ورځ زمکه ښکته کړې شي،ښکته پورته زمکه به برابره کړې شي اوبالکل صفاهوارميدان به شي غرونه به دزمکې برابر کړې شي ټول مخلوق به دقبرونونه راوځي. پخپله به الله ﷻ دمخلوق د فيصلې دپاره راځي.دا به د هغه عام شفاعت نه پس چه د آدم ﷵ د ټول اولادسردارحضرت محمد ﷺ دي اودا شفاعت به هغه وخت وی کله چه به ټول مخلوق يو يو لوئ لوئ پيغمبرله راشي اوواپس به شي اوهريونبي به ورته اووائی چه زه د دې قابل نه يم. بيابه ټول نبي کريم ﷺ له راشي هغوی ﷺ به اوفرمائي چه اوزه د دې د پاره تياريم. بيابه حضور ﷺ ځي اود الله ﷻ په وړاندې به سفارش کوی چه پروردګاردې د خلقو د فيصله د پاره تشريف راوړی هم دا هغه رومبی شفاعت دې اودغه مقام محموددې دا تفصيلي بيان په سورت سبحان کښې تيرشوې دې.بيابه الله ﷻرب العزت دفيصله د پاره تشريف راوړی د هغه د راتلوکيفيت هم هغه پيژني. فرښتې به هم د هغه نه وړاندې وړاندې صف تړلې حاضرې وی دوزخ به هم راوړلې شي.صحيح مسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي د دوزخ به په هغه ورځ اويا زره واګې وی او په هره يوه واګه به اويازره فرښتې وی چه هغه به راکاږی. هم دا روايت پخپله د حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ نه هم نقل دې.[1] په دغه ورځ به انسانان خپل ټول نوی اوزاړه عملونه رايادوی. په بدو باندې به پښيمانتياکوی اود نيکونه کولوياکم کولوباندې به افسوس کوی اوپه ګناهونوباندې به پښيمانه وی[2]مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي که يوبنيادم د خپل پيدائش نه واخله ترمرګه پورې په سجده باندې پروت وی اود الله ﷻ پوره تابعدار پاتې وی نو بيابه هم خپل دا عبادت د قيامت په ورځ سپك اوهيڅ خيز نه ګڼړی او غواړی به که زه چرته دنيا طرف ته واپس کړې شوم نود اجر او ثواب کارونه به نورهم زيات اوکړم. بيا الله ﷻ فرمائي چه په دغه ورځ به د الله ﷻ د عذابونوپه شان عذاب د چانه وی. کوم چه به هغه خپلو نامنونکو بنديګانوته ورکوی نه ددغه زبردست نيولو رانيولوغوندې اوقيد کولوبندولوپه شان دبل چاکيدې شي. زبانيه فرښتوبه ډير خرابې بيړنی او هتکړنی هغوی ته اچولې وی.داخو شو د بدبختانو انجام اوس د نيك بختانوحال واورنی چه کوم روحونه د سکون او اطمينان والا دی پاك او ثابت دی د حق ملګری دی هغوی ته به دمرګ په وخت اود قبرنه د پاسيدو په وخت ونيلې شي چه ته دخپل رب طرف ته دهغه د ګواندېتوب طرف ته دهغه د ثواب اواجرطرف ته د هغه دجنت اورضامندنی طرف ته واپس روان شه. دوی دالله ﷻ نه خوشحاله دی او الله ﷻ د دوی نه راضي دې. اودومره به ورکړی چه دوی به خوشحاله شي وائی به چه ته زما په خاص بنديګانوله راشه او زما جنت کښې داخل شه. حضرت ابن عباس ﷠ فرمائي چه دا آيت د حضرت عثمان بن عفان ﷜ باره کښې نازل شوې دې. بريده ﷬ فرمائي چه د

[1] صحيح مسلم کتاب الجنة باب جهنم اعاذنا الله منها :٢٨٤٢، ترمذی : ٢٥٧٣.

[2] کتاب الزهد لابن المبارک :٣٤، احمد: ١٨٥/٤، وسنده صحيح موقوف علی محمد بن ابن عميره ﷜.

حضرت حمزه ﷺ بن عبدالمطلب باره کښې نازل شوې دي. د حضرت عبدالله ﷺ نه دا هم روایت دې چه د قیامت په ورځ به د اطمینان والا روحونوته وئیلې شی چه ته خپل رب یعنی خپل ملګری یعنی د خپل بدن طرف ته واپس شه لکه څنګه چه ته په دنیاکښې آبادکړې شوې وې تاسو دواړه د یوبل نه راضی اورضامندئی.داهم روایت دې چه حضرت عبدالله ﷺ دا آیت ﴿فَادْخُلِي فِي عِبَادِي﴾لوستلو یعنی اې روحه زما په بنده کښې یعنی د هغه په بدن کښې ورننوځه خودا غریب دې او واضح قول هغه ړومبې دې لکه چه فرمائی ﴿ثُمَّ رُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ﴾ یعنی بیابه ټول د خپل ربښتونی مولا طرف ته واپس کړې شی.بل ارشاد دې ﴿وَأَنَّ مَرَدَّنَا إِلَى اللَّهِ﴾زمونږ واپس کیدل یعنی دالله ﷻ طرف ته واپس کیدل دهغه دحکم طرفته اودهغه مخې ته دی.ابن ابی حاتم کښې دی چه داآیاتونه دحضرت صدیق اکبر ﷺ په موجودګئی کښې نازل شوی نو هغوی وئیل څومره ښه وینا ده. حضور اکرم ﷺ اوفرمائیل چه تاته به هم دا وئیلې شی.(۱) بل روایت کښې دی چه دحضور ﷺ په وړاندې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دا آیاتونه اولوستل نو حضرت صدیق اکبر ﷺ دا اوفرمائیل په دې باندې حضور ﷺ دا زیرې واورولو چه تاته به فرښته د مرګ په وخت داسې وائی(۲) ابن ابی حاتم کښې دا روایت هم دې چه کله د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ د تره د خوئ په طائف کښې انتقال اوشو نویوه مرغئی راغله د هغې په شان مرغئی چرته په زمکه باندې نه ده لیدلې شوې. هغه لاش ته لاړه بیا وتلوکښې اونه لیدې شوه کله چه هغه خښ کړې شو نود قبرد ګوټ نه د دې آیت د تلاوت آواز راتلو اودا معلومه نه شوه چه څوك ئی لولی. دا روایت په طبرانی کښې دی. ابوهاشم قباث بن رزین رحمه الله فرمائی چه د روم په جنګ کښې مونږ د دښمن په لاس قیدشو. د روم بادشاه مونږ خپلې مخې ته پیش کړو چه یاخودا دین پریږدئی یاقتل کیدل منظورکړئی. یویو ته هغه وئیل چه زمونږ دین قبول کړئی ګنی جلاد ته حکم ورکوم چه ستاسو سټ اووهی. درې کسان خو مرتدشوکله چه څلورم راغلونوهغه صفاانکاراوکړو. د بادشاه په حکم ئی د غه سټ والوزولو اوسرئی په نهرکښې اوغورزولو هغه لاندې ډوب شو اولږ ساعت پس د اوبوسر له راغلو اود دې دریواړو طرف ته ئی اوکتل ونی وئیل اې فلانکیه اې فلانکیه اواې فلانکیه د هغوی نومونه ئی واخستل او آوازئی ورکړوکله چه هغوی متوجه شواوټولودرباری خلقو هم کتل اوپخپله بادشاه هم په حیرانتیاسره اوریدل. ددې مسلمان شهیدسر وئیل واورئی الله ﷻ فرمائی ﴿يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ۝ ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ۝ فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ۝ وَادْخُلِي جَنَّتِي ۝﴾دومره وینا کولو سره بیا هغه سر اوبوکښې غوپه شو. د دې واقعه دومره ښه اثر اوشو چه نیزدې وه نصرانی هم هغه وخت مسلمان شوې وو بادشاه هم هغه وخت دربار ختم کړواوهغه دریواړه بیامسلمانان شو او مونږ ټول هم هغه شان په قید کښې پاتې شو.آخرد خلیفه ابوجعفر منصور دطرف نه زمونږ فدیه راغله اومونږ راخلاص شو.ابن عساکرکښې دی رسول الله ﷺ یوسړی ته اوفرمائیل دادعاوایه ﴿اللهم ان اسئلك نفساً بك مطمئنة تؤمن بلقآئك وترضی بقضآئك وتقنع بعطآئك﴾ اې الله زه تانه داسې نفس غواړم چه ستا په ذات باندې اطمینان او بهروسه لری ستا په ملاقات باندې ایمان لری ستا په قضا باندې راضی وی اوستا په ورکړه باندې صبر کونکې وی.(۳)

﴿الحمدلله﴾ د سورت فجر تفسیر ختم شو. الله ﷻ دې د عمل توفیق راکړی.

.....................

---

(۱) الدر المنثور : ۵۱۳/۸.
(۲) الطبری : ۴۲۴/۲۴، .
(۳) ابن عساکر :۲۱۱/۱۹،

| اياتونه | سورة البلد مكية وهي عشرون اية وركوعا واحدا | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۰ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | ۱ |

لَآ أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝ وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝

نه | زهٔ قسم خورم | په دې ښار | حال داچې ته | حلال کړې شوې نې | په دې ښار کښې |

زهٔ قسم خورم په دې ښار (مکه) باندې | او ته پدې ښار کښې (فاتحانه شان سره) داخليدونکې يې |

وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ ۝ لَقَدْ خَلَقْنَا

او قسم دې په پلار باند | او په هغې | چې پيدا شو دهغه نه | په حقيقت کښې پيدا کړې دې مونږ |

او قسم دې د پلار (يعنې ادم ؑ) او د ده په اولاد | .................... چې مونږ انسان په سختئ کښې

الْإِنْسَانَ فِي كَبَدٍ ۝ أَيَحْسَبُ أَنْ لَّنْ يَّقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ۝ يَقُوْلُ

انسان | په مشقت کښې | آيا گمان کوی دې | چې هرگز به قادر نشی | په ده باند | هيڅوک | وائي دې

پيدا کړې دې | آيا انسان داخيال کوی چې دهيچا وس به په ده اونه رسی | .................. دې پخپله

أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ۝ أَيَحْسَبُ أَنْ لَّمْ يَرَهٗ أَحَدٌ ۝ أَلَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ

چې خرچ کړو ما | مال ډير | آيا گمان کوی دې | چې اونهٔ ليدو دهٔ لره هيڅ چا | آيا ورنهٔ کړې مونږ | دهٔ ته

وائي چې ما (د اسلام خلاف) ډير مالونه برباد کړل | آيا دې خيال کوی چې دې هيچا نه دې ليدلې | آيا مونږ دهٔ ته

عَيْنَيْنِ ۝ وَلِسَانًا وَّشَفَتَيْنِ ۝ وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ ۝

دوه سترگې | او يوه ژبه | او دوه شونډې | او وښودلې مونږه دهٔ ته | دوه لارې |

دوه سترگې يوه ژبه او دوه شونډې نه دی ورکړی | او د (خير اوشر) دوه لارې مو ورته نه دی خودلی

قوله تعالى:- لَآ أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝

الله ﷻ دمکې مکرمې قسم خوری او د هغه وخت نه چه آباده ده په دې کښې خلق اوسيږی اوهغوی په امن اوسکون کښې دی په لا سره نی په دې ردکړې دې. بيانی قسم اوخوړلو اوونی فرمائيل اې نبی ﷺ ستا دپاره يوخل دلته جنگ حلال کيدونکې دې په کوم کښې چه به هيڅ گناه اوحرج نه وی او په دې کښې چه څه ملاو شی هغه به حلال وی. صرف د هغه وخت د پاره دا حکم دې. صحيح حديث کښې هم دی چه دا د برکت نه ډک ښار مکه پروردگارعالم د اول نه دحرمت والا جوړکړې دې او د قيامته پورې د دې داحرمت او عظمت به باقی پاتې کيدونکې وی د دې ونې مه پريکونی مه نی ازغی راوباسنی زما دپاره هم د يوې ورځې يوساعت حلال کړې شوې وو. نن بيا دهغې حرمت هم هغه شان واپس گرځيدلې دې څنگه وړاندې وو، هريوحاضر له پکاردی چه غيرحاضر ته نی اورسوی. يوروايت کښې دی چه که د دې ځاې د جنگ جگړې د پاره د جواز دليل پيش کړی نو ورته وائې الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته اجازت ورکړې ووتاسوته نه. (۱) بيا قسم خوری د پلار او اولاد. بعضو خو وئيلی دی چه ﴿مَاوَلَدَ﴾ کښې ﴿مَا﴾ نافيه دې يعنی قسم دې د هغه چه د اولاد والا دې اوقسم دې د هغه چه بې اولاد دې يعنی د بچو والا

---

(۱) صحيح بخاری كتاب جزاء الصيد باب لا يعضد شجر الحرم: ۱۸۳۲، صحيح مسلم: ۱۳۵۳.

اوشنواوکه ﴿مَا﴾ موصوله اومنلې شي نومعنى دا شوه چه د پلاراو اولاد قسم.د پلار نه مراد حضرت آدم ﷺ اود اولاد نه ټول انسانان. (۱) ډیره قوى بهتره خبره هم دامعلومیږى خکه چه دې نه وړاندې قسم دې د مکې چه د ټولې زمکې او ټولو آبادو مور ده نودې نه پس په دې کښې د اوسیدونکو قسم نى اوخوړلو اود اوسیدونکو یعنى انسان اصل او جرړه یعنى د آدم ﷺ بیاد هغه د اولاد قسم اوخوړلو. ابوعمران ﷺ فرمائى مراد ترې نه حضرت ابراهیم ﷺ اود هغه اولاددي.(۲) امام ابن جریر ﷫ فرمائى چه مراد عام دې یعنى هرپلار اوهراولاد.(۳) بیا فرمائى چه مونږ انسان ته صحیح قداوقامت صحیح سلامت اندامونه او ټیك ټاك پیداکړې دې. هم د هغه د مور په خیټه کښې هغه ته دا پاك ترتیب او ښکلې ترکیب ورکولې شى. لکه چه فرمائى ﴿الَّذِىْ خَلَقَكَ فَسَوّٰىكَ فَعَدَلَكَ﴾ (۴) یعنى هغه الله ﷻ ته پیدا کړې صحیح نى کړې ټیك ټاك نى جوړ کړې اوبیا چه په کوم شکل کښې غوښتل ترکیب نى درکړو. بل خائ فرمائى ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِىْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾ مونږ انسان په ښکلې شکل کښې جوړکړو. د ابن عباس ﷺ وغیره نه روایت دې چه قوت او طاقت والا پیداکړې دې. پخپله ده ته ګوره اود هغه د پیداکولوطرف ته غوراوکړه د هغه د غاښونو راوتلوته فکراوکړه وغیره.حضرت مجاهد ﷫ فرمائى اول نطفه بیاچکه شوې وینه بیاد غوښې بوټنى غرض په خپل پیداکیدوکښې ښه مشقتونه اوچتوى لکه چه ارشاد دې ﴿حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ كُرْهًا وَّوَضَعَتْهُ كُرْهًا﴾ یعنى د هغه مور په حمل کښې تکلیف اوچت کړو بیائې دماشوم پیداکیدوکښې تکلیف برداشت کړو بلکه د پئیوپه ورکولوکښې هم مشقت او په معیشت کښې هم تکلیف (۵)حضرت قتاده ﷫ فرمائى سختى اوطلب نى په کسب کښې پیداکړې دې.عکرمه ﷫ فرمائى په سختئى او اوږدوالى کښې پیداکړې دې. قتاده ﷫ فرمائى مشقت کښې اوداهم روایت دې چه په اعتدال کښې قیام دې. په دنیااوآخرت کښې سختئى برداشت کول وى. حضرت آدم ﷺ په آسمان کښې پیداشوې ووپه دې وجه دا اوونیلې شو. آیاهغوى دا ګنړى چه د هغوى په مال اخستوباندې څوك قادر نه دى. په ده باندې د چا هډو طاقت نشته ولې داتپوس به نه کیږى چه د کوم خائ نه دې مال راوړې او چرته دې خرچ کړې آیا هغه دا خیال کوى چه هغه ته څوك نه ګورى؟ آیا د الله ﷻ د نظر نه هغه خپل ځان غیب ګنړى. آیا مونږ انسان ته د کتلو پاره دوه سترګې نه دى ورکړې؟ اود زړه د خبرو د څرګندونو د پاره مو ژبه نه ده ورکړې؟ اودوه شونډې نه دى ورکړې؟په کوموسره چه په خبروکولوکښې امداد ملاویږى په خوراك کولوکښې امداد ملاویږى اود مخ ښائست هم وى او د خلې هم. ابن عساکر کښې دى چه نبى کریم ﷺ فرمائى چه الله ﷻ فرمائى اې بنیادمه ما تاته ډیر لوئ لوئ نعمتونه دربښلى دى کوم چه ته شمیرلې هم نه شې اونه د دې د شکر اداکولو په تاکښې طاقت شته. زما دا نعمت هم دې چه ما تاته د کتلو پاره دوه سترګې درکړې بیا ما په دې د ښو غلاف جوړکړې دې نو په دې سترګو باندې زما حلال کړې شوى څیزونه ګوره که حرام څیز ستا د سترګو په وړاندې راشى نودا بندکړه. ما تاته ژبه درکړې ده اود دې خلاف مې هم درکړې دې زما د مرضئى خبره د ژبې نه اوباسه او زما د منع کړې شوى خبرونه ژبه بندساته. ما تاته شرمګاه درکړې اود دې پرده مې هم درکړې ده په حلال خائ کښې ته بې شکه استعمالوه خو په حرام خائ باندې پرده اچوه. اې بنیادمه ته زما خفګان نه شې اوچتولې اوزما د عذابونو زغملو طاقت نه شې لرلې.

---

۱) الطبرى: ۴۳۲/۲۴.
۲) الطبرى: ۴۳۳/۲۴.
۳) الطبرى: ۴۳۳/۲۴.
۴) الطبرى: ۴۳۴/۲۴.
۵) الدرالمنثور:۵۲۰/۸.

بیا فرمائی چه مونږ هغه ته دواړه لارې اوخودلې د نیکئی او د بدئی. رسول الله ﷺ فرمائی چه دوه لارې دی نو بیا تاته د نیکئی لار د بدئی د لارې نه ولې ښه نه ښکاری؟ داحدیث ډیر ضعیف دې. دا حدیث په مرسل طریقه باندې هم روایت دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دې نه مراد دواړه پئیی دی اومفسرینوهم دا ونیلی دی. امام ابن جریر رحمه الله فرمائی چه صحیح قول هم ړومبې دې. لکه چه هم دا بل ځائ ارشاد دې ﴿إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَّبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ۞ إِنَّا هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ۞﴾ یعنی مونږ انسان د یوخائ شوې نطفه نه پیداکړو بیا مونږ هغه اوریدونکې کتونکې کړو. مونږ د هغه لار خودنه اوکړه او لارمو ورته اوخودله نو یاخو شکرکونکې دې اویا ناشکره دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَا اقْتَحَمَ | الْعَقَبَةَ ۞ | وَمَا أَدْرَاكَ | مَا الْعَقَبَةُ ۞ |
| نو همت نې اونه کړو دتیریدو | په سخته لار باند | او څه پته ده تاته | چې څه ده هغه سخته لار |
| بیاهغه (ددین) گزرگاه ته داخل شو | | ...........او تاته څه خبر دې چې گزرگاه څه څیز دې | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَكُّ رَقَبَةٍ ۞ | أَوْ إِطْعَامٌ | فِي يَوْمٍ | ذِي مَسْغَبَةٍ ۞ | يَتِيمًا |
| آزادول دغلام دی | یا خوراك ورکول دی | په هغه ورځ کښې | چې خاوند دلوږې وی | یتیم ته |
| (واورۀ هغه) دچا څټ (دغلامئ نه) خلاصول دی | یا دلوږې په ورځ کښې خوراک ورکول دی | یتیمانو ته | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذَا مَقْرَبَةٍ ۞ | أَوْ مِسْكِينًا | ذَا مَتْرَبَةٍ ۞ | ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِينَ | آمَنُوا |
| چې خپل وی | یا مسکین ته | چې په خاورو خړ وی | بیا وی | دهغه کسانو نه | چې ایمان نې راوړې دې |
| چې رشته دار هم وی | یا په ښاوره کښې ناست مسکین ته | بیا هغه د مومنانو نه هم وی (مسلمان وی) | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَتَوَاصَوْا | بِالصَّبْرِ | وَتَوَاصَوْا | بِالْمَرْحَمَةِ ۞ | أُولَٰئِكَ |
| او یوبل ته نصیحت کوی | په صبر کولو سره | او یوبل ته نصیحت کوی | په رحم کولو سره | دا خلق |
| او هغوئ په خپل مینځ کښې یو بل ته د صبر اود رحم کولو نصیحت کوی | ........................ داخلق | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ۞ | وَالَّذِينَ | كَفَرُوا | بِآيَاتِنَا |
| ملگرې دښی طرف دی | او هغه کسان | چې انکار نې اوکړو | ایتونه زمونږه |
| په ډیر خوش نصیبه وی | او هغه خلق کومو چې زمونږ په ایتونوباندې کفر اوکړو | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ۞ | عَلَيْهِمْ | نَارٌ | مُّؤْصَدَةٌ ۞ |
| هم دوئ ملگرې دگس طرف دی | په هغوئ باند به وی | اور | سرپوخ کړې شوې |
| هغوئ دگس طرف (خراب) خلق دی | د هغوئ نه به اور د هر طرف چارچاپیره وی | | |

**قوله تعالی:- فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ۞**

دغلام آزادولو ثواب، عقبه نه څه مراددی: دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه عقبه ددوزخ د یو خونیدونکی غرنوم دې. حضرت کعب احبار رحمه الله فرمائی دا په اویا درجې په دوزخ کښې. قتاده رحمه الله فرمائی دایوه د داخلې سخته کنده ده دې کښې د الله ﷻ په فرمانبردارئی سره داخل شئی. بیائی د دې داخله اوخودله یادا وبناکول چه تاته چا اوخودل چه داکنده څه څیز دې. نو وئی فرمائیل غلام آزادول او د الله ﷻ په نوم باندې خوراك ورکول. ابن زید رحمه الله فرمائی مطلب دادې چه دې د خیر اوخلاصی په لار ولې روان نه شو؟بیائی مونږ ته خبرداری اوکړو وئی فرمائیل تاسوته څه پته ده چه

عقبه څه څیزدی؟ د سخې خلاصول یا د طعام صدقه ورکول ﴿فَكُّ رَقَبَةٍ﴾ کوم چه داضافت سره دی دا ﴿فَكُّ رَقَبَةٍ﴾ هم لوستلې شوې دې یعنی فعل فاعل د دواړوقراءتونو مطلب تقریباً یودې. مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه څوك د یومسلمان غاړه خلاصه کړی الله ﷻ به د هغه هریو اندام د هغه د هریواندام په بدله کښې د دوزخ نه آزادکړی تردې چه د لاس په بدله کښې لاس او د پښو په بدله کښې پښې اود شرمگاه په ځای شرمگاه. علی بن حسین رضی الله عنه یعنی امام زین العابدین رحمه الله چه کله دا حدیث واوریدو نودسعیدبن مرجانه د حدیث د راوی نه تپوس اوکړو آیا تا پخپله دحضرت ابوهریره رضی الله عنه د خُلې نه داحدیث اوریدلې دې؟هغوی اوفرمائیل او نو دوی خپل غلام ته اوفرمائیل چه مطرف راوغواړه چه کله هغه مخامخ شو نو هغوی اوفرمائیل څه ته د الله ﷻ په نوم آزاد نې. بخاری مسلم ترمذی او نسائی کښې هم داحدیث دې. په صحیح مسلم کښې داهم دی چه غلام نې په لس زره درهم باندې اخستې وو(١)اوپه حدیث کښې دی چه یومسلمان بل مسلمان غلام آزادکړی الله ﷻ د هغه د یو یو هډوکی په بدله کښې د هغه یویو هډوکې د دوزخ د اُور نه خلاصوی اوچه کومه مسلمانه ښځه یوه مسلمانه وینځه آزاده کړی د هغې هم د یو یو هډوکی په بدله کښې یو یو هډوکې د دوزخ د اُور نه آزادیږی.(٢) (ابن جریر) مسنداحمد کښې دی چه کوم سړې د الله ﷻ د ذکر د پاره جمات جوړکړی الله ﷻ د هغه د پاره په جنت کښې کور جوړوی اوچه کوم مسلمان غلام آزاد کړی الله ﷻ د هغه د پاره فدیه جوړوی اوهغه د دوزخ نه آزادوی. کوم سړې چه په اسلام کښې بوډا شو هغه ته به د قیامت په ورځ نور ملاویږی(٣) بل روایت کښې داهم دی چه کوم سړې د الله ﷻ په لارکښې غشې اوچلوی که هغه اولگی اوکه اونه لگی هغه ته به د حضرت اسماعیل علیه السلام د اولادنه د یو غلام د آزادولوثواب ملاویږی بل حدیث کښې دی چه دکوم مسلمان درې بچی د بلوغت نه وړاندې وفات شی هغه به الله ﷻ په خپل فضل اوکرم سره په جنت کښې داخلوی (٤) او کوم سړې چه د الله ﷻ په لارکښې جوړې ورکړی الله ﷻ به د هغه د پاره د جنت اته واړه دروازې کولاوکړی په کومه چه غواړی خی دی(٥)د دې ټولو احادیثو سندونه ډیر ښکلی دی. ابوداؤد کښې دی یوځل مونږ حضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه ته اووئیل چه مونږ ته یو داسې حدیث واوروئی په کوم کښې چه ډیر کمې زیاتې نه وی نو هغوی ډیر خفه شو او وئی فرمائیل چه په تاسو کښې دې څوك اولولی اود هغه قرآن د هغه په کورکښې وی نوآیا هغه کمې زیاتې کوی؟ مونږ وئیل حضرت زمونږ مطلب دا نه دې مونږ خو وایو چه د رسول الله ﷺ نه اوریدلې شوې حدیث مونږ ته واوروه. هغوی اوفرمائیل مونږ یوځل د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د خپل یوملگری باره کښې حاضرشو چا چه د قتل په وجه د دوزخ اُور په ځان واجب کړې وو نو حضور ﷺ اوفرمائیل د ده د طرف نه یوغلام آزادکړئ نو الله ﷻ به د هغه د هریو اندام په بدله کښې د ده یویو اندام د دوزخ د اُور نه آزاد کړی(٦)داحدیث په نسائی کښې هم شته. بل یوحدیث کښې دی چه کوم سړې د بل سړی مرئی آزاده کړی نو الله ﷻ هغه د ده فدیه جوړوی(٧) داسې نور هم ډیر احادیث دی.

**قوله تعالى:- أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ**

**غریب مسکین باندې خوراك کول:-** مسنداحمد کښې دی یو اعرابی رسول الله ﷺ له راغلواووئی وئیل

---

(١) صحیح بخاری کتاب العتق باب فی العتق وفضله : ٢٥١٧، صحیح مسلم: ١٥٠٩، ترمذی : ١٥٤١.

(٢) ابوداود کتاب العتق باب ای الرقاب افضل ، : ٣٩٦٥، وسنده صحیح قتاده صرح بالسماع عند البیهقی : ١٦١/٩.

(٣) احمد: ٣٨٦/٤.

(٤) احمد : ١١٣/٤، ابوداود کتاب العتق باب ای الرقاب افضل : ٣٩٦٦.

(٥) احمد: ٣٨٦/٤.

(٦) ابوداود کتاب العتق باب فی ثواب العتق: ٣٩٦٤، وسنده حسن.

(٧) احمد: ١٥٠/٤

حضورﷺ يو داسې کاررااته اوښايه چه په هغې زه جنت ته لاړشم. حضورﷺ اوفرمائيل په لړوشان الفاظو کښې تا ډيرو خبروتپوسونه اوکړل نسمه آزاده کړه اورقبه خلاصه کړه. هغه وئيل حضرت دا دواړه څيزونه يونه دي؟حضورﷺ اوفرمائيل چه نه د نسمه آزادولومعنی داده چه ته يوازې يوغلام آزادکړې اود ﴿فَكُّ رَقَبَةٍ﴾معنی ده چه څه لږډير امدادکوه. د پنيوخاروې د پنيوڅکلود پاره چا مسکين ته ورکول، ظالم رشته دارسره نيك سلوك کول دا دی د جنت کارونه که د دې په تاکښې طاقت نه وی نو په اوږې باندې خوراك او تږی باندې څکل، د نيکوحکم اود بدو نه منع کول خوکه د دې هم طاقت نه وی نو سوا د ښيکړې او نيکې خبرې بله خبره د خلې نه مه اوباسه (۱). ﴿ذِي مَسْغَبَةٍ﴾ معنی ده اوږې کله چه د خوراك خواهش وی. (۲) غرض د ولږې په وخت کښې خوراك ورکول اوهغه هم هغه نادان ماشوم ته د چا د سرنه چه د پلار سورې اوچت شوې وی اودې هم د ده رشته دار وی. رسول اللهﷺ فرمائي چه مسکين ته صدقه ورکول يو ثواب لري او رشته دار ته ورکولوباندې دوه اجرونه ورکولې کيږی (۳)(مسنداحمد) داسې مسکين ته ورکول چه د خاورو ککړوی په لارکښې پروت وی کورنی نه وی سامان وغيره ورسره نه وی د ولږې د لاسه نی خيټه په زمکه لګی د خپل کور نه لرې وی په مسافرت کښې وی فقير مسکين محتاج قرض دار مفلس وې څوك نی تپوس والا نه وی بال بچ دار وی لکه چه بل ارشاد دي ﴿وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا﴾ کوم سړې چه د آخرت اراده لری اود دې د پاره کوشش اوکړې اوهغه ايماندارهم وی نودهغه کوشش دالله ﷻ په نيزدمشکوردې.بل ارشاد دې﴿وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾په ايماندارانوکښې چه کوم سړی او ښخې نيك عمل اوکړی جنت ته به خی اوهلته به بې حسابه رزق مومی بيا د هغوی بل صفت بيانيږی چه د خلقو غم زغمی په هغوی رحم اوکرم کولو خپل مينځ کښې يوبل ته نصيحت او وصيت کوی. لکه چه په حديث شريف کښې دی په رحم کونکو باندې الله ﷻ هم رحم کوی. تاسو د زمکې والا باندې رحم اوکړئ د آسمان والا به په تاسو باندې رحم اوکړی. (۴) بل حديث کښې دی چه څوك رحم نه کوی په هغه باندې هم رحم نه کيږی(۵) ابوداؤدکښې دی چه څوك زمونږ په کشرانو باندې رحم نه کوی اود مشرانوعزت نه کوی هغه زمونږ نه نه دې(۶) بيا فرمائي چه داهغه خلق دی د چا په ښی لاس کښې چه به عمل نامه ورکولې شي.اوزمونږ آياتونه دروغ ګڼړونکو ته به په ګس لاس عمل نامه ملاويږی.او په سربند لاندې باندې اورکښې به ورځی.د کوم نه چه به نه خلاصې ملاويږی نه کمې نه آرام او نه راحت. د دې اور دروازې به په دوی پسې رابندوی. نور بيان د دوی په ﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ﴾ الخ کښې راځی.ان شاء الله.حضرت قتاده رحمه الله فرمائي مطلب دادې چه نه به په هغې کښې رڼرا وی اونه سورې اونه به کله دهغه ځاې نه وتل ملاويږی(۷)حضرت ابوعمر جونی رحمه الله فرمائي چه کله د قيامت ورځ راشی الله ﷻ به حکم ورکړی اوهرسرکش هريوشيطان او هرهغه سړې د چا د شرارت نه چه په دنيا کښې خلق ويريدل د اوسپنې په زنځيرونو به کلك اوتړلې شی بيا به دوزخ کښې وراچولې شی. بيا به دوزخ رابندکړې شی د الله ﷻ قسم چه هيڅ کله به د هغوی قدمونه اونه دريږی. د الله ﷻ قسم هغوی ته به کله هم د آسمان

---

(۱) احمد: ۲۹۹/٤ وسنده صحيح .
(۲) الطبری : ٤٤٢/٢٤.
(۳) ترمذی کتاب الزکاة باب ماجاء فی الصدقة علی ذی القرابة : ٦٥٨، وهوحديث صحيح لسائی .
(٤) ابوداود کتاب الادب باب فی الرحمة : ٤٩٤١، وسنده حسن ، ترمذی : ١٩٢٤، احمد: ١٦٠/٢.
(۵) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالی ( قل ادعوالله اوادعوالرحمان ....) ٧٣٧٦.
(٦) ابوداود کتاب الادب باب فی الرحمة: ٤٩٤٣، وهو حديث حسن.
(۷) الطبری : ٤٤٧/٢٤.

ښکل هم ښکاره نه شي. د الله ﷻ قسم چه کله به په ارام باندې د هغوی ستر ګې اونه لګي. د الله ﷻ قسم هغوی ته به کله هم د خوراك څښاك څه د مزې څيز ملاونه شي. (ابن ابی حاتم) (الحمد لله) د سورت بلد تفسير ختم شو.

**(تفسير سورت والشمس)**

دحضرت جابر ﷺ حديث اول تيرشوې دې چه نبی کريم ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته اوفرمانيل چه تا (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) او (وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا) او (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى) سره امامت ولې اونه کړو. ([1])

| اياتونه | | سورة الشمس مكية وهي خمس عشرة اية وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ⑮ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالشَّمْسِ | وَضُحَاهَا ① | وَالْقَمَرِ | إِذَا |
| قسم دې په نمر | او په ګرمئ دنمر باند | او قسم دې په سپوږمئ باند | کله چې |

قسم دې په نمر او دهغې په رڼرا ................ او (قسم دې) په سپوږمئ چې وروسې

| | | | |
|---|---|---|---|
| تَلَاهَا ② | إِذَا جَلَّاهَا ③ | وَالنَّهَارِ | وَاللَّيْلِ |
| هغه راځي په نمر پسې | او قسم دې په ورځ باند | کله چې ښکاره کړي دغه نمر | قسم دې په شپه باند |

راخيژي ............ او (قسم دې) په ورځ چې روښانه شي ....................... او (قسم دې) په شپه چې

| | | |
|---|---|---|
| إِذَا يَغْشَاهَا ④ | وَالسَّمَاءِ | وَمَا |
| کله چې راخوريږي په نمر باند | او قسم دې په آسمان باند | او په هغه ذات باند |

راخوره شي او (قسم دې) په آسمان او په هغه الله ﷻ چې جوړ کړې ئې دې (آسمان)

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَنَاهَا ⑤ | وَالْأَرْضِ | وَمَا | طَحَاهَا ⑥ |
| چې جوړ ئې کړو دغه آسمان | او قسم دې په زمکه باند | اوپه هغه ذات باند | چې وې غوړوله دغه زمکه |

او(قسم دې) په زمکه او په هغه ذات چې خوره کړې ئې ده (دا زمکه) ......................

| | | |
|---|---|---|
| وَنَفْسٍ | وَمَا | سَوَّاهَا ⑦ |
| او قسم دې په نفس دانسان باند | او په هغه ذات باند | چې برابر ئې کړو هغه |

او(قسم دې) په نفس او په هغه الله ﷻ چې ډير برابر ئې جوړ کړې دې (دا نفس)

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَأَلْهَمَهَا | فُجُورَهَا | وَتَقْوَاهَا ⑧ | قَدْ أَفْلَحَ |
| انو په زړونو کښې ئې واچوله دغه نفس ته | بدی دهغه | او نيکی دهغه | يقينا چې کامياب شو |

نو بد او نيک ئې ورته خودلی دی ....................... هغه کس کامياب شو چا چې

([1]) ددې تخريج د سورة انفطار په شروع کښې تير شوې دې.

| مَنْ | زَكّٰىهَا ﴿٩﴾ | وَقَدْ خَابَ | مَنْ | دَسّٰىهَا ﴿١٠﴾ |
|---|---|---|---|---|
| هغه كس \| چي پاك ئې كړو نفس خپل \| | | او ناكام شو \| هغه څوك \| چي تباه يې كړو دغه نفس | | |
| خپل نفس پاک کړو \| ..........او هغه کس ناکام شو چې چا خپل نفس خراب کړو \| | | | | |

**قوله تعالى:- وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا ﴿١﴾**

**دنمراوسپوږمۍ قسم:-** حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه د ضحانه مراد رڼا ده([1])قتاده رحمه الله فرمائي پوره ورځ مراد ده([2])امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه ټيك خبره دا ده چه الله ﷻ د نمراو ورځې قسم خوړلې دې اوسپوږمئ چه ددې نه روستوراشي يعني نمرپټ شي او سپوږمئ روښانه شي.ابن زيد رحمه الله فرمائي چه د مياشت په رومبو پنځلس ورځو كښې څو سپوږمئ د نمر نه شاته وي او په روستونوپنځلسو ورځوكښې وړاندې وي. زيد بن اسلم رحمه الله فرمائي چه دې نه مراد ليلة القدردې.

**قوله تعالى:-وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا ﴿٣﴾**

بيائي دورځې قسم اوخوړلو كله چه هغه روښانه اورڼا شي يعني نمر ورځ راګيره كړي. بعضې عربو ونيلې دى چه ورځ كله تياره رڼا كړي خوكه داسې اووائي چه خوروالې كله اوپرقيرې نو نوربه هم ښه وو.دې دپاره چه په ﴿يَغْشٰهَا﴾ كښې هم دامعنى ټيك ده. په دې وجه حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي د ورځې قسم كله چه هغه روښانه شي.([3]) امام ابن جرير رحمه الله دا قول خوښوى چه په دې ټولو كښې ضمير ها مرجع نمردې خكه چه هم د دې ذكر روان دى. شپه چه كله هغه پټ كړي او خلورو واړو طرفوته تياره خوره شي. يزيدبن حمامه رحمه الله وائي چه كله شپه راځي نو الله ﷻ فرمائي زما بنديګان يو ډير خراب خلق پټ كړل مخلوق د شپې نه ويريږي نود دې د پيداكونكى نه نور ډير ويريدل پكار دى. (ابن ابى حاتم) بيادآسمان قسم خوري دلته چه كوم "ما" ده دامصدريه هم كيدې شي يعني د آسمان اود دې د جوړولو قسم.دحضرت قتاده رحمه الله قول هم دغه دې اودا "ما" د "من" په معنى كښې هم كيدې شي نومطلب به دا شي چه د آسمان قسم اود دې د جوړونكى قسم يعني پخپله هم دالله ﷻ. مجاهد رحمه الله هم دافرمائي. دا دواړه معنې يوبل سره لازم اوملزوم دى.د "بنا" معنى اوچتوالې. بل ځاى ارشاد دې﴿وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ﴾الخ يعني آسمان مونږ په قوت سره جوړكړو اومونږ د كولاووالي والا يو. مونږ زمكه خوره كړه او څنګه ښه خوړولو والايومونږ.دلته ئې هم اوفرمائيل چه د زمكې اوددې دهوارئې د دې د خوړولو د دې د غوړولو د دې د تقسيم اود دې د مخلوق قسم. ډير مشهورقول د دې د خوړولودې.د اهل لغت په نيزد هم دا معروف دې.جوهري رحمه الله فرمائي﴿طحوته﴾ په شان د ﴿دحوته﴾دې اود دې معنى د خوړولو ده. د اكثرو مفسرينوهم داقول دې. بيا فرمائي چه د نفس او د دې ټيك ټاك جوړولوقسم يعني دا ئې پيداكړو او تر هغه وخت نه دا صحيح سالم او په فطرت باندې قايم دې. لكه بل ځاى ارشاد دې ﴿فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۚ فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۚ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾خپل مخ قايم ساته ددين حنيف دپاره چه فطرت دې دالله ﷻ په كوم ئې چه خلق جوړكړه.د الله ﷻ د خلق بدل نشته. حديث شريف كښې دى چه هرماشوم په فطرت باندې پيداكيږي بيا د هغه موريلار هغه يهودى نصرانى او يا مجوسي جوړوي. لكه څناور څاروي بچې چه صحيح سالم پيداكيږي تاسو به په هغې كښې يو غوږ پريشوې اونه وينئ.(بخاري اومسلم)([1])د صحيح مسلم په يو حديث كښې دى

---

[1]) الطبرى : ٤٥١/٢٤.

[2]) الطبرى : ٤٥٢/٢٤.

[3]) الطبرى : ٤٥١/٢٤.

بریښوي اونه وینني.(بخاری اومسلم)(۱)د صحیح مسلم په یو حدیث کښې دی الله ﷻ فرماني چه ما خپل بندګان یوشان والا پیدا کړي هغوی له شیطان اورسیدواود دین نه ئې دهوکه کړل(۲)بیافرماني چه الله ﷻ بدکاري او پرهیزګاري بیان کړه اوچه کوم څیز د هغه په قسمت کښې وود هغې طرف ته د هغه لارخودنه اوکړې شوه. ابن عباس رضی الله عنه فرماني چه خیراوشر ښکاره کړې شو. (۳) ابن جریر کښې دی چه حضرت ابوالاسود رحمه الله فرماني چه حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه تپوس اوکړو اوښایه خلق چه کوم اعمال کوي اوتکلیفونه اوچتوي آیا دادهغوی دپاره دالله ﷻ دطرف نه مقررشوی دی اودهغوی په تقدیرکښې لیکلې شوی دی یادوی پخپله د راتلونکي وخت دپاره پخپله توګه کوي په دې وجه چه انبیاء علیهم السلام هغوی له راغلي دی اود الله ﷻ حجت په دوی پوره شوې دې. ما په جواب کښې اوونیل نه نه بلکه دا څیز د اول نه فیصله شوې دې او مقدرشوې دې. حضرت عمران رضی الله عنه اوونیل چه بیاخویه دا ظلم نه وی. ما خو چه دا واوریده نو اوړچیدم او اوویریدم چه د هرڅیز مالك اوخالق هم هغه الله ﷻدی ټول ملك د هغه په لاس کښې دی د هغه د افعالوتپوس پښتنه څوك نه شي کولې هغه د ټولو نه تپوس کولې شي. زما دې جواب اوریدو سره حضرت عمران رضی الله عنه ډیرزیات خوشحاله شو او وئې ونیل چه الله ﷻ دې تا صحیح کړي ماخودا سوالونه د دې د پاره کړي وو چه ازمیښت اوشي. واوره یوسړې د مزینه جهینه قبیلې د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوهم دا سوال ئې اوکړو کوم چه ما تانه اول اوکړو حضوراکرم ﷺ هم دا جواب ورکړو کوم چه تا راکړو نو هغه ونیل چه بیا زمونږ په اعمالوڅه؟ حضور ﷺ په جواب کښې ارشاد اوفرمانیلو چه څوك الله ﷻ وتبارك د کوم منزل د پاره پیدا کړې دې د هغه نه به هم هغه شان کار کیږي. که جنتي وی نود جنت اعمال اوکه دوزخي لیکلې شوې وی نو هم داسې اعمال به په هغه باندې آسان وی. واوره په قرآن پاك کښې د دې تصدیق موجود دې الله ﷻ فرماني ﴿وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا ۝ فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا ۝﴾ دا حدیث په مسلم کښې هم دې(۴)

**قوله تعالی:- ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا ۝﴾**

**تزکیه نفس:-** مسند احمد کښې هم دی چاچه خپل نفس پاك کړو هغه بامراد شو یعنی د الله ﷻ په تابعدارئ کښې لګیا شو او خراب اعمال او رذیل اخلاق ئې پریخودل لکه چه بل ځای ارشاد دې﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ ۝ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ ۝﴾ چا چه پاکوالې اوکړو اود خپل رب نوم ئې یادکړو بیائې مونځ اوکړو نو هغه کامیابي بیاموندله او چا چه خپل ضمیر خراب کړوبرباد ئې کړو اود هدایت نه اخوا شو هغه ئې بربادکړو په نافرمانو کښې پریوتلو اوکوم نفس چه الله ﷻ لاندې راګذارکړو هغه برباد اوخائب اوخاسر پاتې شو.عوفي علي بن ابوطلحه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا روایت کوی(۵)د ابن ابی حاتم په یو مرفوع حدیث کښې دی چه حضوراکرم ﷺ آیت ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا﴾اولوستلو وئې فرمانیل کوم نفس چه الله ﷻ پاك کړلو دهغه نه ئې خلاصې بیاموندلو.خو په دې حدیث کښې یو علت خودا دې چه جویبر بن سعید متروك الحدیث دې. دویم علت دا دې چه ضحاك د حضرت عبدالله رضی الله عنه نه روایت کوی د هغه ملاقات ثابت نه دې. د طبرانی په حدیث کښې دی چه ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ لوستلو سره هغوی دا دعا اولوستله ﴿اللهم آت نفسي تقوها وزكها انت خير من زكها انت وليها ومولاها﴾(۶) د مسند احمد په حدیث کښې دی

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب اذا سلم الصبي فمات: : ۱۳۵۸. ترمذی : ۲۱۳۸.

(۲) صحیح مسلم کتاب الجنة باب الصفات التي يعرف بها في الدنيا : ۲۸۶۵. احمد: ۲۶۶/٤.

(۳) الطبری : ۴۵٤/۲٤،

(۴) صحیح مسلم کتاب القدر باب کیفیة ابن حبان : خلق آدمي في بطن امه .

(۵) الطبری : ۴۵۵/۲٤،

(۶) السنة لابن ابی عاصم : ۳۱۹،

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه د شپې يوځل زما سترګې کولاوشوې اومې کتل چه حضور ﷺ په خپل کټ کښې نشته د تيارې په وجه ما په خپل کورکښې په لاسونو اولټولو نوزما لاس حضور ﷺ سره اولګيدل هغه وخت حضور ﷺ په سجده کښې وو اودا دعائي لوستله ﴿رب اعط نفسي تقواها وزكها انت خير من زكها انت وليها ومولاها﴾ (١) داحديث صرف هم په مسنداحمد کښې دي. دمسلم اومسند احمد په يوحديث کښې دي چه رسول الله ﷺ دا دعا غوښتله ﴿اللهم اني اعوذبك من العجز والكسل والهرم والجبن والبخل وعذاب القبر اللهم انت نفسي تقواها وزكها انت خير من زكها انت وليها ومولاها اللهم اني اعوذبك من قلب لايخشع ومن نفس لاتشبع وعلم لاينفع ودعوة لايستجاب لها﴾ يا الله زه د عاجز کيدو او لاچارې نه د سستئ نه اود شکست خوړلونه د بوډاوالي نه او د نامردئ د بخيل توب نه اود قبرد عذاب نه ستا پناه غواړم.اې الله زما زړه ته د دې تقوی راکړه او دا پاک کړې هم ته د دې ښه پاکونکې ئې اوهم ته د دې والي او مولی ئې.اې الله ماد داسې زړه نه بچ کړه په کوم کښې چه ستا ويره نه وی اود داسې نفس نه مې بچ کړه چه آسوده نه وی اود داسې علم نه مې بچ کړه چه نفع په کښې نه وی اود داسې دعا نه مې بچ کړه چه قبوله نه شي. دحديث راوی حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه فرمائي چه د الله ﷻ رسول ﷺ مونږ ته دعا اوخودله اومونږ ئې تاته ښايو. (٢)

| كَذَّبَتْ | ثَمُوْدُ | بِطَغْوٰىهَآ | اِذِ انْۢبَعَثَ | اَشْقٰىهَا |
|---|---|---|---|---|
| دروغ اوګڼړل | ثموديانو | په وجه دسرکشئ خپلې | کله چې راپورته شو | دټولو نه بدبخته سړې دهغوئ |

(قوم د) ثمود دخپلې سرکشئ په وجه (صالح) دروغژن اوګڼړلو | کله چې په هغوی کښې يو بدبخته راپورته شو

| فَقَالَ | لَهُمْ | رَسُوْلُ اللّٰهِ | نَاقَةَ اللّٰهِ | وَسُقْيٰهَا |
|---|---|---|---|---|
| نو اووئيل | هغوئ ته | رسول دالله | (لاس مه وروړئ) اوښې دالله ته | او (مه بندوئ) اوبه څکل ددې |

نورسول دالله ﷻ ورته اووئيل | چې خبردار دا دالله ﷻ اوښه ده | اوددې دڅکلو وار مقرر دې

| فَكَذَّبُوْهُ | فَعَقَرُوْهَا | فَدَمْدَمَ |
|---|---|---|
| نو دروغ اوګڼړو هغوئ هغه لره | پس زخمي ئې کړه هغه اوښه | نو راوستلو هلاکت |

خودوئ پيغمبر دروغژن اوګڼړلو | او اوښه ئې زخمي (مړه) کړه | ............نو الله ﷻ پرې

| عَلَيْهِمْ | رَبُّهُمْ | بِذَنْۢبِهِمْ | فَسَوّٰىهَا |
|---|---|---|---|
| په هغوئ باند | رب دهغوئ | په سبب دګناهونو دهغوئ | نو برابر ئې کړل هغوئ په هلاکت کښې |

د هغوی د ګناه په وجه عذاب راوستلو ............ | ............نو ټول ئې برابر کړل

| وَلَا يَخَافُ | عُقْبٰهَا |
|---|---|
| اونه يريږي الله | دانجام دهغې نه |

او الله تعالى دهغوئ د هلاکت د انجام هيڅ پرواه نه کوی

**قوله تعالى:- كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ**

**دثموديانونه دسرکشئ بدله:** الله ﷻ فرمائي چه ثموديانو دخپل سرکشئ کبرغرورپه وجه دخپلو رسولانو تصديق اونه کړو.محمدبن کعب رحمه الله فرمائي د ﴿بِطَغْوٰىهَآ﴾ مطلب دادې چه دې ټولوتکذيب اوکړو خو

---

(١) احمد:٦/٢٠٩.

(٢) صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب في الادعية : ٢٨٢٢، احمد:٤/٣٧١.

اولني خبره ډيره اولى ده. حضرت مجاهد رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله هم دا بيان كړې دي[1] چه ددې سركشئ په وجه اوددې تكذيب په ملامتيا سره دا دومره بدبخت شو چه په دوى كښې كوم ډير بدسړې وو هغه تيارشو د هغه نوم قدار بن سالف وو هم ده د حضرت صالح عليه السلام د اوښې خپې وهلې وې هم دده باره كښې فرمان دې ﴿فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ﴾ دثمود يانو په آواز دې راغلو اوهغه اوښه اووژله. داسړې په خپل قوم كښې دعزت والا وونسب والا وو شريف وو دقوم رئيس او سردار وو. دمسند احمد په حديث كښې دى چه رسول الله يوځل په خپله خطبه كښې دهغه اوښې اودهغې دمړه كونكى ذكر فرمائيلې اوددې آيت تلاوت ئې اوفرمائيلو او وئې فرمائيل چه څنګه ابوزمعه دې هم دغه شان دا سړې پخپل قوم كښې شريف عزيز اولوئ سړې وو[2] امام بخارى رحمه الله هم داپه تفسير كښې اوامام مسلم رحمه الله د جهنم په صفت كښې راوړلې دې او په سنن ترمذى او سنن نسائى كښې هم دا روايت په تفسير كښې دې. ابن ابى حاتم كښې دى رسول الله ﷺ على رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه زه تاته د دنيا د ټولو نه بدبخت سړې بنايم يوخو احيمر ثمود كوم چه اوښه وژلې وه او بل هغه سړې چه ستا په تندى به زخم لګوى تردې چه ږيره به دې په وينو لمده شى.[3] د الله ﷻ رسول حضرت صالح عليه السلام خپل قوم ته فرمائيلې وو چه اې قومه د الله ﷻ اوښې ته د نقصان رسولونه اوويرېږئ د دې د اوبو په مقررو ورځو كښې په ظلم كولو سره د دې اوبه مه بندوئى ستاسو اود دې نمبر تړلې شوې دې خودې بدبختانو د پيغمبر عليه السلام اونه منل د كومې ګناه په وجه چه ددوى زړونه سخت شو اوبيا دوى په صفاتو كه د مقابلې د پاره تيارشواودهغه اوښې پركې ئې پريكړې كومه چه الله ﷻ بغيرد مور پلار نه د يو كاڼي نه راپيدا كړې وه چه د صالح عليه السلام معجزه اودالله ﷻ دقدرت كامله يوه نښه وه. الله ﷻ هم په دوى باندې په غضب شو او هلاك ئې كړل او په ټولو باندې برابر عذاب نازل شو. دا ددې د پاره چه احيمر ثمود په لاس باندې د هغه قوم لوئ وړو سړو او ښځو بيعت كړې وو اود ټولو په مشوره باندې هغه دا اوښه وهلې وه په دې وجه په عذاب كښې هم ټول راګيرشو. ﴿ولايخاف﴾ ئې ﴿فلايخاف﴾ هم لوستلې دې مطلب دا چه الله ﷻ څوك سزا كوى نوهغه ته دا ويره نه وى چه د دې انجام به څه وى؟ چرته دا خراب نه شى دامطلب هم كيدې شى چه د دوى بدكار احيمر اوښه اووژله خود انجامه اونه ويريدل. خو اولني قول اولى دې. والله اعلم.

﴿الحمدلله﴾ د سورت والشمس تفسيرختم شو.

## ﴿تفسير سورت الليل﴾

د حضور ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته دا فرمائيل اول بيان تيرشوې دې چه تا د سبح اسم والشمس او والليل سره ولې امامت اونه كړو.[4]

| اياتونه | | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة الليل مكية وهي احدى وعشرون اية وركوعا واحدا | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| (۲۱) | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | (۱) |

| وَاللَّيْلِ | إِذَا يَغْشَىٰ ﴿١﴾ | وَالنَّهَارِ | إِذَا تَجَلَّىٰ ﴿٢﴾ |
|---|---|---|---|
| قسم دې په شپه | كله چې خوره شي | او قسم دې په ورځ | كله چې روښانه شي |

قسم دې په شپه چې راخوره شي ........ او (قسم دې) په ورځ چې روښانه شي

---

[1] الطبرى: ۲۴/۴۵۸.

[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة (الشمس وضحها): ۴۹۴۲، صحيح مسلم: ۲۸۵۵، ترمذى: ۳۳۴۳.

[3] احمد: ۴/۲۶۳.

[4] ددې تخريج دسورة انفطار لاندې تير شوې دې.

| وَمَا | خَلَقَ | الذَّكَرَ | وَالْأُنْثٰىٓ ۙ | اِنَّ سَعْيَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او قسم دې په هغه ذات | چې پيدا ئې کړو | نر | او ښځه | بيشکه چې کوششونه ستاسو |
| او(قسم دې) په هغه ذات چې نر او ښځه ئې پيدا کړې دی | ............چې بيشکه ستاسو کوششونه | | | |

| لَشَتّٰى ۗ | فَاَمَّا | مَنْ | اَعْطٰى | وَاتَّقٰى ۙ |
|---|---|---|---|---|
| خامخا مختلف دی | پس هر چې دې | هغه څوک | چې ورنې کړو (مال) | او خان ئې اوساتو دبدئ نه |
| مختلف دی | ..........نو چاچې (دمال حقونه) ورکړل | ..........او پرهيزګار شو | | | |

| وَصَدَّقَ | بِالْحُسْنٰى ۙ | فَسَنُيَسِّرُهٗ | لِلْيُسْرٰى ۗ |
|---|---|---|---|
| او رښتينې ئې اومنله | نيکي | نو اساني به پيدا کړو مونږ هغه ته | دپاره داسانئ لارې |
| او دښائسته دين تصديق ئې اوکړو | ............نو مونږ به ورته د اسانئ لاره اسانه کړو | | |

| وَاَمَّا | مَنْ | بَخِلَ | وَاسْتَغْنٰى ۙ | وَكَذَّبَ | بِالْحُسْنٰى ۙ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هر چې دی | هغه څوک | چې بخل ئې اوکړو | او بې پروائي ئې اوکړه | او دروغ ئې اوګڼرله | نيکي |
| او چا چې شومتيا اوکړه | او بې پروا شوا | ............او ښائسته دين نه ئې انکار اوکړو | | | |

| فَسَنُيَسِّرُهٗ | لِلْعُسْرٰى ۗ | وَمَا يُغْنِيْ عَنْهُ مَالُهٗٓ اِذَا |
|---|---|---|
| نو اسانتيا به پيدا کړو مونږ هغه ته | دپاره دسختئ لارې | او پکار به رانشي دهغه مال خپل | کله چې |
| نو مونږ به ورته دسختئ لار مخکښې کړو | ............او ددهٔ مال به ددهٔ هيڅرې پکار رانشي | |

| تَرَدّٰى ۗ |
|---|
| هلاک شي هغه |
| هر کله چې دې مړ شي |

**قوله تعالى:- وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰىٓ ۙ**

**د شپې او ورځې قسم او په دې پورته ايت مبارک کښې بل قرات:** مسند احمد کښې دی حضرت علقمه رحمه الله شام ته راغلو او د دمشق جمات ته لاړو دوه رکعته مونځ ئې اداکړو او دالله ﷻ نه ئې دعا اوکړه يا الله ماته نيک ملګرې راکړې بيا روان شونود حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه سره ئې ملاقات اوشو تپوس ئې اوکړو ته دکوم خائ ئې؟ حضرت علقمه رحمه الله اوونيل زه دکوفې يم. تپوس اوکړو ابن ام عبد رضي الله عنه به داسورت څنګه لوستلو؟ ما ونيل والذکر والانثى به ئې لوستلو. بيا ئې اوفرمائيل چه په تاسو کښې د تکيه والا يعنى چاسره به چه په سفر کښې دحضور ﷺ بستره وه او رازدان چه د داسې رازونونه خبر وود کوم علم چه بل چاته نه وو هغه چه د شيطان نه د رسول الله ﷺ په ژبه مبارک بچ کړې شوې وو هغه نه دې؟[1] يعنى حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه داحديث په بخارى کښې هم دې چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه شاګرداو ملګرې حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه له راغلو هغوى هم دې لټولو سره راورسيدل. بيائې تپوس اوکړو چه په تاسو کښې د حضرت عبدالله رضي الله عنه په قراءت کښې قرآن لوستونکې څوک دې؟ نو ونيل مونږ ټول يو بيا تپوس اوکړو چه په تاسو ټولو کښې دحضرت عبدالله رضي الله عنه قراءت د ټولونه زيات يادونکې څوک دې؟ خلقو د حضرت علقمه رحمه الله طرف ته اشاره اوکړه نود هغه نه سوال اوکړې شو (وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى ۙ) د عبدالله

---

[1]) احمد: ۶/۴۴۹، وهو صحيح واصله فى صحيح البخارى: ۶۲۷۸، ومسلم: ۸۲۴.

ﷺ نه تا څنګه اوریدلې دې نو وني ونیل ﴿الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ﴾ به نې لوستلو. ونیل ما هم د حضورﷺ نه هم داسې اوریدلې دې اودا خلق غواړي چه زه ﴿وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ﴾ اولولم.د الله ﷻ قسم زه خو به د دوی اونه منم. (١) غرض دا چه د حضرت ابن مسعودﷺ او حضرت ابودرداء ﷺ قراءت دا دې. او حضرت ابوالدرداء ﷺ خودې ته مرفوع هم ونیلې دې. باقي هم د جمهوروقراءت دا دې کوم چه په موجوده قرآنونوکښې دې. نو الله ﷻ د شپې قسم خوری چه په مخلوق باندې خوره شي اود ورځې قسم خوری کله چه هغه په خپله رڼاباندې ټولوڅیزونه روښانه کړي اود خپل ذات قسم خوری چه د نراوښځې پیداکونکې دې لکه چه فرمائي ﴿وَخَلَقْنَٰكُمْ أَزْوَٰجًا﴾ مونږ تاسو جوړه جوړه پیداکړی نې بل ارشاد فرمائي ﴿وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ﴾ دهرڅیز جوړې هم مونږ پیداکړی دی.دامتضاد اودیوبل خلاف قسمونه خوړلو سره فرمائي چه ستاسو کوشش او ستاسو اعمال هم متضاد اود یوبل خلاف دی. د نیکوکونکی هم دی او په بدو کښې اخته کیدونکی هم دی. بیافرمائي چه چا ورکړه یعنی دالله ﷻ مال نې دالله ﷻ د حکم لاندې خرچ کړو او په خیال خیال نې قدم کیخودو په هرکار کښې نې هم د الله ﷻ کول د هغه بدلې نې رښتوني ګنړلې د هغه په ثواب نې یقین ساتلو. د ﴿الْحُسْنَىٰ﴾ معنی د لااله الاالله هم کړې شوې ده د الله ﷻ د نعمتونوهم کړې شوې ده. د مونځ روژه زکوة صدقه فطر او د جنت نې هم روایت دې. بیا فرمائي چه مونږ به هغه ته د آسانئی لارآسانه کړویعنی د ښیګړې د جنت او نیکئی د بدلې او چاچه خپل مال د الله ﷻ په لارکښې خرچ نه کړو اود الله ﷻ نه بې پرواني اوکړی اود ﴿الْحُسْنَىٰ﴾ د قیامت د بدلې تکذیب نې اوکړو نو په هغه به مونږ د بدئی لاره آسانه کړو. لکه چه فرمائي ﴿وَنُقَلِّبُ أَفْـِٔدَتَهُمْ وَأَبْصَٰرَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا۟ بِهِۦٓ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَنَذَرُهُمْ فِى طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ﴾یعنی مونږ به د هغه زړه او سترګې واړوو څنګه چه هغوی په اول ځل په قرآن باندې ایمان نه وو راوړې اومونږبه هغه هم دهغه په سرکشئی کښې دهوکه کړی ساتو.ددې مطلب آیاتونه په قرآن کریم کښې ځائ په ځاي موجود دی چه د هرعمل بدله هم د هغې په شان وی د خیر اراده کونکی ته دخیرتوفیق ملاوېږی اودشراراده لرونکو ته هم ددې توفیق وی.ددې معنی په تائید کښې دا احادیث هم دی. حضرت صدیق اکبرﷺ یو ځل د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړوچه زمونږ اعمال دفارغ شوی تقدیر لاندې دی یانوی پیداکیدونکی هم زمونږدطرف نه دی حضورﷺ اوفرمائیل چه د تقدیرد لیك مطابق. ونیل بیا د عمل څه ضرورت دې.وني فرمائیل په هرسړی باندې به هغه عمل آسان وی دکوم څیز دپاره چه هغه پیداکړې شوې دې.(مسنداحمد)(٢)حضرت علی ﷺ فرمائي چه دجنت البقیع په مقبره کښې مونږدرسول الله ﷺ سره په یوه جنازه کښې شریك وو وني فرمائیل چه واورئی په تاسوکښې د هر یود پاره په جنت او دوزخ کښې ځائ مقرردې او لیکلې شوې دې خلقو ونیل چه بیا مونږ په دې باندې یقین ولې اونه کړو او کینو؟ حضورﷺ اوفرمائیل عمل کوئی هرسړي باندې به هم هغه عمل راس راځي د کوم د پاره چه هغه پیداکړې شوې دې. بیا حضورﷺ هم دا آیاتونه تلاوت کړل.(صحیح بخاری)(٣) هم د دې روایت په بل طریق کښې دی چه د دې بیان په وخت کښې د حضورﷺ په لاس مبارك کښې یودکې وواوسرمبارك نې لاندې کړې وو او په زمکه باندې راښکلو په الفاظو کښې څه کمې زیاتې هم دې.(٤)

مسنداحمد کښې د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ هم داسې یوسوال لکه چه پورته حدیث کښې د حضرت

---

١) صحيح البخارى كتاب التفسير و من سورة الليل اذا يغشى باب ( وماخلق الذكر والانثى ) :٤٩٤٤، صحيح مسم : ٨٢٤،

٢) احمد:١/٦، وسنده ضعيف ، ول الباب احاديث اخرى مغنية عن النظر صحيح البخارى :١٣٦٢، ومسلم: ٢٦٤٧، مسندالبزار:٢٨.

٣) صحيح البخارى كتاب التفسير سورة الليل اذ يغشى باب قوله ( فاما من اعطى واتقى) :٤٩٤٥.

٤) صحيح البخارى كتاب التفسير سورة الليل اذ يغشى باب قوله ( وكذب بالحسنى ):٤٩٤٨.

صديق اکبر﷜ تيرشو روايت دي اود هغوی جواب هم هغوی ته تقريبا هم داسې روايت دی[1]ابن جرير کښې دحضرت جابرنه هم داسې روايت نقل دی[2] دابن جرير يوبل حديث کښې د دوو ځوانانوهم داسې سوال اود حضورﷺ هم دغه شان جواب ورکول مروی دی اوبيا د دې دواړوحضراتو داقول هم دی چه يارسول اللهﷺ! مونږ په کوشش باندې نيك اعمال کوو[3]د حضرت ابوالدرداء ﷜ نه هم داسې نقل دی. رسول الله ﷺ فرمائی چه هره ورځ د ډوبيدو په وخت د نمردواړو طرفوته دوه فرښتې وی هغوی په اوچت آوازدعاکوی کومه چه هرڅه اوری بغيرد انسانانو او پيريانونه چه اې الله ﷻ سخی ته نيکه بدله ورکړې اود بخيل مال ختم کړې. [4] هم دا معنی ده د قرآن د دې څلورو آياتونو.

**ددې سورت شان نزول څه دې؟**:-د ابن ابی حاتم په يوډيرغريب حديث کښې د دې پوره سورت شان نزول دا ليکلې دې چه د يوسړی د کهجوروباغ وو په هغې کښې د يوې ونې ښاخونه د مسکين سړی په کور باندې پراته ونې هغه غريب نيك بخت بال بچې داروو. د باغ والاچه به کله د دې کهجورو شوکولو له راتلوهغه مسکين کره به تلواوکهجورې به ئې راشوکولې.دې نه به چه کومې کهجورې لاندې پريوتلې نو د هغه غريب سړی ماشومانوبه هغه راغونډولې نودې به راتلواود هغوی نه به ئې په زور اخستلې اوکه يوماشوم به چرته په خله کښې هم اچوله نو په ګوته به ئې د هغه د خلې نه راويستله. دې مسکين سړی د دې شکايت رسول الله ﷺ ته اوکړو حضورﷺ هغه ته اوفرمائيل چه ښه ده ته لاړشه. حضورﷺ هغه باغ والا سره ملاوشو اوورته ئې اوفرمائيل چه ته هغه خپله ونه د کومې څانګې چه د فلانکی سړی په کور دی ماته راکړه الله ﷻ به تاله په جنت کښې يوه ونه درکړی هغه ونيل ښه ده حضورﷺ. مادرکړې خو ماته د هغه کهجورې ډيرې ښې لګی زما په ټول باغ کښې داسې کهجورې د يوې ونې هم نه دی. حضورﷺ دې اوريدو سره په خاموشئی کښې تشريف يوړو. يوسړی چه دا خبرې اترې ئې اوريدې د حضورﷺ په خدمت کښې حاضر شو ونې ونيل هغه ونيل چه حضورﷺ که دا ونه زما شی اوزه ئې تاسوله درکړم نو ماته هم د دې په بدله کښې جنتی ونه ملاويدې شی؟حضورﷺ اوفرمائيل او. دا سړې د هغه باغ والا له راغلو د ده هم يوباغ وو د دې ړومبی سړی هغه ته دا ذکراوکړو.حضرت ماته زما د فلانکې ونې د کهجورو په بدله کښې د جنت د يوې ونې راکولود پاره اوفرمائيل. مادا جواب ورکړو دې اوريدوسره چپ شو. بيالږ ساعت پس اوفرمائيل ته دا خرڅول غواړې؟ هغه ونيل نه. او دا يوه بله خبره ده چه کوم قيمت زه غواړم او هغه ماته څوك راکړی خو څوك ئې راکولې شی؟ تپوس ئې اوکړو څه قيمت غواړې؟ ونيل څلوېښت ونې د خرما. هغه ونيل دا خوتا ډير زبردست قيمت اولګولو د يوې بدله کښې څلوېښت؟ بيا په نورو خبروکښې اخته شو او بيائې اوونيل ښه ده زه ئې په دې اخستل غواړم. هغه ونيل چه که رښتيائې اخلې نو ګواه راوړه. هغه يوڅوکسان راغونډ کړل او معامله برابره شوه ګواه مقرر شو او بيا هغه څه سوچ اوکړو او ونې ونيل ګوره صاحبه چه ترکومې پورې مونږ جدا شوې نه يو دا معامله نه برابريږی. هغه ونيل ښه ده زه هم داسې کم عقل نه يم چه ستا د يوې ونې بدله کښې کومه چه کګه شوې ده خپلې څلوېښت ونې درکړم نو ده ونيل ښه ده ښه ده ماته منظور ده خو چه زه کومې ونې اخلم هغه به ښه خرورې وی هغه ونيل ښه ده منظور ده. د ګواهانو په مخامخ داسودا فيصله شوه او مجلس ختم کړې شو. دا سړې په خوشحالئی خوشحالئی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوونی ونيل يارسول اللهﷺ! اوس هغه ونه زما شوه او ما هغه تاسو ته درکړه. رسول الله ﷺ

---

[1]) ترمذی کتاب القدر باب ماجاء فی الشقاء والسعادة: ٢١٣٥، وهو حسن .
[2]) صحيح مسلم کتاب القدر باب کيفية خلق آدمی بطن:امه:٢٦٤٨،
[3]) الطبری :٤٧٥/٢٤.
[4]) الطبری :٤٧١/٢٤.

دې مسکين لـه تـشريف يـوړو او ورتـه نـې اوفرمانيـل دا ونـه ستا ده اوستـا د بـال بچ ده. حضرت ابن عباس﷛ فرماني په دې باندې دا سورت نازل شو. ابن جرير کښې روايت دې چه دا آياتونه دحضرت ابوبکرصديق﷛ باره کښې نازل شوې دې هغوی به په مکه معظمه کښې د اسلام د شروع په زمانه کښې د بوډې ګانو ښځو اوضعيفانوخلقو چه مسلمانان شوې وو آزادول به ئې په دې باندې يو ځل د هغوی پلار ابوقحافه﷛ چه لامسلمان شوې نه وواووئيل چه بچې دا کمزوری مسلمانان آزادولود پاره کړځې دې نه ښه دا ده چه خوانان او طاقتور خلق آزاد کړې چه په وخت باندې ستا په کار راشي ستا امداداوکړي نو دښمنانو سره اوجنګيږي نو صديق اکبر﷛ جواب ورکړو باباجي زما اراده د دنياوی فائدې نه ده زه خو صرف د رب رضا اود مولا مرضی غواړم په دې باره کښې دا آياتونه نازل شو(۱)د"تردي" معنی د مړه کيدو هم نقل ده او په اورکښې د غورزيدو هم. (۲)

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ عَلَيۡنَا | لَلۡهُدٰى ۝ | وَاِنَّ لَنَا | لَلۡاٰخِرَةَ |
| بيشکه زمونږ په ذمه دی | خامخا لار ښودل | او بيشکه مونږ لره دې | خامخا آخرت |
| بيشکه هدايت کول زمونږ کار دې | ..........او آخرت او دنيا دواړه زمونږ په | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالۡاُوۡلٰى ۝ | فَاَنۡذَرۡتُكُمۡ | نَارًا | تَلَظّٰى ۝ | لَا يَصۡلٰهَاۤ | اِلَّا |
| او دنيا | نو يروم زه تاسو | د اور نه | چې لمبې وهی | نۀ به ننوزی هغې ته | مګر |
| قبضه کښې دی | نو زه تاسو دهغه لمبې وهونکې اور نه يروم | چې هغې ته به هغه | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الۡاَشۡقَى ۝ | الَّذِىۡ | كَذَّبَ | وَتَوَلّٰى ۝ | وَسَيُجَنَّبُهَا |
| بدبخته سړې | هغه | چې دروغ ئې اوګڼړو | او مخ ئې واړوو | او لرې به ساتلې کيږی دهغې نه |
| بدنصيبه داخليږی | چې انکار ئې کړې دې | او مخ ئې اړولې دې | اوهغه نيکان | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الۡاَتۡقَى ۝ | الَّذِىۡ | يُؤۡتِىۡ | مَالَهٗ | يَتَزَكّٰى ۝ | وَمَا لِاَحَدٍ | عِنۡدَهٗ |
| پرهيزګار انسان | هغه | چې ورکوی | مال خپل | دپاره دپاك کيدو | او نۀ وی د هيچا | په هغه باندې |
| به ترې نه بچ ساتلې شی | چې خپل مالونه دخان دپاکولو دپاره (دالله په لاړ کښې)ورکوی | او دۀ سره چا | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنۡ نِّعۡمَةٍ | تُجۡزٰٓى ۝ | اِلَّا ابۡتِغَآءَ | وَجۡهِ رَبِّهِ | الۡاَعۡلٰى ۝ |
| څه احسان | چې خلاصوی بدله دهغې | مګر دپاره د لټولو | درضا درب خپل | چې لوئ دې |
| احسان کړې نه وو | چې بدل ئې خلاصولو | خو دخپل لوئې رب رضامندی ئې لټوله | | |

| | |
|---|---|
| وَلَسَوۡفَ | يَرۡضٰى ۝ |
| او خامخا به هغه راضي وی (دهغه نه) | |
| اوډير زر به (دخپل رب نه) راضي شی | |

(۱) ابن جرير :۲/۲۵، ح/۲/۳۹۴۲، وسنده حسن .
(۲) الطبری : ۲۴/۴۷۶،

قوله‌تعالى :- إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ۝

هدايت دالله ﷻ په لاس كښې دې:- يعنى حلال اوحرام ښكاره كول زمونږ ذمه ده. داهم معنى ده چه څوك په هدايت باندې لاړل هغه به يقيناً مونږ له رارسى. لكه چه فرمانى ﴿وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ ۚ وَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ۝﴾ددنيا او آخرت ملكيت هم زمونږ دې.ما د سور كړې شوې اُور نه تاسو هوښياركړې نى.مسنداحمد كښې دى چه حضرت نعمان بن بشير ﷺ په خپله خطبه كښې فرمانيل چه د رسول الله ﷺ نه مادخطبه په حالت كښې اوريدلى دى چه حضور ﷺ په ډيراوچت آوازسره فرمانيل تردې چه دهغه ځاې نه بازاريورې آواز اورسيدو او باربار نى فرمانيل خلقو ماتاسود دوزخ د اُور نه اوويرولې خلقو زه تاسو د دوزخ د اُور نه ويروم. باربار نى دافرمانيل چه دټولونه دسپك عذاب والادوزخى به هغه وى چه د هغه د دواړو تلولاندې به دوه سروټكې كيخودې شى. په دې سره به د هغه مازغه خوټكيږى لكه چه كټونى وى(¹)سره د دې چه د ټولونه د سپك عذاب والا به هغه وى خود هغه په خيال كښې به د ده زيات عذاب د چانه وى.په دې دوزخ كښې به هغه خلق راګيركړې شوى وى اوپه بدترين عذابونوكښې به وى چه ډير بدبخت به وى دچا په زړه كښې چه تكذيب وى اودبدن نه داسلام عمل نه كوى (²)دمسند احمد په حديث كښې هم دى چه دوزخ ته به بدبخت خلق ځى. خلقو تپوس اوكړو چه بدبختان څوك دى؟ونى فرمانيل چه اطاعت كونكى نه واودالله ﷻ د ويرې نه څه بدى نه پريږدى.دمسندپه يوبل حديث كښې دى چه زما ټول امت به جنت ته ځى سوا دهغوى نه چه انكاراوكړى.خلقو تپوس اوكړو چه انكاركونكى څوك دى؟ ونى فرمانيل چه څوك زما اطاعت اوكړى هغه به جنت ته ځى او چا چه زما نافرمانى اوكړه هغه انكار اوكړو(³)اوونى فرمانيل چه د دوزخ نه به لريوالى هغوى ته وى چه تقوى شعار پرهيزګاردالله ﷻ نه ويريدونكې وى خپل مال د الله ﷻ په لاركښې وركړى دې دپاره چه پخپله هم پاك شى اوخپل ځيزونه هم پاك كړى اوپه دين اودنيا دواړوكښې پاكى حاصله كړى.دا ددې دپاره چه چاسره سلوك نه كوى چه د هغه هم په ده باندې څه احسان وى بلكه ددې دپاره چه په آخرت كښې جنت واخلى اوهلته د الله ﷻ ديدارنصيب شى. بيافرمانى چه ډير زر په يقين سره به دداسې پاكوصفتونووالاسړې راضى شى.

قوله‌تعالى :- الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّىٰ ۝ وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ مِنْ نِعْمَةٍ تُجْزَىٰ ۝

د صديق اكبر ﷺ فضائل:- اكثرمفسرين حضرات وائى چه دا آياتونه د حضرت ابوبكرصديق ﷺ باره كښې نازل شوى دى. تردې چه بعضې مفسرينوخو په دې باندې اجماع نقل كړې ده. بې شكه صديق اكبر ﷺ په دې كښې داخل دې اود دې په عموم كښې د ټول امت نه وړاندې دې سره د دې چه د آيت الفاظ عام دى. خوهغوى د ټولو نه اول د دې مصداق دى. په دې ټولواوصافوكښې اود ټولو په ټولو نيكوكښې د ټولونه اول د ټولو نه وړاندې اود ټولونه لوئ اوزيات هم هغه وو. هغوى صديق وو هغوى پرهيزګار وو سخى وو خپل مالونه نى د مولى په اطاعت كښې اود رسول الله ﷺ په امدادكښې په كولاوزړه سره خرچ كړې وو.هريوسره به نى احسان او سلوك كولو اودهيڅ دنياوى فائده په غوښتلوسره نه.دچاد احسان په بدله كښې نه بلكه صرف د الله ﷻ د مرضئى د پاره اود رسول الله ﷺ په حكم منلوكښې چه څومره خلق وو كه هغه لوئ وو كه واړه په ټولو باندې د صديق اكبر ﷺ د احسانونو بار وو.تردې چه عروه بن مسعود چه د قبيله ثقيف سرداروو د صلح حديبيه په موقع باندې حضرت صديق اكبر ﷺ هغه اورټلو اودوه خبرې ورته اوكړې نو هغه اوونيل كه چرې ستا احسان په ما باندې نه وو د كوم بدله چه زه

---

(¹) احمد: ۲۷۲/٤، وسنده صحيح وصححه الحاكم : ۲۸۷/۱. على شرط مسلم ووافقه الذهبى وهو.

(²) صحيح مسلم كتاب الايمان باب اهوان اهل النار عذابا: ۲۱۳.

(³) صحيح بخارى كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة باب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ : ۷۲۸۰.

نه شم درکولې نوما به تاله ضرور جواب درکړې وو. (۱) نو چه د عربویه بادشاهانو او د عربویه قبیلو باندې دهغوی دومره احسانونه وو چه هغه سر نه شو اوچتولې نو نور به څه وی؟ په دې وجه دلته هم اوفرمائیلې شو چه دچاد احسان بدله ورکول نه دی بلکه صرف دالله ﷻ ددیدار خواهش دېی د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی چه کوم سړې د الله ﷻ په لارکښې جوړه خرچ کړی هغه ته به د جنت څوکیدارې فرښتې وائی اې د الله ﷻ بنده دیخوانه راشه دا دروازه د ټولونه ښه ده نو حضرت ابوبکر صدیق ﷺ اوفرمائیل یارسول الله څه داسې ضرورت خونشته خواوفرمائې چه داسې هم څوك شته چه د جنت دټولودروازونه راوبللې شی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوشته اومانه دالله ﷻ نه داامیددې چه ته د هغوی نه یې.(۲)

﴿الحمدلله﴾ د سورت الیل تفسیرختم شو. د الله ﷻ احسان دې اود هغه شکر دې.

## ﴿تفسیرسورت الضحی﴾

**دسورت تعارف:-** د اسماعیل بن قسطنطین او شبل بن عباد په وړاندې حضرت عکرمه ﷺ د قرآن پاك تلاوت کولو.کله چه دې سورت ته اورسیدلونودواړواوفرمائیل چه اوس ددې ځائ نه دهرسورت په خاتمه باندې الله اکبر وایه. مونږ د ابن کثیر ﷫ په وړاندې ونیلو نوهغه مونږ ته هم دا اوفرمائیل چه مونږ ته مجاهد ﷫ دا فرمائیلی دی او حضرت مجاهد ﷫ ته دحضرت ابن عباس ﷺ دا تعلیم وواو ابن عباس ﷺ ته حضرت ابی بن کعب ﷺ فرمائیلی وو او ابی بن کعب ﷺ ته رسول الله ﷺ داحکم فرمائیلې وو(۳)امام القراءت حضرت ابوالحسن ﷺ هم د دې سنت راوی دی. حضرت ابوحاتم رازی ﷫ دې ته ضعیف حدیث وائی ځکه چه ابوالحسن ﷺ ضعیف دې ابوحاتم ﷫ خو د هغه نه حدیث نه اخلی.دغه شان ابوجعفرعقیلی ﷫ هم هغه ته منکرالحدیث وائی خوشیخ شهاب الدین ابوشامه شرح شاطبیه کښې د حضرت امام شافعی ﷫ نه روایت کوی چه هغه دیو سړی نه اوریدلی چه هغه به په مانځه کښې داتکبیرونیلو نو هغه اوفرمائیل تا ښه اوکړل او سنت ته اورسیدلې. داواقعه د دې خبرې مقتضی ده چه داحدیث صحیح وی. بیا په قاریانوکښې هم د دې خبرې اختلاف دې چه په کوم ځائ کښې داتکبیراولی اوځنګه ئې اولولی. بعضې خو وائی چه د ﴿وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى﴾ په خاتمه باندې بعضې وائی د والضحی په آخرکښې. اوبعضې خووائی چه صرف الله اکبر وایه بعضې وائی چه لااله الاالله والله اکبر وایه. بعضې قاریانود سورت والضحی نه د دې تکبیرونو ونیلودا وجه بیان کړې ده چه کله د وحی په راتلوکښې وخت اولګیدو او څه موده په حضور ﷺ باندې وحی نه نازلیده. بیا جبرائیل ﷺ راغلواوهم داسورت ئې راوړو نود خوشحالئی او فرحت په وجه حضور ﷺ تکبیراوونیلو. خودا د یو داسې سند سره نقل نه دې د کوم چه د صحت او ضعف پته اولګی. والله اعلم.

| آیاتونه | | سورة الضحی مکیة وهی احدی عشرة اٰیة ورکوعا واحدا | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ⑪ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

| وَالضُّحٰى ۙ | وَالَّيۡلِ | اِذَا سَجٰى ۙ | مَا وَدَّعَكَ | رَبُّكَ |
|---|---|---|---|---|
| قسم دې په ځاښت | او قسم دې په شپه | کله چې خوره شی | چې نه ئې پرېښودې ته | رب ستا |
| قسم دې دځاښت په وخت | اوپه شپه هرکله چې دا | راخوره شی | چې نه ته خپل رب پرېخودې یئ | |

۱) صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد: ۲۷۳۱.
۲) صحیح بخاری کتاب الصوم باب الریان للصائمین: ۱۸۹۷.
۳) حاکم ۳۰۴/۲.

وَمَا قَلٰى ۝ وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى ۝

اونۀ ناراضه شوي دي (ستانه) | او خامخا روستني دور | بهتر دي | دپاره ستا | داولنی دورنه |

او نه درنه خفه شوي دي | .........او ستا دپاره آخرت د دنيا نه ډير بهتر دي

وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى ۝ اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا

او ډير زر به درکړی تاله | رب ستا | پس تۀ به خوشحاله شې | ايا هغه اونۀ موندې تۀ | يتيم |

او ډير زر به درته الله ﷻ دومره څه درکړی | چې راضي به شې | ..................ايا الله ﷻ ته يتيم

فَاٰوٰى ۝ وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى ۝ وَوَجَدَكَ

نوخانې ني درکړوا اووې موندې تۀ | لار نه پيژندونکې | نو لار ني دراوښودله | اووې موندې تۀ |

بيانه وې موندلې چه خانې ني درکړوا او بې لارې ني موندلې وې نو لار ني درته سمه کړه | اومحتاجه ني

عَآئِلًا فَاَغْنٰى ۝ فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ ۝ وَاَمَّا السَّآئِلَ

غريب | نو مالدار ني کړې | نوهر چې دې يتيم | نو سختي مۀ کوه په هغه | او هر چې سوالګرې دې

موندلې وې | نو مالدار ني کړې | ......... نو يتيم ته قهر مه کوه | ..........................او سوال کړي

فَلَا تَنْهَرْ ۝ وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۝

| نو مۀ رټه هغه | او هر چې نعمت | د رب ستا دي | نوبيان کړه (اظهار ني اوکړه) |

مه رټه |............... اودالله ﷻ نعمت (چه پيغمبری ده) هر چاته بيانوه

**شان نزول:-** مسنداحمد کښې دی چه حضورﷺ بيمارشو اويوه شپه يادوه شپې د تهجد مونځ له پانه سيدې شو نويوې ښځې اووئيل ته ستا شيطان پريخودې. په دې باندې دا وړاندينی آياتونه نازل شو (بخاری اومسلم)([1])حضرت جندب ؓفرمائی چه د حضرت جبرائيل ؑ په راتلوکښې لږ وخت اولګيدو نومشرکانووئيل چه دې خو پريخودې شو نوالله ﷻ د﴿وَالضُّحٰى ۝﴾ نه د﴿ وَمَا قَلٰى ۝﴾ پورې آياتونه نازل کړل ([2]) بل روايت کښې دی چه د حضورﷺ يوه ګوته په کاڼی لګيدلې وه دکومې نه چه وينه راوتلې وه په دې باندې حضورﷺ اوفرمائيل ﴿هل انت الااصبع دميت وفى سبيل الله مالقيت﴾ يعنی ته صرف يوه ګوته نی اود الله ﷻ په لارکښې تاته دا زخم لګيدلې دې.طبيعت شريف د لږشان ناسازه کيدوپه وجه دوه درې شپې حضورﷺ بيدار نه شو په دې باندې هغه ښځې دا نازيبا الفاظ راوويستل نودا آياتونه نازل شو.وئيلې شی چه دا ښځه د ابولهب ښځه ام جميل وه په هغې دالله ﷻ غضب. د حضورﷺ ګوته مبارکه زخمی کيدل اودا مناسب کلام د ناڅاپې د ژبې مبارکې نه ادا کيدل خوپه بخاری اومسلم کښې هم ثابت دی ولې د قيام ترک کولوسبب دا([3]) خودل اوپه دې باندې دا آياتونه نازليدل،دا غريب دی.

ابن جرير کښې دی چه حضرت خديجة الکبری ؓ وئيلې ووچه تاسو نه چرته رب ناراض شوې نه وی؟ په دې باندې دا آياتونه نازل شو. ([4]) بل روايت کښې دی چه د حضرت جبرائيل ؑ په راتلوکښې وخت اولګيدو نو حضورﷺ ډير پريشانه شو په دې باندې حضرت خديجة الکبری ؓ دا سبب بيان کړو نو

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الضحی باب قوله (ماودعک ربک وما قلی) : ٤٩٥٠، صحيح مسلم: ١٧٩٧.
[2]) صحيح مسلم کتاب الجهاد باب مالقی النبی ﷺ من اذی المشرکين والمنافقين: ١٧٩٧.
[3]) صحيح بخاری کتاب الادب باب ما يجوز من الشعر والرجز: ٤١٤٦، صحيح مسلم: ١٧٩٦.
[4]) الطبری: ٤٨٧/٢٤.

په دې باندې دا ایاتونه نازل شو. (۱) دا دواړه روایتونه مرسل دی اود حضرت خدیجة الکبری رضی الله عنها نوم خو په دې کښې محفوظ نه معلومیږی اودا ممکن دی چه حضرت خدیجة الکبری رضی الله عنها د افسوس او خفګان سره دا فرمائیلي وي. والله اعلم.

ابن اسحاق رحمه الله او بعضې نورو سلفودا فرمائیلی دی کله چه حضرت جبرائیل علیه السلام په خپل اصلی صورت کښې ښکاره شوې وو اوډیر زیات نیزدې شوې وو هغه وخت هم د دې سورت وحی نازل شوې وه. د ابن عباس رضی الله عنه وینا ده چه د وحی په بندیدود مشرکانو ددې ناپاکه قول په وجه دا آیاتونه نازل شو. دلته الله جل جلاله دنمردراختلو د وخت د ورځې د رڼړااو دشپې د سکون اود تیارې قسم خوړلې دې چه د قادر د قدرت او خالق د خلق صفادلیل دې. لکه چه ارشاد دې ﴿وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ ۝ وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ۝﴾ بل ځای ارشاد دې ﴿فَالِقُ الْإِصْبَاحِ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ۝﴾ مطلب دا چه دلته نی د خپل قدرت هم بیان کړې دې فرمائی چه ستا رب ته نه تی پریخي نه تاسره دښمنی کوی ستاد پاره آخرت د دې دنیا نه ډیر بهتردې ځکه رسول الله ﷺ په دنیاکښې د ټولونه زیات زاهد وو اود ټولونه زیات د دنیاترک کونکې وو. د حضور ﷺ د سیرت مطالعه کونکی نه داخبره هیڅ کله پټه نه شی پاتې کیدې.

د حضور ﷺ شان: مسند احمد کښې دی چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی حضور ﷺ په بوجئی باندې اوده شوې وو اوپه بدن مبارك نی دبوجئی نښې جوړې شوې وې. چه کله بیدار شو نو ما په اړخ مبارك باندې لاس راښکلو او عرض مې اوکړو چه حضور ﷺ مونږ ته ولې اجازت نه کونی چه په دې بوجئی باندې څه خواره کړو. حضور ﷺ اوفرمائیل زما دنیاسره څه کار دې؟ زه چرته او دنیا چرته؟ زما اود دنیا مثال خو د هغه لاروی او سور دې چه د یوې ونې لاندې لږ شان حصار شی او بیا هغه پریږدی او لاړشی (۲) دا حدیث په ترمذی کښې هم دې او حسن دې.

قوله تعالی:- وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ ۝

بیا فرمائی ستارب به تاته په آخرت کښې دخپل امت باره کښې دومره نعمتونه درکړی چه ته به خوشحاله شې ددوی به ډیر عزت وی. حضور ﷺ له به په خاص توګه حوض کوثر ورکړې کیدې شی د کوم په غاړو چه به د ډوو مرغلرو خیمې وی د کوم خاوره چه به خالص مشك وی. دا حدیث ډیر زر راتلونکې دې ان شاء الله. یو روایت کښې دی چه کومې خزانې د حضور ﷺ امت ته ملاویدونکې وې هغه یوه یوه په حضور ﷺ باندې ظاهره شوې ده هغوی ډیر خوشحاله شو نو په دې باندې دا آیت نازل شو. (۳) په جنت کښې زر محلونه حضور ﷺ ته ورکړې شو په هریو محل کښې پاکې بیبیانې او بهترین خادمان دی. د ابن عباس رضی الله عنه پورې د دې سند صحیح دې اوپه ظاهره داسې خبره بغیرد حضور ﷺ نه د اوریدو نه شې کیدلې. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د حضور اکرم ﷺ په رضامندئی کښې داهم دی چه د هغوی په اهل بیت کښې څوك دوزخ ته لاړنه شی. حضرت حسن رحمه الله فرمائی دې نه مراد شفاعت دې.

ابن ابی شیبه کښې دی چه حضور ﷺ فرمائیلی مونږ هغه خلق یود چاد پاره چه الله جل جلاله آخر په دنیا باندې خوښ کړې دې. بیائی دا آیت ﴿وَلَسَوْفَ﴾ تلاوت کړو (۴) بیا الله جل جلاله د خپل نعمت خودنه کوی. اولنې نعمت نی دابیان کړوچه د حضور ﷺ د یتیموالی په حالت کښې الله جل جلاله ستا حفاظت اوکړو پالنه نی اوکړه او ځای درکړو. د حضور ﷺ دپلار انتقال دهغوی ﷺ د پیداکیدونه وړاندې شوې وو. بعضې

(۱) الطبری: ۲۴/۴۸۴.
(۲) ترمذی کتاب الزهد باب حدیث (ما الدنیا الاکراکب استظل) ابن ماجة: ۴۱۰۹.
(۳) الطبری: ۲۴/۴۸۷.
(۴) مصنف ابن ابی شیبه: ۳۷۷۱۶.

وائی چه د پیدائش نه وړاندې شوې وو. د شپږو کالو په عمر کښې موربی بی هم وفات شوه. دې وخت کښې د نیکه په کفالت کښې وو خوچه کله د اتوکالوشو نو نیکه ئې هم وفات شو. دې نه پس د خپل تره ابوطالب په ساتنه کښې راغلو. ابوطالب به د حضور ﷺ امداد او خیال ساتلو دهغوی به ئې پوره عزت کولواود قوم دمخالفت راختونکې طوفان به ئې منع کولو او خپل ځان به ئې د ډال په توګه پیش کولوخکه چه د څلویښتوکالو په عمر کښې حضور ﷺ ته نبوت ملاو شوې وو اوقریشوسخت مخالفت بلکه دخان دښمنان شوې وو.ابوطالب به سره د بت پرستنې او مشرک توب د حضور ﷺ ملګرتیاکوله او مخالفینوسره به جنګ او شرکولو.دا وو د الله ﷻ د طرف نه تدبیرچه د حضور ﷺ د یتیموالی ورځې داسې تیرې کړې اود مخالفینو نه د حضور ﷺ داسې خدمت واخستلو. تردې چه د هجرت نه لږ شان وړاندې ابوطالب هم وفات شو.اوس د قریشو سفهاء او جهلا راپاسیده نو پروردګارعالم حضور ﷺ ته د مدینې طرف ته د هجرت رخصت ورکړواود اوس او خزرج غونډې خلق ئې د حضور ﷺ انصار او امدادیان جوړکړل. دې بزرګانو حضور ﷺ ته اود هغوی ملګروته ځائ ورکړو اوامدادئې اوکړو حفاظت ئې اوکړو اومخالفینو سره مقابله اوکړه بهادرئې سره ئې جنګونه اوکړل. الله ﷻ دې د دې ټولونه خوشحاله شی اودا هرڅه د الله ﷻ حفاظت عنایت احسان اواکرام سره وو.

**قوله تعالی:- وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰىؕ**

بیا فرمائی لار هیره کیدلو سره ئې درته صحیح لاراوخودله لکه چه ارشاد دې ﴿مَاكُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِيْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ۚ وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْۤ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۙ صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ اَلَاۤ اِلَى اللّٰهِ تَصِيْرُ الْاُمُوْرُ﴾ یعنی دغه شان مونږ په خپل حکم باندې ستاطرف ته روح (جبرائیل ﷺ یا قرآن پاك) وحی اوکړه. تاته داهم پته نه وه چه ایمان څه څیز دې نه درته د کتاب خبروو بلکه مونږ دا نور جوړکړو اوچه چاله مو غوښتل هدایت مو اوکړو.بعضې وائی مراد دا دی چه حضور ﷺ په وړوکوالی مکه کښې ورك شوې وو هغه وخت الله ﷻ راواپس کړو. بعضې وائی چه ملك شام طرف ته خپل تره سره تلوکښې شیطان د حضور ﷺ اوښه د پرې نه نیولې وه اود لارې نه ئې اخواکړې وو ځنګل کښې اچولې وو.نو جبرائیل ﷺ راغلو شیطان له ئې پوکې ورکړو او هغه خو ئې حبشه ته اورسولو او سورلی په لارکړه. بغوی دا دواړه اقوال نقل کړی دی. بیافرمائی چه د بال بچ خاوند کیدوسره په تنګدستئ کښې ته مونږ غنی کړې. بیا د فقیر صابر او غنی شاکر کیدو درجې تاته ملاوشوې. صلوات الله وسلامه علیه.

حضرت قتاده رحمه الله فرمائی دا ټول احوال د نبوت نه مخکې دی. بخاری اومسلم وغیره کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه مالداری په مال اواسباب په زیاتی سره نه ده بلکه حقیقی مالداری هغه ده د چا زړه چه بې پرواه وی([1])صحیح مسلم کښې دی چه هغوی خلاصې بیاموندلو چاته چه اسلام نصیب شواو کافی شو چه دومره رزق ورته هم ملاوشو ([2]) اود الله ﷻ په ورکړه قناعت او توفیق ملاوشو.

**قوله تعالي:- فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْؕ**

یتیم مه رټه:-بیافرمائی چه یتیم سپك مه ګڼړئ رټنه مه ورکوه بلکه هغه سره احسان او سلوك کوه خپل یتیموالی مه هیره وه. قتاده رحمه الله فرمائی چه دیتیم پحقله داسې کیدل پکاردی څنګه چه سکه پلارپه خپل اولادباندې مهربان وی.سوالګر مه رټه څنګه چه ته بې لارې وې اوالله ﷻ هدایت درکړو نو چه اوس تانه څوك د علمی خبروتپوس کوی او صحیح لارې تپوس کوی نو ته هغوی مه رټه. په غریبانانو مسکینانواوضعیفانوباندې کبر اولوئی مه کوه. دې مه زوروه. بدې ردې ورته مه وایه. سخت سست

---

([1]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الغنی غنی النفس : ۶۴۴۶، صحیح مسلم: ۱۰۵۱، ترمذی : ۲۳۷۳.

([2]) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب فی الکفاف والقناعة: ۱۰۵۴، ترمذی : ۲۳۴۸.

ورنه مه وايه. که مسکين ته څه ورنه کړې نو هم خيردې اوکه ښه جواب ورکړې اونرمنې او رحم سره ئې رخصت کړه. بيا فرمائي چه د خپل رب نعمتونه بيانوه يعنې څنګه چه مونږ ستا فقيرې مونږ په مالدارنې بدله کړه نوته هم زمونږ دا نعمت بيانوه. د دې د پاره د حضورﷺ په دعاګانو کښې داهم وو (واجعلنا شاكرين لنعمتك مثنين بها عليك قابليها واتمها علينا) اې الله مونږ د خپلو نعمتونو شکر کونکې، د دې د وجه نه ستا ثنا بيانونکې اودې اقرارکونکې جوړکړه اودا نعمتونه مونږ له پوره راکړه[1] ابونضره رحمه الله فرمائي چه د مسلمانانو داخيال وو چه د نعمتونو په شکرويستلو کښې داهم داخل دی چه د دې بيان اوکړې شي.

مسند احمد کښې دی چه کوموخلقو په لږو باندې شکر اونه کړو هغه په ډيرو هم شکر اونه کړو. د خلقو شکريه چه چا اونه کړه نوهغه د الله ﷻ شکريه هم اونه کړه[2] دنعمتونو بيان هم شکردې اود هغې بيان نه کول ناشکرې ده. جماعت سره اوسيدل د رحمت سبب دې اوتفرقه د عذاب سبب دې. ددې اسناد ضعيف دی. بخارې اومسلم کښې دانس ﷺ نه روايت دې چه مهاجرينو اوويل يارسول الله ﷺ انصارو خو ټول اجرونه يوړل. وئې فرمائيل نه ترکومې چه تاسو د هغوی د پاره دعا کوئې اود هغوی تعريف کوئې[3] ابوداؤد کښې دی چه هغه دالله ﷻ شکر اونه کړو ترکومې چه ئې د خلقو شکريه نه وی اداکړې. [4] د ابوداؤد په يوبل حديث کښې دی چاته چه يونعمت ملاوشو اوهغه دا بيان کړو نو هغه شکر کونکې دې اوچاچه دا پټ کړو هغه ناشکره دې[5] بل روايت کښې دی که چاته څه ورکړه اوشي نوهغه له پکار دی چه کيدې شي نو بدله دې ورکړې اوکه اونه کړې شي نود هغه تعريف دې اوکړې. چاچه تعريف اوکړو هغه شکراداکړو اوچاچه د دغه نعمت اظهار اونه کړو هغه ناشکرې اوکړه. (ابوداؤد) [6]

مجاهد رحمه الله فرمائي چه دلته د نعمت نه مراد نبوت دې. يوروايت کښې دی چه قرآن مراد دې. حضرت علی ﷺ فرمائي چه مطلب دا دې کومې د خيرخبرې چه تاته معلومې دی هغه خپلو رونړوته هم بيان کړه. محمد بن اسحاق رحمه الله وائي چه کوم نعمت اوکرامت تاته د نبوت ملاودې دا بيان کړه د دې ذکر کوه اود دې طرف ته خلقو له دعوت ورکوه. حضورﷺ په خپلوانو کښې چه په چاباندې اطمينان وو د پټوالې نه وړاندې وړاندې دعوت ورکول شروع کړو اوپه حضورﷺ باندې مونځ فرض شو نو ادائې کړو.

(الحمد لله) د سورت والضحى تفسير ختم شو. د الله ﷻ په احسان باندې د هغه شکر دې.

| اياتونه | | سورة الانشراح مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑧ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

| اَلَمْ نَشْرَحْ | لَكَ | صَدْرَكَ ۝ | وَوَضَعْنَا | عَنْكَ | وِزْرَكَ ۝ | الَّذِيْٓ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ايا مونږه پرانڅه نسته | ستاد پاره | سينه ستا | او اوچت کړو مونږ | ستانه | بوج ستا | هغه بوج |

ايا مونږ تاله ستا سينه نه ده پرانيستې او ستا نه مو هغه بار نه دې کوز کړې چې ستا

---

[1] ابوداود كتاب الصلاة باب التشهد: ٩٦٩، وهو حديث صحيح.
[2] زوائد مسند احمد: ٢٨٧/٤.
[3] داروايت په صحيحينو کښې نشته دې. او ابوداود كتاب الادب باب في شكر المعروف: ٤٨١٢.
[4] ابوداود حواله سابق: ٤٨١١، وسنده صحيح، ترمذي: ١٩٥٤.
[5] ابوداود كتاب الادب باب في شكر المعروف: ٤٨١٤.
[6] ابوداود حوالا سابق: ٤٨١٣.

| أَنْقَضَ | ظَهْرَكَ ۝ | وَرَفَعْنَا | لَكَ | ذِكْرَكَ ۝ | فَإِنَّ | مَعَ الْعُسْرِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ماتوله ئې | ملاستا | او پورته کړو مونږه | ستادپاره | شهرت ستا | نو بېشکه | دسختئ سره |
| ملائې ماته کړې وه \| اوستانوم مو نه دې پورته کړې \| نوبیشکه په سختئ پسې اسانی راځی | | | | | | |

| يُسْرًا ۝ | إِنَّ | مَعَ الْعُسْرِ | يُسْرًا ۝ | فَإِذَا | فَرَغْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اسانتیا وی | بېشکه | سختئ سره | اساتنیا وی | نو هر کله چې | وزګار شې ته |
| بیشکه چې په سختئ پسې اسانی راځی \| نو هرکله چې فارغ شې (د عبادت نه) نو په عبادت کښې | | | | | |

| فَانْصَبْ ۝ | وَإِلَىٰ رَبِّكَ | فَارْغَبْ ۝ |
|---|---|---|
| نو کوشش کوه په عبادت کښې | او رب خپل ته | رغبت (توجه) کوه |
| ښه محنت کوه \|......................... او خپل رب ته رغبت کوه | | |

**قوله تعالی:- أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۝**

**الله تعالی دخپل پیغمبرﷺ سینه کولاوکړه:**-یعنی مونږ ستا سینه روښنانه کړه پلنه کولاو اود رحمت او کرم والاموکړه. بل ځائ ارشاد دې ﴿فَمَنْ یُرِدِاللهُ﴾ الخ یعنی چاته چه الله ﷻ هدایت ورکول غواړی د هغه سینه د اسلام دپاره کولاووی. لکه څنګه چه ستاسینه کولاوکړې وه دغه شان ستا شریعت هم د کولاو والی نرمئ او آسانتی والا جوړکړې په کوم کښې چه نه څه حرج شته نه تنګی نه تکلیف اوسختی. او دا هم وئیلې شوی دی چه مراد د معراج والا د شپې د سینې شلول دی لکه چه د مالك بن صعصعه په روایت سره اول تیرشوی دی. امام ترمذی دا حدیث دلته واردکړې دې[1] خودا یادساتنی چه دا دواړه واقعات مرادکیدې شی.یعنی د معراج دشپې دسینې شلول اوسینه دالله ﷻ د رازخزانه جوړول والله اعلم.
حضرت ابی بن کعبؓ فرمائی چه حضرت ابوهریرهؓ ډیر بهادرئی سره د رسول الله ﷺ نه د هغه خبرو تپوسونه کول د کومو چه به بل چا تپوس نه شوکولې. یوځل ئې سوال اوکړو یارسول الله ﷺ د نبوت په امرکښې د ټولونه اول تاسو څه اولیدل؟ حضورﷺ په طریقه سره کیناستو او وئې فرمائیل ابوهریرهؓ زه د لسوکالو اوځو میاشتو ووم په ځنګل کښې ولاړوم چه د آسمان د طرف نه مې د څه آواز واوریدو چه یوسړې بل چاته وائی چه دا هم هغه دې؟ اوس دوه سړی ماله مخامخ راغله د چا ځلې چه ډیرې پرقیدې اوماداسې ورانډې نه وې لیدلې او خوشبویانې ترې راتلې چه زما دماغو داسې بوئی نه وُ اخستې اوداسې کپړې ئې اغوستې وې چه ما چاسره هم داسې کپړې نه دی لیدلې. راغلو اوزما دواړه لاسونه ئې اونیول خوماته دا هم نه معلومیدله چه چازما لاسونه نیولې دی بیا یوبل ته اوونیل چه دې راسملوه.نوهغه زه راسملولم او په دې کښې هم ماته څه تکلیف محسوس نه شو. بیا یو بل ته اوونیل د ده سینه اوشلوه نوزما سینه ئې اوځیرله خو په دې کښې ماته هیڅ درداونه شو اونه مې وینه اولیدله. بیا اوونیل چه دې نه شور خرابوالی حسد بغض ټول اوباسه.هغه د وینې په شان یوڅیز رااوویستلو او وئې غورزولو. بیاهغه وئیل په دې کښې نرمی رحمت رحم اوکرم ورواچوه. بیائی د سپینوزرو په شان یو څیز څومره چه راویستلې وو ورواچولو. بیائی زما د ښې پښې غټه ګوته اوخوزوله او وئې وئیل زه اوبه سلامتیاسره ژوند تیروه.اوس چه زه روان شوم نو په هروړوکې باندې زما زړه نرم دې او په هرلوئ باندې رحمت دې (مسنداحمد) ([2])

[1]) ترمذی کتاب التفسیر باب ومن الم نشرح : ۳۳۴۶، والبخاری :۳۲۰۷.
[2]) زوائد مسند احمد: ۱۳۹/۵.

قوله تعالى :- وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ﴿۴﴾
الله تعالى د پيغمبر ﷺ بوج سپک کړو:- بيافرمان دي چه مونږ ستا بوج کوزکړو داهم په دې معنى کښې دى چه الله ﷻ ستا وړاندې روستو ټول ګناهونه معاف کړل کوم چه ستا ملا درنه کړې وه. مونږ ستا ذکر اوچت کړو. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه کوم ځائ زما ذکر کولې شى هلته به ستاذکر هم کولې. لکه (اشهد ان لااله الاالله واشهدان محمدًارسول الله) قتاده رحمه الله فرمائى چه په دنيااوآخرت کښې الله ﷻ ستاذکر اوچت کړو. هيڅ يوخطيب وعظ کونکې اوکلمه ويونکې مونځ ګذاراسې نه دې چه د الله ﷻ د وحدانيت اوستاد رسالت کلمه نه وائى. ابن جرير کښې دى چه حضور ﷺ له حضرت جبرائيل ﷺ راغلو اوونى فرمائيل چه زمااوستا رب فرمائى چه زه ستا ذکر څنګه اوچت کړم؟حضور ﷺ اوفرمائيل هم الله ﷻ ته پوره علم دې. ونى فرمائيل چه کله زما ذکر کيږى نو ستابه هم ذکر کولې شى.
ابن ابى حاتم کښې دى رسول الله ﷺ فرمائى چه ماد خپل رب نه يو سوال اوکړو خوچه کړې مې نه وې نوبه به وه. ما اوونيل چه اې الله تامانه وړاندې نبيانوکښې دچادپاره هوا تابعداره کړې وه د چا په لاس دې مړى ژوندى کول نو الله ﷻ ماته اوونيل چه تاله ما په يتيم والى کښې ځائ نه وو درکړې؟ ماونيل بې شکه. ونى فرمائيل چه لاردرنه ورکه شوې وه تاله ماهدايت نه وو درکړې؟ ماونيل بې شکه. ونى فرمائيل فقيرکيدوسره مې غنى کړې نه وې؟ما ونيل بې شکه. ونى فرمائيل چه آيا ستا سينه ما کولاو کړې نه وه؟ آيا ما ستا ذکر اوچت کړې نه وو؟ ما ونيل بې شکه کړې دې دې.
ابونعيم په دلائل النبوة کښې راوړلى دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله زه فارغ شوم دهغه څيز نه دکوم حکم چه ماته زمارب کړې وو. دآسمان اوزمکې دکار نه نومااوونيل اې الله ﷻ! زمانه وړاندې چه څومره انبياءکرام عليهم السلام وودهغوى ټولو تاعزت اواکرام کړې. ابراهيم ﷺ دې خليل جوړکړې، موسى ﷺ دې کليم جوړکړو، د داؤد ﷺ دپاره دې غرونه مسخر کړل، دسليمان ﷺ د پاره دې هوا ګانې تابعدارې کړې او شيطانان هم، دعيسى ﷺ په لاس دې مړى راژوندى کړل نوزما د پاره دې څه کړى؟الله ﷻ اوفرمائيل چه آياماته ددې ټولونه افضل څيز تاته نه دې درکړې؟چه زما ذکر سره ستا ذکر هم کيږى. اوماستا دامت سينې داسې کړى دى چه هغوى قرآن پاک ظاهرا لولى. دا ما چرته وړاندينو امتونو ته نه دى ورکړى اوما تاته دعرش دخزانونه خزانه درکړې چه (لاحول ولاقوة الابالله العلى العظيم) دى.
ذنبى ﷺ نوم به ژوندې وى: ابن عباس رضى الله عنه او مجاهد رحمه الله فرمائى چه دې نه مراد اذان دې يعنى په اذان کښې دحضور ﷺ ذکر دې څنګه چه د حضرت حسان رضى الله عنه په شعرکښې دې:

| | |
|---|---|
| اغر عليه للنبوة خاتم | من الله من نور يلوح ويشهد |
| وضم الاله اسم النبى الى اسمه | اذاقال فى الخمس المؤذن اشهد |
| وشق له من اسمه ليجله | فذوالعرش محمود وهذا احمد ﷺ |

ترجمه - الله ﷻ دنبوت مهر د خپل طرف نه يونورجوړکړواو په تابانده اوبرقو چه ستا د رسالت ګواه دې. د خپل نوم سره ئى دخپل نبى ﷺ نوم يوځائ کړواو پنځه وخته مؤذن (اشهدا) الخ وائى. ستا د عزت اوجلال د ښکاره کولود پاره ئى خپل نوم نه ستا نوم راوويستو ګوره هغه دعرش والا محمود دې او ته محمد ﷺ ئى. اوخلق وائى چه په مخکښو او روستونوکښې الله ﷻ ستاد نوم ذکر اوچت کړو اود ټولو انبياءکرام وعليهم السلام نه ئى دميثاق په ورخ وعده واخستله چه هغوى به تا باندې ايمان راوړى او خپلوخپلو امتونوته هم به تاباندې د ايمان راوړلوحکم اوکړى. بيائى ستا په امت کښې ستا ذکر مشهور کړو چه د الله ﷻ د ذکرسره ستا ذکر اوکړې شى.
صرصرى رحمه الله څومره ښه خبره بيان فرمائيلې ده فرمائى چه د فرضواذان صحيح نه وى خوچه حضور ﷺ د خوږ نوم چه د خوښ کړې شوې او ښکلې خلې نه اداشى اوفرمائى چه زمونږ اذان او زمونږ

فرض صحیح کیږي نه ترکومې چه ستا ذکر بار بار رانه شي. بیا الله تبارك وتعالى د تکرار او تاکید سره دوه دوه ځل فرماني چه سختنی سره آساني اومشکل سره سهولت دې.ابن ابی حاتم کنبې دي رسول الله ﷺ ناست وو او د حضور ﷺ مخکې یو کاڼې وو.خلقوونیل که سختي راشي نو په دې کاڼي کنبې ورننوځي نوآساني به هم راشي او هم په دې کنبې به ځي اود دې نه به ئې راوباسي. په دې باندې دا آیت نازل شو(١) مسندبزار کنبې دی چه حضور ﷺ فرماني که سختي په دې کاڼي کنبې داخله شي نو آساني به راشي اودابه راوباسي. بیاحضور ﷺ د دې آیت تلاوت اوفرمائیلو(٢)دا حدیث صرف عائذ بن شریح د حضرت انس ﷺ نه روایت کړې دې اود هغه باره کنبې دابوحاتم رازی ﷫ فیصله ده چه دده په حدیث کنبې ضعف دې اود ابن مسعود ﷺ نه موقوف روایت دې.

**یوه سختي په دوه اسانو نشي غالب کیدې:** حسن ﷺ فرماني چه خلقو به ونیل چه یوه سختي په دوو آسانو باندې نه شي غالب کیدې. دحضرت حسن ﷺ نه په ابن جریرکنبې روایت دې چه نبي کریم ﷺ یو ځل ډیر خوشحاله خوشحاله مسکې کیدوسره اوفرمائیل هیڅ کله یوه سختي په دوو نرموباندې غالب نه شي راتلې بیا حضور ﷺ د دې آیت تلاوت اوفرمانیلو. (٣) داحدیث مرسل دې. حضرت قتاده ﷫ فرماني چه مونږ ته ذکر کړې شوې دې چه حضور نبی اکرم ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ ته زیرې واورولو چه په دوو آسانوباندې یوه سختي غالب نه شي راتلې. (٤) مطلب دا چه د عسرة لفظ ئې دواړو ځایونو کنبې معرفه راوړلې دې او هغه مفرد شواود یسر لفظ ئې نکره راوړلې دې نوهغه متعددشو. یوحدیث شریف کنبې دی چه معونة یعني د الله ﷻ امداد په اندازه د مؤنة یعني تکلیف سره د آسمان نه نازلیږی اود صبر اومصیبت په اندازه باندې نازلیږی. حضرت امام شافعي ﷫ فرماني:

صبراجميلاما اقرب الفرجا — من راقب الله في الامور نجا

من صدق الله لم ينله اذى — ومن رجاه يكون حيث رجا

یعني ښه صبر کولاووالی ته څومره نیزدې دې؟ په خپلوکارونوکنبې دالله ﷻ لحاظ لرونکې خلاصې بیا موندونکې دې.دالله ﷻ دخبرو تصدیق کونکی ته هیڅ تکلیف نه رسي.دهغه نه د نیکئی امید ساتونکې هغه په خپل امیدباندې بیامومي.دحضرت ابوحاتم سجستاني ﷫ اشعاردی چه کله مایوسي په زړه باندې قبضه کوی اوسینه سره د کولاووالی تنګه شي تکلیفونه ئې راګیر کړی او مصیبتونه ورته راجمع شي اوهیڅ لار ورته نه ښکاری اوخه چل ول هم د خلاصی نه وی نوهغه وخت ناڅاپې د الله تعالى امدادراځي اوهغه د دعاګانو اوریدونکې دې.ډیر لرې کتونکې الله ﷻ هغه سختي آسانوی او هغه تکلیف په راحت کنبې بدلوی. سختنی چه کله ښه پوره راځي پروردګار کولاو والی نازلوی اونقصان په فائده کنبې بدلوی. یوبل شاعر هم ونیلي دي:

ولرب نازل يضيق به الفتى

ذرعا وعند الله منها المخرج

كملت فلما استحكمت حلقاتها

فرجت وكان يظنها لا تفرج

یعني ډیرداسې مصیبتونه په انسان باندې نازلیږی په کوم سره چه د هغه زړه تنګ شي سره د دې چه الله ﷻ سره د دې نه خلاصې هم شته. کله چه دامصیبتونه پوره شي اود زنځیر کړئی مضبوطې شي او

---

(١) حاکم : ٢٥٥/٢،

(٢) مسند البزار: ٢٢٨٨،

(٣) حاکم : ٥٢٨/٢،

(٤) الطبری :٤٩٥/٢٤،

انسان گمان کوي چه ښه نواوس به څه کيږي؟چه ناڅاپي دهغه کريم رحيم الله ﷻ د شفقت نظر پريوځي او هغه مصيبت داسې لرې کوي چه لکه هډو راغلې نه وو. د دې نه پس ارشاد مبارك دې چه ته کله د دنياوي کارونواود دې ځائ د شغلونونه فارغ شې نوزمونږ په عبادتونوکښې اخته شه او اوزګارتياسره د زړه په توجه سره زمونږ په وړاندې په عاجزئي کښې لګياشه. خپل نيت خالص کړه په خپل پوره رغبت سره زمونږ طرف ته متوجه شه.

هم د دې معنى هغه حديث دې چه د هغې په صحت دټولو اتفاق دې په کوم کښې چه دى دخوراك د موجودګئ په وخت کښې مونځ نشته په دې حالت کښې هم کله چه انسان ته د متيازوغيره حاجت وي.(۱) بل حديث کښې دي چه کله مونځ اودرولې شي اود ماښام خوراك مخکښې موجود وي نو اول د خوراك نه ځان اوزګار کړه. (۲)

حضرت مجاهد رحمه الله د دې آيت په تفسيرکښې فرمائي چه کله ددنياد کارنه فارغ شې اود مانځه د پاره اودريږې نو په محنت سره عبادت کوه اوپه مشغوليت سره د رب طرف ته توجه کوه. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه کله د فرض مانځه نه فارغ شې نو د تهجد په مانځه اودريږه.حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه د مانځه نه فارغ شې نو په ناسته باندې دخپل رب طرف ته توجه اوکړه.حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائي چه دعااوکړه.زيدابن اسلم رحمه الله او ضحاك رحمه الله فرمائي چه د جهادنه فارغ شې نودالله ﷻ په عبادت کښې لګيا شه اوخپل نيت او رغبت د الله ﷻ طرف ته متوجه کړه.

(الحمدلله) د سورت الم نشرح تفسير د الله ﷻ په فضل اوکرم سره ختم شو.

## (تفسيرسورت التين)

**دسورت تعارف:-** حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي رسول الله ﷺ به په خپل سفرکښې په دوو رکعتو کښې په يوکښې دا سورت لوستلو.ما د حضورﷺ نه زيات ښکلي آواز اوښکلې قراءت د بل چا نه دې اوريدلي.(۳)

| اياتونه | | سورة التين مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑧ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

| وَالتِّيْنِ | وَالزَّيْتُوْنِ ① | وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ② | وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ③ |
|---|---|---|---|
| قسم دې په اينځر | او په خونډ | او په طور سينا باند | او په دې ښار د امن باند |
| زما قسم دې په انځر | اوپه ښونه | اوپه طور سينا باندې | او په دې امانت ګر ښار(مکه) باندې |

| لَقَدْ خَلَقْنَا | الْاِنْسَانَ | فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ④ | ثُمَّ رَدَدْنٰهُ | اَسْفَلَ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه پيدا کړو مونږ | انسان | په بهترين شکل کښې | بيا واپس کړو مونږه هغه | ډير لاند |
| چه بيشکه مونږ انسان په ښه معتدل صورت کښې پيدا کړې دې | | | بيا مو (د عمرتيريدو په وجه) | |

۱) صحيح مسلم كتاب المساجد باب كراهة الصلاة بحضر الطعام الذى يريداكله فى الحال: ۵۶۰.
۲) صحيح بخارى كتاب الاذان باب اذا حضر الطعام واقيمت الصلاة: ۶۷۱، صحيح مسلم: ۵۵۷.
۳) صحيح بخارى كتاب الاذان باب القراة فى العشاء: ۷۶۹، صحيح مسلم: ۴۶۴، ابوداود: ۱۲۲۱.

سٰفِلِيْنَۙ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ

دلاندونه | بغير دهغه كسانونه ؛ چې ايمان ئې راوړو |او عملونه ئې اوكړل نيك | پس هغوئ دپاره دي

دلاندې نه لاندې مرتبې ته اوغورزولو |خو څوک چې مومنان دی | اونيک کارونه کوی| نو هغوی دپاره

اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍؕ فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِؕ

اجر | نه ختميدونكي | نو څوك به دروغ اوګڼړي تا لره | روستو ددې نه | په معامله دجزا كښې |

نه ختميدونكې ثواب مقرر دې| نو(انسانه) ددې نه پس كوم څيز د جزا د ورځې دروغ ګڼړلو ته آماده كوئ

اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ۠

آيا نه دې الله | لوئ حاكم | دټولو حاكمانونه

ايا الله ﷻ دټولو حاكمانو دپاسه لوئې حاكم نه دې (بلكه دې)

**قوله تعالى:-** وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِۙ وَطُوْرِ سِيْنِيْنَۙ

**انځر یاتین نه څه مراد دې** :-د تين نه مراد د چا په نيزد خود دمشق جمات دې،څوك وائی پخپله دمشق ترې مراد دې اودچاپه نيزد د دمشق يوغرمراد دې. بعضې وائی داصحاب کهف جمات ترې مراددې. څوك وائی چه په جودی غربانډې كوم مسجدنوح دې هغه مراد دې. بعضې وائی انځر ترې مراد دې او د زيتون نه څوك وائی چه بيت المقدس مراد دې.

**زيتون اوطورسينا**:-چا وئيلې هغه زيتون كوم چه نچوړی كيږی. طورسينين دوه غرونه دی په كوم چه حضرت موسى ﷺ دالله ﷻ سره خبرې كړې وې.﴿وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِۙ﴾ نه مراد مكه ده په دې كښې د چا هم اختلاف نشته.دبعضو قول دا دې چه دا دريواړه ځايونه هغه دی چرته چه درې اولوالعزم پيغمبران عليهم السلام راليګلې شوې وو.د تين نه مراد خو بيت المقدس دې چرته چه نی عيسى ﷺ نبی جوړ كړې ليګلې وو اود طور سينين نه مراد طور سينا دې چرته چه موسى بن عمران ﷺ د خپل رب سره كلام كړې وو اود ﴿الْبَلَدِ الْاَمِيْنِۙ﴾ نه مراد مكه مكرمه ده چرته چه زمونږ سردار حضرت محمد مصطفى احمدمجتبا ﷺ ليګلې شوې وو.د تورات په آخركښې د دې دريواړو ځايونونومونه دی. په دې كښې دی چه دطورسينا نه الله ﷻ راغلو يعنی هلته نی حضرت موسى ﷺ سره كلام اوكړو اود ساعيريعنی بيت المقدس د غرنه هغه نور اوپرقولو.

**دَ مكه عظمت** :- حضرت عيسى ﷺ نی هلته اوليګلو اود فاران په څوكو باندې هغه اوچت كړو يعنی د مكې دغرونونه نی حضرت محمد ﷺ اوليګلو بيا د دې دريواړو زبردست مرتبې والا پيغمبرانو په زبانی او بدنی ترتيب بيان كړو. دغه شان دلته نی هم د چا نوم چه اول واخستو د هغې نه نی بيا د نور ډيرشريف څيز نوم واخستلو اوبيا نی د دې ديواړو نه د ډير بزرګ څيز نوم په آخركښې واخستلو. بيائی ددې قسمونو نه پس اوفرمائيل چه انسان په ښه شكل اوصورت سره صحيح قداوقامت سره ښكلې اومزيداراندامونو سره دښائسته او ښكلې بشر والاپيدا كړو.بيائی هغه د ښكتونه ښكته كړو يعنی دوزخی شو.كه د الله ﷻ تابعداری اود رسول حكم منل نی اونه كړل نود دې وجه نه نی دايمان والا جدا كړل.بعضې وائی چه مراد ترې نه بوډاوالی طرف ته واپس ګرځول دی.

**قوله تعالى :-** ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَۙ

حضرت عكرمه ؓ فرمائی چاچه قرآن كريم جمع كړو هغه به رذيل عمر ته نه رسی.امام ابن جرير رحمه الله هم دا خوښوی خوكه دا بوډاوالې مراد وونود مؤمنانو استثناء به ولې كيده. بوډاوالې خو په بعضې

مؤمنانو هم راخي. نو تيك خبره هم هغه ده كومه چه مونږ پورته ذكر كړه.لكه چه بل ځاى په سورت العصر كښې دي چه ټول انسانان په نقصان كښې دي سوا د هغوى نه چه ايماندار او نيك عمل كوى او هغوى ته به نيكه بدله ملاويږى دكوم چه به ختميدل نه وى لكه چه اول بيان شوي دي. بيا فرمائي اې انسانه چه ته د خپل اول خل پيدا كيدلو نه خبرئې نو بيا دجزا اوسزادورځې په راتلو اوستاپه بيا راژوندى كيدوباندې ستا يقين ولې نشته؟ څه وجه ده چه ته دا نه منې سره د دې چه ظاهره ده چا چه په اول ځل پيدا كړې نو په دويم ځل پيدا كول څه سخت دي؟

حضرت مجاهد رحمه الله يو ځل د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه دې نه مراد حضور ﷺ دې؟ هغوى اوفرمائيل معاذالله دې نه مراد مطلق انسان دې.د عكرمه رضي الله عنه وغيره هم دا قول دې. بيا فرمائي چه ولې الله ﷻ احكم الحاكمين نه دې؟هغه نه ظلم كوى نه بې انصافي كوى د دې دپاره به هغه قيامت قايموى اود هرظالم نه به د مظلوم بدله اخلي.دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه په مرفوع حديث كښې روايت تيرشوي دې چه كوم سړي ﴿ وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ﴾ اولولى اود دې آخرى آيت ﴿ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ ﴾ اولولى نو وائي ﴿ وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴾ يعني او زه په دې ګواه يم. (1)

(الحمدلله) د الله ﷻ په فضل اوكرم سره د سورت والتين تفسيرختم شو.

| اياتونه | | سورة العلق مكية وهي تسع عشرة اٰية وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑲ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ① |

| اِقْرَاْ | بِاسْمِ رَبِّكَ | الَّذِيْ | خَلَقَ ۚ | خَلَقَ الْاِنْسَانَ |
|---|---|---|---|---|
| اولوله | په نوم درب خپل | هغه رب | چې پيدا ئې كړو (ټول كائنات) | پيدا ئې كړو انسان |
| (اې زما محبوبه) دخپل رب په نوم قران لوله | | | چې مخلوق ئې پيدا كړي دې | انسان ئې دڅكه وينې نه |

| مِنْ عَلَقٍ ۚ | اِقْرَاْ | وَرَبُّكَ | الْاَكْرَمُ ۙ | الَّذِيْ | عَلَّمَ | بِالْقَلَمِ ۙ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دڅكه وينې نه | اولوله | او رب ستا | ډير كريم دې | هغه | چې علم ئې اوښودو | په ذريعه دقلم |
| پيدا كړي دې | اته قران پاك لوله | اوستارب ډير مهربان دې | | هغه ذات دې چې دقلم په ذريعه ئې ليكل خودلي دي | | |

| عَلَّمَ الْاِنْسَانَ | مَا لَمْ يَعْلَمْ ۗ |
|---|---|
| وې ښودل انسان ته | هغه چې نه وو معلوم هغه ته |
| انسان ته ئې هغه څه خودلي دي چې ورته معلوم نه وو | |

**قوله تعالى:- اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ۚ**

**اولنۍ وحي:-** ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي درسول الله ﷺ د وحي شروع د ريښتونو خوبونو نه شوې ده.كوم يو خوب چه به حضرت ليدلو دسحر په شان به ښكاره كيدلو.بيا حضور ﷺ ګوشه نشيني اوخلوت اختياركړو. د ام المؤمنين حضرت خديجه رضي الله عنها نه به نې خوراك واخستو او غار حراته به ئې تشريف يوړو او څو څوشپې به ئې په هغه ځاى كښې په عبادت كښې تيرولې اوبيا به راتلو اوخوراك څښاك به ئې اوړلو بيابه تلو. تردې چه يو ځل هلته ناڅاپي وحي راتلل شروع شو. فرښته حضور ﷺ له راغله او وئې وئيل اقرا، يعني اولوله.حضور ﷺ فرمائي ما وئيل چه زه خو لوستونكې نه

(1) ابوداود كتاب الصلاة باب مقدار الركوع والسجود: ۸۸۷،

يم فرښتې زه راونيولم او زور ئې راكړو تردې چه ماته تكليف هم اوشو بيائې زه پريخودم او وئې فرمائيل لوله.مابيا اووئيل زه خو لوستل نه پيژنم فرښتې زه بيارا ونيولم او زور ئې راكړو چه دې سره ماته تكليف هم اوشو بيائې پريخودم او وئې فرمائيل لوله ما بيا هم دا اووئيل چه زه لوستونكې نه يم. هغې زه په دريم ځل اونيولم زورئې راكړو او تكليف ئې راورسولو بيائې پريخودم اود ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ۝ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۝ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ۝ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۝ عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۝﴾ پورې تلاوت ئې اوكړو.

**د رسول كريم ﷺ ويريدل او د خديجه رضي الله عنها تسلي وركول:** حضور ﷺ دا آياتونه واخستل او رپيدونكې حضرت خديجه رضي الله عنها له راغلو په ماكړواوچوه نو كپړا ئې پرې واچوله تردې چه خوف او ويره ترې لاړه. نو حضور ﷺ حضرت خديجه رضي الله عنها ته ټوله واقعه تيره كړه اووئې فرمائيل چه زه په خپل ځان ويريږم.حضرت خديجه رضي الله عنها اوفرمائيل حضور ﷺ تاسوخوشحاله شئ د الله ﷻ قسم الله ﷻ به تاسوهيڅ كله رسوانه كړي تاسو صله رحمي كوئې ښې خبرې كوئې د نورو بوج پخپله اوچتوئې ميلمستيا كوئې په حق خبره د نورو امداد كوئې.بياحضرت خديجه رضي الله عنها حضور ﷺ خپل د تره ځوئ ورقه بن نوفل بن اسد بن عبدالعزى بن قصى له بوتلو. د جاهليت په زمانه كښې دې نصراني شوې وو عربي كتابونه ئې ليكل او په عبراني ژبه كښې انجيل ليكلو د ډير لوئ عمر بوډا سړې وو نظرئې تلې وو حضرت خديجه رضي الله عنها اووئيل چه د خپل وراره واقعه واوره. ورقه اووئيل وراره تاڅه اوليدل؟ رسول الله ﷺ ټوله واقعه واوروله. ورقه چه واوريده نو وئيل چه هم دغه هغه رازدان فرښته ده چه حضرت عيسى عليه السلام له به هم د الله ﷻ د طرف نه راليگلې كيده. افسوس چه زه دغه وخت كښې ځوان ووم او افسوس چه زه دغه وخت كښې ژوندې يم كله چه تا خپل قوم اوباسي. رسول الله ﷺ په حيرانتياسره سوال اوكړو چه ولې هغوى به ما اوباسي؟ ورقه وئيل او يوته نه بلكه څومره خلق چه ستا په شان په نبوت سره كامياب كړې شوى دى راغلى ټولوسره دښمنئ شوى دى كه هغه وخت زما په ژوند كښې راغلو نوزه به ستا پوره پوره امداد كوم.

**د رسول كريم ﷺ ډيره پريشاني او د جبرائيل عليه السلام تسلي:** د دې واقعه نه پس ورقه د ډيرې كمې مودې پورې ژوندې وو او بل طرف ته وحى هم بنده شوه اود دې په بنديدوسره حضور ﷺ ډير زيات خفه وو. څوځل حضور ﷺ خپل ځان د غرد څوكې نه راغورزول غوښتل خو هروخت به حضرت جبرائيل عليه السلام راتلواو وئيل به ئې اې محمد ﷺ ته د الله ﷻ رښتونې رسول ئې دې سره به د هغه غم او خفگان تلو او په زړه كښې به ئې لږشان تسلي پيداشوه او په آرام سره به كورته راغلو. (مسند احمد) [1]

داحديث په صحيح بخاري او صحيح مسلم كښې هم د زهرى رحمه الله په روايت سره نقل دې [2] د دې په سند كښې اود دې په متن كښې او د دې په معنى كښې كوم څه بيانول پكار وو هغه مونږ د بخارى شريف په شرح كښې پوره بيان كړي دى. كه زړه موغواړي نو هم هلته ئې اوگورئې ﴿والحمدلله﴾

نوپه قرآن كريم كښې د نزول په اعتبارسره رومبى آياتونه هم دا دى هم دا رومبې نعمت دې چه الله ﷻ پخپلو بنديگانو باندې نازل كړو او هم دا هغه رومبې رحمت دې چه ارحم الرحمين مونږ ته په خپل رحم اوكرم سره راكړو. په دې كښې د انسان په اول پيدائش باندې تنبيه ده چه هغه د ټينگې وينې په شكل كښې وو الله ﷻ په هغه باندې دااحسان اوكړو چه هغه ئې په ښكلې شكل كښې پيداكړو بيادعلم په شان خپل يوخاص نعمت ورعطا كړو هغه ئې ورته اوخودل كوم چه هغه نه پيژندل. هم د علم بركت وو چه د ټولو انسانانو پلار حضرت آدم عليه السلام په فرښتوكښې هم ممتاز ښكاريدو؟ علم كله په ذهن كښې وى او كله په ژبه اوكله په كتابى شكل كښې ليكلې شوې وى. نو د علم درې قسمونه شو ذهنى لفظى او

---

[1] احمد:۲۳۲/۶، وسنده صحيح البخارى: ۴۹۵۶، ومسلم: ۱۶۰.

[2] صحيح بخارى كتاب بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله ﷺ :۳ صحيح مسلم: ۱۶۰.

رسمی. رسمی علم لفظی اوذهنی علم ته مستلزم دي خو هغه دواړه دي ته مستلزم نه دی. د دي د پاره نی اوفرمائيل چه لوله ستارب خوډيرد اکرام والا دي چاچه د قلم په ذریعه علم اوخودلو او انسان ته ئی هغه اوخودل کوم چه هغه نه پيژندل.په یواثر کښي دي چه علم ليکه(١)هم په دي اثرکښي دی چه کوم سړي په خپل علم باندي عمل کوی هغه الله ﷻ د هغه علم هم وارث کوی کوم چه هغه نه پيژنی. (٢)

| | | |
|---|---|---|
| كَلَّآ | إِنَّ الْإِنسَانَ | |
| داسي نۀ ده | بيشكه چي انسان | |
| رښتيا داده چي (كافر)انسان د | | |

| لَيَطْغَىٰٓ ﴿٦﴾ | أَن رَّآهُ | اسْتَغْنَىٰٓ ﴿٧﴾ | إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ | الرُّجْعَىٰٓ ﴿٨﴾ |
|---|---|---|---|---|
| خامخا سرکشي کوی | چي وې ليدو خان خپل | بي پروا | بيشكه رب ستاته | واپس كيدل دی |
| حده تير يږی | هركله چي خان مالداره اووينی | ............ | بيشكه ستا رب ته د هرچا | واپس كيدل دی |

| أَرَأَيْتَ | الَّذِي | يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ | عَبْدًا | إِذَا صَلَّىٰٓ ﴿١٠﴾ | أَرَأَيْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ايا تااوليدو | هغه سړي | چي منع كوی | يوبنده | كله چي مونځ كوی هغه | څه خيال كوي تۀ |
| تا هغه سړي اوليدو چي (د الله ﷻ نيک) بنده (محمدصلى الله عليه وسلم) دمونځ نه منع كوی ګوره | | | | | |

| إِن كَانَ | عَلَى الْهُدَىٰٓ ﴿١١﴾ | أَوْ أَمَرَ | بِالتَّقْوَىٰٓ ﴿١٢﴾ | أَرَأَيْتَ |
|---|---|---|---|---|
| كه وي هغه سړي | په صحيح لار | ياحكم كوی | د پرهيزګارئ | څۀ خيال كوي تۀ |
| كه دا (منع شوی) سړي په هدايت وی | يا دتقوی تعليم وركوی | ګوره كه دا (منع كونكي) | | |

| إِن كَذَّبَ | وَتَوَلَّىٰٓ ﴿١٣﴾ | أَلَمْ يَعْلَم | بِأَنَّ اللَّهَ | يَرَىٰ ﴿١٤﴾ |
|---|---|---|---|---|
| كه هغه دروغ اوګڼړو حق | او مخ ئي واړوو | آيا معلومه نۀ ده هغۀ ته | چي بيشكه الله | وينی |
| منكر وی | اومخ ئي (دحق نه ګرځولي وی | ............ | آيا دي نه پوهيږی چي الله ﷻ هر | څه وينی |

| كَلَّا لَئِن | لَّمْ يَنتَهِ | لَنَسْفَعًا | بِالنَّاصِيَةِ ﴿١٥﴾ |
|---|---|---|---|
| هرګز نۀ (داسي نۀ ده) | كه چري منع نۀ شو هغه | نو خامخا به راكاږو هغه | دويختو دتندي نه |
| خبردار | كه دي منع نشو | ............ | نو مونږ به ئي دڅټوكي نه راكاږو |

| نَاصِيَةٍ | كَاذِبَةٍ | خَاطِئَةٍ ﴿١٦﴾ | فَلْيَدْعُ | نَادِيَهُ ﴿١٧﴾ |
|---|---|---|---|---|
| هغه تندي | چي دروغژن دي | سخت خطا كار دي | نو رادي اوغواړي | دله دملګرو خپلو |
| هغه څټوكي چي دروغژن او خطاكار دي | | ............ | بيا دي دي خپل ملګري راوغواړي | |

| سَنَدْعُ | الزَّبَانِيَةَ ﴿١٨﴾ | كَلَّا | لَا تُطِعْهُ | وَاسْجُدْ | وَاقْتَرِب ﴿١٩﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| مونږ به هم راوغواړو | فرشتي دعذاب | هرګز نۀ | چي خبره اونۀ مني دهغه | او سجده كوه | او نزدي شه |
| مونږ به ددوزخ فرشتي راوغواړو | | ددۀ خبره اونه منئ | | او سجدي كوه | اوالله ﷻ ته خان نزدي كړه |

(١) حاكم: ١٠٦/١، عن انس ﷺ موقوف وسنده حسن.
(٢) لم اجده موقوفا ورواه ابونعيم في الحلية: ١٤/١٠، ١٥.

**قوله تعالى:- كَلَّآ إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰٓ ۝**
**د الله تعالى نه ويريدل:-** فرمائى چه انسان سره دوه پيسې راشى لږ شان فارغ شى نود هغه په زړه كښې كبرغروراو عجيبه خان خوښى اوخان خودل راشى.هغه له ويريدل پكاردى اوخيال ساتل پكار دى چه هغه به يوه ورځ دالله ﷻ طرف ته واپس كيدونكې دې.چرته چه به حساب كيږى.د مال باره كښې به هم تپوس كيږى چه كوم ځاىٔ نه دې راوړې وو اوچرته دې خرچ كړې وو. حضرت عبدالله ﷜ فرمائى چه دوه لالچيان داسې دى چه د هغوى خيټه هډوډ كيږى نه. يوطالب علم او بل طالب دنيا.
دې دواړوكښې ډيرفرق دې. د علم طالب خود الله ﷻ رضامندى حاصلولوكښې وړاندې كيږى اود دنيا لالچى په سركشئى او خان خوښئى كښې وړاندې كيږى. بيا نى دا آيت تلاوت اوفرمائيلو كوم كښې چه ددنيادارو ذكردې. بيائى دطالب علمانو د فضيلت په بيان كښې دا آيت تلاوت كړو﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ داحديث مرفوعًا يعنى د نبىﷺ په فرمان سره هم مروى دې. چه دوه لالچيان دى د هغوى خيټه نه ډكيږى يوطالب علم اوبل طالب دنيا. ([1])
**شان نزول:**ددې نه پس آياتونه د ابوجهل ملعون باره كښې نازل شوى دى چه ده به حضورﷺ په بيت الله كښې دمونځ كولونه منع كولو.اول خوهغه په ډيره ښه طريقه سره پوهه كړې شو دا ته چه څوك منع كوې كه دې په نيغه لار باندې وى د ده خبرې د تقوى حكم كوى نوكه بيا په ده باندې غصه اوړته كوې اود الله ﷻذكورنه نى منع كوې نوستادبدقسمتئى انتهاء ده كه نه؟ آيا دا منع كونكې چه داسې مرشد حق دحق لارې نه منع كولوسې لګيدلې دې دومره هم نه پوهيږى چه الله ﷻ هغه ته ګورى او د هغه خبرې اورى دهغه په كلام او كار به هغه ته سزاوركوى.دغه شان پوهيولونه پس نى اوس ويروى كه هغه خپل مخالفت سركشى او تكليف رسول نه پريږدى نو مونږ به هم د هغه د تندى ويښته اونيسواو رابه نى كاږوكوم چه په اقوالوكښې دروغژن اوافعالو كښې خطاكاردې دې دې خپل دناستې پاستې خلق رشته دران او قبيلې والاراوغواړى اودې ګورى چه څوك دهغه امداد كولې شى.مونږ هم دخپل عذاب فرښتې راغواړو بيا به هرچاته ښكاره شى چه څوك ګټى اوڅوك بيلى. په صحيح بخارى كښې دحضرت ابن عباس ﷜ نه روايت دې چه ابوجهل ونيل كه ما محمدﷺ په خانه كعبه كښې په مونځ كولو اوليدو نو سټ به ورله ناپ كړم. حضورﷺ ته هم دا خبر اورسيدونوئى فرمائيل چه كه هغه داسې اوكړه نو د الله ﷻ فرښتې به هغه راګيركړى([2])روايت كښې دى چه حضورﷺ مقام ابراهيم سره بيت الله كښې مونځ كولونو دا ملعون راغلو وئى ونيل ماته منع كړې خوته بياهم منع نه شوې.كه دې نه پس ما ته په كعبه كښې په مونځ كولو اوليدې نوسخته سزا به دركړم. حضورﷺ په سختئى سره جواب وركړو اود هغه خبره نى ردكړه اوښه نى اورټلو په دې باندې هغه اوونيل چه ته ما رټې په الله ﷻ قسم زما په يوآواز به دا ټوله وادى د سړو نه ډكه شى. په دې باندې دا آيت نازل شو چه ښه ده ته خپل ملګرى راغونډكړه او مونږ هم خپلې فرښتې راغواړو.حضرت عبدالله بن عباس ﷜ فرمائى كه هغه خپل خلق راغوښتې دې نو ډير زربه هغه د عذاب فرښتو راګيركړې وو(ترمذى وغيره اوګورئى) ([3])
مسنداحمدكښې دابن عباس ﷜ نه روايت دې ابوجهل ونيل كه مارسول الله ﷺ په كعبه كښې په مونځ كولواوليدو نودهغه سټ به مات كړم. حضورﷺ اوفرمائيل كه هغه داسې كړې وې نو هم هغه وخت به د خلقويه مخكې د عذاب فرښتو هغه رانيولې وو اوهم دا شان چه كله يهوديانو ته قرآن پاك دا وينلې وو كه تاسو رښتونې نى نومرګ اوغواړئى نو كه هغوى دا قبول كړې وو او مرګ نى غوښتې وو نو ټول به

---

[1]) حاكم : ۱/۹۲، عن انس
[2]) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اقراء باسم ربك الذى خلق باب قوله تعالى ( كلا لئن لم ينته.......) : ۴۹۵۸. ترمذى : ۳۳۴۸.
[3]) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة اقراباسم ربك : ۳۳۴۹، وهوحديث صحيح ، احمد: ۱/۲۵۶.

هم هغه وخت مړه شوې وو او په دوزخ کښې به ئې خپل ځاې ليدلې وو.
کومونصرانيانوته چه د مباهله دعوت ورکړې شوې وونوکه دوی د مباهله د پاره راوتلې وونو واپس تلو سره به ئې نه خپل مال ليدلو اونه خپل بال بچ (١) ابن جرير کښې دی چه ابوجهل اووئيل که چرې ته ما مقام ابراهيم سره په مونځ کولو اوليدې نو مړ به دې کړم پډې باندې داسورت نازل شو.حضورﷺ تشريف يوړو ابوجهل موجود وو حضورﷺ هم هلته مونځ اداکړو نوخلقو دې بدبخت ته اووئيل چه ولې ناست ئې؟هغه وئيل څه اووايم چه څوك زما اود هغه په مينځ کښې راغلل.
ابن عباس ﷺ فرمائي چه که لږ شان هم خوزيدلې وې نو د خلقو په وړاندې به فرښتو هلاك کړې وو(٢)
د ابن جرير په يوبل روايت کښې دی چه ابوجهل تپوس اوکړو چه آيامحمدﷺ ستاسو په وړاندې سجده کوی؟خلقو وئيل او نو هغه وئيل په الله قسم که هغه زما په مخکې داسې اوکړه نودهغه سټ به چخڼې کړم اودهغه په خله کښې به خاورې ملاوکړم. اخوا دې ملعون دا اووئيل بل خوا رسول الله ﷺ مونځ شروع کړو کله چه حضورﷺ سجده ته لاړو نو ده حرکت اوکړو نو ورسره ئې په خپل لاس باندې خپل خان بچ کولوسره شاته په تلوکښې ډيروارخطا روستوشو. خلقو وئيل څه دی؟ وئيل زما اود حضورﷺ په مينځ کښې د اُور کنده ده اود ويرولو خطرناك خيزونه دی اود فرښتو وزرې دی وغيره. هغه وخت حضورﷺ اوفرمائيل چه که دې نور لږ شان وړاندې شوې وو نو فرښتو به د هغه يو يو اندام جدا جدا کړې وو.نودا آياتونه ﴿ كَلَّآ إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰٓ ﴾ نه آخر سورت پورې نازل شو(٣)هم الله ﷻ ته علم دې چه دا کلام د حضرت ابوهريره ﷺ په حديث کښې دی اوکه نه؟
داحديث مسندمسلم نسائي او ابن ابی حاتم کښې هم دی. (٤) بيا فرمائي چه اې نبی ته د دې مردود خبره مه منه په عبادت باندې هميشه والې کوه او ډير عبادت کوه اوچه کوم ځاې دې زړه غواړی مونځ کوه اود ده بالکل پرواه مه کوه. الله ﷻ پخپله ستاحافظ او ناصر دې. هغه به تاد دښمنانو نه محفوظ اوساتی ته په سجده اودالله ﷻ په نيزديکت غوښتلوکښې مشغول اوسيره.رسول الله ﷺ فرمائي چه د سجدې په حالت کښې بنده خپل رب تبارك وتعالی ته ډير نيزدې وی نو تاسو په کثرت سره په سجده کښې دعاګانې کوئ(٥)اول داحديث هم تيرشوې دې چه حضور ﷺ به په سورت ﴿ إِذَا السَّمَآءُ انشَقَّتْ ﴾ کښې اوپه دې سورت کښې سجده کوله. (٦)
﴿الحمدلله﴾ د سورت اقراء تفسيرهم ختم شو. د الله ﷻ شکر اواحسان دی.

| اياتونه | | | سورة القدر مكية وهي خمس ايات وركوعا واحدا | | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | | |
| ٥ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | | ١ |

إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ الْقَدْرِ ۝ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۝

بيشکه نازل کړو مونږه دا (قرآن) په شپه دقدر کښې | او څه پته ده تاته | چې څه ده شپه دقدر |
مونږدا کتاب د عزت په شپه کښې راکوز کړيدې|او تاته څه معلومه ده چې دعزت شپه څومره(اوچته) ده

---

(١) احمد: ١/٢٤٨، وهو حديث صحيح.
(٢) الطبري: ٢٤/٥٢٦.
(٣) الطبري: ٢٤/٥٢٦.
(٤) صحيح مسلم كتاب الصفات المنافقين باب قوله ( ان الانسان ليطغى....) ٢٧٩٧. نسائي في الكبرى: ١١٦٨٣.
(٥) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب يقال في الركوع والسجود: ٤٨٢، ابوداود: ٨٧٥، احمد: ٢/٤٢١.
(٦) ددې تخريج په سورة انشقاق کښې تير شوې دې.

| لَيْلَةُ الْقَدْرِ | خَيْرٌ | مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ | تَنَزَّلُ | الْمَلٰٓئِكَةُ | وَالرُّوحُ |
|---|---|---|---|---|---|
| شپه دقدر | بهتره ده | د زرو مياشتو نه | نازليږي (راكوزيږي) | فرښتې | او روح (جبريل ) |
| دعزت شپه د زرو مياشتو (دعبادت) نه بهتره ده \| په دې كښې فرښتې او روح (جبريل ) | | | | | |
| فِيهَا | بِإِذْنِ رَبِّهِمْ | مِّن كُلِّ أَمْرٍ | سَلٰمٌ | هِيَ | |
| په دې شپه كښې | په اجازت درب خپل سره | د هركارنه | سلامتيا ده | دا شپه ده | |
| دالله ﷻ په حكم هرامرخير سره راكوزيږي ،،،،،،،،،،،،،،،،،،،، \| توله سلامتيا ده \| .... داشپه | | | | | |
| حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ | | | | | |
| دختو دصبا پورې | | | | | |
| ترصبا ختو پورې قائمه وي | | | | | |

**قوله تعالى:-** إِنَّا أَنزَلْنٰهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ

**د ليلة القدرفضيلت:**-مقصددادې چه الله ﷻ قرآن كريم په ليلة القدركښې نازل كړې دې د دې نوم ليلة المبارك هم دې. لكه چه بل ځاۍ ارشاد دې (إِنَّا أَنزَلْنٰهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ) اوداهم د قرآن پاك نه ثابته ده چه دا شپه درمضان المبارك په مياشت كښې ده.لكه چه ارشاد دې (شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْاٰنُ) د ابن عباس ؓ نه روايت دې چه پوره قرآن پاك دلوح محفوظ نه اول آسمان بيت العزت ته پدې شپه كښې نازل شو بيابه تفصيل سره دواقعاتو مطابق درجه په درجه په درويش كاله كښې په رسول الله ﷺ باندې نازل شو. بياالله ﷻ د ليلة القدرد شان اوشوكت اظهارفرمائى چه ددې شپې يوزبردست بركت خودا دې چه د قرآن كريم په شان اوچت نعمت په دې شپه نازل شو.نوفرمائى چه تاته څه خبردې چه ليلة القدرڅه څيز دې؟ بيا پخپله وائى چه دا يوه شپه د يوزركالونه غوره ده.

**شان نزول:**-امام ابوعيسىٰ اوترمذى رحمه الله په ترمذى شريف كښې د دې آيت په تفسيركښې يوروايت راوړلې دې چه يوسف بن سعد د حضرت حسن بن على ؓ ته چه كله هغوى د حضرت معاويه ؓ سره صلح اوكړه اووئيل چه تاد ايمان والا مخ توركړو. يائى داسې اووئيل چه اې د مؤمنانومخ توره ونكو نو هغوى اوفرمائيل الله ﷻ دې په تاباندې رحم اوكړى مانه مه خفه كيږه نبى كريم ﷺ ته اوخودلې شو چه ستاسو په منبرباندې بنواميه دې. هغوى ﷺ ته دا بدمعلوم شونو (إِنَّآ أَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ) نازل شو. يعنى دجنت نهر كوثررسول الله ﷺ ته د وركولوزيرې ملاوشو.او (إِنَّآ أَنزَلْنٰهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ) نازل شو.نو زرمياشتې هغه مراد دى په كوموكښې چه دحضور ﷺ نه پس دبنواميه مملكت به وى.قاسم رحمه الله وائى مونږ حساب اولګولو نو هغه پوره زر مياشتې شوې نه يوه ورځ زياته او نه يوه ورځ كمه.[1] امام ترمذى رحمه الله داروايت غريب ښائى.اوددې په سندكښې يوسف بن سعد دې چه مجهول دې او صرف هم په دې يوسندسره دا ذكر دې. مستدرك حاكم كښې هم دا روايت دې د امام ترمذى رحمه الله دا فرمائيل چه يوسف مجهول دې په دې كښې لږ شان نظر دې. د هغه ډير شاګردان دى يحيى بن معين رحمه الله وائى چه دا مشهوراوثقه دې اود ده په سندكښې څه اضطراب څنګه چه هم دې. والله اعلم.په هرصورت دا روايت ډير منكردې.زمونږ شيخ حافظ حجت ابوالحجاج المزى هم دا روايت منكر ښائى (دا باد ساتئى چه د قاسم قول كوم چه د ترمذى په حواله سره بيان شوې دې چه هغه وائى مونږ حساب اولګولونود بنواميه سلطنت د زرو ورځو پورې وو.دادنسخې غلطى ده يوزر مياشتې ليكل پكار وو.ما

---

[1]) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة القدر : ۳۳۵۰، حاكم :۱۷۰/۳.

ترمذی اوکتلونو هلته هم زر میاشتې دی او وړاندې هم دا راځی. مترجم) د قاسم بن فضل حدانی دا وینا چه د بنو امیه د سلطنت موده یو زر میاشتې وه دا هم صحیح نه دی ځکه چه د حضرت معاویه ﷺ مستقل حکومت ۴۰ هـ کښې قایم شو حضرت حسن ﷺ د هغوی په لاس باندې بیعت اوکړو اود خلافت امور نی هغوی ته حواله کړه. اوټول خلق هم د حضرت معاویه ﷺ په بیعت باندې راجمع شو اود دې کال نوم هم عام الجماعه مشهور شو. بیا په شام وغیره کښې برابر د بنوامیه حکومت قایم شو او تقریبًا د نهوکالوپورې حرمین شریفین، اهواز او بعضې ښارونوباندې د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ حکومت شوې وو خوبیا هم په دې موده کښې کلیة د هغه د لاس نه حکومت لاړ نه شو البته د بعضې ښارونونه حکومت اوچت شوې وو.او په ۱۳۲ هـ کښې بنوالعباس دهغوی نه حکومت په خپله قبضه کښې واخستو نود هغوی د حکومت موده (۹۲) کاله شوه اودا د یو زر میاشتونه ډیره کمه شوه که زیاته؟ د زرو میاشتو (۸۳) کاله او څلور میاشتې جوړیږی. اود قاسم بن فضل دا حساب داسې خو تقریبًا صحیح کیدې شی چه د حضرت ابن زبیر ﷺ د خلافت موده د دې شمیرنه اوویستلې شی. والله اعلم. د دې روایت د ضعیف کیدو یوه وجه داهم ده چه د بنو امیه د حکومت د زمانې بدی او خرابې بیانول مقصد دې اود لیلة القدر په دې زمانه باندې فضیلت ثابت کول څه د هغوی د زمانې د خرابوالی دلیل نه دې. لیلة القدرخو په هرشان د بزرګئی والا ده اودا پوره سورت د دې مبارکې شپې مدحه او تعریف بیانوی. د بنوامیه د زمانې د خرابوالی سره د لیلة القدر کوم یوفضیلت ثابتیدلې شی دا خو به بالکل هم هغه متل شی چه یوسړې د تورې تعریف کولو سره اووائی چه د لرګی نه ډیره تیره ده. د یوبهترین فضیلت والا سړی ته د یوې کمې درجې په ذلیل سړی باندې فضیلت ورکول خو د هغه شریف بزرګ سپکاوې کول دی. یوه بله وجه واورئی د دې روایت په بنا باندې زر میاشتې هغه شوې کوم کښې چه د بنو امیه حکومت وو اودا سورت نازل شوې دې په مکه مکرمه کښې نو په دې کښې د دې میاشتو حواله څنګه ورکولې شی کوم چه د بنو امیه د زمانې دی. نه په دې باندې څه لفظ دلالت کوی اونه د معنې په توګه دا ګنړلې شی. منبرخو په مدینه کښې قائمیږی اود هجرت د یوې مودې نه پس منبرجوړولې شی اوکیخودلې شی نود دې ټولو وجوهاتونه معلومیږی چه داروایت ضعیف او منکر دې. والله اعلم.

ابن ابی حاتم کښې دی مجاهد رحمه الله فرمائی نبی کریم ﷺ د بنی اسرائیلود یوسړی ذکر اوفرمائیلو چه د زرو میاشتو پورې دالله ﷻ په لارکښې یعنی جهادکښې وسله تړلې وه.مسلمانانوچه داواوریده نو حیران شونوالله ﷻ دا سورت نازل کړو چه د یوې شپې د لیلة القدرعبادت دهغه سړی د زرو میاشتو د عبادت نه غوره دې.

ابن جریرکښې دی بنی اسرائیلوکښې یو سړې وو چه د شپې به نی ترسحره پورې قیام کولو اود ورځې به نی ددین دښمنانوسره ترمابنامه پورې جهادکولو.د زرومیاشتوپورې نی هم داکول نو الله ﷻ دا سورت نازل کړوچه ددې امت د یوسړی صرف د لیلة القدر قیام کول د هغه عبادت ګذار د زرومیاشتو د عبادت نه غوره دې.

ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ د بنی اسرائیلو د څلورو عابدانو ذکر اوفرمائیلو کومو چه د اتیاؤ کالوپورې دالله ﷻ عبادت کړې وو او دیوې سترګې درپ برابر نی هم دالله ﷻ نافرمانی نه وه کړې. حضرت ایوب،حضرت زکریا،حضرت حزقیل بن عجوز، حضرت یوشع بن نون علیهم السلام .د رسول الله ﷺ صحابه کرام ﷺ ډیر حیران شو، حضور ﷺ له حضرت جبرائیل ﷺ راغلو او وئی وئیل اې محمد ﷺ ستاامت د دغه ډلې په عبادت باندې حیرانتیا اوکړه نوالله ﷻ ددې نه هم غوره څیز په تا باندې نازل کړو او وئی فرمائیل چه دا غوره دې د هغې نه په کوم چه تا او ستا امت حیرانتیابنکاره کړې وه.نوحضوراکرم ﷺ اوصحابه کرام ﷺ ډیر زیات خوشحاله شو.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی

مطلب دا دې چه د دې شپې نيك عمل د دې مونځ روژه د زرو مياشتود مونځ او روژې نه غوره دى په كوم كښې چه ليلة القدر نه وى اود نورو مفسرينوهم دا قول دې.
امام ابن جرير رحمه الله هم دا خوښوى چه هغه زر مياشتې كوم كښې چه ليلة القدر نه وى هم دا ټيك دى دې نه بغيريوقول هم ټيك نه دې. لكه چه رسول الله ﷺ فرمائى چه د يوې شپې د جهادتيارى ددې نه سوا د يوزر شپو نه غوره دى. مسنداحمد[1] دغه شان په بل حديث كښې دى چه كوم سړې په ښه نيت او ښه حالت كښې دجمعه دمانځه دپاره لاړشى دهغه دپاره دكال داعمالو ثواب ليكلې شى.دپوره كال د روژو او پوره كال د مونځونو.د دې په شان نورهم ډير احاديث دى. نو مطلب دا دې چه د زرو مياشتو نه مراد هغه مياشتې دې په كوموكښې چه ليلة القدر رانه شى لكه څنګه چه د زرو شپونه مراد هغه شپې دى په كوم كښې چه يوه شپه د دې عبادت نه وى. لكه چه د جمعه طرف ته تلونكى له د يوكال د نيكو يعنى هغه كال په كوم كښې چه جمعه نه وى.مسنداحمد كښې دى حضرت ابوهريره ﷺ فرمائى چه كله رمضان راغلو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل خلقودرمضان مياشت راغله داد بركت مياشت ده ددې روژې الله ﷻ په تاسو فرض كړې دى پ دې كښې دجنت دروازې كولاوولې شى اود دوزخ دروازې بندولې شى شيطانان قيدَولې شى په دې كښې يوه شپه ده چه د زرو مياشتونه غوره ده ددې د ښيګړې نه محرومه كيدونكې حقيقى بدقسمته دې. ([2])
نسائى كښې هم داروايت دې چه د دې شپې عبادت د زرو مياشتو د عبادت نه غوره دې. خكه چه د بخارى اومسلم حديث دې رسول الله ﷺ فرمائى كوم سړې چه د ليلة القدر قيام په ايماندارنى او نيك نيتنى سره اوكړې نودهغه ټول وړاندينى ګناهونه ښښلې شى[3]بيا فرمائى ددې شپې دبركت د زياتوالى په وجه په كثرت سره فرښتې نازليږى. فرښتې خود هربركت او رحمت سره نازليږى. لكه چه د قرآن پاك تلاوت په وخت كښې نازليږى اود ذكر مجلسونه ئې راګيركړې وى اود دين د علم زده كونكو د پاره په رضا اوخوشحالئى سره خپلې وزرې خوروى اود هغوى عزت او اكرام كوى.
**قوله تعالى:- تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ۚ**
**دروح نه مراد حضرت جبرائيل ﷺ دې** :د روح نه مراد دلته جبرائيل ﷺ دې دا د خاص عطف دې په عام باندې.بعضې وائى چه د روح په نوم باندې يوخاص قسم فرښتې دى لكه چه په سورت ﴿ عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ﴾ په تفسير كښې تفصيل سره تيرشوى دى. والله اعلم.
بيافرمائى هغه سراسر دسلامتياشپه ده په كومه كښې چه شيطان نه څه بدى كولې شى اونه څه تكليف رسولې شى. حضرت قتاده رحمه الله وغيره فرمائى په دې كښې د ټولو كارونو فيصله كولې شى.عمراورزق مقرركولې شى لكه بل خاى ارشاد دى﴿فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ﴾يعنى پدې شپه كښې د هربو حكمت والا كار فيصله كولې شى.حضرت شعبى رحمه الله فرمائى په دې شپه فرښتې د جماتونو والا باندې تر سحره سلامونه راليګى.
**قوله تعالى:-مِنْ كُلِّ اَمْرٍ ۛ سَلٰمٌ ۛ**
امام بيهقى رحمه الله پخپل كتاب "فضائل اوقات" كښې د حضرت على ﷺ يوغريب اثر د فرښتو په نازليدو كښې اوپه مونځ ګذارو باندې د هغوى تيريدوكښې او هغوى ته بركت حاصليدو كښې روايت كړې دې. ابن ابى حاتم د حضرت كعب احبار ﷺنه يو عجيبه او حيرانونكې ډير اوږد اثر واردكړې دې په كوم كښې چه د فرښتو دسدرة المنتهى نه دجبرائيل ﷺ سره زمكې ته راتلل اومؤمنانو سړو او مؤمنانو

---

[1] احمد ۷۵/۱، ترمذى : كتاب الجهاد باب ماجاء فى فضل المرابط: ۱۶۶۷،وسنده صحيح نسائى : ۳۱۷۱.
[2] احمد : ۲۳۰/۲، نسائى كتاب الصيام باب ذكر الاختلاف على معمرفيه : ۲۱۰۸، .
[3] صحيح بخارى كتاب فضل ليلة القدر فضل ليلة القدر :۲۰۱٤، صحيح مسلم: ۷۶۰. ابوداود :۳۷۲.

ښځو د پاره دعاګانې کول وارد دي. ابوداؤد طیالسي رحمه الله فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه لیلة القدر ۲۷ یا ۲۹ ده په دې شپه فرښتې په زمکه د شګو د شمیرنه هم زیاتې وي[1]عبدالرحمن بن ابو یعلی رحمه الله فرمائي په دې شپه کښې د هر امر نه سلامتیاده یعنی هیڅ نوې خبره نه پیدا کیږي.
د حضرت قتاده رحمه الله او ابی زید رحمه الله قول دې چه دا شپه سراسر سلامتیا ده هیڅ بدي ترسحره پورې نه کیږي.مسنداحمد کښې رسول الله ﷺ فرمائي چه لیلة القدرباقي پاتې لسو شپو کښې ده څوک چه د دې قیام دثواب غوښتلو په نیت سره کوي الله ﷻ دهغه وړاندې روستو ګناهونه معاف کوي.داشپه د طاقونه ده یعني یوویشتمه،درویشتمه پنځویشتمه اوویشتمه اوآخري شپه.حضور ﷺ فرمائي داشپه بالکل صفااوداسې روښانه وي لکه چه سپوږمۍ راختلې وي په دې کښې سکون اوزړه جمع وي نه زیاته یخني وي اونه ګرمي ترسحره پورې ستوري نه پریوځي.یوه نښه ددې داهم ده چه ددې په سحرباندې نمرپه تیزوشغلوسره نه راوخي بلکه هغه د څوارلسمې شپې دسپوږمۍ په شان صفا راوخي.په دغه ورځ دې سره شیطان هم نه راوخي.([2]) دا اسناد خو صحیح دی ولې په متن کښې غرابت دې او په بعضو الفاظوکښې نکارت هم دې.
ابوداؤد طیالسي کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي لیلة القدر صفا د سکون یخنۍ ګرمۍ نه خالي شپه ده.ددې په سحر نمرپه تته رڼا سورراوخي([3])حضرت ابوعاصم نبیل رحمه الله په خپل اسناد سره د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت کوي چه رسول الله ﷺ یوځل اوفرمائیل لیلة القدر راته اوخودلې شوه بیا رانه هیره کړې شوه. دا په آخري لسو شپوکښې ده دا صفا ستره د سکون او عزت والا شپه ده نه زیاته یخه اونه زیاته ګرمه.داسې روښانه شپه وي چه داسې معلومیږي لکه چه سپوږمۍ راختلې وي دنمرسره شیطان نه راوخي ترڅو چه نمر خورشي. ([4])
**آیا لیلة قدرپه وړاندینوامتونو کښې هم وه**:- د دې باب په فصل کښې د علماؤاختلاف دې چه لیلة القدر په وړاندینو امتونوکښې هم وه که صرف دې امت ته په خصوصیت سره ورکړې شوې ده. په یوحدیث کښې خوداسې راغلي دي چه حضور ﷺ کله سترګې اوچتې کړې چه د وړاندینوامتونوعمرونه ډیر زیات وو نود حضور ﷺ خیال راغلوچه زما د امت عمرونه ډیرکم دی نوبیا به نی نیکئی هم کمې وی او درجې او ثوابونه به نی هم کم وی. نو الله ﷻ ورته دا شپه ورکړه اود دې ثواب نی د یوزر میاشتو د عبادت نه زیات ورکولوعده اوکړه([5]) د دې حدیث نه خودامعلومیږي چه صرف هم دې امت ته ورکړې شوې ده بلکه صاحب عدة چه د شافعیه نه یوامام دې د جمهورعلماؤهم دغه قول نقل کړې دې. والله اعلم
اوخطابي رحمه الله خو په دې باندې اجماع نقل کړې ده. یوبل حدیث شریف دې چه د هغې نه دامعلومیږي چه دا شپه څنګه دې امت ته ورکړې شوې وه وړاندینوامتونوکښې هم وه. حضرت مرثد رحمه الله فرمائي چه ماحضرت ابوذر رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه تا د لیلة القدر باره کښې د رسول الله ﷺ نه څه سوال کړې وو؟ هغه وئیل واوره ما به د حضور ﷺ نه اکثر تپوسونه کول. یوځل ما عرض اوکړو یارسول الله ﷺ دا خو راته اوفرمایه چه دا لیلة القدر هم په رمضان کښې وی که په نورومیاشتوکښې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه په رمضان کښې. بنه ده یارسول الله ﷺ دا هم د انبیاؤکرامو علیهم السلام سره وی چه ترکومې

---

[1]) مسند الطيالسي : ٢٥٤٥،
[2]) احمد: ٣٢٤/٥،
[3]) مسند الطيالسي : ٢٦٨٠.
[4]) صحيح ابن خزيمه : ٢١٩٠.
[5]) شعب الايمان : ٣٦٦٧. موطا ٧١٥/١،

هغوی وی نودا هم وی کله چه انبیاء کرام علیهم السلام انتقال کړې شی نودا هم اوچتیږی که دا به د قیامته پورې وی؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه نه دا به د قیامت پورې وی. ما ونیل د رمضان په کومه حصه کښې ده؟حضورﷺ اوفرمائیل درمضان په اولولسوکښې او په آخرو لسوکښې اولټوه.بیا زه چپ شوم اوحضورﷺ هم په نوروخبروکښې مشغول شو.ما بیا موقعه بیامونده او تپوس مې اوکړو حضورﷺ په دې دواړو عشروکښې په کومه عشره کښې تلاش اوکړم؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه په آخری عشره کښې خو بس اوس نور څه تپوس مه کوه. بیا چپ شو خوچه کله موقعه ملاوشوه سوال مې اوکړو ما ونیل حضورﷺ ستاسو دې قسم وی زما خو هم څه حق جوړیږی اوفرمائې چه هغه کومه یوه شپه ده؟ حضورﷺ سخت غصه شو ماخوداسې د خپل خان باره کښې چرته په غصه نه وو لیدلې ونی فرمائیل چه په آخری هفته کښې ګوره بس نور تپوس اونه کړې.(١) دا روایت په نسائی کښې هم موجود دې دې نه ثابته شوه چه دا شپه په وړاندینو امتونوکښې هم وه اود دې حدیث نه داهم ثابتیږی چه داشپه د نبی کریم ﷺ نه پس هم هرکال راځی.

**دشیعه ګانو بکواس:-** د بعضو شیعه ګانو وینا ده چه دا شپه بالکل اوچت کړې شوې ده دا قول غلط دې هغوی ته د دې حدیث نه غلط فهمی شوې ده په کوم کښې چه دی هغه اوچته کړې شوې ده اوممکن دی چه ستاسو د پاره په دې کښې بهتری وی دا حدیث به پوره اوس راځی.

د حضورﷺ د دې فرمان نه مطلب دادې چه د دې میاشتې تعین او تقرراوچت کړې شوې دې نه دا چه د سرنه لیلة القدر اوچته شوې ده. د دې پورتنی حدیث شریف نه داهم معلومیږی چه دا میاشت هم په رمضان المبارك کښې راځی بله میاشت کښې نه.دحضرت ابن مسعودؓ اود کوفې د علماؤ قول دې چه په ټول کال کښې یوه شپه ده اوپه هره میاشت کښې د دې کیدل ممکن دی. داحدیث د دې نه خلاف دې.سنن ابوداؤد کښې باب دې چه د دغه سرې دلیل چه کوم وائی لیلة القدر په ټول رمضان کښې ده. بیا نی حدیث راوړلې دې چه د حضورﷺ نه د لیلة القدرباره کښې تپوس اوشو نو حضورﷺ اوفرمائیل چه په ټول رمضان کښې ده(٢)د دې دسندټول راویان ثقه دی اودا موقوف هم مروی دې. د امام ابوحنیفه رحمه الله په یو روایت کښې دې چه د رمضان په ټوله میاشت کښې ددې کیدل ممکن دی.غزالی رحمه الله هم دا نقل کړی دی خو رافعی رحمه الله دې ته بالکل غریب وائی.

**لیلة القدر کومه یوه شپه ده:-** فصل ابورزین رحمه الله فرمائی چه د رمضان اوله شپه لیلة القدر ده. د امام شافعی محمد بن ادریس قول دې چه دا اوه لسمه شپه ده. ابوداؤدکښې د دې مضمون یومرفوع حدیث مروی دې حضرت ابن مسعودؓ حضرت زیدبن ارقمؓ اود حضرت عثمان بن ابوالعاصؓ نه موقوف هم نقل دې. د حضرت حسن بصری رحمه الله مذهب هم دا نقل کړې دې د دې یودلیل دا بیان کړې شوې دې چه درمضان المبارك هم دا اوه لسمه شپه دجمعه وه اوهم داشپه د بدرشپه وه اوه لسم تاریخ باندې جنګ شروع شوې وو کومې ورځ ته چه قرآن یوم الفرقان ونیلې دې. دحضرت علیؓ او حضرت ابن مسعودؓ نه روایت دې چه یوکم دیرشمه شپه د لیلة القدرده اوداهم ونیلې شوی دی چه یوویشتمه شپه.

د حضرت ابوسعیدخدریؓ په حدیث کښې دی چه رسول اللهﷺ به د رمضان په اولولسو ورځو کښې اعتکاف کولو مونږ هم حضورﷺ سره په اعتکاف کښې کیناستو بیا حضورﷺ له جبرائیل علیه السلام راغلواو ورته نی اوفرمائیل کومه چه ته لټوې هغه خوستاسو د پاره وړاندې ده بیا حضورﷺ د لسونه د شلوورځو اعتکاف اوکړو او مونږ هم. بیا حضرت جبرائیل علیه السلام راغلوچه کوم ته لټوې هغه وړاندې ده

---

(١) احمد:١٧١/٥، وسنده حسن ، للالله . صحیح ابن حزیمه : ٢١٧.

(٢) ابوداود کتاب شهر رمضان ، باب من قال ل کل رمضان :١٣٨٧،

يعني ليلة القدر. درمضان په شلم تاريخ باندې حضور ﷺ اودريدو او خطبه ئې وركړه چه زما سره اعتكاف كونكوله پكار دى چه هغوى بيا په اعتكاف كښې كينى ما ليلة القدر اوليده خو مانه هيره شوه. ليلة القدر د آخرى عشرې په طاق شپو كښې ده ما كتلى لكه چه زه په ختوكښې سجده كوم. د حديث راوى فرمائى چه دمسجد نبوى چت صرف د كهجورو د پاڼرو وو په آسمان باندې هغه وخت داوريځې يوه وره ټكړه هم نه وه بيااوريځ راوچته شوه او باران اوشو اود نبى كريم ﷺ خوب ربښتياشو او مابخپله اوكتل چه د نبى كريم ﷺ په تندى مبارك باندې لمده خاوره لګيدلې وه.

هم د دې روايت په يوطريق كښې دى چه دا د يويشتمې شپې واقعه ده داحديث په صحيح بخارى او صحيح مسلم دواړوكښې دې[1] امام شافعى رحمه الله فرمائى چه په ټولورواياتونوكښې همداحديث د ټولونه زيات صحيح دې. داهم ونيلې شوى دى چه ليلة القدر د رمضان په درويشتمه شپه ده د دې دليل د حضرت عبدالله بن انيس رضی الله عنه د صحيح مسلم والا هم داسې يوروايت دې. [2] والله اعلم.

يوقول داهم دې چه څليريشتمه شپه ده. ابوداؤد طيالسى كښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائى ليلة القدر څليريشتمه شپه ده.د دې سندهم صحيح دې[3] مسنداحمدكښې هم داروايت دې[4] خود دې په سند كښې ابن لهيعه دې چه ضعيف دې. بخارى شريف كښې دحضرت بلال رضی الله عنه نه چه د حضور ﷺ مؤذن وو روايت دې چه دا رومبى اووه دى په آخرى عشره كښې ده [5] اوهم دا موقوف روايت صحيح دې. والله اعلم. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ابن عباس رضی الله عنه جابر رضی الله عنه حسن رحمه الله قتاده رحمه الله او عبدالله بن وهب رحمه الله هم فرمائى چه څليريشتمه شپه ليلة القدر ده د سورت بقره په تفسيركښې د حضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه نه روايت كړې شوې مرفوع حديث بيان شوې دې چه قرآن كريم د رمضان په څليريشتمه شپه نازل شوې دې بعضې وائى پنځه ويشتمه شپه د ليلة القدر ده د هغوى دليل د بخارى شريف داحديث دې چه حضور ﷺ فرمائيلى دا د رمضان په آخرى عشره كښې اولټونى نهه باقى پاتې شى بيا اووه باقى پاتې شى بيا پنځه باقى پاتې شى [6] نو بيا اكثرومحدثينو د دې هم دا مطلب بيان كړې دې چه دې نه مراد طاق شپې دى اوهم دا ډير واضح قول دې او ډير مشهور دې. سره د دې چه بعضو دا په جفت شپوباندې هم محمول كړې ده. لكه چه په صحيح مسلم كښې دى حضرت ابوسعيد رضی الله عنه دا په جفت كښې محمول كړې ده[7] والله اعلم. دا هم ونيلې شوى دى چه دا اوويشتمه شپه ده د دې دليل د صحيح مسلم داحديث دې په كوم كښې چه دى رسول الله ﷺ فرمائى دا اوويشتمه شپه ده.

مسنداحمدكښې دى حضرت زر رحمه الله حضرت ابى بن كعب رضی الله عنه ته اوونيل چه ستا رور حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائى چه كوم سړې د ټول كال د شپو قيام كوى هغه به ليلة القدر بياموى. هغوى اوفرمائيل الله ﷻ دې په هغوى رحم اوكړى هغه پوهيږى چه داشپه هم په رمضان كښې ده اوداد رمضان اوويشتمه شپه ده. بيا په دې خبره باندې حضرت ابى رضی الله عنه قسم اوخوړلو ما تپوس اوكړو تاسو ته دا څنګه معلومه شوه؟ جواب ملاوشو چه دانښې كومې چه مونږ ته خودلې شوى دى چه په دې ورځ نمر بغيرد شغلونه راوخى. [8]

---

[1] صحيح بخارى كتاب فضل ليلة القدر باب تحرى ليلة القدر فى الوتر من العشر الاواخر :۲۰۱۸، صحيح مسلم: ۱۱۶۷.
[2] صحيح مسلم كتاب الصيام باب فضل ليلة القدر والحث على طلبها: ۱۱۶۷.
[3] احمد:۱۲/۶،
[4] صحيح بخارى كتاب المغازى باب غير :۸۹، حديث :۴۴۷۰.
[5] صحيح بخارى كتاب المغازى باب غير:۸۹، حديث :۴۴۷۰.
[6] صحيح بخارى كتاب فضل ليلة القدر باب تحرى ليلة القدر ل الوتر من العشر الاواخر : ۲۰۲۱
[7] صحيح مسلم كتاب الصيام باب فضل ليلة القدر : ۱۱۶۷.
[8] صحيح مسلم كتاب صلاة المسافر باب الندب الا كيدالى قيام ليلة القدر....:۷۶۲.

په يوبل روايت كښې دي چه حضرت ابي‌ﷺ اوفرمائيل د هغه الله ﷻ قسم چه دهغه نه بغيرد عبادت لائق څوك نشته چه دا شپه هم په رمضان كښې ده هغوى په دې باندې ان شاء الله هم اونه فرمائيل او كلك قسم ئې اوخوړلو. بيا فرمائي ماته ښه معلومه ده چه دا كومه شپه ده په كومه كښې چه د رسول الله ﷺ د قيام حكم دې. دا اوويشتمه شپه ده. د دې نښه دا ده چه د دې په سحر نمر په سپين رنګ كښې راوخي او تيزوالې په كښې ډير نه وي(¹) حضرت معاويه ﷺ حضرت ابن عمرﷺ او حضرت ابن عباس ﷺ وغيره نه هم روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دا اوويشتمه شپه ده. د سلفو يوډلې هم دا وئيلى دى اود امام احمد بن حنبل اختياركړې شوې مسلك هم دا دې اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم د دې روايت يوقول دې.

**د اوويشتمې شپې ثبوت د قران پاک د الفاظونه:**-بعضو سلفود قرآن كريم د الفاظونه هم د دې ثبوت حواله وركړې ده. دغه شان ﴿هی﴾ په دې سورت كښې اوويشتمه كلمه ده اود دې معنى ده "دا" والله اعلم.

طبراني كښې دى چه حضرت عمر بن خطابﷺ د رسول الله ﷺ صحابه كرام ﷺ راجمع كړل اود هغوى نه ئې د ليلة القدرباره كښې تپوس اوكړو نودټولواجماع په دې امر باندې اوشوه چه دا د رمضان په آخرى لسوكښې ده. ابن عباس ﷺ خو دا هم اوفرمائيل چه زه خودا هم پيژنم چه كومه شپه ده. حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل چه بيا اووايه كومه شپه ده؟ وئې فرمائيل په دې آخرى عشره كښې اووه په تيريدوباندې يا اووه په باقي پاتې كيدوباندې. حضرت عمر ﷺ تپوس اوكړو دا څنګه معلومه شوه؟ جواب ئې وركړو چه ګوره الله ﷻ آسمانونه هم اووه پيداكړي او زمكې هم اووه پيداكړې مياشت هم په هفتو باندې ده د انسان پيدائش هم په اووه دې خوراك هم اووه دې سجدې هم اووه دى د بيت الله شريف طواف هم اووه چكرې دى د رمى جمار كانړې هم اووه دى اودغه شان د اووه د شمير ډير داسې څيزونه ئې نورهم داسې اوشميرل. حضرت فاروق أعظم ﷺ اوفرمائيل چه ستاعقل هلته اورسيدو چرته چه زمونږ خيالات هم اونه رسيدل.دا چه اوفرمائيلې شو اووه خوراك هم دې د قرآن كريم آيت ﴿ فَأَنْبَتْنَا فِيهَا حَبًّا وَعِنَبًا وَقَضْبًا ﴾مراد دې په كوموكښې چه د اووه څيزونوذكر دې كوم چه خوړلې شى ددې اسناد هم جيد اوقوى دى خو په متن كښې ډيرغرابت دې. والله اعلم.

داهم روايت دې چه يوكم ديرشمه شپه ده. د حضرت عباده بن صامت ﷺ د سوال په جواب كښې حضورﷺ فرمائيلې ووچه دا په آخرى عشره كښې په طاقو شپو كښې لټوه يعنى يويشتمه درويشتمه پنځه ويشتمه اوويشتمه او يوكم ديرشمه ياآخرى شپه. (²) مسندكښې دى چه ليلة القدر اوويشتمه شپه ده ياىوكم ديرشمه شپه ده په دې شپه فرښتې په زمكه باندې د شنګيرو نه هم زياتې وى(³)د دې اسناد هم ښه دى. يوقول دا هم دې چه آخرى شپه ليلة القدر دې ځكه چه دا اوس كوم حديث تيرشو په دې كښې دى او په ترمذى اونسائى كښې هم دى چه كله نهه باقى پاتې شي يا اووه يا پنځه يادرې يا آخرى شپه يعنى په دې شپوكښې د ليلة القدر لټول كوئې. امام ترمذى دې ته حسن صحيح وائى او په مسندكښې دى چه دا آخرى شپه ده.

**د ليلة القدر لټون:**-فصل: حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائى چه په دې مختلفواحاديثوكښې داسې تطبيق كيدې شى چه دادسوالونوجواب دې چا ونيل چه حضرت مونږ دا په فلانكوشپوكښې لټوو نو حضورﷺ اوفرمائيل او. حقيقت دا دې چه ليلة القدر مقرره شپه ده او په دې كښې بدلون نه كيږى. امام ترمذى رحمه الله د امام شافعى رحمه الله هم د دې معنى قول نقل كړې دې. ابوقلابه رحمه الله فرمائى چه د آخرى عشرې په

(¹) احمد: ۱۳۰/۵. صحيح مسلم: ۷۶۲.
(²) احمد: ۳۱۸/۵،
(³) احمد: ۵۱۹/۵،

شپوکښې د دې پهر بدلیږي. امام مالك رحمه الله امام ثوري رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله امام اسحاق بن راهویه رحمه الله ابوثورمزني رحمه الله ابوبکر بن خزیمه رحمه الله وغیره هم دافرمائیلي دي. د امام شافعي رحمه الله نه قاضي رحمه الله هم دا نقل کړی دی اوهم دا ټیك هم ده. والله اعلم. د دې قول لږ ډیر تائید د بخاري او مسلم د دې حدیث نه هم کیږي چه یوڅوك صحابه کرام د رسول الله ﷺ خوب کښې د لیلة القدر د رمضان په روستو شپوکښې خودلې شوې. هغوی اوفرمائیل چه زه وینم چه ستاسو خوبونه د دې موافق دي هرطلب کونکي له پکار دی چه لیلة القدر په دې اووه آخري شپوکښې اولټوي. (۱)
د حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم په بخاري اومسلم کښې روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي د رمضان په آخري عشره کښې طاقو شپوکښې د شب قدر تلاش کوئی(۲)د امام شافعي رحمه الله په دې فرمان باندې چه چه لیلة القدرپه هریورمضان کښې یوه مقرره شپه ده دابدلیږي رابدلیږي نه.داحدیث دلیل جوړیدې شي کوم چه په صحیح بخاري‌کښې د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه په روایت سره نقل دې رسول الله ﷺ مونږ له د لیلة القدر د شپې چه په فلانکئ شپه لیلة القدردې راووتلو خو دوه مسلمانان په خپل مینځ کښې په جنګ وو حضورﷺ اوفرمائیل چه تاسو ته د لیلة القدر د شپې د خبرخودلود پاره راغلې ووم خود فلانکي فلانکي د جګړې په وجه هغه اوچته کړې شوه اوممکن دی چه هم په دې کښې ستاسو خیروی. اوس دا په نهمه اوومه او پنځمه کښې اولټوئی(۳) د دلالت وجه دا ده که ددې تعین د همیشه د پاره نه وونود هرکال د لیلة القدر علم به نه شو حاصلیدې. که د لیلة القدر اوختل راوختل کیدې شو نوصرف هم د هغه کال د پاره به معلومه شوې وه چه فلانکې شپه ده د نورو کالونودپاره به تعین نه شوکیدې. اودا یوجواب د دې کیدې شي چه حضورﷺ صرف هم د هغه کال د لیلة القدر د خبرورکونود پاره تشریف راوړې وو. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه جنګ جګړې خیر اوبرکت کته ورکول او علم غرق کوی. په یوبل صحیح حدیث کښې دی چه بنده د خپلو ګناهونو په وجه د رزق نه محروم کولې شي(۴)دایادساتئ داحدیث کوم کښې چه فرمائیلي دی اوچته کړې شوه دې نه مراد ددې د تعین علم اوچتیدل دی دانه چه بالکل لیلة القدر د دنیا نه اوچته کړې شوه. لکه چه د جاهلانو شیعه ګانو قول دې په دې باندې لوئ دلیل دا دې چه هم ددې لفظ نه پس دا دی چه حضورﷺ اوفرمائیل چه دا په نهمه اوومه او پنځیشتمه کښې اولټوئی. د حضورﷺ دا فرمان چه ممکن ده دې کښې ستاسو خیروی یعنی د دې د تعین اومقرروالی په علم نه کیدو کښې، د دې مطلب دا دې چه کله دا مبهم ده نود دې لټونکې به کومو شپوکښې چا دا ممکن ده ګوری په دې ټولو شپوکښې په خلوص سره عبادت کښې لګیاوی. په خلاف د دې چه معلومه شی په فلانکې شپه کښې ده نو هغه به صرف هم د دې شپې عبادت کوی. خکه چه همتونه کمزوری دی او د دې دپاره حکمت دحکیم تقاضا همدغه ده چه ددې شپې دتعین خبر نه ورکوی اود دې شپې دلتون په شوق کښې په دې مبارکه میاشت کښې بنه په زړه لګولوسره عبادتونوکښې مشغول وی.ددې د پاره پخپله د الله ﷻ پیغمبر حضرت محمد ﷺ هم د خپل وفات پورې درمضان د آخري عشرې اعتکاف کولو اود حضورﷺ نه پس ازواج مطهرات رضي الله عنهن اعتکاف کولو. داحدیث بخاري او مسلم دواړو کښې دې. (۵)
د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روایت کښې دی چه حضورﷺ به د رمضان المبارك د آخري عشرې اعتکاف

---

(۱) صحیح بخاری کتاب فضل لیلة القدر باب التماس لیلة القدر فی السبع الاواخر: ۲۰۱۵.
(۲) صحیح بخاری کتاب فضل لیلة القدر باب تحری لیلة القدر فی الوتر من العشر الاواخر :۲۰۱۸، صحیح مسلم: ۱۱۶۹.
(۳) صحیح بخاری کتاب فضل لیلة القدر باب رفع معرفة لیلة القدر لتلاحی الناس : ۲۰۲۳.
(۴) ابن ماجة کتاب الفتن باب العقوبات :۴۰۲۲
(۵) صحیح بخاری کتاب الاعتکاف باب الاعتکاف فی العشر الاواخر :۲۰۲۶. صحیح مسلم: ۱۱۷۲.

کولو.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه کله به د رمضان المبارك آخرى لس شپې پاتې شوې نو رسول الله ﷺ به ټوله شپه بيداروو اود خپل کوروالا به ئې هم راپاسول او ملابه ئې تړله[1](صحيح بخاري او مسلم)مسلم شريف کښې دی حضورﷺ چه به په کوم محنت سره په دې ورځوکښې عبادت کولو په دومره محنت سره به په نورو وختونوکښې د نبیکریم ﷺ عبادت نه وو[2]هم دغه معنی د پورتنی حديث د دې جملې چه حضورﷺ به ملا مضبوطه تړله يعنی په عبادت کښې به ئې پوره کوشش کولو.
د دې دا معنی هم شوې ده چه حضورﷺ به بيبيانو سره نه ملاويدلو اوداهم کيدې شی چه دواړه خبرې مراد وی يعنی بيبيانوسره ملاويدل به ئې هم ترك کول اود عبادت په مشغولتياکښې به ئې ملا هم تړله. د مسنداحمد د حديث دا الفاظ دی چه کله به د رمضان آخری لس ورځې باقی پاتې کيدې نو حضورﷺ به تهبندمضبوط تړلو اود ښځو نه به جدا اوسيدلو[3]امام مالك رحمه الله فرمائي چه د رمضان په آخری لسو شپوکښې د ليلة القدريوشان کوشش کوئی يوې شپې له په بله باندې ترجيح مه ورکوئی.(شرح رافعی)

**په رمضان کښې زيات عبادت کوئی**:-داهم ياد ساتئی چه هسې خوهروخت په کثرت سره دعاغوښتل مستحب دی خو په رمضان کښې نور هم زياتوالې کول پکار دی په آخری عشره کښې او خاص کر په طاق شپو کښې دادعاپه کثرت سره کوئی(اللهم انك عفوتحب العفوفاعف عنی) اې الله ﷻ معافی کونکې ئی اومعافی خوښوې ما هم معاف کړه.مسنداحمد کښې دی چه حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د حضورﷺ نه تپوس اوکړوکه ماته ليلة القدر ملاوشی نوزه کومه دعا اوکړم؟ حضورﷺ هم دا اوخودله. دا حديث په ترمذی نسائی او ابن ماجه کښې هم دې. امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائی او په مستدرك حاکم کښې هم روايت شوې دې اوامام حاکم دا د بخاری او مسلم په شرط باندې صحيح ښائی. يوعجيبه او حيرانونکې اثر د کوم تعلق چه ليلة القدرسره دې.
امام ابومحمد بن ابوحاتم په خپل تفسيرکښې د دې سورت په تفسيرکښې د حضرت کعب رضي الله عنه نه روايت کړې دې چه سدرة المنتهی کوم چه د اووم آسمان په حد باندې جنت سره نيزدې دې کوم چه د دنيا او آخرت په فاصله باندې دې د دې اوچتوالې په جنت کښې دې او د دې ښاخونه او څانګې د کرسئی لاندې دی په دې کښې دومره فرښتې دی د کومو شميرچه د الله ﷻ نه بغير بل چاته نه دې معلوم. د دې په هريو ښاخ باندې بې شميره فرښتې دی د يوويښته برابر هم داسې ځائ نشته چه د فرښتونه خالی وی. د دې ونې په مينځ کښې د حضرت جبرائيل عليه السلام مقام دې. د الله ﷻ د طرف نه حضرت جبرائيل عليه السلام ته آواز کولې شی چه اې جبرائيل د ليلة القدر په شپه د دې ونې ټولې فرښتې ځان سره واخله زمکې ته لاړشه. دا ټولې په ټولې فرښتې د رافت او رحمت دی د چا په زړه کښې چه د هريومؤمن د پاره د رحم جذبات په چپو دی. د نمر ډوبيدوسره دا ټولې فرښتې حضرت جبرائيل عليه السلام سره د ليلة القدرپه شپه کښې راکوزيږی او په ټول مځ د زمکې خوريږی. په هريوځائ په سجده قيام کښې مشغوليږی اود ټولو مؤمنانو ښځو او سړو د پاره دعاګانې غواړی. او په ګرجو کښې مندرونو کښې آتش کدوکښې بت خانوکښې غرض د الله ﷻ نه بغيرچه په کوموځايونوکښې عبادت کولې شی هلته دا فرښتې نه ځی اوهغه ځايونوته هم چرته چه تاسو ګنده څيزونه غورزوئی اوهغه کورته کوم ځائ چه نشئی موجود وی ياد نشې والا څيز وی ياپه کوم کورکښې چه بت جوړکړې شوی وی په کوم کور کښې چه ډول سورنااوباجې وی تصويرونه وی يا ډيران وی هلته دا د رحمت فرښتې نه ځی. حضرت

---

[1]) صحيح بخارى كتاب الاعتكاف باب الاعتكاف فى العشر الاواخر :۲۰۲۵. صحيح مسلم: ۱۱۷۱.
[2]) صحيح مسلم كتاب الاعتكاف باب الاجتهاد فى العشر الاواخر من شهر رمضان ۱۱۷۵.
[3]) ترمذى : كتاب الدعوات باب فى فضل سوال العافية والمعافاة: ۳۵۱۳. وهو حديث صحيح . ابن ماجة : ۳۸۵۰.

جبرائيل ﷺ تولو مؤمنانوسره لاس ملاوهي. د هغې نښه دا ده چه وينښته په بدن باندې اودريږي زړونه نرم شي سترګې اوښکې تويوي. دغه وخت کښې سړی له پوهيدل پکاردی چه دې وخت کښې زما لاس د حضرت جبرائيل ﷺ په لاس کښې دې.

حضرت کعب ﷺ فرمائی چه کوم سړې په دې شپه کښې درې ځل لااله الا الله اووائی نو په دې اول ځل ونيلوباندې دګناهونو ښښنه کيږي په دويم ځل ونيلوباندې د اُورنه خلاصې ملاويږي اوله دريم ځل ونيلو سره جنت کښې داخليږي. راوی تپوس کوی چه اې ابواسحاق که څوك دا کلمه په رښتونی سره اووائی نو؟ فرمائی چه داخو به دهغه د خُلې نه اوځی څوك چه په صداقت سره د دې وايونکې وی. د هغه الله ﷻ قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې چه ليلة القدر په کافر اومنافق باندې دومره درنه پريوځی لکه چه دهغه په شاباندې غر پريوتو. غرض ترسحره پورې فرښتې داسې وی بيا د ټولونه اول جبرائيل ﷺ پورته خيژی اوډير اوچت ختلوباندې خپلې وزرې خوروی، خاص کر هغه دوه شنې وزرې چه ددې شپې نه بغيرهغه هيڅ کله هم نه خوروی اوهم دغه وجه ده چه دنمر رنړا تته شی او شغلې نی نه وی بيا يوې يوې فرښتې ته اواز کوی اوټولې پورته خيژی. نود فرښتو نور او دحضرت جبرائيل ﷺ د وزرو نور يوځائ شی او د نمر رنړا تته کړی. په دغه ورځ نمر متحير پاتې شی. حضرت جبرائيل ﷺ او داټولې بې شميره فرښتې په دغه ورځ د آسمان اوزمکې په مينځ کښې د مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو د پاره د رحمت دعاګانې غواړی اود هغوی د ګناهونو ښښنه غوښتلوکښې تيروی. په نيك نيتنی سره روژه ساتونکو د پاره اود هغه خلقو د پاره هم د چا چه داخيال وی چه که راتلونکی کال کښې هم الله ﷻ ژوندراکړو نود رمضان روژې به په ښه شان سره پوره کوی. هم دغه دعاګانې غواړی. مابنام د دنيا آسمان ته خيژی اود هغه ځائ ټولې فرښتې حلقې جوړولوسره دې نه چاپيره جمع کيږی اود يويوسړی او يوې يوې ښځې باره کښې ترې تپوس کوی اودوی جواب ورکوی. تردې تپوس کوی چه فلانکې سړې دې کال کښې تاسو په کوم حال کښې اوکتلونو وائی چه په تيرکال کښې خوهغه مونږ په عبادت کښې ليدلې وو خودې کال کښې هغه په بدعتونو کښې اخته اوفلانکې سړې پروس کال په بدعتونو کښې اخته وو خو په دې کال کښې هغه مونږ په سنت طريقه باندې په عبادتونوکښې اوليدلو. نودا فرښتې د هغه اولنی سړی د پاره د ښښنې دعاګانې غوښتل موقوف کړی اود هغه دويم کس د پاره د ښښنې دعاګانې شروع کړی اودا فرښتې هغوی ته اوروی چه مونږ فلانکې فلانکې د الله ﷻ په ذکرکښې اوليدلو فلانکې په رکوع کښې فلانکې په سجده کښې فلانکې دکتاب الله په تلاوت کښې. غرض دا چه يود شپه ورځ دلته په تيرولوکښې دويم آسمان ته ځی دلته هم دغه شان وی. تردې چه سدرة المنتهى ته خپل خپل ځائ ته اورسی. دغه وخت سدرة المنتهى دهغوی نه تپوس کوی چه په ماکښې اوسيدونکو زماهم په تاسو حق دې زه هم د هغوی سره محبت ساتم څوك چه دالله ﷻ سره محبت ساتی.لږ شان ماته هم د خلقو د حالت خبرراکړئ اود هغوی نومونه راته اوښايئ.

کعب احبار ﷺ فرمائی چه اوس فرښتې د هغې په وړاندې شميرکوی اود يو يوښځې او سړی سره د پلارنومونه ښائی.بيا جنت سدرة المنتهى ته متوجه کيږی اوتپوس کوی چه په تاکښې اوسيدونکو فرښتو چه کوم خبر تاته درکړو ماته ئې هم بيان کړه. سدرة المنتهى هغې ته ذکرکوی نو هغه وائی چه د الله ﷻ رحمت دې وی په فلانکی سړی او فلانکئ ښځه اې الله دوی زر ماسره يوځائ کړې. حضرت جبرائيل ﷺ د ټولونه اول خپل ځائ ته رسی او هغه ته الهام کيږی اودې عرض کوی پروردګارا ماستا فلانکې فلانکې بنده په سجده کښې اوليدلو ته هغه اوبښې الله ﷻ فرمائی ما هغه اوبښلو. حضرت جبرائيل ﷺ دا د عرش اوچتونکو فرښتو ته خبر ورکوی بيا ټول وائی چه په فلانکی فلانکی ښځې او سړی باندې دې د الله ﷻ رحمت وی او ښښنه دې وی.

بیاحضرت جبرائیل ؑ خبرورکوی چه الله ﷻ فلانکي سړي تيرکال په سنت باندې عمل کونکي او بدعت نه منع کيدونکي پريخودي وو خو په دي کال کښې بدعتونوکښې پريوتلي وو اوستا د احکامو نه ئې مخ اړولي. الله ﷻ فرمائي چه اې جبرائيل ؑ که دې د مرګ نه يودرې ساعته وړاندې هم توبه اوکړي نو زه به ئې اوبښم. دغه وخت کښې حضرت جبرائيل ؑ زر اووائي چه اې الله هم ستا د پاره ټول تعريفونه دي اې الله ته په خپل مخلوق باندې د ټولونه ډير مهربا ئې. په بنديګانو باندې ستا مهرباني پخپله د هغوی د خپلې مهربانئ نه هم زياته ده. دغه وخت کښې عرش اودې سره خواوشاځيزونه پردې او ټول آسمانونه خوزيږي اووائي ﴿الحمدلله الرحيم الحمدلله الرحيم﴾ حضرت کعب ؓ دا فرمائي چه کوم سړي د رمضان المبارك روژې پوره کړې اودهغه دا هم نيت وی چه د رمضان نه پس به هم د ګناهونونه بچ کيږم هغه به بغيرد سوال جواب او بغيرد حساب کتاب جنت کښې داخليږي.

﴿الحمدلله﴾ د سورت ليلة القدر تفسيرختم شو.

## ﴿تفسيرسورت بينه﴾

**دَ سورت تعارف:-** کله چه دا سورت نازل شو نوحضرت جبرائيل ؑ حضور نبی اکرم ﷺ ته اوفرمائيل د الله ﷻ دطرف نه تاته حکم شوی دې چه دا سورت حضرت ابی ؓ ته واوروه. حضور ﷺ دې ذکرحضرت ابی ؓ ته اوکړو نوهغه اوفرمائيل يارسول الله ﷺ هلته زما ذکرشوی دې؟حضور ﷺ اوفرمائيل اونو حضرت ابی ؓ په ژړا شو[1](مسنداحمد).هم د مسندپه يوبل روايت کښې دی چه حضرت ابی ؓ تپوس کړې وويارسول الله ﷺ الله ﷻ زما نوم اخستی دې؟ ([2])

داحديث بخاری مسلم ترمذی او نسائی کښې هم دې.دمسند په يوبل روايت کښې دی چه کوم وخت حضرت ابی ؓ داواقعه بيان کړه هغه وخت حضرت عبدالرحمن بن ابزی ؓ اوونيل بيا خوبه ته اې ابو منذرډيرخوشحاله شوې ئې. ونيل او خوشحاليدم ولې نه الله ﷻ پخپله فرمائی ﴿قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ﴾ يعنی اووايه چه د الله ﷻ په فضل اورحمت سره خلق خوشحاله شی. دا د هغوی د راجمع کړې شوی ډير بهتردی.([3])

بل حديث کښې دی حضرت رسول کريم ﷺ دا سورت د حضرت ابی ؓ په وړاندې تلاوت کړو په دې کښې دا آيت هم وو ﴿ لوان ابن ادم سأل واديامن مال فاعطيه لسأل ثانيا ولوسأل ثانيا فاعطيه لسأل ثالثا ولا يملآ جوف ابن ادم الا التراب ويتوب الله على من تاب وان ذالك الدين عندالله الحنيفية غير المشركة ولا اليهودية ولا النصرانية ومن يفعل خيرا فلن يكفروه ﴾يعنی که انسان زمانه د يوډك ځنګل سره زر اوغواړی اوزه ئې هغه له ورکړم نو بيابه بل غواړی اوکه دويم ته ورکړم نو يقيناً به دريم کس غواړی.د انسان خيټه سوادخاورونه بل ځيزنه شی ډکولی. خوك چه توبه اوکړی نوالله ﷻ هم د هغه توبه قبلوی.دالله ﷻ په نيزد مقبول دين هغه دې چې خالص او پاك وی د شرك ، يهوديت او نصرانيت نه. کوم سړې هم چه نيك کار اوکړی د الله ﷻ په نيزد به د هغه ناقدری نه کيږی([4])(مسنداحمد)ترمذی شريف کښې هم داروايت دې او امام ترمذی ؒ دې ته صحيح حسن ونيلي دې. طبرانی کښې دی چه کله حضور ﷺ حضرت ابی ؓ ته اوفرمائيل چه ماته حکم شوی دې چه زه ستا په وړاندې قرآن اووايم نو حضرت ابی ؓ عرض اوکړو حضور ﷺ ما په الله ﷻ باندې ايمان راوړې دې ستاسو په لاس باندې مې اسلام راوړې دې هم ستاسو نه مې د دين علم حاصل کړې دې. حضور ﷺ بيا هم دا اوفرمائيل نو حضرت ابی ؓ عرض اوکړو يارسول الله ﷺ آيازما هلته ذکر

---

[1]) احمد: ۴۸۹/۳، ح/۱۶۰۰۱،

[2]) احمد: ۱۳۰/۳ صحيح بخاری کتاب التفسير سورة لم يکن باب نمبر:۱ حديث: ۴۹۵۹.

[3]) احمد: ۱۲۳/۵، ح/۲۱۳۷، وسنده حسن لذاته.

[4]) احمد:۱۳۱/۵، ترمذی کتاب المناقب باب فضل ابی بن کعب ؓ : ۳۸۹۸، وهوحديث حسن .

شوې دي؟حضور ﷺ اوفرمائيل ستا په نوم او نسب سره ﴿ملاءآلاعلى﴾ كښې ستا ذكر اوشو. حضرت ابى ﷺ عرض اوكړو چه ښه بيا اولولئ. دا روايت په دې طريق سره غريب دې او ثابت هغه دې كوم چه اول بيان شو.

فائده:-دا يادساتئ چه د حضورﷺ دا سورت دابى ﷺ په وړاندې لوستل دادهغه د ثابت قدمئ او د ايمان د زياتوالي د پاره وو. مسنداحمد ابوداؤد نسائى او مسلم كښې دى چه يو خل د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ تلاوت واوريده نو حضرت ابى ﷺ وران ناست وو خكه چه هغه څنګه دا سورت د حضور ﷺ نه زده كړې ووحضرت عبدالله هغه شان نه وولوستلې. په غصه كښې دې د نبىكريم ﷺ په خدمت كښې بوتلو حاضر ئې كړو. حضورﷺ د دې دواړو نه قرآن واوريده هغه په خپله طريقه او ده په خپله طريقه تلاوت اوكړو حضورﷺ اوفرمائيل دواړو ټيك اولوستلو. حضرت ابى ﷺ فرمائى چه زه خو دومره په شك شبه كښې پريوتلم چه د جاهليت د زمانې شك مې مخې ته راغلو. حضورﷺ چه دا اوكتل نو زما په سينه باندې ئې خپل لاس مبارك كيخودو په څه سره چه زه خولې خولې شوم او په ما باندې دومره يره شروع شوه لكه چه الله ﷻ خپلې مخې ته وينم. بيا حضورﷺ اوفرمائيل واوره حضرت جبرائيل ﷺ ماله راغلو او وئې فرمائيل د الله ﷻ حكم دې چه قرآن هم په يو قراءت باندې خپل امت ته اولوله. ما وئيل زه د الله ﷻ نه معافى بښنه او مغفرت غواړم بيا ما ته د دوو قراءتونو اجازت اوكړې شو خو بيا مې هم زياتوالي غوښتلو تردې چه د اووه قراءتونو اجازت ملاوشو([1])داحديث په مختلفوسندونو او مختلفو الفاظو سره د تفسير په شروع كښې پوره شان سره بيان شوې دې اوس چه دا مبارك سورت نازل شو او په دې كښې آيت ﴿ رَسُولٌ مِّنَ اللَّهِ يَتْلُوا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴾ هم نازل شو. په دې وجه حضور ته حكم اوشو چه د رسولو په توګه او ثابت قدمى وركولو د پاره اود خبرولودپاره لوستلوسره حضرت ابى ﷺ ته واوروه. د چا دې دا خيال نه وى چه د زده كولو په توګه ياد يادولو د پاره حضور ﷺ دا سورت هغه ته تلاوت كړې وو. والله اعلم.

نو چه څنګه حضورﷺ په هغه ورځ د حضرت ابى ﷺ شك شبه لرې كولو د پاره حضور ﷺ ته د مختلفو قراءتونو جانزساتلوباندې پيداشوې وه دهغه په وړاندې داسورت تلاوت كړوټيك همدغه شان د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ واقعه چه هغه هم د حديبيه والا په كال د صلح په معامله كښې خپل خفګان ښكاره كولوسره ډيرسوالونه د حضورﷺ نه كړې وو. په كوموكښې چه يودا هم وو تاسو مونږ ته دا نه ووفرمائيلى چه مونږ به بيت الله ته ځو او طواف به كوو؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه او دامې ضرور وئيلې وو خودامې نه وو وئيلى چه په دې كال به دا كيږى. يقيناً هغه وخت راروان دې چه ته به هلته ځې اوطواف به كوې. اوس د حديبيه نه واپس كيدو سره سورت فتح نازل شو نو حضورﷺ حضرت عمر ﷺ راوغوښتو اودا سورت ئې ورته واورولو ([2]) په كوم كښې چه دا آيت هم دې ﴿لَقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ ۚ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ لَا تَخَافُونَ ۖ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ فَتْحًا قَرِيبًا ﴾ يعنى الله ﷻ دخپل رسول ﷺ خوب رښتيا كړو يقينا ستاسو داخله به په مسجدالحرام كښې د امن او امان سره وى لكه چه اول د دې ذكر بيان هم شوې دې. حافظ ابو نعيم ﷫ خپل كتاب "اسماء صحابه" كښې حديث راوړلې دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى چه الله ﷻ كله د سورت بينه قراءت اورى نو فرمائى چه زما بنديګانو خوشحاله شئى زمادې په خپل عزت قسم وى زه به په جنت كښې تاسو له داسې ځاى دركوم چه تاسو به خوشحاله شئى([3])داحديث ډير غريب دې او په روايت كښې دومره زياتوالي دې چه

---

[1]) صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب بيان القران انزل على سبعة احرف: ٨٢٠.

[2]) صحيح بخارى كتاب الشروط باب الشرط فى الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب ......:٢٧٣١.

[3]) معرفة الصحابة لابن نعيم الاصبهانى : ١/٣٥٠، وقال وهو عندى اسناد منقطع.

زه به تاسوته د دنيا او اخرت د احوالونه په يوحال كښې هم نه هيروم.

| اياتونه | | سورة البينة مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحد | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑧ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ① |

لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُنْفَكِّيْنَ

نه وو | هغه كسان | چې كفر ني كړې وو | داهل كتابونه | او دمشركانونه | منع كيدونكې |

كافران اهل كتاب اومشركان ټول(دخپل باطل دين نه) جدا كيدونكې نه وو..................

حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ۙ رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ يَتْلُوْا

تر دې پورې | چې راشي هغوئ ته | روښانه دليل | يعني يو رسول | دطرفه دالله نه | چې لولي |

تردې چې څرګند دليل ورته راغي | ..............يعني دالله ﷺ رسول چې پاكيزه صحيفې

صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۙ فِيْهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ۗ وَمَا تَفَرَّقَ

صحيفې پاكې | چې په هغې كښې | ليكل شوي وى | صحيح سلامت | اونه وو جداجدا شوى |

ورته لولي اچې په هغې كښې صحيح (ددين) حكمونه ليكلي دي|اوكتابيان خودهغې نه پس ديوبل نه

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ

هغه كسان | چې وركړې شوې وو ورته كتاب | مګر | روستو دهغې نه | چې راغلې وو هغوئ ته |

............جدا شوي وو | چې څرګند دليل ورته راغلې وو | ..................

الْبَيِّنَةُ ۗ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ

روښانه دليل | اونه وو حكم شوي هغوئ ته | مګر دا | چې عبادت دې كوى دالله |

............ | اودوئ ته خو صرف دا حكم شوې وو| چې دالله ﷻ عبادت دې كوى

مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۙ حُنَفَآءَ وَيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

حال داچې خالص كونكې وى | هغه لره | ددين خپل | (او) يو مخيزى (وى) | او قائيموى دې مونځ |

دين دې خالص د هغه منى |............ دباطل نه دې حق ته مخ ګرځوى | .اومونځ دې كوى

وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ ۗ

او وركوى زكوة | او دا | دين محكم دې |

او زكواة دې وركوى | اوهم دا مضبوط (سم) دين دې |

**قوله تعالى:- حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ**

**اهل كتاب سره دليل راغلو:-** د اهل كتاب نه مراد يهوداونصارى دى اود مشركانونه مراد د بتانوعبادت كونكى عرب اوآتش پرست دى. فرمائى چه داخلق بغيرد دليل نه منع كيدونكې نه وو بيافرمائى هغه دليل دالله ﷻ رسول حضرت محمد ﷺ دې چه پاكه صحيفه يعني قرآن كريم تلاوت كوى چه اعلى فرښتو په پاكو پاڼرو باندې ليكلې دې. لكه بل ځائ ارشاد دې ﴿فِىْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍۭ بِاَيْدِىْ

سَفَرَةٍ۝كِرَامٍۭبَرَرَةٍ۝) چه هغه په مشهورو اوچتو اوپاکو صفاپاڼرو باندې د پاکو نیکو بزرګو فرښتو په لاس لیکلې شوي دي. بیا فرمائي چه په دې پاکو صحیفوکښې دالله ﷻ لیکلې شوي خبرې دعدل او استقامت والا موجود دی دکومو چه د الله ﷻ د طرف نه کیدوکښې هیڅ شک شبه نشته اونه په دې کښې څه خطا اوغلطي شته. حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه هغه رسول الله ﷺ په ښکلي انداز کښې قرآني وعظ فرمائي اود هغه ښه تعریفونه بیانوي. ابن زید رحمه الله فرمائي چه په دې صحیفوکښې کتابونه دی د استقامت عدل او انصاف والا.

**قوله تعالى:- وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ**

بیافرمائي چه په وړاندینو کتابونووالا د الله ﷻ حجتونه قایم شوی دی اود دلیل راتلونه پس د الله ﷻ دکلام مراد کښې اختلاف اوکړواو په جدا جدا لاروباندې تقسیم شو لکه چه په دې حدیث کښې دی کوم چه په مختلفوطریقوسره روایت دې. د یهودیانو یواویا (۷۱) ډلې شوې اود نصرانیانو دووه اویا (۷۲) اود دې امت به درې اویا(۷۳) ډلې جوړیږي. سوا د یوې نه به ټولې دوزخ ته ځي. خلقو تپوس اوکړو چه هغه یوه کومه ده؟ ونې فرمائیل هغه چه په کومه باندې زه او زما صحابه کرام دی. (¹) بیافرمائي چه هغوی ته صرف دومره حکم وو چه په خلوص او اخلاص سره د خپل حقیقي معبود عبادت کوني لکه چه بل ځائ ارشاد دې (وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ۝) یعنی تا نه وړاندې هم مونږ چه کوم رسولان لیکلې دی د ټولو طرف ته مو هم دا وحی کړې چه زما نه سوا بل معبود برحق نشته تاسو ټول صرف هم زما عبادت کوني. د دې د پاره دلته هم اوفرمائیلې شو چه یو طرف ته شني یعني شرك پریږدني او په توحید کښې مشغول شني. بل ارشاد دې (وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ۝) یعنی مونږ هرامت ته رسول لیکلې چه د الله ﷻ عبادت کوني اود الله ﷻ نه بغیرد نورو د عبادت نه بچ شني. د حنیف پوره تفسیر په سورت انعام کښې تیرشوې دې د هغې د دوباره کولو ضرورت نشته.بیافرمائي مونځونه قایم کړني کوم چه بدني عبادتونوکښې د ټولونه اوچت عبادت دې او زکوة ورکوني یعني فقیرانو اومحتاجانوسره ښه سلوك کوني هم دغه دین مضبوط نیغ صحیح د عدل او ښکلې دې.

**فائده:-** ډیر ائمه کرام رحمهم الله لکه امام زهري رحمه الله امام شافعي رحمه الله وغیره د دې آیت نه په دې امر باندې استدلال کړې دې چه اعمال په ایمان کښې داخل دی ځکه چه په دې آیاتونوکښې الله ﷻ د خلوص او یوشان والي سره عبادت مونځ او زکوة دین فرمائیلې دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | |
| بیشکه هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | داهل کتابونه | |
| بیشکه چا چې | انکار کړې دې | که اهل کتاب | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْمُشْرِكِيْنَ | فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ | خٰلِدِيْنَ فِيْهَا | اُولٰٓئِكَ | هُمْ |
| او دمشرکانونه | په اور د دوزخ کښې به وي | همیشه به وي په هغې کښې | دا کسان چې دي | دوی |
| دی اوکه مشرکان دی | د دوزخ په اور کښې به | همیشه دپاره پراته وي | اودوئ | په ټولو کښې |

(¹) ددې تخریج سورة یونس آیت ۹۳ لاندې تیر شو یدې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| شَرُّ الْبَرِيَّةِ ۝ | اِنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ |
| دیر بد دخلقو دی | بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک |

خراب خلق دی | بیشکه کومو کسانو چې ایمان راوړې دې او نیک کارونه ئې کړي دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُولٰٓئِكَ هُمْ | خَيْرُ | الْبَرِيَّةِ ۝ | جَزَآؤُهُمْ | عِنْدَ رَبِّهِمْ |
| دا کسان چې دی | دوئ | بهترین دخلقو دی | بدله ددوئ | په نز درب ددوئ |

هغوئ په ټولو کښې ښه خلق دی | د هغوئ بدله د هغوئ درب سره دهمیشه اوسیدلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| جَنّٰتُ عَدْنٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَآ |
| جنتونه دهمیشه اوسیدو دی | چې بهیږی به | لاندې دهغې نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغې کښې |

باغونه دی | ............ چې د هغې لاندې به ولې بهیږی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَبَدًا ؕ | رَضِيَ اللّٰهُ | عَنْهُمْ | وَرَضُوْا | عَنْهُ ؕ | ذٰلِكَ | لِمَنْ |
| تل ترتله | راضی شو الله | دهغوئ نه | او راضی شول هغوئ | دالله نه | دا هر څه | دپاره دهغه چادی |

همیشه به په کښې اوسیږی | الله ﷻ به دهغوئ نه راضی وی | او هغوئ به دالله ﷻ نه راضی شی | دا (مرتبه) هغه

| | |
|---|---|
| خَشِيَ | رَبَّهٗ ۝ |
| چې اویریدو | درب خپل نه |

دپاره ده | چې دخپل رب نه ویریږی

**قوله تعالىٰ:-** فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ

**دکافرانو انجام:-** الله ﷻ دکافرانو انجام بیانوی هغه کافران که هغه یهودیان اونصاری وی یادعرب او عجمومشرکان څوك هم چه دالله ﷻ د انبیاء کرامو مخالف وی اودکتاب الله تکذیب کونکی وی هغه به دقیامت په ورځ د دوزخ په اور کښې اچولې شی او هم په دې کښې به پراته وی. نه به د هغه ځائ نه وتلې شی اونه به خلاصیدلې شی. داخلق د ټول مخلوق نه خراب او کمتر دی. بیا د خپلو نیکو بندی ګانو دانجام خبرورکوی د کومو په زړونوکښې چه ایمان دې اوڅوك چه په خپلوبدنونوباندې دسننوپه پوره کولوکښې اوسیږی داد ټول مخلوق نه بهتر اوبزرګ دی.

**فائده:** ددې آیت نه ابوهریره رضی الله عنه اودعلماؤ یوې ډلې دا ستدلال کړې دې چه ایماندارانسان د فرښتونه هم غوره دې. بیاارشاد دې چه د هغوی نیکه بدله د هغوی رب سره دهغه همیشه والا جنتونوپه صورت کښې ده. دکومو په تکره تکره کښې چه د صفا صفا اوبونهرونه بهیږی په کوموکښې چه به همیشه واله ژوندسره اوسیږی. نه به د هغه ځایه ویستلې شی اونه به دغه نعمتونه د دوی نه جدا کولې شی نه به کمیږی اونه د هغوی څه غم اوپریشانی وی. بیا د دې ټولونه زیات او اوچت نعمت اورحمت دا دې چه د رب رضااود مولی مرضی به دوی ته حاصله وی. اودوی ته به الله ﷻ دومره نعمتونه ورکړی چه د دوی زړه به هم راضی شی. بیا ارشاد کولې شی چه دا بهترینه بدله اودا جزائی جزیل دا اجرعظیم به دنیا کښې د الله ﷻ نه په ویرې سره اوسیدونکو بدله اوعوض دې. هرهغه سړې د چا په زړه کښې چه ویره وی د چا په عبادت کښې اخلاص وی چه په دې پوهیږی الله ﷻ هغوی ته ګوری بلکه د عبادت په وخت کښې په داسې مشغولتیا او خشوع سره عبادت کوی لکه چه پخپله به خپلو سترګو خپل خالق مالك رښتونې رب او حقیقی الله ﷻ ګوری.

**بهترین کس څوک دي؟**:-د مسند احمد په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی چه زه تاسو ته اوښایم چه دټولونه بهترسړې څوك دې؟خلقو ونیل ضرور. ونی فرمانیل هغه سړې چه دخپل اس واګه نی نیولې وی چه کله به د جهاد آواز اوشی اوکله به زه وراودانګم د ده په شا به سور شم او په یوه چغه د دښمن په لښکر کښې ورننوځم او بهادری اوښایم. زه تاسو ته د یوبل بهترین مخلوق خبردرکوم هغه سړې چه د چیلوبه رمه کښې دې نه مونځ پریږدی اونه د زکوة نه سترګې پټوی. راشئې چه اوس درته بدترین مخلوق اوښایم هغه سړې چه د الله ﷻ په نوم باندې سوال کوی اوبیانه شی ورکولې. ([1])

**الحمدلله** د سورت بینه تفسیرختم شو د الله ﷻ شکر او احسان دې.

**(تفسیر سورت الزلزال)**

**د سورت تعارف**:-ترمذی شریف کښې دی چه یوسړې رسول الله ﷺ له راغلو او ونی ونیل چه حضور ﷺ ماته اولوله. حضور ﷺ اوفرمائیل چه (الر)والادرې سورتونه لوله هغه ونیل زه بوډاشوې یم حافظه مې کمزورې شوې ده او ژبه مې پیړه شوې ده نو حضور ﷺ اوفرمائیل بنه ده (حم) والا سورتونه لوله هغه بیاهم هغه عذربیان کړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د (یسبح) والا درې سورتونه لوله هغه بیاهم هغه عذربیان کړواودرخواست نی اوکړو چه حضور ﷺ ماته چرته د یوجامع سورت سبق راکړه نوحضور ﷺ هغه ته داسورت اوخودلو.کله چه نی اولوستلو نو هغه اوونیل په الله ﷻ قسم چاچه ته په حقه سره نبی جوړ کړې رالیګلې زه به چرې هم په دې باندې زیاتې اونه کړم. بیا هغه واپس لاړو حضور ﷺ اوفرمائیل دې سړی خلاصی بیاموندو اوخلاصی ته اورسیدو. بیانی اوفرمائیل لږ شان دې راوغواړئی هغه حاضر شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل ماته د قربانئی د اختر حکم شوې دې دغه ورځ الله ﷻ د امت د اختر ورځ جوړه کړې ده. نو دې سړی اوونیل که ماسره د قربانئی څاروې نه وی او یوسړی ماته د پئیود پاره څاروې په تحفه کښې راکړې وی نوزه هغه حلال کړم؟ ونی فرمائیل چه نه نه بیاخو ته خپل ویښته اوخروه نوکونه بریت واړه کړه د نوم نه لاندې ویښته واخله د الله ﷻ په نیزد ستا پوره قربانی هم دغه ده ([2]). داحدیث په مسنداحمد ابوداؤد او نسائی کښې هم دې.

د ترمذی په یوبل حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی چه کوم سړې دا سورت اولولې نو ده ته د نیم قرآن پاك ثواب ملاویږی([3])داحدیث غریب دې اوپه یوبل روایت دې کښې دی ﴿اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ﴾د نیم قرآن پاك برابر دې.او﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾د دریمې حصې قرآن برابر دې.﴿قُلْ يٰۤاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ د څلورمې حصې قرآن برابردې([4]) داحدیث هم غریب دې. بل حدیث کښې دی رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو کښې یو کس ته اوفرمائیل آیا تا نکاح اوکړه؟ هغه ونیل نه حضور ﷺ ماسره دومره څه نشته چه زه پرې خپله نکاح اوکړم. حضور ﷺ اوفرمائیل ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ تاسره نشته؟ هغه ونیل او شته خو. ونی فرمائیل دریمه حصه قرآن دا شو. بیانی اوفرمائیل ﴿اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ﴾ نشته؟ ونیل هغه هم شته. ونی فرمائیل څلورمه حصه قرآن دا شو بیا نی اوفرمائیل﴿قُلْ يٰۤاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ درته یادنه دې؟ هغه اویاد دې. ونی فرمائیل څلورمه حصه قرآن دا دې زه اوس نکاح اوکړه. ([5]) دا حدیث حسن دې دا دریواړه احادیث صرف ترمذی کښې دی.

---

[1] احمد : ۲/ ۳۹۶،

[2] احمد: ۲/ ۱۹۶، ابوداود کتاب شهر رمضان ، باب تحزیب القران : ۱۳۹۹، وسنده حسن .

[3] ترمذی کتاب فضائل القران باب ماجاء فی اذا زلزلت : ۲۸۹۳.

[4] ترمذی حوالا سابق : ۲۸۹۴،

[5] ترمذی کتاب فضائل القران باب ماجاء فی زلزلت : ۲۸۹۵،

| اياتونه | سورة الزلزال مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ⑧ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ① |

إِذَا زُلۡزِلَتِ الۡاَرۡضُ زِلۡزَالَهَا ۙ وَاَخۡرَجَتِ الۡاَرۡضُ اَثۡقَالَهَا ۙ

كله چي | اوخوزولي شي | زمكه | په خوزولو دهغې سره | او راأوباسي | زمكه | بوجونه خپل |

ځه وخت چي زمكه زلزلي سره اوجرقولي شي | ............ اوزمكه به خپل بارونه بهرته راؤباسي

وَقَالَ الۡاِنۡسَانُ مَا لَهَا ۚ يَوۡمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخۡبَارَهَا ۙ

اواووائي | انسان | چي څه اوشو په دي | په دغه ورځ به | بيانوي زمكه | خبرونه (حالات) خپل |

او انسان به اووائي چي په دې زمكه څه چل اوشو ؟| په دغه ورځ به زمكه خپل ټول حالونه اووائي

بِاَنَّ رَبَّكَ اَوۡحٰى لَهَا ؕ يَوۡمَئِذٍ يَّصۡدُرُ النَّاسُ

په سبب ددې چي رب ستا به | وحي كړې وي هغې ته | په دغه ورځ به | واپس كيږي | خلق |

ځكه چي ستا رب به ورته حكم كړې وي | ............په دغه ورځ به خلق ټولي ټولي راوخي

اَشۡتَاتًا ۙ لِّيُرَوۡا اَعۡمَالَهُمۡ ؕ فَمَنۡ

جدا جدا (خواره واره) | دپاره ددې چي ورته اوښودلي شي | عملونه خپل | نو هغه څوك |

............................................چي خپل عملونه ورته اوخودلي شي | ..................نو چا

يَّعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ خَيۡرًا يَّرَهٗ ؕ وَمَنۡ يَّعۡمَلۡ

چي كړې ني وي | په مقدار د ذرې | نيكي | اوبه ويني هغه | او هغه څوك | چي كړې ني وي |

چي ديوې ذرې هومره نيكي كړې وي | هغه به اووينې | ..................او چاچې ديو

مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ۧ

په مقدار د ذرې | بدي | اوبه ويني هغه

ذرې هومره بدي كړې وي هغه به اووينی

**قوله تعالى:-** اِذَا زُلۡزِلَتِ الۡاَرۡضُ زِلۡزَالَهَا ۙ

**كله چه په زمكه باندې زلزله راشي:-** زمكه به د لاندې نه د پاسه پورې رچيږي او چه څومره مړي په دې كښې دي هغه ټول به بهر راوغورزوي. لكه بل ځاي ارشاد دي ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّكُمۡ ۚ اِنَّ زَلۡزَلَةَ السَّاعَةِ شَىۡءٌ عَظِيۡمٌ﴾ خلقو د خپل رب نه اوويريږئ يقين اومنئ چه د قيامت زلزله او د هغه ورځ زلزله ډيرلوئ څيز دي. بل ځاي ارشاد دي ﴿وَاِذَا الۡاَرۡضُ مُدَّتۡ ۙ وَاَلۡقَتۡ مَا فِيۡهَا وَتَخَلَّتۡ ۙ﴾ زمكه به په رابنكلو سره برابره او هواره كړې شي او چه په دې كښې هرڅه دي هغه به بهر راوباسي او بالكل به خالي شي.

**قوله تعالى:-** وَاَخۡرَجَتِ الۡاَرۡضُ اَثۡقَالَهَا ۙ

صحيح مسلم كښې دي رسول الله ﷺ فرماني زمكه به د خپلې اينې ټكړې رابهر كړي سره زر او سپين زر به د لكه د ستنو بهر راوخي. قاتل به دې ته په كتوسره افسوس كوي وائي به ارمان دې چه د دې مال

د پاره ما فلانکې قتل کړي وو نن دا هسې اخوا ديخوا خرابيږي څوك ورته يونظر هم نه ګوري دغه شان به صله رحمئى ماتونکې هم وائي چه هم د دې په مينه کښې ما رشته دارانوسره سلوك نه کولو. غل به هم وائي هم د دې په محبت کښې ما خپل لاسونه کټ کړي غرض دا چه دغه مال به هسې پروت وي هيڅ څوك به ئې نه اخلي([1]) انسان به هغه وخت حيران اوپريشان پاتې وي اووائي به داخود خوزيدوهم نه دې بالکل ولاړدې غيب او کلك وو په دې څه اوشو چه لکه د بيد په شان خوزيږي؟ او چه ورسره اوګوري چه ټول ورانډې روستو مړي هم د زمکې نه راووتل نو حيران او پريشان به شي آخر په ده څه شوي دي؟ زمکه به بالکل بدله کړې شي او آسمان هم او ټول خلق به د هغه قهار رب په وړانډې اودريږي زمکه به په صفاصفا او ښکاره توګه باندې ګواهي ورکوي چه فلانکي فلانکي سړي فلانکې فلانکې نافرماني په دې کړې ده. حضورﷺ د دې آيت تلاوت کولونه پس اوفرمائيل پوهيږئي چه د زمکې بيان کړې شوي خبرونه په څه وي؟ خلقو ونيل الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ته ښه علم دې. نو حضورﷺ اوفرمائيل کوم کوم عملونه چه بنيادمو په زمکه باندې کړي دي هغه ټول به راښکاره کړي چه فلانکي سړي فلانکئي نيکي يا بدي فلانکي ځائې کښې فلانکي وخت کښې کړې ده. ([2]) امام ترمذي رحمه الله داحديث حسن صحيح غريب ښائي.

**قوله تعالى:- يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا**

**زمکه به هره خبره راښکاره:-** معجم طبراني کښې دي حضورﷺ فرمائيلي د زمکې نه بچ شئي دا ستاسو مورده کوم سړې چه په دې باندې نيکي بدي کوي دا به ټول راښکاره کړي([3]) دلته د وحی نه مراد حکم ورکول دي. ﴿اوحى﴾ اود دې په شان د معنې افعال صله حرف لام هم راځي. او ﴿اتى﴾ هم. مطلب دا دې چه الله ﷻ به دې ته اوفرمائي چه اوښايه نو هغه به ئې ښائي. په هغه ورځ به د حساب د ځائې نه په مختلفو قسمو ډلو کښې واپس کيږي. څوك بد څوك نيك څوك جنتي څوك دوزخي.دا معنې هم دی چه ددې ځائې نه کله جدا جدا شي نو بيا به نه شي يوځائې کولې.دا د دې د پاره چه هغوی خپل عملونه اوپيژني اود بدئي او نيکئي بدله اووينې په دې وجه ئې په آخره کښې بيان کړل. رسول الله ﷺ فرمائي چه د اسونووالا درې قسمه دي يود اجرمونـدونکي يـو پـرده ساتونکي او يـو بـوج او ګناه والا. د اجروالاخو هغه دې کوم چه اس ساتي دجهاد په نيت سره که د ده د اس پړي وغيره سست شواودې اخوا ديخوا څريدلونودا هم د اس والا د پاره د اجرسبب دې اوکه ده رسئي اوشلوله اواخوا ديخوا اوختلو نو د هغه د قدمونو نښې او د هغه خراشنه هم ده ته ثواب ملاويږي اوکه چرې دې په يونهر باندې اوبه اوڅکي اود څکلواراده ئې نه وي نوبيا هم ورته ثواب ملاويږي. دااس خود هغه سړي د پاره سراسر اجر او ثواب دې. دويم هغه سړې چه اس ئې د دې د پاره ساتلې وي چه د نورو خلقو نه بې پرواه وي اود چا نه د سوال کولو ضرورت نه وي خود الله ﷻ حق نه پخپله په دې کښې هيروي اونه د ده په سورلئي کښې نودا د ده د پاره پرده ده. دريم هغه سړې دې چه د فخر او ځان خودلو د پاره او ظلم اوزياتي کولود پاره ئې اس ساتلې وي نو دا د ده د پاره بوج او په ده باندې ګناه ده. بيادحضورﷺ نه سوال اوکړې شو چه دخرو پاره کښې څه حکم دې؟حضورﷺاوفرمائيل په ما باندې د الله ﷻ د طرف نه بغيرددې يو او جامع آيت نه بل څه نه دي نازل شوي چه د ذرې برابر نيکي اودومره بدي به هرسړې وينې. (مسلم) ([4])

---

[1] صحيح مسلم كتاب الزكاة باب الترغيب فى الصدقة قبل ان لا يوجد من يقبلها: ۱۰۱۳.
[2] ترمذى كتاب فضائل القران باب ماجاء فى زلزلت :۳۳۹۳،
[3] المعجم الكبير : ٤٥٩٦، ، مجمع الزوائد: ٢٤١/١.
[4] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اذا زلزلت باب قوله (( فمن يعمل مثقال ذرة خير يره)) : ٤٩٦٢.

حضرت صعصعه بن مالك ﷺ د حضور ﷺ په ژبه مبارکه دا ایت اوریدلوسره ونیلي وو چه صرف هم دا آیت کافي دی اوکه زیات وانوری نو هیڅ ضرورت نشته.([1])(مسنداحمد نسائی) صحیح بخاری کښې دا روایت د حضرت عدی بن حاتم ﷺ نه مروی دی چه د اورنه بچ شئی که د نیمې کهجورې په صدقه ولې نه وی([2])دغه شان په صحیح حدیث کښې دی چه د نیکئی کار سپك مه ګڼئی که هغه دومره وی چه د خپلې لوټې نه لرې شان اوبه په یوتږی باندې اوڅکوی یا د خپل یومسلمان رور سره په روڼ تندی خوشحالئی سره ملاقات اوکړی([3]) په یوبل صحیح حدیث کښې دی اې ایماندارو ښځو تاسودخپلې ګاونډئی هدیه او تحفه سپکه مه ګڼری که یوه نوکه ولې نه وی([4])بل حدیث کښې دی چه سوال کونکی ته څه نه څه ورکوئی که سوزیدلې نوکه ولې نه وی. ([5])

دمسنداحمد په حدیث کښې دی اې عائشه ﷺ ګناه سپکه مه ګڼره یادساته د دې هم الله ﷻ حساب اخستونکې دی([6])ابن جریر کښې دی چه حضرت ابوبکرصدیق ﷺ رسول الله ﷺ سره خوراك کولو چه دا آیت نازل شو نوصدیق اکبر ﷺ د خوراك نه لاس اوچت کړو او تپوس ئی اوکړویارسول الله ﷺ آیا ماته به دیوې یوې ذرې بدئی بدله راکولې شی نوحضور ﷺ اوفرمائیل صدیق اکبر په دنیاکښې چه کوم کوم تکلیفونه تاته رسیدلې دی دا خوپه هغې کښې راغلې او نیکئی د الله ﷻ سره ستا د پاره جمع شوی دی اود دې تولو به پوره پوره بدله د قیامت په ورځ درکولې شی([7])د ابن جریر په یوبل روایت کښې دی چه دا سورت د حضرت ابوبکر ﷺ په موجودګئی کښې نازل شوې وو هغه چه دا واوریدو نو ډیرئی اوژړل. حضور ﷺ د سبب تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمایيل چه ما دا سورت ژړوی. حضور ﷺ اوفرمائیل که تا خطا او ګناه نه کوله چه تاته اوبښلې شی اومعاف کړې شی نو الله ﷻ به یوبل امت پیدا کړې وو چه خطا اوګناه به ئی کوله او الله به هغوی بښل.([8])

حضرت ابوسعید خدری ﷺ د حضور ﷺ نه دا آیت واوریدو نو تپوس ئی اوکړو حضور ﷺ آیا زه به خپل ټول اعمال وینم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او، تپوس ئی اوکړو لوئ لوئ ونی فرمائیل او بیائی ونیل واړه واړه حضور ﷺ اوفرمائیل او. ما ونیل هائې افسوس نوحضور ﷺ اوفرمائیل ابوسعید خوشحاله شه نیکی خودلس چنده نه واخله تر اووه سوو پورې بلکه د دې نه هم زیات چه الله ﷻ چاله غواړی ورکوی به. اوګناه به هم د هغې په شان وی الله ﷻ به هغه هم اوبښي. واورئی یوکس ته به صرف د هغه عمل خلاصې ورنه کړې شی.ماونیل حضور ﷺ تاسو ته هم وئی فرمائیل نه ماته هم مګردا چه الله ﷻ په خپل رحمت سره ما پټ کړی. ([9]) د دې په راویانوکښې یو ابن لهیعه دی دا روایت صرف هم د ده نه نقل دی.

**د هریوعمل بدله به ملاویږی:-** حضرت سعیدبن جبیر ﷺ فرمائی چه کله دا آیت ﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا﴾ نازل شو یعنی د مال د محبت نه باوجود مسکین یتیم او قیدی باندې خوراك کوی نوخلقو دااوګنړل که مونږ لږ شان څیز د الله ﷻ په لارکښې ورکړو نوڅه ثواب به ملاویږی. مسکین به د هغوی په دروازه کښې راتلو خود یوې نیمې کهجورې یا د روټئی یوه ټکړه وغیره ورکول ئی سپك

---

[1] احمد : ۵/۵۹،
[2] صحیح بخاری کتاب التوحید باب کلام الرب تعالی یوم القیامة مع الانبیاء وغیرهم. : ۷۵۱۲.
[3] احمد: ۵/۶۳،
[4] صحیح بخاری کتاب الادب باب لا تحقرن جارة لجارتها: ۶۰۱۷، صحیح مسلم: ۱۰۳۰.
[5] نسائی کتاب الزکاة باب رد السائل : ۲۵۶۶، وسنده صحیح ، احمد: ۶/۴۳۵.
[6] ابن ماجة کتاب الزهد باب ذکر الذنوب: ۴۲۴۳، وهو صحیح: ۶/۱۵۱.
[7] الطبری :
[8] ابن ابی جریر وسنده حسن شعب الایمان : ۷۱۰۳، مجمع الزوائد:۷/۱۴۱.
[9] ابن ابی حاتم

ګټل اوداسې به ئې واپس کولو که چرې ورکوی نو چه چرته ښه او محبوب څيز ورکړي. هلته خود دې خيال يوه ډله وه بله ډله هغه وه چاته چه دا خيال پيداشوې ووچه په ورو ورو ګناهونو به زمونږ نيول نه کيږي مثلاً کله ئې چرته دروغ خبره اوکړه کله ئې چرته اخواديخوا نظر اوکړو کله ئې غيبت اوکړو. د دوزخ وعيد خو په کبيره ګناهونوباندې دې نودا آيت ﴿فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ۝﴾ نازل شو اودوی ته دا اوخودلې شو چه وړه شان نيکی سپکه مه ګڼړنی دا به لونيږی اوملاويږی به لس او چه دچادپاره الله ﷻ اوغواړی نود دې نه هم ډيرزيات بلکه د دې نيکو په بدله کښې بدنی هم معاف کوی.د يوې يوې نيکنی سره لس لس بدنی معاف کيږی. بيا دا هم دی چه که د چا نيکی د بدنی نه يوه ذره هم زياته شوه هغه جنتی شو.رسول الله ﷺ فرمانی چه ګناه سپکه مه ګڼړنی دا ټولې راجمع کولې شی اوسړې هلاکوی.رسول الله ﷺ د دې بدو مثال بيان کړې دې لکه چه څنګ خلق يوځائ کښې کوز شی بيا يويو دوه دوه لرګی راغونډ کړې نود لرګويو ډهيرې اولګی اوکه بيا دا اوسوزولې شی نو په دې اور کښې چه څه غواړې پخولې شې([1]) (دغه شان لږه لږه ګناه ډيره زياتيږی اود اور کار کوی او انسان سوزوی.)

﴿والحمدلله رب العلمين﴾ د سورت الزلزال تفسير ختم شو.

| ایاتونه | | سورة العاديات مكية وهي احدى عشرة ايات وركوعا واحدا | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑪ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

وَالْعٰدِيٰتِ | ضَبْحًا ۝ | فَالْمُوْرِيٰتِ | قَدْحًا ۝

قسم دې په منډه وهونکو اسونو باند | ډيرشار سره | بيا ايستونکی د اور دی | په وهلو دنوکونو سره |

قسم دې په منډه وهونکو اسونو چې پرشيږی | ..................نو په پښو وهلو داور بڅری غورزوی

فَالْمُغِيْرٰتِ | صُبْحًا ۝ | فَاَثَرْنَ | بِهٖ | نَقْعًا ۝ | فَوَسَطْنَ

بيا حمله کونکی دی | په صبا کښی | بيا پورته کوی | په دې موقع | دوړه | بيا منځ ته ورننوزی |

نو د صبا په وخت په دښمن حمله کوی | نو په هغې سره ګرداو غبار اوچتوی | ..................نو ددښمن

بِهٖ | جَمْعًا ۝ | اِنَّ الْاِنْسَانَ | لِرَبِّهٖ | لَكَنُوْدٌ ۝

په دې حالت کښی | ډلې (د دښمن) ته | بيشکه انسان | درب خپل | ډير ناشکره دې |

(دلښکر) مينځ ته ورننوځی | ................... بيشکه چې انسان دخپل رب ناشکره دې

وَاِنَّهٗ | عَلٰى ذٰلِكَ | لَشَهِيْدٌ ۝ | وَاِنَّهٗ | لِحُبِّ الْخَيْرِ

او بيشکه دا انسان | په دې ناشکرئ باند | خامخا ګواه دې | او بيشکه دې | په مينه دمال کښی |

اودې پخپله په دې خپله ناشکرئ ګواه دې | ..................اودې دمال په مينه کښی

لَشَدِيْدٌ ۝ | اَفَلَا يَعْلَمُ | اِذَا | بُعْثِرَ | مَا

خامخا سخت دې | ايا نو هغه نهٔ پيژنی هغه وخت | کله چې | راپورته کړې شی | هغه څه |

ډير (زيات)سخت دې | ..........ايا دهٔ ته معلومه نه ده چې څه وخت د قبرونو نه هغه څه په کښې دی

---

[1] احمد: ۱/۴۰۲.

| فِي الْقُبُوْرِ | وَحُصِّلَ | مَا | فِي الصُّدُوْرِ | إِنَّ رَبَّهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې په قبرونو کښې دي | او بهر کړې شي | هغه څه | چې په سينو کښې دي | بيشکه رب دهغوئ به |
| (مړي) راپاڅولې شي | او د سينو پټ رازونه به څرګند کړې شي | ............... | | نو په دغه |

| بِهِمْ | يَوْمَئِذٍ | لَّخَبِيْرٌ |
|---|---|---|
| په هغوئ باندې | په دغه ورځ | خامخا خبردار وی |
| ورځ به الله تعالى ددوئ په حال ښه خبر وى | | |

**قوله تعالى:- وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا**

**د مجاهدينو د اسونو قسم** :-دمجاهدينواسونه كله چه د الله ﷻ په لاركښې هنرېږى او منډې وهى د هغوى الله ﷻ قسم خورى بيا په دې تيزئى سره منډې وهلوكښې دهغوى نعلونه د كانړوسره جنګيدل او په دې مړلوسره د اور بځرى الوتلو اوبيـاد سحر په وخت كښې په دښمن باندې حمله كول اود رب دښمنان لاندې باندې كول. د حضورﷺ هم دغه عادت مبارك وو چه كله به د دښمن يوكلى ته تلو نو هلته به د شپې د پاره حصاريدو او غوږبه ئې كيخودو كه چرته د اذان آواز به راغلونو حضورﷺ به منع شوكه نه به راتلونو لښكر ته ئې حكم اوكړو چه ورچغه كړئ[1] بيا د دغه اسونو دوړې اوچتول او د هغه ټولود دښمنانو مينځ ته ورننوتل په دې ټولو څيزونو باندې قسم خوړلوسره مضمون شروع كوى. د حضرت عبدالله ﷺ نه روايت دې (وَالْعٰدِيٰتِ) نه مراد اوښ دې حضرت على ﷺ هم دا وائى.

د حضرت ابن عباس ﷺ داقول دې چه دې نه مراد اسونه دى كله چه على ﷺ ته معلومه شوه نو هغوى اوفرمائيل اسونه د بدر په ورځ مونږ سره چرته وو؟ دې خو په هغه وړوكى لښكر كښې وو چه ليګلې شوې وو.حعبدالله بن عباس ﷺ يوځل په حطيم شريف كښې ناست وو چه يوسړې راغلود دې آيت تفسيرتپوس ئې اوكړو نو هغوى اوفرمائيل دې نه مراد دمجاهدينواسونه دى چه د جهاد په وخت كښې په دښمن باندې حمله كوى بياد شپې په وخت دا اسونه اوسواره مجاهدين خپلو كيمپونوته راځى اود خوراك د پاره اور لګوى هغه د دې تپوس نه پس حضرت على ﷺ له لاړو هغه وخت هغوى د زم زم اوبه په خلقو څكولې هغه سړى د دوى نه هم هغه سوال اوكړو هغوى اوفرمائيل چه ما نه وړاندې دې د بل چانه هم تپوس كړې دې؟ ونيل او د حضرت ابن عباسﷺ نه مې تپوس كړې نوهغوى اوفرمائيل د مجاهدينو اسونه كوم چه د الله ﷻ په لاركښې حمله اوكړى. حضرت على ﷺ ورته اوفرمائيل څه لاړشه هغه لړ شان ماله راوله كله چه هغه راغلو نو حضرت على ﷺ اوفرمائيل چه تاته پته نشته اوخلقو ته فتوى وركوې.د الله ﷻ قسم په اسلام كښې رومبنى غزوه د بدر شوې په دې جنګ كښې مونږ سره صرف دوه اسونه وو. يود حضرت زبيرﷺ او بل د حضرت مقداد ﷺ نو عاديات ضبحانه څنګه مرادكيدې شى دې نه مرادخودعرفات نه دمزدلفه طرف ته تلونكى[1] اوبياد مزدلفه نه منى طرف ته تلونكى دى. حضرت عبدالله ﷺ فرمانى دې اوريدوسره ما د خپل وړاندينى قول نه رجوع اوكړه اوچه حضرت على ﷺ كوم فرمائيلې وو هم هغه مې اووئيل.مزدلفه ته په رسيدو باندې حاجى خپله كټونى روټئى د پاره اور بلوى. نود حضرت علىﷺ فرمان داسې شو چه دې نه مراد اوښ دې اوهم دا قول د يوې ډلې دې په كوم كښې چه ابراهيم عبيده بن عمير وغيره دى اود حضرت ابن عباس ﷺ نه اسونه روايت دى.

---

[1] صحيح مسلم كتاب الصلاة باب الامساک عن الاغارة على قوم: ۳۸۲.

**قوله تعالى:- فَالْمُغِيرٰتِ صُبْحًا**

د سحر په وخت كښې حمله كونكي:- مجاهد رحمه الله عكرمه رحمه الله عطاء رحمه الله قتاده رحمه الله ضحاك رحمه الله هم دا وائي او امام ابن جرير رحمه الله هم دا خوښوي بلكه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت عطاء رحمه الله نه روايت دې (ضبح) يعني هنړيدل د پوځناوردپاره نه وي سوا د اس اوسپي. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي د هغوی د خُلو نه چه د هنړارۍ په وخت كښې كوم آواز د اح اح اوځي هم دا (ضبح) دې. اود دويمې جمله خو يوه دا معنی كړې شوې ده چه د نعلونو كانړو سره جنګيدوباندې اُور پيداكيدل اوبله معنی دا هم كړې شوې ده چه د هغوی د سورو په جنګ كښې اُور لګول اوداهم ونيلي شوي دي چه په جنګ دهوكه او چل ول كول اودا هم روايت دې چه د شپې خپل د قيام ځاې ته په رسيدو باندې اُور بلول او په مزدلفه كښې د حاجيانو پس د ماښام نه رسيدل او اُور لګول.

امام ابن جرير رحمه الله وائي چه زما په نيزد د ټولونه زيات ټيك قول هم دا دې چه د اسونو نعلونه د كانړو سره لګيدوباندې د اُور پيدا كيدل. بيا د سحر په وخت كښې د مجاهدينو په دښمن باندې ناځاپي حمله كول او چه كومو صاحبانو ددې نه مراد اوښ اخستي دې هغه فرمائي چه د دې نه مراد د مزدلفه نه منى طرف ته د سحر تلل دى بيا دا ټول وائي چه بيا هغوی په كوم ځاې كښې كوزيږي كه هغه په جهاد كښې وي كه حج كښې دوړې الوزوي بيا د دې مجاهدينو د كافرانو په لښكر كښې په بهادرئي سره ورننوتل او په شلولو وهلو وژلو د هغوی د لښكر مينځ ته رسيدل اودا هم مراد كيدې شي چه ټول راجمع شي اودهغه ځاې مينځ ته راشي نو په دې صورت كښې جمعا د حال مؤكد كيدو په وجه سره منصوب كيږي. ابوبكر بزار كښې په دې ځاې يو غريب حديث دې په كوم كښې چه حضور صلى الله عليه وسلم يولښكر ليګلې وويوه مياشت تيره شوه خود هغوی څه خبر رانغلو په دې باندې دا آيت نازل شو او د هغه لښكر الله جل جلاله خبروركړو چه د هغوی اسونه هنړيدلوسره په تيزئی سره لاړل د هغوی د نعلونود جنګيدو نه بڅرې الوتل هغوی هم سحرسحر په دښمن باندې په پوره تيارۍ سره حمله اوكړه دهغوی د قدمونو نعلونو نه دوړې الوتې بيا غالب راغلل او ټول راجمع شو كيناستل[1] ددې قسمونونه پس هغه مضمون بيانيږي په كوم چه داقسمونه خوړلې شوې وو چه انسان د خپل رب دنعمتونو قدردان نه دې. كه يووخت كښې څه درد تكليف راشي نوهغه ورته ښه يادوي خود الله جل جلاله په زرګونونعمتونه چه كوم دی هغه ټول ئې هيركړې دی.

د ابن ابی حاتم په حديث كښې دي چه (كنود) هغه دې څوك چه ځان له خوراك كوي غلامان وهي او احسان او سلوك نه كوي د دې اسناد ضعيف دی. بيا الله جل جلاله په دې باندې ګواه دې چه دې پخپله په خپله خبره ګواه دې د ده ناشكرى د كارونو او وينا نه صفابنكاره ده. لكه بل ځاې ارشاد دې (شاهدين على انفسهم بالكفر) يعني د مشركانونه د الله جل جلاله د جماتونو آبادي نه شې كيدلې اودوی د خپل كفر پخپله ګواه دی. بيا فرمائي چه دوی د مال په غوښتلو كښې ډيرسخت دی يعنی د دوی د مال سره ډيره مينه ده اوداهم معنی ده چه د دې په مينه كښې اونخلی اوزمونږ په لار كښې د وركړې نه ځان پټوی. بخل كوی. بيا الله جل جلاله هغه د دنيا نه بې رغبت كوی او د آخرت طرف ته ئې متوجه كولود پاره فرمائي آيا انسان ته دا معلومه نه ده چه يووخت داسې راروان دې چه ټول مړی به د خپلو قبرونو نه راپاسی اودريږی به اوكومې خبرې چه پټې شوې وې ټولې به ښكاره كولې شی. واورئی دهغوی رب د هغوی د ټولو كارونو خبردې اود هريوعمل بدله پوره پوره وركونكې دې د يوې ذرې برابر هغه ظلم نه كوی.

(والحمد لله رب العالمين) د سورت عاديات تفسير د الله جل جلاله په فضل اوكرم سره ختم شو.

---

[1]) المعجم الكبير :۷۷۷۸،

| آياتونه | سورة القارعة مكية وهي احدى عشرة ايات وركوعا واحدا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ⑪ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکي دي | ① |

اَلۡقَارِعَةُ ۝ مَا الۡقَارِعَةُ ۝ وَمَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا الۡقَارِعَةُ ۝ يَوۡمَ

لويه حادثه | څه ده هغه لويه حادثه | اوڅه معلومه ده تاته | چي څه ده هغه لويه حادثه | هغه ورځ |

ټکونکي دي اهغه ټکونکي څه دي| اوتاته څه معلومه ده چي هغه ټکونکي څه دي | ....... .... په دغه

يَكُوۡنُ النَّاسُ كَالۡفَرَاشِ الۡمَبۡثُوۡثِ ۝ وَتَكُوۡنُ الۡجِبَالُ كَالۡعِهۡنِ الۡمَنۡفُوۡشِ ۝

چي شي به خلق | پشان دپتنګانو | خورو ورو | او شي به غرونه | پشان دوړي | وهلي شوي |

ورځ به خلق د خورو ورو پتنګانو په شان ګرځي|او غرونه به د شيندلي شوي رنګيني وړئ په شان الوزي

فَاَمَّا مَنۡ ثَقُلَتۡ مَوَازِيۡنُهٗ ۝ فَهُوَ فِيۡ عِيۡشَةٍ رَّاضِيَةٍ ۝

در چي دي هغه څوك | چي درنې شي | تلې دهغه | پس هغه به | په ژوند | خوښ کښي وي |

نو دچا (دنيکوعملونو) تلې چي درندې شي| ......................هغه په ښه مزه کښي وي

وَاَمَّا مَنۡ خَفَّتۡ مَوَازِيۡنُهٗ ۝ فَاُمُّهٗ هَاوِيَةٌ ۝

او در چي دي هغه څوك | چي سپکي شوي | تلي دهغه | نو ځائي دقرار دهغه | زوره کنده ده |

او دچا (دبدوعملونو) تلې چي سپکي شي | .. ...... ........دهغه ځائي هاويه دي

وَمَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا هِيَهۡ ۝ نَارٌ حَامِيَةٌ ۝

او څه پته ده تاته | چي څه څيز دي هغه | اور ګرم دي

او تاته څه معلومه چي هاويه څه څيز دي | هغه ګرم اور دي

قوله تعالي:- اَلۡقَارِعَةُ ۝ مَا الۡقَارِعَةُ ۝

قيامت ګرزونکي دي :- (قارعة) هم د قيامت نوم دي لکه (حاقة طامة صاخة غاشية) وغيره. د دې د لوئي او خطرناکوالي بيانولودپاره سوال کولې شي چه داڅه څيزدي؟ ددې علم بغيرزمادخودلو بل هيڅ چا ته حاصليدې نه شي. بيا پخپله ښائي په دغه ورځ به خلق خفه ګډوډ حيران اوپريشان اخوادېخوا ګرځي لکه څنګه چه پتنګان وي. بل ځائ فرمائي (كَاَنَّهُمۡ جَرَادٌ مُّنۡتَشِرٌ) لکه هغوی خواره شوی ملخان دی. بيا فرمائي د غرونويه داحال وی چه هغه به د ويشتلي شوي ورئی په شان اخوادېخوا الوتونکی په نظر راځي بيا فرمائي چه په هغه ورځ به د هرنيك او بد انجام ښکاره کړې شي. د نيکانو بزرګي او د بدانو سپکاوې به ښکاره کړې شي د چا چه نيکئی په وزن کښې د بدونه زياتې شي هغه به د عيش او آرام په جنت کښې اوسيږي اود چا بدئی چه په نيکو راخورې شوې د نيکو چابړې سپك شو هغه به دوزخی شي هغه به پرمخې دوزخ کښې ورغورزولې شي.د ام نه مراد دماغ دی يعنی سرښکته به هاويه ته ځي او دا هم معنی شوې ده چه فرښتې به په دوزخ کښې د هغه په سربانډې د عذابونو بارانونه راوروی. او دا هم مطلب دې چه د ده اصلی ځائ هغه دې چرته چه د هغه دپاره ځائ مقررشوې دې هغه دوزخ دې

﴿هاوية﴾ د دوزخ نوم دې هم ددې دپاره د دې تفسير بيانولوسره فرمايي چه تاته نه ده معلومه چه دا هاويه څه څيز دې؟اوس درته زه ښايم دا هغه شغلې وهونکې سورکړې شوې أور دې.

**قوله تعالى:-** فَهُوَفِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ۞

حضرت اشعث بن عبدالله ؓ فرمائي چه د مؤمن د مرگ نه پس د هغه روح د ايماندارانود روحونو طرف ته اوړی اوفرښتې هغې ته وائي چه د خپل رور تسلي اوزړه اوساته دې د دنيا په غمونو دردونو کښې اخته وو اوس هغه نيك روحونه د هغه نه تپوس کوی چه د فلانکی څه حال دې؟ هغه وائي چه هغه خومړشوې دې تاسو له نه دې راغلې؟ دوی پوهيږي او وائي پريدئی هغه خوخپلې مور هاويه له تلې دې. د ابن مردويه په يومرفوع حديث کښې دی چه دا بيان په ښه کولاووالی سره دې او مونږ هم دا په کتاب صفة النارکښې ذکر کړې دې. الله ﷻ په خپل فضل اوکرم سره مونږ له د دې دوزخ د أور نه خلاصي راکړی. آمين.

**قوله تعالى:-** نَارٌحَامِيَةٌ۞

أور سوزونکې :- بيا فرمائي هغه ډير سخت تيز سوزونکې أور دې لوئ شغلې وهونکې، سوزونکې. رسول الله ﷺ فرمائي چه ستاسودا أورخو د هغې اويايمه حصه ده. خلقو ونيل حضرت د هلاکت د پاره خوداهم کافي دې.حضورﷺ اوفرمائيل چه او خو د دوزخ أورخو ددې نه يوکم اويادرجې تيز دې. په صحيح بخاری کښې داحديث دې او په دې کښې داهم دی چه هره يوه حصه ئې ددې أور په شان ده. (1) مسنداحمدکښې هم دا روايت موجود دې(2)مسنداحمدکښې يوحديث کښې دې سره داهم شامل دی چه دا أورسره د دې چه اويا درجې کيدونه بيا هم دادوه ځل د سمندرپه ابوکښې مړکړې شوې دې اوراليګلې دې اوکه دا نه وو نودې نه به دې هم نفع نه شوه اوچتولی. (3)په يو بل حديث کښې دی چه دا أورسلمه حصه دې(4) طبراني کښې دې پيژنئې چه ستاسود دې أوراود دوزخ د أور په مينځ کښې څه نسبت دې؟ستاسوددې أورد لوگی نه هم اويادرجې زيات تورهغه أوردې(5)ترمذی او ابن ماجه کښې حديث دې چه ددوزخ أور زرکاله بل کړې شونوهغه سورشو بيا د زروکالوپورې اوسوزولې شونو سپين شو او بيا زرکالو پورې بل کړې شو نو تور شو نو اوس هغه سخت تك تور او د تياروولا دې. (6) دمسنداحمدپه حديث کښې دی د ټولونه د سپك عذاب والا دوزخي هغه دې دچا په پښوکښې چه به د أور دوه څپلئي وی په کوموسره چه به د هغه مازغه خوټيکيږی(7) بخاری او مسلم کښې دی چه أور خپل رب ته شکايت اوکړو اې الله زما يوه حصه دويمه خوری نو پروردگار ورته د دوو ساه گانو اخستلو اجازت ورکړو يو په ژمی کښې او يو په اوړی کښې. نو چه دا تاسو سخته يخنی وينئی د هغه يخه ساه ده اوچه دا سخته گرمی وی نو دا د هغه د گرمې ساه اثر دې. (8) بل حديث کښې دی چه کله سخته گرمی وی نو مونځ يخولو سره کوئی خکه چه د گرمئی سختی د دوزخ د أور په وجه سره ده. (9)

﴿الحمدلله﴾ د سورت قارعه تفسير هم ختم شو.

---

1) صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة النار انها مخلوقة: ۳۲۶۵، صحيح مسلم: ۲۸۴۳، موطا: ۹۹۴/۲.
2) احمد:۴۶۷/۲ وسنده حسن .
3) احمد:۲۴۴/۲وهو حديث صحيح
4) احمد:۳۷۸/۲، وسنده صحيح.
5) المعجم الكبير الاوسط للطبرانى: ۴۷۹،
6) ترمذی کتاب صفة جهنم باب منه فی صفة النار وانها سودا مظلمة: ۲۵۹۱.
7) احمد: ۴۳۲/۲، صحيح مسلم کتاب الايمان باب اهوان اهل النار عذابا. ۲۱۱.
8) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلاة باب الابراد بالظهر فی شدة الحر: ۵۳۷.
9) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلاة باب الابراد بالظهر فی شدة الحر: ۵۳۶.

| آیاتونه | سورة التكاثر مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | رکوع کاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ⑧ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ① |

اَلۡهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ① حَتّٰى زُرۡتُمُ الۡمَقَابِرَ ② كَلَّا

غافله کړئ تاسو | (حرص) دمال ډیرولو | تر دې پورې | چې زیارت اوکړو تاسو دمقبرو | هرګز داسې نهٔ

دمال د ډیرولو حرص تاسو غافله کړې ئې | تر دې چې تاسو قبرونو ته اورسیږئ | ..............خبردار

سَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ③ ثُمَّ كَلَّا سَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ④ كَلَّا

ډیر زر به معلوم شی تاسو ته | بیا هرګز داسې نهٔ | ډیر زر به معلوم شی تاسو ته | هرګز داسې نهٔ |

زر به پوهه شئ | ..............بیا یاد لرئ چه زر به پوهه شئ | ..............هرګز نه

لَوۡ تَعۡلَمُوۡنَ عِلۡمَ الۡيَقِيۡنِ ⑤ لَتَرَوُنَّ الۡجَحِيۡمَ ⑥ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا

کاش چې تاسو پوهیدلې | په علم یقینی سره | خامخا به وینئ تاسو | دوزخ | بیا به خامخا وینئ تاسو هغه |

که تاسو خپل انجام یقینی طور پیژندې | تاسو به ضرور په خپلو سترګو دوزخ اووینئ | بیا به هغه خامخا

عَيۡنَ الۡيَقِيۡنِ ⑦ ثُمَّ لَتُسۡئَلُنَّ يَوۡمَئِذٍ عَنِ النَّعِيۡمِ ⑧

په سترګو دیقین سره | بیا به خامخا تپوس کیږی ستاسو نه | په دغه ورځ | په باره ددې نعمتونو کښې |

دیقین په سترګو اووینئ | بیا به په دغه ورځ تاسو نه دنعمتونو تپوس کولې شی

**قوله تعالی:- اَلۡهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ① حَتّٰى زُرۡتُمُ الۡمَقَابِرَ ②**

**د دنیاپه محبت کښې د آخرت نه غفلت:-** ارشاد کیږی چه د دنیامحبت او ددې حاصلولو کوشش تاسو د آخرت دطلب او نیکو کارونو نه بې پرواه کړنی تاسو هم ددې دنیا په لاتجو کښې اونختنی اوناڅاپی مرګ راغلو اوتاسو قبرونو ته اورسیدئی. رسول الله ﷺ فرمائی د پروردګار د اطاعت نه تاسو د دنیا په کوششونو کښې اونختنی او د مرګه پورې په غفلت کښې پراته وئی (1) (ابن ابی حاتم). حسن بصری رحمه الله فرمائی چه د مال اولاد د زیاتوالی حرص کښې مود مرګ خیال اخوا اوغورزولو. صحیح بخاری کتاب الرقاق کښې دی چه ابی بن کعب رضی الله عنه فرمائی چه **(لوکان لابن آدم وادمن ذهب)** یعنی که بنیادم سره دیوخنګل برابرسره زر وی دا مونږ هم د قرآن پاك آیت ګنړلو تردې چه **(اَلۡهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ①)** نازل شو (2)

**دانسان مال کوم یو دې؟:-** مسنداحمد کښې چه حضرت عبدالله بن شخیر رضی الله عنه فرمائی چه زه کله د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم نو حضور ﷺ دا آیت لوستلو. وئی فرمائیل چه بنیادم وائی چه زما مال زما مال حالانکه ستا مال خو صرف هغه دې کوم چه تا اوخوړلو اوفنادې کړو یادې واغوستو اواودې شلولو صدقه ورکولوسره دې باقی کړو (3) په صحیح مسلم کښې دومره نور هم دې چه دې نه سوا څه

---

(1) ابن ابی حاتم

(2) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب ما یتقی من فتنة المال: ٦٤٤٠.

(3) احمد ٢٤/٤، صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن و جنت للکافر :٢٩٥٨.

هم دی هغه خو تا د خلقو د پاره پریخودل لاړي(۱)

**دانسان سره صرف عمل پاتې کیږي:**-د بخاري شريف په حديث کښې دی چه مړی سره دري څيزونه خی په کوموکښې چه دوه واپس راګرځي اويوورسره پاتې کیږي. د کوروالا مال او اعمال. اهل اومال واپس راځي او عمل پاتې کیږي(۲) دمسنداحمد په حديث کښې دی بنيادم بوډاکیږي خو دوه څيزونه هغه سره باقي پاتې کیږي يو لالچ او بل خواهش. (۳)

**ددې سورت شان نزول:**-حضرت ضحاك رحمه الله د يوسړي سره په لاس کښې يودرهم ليدوسره نی تپوس اوکړودا درهم د چا دې؟هغه ونيل زما. ونی فرمانيل چه ستاخو به هغه وخت وی چه په څه نيك كار کښې نی خرچ کړي ياد الله ﷻ د شکر په توګه نی خرچ کړي. حضرت احنف رضی الله عنه دا واقعه بيانولوسره بيا داشعر اووئيلو:

**انت للمال اذا امسكته فاذا انفقته فالمال لك**

**ترجمه:**-يعني چه ته کله د مال د پاره ناست نی نو ته د مال ملکيت نی کله چه داخرچ کړې هغه وخت به مال ستا ملکيت شی.

ابن بريده رضی الله عنه فرمانی بنوحارثه اوبنوحارث د انصاروقبائل په خپل مينځ کښې فخر اوغرور کولويوونيل چه ګوره په مونږ کښې فلانکي سړې دومره بهادر دې داسې کلك دومره لوئ مالدار وغيره. د بلې قبيلې والا دخپل داسې کسان پيش کول. کله چه نی ژوندو سره داسې فخر اومباهات کول نوونيل چه راځئ قبرستان ته خو هلته لاړل او د خپلو خپلو مړو قبرونوته نی ارشارې کولې اوونيل به نی اوښائی د ده په شان هم په تاسوکښې څوك تيرشوې دې هغوی به دوی ته د خپلو مړوسره الزامونه ورکول. په دې باندې دا دوه د شروع آياتونه نازل شو چه تاسو فخر اومباهات کولوسره اديرو ته اورسيدنی اوپه خپلوخپلومړو باندې مو فخر او غرور شروع کړو. پکار وو چه دلته په راتلوباندې مو عبرت حاصل کړې وې خپل مړه کيدل سخاکيدل اوخاورې کيدل مو يادول.

**دنبی کريم ﷺ ديو سړي دعيادت کولو واقعه:**-حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه خلقو به په خپل زياتوالی او کثرت باندې فخر کولو تردې چه يويو په قبر کښې ورښکته شو. مطلب دا چه د ډيروالی ارمان په غفلت کښې اوساتل تردې چه مړه شول اوقبرونوکښې داخل شو.صحيح حديث کښې دی نبی کريم ﷺ د يو باندو چې تپوس له ورغلو اود عادت مبارك مطابق نی اوفرمانيل هيڅ پره نشته ان شاء الله د ګناهونونه به خلاص شې نو هغه اووئيل چه تاسو خودا بنه پاك بنانی دا خو هغه تبه ده چه په بوډاګانو او ځوانانو باندې جوش وهی اوقبرته نی رسوی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه بنه هم داسې ټيك ده. (۴) په دې حديث کښې هم لفظ (تزيره القبور) دې اودلته په قرآن کښې هم ﴿حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ﴾دې. نومعلومه شوه چه دې نه مراد مړه کيدل اوپه قبرکښې خښيدل دی. ترمذی کښې دی حضرت علی رضی الله عنه فرمائی ترکومې چه دا آيت نازل شوې نه وو مونږ د قبر د عذاب په شك کښې وو(۵) داحديث غريب دې.

ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د دې آيت تلاوت اوکړوبيانی څه وخت پورې سوچ اوکړو ونی فرمانيل ميمون! د قبرونوکتل خو صرف د زيارت په توګه دی اوهريوزيارت کونکې خپل ځای ته واپس کیږي يعنی که دجنت طرف ته وی که د دوزخ طرف ته. يواعرابی هم د يوسړې نه د

---

(۱) صحيح مسلم :۲۹٦۰ حواله سابق :۲۹۵۹.
(۲) صحيح بخاری کتاب الرقاق باب سکرات الموت:٦۵۱٤، صحيح:۲۹٦۰.
(۳) احمد: ۱۱۵/۳، ح/۱۲۱٤۲، وسنده صحيح وهو متفق عليه البخاری :٦٤۲۱، ومسلم: ۱۰٤۷، من حديث شعبة به
(۴) صحيح بخاری کتاب المرض باب عيادة الاعراب : ۵٦٦۲. المعجم الکبير : ۱۱۹۵۱.
(۵) ترمذی کتاب تفسير القران باب ومن سورة ( الهاکم التکاثر) :۳۳۵۵.

دې دواړو ایاتونو تلاوت اوریدوسره داسې ونیلې وو چه اصل مقام بل ځائ دې.بیا الله ﷻ په سختنی سره دوه ځل فرمائی د حقیقت حال علم به تاسو ته اوس اوشی. دا مطلب هم بیان کړې شوې دې چه اول مرادکافران دی او په دویم ځل مؤمنان مراد دی.بیا فرمائی که تاسو په یقینی علم سره دا معلوم کړې وې یعنی که داسې وې نو تاسو به غفلت کښې نه پریوتلې اومرګه پورې به د خپل آخر منزل آخرت نه په غفلت کښې نه پاتې کیدنې. بیا چه د کوم څیز نه ئی اول ویرولې وو هم د هغې بیان کولې شی چه تاسو به دوزخ پخپلو سترګوباندې اووینئی چه ددې په چپه باندې نورخو څه چه انبیاء علیهم السلام به د هیبت او ویرې په زنګونونوباندې راپریوځی اود دې عظمت او دهشت به په هر چا باندې خورشوې وی لکه چه په ډیرو احادیثوکښې په تفصیل سره نقل دی.

**قوله تعالی:- ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ۝**

**د قیامت په ورځ به د نعمتونومتعلق سوال کیږی:-** بیا فرمائی چه په دې ورځ به تاسو نه د نعمتونوپاره کښې تپوس کولې شی.دصحت امن رزق وغیره ټولونعمتونو متعلق به تپوس کولې شی چه د دې شکر موترکوم ځائ پورې اداکړې دې. د ابن ابی حاتم په یوغریب حدیث کښې دی چه ټیك د غرمې په وخت رسول الله ﷺ د خپل کورنه اووتلو اوابوبکر رضی الله عنه هم جمات ته راروان ووتپوس نی اوکړو چه دې وخت کښې څنګه راوتلې ئې؟ وئی ونیل حضور ﷺ کوم څیز چه تاسو راویستلې ئی هغې زه هم راویستلې یم. حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه هم راغلو هغه ته هم حضور ﷺ داسې اوفرمائیل نو هغه هم دغه جواب ورکړو. بیا حضور ﷺ دې دواړو بزرګانوسره خبرې کول شروع کړه. بیائې اوفرمائیل چه که همت وی نو دغه باغ پورې خو خوراك څښاك به ملاوشی اود سوری ځائ هم. مونږ ونیل ډیره ښه ده نو حضور ﷺ مونږ د ابوالهیثم رضی الله عنه انصاری د باغ دروازې ته راوستلو. حضور ﷺ سلام اوکړو او اجازت ئی اوغوښتو ام هیثم انصاریه هم د دروازې نه شاته ولاړه وه اوریدل ئی خو په اوچت آواز سره ئې جواب ورنه کړو په دې لالچ باندې چه د الله ﷻ رسول ﷺ نورې ډیرې د سلامتیادعاګانې اوکړی او په خوځوځل د حضور ﷺ سلام واوری. کله چه درې ځل حضور ﷺ سلام اوکړو او څه جواب ملاونه شو نو واپس روان شو. نو د حضرت ابوالهیثم رضی الله عنه موربی بی رامندې کړې او وئی ونیل حضور ﷺ ماستاسو آواز اوریدلو خوزما اراده وه چه الله ﷻ دې اوکړی چه تاسو څو ځوځل سلام اوکړئی په دې وجه ما خپل آواز تاسو ته واونړولو تاسو راشئی او تشریف راوړئی.حضور ﷺ د هغې دا فعل په ښه نظر سره اوکتلو اوونی فرمائیل چه پخپله ابو الهیثم رضی الله عنه چرته دې؟ هغې اوونیل حضور ﷺ هغه هم دلته نیزدې د اوبوراوړلو د پاره تلې دې. تاسو تشریف راوړئی ان شاء الله بس راروان دې. حضور ﷺ باغ کښې تشریف کیخودو هغه بی بی د یوسوری لاندې څه خواره کړه په هغې باندې حضور ﷺ تشریف کیخودو. په دې کښې ابوالهیثم رضی الله عنه هم تشریف راوړلو او ډیر زیات خوشحاله شواو ښکلې ښکلې غونچې ئې راکوزولې او ورکولې ئې تردې چه پخپله حضور ﷺ منع کړو.صحابی اوونیل یارسول الله ﷺ اوچې لمدې تر اوبالکل پخې څنګه چه تاسو غواړئی اوخورئی. کله چه ئې کهجورې اوخوړلې نو خوږې اوبه ئې راوړلې هغې اوڅکلې اوبیا حضور ﷺ اوفرمائیل هم دا هغه نعمتونه دی د کوم باره کښې به چه د الله ﷻ په دربارکښې پوښتنه کولې شی.

د ابن جریر هم په دې حدیث کښې دی چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه ناست ووهغوی له حضور ﷺ تشریف راوړو اوونی فرمائیل دلته څنګه ناست ئی؟ دواړو وئیل حضور ﷺ د ولږې د وجه نه د کور نه راوتلې یو وئی فرمائیل دهغه الله ﷻ قسم چاچه زه په حقه سره رالیګلې یم زه هم په دې وجه نن راوتلې یم. اوس حضور ﷺ دوی سره د یوانصاری کور ته لاړل د هغه بی بی ملاوشوه تپوس ئی اوکړو چه ستا خاوندچرته دې ؟ ونیل د کور د پاره خوږې اوبه راوړلو له تلې دې. په دې کښې هغه مشك اوچت کړې راغلوپه خوشحالوخوشحالو ئی ونیل چه زما په شان خوش قسمته نن څوك نشته د چا کور

ته چه د الله ﷻ نبی ﷺ تشریف راوړې دې. مشك نې زوړند كړو او پخپله لاړو او د كهجورو تازه تازه غونچې نې راوړې حضور ﷺ اوفرمائيل چه په خوښه دې راغونډې كړې وې او راوړې دې وې نو ښه به وه هغه جواب وركړو چه حضور ﷺ ماونيل چه تاسو د خپل طبيعت او خپلې خوښې مطابق راغونډې كړنې او ونې خوړنې بيا چاړه په لاس چه چرته يوڅاروې حلال كړې غوښه پخه كړې نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه ګوره د پئيووالا څاروې مه حلالوه. هغه حلاله اوكړه او حضور ﷺ هم هلته ډوډئى اوخوړله. بيائى اوفرمائيل چه ګورنى نهر د كور نه وتلې وو او په مړه خيټه خو هم دا هغه نعمتونه دى د كومو باره كښې چه به په قيامت تپوس كولې شي.[1] د رسول الله ﷺ آزاد كړې شوې غلام حضرت عسيب ؓ فرمائى د شپې رسول الله ﷺ ماته آواز اوكړو زه راووتلم بيائى حضرت ابوبكر ؓ ته آواز اوكړو بيائى حضرت عمر ؓ ته آواز اوكړو او بيا د يو أنصارى باغ ته تشريف يوړو او ونى فرمائيل راوړه خوراك راوړه هغه د انګورو غونچې راوړې اود حضور ﷺ مخې ته نى كيخودې. حضور ﷺ اود هغه ملګرو اوخوړلې بيائى اوفرمائيل يخې اوبه راباندې اوڅكوه هغه راوړې او حضور ﷺ اوڅكلې بيا تى اوفرمائيل د دې باره كښې به هم د قيامت په ورځ تپوس كولې شي. حضرت عمر ؓ هغه غونچه زمكې له راخلاصه كړه اوونى ونيل چه د دې باره كښې به هم د الله ﷻ په درباركښې تپوس كولې شي. حضور ﷺ اوفرمائيل چه او صرف د دريو څيزونو باره كښې به تپوس نه شى كولې د پردې لاتق كپړا د ولږې ختمولو ټكړه اود يخنئى اوګرمئى نه د سرپټولو كور.[2] (مسنداحمد)

**ددې سورت په نزول د صحابه كرامو سوال:** -د مسندپه يوبل حديث كښې دى چه كله دا سورت نازل شو او حضور ﷺ اولوستلو نو صحابه كرامو ؓ ونيل چه زمونږ نه به په كوم نعمت تپوس كولې شي؟ كهجورې خورو او اوبوڅكو تورې مو په ستونوكښې زوړندې دى اودښمن مو په سرولاړ دې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ويريږنى مه ډير نعمتونه به راشي[3] حضرت عمر ؓ فرمائى يوځل مونږ ناست وو حضور ﷺ تشريف راوړلواو غسل كړې معلوميده مونږ عرض اوكړو چه حضور ﷺ نن خوتاسو ډير تازه ښكارنى حضور ﷺ اوفرمائيل چه او. بياخلقو د مالدارئى ذكر اوكړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل د چاپه زړه كښې چه د الله ﷻ ويره وى د هغه د پاره مال څه خراب څيز نه دې اوياد ساتئى د پرهيزګار سړى د پاره صحت د مالدارئى نه هم ښه دې اود خان خوشحالول هم د الله ﷻ نعمت دې[4] (مسنداحمد)

**دكومو كومو نعمتونو تپوس به كولې شي:** ابن ماجه كښې همداحديث دې. ترمذى شريف كښې دى د نعمتونودتپوس باره كښې به د قيامت په ورځ د ټولو نه اول داونيلې شى چه مونږ تاسو ته صحت نه وو دركړې؟ او په يخو اوبوباندې به مو تاسو خړوب كولې نه؟[5] د ابن ابى حاتم په روايت كښې دى چه دا آيت ﴿ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾ اوريدوسره صحابه كرامو ؓ اوونيل رسول الله ﷺ مونږ خود اوربشو ډوډئى او هغه هم په نيمه خيټه خورو. نود الله ﷻ د طرف نه وحى راغله چه تاسو د پښو بچ كولو د پاره څپلئى نه اچونى او آيا تاسو يخې اوبه نه څكئى؟ هم دا د تپوس كولو نعمتونه دى. بل روايت كښې دى چه د امن او صحت باره كښې به تپوس كولې شى په مړه خيټه خوراك كول يخو اوبو نه دسورى والاكورونه اودخوږ خوب باره كښې به هم تپوس كولې شى.په شاتو څكلوسره خوندونو اخستو سره دسحر ماښام د خوراك غوړى شات اوميدې روټئى وغيره. غرض دا چه د دې ټولو نعمتونو باره

---

[1] الطبرى :٥٨٣/٢٤،
[2] احمد:٨١/٥، وسنده حسن ، مجمع الزوائد:٢٦٧/١٠.
[3] احمد:٤٢٩/٥، وسنده حسن ،
[4] احمد:٣٧٢/٥، ابن ماجة كتاب التجارات باب الحث على المكاسب:٢١٤١.
[5] ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة (الهاكم التكاثر) : ٣٣٥٨. وسنده صحيح.

کښې به د الله ﷻ په دربار کښې تپوس کولې شي.حضرت ابن عباس ﷺ په تفسیر کښې فرمانی دبدن صحت غوږونو سترګو د صحت باره کښې به هم سوال کولې شي چه د دې طاقتونو نه دې کوم کار اخستې وو.

قرآن کریم کښې ارشاد ربانی دې ﴿ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا ﴾ دهرسړې نه به د هغه د غوږ سترګې اود هغه د زړه باره کښې تپوس کولې شي. د صحیح بخاری وغیره په حدیث کښې دی چه د دوو نعمتونو باره کښې خلق ډیر په غفلت کښې پراته دی دصحت او فراغت[1] یعنی نه خود هغې پوره شکراداکوی اونه د هغې عظمت پیژنی اونه هغه د رب د مرضئی مطابق خرچ کوی. بزارکښې دی چه د ته بند نه سوا اود سوری والا دیوالونونه بغیراود روټئی د ټکړې نه علاوه د هریوځیز به د قیامت په ورځ حساب ورکول وی. ([2])

د مسنداحمد په مرفوع حدیث کښې دی الله ﷻ به د قیامت په ورځ اوفرمانی اې بنیادمه ما ته په اسونو اواوښانو باندې سورکړې وې ښځې مې ستا په نکاح کښې درکړې وې تاته مې مهلت درکړې وو تا په خندا خوشحالئی سره او په آرام او راحت سره ژوندتیرکړو اوس اوښایه د دې شکریه چرته ده؟ ([3])

والحمدلله رب العالمین د الله ﷻ په فضل اوکرم سره د سورت تکاثر تفسیرختم شو.

﴿تفسیر سورت العصر﴾

**دَ سورت تعارف:-** حضرت عمربن عاص ﷺ دخپل مسلمانیدونه اول یوځل مسیلمه کذاب سره ملاوشو هغه دپیغمبرئی ددروغدعوی کړې وو عمروﷺ نی چه اولیدونو تپوس نی اوکړو وایه په دې موده کښې ستاسو په نبی باندې هم وحی نازل شوې ده؟ حضرت عمروﷺ اوفرمائیل یومختصرډیر فصیح او ښکلې سورت نازل شوې دې. تپوس نی اوکړو کوم یو دې؟ حضرت عمروﷺ سورت العصر اولوستلو. مسیلمه لږ شان پورته سوچ کولو نوونی ونیل عمرو ګوره په ما باندې هم د دې په شان سورت نازل شوې دې عمرو ﷺ اوفرمائیل کوم یودې هغه اوونیل ﴿یاویر یاویر انما انت اذنان وصدر وسائرحقر نقر﴾ بیا نی ونیل عمرو وایه ستا څه خیال دې؟ عمرو ﷺ اوفرمائیل چه زما خیال خو ته پخپله پیژنې چه ماته ستا د دروغ کیدو علم دې. وبرد پشوپه شان یوځناور دې دهغې دواړه غوږونه لږ شان اوږده وی اوسینه ئی هم ، باقی بدن ئی بالکل حقیر او بې کاره غوندې وی.دې کذاب او فضول ویونکی بکواس کونکی د الله ﷻ دکلام معارضه کول غوښتل د کوم په اوریدو چه د عربو بت پرسته خلقو هم د ده دروغژن کیدو اود خان نه خبرې کونکې اوګڼړلو. طبرانی کښې دی چه د دوو صحابیانو دا دستور وو چه کله به ملاویدل نو یو به سورت ونیلو او بل به اوریدو بیابه ئی سلام کولو رخصت کیدل به.

**فائده:-** حضرت امام شافعی ﷫ فرمانی که خلق په غور او سوچ سره دا سورت اولولی او خان پوهه کړې نو هم دا یوسورت کافی دې. ([4])

| ایاتونه | | | سورة العصر مکیة وهي ثلاث اٰیة ورکوعا واحدا | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ③ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

[1]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الصحه والفراغ : ٦٤١٢. ترمذی :٢٣٠٤.

[2]) مسندالبزار: ٣٦٤٣،

[3])احمد:٤٩٢/٢. وسنده صحیح ،ددې پشان روایت صحیح مسلم ، کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن و جنة للکافر:٢٩٢٨

[4]) المعجم الاوسط: ٥١٢٠،

| وَالْعَصْرِ | اِنَّ الْاِنْسَانَ | لَفِيْ خُسْرٍ | اِلَّا الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| قسم دې په زمانې | چې بیشکه انسان | خامخا په خساره کښې دې | ماسوا دهغه کسانونه |
| قسم دې به زمانه چې یقینا انسان ډیر په تاوان کښې دې | | | سوا د هغه خلقو نه |

| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | وَتَوَاصَوْا | بِالْحَقِّ |
|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | او یو بل ته نصیحت کوی | دحق سره دملګرتیا کولو |
| چې ایمان ئې راوړې دې او نیک کارونه ئې کړی دی او خپل مینځ کښې یو بل ته دحق تلقین کوی | | | |

| وَتَوَاصَوْا | بِالصَّبْرِ |
|---|---|
| او یو بل ته نصیحت کوی | په صبر کولو سره |
| او خپل مینځ کښې یو ته د صبر نه دکار اخستلو تاکید کوی | |

**قوله تعالی:- وَالْعَصْرِ**

**د سورت عصر مختصر تفسیر:-** دعصر نه مراد زمانه ده په کومه کښې چه انسان نیکئی او بدئی کارونه کوی حضرت زید بن اسلم رحمه الله دعصرنه مراد د مازیګر مونځ یا د مازیګردمانځه وخت بیان کړې دې خو مشهور اولنې قول دې. د دې قسم نه پس بیان فرمائی چه انسان په نقصان اوخساره او هلاکت کښې دې اود دې نقصان نه بچ کیدونکی خلق هغه دی د چا په زړونوکښې چه ایمان وی په اعمالو کښې نیکئی وی د حق وصیتونه کونکی وی یعنی دنیکئی کارونه کولواوبدئی د کارونونه منع کیدویو بل ته تاکیدکوی. د قسمت په لیک او د مصیبتونو په برداشت کولو صبر کوی او نورو ته هم د دې تلقین کوی اوورسره د ښو خبرو حکم کولو اود خرابو خبرو نه په بندیدوکښې د خلقو طرف نه کوم تکلیفونه اومصیبتونه رسی هغه برداشت کوی اوهم د دې تلقین خپلو ملګروته هم کوی. هم دا دی چه د دې ښکاره نقصان نه خلاص دی.

**(الحمدلله)** د سورت العصر تفسیرختم شو.

| آیاتونه | | سورة الهمزة مكية وهي تسع ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑨ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

| وَيْلٌ | لِّكُلِّ هُمَزَةٍ | لُّمَزَةِ | الَّذِيْ | جَمَعَ | مَالًا |
|---|---|---|---|---|---|
| تباهی ده | دپاره دهر عیب لګونکی | بدویونکی | هغه | چې جمع ئې کړو | مال |
| خرابی ده هرهغه چا دپاره چې پیغور ورکوی او غیبت کوی | | | چې مال راجمع کوی | | |

| وَّعَدَّدَهٗ | يَحْسَبُ | اَنَّ مَالَهٗٓ | اَخْلَدَهٗ |
|---|---|---|---|
| او په شمار شمار ئې کینبودو هغه | ګمان کوی هغه | چې بیشکه مال دهغه | به همیشه وی دهغه سره |
| او هغه بیابیا شماری | .......هغه دا خیال کوی چې دهغه مال به همیشه دهغه سره وی | | |

| | | |
|---|---|---|
| كَلَّا | لَيُنۢبَذَنَّ | فِى الْحُطَمَةِ ۝ |
| هرگز نه ده داسې | خامخا به غورزولې كيږي هغه | په ريز مريز كونكې ځاى كښې |
| هيچرې نه ........................ | هغه به يقينا په حطمه كښې غورزولې شي | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَدْرٰىكَ | مَا الْحُطَمَةُ ۝ | نَارُ اللّٰهِ | الْمُوْقَدَةُ ۝ | الَّتِىْ |
| او څه پته ده تاته | چې څه دې هغه ريز مريز كونكې ځاى | اور د الله | بل كړې شوې | هغه اور |
| او تاته څه معلومه ده چې حطمه څه څيز دې | ........................(هغه) د الله تعالى اور دې چې | | | هغه اور چه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَطَّلِعُ | عَلَى الْاَفْـِٕدَةِ ۝ | اِنَّهَا | عَلَيْهِمْ | مُّؤْصَدَةٌ ۝ | فِىْ عَمَدٍ |
| چې خيژي به | په زړونو باند | بيشكه دا اور به | په هغوئ باند | سربند كړې شوې وى | په ستنو |
| (دده په حكم) بل شوې دې | چې زړونو ته به ورننوځي | دا اور به ورپسې (دهر طرفنه) بند كړې شي | په دنګو | | |

| |
|---|
| مُّمَدَّدَةٍ ۝ |
| دنګو كښې |
| ستنو پورې (به تړلې شوې وى) |

**قوله تعالى:- وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ ۝**

**ناحقه مال جمع كونكو ډپاره هلاكت:-** الله ﷻ فرمائى چه په ژبه سره د خلقو عيبونه لټونكې په خپلو كارونو ياندې د نورو سپكونكې د خرابئ والا سرې دې. ﴿هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيْمٍ ۝﴾ په تفسير كښې بيان شوې دې. دابن عباس ﷺ قول دې چه دې نه مراد پيغورور كونكې اوغيبت كونكې دې. ربيع بن انس ﷺ فرمائى چه مخامخ بد ونيل ﴿هُمَزَةٍ﴾ دې او پشې شا عيب بيانول ﴿لُّمَزَةٍ﴾ دې. قتاده رحمه الله وائى چه په ژبه اود ستر ګو په اشاره د الله ﷻ بنديګان تنګول او چيړل مراد دى چه كله د هغوى غوبنه اوخورى يعنى غيبت اوكړى اوكله په هغوى باندې پيغورونه كوى. مجاهد رحمه الله فرمائى ﴿هُمَزَةٍ﴾ په لاس او سترګه سره كيږي او ﴿لُّمَزَةٍ﴾ په ژبه سره. بعضې وائى چه دې نه مراد اخنس بن شريق كافر دې. مجاهد رحمه الله فرمائى چه آيت عام دې. بيافرمائى چه كوم جمع كوى او په شمير شميرنى ساتى. لكه چه بل ځاى ارشاد دې ﴿وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ۝﴾

كعب ﷺ فرمائى چه ټوله ورځ خود مال ګټلو هانې هانې او دشپې سخاد بوسوډك لاش په شان پروت وى. د ده خيال دا دې چه د ده مال به ده سره هميشه په دنيا كښې وى حالانكه حقيقت دانه دې بلكه دا بخيل او لالچى انسان به د دوزخ په هغه طبقه كښې پريوځى او هرهغه څيز چه دې كښې پريوځى ذره ذره كوى نى. بيا فرمائى چه دا مات ګوډ كونكې څه څيز دې؟ د دې حال اې نبى ﷺ تاته معلوم نه دې دا د الله ﷻ بل كړې شوې اوردې كوم چه په زړونو باندې ورخيژى او سوزلو سره نى ايره كوى خو هغوى مړه كيږى نه. حضرت ثابت رحمه الله بنانى به كله چه د دې آيت تلاوت كولو اود دې به نى دا معنى بيانوله نو ژړل به نى او ونيل به نى چه هغوى عذاب ډير تنګ كړل.

**قوله تعالى:- فِىْ عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ ۝**

محمدبن كعب ﷺ فرمايې چه اُور سوزونكې د حلق پورې رسى بياواپس كيږى او بيارسى دا اُور به هغوى باندې د څلورو وارو طرفونه رابندولې شى لكه چه د سورت بلد په تفسير كښې تيرشو. په

يومرفوع حديث كښي دا هم دی اودويم طريق د دې موقوف دې. اوسپنه چه په مثال د اور ده د دې په ستنوكښي دا اوږدې اوږدې دروازې دی. د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په قراءت كښي (بعمد) مروی دې. د دې دوزخيانو په مروكښي به زنځيرونه وی دوی به په اوږدو اوږدو ستنوكښي تړلي شوی وی او د پاسه به پرې دروازې بندكړې شی. دې د اور په ستنوكښې به دوی ډير خراب عذابولي شی.ابوصالح ﷺ فرمائی يعنی درنې بيړئی او قيد اوبند به د دوی د پاره وی.

(فالحمدلله رب العلمين) د دې سورت تفسيرهم د الله ﷻ په فضل اورحم سره ختم شو.

| آياتونه | | سورة الفيل مكية وهي خمس ايات وركوعا واحد | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑤ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ① |

اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ۞ اَلَمْ يَجْعَلْ

ايا اونه ليدل تا | چې څرنګې كار اوكړو | رب ستا | دهاتيانووالو سره | ايا وی نه ګرځولو |

ايا تاته معلومه ده چې ستا رب دهاتيانو دخاوندانو سره څه اوكړل ؟! ............... ايا الله تعالى

كَيْدَهُمْ فِيْ تَضْلِيْلٍ ۞ وَّاَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا اَبَابِيْلَ ۞

تدبير دهغوئ | په ګمراهئ (يعنی ناكامئ) كښی | اووې ليږل | په هغوئ باند | مارغان ډلې ډلې |

دهغوئ ټول تدبيرونه ناكامه نه كړل |..............نو الله تعالى په هغوئ ټولی ټولی مارغان راوليږل

تَرْمِيْهِمْ بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ۞ فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ

چې ويشتل به ئې هغوئ | په كاڼرو سره | چې جوړوئ دټيكرونه | پس كړل ئې هغوئ | پشان دبوسو |

چې په هغوئ به ئې دبره نه دكاڼرو ګټكی راويشتل | بيا الله تعالى هغوئ د خوړلی شوؤ

مَّاْكُوْلٍ ۞

خوړلي شوؤ

بوسو په شان اوګرځول

قوله تعالى:- اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ۞

دهاتيانو والا واقعه:-الله ﷻ چه په قريشوباندې د خپل كوم خاص نعمت انعام فرمائيلې وو دهغې ذكر كولې شی چه كوم لښكرد خان سره هاتيان راخستې وو اود كعبه د ورانولود پاره ئی حمله كړې وه.الله ﷻ دهغې نه وړاندې چه دوی كعبه ورانه كړی دهغوی نوم اونښه ختمه كړه د هغوی ټول فريب اود هغوی ټول طاقت ئی ختم كړو برباد او غرق ئی كړل.دا خلق په مذهبی توګه نصرانيان وو خودمسيح ﷺدين ئی مسخ كړې وو او نيزدې نيزدې بت پرست شوې وو. دوی داسې ناكامه كول لكه د اوراندې نه خبرتيا وه د حضرت محمد ﷺ د بعثت اواطلاع وه د حضورﷺ د راتلو. حضورﷺ هم په دې كال پيدا شو.د اكثرو تاريخ دانانو هم دغه قول دې. نودعالم رب فرمائی چه اې قريشو دحبشه په دې لښكر

باندې تاسو له فتح ستاسو د نیکنی په وجه نه ده درکړې شوې بلکه په دې کښې زمونږ د کور بچ کول
وو دکوم چه مونږ عزت شرف بزرګی، اوعظمت د خپل آخرالزمان پیغمبر محمد ﷺ په نبوت سره زیاتوو.

**د واقعه تفصیل**:- غرض داې چه د اصحاب فیل یعنی د هاتیانووالا مختصر واقعه دا وه کومه چه بیان شوه اواورېده واقعه په اصحاب الخدود کښې بیان شوې ده چه د قبیله حمیر آخری بادشاه ذونواس کوم چه مشرك وو چا چه د خپلې زمانې مسلمانان په خندقونو کښې قتل کړې ووکوم چه رښتونی نصرانیان ووا و په شمیر کښې تقریبا شل زره وو تولې نی شهیدان کړې وو. صرف دوس ذوثعلبان یوېچ شوې ووچه د شام ملك ته رسیدلې وواود روم بادشاه نه نی امداد غوښتې وو دا بادشاد په نصرانی مذهب باندې وو هغه د حبشه بادشاه نجاشی ته اولیکل چه ده سره خپل تول فوځ کړه ځکه چه د دې ځاۍ نه د دښمن ملك نیزدې وو. دې بادشاه ارياط ابویکسوم ابرهه بن صباح د لښکر مشر جوړ کړواوډېر لوئ لښکر نی ورکړواودوارړوله د ماتې ورکولود پاره روان شو. دالښکر یمن ته اورسیدو اویمن اویمنیان نی تباه کړل. ذونواس اوتختیدو او دریاب کښې ډوب شومړشو اود هغه خلقو د سلطنت خاتمه اوشوه او په تول یمن باندې د حبشه بادشاهی شوه اودا دواړه سرداران دلته اوسیدل خو څه لږه موده پس په دوی کښې اختلاف پیداشو. آخر نویت دې ته اورسیدو چه دواړه د یوبل دمقابلې دپاره مخامخ صفونه اوتړل اود جنګ د پاره اودریدل. عام حمله اوشوه دې نه وړاندې دواړو سردارانو خپل مینځ کښې اوونیل چه فوځونه او د خلقو قتلولو څه ضرورت دې راځه دواړه میدان ته اوځو او یوبل سره جنګیږو فیصله کوو کوم چه ژوندې پاتې شی ملك اوفوځ د هغه نو بس دا خبره مقرره شوه اوداوړه میدان ته راووتل. ارياط په ابرهه باندې حمله اوکړه او هم په یووار نی ورله مخ وینې وینې کړو پوزه شونډې او مخ نی پرې شو. د ابرهه غلام عتوده په دې موقعه باندې په ارياط باندې یوه سخته حمله اوکړه او هغه نی قتل کړو ابرهه زخمی شو اود میدان نه ژوندې لاړو واپس شو. علاجونه نی اوکړه زخم نی تیك شو اود یمن دې مستقل بادشاه جوړشو. کله چه نجاشی د حبشه بادشاه ته دا واقعه معلومه شوه نوهغه سخت غصه شو اویوخط نی ابرهه ته اولیکه هغه نی ډیر ملامته کړو او ونیل نی قسم دې د رب چه زه به ستا ښارونه تباد کړم او ستا مرنی به پرې کړم. ابرهه د هغې جواب ډیر په عاجزنی سره اولیکه او خپل قاصد ته نی ډیره هدیه ورکړه او په یود تهیلنی کښې د یمن خاوره ورکړه اود خپل تندی ویښته نی پرې کړل او په هغې کښې کیخودل او په خپل خط کښې د خپلو غلطو معافی اوغوښتله او وئی ونیل چه دا یمن خاوره حاضره ده اوزما ویښته هم حاضری دی تاسو خپل قسم پوره کړنی او خفګان معاف کړنی. په دې باندې د حبشه بادشاه خوشحاله شو او د دغه ځاۍ سرداری نی د هغه په نوم کړه. اوس ابرهه نجاشی ته اولیکل چه زه په یمن کښې تا له داسې ګرجا جوړوم چه تراوسه پورې به په دنیاکښې نه وی جوړه شوی. هغه د دې ګرجې جوړول شروع کړه.

په ډیر اهتمام او شوق سره نی ډیره اوچته ډیره مضبوطه او بې حده ښکلې او نقش اونګار سره ښانسته کړې شوې ګرجا نی جوړه کړه. دومره اوچته وه چه د سوکې پورې نظر اچونکی نه به تویښی پریوتله. د دې دپاره به عربو دې ته قلیس ونیل یعنی تویښی غوررزونکې.اوس ابرهه اشرم دا سوچ اوکړو چه خلق د کعبة الله د حج په ځاۍ دلته حج اوکړی په خپله تولـه بادشاهنی کښې نی دا اعلان اوکړو. عدنانیه او قحطانیه عربوته دا ډیر بد اولګیدل اود اخوا نه قریش هم غصه شو. لږې ورځې پس څوك د شپې په هغې کښې ورننوتلو او هلته نی ډکې متیازې اوکړې او لاړو. څوکیدارچه دا اوکتل نو بادشاه ته نی خبرورکړواوونی ونیل چه دا کاردقریشو دې ځکه چه تاد هغوی کعبه بنده کړله او هغوی په جوش او غضب کښې داکاراوکړو.

دابرهه قسم او په مکه دحملې بندوبست ابرهه هم هغه وخت قسم اوخوړلو چه زه به مکې ته ځم اوبيت الله به ورانوم. يوروايت کښې داهم دی چه د قريشو يوڅو ځوانانو په کرجاکښې اوړ اولګولو اوهغه وخت هوا هم ډيره تيزه وه نوټوله کرجا اوسوزيده اوپرمخې په زمکه راپريوتله. په دې باندې ابرهه يوډير لوئ لښکر سره په مکه باندې حمله اوکړه چه څوك نی رامنع نه کړی شی او خپل ځان سره نی يوډير چاق او اوچت هاتی واخستو کوم ته به چه محمود ونيلې شو د ده په شان بل هاتی نه وو. د حبشه بادشاه دا هاتی هغه له د دې غرض د پاره ليکلې وو انه يا دولس هاتيان نور هم ورسره وو دې د کعبه د غورزلو په نيت روان شوې وو اودا سوچ نی کړې وو چه د کعبې په ديوالونوکښې به مضبوط زنځيرونه واچوم اود هاتيانو په ستونوکښې به دا زنځيرونه اوتړم اوهاتيان به په يو چړق سره د کعبة الله ټلور واړه ديوالو راګذارکړی. کله چه اهل عرب ته دا معلومه شوه نو په هغوی باندې ډير زيات اثر اوشو اوهغوی کلکه اراده اوکړه چه که هرڅه کيږی نو مونږ به خامخا د ده مقابله کوو اودې به د دې بد کارنې نه منع کوو. يويمنی شريف سردار چه د هغه ځائ د بادشاهانواولاد وو کوم ته چه به ذونفرونيلې شو دې اودريدو او خپل قوم اوخواوشا عرب نی راجمع کړل اودې بدنيته بادشاه سره نی مقابله اوکړه ولې قدرت ته خو بل څه منظور وو او عربوماتې اوخوړلو اوذونفر د دې خبيث د لاسه قيدشو. هغه دې هم ځان سره کړو او مکه طرف ته روان شود خثعم قبيلې زمکې ته چه کله دې اورسيدو نو دلته نفيل بن حبيب خثعمی په خپل لښکر سره د ده مقابله اوکړه خو ابرهه هغه هم مغلوب کړو اونفيل هم قيدشو اول خودې ظالم هغه قتل کول اوغوښتل خوبيائی قتل نه کړو قيدنې کړواو ځان سره نی بوتلو. دې د پاره چه لارې اوښائی کله چه طائف ته اورسيدل نو ثقيف قبيلې ده سره صلح اوکړه هسې نه چه د هغوی بت خانې کومې کښې چه لات نومې بت وو دا مات کړی هغوی هم د دوی ډير خدمت اوکړو او هغوی ابورغال دوی سره کړو چه دې به تاسو ته د هغه ځائ لار اوښائی. ابرهه چه کله مکې ته ډير نيزدې مخمس ته اورسيدو نوهغه دلته ډيره واچوله د ده لښکر چه مکې سره خواوشا کوم څناور اوښان وغيره څريدل ټول نی په خپله قبضه کښې کړل په دې څناوروکښې څو دوه سوا اوښان صرف د عبدالمطلب وو. اسودبن مقصود چه ددې لښکر د سرسردار وو هغه د ابرهه په حکم دا څناور لوټ کړې وو په دې باندې د عربوشاعرانو شعرونه ليکلې وو کوم چه په سيرت ابن اسحاق کښې موجوددی اوس ابرهه خپل قاصد حناطه حميری د مکې والا له اوليګلو چه د مکې د ټولونه لوئ سردار ماله راولئې اودا هم اعلان اوکړنی چه زه د مکې والا سره د جنګ د پاره نه يم راغلې زما اراده صرف د بيت الله غورزول دی خوکه د مکې والا د دې د بچ کولو کوشش کوی نو مجبورا به هغوی سره هم جنګ کول وی. حناطه چه کله مکې ته راغلو او خلقو سره ملاو راملاوشو نومعلومه شوه چه د دې ځائ لوئ سردارعبدالمطلب ابن هاشم دی.دې عبدالمطلب سره ملاوشو اوشاهی پيغام نی ورته اورسولو عبدالمطلب اوونيل والله نه زمونږ اراده هغه سره د جنګ کولو ده اونه په مونږ کښې دومره طاقت شته دا د الله ﷻ د حرمت والا کوردې اود هغه د خليل ابراهيم ؑ يوژوندې يادګار دې که الله ﷻ غواړی نودخپل کور به پخپله حفاظت اوکړی ګنی په مونږ کښې خو همت اوطاقت نشته. حناطه اوونيل چه ښه ده نو ته مامره بادشاه له لاړشه. عبدالمطلب ورسره شو بادشاه چه کله هغه اوليدو نو په هيبت شو عبدالمطلب تك سپين ښکلې مضبوط قوی ښائسته ښکلې انسان وو کتلوسره ابرهه د تخت نه لاندې راکوزشو او په زمکه باندې عبدالمطلب سره کيناستو او خپل ترجمان ته نی اوونيل چه ده ته اووايه څه غواړی؟عبدالمطلب اوونيل چه زما دوه سوا اوښان بادشاه اخستې دی هغه دې واپس کړی بادشاه ونيل ده ته اووايه په اول نظرکښې ستا رعب په ما پريوتلې وو اوزما په زړه کښې ستا وقعت ناست ووخو هم په ړومبی کلام کښې تاهر څه بيلل اود خپلو دوو سوو اوښانوخو تاته فکر دې اود خپل قوم د

دين تاته هيڅ فکر نشته. زه خو ستا سوخلقو عبادت خانه ماتولواو هغه خاورو سره ملاوولوله راغلی يم. عبدالمطلب جواب ورکړو چه واوره بادشاه اوښان زما دی خکه د هغې د بچ کولو په کوشش کښې يم اوخانه کعبه د الله ﷻ ده هغه به پخپله دا بچ کوی. په دې باندې دې سرکشه اووئيل چه الله ﷻ ئې هم نن زما د لاسه نه شی بچ کولې. عبدالمطلب ونيل چه ښه ده هغه پوهه شه او ته پوهه شه. دا هم روايت دې چه اهل حجاز دريمه حصه مال ابرهه ته ورکول غوښتل چه هغه دې د خپلې دې بدې ارادې نه منع شی خوهغه قبول نه کړه. عبدالمطلب خو خپل اوښان واخستل اولاړو او راغلو قريشو ته ئې اووئيل چه مکه بالکل خالی کړئی غرونوته لاړل. اوس عبدالمطلب د قريشو مخاوريز خلق خان سره کړل او کعبه ته راغلل اود بيت الله د دروازې کونډه ئې اونيوله او په ژړا ژړا او په زارو زارو ئې دعاګانې شروع کړې چه ياالله د ابرهه نه اودهغه د خونړی لښکر نه خپل دا پاك اود عزت کور بچ کړه. عبدالمطلب هغه وخت دا دعائيه شعرونه لوستل:

﴿لاهم ان المراءيم نعم رحله فامنع رحالك﴾
﴿لايغلبن صليبهم ومحالهم ابدا محالك﴾

ترجمه:-يعنی مونږ بې فکر يو مونږ ته پته ده چه د هريوکور والا د خپل کورحفاظت په خپله کوی يا الله ته هم خپل کور خپلو دښمنانونه بچ کړه.داخوهيڅ کله نه شی‌کيدلې چه د دوی صليبونه اود دوی ډولو نه ستا په ډولونو غالب راشی.

اوس عبدالمطلب د بيت الله کونډه پريخوده او خپلو ملګروسره خواوشا د غرونوڅوکوته اوختل.دا هم ذکردې چه د قربانئی سل اوښان د بيت الله نه ئې چاپيره نښې اولګولې او پريخودل. په دې وجه چه که دا بې دينه راشی اود الله ﷻ دنوم د قربانئی دا اوښان ئې اوڅيړل نود الله ﷻ عذاب به په دوی راشی. بل سحر د ابرهه لښکر د مکې ښار ته د تلوتياری اوکړه خپل خاص هاتی د کوم نوم چه محمودوو هغه ئې تيارکړو او په لښکر ملاترړی اوشوه اود مکې طرف ته ئې مخ کړو روان شو. دغه وخت نفيل بن حبيب چه کوم په لارکښې ده سره جنګيدلې وو اوس ده سره د قيدی په توګه وو هغه وروړاندې شو اود شاهی هاتی غوږ ئې اونيولو او ورته ئې اووئيل محمود کينه او د کوم خای نه چه راغلې ئې هم هغه طرف ته روان شه ته د الله ﷻ د عزت په ښارکښې ئې دې وينا کولوسره ئې غوږ پريخودو او لاړو اوتختيدو او نيزدې غرونوکښې پټ شو. محمود هاتی چه دا واوريده نو کيناستو اوس د هاتيانوولا په زرګونو کوششونه کوی اولښکريان هم په کوشش کولوکولو ستړی شو خو هاتی د خپل خای نه خوزيدونه. په سرباندې په سټکونو وهلو اخواديخوانه ئې بيلچو کودالو وهلو. ټول کوششونه ئې اوکړه خو هاتی حرکت نه کولو بيانی د امتحان په توګه د هغه مخ د يمن طرف ته کړو اوروانول ئې غوښتل نو په يوترق کښې پاسيدو او په منډه روان شو. د شام طرف ته ئې روان کړو نوبيا هم په منډه او په پوره طاقت سره وړاندې شو د مشرق طرف ته ئې بوتلل غوښتل نو په منډه منډه لاړو بيانی د مکې طرف ته ورله مخ واړلو نو هم هلته کيناستو. هغوی بيا دې وهل اوټکول شروع کړه چه ونې کتل نو يود مرغو يوسيل د اوريخو په شان د سمندرد غاړې د طرف نه راوچت شو. اوس لاپوره په نظرهم نه وو راغلی چه سرله راورسيدل. د ځلورو واړو طرفونه ئې ټول لښکر راګير کړو په هغوی‌کښې د هريو په مښوکه کښې د مسورو ياد ماش د دالود دانې په شان کانړې وو او په دواړو پنجوکښې دوه کانړی وو. هم دلته ئې راګذار کړل او چه په کوم کوم باندې به کانړی پريوتلو هغه هم هلته هلاك شو او خودا لښکر په تيختته شو هريو به نفيل نفيل کولوځکه چه هغوی دې خپل لار خودونکې ګڼرلې وو. نفيل خو هاتی ته ونيلې وو او په غر ختلې وو اود مکې نورو خلقو د هغوی دا حال په خپلو سترګوکتلو اونفيل هلته ولاړ داشعر ونيلو:

اين المفروالاله الطالب والاشرم المغلوب ليس الغالب

اوس د پناه ځای ځرته دې کله چه الله ﷻ پخپله په لټون او شيش کښي دې واورني اشرم بدبخت مغلوب شواوس دې د سميدونه دې. نفيل د دې واقعه نور هم ډير شعرونه ونيلی دی په کوم کښي چه دا قصه بيان شوې ده او ونيل چه افسوس ته هغه وخت موجود وې کله چه د دې هاتيانو والا سپګاوي راغلي وو او په وادی محصب کښي په دوی باندې د عذاب قوتکانړی وريدلي وو نو هغه وخت به تا هغه د الله ﷻ لښکر يعنی مرغنی کتلوسره بالکل په سجده کښي پريوتلې. مونږ خو هلته ولاړوو اود الله ﷻ د حمداوثنا تعريفونه مو کول سره د دې چه زمونږ اينې هم اوچتې شوې وې چه ځرته بوقوتکانړی زمونږ هم کارخلاص نه کړی. نصرانيانو مخ اړولي تختيدل او نفيل نفيل چغې وهلي لکه په نفيل باندې د هغوی د پلار نيکه څه قرض وو. واقدی ﷺ فرمانی چه دا مرغنی د زير رنګ وې د کونترو نه لږې وړې وې اود هغوی خپې سرې وې.
په يوبل روايت کښي دی چه کله محمود هاتی کيناستو اود پوره کوشش نه پس هم پانه سيدو نوهغوی بل هاتی ورمخکي کړو هغه قدم اوچت کړې وو چه د هغه په تندی باندې کانړي راپريوتلوچغې کړې او روستو شو نور هاتيان هم اوتختيدل اواخوادېخوا يوشان کانړی راوريدل اکثر خو هم هلته مردارشو او نورچه کوم اخوادېخوا تختيدلي وو هغوی کښي هم څوك پاتې نه شو او تختيدو تختيدوکښي به د هغوی اندامونه پريکيدل او پريوتل به اوآخر به مردار شو. ابرهه بادشاه هم اوتختيدو خو يو اندام نې پريوتلوتردې چه خثعم ښار کښي صنعاء ته کله اورسيدو نو بالکل دغوښې يوه بوټنې شوې وو اوهم هلته نې په چغوچغوکښي ساه ورکړه اودسپی په مرګ مردار شو.زړه نی نيم شوې وو او قريشو له ډير مال په لاس ورغلو. عبدالمطلب خو د سرو زرو نه يوکوهې ډك کړې وو. د عربو په زمکه دانې او چيچك هم په دغه کال پيداشوې وو اودغه شان د سپنداو حنظل وغيره ترخې ونې هم په دغه کال په عربو کښي اوليدلي شوې.نوالله ﷻ دخپل رسول معصوم په ږبه مبارکه دا نعمت وريادوی اولکه فرمانی که تاسو زماد کور دغه شان عزت اوعظمت کولو اوزما د رسول وينا مو منله نو مابه هم دغه شان ستاسو حفاظت کولو اود دښمنانو نه به مې خلاصې درکولو.
**قوله تعالى:-** وَأَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا أَبَابِيلَ ۝
**د ابابيل ذکر**:-ابابيل دجمع صيغه ده د دې واحد د عربو په لغت کښي نشته.د ﴿سِجِّيلٍ﴾ معنی ده ډير سخت. بعضې مفسرين وانی چه داد فارسی د دوو لفظونومرکب دې يعنی سنګ او ګل نه يعنی کانړې اوخته. غرض داچه ﴿سِجِّيلٍ﴾ هغه دې کوم کښي چه کانړې اوخاوره وی يعنی قوتکانړې.﴿عَصْفٍ﴾ جمع ده﴿عصفة﴾د فصل هغه پانړو ته وانی چه پخې شوې نه وی.د ابابيل معنی ده ډلې ډلې، سيلونه سيلونه ډيرې زياتې وار په وار جمع شوې د يوخوابل خوانه راتلونکې.بعضې نحويان وانی چه د دې واحد ابيل دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمانی د دې مرغومښوکې وې د مرغويه شان او پنجې وې د سپويه شان. عکرمه رضی الله عنه فرمانی چه دا د شين رنګ مرغنی وې کومې چه د سمندر نه راوتلي وې د هغوی سرونه د ليوه ګانو په شان وو دې نه علاوه نور اقوال هم دی. دې مرغوباقاعده د لښکريانو په سرونو وزرې ترلې ولاړې وې بيا نی چغې اووهلي او بيانی کانړی اوورول د چا په سر چه اولګيدل د هغه نه لاندې اووتل او دوه ټکړې شو او په زمکه باندې راپريوتلو. د چا چه په بعضو اندامونوباندې راپريوتل هغه اندام نې پرې شو دې سره تيزه سيلئی راغله په څه سره چه خواوشاه نه نور کانړی هم د هغوی په سترګو کښي ورپريوتل اوټول لاندې باندې شول. عصف وانی ګياه ته جوارو ته او د غنمو د بوټو پانړو ته اود ماکول نه مراد ټکړې ټکړې کړې شوی.
دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه عصف وانی بوسوته کوم چه د غلې ددانودپاسه وی. ابن زيد رحمه الله فرمانی مراد ترې نه د فصل هغه پانړې دی کوم چه څناور خوړلې وی.مطلب دا چه الله ﷻ هغوی

تباه او برباد: کړل او خاص اوعام ئې هلاك کړل. د هغوی ټول تدبیرونه بې کاره شو هغوی ته هیڅ ښیګړه نصیب نه شوه اوداسې هم په هغوی کښې څوك صحیح او سالم پاتې نه شوچه د هغوی خبرنې رسولې وې. کوم یوهم چه بچ شو زخمی شواود هغه زخم نه پاتې نه شو. پخپله بادشاه هم لکه د غوښې یوې بوټئي په شان شوې وو هم دغه شان صنعاء ته اورسیدوخوهلته په تلوسره دهغه اینه اوچاوده اوواقعه نې بیانوله چه مردار شو.

**د ابرهه د هلاکت نه پس دهغه ځامنو ته بادشاهي ملاوُ شوه** - دهغه نه پس د هغه ځوئ یکسوم د یمن بادشاه شو بیا د هغه نور رونړو مسروق بن ابرهه ته بادشاهي ملاو شوه. اوس سیف بن ذویزن حمیری د کسری دربار ته اورسیدو اود هغه نه ئې امداد اوغوښتلو دې د پاره چه هغه د اهل حبشه سره اوجنګیږي او یمن د هغوی نه خالي کړي. کسری یو جرار لښکر هغه سره کړواودې لښکر اهل حبشه ته ماتې ورکړه اود ابرهه د خاندان د لاس نه د حکومت واګې اووتلې اوبیا قبیله حمیرد دې ځائ بادشاه شو. عربو په دې باندې ډیره خوشحالي اوکړه اود هرطرف ته مبارکئي راتلې. د حضرت عائشه رضي الله عنها بیان دې چه د ابرهه د لښکر هاتیانو والا ما په مکه کښې اوکتل دواړه ړانده شوې وو تلې راتلې نه شو اوخیرېه ئې غوښتولو. حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها فرمائي چه د اساف او نائله بتانو سره به ناست وو کوم ځائ چه به مشرکانو خپلې قربانئي کولې اود خلقو نه به ئې خیر غوښتلو. د دې هاتي والا نوم انیسا وو. په بعضې تاریخونوکښې دا هم دی چه ابرهه پخپله په دې حمله کښې نه وو بلکه هغه خپل لښکر د شمرین مقصودلاندې لیږلې وو دا لښکر د شلو زرو کسانوو اودا مرغئي د هغوی د پاسه د شپې په وخت کښې راغلې وې اوسحره پورې ئې دا ټول تباه برباد کړي وو. خودا روایت ډیر غریب دې اوصحیح خبره دا ده پخپله ابرهه اشرم حبشي هم پخپله لښکر راوستې وو اودا ممکن دی چه د هغې سرلښکر باندې داسې سردار وو. داواقعه د عربو ډیر شاعرانو په خپلو خپلو شعرونوکښې د وضاحت سره بیان کړې ده. دسورت فتح په تفسیرکښې هم دا واقعه په تفصیل سره بیان کړې ده. په کوم کښې چه دی کله چه د حدیبیه په ورځ رسول الله ﷺ په دې ډیرکئي باندې اوختلو د کوم ځائ نه چه هغوی په قریشو باندې تلونکې وو نو د حضور ﷺ اوښه کیناسته نو خلقو هغه اوشړله خو پانه سیده خلقو ونیل قصواء ستړې شوه. حضور ﷺ اوفرمائیل نه دا ستړې ده اونه په دې کښې د الوتلو عادت شته دا الله ﷻ منع کړې ده چا چه هاتیان منع کړي وو بیا فرمائي چه د هغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما خان دې د مکې والا چه په کومو شرطونوباندې ماسره صلح کول غواړي زه به ټول اومنم په دې شرط چه د الله ﷻ د حرمتونوبې عزتي په دې کښې نه وي. بیا چه حضور ﷺ هغه اوشړله نو زرپاسیده. دا حدیث په صحیح بخاری کښې دې. (¹) د بخاری اومسلم په یوبل حدیث کښې دی چه الله ﷻ د مکې نه هاتیان رابندکړل اوخپل نبی ﷺ نه ئې د هغه ځائ قبضه ورکړه اوخپلو ایماندارانو بندیګانوته. واورئې نن د هغې حرمت هم داسې واپس راګرځیدلې دې لکه څنګه چه پرون وو، خبردار هریوحاضر له پکار دی چه غیرحاضر ته ئې اورسوئي.(²) (الحمدلله) د سورت فیل تفسیرختم شو.

## (تفسیرسورت قریش)

**دسورت تعارف**:- د دې د فضیلت باره کښې یوغریب حدیث د بیهقی کتاب خلافیات کښې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی الله ﷻ قریشوته اووه فضیلتونه ورکړي دی یودا چه زه د هغوی نه یم. دویم داچه نبوت د هغوی نه دې. دریم دا چه د بیت الله ساتونکي دی. څلورم دا چه دزم زم د کوهي ساقیان دوی دی. پنځم دا الله ﷻ د هاتیانو والا باندې ددوئ مدد اوکړو. شپږم دا چه د لسو کالوپورې هغوی

¹) صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد: ۲۷۳۱.
²) صحیح بخاری کتاب اللقطة باب کیف تعرف لقطة اهل مکة: ۲۴۳۴. صحیح مسلم: ۱۳۵۵.

دالله ﷺ عبادت اوکړو کوم وخت چه نور چا د الله ﷻ عبادت نه کولو. اووم دا چه د هغوی باره کښې د قرآن کريم دا سورت نازل شو. بيا حضور ﷺ بسم الله اولوستله او د دې سورت تلاوت ئې شروع کړو[1]

| اياتونه | | سورة القريش مکية وهي اربع ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ④ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ۙ اٖلٰفِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَآءِ وَالصَّيْفِ ۚ

| عادت شوی دی | قريشو | عادت شوی دی دوئ | سفر دژمي | او دوړی سره |

قريش عادت شوی دی | ............يعنی دژمی او داوړی دسفر سره عادت شوی دی

فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ ۙ الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ

| نو پکار دی چې عبادت اوکړی | درب | ددې کور | هغه رب | چې روزی ئې ورکړه دوئ ته |

نودوی ته پکار دی چې ددې کور (کعبې) درب عبادت کوی | .... هغه رب چې دلوږې په حال کښې

مِّنْ جُوْعٍ ۙ وَّاٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ ۧ

| دلوږې نه (بچ کولو دپاره) | او امن ئې ورکړو دوئ ته | ديرې نه (دبچ کولو دپاره) |

ئې روزی ورکړې ده | اودهر ې ويرې نه ئې په امان کړی دی

**قوله تعالىٰ:- لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ۙ**

**په قريشوباندې د رب كريم خاص انعامات:** موجوده د قرآن پاك عثمانی ترتيب كښې دا سورت د سورت فيل نه جدا دې اود دواړو په مينځ كښې د بسم الله الخ آيت فاصله موجود ده. دمضمون په اعتبار دا سورت دړومبی سورت متعلق دې لكه چه محمدبن اسحاق رحمه الله عبدالرحمن بن زيد بن اسلم رحمه الله وغيره تصريح كړې ده. په دې وجه به معنى دا وی چه مونږ دمكې نه هاتيان منع كړل اود هاتيانو والامو هلاك كړل. دا قريشوته مينه وركول اوهغوی ته په جمع سره او په امن سره په ښاركښې د اوسيدلودپاره وو اودا هم مرادبيان كړې شوې دې چه دې قريشو به په يخنئى اوګرمئى كښې د لرې لرې سفر په امن سره كولو خكه چه د مكې په شان د احترام والاښار كښې اوسيدلوبه چه به په هرخائ كښې دهغوی عزت كيدلو بلكه هغوی سره چه به خوك وو په امن اوامان سره به ئې سفر كولو دغه شان په وطن كښې هم هغوی ته د هرشان امن حاصل وو لكه چه په قرآن كښې بل خائ موجود دی چه آيادوی نه ګوری چه مونږ حرم د امن خائ جوړ كړې دې اودې سره خواوشا كښې خوخلق اوچتولې شی خو د دې خائ اوسيدونكی بهادر دی.

امام ابن جرير رحمه الله فرمائی چه ﴿لِاِيْلٰفِ﴾ كښې اولنې لام د تعجب لام دې او دواړه سورتونه بالكل جدا دی لكه چه د مسلمانانو اجماع ده نولكه چه داسې فرمائيلې كيږی چه تاسو د قريشو په دې اجماع او الفت باندې حيرانتيا كونی چه ما هغوی ته خنګه دروند نعمت وركړې دې هغوی له پكار دی چه زما د دې نعمت شكر داسې اداكړې چه صرف هم زما عبادت كوی لكه چه بل خائ ارشاد دې ﴿اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِيْ حَرَّمَهَا وَلَهٗ كُلُّ شَيْءٍ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ يعنی اې نبی ته اووايه چه ماته خو صرف هم دا حكم راكړې شوې دې چه زه هم د دې ښار د رب عبادت اوكړم چا چه دا حرم جوړ كړو اود

[1]) حاكم: ۲/۵۳۶،

هريو څيز مالك دي ماته ني حكم راكړي دي چه زه د هغه تابعدار اوحكم منونكې شم.

**قوله تعالى:- الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ وَّاٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ**

الله ﷻ دمكې خلقو ته په اولږه كښې خوراك وركړو: بيا فرمائي چه هغه د بيت رب چا چه په دوى باندې په اولږه كښې خوراك اوكړو او په ويره كښې بهادر اوساتل هغوى له پكار دي چه د هغه په عبادت كښې هر لوى ورو كې شريك نه كړى څوك چه د الله ﷻ ددې حكم په ځاى راوړى هغه به په دنيا كښې په امن سره او د آخرت په ورځ به هم په امن كښې وى اود هغه په نافرمانئ كولو سره به دا امن هم په بې امنئ سره اود آخرت امن هم په ويره اوپه ډيره نااميدئ سره بدل كړې شي.

لكه چه بل ځاى ارشاد دي ﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾ الله ﷻ ددغه كلي والا مثال بيانوى كوم چه په امن او تسلئ سره وو د هرخاى نه به په فراخئ سره رزق راتلو خوهغوى دالله ﷻ د نعمت د ناشكرى سوچ كړه نو الله ﷻ په هغوى باندې د ولږې او ويرې جامې واچولې هم دا د هغوى د كارنامو بيان وو هغوى له هم د الله ﷻ راليګلې شوى دى خوهغه ني دروغ اوګڼرله. په دې ظلم باندې د الله ﷻ عذابونو هغوى راګير كړل.

يوحديث كښې دى رسول الله ﷺ فرمائي قريشو تاسو ته خو الله ﷻ هسې راحت او آرام راورسولو په كوركښې ناست خورئي څښئي د كوم طرف نه چه د بدامنئ د اُور شغلې راوچتيږى اوتاسو په امن او امان كښې په خوړ خوب اوده كړئي نو بيا په تاسو څه مصيبت دې چه تاسو د خپل ځان نه د خپل پروردګاردتوحيد نه زړه پتوئي اود هغه په عبادت كښې زړه نه لګوئي بلكه دهغه نه بغيرد بل چا په وړاندې تيټ كړئ. [1] (الحمدلله) د سورت لايلف تفسير ختم شو

| آياتونه | | سورة الماعون مكية وهى سبع ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۷ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۱ |

اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يُكَذِّبُ بِالدِّيْنِ ۝ فَذٰلِكَ الَّذِيْ

| ايا تا اوليدو | هغه سړې | چې دروغ ګڼرى | ورځ دجزا سزا | پس دې | هم هغه كس دې |

| ايا تاهغه څوك ليدلې دې | چې د جزا ورځ (قيامت) دروغ ګڼرى ؟ | ........................ دا هغه څوك دى |

يَدُعُّ الْيَتِيْمَ ۝ وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ۝ فَوَيْلٌ

| چې ديكې وركوى | يتيم ته | اونه كوى تيزول | په وركولو د ډوډۍ دمسكين | پس تباهى ده |

| چې يتيم له ديكې وركوى | اومسكين ته دخوراك وركولو ترغيب نه وركوى | نو د داسې مونځګذارو

لِّلْمُصَلِّيْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ ۝ الَّذِيْنَ

| دپاره دمونځ كونكو | هغه (مونځ كونكى) | چې هغوى | دمانځه خپل نه | ناخبره وى | هغه كسان |

| دپاره هلاكت دې | چې دخپلو مونځونو نه بې خبره وى | ......................................... يعنى

هُمْ يُرَآءُوْنَ ۝ وَيَمْنَعُوْنَ الْمَاعُوْنَ ۝

| چې هغوى | ځان ښودنه كوى | او منع كوى (نه وركوى) | دعام ضرورت څيزونه |

| هغه خلق چې د خودنې دپاره ئي كوى | اود عام ضرورت څيز (حاجت مندو ته) نه وركوى |

[1] مجمع الزوائد: ۷/۱۴۶.

**قوله تعالى:- أَرَءَيۡتَ ٱلَّذِي يُكَذِّبُ بِٱلدِّينِ**

**د قيامت ورځ دروغ ګڼرونکی:-** الله ﷻ فرمائی اې محمد ﷺ تاهغه سړې اوکتلو؟چه دقيامت ورځ کومه چه د جزا اوسزا ورځ ده دروغ ګڼړی،په يتيم باندې ظلم او زياتې کوی،دهغه حق وهی،هغه سره احسان اوسلوك نه کوی، مسکينانوته پخپله خوځه نه ورکوی چه نورهم د دې کارخيرد پاره نه تياروی. لکه بل ځائ ارشاددې ﴿كَلَّا بَل لَّا تُكۡرِمُونَ ٱلۡيَتِيمَ ۝ وَلَا تَحَٰٓضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ ٱلۡمِسۡكِينِ﴾ يعنی کومه بدی چه تاسو ته رسی هغه ستاسودخپلواعمالونتيجه ده چه نه تاسو د يتيم عزت کونی نه مسکينانوته دخوراك ورکولو ترغيب ورکوی يعنی هغه فقير ته چه دومره نه لری چه دهغه دپاره کافی وی.بيافرمائی چه دغفلت کونکی مونځ ګذاراود پاره ويل دې يعنی دهغه منافقانود پاره چه دخلقو په وړاندې خو مونځ کوی ګنی نو پريږدی.هم دامعنی ابن عباس ﷺ کړې ده[1] اودامعنی هم ده دمقرر وخت نه ئی روستوکوی لکه څنګه چه مسروق او ابوالضحې وائی. [2]

**يتيمانانو له ديکې ورکول:-** حضرت عطاء بن دينا رحمه الله فرمائی د الله ﷻ شکر دې چه د الله ﷻ په فرمان کښې ﴿عَن صَلَاتِهِمۡ﴾ دې ﴿فِي صَلَاتِهِمۡ﴾ نه دې يعنی د مونځونونه غفلت کوی په مونځونوکښې غفلت کول ئی نه فرمائيلی دی. دغه شان دا لفظ شامل دې داسې مونځ ګذار ته چه هميشه مونځ په آخری وخت کښې اداکوی ياعموماً په آخری وخت کښې کوی ياد ارکانو اوشرطونو پوره خيال نه ساتی يا خشوع خضوع او خيال غور اوفکر نه کوی. لفظ قرآن په دې کښې هريوته شامل دې.دا ټولې خبرې چه په چاکښې وی هغه خو پوره پوره بدنصيب دې او په چا کښې چه څومره وی هغه هم هغه هومره د ويل والا دې. د عملی نفاق حصه داردې.

**قوله تعالى:- ٱلَّذِينَ هُمۡ عَن صَلَاتِهِمۡ سَاهُونَ**

د بخاری اومسلم په حديث کښې رسول الله ﷺ فرمائی دا مونځ د منافق دې او دا مونځ د منافق دې چه ناست وی اود نمر انتظارکوی کله چه هغه دوبيدوته نيزدې شی اوشيطان په هغې کښې خپل ښکر شامل کړی نواودريږی اودچرګ په شان څلور ټونګې اووهی او په هغې کښې دالله ﷻ ذکر ډير کم اوکړی[3] دلته مراد د مازيګرمونځ دې کوم صلوة وسطی لکه چه د حديث دالفاظونه ثابت دی چه دا سړې په مکروه وخت کښې اودريږی اودکارغه په شان مښوکه وهی.په کوم کښې چه د ارکانو تسلی هم نه وی اونه په کښې خشوع اوخضوع وی بلکه د الله ﷻ ذکر هم په کښې ډير کم وی. څه عجبه خبره خو نه ده چه دا مونځ د خان خودلود پاره وی کول اونه کول يوشان دی. هم د دې منافقانو باره کښې بل ځائ ارشاد دې ﴿إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَهُوَ خَٰدِعُهُمۡ وَإِذَا قَامُوٓاْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُواْ كُسَالَىٰ يُرَآءُونَ ٱلنَّاسَ وَلَا يَذۡكُرُونَ ٱللَّهَ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ يعنی منافق الله ﷻ ته دهوکه ورکوی او هغه ده ته.دوی چه کله هم مانځه ته اودريږی نو سترې ستومانه په نه زړه اوصرف د خلقو دخودنې د پاره مونځ کوی.د الله ﷻ يادا او ذکر ډير کم کوی.دلته هم فرمائی چه رياکاری کوی اوپه خلقو کښې مونځ ګذار جوړيږی.

**قوله تعالى:- فَوَيۡلٞ لِّلۡمُصَلِّينَ**

**د مونځګزارو دَ پاره هلاکت:-** د طبرانی په يوحديث کښې دی چه ويل د دوزخ يوه کنده ده،دهغې اُور دومره تيزدې چه د دوزخ اُور د دې نه هره ورځ څلور سوه ځل پناه غواړی.دا ويل د دې امت د رياکارو علماؤدپاره دې اود رياکارئی د پاره صدقه او خيرات کونکود پاره دې. د رياکارئی د پاره د حج

[1] الطبری : ٦٣٢/٢٤.

[2] الطبری : ٦٣٢/٢٤.

[3] صحيح مسلم کتاب المساجد باب استحباب التبکر بالعصر : ٦٢٢. ابوداود: ١٣ ؛ ترمذی : ١٦٠.

کونکو پاره دي اودرياکارنی د پاره د جهاد کونکود پاره دي(١)مسند احمد کښي چه رسول الله ﷺ فرمانی چه څوک د خلقو د اورولود پاره يونيک کار اوکړی نوالله ﷻ به نی هم خلقو ته واوروی اوپه عذاب به نی کړی اوهغه به خوار اوذليل کړی(٢)او په دې موقعه باندې دا ياد ساتنی که يو سړی بالکل په نيک نيتنی سره يونيک کار اوکړو اوخلقو ته د دې خبر اوشو او په دې باندې هغه هم خوشحاله شو نو داړياکاری نه ده.ددې دليل د مسند ابويعلی موصلی داحديث دې چه حضرت ابوهريره ﷺ د حضورﷺ په درباركښې دا ذکر اوکړو چه حضورﷺ زه خو يوازې نوافل کوم خو ناڅاپی څوک راشی نو ماته هم دا لږ شان ښه معلوميږی حضورﷺ اوفرمانيل تاته به دوه دوه اجرونه ملاويږی يود پټولو او بل د ښکاره کولو؟ (٣)

**قوله تعالی:-فَوَيۡلٞ لِّلۡمُصَلِّينَ**

حضرت ابن المبارك رحمه الله به فرمانيل چه داحديث د رياکارو د پاره هم ښه څيز دې دا حديث د اسناد په رو باندې غريب دې خود دې معنی حديث په بل سند سره هم مروی دې(٤)د ابن جرير په يو ډير ضعيف سند والا حديث کښې دی چه کله آيت نازل شو نو حضورﷺ اوفرمانيل الله اکبر دا خوستاسودپاره بهتر دی د دې نه چه په تاسو کښې هريوکس ته د دې دنيا په شان درکړې شی(٥)دې نه مراد هغه سړې دې چه مونځ اداکړی اود هغې د ښيګړې سره دهغه هيڅ کار نه وی اوکه ادا ئی نه کړی نود الله ﷻ ويره ورسره نه وی. بل روايت کښې دی چه د رسول الله ﷺ نه د دې آيت مطلب تپوس اوکړې شو نو حضورﷺ اوفرمانيل چه دا هغه خلق دی کوم چه مونځ د خپل وخت نه روستوکوی(٦)د دې معنی خو دا شوه چه دسر نه ئی هډو کوی نه. بله معنی دا ده چه د شرعی وخت نه ئی روستوکوی بيا ئی کوی اودا معنی هم ده چه په اول وخت کښې نه اداکوی. په يوموقوف حديث کښې د حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ نه روايت دې چه په تنګ وخت کښې کوی اير صحيح موقوف روايت هم دا دې. امام بيهقی رحمه الله هم فرمانی چه مرفوع خو ضعيف دې اوموقوف صحيح دې. د امام حاكم رحمه الله قول هم دا دې. نو چه څنګه داخلق دخپل رب په عبادت کښې سست دی دغه شان دخلقو حقوق هم نه اداکوی تردې پورې چه د استعمال څيزونه هم چاته نه ورکوی چه هغه پرې خپل کار اوباسی او هم هغه شان ئی واپس کړی. نود دې بې کاره خلقو نه به کله دا اوشی چه هغوی زکوة ورکړی او يا نورد نيکئی کار اوکړی. د حضرت علی ﷺ نه د ماعون مطلب د زکوة اداکول هم نقل دی(٧)اود حضرت ابن عمرﷺ نه هم اود نورو حضراتو معتبرينو مفسرينو نه هم. حضرت امام حسن بصری رحمه الله فرمانی چه د هغه په مونځ کښې رياکاری وی او د هغه د مال په صدقه کښې بنديز دې. حضرت زيد بن اسلم رحمه الله فرمانی چه دا منافقان خلق دی مونځ خو ښکاره څيز دې نو کوی اوزکوة خو پټ دې نو نه ئی اداکوی. ابن مسعود ﷺ فرمانی چه په ماعون کښې هر هغه څيز دې چه خلق ئی د يوبل نه غواړی لکه کودالة پاورنی ديګچې او لوټه وغيره.

دويم روايت کښې دی چه د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ به هم دا مطلب بيانولو. بل روايت کښې دی چه مونږ نبی کريم ﷺ سره وو او مونږ به د دې تفسير هم داسې کولو. د نسائی په حديث کښې دی چه هريونيك څيز صدقه ده. لوټه کتونی يا پتيله وغيره غوښتلو باندې نه ورکول به مونږ د حضورﷺ په

(١) المعجم الكبير :١٢٨٠٣.
(٢) احمد: ٢١٢/٢، ح/٢٩٨٦، شعب الايمان : ٦٨١١.
(٣) شرح لسنة اللبغوی : ٤١٤١،
(٤) ترمذی كتاب الزهد باب عمل السر: ٢٣٨٤،
(٥) الطبری : ٦٣٣/٢٤،
(٦) المعجم الكبير :١٨٥٣.
(٧) حاكم : ٥٣٦/٢،

زمانه کښې ماعون گڼل. (۱) غرض د دې معنې د زکوة نه ورکولو اطاعت نه کول اود غوښتلو څيز نه ورکول دې. که ورکې ورکې بې ساه څيزونه څوك د يوګهړئي دوو د پاره اوغواړي نودهغې نه انکار کول. مثلاً چاړ لوټه ستن کودالة پاوړې پتيلې ديګچې وغيره.

په يوغريب حديث کښې دی چه د قبيله نمير يوې جرګې حضورﷺ ته اووئيل چه مونږ ته خاص حکم څه کولې شي؟ نو حضورﷺ اوفرمائيل چه ماعون نه منع مه کوئي. هغوی تپوس اوکړو ماعون څه څيز دې؟ وئې فرمائيل کاڼړې اوسپنه او اوبه. هغوی تپوس اوکړو د اوسپنې نه کومه اوسپنه مراد ده. وئې فرمائيل هم دغه ستاسو د تانبې کودالې پتيلې وغيره. وئيل د کاڼړې نه څه مراد دی؟وئې فرمائيل هم دغه ديګچې وغيره.(۲) داحديث ډير غريب دې بلکه مرفوع کيدل منکر دی اود دې په اسناد کښې مغه راويان دی چه مشهور نه دی. علی ﷺ فرمائي چه د رسول الله ﷺ نه ما اوريدلی دی چه مسلمان د مسلمان رور دې چه ملاو شي سلام دې کوی کله چه سلام اوکړي نو ښه جواب ورکړئي اود ماعون نه انکار مه کوئي. ما تپوس اوکړو حضورﷺ دا ماعون څه څيز دې؟ وئې فرمائيل کاڼړې اوسپنه اود دې په شان نور څيزونه.(۳) والله اعلم.

**الحمدلله)** د الله ﷻ په فضل اوکرم اود هغه په احسان اورحم سره د سورت ماعون تفسير هم ختم شو

| اياتونه | | سورة الکوثر مکية وهي ثلاث ايات ورکوعاً واحداً | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۳ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۱ |

| اِنَّاۤ | اَعۡطَيۡنٰكَ | الۡكَوۡثَرَؕ | فَصَلِّ | لِرَبِّكَ | وَانۡحَرۡؕ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه مونږه | درکړو مونږ تاته | کوثر | نو مونځ کوه | دپاره درب خپل | او قرباني کوه | بيشکه |

يقينا مونږ تاته ډير څه درکړي دی | ..........نو ته د خپل رب دپاره مونځ کوه | اوقرباني کوه

| شَانِئَكَ | هُوَ الۡاَبۡتَرُ |
|---|---|
| دشمن ستا چې دې | هم هغه دې چې جوړه نې پريکړې شوی ده |

بيشکه ستاسو دشمن به بې نامه او بې نشانه وی

**قوله تعالى:- اِنَّاۤ اَعۡطَيۡنٰكَ الۡكَوۡثَرَ**

**د نزول واقعه:** مسنداحمد کښې دی چه په رسول الله ﷺ باندې لږه شان بې هوشي شان شروع شوه او ناڅاپې سراوچت کړو اومسکې شو نو بيايا خو پخپله رسول الله ﷺ اوفرمائيل يادخلقو په دې تپوس چه حضورﷺ څنګه مسکې شو؟نوحضورﷺ اوفرمائيل په دې وخت کښې په ما يوسورت نازل شو بيا حضورﷺ بسم الله الرحمن الرحيم اولوستله اوددې پوره سورت تلاوت ئې اوکړواو وئې فرمائيل معلومه ده چه کوثر څه څيز دې؟ خلقو وئيل الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي. وئې فرمائيل هغه يوجنتې نهردې په کوم کښې چه ډيرخير دې اوزما رب ماته راکړې دې په کوم چه به زماامت دقيامت په ورځ راځي اودهغې دلوښو شميردآسمان دستورو د شمير برابر دې.بعضې خلق به د دې نه اخواکولې شي نو زه به وايم اې زما ربه دا هم زما امتيان دی نووئيلې به شي چه تاته نه ده معلومه چه دې خلقو تانه پس

(۱) ابوداود کتاب الزکاة باب فی حقوق المال : ۱۶۵۷، مختصرا وسنده حسن مسند البزار: ۲۲۹۲.
(۲) ابن ابی حاتم
(۳) الاصابه: ۵۱۱/۲.

کوم کوم بدعتونه راویستې وو[1] يوبل حديث کښې دی چه په دې کښې به د اسمان نه يودوه ناوی راپريوځی[2] دنسائی په حديث کښې دی چه دا واقعه په جمات کښې تيره شوه هم په دې وجه د اکثرو قاريانو استدلال دې چه دا مدنی سورت دې.

فائده:- اکثر فقهاؤ د دې حديث نه استدلال کړې دې چه بسم الله الرحمن الرحيم هر يوسورت سره نازل شوې ده اودهريوسورت يومستقل آيت دې. دمسندپه يوبل حديث کښې دی حضورﷺ د دې آيت تلاوت کولوسره اوفرمائيل چه ماته کوثر راکړې شوې دې چه يوروان نهر دې خو جوړکړې شوې نه دې د دې دواړوغاړو ته دمرغلرو خيمې دی ددې خاوره خالص مشک دی اوددې قوتکانړی هم د رښتياؤ ملغلرې دی[3]

په يوبل روايت کښې دی چه د معراج په شپه حضورﷺ په آسمان باندې په جنت کښې دا نهر اوليدو اود حضرت جبرائيل عليه السلام نه ئی تپوس اوکړو دا کوم يونهردې؟ حضرت جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل دا د کوثر نهردې کوم چه الله ﷻ تاله درکړې دې[4] اوددې په شان نور ډير احاديث دی اوډير مونږ د سورت اسراء په تفسير کښې بيان کړې هم دی.

په يوبل حديث کښې دی چه د دې اوبه د پئيونه زياتې سپينې دی اود شاتونه ډيرې خوږې دی د کوم په غاړه چه داوږدو غړانګو مرغئی ناستې دی. حضرت صديق اکبرؓ چه دا واوريده نوونی فرمائيل چه هغه مرغئی خو به ډيرې ښائسته وی حضورﷺ اوفرمائيل چه خوراک کښې هم ډيرې مزيدارې دی. [5]

(ابن جرير) يوبل روايت کښې دی چه حضرت انسؓ دحضورﷺ نه تپوس اوکړو چه کوثرڅه څيز دی؟ په دې باندې حضورﷺ داحديث بيان اوفرمائيلو نوحضرت عمرؓ ددې مرغوباره کښې دااوفرمائيل[6]

(مسنداحمد) حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه دا نهر د جنت په مينځ کښې دې. په يو منقطع سند سره د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې که د کوثر د اوبود راپريوتلو آواز څوک اوريدل غواړی نو هغه دې په خپلو دواړو غوږونوکښې خپلې دواړه ګوتې ورکړی.

فائده:- اول خود دې سند ټيک نه دې اوبل د دې معنی ده چه د دې په شان آواز راځی نه خاص د هغې په شان آواز دې. والله اعلم. په صحيح بخاری کښې د حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روايت دې د کوثر نه مراد هغه ښيګړه اوخيردې کوم چه الله ﷻ حضورﷺ ته ورکړې دې. ابوبشر رحمه الله وائی چه ما د سعيدبن جبير رحمه الله نه داواوريدو نواومې ونيل چه خلق خوائی چه دادجنت يونهردې نوحضرت سعيدؓ اوفرمائيل هغه هم د دې ښيګړواو خيرنه دې کومې چه د الله ﷻ د طرف نه حضورﷺ ته ورکړې شوی دی. دحضرت ابن عباسؓ نه نور هم نقل دی چه د دې نه مراد ډيرزيات خيردې. نودا تفسيرشامل دې حوض کوثروغيره ټولوته.کوثر ماخوذ دې دکثرت نه دکوم نه چه مرادخيرکثيردې.اوهم پدې خير کثير کښې د جنت حوض هم دې لکه چه د ډيرو مفسرينونه نقل دی.

فائده:- حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د دنيااوآخرت ډيرې ډيرې ښيګړې مراد دی. عکرمه رحمه الله فرمائی چه نبوت قرآن ثواب اوآخرت کوثردې. اودا هم يادساتئی چه د حضرت عبدالله بن عباسؓ نه د وثر تفسيردکوثر دنهرسره هم روايت دې لکه چه په ابن جريرکښې سنداً نقل دی چه هغوی اوفرمائيل

---

[1] احمد: ۱۰۲/۳،وسنده صحيح ، ددې پشان حديث پاک صحيح مسلم كتاب الصلاة باب حجة من قال البسملة آية اول كل سورة سوى براءة: ٤٠٠

[2] صحيح مسلم كتاب لفضائل باب اثبات حوض نبينا ﷺ وصفاته: ۲۳۰۰.

[3] احمد: ۱۵۲/۳ وسنده صحيح

[4] احمد: ۱۰۳/۳، صحيح بخاری كتاب التفسير سورة الكوثر : ٤٩٦٤.

[5] ابن جرير وسنده حسن حاكم: ۵۳۷/۲ الطبری : ٦۵۰/۲٤.

[6] احمد: ۲۲۰/۳، ترمذی كتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة طير الجنة: ۲۵٤۲. وسنده صحيح.

كوثردجنت يونهر دې. د كوم دواړوغاړوته چه سره زر او سپين زر دى په ياقوتو او مرغلروباندې بهيږى د كوم اوبه چه د واورې نه ډيرې سپينې دى اود شاتونه زياتې خوږې دى.

**فائده:-** دحضرت ابن عمر ﷺ نه هم داتفسيرنقل دې(ابن جرير) په ترمذى او ابن ماجه وغيره كښې دا روايت مرفوع هم راغلې دې. امام ترمذى ﷺ دا حسن صحيح ښائى. (۱) ابن جريركښې دى رسول الله ﷺيوځل حضرت حمزه ﷺبن عبدالمطلب كره تشريف يوړو هغوى هغه وخت په كوركښې نه وو د هغوى بى بى چه د قبيله بنى نجارنه وه هغې اووئيل اې د الله ﷺ نبى ﷺ هغه خو اوس اوس ستاسو طرف ته درغلو كيدې شى بنونجاركښې حصار شوې وى. تاسوتشريف راوړنى حضور ﷺ كورته تشريف راوړو نوموربى بى د حضور ﷺ په وړاندې چورى كيخوده حضور ﷺ اوخوړله موربى بى خوشحاله شوه او ونى وئيل الله ﷺ ډير ښه اوكړه چه پخپله دې تشريف راوړوګنى ما خو په خپله دربار ته د حاضريدلو اراده كړې وه چه تاسو ته د حوض كوثر دركيدو باره كښې تاسو ته مباركى دركړم. ماته اوس اوس حضرت ابوعماره ﷺ وئيلې وو چه تاسو فرمائيلى اود دې حوض زمكه د ياقوتو مرجان او زمرد اود مرغلروده.

(۲) د دې يوراوى حرام بن عثمان ضعيف دې خوواقعه حسن ده او په اصل تواترسره ثابته شوې ده.

**كوثر څه څيز دې** :-دډيرو صحابه كرامو ﷺ او تابعين ﷺ وغيره نه ثابت دى چه كوثردنهر نوم دې. بيا ارشاد فرمائى لکه څنګه چه مونږ تاته خيركثيردركړې اوداسې دعزت نه ډك نهر دركړې نوته هم صرف زما عبادت كوه فرض مونځ او قربانى هم د هغه وحده لاشريك له د نوم كوه.بل ارشاد دې ﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ ۝﴾ مراددد قربانئى نه د اوښانووغيره حلالول دى. مشركانوبه سجدې اوقربانيانې دالله ﷺ نه بغيردنورو په نوم كولې.نودلته حكم اوشوچه ته صرف دالله ﷺ په نوم باندې په اخلاص سره عبادتونه كوه. بل ځائ ارشاد دې﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ۗ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ ۖ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ۝﴾په كوم ځناور چه د الله ﷺ نوم وانخستلې شى هغه مه خورئى هغه خو فسق دې.

**قوله تعالى:-** وَانْحَرْ ۝

**د نحرنه مراد:** اووئيلې شوى دى چه مراددوانحرنه دښى لاس په ګس لاس مانځه كښې په سينه كيخودل دى.هم دادحضرت على ﷺ نه په غيرد صحيح سندسره نقل دى. حضرت شعبى ﷺ د دې لفظ هم دا تفسيركوى. حضرت ابوجعفر باقر ﷺ فرمائى چه دې نه مراد د مانځه په شروع كښې رفع اليدين كول دى. اودا هم وئيلې شوى دى چه مطلب دا دې چه په خپله سينه د قبلې طرف ته متوجه وى. دا درواړه اقوال په ابن جريركښې نقل دى.

**فائده:-** ابن ابى حاتم كښې په دې ځائ يوډيرمنكرحديث نقل دې په كوم كښې چه دى كله چه دا سورت په نبى كريم ﷺ باندې نازل شو نو ونى فرمائيل جبرائيل ﷺ د وانحر نه څه مراد دې؟ ماته چه د خپل پروردګار د طرف نه حكم كيږى. جبرائيل ﷺ اوفرمائيل دې نه مراد قربانى نه ده تاته حكم كولې شى چه د مانځه په شروع كښې تكبيرتحريمه كښې لاسونه اوچته وه اود ركوع په وخت كښې هم اوچه كله د ركوع نه اوچت شې نو بياهم اوچه كله سجده اوكړې. هم دا زمونږ مونځ دې اود هغه فرښتو مونځ دې كومې چه په اووم آسمان كښې دى. د هريو څيز ښائست وى اود مانځه ښائست د هرتكبيرنه پس رفع اليدين كول دى(۳)داحديث دغه شان په مستدرك حاكم كښې هم دى.عطاء خراسانى ﷺفرمائى د

---

(۱) ترمذى كتاب تفسير القران باب ومن سورة الكوثر: ۳۳۶۱. وهو حديث حسن بالشواهد.
(۲) الطبرى:
(۳) حاكم : ۵۳۷/۲،

وانحر نه مراددادې چه خپله شادر کوع نه اوچته کړې نواعتدال اوکړه اوسینه ښکاره کړه یعنی اطمینان حاصل کړه.(ابن ابی حاتم) دا ټول اقوال غریب دی او صحیح قول اولنې دې چه مراد د نحر نه قربانیانې حلاله کول دی.ددې د پاره چه به رسول مقبول ﷺ د اخترد مانځه نه فارغ شو نو قربانی به نې حلالوله او فرمائیل به نې چه څوك زمونږ په شان مونځ اوکړی او زمونږ په شان قربانی اوکړی نو هغه شرعی قربانی اوکړه اوچا چه د مانځه نه اول څاروې حلال کړو د هغه قربانی اونه شوه. ابوبرده بن نیار ﷺ اودریدو سره اووئیل یارسول الله ﷺ ماخود مانځه نه وړاندې قربانی اوکړه په دې خیال چه نن به د غوښې طلب ډیر وی حضور ﷺ اوفرمائیل چه بس داخود خوراك غوښه شوه صحابی ﷺ اووئیل یارسول الله ﷺ اوس ماسره یود چیلئی بچې دې بل څه قربانی نه شم ورکولې(۱)امام ابوجعفر بن جریر ﷫ فرمانی چه ټیك قول د هغه دې چه وانی د دې معنی دا ده چه خپل ټول مونخونه صرف هم د الله ﷻ د پاره ادا کوه اود هغه نه بغیرد بل چا د پاره نه. دغه شان د هغه په لارکښې وینه تویوه د بل چا په نوم قربانی مه کوه. د هغه شکر په ځائ راوړه چاچه تاته دا بزرګی درکړه اوهغه نعمت نې درکړو د کوم په شان چه بل نعمت نشته. هم ته نې هغه سره خاص کړې هم دا قول ډیربنه دې.

دمحمدبن کعب قرظی ﷫ اودعطاء ﷫ هم دا قول دې.بیاارشاد کولې شی چه اې نبی ﷺ تاسره او ستاطرف ته نازل شوې وحی سره دښمنی کونکې به خواراوذلیل کمتر اولکئی پریشوې دې.دا آیت د عاص بن وائل باره کښې نازل شوې دې.دې مردار به چه کله دحضور ﷺ چرته د خیرخبر اوریدو نو وئیل به نې پریږدنې هغه خو لکئی پریشوې دې د هغه شاته څوك نارینه اولاد نشته د هغه په وفات کیدو به دهغه نوم ددنیا نه اوچت شی. په دې باندې دا مبارك سورت نازل شو. شمر بن عطیه ﷫ فرمانی چه د عقبه بن ابی معیط باره کښې دا آیت نازل شوې دې. ابن عباس ﷺ وغیره فرمانی چه د کعب بن اشرف اوقریشو ډلې باره کښې نازل شوې دې. بزار کښې دی چه کله کعب بن اشرف مکې معظمې ته راغلو نوقریشو هغه ته اووئیل چه ته خود دوی سردار ئې تابه د دې ماشوم طرف ته نه کتل چه د خپل ټول قوم نه څان له اوجدا دې خیال کوی چه هغه غوره دې. حالانکه مونږ حاجیانوپه اهل کښې دردبست بیت الله زمونږ په لاسونوکښې دې. په زم زم باندې زمونږ قبضه ده. نو دې خبیث اووئیل بې شکه ته د ده نه بهترئې. په دې باندې دا آیت نازل شو. د دې سندصحیح دې.

حضرت عطاء ﷫ فرمانی چه دابولهب باره کښې دا آیت نازل شوې دې. کله چه د رسول الله ﷺ د خوئ انتقال اوشو نودې بدنصیب مشرکانوته اووئیل په نن شپه د محمد ﷺ نسل کټ شو په دې باندې الله ﷻ دا آیت نازل کړو.دابن عباس ﷺ نه همدانقل دی هغه هم فرمائی دې نه مراد دحضور ﷺ هر یو دښمن دې دکوم کوم چه نوم واخستې شو اود کومو چه ذکرنه دې شوې هغه هم.د﴿ اَبۡتَرُ﴾معنی ده یوازې،د عربو داهم متل دې چه کله د چا نارینه اولاد وفات شی نو وانی﴿ اَبۡتَرُ ﴾دحضور ﷺ دخوئ دوفات په وخت دوی د دښمنئی په توګه هم دا وئیل په کوم چه دا آیت نازل شو نو مطلب دا شوچه ﴿اَبۡتَرُ ﴾ هغه دې د چادمرګ نه پس چه د هغه ذکر ختم شی.دې مشرکانود نبی اکرم ﷺ باره کښې هم دا خیال کړې ووچه د ده څامن خو وفات کړې شو هغوی پاتې نه شو د څه په وجه چه به د دوی د انتقال په وجه د ده نوم هم باقی پاتې نه شی. حاشاوکلا الله ﷻ به د دنیا د پاتې کیدو پورې د حضور ﷺ نوم ژوندې ساتې. د حضور ﷺ شریعت به ترهمیشه همیشه پورې باقی وی د حضور ﷺ تابعداری په هرچا باندې فرض کړې شوې ده دحضور ﷺ خوږ او پاك نوم دهریومسلمان په زړه او ژبه باندې دې اودقیامته پورې به په آسمانی فضاکښې عروج اوترقئی سره تاویږی. په اوچه اولمده په هروخت کښې د هغې اعلان کیږی الله ﷻ دې په حضور ﷺ اود هغوی په آل اولاد باندې په ازواج مطهرات او صحابه کرام ﷺ باندې دقیامته

(۱) صحیح بخاری کتاب العیدین باب الا یوم النحر : ۹۵۵.

پورې درود اوسلام ډېرزيات او بې حده په كثرت سره راوليګي. امين.

**الحمدلله**) د الله ﷻ په فضل اوكرم سره اودهغه په احسان اورحم سره د سورت كوثر تفسيرهم ختم شو.

## (تفسيرسورت كافرون)

**د سورت تعارف او فضائل:** صحيح مسلم كښې دحضرت جابر ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺدا سورت اوسورت اخلاص د طواف نه پس دوه ركعتو مونځ كښې تلاوت كړو([1]) په صحيح مسلم كښې د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه د سحر په دوو سنتوكښې به هم رسول الله ﷺ هم دا سورتونه تلاوت فرمائيل. مسنداحمد كښې د حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دې رسول الله ﷺ د سحر د فرضونه وړاندې په دوو ركعتوكښې اود ماښام نه پس په دووركعتوكښې اوځه د پاسه شل ځل اوځه دپاسه لس ځل سورت ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ او﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ اولوستلو ([2]) (يعنى دومره ځل دا سورتونه ما د حضور ﷺ نه په مونځونوكښې اوريدلى دى). ([3]) مسنداحمدكښې د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ ما ٢٤ ځل او ٢٥ ځل د سحر په دوو سنتونوكښې دا دواړه سورتونه لوستلوسره بنه كتلې دي([4]) هم دمسند په دويم روايت كښې هم د دوى نه نقل دى چه پوره مياشت پورې حضور ﷺ به په دې دوو ركعتوكښې هم دغه دواړه سورتونه لوستونكې ليدلې دى([5]) دا روايت ترمذى ابن ماجه او نسائى كښې هم دې.امام ترمذى رحمه الله دې ته حسن وائى. هغه روايت اول تيرشوچه دا سورت د څلورمې حصې قرآن برابردې او سورت﴿ اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾هم مسنداحمد كښې روايت دې چه حضرت نوفل بن معاويه ﷺ فرمائى چه رسول الله ﷺ دوى ته اوفرمائيل چه زمونږ درببيه پالنه ته په خپل كور كښې اوكړه.زما په خيال داحضرت زينب رضي الله عنها وه. دې يوځل بيا د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضرشو نو ونى فرمائيل وايه ماشومه څه كوى؟ ونيل ما هغه خپلې مور سره پريخې ده ونى فرمائيل بنه ده ولې راغلى نى؟ ونيل ددې دپاره چه تاسونه څه وظيفه زده كړم چه د اوده كيدو په وخت كښې لولم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه د اوده كيدو په وخت سورت ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ ([6])لوله اوده كيږه په دې كښې د شرك نه خلاصى او ويزارى ده([7]) دطبرانى په روايت كښې دى چه جبله بن حارثه ﷺ ته هم حضور ﷺ دا فرمائيلي وو.طبرانى په يوبل روايت كښې دى چه پخپله به حضور ﷺ پخپله بستره سملاستونود دې سورت تلاوت به نى فرمائيلو. مسنداحمدكښې دى چه حضرت جبله بن حارثه ﷺ اوونيل يارسول الله ﷺ ماته څه داسې څيز اوښايه چه هغه زه د اوده كيدو په وخت كښې لولم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ته كله د شپې خپلې بسترې له لاړ شې نو سورت ﴿ قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ﴾ لوله دا د شرك نه ويزارى ده.

| اياتونه | | | سورة الكافرون مكية وهي ست ايٰت وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٦ | | | شروع كوم په نوم د الله چه ډېرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ١ |

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الحج باب حجة النبى ﷺ : ١٢١٨.
[2]) احمد: ٢٤/٢.
[3]) صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب ركعتى سنة الفجر والحث عليها: ٧٢٦.
[4]) احمد: ٩٥/٢.
[5]) احمد: ٩٤/٢، ترمذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى تخفيف ركعتى الفجر .....: ٤١٧.
[6]) ددې تخريج دسورة زلزال په شروع كښې تير شوې دې.
[7]) احمد: ٤٥٦/٥، ابوداود كتاب الادب باب ما يقول عند النوم: ٥٠٥٥، وهوحديث حسن ترمذى : ٣٤٠٣.

| قُلْ | يَاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ۝١ | لَآ اَعْبُدُ | مَا | تَعْبُدُوْنَ ۝٢ | وَلَآ اَنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووایه ا | اې کافرانو | ا زه عبادت نه کوم | ا دهغې | ا چې تاسو ئې عبادت کوئ | ا اونه يئ تاسو |
| ته اووایه چې ائې کافرانو دکومو بتانو چې تاسو عبادت کوئ ا زه د هغو عبادت نه کوم ا او نه | | | | | |
| عٰبِدُوْنَ | مَآ | اَعْبُدُ ۝٣ | وَلَآ اَنَا عَابِدٌ | مَّا | |
| عبادت کونکی ا | دهغې | ا چې زه ئې عبادت کوم | ا اونه زه عبادت کونکې يم ا | دهغې ا | |
| تاسو دهغه الله تعالى عبادت کوئ ا دکوم چې زه عبادت کوم ا او نه به زه چرې د هغه | | | | | |
| عَبَدْتُّمْ ۝٤ | وَلَآ اَنْتُمْ | عٰبِدُوْنَ | مَآ اَعْبُدُ ۝٥ | | |
| چې تاسو ئې عبادت کوئ ا اونه يئ تاسو ا عبادت کونکی ا دهغې چې زه ئې عبادت کوم ا | | | | | |
| معبودانو، عبادت اوکړم ا دکومو چې تاسو عبادت کوئ ا اونه تاسو دهغه چا عبادت کونکی يئ | | | | | |
| لَكُمْ | دِيْنُكُمْ | وَلِيَ | دِيْنِ ۝٦ | | |
| ستاسو دپاره ا دين ستاسو دې ا او زما دپاره ا دين زما دې ا | | | | | |
| د کوم چې زه عبادت کوم ا تاسو دپاره ستاسو طريقه ده او زما دپاره زما طريقه ده | | | | | |

**قوله تعالى:- قُلْ يَاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ ۝ لَآ اَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ ۝**

**مومن د بتانوعبادت نه شي کولې** :-په دې سورت مبارك کښې دمشرکانود عمل نه د ويزارئي اعلان دې اوداللہ ﷻ دعبادت په اخلاص سره حکم دې. دلته خطاب د مکې کفاروقريشوته دې خو په اصل کښې په مخ د زمکې ټول کافر مراد دی. د دې شان نزول داسې دې چه دې کافرانوحضور ﷺ ته ونيلې وو چه يو کال ته زمونږ د معبودانو عبادت کوه نو په راتلونکی کال کښې به مونږ هم د الله ﷻ عبادت کوو. په دې باندې دا سورت نازل شو او الله ﷻ خپل محبوب برحق ته حکم اوکړو د دوی د دين نه د خپلې پوره ويزارد کيدو اعلان اوکړه چه زه ستا سو د دې بتانو اود کوم کوم چه تاسو د الله ﷻ شريك منئ به هيڅ کله عبادت اونه کړم سره د دې که تاسو هم زما معبودبرحق له چه وحده لاشريك لـه دې عبادت نه کونئ.نودلته دا "ما" په معنی د "من" کښې ده بيانئ دوباره هم دغـه شان اوفرمانيل چه ستاسو په شان عبادت به اونه کړم. ستاسو په مذهب باندې زه عمل نه شم کولې. نه زه تاسو پسې لګيدلې شم بلکه زه خو به صرف د خپل رب عبادت کوم اوهغه هم په هغه طريقه چه کومه د هغه خوښه وی اوخنګه غواړی.ددې دپاره نې اوفرمانيل چه نه تاسو زمادرب داحکاموپه وړاندې سرټيټوئې اونه بـه دهغه عبادت دهغه دفرمان مطابق په خائ راوړئي بلکه تاسوخو په خپله طريقه باندې طريقې مقرر کړی دی. لکه چه بل خائ ارشاد دې ﴿اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ﴾ الـخ دا خلق صرف د اټکل اوګمان او نفساني خواهش پسې لګيدلې دی سره د دې چه د هغوی طرف تـه د هغوی د رب هدايت رسيدلې دې. نو حضرت محمد مصطفى ﷺ د هغوی نه په هرقسم خپله لمن خلاصه کړې ده او پـه صفا توګه نې د هغوی د عبادت د طريقونه جداوالی او د ناخوښئ اعلان کړې دې. ښکاره خبره ده چه د هرعابد معبود وی اود عبادت طريقه بـه ئې هم وی نو رسول الله ﷺ او د هغـوی ﷺ امت صرف هم د الله ﷻ عبادت کوی د هغوی د عبادت طريقه هم هغه ده کومه چه سرورکائنات حضرت مصطفى ﷺ تعليم فرمانيلې ده.

قوله تعالى:- لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ۝

فائده:-ددې د پاره داخلاص كلمه ﴿لااله الاالله محمدرسول الله﴾ده يعنى د الله ﷻ نه بغيربل څوك معبود نشته اودهغه لارهم هغه ده دكومې خودونكې چه حضرت محمد ﷺ دې كوم چه د الله ﷻ پيغمبردې. او دمشركانو معبودهم د الله ﷻ نه غيردى اود عبادت طريقه هم د الله ﷻ د طرف نه نه ده خودلې شوې. په دې وجه اوفرمائيلې شو ستاسو دين ستاسو د پاره او زما دين زما د پاره. بل ځاى ارشاد دې ﴿وَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ۚ اَنْتُمْ بَرِيْٓـُٔوْنَ مِمَّآ اَعْمَلُ وَاَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ۝﴾كه چرې دوى تا دروغ گڼړى نو ته ورته اووايه چه زمادپاره زما عمل دې اوستاسودپاره ستاسوعمل دې.زه ستاسوداعمالونه جدا يم او تاسوزمادكارونو نه ويزاره نى. بل ځاى ارشاد دې ﴿لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ﴾زمونږ عمل زمونږ سره او ستاسو عمل تاسو سره. په صحيح بخارى‌كښې د دې آيت په تفسيركښې دى چه ستاسو د پاره ستاسو دين دې يعنى كفر اوزما د پاره زما دين يعنى اسلام.دا لفظ په اصل كښې ﴿دينى﴾ وو خود نورو آياتونو وقف په نون باندې دې په دې وجه په دې كښې هم "يا" حذف كړې شوه. لكه په ﴿فهويهدين﴾ او ﴿يسقين﴾كښې. (١)

بعضې مفسرينو وئيلى دى چه مطلب دا دې چه زه خو ستاسو د معبودانو عبادت نه كوم اود بيا د پاره هم تاسو نااميده كوم چه ټول عمر كښې به دا كفر زما نه اونه شى اودغه شان نه تاسو اوس زما د رب عبادت كونى اونه به بيا د هغه عبادت اوكړنى. دې نه مراد هغه كافران دى چه د هغوى ايمان نه راوړل الله ﷻته معلوم وو لكه چه په قرآن پاك كښې بل ځاى ارشاد دې﴿وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا﴾ يعنى ستاطرف ته چه كوم نازليږى دې سره په هغوى كښې اكثر په سركشنى اوكفر كښې زياتيږى. ابن جرير د بعضو عربو نه نقل كړى دى چه دوه ځل د دې جمله راوړل د كلك والى د پاره دى لكه ﴿ فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا۝ اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا۝﴾ كښې او ﴿ لَتَرَوُنَّ الْجَحِيْمَ۝ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِيْنِ۝﴾ كښې نود دې دواړو جملو دوه ځل راوړلو حكمت كښې دا درې اقوال شو يوخوداچه د اولې جمله نه مراد معبود او دويم نه مراد دعبادت طريقه، دويم دا چه د اولې جمله نه مراد حال يعنى موجوده اودويم نه مراد استقبال يعنى راتلونكې، دريم دا چه د اولې جمله تاكيد په دويمه جمله سره دې خودلته دا يادساتنى چه يوه څلورمه توجيه هم ده كوم چه امام ابن تيميه رحمه الله خپلو بعضې كتابونوكښې قوت وركړې دى. هغه دا چه اوله جمله خو فعليه ده او دوباره اسميه ده نو مراد دا شو چه نه خو به زه د غيرالله عبادت كوم اوه مانه كله هم اميد اونه ساتنى يعنى د واقعه هم نفى ده اوپه شرعى توګه ممكن كيدو نه هم انكار دې. داقول هم ډير ښكلې دې. والله اعلم.

فائده:- حضرت امام شافعى رحمه الله د دې آيت نه استدلال كړې دې چه كفرهم يوملت دې په دې وجه يهودى دنصرانى او نصرانى ديهودى وارث كيدې شى كله چه په دې دواړو كښې د نسب يا سبب د وراثت وى ځكه چه د اسلام نه علاوه د كفر څومره لارې دى هغه ټولې په باطل كيدوكښې يو دى. د حضرت امام احمد رحمه الله اود هغه د موافقينومذهب د دې خلاف دې چه نه يهودى د نصرانى وارث كيدې شى اونه نصرانى د يهودى ځكه چه په حديث كښې دى چه دوه مختلف مذهبونووالا په خپل مينځ كښې د يو بل وارث كيدې نه شى. (٢)

﴿والحمدلله على احسانه﴾ د سورت كافرون تفسير ختم شو.

---

(١) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة ( قل ياايها الكافرون ) تعليقا.

(٢) ابوداود كتاب الفرائض باب هل يرث المسلم الكافر: ٢٩١١. وسنده حسن ، السنن الكبرى للنسائى : ٦٣٨٤.

## (تفسیر سورت نصر)

**دَ سورت تعارف:-** اول هغه حدیث بیان شوچه دا سورت د څلورمې حصې قرآن برابر دې. (١) حضرت ابن عباس ﷺ دحضرت عبیده بن عبدالله ﷺ نه تپوس اوکړو پیژنې د ټولونه په آخرکښې کوم یو سورت نازل شوې دې؟ جواب نې ورکړو چه او هم دا سورت ﴿إِذَا جَاءَ﴾ نوهغوی اوفرمائیل اوته رښتونې نې (نسائی).
(٢) حافظ ابوبکر بزار رحمه الله او حافظ بیهقی رحمه الله دحضرت ابن عمر ﷺ روایت نقل کړې دې چه دا سورت د ایام تشریق دورخو په مینځ کښې نازل شو نوحضور ﷺ پوهه شو چه داد رخصت سورت دې هم هغه وخت حکم اوشو اودحضور ﷺ اوښه قصوی تیاره کړې شوه په دې باندې سور شو اوهغه زورروره خطبه نې بیان کړه کومه چه مشهوره ده (٣) بیهقی کښې دی چه کله دا سورت نازل شونو حضور ﷺ خپله د زړه ټکره حضرت فاطمة الزهری رضی الله عنها راوغوښته او ونې فرمائیل ماته زما د وفات کیدو خبر راغلو. حضرت زهری رضی الله عنها په ژړا شوه بیا ناڅاپې په خندا شوه کله چه نورو خلقو تپوس اوکړو نوونې فرمائیل د وفات خبر خو اوژړولم خو په ژړاکښې حضور ﷺ تسلی راکړه بچې صبرکوه زما په اهل کښې به د ټولو نه رومبې ته ماسره ملاویږې. نو ماله ناڅاپې خندا راغله. (٤)

| رکوع ګانې | | | | ایاتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة النصر مكية وهي ثلث ايات وركوعا واحدا | | |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ① | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ③ |

إِذَا جَآءَ نَصۡرُ اللّٰهِ وَالۡفَتۡحُ ۝ وَرَاَیۡتَ النَّاسَ یَدۡخُلُوۡنَ فِیۡ دِیۡنِ اللّٰهِ

کله چې | راغې | امداد دالله | او فتح | اواووینې ته | خلق | چې داخلیږی | په دین دالله کښې

څه وخت چې دالله تعالی مدد راغلو | او (مکه) فتح شوه | اوتا اولیدل چې خلق دالله تعالی

اَفۡوَاجًا ۝ فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ وَاسۡتَغۡفِرۡهُ ؕ اِنَّهٗ

دلې دلې | نو تسبیح وایه | سره د ثنا | درب خپل | او بښنه غواړه دهغه نه | بیشکه هغه |

په دین کښې دلې دلې داخلیږی | نو دخپل رب تسبیح اوحمد وایه | اودهغه نه ښنه غواړه | بیشکه

كَانَ تَوَّابًا ۝

دې دیر توبه قبلونکې |

هغه توبه قبلونکې دې

**قوله تعالی:-** إِذَا جَآءَ نَصۡرُ اللّٰهِ وَالۡفَتۡحُ ۝

**دَ الله تعالی دَ امدا اوفتح نه مراد:-** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه د لوی عمر بدری مجاهدینو سره سره حضرت عمر فاروق ﷺ به زه هم شامل کولم نوکیدې شی چه په دې سره د چا په زړه کښې څه خفګان شان پیدا شوی وی. هغه ونیلې وو چه دې دې مونږ سره نه راځی د ده هومره خو زمونږ بچې

---

١) ددې تخریج دسورة الزلزال په شروع کښې تیر شوې دې.
٢) صحیح مسلم کتاب التفسیر آیات متفرقة: ٣٠٢٤.
٣) مجمع الزوائد: ٢٧١/٣،
٤) المعجم الکبیر للطبرانی : ١١٩٠٧،

دي.خلیفة المسلمین حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه تاسو دي ښه پیژنئي.یوه ورځ ئي ټول راوغوښتل او زه ئي هم یادکړم. زه پوهه شوم چه نن دوی ته څه خودل غواړي.کله چه مونږ ټول لاړونو امیرالمؤمنین ﷺ مونږ نه تپوس اوکړوچه سورت ﴿اِذَاجَآءَ﴾ متعلق تاسو ته څه علم دي؟ بعضو اوونیل چه په دې کښې مونږ ته دالله ﷻ حمداوثنا بیانولو اود ګناهونو د ښښني غوښتلو حکم راکړې شوې دې کله چه د الله ﷻ امداد راشي اوزمونږه فتح وی نوچه مونږدا اوکړو او بعضې بالکل خاموش پاتې شو.هغوی زما طرف ته توجه اوفرمائیل او وئې وئیل چه ته هم دا وائي؟ ما وئیل نه، وئې فرمائیل بیا نور څه وائي؟ ماوئیل داد رسول الله ﷺ د وفات پیغام دې تاسو ته خودلې شی چه اوس ستاسو ددنیاوی ژوندون ختمیدونکې دې ته په تسبیح حمداواستغفارکښې مشغول شه حضرت فاروق اعظم ﷺ اوفرمائیل چه هم دازه پیژنم. (بخاری) ([1])

**شان نزول:** کله چه دا سورت نازل شو نو حضور ﷺ فرمائیلې وو چه اوس به هم په دې کال کښې زه وفات کیږم ماته زما د وفات کیدلو خبر راکړې شوې دې. (مسنداحمد) مجاهد رحمه الله ابوالعالیه رحمه الله ضحاک رحمه الله وغیره هم دغه تفسیربیان کړې دې. یوروایت دې چه حضور ﷺ په مدینه منوره کښې وو وئې فرمائیل الله اکبر الله اکبر دالله ﷻ امداد راغلو اوفتح هم،دیمن خلق راغله تپوس ئې اوکړو حضور ﷺ دیمن والا څنګه دی وئې فرمائیل نرم زړه والا اودښکلې طبیعت والا دی ایمان خو د یمن والا دی اوپوهیږی هم هغوی اوحکمت هم د یمن والا دې(ابن جریر) ([2]) دابن عباس ﷺ بیان دې چه کله دا سورت نازل شو نو په دې کښې دحضور ﷺ د وفات خبروو نو حضور ﷺ په خپلوکارونوکښې نوره هم ملا اوتړله اوتقریبًا هم دا ئې اوفرمائیل چه دا پورته تیرشو. (طبرانی) ([3])

**دنزول په اعتبار سره د ټولو نه آخری سورت:-** د حضرت ابن عباس ﷺ نه داهم روایت دې چه په سورتونو کښې دپوره نازلیدو په اعتبار سره د ټولونه آخری سورت هم دا دې ([4]) (طبرانی) یوبل حدیث کښې دی چه کله داسورت نازل شو حضور ﷺ ددې تلاوت اوکړو او وئې فرمائیل.چه خلق په یوه غاړه دی اوزه او زماصحابه کرام په بله غاړه دی.واورئې دمکې دفتح نه پس هجرت نشته البته جهاداونیت شته. مروان ته چه کله دا حدیث حضرت ابو سعید خدری ﷺ واورولو نو ده وئیل دروغ وائې. دغه وخت کښې مروان سره په تخت باندې رافع بن خدیج اوحضرت زید بن ثابت ﷺ ناست وو نو حضرت ابوسعید ﷺ اوفرمائیل چه دې دواړو ته هم د دې حدیث پته ده دوی هم دا حدیث بیانولې شی خو یوته د خپلې سردارئې تلو ویره ده اوبل ته د زکوة د وصولولو د عهدې نه د لرې کیدلو ویره ده. مروان کوره اوچته کړه اوحضرت سعید ﷺ ئې وهل غوښتل خودې دواړو بزرګانوچه کله دا اوکتل نو وئې وئیل مروان واوره ابوسعید ﷺ ربښتیا فرمائیلي ([5])(مسنداحمد) داحدیث ثابت دې.

دحضرت ابن عباس ﷺ نه دا هم روایت دې چه حضور ﷺ د مکې د فتح په ورځ اوفرمائیل هجرت پاتې نه شواوجهاد اونیت شته.کله چه تاسو ته اوونیلې شی نو زرپاسئې او روانیږئې ([6]) په صحیح بخاری اوصحیح مسلم کښې داحدیث موجود دې. اودا هم یادساتئې چه کومو بعضو صحابه کرامو ﷺ د حضرت فاروق اعظم ﷺ په وړاندې د سورت دا مطلب بیان کړوچه کله الله ﷻ په مونږ باندې ښارونه او

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة اذا جاء نصر الله باب قوله ( فسبح بحمد ربک واستغفره....) : ٤٩٧٠.
[2] احمد: ٢١٧/١،
[3] مسند البزار : ٢٨٣٧،
[4] المعجم الکبیر : ١١٩٠٣.
[5] المعجم الکبیر : ١٠٧٣٦. وسنده صحیح .
[6] صحیح بخاری کتاب جزاء الصید : باب لا یحل القتال بمکة: ١٨٣٤. صحیح مسلم: ١٣٥٣.

قلعه ګانې فتح کړی اوزمونږ امداد اوکړی نو مونږ ته حکم ملاویږی چه مونږ دهغه تعریفونه اوکړواود هغه شکر اداکړودهغه پاکی بیان کړو اودخپلو ګناهونو ښننه اوغواړو.دامطلب هم بالکل صحیح دی اوتفسیرهم ډیر ښکلې دې ګورئ رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ د ضحی په وخت کښې اته رکعته مونځ اداکړو نو خلق وائی چه دا د ضحې مونځ وو خومونږ وئیلې شوچه د ضحې مونځ به حضور ﷺ همیشه نه کولونو بیا په دې ورځ چه مشغولتیا اوکار ډیر وو مسافرت وو نودائی څنګه کولې شو؟ د حضور ﷺ اقامت د مکې د فتح په موقعه باندې په مکه کښې د رمضان ترآخره پورې نورلس ورځې وو. حضور ﷺ به فرض مونځ هم قصرکولو روژه ئې هم اونه ساتله اوټول لښکر چه تقریبا لس زره وو دغه شان به ئې کول.ددې حقائقونه داخبره صفا ښکاره کیږی چه دا مونځ د فتح د شکریه مونځ وو څکه چه د لښکریه سردارچه د وخت امام وی باندې مستحب دی چه کله یوښارفتح شی نو په داخلیدو باندې پکاردی چه اته رکعته مونځ اوکړی. حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ د مدائن د فتح په ورځ هم داسې کړې وو.دا اته رکعته دې دوه دوه رکعته کولوسره اداکوی.د بعضو داهم قول دې چه اته واړه رکعته هم په یوسلام باندې اوکړئی خو په ابوداوّدکښې په صراحت سره روایت دې چه حضور ﷺ د هرو دوو رکعتونه پس سلام ګرځولې دې. ([1])

**د تسبیح نه څه مراد دې**:دویم تفسیرهم صحیح دې کوم چه ابن عباس ﷺ وغیره کړې دې په دې کښې حضور ﷺ ته دهغوی د وصال خبر ورکړې شوې دې چه کله تاسو خپل وطن مکه معظمه فتح کړئی د کوم ځائې نه چه دې کافرانوته په وتلوباندې مجبورکړې وې نوته په خپلو سترګود خپل محنت میوه اووینې چه ډلې ډلې ستا د جهنډې لاندې راشی.بې شمیره خلق د اسلام په دائره کښې داخل شی نو زمونږ طرف ته د راتلو او زمونږ سره دملاقات تیارې کوه اود دنیانه ډیره زیاته ښیګړه ستاد پاره هلته ده.هم هلته ستا میلمستیا تیاره ده اوزما په شان میزبان دې. ته چه زما دا نښې اووینې نو په ډیر کثرت سره زما حمداوثنا کوه اوپه توبه او استغفارکښې لګیا شه.

**قوله تعالى**:- فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ

دصحیح بخاری په حدیث کښې دحضرت عائشه صدیقه ﵂ نه روایت دې حضور ﷺ به په خپله رکوع او سجده کښې ډیر په کثرت سره (سبحانك اللهم وبحمدك اللهم اغفرلي) لوستلو.حضور ﷺ به د قرآن دا آیت (فسبح)الخ باندې عمل کولو([2]) بل روایت کښې دی حضور ﷺ به په خپل آخری عمرکښې ددې کلمو اکثر وردکولو(سبحان الله وبحمده استغفرالله واتوب اليه) دالله ﷻ ذات پاک دې هم دهغه دپاره ټول تعریفونه دی زه دالله ﷻ نه استغفارکوم اود هغه طرف ته ټیټیږم. اوفرمائیل به ئې زما رب ماته حکم راکړې دې چه کله زه دا علامت اووینم چه مکه معظمه فتح شوه اوپه دین اسلام کښې خلق ډلې ډلې داخل شی نو چه زه داسې کلمې په کثرت سره اووایم. نوالحمدلله ما هغه اولیدل اواوس په دې وظیفه کښې مشغول یم.([3])(مسنداحمد)

ابن جریرکښې دام سلمه ﵂ نه روایت دې حضور ﷺ به په خپل آخری عمرکښې په کیناستو پاسیدو تلو راتلو ګرځیدو راګرځیدو(سبحان الله وبحمده) لوستلو ما یوځل تپوس اوکړو حضور ﷺ د دې څه وجه ده؟ حضور ﷺ د دې سورت تلاوت اوکړو او وئی فرمائیل چه ماته د الله ﷻ نه داحکم دې([4])چه په یو مجلس کښې کینې او بیا هغه ختم شی نو څه وئیل پکاردی مونږ په خپل یومستقل تصنیف کښې

[1]) ابوداود کتاب التطوع باب صلاة الضحى : ۱۲۹۰، وهو حديث حسن .
[2]) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اذا جاء نصر الله : ٤٩٦٨. صحيح مسلم: ٤٨٤.
[3]) احمد: ٣٥/٦، صحيح مسلم: ٤٨٤.
[4]) الطبرى : ٦٧٠/٢٤،

ليکلي دي. مسند احمد کښې دي چه کله دا سورت نازل شو نو حضور ﷺ به اکثر په خپل مانځه کښې د دې تلاوت کولو او په رکوع کښې به ئې درې خل دا لوستل ﴿سبحانك اللهم ربنا وبحمدك اللهم اغفرلي انك انت التواب الرحيم﴾[1] دفتح نه دلته مراد فتح مکه ده په دې باندې اتفاق دې او عموماً عرب قبيلې ددې په انتظار کښې وې که چرې دې په خپل قوم باندې غالب راغلو او مکه معظمه د ده د حکم لاندې راشي نو بيا دهغه په نبي کيدو کښې ذره شك شبه نشته. اوس چه کله الله ﷻ د خپل حبيب په لاس باندې مکه معظمه فتح کړه نو دا ټول په اسلام کښې داخل شو. والحمد لله.

په صحيح بخاري کښې هم د حضرت عمرو بن سلمه ؓ دا مقوله موجود ده چه د مکې معظمې د فتح کيدو سره هرې قبيلې د اسلام طرف ته وړاندې والې اوکړو اودې ټولوته هم ددې انتظار وو چه دې اود ده قوم پريږدئ اوګورئ که دا په حق سره نبي وي نو دې به په خپل قوم باندې غالب راشي او په مکه معظمه باندې به د ده جهنډا اولګولې شي[2] مونږ د غزوه فتح مکه پوره پوره واقعه په تفصيل سره د خپل سيرت په کتاب کښې ليکلې ده کوم صاحب چه تفصيلات کتل غواړي هغه دې دا کتاب اوګورې. فالحمد لله. مسند احمد کښې دي چه حضرت جابر بن عبدالله ؓ ګاونډي چه کله د يو سفر نه واپس راغلو نو حضرت جابر ؓ د هغه د ملاقات د پاره لاړو. هغه دخلقو دبې اتفاقئ او اختلاف حال بيان کړو اودهغوی د نوی ايجاد کړې شوو بدعتونو تذکره ئې اوکړه نو درسول الله ﷺ د صحابي ؓ دسترګو نه اوښکې لاړې اوبه ژړا کښې اوفرمائيل چه ما د حبيب کبرياشافع روزجزاحضرت محمد ﷺ نه اوريدلي دي چه دخلقو فوځونه فوځونه د الله ﷻ په دين کښې داخل شي خو ډير زر به ډلې ډلې د هغې نه اوځي هم[3] ﴿والحمد لله على احسانه﴾ د سورت نصر تفسير ختم شو.

| آياتونه | | سورة اللهب مكية وهي خمس ايات وركوع اواحدا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑤ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

تَبَّتۡ يَدَاۤ اَبِيۡ لَهَبٍ وَّتَبَّ ۞ مَاۤ اَغۡنٰى عَنۡهُ مَالُهٗ وَمَا

مات شه | دواړه لاسونه | دابولهب | او هلاك شو هغه | هيڅ بکار رانغي دهغه | مال دهغه | او هغه څه
دابولهب لاسونه دې مات شي | اوهغه دې برباد شي | دهغه مال اودهغه ګټه دهغه هيڅ په

كَسَبَ ۞ سَيَصۡلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ۞ وَّامۡرَاَتُهٗ

| چې ګټلي ووهغه | ډير زر به ننوځي هغه | اور ته | چې لمبو والا به وي | او ښځه دهغه هم |
کار رانغله | .......زر به هغه شعله وهونکي اور ته ورا وغورزيږي | .......................او دده ښځه هم

حَمَّالَةَ الۡحَطَبِ ۞ فِيۡ جِيۡدِهَا حَبۡلٌ مِّنۡ مَّسَدٍ ۞

راوړونکي دلرګو | په څټ دهغې کښې به وي | رسۍ | دمونجو |
چې خشاك ئې اوچت کړي ګرځي | اود هغې په څټ کښې د مونجو رسۍ ده

---

[1] احمد: ۳۸۸/۱.
[2] صحيح بخاري کتاب المغازي باب نمبر: ٥٤ حديث: ٤٣٠٢.
[3] احمد: ۳٤۳/۳.

**د نزول واقعه**:صحيح بخاري كښې دي رسول الله ﷺ بطحاء ته لاړو او يوغر ته اوختلو او په اوچت آواز سره ئې ﴿صباحاه يا صباحاه﴾ وئيل. قريش ټول راجمع شو نو حضور ﷺ ورته اووئيل چه كه زه تاسو ته اووايم چه سحريا ماښام په تاسوباندې دښمن حمله كونكې دې نو آيا تاسو به ما رښتونې اومنئ؟ ټولو جواب وركړو اوجي.حضور ﷺ اوفرمائيل واورئ زه تاسو د الله ﷻ د سخت عذاب راتلو خبردركوم. نو ابولهب اووئيل ته هلاك شې دا مونږ دې د پاره راجمع كړې يو. په دې باندې سورت نازل شو(بخاري).([1])

**ابو لهب ،څوك وو اوددهٔ انجام**:-دويم روايت كښې دی چه لاسونه ځنډل اوداسې وئيل پاسيدو﴿تَبَّتْ﴾دا بد دعاده او﴿تَبَّ﴾ خبردې.دا ابولهب د حضور ﷺ تره وو اودهغه نوم عبدالعزى بن عبدالمطلب وو د ده كنيت ابوعتبه وو. د هغه دمخ دښائست او پرق پروق په وجه هغه ته ابولهب يعنى دشغلې والا وئيلې كيدو.دادحضور ﷺ سخت دښمن وو هروخت به تكليف رسولو نقصان رسولوكښې اخته وو.ربيعه بن عباد ديلي ﷺ دخپل اسلام راوړلونه پس دخپل جاهليت واقعه بيان كوی چه ما رسول الله ﷺ د ذوالمجاز په بازاركښې اوليدلو چه حضور ﷺ پسې تك سپين مخ والاپه يوسترگه ړوند اودهغه دسردوېښتو دوه كمسئې وې راغلو اوونی وئيل خلقو دا بې دينه دې دروغژن دې.غرض حضور ﷺ دخلقوجمع ته لاړو اودالله ﷻدتوحيددعوت ئې وركولوداسې به روستوروستو روان وو اودا به ئې وئيل.مادخلقو نه تپوس اوكړو داڅوك دې؟ خلقو وئيل د حضور ﷺ تره ابولهب دې. لعنه الله (مسنداحمد) ([2])

ابوالزناد دحديث راوی ربيعه ﷺ ته اووئيل چه ته خو به دغه وخت كښې ماشوم وې وئې فرمائيل چه زه دغه وخت كښې د پوره عمر ووم، مشك به مې راډكولو([3]) دويم روايت كښې دی زه د خپل پلارسره ووم زماعمر ځوان وو اوما كتل چه رسول الله ﷺ به يوې يوې قبيلې ته تلو او وئيل به ئې خلقو زه ستاسو طرف ته د الله ﷻ جوړكړې راليگلې شوې يم زه تاسو ته وايم چه صرف هم د يو الله ﷻ عبادت كوئې اوهغه سره څوك شريك مه جوړوئې مارښتونې اوگڼرئ اومازما ددښمنانو نه بچ كړئې دې د پاره چه دا كارپوره كړم دكوم چه الله ﷻماته حكم راكړې راليگلې يم.حضور ﷺ چه به كوم ځاى ته داپيغام رسولو فارغ به شو نودحضور ﷺ تره ابولهب به هلته راورسيدو اووئيل به ئې اې دفلانكې قبيلې خلقو دا سړې خوتاسودلات اوعزى نه اخواكول غواړې اود بنومالك بن قيس ستاسو دپيريانو ملگرونه تاسولرې كوى اودخپلې نوې راوړلې شوې گمراهئې طرف ته تاسوهم راكاږی.خبردارمه دده منئ اومه اورئ. (احمدو طبرانی) ([4])

**د ابولهب مذمت**:- الله ﷻ په دې سورت كښې فرمائى چه ابولهب دې برباد وى د هغه كوشش غرق شو د هغه اعمال هلاك شو او په يقين سره د هغه بربادى شوې ده. د هغه اولاد د هغه په كار رانغلو. ابن مسعود ﷺ فرمائى چه كله رسول الله ﷺ خپل قوم د الله ﷻ طرف ته رابله نو ابولهب به وئيل چه كه زما د وراره خبره حق وه نوزه به خپل مال او اولاد د قيامت په ورځ الله ﷻ ته په فديه كښې وركړم او د هغه دعذاب نه به خلاص شم. پدې باندې دا آيت ﴿مَآأَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُۥ وَمَا كَسَبَ﴾ نازل شو. بيا فرمائى چه داشغلې وهونكې اورچه سخت سوزونكې دې اودير په تيزئى سره به داخليږی اودهغه ښځه هم چه د قريشو د ښځو سرداره وه د هغې كنيت ام جميل وو نوم ئې اروى وو د حرب ابن اميه لور وه دابوسفيان ﷺ خور وه اودخپل خاوند په كفردښمنى سركشئى كښې دا هم دهغه سره وه. د دې دپاره به دقيامت په ورځ په عذابونوكښې د هغه سره وى.لرگى به راجمع كوى اوپه هغه اوركوم كښې چه خاوندپروت وى په هغې

---

[1]) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة تبت يدا ابي لهب باب قوله ( ما اغنى ماله وما كسب ......) ٤٩٧٢.

[2]) احمد: ٣٤١/٤. وسنده حسن .

[3]) محمد بن اسحاق واحمد: ٤٩٢/٣،

[4]) احمد: ٤٩٢/٣،

کښې به نې اچوی.دهغې په مرئی کښې به د اور رسئې وی اود دوزخ خشاك به راغونډوی. دا معنی هم کړې شوې ده ﴿حَمَّالَةَ الْحَطَبِ﴾ نه مراد دهغې غیبت کول دی.امام ابن جریر رحمه الله همداخوښوی.ابن عباس رضي الله عنه وغیره دامطلب بیان کړې دې چه دې به دځنګل نه ازغن لرګی راغونډول اودحضور ﷺ په لارکښې به نې خورول. دا هم وئیلې شوی دی چه دې ښځې به حضور ﷺ ته د فقر پیغور ورکولو نو هغې ته به دهغې لرګی راغونډول رایادولې شو خو صحیح قول هم ړومبې دې. والله اعلم.

قوله تعالی:- فِيْ جِيْدِهَا حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ

سعیدابن مسیب رضي الله عنه فرمائی هغې سره یوښکلې هارامیل وو وئیل به نې چه زه به دا خرڅوم اود حضرت محمد ﷺ په مخالفت کښې به نې خرچ کوم نو دلته اوفرمائیلې شو چه د هغې په بدله کښې به د هغې په مرئی کښې داور طوق اچولې شي.حضرت عروه رضي الله عنه فرمائی چه دا به د دوزخ زنځیر وی دکوم چه به یوه کړئې اویا اویا ګزه وی. ثوری رحمه الله فرمائی چه داد دوزخ طوق دې د کوم اوږدوالې چه اویالاسه دې.جوهری رحمه الله فرمائی چه دا د اوبښ د څرمن او اوبښ د وینښتونه جوړولې شی.مجاهد رحمه الله فرمائی د اوسپنې زنځیر.حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی کله چه داسورت نازل شو نودې کانړنې ښځې ام جمیل بن حرب پخپل لاس کښې دسوکې والا کانړې واخستو اوداسې وینا کولوسره دحضور ﷺ خواله راغله.(مذمما ابینا ودینه قلینا وامره عصینا) یعنې مونږ دمذمم منکر یودهغه ددین دښمنان اودهغه نافرمان یو.دې وخت کښې رسول الله ﷺ په کعبة الله کښې ناست وو حضور ﷺ سره زماپلار حضرت ابوبکر رضي الله عنه هم ووصدیق اکبر رضي الله عنه هغه په دې حالت کښې کتلوسره حضور ﷺ ته عرض اوکړو یارسول الله ﷺ دا راروانه ده هسې نه چه تاسو اووینی نوحضور ﷺ اوفرمائیل صدیق بې غمه اوسه دا ما نه شی لیدلې. بیا حضور ﷺ د قرآن پاك تلاوت کول شروع کړو چه د دې نه بچ شی. پخپله قرآن پاك فرمائی﴿وَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ جَعَلْنَا بَیْنَكَ وَبَیْنَ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُوْرًا﴾ یعنې چه ته کله قرآن پاك لولې نو مونږ ستااود ایمان نه راوړونکو په مینځ کښې پټه پرده اچوو.داځناوره راغله اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه سره اودریده او حضور ﷺ هم حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه سره ښکاره ناست وو خو قدرتی پردو د هغې په سترګو پردې واچولې حضور ﷺ نې اونه لیدې شو.حضرت ا بوبکرصدیق رضي الله عنه ته اووئیل چه مااوریدلې دی چه ستاملګری زما خرابې بیان کړې دې یعنې په شعرونوکښې زما مذمت کړې دې حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه اووئیل نه نه د رب البیت قسم حضور ﷺ ستا هیڅ خرابې نه دې بیان کړې نودا وینا کولوسره لاړه چه قریشوته پته ده چه زه د هغوی دسردار لوریم. (ابن ابی حاتم) ([1])

دام جمیل طواف کښې بد دعاء:-یوځل دې خپل اوږد څادراغوستې وو اوطواف نې کولو پښې په څادر کښې اونښته اواوخوئیده نو وئیل مذمم غرق شې. ام حکیم بنت عبدالمطلب اووئیل زه خو پاکه ښځه یم خپل ژبه نه شم خرابولې اودوستی کونکې یم نو داغ به اونه لګوم اومونږ ټول هم د یونیکه اولاد یو اوقریش یو اوبیا ته خو ښه پیژندونکې نې. بزار کښې دی دې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته اووئیل ستا ملګری زما بدی وئیلې نوحضرت صدیق اکبر رضي الله عنه قسم خوړلوسره جواب ورکړوچه نه خوحضور ﷺ ته شعروئیل ورځی اونه چرې حضور ﷺ شعرونه وئیلی.دهغې د تلونه پس صدیق اکبر رضي الله عنه دحضور ﷺ نه معلومه کړه چه هغې تاسو اونه لیدلې؟حضور ﷺ جواب ورکړوچه فرښته مینځ کښې ولاړه وه ترکومې چه هغه واپس نه وه تلې. ([2])

بعضې اهل علم وئیلی دی چه دهغې په غاړه کښې به ددوزخ د اوررسئې وی دکوم په ذریعه چه به هغه راښکلې شی اوددوزخ دپاسه نې راوستې شی بیابه نې سسته پریخودې شی اوددزخ بیخ ته به اور

[1]) حاکم : ۳٦۱/۲، الحمیدی : ۳۲۳. وهو حدیث حسن .
[2]) مسندالبزار : ۱۲۹٤،

سولې شی همداعذاب به هغې ته ورکولې شی.ددولچې رسنی ته به عربو(مَسَدٍ) ونیل په عربی شعرونو کښې همدالفظ په دې معنی کښې راوړلې شوې دی.دلته دا یادساتنی چه دادبرکت نه ډك سورت زمونږ دنبی ﷺ نبوت یو اعلی دلیل دې. ځکه چه څنګه د هغوی د بدبختنی خبر په دې سورت کښې ورکړې شوې دې. هم دغه شان واقعه هم اوشوه اودې دواړو ته ترآخره پورې ایمان نصیب نه شو نه خو هغوی په ښکاره مسلمانان شو او نه په باطن کښې نه پټ اونه ښکاره. نودا سورت ډیر زبردست ډیر صفا اوروښانه دلیل دې د حضورﷺ د نبوت.د الله ﷻ د پاره ټول تعریفونه دی اود هغه فضل اوکرم اود هغه د احسان او انعام برکت دې چه د دې سورت تفسیرهم ختم شو.

**(تفسیر سورت اخلاص)**

**دَ دې شان نزول او دَ دې دَ فضیلت بیان:**-مسنداحمدکښې دی چه مشرکانوحضورﷺ ته اوونیل دخپل رب صفتونه بیان کړه نو په دې باندې دا سورت نازل شو[1] د (الصَّمَدُ) معنی چه نه خوپیداشوې وی اونه د هغه اولاد وی ځکه چه څوك پیدا شوی وی هغه به یوخل مری هم اونوربه د هغه وارثان وی. الله ﷻ به نه مری اونه به دهغه څوك وارثان وی. د هغه په شان اودهغه د جنس نه بل څوك نشته. نه دهغه په مثل څه څیز شته.ترمذی وغیره کښې هم دا روایت دې[2] ابویعلی موصلی کښې هم دې یواعرابی داسوال کړې وو.په بل یوروایت کښې دی چه دمشرکانو دسوال په جواب کښې دا سورت نازل شو. د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه د هریوڅیز نسبت دې اود الله ﷻ نسبت دا سورت دې. (الصَّمَدُ) هغه چاته وانی چه ډډ نه وی[3] بخاری کتاب التوحیدکښې دی چه حضورﷺ یو وړوکې غوندې لښکرچرته اولیګلو کوم وخت چه هغوی واپس شو نوونی ونیل حضورﷺ چه په مونږ باندې کوم یوسردار جوړکړې وو هغه به د هر مانځه دقراءت په ختمیدوباندې داسورت(قُلْ هُوَاللّٰهُ) الخ لوستلو. حضورﷺ اوفرمانیل دهغه نه تپوس اوکړنی چه هغه داسې ولې کول په تپوس باندې هغه اوونیل چه دا سورت د رحمن صفت دې زما د دې لوستل ډیرخوښ دی. حضورﷺ اوفرمانیل هغه ته خبر ورکړه چه الله ﷻ هم هغه سره محبت لری[4]

بخاری کتاب الصلوه کښې دی چه یوانصاری‌ﷺ په مسجدقباکښې امام وودهغه داعادت ووچه الحمد لوستلو نه پس به نی داسورت لوستلو او بیا به چه نی کوم سورت لوستلواود کوم ځاې نه به نی لوستل غوښتل قرآن پاك به نی تلاوت کولو.یوځل مقتدیانو ونیل چه ته دا سورت لولې اوبیا ورسره بل سورت یو ځاې کوې داڅه دې؟ ته صرف هم دا وایه یا نی پریږده بل سورت لوله. هغه جواب ورکړو چه زه څنګه کوم هم دغه شان به کوم که تاسو غواړنی نو ما امام اوساتنی اوکه وانې نوزه به ستاسو امامت پریږدم.اوس په هغوی دا خبره سخته اولګیده پوهیدل چه په دوی ټولوکښې هم دې غوره دې.دهغه په موجودګی کښې دبل چا مونځ ورکول هم هغوی نه شو برداشت کولې. یوځل چه کله حضورﷺ هغوی له تشریف راوړو نوهغوی ورته داواقعه پیش کړه.حضورﷺ امام ته اوفرمانیل چه ته ولې د خپلو ملګرو خبره نه منې اوپه هریورکعت کښې دا سورت ولې لولې؟ هغه ونیل یارسول الله ﷺ زمادې سورت سره مینه ده حضورﷺ اوفرمانیل ددې محبت ته جنت ته اورسولې[5]دترمذی او مسند په یوحدیث کښې دی چه یوسړی حضور ﷺ ته عرض اوکړو چه زه دې سورت سره ډیره مینه کوم حضورﷺ اوفرمانیل د

---

[1]) احمد: ۱۳۳/٥،

[2]) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة الاخلاص : ۳۳٦٤.

[3]) المعجم الاوسط للطبرانی : ۷۳٦ ، وسنده ضعیف جدا .

[4]) صحیح بخاری کتاب االتوحید باب ما جاء فی دعا النبی ﷺ امته الی توحید الله تبارک وتعالی : ۹۳۲۰.

[5]) صحیح بخاری کتاب الاذان باب الجمع بین السورتین فی رکعة...... ۷۷٤.

دې سورت محبت به تا جنت ته اورسوی.(١) یوسړی څوك په دې سورت لوستلو د شپې واوریدو چه هغه باربار هم دا سردوباره کوی. سحر راغلو اوحضورﷺ ته ئی د دې ذکر اوکړو هغه دا د معمولی ثواب کار ګنړلو نو نبیﷺ اوفرمائیل د هغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې دا سورت د دریمې حصې د قرآن برابردې. (بخاری) (٢)

د صحیح بخاری په یوبل حدیث کښې دی رسول اللهﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائیل چه تاسو نه دا نه شی کیدلې چه په یوه شپه کښې دریمه حصه قرآن اولولئی نو دا په صحابه کرامو ﷺ باندې ګران پریوتل او وئی وئیل چه دومره طاقت خو په هریوکښې نه وی. حضورﷺ اوفرمائیل واورئی سورت اخلاص خو دریمه حصه قرآن دې. (٣) مسنداحمدکښې دی چه حضرت قتاده بن نعمانﷺ ټوله شپه هم دا سورت لوستلو حضورﷺ ته چه کله ذکر اوکړې شو نوونی فرمائیل چه دا سورت د نیم یا دریمې حصې د قرآن برابر دې. په یوبل روایت کښې دی چه حضرت ابوایوب انصاریﷺ اوفرمائیل چه په تاسوکښې دومره د چا طاقت شته چه هره شپه دریمه حصه قرآن اولولی. صحابه کرامو ﷺ وئیل دومره طاقت به دچاوی؟هغه اوفرمائیل واورئی ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾د دریمې حصې قرآن برابر دې. (٤) په دې کښې رسول اللهﷺهم تشریف راوړو حضورﷺ واوریدل نو وئی فرمائیل ابوایوب ربنتیاوائی.(مسند احمد)(٥)

ترمذی شریف کښې دی رسول مقبولﷺصحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائیل راجمع شئی نن زه تاسوته دریمه حصه قرآن اوروم خلق راجمع شوکیناستل حضورﷺ د کورنه تشریف راوړو اوسورت ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ نی اولوستلو اوبیائی کورته تشریف یوړو. اوس صحابه کرامو ﷺ خپل مینځ کښې خبرې شروع کړې چه حضورﷺ خووعده د دریمې حصې قرآن کړې وه چه دریمه حصه قرآن به اوروم کیدې شی د آسمان چرته څه وحی راغلې وی. دې کښې حضورﷺ بیا واپس تشریف راوړو وئی فرمائیل چه ما تاسو سره د دریمې حصې قرآن اورولووعده کړې وه واورئی دا سورت د دریمې حصې قرآن برابردې. (٦) د حضرت ابوالدرداءﷺ په روایت کښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائیلی آیاتاسود دې نه عاجزئی چه هره ورځ دریمه حصه قرآن اولولئی. خلقو عرض اوکړوحضورﷺ مونږ خود دې نه عاجز اوضعیف یو. حضورﷺ اوفرمائیل واورئی الله ﷻ دقرآن درې حصې کړی دی﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۝ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۝ لَمْ يَلِدْ ۝ وَلَمْ يُوْلَدْ ۝ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۝﴾ دریمه حصه ده(٧)(مسلم اونسائی)همداسې روایتونه دصحابه کرامورضوان الله اجمعین دپوره ډلې نه روایت دی.یوځل حضورﷺ د یوځائ نه تشریف راوړلو هغوی سره حضرت ابو هریرهﷺ هم وو نو حضورﷺ یوسړې د دې آیت په تلاوت کولوباندې واوریدونوونی فرمائیل چه واجب شو. حضرت ابوهریرهﷺ تپوس اوکړو څه واجب شو؟ونی فرمائیل جنت. (٨)(ترمذی نسائی). د ابویعلی په یوضعیف حدیث کښې دی ایا په تاسوکښې څوك دا طاقت نه لری چه سورت ﴿ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۝ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۝ لَمْ يَلِدْ ۝ وَلَمْ يُوْلَدْ ۝ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۝﴾ دشپې درې ځل اولولی؟داسورت ددریمې حصې قرآن برابر

---

١) احمد: ١٤١/٣، وسنده حسن ، ترمذی : ٢٩٠١. وهو صحيح.
٢) صحيح بخاری کتاب فضائل القران باب فضل ( قل هو الله احد): ٥٠١٣.
٣) صحيح بخاری حوالا سابق ٥٠١٥،
٤) احمد: ١٥/٣
٥) احمد: ١٧٣/٣،
٦) صحيح مسلم کتاب صلاة المسافرين باب فضل قراة قل هوالله احد: ٨١٢. ترمذی : ٢٩٠٠.
٧) صحيح مسلم حوالا سابق . :٨١١
٨) ترمذی کتاب فضائل القران باب ماجاء ل سورة الاخلاص :٢٨٩٧.

دي. ([1])مسنداحمدکښې دی چه عبدالله ابن حبیب ﷺ فرمائی چه مونږ تږی وو شپه تیاره وه دحضورﷺ انتظارووتشریف نی راوړواومونځ نی ورکړو.حضورﷺ تشریف راوړوزمالاس نی اونیولواوونی فرمائیل لوله نو زه چپ شوم. حضورﷺ بیااوفرمائیل اولوله نوماعرض اوکړو څه اولولم؟ حضورﷺ اوونیل سحر مابنام دري دري ځل﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾او﴿قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾او﴿قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾لوله دابه کافی شی. ([2])

**ددې سورت نور فضائل:-** نسائی کښې روایت دې چه د هرڅیز نه به داکفایت کوی.دمسندپه یوبل ضعیف حدیث کښې دی چاچه داکلمې لس ځل اولوستلې هغه ته به څلویښت لاکهه نیکئی ملاویږی هغه کلمې دادی ﴿لااله الاالله واحدااحدااصمد الم یتخذ صاحبة ولاولدا ولم یکن له کفوا احد﴾([3])ددې راوی خلیل بن مره دې کوم چه حضرت امام بخاری دا ډیرضعیف ښائی. مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی کوم سړې چه دا پوره سورت لس ځل اولولی الله ﷻ به د هغه د پاره په جنت کښې یومحل جوړکړی. حضرت عمر﷛ اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ مونږ خوبه ډیرمحلونه جوړکړو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ به د دې نه هم ډیر اوښه ورکونکې دې([4])دارمی کښې دی چه لس ځل باندې یومحل او په شل ځل دوه دیرشل ځل باندې درې الخ([5])داحدیث مرسل دې.د ابویعلی موصلی یوضعیف حدیث کښې دی چه کوم سړې دا سورت پنځوس ځل اولولی نود هغه د پنځوسوکالو ګناهونه معاف کیږی. ([6])هم د دې یود ضعیف سندوالا حدیث دې چه څوك دا سورت په ورځ کښې دوه سوه ځل اولولی دهغه دپاره یو زر پنځه سوه نیکئی لیکلې کیږی په دې شرط چه په هغه قرض نه وي. د ترمذی په یوحدیث کښې دی چه دهغه دپنځوسوکالوګناه معاف کیږی خوچه په هغه قرض نه وی([7])د ترمذی په یو غریب حدیث کښې دی چه کوم سړې د اوده کیدود پاره خپلې بسترې له لاړشی بیا په ښی اړخ باندې سملی او سل ځل داسورت اولولی نودقیامت په ورځ به الله ﷻ اوفرمائی اې زما بنده په خپل ښی طرف باندې جنت ته داخل شه([8])د بزارپه یو ضعیف حدیث کښې دی چه کوم سړې داسورت دوه سوه ځل اولولی الله ﷻ د هغه د دوو سووکالوګناه معاف کوی.

**اسم اعظم:-** نسائی کښې د دې آیت په تفسیرکښې دی نبیﷺ جمات ته تشریف راوړو ونی کتل چه یوسړې مونځ کوی اودعاغواړی په خپله دعاکښې دا وائی﴿اللهم انی اسئلك بانی اشهدان لا اله الا انت الاحد الصمد الذي لم یلد ولم یولد ولم یکن له کفوا احد﴾یعنی اې الله زه تانه سوال کوم ددې خبرې ګواهی ورکوم چه ستا نه بغیر بل معبود نشته ته یوازې نی بې نیاز نی نه دهغه موروپلار اونه اولاد شته اونه د ده په شان او نه ملګرې. حضورﷺ چه دا واوریده نو ونی فرمائیل چه زما قسم دې په هغه الله د چا په لاس کښې چه زما خان دې دې اسم اعظم سره دعااوغوښتله دالله ﷻ دې لوئ نوم سره چه کله هم سوال اوکړی نو ورکوی کله چه په دې نوم سره دعا غوښتلې شی قبلیږی([9]) ابویعلی کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه درې کارونه دی که د ایمان سره اوکړې شی نو چه د جنت په ټولو دروازو باندې کوم نه غواړی جنت ته

---

[1]) مسند ابی یعلی :٤١١٨،

[2]) ابو داود کتاب الادب باب مایقول اذا صبح : ٥٠٨٢، وسنده حسن : ٣٥٧٥.

[3]) احمد: ١٠٣/٤،

[4]) احمد : ٤٣٧/٣،

[5]) سنن دارمی کتاب فضائل القران باب فی فضل ( قل هو الله احد) : ٣٤٣٢.

[6]) دارمی حواله سابق : ٣٤٤١.

[7]) مسند ابی یعلی : ٣٣٦٥،

[8]) ترمذی کتاب فضائل القران باب ماجاء فی سورة الاخلاص: ٢٨٩٨،

[9]) ابوداود کتاب الوتر باب الدعاء : ١٤٩٣، وسنده صحیح ، ترمذی : ٣٤٧٥.

به خي اود جنت کومې حورې سره چه غواړي نکاح به کوي. څوك چه خپل قاتل معاف کړي او قرض په پټه سره ادا کړي اود هرفرض مانځه نه پس لس ځل سورت اخلاص اووائي.حضرت ابوبکر صديق ﷺ اووئيل يارسول الله که څوك دې دريواړوکښې يو کاراوکړي؟ حضورﷺ اوفرمائيل په يوباندې هم درجه ده. طبراني کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی کوم سړې چه دا سورت کورته په تلو کښې اووائي نو الله ﷻ به د دې کوروالا نه او د ده د ګاونډيانونه فقيری لرې کړی.ددې اسناد ضعيف دی. (۱)

فائده:- مسندابويعلی کښې دی حضرت انس ﷺ فرمائی چه مونږ رسول الله ﷺ سره د تبوك په ميدان کښې وو نمرد داسې رڼرا شغلو سره راووتلو چه مونږ د دې نه وړاندې داسې صفا روښانه او منور نه وو ليدلې. حضورﷺ له جبرائيل ﷺ تشريف راوړو نو حضورﷺ تپوس اوکړو چه نن د دې نمر د تيزو شغلو زياتې رڼراوپرقيدونکو شغلوڅه وجه ده؟نو وئی فرمائيل چه نن په مدينه کښې معاويهﷺ بن معاويهﷺ الليثی وفات شوې دې د کوم د جنازې د پاره چه الله ﷻ اويازره فرښتې دآسمان نه راليګلې دی تپوس ئې اوکړود هغه د کوم عمل په وجه؟ وئی فرمائيل سورت اخلاص به ئی د ورځې اوشپې تلوراتلو کيناستوپاسيدوکښې لوستلو. که ستاسو اراده وی نو زه به زمکه راغونډه کړم او تاسو به د هغه جنازه ادا کړئې؟ نوحضورﷺ اوفرمائيل ډيره ښه ده، بياحضورﷺ د هغه جنازه اداکړه(۲)دا حديث حافظ ابو بکربيهقی هم په خپل کتاب "دلائل النبوت" کښې ديزيدبن هارون په روايت سره راوړې دې.هغه دعلاء بن محمد نه روايت کوی په ده باندې دموضوع حديثونو بيانولو تهمت دې.والله اعلم.

مسندابويعلی کښې د ده بل سندهم دې په کوم کښې چه دې راوی نه دې. په دې کښې دی حضرت جبرائيل ﷺ حضورﷺ له تشريف راوړو چه د معاويه بن معاويه ليثی انتقال شوې دې آيا تاسو د هغه د جنازې مونځ کول غواړئې؟ حضورﷺ اوفرمائيل او. نو حضرت جبرائيل ﷺ خپل وزر اووهلو ټولې ونې اوغونډنی ښکته شوې د هغه جنازه حضورﷺ ته ښکاره شوه هغوی مونځ شروع کړو اود حضورﷺ شاته د فرښتو دوه صفونه وو او په هرصف کښې اويازره فرښتې وې حضورﷺ تپوس اوکړو چه د ده د دې مرتبه څه وجه ده؟ حضرت جبرائيل ﷺ اوفرمائيل د دې سورت سره ئی محبت اود هروخت تلوراتلوکښې کيناستو پاسيدوکښې د دې تلاوت. (۳)دا بيهقی هم روايت کړې دې اود بيهقی په سندکښې محبوب بن بلال دې.

ابوحاتم رازی ﷺ فرمائی چه دا مشهورنه دې. ابويعلی کښې دا راوی نه دې هلته د ده په ځائ ابوعبد محمود دې خوتيك خبره د محبوب کيدل دی. د دې روايت نورهم ډير سندونه دی او ټول ضعيف دی مونږ د اختصارد پاره دلته نقل نه کړه. مسنداحمدکښې دی حضرت عقبه بن عامرﷺ فرمائی چه يوه ورځ زما رسول الله ﷺ سره ملاقات اوشو مازر د حضورﷺ لاس اونيولو او اومې ونيل يارسول اللهﷺ د مؤمن خلاصې په کوم عمل کښې دې؟ حضورﷺ اوفرمائيل اې عقبهﷺ خپله ژبه اونيسه هم په کورکښې کينه او په خپلو خطاګانو باندې ژاړه. بياچه کله دوباره زما حضورﷺ سره ملاقات اوشو نو حضورﷺ پخپله زما لاس اونيولو ونی فرمائيل اې عقبه ﷺ زه تاته د تورات انجيل زبور اوقرآن پاك کښې نازل شوو ټولوسورتونونه درې بهترين سورتونه اوښايم ماوئيل حضورﷺ ضرور ارشاد اوفرمائی الله ﷻ دې ما په تاسوباندې قربان کړی. نوحضورﷺ ماته سورت ﴿قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ﴾او﴿قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او﴿قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ اولوستل. بيائی اوفرمائيل ګوره عقبه ﷺ داهير نه کړې اوهره شپه دالوله. فرمائی چه بياماداهيرنه کړل اونه مې د دې د لوستلونه بغيرشپه تيره کړه. مابيا حضورﷺ سره ملاقات

---

(۱) مسند ابی يعلی : ۱۷۹٤،
(۲) المعجم الکبير : ۲٤۱۹،
(۳) مسند ابی يعلی : ٤۲٦۷،

اوکړواو په تندئی سره مې دحضور ﷺ لاس مبارك اونيولوعرض مې اوكړويارسول الله ﷺ ماته د بهرنيواعمالوارشاد اوفرمايه.حضور ﷺ اوفرمائيل واوره څوك چه تاسره تعلق ختموی ته هغه سره جوړه وه څوك چه تا محروم كړی ته هغه ته وركوه څوك چه په تا ظلم كوی ته هغه معاف كوه. (۱) د دې بعضې حصه امام ترمذی رحمه الله هم د زهد باب كښې نقل كړې ده فرمائی دا حديث حسن دې.(۲) مسند احمد كښې هم ددې بل سند دې. صحيح بخاری كښې د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې نبی ﷺ چه به كله د شپې بسترې له تشريف راوړو نو هره شپه به نی دا درېواړه سورتونه لوستل خپل دواړه تلی به نی يوځائ كړل په هغې به دم كړل او په خپل بدن مبارك به نی راښكل تركومې ځائ چه به نی لاس مبارك رسيدلو رسولو به نی. اول په سر بيا په مخ او بيا مخامخ بدن باندې به نی درې ځل داسې كول. (۳) داحديث په سنن كښې هم دې.

| آياتونه | | سورة الاخلاص مكية وهي اربع ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ④ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ① |

قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۚ لَمۡ يَلِدۡ ۙ

اووايه | هغه الله دې | يو | الله بې پرواه (بې حاجته) دې | نه ئې زيګولې دې څوك |

راې زما محبوبه، ته اووايه چې الله تعالى يو دې | الله بې پرواه دې | نه دهغه نه څوك پيدا دې

وَلَمۡ يُوۡلَدۡ ۙ وَلَمۡ يَكُنۡ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۚ

او نه دې زيګولې شوې دې هغه دچانه | او نشته هغه لره | برابر | هيڅوك |

اونه هغه د چا نه پيدا دې |...................... اوهيڅوك دهغه سيال (برابر) نه دې

قوله تعالى :- قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ

د الله تعالى د توحيدبيان:- د دې د نازليدلووجه وړاندې بيـان شوې ده. حضرت عكرمه رضي الله عنه فرمائی چه يهوديانو به وئيل مونږ د حضرت عزير ﷺ عبادت كوو چه د الله ﷻ خوئ دې اونصرانيانو به وئيل مونږ د حضرت عيسى ﷺ عبادت كوو چه د الله ﷻ خوئ دې مجوسيانو بـه وئـيـل چـه مونږ د نمر سپوږمئی عبادت كوو اومشركانو به وئيل چه مونږ بت پرست يو نو الله ﷻ دا سورت نازل كړو چه اې نبی ﷺ او وايه چه زمونږ معبود خو صرف يو الله دې چه واحد دې احد دې د هغه په شان څوك نشته د هغه نه څوك وزيرشته اونه څوك شريك اونه د هغه په شان څوك شته اونه د هغه څوك هم جنس شته اونه دهغه څوك برابرشته د كوم نه چه بغيربل چاكښې الوهيت نشته.ددې لفظ اطلاق صرف هم دهغه په ذات باندې كيږی.هغه په خپلوصفتونو اود حكمت نه په ډكو كارونو كښې خان له او بې مثال دې. هغه صمد دې يعنی ټول مخلوق د هغه محتاج دې اوهغه د ټولونه بې پرواه دې.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه صمد هغه دې چه په خپله سردارئی كښې او خپل شرافت كښې په خپله بزرګئی كښې او خپل عظمت كښې خپل حلم اوعلم كښې په خپل حكمت او تدبر كښې د

---

(۱) احمد: ۱۴۸/۴.

(۲) ترمذی كتاب الزهد باب ماجاء ل حفظ اللسان: ۲۴۰۶.

(۳) احمد: ۱۵۸/۴، وسنده حسن.

تولو نه زيات وي اودا صفتونه صرف هم په الله ﷻ كښې موندلې شي د هغه برابراود هغه په شان بل څوك نشته هغه الله سبحانه وتعالى په ټولوباندې غالب دې او په خپل ذات اوصفاتوكښې خان له او بې مثال دې.دصمد دا معنى هم كړې شوې ده چه د ټول مخلوق د فناكيدونه پس هم باقى وي كوم چه د هميشه بقاوالا د ټولوحفاظت كونكې اود كوم ذات چه لازوال او غيرفانى وي.

حضرت عكرمه رضي الله عنه فرمائى چه صمدهغه دې چه نه څه خورى اونه د هغه نه څه راوځى اونه هغه د چا نه راوځى يعنى نه د هغه اولاد وي اونه موريلار .دا تفسيرډير ښكلى او مزيدار دې.اود ابن جرير رحمه الله په روايت سره دحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه صراحتًا دا نقل دى لكه څنګه چه اول تيرشو. اود ډيرو صحابه كرامو رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله نه روايت دې چه صمد وائى كلك څيز ته كوم چه ډډ نه وي د كوم چه خيټه نه وي. شعبى رحمه الله وائى څوك چه نه خورى اونه څكى. عبدالله ابن بريده رضي الله عنه فرمائى صمدهغه نوردې كوم چه روښانه وي او پرق پروق والا وي. په يومرفوع حديث كښې هم دى چه صمدهغه دې د چا چه خيټه نه وي.(¹) خود دې مرفوع كيدل صحيح نه دى صحيح دادى چه موقوف دې.

حافظ ابوالقاسم طبرانى رحمه الله په خپل "كتاب السنه" كښې د لفظ صمد په تفسيركښې دا ټول اقوال وغيره وارد كولوسره ليكى چه په اصل كښې دا ټول رښتيا دى او صحيح دى دا ټول صفتونه زمونږ په رب عزوجل كښې دى د هغه طرف ته ټول محتاج دى اوهغه د ټولونه لوئ سردار او د ټولونه لوئ دې نه د هغه خيټه شته اونه هغه ډډ دې نه هغه خورى اونه څكى ټول فانى دى او هغه باقى دې وغيره

قوله تعالى:- لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ

بيا فرمائى نه د هغه اولاد شته اونه د هغه مور پلار نه ښځه. لكه چه ارشاد دې ﴿ بَدِيعُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ أَنّٰى يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُنْ لَهُ صَاحِبَةٌ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ يعنى هغه د زمكې اوآسمان پيدا كونكې دې د هغه به څنګه اولادوى؟دهغه ښځه نشته. هريوڅيز هم هغه پيداكړې دې يعنى هم هغه دهريوڅيز خالق اومالك دې بيا به د هغه په مخلوق او ملكيت كښې د هغه په شان اود هغه برابر څوك وي؟ هغه د ټولو عيبونو او نقصانونو نه پاك دې. بل ځائ ارشاد دې ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا﴾ الخ يعنى داكافران وائى چه دالله اولاد دې تاسو يوډيرخراب څيز راوړو نيزدې ده چه آسمان اوشليږى او زمكه اوشليږى او غرونه ذره ذره شى او راپريوځى په دې وجه چه هغوى اوونيل د الله اولاد دې سره د دې چه د الله ﷻ سره دا لائق نه دى چه د هغه اولاد وي په ټوله زمكه او آسمان كښې ټول په ټول د الله ﷻ غلامان جوړيږى راتلونكى دى الله ﷻ سره ددغه ټولوشميردې او هغه داټول شميرلې ساتلى دى اودوى ټول يو په يو هغه سره د قيامت په ورځ حاضريدونكى دى.بل ځائ ارشاد دې ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهُ بَلْ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ كُلٌّ لَهُ قٰنِتُونَ﴾ يعنى دې كافرانو اوونيل چه د رحمن اولاد دې الله ﷻ د دې نه پاك دې بلكه هغه خو د الله ﷻ باعزت بنديګان دى په خبره كښې هم د هغه نه وړانديوالې نه كوى اوهم د هغه په فرمان باندې عمل كونكى دى. بل ارشاد دې ﴿وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُونَ﴾ يعنى هغوى د الله ﷻ اوپيريانو په مينځ كښې نسب قايم ساتلې دې. سره د دې چه دا پيريان خو پخپله د هغه په حكم منلوكښې حاضردى الله ﷻ د هغوى د بيان كړې شوى عيبونونه اوچت او پاك دې.

صحيح بخارى كښې دى چه د تكليف وركونكو خبرو اوريدو باندې صبر كولوكښې د الله ﷻ نه زيات صبر كونكې بل څوك نشته. خلق د هغه اولاد ښائى او هغه بيا هم دوى ته رزق وركوى او عافيت او صحت وركوى(²)د بخارى شريف په يوبل روايت كښې دى چه الله ﷻ فرمائى دا بنيادم ما دروغ ګڼړى

(¹) المعجم الكبير : ١١٦٢،

(²) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ( ان الله هو الرزاق ذوالقوة المتين ) : ٧٣٧٨.

حالانکه ده له داسې نه دی کول پکار ماته کنځلې کوی ده دا هم نه وو پکار د هغوی ما دروغ گنړل خو داسې دی هغوی وائی چه څنگه په اول ځل الله ﷻ مونږ پیداکړې یو داسې به مو بیا نه واپس کوی. د اول ځل پیدا کول د دویم ځل پیدا کولونه څه آسان خونه وونوچه کله زه په هغې باندې قادریم نو په دې باندې ولې نه یم؟ اودهغه ماته کنځل کول دا دی چه هغه دا وائی د الله ﷻ اولاد دې سره د دې چه یوزه یوازې یم زه یویم زه صمد یم نه زما اولاد نه زما مور پلار اونه زما په شان بل څوک شته. (۱)

﴿الحمدلله﴾ د سورت اخلاص تفسیر د الله ﷻ په فضل او کرم اد هغه په رحم اومهربانئی سره ختم شو.

**﴿تفسیرسورت فلق او سورت ناس﴾**

**تعارف او فضائل:**-مسنداحمد کښې دی چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ به دا سورت اود دې نه پس سورت په قرآن پاك کښې نه لیکلو نو ابی ﷺ اوفرمائیل چه چه ابی بن کعب نه تپوس اوشو چه زما گواهی ده رسول الله ﷺ ماته خبرراکړې چه جبرائیل ﷺ حضور ﷺ ته اوفرمائیل چه﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ الخ نوما هم دا اووئیل. نومونږ هم داسې وایولکه څنگه چه حضور ﷺ وئیلې دی. (۲)حضرت ابی بن کعب ﷺ نه د دې دواړو سورتونوباره کښې تپوس کولې شی او وئیلی شی چه ستا رور حضرت ابن مسعود ﷺ خودا د قرآن کریم نه کټ کړې وو نو وئی فرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو ماته وئیلې شوی وو چه وایه نو ما اووئیل نو بیا مونږ هم وایوچه څنگه حضور ﷺ وئیلی دی(۳) (ابوبکرحمیدی) مسندکښې هم دا روایت د الفاظو په وړاندې روستوکولوسره نقل دې(۴)او په بخاری شریف کښې هم. (۵)مسندابویعلی کښې دی چه حضرت ابن مسعود ﷺ به دا دواړه سورتونه په قرآن کریم کښې نه لیکل او نه به ئی په قرآن کښې دا شمیرل بلکه د قاریانو اوفقهیانو په نیزد مشهوره خبره دا ده چه حضرت ابن مسعود ﷺ به دا دواړه سورتونه په قرآن کریم کښې نه لیکل کیدې شی چه هغه د حضور ﷺ نه نه وی اوریدلی او په تواترسره هغه ته رسیدلې نه وی.

**فائده:**- بیا شاید دې د خپل قول نه اود جماعت دقول طرف ته واپس راگرځیدلی وی څکه چه صحابه کرام ﷺ داسورتونه د قرآن په څلوروغتو نسخو کښې داخل کړل د کوم نسخې چه څلورو واړو طرفونه خورې کړې شوې ولله الحمد. په صحیح مسلم کښې د حضرت عقبه بن عامر ﷺ نه روایت دې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسونه دی لیدلی چه یوڅو آیاتونه په ما باندې هغه شپه داسې نازل شوی د کوم په شان چه مو کله هم نه دی لیدلی بیاحضور ﷺ د دې دواړو سورتونوتلاوت اوفرمائیلو. (۶) داحدیث مسنداحمد ترمذی او نسائی کښې هم دې. امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن صحیح وائی.

مسنداحمد کښې دی چه حضرت عقبه ﷺ فرمائی چه ما د حضور ﷺ د سورلئی جلب نیولې د مدینې په کوڅوکښې گرځیدلو. حضور ﷺ اوفرمائیل اوس ته راشه سور شه ما په دې خیال که د حضور ﷺ خبره او نه منم نو نافرمانی به اوشی سوریدل منظور کړل لږ ساعت پس زه راکوز شوم اوحضور ﷺ سور شو. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل عقبه ﷺ زه تاته دوه بهترین سورتونه اونه ښایم؟ ما عرض اوکړو یارسول الله ﷺ ضرور راوښائې نوحضور ﷺ ماته ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ اوخودل بیامونځ اودریدو

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة قل هو الله احد: ۴۹۷۴.
(۲) احمد: ۱۲۹/۵، وسنده حسن ابن حبان : ۷۹۷.
(۳) مسند حمیدی: ۳۷۶، محقق وسنده صحیح .
(۴) احمد: ۱۲۹/۵، وسنده حسن .
(۵) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة قل اعوذ برب الناس : ۴۹۷۷.
(۶) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب فضل قراة المعوذتین : ۸۱۴، ترمذی : ۳۳۶۷.

اوحضورﷺ په مانخه کښې د دې دواړو سورتونوتلاوت اوکړو. بیانې ماته اوفرمائیل چه تا اولیدل واوره چه ته کله اوده کیږې کله اودریږې نوداوایه([1])په ترمذی ابوداؤد اونسائی کښې همداحدیث دې.
دمسنداحمد په یوبل حدیث کښې دیعقبه بن عامرؓ ته حضورﷺ د هرمانځه په وخت کښې ددې دوو سورتونو د تلاوت حکم ورکړو([2])داحدیث هم په ترمذی ابوداؤد اونسائی کښې دې امام ترمذیؒ دا غریب ګڼړی او یوبل روایت کښې دی چه د دې په شان سورتونه تالوسنلې نه دی.([3])دحضرت عقبهؓ والا حدیث په کوم کښې چه دحضورﷺ په سورلئی سره د هغه کیدل ذکر دی د دې په بعضې طرق کښې داهم دی چه کله حضورﷺ ماته دا سورتونه اوخودل نو زه نې څه ډیر خوشحاله اونه لیدم نو ونې فرمائیل شاید ته دا واړه سورتونه ګنړې واوره د مانځه قیام کښې د دې سورتونو قراءت په شان بل سورت نشته([4])دنسائی په حدیث کښې د دې په شان سورتونه د چا پناه نیولود پاره نور نشته([5]) یو روایت کښې دی چه د سحر فرض مونځ حضورﷺ هم په دې دواړو سورتونو باندې اداکړو ([6])
بل حدیث کښې دی چه حضرت عقبهؓ به د حضورﷺ سورلئی پسې شاته تلو اود حضورﷺ به قدم باندې به نې لاس کیخودو وئیل به نې حضورﷺ ماته سورت هود یا سورت یوسف تلاوت کړنې حضورﷺ اوفرمائیل چه د الله ﷻ په نیزد د ګټه ورکونکې سورت د ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ نه زیات نشته.
([7]) بل حدیث کښې دی چه حضورﷺ خپل تره حضرت عباسؓ ته اوفرمائیل زه تاته بنایم چه پناه اخستونکود پاره د دې دواړو سورتونونه غوره سورتونه نور نشته([8])ډیر احادیث د خپل تواتر په وجه د اکثروعلماؤ په نیزد بالکل فائده ورکوی اوهغه حدیث هم بیان شو چه حضورﷺ د دې دواړو سورتونو اوسورت اخلاص باره کښې اوفرمائیل چه په څلورو واړو آسمانی کتابونوکښې ددې په شان سورتونه نه دی نازل شوی.
په نسائی وغیره کښې دی چه مونږ حضورﷺ سره په یوسفرکښې ووسورلئی کمې وې نو په نمبرنمبر به سوریدلوحضورﷺد یوسړی په اوږو باندې لاس کیخودو او دا دواړه سورتونه نې ورته اولوستل ونې فرمائیل چه کله مونځ کوې نو په دې سره نې کوه([9])په ظاهره دا معلومیږی چه دا سړې به عقبه بن عامرؓ وو. والله اعلم.د حضرت عبدالله بن اسلمؓ په سینه باندې لاس مبارک کیخودو ونې فرمائیل وایه هغه پوهه نه شو چه څه اووایم بیا اوفرمائیل چه وایه سورت ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۝ اللَّهُ الصَّمَدُ ۝ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۝ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ۝﴾حضورﷺ بیااوفرمائیل وایه نوسورت فلق نې اولوستلو بیانې هم دا اوفرمائیل نو سورت ناس نې اولوستلو نو حضورﷺ اوفرمائیل هم دغه شان پناه غواړه د دې په شان پناه غوښتونکی سورتونه نور نشته. (نسائی) ([10])

---

[1]) احمد : ۱۴۴/۴، ابوداود ، کتاب الوتر باب المعوذتين ، : ۱۴۶۲، وسنده حسن .
[2]) ابوداود ، کتاب الوتر باب الاستغفار : ۱۵۲۳، وسنده حسن ، ترمذی : ۲۹۰۳.
[3]) احمد: ۱۴۶/۴،
[4]) احمد: ۱۴۹/۴، نسائی کتاب الاستعاذة باب ماجاء فی سورتين : ۵۴۳۵، وهو حديث حسن
[5]) السنن الكبرى للنسائي: ۷۸۰۷، وفی الصغرى : ۵۴۳۳، وهو حديث حسن .
[6]) نسائی کتاب الاستعاذة باب ماجاء فی سورتين : ۵۴۴۰، وهو حديث حسن .
[7]) نسائی کتاب الاستعاذة باب ماجاء فی سورتين : ۵۴۳۷، وهو حديث صحيح .
[8]) نسائی کتاب الاستعاذة باب ماجاء فی سورتين : ۵۴۴۱ ، وهو حديث صحيح .
[9]) احمد: ۲۴/۵، وسنده حسن .
[10]) السنن الكبرى : للنسائي:۷۸۴۵،

دنسائي په يوبل حديث كښې دي په حضرت جابر رضي الله عنه باندې حضور ﷺ دا دواړه سورتونه اولوستل بياني اوفرمائيل چه د وايه د دې په شان سورتونه به نور اونه لولې.[1] دحضرت ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها والا حديث وړاندې تيرشو چه حضور ﷺ به دا لوستل او په دواړو لاسونومباركوبه ئې پوك وهل په خپل سر مبارك مخ مبارك، او په مخامخ بدن مبارك به ئې راښكل. موطاء امام مالك رحمه الله كښې دي چه كله به حضور ﷺ بيمار شو نو دا دواړه سورتونه به ئې لوستل او په خپل ځان به ئې پوك وهل. كله چه دحضور ﷺ بيمارى سخته شوه نوعائشه رضي الله عنها په معوذتين لوستل اوپخپله به ئې د حضور ﷺ لاسونه دهغه په بدن مبارك باندې وهل اوودې نه به ئې اراده دحضور ﷺ د مباركولاسونوبركت كيدل وو.[2] دسورت "ن" په تفسيركښې آخره كښې دا حديث تيرشوې دې چه رسول الله ﷺ به د پيريانو او انسانانودستركونه پناه غوښتله. كله چه دا دواړه سورتونه نازل شو نو حضور ﷺ هم دا واخستل او باقي ټول ئې پريخودل. امام ترمذى رحمه الله دې ته حسن صحيح وائي.[3]

| آياتونه | | سورة الفلق مكية وهي خمس ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑤ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ① |

| قُلْ | اَعُوْذُ | بِرَبِّ الْفَلَقِ ① | مِنْ شَرِّ مَا | خَلَقَ ② |
|---|---|---|---|---|
| اووايه ا | زه پناه غوارم ا | په رب دصبا سره ا | دشردهر هغه څيز نه ا | چې هغه پيدا كړې دې ا |

(اې محبوبه) ته اووايه چې زه دصبا په رب سره پناه غواړم! دهر هغه څيز دشر نه چې هغه پيدا كړې دې

| وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ | اِذَا وَقَبَ ③ | وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ | فِي الْعُقَدِ ④ |
|---|---|---|---|
| او دشردشپې دتيارې نه ا | كله چې خوره شي ا | او دشرد پوكو وهونكونه ا | په غوټو كښې ا |

اودشپې دتيارې دشرنه كله چې هغه خوره شي او دجادو كونكو ښځود شرنه اچې په غوټو باندې پوكې وهى

| وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ | اِذَا حَسَدَ ⑤ |
|---|---|

او دشردحسد كونكي نه ا كله چې حسد اوكړى ا

اود حسد كونكې د شر نه كله چې هغه حسد كوى

**قوله تعالى:-** بِرَبِّ الْفَلَقِ ①

**دفلق معنى:** حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي چه فلق وائي سحرته او پخپله قرآن كښې يوبل ځائ كښې ارشاد دې ﴿فَالِقُ الْاِصْبَاحِ﴾ ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه د فلق نه مراد مخلوق دې. كعب احبار رضي الله عنه فرمائي چه فلق په دوزخ كښې يوځائ دې كله چه د هغې دروازه كولاووى نود هغه اُور د ګرمئ او سختوالى نه ټول دوزخ چغې وهى. په يو مرفوع حديث كښې هم دې سره نيزدې نيزدې روايت دې خوهغه حديث منكر دې داهم بعضې خلق وائي چه دا د دوزخ نوم دې.

---

[1] نسائي كتاب الاستعاذة باب ماجاء في سورتين : ٥٤٤٣، وهو حديث حسن.
[2] صحيح بخارى كتاب فضائل القرانا باب فضل المعوذات : ٥٠١٦، صحيح مسلم: ٢١٩٢.
[3] ترمذى كتاب الطب : باب ماجاء في الرقية بالمعوذتين: ٢٠٥٨.

امام ابن جریر رحمه الله فرمائي چه دټولونه زيات صحيح قول رومبي دې يعني دې نه مراد سحر دې امام بخاري رحمه الله همدا فرمائي اوهم دا صحيح دي. د ټول مخلوق د بدئې نه په كوم كښې چه دوزخ هم شامل دې اوابليس او د ابليس اولادهم. دغاسق نه مرادشپه ده.د اذا وقب نه د نمر ډوبيدل مراد دي يعني شپه چه كله تياره راوړې راشي.ابن زيد رضي الله عنه وائي عربوبه د ثريا ستورې ډوبيدوته غاسق ونيل بيمارئي او وباګاني به ددې د واقع كيدو په وخت كښې زياتيدې اود دې د راختلو په وخت به پاسيدلې. په يو مرفوع حديث كښې دى چه ستورې غاسق دې خود دې مرفوع كيدل صحيح نه دى.بعضې مفسرين وائي چه دې نه مراد سپوږمئ ده.

دهغوى دليل دمسنداحمد دا حديث دې په كوم كښې چه رسول الله ﷺ دعائشه صديقه رضي الله عنها لاس نيولې وو سپوږمئ ته اشاره كولوسره فرمائيلې وو داالله ﷻ نه د دې غاسق د بدئې نه پناه غواړه(١) بل يو روايت كښې دى چه د غاسق او اذاوقب نه هم دا مراد دى. په دواړو اقوالوكښې په آسانئ سره تطبيق كيدلې شي چه د سپوږمئ راختل اود ستورو ښكاره كيدل وغيره دا هرڅه د شپې وخت كښې كيږي كله چه شپه راشي. والله اعلم

**قوله تعالى:- وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ**

**په غوټوباندې پوكې وهونكې ښځې** :-غوټه وركول اوبه هغې دپوكووهونكوښځو نه مراد جادوګرې ښځې دى.مجاهد رحمه الله فرمائي چه بالكل شرك سره نيزدې دى هغه منتر كوم باندې چه دم كوى او د مارخورلي دم كوى او په آسيب زده باندې. په دويم حديث كښې دى چه جبرائيل عليه السلام رسول الله ﷺ له تشريف راوړو او وئې فرمائيل اې محمد ﷺ ته بيمار يې حضور ﷺ اوفرمائيل هو نو حضرت جبرائيل عليه السلام دادعااولوستله (بسم الله ارقيك من كل داء يوذيك ومن شر كل حاسد وعين الله يشفيك) يعني د الله ﷻ په نوم سره دم كوم د هرې هغه بيمارئې نه چه تاته خفګان دررسوى اود هرحاسد د بدئې نه اود بدنظر نه دې تاله الله ﷻ شفادركړى. (٢)

**په حضور ﷺ باندې جادوكړې شوې وو**:- دې بيمارئې چه كيدې شي چه هغه بيمارى وى په كوم وخت چه په حضور ﷺ باندې جادوكړې شوې وو بيا الله ﷻ حضور ﷺ ته عافيت اوشفا وركړه اودحاسد جادوګرو مكر ئې رد كړو اودهغوى تدبير اوچل ئې بې اثره كړو اوهغوى رسوااو خوار كړل.خوسره د دې رسول الله ﷺ چرې هم په خپل خان باندې جادوكونكو ته غصه اورټنه پورې نه ده كړې.الله ﷻ دهغوى كفايت اوكړو اوورته ئې عافيت او شفاوركړه.

**نبي كريم ﷺ باندې جادو چا كړى وو؟**:-مسنداحمد كښې دى چه په نبي ﷺ باندې يويهودي جادو كړې وو په هغې سره هغه ورځې بيمار ووبيا حضرت جبرائيل عليه السلام راغلو ورته ئې اوخودل چه فلانكى يهودى په تا جادوكړې دې او فلانكي فلانكي كوهي كښې غوټې وركړې كيخودې دى.تاسو خوك وراوليګئ.حضور ﷺ خوك وراوليګلو اودهغه كوهي نه ئې هغه جادو راوويستلو غوټې كولاو كړې او هغه اثرلاړو. بيا نه حضور ﷺ دې يهودى ته د دې ذكر اوكړو اونه ئې د هغه په وراندې خله ګنده كړه(٣)

په صحيح بخارى كتاب الطب كښې د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې په رسول الله ﷺ باندې جادو كړې شوې وو حضور ﷺ به داخيال كولوچه ازواج مطهراتو له راغلې خو هغوى به نه وو راغلى.

حضرت سفيان رضي الله عنه فرمائي چه دا د جادو لوئ اثر ووكله چه دحضور ﷺ داحالت شو نو يوه ورځ حضور ﷺ اوفرمائيل عائشه مادخپل رب نه تپوس اوكړو اوهغه ماته اوخودل.دوه كسان راغلل يوزما سر ته

---

(١) احمد: ٦١/٦، ترمذى كتاب تفسير القرآن باب و من سورة المعوذتين : ٣٣٦٦. وسنده حسن.

(٢) صحيح مسلم كتاب السلام باب الرض والرقى: ٥١٨٦.

(٣) احمد: ٣٦٧/٤، نسائى كتاب تحريم الدم ، باب سحرة اهل الكتاب : ٤٠٨٥، وهو حديث صحيح .

اودريدواوبل پښو ته،دسروالاد پښو والا نه تپوس اوکړود ده څه حال دي؟نوهغه اوونيل په ده جادو شوي دي.تپوس ئې اوکړو چاپرې جادو کړې دي؟ونيل لبيدبن اعصم چه د بنی زريق قبيلې دې چه د يهوديانوملګری دی اومنافق سړې دی.ونيل په کوم څيز کښې دی؟ونيل د سر په ويښتو اوګمنزه کښې دی. تپوس ئې اوکړو اوښايه کوم ځائ دې؟ ونيل دلمدې کهجورې پوستکی کښې د کانړی لاندې ذروان کوهی کښې دی.بيا حضورﷺ دې کوهی ته تشريف راوړو اوهغه ئې راوويستل.دهغې اوبه داسې وې لکه د نکريزو ګنده اوبه دې سره خواکې دکهجورو ونې دشيطانانو دسرونو په شان وې ماونيل يارسول اللهﷺ ده نه بدله اخستل پکار دی.حضورﷺ اوفرمائيل چه الحمدلله اللهﷻ خوماته شفاراکړه زه خو په خلقو کښې بدی خورول هم نه خوښوم. ([1])

بل روايت کښې داهم دی چه يوکاربه ئې کړې نه وواود دې داثر په وجه به ورته معلوميدله چه لګه کړې وی.اوداهم ده چه هغه کوهی د حضورﷺ په حکم باندې بند کړې شو([2])دا هم روايت دې چه ترشپږو مياشتو پورې دهغوی داحالت وو([3]) تفسيرثعلبی کښې د حضرت ابن عباسؓ اوحضرت عائشه صديقهؓ نه روايت دې چه د يهوديانو يوماشوم به د نبی کريمﷺ خدمت کولو هغه ته يهوديانو خودلې وو چه يوڅو ويښته د رسول اللهﷺ اودحضورﷺ د ګمنزې يوڅو غاښونه راوړه چه او په هغې باندې جادواوکړو.پدې کارکښې ډيرکوشش د لبيدبن اعصم ووبيا په ذروان نومې کوهی کښې کوم چه د بنوزريق ووهغې کښې اوغورزول. بياحضورﷺ بيمار شواود سرمبارك ويښته ئې رژيدل خيال به ورله راتلوچه زه بيبيانوله راغلې يم خو نه به ووراغلې.حضورﷺ د دې د لرې کولوکوشش کولوخوچه ورته نه معلرميدله شپږو مياشتوپورې داحالت وو بيا داواقعه اوشوه کومه چه پورته بيان شوه چه د فرښتو په ذريعه حضورﷺ ته د دې ټول حال علم اوشو اوحضورﷺ حضرت علیؓ حضرت زبيرؓ اوحضرت عماربن ياسرؓ اوليکل دکوهی نه ئې هغه ټول څيزونه رااويستل.په هغې کښې يوتار وو چه په هغې دولس غوټې لګيدلې وې او په هره غوټه کښې يوه ستن ټومبلې وه بيا اللهﷻ دا دواړه سورتونه نازل کړل حضورﷺ به يويوآيت لوستلو اود هغې به يوه يوه غوټه پخپله کولاويدله کله چه دا دواړه سورتونه پوره شو هغه ټولې غوټې کولاوشوې اوحضورﷺ بالکل صحيح شو. بل خواحضرت جبرائيلؑ هغه دعا اولوستله کوم چه پورته ذکر شوه خلقو ونيل حضورﷺ مونږ ته اجازت راکړه چه دغه خبيث قتل کړو حضورﷺ اوفرمائيل چه نه اللهﷻ خو ماته صحت راکړو اوزه په خلقوکښې شرفساد خورول نه غوارم. داروايت په تفسير ثعلبی کښې بغيردسند نه نقل دې.پدې کښې غرابت هم دې اوبعضې حصوکښې سخت نکارت هم دې. اود بعضو شواهد هم دی کوم چه بيان شو. والله اعلم.

| اياتونه | | سورة الناس مكية وهي ست ايات وركوعا واحدا | | رکوع ګانې |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٦ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ١ |

| قُلْ | اَعُوْذُ | بِرَبِّ النَّاسِ ۙ﴿١﴾ | مَلِكِ النَّاسِ ۙ﴿٢﴾ | اِلٰهِ النَّاسِ ۙ﴿٣﴾ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| اووايه | زه پناه غوارم | په رب دانسانانو سره | په بادشاه دانسانانو سره | په معبود دانسانانو سره |

[1]) صحيح بخاری كتاب الطب باب هل يستخرج السحر : ۷۵٦۵، صحيح مسلم: ۲۱۸۹.

[2]) صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب صفة ابليس وجنوده: ۳۲٦۸.

[3]) احمد: ٦/٦۳ وسنده صحيح .

| |
|---|
| (اې ما محبوبه) ته او وايه چې زه د خلقو په رب سره پناه غواړم \| چه د ټو خلقو بادشاه دی |
| مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ ۙ الْخَنَّاسِ ۙ الَّذِیْ یُوَسْوِسُ |
| د شر د وسوسې اچونکي نه \| بار بار راتلونکی نه \| هغه \| چې وسوسې اچوي \| |
| د ټولو خلقو معبود دی\| د هغه شيطان د شر نه چې وسوسې اچوي \| او روستو کيږي |
| فِیْ صُدُوْرِ النَّاسِ ۙ مِنَ الْجِنَّةِ وَ النَّاسِ ۟ |
| په سينو د زړونو د انسانانو کښې \| د پيريانو نه \| او د انسيانانو نه \| |
| چې د خلقو په زړونو کښې وسوسې اچوي\| که هغه پيريې وی او که انسان |

قوله تعالى:- قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۙ مَلِكِ النَّاسِ ۙ اِلٰهِ النَّاسِ ۙ
د الله ﷻ درې صفتونه :-پدې کښې د الله ﷻ درې صفتونه بيان کړې شوی دی پالونکې او پرورش کونکې د مالک و شهنشاه کيدو ،معبود او د عبادت لائق کيدو. ټول څيزونه هم د هغه پيداکړې شوی دی او هم د هغه په غلامئ کښې مشغول دی. نو هغه حکم ورکوی چه د هغه پاك او بزرګ صفتونو والا د الله ﷻ په پناه کښې راشه ځوك هم چه د پناه او بچاؤ غوښتونکې وی.شيطان کوم چه په انسان باندې مقرر دې د هغه د وسوسونه بچ کونکې دې،هر يو انسان سره دا دې. خرابئ او بدکارئ هم هغه ښائسته کوی او د خلقو په ورانډې ئې هم هغه پيش کوی او په دهوکه کولو او د حق لارې نه اخواکولو کښې هيڅ کمې نه کوی دده د شر نه صرف هغه محفوظ پاتې کيږی ځوك چه الله ﷻ بچ کړی.په صحيح حديث کښې دی چه په تاسو کښې هر يو کس سره يو شيطان دې خلقو عرض اوکړو آيا تاسو سره هم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه او خو الله ﷻ په هغې باندې زما امداد کړې دې.نو زه سلامت پاتې يم او هغه ماته صرف د ښو خبرو اونيکئ د خبروواني. ([1])

قوله تعالى:-اَلَّذِیْ یُوَسْوِسُ فِیْ صُدُوْرِ النَّاسِ ۙ
شيطان وسوسې اچوی: بخاری اومسلم په يو يل حديث کښې د حضرت انس رضی الله عنه په ژبه يو واقعه نقل ده په کومه کښې چه بيان دې حضور ﷺ کله په اعتکاف کښې وو نوام المومنين حضرت صفيه رضی الله عنها د شپې حضور ﷺ له راغله چه کله واپس روانه شوه نو حضور ﷺ هم د پيژند ګلو د پاره ورسره شو په لار کښې صحابی رضی الله عنه ملاو شو چه حضور ﷺ ئې بی بی سره اوليدو نو زر لاړل.حضور ﷺ هغوی ته آواز ورکړو او دريږئې وئې فرمائيل واورئ زما سره زما بی بی حضرت صفيه رضی الله عنها بنت حيی رضی الله عنه ده.هغوی وئيل سبحان الله يارسول الله ﷺ د دې فرمان څه ضرورت وو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه د انسان د وينې ځائ سره شيطان ګرځی راګرځي زما خيال شو چرته ستاسو په زړه کښې هغه بدګمانی وانچوی. ([2])

حافظ ابويعلی موصلی رحمه الله يو حديث وارد کړې دې په کوم کښې چه دې نبی کريم ﷺ فرمائی شيطان خپل لاس د انسان په زړه باندې کيخودې دې که دې د الله ﷻ ذکر کوی نو دا لاس اخوکيږی او که دې د الله ﷻ ذکر هيروی نو هغه د ده په زړه باندې پوره قبضه کوی.هم دغه وسواس الخناس دی[3]دا حديث غريب دې.مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ په خپل خر باندې سور چرته تشريف اوړلو يو صحابی رضی الله عنه د حضور ﷺ شاته ناست وو خر تندك اووهلو نو د هغه د خلې نه اوتل شيطان دې بربادشی.حضور ﷺ اوفرمائيل داسې مه وايه چه دې سره شيطان زياتيږی او وائی چه ما په خپل طاقت سره راګذارکړو ته

---

[1]) صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب تحريش الشيطان وبعثه سراياه لفتنة الناس : ٢٨١٤. احمد: ٣٨٥/١.
[2]) صحيح بخار كتاب الاعتكاف باب هل يخرج المتعكف لحوائجه الى باب المسجد: ٢٠٣٥. صحيح مسلم: ٢١٧٥.
[3]) مسند ابي يعلى : ٤٣٠١.

چه کله بسم الله اووانې نو هغه کميږي تردې چه د مچ برابرپاتې شي(۱)دې سره ثابته شوه چه د الله ﷻ په ذکرسره شيطان بنکته او مغلوب کيږي اوددې په پريخودلو سره لوئيږي او غالب راځي. مسند احمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی تاسوچه کله په تاسو کښې څوك په جمات کښې وی نو هغه پسې شيطان راځي اوهغه ټپوی اودهوکه کوی لکه چه څوك خپل څاروې خوشحالوی نوکه بيا هغه چپ پاتې شو نوهغه ورته په پوزه کښې پيزوان يا په خُله کښې واګه اچوی.

**قوله تعالى:- مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ**

**شيطان په انسانانو اوپيريانو دواړو کښې وی:**حضرت ابوهريره ﷺ داحديث بيان کړو او وئی فرمائيل چه تاسوپخپله داګورئی د پيزوان والا هغه دې چه يوطرف ته ټيټ ولاړ دې اودالله ﷻ ذکر نه کوی اود واګې والا هغه دې چه خُله ئې کولاوکړې وی اود الله ﷻ ذکر نه کوی(۲)حضرت ابن عباس ﷺ د دې آيت په تفسيرکښې فرمائی شيطان د بنيادم په زړه باندې سکونډئی لګولې ده چرته چه دنه هيره اوشوه او غفلت ئې اوکړو هغه وسوسې وراچول شروع کړې او کوم ځائې چه ده د الله ﷻ ذکر شروع کړو هغه اخواشي. سلمان ﷺ فرمائی چه ماته دا ونيلې شوی دی شيطان د خوشحالئی او خفګان په وخت کښې دانسان په زړه کښې سورې کول غواړې يعنی هغه دهوکه کول غواړې که دې دالله ﷻ ذکر اوکړې نودې تختې.دحضرت ابن عباس ﷺ نه دا هم روايت دې چه شيطان بدی بنائی کله چه انسان د هغه اومنی بيادې اخوا شی بيافرمائی چه څوك د خلقو په زړونوکښې وسوسې اچوی. لفظ ناس چه د انسان په معنی کښې دې ددې اطلاق په پيريانوباندې هم د غلبه په توګه راځي. قرآن کريم کښې بل ځائې ارشاد دې﴿بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ﴾ ونيلې شوی دی چه جنات په لفظ ناس کښې داخلولوکښې هيڅ خرابي نشته.غرض دا چه شيطان د انسان او پيری په سينوکښې وسوسې اچوی.د دې نه پس جمله ﴿مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ﴾ يو مطلب خودا دې د چا په زړونوکښې چه شيطان وسوسې اچوی هغه پيرې هم دې اوانسان هم او دويم مطلب دا دې که هغه وسوسې اچونکې انسان وی که پيرې لکه چه ارشاددې﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا﴾يعنی دغه شان مونږ دهرنبی دښمن انسان او پيرې شيطان جوړکړې دې ديويل په غوږ کښې ددهوکې خبرې جوړوی او ښکلې کوی اچوی.

مسنداحمدکښې دی حضرت ابوذر ﷺ فرمائی زه رسول الله ﷺ سره جمات ته راغلم اوکيناستم. حضورﷺ اوفرمائيل مونځ دې هم اوکړو؟ما ونيل نه ونی فرمائيل اودريږه اودوه رکعته اداکړه. زه پاسيدم دوه رکعته مې اوکړه او کيناستم.حضورﷺ اوفرمائيل اې ابوذر!دالله ﷻ نه پناه اوغواړه انسی اوجنی شيطانانونه. ماعرض اوکړو يارسول اللهﷺ! آيا انسانی شيطان هم وی؟ حضورﷺ اوفرمائيل او. ما ونيل مونځ څنګه څيز دې؟ ونی فرمائيل بهترين څيز دې که څوك غواړې کم دې کوی اوکه څوك غواړې نو زيات دې کوی. ماعرض اوکړو روژه څنګه ده؟ ونی فرمائيل کافی کيدونکې فرض دې او الله ﷻ سره زيات دې. مابيا تپوس اوکړوصدقه؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه ډير زياته وی او په څوڅو چنده بدله ورکوی. ما بياعرض اوکړو چه حضورﷺ کومه يوه صدقه افضل ده؟ ونی فرمائيل سره دمال دکمې صدقه کول يا پټ پټ يومسکين فقيرسره سلوك کول.ماتپوس اوکړو حضورﷺ دټولونه ړومبې نبی څوك وو؟حضورﷺ اوفرمائيل حضرت آدم ﷺ. ما ونيل آيا هغه نبی وو؟ ونی فرمائيل اونبی او هغه نبی چاسره چه الله ﷻ خبرې کړې. ما عرض اوکړويارسول الله رسولان څو دی؟ ونی فرمائيل ۳۰۰ سوه لږ شان د پاسه لس ډيرلوئې جماعت اوکله ئې اوفرمائيل ۳۱۵.ما ونيل يارسول الله ﷺ کوم چه په تاسو نازل شوی دی په هغې کښې د ټولونه زيات د عظمت والا آيت کوم يودې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل

---

(۱) احمد: ۵۹/۵، ابوداود کتاب الادب باب : ۷۷ حديث : ۴۹۸۲. وسنده صحيح .

(۲) احمد: ۳۳۰/۲ ح/۸۳۷۰، وسنده حسن.

آیت الکرسی ﴿ اللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ۚ۬ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ یَعْلَمُ مَا بَیْنَ اَیْدِیْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا یُحِیْطُوْنَ بِشَیْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِیُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ وَلَا یَـُٔوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمُ ۝﴾ (۱) داحدیث په نسائی کښې هم دې او ابو حاتم ابن حبان "صحیح ابن حبان" کښې خو په بل سند سره په نورو الفاظو سره دا حدیث ډیر لوئ دې. والله اعلم.

**دخیالاتو متعلق:** - مسند احمد په یو حدیث کښې دی چه یو سړی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو عرض نی اوکړو یارسول الله ﷺ! زما په زړه کښې خو داسې داسې خیالات راځی چه د هغې د ژبې نه راویستل په ما د آسمان نه راپریوتلو نه هم ډیر خراب دی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل الله اکبر الله اکبر هم دالله ﷻ دپاره حمد اوثنا ده چا چه د شیطان مکر اوفریب هم په وسوسه کښې واپس کړه (۲) داحدیث ابو داؤد او نسائی کښې هم دې.

**﴿الحمدلله﴾** دسورت الناس تفسیر ختم شو. اودې سره د تفسیر ابن کثیر دیرشمه سیپاره هم ختمه شوه

---

(۱) احمد: ۱۷۸/۵، نسائی کتاب الاستعاذة باب الاستعاذة من شر الشیاطین الانس : ۵۵۰۹

(۲) احمد: ۲۳۵/۱، ابوداود کتاب الادب باب فی الوسوسة: ۵۱۱۲، وسنده صحیح ، مسند الطیالسی : ۲۷۰٤، ابن حبان : ۱٤۷.